| | |
|---|---|
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيۡمِ(١) |
| ټوله ثنا ستاينه يوازې الله ته ده چې د ټولو مخلوقاتو پالونكي دی، | اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ۙ(٢) |
| ډېر مهربان زيات رحم لرونكي دی، | الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ۙ(٣) |
| د جزا دورځې مالك دی. | مٰلِكِ يَوۡمِ الدِّيۡنِ ؕ(٤) |
| مونږ همدا ستا عبادت كوو او همدا تا نه مرسته غواړو. | اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَ اِيَّاكَ نَسۡتَعِيۡنُ ؕ(٥) |
| مونږ ته سمه لاره وښيه ، | اِهۡدِ نَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ ۙ(٦) |
| د هغو كسانو لاره چې تا پرې پېرزوېنه كړېده، نه د هغو كسانو لاره چې غضب ورباندې شوی او نه دهغو كسانو لاره چې لار وركې دي | صِرَاطَ الَّذِيۡنَ اَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ ۙ غَيۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ وَ لَا الضَّآلِّيۡنَ (٧) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيۡمِ |
| الف ، لام ، ميم ، | الٓمّٓ ۚ(١) |
| دا د الله كتاب دی ، په ده كښې هېڅ شك نشته هدايت دی د هغو پرهيز ګارانو له پاره | ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَيۡبَ ۛۚ فِيۡهِ ۛۚ هُدًى لِّلۡمُتَّقِيۡنَ ۙ(٢) |
| چې پر ناليدلو ايمان راوړي ، لمونځ قائموي او كومه روزي چې مونږ هغو ته وركړېده له هغې نه يې د الله په لاره كښې لګوي | الَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡغَيۡبِ وَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَ مِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ۙ(٣) |
| او كوم كتاب چې پر تا نازل كړای شوېدی (قرآن ) او كوم كتابونه چې له تا نه مخكښې نازل كړای شوي وو پر هغو ټولو ايمان راوړي ، او پر اخرت باور لري ، | وَ الَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِمَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ وَ مَاۤ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۚ وَ بِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ يُوۡقِنُوۡنَ ؕ(٤) |
| دغه خلك د خپل رب له لوري پر سمه لاره دي او همدوی ګ برى ميندونكي دي. | اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنۡ رَّبِّهِمۡ * وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ (٥) |
| كوم كسان چې كافران دي، هغو ته يو شان ده كه ته هغوی ووېروې او كه يې ونه وېروې ، په هېڅ صورت هغوی ايمان نه راوړي | اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ءَاَنۡذَرۡتَهُمۡ اَمۡ لَمۡ تُنۡذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ (٦) |
| الله د هغوی پر زړونو او د هغو پر غوږونو مهر وهلی دی او د هغو پر سترګو يې پرده غوړولې ده – هغوی د لوي عذاب وړ دي | خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ وَ عَلٰى سَمۡعِهِمۡ ؕ وَ عَلٰٓى اَبۡصَارِهِمۡ غِشَاوَةٌ ۫ وَّ لَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ (٧) |
| او له خلكو نه ځيني داسې هم شته چې وايي مونږ پر الله او د اخرت پر ورځ ايمان راوړيدی ، په داسې حال كښې چې په حقيقت كښې هغوی مؤمنان نه دي | وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّقُوۡلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ بِالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ مَا هُمۡ بِمُؤۡمِنِيۡنَ ۘ(٨) |
| هغوي له الله او مؤمنانو سره غولونه را اخيستي ، خو هغوی په اصل كښې په خپله خپل ځانونه غولوي او له هغو سره ددې شعور نشته | يُخٰدِعُوۡنَ اللّٰهَ وَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ۚ وَ مَا يَخۡدَعُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَهُمۡ وَ مَا يَشۡعُرُوۡنَ ؕ(٩) |
| د هغوی په زړونو كښې يوه ناروغي ده چې الله هغه لا پسې زياته كړه او كوم دروغ چې هغوی وايي د هغه په بدله كښې د هغو له پاره دردوونكی عذاب دی | فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ ۙ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ وَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ۢ ۙ بِمَا كَانُوۡا يَكۡذِبُوۡنَ (١٠) |
| كله چې هغوی ته وويل شول چې په ځمكه كښې فساد مكوئ ، نو هغوی وويل چې مونږ خو اصلاحات راوستونكي يو | وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَا تُفۡسِدُوۡا فِى الۡاَرۡضِ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُوۡنَ (١١) |

پام ولرئ ! په حقیقت کښې همدوی فساد کوونکي دي خو شعور ورسره نشته.

اَلَاۤ اِنَّهُمۡ هُمُ الۡمُفۡسِدُوۡنَ وَ لٰكِنۡ لَّا يَشۡعُرُوۡنَ (۱۲)

او کله چې هغوی ته وویل شول څنګه چې نورو خلکو ایمان راوړېدی هماغسې تاسې هم ایمان راوړئ نو هغوی ځواب ورکړ چې ایا مونږ د کم عقلانو غوندې ایمان راوړو؟ پام لرئ ! په حقیقت کښې خو همدوی په خپله کم عقلان دي خو دوی نه پوهېږي

وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ اٰمِنُوۡا كَمَاۤ اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوۡۤا اَنُؤۡمِنُ كَمَاۤ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ؕ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ هُمُ السُّفَهَآءُ وَ لٰكِنۡ لَّا يَعۡلَمُوۡنَ (۱۳)

کله چې دوی له مؤمنانو سره یو ځای شي نو وایي چې مونږ ایمان راوړېدی ، او کله چې په ګوښه ځای کې له خپلو شیطانانو سره یو ځای شي نو وایي چې په اصل کښې خو مونږ له تاسې سره یو او له دې خلکو سره صرف ټوکې کوو –

وَ اِذَا لَقُوا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا قَالُوۡۤا اٰمَنَّا ۖۚ وَ اِذَا خَلَوۡا اِلٰى شَيٰطِيۡنِهِمۡ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّا مَعَكُمۡ ۙ اِنَّمَا نَحۡنُ مُسۡتَهۡزِءُوۡنَ (۱۴)

الله له دوی سره ټوکې کوي(سزا ورکوي) او ددوی د غړو ندې رسۍ اوږدوي ، او دوی په خپله سر کشۍ کښې لکه ړند و په شان تیندکونه خوري

اَللّٰهُ يَسۡتَهۡزِئُ بِهِمۡ وَ يَمُدُّهُمۡ فِىۡ طُغۡيَانِهِمۡ يَعۡمَهُوۡنَ (۱۵)

دا هغه کسان دي چې د هدایت په بدل کښې یې ګمراهي پېرلې ده ، خو دا تجارت د دوی له پاره ګټور نه دی او دوی هیڅکله پر سمه لاره نه دي

اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ اشۡتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالۡهُدٰى ۪ فَمَا رَبِحَتۡ تِّجَارَتُهُمۡ وَ مَا كَانُوۡا مُهۡتَدِيۡنَ (۱۶)

ددوی مثال داسې دی لکه چې یو څوك اور بل کړي او چې کله اور د هغه ټوله شاوخوا رڼا کړي نو الله د دوی د سترګو بینایي ورنه واخلي او دوی په داسې حال کښې پرېږدي چې په تررمېو کښې ددوی په سترګو هیڅ نه ښکاري

مَثَلُهُمۡ كَمَثَلِ الَّذِى اسۡتَوۡقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّاۤ اَضَآءَتۡ مَا حَوۡلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوۡرِهِمۡ وَ تَرَكَهُمۡ فِىۡ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبۡصِرُوۡنَ (۱۷)

دوی کاڼه دي ، ګونګیان دي، ړانده دي ، نو دوی اوس نه راګرځي

صُمٌّ بُكۡمٌ عُمۡىٌ فَهُمۡ لَا يَرۡجِعُوۡنَ (۱۸)

یاددوی مثال داسې وګڼئ چې له اسمان نه شرکنده جړی اورېږي او له هغې سره توري تیارې ، کړ سهار او برېښنا هم ده ، دوی د تندر د کړ سهار په اورېدلو د مرګ له وېرې په غوږونو کښې ګوتې ږدي او الله دا د حق منکران له هرې خوا را ایسار کړیدي .

اَوۡ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيۡهِ ظُلُمٰتٌ وَّ رَعۡدٌ وَّ بَرۡقٌ ۚ يَجۡعَلُوۡنَ اَصَابِعَهُمۡ فِىۡۤ اٰذَانِهِمۡ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الۡمَوۡتِ ؕ وَ اللّٰهُ مُحِيۡطٌۢ بِالۡكٰفِرِيۡنَ (۱۹)

له برېښنا څخه پر دوی داسې حالت راځي چې لکه اوس به برېښناددوی د سترګو نظر والوزوي ،کله یې چې یو څه رڼا تر سترګوکېږي نو په هغې کښې لږ وړاندې ځي او کله چې تررمې پرې خورېږي نو ټپ درېږي– که دالله خوښه وای؛نوله دوی نه به یې ددوی داورېدو اوددوی دلیدو قدرت بیخي سلب کړی وای په باوري توګه الله پر هر څه قادردی.

يَكَادُ الۡبَرۡقُ يَخۡطَفُ اَبۡصَارَهُمۡ ؕ كُلَّمَاۤ اَضَآءَ لَهُمۡ مَّشَوۡا فِيۡهِ ۙ وَ اِذَاۤ اَظۡلَمَ عَلَيۡهِمۡ قَامُوۡا ؕ وَ لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمۡعِهِمۡ وَ اَبۡصَارِهِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (۲۰)

ای خلکو! د خپل هغه رب بندګي غوره کړئ چې تاسې او له تاسې نه د مخکېنېو تېرو شوېو خلکو ټولو هستوونکی دی ؛ ښایي چې تاسې له عذابه ځانونه وژغورئ.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اعۡبُدُوۡا رَبَّكُمُ الَّذِىۡ خَلَقَكُمۡ وَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُوۡنَ (۲۱)

هماغه ذات دی چې ستاسې له پاره یې ځمکه فرش وغوړوله ، اسمان یې چت جوړ کړ ، له پاسه یې اوبه راواورولې او په هغو سره یې هر ډول حاصلات راوایستل تاسې ته یې روزي ورسوله ؛نو کله چې تاسې په دې پوهېږئ نو نور د الله سیالان مه انګېرئ

الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّ السَّمَآءَ بِنَآءً ۪ وَّ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّکُمْ ۚ فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّ اَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (٢٢)

اوکه تاسې دهغه کتاب په هکله شکمن یاست چې مونږ خپل بنده ته نازل کړېدی،نودهغه غوندې صرف یوسورت راوړئ،او له الله نه پرته خپل (ټول)مرستیالان هم راوبلئ که تاسې په خپله خبره کې رېښتیني یاست.

وَ اِنْ کُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَۃٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ ۪ وَ ادْعُوْا شُهَدَآءَکُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ کُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (٢٣)

خو که تاسې دا کار ونکړ او یقیني ده چې هېڅکله به یې ونه شئ کړای ، نو له هغه اور نه ووېرېږئ چې د هغه خس خاشاك به انسانان او کاڼي وي چې د حق د منکرانو له پاره تیار کړای شویدی.

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَ لَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِیْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَ الْحِجَارَۃُ ۚۖ اُعِدَّتْ لِلْکٰفِرِیْنَ (٢٤)

او ای پېغمبره! کومو خلکو چې پردې کتاب ایمان راوړاو(له هغه سره سم ) خپل عملونه یې اصلاح کړل هغو ته زېرې ورکړه چې د هغو له پاره داسې باغونه دي ، چې ترې لاندې به ویالې بهېږي، د هغو باغونو میوې به په شکل کښې ددنیا میوو ته ورته وي، کله چې کومه میوه د خوراك له پاره هغو ته ورکړه شي ، نو هغوی به وواېي چې همدغسې میوه له دې نه مخکښې په دنیا کښې مونږ ته راکړه شوې وه ، د هغو له پاره به هلته ډېرې سپېڅلې ښځې وي ، او هغوي به هلته د تل له پاره اوسېږي.

وَ بَشِّرِ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ کُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَۃٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوْا هٰذَا الَّذِیْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ وَ اُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا ؕ وَ لَهُمْ فِیْهَاۤ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَۃٌ ٭ۙ وَّ هُمْ فِیْهَا خٰلِدُوْنَ (٢٥)

هو، الله له دې نه هېڅکله شرم نه کوي چې د ماشي یا له دې نه هم د کوم زیات حقیر شي مثال راوړي ،کوم خلك چې د حقې خبرې منونکي دي ، هغوی ددې مثال په لیدو پوهېږي چې دا حق دی چې د هغو د رب له خوا راغلی دی او څوك چې کافران دي ، نو هغوی ددې مثال په اورېدو وایي چې په داسې مثال راوړلو سره د الله اراده څه ده؟ په دې شان الله په همدې یوه خبره ډېر خلك په ګمراهی کښې اخته کوي او ډېرو ته سمه لار ښیي او په ګمراهی کښې هغه کسان اخته کوي چې فاسقان دي.

اِنَّ اللّٰهَ لَا یَسْتَحْیٖۤ اَنْ یَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَۃً فَمَا فَوْقَهَا ؕ فَاَمَّا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا فَیَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ وَ اَمَّا الَّذِیْنَ کَفَرُوْا فَیَقُوْلُوْنَ مَا ذَاۤ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ۘ یُضِلُّ بِهٖ کَثِیْرًا ۙ وَّ یَهْدِیْ بِهٖ کَثِیْرًا ؕ وَ مَا یُضِلُّ بِهٖۤ اِلَّا الْفٰسِقِیْنَ (٢۶)

هغه خلك چې د الله عهد له ټینګ تړون نه وروسته ماتوي او الله چې د کوم شي د پېوندولو امر کړیدی هغه غوڅوي او په ځمکه کښې فساد خوروي ، په حقیقت کښې همدا خلك زیانکاران دي

الَّذِیْنَ یَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِیْثَاقِهٖ ۪ وَ یَقْطَعُوْنَ مَاۤ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖۤ اَنْ یُّوْصَلَ وَ یُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ ؕ اُولٰٓئِکَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (٢٧)

تاسې څنګه له الله سره د کفر چلن غوره کوئ ، په داسې حال کښې چې تاسې بې روحه وئ ، هغه تاسې ته ژوند درکړ، بیا هماغه ستاسې سا اخلي ، بیا هماغه دوهم ځل تاسې ژوندي کوي ، بیا د هماغه لوري ته ستاسې ورګرځېدل دي.

کَیْفَ تَکْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَ کُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْیَاکُمْ ۚ ثُمَّ یُمِیْتُکُمْ ثُمَّ یُحْیِیْکُمْ ثُمَّ اِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ (٢٨)

هماغه ذات دی چې هغه ستاسي له پاره د ځمکي ټول شيان پيدا کړل، بيا يې داسمان خوا ته توجه وکړه اووه اسمانونه يې برابر کړل او هغه د هر څه علم لري .

هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ لَکُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا * ثُمَّ اسْتَوٰی اِلَی السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ؕ وَ هُوَ بِکُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ (۲۹)

هغه وخت په زړه کړه چې کله ستا رب پرښتو ته ويلي وو چې " زه په ځمکه کښي د يو خليفه پيدا کوونکی يم "، هغو عرض وکړ :" ايا ته په ځمکه کښي داسي يو څوك ټاکي ، چې د هغي نظم خراب کړی اوويني توی کړي ؟ ستا له حمد و ثنا سره تسبيح او ستا له پاره سپېڅلي ستاينه خو مونږ کوو"ويي ويل:" زه پر هغه څه پوهېږم چې تاسي پرې نه پوهېږئ"

وَ اِذْ قَالَ رَبُّکَ لِلْمَلٰٓئِکَةِ اِنِّیْ جَاعِلٌ فِی الْاَرْضِ خَلِیْفَةً ؕ قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِیْهَا مَنْ یُّفْسِدُ فِیْهَا وَ یَسْفِکُ الدِّمَآءَ ۚ وَ نَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِکَ وَ نُقَدِّسُ لَکَ ؕ قَالَ اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ (۳۰)

له هغه وروسته الله ادم ته د ټولو شيانو نومونه وښودل ، بيا يې هغه پرښتو ته وړاندې کړل او ويې ويل " که ستاسي دا ګومان صحيح وي (چې د خليفه په ټاکنه کښي به نظم وران شي ) نو ددې شيانو نومونه راوښيئ"

وَ عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ کُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَی الْمَلٰٓئِکَةِ ۙ فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِیْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ کُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (۳۱)

هغوی عرض وکړ : له نيمګړتيا نه پاك يوازې ستا ذات دی ، مونږ خو صرف دومره علم لرو چې تا مونږ ته راکړی دی ، په حقيقت کښي په هر څه پوهېدونکی او د حکمت خاوند يوازې همدا ته يې.

قَالُوْا سُبْحٰنَکَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّکَ اَنْتَ الْعَلِیْمُ الْحَکِیْمُ (۳۲)

الله ادم ته وويل:"ای ادم! دوی ته ددې شيانو نومونه وښيه ، کله چې هغو ته يې د هغو ټولو نومونه وښودل، نو الله وويل "ايا ما تاسي ته نه و وويلي چې زه د اسمانونو او د ځمکي پر هغو ټولو حقيقتونو پوهېږم چې له تاسي نه پټ دي او څه چې تاسي ښکاره کوئ هغه هم ماته معلوم دي او څه چې تاسي پټوئ پر هغو هم زه پوهېږم"

قَالَ یٰٓاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّکُمْ اِنِّیْٓ اَعْلَمُ غَیْبَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۙ وَ اَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَ مَا کُنْتُمْ تَکْتُمُوْنَ (۳۳)

او کله چې مونږ پرښتو ته امر وکړ چې د ادم په وړاندې سر ونه په سجده ښکته کړئ ، نو ټولو سرونه ښکته کړل ، خو ابليس انکار وکړ ، هغه د خپلي لوئی په غرور کښي اخته اود کافرانو له ډلي څخه شو .

وَ اِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِکَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِیْسَ ؕ اَبٰی وَ اسْتَکْبَرَ * وَ کَانَ مِنَ الْکٰفِرِیْنَ (۳۴)

بيا مونږ ادم ته وويل چې " ته او ستا مېرمن ، دواړه په جنت کښي اوسېږئ او دلته په پراخی سره چې څه مو زړه غواړي خورئ ، خو دې ونې ته مه نژدې کېږئ که نه نو په تيري کوونکو کښي به وشمېرل شئ".

وَ قُلْنَا یٰٓاٰدَمُ اسْکُنْ اَنْتَ وَ زَوْجُکَ الْجَنَّةَ وَ کُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَیْثُ شِئْتُمَا ۪ وَ لَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَکُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِیْنَ (۳۵)

په پای کښي شيطان دوی دواړه هغې ونې ته په لمسولو زمونږ دامر له منلو نه واړول او له هغه حالت نه يې وايستل چې هغوی په کښي وو ، مونږ امر وکړ چې " اوس تاسي ټول له دې ځايه کوز شئ، تاسي يو دبل دښمنان ئې او تر يوې خاصې مودې پورې په ځمکه کښي ستاسي هستوګنه او همالته ژوند تېر ول دي

فَاَزَلَّهُمَا الشَّیْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا کَانَا فِیْهِ ۪ وَ قُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُکُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَ لَکُمْ فِی الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّ مَتَاعٌ اِلٰی حِیْنٍ (۳۶)

په دې وخت کښې ادم (ع) له خپل پروردګار نه څو کلمې زده کړې توبه يې وايستله ، چې دده رب قبوله کړه ، يقيناً هغه ښه توبه قبلوونکی او د رحمت څښتن دی.

فَتَلَقّٰى اٰدَمُ مِنۡ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيۡهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ (٣٧)

مونږ وويل چې " تاسې ټول له دې ځايه کوز شئ ، بيا چې تاسې ته زما له خوا کوم هدايت ورسيږي ، نو څوك چې زما د هدايت پيروي وکړي ؛ نو پر هغو به څه ويره او غم نه وي.

قُلۡنَا اهۡبِطُوۡا مِنۡهَا جَمِيۡعًا ۚ فَاِمَّا يَاۡتِيَنَّكُمۡ مِّنِّىۡ هُدًى فَمَنۡ تَبِعَ هُدَاىَ فَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَ لَا هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ (٣٨)

او څوك چې دهدايت له منلو انکار وکړي او زمونږ ايتونه دروغ وانګيري ، هغوی دوزخ ته ورتلونکي دي ، هلته به هغوی تل اوسيږي.

وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ (٣٩)

ای بني اسرائيلو ! زما هغه نعمت در ياد کړئ چې پر تاسې مې لورولی وْ ، له ما سره چې ستاسې کوم تړون وْ هغه تاسې سرته ورسوئ، زما چې له تاسې سره کوم تړون وْ هغه به زه تر سره کړم او يوازې له مانه ويره وکړئ.

يٰبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِىَ الَّتِىۡۤ اَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَ اَوۡفُوۡا بِعَهۡدِىۡۤ اُوۡفِ بِعَهۡدِكُمۡ ۚ وَ اِيَّاىَ فَارۡهَبُوۡنِ (٤٠)

او ما چې کوم کتاب ليږلی دی پر هغه ايمان راوړئ ، دا د هغه کتاب تاييدوونکی دی چې له تاسې سره له پخوا نه موجود وْ، له دې امله تر ټولو دمخه تاسې ورڅخه انکار مه کوئ، په لږ بيه زما ايتونه مه خرڅوئ او زما له غضب نه ځان وساتئ

وَ اٰمِنُوۡا بِمَاۤ اَنۡزَلۡتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمۡ وَ لَا تَكُوۡنُوۡۤا اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ ۖ وَ لَا تَشۡتَرُوۡا بِاٰيٰتِىۡ ثَمَنًا قَلِيۡلًا ۡ وَّ اِيَّاىَ فَاتَّقُوۡنِ (٤١)

او باطل ته د حق جامه مه وراغوندئ او له پوهيدو سره سره د حق پټولو هڅه مکوئ.

وَ لَا تَلۡبِسُوا الۡحَقَّ بِالۡبَاطِلِ وَ تَكۡتُمُوا الۡحَقَّ وَ اَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (٤٢)

او لمونځ قائم کړئ، زکات ورکړئ ، او کوم خلك چې ماته سرټيټوی تاسې هم له هغو سره ټيټ شئ

وَ اَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ وَ ارۡكَعُوۡا مَعَ الرّٰكِعِيۡنَ (٤٣)

ايا تاسې نورو ته دښې لارې غوره کولو له پاره واياست ، او خپل ځان هيروئ؟ په داسې حال کښې چې تاسې کتاب لولئ ،ايا تاسې له پوهې څخه هيڅ کار نه اخلئ؟

اَتَاۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبِرِّ وَ تَنۡسَوۡنَ اَنۡفُسَكُمۡ وَ اَنۡتُمۡ تَتۡلُوۡنَ الۡكِتٰبَ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ (٤٤)

په صبر او لمانځه مرسته وغواړئ، په دې کښې شك نشته چې لمونځ يو ډېر سخت کار دی ، خو هغو امر منونکو بندګانو ته سخت نه دی

وَ اسۡتَعِيۡنُوۡا بِالصَّبۡرِ وَ الصَّلٰوةِ ؕ وَ اِنَّهَا لَكَبِيۡرَةٌ اِلَّا عَلَى الۡخٰشِعِيۡنَ (٤٥)

چې په دې يې باور دی چې په پای کښې له خپل رب سره يو ځای کيدونکي او د هماغه لورې ته ورګرځيدونکي دي.

الَّذِيۡنَ يَظُنُّوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّلٰقُوۡا رَبِّهِمۡ وَ اَنَّهُمۡ اِلَيۡهِ رٰجِعُوۡنَ (٤٦)

ای بني اسرائيلو ! زما هغه نعمت درياد کړئ چې هغه مې پر تاسې پيرزو کړی وْ او دا چې د نړۍ پر ټولو امتونو مې تاسې ته فضيلت درکړی وْ

يٰبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِىَ الَّتِىۡۤ اَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَ اَنِّىۡ فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ (٤٧)

او له هغې ورځې ووېرېږئ چې هلته هيڅوك هيچا ته يوه ذره په درد ونه خوري ، نه د هيچا سپارښتنه ومنله شي ، نه هيڅوك د فديې په بدل کښې پرېښودای شي، او نه له ګناهګارانو سره له کوم لورې مرسته وکړای شي.

وَ اتَّقُوۡا يَوۡمًا لَّا تَجۡزِىۡ نَفۡسٌ عَنۡ نَّفۡسٍ شَيۡئًا وَّ لَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا شَفَاعَةٌ وَّ لَا يُؤۡخَذُ مِنۡهَا عَدۡلٌ وَّ لَا هُمۡ يُنۡصَرُوۡنَ (٤٨)

یاد کړئ هغه وخت چي مونږ تاسي ته د فرعون له غلامی نه نجات درکړ هغو تاسي په سخت عذاب کښي اخته کړي وئ ، ستاسي زامن يې حلالول او ستاسي لوڼي يې ژوندۍ ساتلي او په دې حالت کښي ستاسي درب له لوري پر تاسي لوی ازمېښت وْ.

وَ اِذۡ نَجَّيۡنٰكُمۡ مِّنۡ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ يَسُوۡمُوۡنَكُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ يُذَبِّحُوۡنَ اَبۡنَآءَكُمۡ وَ يَسۡتَحۡيُوۡنَ نِسَآءَكُمۡ ؕ وَ فِىۡ ذٰلِكُمۡ بَلَآ ءٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَظِيۡمٌ (۴۹)

درياد کړئ هغه وخت چي مونږ د سمندر په څيرولو ستاسي له پاره لاره جوړه کړه ، بيا مو له هغه نه تاسي روغ رمټ پوري ايستلئ ، بيا مو په هغه کښي ستاسي تر نظر لاندې فرعونيان غرق کړل.

وَ اِذۡ فَرَقۡنَا بِكُمُ الۡبَحۡرَ فَاَنۡجَيۡنٰكُمۡ وَ اَغۡرَقۡنَاۤ اٰلَ فِرۡعَوۡنَ وَ اَنۡتُمۡ تَنۡظُرُوۡنَ (۵۰)

درياد کړئ چي کله مونږ موسی (ع) ته څلوېښتو شپو ورځو په ژمنه راوغوښت ، نو تاسي د هغه پسي شاخوسکی په خدايی ونيو. په هغه وخت کښي تاسي له حده ډېر زيات تيری کړی وْ ؛

وَ اِذۡ وٰعَدۡنَا مُوۡسٰٓى اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً ثُمَّ اتَّخَذۡتُمُ الۡعِجۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِهٖ وَ اَنۡتُمۡ ظٰلِمُوۡنَ (۵۱)

خو د هغې له پاسه هم مونږ تاسي ته عفوه وکړه چي ښايي اوس شکر کوونکي اوسئ.

ثُمَّ عَفَوۡنَا عَنۡكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ (۵۲)

ياد کړئ چي ( بېدو په هماغه وخت کښي چي تاسي داظلم کاوه ) مونږ موسی ته کتاب او فرقان ورکړ چي تاسي سمه لاره ومومئ.

وَ اِذۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ وَ الۡفُرۡقَانَ لَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُوۡنَ (۵۳)

درياد کړئ چي کله موسی ( له دې نعمت سره درستون شو؛ نو ) خپل قوم ته يې وويل چي " ای خلکو ، تاسي په خدايي سره د خوسکي په نيولو پر خپل ځان سخت ظلم کړيدی، نو تاسي د خپل خالق په وړاندې تو به وباسئ او په خپلو کښي سره ووژنئ ، په همدې کار کښي ستاسي د خالق په وړاندې ستاسي ښه توب دی" په هغه وخت کښي ستاسي خالق ستاسي توبه قبوله کړه چي هغه ښه توبه قبلوونکی او درحمت څښتن دی.

وَ اِذۡ قَالَ مُوۡسٰى لِقَوۡمِهٖ يٰقَوۡمِ اِنَّكُمۡ ظَلَمۡتُمۡ اَنۡفُسَكُمۡ بِاتِّخَاذِكُمُ الۡعِجۡلَ فَتُوۡبُوۡٓا اِلٰى بَارِئِكُمۡ فَاقۡتُلُوۡٓا اَنۡفُسَكُمۡ ؕ ذٰلِكُمۡ خَيۡرٌ لَّكُمۡ عِنۡدَ بَارِئِكُمۡ ؕ فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ (۵۴)

درپه زړه کړئ هغه وخت چي کله تاسي موسی (ع) ته ويلي وو چي مونږ به ستا په خوله تر هغه باور ونه کړو ، چي په خپلو سترګو په ښرګنده توګه خدای ( له تا سره په خبرو کولو ) ونه وينو ، هغه وخت تاسي په رڼو سترګو کتل چي يوه قوي صاعقه درته راغله ، تاسي بې روحه غورځېدلي وئ،

وَ اِذۡ قُلۡتُمۡ يٰمُوۡسٰى لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهۡرَةً فَاَخَذَتۡكُمُ الصّٰعِقَةُ وَ اَنۡتُمۡ تَنۡظُرُوۡنَ (۵۵)

مګر بيا مونږ له مړيني وروسته تاسي ژوندي راپاځولئ- په کار ده چي له دې ښېګڼې وروسته تاسي شکر وباسئ

ثُمَّ بَعَثۡنٰكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَوۡتِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ (۵۶)

مونږ وريځ پر تاسي سېوری کړه ، دمن او سلوی خواړه مو درته برابر کړل او تاسي ته مي وويل کوم پاك شيان چي مونږ تاسي ته روزي کړيدي ، هغه خورئ، خو ستاسي پخوانېو چي څه وکړل ، هغه پر مونږ ظلم نه وْ ؛ بلکي هغو خپله پر خپل ځان ظلم وکړ.

وَ ظَلَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ الۡغَمَامَ وَ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكُمُ الۡمَنَّ وَ السَّلۡوٰى ؕ كُلُوۡا مِنۡ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰكُمۡ ؕ وَ مَا ظَلَمُوۡنَا وَ لٰكِنۡ كَانُوۡٓا اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ (۵۷)

اويادکړئ چي کله مونږ ويلي وْ چي " دې کلي ته چي ستاسي په مخکښي دی ننوځئ ، د هغه حاصلات چي څنګه مو زړه غواړي هغسي په خوند وخورئ، مګر د کلي په دروازه کښي د سجدې په حال کښي ننوځئ او ووايئ ای ربه زمونږ ګناوې راوبښه ، مونږ ستاسي خطا ګاني دربښو او په نيکانو به لا زيات فضل او مهرباني پېرزو کړو"

وَ اِذۡ قُلۡنَا ادۡخُلُوۡا هٰذِهِ الۡقَرۡيَةَ فَكُلُوۡا مِنۡهَا حَيۡثُ شِئۡتُمۡ رَغَدًا وَّ ادۡخُلُوا الۡبَابَ سُجَّدًا وَّ قُوۡلُوۡا حِطَّةٌ نَّغۡفِرۡ لَكُمۡ خَطٰيٰكُمۡ ؕ وَ سَنَزِيۡدُ الۡمُحۡسِنِيۡنَ (۵۸)

خو کومه خبره چې ویل شوې وه ، ظالمانو هغه بدله کړه نور څه يې وکړل، په پای کښي مونږ پر ظلم کوونکو له اسمانه عذاب نازل کړ دا سزا د هغو سرغړونو وه چې هغوئ کولې.

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ (۵۹)

هغه وخت درياد کړئ چې کله موسی (ع) د خپل قوم له پاره اوبه وغوښتلې نو مونږ وويل چې پر فلانی تيږه په خپله همساګوزار وکړه – چې بيا له هغې نه دولس چينې وخوټېدې او هره قبيله وپوهېده چې له کومه ځايه خپلې اوبه واخلي، په هغه کښي دا لاربښودنه شوې وه چې د الله له لوري درکړای شوې روزي وخورئ وڅښئ او په ځمکه کښي ورانی مه کوئ.

وَ اِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَاعَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ كُلُوْا وَ اشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَ لَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ (۶۰)

هغه وخت درياد کړئ چې تاسي ويلي وو چې ای موسی ! مونږ په همدا يو ډول خوړو صبر نه شو کولای ، له خپل رب نه دې وغواړه چې مونږ ته د ځمکي حاصلات ، تره ، بادرنګ ، غنم ، نسك او پياز پيدا کړي" نو موسی (ع) وويل : " ايا د يو غوره شي پر ځای تاسي د کم ارزښته شيانو اخيستل غواړئ؟ ښه نو کوم ښار ته لاړ شئ، څه چې غواړئ هلته به يې ومومئ " په پای کښي خبره دې ته ورسېده چې ذلت او خواري بيوزلي او بده ورځ وربانديې راغله او د خدای په قهر اخته شول، دايي نتيجه وه چې هغو د خدای له ايتونو نه انکار شروع کړ او د پېغمبرانو په ناحقه وژلو يې لاس پورې کړ، دايي نتيجه وه د هغو د نافرمانېو او ددې خبرې چې هغوی د شريعت له پولو نه پرله پسې پښې اړولې.

وَ اِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْبِتُ الْاَرْضُ مِنْۢ بَقْلِهَا وَ قِثَّآئِهَا وَ فُوْمِهَا وَ عَدَسِهَا وَ بَصَلِهَا ؕ قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِىْ هُوَ اَدْنٰى بِالَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ ؕ اِهْبِطُوْا مِصْرًا فَاِنَّ لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ ؕ وَ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَ الْمَسْكَنَةُ * وَ بَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ يَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّ كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ (۶۱)

باور ولرئ هر څوك چې پر محمد (صلی الله عليه وسلم) د ايمان مدعيان وي، يا يهوديان وي ، عيسايان وي يا صابيان وي ، نوڅوك چې پر الله او داخرت پر ورځ ايمان راوړي او غوره عمل وکړي ، د هغو اجر د هغوله رب سره دی او د هغو له پاره هېڅ وېره او غم نشته .

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ الَّذِيْنَ هَادُوْا وَ النَّصٰرٰى وَ الصّٰبِئِيْنَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۶۲)

درياد کړئ هغه وخت چې کله مونږ د طور غر پرتاسي راپورته کړی او له تاسي نه مو تعهد اخيستی وْ او ويلي مو وو " کوم کتاب چې مونږ درکوو هغه په کلکه ساتنه واخلي او په هغه کښي درج شوي حکمونه او لاربښودني زده کړئ په دې توګه کېدای شي چې تاسي د پرهېزګاری چلند غوره کړای شئ"؛

وَ اِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَ رَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَا اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّ اذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ (۶۳)

خو له هغه وروسته تاسي له خپل لوزنه واوښتئ ددې له پاسه هم د الله مهرباني او رحمت ستاسي ملګرتيا پرېنښوده که نه نو تاسي تباه کېدئ.

ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ فَلَوْ لَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهٗ لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ (۶۴)

او تاسي ته خو د خپل قوم د هغو کسانو سرګذشت پوره څرګند دی چې هغو دسبت قانون مات کړی وْ، مونږ هغو ته وويل چې بيزوګانې شئ او په داسي حال کښي اوسئ چې له هرې خوا درباندې ذلت، نفرين او لعنت وي،

وَ لَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِى السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِئِيْنَ (۶۵)

په دې ترتيب مونږ د هغو عاقبت د هغې زمانې او وروستېو نسلونو له پاره عبرت او وېرېدونکو له پاره نصيحت وګرځوه.

فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَ مَا خَلْفَهَا وَ مَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ (۶۶)

او هغه پېښه درياده کړه چي کله موسی (ع) خپل قوم ته ووېل چي الله تاسي ته ديوي غواذبح کولو امر کوي- هغو ووېل ايا ته له مونږ سره ټوکي کوې؟ موسی (ع) وويل، زه له دېنه خدای ته پناه وروړم چي دجاهلانو غوندې خبرې وکړم.

وَ اِذۡ قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِہٖۤ اِنَّ اللّٰہَ یَاۡمُرُکُمۡ اَنۡ تَذۡبَحُوۡا بَقَرَۃً ؕ قَالُوۡۤا اَتَتَّخِذُنَا ہُزُوًا ؕ قَالَ اَعُوۡذُ بِاللّٰہِ اَنۡ اَکُوۡنَ مِنَ الۡجٰہِلِیۡنَ (۶۷)

ويې ووېل ښه نو ، له خپل رب نه دې وغواړه چي مونږ ته د هغې غوا څه تفصيل وکړي، موسی (ع) ووېل ، الله لارښودنه کوي چي هغه دې داسې غوا وي چي نه زړه وي نه وړه؛ بلکي د منځنې عمر لرونکې وي ؛ نو څه چي درته امر کېږي هغسې وکړئ.

قَالُوا ادۡعُ لَنَا رَبَّکَ یُبَیِّنۡ لَّنَا مَا ہِیَ ؕ قَالَ اِنَّہٗ یَقُوۡلُ اِنَّہَا بَقَرَۃٌ لَّا فَارِضٌ وَّ لَا بِکۡرٌ ؕ عَوَانٌۢ بَیۡنَ ذٰلِکَ ؕ فَافۡعَلُوۡا مَا تُؤۡمَرُوۡنَ (۶۸)

هغو بيا ووېل : له خپل رب نه دې دا هم پوښتنه وکړه چي د هغې بڼه څنګه وي؟ موسی (ع) وويل هغه وايي چي داسې تکه ژېړه غوا دې وي چي ليدونکی يې په ليدو خوشاله شي

قَالُوا ادۡعُ لَنَا رَبَّکَ یُبَیِّنۡ لَّنَا مَا لَوۡنُہَا ؕ قَالَ اِنَّہٗ یَقُوۡلُ اِنَّہَا بَقَرَۃٌ صَفۡرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوۡنُہَا تَسُرُّ النّٰظِرِیۡنَ (۶۹)

بيا يې ووېل : له خپل رب نه دې پوښتنه وکړه چي ښه څرګنده راوښيي څنګه غوا مقصد ده ،مونږ د هغې په سمه پېژندنه کښې په اشتباه کښې لويدلي يو – که د الله اراده وشي ، مونږ به هغه ښه وپېژنو

قَالُوا ادۡعُ لَنَا رَبَّکَ یُبَیِّنۡ لَّنَا مَا ہِیَ ۙ اِنَّ الۡبَقَرَ تَشٰبَہَ عَلَیۡنَا ؕ وَ اِنَّاۤ اِنۡ شَآءَ اللّٰہُ لَمُہۡتَدُوۡنَ (۷۰)

موسی (ع) ځواب ورکړ چي الله وايي هغه داسې غوا ده چي کار ورڅخه نه اخيستل کېږي، نه ځمکه کولبه کوي، نه ارهټ ګرځوي، روغه رمټه او بې داغه ده ، نو هغو ناري کړې چي هو، اوس دې سمې نښې راوښودلې ، بيا يې هغه ذبحه کړه ، که نه نو ددې کار کوونکي نه وو.

قَالَ اِنَّہٗ یَقُوۡلُ اِنَّہَا بَقَرَۃٌ لَّا ذَلُوۡلٌ تُثِیۡرُ الۡاَرۡضَ وَ لَا تَسۡقِی الۡحَرۡثَ ۚ مُسَلَّمَۃٌ لَّا شِیَۃَ فِیۡہَا ؕ قَالُوا الۡـٰٔنَ جِئۡتَ بِالۡحَقِّ ؕ فَذَبَحُوۡہَا وَ مَا کَادُوۡا یَفۡعَلُوۡنَ (۷۱)

او تاسي ته هغه پېښه ياده ده چي کله تاسي څوك وژلی وْ، بيا مو د هغه په باب جګړې کولې او يو پر بل مو دوژلو تور وايه او الله فيصله کړې وه تاسي چي کوم شی پټوئ هغه به رابرسېره کړي.

وَ اِذۡ قَتَلۡتُمۡ نَفۡسًا فَادّٰرَءۡتُمۡ فِیۡہَا ؕ وَ اللّٰہُ مُخۡرِجٌ مَّا کُنۡتُمۡ تَکۡتُمُوۡنَ (۷۲)

هغه وخت مونږ امر وکړ چي دوژل شوي پر جوسه د هغې يوه برخه ووهئ، وګورئ دغسي الله مړي ژوندي کوي او تاسي ته د خپل قدرت نښاني درښيي تر څو چي وپوهېږئ\

فَقُلۡنَا اضۡرِبُوۡہُ بِبَعۡضِہَا ؕ کَذٰلِکَ یُحۡیِ اللّٰہُ الۡمَوۡتٰی ۙ وَ یُرِیۡکُمۡ اٰیٰتِہٖ لَعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ (۷۳)

خو ددغه ډول ښو نښانو له ليدلو وروسته هم په پای کښې ستاسي زړونه سخت شول ، د تيږو په شان سخت ؛ بلکي له هغو نه هم څه زيات سخت ، ځکه ځيني داسې تيږې هم شته چي له هغو نه چينې راووځي بهېږي، ځيني چوي او اوبه ترېنه راووځي، او ځيني د خدای له وېرې لړزېږی رالوېږي، الله ستاسي له کړو وړو نه نا خبر نه دی.

ثُمَّ قَسَتۡ قُلُوۡبُکُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِکَ فَہِیَ کَالۡحِجَارَۃِ اَوۡ اَشَدُّ قَسۡوَۃً ؕ وَ اِنَّ مِنَ الۡحِجَارَۃِ لَمَا یَتَفَجَّرُ مِنۡہُ الۡاَنۡہٰرُ ؕ وَ اِنَّ مِنۡہَا لَمَا یَشَّقَّقُ فَیَخۡرُجُ مِنۡہُ الۡمَآءُ ؕ وَ اِنَّ مِنۡہَا لَمَا یَہۡبِطُ مِنۡ خَشۡیَۃِ اللّٰہِ ؕ وَ مَا اللّٰہُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ (۷۴)

ای مسلمانانو ! ایا اوس تاسي له دې خلکو نه دا تمه لرئ چي دوی به ستاسي پر بلنه ایمان راوړي؟ په داسي حال کښي چي له هغو نه دیوې ډلې داعادت گرځېدلی ، چي د الله کلام واوري او بیا پر هغه له پوهېدو او ادراك سره سره اگاهانه په کښي تحریف کوي.

اَفَتَطۡمَعُوۡنَ اَنۡ یُّؤۡمِنُوۡا لَکُمۡ وَ قَدۡ کَانَ فَرِیۡقٌ مِّنۡہُمۡ یَسۡمَعُوۡنَ کَلٰمَ اللّٰہِ ثُمَّ یُحَرِّفُوۡنَہٗ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا عَقَلُوۡہُ وَ ہُمۡ یَعۡلَمُوۡنَ (۷۵)

پر " محمد رسول الله " له ایمان راوړونکو سره چي کله یو ځای شي؛ نو وايي چي مونږ هم ایمان راوړی دی، او کله چي په خپلو مینځو کښي یو له بله سره په گوښه کښي خبرې اترې کوي نو وايي چي احمقان شوي ئي چي دوی ته هغه خبرې وربښيئ چي الله تعالی تاسي ته دربښودلي دي چي ستاسي د رب په وړاندې يې ستاسي په خلاف ددليل په توگه وړاندې کړي ؟

وَ اِذَا لَقُوا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا قَالُوۡۤا اٰمَنَّا ۚۖ وَ اِذَا خَلَا بَعۡضُہُمۡ اِلٰی بَعۡضٍ قَالُوۡۤا اَتُحَدِّثُوۡنَہُمۡ بِمَا فَتَحَ اللّٰہُ عَلَیۡکُمۡ لِیُحَآجُّوۡکُمۡ بِہٖ عِنۡدَ رَبِّکُمۡ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ (۷۶)

او ایا دوی نه پوهېږي څه چي دوی پټوي او څه چي ښکاره کوي الله په ټولو خبرو عالم دی؟

اَ وَ لَا یَعۡلَمُوۡنَ اَنَّ اللّٰہَ یَعۡلَمُ مَا یُسِرُّوۡنَ وَ مَا یُعۡلِنُوۡنَ (۷۷)

او په دوی کښي يو ه ډله داميانو ده چي پر کتاب نه پوهېږي ، پر بې بنسټه هيلو يې تکيه کړېده او په انگېرنه او گومان روان دي.

وَ مِنۡہُمۡ اُمِّیُّوۡنَ لَا یَعۡلَمُوۡنَ الۡکِتٰبَ اِلَّاۤ اَمَانِیَّ وَ اِنۡ ہُمۡ اِلَّا یَظُنُّوۡنَ (۷۸)

نو هلاکت او تباهي ده د هغو کسانو له پاره چي په خپلو لاسونو د شرعي ليکنه کوي او بيا خلکو ته وايي د ا له الله څخه راغلي ده تر څو چي د هغې په بدل کښي لږ غوندي گټه په لاس راوړي، نو د هغو د لاسونو دا ليکنه هم د هغو د تباهي وسيله ده او د هغو دا گټه هم د هغو د هلاکت موجب ده ،

فَوَیۡلٌ لِّلَّذِیۡنَ یَکۡتُبُوۡنَ الۡکِتٰبَ بِاَیۡدِیۡہِمۡ * ثُمَّ یَقُوۡلُوۡنَ ہٰذَا مِنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ لِیَشۡتَرُوۡا بِہٖ ثَمَنًا قَلِیۡلًا ؕ فَوَیۡلٌ لَّہُمۡ مِّمَّا کَتَبَتۡ اَیۡدِیۡہِمۡ وَ وَیۡلٌ لَّہُمۡ مِّمَّا یَکۡسِبُوۡنَ (۷۹)

هغوی وايي د دوزخ اور به پر مونږ هېڅکله ونه لگېږي، خو که څو ورځي سزا راکوله کېږي نو رادې کړای شي ، له دوی نه پوښتنه وکړه ايا تاسي له الله نه ژبنه اخيستې ده ، چي له هغې څخه الله تېرېدای نه شي ؟ يا خبره داده چي په الله پورې داسي خبرې تړئ چي تاسي پرې نه پوهېږئ.

وَ قَالُوۡا لَنۡ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّاۤ اَیَّامًا مَّعۡدُوۡدَۃً ؕ قُلۡ اَتَّخَذۡتُمۡ عِنۡدَ اللّٰہِ عَہۡدًا فَلَنۡ یُّخۡلِفَ اللّٰہُ عَہۡدَہٗۤ اَمۡ تَقُوۡلُوۡنَ عَلَی اللّٰہِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۸۰)

هو څوك چي بدي وکړي او د خپلو خطاوو په چاپېريال کښي ايسار شي نو هغوی دوزخيان دي او هغوی به په دوزخ کښي تل اوسېږي.

بَلٰی مَنۡ کَسَبَ سَیِّئَۃً وَّ اَحَاطَتۡ بِہٖ خَطِیۡٓـَٔتُہٗ فَاُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۸۱)

او کوم خلك چي ايمان راوړي او نيك عملونه وکړي هغوی جنتيان دي او په جنت کښي به هغوی تل اوسېږي.

وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّۃِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۸۲)

په ياد ولرئ ، له بني اسرائيلو نه مونږ کلکه ژبنه اخيستې وه چي له الله نه پرته به د هېچا عبادت نکوئ، له مور او پلار سره ، له خپلو خپلوانو سره، له يتيمانو او مسکينانو سره به غوره چار چلن کوئ، خلکو ته ښې خبرې کوئ، لمونځ کوئ او زکات ورکوئ ؛خو له لږ کسانو پرته نور تاسي ټول له دې ژبني نه واووښتلئ او اوس هم مخ اړوونکي يئ.

وَ اِذۡ اَخَذۡنَا مِیۡثَاقَ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ لَا تَعۡبُدُوۡنَ اِلَّا اللّٰہَ ۟ وَ بِالۡوَالِدَیۡنِ اِحۡسَانًا وَّ ذِی الۡقُرۡبٰی وَ الۡیَتٰمٰی وَ الۡمَسٰکِیۡنِ وَ قُوۡلُوۡا لِلنَّاسِ حُسۡنًا وَّ اَقِیۡمُوا الصَّلٰوۃَ وَ اٰتُوا الزَّکٰوۃَ ؕ ثُمَّ تَوَلَّیۡتُمۡ اِلَّا قَلِیۡلًا مِّنۡکُمۡ وَ اَنۡتُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ (۸۳)

او په ياد ولرئ، چي مونږ له تاسي نه کلکه ژبنه اخيستې وه چي په خپلو مينځو کښي يو د بل وينې مه تويوئ او مه يو بل له کوره بې کوره کوئ. بيا تاسي ددې اقرار کړی وْ ، اوتاسي په خپله په دې شاهدان يئ-

وَ اِذۡ اَخَذۡنَا مِیۡثَاقَکُمۡ لَا تَسۡفِکُوۡنَ دِمَآءَکُمۡ وَ لَا تُخۡرِجُوۡنَ اَنۡفُسَکُمۡ مِّنۡ دِیَارِکُمۡ ثُمَّ اَقۡرَرۡتُمۡ وَ اَنۡتُمۡ تَشۡہَدُوۡنَ (۸۴)

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰۤؤُلَاۤءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَ تُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ ۫ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ ؕ وَ اِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَ هُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ ؕ اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَ تَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ ۚ فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ ؕ وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ (۸۵)

خو نن همدا تاسي ياست چي خپل ورونه وژنئ خپل ځيني ورورنه بي کوره کوئ، د ظلم او زياتي په کولو د هغو په خلاف دِلي جوړوئ، او کله چي په جګړه کښي ونيول شي ستاسي په لاس کښي بنديان شي نو د هغود خوشي کولو له پاره د فديي لاري برابر وئ ، پداسي حال کښي چي له کورونو څخه د هغو ايستل لا له سره پرتاسي حرام وْ؛ نو ايا تاسي دکتاب په يوه برخه ايمان راوړئ او په بله برخه يي کافر کېږئ؟ نو له تاسي نه چي کوم خلك داسي وکړي ، د هغو سزا به له دې پرته نوره څه وي چي ددنيا په ژوند کښي ذليل او خوار اوسيږي او په اخرت کښي به دېر سخت عذاب په لوري وروګرځول شي ؟ الله ستاسي ددې کړنو څخه بي خبره نه دى

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ۫ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَ لَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ (۸۶)

دا هغه کسان دي چي اخرت يي پلورلى دى دنيايي ږوند يي پېرلي ده نو له دې امله نه به يي په سزا کښي اساني راوستله شي او نه به مرسته ورسره وکړه شي.

وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَ قَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ۫ وَ اٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَ اَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ۚ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ ۫ وَ فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ (۸۷)

او مونږ موسى (ع) ته کتاب ورکړ ، له هغه وروسته مو پرله پسي پېغمبران ولېږل، په پاى کښي موعيسى ابن مريم له روښانه ښنو ښنانو سره ولېږه او په سپېڅلي روح سره مو د هغه مرسته وکړه – دا ستاسي څه دود دى چي هرکله کوم پېغمبر ستاسي د نفسي غوښتنو پر خلاف له کوم شي سره تاسي ته راغلى دى ، نو تاسي ورڅخه سرکشي کړېده ، څوك مو دروغجن ګڼلي دي او څوك مو وژلي دي

وَ قَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ (۸۸)

هغوى وايي ، زمونږ زړونه پوښل شويدي ، نه اصلي خبره داده چي د هغو د کفر له امله الله پر هغو لعنت کړيدى، له دې کبله هغوى دېر لږ ايمان راوړي.

وَ لَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ وَ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚۖ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ ۫ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ (۸۹)

او اوس چي يو کتاب هغو ته د الله له لوري راغلى دى، دوى له هغه سره څه رااخيستي دي ؟ سره له دې چي دا کتاب د هغه کتاب تصديق کوونکى دى چي له پخوانه له دوى سره موجود وْ ، او سره له دې چي ددې کتاب له راتګ نه مخکښي دوى په خپله د کفارو په مقابله کښي دفتحي او نصرت دعاګاني کولي ، خو کله چي هغه کتاب راغى چي ويي پېژانده هم، نو د هغه له منلو يي انکار وکړ ؛ نو دخداى لعنت دې وي پدې منکرانو.

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ؕ وَ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ (۹۰)

څومره بده وسيله ده چي په هغي سره دوى خپل ځانونه داډه کوي په دې شان چي کوم هدايت الله رالېږلى دى، د هغه له منلو څخه يوازې ددې ځېل په اساس انکار کوي چي الله خپل فضل ( وحيي او رسالت ) پر خپل هغه بنده لور وي چي اراده يي وشي ! نو ځکه دوى د غضب له پاسه غضب وړګرځېدلي دي او د داسي کافرانو له پاره دېره سپکوونکي سزا ټاکل شوېده.

کله چي هغو ته وويل شي چي پر هغه څه چي الله رالیږلي دي ایمان راوړئ ، نو وايي " مونږ یوازې پر هغه څه ایمان راوړو چي مونږ ( یعني بني اسرائیل نسل ) ته راغلي دي" له دی ساحي دباندې چي هرڅه راغلي دي، د هغو له منلو نه انکار کوي، په داسي حال کښي چي هغه حق دی او د هغو لاربنوونو تصدیق او تائید کوي چي له پخوا نه له هغو سره موجودې وي، ښه نو ، هغو ته وو‌ایه : که تاسي پر همامغه لاربنودنه ایمان لرئ چي تاسي ته راغلي وه ، نو له دي نه مخکښي مو د الله هغه پېغمبران ولي وژل ( چي په خپله د بني اسرائیلو په نسل کښي زیږېدلي وو.)

وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَ يَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ * وَ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ؕ قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (٩١)

تاسي ته موسی (ع) له روښانه نښانو سره راغی، بیا هم تاسي داسي ظالمان وئ چي د هغه درته شا شوه خوسکی مو خپل معبود ونیو.

وَ لَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَ اَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ (٩٢)

او هغه ژبنه درپه زړه کړئ، چي پر تاسي د طور په راپورته کولو مونږ درڅخه اخیستي وه مونږ تاکید کړی وْ چي کوم هدایت درلیږو پر هغه په کلکه عمل وکړئ او غوږ ورته کیږدئ وايي ورئ ، ستاسي پلرونو نیکونو وویل چي مونږ واورېدل خو ومونه منل او هغوی داسي باطل پرستان وو چي په زړونو کښي یې د خوسکي مینه کښېنول شوې وه وو‌ایه: که تاسي مؤمنان یئ نو داعجیبه ایمان دی، چي تاسي ته دداسي ناکاره حرکتونو امر کوي.

وَ اِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَ رَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَاۤ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّ اسْمَعُوْا ؕ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ عَصَيْنَا * وَ اُشْرِبُوْا فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ؕ قُلْ بِئْسَمَا يَاْمُرُكُمْ بِهٖۤ اِيْمَانُكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (٩٣)

دوې ته وو‌ایه چي که د اخرت کور له نورو ټولو انسانانو پرته یوازې ستاسي له پاره خاص ګرځول شویدی نو تاسي ته ښايي چي د مرګ هیله من شئ که تاسي ربنتیا وايي

قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (٩٤)

باور ولرئ چي دوی به هیڅکله د هغه هیله ونه کړي ، ځکه څه چي دوی په خپلو لاسونو سرته رسولي او وړاندي یې لیږلي دي، هغه دا ایجابوي ( چي هلته دورتګ هیله ونه کړي ) ، الله ددې ظالمانو په حال ښه پوه دی .

وَ لَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ (٩٥)

ته به ارو مرو دوې له بل هر چا نه دژوند حریصان ومومې آن تر دي چي دوی په دې کار کښي له مشرکانو نه هم وړاندي شویدي د دوې هر یو دا غواړي چي کاشکي زرکاله ژوند وکړي په داسي حال کښي چي اوږد عمر خو دوې له عذابه لرې غورځولای نه شي څه عملونه چي دوې کوي الله هغه ویني.

وَ لَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ ۚۛ وَ مِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚۛ يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ ۚ وَ مَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ (٩٦)

دوې ته وو‌ایه څوك چګګې له جبریل سره دښمني لري ، هغه دې په دې وپوهیږي چي جبریل دالله په اجازه دا قرآن ستا زړه ته رسولی، چي د پخوانیو راغليو کتابونو تصدیق او تایید کوي او د مؤمنانو له پاره لاربنودنه او د بري د زیري په توګه راغلی دی –

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَ هُدًى وَّ بُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ (٩٧)

که له جبریل سره ددوی ددښمنی سبب همدا وي نو ورته وو‌ایه) ) څوك چي د الله او د هغه د پرښتو او د هغه د پېغمبرانو او د جبریل او میکائیل دښمن وي نو الله ددې کافرانو دښمن دی.

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ جِبْرِيْلَ وَ مِيْكٰلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ (٩٨)

په حقيقت کې مونږ تاته داسې ايتونه درلېږلي دي چې په ډاګه ښکاره کوونکې دي او د هغو له پېروۍ نه يوازې هماغه خلك منکرېږي چې فاسقان دي.

وَ لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡکَ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ ۚ وَ مَا یَکۡفُرُ بِہَاۤ اِلَّا الۡفٰسِقُوۡنَ (۹۹)

ايا تل داسې نه ده شوې چې کله يې څه ژبنه کړېده؛ نو له هغو نه يوې نه يوې ډلې هغه شاته غورځولې ده ؟ بلکې د هغو زياتره کسان داسې دي ، چې د زړه له کومې ايمان نه راوړي.

اَوَ کُلَّمَا عٰہَدُوۡا عَہۡدًا نَّبَذَہٗ فَرِیۡقٌ مِّنۡہُمۡ ؕ بَلۡ اَکۡثَرُہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۱۰۰)

او کله چې هغو ته د الله له لوري کوم پېغمبر د هغه کتاب تصديق کوونکی او تائيدوونکی راغلی دی چې له پخوا نه له دوی سره موجود وْ ، نو له دې اهل کتابونه يوې ډلې د الله کتاب په داسې شان شاته وغورځوه ، لکه چې دوی په هېڅ نه پوهېږي.

وَ لَمَّا جَآءَہُمۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَہُمۡ نَبَذَ فَرِیۡقٌ مِّنَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡکِتٰبَ ٭ۙ کِتٰبَ اللّٰہِ وَرَآءَ ظُہُوۡرِہِمۡ کَاَنَّہُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ (۱۰۱)

او په دې لړ کښې يې د هغو شيانو پيروي وکړه ، چې شيطانانو د سليمان (ع ) د سلطنت د نوم په اخيستلو وړاندې کول ، په داسې حال کښې چې سليمان (ع) هېڅکله نه دی کافر شوی، د کفر مرتکبين خو هغه شيطانان وو چې خلکو ته يې کوډې ښودلې، هغوې هغه څه تعقيبول چې په بابل کښې پر دوو پرښتو هاروت او ماروت نازل شوي وو، په داسې حال کښې چې هغو ( پرښتو ) به چې هرکله چاته هغه ښودل نولومړی به يې په ډاګه دا خبره ورته کوله چې "ګوره مونږ يوازې دازمېښت له پاره يو ، نومه کافر کېږه" بيا هم دې خلکو له هغو نه هغه څه زده کول چې په هغو سره د مېړه او ښځې تر مينځ بېلتون راولي ښکاره وه چې دخدای له اجازې پرته هغوې په دې وسيله هېچا ته هم ضرر نشو رسولای؛ خو له دی سره سره يې داسې څه زده کول چې په خپله د هغوې له پاره ګټور نه؛ بلکې زيان وو، او هغوې ته ښه معلومه وه، چې څوك ددې شي خريدار شي ، دهغه له پاره په اخرت کښې هېڅ ونډه نشته، څومره ناکاره سوداده چې د هغې په بدل کښې هغوې خپل ځانونه وپلورل ، کاشکې هغوی ورباندې پوهيدلای.

وَ اتَّبَعُوۡا مَا تَتۡلُوا الشَّیٰطِیۡنُ عَلٰی مُلۡکِ سُلَیۡمٰنَ ۚ وَ مَا کَفَرَ سُلَیۡمٰنُ وَ لٰکِنَّ الشَّیٰطِیۡنَ کَفَرُوۡا یُعَلِّمُوۡنَ النَّاسَ السِّحۡرَ ٭ وَ مَاۤ اُنۡزِلَ عَلَی الۡمَلَکَیۡنِ بِبَابِلَ ہَارُوۡتَ وَ مَارُوۡتَ ؕ وَ مَا یُعَلِّمٰنِ مِنۡ اَحَدٍ حَتّٰی یَقُوۡلَاۤ اِنَّمَا نَحۡنُ فِتۡنَۃٌ فَلَا تَکۡفُرۡ ؕ فَیَتَعَلَّمُوۡنَ مِنۡہُمَا مَا یُفَرِّقُوۡنَ بِہٖ بَیۡنَ الۡمَرۡءِ وَ زَوۡجِہٖ ؕ وَ مَا ہُمۡ بِضَآرِّیۡنَ بِہٖ مِنۡ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰہِ ؕ وَ یَتَعَلَّمُوۡنَ مَا یَضُرُّہُمۡ وَ لَا یَنۡفَعُہُمۡ ؕ وَ لَقَدۡ عَلِمُوۡا لَمَنِ اشۡتَرٰىہُ مَا لَہٗ فِی الۡاٰخِرَۃِ مِنۡ خَلَاقٍ ؕ۟ وَ لَبِئۡسَ مَا شَرَوۡا بِہٖۤ اَنۡفُسَہُمۡ ؕ لَوۡ کَانُوۡا یَعۡلَمُوۡنَ (۱۰۲)

که هغوې ايمان او تقوی غوره کړې وای، نو د الله په وړاندې د هغوې اجر ډېر غوره وْ، کاشکې هغوی په دې پوهيدای

وَ لَوۡ اَنَّہُمۡ اٰمَنُوۡا وَ اتَّقَوۡا لَمَثُوۡبَۃٌ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ خَیۡرٌ ؕ لَوۡ کَانُوۡا یَعۡلَمُوۡنَ (۱۰۳)

ای موْمنانو ! پيغمبر ته (راعنا) لفظ چې يهود ورنه بده معنا اخلي مه وائي، بلکې اُنظرنا (زمونږ خوا ته د عنايت نظر وکړه) ووائي او په غور سره خبره واورئ دا کافران خو د دردوونکي عذاب وړ دي.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَقُوۡلُوۡا رَاعِنَا وَ قُوۡلُوا انۡظُرۡنَا وَ اسۡمَعُوۡا ؕ وَ لِلۡکٰفِرِیۡنَ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۱۰۴)

هغو خلکو چې د حق د بلنې له منلو نه انکار کړيدی، که له اهل کتابو نه وي که مشرکان وي، هېڅکله دانه خوښوي چې ستاسې د رب له خوا دې تاسې ته څه ښېګڼه راشي ، خو د الله چې هر چاته خوښه شي د خپل رحمت له پاره يې غوره کوي او هغه دډېرې لويې مهربانۍ لوروونکی دی.

مَا یَوَدُّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ وَ لَا الۡمُشۡرِکِیۡنَ اَنۡ یُّنَزَّلَ عَلَیۡکُمۡ مِّنۡ خَیۡرٍ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ یَخۡتَصُّ بِرَحۡمَتِہٖ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِیۡمِ (۱۰۵)

مونږ چې خپل کوم ایت منسوخوو یایې (له زړونو څخه)هېرروو، د هغه په ځای له هغه نه ښه راوړو یالږ تر لږه هماغسې ایا ته په دې نه پوهېږې چې الله پر هر څه قادر دی؟

مَا نَنۡسَخۡ مِنۡ اٰيَةٍ اَوۡ نُنۡسِهَا نَاۡتِ بِخَيۡرٍ مِّنۡهَا اَوۡ مِثۡلِهَا ؕ اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (۱۰۶)

ایا ته نه ئې خبر چې داسمانونو او ځمکې فرمان روایې یوازې د همدې الله ده او له هغه پرته هېڅوك ستاسې دوست او ستاسې مرستندوی بل نشته .

اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ مَا لَكُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مِنۡ وَّلِىٍّ وَّ لَا نَصِيۡرٍ (۱۰۷)

ایا تاسې غواړئ له خپل پېغمبر نه هغه شان پوښتنې او غوښتنې وکړئ، لکه چې له دې نه مخکښې له موسی (ع) نه شویدې ؟ په داسې حال کښې څوك چې د ایمان روېه د کفر په چار چلن بدله کړي ، هغه له سمې لارې نه واوښت.

اَمۡ تُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ تَسۡـَٔلُوۡا رَسُوۡلَكُمۡ كَمَا سُئِلَ مُوۡسٰى مِنۡ قَبۡلُ ؕ وَ مَنۡ يَّتَبَدَّلِ الۡكُفۡرَ بِالۡاِيۡمَانِ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ (۱۰۸)

زیاتره اهل کتاب داغواړي چې په یو ډول نه یو ډول تاسې له ایمان نه بېرته د کفر لوري ته وګرځوي که څه هم حق هغو ته څرګند شویدی، خو د خپل نفس درخې له امله ستاسې له پاره داغواړي د هغو په ځواب کښې تاسې له عفوې او تېرېدنې نه کار واخلئ، چې الله په خپله خپله فیصله نافذه کړي ډاډه اوسئ چې الله تعالی پر هر څه قادر دی.

وَدَّ كَثِيۡرٌ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ لَوۡ يَرُدُّوۡنَكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ اِيۡمَانِكُمۡ كُفَّارًا ۖۚ حَسَدًا مِّنۡ عِنۡدِ اَنۡفُسِهِمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الۡحَقُّ ۚ فَاعۡفُوۡا وَ اصۡفَحُوۡا حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ بِاَمۡرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (۱۰۹)

لمونځ قائم کړئ، زکات ورکړئ تاسې چې د خپل عاقبت له پاره څه نیکی سرته ورسوئ وړاندې یې ولېږئ د الله په وړاندې به هغه موجودې ومومئ څه چې تاسې کړي وي الله د هغو ټولو لیدونکی دی .

وَ اَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ ؕ وَ مَا تُقَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِكُمۡ مِّنۡ خَيۡرٍ تَجِدُوۡهُ عِنۡدَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِيۡرٌ (۱۱۰)

او د هغو دا وینا ده چې هېڅوك به جنت ته لاړ نشي تر څو هغه یهودي نه وي یا ( د عیسائیانو د ګومان له مخې ) عیسائې نه وي دا د هغو هیلې دي دوي ته ووایه خپل دلیل وړاندې کړئ که تاسې په خپله دعوه کښې ریښتیني یاست.

وَ قَالُوۡا لَنۡ يَّدۡخُلَ الۡجَنَّةَ اِلَّا مَنۡ كَانَ هُوۡدًا اَوۡ نَصٰرٰى ؕ تِلۡكَ اَمَانِيُّهُمۡ ؕ قُلۡ هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۱۱۱)

په اصل کښې نه ستاسې څه ځانګړیتوب دی او نه د بل چا، حقه خبره داده هرڅوك چې خپل ځان د خدای اطاعت ته وقف کړي او په عملي توګه ښه چلن غوره کړي ، د هغه له پاره د هغه درب په نزد د هغه اجر شته او پرداسې خلکو څه وېره او کړاو نشته.

بَلٰى * مَنۡ اَسۡلَمَ وَجۡهَهٗ لِلّٰهِ وَ هُوَ مُحۡسِنٌ فَلَهٗۤ اَجۡرُهٗ عِنۡدَ رَبِّهٖ ۚ وَ لَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَ لَا هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ (۱۱۲)

یهودیان وایي ، له عیسائیانو سره هېڅ حق نشته ، عیسائیان وایي ، له یهودو سره هېڅ حق نشته په داسې حال کښې چې دوی دواړه کتاب لولي همدا شان دعوه هغه خلك هم کوي چې هغوی د کتاب عالمان نه دي (مشرکان).الله به دا اختلافونه چې دا خلك په کښې اخته دي د قیامت په ورځ فیصله کړي.

وَ قَالَتِ الۡيَهُوۡدُ لَيۡسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَىۡءٍ ۖ وَّ قَالَتِ النَّصٰرٰى لَيۡسَتِ الۡيَهُوۡدُ عَلٰى شَىۡءٍ ۙ وَّ هُمۡ يَتۡلُوۡنَ الۡكِتٰبَ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيۡنَ لَا يَعۡلَمُوۡنَ مِثۡلَ قَوۡلِهِمۡ ۚ فَاللّٰهُ يَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ فِيۡمَا كَانُوۡا فِيۡهِ يَخۡتَلِفُوۡنَ (۱۱۳)

او له هغه چانه به غټ ظالم څوك وي چې نه پرېږدي د الله په عبادتځيو کښې د هغه نوم واخيستل شي او د هغو دورانولو په هڅه کښې وي ؟ داسې خلك ددې وړنه دي چې په دې عبادتځيو کښې قدم کېږدي او كه ورشي هم له وېرې سره به ورشي د هغو له پاره په دنيا کښې رسوايي او په اخرت کښې لوی عذاب دی.

وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَ سَعٰى فِيْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَا اِلَّا خَآئِفِيْنَ ؕ لَهُمْ فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ وَّ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (۱۱۴)

ختيځ او لويديځ ټول د الله دی ، هر لوري ته چې تاسې مخ واړوئ ، هماغه لوري ته د الله مخ دی الله د ډېرې پراختيا خاوند او په هر څه پوهېدونکی دی

وَ لِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَ الْمَغْرِبُ * فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (۱۱۵)

او هغوی وايي چې الله څوك په زوی ولۍ سره نيولی دی ، الله له دې خبرو پاك دی اصل حقيقت دا دی چې د اسمانونو او ځمکې ټولې هستۍ د هغه دي. ټول د هغه د امر منونکي دي

وَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ لَّهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ (۱۱۶)

هغه د اسمانونو او ځمکې هستوونکی دي او د کومې خبرې چې فيصله صادروي ، صرف دومره امر ورته کوي چې " شئ " نو هغسې کېږي.

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ اِذَا قَضٰۤى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ (۱۱۷)

ناپوهان وايي چې الله په خپله ولې له مونږ سره نه غږېږي يا مونږ ته کومه نښه ولې نه راوړي؟ همدا شان خبرې له دوې نه مخکښې خلکو هم کولې ددې ټولو ( مخکېنېو وروستنېو ګمراهانو ) ذهنيتونه يو شان دي باور لرونکو ته خو مونږ په ډاګه څرګنده خپلې نښانې ښکاره کړيدي.

وَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْ لَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوْ تَاْتِيْنَاۤ اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ؕ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ؕ قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ (۱۱۸)

له دې نه به لويه نښانه څه وي چې ) مونږ ، ته د حقائقو له علم ) سره زيری ورکوونکی او وېرووونکی لېږلی يې اوس کومو خلکو چې دوزخ ته خپله لاره جوړه کړېده،دهغوې له لوري ته ذمه وار او .پوښتېدونی نه يې

اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا ۙ وَّ لَا تُسْئَلُ عَنْ اَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ (۱۱۹)

يهوديان او عيسائيان به هېڅکله له تانه خوشاله نشي ، تر څو ته د هغو په لاره (دين)لاړ نشې. دوی ته په کلکه ووايه چې سمه لاره يوازي هماغه ده چې الله ښودلې ده او که ته له هغه علم نه وروسته چې درکړای شويدی د هغو په خواهشونو پسې لاړ شې ؛ نو ستا هېڅ دوست او مرستندوی نشته چې د الله له نيونې نه دې وژغوري.

وَ لَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَ لَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ؕ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَ لَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِىٍّ وَّ لَا نَصِيْرٍ (۱۲۰)

کومو خلکو ته چې مونږ کتاب ورکړيدی ، هغوی يې داسې لولې چې څنګه د هغه د لوستلو حق دی. هغوی وربانديې د زړه له کومې ايمان راوړيدی او څوك چې د هغه دنه منلو چلن غوره کړي نو هماغوی په اصل کښې زيانمن دي.

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَ مَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۱۲۱)

ای بني اسرائيلو ! زما هغه نعمت درياد کړئ چې پر تاسې مې لورولی وْ او داچې ماتاسې ته د نړۍ پر ټولو قومونو فضيلت درکړی وْ.

يٰبَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِىَ الَّتِىْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَ اَنِّىْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (۱۲۲)

او ووېرېږئ له هغې ورځې نه ، چې هېڅوك به هېچا ته يوه ذره په درد ونه خوري ، نه به له چا نه فديه قبوله کړای شي ، نه به کوم سپارښت انسان ته ګټه ورسوي، او نه به ګناهګارانو ته له کومې خوا نه څه مرسته ورسيدای شي.

وَ اتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِىْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّ لَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّ لَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّ لَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ (۱۲۳)

یاد کړه هغه وخت چې پر ابراهیم(ع) د هغه رب د څو خبرو ازمېښت وکړ او ابراهیم (ع) هغه ټولې سرته ورسولې ؛ نو ( الله ) ووېل : " زه تا د ټولو خلکو قائد ټاکم " ابراهیم (ع) عرض وکړ: " او ایا زما له اولادې سره هم همدا وعده ده "؟ هغه (ج) ووېل: " زما وعده له ظالمانو سره نشته ".

وَ اِذِ ابْتَلٰى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ؕ قَالَ اِنِّىْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ؕ قَالَ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِىْ ؕ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِى الظّٰلِمِيْنَ (۱۲۴)

او دا چې مونږ دا کور ( کعبه ) د خلکو له پاره مرکز او دامن ځای جوړ کړی وْ او خلکو ته مو امر کړی وْ په کوم ځای کښې چې ابراهیم (ع) د عبادت له پاره درېده هغه ځای په مخصوصه توګه د لمانځه ځای جوړ کړئ او ابراهیم (ع) او اسماعیل(ع) ته مو په کلکه ویلي وو چې زما دا کور د طواف کوونکو ، څیله کیدونکو او رکوع او سجده کوونکو له پاره سوتره کړي.

وَ اِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَ اَمْنًا ؕ وَ اتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهٖمَ مُصَلًّى ؕ وَ عَهِدْنَاۤ اِلٰۤى اِبْرٰهٖمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَ الْعٰكِفِيْنَ وَ الرُّكَّعِ السُّجُوْدِ (۱۲۵)

او دا چې ابراهیم (ع) دعا وکړه : " ای زما ربه ! دا ښار دامن ښار وګرځوه، او ددی له اوسېدونکو څخه چې څوك الله او اخرت مني ، هغو ته هر ډول میوې روزي کړه " ــ دهغه رب په ځواب کښې ووېل: " او چې څوك يې ونه مني ، ددنیا د څو ورځو ژوندون وسائل زه هغه ته هم ورکوم ، خو عاقبت به هغه ددوزخ په لوري راکاږم او هغه ډېر ناکاره استوګنځی دی".

وَ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّ ارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ قَالَ وَ مَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗۤ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (۱۲۶)

او در یاد کړه چې کله ابراهیم (ع) او اسمعیل (ع) ددې کور دېوالونه پورته کول، نو د عاېي کوله :" ای زمونږ ربه ! له مونږ نه داخدمت قبول کړه ، ته د هر څه اورېدونکی او په ټولو شیانو پوهېدونکی يې.

وَ اِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَ اِسْمٰعِيْلُ ؕ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (۱۲۷)

ای ربه! مونږ دواړه تاته غاړه ایښودونکي وګرځوه ، زمونږ له ځوځات نه یو داسې امت راوبر کوه چې تاته غاړه ایښودونکی وي، مونږ ته د خپل عبادت لارې لیکي رازده کړه او زمونږ خطاوې معاف کړه ، ته لوی توبه قبلوونکی او رحم کوونکی یې .

رَبَّنَا وَ اجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَ مِنْ ذُرِّيَّتِنَاۤ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَ اَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَ تُبْ عَلَيْنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ (۱۲۸)

او ای ربه ! په دې خلکو کښې د همدوی له قوم نه یو داسې پېغمبر راپاڅوه چې دوې ته ستا ایتونه ولولي ، هغو ته کتاب او حکمت ور زده کړي او د هغو ژوند سوتره کړي ته د لوې قدرت او حکمت څښتن یې .

رَبَّنَا وَ ابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَ يُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ وَ يُزَكِّيْهِمْ ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۱۲۹)

اوس څوك دی چې دا براهیم (ع) له مسلك نه کرکه وکړي؟ له هغه چا پرته چې په خپله یې خپل ځان په حماقت او جهالت کښې اخته کړی وي بل څوك دا حرکت کولای شي؟ ابراهیم (ع) خو هغه څوك دی چې مونږ په نړۍ کښې د خپل کار له پاره غوره کړی وْ او په اخرت کښې به هغه د صالحانو په ټولي کښې وي.

وَ مَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ وَ لَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا ۚ وَ اِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۱۳۰)

هغه داسې وْ چې کله یې رب ورته ووېل : " غاړه کېږده" ، نو هغه سمدلاسه ووېل: " ما د مخلوقاتو رب ته غاړه ایښې ده "

اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗۤ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۱۳۱)

پر همدې مسلك د تلو لاربنودنه ابراهيم خپل ځوځات ته کړې وه او همدا سپاربښتنه يعقوب (ع) خپلې اولادې ته کړې وه هغه ويلي وو چې " زما بچيانو! الله ستاسې له پاره همدا دين غوره کړيدی له دې امله د مرګ تر وخته مسلمانان پاتې شئ".

وَ وَصّٰى بِهَاۤ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَ يَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِىَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ (١٣٢)ؕ

او ايا تاسې هغه وخت حاضر وئ چې کله يعقوب (ع) له دې دنيا نه رسختېده؟ د مرګ په وخت کښې يې له خپلو بچيانو نه پوښتنه وکړه :" بچيانو! له ما وروسته به تاسې د چا بندګي کوئ؟" هغو ټولو په ځواب کښې ووېل:" مونږ به د هماغه يوه خدای بندګي کوو، چې هغه تا او ستا پلرونو نيکونو ابراهيم (ع) ، اسمعيل (ع) او اسحق (ع) پر خدائي منلی دی او مونږ هماغه ته غاړه اېښودونکي يو".

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ ۙ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِىْ ؕ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَ اِلٰـهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِسْحٰقَ اِلٰـهًا وَّاحِدًا ۚ وَّ نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ (١٣٣)

هغوی څه کسان وو، چې تېر شول ، څه چې هغوې کړي دي د هغو له پاره دي او څه چې تاسې کوئ هغه ستاسې له پاره دي له تاسې نه به ددې پوښتنه ونشي چې هغوې څه کول.

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَ لَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَ لَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٣٤)

يهوديان وايي: يهوديان شئ نو سمه لار به ومومئ ، عيسائيان وايي: عيسائيان شئ چې هدايت درته وشي ، دوې ته ووايه:" نه ، دا هم نه ، دا هم نه،بلکې دابراهيم (ع) حق مسلك اوابراهيم (ع) له مشرکانو نه نه وْ.

وَ قَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا ؕ وَ مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (١٣٥)

مسلمانانو ! ووايی چې:" مونږ ايمان راوړيدی په الله او پر هغه هدايت چې مونږ ته راغلی دی او هغه چې ابراهيم ( ع) ، اسمعيل (ع) ، اسحق (ع) يعقوب او د يعقوب ( ع) ځوځات ته راغلی وْ او هغه چې موسی (ع) ، عيسی (ع) او نورو ټولو پېغمبرانو ته د هغو درب له لوري ورکړ شوی وو، مونږ د هغو په مينځ کښې هېڅ توپير نه کوو او مونږ الله ته سرټيټوونکي يو".

قُوْلُوْۤا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلٰۤى اِبْرٰهٖمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ وَ الْاَسْبَاطِ وَ مَاۤ اُوْتِىَ مُوْسٰى وَ عِيْسٰى وَ مَاۤ اُوْتِىَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۖ وَ نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ (١٣٦)

بيا که هغوی هماغسې ايمان راوْړ لکه چې تاسې راوړيدی نو سمه لار يې وميندله ، او که له هغه نه مخ واړوي ؛ نو څرګنده خبره ده چې هغوی په ځيلي توب کښې نښتي دي، له دې امله ډاډه اوسئ چې د هغو په مقابل کښې الله ستاسې د ملاتړ له پاره کافي دی ، الله هرڅه اوري او پر ټولو شيانو پوهېږي.

فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَاۤ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَ اِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِىْ شِقَاقٍ ۚ فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (١٣٧)ؕ

ووايه :" د الله رنګ غوره کړئ، د هغه له رنګ نه به ښه د چا رنګ وي؟ او مونږ د هماغه بندګي کوونکي يو.

صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَ مَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ۫ وَّ نَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ (١٣٨)

ای پېغمبره! دوې ته ووايه:" ايا تاسې د الله په باب له مونږ سره جګړه کوئ؟ په داسې حال کښې چې هماغه هم زمونږ رب دی او هم ستاسې زمونږ عملونه زمونږ او ستاسې عملونه ستاسې له پاره دي ، او مونږ خپله بندګي يوازې د الله له پاره خالصه کړېده.

قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِى اللّٰهِ وَ هُوَ رَبُّنَا وَ رَبُّكُمْ ۚ وَ لَنَاۤ اَعْمَالُنَا وَ لَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۚ وَ نَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ (١٣٩)ۙ

يا ايا ستاسي وينا داده چې ابراهيم ( ع) ، اسمعيل (ع) ، اسحق (ع) يعقوب او د يعقوب ( ع) ځوځات ټول يهوديان وو يا نصرانيان وو؟ ووايه : تاسي ډېر ښه پوهېږئ كه الله ؟ له هغه چا نه به لوی ظالم بل څوك وي ، چې د الله له لوري هغه ته د يوې شاهدۍ ذمه واري ورله غاړی شوی وي او هغه پټه كړي؟ ستاسي له كړنو څخه خو الله ناخبر ندی.

اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ وَ الْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ؕ قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ ؕ وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ (۱۴۰)

هغوی څه كسان وو چې لاړل ، د هغو عملونه د هغو له پاره وو او ستاسي عملونه ستاسي له پاره له تاسي نه به د هغوی د عملونو په باب پوښتنه ونشي ".

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَ لَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَ لَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۱۴۱)

ناپوهان خلك به ارومرو ووايي: پردوی څه شويدي چې په ناڅاپي توګه له هغي قبلې نه واوښتل چې مخكښي يې د هغې لوري ته لمونځ كاوه؟ ای پېغمبره ! دوی ته ووايه: " ختيځ او لويديځ ټول د الله دي ،د الله چې هر چاته خوښه شي سمه لار ورښيي.

سَيَقُوْلُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا ؕ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَ الْمَغْرِبُ ؕ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۱۴۲)

او په همدې ډول مونږ تاسي يو " اُمت وسط" (غوره امت) ګرځولي ياست چې تاسي پر نړېوالو شاهدان او پېغمبر پر تاسي شاهد اوسي پخوا چې تاسي كوم لوري (بيت المقدس) ته مخ اړوه هغه موصرف ددې ښوونې له پاره قبله ټاكلې وه چې څوك د پېغمبر (ص ) پيروي كوي (كعبې ته په مخ اړولو كې)او څوك په شا اوړي ،دا كار خو ډېر سخت وْ ، مګر د هغو كسانو له پاره هېڅ سخت ثابت نشو چې د الله له لارښوونې نه يې ګټه اخيتسې وه ، الله به ستاسي ايمان (بيت المقدس ته لمونځ) هېڅكله ضايع نه كړي، باور ولرئ چې الله پر خلكو ډېر زيات مهربان او رحمت كوونكی دی.

وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَ يَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ؕ وَ مَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ وَ اِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (۱۴۳)

د اسمان لوري ته ستا بيا بيا مخ اووښتل مونږ وينو دا دی مونږ تا د هغې قبلې (كعبې) لوري ته ګرځوو چې ستا خوښېږي د مسجد الحرام لوري ته مخ وګرځوه، اوس چې تاسي هر چېرته اوسئ؛ نو دهماغه لوري ته مخ واړوئ لمونځ وكړئ كومو خلكو ته چې كتاب وركړ شويدی ښه پوهېږي چې ( د قبلې بدلېدو ) دا امر د هغو د رب له خوا او حق دی ، خو له دې سره سره چې دوی څه كوي ، الله ورڅخه ناخبره نه دی.

قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ۪ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَ حَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ؕ وَ اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ؕ وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ (۱۴۴)

كه ته دې اهل كتابو ته هره نښانه راوړې، نشي كيدای چې دوی ستا د قبلې پيروي وكړي او نه ته دا كولای شې چې د هغو د قبلې پيروي وكړې ، او د هغو هېڅ يوه ډله د بلې ډلې د قبلې پيروی ته هم تياره نه ده ، او كه ته له هغه علم نه وروسته چې درته راغلی دی، د هغو په غوښتنو پسې لاړ شې ، نو ارومرو به په ظالمانو كښې وشمېرل شې.

وَ لَئِنْ اَتَيْتَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ ۚ وَ مَآ اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَ مَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ؕ وَ لَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ (۱۴۵)

کومو خلکو ته چې مونږ کتاب ورکړیدی، هغوی دا ځای ( چې قبله ټاکل شوېده یا دا پیغمبر) داسې پېژني لکه څنګه چې خپله اولاده پېژني، خو له هغو نه یوه ډله له پوهې او ادراك سره سره حق پټوي.

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ؕ وَ اِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ (۱۴۶)

دا په غوږه توګه یوه حقه خبره ده ستا درب له لوري ، نو ته د هغه په باب هېڅکله شکمن کېږه مه.

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ (۱۴۷)

دهر چاله پاره یو لوری دی چې هغه ته مخ اړوي ؛ نو تاسې د ښېګنو په لوري په ځغاسته شئ- هر چېرته چې اوسئ الله به تاسې ټول راولي، الله په هر شي باندې قادر دی.

وَ لِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۱۴۸)

ته چې له هر ځای نه تېرېږي له هماغه ځایه ( د لمانځه په وخت کښې ) خپل مخ د مسجد حرام لوري ته واړوه ، ځکه چې داستا درب بیخي په حقه فیصله ده او الله ستاسې له عملونو څخه بې خبره نه دی.

وَ مِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَ اِنَّهٗ لَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ ؕ وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ (۱۴۹)

او له هر ځایه چې تېرېږې ، خپل مخ د مسجد الحرام لوري ته وګرځوه، او هر چېرته چې تاسې یئ، د هماغه لوري ته مخ واړوئ لمونځ اداء کړئ ،چې ستاسې پر خلاف خلکو ته دلیل په لاس ورنشي ، هو دظالمانو ژبه به په هېڅ حال کښې ونه تړله شي ؛ خو له هغو نه مه وېرېږئ، بلکې له مانه ووېرېږئ او ددې له پاره چې زه پر تاسې خپل نعمتونه پوره کړم او په دې هیله چې زما ددې امر په عملي کولو تاسې د خلاصون لاره ومومئ.

وَ مِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَ حَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ۙ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ ۙ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ * فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَ اخْشَوْنِيْ * وَ لِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ عَلَيْكُمْ وَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ (۱۵۰)ۙ

لکه چې ( تاسې ته په دې سره برې درپه برخه شوی چې ) ما ستاسې په مینځ کښې په خپله له تاسې نه یو پېغمبر مبعوث کړ، چې تاسې ته زما ایتونه لولي، ستاسې ژوند سوتره کوي، تاسې ته د کتاب او حکمت ښوونه کوي، او تاسې ته هغه خبرې در زده کوي چې تاسې پرې نه پوهېدئ.

كَمَا اَرْسَلْنَا فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَ يُزَكِّيْكُمْ وَ يُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ وَ يُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ (۱۵۱)ؕ

له دې امله تاسې ما په یاد ولرئ زه به تاسې یاد کړم، او زما شکر اداء کړئ د نعمت ناشکري مه کوئ.

فَاذْكُرُوْنِيْ اَذْكُرْكُمْ وَ اشْكُرُوْا لِيْ وَ لَا تَكْفُرُوْنِ (۱۵۲)

ای مؤمنانو ! په صبر او لمانځه سره مرسته وغواړئ، الله د زغم لرونکو ملګری دی

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَ الصَّلٰوةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ (۱۵۳)

او هغو خلکو ته چې د الله په لار کښې ووژل شي ، مړه مه وائي، داسې خلك خو په حقیقت کښې ژوندي دي مګر تاسې د ا شعور نه لرئ چې د هغو پر ژوند خبر شئ.

وَ لَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ (۱۵۴)

او مونږ به ارو مرو په ویره ، خطر ، لوږه ، دسراو مال په تاوان او د عائداتو په خساره کښې په اخته کولو پر تاسې ازمېښت کوو، ای پیغمبره هغو کسانو ته زیری ورکړه چې په دې حالاتو کښې صبر وکړي

وَ لَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَ الْجُوْعِ وَ نَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَ الْاَنْفُسِ وَ الثَّمَرٰتِ ؕ وَ بَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ (۱۵۵)ۙ

او دمصیبت راتلو په وخت کښې ووایي چې " مونږ د الله یو او د هماغه الله لوري ته زمونږ ورګرځېدل دی"

الَّذِيْنَ اِذَاۤ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْۤا اِنَّا لِلّٰهِ وَ اِنَّاۤ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ (۱۵۶)ؕ

چې پر هغو به د هغو درب زياتې پېرزوينې او رحمت وي، او همدغه شان خلك پر سمه لار روان دي.

أُولٰٓئِکَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوٰتٌ مِّنۡ رَّبِّهِمۡ وَ رَحۡمَةٌ ۟ وَ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡمُهۡتَدُوۡنَ (۱۵۷)

په يقيني توګه صفا او مروه دالله له نښانو څخه دي له دې امله څوك چې دبيت الله حج يا عمره وکړي ، دهغه له پاره وبال نشته كه ددې دوو غونډېو تر مينځ طواف وكړي او څوك چې په خوښه مينه څه نيك كار (دصفا او مروه طواف) وكړي ، الله پرې علم دی او د هغه قدر كوونكی دی.

اِنَّ الصَّفَا وَ الۡمَرۡوَةَ مِنۡ شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنۡ حَجَّ الۡبَيۡتَ اَوِ اعۡتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِ اَنۡ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ؕ وَ مَنۡ تَطَوَّعَ خَيۡرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ شَاکِرٌ عَلِيۡمٌ (۱۵۸)

كوم خلك چې زمونږ نازل شوې روښانه لارښودنې او هدايات پټوي په داسې حال كښې چې مونږ هغه د ټولو انسانانو د لارښودنې له پاره په خپل كتاب كښې بيان كړيدي ، باور ولرئ چې الله هم ورباندې لعنت وايي او ټول لعنت ويونكي هم ورباندې لعنت وايي .

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَكۡتُمُوۡنَ مَاۤ اَنۡزَلۡنَا مِنَ الۡبَيِّنٰتِ وَ الۡهُدٰی مِنۡۢ بَعۡدِ مَا بَيَّنّٰهُ لِلنَّاسِ فِی الۡكِتٰبِ ۙ اُولٰٓئِکَ يَلۡعَنُهُمُ اللّٰهُ وَ يَلۡعَنُهُمُ اللّٰعِنُوۡنَ (۱۵۹)ۙ

البته څوك چې دا كار پرېږدي، خپل كړه وړه سم كړي او څه يې چې پټ كړي وو د هغو په بيانولو پيل وكړي هغو ته به زه بښنه وكړم او زه لوی توبه قبلوونكی او رحم كوونكی يم .

اِلَّا الَّذِيۡنَ تَابُوۡا وَ اَصۡلَحُوۡا وَ بَيَّنُوۡا فَاُولٰٓئِکَ اَتُوۡبُ عَلَيۡهِمۡ ۚ وَ اَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ (۱۶۰)

كومو كسانو چې د كفر چلن غوره كړ او همدا د كفر حالت كښې مړه شول پر هغو باندې دالله ، پرښتو او ټولو انسانانو لعنت دی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ مَاتُوۡا وَ هُمۡ كُفَّارٌ اُولٰٓئِکَ عَلَيۡهِمۡ لَعۡنَةُ اللّٰهِ وَ الۡمَلٰٓئِكَةِ وَ النَّاسِ اَجۡمَعِيۡنَ (۱۶۱)ۙ

په همدې لعنتي حالت كښې به د تل له پاره اوسېږي، نه به د هغو په عذاب كښې اسانتيا راشي او نه به بيا ورته كوم بل مهلت وركړای شي.

خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمُ الۡعَذَابُ وَ لَا هُمۡ يُنۡظَرُوۡنَ (۱۶۲)

او ستاسې خدای همدا يو خدای دی، له هغه رحمان او رحيم نه پرته بل كوم خدای نشته.

وَ اِلٰـهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحۡمٰنُ الرَّحِيۡمُ (۱۶۳)

ددې حقيقت پېژندنې له پاره كه كومه نښه نښانه په كار ده نو ) د ) اسمانونو او ځمكې په ساختمان كښې ، يوه په بلې پسې د شپې او ورځې په پرله پسې راتګ كښې ، په هغو بېړېو كښې چې د انسانانو د ګټې وړ شيانو د وړلو راوړلو له پاره په سيندونو او سمندرونو كښې ګرځي راګرځي، دباران په هغو اوبو كښې چې الله يې له پاسه را اوروي او د هغو په وسيله ځمكه ژوندۍ كوي او په خپل دغه انتظام سره يې په ځمكه كښې هر راز ساكښان خواره كړيدي ، د بادونو په لګېدو كښې اوپه هغو ورېځو كښې چې داسمان او ځمكې په مينځ كښې د امر ښكيل دي بې شمېره نښانې دي. دهغو خلكو لپاره چې له پوهې نه كار اخلي.

اِنَّ فِیۡ خَلۡقِ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ اخۡتِلَافِ الَّيۡلِ وَ النَّهَارِ وَ الۡفُلۡکِ الَّتِیۡ تَجۡرِیۡ فِی الۡبَحۡرِ بِمَا يَنۡفَعُ النَّاسَ وَ مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنۡ مَّآءٍ فَاَحۡيَا بِهِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا وَ بَثَّ فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ دَآبَّةٍ ۪ وَّ تَصۡرِيۡفِ الرِّيٰحِ وَ السَّحَابِ الۡمُسَخَّرِ بَيۡنَ السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ (۱۶۴)

خو د خدای پریو والي ددې ښکاره څرګندو دلالت کوونکو نښو ) نښانو د ليدلو سره سره هم ) ځيني خلك داسي دي چي له الله نه پرته نور د هغه سيالان ګرځوي او پر هغو داسي مين دی لکه چي څنګه له الله سره مينه لرل ښايي په داسي حال کښي چي ايمان لرونکو ته تر هر څه زيات الله ګران وي، هغه ادراك او احساس چي دې ظالمانو ته د عذاب د ليدو په وخت کښي پيدا کېدونکی دی که همدا نن دوی ليدلی وای ؛ نو ( باور به يې راغلی وای چي ) ټول قوت او ټولي واکمنی يوازې دالله دي او ( په دې به يې هم باور شوی وای ) . چي له الله سره ډېر سخت عذاب شته

وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّتَّخِذُ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَنۡدَادًا يُّحِبُّوۡنَهُمۡ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَ لَوۡ يَرَى الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡۤا اِذۡ يَرَوۡنَ الۡعَذَابَ ۙ اَنَّ الۡقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيۡعًا ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعَذَابِ (۱۶۵)

کله چي هغه سزا ورکړي په هغه وخت کښي به حالت داسي وي چي هماغه مشران او رهبران چي په دنيا کښي يې پيروي کيدله ، له خپلو پيروانو څخه به بيزاري څرګنده کړي، خو پر عذاب به اخته شي او د هغوی د ټولو سببو نو او وسايلو لړی به پرېکړه شي

اِذۡ تَبَرَّاَ الَّذِيۡنَ اتُّبِعُوۡا مِنَ الَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡا وَ رَاَوُا الۡعَذَابَ وَ تَقَطَّعَتۡ بِهِمُ الۡاَسۡبَابُ (۱۶۶)

او هغه خلك چي په دنيا کښي يې د هغو پيروي کوله و به وايي چي کاشکي يو ځل بېرته دنيا ته زمونږ تګ شوی وای؛ نو څنګه چي نن دوی له مونږه بيزاري څرګندوي ، نو مونږ به هم له دوې نه بيزاري ښکاره کړې وای په دغه راز به الله ددې خلکو هغه عملونه چي دوی يې په دينا کښي کوي داسي ددوی مخي ته کيږدي چي دوی به د افسوس او پښېمانتيا لاسونه ومروړي خوله اور نه د وتلو هيڅ لار به پيدا نه کړي.

وَ قَالَ الَّذِيۡنَ اتَّبَعُوۡا لَوۡ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنۡهُمۡ كَمَا تَبَرَّءُوۡا مِنَّا ؕ كَذٰلِكَ يُرِيۡهِمُ اللّٰهُ اَعۡمَالَهُمۡ حَسَرٰتٍ عَلَيۡهِمۡ ؕ وَ مَا هُمۡ بِخٰرِجِيۡنَ مِنَ النَّارِ (۱۶۷)

ای خلکو ! په ځمکه کښي چي کوم حلال او پاك شيان دي هغه خورئ او د شيطان په ښودل شوېو لارو مه ځئ هغه ستاسي ښکاره دښمن دي.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوۡا مِمَّا فِى الۡاَرۡضِ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّ لَا تَتَّبِعُوۡا خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمۡ عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ (۱۶۸)

هغه خوتاسي ته د بدئ اوبې حيايۍ امرکوي اودې ته مولمسوي چي په خدای پورې هغه خبرې وترئ چي تاسي پرې نه پوهېږئ چي هغه الله ندي ويلي.

اِنَّمَا يَاۡمُرُكُمۡ بِالسُّوۡٓءِ وَ الۡفَحۡشَآءِ وَ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۱۶۹)

هغوې ته چي کله وېل کېږي چي د الله د اوامرو پيروي وکړئ نو په ځواب کښي وايي چي مونږ به د هماغه مسلك پيروي کوو چي مونږ پر هغه خپل پلرونه نيکونه ميندلي دي ؛ ښه نو که د هغو پلرونو نيکونو له پوهي نه هيڅ کار هم نه وي اخيستی او سمه لاره يې نه وي ميندلي ايا بيا هم دوی دهغوې پيروي کوي؟

وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّبِعُوۡا مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ قَالُوۡا بَلۡ نَتَّبِعُ مَاۤ اَلۡفَيۡنَا عَلَيۡهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَ لَوۡ كَانَ اٰبَآؤُهُمۡ لَا يَعۡقِلُوۡنَ شَيۡـًٔا وَّ لَا يَهۡتَدُوۡنَ (۱۷۰)

دا خلك چي د خدای پرښودل شوي لارې له تلو نه يې انکار کړيدی ددوی حالت کټ مټ داسي دی لکه چي شپانه څاروېو ته اواز کوي او هغوی د بلني او شړني له غږ نه پرته نور څه نه اوري، دوی کانه دي ، ګونګيان دي ، ړانده دي ځکه خو په هيڅ خبره نه پوهېږي.

وَ مَثَلُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا كَمَثَلِ الَّذِىۡ يَنۡعِقُ بِمَا لَا يَسۡمَعُ اِلَّا دُعَآءً وَّ نِدَآءً ؕ صُمٌّۢ بُكۡمٌ عُمۡىٌ فَهُمۡ لَا يَعۡقِلُوۡنَ (۱۷۱)

اې مؤمنانو ! که تاسي په ربښتيا سره د الله بندګي کوونکي ياست؛ نو کوم پاك شيان چي مونږ درکړيدي هغه په آزادی سره خورئ اود الله شکر باسئ.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كُلُوۡا مِنۡ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰكُمۡ وَ اشۡكُرُوۡا لِلّٰهِ اِنۡ كُنۡتُمۡ اِيَّاهُ تَعۡبُدُوۡنَ (۱۷۲)

د الله له لوري كه پر تاسي څه بنديز لګول شويدی نو هغه دادی چې مرداره مه خوري ، دوينې او د خوګ د غوښې له خوړلو نه ډډه وكړئ او داسې كوم شی مه خورئ چې پر هغه له الله نه پرته د بل چا نوم اخيستل شوی وي هو كه څوك د اړتيا په حالت كښې وي او له دغو شيانو نه څه شی بې له دې چې د ا لهي حكم ماتولو اراده ولري يا له حده تيری وكړي زيات وخوري؛ نو پر هغه څه وبال نشته ، الله ښښونكی او رحم كوونكی دی.

اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيۡكُمُ الۡمَيۡتَةَ وَ الدَّمَ وَ لَحۡمَ الۡخِنۡزِيۡرِ وَ مَاۤ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيۡرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنِ اضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٍ وَّ لَا عَادٍ فَلَاۤ اِثۡمَ عَلَيۡهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱۷۳)

حقه داده څوك چې هغه حكمونه پټوي چې الله په خپل كتاب كښې نازل كړيدي او په لږ غوندې دنيوي ګټو يې له لاسه وركوي، هغوی په اصل كښې خپلې ګېډې له اوره ډكوي دقيامت په ورځ به الله ( ج ) هېڅكله له دوی سره خبرې ونه كړي او نه به يې تزكيه كړي، او د هغوې له پاره دردوونكی عذاب دی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَكۡتُمُوۡنَ مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ مِنَ الۡكِتٰبِ وَ يَشۡتَرُوۡنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيۡلًا ۙ اُولٰٓئِكَ مَا يَاۡكُلُوۡنَ فِىۡ بُطُوۡنِهِمۡ اِلَّا النَّارَ وَ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ وَ لَا يُزَكِّيۡهِمۡ ۖۚ وَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۱۷۴)

دا هغه خلك دي چې د سمې لارې په بدل كښې يې ګمراهي واخيستله اود ښښنې په بدل كښې يې عذاب وپېره څومره حيرانتيا ده ددوی حوصلې ته چې د عذاب زغملو ته تيار دي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ اشۡتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالۡهُدٰى وَ الۡعَذَابَ بِالۡمَغۡفِرَةِ ۚ فَمَاۤ اَصۡبَرَهُمۡ عَلَى النَّارِ (۱۷۵)

دا ټول كارونه ځكه وشول چې الله خو له حق سره سرترپايه برابر كتاب نازل كړی وْ مګر كومو خلكو چې په كتاب كښې اختلافونه منيځ ته راوړل هغوی په خپلو لانجو كښې له حق نه ډېر لرې لاړل.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ ؕ وَ اِنَّ الَّذِيۡنَ اخۡتَلَفُوۡا فِى الۡكِتٰبِ لَفِىۡ شِقَاقٍۢ بَعِيۡدٍ (۱۷۶)

نيكي دانه ده چې تاسې خپل مخونه ختيځ لوري ته واړوئ، يا لويديځ لوري ته ؛ بلكې نيكي داده چې انسان ، الله او د قيامت ورځ او پرښتې او د الله نازل كړای شوي كتابونه او د هغه پېغمبران د زړه له كومې ومني او د الله په مينه كښې خپل ګران مالونه په خپلو خپلوانو ، يتيمانو ، مسكينانو ، پرديسانو، درويزګرو او د مريانو په ازادی مصرف كړي، لمونځ قائم كړي، زكات وركړي او نيكان هغه كسان دي چې كله وعده وكړي تر سره يې كړي او د تنګسې او غمونو په وخت كښې او د حق او د باطل په جګړه كښې صبر وكړي همدا رېښتوني او همدا پرهېز ګار خلك دي.

لَيۡسَ الۡبِرَّ اَنۡ تُوَلُّوۡا وُجُوۡهَكُمۡ قِبَلَ الۡمَشۡرِقِ وَ الۡمَغۡرِبِ وَ لٰكِنَّ الۡبِرَّ مَنۡ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ الۡمَلٰٓئِكَةِ وَ الۡكِتٰبِ وَ النَّبِيّٖنَ ۚ وَ اٰتَى الۡمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الۡقُرۡبٰى وَ الۡيَتٰمٰى وَ الۡمَسٰكِيۡنَ وَ ابۡنَ السَّبِيۡلِ ۙ وَ السَّآئِلِيۡنَ وَ فِى الرِّقَابِ ۚ وَ اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَ اٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَ الۡمُوۡفُوۡنَ بِعَهۡدِهِمۡ اِذَا عٰهَدُوۡا ۚ وَ الصّٰبِرِيۡنَ فِى الۡبَاۡسَآءِ وَ الضَّرَّآءِ وَ حِيۡنَ الۡبَاۡسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ صَدَقُوۡا ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُتَّقُوۡنَ (۱۷۷)

ای موْ منانو ! ستاسې له پاره د قتل په دعواوو كښې د قصاص حكم ليكل شويدی كه اصيل قاتل وي له هماغه اصيل نه دې بدله واخيستله شي او كه غلام قاتل وي؛ نو هماغه غلام دې ووژل شي ، كه ښځه قاتله وي، نو له هماغې ښځې نه دې قصاص واخيستل شي هو كه له كوم قاتل سره د هغه (ديني) ورور يو څه نرمۍ كولو ته تيار وي ، نوپه ښه وجه دې د وژنې د بدل په باب اقدام وشي او پر قاتل لازمه ده چې په صداقت سره خونی وركړي داستاسې درب له خوا اسانتيا او رحمت دی كه له دې نه وروسته څوك تجاوز وكړي د هغه له پاره دردوونكی عذاب دی

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كُتِبَ عَلَيۡكُمُ الۡقِصَاصُ فِى الۡقَتۡلٰى ؕ اَلۡحُرُّ بِالۡحُرِّ وَ الۡعَبۡدُ بِالۡعَبۡدِ وَ الۡاُنۡثٰى بِالۡاُنۡثٰى ؕ فَمَنۡ عُفِىَ لَهٗ مِنۡ اَخِيۡهِ شَىۡءٌ فَاتِّبَاعٌۢ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ اَدَآءٌ اِلَيۡهِ بِاِحۡسَانٍ ؕ ذٰلِكَ تَخۡفِيۡفٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ وَ رَحۡمَةٌ ؕ فَمَنِ اعۡتَدٰى بَعۡدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۱۷۸)

هوښيارانو ! ستاسي له پاره په قصاص کښي ژوند دی په کار ده چي له دې قانون نه سرونه غړوئ.

وَ لَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ (١٧٩)

پر تاسي باندې فرض کړای شوېده چي کله له تاسي نه د کوم يو د مرگ وخت رانژدې شي او هغه له ځانه وروسته مال پرېږدي ، نو مور پلار او خپلو خپلوانو ته دې په مناسبه توگه وصيت وکړي دا حق دی پر پرهيزگارانو ؛

كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ خَيْرًا ۚ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَ الْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ (١٨٠)ؕ

نو چاچي وصيت واورېده او بيايي بدل کړ؛ نو د هغه وبال به د بدلوونکو پر غاړه وي الله د هر څه اورېدونکی او پر هرڅه پوهېدونکی دی.

فَمَنْ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَا اِثْمُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (١٨١)ؕ

البته که له چا سره دا اندېښنه وي چي وصيت کوونکي په ناپوهی يا په قصدي توگه حق تلفي کړېده ، او هغه ددې موضوع د اړوندو کسانو په مينځ کښي روغه وکړي ، نو پر هغه هيڅ وبال نشته ، الله ښونکی او رحم کوونکی دی .

فَمَنْ خَافَ مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا فَاَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (١٨٢)

ای مؤمنانو ! پر تاسي روژې فرض کړای شوې ، لکه چي له تاسي نه د مخکښي پېغمبرانو پر پيروانو فرض کړای شوې وې ، ددې لپاره چي په تاسي کښي د پرهيز گاری صفت پيدا شي.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ (١٨٣)ۙ

د څو ټاکلېو ورځو روژې دي که له تاسي نه څوك ناروغ وي ، يا پرديس وي نو په نورو ورځو کښي دی هماغومره شمېر پوره کړي او که کوم خلك چي د روژې نيولو وسه لري ( او ويې نه نيسي ) نو هغه دې فديه ورکړي د يوې روژې فديه يو مسکين ته خواړه ورکول دي او څوك چي په خپله مينه څه زياته نيکي وکړي ؛ نو دا د هغه له پاره غوره ده ؛خو که تاسي پوهېږئ، نو ستاسي له پاره ښه همدا ده چي روژه ونيسئ.

اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ؕ وَ عَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ ؕ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ ؕ وَ اَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (١٨٤)

رمضان هغه مياشت ده چي په هغې کښي قرآن نازل کړای شو چي د انسانانو له پاره له سره تر پايه هدايت دی او داسي څرگندې لارښودني په کښي دي چي دسمې لارې ښوونکي او د حق او باطل يو له بله په ډاگه بېلوونکي دي له دې کبله څوك چي دا مياشت ومومي، پر هغه لازمه ده چي دا ټوله مياشت روژه ونيسي او که څوك ناروغ يا مسافر وي ، نو هغه دې په نورو ورځو کښي د روژو شمېر پوره کړي الله پر تاسي اسانتيا راوستل غواړي، سختي راوستل نه غواړي ، له دې امله تاسي ته داطريقه ښودله کېږي چي تاسي دخوړليو روژو شمېر پوره کړای شئ او په کوم هدايت چي الله تاسي سرلوړي کړي ئي ، په هغه سره د الله لويي وستائي او شکر کوونکي اوسئ.

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَ الْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ؕ وَ مَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَ لَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ ۟ وَ لِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (١٨٥)

او ای پيغمبره ! زما بندگان که له تا نه زما په باب پوښتنه وکړي ؛ نو هغوی ته ووايه چي زه ورته ډېر نژدې يم ،بلونکی چي کله ما وبلي ، زه د هغه بلنه اورم او ځواب ورکوم، نو هغوی ته ښايي چي زما بلنې ته لبيك ووايي او پر ما ايمان راوړي ته داخبره هغوی ته واوروه ، کيدای شي چي هغوی سمه لاره ومومي.

وَ اِذَا سَاَلَكَ عِبَادِيْ عَنِّيْ فَاِنِّيْ قَرِيْبٌ ؕ اُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ ۙ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِيْ وَ لْيُؤْمِنُوْا بِيْ لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ (١٨٦)

ستاسي له پاره د روژې په شپو کښې خپلو مېرمنو سره يو ځای کېدل رواکړای شويدي هغوی ستاسي جامه او تاسي د هغو جامه ياست الله ته ځرګنده شوه چي تاسي په پټه پټه له خپلو ځانونو سره خيانت کاوه؛ خو هغه ستاسي ګناه وبښله او درتېر شو اوس تاسي له خپلو مېرمنو سره د شپې يو ځای شئ او کوم خوند چي الله تاسي ته روا کړيدی هغه واخلئ همدارنګه د شپې له مخې خورئ، څښئ تر هغه وخته چي د شپې د تړږمې له توری ليکي نه مودسپېده داغ څرګند تر سترګو شي له هغه وروسته دا هر څه پرېږدئ تر شپې پورې خپله روژه بشپړه کړئ او کله چي تاسي په جوماتونو کښې ځيله ياست؛ نو له خپلو ميرمنو سره نژدې والی مه کوئ دا د الله وضع کړي حدود دي دي ته نژدې مه ورځئ دغه شان الله خپل حکمونه خلکو ته په ډاګه څرګندوي ښائی چي هغوی له ناوړه چلن نه ځانونه وژغوري.

أُحِلَّ لَكُمۡ لَيۡلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمۡ ؕ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمۡ وَ اَنۡتُمۡ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمۡ كُنۡتُمۡ تَخۡتَانُوۡنَ اَنۡفُسَكُمۡ فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ وَ عَفَا عَنۡكُمۡ ۚ فَالۡـٰٔنَ بَاشِرُوۡهُنَّ وَ ابۡتَغُوۡا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمۡ ۚ وَ كُلُوۡا وَ اشۡرَبُوۡا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الۡخَيۡطُ الۡاَبۡيَضُ مِنَ الۡخَيۡطِ الۡاَسۡوَدِ مِنَ الۡفَجۡرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيۡلِ ۚ وَ لَا تُبَاشِرُوۡهُنَّ وَ اَنۡتُمۡ عٰكِفُوۡنَ ۙ فِى الۡمَسٰجِدِ ؕ تِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ فَلَا تَقۡرَبُوۡهَا ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُوۡنَ (١٨٧)

او تاسي مه په خپلو مينځو کښې يو د بل مال په ناروا توګه خورئ او مه هغه حاکمانو ته په دې غرض وړاندې کړئ چي تاسي ته په قصدي توګه او ظلم سره د نورو خلکو د يو څه شتمنۍ د خوړلو فرصت په لاس درشي

وَ لَا تَاۡكُلُوۡۤا اَمۡوَالَكُمۡ بَيۡنَكُمۡ بِالۡبَاطِلِ وَ تُدۡلُوۡا بِهَاۤ اِلَى الۡحُكَّامِ لِتَاۡكُلُوۡا فَرِيۡقًا مِّنۡ اَمۡوَالِ النَّاسِ بِالۡاِثۡمِ وَ اَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (١٨٨)

خلك له تا څخه د سپوږمۍ د نرۍ کېدو او غټېدو په باب پوښتنه کوي، ووايه : دا د خلکو له پاره د نېټو ټاکلو او د حج نښاني دي دا هم ورته ووايه چي دا څه نيکي نه ده چي تاسي خپلو کورونو ته د هغو دشاله لوري ننوځئ اصلی نيکي خو دا ده چي انسان د الله له خپه کولو نه ځان وژغوري؛ نو تاسي خپلو کورونو ته د دروازو له لارې ورشئ – له الله نه وېرېدونکي اوسئ ښائي چي بريالیتوب در په برخه شي .

يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡاَهِلَّةِ ؕ قُلۡ هِىَ مَوَاقِيۡتُ لِلنَّاسِ وَ الۡحَجِّ ؕ وَ لَيۡسَ الۡبِرُّ بِاَنۡ تَاۡتُوا الۡبُيُوۡتَ مِنۡ ظُهُوۡرِهَا وَ لٰكِنَّ الۡبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ وَ اۡتُوا الۡبُيُوۡتَ مِنۡ اَبۡوَابِهَا ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ (١٨٩)

او تاسي د الله په لار کښې له هغو کسانو سره وجنګېږئ، چي له تاسي سره جنګېږي، خو تېری مه کوئ چي الله تيری کوونکی نه خوښوي.

وَ قَاتِلُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ الَّذِيۡنَ يُقَاتِلُوۡنَكُمۡ وَ لَا تَعۡتَدُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡمُعۡتَدِيۡنَ (١٩٠)

له هغوسره وجنګېږئ هرچېګرته چي ورسره مخامخ شئ، هغوی وباسئ له کومه ځايه چي هغوتاسي ايستلي يئ؛ ځکه که وژل هر څومره بد عمل دی خو فتنه له هغه نه هم ډېره بده ده او مسجد حرام ته نژدې چي ترڅو هغوی له تاسي سره نه وي جنګېدلي تاسي هم ورسره مه جنګېږئ، خو تر څو چي هغو هلته له جنګېدو نه لاس نه وي اخيستی؛ نو تاسي هم بې له کومې اندېښنې هغوی ووژنئ چي دداسي کافرانو همدا سزا ده

وَ اقۡتُلُوۡهُمۡ حَيۡثُ ثَقِفۡتُمُوۡهُمۡ وَ اَخۡرِجُوۡهُمۡ مِّنۡ حَيۡثُ اَخۡرَجُوۡكُمۡ وَ الۡفِتۡنَةُ اَشَدُّ مِنَ الۡقَتۡلِ ۚ وَ لَا تُقٰتِلُوۡهُمۡ عِنۡدَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوۡكُمۡ فِيۡهِ ۚ فَاِنۡ قٰتَلُوۡكُمۡ فَاقۡتُلُوۡهُمۡ ؕ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الۡكٰفِرِيۡنَ (١٩١)

بيا که هغوی منع شول ، نو وپوهېږئ چي الله بښونکی او رحم کوونکی دی .

فَاِنِ انۡتَهَوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (١٩٢)

او تاسي له هغو سره وجنګېږئ تر دې پورې چي فتنه پاتې نشي او دين د الله له پاره شي بيا که هغوی لاس په سر شول ، نو وپوهېږئ چي له ظالمانو پرته بل چا ته لاس غځول روانه دي.

وَ قٰتِلُوۡهُمۡ حَتّٰى لَا تَكُوۡنَ فِتۡنَةٌ وَّ يَكُوۡنَ الدِّيۡنُ لِلّٰهِ ؕ فَاِنِ انۡتَهَوۡا فَلَا عُدۡوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيۡنَ (١٩٣)

د حرامې مياشتې بدله هماغه حرامه مياشت ده او د ټولو حرمتونو مراعات به يو شان برابر وي ؛ نو كه څوك پر تاسي تيرى وكړي ، تاسي هم په هماغه ډول پر هغه تيرى وكړئ البته له الله نه په وېره كښې اوسئ او په دې وپوهېږئ چې الله د هماغو خلكو ملګرى دى چې د هغه د حدودو له ماتولو نه ډډه كوي.

اَلشَّهۡرُ الۡحَرَامُ بِالشَّهۡرِ الۡحَرَامِ وَ الۡحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ؕ فَمَنِ اعۡتَدٰی عَلَيۡكُمۡ فَاعۡتَدُوۡا عَلَيۡهِ بِمِثۡلِ مَا اعۡتَدٰی عَلَيۡكُمۡ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعۡلَمُوۡا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الۡمُتَّقِيۡنَ (۱۹۴)

د الله په لار كښې ( مال ) ولګوئ او په خپلو لاسونو خپل ځانونه (په سر او مال سره د جهاد په پرېښودلو) په هلاكت كښې مه غورځوئ د ښېګڼې لاره غوره كړئ چې الله ښېګڼه كوونكي خوښوي.

وَ اَنۡفِقُوۡا فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَ لَا تُلۡقُوۡا بِاَيۡدِيۡكُمۡ اِلَی التَّهۡلُكَةِ ۚۖۛ وَ اَحۡسِنُوۡا ۚۛ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُحۡسِنِيۡنَ (۱۹۵)

د الله درضا له پاره چې كله د حج او عُمرې نيت وكړئ؛ نو هغه تر سره كړئ او كه ايسار شئ نو چې هر څه قرباني مو له لاسه پوره وي د الله حضور ته يې وړاندې كړئ او خپل سرونه مه خرئې تر هغه پورې چې قرباني خپل ځاى ته نه وي رسيدلې ؛ خو كه څوك ناروغ وي يا يې په سر كښې څه تكليف وي او له دې امله خپل سر وخريي، نو هغه ته دا په كار ده چې دفديې په توګه روژې ونيسي يا خيرات وباسي يا قرباني وكړي.بيا كه تاسي ته امنيت په برخه شو (او تاسي دحج له ورځو مخكښې مكې ته ورسېدئ)نوچاچې له تاسي څخه دحج دورځو له راتلونه مخكښې له عمرې نه ګټه واخيستله ، هغه دې د خپل وس په اندازه قرباني وكړي ، او كه يې قرباني ونه ميندله نو درې روژې دې د حج په دوران كښې ونيسى او اوه روژې كور ته له ستنېدو وروسته ، پدغه شان دې لس پوره كړي دا (حج تمتع) د هغه چا له پاره دى چې كور كهول يې مسجد حرام ته نژدې نه وي دالله ددې حكمونو له تخلف نه ځان وژغورئ اوپه دې ښه وپوهېږي چې الله ډېرسخت سزاوركوونكى دى

وَ اَتِمُّوا الۡحَجَّ وَ الۡعُمۡرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنۡ اُحۡصِرۡتُمۡ فَمَا اسۡتَيۡسَرَ مِنَ الۡهَدۡیِ ۚ وَ لَا تَحۡلِقُوۡا رُءُوۡسَكُمۡ حَتّٰی يَبۡلُغَ الۡهَدۡیُ مَحِلَّهٗ ؕ فَمَنۡ كَانَ مِنۡكُمۡ مَّرِيۡضًا اَوۡ بِهٖۤ اَذًی مِّنۡ رَّاۡسِهٖ فَفِدۡيَةٌ مِّنۡ صِيَامٍ اَوۡ صَدَقَةٍ اَوۡ نُسُكٍ ۚ فَاِذَاۤ اَمِنۡتُمۡ ٝ فَمَنۡ تَمَتَّعَ بِالۡعُمۡرَةِ اِلَی الۡحَجِّ فَمَا اسۡتَيۡسَرَ مِنَ الۡهَدۡیِ ۚ فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِی الۡحَجِّ وَ سَبۡعَةٍ اِذَا رَجَعۡتُمۡ ؕ تِلۡكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ ذٰلِكَ لِمَنۡ لَّمۡ يَكُنۡ اَهۡلُهٗ حَاضِرِی الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ (۱۹۶)

د حج مياشتې ټولو ته ځرګندې دي څوك چې په دې ټاكلېو مياشتو كښې د حج نيت وكړي ، هغه بايد په دې خبر اوسي چې د حج په دوران كې له هغه څخه څه شهواني عمل ، څه ناوړه فعل او څه جنګ جګړه و نه شي او تاسي چې څه نيك عمل كوئ الله پرې پوهېږي د حج د سفر له پاره دلارې توښه درسره واخلئ ، او تر هر څه د لارې ښه توښه پرهيز ګاري ده ؛نو اى هوښيارانو ! زما له نافرمانى نه ډډه وكړئ.

اَلۡحَجُّ اَشۡهُرٌ مَّعۡلُوۡمٰتٌ ۚ فَمَنۡ فَرَضَ فِيۡهِنَّ الۡحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَ لَا فُسُوۡقَ ۙ وَ لَا جِدَالَ فِی الۡحَجِّ ؕ وَ مَا تَفۡعَلُوۡا مِنۡ خَيۡرٍ يَّعۡلَمۡهُ اللّٰهُ ؕؔ وَ تَزَوَّدُوۡا فَاِنَّ خَيۡرَ الزَّادِ التَّقۡوٰی ۫ وَ اتَّقُوۡنِ يٰۤاُولِی الۡاَلۡبَابِ (۱۹۷)

او كه له حج كولو سره سره تاسي د خپل رب د فضل (مال ګټلو) په لټه كښې هم شئ نو څه باك نه لري بيا چې كله له عرفات نه ځئ نو په مشعر حرام ( مزدلفه ) كښې ايسار شئ الله ياد كړئ او په هغه شان يې ياد كړئ چې تاسي ته يې لارښودنه كړېده ، كه نه خو له دې نه مخكښې تاسي ګمراه وئ.

لَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ اَنۡ تَبۡتَغُوۡا فَضۡلًا مِّنۡ رَّبِّكُمۡ ؕ فَاِذَاۤ اَفَضۡتُمۡ مِّنۡ عَرَفٰتٍ فَاذۡكُرُوا اللّٰهَ عِنۡدَ الۡمَشۡعَرِ الۡحَرَامِ ۪ وَ اذۡكُرُوۡهُ كَمَا هَدٰىكُمۡ ۚ وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ مِّنۡ قَبۡلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيۡنَ (۱۹۸)

بيا له كوم ځاى نه چې نور ټول خلك راګرځي له هماغه ځايه تاسي هم راوګرځئ او له الله نه ښښنه وغواړئ په يقيني توګه هغه ښښونكى او رحم كوونكى دى.

ثُمَّ اَفِيۡضُوۡا مِنۡ حَيۡثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَ اسۡتَغۡفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱۹۹)

بیا کله چې مو د خپل حج رکنونه ادا کړل ، نو څنګه چې مو پخوا خپل پلرونه نیکو نه په ویاړ سره یادول هماغسې اوس الله یاد کړئ ، بلکې له هغه نه هم زیات، ( خو په الله یادوونکو خلکو کښې هم ډیر توپیر شته) له هغونه څوك داسې دي چې وايي ای زمونږ ربه!مونږ ته هر څه په همدې دنیا کښې راکړه،دغسې انسان ته په اخرت کښې هيڅ برخه نشته.

فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ۗ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا وَ مَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ (۲۰۰)

او څوك وايي ای زمونږ ربه! مونږ ته هم ددنیا او هم د اخرت ښېګڼې را په برخه کړه او مونږ د اور له عذابه وساته.

وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِى الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ (۲۰۱)

داسې خلك به له خپلو کړو سره سم ( په دواړو دارینو کښې ) د برخې څښتنان وي او د الله په حساب اخستنه کښې به څه ځنډ رانشي .

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا ۗ وَ اللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (۲۰۲)

دادشمار څو ورځې دي ، چې تاسې يې بايد د خدای په یاد کښې تېرې کړئ بیا که څوك تلوار وکړي په دوو ورځو کښې (له منۍ نه) راستون شي؛ نو وبال يې نشته ، او که څوك راستنېدل (دریمې ورځې ته) وځنډوي نو هم څه باك نشته په دې شرط چې دا ورځې يې پر پرهېزګارۍ تېرې کړې وي د الله له نافرمانۍ نه ځان وژغورئ او ښه پوه شئ چې يوه ورځ د هغه حضور ته ستاسې وړاندې کېدل دي.

وَ اذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ۗ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَ مَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ۗ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ (۲۰۳)

په انسانانو کښې څوك داسې دي چې د هغه خبرې ددنیا په ژوند کښې تا ته ډېرې ښې ښکاري او هغه پر خپلې نيك نيتۍ په وارو وارو الله شاهد نيسي خو په حقیقت کښې هغه د حق ډېر سخت دښمن وي

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ يُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِيْ قَلْبِهٖ ۙ وَ هُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ (۲۰۴)

او کله چې هغه ته قدرت په لاس ورځي (یا کله چې بېرته وګرځي)، نو په ځمکه کښې د هغه ټولې هلې ځلې ددې له پاره وي چې فساد خپور کړي ، کښتونه لوټ کړي او انسانې څوځات له مینځه یوسي په داسې حال کښې چې الله ( هغه ذات چې هغه به شاهد نیوه ) هيڅکله فساد نه خوښوي.

وَ اِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَ يُهْلِكَ الْحَرْثَ وَ النَّسْلَ ۗ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ (۲۰۵)

او کله چې ورته وېل کېږي چې له الله نه ووېرېږه؛ نو د خپل پت او ابرو مفکوره يې پر ګناه ټینګوي دداسې بنیادم له پاره دوزخ کافي دی او هغه ډېر ناکاره استوګنځی دی.

وَ اِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ۗ وَ لَبِئْسَ الْمِهَادُ (۲۰۶)

له بل پلوه په انسانانوکښې داسې څوك هم شته چې دخپل خدای د رضاپه لټه کښې خپل سرقربانوي اوپرداسې بندګانو الله ډېر زیات مهربان دی.

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ۗ وَ اللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ (۲۰۷)

ای مؤمنانو! تاسې په هر اړخيز ډول په اسلام کښې ننوځئ او د شیطان پیروي مه کوئ چې هغه ستاسې ښکاره دښمن دی

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى السِّلْمِ كَآفَّةً ۪ وَ لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۗ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ (۲۰۸)

کومې ښکاره څرګندې لارښوونې چې تاسې ته راغلې دي ، که د هغو له مینځلو وروسته بیا هم تاسې وښويېږئ، نو ښه وپوهېږئ چې الله پر ټولو غالب ، د حکمت خاوند او پوه دی.

فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (۲۰۹)

که له دې تولو نصيحتونو او لاربنودنو نه وروسته بيا هم خلك سم ) نه وي ، نو ) ايا اوس هغوی دې ته سترگې په لار دي چې الله د وربځو چترۍ ودروي ، د پرښتو له صفونو سره دوي ته مخامخ راشي او پرېكړه وشي ؟ په پای كښې خو تولې چارې د همدې الله حضور ته وړاندې كېدونكې دي.

هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ يَّاۡتِيَهُمُ اللّٰهُ فِىۡ ظُلَلٍ مِّنَ الۡغَمَامِ وَ الۡمَلٰٓـئِكَةُ وَ قُضِىَ الۡاَمۡرُ ‌ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ تُرۡجَعُ الۡاُمُوۡرُ (۲۱۰)

له بني اسرائيلو نه پوښتنه وكړه : مونږ څومره ښكاره څرگندې نښې نښانې وربښودلې دي ( او دا هم ورڅخه پوښتنه وكړه) كوم قوم چې د الله دنعمت له ميندلو وروسته په بد مرغی سره بدل كړي هغو ته الله (څنگه) سخته سزا وركوي.

سَلۡ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ كَمۡ اٰتَيۡنٰهُمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ ۭ بَيِّنَةٍ ‌ؕ وَ مَنۡ يُّبَدِّلۡ نِعۡمَةَ اللّٰهِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ (۲۱۱)

كومو خلكو چې د كفر لاره غوره كړېده ، هغو ته ددنيا ژوند ډېر خوږ او په زړه پورې گرځېدلی دی دوی پر مؤمنانو ملندې وهي؛ خو د قيامت په ورځ به همدا پرهيز گاران ددوی په پرتله د لوړ مقام خاوندان وي پاتې شوه ددنيا روزي ، نو د الله واك دی چاته يې چې خوښه شي بې حسابه يې وركوي.

زُيِّنَ لِلَّذِيۡنَ كَفَرُوا الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا وَ يَسۡخَرُوۡنَ مِنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا‌ ۘ وَ الَّذِيۡنَ اتَّقَوۡا فَوۡقَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ‌ؕ وَ اللّٰهُ يَرۡزُقُ مَنۡ يَّشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٍ (۲۱۲)

په لومړي وخت كښې تول خلك په يوه لاره روان وو ( بيا چې دې وضعې دوام ونكړ او اختلافونه رامينځ ته شول ) نو الله پېغمبران ولېږل چې په سم تگ زيري وركوونكي اودانحراف له نتيجو څخه وېروونكي وو ، او له هغو سره يو ځای يې حق كتاب ولېږه چې هغه اختلافونه چې د حق په باب د خلكو ترمينځه راغلي وو فيصله كړي. ( او ددې اختلافونو پېښېدو دليل دا نه وْ چې په ابتدا كښې خلكو ته د حق ښودنه نه وه شوې، نه ، ) اختلاف هغو كسانو راپيدا كړ چې د حق په برخه كښې معلومات وركړ شوی وْ – هغو د روښانه لارښودنو له ميندلو نه وروسته صرف پدې غرض حق پرېښود او بې‌لاربې‌لې لارې يې رامينځ ته كړې چې غوښتل يې په خپلو مينځو كښې يو پر بل تېری وكړي ؛ نو الله هغو كسانو ته چې پر پېغمبرانو يې ايمان راوْړ په خپل اذن د حق هغه لاره وښودله چې خلكو په كښې اختلاف كړی وْ د الله چې چاته خوښه شي سمه لاره وربښيي.

كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيۡنَ وَ مُنۡذِرِيۡنَ وَ اَنۡزَلَ مَعَهُمُ الۡكِتٰبَ بِالۡحَـقِّ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَ النَّاسِ فِيۡمَا اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ‌ ؕ وَمَا اخۡتَلَفَ فِيۡهِ اِلَّا الَّذِيۡنَ اُوۡتُوۡهُ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُمُ الۡبَيِّنٰتُ بَغۡيًا بَيۡنَهُمۡ‌ ۚ فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لِمَا اخۡتَلَفُوۡا فِيۡهِ مِنَ الۡحَـقِّ بِاِذۡنِهٖ‌ ؕ وَاللّٰهُ يَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ (۲۱۳)

ايا تاسې دا انگېرئ چې همداسې به جنت ته ننووځئ ، په داسې حال كښې چې لا تر اوسه پر تاسې هغه هر څه ندي تېر شوي ، چې له تاسې نه پر مخكنيو مؤمنانو راغلي دي ؟ پر هغو ستونزې راغلې ، كړاوونه ورته ورسېدل ، ولړزول شول ، آن تر دې چې دوخت رسول او د هغه مؤمنانو ملگرو فريادونه وكړل چې د الله مرسته به كله راشي په هغه وخت كښې هغو ته ډاډينه وركړه شوه چې هو د الله مرسته نژدې ده.

اَمۡ حَسِبۡتُمۡ اَنۡ تَدۡخُلُوا الۡجَـنَّةَ وَلَمَّا يَاۡتِكُمۡ مَّثَلُ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِكُمۡؕ‌ مَسَّتۡهُمُ الۡبَاۡسَآءُ وَالضَّرَّآءُ وَزُلۡزِلُوۡا حَتّٰى يَقُوۡلَ الرَّسُوۡلُ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَعَهٗ مَتٰى نَصۡرُ اللّٰهِؕ اَلَا ۤ اِنَّ نَصۡرَ اللّٰهِ قَرِيۡبٌ (۲۱۴)

خلك له تانه پوښتنه كوي مونږ څه مصرف كړو ؟ ځواب وركړه كوم مال چې تاسې لگوئ پر خپل مور او پلار ، خپلوانو يتيمانو ، مسكينانو او پرديسانو يې ولگوئ او تاسې چې هره ښېگڼه كوئ الله پرې پوهېږي.

يَسۡـــَٔلُوۡنَكَ مَاذَا يُنۡفِقُوۡنَ ؕ قُلۡ مَآ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ خَيۡرٍ فَلِلۡوَالِدَيۡنِ وَالۡاَقۡرَبِيۡنَ وَالۡيَتٰمٰى وَالۡمَسٰكِيۡنِ وَابۡنِ السَّبِيۡلِ‌ ؕ وَمَا تَفۡعَلُوۡا مِنۡ خَيۡرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيۡمٌ (۲۱۵)

تاسي ته دجنګ امر شويدی او هغه تاسي ته ناکاره دی کېدای شي چې يو شی تاسي ته ناکاره وي او هماغه ستاسي له پاره ډېر غوره وي او کيدای شي چې تاسي يو شی خوښوئ او هماغه ستاسي له پاره بدوي الله پوهېږي تاسي نه پوهېږئ .

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَ هُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ وَ عَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْـًٔا وَّ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَ عَسٰٓى اَنْ تُحِبُّوْا شَيْـًٔا وَّ هُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۲۱۶)

خلك له تا څخه پوښتنه کوي په حرامه مياشت کښي جنګېدل څنګه دي؟ ووايه: پدې کښي جنګ کول ډېر بد دي ، خو د خدای له لارې نه د خلکو منع کول ، پر الله کافر کېدل ، د مسجد حرام لاره د خدای پالونکو پر مخ تړل او د حرم اوسيدونکي له هغه ځايه ايستل د خدای په وړاندې له دې نه هم ډېر زيات بد کار دی او فتنه له وينو تويولو نه لويه ګناه ده. هغوی به له تاسي سره تل په جنګ اخته وي آن تر دې چې که يې وسه ورسېږي ، نو تاسي به له دې دين نه واړوي ( او په دې ښه پوه شئ) له تاسي نه چې هر څوك له دې دين نه واوړي او د کفر په حالت کښي ومري ، د هغه عملونه به په دنيا او اخرت دواړو کښي بابېږه او ضايع شي داسي خلك تول دوزخيان دي او تل به په دوزخ کښي اوسېږي.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ؕ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ؕ وَ صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ كُفْرٌۢ بِهٖ وَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ * وَ اِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَ الْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ؕ وَ لَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا ؕ وَ مَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَ هُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۲۱۷)

ددې پر خلاف کومو خلکو چې ايمان راوړيدی او چاچې د خدای په لار کښي خپل کور وطن پرېښی او جهاد يې کړيدی ، هغوی حق لري چې د خدای د رحمت هيله من وي او الله د هغو د خطاوو ښونکی او پر هغو د خپل رحمت پېرزو کوونکی دی.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ الَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَ جٰهَدُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۲۱۸)

خلك له تانه پوښتنه کوي:د شرابو او جواری څه حکم دی ؟ ووايه : په دواړو کښي لويه ګناه ده که څه هم د خلکو له پاره به څه ګټه هم په کښي وي؛ خو ګناه يې له ګټي نه ډېره زياته ده.او خلك له تانه پوښتنه کوي: مونږ د خدای په لار کښي څه مصرف کړو؟ ووايه: هغه څه چې ستاسي له اړتيا نه زيات وي په دې ډول الله تاسي ته خپل احکام په څرګنده توګه بيانوي چې فکر وکړئ.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَ الْمَيْسِرِ ؕ قُلْ فِيْهِمَاۤ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ ۫ وَ اِثْمُهُمَاۤ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا ؕ وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ قُلِ الْعَفْوَ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ (۲۱۹) ۙ

ښايي چې تاسي ددنيا او اخرت دواړو په باب فکر وکړئ.له تا نه خلك پوښتنه کوي چې: له يتيمانو سره دې څه چلن وشي ؟ ووايه : په کوم ډول چلن کښي چې د هغو ښېګڼه وي ، د هماغه غوره کول ډېر ښه دي او که تاسي خپل او د هغو خرڅ او لګښت او ژوند ژواك سره ګډ کړئ ، څه باك نشته؛ نو هغوی خوستاسي ورونه دي دورانکارو او روغ چارو دواړو حال الله ته ښکاره دی که د الله خوښه شوې وای ؛ نو په دې کار کښي به يې تاسي له ستونزو سره مخامخ کړي وای مګر هغه پر واکمنی سربېره د حکمت څښتن هم دی.

فِى الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ؕ وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ؕ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ؕ وَ اِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ؕ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (۲۲۰)

تاسې له مشرکانو ښځو سره هېڅکله نکاح مه کوئ تر څو يې چې ايمان نه وي راوړی- يوه مسلمانه وينځه له اصيلې مشرکې نه ډېره ښه ده ، که څه هم چې ستاسې هغه ډېره خوښه وي او مسلمانې ښځې مشرکانو ته هېڅکله په نکاح مه ورکوئ تر څو چې هغو ايمان نه وي راوړی يو مسلمان مريه له اصيل مشرك نه ډېر ښه دی که څه هم چې هغه ستاسې ډېر خوښ وي دا کسان تاسې داور خواته دعوت کوي او الله په خپل اذن سره تاسې ته د جنت او ښښنې په لوري بلنه درکوي ، او هغه خلکو ته خپل حکمونه په څرګنده توګه بيانوي ، کيدای شي چې هغوی درس واخلي او نصيحت ومني.

وَ لَا تَنۡكِحُوا الۡمُشۡرِكٰتِ حَتّٰى يُؤۡمِنَّ ؕ وَ لَاَمَةٌ مُّؤۡمِنَةٌ خَيۡرٌ مِّنۡ مُّشۡرِكَةٍ وَّ لَوۡ اَعۡجَبَتۡكُمۡ ۚ وَ لَا تُنۡكِحُوا الۡمُشۡرِكِيۡنَ حَتّٰى يُؤۡمِنُوۡا ؕ وَ لَعَبۡدٌ مُّؤۡمِنٌ خَيۡرٌ مِّنۡ مُّشۡرِكٍ وَّ لَوۡ اَعۡجَبَكُمۡ ؕ اُولٰٓئِكَ يَدۡعُوۡنَ اِلَى النَّارِ ۖۚ وَ اللّٰهُ يَدۡعُوۡۤا اِلَى الۡجَنَّةِ وَ الۡمَغۡفِرَةِ بِاِذۡنِهٖ ۚ وَ يُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ (٢٢١)

او دوی له تانه پوښتنه کوي دحيض څه حکم دی؟ ووايه:هغه يود پليتی حالت دی په هغه کښې له ښځو نه بېل اوسئ اوهغو ته مه نژدې کېږئ، ترڅو هغوی پاکې اوسوتره شوې نه وي بياچې کله هغوی پاکې شي،نو له هغو سره هغه شان يوځای شئ چې الله درته امر کړيدی د الله هغه خلك خوښېږي چې له بدی نه لاس واخلي او سپېڅلتياغوره کړي.

وَ يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡمَحِيۡضِ ؕ قُلۡ هُوَ اَذًى ۙ فَاعۡتَزِلُوا النِّسَآءَ فِى الۡمَحِيۡضِ ۙ وَ لَا تَقۡرَبُوۡهُنَّ حَتّٰى يَطۡهُرۡنَ ۚ فَاِذَا تَطَهَّرۡنَ فَاۡتُوۡهُنَّ مِنۡ حَيۡثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيۡنَ وَ يُحِبُّ الۡمُتَطَهِّرِيۡنَ (٢٢٢)

ستاسې ښځې ستاسې کښتونه دي ستاسې خپله خوښه ده څنګه مو چې زړه غواړي هغه شان په خپل کښت کښې تصرف وکړئ ، خو د خپل راتلونکي فکر ولرئ او د الله له خپګان نه ځان وژغورئ ښه پوه شئ چې يوه ورځ به له هغه سره يو ځای کېګړئ او ای پېغمبره! څوك چې ستالاربنودنې ومني هغو ته دبرې او نيکمرغی زيری ورکړه.

نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٌ لَّكُمۡ ۠ فَاۡتُوۡا حَرۡثَكُمۡ اَنّٰى شِئۡتُمۡ ۡ وَ قَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِكُمۡ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّكُمۡ مُّلٰقُوۡهُ ؕ وَ بَشِّرِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (٢٢٣)

د الله نوم په داسې قسمونو خوړلو کښې مه يادوئ ، چې په هغو کښې هدف له نيکی ، پرهيزګاری او د خدای د بندګانو د ښېګڼې له کارونو څخه منع کول وي الله ستاسې ټولې خبرې اوري او په هر څه پوهېږي

وَ لَا تَجۡعَلُوا اللّٰهَ عُرۡضَةً لِّاَيۡمَانِكُمۡ اَنۡ تَبَرُّوۡا وَ تَتَّقُوۡا وَ تُصۡلِحُوۡا بَيۡنَ النَّاسِ ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (٢٢٤)

کوم بې معنا قسمونه چې تاسې بې ارادې خوړلي وي ، پر هغو مو الله نه نيسي ، خو کوم قسمونه چې تاسې د زړه له کومې خوړلي وي ، پر هغو به مو ارومرو نيسي الله ډېر ښنونکی اوتېريدونکی دی.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغۡوِ فِىۡۤ اَيۡمَانِكُمۡ وَ لٰكِنۡ يُّؤَاخِذُكُمۡ بِمَا كَسَبَتۡ قُلُوۡبُكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوۡرٌ حَلِيۡمٌ (٢٢٥)

کوم خلك چې له خپلو ښځو سره د نا اړوندی لوري کوي ، هغوې ته څلور مياشتې وخت دی که يې ورته رجوع وکړه ، نو الله ښنونکی او رحيم دی.

لِلَّذِيۡنَ يُؤۡلُوۡنَ مِنۡ نِّسَآئِهِمۡ تَرَبُّصُ اَرۡبَعَةِ اَشۡهُرٍ ۚ فَاِنۡ فَآءُوۡ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (٢٢٦)

او که هغوې د طلاق هوډ کړی وي نو ودې پوهېږي چې الله هر څه اوري او په هر څه پوهېږي.

وَ اِنۡ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (٢٢٧)

کومو ښځو ته چې طلاق ورکړای شوی وي ، هغوی دې ددرېيو حيضونو موده پر انتظار تېره کړي او دا ورته روانه ده چې هغه څه چې الله ددوی په رحم کښې پيدا کړي وي هغه پټ کړي هغوی ته هيڅګکله نه ښايي چې داسې وکړي که پر خدای او داخرت پر ورځ ايمان لري که د هغو مېړونه د خپلو اړيکو سمولو لپاره چمتو وي، نو دهمدې عدت په دوران کې په خپله نکاح کښې د هغود بيا راوستلو حق لري . د ښځو له پاره هم په معروفه توګه هماغسې حقوق دي لکه څنګه چې د نارينه وْ پر هغو حقوق دي – البته نارينه پر هغو يوه درجه (فضيلت) لري او پر ټولو الله غالب مقتدر او دحکمت او پوهې څښتن دی.

وَ الْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ؕ وَ لَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْۤ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَ بُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْۤا اِصْلَاحًا ؕ وَ لَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۪ وَ لِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ؕ وَ اللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (۲۲۸)

طلاق دوه ځله دي بيا دې يا په سمه توګه ښځه وساتله شي يا دې په ښه توګه رسخت کړه شي. او په داسې شان رسختول تاسې ته روانه دې چې څه شی مو ورکړی وي له هغو نه يوڅه بېرته ترې واخلئ البته دا مستثنا ده چې ښځه او مېړه د الله پر حدودو په درېدو کښې انديښمن وي په داسې صورت کښې که تاسې ته دا وېره وي چې هغوی دواړه به د الله پر حدودو ټينګ پاتې نشي ، نو د هغو دواړو په مينځ کښې ددې خبرې باك نشته چې ښځه خپل مېړه ته يو څه بدل ورکړي او ځان ورځخه بېل کړي داداالله ټاکلي پولې دي له دې نه مه اوړئ ، او څوك چې د خدای د پولونه واوړي هماغوی ظالمان دي.

اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ وَ لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّاۤ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْـًٔا اِلَّاۤ اَنْ يَّخَافَاۤ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَ مَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۲۲۹)

بيا که ( له دوه ځله طلاق ورکولو نه وروسته ښځې ته دريم ځل ) طلاق ورکړي ، نو هغه ښځه بيا د هغه له پاره روانه ده ، مګر دا چې له بل چا سره د هغې نکاح وشي او هغه يې طلاقه کړي که له هغه وروسته لومړي مېړه او دې ښځې دواړو دافکر وکړ چې پر ا لهی حدودو به ودرېږي ، نو که دوی يو بل ته رجوع وکړي څه باك نشته – دا د الله ټاکلي حدود دي د هغو خلکو د لار ميندنې له پاره يې څرګندوي ، چې ( د هغه د حدودو د ماتولو پر عاقبت ) پوهېږئ.

فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَاۤ اَنْ يَّتَرَاجَعَاۤ اِنْ ظَنَّاۤ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ وَ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ (۲۳۰)

او کله چې تاسې ښځو ته طلاق ورکړئ او د هغو عدت په پوره کېدو شي ، نو ياېې په ښه توګه وساتئ ياېې په ښه شان رسخت کړئ محض دربېرولو له پاره يې مه ايساروئ چې دا به تيری زياتي وي او څوك چې دا کار وکړي هغه به په حقيقت کښې خپله پر خپل ځان ظلم وکړي د الله پر ايتونو ملنډې مه وهئ دا مه هېروئ چې الله په څه لوی نعمت تاسې سرلوړي کړي يئ هغه تاسې ته نصحيت کوي چې کوم کتاب چې هغه پر تاسې نازل کړی د هغه درناوی وکړئ له الله نه ووېرېږئ او ښه وپوهېږئ چې الله له هرې خبرې نه خبر دی.

وَ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ ۪ وَ لَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوْا ۚ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ وَ لَا تَتَّخِذُوْۤا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ۫ وَّ اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ مَاۤ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَ الْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۲۳۱)

کله چې تاسي خپلو ښځو ته طلاق ورکړ او هغو خپل عدت پوره کړ ، نو بیا پدي لاره کښې خنډمه پیدا کوئ چې هغوی د خپلې خوښې مېړونه انتخاب کړي که ددواړو خواوْ په دې موافقه راغله چې سره نکاح وکړي تاسي ته ښودنه کېږي چې هېڅکله داسې حرکت مه کوئ ، که پر الله او د اخرت پر ورځ ایمان لرئ ستاسي له پاره مناسبه او سپېڅلې لاره همدا ده چې له دېنه ځان وژغورئ – الله پوهېږي او تاسي نه پوهېږئ.

وَ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَ اَطْهَرُ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۲۳۲)

د کوم پلار چې دا هیله وي چې دهغه اولاددې دتې رودنې په ټوله موده کښې تی وروي ؛ نو میندې دې خپلو بچیانو ته پوره دوه کاله تی ورکړي، په دې صورت کښې به د ماشوم پلار په ښه توګه هغو ته خوراك او جامې ورکوي ، خو داسې نه چې د چا په اوږه د هغه له وس نه پورته پیټی کېګښودل شي، نه دې مور ته له دې امله ازار ورسول شي چې ماشوم د هغې دی، او نه دې پلار له دې امله وکړول شي چې ماشوم د هغه دی دتی ورکوونکې چې ځنګه دماشوم په پلار دا حق دی همدا راز د هغه پر وارث هم دی. خو که دواړه خواوې په خپل منځې موافقه او مشوره له تې بېلول غواړي ددې خبرې څه باك نشته او که ستاسي په نظر کښې داوي چې کومه بله ښځه دې ستاسي ماشوم ته تی ورکړي ، نو پدې کښې هم څه وبال نشته؛ خو په دې شرط چې تې ورکوونکې سره مو په کومه اجوره فیصله کړېده هغه په ښه توګه اداء کړئ له الله نه ووېرېږي او وپوهېږي تاسي چې هر څه کوئ الله هغه ویني.

وَ الْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ؕ وَ عَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَ كِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَ لَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ * وَ عَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَ تَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ؕ وَ اِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ تَسْتَرْضِعُوْا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّاۤ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۲۳۳)

له تاسي څخه چې څوك ومري او کوندې یې پاتې شي ، نو هغوی دې پر خپل ځان څلور میاشتې اولس ورځې ( په عدت کې) تېرې کړي بیا چې کله یې عدت پوره شي ، نو د خپلو شخصي چارو په باب د هغو خپله خوښه ده په ښه توګه چې څه کوي ودې کړي ، پر تاسي څه مسئولیت نشته الله ستاسي له کړو وړونه خبر دی.

وَ الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ عَشْرًا ۚ فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا فَعَلْنَ فِيْۤ اَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (۲۳۴)

دعدت په موده کښې که تاسي له هغو کونډو سره د نکاح هیله په اشاره کنایه څرګنده کړئ ، او که یې په زړه کښې پټه وساتئ ، په دواړو صورتونو کښې څه باك نه لري ، الله پوهېږي چې هغوی به په زړونو کښې دریادېږي. خو پام کوئ چې پټه ژبنه او ترون به ورسره نه کوئ که کومه خبره کول وي نو په روا ډول دې وي او د نکاح تړلو پرېکړه تر هغه وخته مکوئ ، چې تر څو پورې یې عدت تېر شوی نه وي ښه وپوهېږئ چې الله اَن ستاسي د زړونو په رازونو پوهېږي ؛ نو له هغه نه ووېرېږئ او په دې هم وپوهېږئ چې الله زغمونکی دی ، له وړو وړو خبرو تېرېږئ.

وَ لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْۤ اَنْفُسِكُمْ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ وَ لٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّاۤ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ؕ وَ لَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْۤ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ (۲۳۵)

پر تاسي هيڅ گناه نشته ، كه خپلو ښځو ته مخكښي له هغه طلاق وركړئ چي لاس مو نه وي ور وړى او مهر مو نه وي ټاكلى په دې صورت كښي هغو ته څه ناڅه وركول ضروري دي وس وال دې د خپلې وسې او بېوزلي دې د خپلې وسې په اندازه په ښه توگه څه وركړي دا پر نيكانو حق دى.

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚ وَّ مَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَ عَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ (٢٣٦)

او كه تاسي له لاس ور وړلو مخكښي طلاق وركړى وي خو مهر مو ټاكلى وي نو په دې صورت كښي به نيمايي مهر وركول وي دا بېله خبره ده چي ښځه نرمه وضعه وكړي ( او مهروانخلي ) يا هغه څوك چي د نكاح د عقد واكمن دى له نرمى نه كار واخلي ( او پوره مهر وركړي) او تاسي ( يعني نارينه ) كه ښه وضعه وكړئ ، نو داله تقوى سره ډېره ښايېږي ،په خپل منځي چارو كښي مروت مه هېروئ الله ستاسي عملونهويني.

وَ اِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَ قَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ اِلَّا اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِىْ بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۗ وَ اَنْ تَعْفُوْا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۗ وَ لَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (٢٣٧)

د خپلو لمونځونو ساتنه وكړئ ، په تېره بيا دداسي لمانځه چي د لمانځه ټولې ښېگڼې په كښي وي د الله په وړاندې داسي ودرېږي ، لكه چي فرمان منونكى غلام درېږي.

حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى * وَ قُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ (٢٣٨)

كه امنيت خراب وي ، نو كه پلي ئي او كه سپاره په هر شان چي كولاى شئ لمونځ وكړئ بيا چي كله امنيت ټينگ شي ، نو الله په هغه شان ياد كړئ چي څنگه يي تاسي ته ښوونه كړېده چي پخوا پرې نه پوهېدئ.

فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ (٢٣٩)

له تاسي نه چي څوك ومري او وروسته يي كونډې پرېښي وي ، هغوى بايد د خپلو كونډو له پاره داوصيت وكړي چي تر يو كال پورې دې خوراك پوښاك وركړاى شي او له كورونو څخه دې نه ايستل كېږي ، بيا كه هغوى په خپله ووځي، نو د خپل ځان په برخه كښي چي په ښه توگه هرڅه كوي پر تاسي يي هيڅ مسئوليت نشته ،الله پر ټولو برلاس او د حكمت او پوهې څښتن دى.

وَ الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَ يَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۚ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِىْ مَا فَعَلْنَ فِىْ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ۗ وَ اللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (٢٤٠)

په همدې ډول كومو ښځو ته چي طلاق وركړاى شوى وي ، هغو ته دې هم په مناسبه توگه څه ناڅه شى وركړل شي او رخصت دې كړاى شي دا پر متقيانو حق دى.

وَ لِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ (٢٤١)

په دغه شان الله خپل حكمونه تاسى ته په ډاگه څرگنده درښيي هيله ده چي تاسي له پوهې او ادراك سره كار وكړئ.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ (٢٤٢)

تا د هغو خلكو حال ته څه پاملرنه کړېده ، چې د مرګ له وېرې يې خپل ټاټوبي پرېښي وتلي وو او د هغو شمېر زرګونو ته رسېده ؟ الله هغو ته ووېل : ومرئ بيا يې هغوی ددوهم ځل له پاره را ژوندي کړل حقيقت دادی چې الله پر انسانانو زيات مهربان دی خو زياتره خلك شكر نه ادا کوي .

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ خَرَجُوۡا مِنۡ دِيَارِہِمۡ وَ ہُمۡ اُلُوۡفٌ حَذَرَ الۡمَوۡتِ ۪ فَقَالَ لَہُمُ اللّٰہُ مُوۡتُوۡا ۟ ثُمَّ اَحۡيَاہُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَذُوۡ فَضۡلٍ عَلَى النَّاسِ وَ لٰکِنَّ اَکۡثَرَ النَّاسِ لَا يَشۡکُرُوۡنَ (۲۴۳)

مسلمانانو! د الله په لار کښې وجنګېږئ او ښه وپوهېږي چې الله اورېدونکی او پوه دی.

وَ قَاتِلُوۡا فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰہِ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰہَ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (۲۴۴)

له تاسې نه څوك دی چې الله ته قرض حسنه ورکړي ، چې الله د هغه پور څوچنده بېرته ورکړي؟ کمول هم د الله په لاس کښې دي او زياتول هم ، او د هماغه لوري ته ستاسې ورګرځېدل دي.

مَنۡ ذَا الَّذِیۡ يُقۡرِضُ اللّٰہَ قَرۡضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَہٗ لَہٗۤ اَضۡعَافًا کَثِيۡرَۃً ؕ وَ اللّٰہُ يَقۡبِضُ وَ يَبۡصُۜطُ ۪ وَ اِلَيۡہِ تُرۡجَعُوۡنَ (۲۴۵)

تا پر هغې موضوع څه غور کړيدی چې له موسی نه وروسته د بني اسرائيلو مشرانو ته پېښه شوې وه؟ هغو خپل پېغمبر ته وويل : زمونږ له پاره يو باچا وټاکه ، چې مونږ د الله په لار کښې جنګ وکړو ، پېغمبر پوښتنه وکړه : بياخو به داسې نه وي چې تاسې ته د جنګېدو امر وشي او تاسې ونه جنګېږئ ، هغو ځواب ورکړ: نه خير دا څنګه کېدای شي چې مونږ د خدای په لار کښې ونه جنګېږو ، په داسې حال کښې چې مونږ له خپلو کورونو څخه ايستل شوي يو او زمونږ اهل وعيال له مونږ څخه بېل کړای شويدی؛ خو کله چې هغو ته د جنګېدو امر وشو نو له يو لږ شمېر نه پرته نور ټول په شا لاړل، او الله د هغو هريو تيری کوونکي پيژني.

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الۡمَلَاِ مِنۡۢ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰی ۘ اِذۡ قَالُوۡا لِنَبِیٍّ لَّہُمُ ابۡعَثۡ لَنَا مَلِکًا نُّقَاتِلۡ فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰہِ ؕ قَالَ ہَلۡ عَسَيۡتُمۡ اِنۡ کُتِبَ عَلَيۡکُمُ الۡقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوۡا ؕ قَالُوۡا وَ مَا لَنَاۤ اَلَّا نُقَاتِلَ فِیۡ سَبِيۡلِ اللّٰہِ وَ قَدۡ اُخۡرِجۡنَا مِنۡ دِيَارِنَا وَ اَبۡنَآئِنَا ؕ فَلَمَّا کُتِبَ عَلَيۡہِمُ الۡقِتَالُ تَوَلَّوۡا اِلَّا قَلِيۡلًا مِّنۡہُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ عَلِيۡمٌۢ بِالظّٰلِمِيۡنَ (۲۴۶)

د هغو پېغمبر هغو ته ووېل چې الله طالوت ستاسې باچا ټاکلی دی ددې خبرې په اورېدو هغوی ووېل : " هغه څنګه پر مونږ د باچا کېدو استحقاق ومومند؟ د هغه په پرتله مونږ د باچاهۍ زيات وړيو هغه کوم زيات شتمن سړی نه دی" پېغمبر ځواب ورکړ:" الله پر تاسې هغه غوره کړيدی ا و هغه ته يې روحي او جسمي دواړه ډوله پراخ اهليت وربښلی دی او الله واکمن دی چا ته يې چې خوښه شي خپل ملك ورکوي ، له خدای سره ډېره پراخي ده او پر هر څه عالم دی"

وَ قَالَ لَہُمۡ نَبِيُّہُمۡ اِنَّ اللّٰہَ قَدۡ بَعَثَ لَکُمۡ طَالُوۡتَ مَلِکًا ؕ قَالُوۡۤا اَنّٰی يَکُوۡنُ لَہُ الۡمُلۡکُ عَلَيۡنَا وَ نَحۡنُ اَحَقُّ بِالۡمُلۡکِ مِنۡہُ وَ لَمۡ يُؤۡتَ سَعَۃً مِّنَ الۡمَالِ ؕ قَالَ اِنَّ اللّٰہَ اصۡطَفٰىہُ عَلَيۡکُمۡ وَ زَادَہٗ بَسۡطَۃً فِی الۡعِلۡمِ وَ الۡجِسۡمِ ؕ وَ اللّٰہُ يُؤۡتِیۡ مُلۡکَہٗ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ وَاسِعٌ عَلِيۡمٌ (۲۴۷)

پګردې سربېره د هغو پېغمبر هغو ته دا هم وښودله چې " د خدای له لوري د باچا په توګه د هغه د ټاکل کېدو نښانه دا ده چې د هغه په زمانه کښې به هغه صندوق تاسې ته بيا راشي ، چې په هغه کښې ستاسې درب له لوري ستاسې له پاره د ډاډ ګېرنې وسايل دي، چې په هغه کښې د موسی(ع) د کورنۍ او د هارون (ع) د کورنۍ موروثي مقدسات دي ، او هغه چې پرښتو خوندي ساتلی دی که تاسې مؤمنان ئي نو داستاسې له پاره ډېره ستره نښانه ده .

وَ قَالَ لَہُمۡ نَبِيُّہُمۡ اِنَّ اٰيَۃَ مُلۡکِہٖۤ اَنۡ يَّاۡتِيَکُمُ التَّابُوۡتُ فِيۡہِ سَکِيۡنَۃٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ وَ بَقِيَّۃٌ مِّمَّا تَرَکَ اٰلُ مُوۡسٰی وَ اٰلُ ہٰرُوۡنَ تَحۡمِلُہُ الۡمَلٰٓئِکَۃُ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰيَۃً لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ (۲۴۸)

بیا چې کله طالوت له لښکر سره وخوځېد نو ویې ویل :" پریو سیند د الله له لورې پر تاسې ازمېښت کېدونکی دی څوك چې د هغه اوبه وڅښي ، هغه زما ملګری نه دی زما ملګری یوازې هغه څوك دی چې پر هغو خپله تونده ماته نه کړي ، هو که څوك یوه ، نیمه لپه وڅښي نو ودې څښي" خو پرته له یو واړه ټولګي نه نور ټول له هغه سیند نه خړوبه شول بیا چې کله طالوت او ورسره ملګري مسلمانان له سیند نه پورې وتل وړاندې لاړل ، نو هغو طالوت ته وویل چې نن په مونږ کښې د جالوت او د هغه له لښکرو سره د مقابلې وس نشته ؛ خو د چاچې په دې باور وْ چې یوه ورځ له خدای سره یو ځای کېدونکي دي ، هغو وویل: " ډېر ځله داسې شویدي چې یو وړوکی ټولګی د الله په امر پریوی لویې ډلې بر لاس شوېدی الله دصبر کوونکو ملګری دی.

فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ ۙ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ۚ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّيْ ۚ وَ مَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهٖ ۚ فَشَرِبُوْا مِنْهُ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ؕ فَلَمَّا جَاوَزَهٗ هُوَ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ ۙ قَالُوْا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوْتَ وَ جُنُوْدِهٖ ؕ قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ ۙ كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةًۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ (۲۴۹)

او کله چې هغوی د جالوت او د هغه د لښکرو مقابلې ته ووتل ، نو یې دعا وکړه :" ای زمونږ ربه ! مونږ ته صبر راکړه ، زمونږ قدمونه ټینګ کړه او پدې کافره ډله مونږ برلاسي کړه "

وَ لَمَّا بَرَزُوْا لِجَالُوْتَ وَ جُنُوْدِهٖ قَالُوْا رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّ ثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَ انْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ (۲۵۰)ؕ

په پای کښې د الله په امر هغو کافران وځغلول او داوْد جالوت ووژاه او الله هغه ته سلطنت او حکمت ور په برخه کړ او هر هغه څه یې ور زده کړل چې د الله خوښه وه که دغه شان الله د یوې ډلې مخنیوی په بلې ډلې نه کولای نو د ځمکی نظام به ګډوډ شوی وای ، خو پر نړېوالو د الله لوی فضل دی ( چې هغه په دغه ډول د فساد دمخنیوي لارې چارې برابروي).

فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۟ۙ وَ قَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ وَ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَ الْحِكْمَةَ وَ عَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ ؕ وَ لَوْ لَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ ۙ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (۲۵۱)

داد الله ایتونه دي ، چې مونږ یې سم صحیح درته اوروو او ته په ریښتینی توګه له هغه کسانو څخه یې چې مونږ د پېغمبرانو په حیث لېږلي دي.

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ؕ وَ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ (۲۵۲)

دې پېغمبرانو ته ( چې زمونږ له لورې د انسانانو د هدایت وظیفه ورسپارله شوېده ) مونږ یو پر بل لوړتیا او فضیلت وربښلی دی له هغو څخه ځینې داسې وو چې خدای په خپله ورسره خبرې کړېدي، چاته یې له نورو خواوْ لوړې درجې ورکړېدي ، او په پای کښې یې عیسی بن مریم (ع) ته روښانه نښانې وربښلی او په سپېڅلې روح سره یې دهغه مرسته کړېده که د خدای خوښه وای نو دا نشوه کېدای چې له دې پېغمبرانو وروسته خلکو چې څرګندې نښې نښانې یې لیدلې په خپلو مینځو کښې جګړه کړې وای ، خو ( خدای دانه غوښتل چې خلك په زوره له شخړونه منع کړي ، له دې امله ) هغو یو له بل سره شخړې وکړې ، نو چا ایمان راوْړ او چا د کفر لاره غوره کړه ، هو ، که الله غوښتلای نو هغوی به هېڅکله نه جنګېدل خو الله چې څه غواړي هغه کوي.

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ وَ رَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَ اٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَ اَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَ لٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَ مِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ؕ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۟ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ (۲۵۳)

ای مؤمنانو ! څه مال شتمني چې مونږ درکړیده ، له هغې نه لګښت وکړئ مخکښې له هغه چې هغه ورځ راشي چې په هغې کښې به نه پېرل پلورل وي ، نه دوستي په درد خوري او نه به سپارښت کار وکړي ، او ظالمان اصلاً هغه کسان دي چې د کفر لاره غوره کوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَ لَا خُلَّةٌ وَّ لَا شَفَاعَةٌ ؕ وَ الْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۲۵۴)

له الله ، هغه ژوندي ابدي ذات نه پرته چې ټول کائنات يې تنظيم کړيدي بل هېڅ خدای نشته ؛ هغه نه ويده کېږي او نه پرېښانئ پرې راځي، په ځمکې او اسمانونو کښې چې هر څه دي د هغه دي څوك دی چې د هغه په وړاندې د هغه له اجازې پرته سپارښت وکړای شي ؟ څه چې د بندګانو په وړاندې دي پر هغو هم خبردی او څه چې له هغو نه پټ دي پر هغو هم خبر دی او د هغه له معلوماتو نه هېڅ شی د هغو په ادراك کښې نشي ايساريدای مګر دا چې د کوم شي علم ورکول هغه په خپله وغواړي د هغه حکومت پر اسمانونو او ځمکه خورشويدی او د هغو ساتنه د هغه له پاره کوم ستومانوونکی کار نه دی يوازې هماغه يو لوی او لوړ ذات دی.

اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۚ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّ لَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ؕ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ ۚ وَ لَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ ۚ وَ لَا يَـُٔوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَ هُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ (۲۵۵)

ددين په چارو کښې څه زور او مجبورول نشته ، سمه خبره له غلطو مفکورو څخه جلا کړای شويده اوس چې څوك له کوم طاغوت نه منکر شي او پر الله ايمان راوړي هغه يوه داسې کلکه اسره ونيوله ، چې هېڅکله ماتېدونکی نه ده ، او الله ( چې هغه خپله اسره نيولی ) د هر څه اورېدونکی او پر هر څه پوهېدونکی دی.

لَاۤ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۙۚ قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى * لَا انْفِصَامَ لَهَا ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (۲۵۶)

کوم خلك چې ايمان راوړي د هغو ملاتړ او مرستندوی الله دی او هغوی له تررمېو نه رڼا ته راباسي او کوم خلك چې د کفر لاره غوره کړي ، د هغو ملاتړ او مرستندويان طاغوتان دي او هغوی له رڼا نه د تررمېو لوري ته راکاږي دا کسان دوزخ ته ورتلونکي دي ، هلته به تل اوسېږي.

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۙ يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۚؕ وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ ۙ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۲۵۷)

ايا تا د هغه چا په حال غور نه دی کړی، چې هغه له ابراهيم سره جګړه کړې وه ؟ پدې خبره جګړه چې د ابراهيم رب څوك دی ، او له دې امله چې هغه ته الله حکومت ورکړی وْ کله چې ابراهيم (ع) وويل :" زما رب هغه ذات دی چې د ژوند او مرګ واکمن دی" نو هغه په ځواب کښې وويل : " ژوند او مرګ زما په واك کښې دی، ابراهيم (ع) وويل:" ښه ، الله لمر له ختيځ نه راخيژوي ، ته هغه له لويديځ نه راوخيژوه " ددې په اورېدو د حق هغه منکر هك پك حيران پاتې شو ، خو الله ظالمانو ته سمه لاره نه ښيي.

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِىۡ حَآجَّ اِبۡرٰهٖمَ فِىۡ رَبِّهٖۤ اَنۡ اٰتٰٮهُ اللّٰهُ الۡمُلۡكَ ۘ اِذۡ قَالَ اِبۡرٰهٖمُ رَبِّىَ الَّذِىۡ يُحۡىٖ وَ يُمِيۡتُ ۙ قَالَ اَنَا اُحۡىٖ وَ اُمِيۡتُ ؕ قَالَ اِبۡرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاۡتِىۡ بِالشَّمۡسِ مِنَ الۡمَشۡرِقِ فَاۡتِ بِهَا مِنَ الۡمَغۡرِبِ فَبُهِتَ الَّذِىۡ كَفَرَ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ (۲۵۸)ۚ

يا خود مثال په ډول هغه سړي ته وګوره چې هغه پر يو کلي تېرېده چې چتونه يې پر بل مخ نسکور شوي وو هغه وويل:" دا ودانۍ چې وراني شويدي ، دا به الله په څه شان بيا ژوندۍ کوي ( جوړوي) ؟" نو الله د هغه ساواخيستله او هغه سل کاله مړ پروت وْ بيا الله هغه دوهم ځل ژوندی کړ او له هغه نه يې پوښتنه وکړه :" ووايه ، څومره وخت پروت وې " ؟ هغه ووېل :" يوه ورځ يا څو ساعته به پروت وم" ويې فرمايل :" سل کلونه درباندې په همدې حالت کښې تېر شويدي اوس دې په خپلو خوړو اوبو لږ نظر واچوه چې يو پوټی بدلون په کښې نه دی راغلی ، له بلی خوا خپل خره ته هم وګوره ( چې آن هډوکي يې هم وراسته شويدي ) او دا مو ددې له پاره داسې کړيدي چې مونږ غواړو تا د خلکو له پاره يوه نښانه وګرځوو اوس وګوره چې دا د هډوکو پښتۍ څنګه راپاڅوو پر غوښه او پوستکي يې پټوو" کله چې په دې توګه هغه ته حقيقت په ډاګه څرګند شو، نو ويې ،يل:" زه پوهېږم چې الله په هر څه قادر دی".

اَوۡ كَالَّذِىۡ مَرَّ عَلٰى قَرۡيَةٍ وَّ هِىَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوۡشِهَا ۚ قَالَ اَنّٰى يُحۡىٖ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ۚ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ ؕ قَالَ كَمۡ لَبِثۡتَ ؕ قَالَ لَبِثۡتُ يَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٍ ؕ قَالَ بَلۡ لَّبِثۡتَ مِائَةَ عَامٍ فَانۡظُرۡ اِلٰى طَعَامِكَ وَ شَرَابِكَ لَمۡ يَتَسَنَّهۡ ۚ وَ انۡظُرۡ اِلٰى حِمَارِكَ وَ لِنَجۡعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَ انۡظُرۡ اِلَى الۡعِظَامِ كَيۡفَ نُنۡشِزُهَا ثُمَّ نَكۡسُوۡهَا لَحۡمًا ؕ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗ ۙ قَالَ اَعۡلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (۲۵۹)

او هغه پېښه دې هم در په زړه وي چې کله ابراهيم (ع) ويلي وو چې " زما څښتنه ! ما ته راوښيه چې ته په څه شان مړي ژوندي کوې" ويې فرمايل:" ايا ستا پرې ايمان نشته ؟" هغه عرض وکړ : " ايمان لرم ، خو د زړه ډاډينه غواړم" ويې فرمايل :" ښه ، نو څلور مرغۍ راواخله هغوې سره په خپلو کښې ګډې ځان ته مايلې کړه بيا د هغو يوه يوه ټوټه پر بېلابېلو غرونو کېږده بيا هغو ته نارې کړه، هغوی به تاته په ځغاسته راشي ، په دې ښه پوه شه چې الله لوی واکمن او د حکمت څښتن دی.

وَ اِذۡ قَالَ اِبۡرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِىۡ كَيۡفَ تُحۡىِ الۡمَوۡتٰى ؕ قَالَ اَوَ لَمۡ تُؤۡمِنۡ ؕ قَالَ بَلٰى وَ لٰكِنۡ لِّيَطۡمَئِنَّ قَلۡبِىۡ ؕ قَالَ فَخُذۡ اَرۡبَعَةً مِّنَ الطَّيۡرِ فَصُرۡهُنَّ اِلَيۡكَ ثُمَّ اجۡعَلۡ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنۡهُنَّ جُزۡءًا ثُمَّ ادۡعُهُنَّ يَاۡتِيۡنَكَ سَعۡيًا ؕ وَ اعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ (۲۶۰)

کوم خلك چي خپل مالونه د الله په لار کښي لګوي، د هغو د لګښت مثال داسي دی ، لکه چي يوه دانه وکرله شي او له هغي نه اوه وږي زرغون شي او په هر وږي کښي سل داني وي په همدې ډول کله چي د چا عمل ته د الله خوښه شي ، زياتوالی په کښي راولي هغه هم پراخوونکی او هم د علم څښتن دی.

مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِيْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَ اللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (۲۶۱)

کوم خلك چي خپل مالونه د الله په لار کښي لګوي او له لګښت نه وروسته پاسلونه نه کوي ، نه ازار ورکوي ، د هغو ثواب د هغو له رب سره دی او پر هغو څه وېره ترهه ، غم خپګان نشته

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَاۤ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّ لَاۤ اَذًى ۙ لَّهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۲۶۲)

يوه خوږه خبره کول اوله يوي ناوړې خبرې نه تېرېدل له هغه خيرات نه ډېر ښه دي ، چي ورپسې ازارول وي الله بې اړې دی او زغم د هغه صفت دی.

قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّ مَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَاۤ اَذًى ؕ وَ اللّٰهُ غَنِيٌّ حَلِيْمٌ (۲۶۳)

ای مؤمنانو! خپل خيراتونه په پاسلونه او ازار رسولو د هغه چا په څېر مه خاورې کوئ، چي خپل مال محضې خلکو ته ښودلو له پاره لګوي او نه يې پر خدای ايمان وي او نه پر اخرت د هغه دلګښت مثال داسي دی، لکه يوه ښويه تيږه چي دوړه پرې ناسته وي ، کله چي جړی پرې ووربږي ، ټوله دوړه ترې يوسي او تيږه هماغسي ښويه سوتره پاتې شي دې خلکو چي په خپل ګومان سره دخيرات کومه نيکي ګټلي ده له هغي نه هېڅ شی د هغو لاس ته نه ورځي ، او کافرانو ته سمه لاره ښودل د الله عادت نه دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَ الْاَذٰى ۙ كَالَّذِيْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ وَ لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلْدًا ؕ لَا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوْا ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ (۲۶۴)

ددې پر خلاف کوم خلك چي خپل مالونه يوازې د الله د خوشالولو له پاره په داډه زړه او ثبات لګوي ، د هغو د لګښت مثال داسي دی ، لکه چي په کومه هسکه کښي يو بڼ وي که شېبه باران پرې ووربږي نو دوه چنده مېوې نيسي او که جړی پرې ونه وربږي هم نو يوه ربڼی پرخه ورته کافي وي تاسي چي هرڅه کوئ خدای د هغو ليدونکی دی.

وَ مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَ تَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۲۶۵)

ايا له تاسي نه يو څوك داخوښوي چي د هغه يو ښېرازه تکشين بڼ وي ، په ويالو خړوبه ، له کجورو ، انګورو او هرله ډول مېوو نه ډك وي ، او په داسي حال کښي ناڅاپه د اور بړبړه کی ورباندې پرېوځي او وسوځي ، چي هغه په خپله بوډا او اولادونه يې ماشومان او د هېڅ کار نه وي ؟ په دغه ډول الله تاسي ته خپلي خبرې بيانوي ، تاسي ته ښايي چي غور او فکر وکړئ.

اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّ اَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۙ وَ اَصَابَهُ الْكِبَرُ وَ لَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ ۖۚ فَاَصَابَهَاۤ اِعْصَارٌ فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ (۲۶۶)

اى مؤمنانو ! كوم مالونه چې تاسي گټلي دي او كوم شيان چې مونږ ستاسي له پاره له ځمكې نه راويستلي دي ، د هغو ډېره غوره برخه د خداى په لار كښې ولگوئ داسې نه چې د هغه په لار كښې دوركړې له پاره ډېر ناكاره شي ايستلو كوشش وكړئ ، په داسي حال كښې چې كه هماغه شى څوك تاسي ته دركړي، نو تاسي به هيڅكله د هغه اخيستلو ته زړه ښه نه كړئ مگر دا چې د هغه په قبلولو كښې له سترگو پټو لو نه كار واخلئ تاسي بايد پردې پوه اوسئ چې الله بې نيازه دى او د ډېرو غوره ستاينو څښتن دى.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَ مِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ۪ وَ لَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَ لَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ ؕ وَ اعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ (٢٦٧)

شيطان تاسي له بېوزلى نه وېروي او شرمناك چلن غوره كولو ته موهڅوي ، خو الله خپل بخشش او پېرزونې ته تاسي هيله من كوي ، الله ډېر پراخ لاس خاوند او پوه دى.

اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَ يَاْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَآءِ ۚ وَ اللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَ فَضْلًا ؕ وَ اللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (٢٦٨)ۙ

چاته يې چې خوښه شي حكمت وركوي ، او چاته چې حكمت وركړ شي ، هغه ته په حقيقت كښې ستر دولت وركړ شو، له دې خبرو نه يوازې هغه كسان درس اخلي چې د پوهې خاوندان دي.

يُّؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَ مَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا ؕ وَ مَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ (٢٦٩)

تاسي چې هر څه لگولي وي او هر څه چې مو نذر منلي وي ، الله پرې پوه دى ، او د تيرى كوونكو هيڅ مرستندوى نشته.

وَ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ اَوْ نَذَرْتُمْ مِّنْ نَّذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهٗ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ (٢٧٠)

كه خپل خيراتونه په ښكاره توگه وركړئ نو دا هم ښه ده ، او كه په پټه يې اړو كسانو ته وركړئ نودا ستاسي له پاره ډېره غوره ده ستاسي ډېر گناهونه په دغه شان عمل سره له مينځه ځي او هرڅه چې تاسي كړي وي الله ورومرو پرې خبر دى.

اِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۚ وَ اِنْ تُخْفُوْهَا وَ تُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ؕ وَ يُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (٢٧١)

خلكو ته د هدايت نصيب كولو مسئوليت پر تانشته يوازې الله دى چې چاته يې خوښه شي هدايت ور په برخه كوي او تاسي چې كوم مال په خيرات كښې لگوئ ښېگڼه همدا تاسي ته ده او تاسي خو يې په همدې خاطر لگوي چې الله خوشاله كړئ ؛نو كوم مال چې تاسي په خيرات كښې ولگوئ ، د هغه پوره او بشپړ ثواب به دركړاى شي او هيڅكله به ستاسي حق ونه سوځي.

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ؕ وَ مَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ ؕ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَ اَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ (٢٧٢)

له بل هرچانه زيات د مرستي وړ هغه بېوزلي دي چې د الله په كار كښې داسې نښتي دي چې د خپلو شخصي گټو وټو له پاره د ځمكې پر مخ هيڅ راز هلې ځلې نشي كولاى دهغو د استغناء په ليدلو بې خبره خلك گومان كوي چې دوى شتمن دي ته د هغو د څېرو په ليدو د هغو پر حال خبر بداى شي ؛ خو هغوى داسي خلك ندي چې چاته كلك ودرېږي او څه وغواړي د هغو په لاس نيوي كښې چې تاسي څه مال ولگوئ هغه به له الله نه پټ پاتې نشي.

لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ ۫ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا ؕ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ (٢٧٣)

کوم خلك چې خپل مالونه شپه ورځ په ښکاره او په پټه لګوي د هغو ثواب د هغو له رب سره دی او هغو ته هیڅ وېره او اندېښنه نشته؛

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَ النَّهَارِ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۲۷۴)

کوم خلك چې سود خوري ، د هغو حال به د هغه چا غوندې وي چې پېریانو نیولی وي او پردې حال د هغو د اخته کېدو دلیل دادی چې وائي:" تجارت خو هم لکه سود غوندې شی دی" په داسي حال کښې چې الله تجارت روا او سود ناروا کړیدی نو چا ته چې د هغه درب له لوري دا نصیحت ورسیده او په راتلونکي کښې یې دسودله خوړولو نه ډډه وکړه ، نو څه چې یې مخکښې خوړلي هغه خو یې خوړلي دي ، د هغه معامله له خدای سره ده او څوك چې له دې حکم نه وروسته بیا هم همداسي کار کوي ، هغوی دوزخیان دي تل به په کښي اوسېږي.

اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِىْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْۤا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَ اَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَ حَرَّمَ الرِّبٰوا ؕ فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ؕ وَ اَمْرُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ وَ مَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۲۷۵)

الله سود له مینځه وړي او خیراتونو ته وده او ښېرازي ورکوي او الله هیڅ ناشکره بدعمله انسان نه خوښوي.

يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَ يُرْبِى الصَّدَقٰتِ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ (۲۷۶)

هو ، کوم کسان چې ایمان راوړي او غوره عملونه وکړي او زکات ورکړي، د هغو ثواب بې شکه د هغو له رب سره دی او پر هغو څه وېره او کړاو نشته .

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۲۷۷)

ای مؤمنانو له خدایه ووېرېږئ او ستاسي چې کوم سود پر خلکو پاتي دی ، هغه ورپرېږدئ ، که په رښتیا سره مو ایمان راوړی وي؛

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ ذَرُوْا مَا بَقِىَ مِنَ الرِّبٰوا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۲۷۸)

خو که تاسي داسي ونه کړل ، نو خبر اوسئ چې د الله او د هغه د رسول له خوا ستاسي پر خلاف د جګړې اعلان دی ، که اوس هم توبه وباسئ ( او سود پرېږدئ) نو تاسي د خپلي پانګې اخیستلو حقدار یاست ، مه تاسي تیری کوئ او نه به پر تاسي تیری وشي.

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ۚ وَ اِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُوْنَ وَ لَا تُظْلَمُوْنَ (۲۷۹)

که ستاسي پوروړی تنګلاسی وی نو تر لاس چلېدو پورې مهلت ورکړئ " او که خیرات وکړئ نو داستاسي له پاره ډېره ښه ده ، که پو هېږئ.

وَ اِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى مَيْسَرَةٍ ؕ وَ اَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۲۸۰)

د هغې ورځي له رسوائی او کړاوْ نه ځان وژغورئ ، چې د الله لوري ته ورستنېږي ، هلته به هر چا ته د هغه د کړې نیکی یا بدی پوره بشپړه بدله ورکړه شي او پر هېچا به هېڅکله تیری ونشي.

وَ اتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ٭ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۲۸۱)

يٰٓاَيُّہَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ ۭ وَ لْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ ۠ وَ لَا يَاْبَ كَاتِبٌ اَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَہُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ ۚ وَ لْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْہِ الْحَقُّ وَ لْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّہٗ وَ لَا يَبْخَسْ مِنْہُ شَيْـًٔا ۭ فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْہِ الْحَقُّ سَفِيْہًا اَوْ ضَعِيْفًا اَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ ہُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّہٗ بِالْعَدْلِ ۭ وَ اسْتَشْہِدُوْا شَہِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّ امْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّہَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىہُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىہُمَا الْاُخْرٰى ۭ وَ لَا يَاْبَ الشُّہَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا ۭ وَ لَا تَسْـَٔمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِہٖ ۭ ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَ اَقْوَمُ لِلشَّہَادَةِ وَ اَدْنٰٓى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَہَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْہَا ۭ وَ اَشْہِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ ۠ وَ لَا يُضَاۗرَّ كَاتِبٌ وَّ لَا شَہِيْدٌ ۭ وَ اِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّہٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ۭ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ۭ وَ يُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۭ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۲۸۲)

اى مؤمنانو، كله چي دكومي ټاكلي نيټي له پاره تاسي په خپلو مينځو كښي ديور دراكړي وركړي معامله كوئ، نو هغه وليكئ ددواړو خواو ترمينځ دي يو څوك چي هغه ته الله د ليكلو اهليت وركړى وي په انصاف سره سند وليكي هغه دي له ليكلو نه انكار نه كوي ليكنه او املا دي هغه څوك وكړي چي حق ورباندي دى ( يعني پوراخيستونكى) او هغه دي له الله ، خپل رب نه ووېرېږي چي څه معامله شوي وي په هغي كښي دي كمى زياتى نه كوي. خو كه پور اخيستونكى په خپله نا پوه يا كمزورى وي ، يا املا نشي كولاى، نو د هغه ولي دي په انصاف سره املا وكړي بيا له خپلو نارينه وْ دوه تنه پري شاهدان ونيسئ او كه دوه سړي نه وي نو يو سړى او دوه ښځي دي وي چي كه يوه يي هېره كړي ، نو هغه بله به يي ور په زړه كړي دا شاهدان دي له داسي خلكو څخه وي چي د هغو شاهدي ستاسي په مينځ كښي قبلېدونكي وي شاهدانو ته چي كله د شاهدى وېلو ووېل شي نو هغوى دي انكار نه كوي. كه معامله وړه وي او كه غټه ، د هغي نيټه ټاكل او سند ليكل بي اهميته مه ګڼئ. د الله په وړاندي دا چلن ستاسي له پاره ښه د انصاف كار دى ، په دي سره شاهدى تېرولو كښي ښه اسانتيا راځي ، او په شكونو او شبهو كښي ستاسي د اخته كېدو امكان كمېږي. هو ، كه تاسي په خپلو مينځو كښي لاس په لاس تجارتي راكړه وركړه كوئ ، نو د هغه د نه ليكلو هېڅ پروا نشته ؛خو د سوداګرى د راكړي وركړي په وخت كښي شاهدان ونيسئ- ليكونكى او شاهد دي نه ځورول كېږي كه داسي وكړئ نو ګناه كوئ د الله له قهره ووېرېږئ هغه تاسي ته د عمل سمه لاره درښيي او هغه پر هر څه پوه دى.

وَ اِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّ لَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِہٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ۭ فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ اَمَانَتَہٗ وَ لْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّہٗ ۭ وَ لَا تَكْتُمُوا الشَّہَادَةَ ۭ وَ مَنْ يَّكْتُمْہَا فَاِنَّہٗٓ اٰثِمٌ قَلْبُہٗ ۭ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ (۲۸۳)

كه تاسي د پرديسى په حال كښي ئي او د سند ليكلو له پاره كوم ليكونكى پيدا نشو ، نو د شيانو په ګرو اخيتسلو معامله وكړى كه له تاسي نه څوك پر بل باور وكړي يا له هغه سره څه معامله وكړي نو پر چا چي باور شويدى هغه دي امانت ادا كړي او له خپل رب الله څخه دي ووېرېږي. او شاهدي هېڅكله مه پټوئ څوك چي شاهدي پټوي د هغه زړه په ګناه خيرن دى او الله ستاسي له عملونو څخه بي خبره نه دى.

لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الْاَرْضِ ۭ وَ اِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِہِ اللّٰهُ ۭ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۲۸۴)

په اسمانو او په ځمكه كښي چي څه دي ټول د الله دي تاسي كه د خپلو زړونو خبري ښكاره كړئ او كه پټي وساتئ په هر حال الله به له تاسي نه د هغو حساب واخلي بيا دهغه واك دى ، چاته يي چي خوښه شي و به يي ښني او چاته يي چي خوښه شي سزا به وركړي هغه پر هر څه قادر دى.

پېغمبر (ص) پر هغه هدايت ايمان راوړيدي چې د هغه درب له خوا پر هغه نازل شويدی او څوك چې ددې پېغمبر (ص) منونكي دي، هغوی هم دا هدايت د زړه په مينه منلی دی دوی ټولو الله ، د هغه پرښتي ، د هغه كتابونه او د هغه پېغمبران (ع) منلي دي او د هغو وينا داده چې :" مونږ د الله په پېغمبرانو كښې يو له بله توپير نه كوو ، مونږ حكم واورېده او اطاعت مو ومانه ځښتنه ! مونږ ستا څخه د ګناه ښښني غوښتنونكي يو او همدا ستا لوري ته زمونږ درتګ دی."

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَ الْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ كُتُبِهٖ وَ رُسُلِهٖ ۟ لَا نُفَرِّقُ بَیْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۟ وَ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا * غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَ اِلَیْكَ الْمَصِیْرُ (۲۸۵)

الله هېڅ ساكښ ته دهغه له وسې نه پورته مسئوليت نه متوجه كوي چا چې څه ښه كړيدي ، د هغو ميوه د هماغه ده او چا چې څه بدي كړېده ، د هغې ګناه پر هماغه ده. ( مؤمنانو ! تاسې داسې دعا وكړئ ) ای زمونږ ربه! كه له مونږ نه څه هېره او خطا صادره شي ، مونږ پرې مه نيسه، ځښتنه ! پر مونږ هغه پېټی مه ږده چې له مونږنه پر مخكېنيو خلكو دې ايښی وُ. زمونږ ځښتنه ! د كوم پيټي پورته كولو چې په مونږ كښې وس نشته ، هغه پر مونږ مه ږده ، له مونږ سره اساني وكړه ، زمونږ ( له ګناهونو ) څخه تېر شه ، پر مونږ رحم وكړه، ته زمونږ كار جوړوونكی يې د كافرانو په مقابل كښې زمونږ مرسته وكړه.

لَا یُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ؕ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَ عَلَیْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ؕ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَاۤ اِنْ نَّسِیْنَاۤ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَ لَا تَحْمِلْ عَلَیْنَاۤ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَ لَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَ اعْفُ عَنَّا ۟ وَ اغْفِرْ لَنَا ۟ وَ ارْحَمْنَا ۟ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِیْنَ (۲۸۶)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی
اَ ، لَ ، مَ .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ
الٓمّٓ ۚ (۱)

الله ، له هغه تل تر تله ژوندي ذات څخه پرته چې دكائناتو د نظام سمبالوونكی دی په حقيقت كښې هېڅ كوم بل خدای نشته .

اللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ؕ (۲)

هغه پر تا داكتاب نازل كړی چې په حقه راغلی دی او د هغو كتابونو رېښتينه كوي چې له ده نه پخوا راوړل شوي وو . له دېنه مخكښې هغه د انسانانو د هدايت له پاره تورات او انجيل نازل كړيدي.

نَزَّلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَیْنَ یَدَیْهِ وَ اَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِیْلَ ۙ (۳)

او الله هغه محك لېږلی دی ( چې د حق او دباطل توپير ښوونكی دی) اوس چې كوم خلك د الله د فرمانونو له منلو نه انكار وكړي ، هغوی به ارو مرو په سخته سزا اخته شي . الله ډېر زورور او د بدو بدله وركوونكی دی.

مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَ اَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ؕ اِنَّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِاٰیٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِیْدٌ ؕ وَ اللّٰهُ عَزِیْزٌ ذُو انْتِقَامٍ (۴)

په ځمكه او اسمان كښې هېڅ شی له الله نه پټ نه دی .

اِنَّ اللّٰهَ لَا یَخْفٰى عَلَیْهِ شَیْءٌ فِی الْاَرْضِ وَ لَا فِی السَّمَآءِ ؕ (۵)

دا خو هماغه ذات دی چې د مېندو په ګېډو كښې ستاسې صورتونه چې څنګه يې خوښوي هغسې يې جوړوي. له هغه مقتدر حكمت والا نه پرته بل هېڅ خدای نشته.

هُوَ الَّذِیْ یُصَوِّرُكُمْ فِی الْاَرْحَامِ كَیْفَ یَشَآءُ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ (۶)

هماغه خدای دی ،چې داکتاب يې پر تا نازل کړيدی په دې کتاب کښې دوه ډوله ايتونه دي : يو محکمات چې دکتاب اصلي بنسټ دی او بل متشا بهات، د کومو خلکو په زړونو کښې چې کوږ والی دی ، هغوی د فتنې راولاړولو له پاره تل په همدې متشابهاتو پسې ګرځي او هغو ته د معنا برابرولو هڅه کوي ، په داسې حال کښې چې د هغو پر حقيقي معنا له الله نه پرته بل هېڅوك نه پوهېږي ، ددې پر خلاف کوم خلك چې پاخه عالمان دي، هغوی وايي چې :" مونږ پر هغو ټولو ايمان لرو ، دا ټول زمونږ د رب له لوري دي " او رښتيا داده چې له يو شي څخه صحيح درس صرف د پوهې خاوندان اخلي.

هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ وَ اُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَ ابْتِغَآءَ تَاْوِيْلِهٖ ۚ وَ مَا يَعْلَمُ تَاْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ۘ وَ الرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَ مَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ (۷)

هغوی دعا کوي چې:" زموږ پروردګاره ! کله چې تامونږ پر سمه لاره خوځولي يو ، نو بيا مو هېڅکله زړونه مه کږوه ، مونږ ته د خپلې پېرزوينې له زيرمې نه رحمت راپه برخه کړه چې همدا ته حقيقي لوروونکی يې ،

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَ هَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ (۸)

زموږ پروردګاره ! ته ارومرو يوه ورځ د ټولو خلکو غونډوونکی يې ، چې د هغې په راتګ کښې هيڅ شك نشته ، الله هېڅکله له خپلې وعدې نه اووښتونکی نه دی.

رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ (۹)

کومو خلکو چې د کفر چلن غوره کړيدي، هغو ته به د الله په مقابله کښې نه د هغوی مال څه په درد وخوري ، نه اولاد ، هغوی به ددوزخ د سون مواد وګرځي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَ لَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمْ وَقُوْدُ النَّارِ (۱۰)

د هغوی عاقبت به هماغسې شي لکه د فرعون دملګرو او له هغو نه د مخکېنيو سرکشانو چې زمونږ آيتونه يې دروغ وګڼل ، نتيجه دا شوه چې الله هغوی په خپلو ګناهونو ونيول او حقه خبره داده چې الله د سختې سزا ورکوونکی دی.

كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَ اللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (۱۱)

نو ای محمده ! کومو خلکو چې ستا د دعوت له منلو نه انکار کړيدی ، هغو ته ووايه چې هغه وخت نژدې دی چې تاسې به مغلوب شئ اوددوزخ لوري ته به په منډه منډه وروستل شئ او دوزخ ډېر بداستوګنځی دی.

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَ تُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ؕ وَ بِئْسَ الْمِهَادُ (۱۲)

يقيناً ستاسې له پاره په هغو دوو ډلو کښې د عبرت يوه نښه وه ، چې ( په بدر کښې ) يوه له بلې سره په جنګ شولې، يوه ډله د خدای په لاره کښې جنګېدله او بله ډله د کافرانو وه ليدونکېو د سر په ستر ګو ليدل چې د کفارو ډله د مسلمانانو د ډلې دوه چنده ده؛ خو ( نتيجې ثابته کړه) د الله چې چاته خوښه شي په خپل برى او نصرت ورسره مرسته کوي د بصيرت خاوندانو له پاره په دې کښې ستر درس پروت دی.

قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ؕ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ اُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ رَاْيَ الْعَيْنِ ؕ وَ اللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ (۱۳)

دخلكو له پاره نفسي غوښتني ښځي ، اولادونه ، د سرو سپينو زيرمي ، كره اسونه ، څاروي او كروندي ډېري ميني وړ ګرځول شويدي ، خو دا هر څه د څو ورځي دنيوي ژوندانه وسايل دي په حقيقت كښي چي كوم ډېر ښه استوګنځي دى ، هغه له الله سره دى .

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَ الْبَنِيْنَ وَ الْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَ الْفِضَّةِ وَ الْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَ الْاَنْعَامِ وَ الْحَرْثِ ؕ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَ اللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ (۱۴)

ووايه:ايا زه دروښيم چي له دي نه ډېر ښه شى څه دى؟ دهغو خلكو له پاره چي د پرهيز ګارى لاره غوره كړي د هغو له رب سره باغونه دي ، چي تر هغو لاندي به ويالي بهيږي ، هلته به د تل له پاره اوسيدونكي وي ، سپيڅلي ميرمني به يي ملګري وي او د الله د رضا په ګټلو به سر لوړي وي. الله د خپلو بندګانو كړه وړه په ښه شان ويني.

قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّ رِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ (۱۵)

دا هغه خلك دي ، چي وايي:" زموږ پروردګاره ! مونږ ايمان راوړى ، زمونږ له ګناهونو څخه راتيرشه او مونږ ددوزخ له اوره وژغوره "

اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اِنَّنَا اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ قِنَا عَذَابَ النَّارِ (۱۶)

داخلك صابران دي.ريښتوني دي،امر منونكي او مال ښندونكي دي اودشپي په وروستيوشيبو(سحر) كښي له الله نه د ښښني دعاګاني غواړي.

اَلصّٰبِرِيْنَ وَ الصّٰدِقِيْنَ وَ الْقٰنِتِيْنَ وَ الْمُنْفِقِيْنَ وَ الْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ (۱۷)

الله په خپله ددې خبرې شاهدي وركړي ده چي له هغه پرته بل هيڅ خداى نشته او پرښتي او ټول اهل علم هم په ريښتيني او منصفانه توګه پردي شاهدان دي چي له هغه زور ور با حكمته څخه پرته په واقع كښي هيڅ بل خداى نشته .

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ وَ اُولُوا الْعِلْمِ قَآئِمًۢا بِالْقِسْطِ ؕ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۱۸)

د الله په وړاندى دين همدا اسلام دى . له دې دين نه پرته چي اهل كتابو كومي مختلفي لارې غوره كړي ، د هغو ددې چار چلن له دې پرته بل هيڅ دليل نه وْ چي هغو له علم وركول كيدو نه وروسته په خپلو مينځو كښي يو پر بل د تيري كولو په خاطر داسي وكړل او هرڅوك چي د الله د حكمونو او لارښودنو د اطاعت نه منكر شي ، الله به له هغه سره بي له څه ځنډه حساب وكړي.

اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۟ وَ مَا اخْتَلَفَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ؕ وَ مَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (۱۹)

اوس كه داخلك له تاسره شخړه وكړي ، نو دوى ته ووايه :" ما او زما پيروانو خو د الله په وړاندي د تسليم سر ښكته كړيدى" . او له اهل كتابو او غير اهل كتابو(مشركانو) دواړو نه پوښتنه وكړه :" ايا تاسي هم د هغه اطاعت او بندګى منلي ده ؟" كه يي منلي ده نو سمه لاره يي موندله ، او كه يي ورڅخه مخ اړولى؛ نو پر تا يوازې د پيغام رسولو مسئوليت وْ. نور الله په خپله د خپلو بندګانو د چارو ليدونكى دى.

فَاِنْ حَآجُّوْكَ فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ وَ مَنِ اتَّبَعَنِ ؕ وَ قُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَ الْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ؕ فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَ اِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ (۲۰)

کوم خلك چې دا لله د حکمونو او لاربنوونو له منلو نه انکار کوي او (د هغه) پېغمبران په ناحقه وژني او دداسې خلکو په وژلو پسې ګرځي ، چې د عدل او رېښتينولی د حکم کولو له پاره را پورته کېږي ؛نو هغو ته د درد ناك عذاب زيری ورکړه

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَكۡفُرُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ يَقۡتُلُوۡنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيۡرِ حَقٍّ ۙ وَّ يَقۡتُلُوۡنَ الَّذِيۡنَ يَاۡمُرُوۡنَ بِالۡقِسۡطِ مِنَ النَّاسِ ۙ فَبَشِّرۡهُمۡ بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ (٢١)

دا هغه خلك دي چې عملونه يې په دنيا او اخرت دواړو کښې ضايع شول او د هغو هېڅوك مرستندوی نشته .

اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ حَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ فِى الدُّنۡيَا وَ الۡاٰخِرَةِ ۡ وَ مَا لَهُمۡ مِّنۡ نّٰصِرِيۡنَ (٢٢)

ايا تا نه دي کتلي، کومو خلکو ته چې د کتاب د علم يو څه برخه ورکړه شوې ، د هغو څه حال دی؟ هغوی چې کله د خدای د کتاب لوري ته بلل کېږي چې د هغو په مينځ کښې فيصله وکړي ، نو د هغو يوه ډله ورڅخه په ډډه کېږي او دې فيصلې ته له راتلو څخه ګرځي .

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ اُوۡتُوۡا نَصِيۡبًا مِّنَ الۡكِتٰبِ يُدۡعَوۡنَ اِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيۡقٌ مِّنۡهُمۡ وَ هُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ (٢٣)

د هغو دا ډول چلن له دې امله دی چې وايي " ددوزخ اور به پر مونږ له سره ونه لګي او که ددوزخ عذاب مونږ ته راکړل شي هم صرف څو روځې به وي " د هغو مصنوعي عقيدو هغوی د خپل دين په باب په لويو غلطو انګېرنو کښې غورځولي دي؛

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ قَالُوۡا لَنۡ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّاۤ اَيَّامًا مَّعۡدُوۡدٰتٍ ۡ وَ غَرَّهُمۡ فِىۡ دِيۡنِهِمۡ مَّا كَانُوۡا يَفۡتَرُوۡنَ (٢٤)

خو پر هغو به څه راشي چې کله مونږ هغوی په هغه ورځ راغونډ کړو چې د هغې راتګ يقيني دی؟ په هغه ورځ به هر چاته د خپلو کړو پوره بشپړه بدله ورکړه شي او پر هېچا به ظلم ونشي.

فَكَيۡفَ اِذَا جَمَعۡنٰهُمۡ لِيَوۡمٍ لَّا رَيۡبَ فِيۡهِ ۡ وَ وُفِّيَتۡ كُلُّ نَفۡسٍ مَّا كَسَبَتۡ وَ هُمۡ لَا يُظۡلَمُوۡنَ (٢٥)

ووايه ! خدايه! د ملك مالکه ! ستا چې چاته خوښه شي حکومت ورکوې او له چا نه چې وغواړې اخلې يې ، چاته چې دې خوښه شي ، عزت ورکوې او څوك چې وغواړې ، ذليله کوې يې ښېګڼه ستا په واك کښې ده بېشکه ته په هر څه قادر يې .

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الۡمُلۡكِ تُؤۡتِى الۡمُلۡكَ مَنۡ تَشَآءُ وَ تَنۡزِعُ الۡمُلۡكَ مِمَّنۡ تَشَآءُ ۡ وَ تُعِزُّ مَنۡ تَشَآءُ وَ تُذِلُّ مَنۡ تَشَآءُ ؕ بِيَدِكَ الۡخَيۡرُ ؕ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (٢٦)

شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې ننباسې او ( يوه له بلې څخه راووځې ) له بې ساڅخه ساکښ او له ساکښ څخه بې سا را باسې او چاته چې دې خوښه شي بې حسابه روزي ورکوې.

تُوۡلِجُ الَّيۡلَ فِى النَّهَارِ وَ تُوۡلِجُ النَّهَارَ فِى الَّيۡلِ ۡ وَ تُخۡرِجُ الۡحَىَّ مِنَ الۡمَيِّتِ وَ تُخۡرِجُ الۡمَيِّتَ مِنَ الۡحَىِّ ۡ وَ تَرۡزُقُ مَنۡ تَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٍ (٢٧)

مؤمنان دې هېڅکله داسې نه کوي چې مؤمنان پرېږدي او له کافرانو سره ملګرتيا او دوستي وکړي څوك چې داسې چلن وکړي د هغه له الله سره هېڅ اړيکه نشته هو ، دابېل کېږي که تاسې دهغو له ظلم څخه د ځان ژغورلو په خاطر په ظاهره دغه ډول چلند غوره کړئ؛ خو الله تاسې له خپله ځانه ويروي او د هماغه الله لوري ته ستاسې ورګرځېدل دي.

لَا يَتَّخِذِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الۡكٰفِرِيۡنَ اَوۡلِيَآءَ مِنۡ دُوۡنِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۚ وَ مَنۡ يَّفۡعَلۡ ذٰلِكَ فَلَيۡسَ مِنَ اللّٰهِ فِىۡ شَىۡءٍ اِلَّاۤ اَنۡ تَتَّقُوۡا مِنۡهُمۡ تُقٰٮةً ؕ وَ يُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفۡسَهٗ ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ الۡمَصِيۡرُ (٢٨)

ای پېغمبره! خلك په دې خبر کړه چې ستاسې په زړونو کې چې هر څه دي ، که تاسې هغه پټ وساتئ او که يې ښکاره کړئ ، الله په هر حال پرې پوهېږي ، په اسمانونو او ځمکه کښې هېڅ داسې کوم شی نشته چې د هغه له علم څخه دباندې وي ، او د هغه زور پر هر څه چلېږئ .

قُلۡ اِنۡ تُخۡفُوۡا مَا فِىۡ صُدُوۡرِكُمۡ اَوۡ تُبۡدُوۡهُ يَعۡلَمۡهُ اللّٰهُ ؕ وَ يَعۡلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (٢٩)

هغه ورځ راتلونکي ده ، چي هر نفس د خپلو کړو میوه حاضره وموميي که یې ښه کړي وي او که بد، په هغه ورځ به انسان دا هیله څرګنده کړي چي کاشکي د هغه او د بدو اعمالو ترمنځ یې ډېره فاصله وای! الله تاسي له خپله ځانه وېروي او هغه د خپلو بندګانو ډېر زیات خیر غوښتونکی دی.

يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ۚ وَّ مَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ تَوَدُّ لَوْ اَنَّ بَيْنَهَا وَ بَيْنَهٗٓ اَمَدًا بَعِيْدًا ؕ وَ يُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ (۳۰)

ای پیغمبره ، خلکو ته ووایه چي :" که تاسي په ریښتیا له الله سره مینه لرئ نو زما د پیروی لاره غوره کړئ ، الله به له تاسي سره مینه وکړي او ستاسي خطاوې به دروبښي هغه ډېر ښه ښنونکی او درحمت څښتن دی.

قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۳۱)

بیا که هغوی "د الله او رسول اطاعت ومنئ " : هغو ته ووایه چي " ستا دا بلنه و نه مني ، نو دا بیا بیخي نشي کېدای چي الله له داسي خلکو سره مینه وکړي ، چي د هغه او د هغه د رسول له اطاعت نه انکار کوي.

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ (۳۲)

الله ادم (ع) ، نوح (ع)، دابراهیم ځوځات او د عمران ځوځات پرټولو نړېوالو پورته کړي او ( د خپل رسالت له پاره يې ) غوره کړي وو .

اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰٓى اٰدَمَ وَ نُوْحًا وَّ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَ اٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (۳۳)

دوی د یوې لړۍ خلك وو ، چي ځیني د ځینو نورو له ځوځات نه مینځ ته راغلي وو الله د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی.

ذُرِّيَّةًۢ بَعْضُهَا مِنْۢ بَعْضٍ ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (۳۴)

زما "کله چي د عمران ښځي وېل چي (الله هغه وخت اورېدل ) پروردګاره! زه دا آزاد اولاد چي زما په ګېډه کښي دی ستا له پاره نذر کوم ، هغه به همدا ستا کارونو ته وقف وي زما داسوغات قبول کړه ، ته اورېدونکی او پوهېدونکی یې".

اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّيْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِيْ بَطْنِيْ مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (۳۵)

بیا چي کله یې هغه ماشوم وزېږوه؛ نو هغي ووېل " زما پروردګاره! زما خو لور زېږېدلي ده په داسي حال کښي څه چي هغي زېږولي وو، الله ورباندي پوره خبر وْ. او هلك د نجلی غوندي نه وي هر څه چي ده ، ما د هغي نوم مریم ایښی دی او زه هغي او د هغي راتلونکي ځوځات ته درټل شوي شیطان له شر څخه ستا پناه غواړم".

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ وَضَعْتُهَآ اُنْثٰى ؕ وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ؕ وَ لَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى ۚ وَ اِنِّيْ سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَ اِنِّيْٓ اُعِيْذُهَا بِكَ وَ ذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (۳۶)

په پای کښي د هغي رب هغه نجلی په خوښی سره قبوله کړه ، هغه یې ډېره ښه نجلی وروزله او زکریا یې د هغي پالونکی وګرځوه زکریا به چي هر وخت محراب ته ورته نو له هغي سره به یې د خوراك او څښاك څه ناڅه میندل . پوښتنه به یې کوله : مریم ! دا تا ته له کومه راځي ؟ هغي به ځواب ورکاوه، د الله له لوري راغلي دي ، د الله چي چاته خوښه شي بې حسابه روزي ورکوي.

فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُوْلٍ حَسَنٍ وَّ اَنْۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَّ كَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚؕ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ۙ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ؕ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ (۳۷)

ددې حال په لیدلو زکریا خپل خدای ته دعا وکړه ویې وېل زما " پروردګاه!په خپل قدرت ماته ښه اولاد په برخه کړه همداته دعا اورېدونکی یې "

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۚ اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ (۳۸)

په ځواب کښې پرښتو ورته غږ وکړ او هغه په دې وخت کښې په ځيله خانه کښې په لمانځه ولاړ وْ، چې " الله تاته د يحيی زيری درکوي هغه به د الله له لوري ديو فرمان د رېښتنيوونکي په توګه راشي په هغه کښې به د سرداری او لوئی نښه وي پر خپل نفس به په ټوله معنا حاکم وي، په پېغمبری به سر لوړی وي او په ښو کسانو کښې به وشمېرلی شي.

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَ هُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ سَيِّدًا وَّ حَصُوْرًا وَّ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ (۳۹)

زکريا ووېل" زما روزونکيه او پالونکيه ! زما به زوی له کومه شي ، زه خو ډېر زيات سپين ږيری شوی يم او زما ښځه شنډه ده ؟ ويې فرمايل: " همداسې به وشي ، د الله چې څه خوښه وي هماغسې کوي"

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ قَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَ امْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ (۴۰)

عرض يې وکړ:" زما څښتنه ! نو ماته کومه نښه وټاکه " ويې فرمايل:"ستا نښه دا ده چې ته به تر درېيو ورځو پورې له خلکو سره له اشارې پرته څه خبره ونه کړې (يا به يې ونشې کړای) په دې موده کښې خپل رب ډېر يادوه او سهار او ماښام د هغه د پاکۍ ستايونکی اوسه.

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْۤ اٰيَةً ؕ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ وَ اذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّ سَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَ الْاِبْكَارِ (۴۱)

نو هغه وخت راورسېد چې پرښتې مريم ته راغلې او ويې ويل" ای مريم! الله ته غوره کړې يې سپېڅلتيايي دربښلې او د ټولې نړۍ پر ښځو يې تاته ترجيح درکړې د خپل خدمت له پاره يې ټاکلې يې .

وَ اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَ طَهَّرَكِ وَ اصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ (۴۲)

ای مريم! دخپل پروردګار د فرمان تابع اوسه ، د هغه په وړاندې سر په سجده اوسه ، او کو م بندګان چې د هغه په وړاندې سر ښکته کوونکي دي ته هم له هغو سره سر ښکته کوونکې اوسه".

يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَ اسْجُدِيْ وَ ارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ (۴۳)

ای محمده ! دا پټ خبرونه دي چې مونږ يې تاته د وحيې په وسيله وايو ، که نه ته خو په هغه وخت کښې هلته نه وې چې د هيکل خدمتګارانو ددې فېصلې په خاطر خپل خپل قلمونه غورځول چې د مريم سر پرست به څوك کېږی، او نه ته په هغه وخت کښې له هغو سره موجود وې چې دهغو پرې جګړه وه.

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ؕ وَ مَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۪ وَ مَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ (۴۴)

او کله چې پرښتو ووېل: ای مريم! الله تاته د خپل يو فرمان زيری درکوي، د هغه نوم به مسيح عيسی بن مريم وي، په دنيا او اخرت کښې به د عزت څښتن وي. د الله په نژدې بندګانو کښې به شمېرل کېږی،

اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ ۖۗ اسْمُهُ الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيْهًا فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ وَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ (۴۵ۙ)

له خلکو سره به په زانګو کښې هم خبرې وکړي او په زړښت کښې به يې هم وکړي، او هغه به يو ښه سړی وي."

وَ يُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَ كَهْلًا وَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۴۶)

مريم چې دا واورېدل ويې وېل"زماپروردګاره ! زما زوی له کومه شي، ماته خو چا لاس قدرې هم نه دی راوړی ويې فرمايل:"
همداسې به وشي، الله چې چاته اراده وکړي پيدا کوي يې ، هغه چې کله د کوم کار کولو فيصله وکړي نو صرف دومره وايي چې وشه او هغه کېږي".

قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّ لَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ اِذَا قَضٰۤى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ (۴۷)

او الله به هغه ته " ( پرښتو د خپلې وینا په لړ کښې ورپسې ووېل ) کتاب او حکمت وښيي ، د تورات او انجيل علم به ور زده کړي

وَ يُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ وَ التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِيْلَ (۴۸)

او بني اسرائيلو ته به يې د خپل پېغمبر په توګه وټاکي" ( او کله چې هغه د پېغمبر په توګه بني اسرائيلو ته ورغی نو ويې وېل ) دايو حقيقت دی چې زه ستاسي درب له خوا له نښاني سره تاسي ته راغلی يم زه ستاسي په مخ کښې له خټې نه د مرغی د شکل يوه مجسمه جوړوم او په هغې کښې پوکی کوم ، هغه د الله په امر الوتونکی جوړېږي، زه د الله په امر مور زادی ړوند او پيس روغوم او مړي ژوندي کوم ، زه تاسي ته ښيم چې تاسي څه خورئ او څه په خپلو کورونو کښې زېرمه کوئ. په دې کښې تاسي ته پوره نښانه ده که تاسي ايمان راوړونکي ياست.

وَ رَسُوْلًا اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ۬ اَنِّيْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ اَنِّيْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًۢا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَ اُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَ الْاَبْرَصَ وَ اُحْيِ الْمَوْتٰى بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَ اُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَاْكُلُوْنَ وَ مَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِيْ بُيُوْتِكُمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۴۹)

او زه د هغې ښوونې او هدايت رېښتينوونکی راغلی يم چې له تورات نه اوس زما په زمانه کښې موجود دی- او ددې له پاره راغلی يم چې تاسي ته ځينې هغه شيان حلال کړم چې پر تاسي حرام کړای شويدي- ګورئ زه ستاسي دروزونکي پالونکي له لوري تاسي ته له نښانې سره راغلی يم ، نو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ.

وَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَ لِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ وَ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۟ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوْنِ (۵۰)

الله هم زما رب دی او هم ستاسي ، له دې امله تاسي د هماغه بندګي غوره کړئ ، همدا سمه سيخه لار ده .

اِنَّ اللّٰهَ رَبِّيْ وَ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ (۵۱)

کله چې عيسی درك کړه چې بنی اسرائيل کفر او انکار ته چمتو دي نو هغه ووېل" څوك د الله په لار کښې زما ملاتړ کېږئ" ؟
حواريانو په ځواب کښې ووېل" مونږ د الله ددين ملاتړ يو ، مونږ پر الله ايمان راوړی ، شاهد اوسه چې مونږ مسلمانان ( د الله په لار کښې سرټيټوونکي ) يو

فَلَمَّاۤ اَحَسَّ عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ وَ اشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ (۵۲)

زمونږ څښتنه ! کوم فرمان چې تا رالېږلی دی مونږ هغه منلی او دپېغمبر پيروي مو قبوله کړې ده ، زمونږ نوم په شاهدي ويونکو کښې وليکه ".

رَبَّنَاۤ اٰمَنَّا بِمَاۤ اَنْزَلْتَ وَ اتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ (۵۳)

بيا بني اسرائيلو ( د مسيح پر خلاف پټې دسيسې پېل کړې – په مقابل کښې الله هم خپل پټ تدبير په کار واچوه او په داسي تدبيرنو کښې الله تر ټولو وړاندې دی-

وَ مَكَرُوْا وَ مَكَرَ اللّٰهُ ؕ وَ اللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ (۵۴)

ای "هغه خو دهمدې الله پټ تدبير وْ) چې کله الله ووېل چې ) عيسی! زه اوس تا بيرته راولم او تا به خپل لوري ته راپورته کړم او چاچې ته نه يې منلی له هغو نه ( يعني د هغو له څنګ نه او د هغو په ناولي چاپېريال کښې له هغو سره له هستوګنې نه ) به تا پاك کړم او ستا پيروان به تر قيامته پر هغو خلکو برلاسي کړم چې بيا به پای کښې ستاسي ټولو راتګ ماته دی ، په – ته يې نه يې منلی هغه وخت کښې به زه د هغو خبرو فيصله وکړم چې په هغو کښې .ستاسي تر مينځ شخړه شوېده

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰۤى اِنِّيْ مُتَوَفِّيْكَ وَ رَافِعُكَ اِلَيَّ وَ مُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ جَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ اِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَاَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ (۵۵)

کومو خلکو چې د کفر او انکار چلند غوره کړيدی هغو ته به په دنيا او اخرت دواړو کښې سخته سزا ورکړم او هغوی به کوم مرستندوی و نه مومي ،

فَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَاُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا فِى الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ۫ وَ مَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ (۵۶)

او کومو کسانو چې دايمان او نيکيو چلند غوره کړيدی هغو ته به الله د هغو ثوابونه پوره بشپړ ورکړي او ښه وپوهيږئ چې الله ظالمان هيڅکله نه خوښوي".

وَ اَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ (۵۷)

داله نښانو او حکمت نه ډکې يادونې دي چې مونږ يې تاته لولو .

ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ الْاٰيٰتِ وَ الذِّكْرِ الْحَكِيْمِ (۵۸)

د الله په وړاندې د عيسى مثال د ادم غوندې دی چې الله هغه له خاورې نه پيدا کړ او امر يې ورته وکړ چې شه نو هغه وشو.

اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ ؕ خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ (۵۹)

دا اصلي حقيقت دی چې ستا درب له لوري ښودل کيږي او ته له هغو کسانو څخه مه کيږه چې پدې کښې شك کوي.

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ (۶۰)

تا ته ددې علم له راتګ نه وروسته که اوس څوك پدې باب له تا سره جګړه وکړي نو ای محمده! ورته ووايه چې " راځئ هم به مونږ او تاسي په خپله راشو او هم به خپلې خپلې کورنۍ (زامن ، لوڼې او ښځې ) راولو او د خدای په وړاندې به دعا وکړو چې که هر څوك دروغجن وي پر هغه دې د خدای لعنت وي".

فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَ اَبْنَآءَكُمْ وَ نِسَآءَنَا وَ نِسَآءَكُمْ وَ اَنْفُسَنَا وَ اَنْفُسَكُمْ ۫ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ (۶۱)

دا بيخي صحيح واقعيتونه دي، او حقيقت دا دی چې له الله نه پرته هيڅ بل خدای نشته ، او هغه د همدې الله ذات دی چې د هغه زورپر ټولو بر او د هغه حکمت دکائناتو په نظام کښې کاريګر دی-

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَ مَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۶۲)

نو که دوی ( پدې شرط له مقابلې نه ) مخ واړوي نو ( دابه په ډاګه شي چې هغوی مفسدان دي ) او الله د فساد خوروونکو په حال ښه عالم دی-

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ بِالْمُفْسِدِيْنَ (۶۳)

ووايه ،" ای اهل کتابو! يوې داسې خبرې ته راشئ چې زمونږ او ستاسي دواړو تر مينځ يو شان ده ــ دا چې مونږ له الله نه پرته د هيچا بندګي ونکړو، له هغه سره هيڅوك شريك ونه ګڼو ، او له مونږ نه دې څيني ، څيني نور له الله نه پرته په ربوبيت نه نيسي " ــ كه هغوی ددې بلنې له منلو نه مخ واړوي نو په ډاګه ورته ووايئ چې شاهدان اوسئ ، مونږ خو مسلمانان ( يوازې د خدای بندګي کوونکي او اطاعت کوونکي )يو.

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَ لَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّ لَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ (۶۴)

ای اهل کتابو ! تاسي د ابراهيم (ع) په باب ولې له مونږ سره شخړه کوئ؟ تورات او انجيل خو له ابراهيم (ع) نه وروسته نازل شويدي نو تاسې په دومره خبره هم نه پوهيږئ.

يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْۤ اِبْرٰهِيْمَ وَ مَاۤ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَ الْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۶۵)

تاسي چې د کومو شيانو علم لرئ په هغو کښې خو بحثونه کوئ، په هغو چارو کښې ولې څيړنه کوئ چې له تاسي سره د هغو په باب هيڅ معلومات نشته ــ الله پوهيږي تاسي نه پوهيږئ.

هٰۤاَنْتُمْ هٰۤؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۶۶)

ابراهيم (ع) نه يهودي وْ نه نصراني ، بلکې هغه خو يوه لوري ته مخ اړوونکی مسلمان وْ او هغه هيڅکله له مشرکانو څخه نه وْ".

مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّ لَا نَصْرَانِيًّا وَّ لٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَ مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۶۷)

ځوك چې تر ټولو زيات ددې حقدار دي چې ابراهيم (ع) ته منسوب شي هغه خلك دي چې د هغه پيروي يې وكړه او اوس دا پېغمبر او دده منونكي ددې منسوبېدو زيات حقدار دي ، الله يوازې د هماغو كسانو ملاتړ او مرستندوى دى چې ايمان يې راوړى وي.

اِنَّ اَوۡلَی النَّاسِ بِاِبۡرٰہِیۡمَ لَلَّذِیۡنَ اتَّبَعُوۡہُ وَ ہٰذَا النَّبِیُّ وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا ؕ وَ اللّٰہُ وَلِیُّ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۶۸)

اى مؤمنانو ) له اهل كتابو نه يوه ډله غواړي چې په څه چل تاسي ) له سمې لارې نه واړوي په داسې حال كښې چې په حقيقت كښې هغوى له ځانه پرته هېڅوك په ګمراهى كښې نه غورځوي؛ خو له .هغو سره ددې شعور نشته

وَدَّتۡ طَّآئِفَۃٌ مِّنۡ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ لَوۡ یُضِلُّوۡنَکُمۡ ؕ وَ مَا یُضِلُّوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَہُمۡ وَ مَا یَشۡعُرُوۡنَ (۶۹)

اى اهل كتابو ! ولې د الله له ايتونو نه منكرېږئ پداسې حال كښې چې تاسې يې په خپله شاهدي وهئ؟

یٰۤاَہۡلَ الۡکِتٰبِ لِمَ تَکۡفُرُوۡنَ بِاٰیٰتِ اللّٰہِ وَ اَنۡتُمۡ تَشۡہَدُوۡنَ (۷۰)

اى اهل كتابو! ولې حق ته د باطل رنګ وركوئ او سره ګډوئ يې؟ ولې له پوهې او ادراك سره سره حق پټوئ.

یٰۤاَہۡلَ الۡکِتٰبِ لِمَ تَلۡبِسُوۡنَ الۡحَقَّ بِالۡبَاطِلِ وَ تَکۡتُمُوۡنَ الۡحَقَّ وَ اَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۷۱)

له اهل كتابو نه يوه ډله وايي چې ددې پېغمبر پر منونكيو چې څه نازل شويدي پر هغه سهار ايمان راوړئ او ماښام ورڅخه انكار وكړئ ، ښايي پر دې دسيسه داخلك له خپل ايمان نه واوړي.

وَ قَالَتۡ طَّآئِفَۃٌ مِّنۡ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ اٰمِنُوۡا بِالَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ عَلَی الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَجۡہَ النَّہَارِ وَ اکۡفُرُوۡۤا اٰخِرَہٗ لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۷۲)

دغه راز دا خلك په خپلو كښې وائي چې د هېچا خبره مه منئ چې ستاسې پردين نه وي،اى پېغمبره!دوى ته ووايه چې"اصلاً خو هدايت دالله هدايت دى او دا د هغه وركړه ده، چې يوچاته هماغه څه (فضيلت)وركړل شي چې يو وخت تاسي ته دركړل شوي وو، يا دا چې نورو(مسلمانانو) ته ستاسي د پروردګار حضور ته دوړاندې كېدو له پاره ستاسي كتابونو پر خلاف قوي دليل په لاس ورشي".اى پېغمبره!دوى ته ووايه چې"فضل اولوروونه دالله په واك كښې ده، چا ته يې چې خوښه شي وركوي يې هغه دېراخ نظرښښتن دى اوپه هرڅه پوهېږي.

وَ لَا تُؤۡمِنُوۡۤا اِلَّا لِمَنۡ تَبِعَ دِیۡنَکُمۡ ؕ قُلۡ اِنَّ الۡہُدٰی ہُدَی اللّٰہِ ۙ اَنۡ یُّؤۡتٰۤی اَحَدٌ مِّثۡلَ مَاۤ اُوۡتِیۡتُمۡ اَوۡ یُحَآجُّوۡکُمۡ عِنۡدَ رَبِّکُمۡ ؕ قُلۡ اِنَّ الۡفَضۡلَ بِیَدِ اللّٰہِ ۚ یُؤۡتِیۡہِ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ وَاسِعٌ عَلِیۡمٌ (۷۳)

د خپل رحمت له پاره يې چې چاته خوښه شي ټاكي يې او د هغه فضل ډېر زيات دى".

یَّخۡتَصُّ بِرَحۡمَتِہٖ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِیۡمِ (۷۴)

له اهل كتابو نه ځوك داسې دى چې كه ته پر هغه د ډاډ له مخې په پنډونو مال او شتمنى وركړې نو هغه به ستا مال تاته بېرته دركړي ، او ځوك په كښې داسې دي چې كه ته وربانډې ديوې اشرپۍ اعتبار هم وكړې بېرته به يې درنه كړي مګر دا چې د هغه پر سرودرېږى د هغو ددې اخلاقي حالت سبب دا دى چې هغوى وايي :" د بېسوادو ( غير يهودي خلكو ) په باب پر مونږ څه مواخذه نشته "او داخبره هغوى بيخي په دروغجنه وينا د الله لوري ته منسوبوي ، په داسې حال كښې چې هغو ته ځرګند ده چې الله داسې نه دي ويلي.

وَ مِنۡ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ مَنۡ اِنۡ تَاۡمَنۡہُ بِقِنۡطَارٍ یُّؤَدِّہٖۤ اِلَیۡکَ ۚ وَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ اِنۡ تَاۡمَنۡہُ بِدِیۡنَارٍ لَّا یُؤَدِّہٖۤ اِلَیۡکَ اِلَّا مَادُمۡتَ عَلَیۡہِ قَآئِمًا ؕ ذٰلِکَ بِاَنَّہُمۡ قَالُوۡا لَیۡسَ عَلَیۡنَا فِی الۡاُمِّیّٖنَ سَبِیۡلٌ ۚ وَ یَقُوۡلُوۡنَ عَلَی اللّٰہِ الۡکَذِبَ وَ ہُمۡ یَعۡلَمُوۡنَ (۷۵)

ښه نو ولې به له هغو نه پوښتنه ونشي ؟ هر څوك چې خپل تعهد پوره كړي او له بدوچارو په ډډه شي هغه به الله ته ګران وي ځكه چې پرهيزګاران د الله خوښېږي.

بَلٰى مَنۡ اَوۡفٰى بِعَہۡدِهٖ وَ اتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰہَ يُحِبُّ الۡمُتَّقِيۡنَ (۷۶)

پاتې شول هغه خلك چې د الله ترون او خپلې لوړې په لږ بيه پلوري ، نو د هغو له پاره په اخرت كښې هيڅ برخه نشته ، الله به د قيامت په ورځ نه له هغو سره خبرې وكړي نه به د هغو لوري ته وګوري او نه به هغوی سپېڅلي كړي ، بلكې د هغو له پاره خو دردناك عذاب دی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَشۡتَرُوۡنَ بِعَہۡدِ اللّٰہِ وَ اَيۡمَانِہِمۡ ثَمَنًا قَلِيۡلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَہُمۡ فِى الۡاٰخِرَةِ وَ لَا يُكَلِّمُہُمُ اللّٰہُ وَ لَا يَنۡظُرُ اِلَيۡہِمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ وَ لَا يُزَكِّيۡہِمۡ ۪ وَ لَہُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۷۷)

په دوی كښې ځينې خلك داسې دي چې د كتاب په لوستلو ژبې داسې اړوي رااړوي چې ته به وايئ څه چې لولي هغه د كتاب عبارت دی ، په داسې حال كښې چې هغه د كتاب عبارت نه وي. هغوی وايي دا څه چې مونږ لولو دا د خدای له خوا دي ، په داسې حال كښې چې هغه د خدای له خوا نه وي ، هغوی له پوهې او ادراك سره سره ددروغو وينا د خدای لوري ته منسوبوي

وَ اِنَّ مِنۡہُمۡ لَفَرِيۡقًا يَّلۡوٗنَ اَلۡسِنَتَہُمۡ بِالۡكِتٰبِ لِتَحۡسَبُوۡهُ مِنَ الۡكِتٰبِ وَ مَا ہُوَ مِنَ الۡكِتٰبِ ۚ وَ يَقُوۡلُوۡنَ ہُوَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ وَ مَا ہُوَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ ۚ وَ يَقُوۡلُوۡنَ عَلَى اللّٰہِ الۡكَذِبَ وَ ہُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ (۷۸)

د هيڅ انسان دا كار نه دی چې الله هغه ته كتاب ، فرمان او پېغمبري وركړي او هغه خلكو ته ووايي چې د الله پر ځای تاسې زما بندګان شئ، هغه به همدا ورته ووايي چې خدای پالونكي شئ لكه څنګه چې ددې كتاب غوښتنه ده چې تاسې د هغه زده كړه او ښوونه كوئ،

مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنۡ يُّؤۡتِيَہُ اللّٰہُ الۡكِتٰبَ وَ الۡحُكۡمَ وَ النُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوۡلَ لِلنَّاسِ كُوۡنُوۡا عِبَادًا لِّىۡ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ وَ لٰكِنۡ كُوۡنُوۡا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنۡتُمۡ تُعَلِّمُوۡنَ الۡكِتٰبَ وَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَدۡرُسُوۡنَ (۷۹)

هغه به داسې هيڅكله تاسې ته ونه وايي چې پرښتې يا پېغمبران په ربوبيت ونيسئ – ايا دا كيدای شي چې يو پېغمبر تاسې ته د كفر امر وكړي په هغه وخت كښې چې تاسې مسلمانان ياست؟

وَ لَا يَاۡمُرَكُمۡ اَنۡ تَتَّخِذُوا الۡمَلٰٓئِكَةَ وَ النَّبِيّٖنَ اَرۡبَابًا ؕ اَيَاۡمُرُكُمۡ بِالۡكُفۡرِ بَعۡدَ اِذۡ اَنۡتُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ (۸۰)

دريادكړئ ، الله له پېغمبرانو وعده اخيستې وه چې " نن مونږ په كتاب ، حكمت او پوهې سره سرلوړي كړی ئې، سبا كه تاسې ته كوم بل پېغمبر د هماغو هداياتو ريښتيني كوونكی درغی چې له مخكښې نه تاسې سره شته ، نو تاسې به پر هغه ايمان راوړونكي او د هغه ملاتړونكي اوسئ" په دې وينا سره الله پوښتنه وكړه " ايا تاسې دا اقرار كړی او پر دې خبره مو زما له خوا د ژبنې د روند مسئوليت پر غاړه اخيستی دی؟" هغو وويل : هو ، مونږ اقرار كړيدی الله وفرمايل :" ښه نو شاهدان اوسئ او زه هم له تاسې سره شاهد يم.

وَ اِذۡ اَخَذَ اللّٰہُ مِيۡثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَاۤ اٰتَيۡتُكُمۡ مِّنۡ كِتٰبٍ وَّ حِكۡمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمۡ رَسُوۡلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمۡ لَتُؤۡمِنُنَّ بِہٖ وَ لَتَنۡصُرُنَّہٗ ؕ قَالَ ءَاَقۡرَرۡتُمۡ وَ اَخَذۡتُمۡ عَلٰى ذٰلِكُمۡ اِصۡرِىۡ ؕ قَالُوۡۤا اَقۡرَرۡنَا ؕ قَالَ فَاشۡہَدُوۡا وَ اَنَا مَعَكُمۡ مِّنَ الشّٰہِدِيۡنَ (۸۱)

له دې وروسته چې هر څوك له خپلې ژبنې واوړي هماغوی فاسقان دي.

فَمَنۡ تَوَلّٰى بَعۡدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ ہُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ (۸۲)

اوس ايا دا خلك د الله د اطاعت طريقه ( دين الله ) پرېږدي كومه بله طريقه لټوي؟ په داسې حال كښې چې د اسمانونو او ځمكې ټول شيان خوښ وي كه ناخوښ پوازې د الله د فرمان تابع ( مسلمانان ) دي او د هماغه لوري ته د ټولو ورګرځېدل دي.

اَفَغَيۡرَ دِيۡنِ اللّٰہِ يَبۡغُوۡنَ وَ لَہٗۤ اَسۡلَمَ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ طَوۡعًا وَّ كَرۡہًا وَّ اِلَيۡہِ يُرۡجَعُوۡنَ (۸۳)

ای پېغمبره! ووایه چي " مونږ الله منو ، هغه ښوونه منو چي پر مونږ نازله شوېده ، هغه ښووني هم منو چي پر ابراهیم (ع) ، اسمعیل (ع) ، اسحق (ع) ، یعقوب (ع) او د یعقوب (ع) پر ځوځات نازلي شوي وي، او پر هغو هدایاتو هم ایمان لرو چي موسی (ع) ، عیسی (ع) او نورو پېغمبرانو ته د هغو د پروردگار له خوا ورکړای شوي مونږ د هغودهیڅ یو تر مینځ توپیرنه کوو او مونږ د الله د فرمان تابع ( مسلمانان ) یو "

قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ مَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَ مَاۤ اُنْزِلَ عَلٰۤى اِبْرٰهِيْمَ وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ وَ الْاَسْبَاطِ وَ مَاۤ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَ عِيْسٰى وَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۪ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۫ وَ نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ (٨۴)

له اسلام نه پرته چي هر څوك كوم بل دین غوره كړي هيڅكله په ور څخه قبول نكړي شي او په اخرت كښي به هغه نا كام او زیانمن وي.

وَ مَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَ هُوَ فِى الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ (٨۵)

څنگه كیدای شي چي الله هغو خلكو ته هدایت وكړي چي هغو د ایمان د نعمت له مینڈلو وروسته بیا كفر غوره كړ په داسي حال كښي چي هغوپه خپله پر دې خبره شاهدي ويلي ده چي دا پېغمبر په حقه دی او هغو ته روښانه نښي نښاني هم راغلي دي الله خو ظالمانو ته د سمي لارې ښودنه نه كوي ؛

كَيْفَ يَهْدِى اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَ شَهِدُوْۤا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّ جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (٨٦)

د هغو د ظلم وړ سزا داده چي پر هغو د الله ، پرښتو او ټولو انسانانو لعنت دی،

اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ اَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَ الْمَلٰٓئِكَةِ وَ النَّاسِ اَجْمَعِيْنَ (٨٧)

په همدې حالت كښي به هغوی د تل له پاره اوسېږي ، نه به د هغو په سزا كښي څه اسانتیا راوستل شي او نه به هغو ته مهلت وركړ شي.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَ لَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ (٨٨)

البته هغه كسان به وژغورل شي چي له دې وروسته توبه وباسي او خپل عملي چلن سم كړي ، الله ښښونكی او رحم كوونكی دی.

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَ اَصْلَحُوْا ۟ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٨٩)

خو كومو خلكو چي له ایمان راوړلو وروسته كفر غوره كړی ، بیا يي په خپل كفر كښي پر مختگ كړیدی د هغو به توبه هم نه قبلېږي ، داسي كسان خو پاخه لار وركي دي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الضَّآلُّوْنَ (٩٠)

باور ولرئ چي كومو خلكو كفر غوره كړیدی او همدا د كفر په حال كښي مړه شول له هغو نه كه كوم يو له سزا څخه د خپل ځان ژغورلو له پاره دا ټوله ځمكه له سر وزرو ډكه جریمه وركړي؛ نو هغه به قبوله نه كړای شي دداسي خلكو له پاره دردناكه سزا تیاره ده او هغوی به د خپل ځان له پاره كوم مرستندوی ونه مومي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ مَاتُوْا وَ هُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْ اَحَدِهِمْ مِّلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا وَّلَوِ افْتَدٰى بِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَّ مَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ (٩١)

تاسي نیكی ته هيڅكله نشئ رسېدای تر څو خپل هغه شیان ( د خدای په لار كښي ) ونه لگوئ چي تاسي ته گران وي، او څه شی چي تاسي ولگوئ الله پرې عالم دی.

لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ؕ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَیْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ (٩٢)

دا ټول خوراكي شیان ( چي په محمدي شریعت كښي حلال دي ) دبني اسرائیلو له پاره هم حلال وو، البته ځيني شیان داسي وو چي د تورات له نازلېدو نه مخكښي اسرائیلو په خپله پر ځان حرام كړي وو دوی ته ووایه ، كه تاسي ( په خپلو اعتراضونو كښي) رښتیني یاست نو تورات راوړئ او د هغه كوم عبارت را مخي ته كړئ ويې لولئ

كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِیْۤ اِسْرَآءِيْلَ اِلَّا مَا حَرَّمَ اِسْرَآءِيْلُ عَلٰى نَفْسِهٖ مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَاۤ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (٩٣)

کوم خلك چې له دې وروسته هم د خپلو جوړوکړېو دروغو نسبت د الله لوري ته کوي هماغوی په حقیقت کښې ظالمان دي.

فَمَنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۹۴)

ووایه ، الله چې څه ویلي دي رښتیا یې ویلي دي ، تاسې باید یوه لوري ته مخه کړئ د ابراهیم (ع) د طریقې پیروي وکړئ ، او ابراهیم (ع) له مشرکانو څخه نه وْ .

قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ۫ فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَ مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۹۵)

بېشکه تر ټولو لومړی عبادتځی چې د انسانانو له پاره ودان شو هغه هماغه دی چې په مکه کښې دی، هغه ته خیر او برکت ورکړ شوی او د ټولو نړېوالو له پاره د هدایت مرکز گرځول شویدی.

اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِیْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّ هُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ (۹۶)

په هغه کښې ځرگندې نښاني دي، د ابراهیم (ع) د درېدو عبادت ځای دی ، او هغه ته چې څوك ننوځي په کې امن شو ،پر خلکو د الله داحق (فرض) دی چې که څوك هغه کور ته درسیدو وس ولري دهغه حج دې وکړي، او که څوك ددې فرمان له عملي کولو نه انکار وکړي نو هغه دې په دې پوه وي چې الله له ټولو نړېوالو څخه بې نیازه دی.

فِيْهِ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِيْمَ ۚ۬ وَ مَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ وَ لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ وَ مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِیٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ (۹۷)

ووایه ، ای اهل کتابو! تاسې ولې د الله د حکمونو له منلو نه منکرېږئ؟ هر یو عمل چې تاسې کوئ الله موویني .

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖ وَ اللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ (۹۸)

ووایه ، ای اهل کتابو! دا ستاسې څه چلن دی چې که څوك د الله حکم مني تاسې هغه هم د الله له لارې نه منع کوئ او غواړئ چې هغه دې په کږه لاره لاړ شي ، په داسې حال کښې چې تاسې په خپله ( پردې ) شاهدان یئ ( چې دالار سمه ده ) ستاسې له کړنو څخه الله بې خبره نه دی.

قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا وَّ اَنْتُمْ شُهَدَآءُ ؕ وَ مَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ (۹۹)

ای مؤمنانو ! که تاسې ددې اهل کتابو د یوې ډلې خبره ومنئ نو دوی به تاسې له ایمان نه بیرته د کفر لوري ته واړوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ (۱۰۰)

ستاسې له پاره د کفر لوري ته دورتگ اوس څه ځای پاتې دی چې تاسې ته د الله ایتونه لوستل کېږي او ستاسې په مینځ کښې د هغه رسول موجود دی؟ څوك چې د الله ددین لمن په کلکه ونیسي هغه به اورمرو سمه لاره ومومي.

وَ كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَ اَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ وَ فِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ ؕ وَ مَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ فَقَدْ هُدِیَ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۱۰۱)

ای مؤمنانو! له الله نه داسې ووېرېږئ لکه څنگه چې له هغه نه دوېرېدو حق دی تاسې ته دې مرگ رانشي مگر په داسې حال کښې چې مسلمانان اوسئ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَ لَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ (۱۰۲)

ټول یو ځای شئ د الله رسی کلکه ونیسئ او تیت پرك کېږئ مه د الله هغه پېرزوینه دریاده کړئ چې پر تاسې یې کړېده تاسې یو د بل دښمنان وئ، هغه ستاسې په زړونو کښې مینه واچوله او د هغه په مهربانۍ او لورېنه تاسې سره ورونه ورونه شوئ، تاسې دیوې له اوره ډکې کندې پر غاړه ولاړوئ ، الله تاسې ورڅخه وژغورلئ .په دغه شان الله خپلې نښانې تاسې ته ځرگند وي په دې کار ده چې په دغو نښانو سره تاسې ته د خپلې ژغورېدنې سمه لاره په نظر درشي.

وَ اعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّ لَا تَفَرَّقُوْا ۪ وَ اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ اَعْدَآءً فَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖۤ اِخْوَانًا ۚ وَ كُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَاَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ (۱۰۳)

په تاسي کښي بايد څه خلك ارومرو داسي وي چي د نيکۍ لوري ته بلنه وکړي، په ښو امر وکړي او له بد و منع وکړي ، کوم خلك چي دا کار وکړي هماغوی به برياليي شي.

وَلۡتَكُنۡ مِّنۡكُمۡ اُمَّةٌ يَّدۡعُوۡنَ اِلَی الۡخَيۡرِ وَ يَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ يَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ (۱۰۴)

پام کوئ تاسي هغو خلکو غوندي نشئ چي په ډلو وويشل شول او له روښانه څرگندو لارښودنو ميندلو نه وروسته بيړته په شخړو کښي اخته شول، چا چي دا چلن غوره کړيدی هغوی به سخته سزا ومومي.

وَ لَا تَكُوۡنُوۡا كَالَّذِيۡنَ تَفَرَّقُوۡا وَ اخۡتَلَفُوۡا مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ الۡبَيِّنٰتُ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ (۱۰۵)ۙ

په هغه ورځ چي هلته به څه خلك سرخرويه وي او څه تور مخي ، د چاچي مخونه تور وي ( هغو ته به وويل شي چي ) ايا دا يمان د نعمت له ميندلو وروسته هم تاسي د کفر چلن غوره کړ؟ ښه ده نو اوس د نعمت دناشکرۍ په بدله کښي دعذاب خوند واخلئ

يَّوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوۡهٌ وَّ تَسۡوَدُّ وُجُوۡهٌ ۚ فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اسۡوَدَّتۡ وُجُوۡهُهُمۡ ۟ اَكَفَرۡتُمۡ بَعۡدَ اِيۡمَانِكُمۡ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ (۱۰۶)

پاتي شول دځلانده څيرو خاوندان هغوي به د الله د رحمت په غيږ کښي ځای ومومي او د تل له پاره به هغوی په همدې حالت کښي اوسيږي.

وَ اَمَّا الَّذِيۡنَ ابۡيَضَّتۡ وُجُوۡهُهُمۡ فَفِيۡ رَحۡمَةِ اللّٰهِ ؕ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ (۱۰۷)

دا د الله لارښودني دي چي مونږ يي تا ته سمي صحيح لولو ځکه چي الله پر نړيوالو د تيري کولو څه اراده نه لري.

تِلۡكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتۡلُوۡهَا عَلَيۡكَ بِالۡحَقِّ ؕ وَ مَا اللّٰهُ يُرِيۡدُ ظُلۡمًا لِّلۡعٰلَمِيۡنَ (۱۰۸)

د اسمانونو او ځمکي د ټولو شيانو څښتن الله دی او ټولي چارې د همدې الله حضور ته وړاندي کيږي.

وَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ وَ اِلَی اللّٰهِ تُرۡجَعُ الۡاُمُوۡرُ (۱۰۹)

اوس په نړۍ کښي هغه غوره ډله تاسي ياست چي د انسانانو د لارښودني او اصلاح له پاره مينځ ته راوړل شوېده تاسي د نيکۍ امر کوئ او له بديو منعه، او پر الله ايمان لرئ که دغو کتابيانو ايمان راوړی وای؛ نو دهمدوی له پاره ښه وه که څه هم په هغو کښي ځيني د ايمان خاوندان شته؛ خو ددوی زياتره کسان له فرمان څخه سرغړوونکي دي.

كُنۡتُمۡ خَيۡرَ اُمَّةٍ اُخۡرِجَتۡ لِلنَّاسِ تَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ تَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ وَ تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ ؕ وَ لَوۡ اٰمَنَ اَهۡلُ الۡكِتٰبِ لَكَانَ خَيۡرًا لَّهُمۡ ؕ مِنۡهُمُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَ اَكۡثَرُهُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ (۱۱۰)

دوی تاسي ته هيڅ وراني نشي دراړولای ايله بيله دومره کولی شي چي تنگ مو کړي که دوی له تاسي سره وجنگيږي نو په مقابله کښي به شا درواړوي ، بيا به داسي بېوسي وي چي له هيڅ لوري به مرسته ورته ونه رسيږئ

لَنۡ يَّضُرُّوۡكُمۡ اِلَّاۤ اَذًی ؕ وَ اِنۡ يُّقَاتِلُوۡكُمۡ يُوَلُّوۡكُمُ الۡاَدۡبَارَ ۟ ثُمَّ لَا يُنۡصَرُوۡنَ (۱۱۱)

دوی چي هر چيرته وميندل شي ؛ نو ذلت به پري مسلط وي ، که د خدای په وړاندي يا د انسانانو ترڅنگ پناه واخلي دا بېله خبره ده دوی د الله په قهر اخته شويدي ، پر دوی اړتيا او مغلوبيت مسلط کړای شويدی، او دا هرڅه له دې امله شويدي چي دوی د خدای له ايتونو څخه منکريدل او دوی پيغمبران په ناحقه وژل دا ددوی د سرغړوني او تيريو عاقبت دی.

ضُرِبَتۡ عَلَيۡهِمُ الذِّلَّةُ اَيۡنَ مَا ثُقِفُوۡۤا اِلَّا بِحَبۡلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ حَبۡلٍ مِّنَ النَّاسِ وَ بَآءُوۡ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ ضُرِبَتۡ عَلَيۡهِمُ الۡمَسۡكَنَةُ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ يَقۡتُلُوۡنَ الۡاَنۡۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقٍّ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوۡا وَّ كَانُوۡا يَعۡتَدُوۡنَ (۱۱۲)*

خو ټول اهل کتاب يو شان نه دي په هغو کښي ځيني داسي هم دي چي پر سمه لار روان دي ، د شپې له مخي د الله ايتونه لولي او د هغه په وړاندې په سجده پرېوځي،

لَيۡسُوۡا سَوَآءً ؕ مِنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتۡلُوۡنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيۡلِ وَ هُمۡ يَسۡجُدُوۡنَ (۱۱۳)

يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ يَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ يَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۱۱۴)

پر الله اوداخرت په ورځ ايمان لري ، پرنيکيو امر کوي له بدېو نه منع کوي اودښېګڼې په چاروکښې په چټکې بوختېږي، اودوی صالحان دي.

وَ مَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ (۱۱۵)

او دوی چې هر څه نيکي وکړي د هغې بې قدري به ونشي ، الله پرهيزګاران ډېر ښه پېژني ،

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَ لَاۤ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۱۱۶)

پاتې شول هغه خلك چې هغوې د کفر چلن غوره کړيدی نو د الله په مقابله کښې به نه د هغو شتمني څه په درد وخوري نه يې اولاد، هغوی دوزخ ته ورتلونکي دي او په هماغه اور کښې به هغوې د تل له پاره استوګنه لري.

مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ وَ مَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَ لٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ (۱۱۷)

څه شی چې هغوی په خپل دغه دنيوي ژوندانه کښې مصرفوي د هغه لګښت مثال د هغه باد په څېر دی چې په هغه کښې برېره کې وي او هغه د هغو خلکو په فصلونو والوزي چې هغو خپله پر خپل ځان ظلم کړيدی او هغه تباه او برباد کړي الله پر هغو ظلم نه دی کړی، په حقيقت کښې هغوی خپله پر خپل ځان ظلم کوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا ؕ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۖۚ وَ مَا تُخْفِيْ صُدُوْرُهُمْ اَكْبَرُ ؕ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ (۱۱۸)

ای مؤمنانو ! د خپلې ټولنې له وګړيو نه پرته له نوروسره خپل رازونه مه وايئ . هغوی ستاسي دورکاوي له هېڅ يو فرصت څخه ګټه اخيستل له لاسه نه ورکوي او تاسي ته چې په هر څه زيان اوړي د هغو خوښېږي د هغو د زړه دښمني د هغو له خولې نه راووځي او څه چې هغوی په خپلو سينو کښې پټ ساتلي دي هغه له دې نه زيات دي مونږ تاسي ته په ډاګه څرګنده لاربښوونې کړيدي که تاسي پوهه لرئ ( نو له هغو سره به په ارتباط ساتنه کښې له پاملرنې څخه کار واخلئ).

هٰۤاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَ لَا يُحِبُّوْنَكُمْ وَ تُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ وَ اِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْۤا اٰمَنَّا ۖ٭ۗ وَ اِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ؕ قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (۱۱۹)

تاسي له هغو سره مينه کوئ ؛خو هغوی له تاسي سره مينه نه لري سره له دې چې تاسي ټول اسماني کتابونه منئ ،کله چې هغوی له تاسي سره يو ځای کېږي؛ نو وايي چې مونږ هم ( ستاسي پېغمبر او ستاسي کتاب ) منلي دي؛ خو چې کله درڅخه بېلېږي، نو بيا ستاسي پر خلاف له ډېر قهر او غضب نه خپلې ګوتې چيچي هغو ته ووايه چې د خپلې غوسې په تاوکښې ومرئ ، الله ان دزړونو په پټو رازونو پوهېږي.

اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۡ وَ اِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا بِهَا ؕ وَ اِنْ تَصْبِرُوْا وَ تَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ (۱۲۰)

که تاسي ته څه ښېګڼه رسېږي؛ نو هغوی خپه کېږي ، او که پر تاسي څه مصيبت راځي نو دوې پرې خوشالېږي خو د هغوی هېڅ دسيسه ستاسي پر خلاف اغيزمنه کيدای نشي په دې شرط چې تاسي له صبر څخه کار واخلئ او له الله څخه د وېرېدو سره عمل وکړئ دوی چې هر څه کوي د الله د علم په چاپېريال کښې دي.

وَ اِذۡ غَدَوۡتَ مِنۡ اَہۡلِکَ تُبَوِّیُٔ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ مَقَاعِدَ لِلۡقِتَالِ ؕ وَ اللّٰہُ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ (۱۲۱)ۙ

ای پېغمبره ! د مسلمانانو په وړاندې هغه خاطره یاده کړه ) چې ) کله د سهار په توره خړه له خپله کوره وتلی وې او (داحد په میدان کښې دې ) مسلمانان د جګړې له پاره پر سنګر نیولو موظف کول .الله ټولې خبرې اورې او هغه په هر څه پوه دی

اِذۡ ہَمَّتۡ طَّآئِفَتٰنِ مِنۡکُمۡ اَنۡ تَفۡشَلَا ۙ وَ اللّٰہُ وَلِیُّہُمَا ؕ وَ عَلَی اللّٰہِ فَلۡیَتَوَکَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ (۱۲۲)

یاد کړه هغه وخت چې له تاسې نه دوه ډلې (بنو حارثه او بنو سلمه) دې ته تیارې شوې وې چې بې زړه توب وښیي ، په داسې حال کښې چې الله د هغو د ملاتړ له پاره موجود و ٗ او مؤمنان باید یوازې پر الله ډاډ ولري

وَ لَقَدۡ نَصَرَکُمُ اللّٰہُ بِبَدۡرٍ وَّ اَنۡتُمۡ اَذِلَّۃٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰہَ لَعَلَّکُمۡ تَشۡکُرُوۡنَ (۱۲۳)

له دې نه مخکښې د بدر په جګړه کښې الله له تاسې سره مرسته کړې وه په داسې حال کښې چې په هغه وخت کښې تاسې ډېر زیات کمزوري وئ، نو اوس پر تاسې دا لازمه ده چې د الله له ناشکرۍ ځان وژغورئ ، درته په کار ده چې اوس تاسې شکر وباسئ .

اِذۡ تَقُوۡلُ لِلۡمُؤۡمِنِیۡنَ اَلَنۡ یَّکۡفِیَکُمۡ اَنۡ یُّمِدَّکُمۡ رَبُّکُمۡ بِثَلٰثَۃِ اٰلٰفٍ مِّنَ الۡمَلٰٓئِکَۃِ مُنۡزَلِیۡنَ (۱۲۴)ؕ

یادکړه هغه وخت چې تا مؤمنانو ته ویل " ایا تاسې ته دا کافي نه ده چې الله د درې زره پرښتو په رالېږلو درسره مرسته وکړي؟"

بَلٰۤی ۙ اِنۡ تَصۡبِرُوۡا وَ تَتَّقُوۡا وَ یَاۡتُوۡکُمۡ مِّنۡ فَوۡرِہِمۡ ہٰذَا یُمۡدِدۡکُمۡ رَبُّکُمۡ بِخَمۡسَۃِ اٰلٰفٍ مِّنَ الۡمَلٰٓئِکَۃِ مُسَوِّمِیۡنَ (۱۲۵)

بېشکه ، که تاسې دزغم په لرلو له الله څخه په وېرېدو کار وکړئ نو په کومه شېبه کښې چې دښمنان درباندې یرغل وکړي بېدو په هماغه شېبه کښې به ستاسې رب ( درې زره نه ) پر پنځو زرو نښانه دارو پرښتو درسره مرسته وکړي .

وَ مَا جَعَلَہُ اللّٰہُ اِلَّا بُشۡرٰی لَکُمۡ وَ لِتَطۡمَئِنَّ قُلُوۡبُکُمۡ بِہٖ ؕ وَ مَا النَّصۡرُ اِلَّا مِنۡ عِنۡدِ اللّٰہِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَکِیۡمِ (۱۲۶)ۙ

دا خبره الله ددې له پاره درته کړېده چې تاسې خوشاله شئ او ستاسې زړونه پرې ډاډه شي برلاسي او مرسته هرڅه چې دي د هغه الله له خوا دي چې ډېر زورور او د حکمت خاوند دی

لِیَقۡطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا اَوۡ یَکۡبِتَہُمۡ فَیَنۡقَلِبُوۡا خَآئِبِیۡنَ (۱۲۷)

او دا مرسته به هغه ددې له پاره درسره وکړي ) چې د کفر پر ) لاره د تلونکیو یو مټ غوڅ کړي، یا هغو ته داسې رسوا کوونکې .ماتې ورکړي چې هغوی ناکام خرسترګي بېرته ستا نه شي

لَیۡسَ لَکَ مِنَ الۡاَمۡرِ شَیۡءٌ اَوۡ یَتُوۡبَ عَلَیۡہِمۡ اَوۡ یُعَذِّبَہُمۡ فَاِنَّہُمۡ ظٰلِمُوۡنَ (۱۲۸)

ای پېغمبره !) د فیصلې په واکمنی کښې ستا څه برخه نشته ، دالله ) واك دی که یې خوښه شي و به یې ښښي او که وغواړي په سزا به .یې ورسوي ؛ځکه چې هغوی تیري کوونکي دي

وَ لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ یَغۡفِرُ لِمَنۡ یَّشَآءُ وَ یُعَذِّبُ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۱۲۹)

په اسمانونو او ځمکی کښې چې هر څه دي د هغو څښتن الله دی، چا ته یې چې خوښه شي ښښنه کوي او چاته یې چې خوښه شي عذاب ورکوي ، هغه ښښونکی او مهربان دی.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَاۡکُلُوا الرِّبٰۤوا اَضۡعَافًا مُّضٰعَفَۃً ۪ وَ اتَّقُوا اللّٰہَ لَعَلَّکُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ (۱۳۰)ۚ

ای مؤمنانو دا زیاته او څوچنده سود خوري پرېږدئ او له الله نه ووېرېږئ ، ترڅو چې بریالي شئ.

وَ اتَّقُوا النَّارَ الَّتِیۡۤ اُعِدَّتۡ لِلۡکٰفِرِیۡنَ (۱۳۱)ۚ

له هغه اور نه ځان وژغورئ چې د کافرانو له پاره تیار کړای شویدی.

وَ اَطِیۡعُوا اللّٰہَ وَ الرَّسُوۡلَ لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۱۳۲)ۚ

اودالله او رسول حکم ومنئ،کیدای شي چې رحم درباندې وشي.

پر هغه لاره په منډه منډه وځغلئ چي ستاسي دپروردګار د ښښني او د هغه جنت خواته تللي ده چي هغه لکه داسمانونو او ځمکي په شان پراخ دی،او هغه له خدایه وېرېدونکيو خلکو له پاره تیار کړای شویدی،

وَ سَارِعُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَ الْاَرْضُ ۙ اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ (۱۳۳)ۙ

دهغو لپاره چي د ښدايي او بيوزلی په دواړو حالاتو کښي مال مصرفوي ، غوسه خوري او د نورو لنډ پاری بګښي داسي نيکان خلك د خدای ډېر خوښ دي

الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِى السَّرَّآءِ وَ الضَّرَّآءِ وَ الْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَ الْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ؕ وَ اللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ (۱۳۴)ۚ

او کوم کسان چي داسي دي چي کله کومه دشرم نارواچاره ورڅخه صادرېږي یا کله د کومي ګناه په کولو هغوی پر خپل ځان ظلم کوي؛ نو ورسره جوخت الله وريادېږی او له هغه څخه هغوی د خپلو ګناهونو ښښنه غواړي؛ ځکه چي له الله نه پرته بل څوك دی چي ګناهونه وبښلی شي؟ او هغوی له پوهي او ادراك سره په خپلو کړنو ټينګار نه کوي.

وَ الَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۪ وَ مَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۪۟ وَ لَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ (۱۳۵)

دداسي خلکو بدله ددوی درب په نزد دا ده چي هغه به دوی ته ښښنه وکړي او په داسي باغونو کښي به یې ننباسي چي تري لاندې به ويالي بهېږي او هلته به هغوی د تل له پاره اوسېږي ،د نيك عمله خلکو له پاره څومره ښه بدله ده.

اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَ جَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ (۱۳۶)ؕ

له تاسي نه مخکښي ډېري دوري تېري شويدي، په ځمکه کښي وګرځئ راوګرځئ و ګورئ چي هغه خلك له څه عاقبت سره مخامخ شول چي هغو ( د الله حکمونو او لارښودنو ته ) ددروغو نسبتونه وکړل .

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ فَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ (۱۳۷)

دا د خلکو له پاره ډانګ پيلي تنبيه ده او له الله نه وېرېدونکيو ته هدايت او نصيحت دی.

هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَ هُدًى وَّ مَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ (۱۳۸)

بي زړه کېږئ مه ، اندېښمن کېږئ مه ، همدا تاسي برلاسي ياست که تاسي مؤمنان اوسئ.

وَ لَا تَهِنُوْا وَ لَا تَحْزَنُوْا وَ اَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۱۳۹)

اوس که تاسي ټپي شوي يئ؛ نو له دي نه مخکښي ستاسي دښمنه ډله هم همداسي ټپيان شويدي دا د زماني خوږې ترخې دي چي مونږ يي د خلکو تر مينځه اړوو را اړوو پر تاسي دا مرحله ځکه راوستل شوه چي الله داکتنه غوښتله چي په تاسي کښي ريښتيني مؤمنان څوك دي ، او د هغو خلکو انتخابول يې غوښتل چي په واقعي توګه ( دريښتينولی ) شاهدان وي؛ ځکه چي ظالمان د الله نه خوښېږي.

اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ؕ وَ تِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ يَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ (۱۴۰)ۙ

او ددي لپاره چي مومنان بېل چاڼ کړي او کافران هلاك کړي.

وَ لِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ يَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ (۱۴۱)

ايا تاسي داګڼلي ده چي همداسي به جنت ته لاړ شئ په داسي حال کښي چي لاتر اوسه پوري الله دا نه ده معلومه کړې ( دا ازمېښت يې نه دی کړی ) چي په تاسي کښي څوك هغه خلك دي چي د هغه په لار کښي جهاد کوونکي او صبر کوونکي دي.

اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَ لَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَ يَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ (۱۴۲)

تاسي خو د مرګ هيلي کولي ! خو دا د هغه وخت خبره وه چي له مرګ سره مخامخ شوي نه وئ ، دا دی اوس ورسره مخامخ شوئ او تاسي هغه په سترګو وليده.

وَ لَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ ۪ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَ اَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ (۱۴۳)

محمد(ص) نور څه نه دی مگر صرف يو پيغمبر دی ، له هغه نه مخکښي نور پيغمبران هم تيړ شويدي ، نو كه هغه ومري يا ووژل شي؛ نو تاسي به په خپلو پوندو په شاګرځئ؟ په ياد ولرئ څوك چي په شاواوړي هغه به الله ته هيڅ زيان ونه رسوي ، البته څوك چي دالله شكرايستونكي بندګان شي هغو ته به الله ددې بدله وركړي.

وَ مَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰۤى اَعْقَابِكُمْ ؕ وَ مَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْـًٔا ؕ وَ سَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ (۱۴۴)

هيڅ ساكښ د الله له حكم نه پرته نشي مړ كيداى د مرګ نيټه ليكله شوېده څوك چي ددنيا د ثواب په اراده كار وكړي هغه ته به مونږ له همدې دنيا نه وركړو ، او څوك چي داخرت په اراده كار وكړي هغه به داخرت ثواب وومومي او شكرايستونكيو ته به مونږ ارو مرو د هغو مكافات وركړو.

وَ مَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ؕ وَ مَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَ مَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ وَ سَنَجْزِى الشّٰكِرِيْنَ (۱۴۵)

له دي نه مخكښي ډېر پيغمبران داسي تيړ شويدي چي د هغو په ملګرتيا كښي ډېر خداى پالونكي وجنګيدل د خداى په لار كښي چي كوم غمونه پر هغو راغلل هغوى پري زړه ماتي نه شول ، هغوى كمزوري ښكاره نه كړه، هغوى ( دباطل په وړاندې ) سركوزي نه شول ،الله همداسي زغمونكي خوښوي.

وَ كَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا وَهَنُوْا لِمَاۤ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ مَا ضَعُفُوْا وَ مَا اسْتَكَانُوْا ؕ وَ اللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ (۱۴۶)

د هغو د عا صرف داوه چي " اى زمونږ پروردګاره ! زمونږ خطاوي او ګناوي او زمونږ په كار كي زمونږ تيرى راوبښه ، زمونږ قدمونه محكم كړه او پر كافرانو زمونږ د برلاسى له پاره راسره مرسته وكړه".

وَ مَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ اِسْرَافَنَا فِيْۤ اَمْرِنَا وَ ثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَ انْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ (۱۴۷)

په پاى كښي الله هغو ته ددنيا ثواب هم وركړ او له هغه نه غوره ثواب يي په اخرت كښي هم ورپه برخه كړ. د الله همدا راز نيك عمله كسان خوښيږي.

فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَ حُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَ اللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ (۱۴۸)

اى مومنانو! كه تاسي د هغو خلكو په خوښه لاړ شئ چي هغو كفر غوره كړيدى نو هغوى به تاسي بيرته په شا واړوي او تاسي به ناكام شئ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَرُدُّوْكُمْ عَلٰۤى اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ (۱۴۹)

حقيقت دا دی چي الله ستاسي ملاتړ ( د هغو خبرې غلطي دي) .اومرستندوى دى او هغه ډېر ښه مددګار دى

بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَ هُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ (۱۵۰)

هغه وخت ډېر ژر راتلونكى دى چي مونږ د حق نه منونكيو په زړونو كښي وېره وغورځوو ، ځكه چي هغو له الله سره په خدايى كښي هغه څه شريك انګيرلي دي چي د هغو پر برخه والى الله كوم سند نه دى نازل كړى د هغو وروستى استوګنځى دوزخ دى او ډېر بد دى هغه استوګنځى چي هغو ظالمانو ته به ورپه برخه وي .

سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَاۤ اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ وَ مَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ وَ بِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ (۱۵۱)

الله چې ( د مرستې او نصرت ) کومه وعده له تاسې سره کړې وه هغه خو يې پوره کړه لومړی خو د هغه په حکم همدا تاسې هغوی وژل ؛ خو کله چې تاسې همت له لاسه ورکړ او په خپل کار کښې مو سره اختلاف وکړ او له هغه وروسته چې الله تاسې ته هغه شی دروښوده چې تاسې يې په مينه کښې راګېروئ ( يعني د ولجې مالونه ) تاسې د خپل مشر له امر څخه غاړه وغړوله ددې له پاره چې له تاسې څخه ځينې خلك ددنيا غوښتونکي وو او ځينو د اخرت هيله لرله ؛نو الله تاسې د کافرانو په مقابله کښې پر شاوتمبولئ ، چې پر تاسې ازمېګښت وکړي. او حقه داده چې الله بيا هم تاسې ته معافي وکړه؛ ځکه چې الله پر مؤمنانو د پېرزوينې ډېر لوی نظر لري.

وَ لَقَدْ صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰى اِذَا فَشِلْتُمْ وَ تَنَازَعْتُمْ فِی الْاَمْرِ وَ عَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَاۤ اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ؕ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَ لَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ (١٥٢)

در په زړه کړئ هغه وخت چې تاسې په تېښته ځغلېدئ ، هېچا ته مو بېرته د کتلو قدرې پام نه وْ، او پېغمبر (ص) له شا درپسې تاسې ته نارې وهلې په هغه وخت کښې ستاسې ددې چار چلن بدله خدای دا درکړه چې تاسې يې پر غم د پاسه غم اخته کړئ تر څو داينده له پاره دا درس واخلئ چې که څه شی ستاسې له لاسه ووځي يا کوم تکليف درته ورسېږي چې پر هغه خپه نه شئ الله ستاسې د ټولو کړنو څخه خبر دی.

اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَ لَا تَلْوٗنَ عَلٰۤى اَحَدٍ وَّ الرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ فِیْۤ اُخْرٰىكُمْ فَاَثَابَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَ لَا مَاۤ اَصَابَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (١٥٣)

له دې کړاوْ نه وروسته بيا هم الله له تاسې څخه پر ځينو کسانو يو داسې د ډاډينې غوندې حالت راوست چې هغوی پرېښانۍ يوړل ؛ خو يوه بله ډله چې هغې ته يوازې همدا خپلې ګټې ارزښت درلود، د الله په باب يې رنګارنګ جاهلانه انګېرنې کولې چې له سره تر پايه د حق پر خلاف وې ، دا خلك اوس وايي چې ايا " ددې کار په سرته رسولو کښې زمونږ هم څه برخه شته ؟" دوې ته ووايه "( د هېچا په کښې هېڅ برخه نشته ) ددې کار ټولې واکمنۍ د الله په لاس کښې دي". په اصل کښې چې دې خلکو کومې خبرې په زړونو کښې پټې ساتلې دي هغه تا ته نه څرګندوي، ددوی اصلي هدف دا دی چې " که ( د مشرتابه ) په واکمنيو کښې زمونږ څه برخه وای؛ نو دلته به نه وژل کيدو دوې ته ووايه چې " که تاسې په خپلو کورونو کښې هم وای؛ نو د کومو کسانو چې مرګ ليکل شویْ هغوې په خپله د خپل وژل کيدو ځايونو ته راوتل". او دا پېښه چې وشوه ، داددې له پاره وه چې کوم شی چې ستاسې په سينو کښې پټ دی الله هغه وازمايي او ستاسې په زړونو کښې چې کوم خيری دی هغه رابرسېره کړي ، الله د زړونو پر حال ډېر ښه پوهېږي.

ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَ طَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ؕ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ ؕ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ؕ يُخْفُوْنَ فِیْۤ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ؕ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَ لِيَبْتَلِیَ اللّٰهُ مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ وَ لِيُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (١٥٤)

له تاسې نه کومو خلکو چې ددوو پوځونو د مقابلې په ورځ شا اړولې وه د هغو ددې تېروتلو سبب دا وْ چې د هغو د ځينو کمزورېو له امله شيطان د هغو پښې ښويولې وې او حقيقت دادي چې الله هغو ته ښښنه وکړه ، الله ډېر تېرېدونکی او د زغم څښتن دی.

اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۙ اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا ۚ وَ لَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ (١٥٥)

ای موْمنانو! دکافرانو غوندي خبرې مه کوئ چې که د هغو دوستان او خپلوان کله کوم سفر ته ځي یا په جګړه کښې برخه اخلي ( او هلته له کومې پېښې سره لاس او ګریوان کېږي ) نو هغوی وایي چې که هغوی له مونږ سره وای نو نه به مړه شوي او نه به وژل شوي وو الله دا ډول خبرې د هغو په زړونو کښې دغم او افسوس وسیله ګرځوي ، که دا نه وي نو په اصل کښې د ژوند او مرګ واکوال همدا الله دی او هغه ستاسې د ټولو عملونو لیدونکی دی.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ اَوْ كَانُوْا غُزًّى لَّوْ كَانُوْا عِنْدَنَا مَا مَاتُوْا وَ مَا قُتِلُوْا ۚ لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَ اللّٰهُ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۱۵۶)

که تاسې د الله په لار کښې ووژل شئ یا ومرئ نو ستاسې په باب د الله راتلونکی رحمت او بښنه له هغو ټولو شیانو ښخه ډېره غوره ده چې دا خلك يې راغونډوي.

وَ لَئِنْ قُتِلْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ (۱۵۷)

او که تاسې ومرئ یا ووژل شئ په هر حال ستاسې د ټولو ورتګ د همدې الله لوري ته دي .

وَ لَئِنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِالَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ (۱۵۸)

ای پېغمبره ! ) دا د الله لوی رحمت دی چې ته ددې خلکو له پاره ) ډېر نرم خویه جوړ شوی يې که داسې نه وای او ته توند خویه او سخت زړی وای نو دا ټول به ستا له شاوخوانه خواره شوي وودوی خطاوې وبښه ، ددوی له پاره بښنه وغواړه ، او ددین په چارو کښې هغو ته هم په مشوره کښې برخه ورکړه ، بیا چې ستا اراده پر کومه رایه ټینګه شي ؛ نو پر الله توکل وکړه، د الله هغه .خلك خوښېږي چې د هماغه په ډاډینه کار کوي

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ ۚ وَ لَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَ شَاوِرْهُمْ فِي الْاَمْرِ ۚ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ (۱۵۹)

که الله مو مرستندوی وي نو هېڅ قوت درباندې برلاس کیدای نه شي او که هغه تاسې پرېږدي نو بیا له هغه وروسته څوك دی چې ستاسې مرسته وکړای شي؟ نو څوك چې رینښتیني موْمنان دي هغوی دې یوازې پر الله توکل وکړي.

اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۚ وَ اِنْ يَّخْذُلْكُمْ فَمَنْ ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ؕ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ (۱۶۰)

دا د هېڅ یو پېغمبر کار نه شي کیدای چې هغه خیانت وکړي او هر څوك چې خیانت وکړي هغه به له خپل ټول خیانت سره د قیامت په ورځ حاضرشي بیا به هر چا ته د هغه د کړو وړو پوره پوره بدله ورکړه شي او پر هېچا به هېڅ تیرې ونشي .

وَ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ؕ وَ مَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۱۶۱)

ښه نو دا څنګه کیدای شي چې یو څوك تل دالله په خوښه روان وي هغه دې د هغه چا غوندې کار وکړي چې د الله پر غضب اخته شوی وي او د هغه وروستی منزل دوزخ وي چې هغه ډېر ناکاره استوګنځی دی؟

اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ مَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (۱۶۲)

د الله په وړاندې په دې دواړو ډوله خلکو کښې پر درجو توپیر دی او الله د ټولو دعملونو لیدونکی دی.

هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ (۱۶۳)

په حقیقت کښې خو الله پر موْمنانو دا ډېره لویه لورېنه کړېده چې په هغو کښنګې يې په خپله له هغو نه یو داسې پېغمبر را پورته کړ چې د هغه ایتونه ورته لولي ، د هغو ژوند سوتره کوي او هغو ته د کتاب او پوهې ښوونه کوي ، په داسې حال کښې چې له دې نه مخکښې همدا خلك په ښرګنده ګمراهی کښې غورځېدلي وو.

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَ يُزَكِّيْهِمْ وَ يُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ ۚ وَ اِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (۱۶۴)

او دا تاسي څه كوئ چي كله په كوم كړاوْ اخته شئ؛ نو په دې خبرو خوله پرانيزئ چي دا مصيبت (په احد كي) له كوم لوري راغى ؟ په داسي حال كښي چي ( د بدر په جګړه كښي ) ستاسي لاسونو ددې دوه چنده مصيبت ( دښمني ډلي ته ) رسولى دى اى پېغمبره! دوې ته ووايه ، دا مصيبت په خپله ستاسي له خوا مينځ ته راوړل شويدى، الله پر هر څه قادر دى.

اَوَ لَمَّاۤ اَصَابَتۡكُمۡ مُّصِيۡبَةٌ قَدۡ اَصَبۡتُمۡ مِّثۡلَيۡهَا ۙ قُلۡتُمۡ اَنّٰى هٰذَا ؕ قُلۡ هُوَ مِنۡ عِنۡدِ اَنۡفُسِكُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (۱۶۵)

كوم تاوان چي ددووپوځونود جګړې په ورځ تاسي ته ورسېده هغه د الله په حكم وْ او ددې له پاره وْ چي الله معلومه كړي چي په تاسي كښي موْمنان څوك دي؟

وَ مَاۤ اَصَابَكُمۡ يَوۡمَ الۡتَقَى الۡجَمۡعٰنِ فَبِاِذۡنِ اللّٰهِ وَ لِيَعۡلَمَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۶۶)ۙ

او هم منافقان معلوم كړي هغه منافقان چي كله هغو ته وويل شول راشئ د الله په لار كښي وجنګېږئ يالږ ترلږه ( له خپل ښار نه ) دفاع قدري وكړئ ، نو ويې ويل كه مونږ پوهېداى چي نن به جګړه كېږي نو مونږ به ارو مرو درسره تللي واى كله چي هغو دا خبره كوله په هغه وخت كښي هغوى له ايمان نه كفر ته ډېر نژدې وو هغوى په خپلو خولو هغه څه وايي چي د هغو په زړونو كښي نه وي او هغه څه چي هغوى يې په زړونوكښي پټوي الله پرې ښه پوهېږي.

وَ لِيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ نَافَقُوۡا ۖۚ وَ قِيۡلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡا قَاتِلُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ اَوِ ادۡفَعُوۡا ؕ قَالُوۡا لَوۡ نَعۡلَمُ قِتَالًا لَّا تَّبَعۡنٰكُمۡ ؕ هُمۡ لِلۡكُفۡرِ يَوۡمَئِذٍ اَقۡرَبُ مِنۡهُمۡ لِلۡاِيۡمَانِ ۚ يَقُوۡلُوۡنَ بِاَفۡوَاهِهِمۡ مَّا لَيۡسَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ ؕ وَ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا يَكۡتُمُوۡنَ (۱۶۷)ۚ

دا هماغه خلك دي چي په خپله خو كښېناستل او د هغو ورونه خلك چي وجنګېدل او ووژل شول د هغو په باب يې وويل چي كه هغو زمونږ خبره منلي واى نه به وو وژل شوي دوې ته ووايه چي كه تاسي په خپله دغه خبره كښي رېښتيني ياست نو چي كله مو خپل مرګ راشي هغه وځنډوئ.

اَلَّذِيۡنَ قَالُوۡا لِاِخۡوَانِهِمۡ وَ قَعَدُوۡا لَوۡ اَطَاعُوۡنَا مَا قُتِلُوۡا ؕ قُلۡ فَادۡرَءُوۡا عَنۡ اَنۡفُسِكُمُ الۡمَوۡتَ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۱۶۸)

كوم كسان چي د الله په لار كښي وژل شويدي هغوى مړه مه ګڼئ، هغوى خو په حقيقت كښي ژوندي دي ، د خپل رب په وړاندې روزي مومي ،

وَ لَا تَحۡسَبَنَّ الَّذِيۡنَ قُتِلُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ اَمۡوَاتًا ؕ بَلۡ اَحۡيَآءٌ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ يُرۡزَقُوۡنَ (۱۶۹)ۙ

څه چي الله د خپلي لوريني له مخي هغو ته وركړيدي ، پر هغه خوښ او سوكاله دي ، او ډاډه خوشاله دي په دې چي كوم موْمنان له هغو وروسته په نړئ كښي پاتي دي او لاتر اوسه پوري هلته نه دي رسيدلي د هغو له پاره هم څه وېره او كړاوْ نشته .

فَرِحِيۡنَ بِمَاۤ اٰتٰٮهُمُ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ ۙ وَ يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ بِالَّذِيۡنَ لَمۡ يَلۡحَقُوۡا بِهِمۡ مِّنۡ خَلۡفِهِمۡ ۙ اَلَّا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَ لَا هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ (۱۷۰)ۘ

هغوى د الله په لورينه او د هغه په مهرباني خوشاله او سوكاله دي او هغو ته څرګنده شوېده چي الله د موْمنانو اجر نه ضايع كوي.

يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ بِنِعۡمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ فَضۡلٍ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۷۱)ۚۛ

كومو كسانو چي (په احد كي)له ټپي كېدو نه وروسته هم د الله او درسول بلني ته لبيك وويل، په هغو كښي چي كوم خلك نيكو كاران او پرهيز ګاران دي د هغو له پاره ستر اجر دى.

اَلَّذِيۡنَ اسۡتَجَابُوۡا لِلّٰهِ وَ الرَّسُوۡلِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَاۤ اَصَابَهُمُ الۡقَرۡحُ ؕۛ لِلَّذِيۡنَ اَحۡسَنُوۡا مِنۡهُمۡ وَ اتَّقَوۡا اَجۡرٌ عَظِيۡمٌ (۱۷۲)ۚ

هغه کسان چې خلکو (منافقانو) ورته وویل چې " ستاسې پر خلاف لویې لښکرې راغونډې شویدې، له هغو نه ووېرېږئ " ؛ نو ددې په اورېدو يې نور هم ایمان پیاوړی شو او هغو ځواب ورکړ چې زمونږ له پاره خدای کافي دی او هماغه ډېر ښه کار جوړوونکی دی.

اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖ وَّ قَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ (١٧٣)

په پای کښې هغوی د الله تعالی له نعمت او لوریني سره بېرته ستانه شول ، هغو ته هیڅ راز زیان هم و نه رسېده او د الله له خوښې سره سم تګ کولو مرتبه يې هم وموندله ، الله ډېر ستر لوروونکی دی.

فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ فَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّ اتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ (١٧٤)

اوس تاسې ته څرګنده شوه چې هغه په اصل کښې شیطان وْ چې خپل دوستان يې بې ځایه وېرول له دې امله په راتلونکې کښې تاسې له کافرانو څخه مه وېرېږئ ، له مانه ووېرېږي که تاسې په ریښتینې توګه دایمان خاوندان يئ.

اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ ۪ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَ خَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٧٥)

ای پېغمبره!) څوك چې نن د کفر په لار کښې هڅه کوي ته د هغو ) په منډو تررومه ځورېږه ، دوی د الله هېڅ کار نه شي ورانولای الله غواړي چې د هغو له پاره په اخرت کښې کومه برخه ونه ټاکي ، او .په پای کښې هغوی په لوی عذاب اخته کیدونکي دي

وَ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِى الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِى الْاٰخِرَةِ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (١٧٦)

کومو خلکو چې د ایمان په بدل کښې کفر اخیستی دی هغوی په باوري توګه الله ته هیڅ زیان نشي اړولای ، د هغو له پاره دردناك عذاب تیار دی،

اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (١٧٧)

دا مهلت چې مونږ ورکوو کافران دي د ا د ځان له پاره غوره نه ګڼي ، مونږ خو هغو ته ددې له پاره مهلت ورکوو چې هغوی د ګناه دروند پیټی وتړي، بیا د هغو له پاره سخته سپکوونکې سزاده.

وَ لَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ؕ اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ (١٧٨)

الله به موْمنان په دې حالت کښې هېڅکله پرېنږدي چې تاسې اوس په کښې یاست هغه به سپېڅلي خلك له نا پاکو خلکو څخه بېل کړي؛ خو د الله داسې عادت نه دی چې تاسې پر غیبو خبر کړي. د پټو خبرو د ښوونې له پاره چې د هغه له خپلو رسولانو څخه چاته خوښه شي ټاکي يې ، له دې امله ( دپټو چارو په باب ) پر الله او پېغمبر ایمان ولرئ که تاسې د ایمان او له خدا یه د وېریدو چلن غوره کړئ نو تاسې ته به لوی اجر در په برخه شي.

مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ؕ وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۪ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ ۚ وَ اِنْ تُؤْمِنُوْا وَ تَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ (١٧٩)

کومو خلکو ته چې الله له خپل فضل نه ورکړه کړېده او بیا هغوی له بخیلی نه کار واخلي هغوی دې دانه ګڼي چې دا بخیلي د هغو له پاره ګټوره ده ، نه ، دا د هغو له پاره ډېره بده ده ، څه شی چې هغوی په خپله شومتیا راغونډوي هماغه به د قیامت په ورځ د هغو د غاړې طوق شي د اسمانونو او ځمکې میراث یوازې د الله دی او تاسې چې څه کوئ الله پرې خبر دی.

وَ لَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ؕ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَ لِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (١٨٠)

په یقیني توګه الله د هغو خلکو وینا واوریده چې وایي الله بیوزلی دی او مونږ شتمن یو ، د هغو دا وینا به هم مونږ ارومرو ولیکو ، او له دې نه مخکښې چې هغوی کوم پیغمبران په ناحقه وژلي هغه هم د هغو په عملنامه کښې ثبت دي (کله چې د فیصلې وخت راشي په هغه وخت کښې به ) مونږ هغو ته ووایو چې دا دی اوس ددوزخ د عذاب خوند وڅکئ،

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ فَقِیْرٌ وَّ نَحْنُ اَغْنِیَآءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَ قَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِیَآءَ بِغَیْرِ حَقٍّ ۙ وَّ نَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِیْقِ (۱۸۱)

داستاسې د خپلو لاسونو ګټه ده ، الله پر خپلو بندګانو ظالم نه دی.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَیْدِیْكُمْ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَیْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِیْدِ (۱۸۲)ۚ

کوم کسان چې وایي " الله مونږ ته لاربنودنه کړېده چې مونږ باید هېڅوك د پیغمبر په توګه ترهغه پورې ونه منو تر څو هغه زمونږ په مخ کښې داسې قرباني ونه کړي چې ( له غیبو راتلونکی ) اورېې ونه خوري" هغو ته ووایه " تاسې ته له ما څخه مخکښې ډېر پیغمبران راغلي دي چې ډېرې زیاتې څرګندې ښکاره نښانې یې راوړې وې او هغه نښانه یې هم راوړې وه چې تاسې یې یادونه کوئ ، نو که ( د ایمان راوړلو له پاره تاسې ددې شرط په وړاندې کولو کښې ) رېښتیني یاست نو تاسې هغه پیغمبران ولې ووژل؟"

اَلَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَیْنَاۤ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى یَاْتِیَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ؕ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِیْ بِالْبَیِّنٰتِ وَ بِالَّذِیْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (۱۸۳)

اوس ای محمده (ص) ! که دا خلك تا دروغجن ګڼي نو له تانه مخکښې یو شمېر هغه پیغمبران دروغجن ګڼل شویدي چې ښکاره څرګندې نښانې ، صحیفې او روښانوونکې کتابونه یې راوړي وو .

فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ بِالْبَیِّنٰتِ وَ الزُّبُرِ وَ الْكِتٰبِ الْمُنِیْرِ (۱۸۴)

په پای کښې هر څوك د مرګ خوند څکونکی دی او تاسې ټول د قیامت په ورځ د خپلو خپلو پوره اجرونو میندونکي ئي ، بریالی اصلاً هغه څوك دی چې هلته ددوزخ له اوره وژغورل شي او جنت ته ننویستل شي ، پاتې شوه دادنیا، داخوصرف یو غولوونکی شی دی.

كُلُّ نَفْسٍ ذَآىِٕقَةُ الْمَوْتِ ؕ وَ اِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَ اُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ؕ وَ مَا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَاۤ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ (۱۸۵)

ای مسلمانانو ! تاسې به د مال او سردواړو په ازموېنه کښې واچول شئ او تاسې به له اهل کتابو او مشرکانو څخه ډېرې ځورونکې خبرې واورئ که تاسې په دې ټولو حالاتو کښې د زغم او له خداپه دوېرې په چلن ثابت اوسئ؛ نو دا د سترې حوصلې کار دی.

لَتُبْلَوُنَّ فِیْۤ اَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ ۫ وَ لَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَ مِنَ الَّذِیْنَ اَشْرَكُوْۤا اَذًى كَثِیْرًا ؕ وَ اِنْ تَصْبِرُوْا وَ تَتَّقُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ (۱۸۶)

دغواهل کتابو ته هغه کلکه وعده هم وریاده کړه چې الله ورڅخه اخیستې وه چې تاسې به دکتاب لاربنودنې په خلکو کښې ارومرو خوروئ او هغه به پټوئ نه ؛ خو هغو کتاب شاته وغورځوه او هغه یې په لږ بیه وپلوره ، څومره ناکاره راکړه ورکړه ده چې دوی یې کوي.

وَ اِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَیِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَ لَا تَكْتُمُوْنَهٗ ۫ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ وَ اشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِیْلًا ؕ فَبِئْسَ مَا یَشْتَرُوْنَ (۱۸۷)

ته هغه خلك له عذاب نه خوندي مه انګېره چې په خپلو کړنو خوشاله دي او هیله من دي په داسې چارو کښې یې ستاینه وشي چې په واقع کښې هغوی ندي کړي په حقیقت کښې د هغو له پاره دردناکه سزا تیاره ده .

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ یَفْرَحُوْنَ بِمَاۤ اَتَوْا وَّ یُحِبُّوْنَ اَنْ یُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ یَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ (۱۸۸)

د اسمانونو او ځمکې ښتنن الله دی او الله پر هر څه قادر دی.

وَ لِلّٰهِ مُلْکُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ (۱۸۹)

د اسمانونو او ځمکې په پیدایښت او د شپې او ورځې په تګ راتګ کښې د هغو پوهانو له پاره ډېرې نښانې دي :

اِنَّ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ اخْتِلَافِ الَّیْلِ وَ النَّهَارِ لَاٰیٰتٍ لِّاُولِی الْاَلْبَابِ (۱۹۰)

چې په ولاړې ، ناستې او ملاستې هر حالت کښې خدای یادوي او د اسمانونو او ځمکې په پیدایښت کښې غور او فکر کوي (هغوی په غیر ارادي توګه غږ کوي چې ) " زمونږ ربه ! دا ټول شیان تا بابیزه او بې مقصده نه دي هست کړي ، ته له دې نه پاك يې چې عبث کار وکړې ؛ نو ای ربه ! مونږ ددوزخ له عذابه وژغوره!

الَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ قِیٰمًا وَّ قُعُوْدًا وَّ عَلٰی جُنُوْبِهِمْ وَ یَتَفَکَّرُوْنَ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَکَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ (۱۹۱)

زمونږ ربه! تا چې څوك په دوزخ کښې واچوه هغه دې په حقیقت کښې په ستره خواری او رسوائۍ کښې وغورځوه ، او بیا ددغه راز ظالمانو به هېڅوك مرستندوی نه وي،

رَبَّنَاۤ اِنَّکَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَیْتَهٗ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِیْنَ مِنْ اَنْصَارٍ (۱۹۲)

لویه ښتنه ! مونږ دیو نارې وهونکي (پیغمبر) اواز واورېده چې د ایمان لورې ته یې بلنه ورکوله او ویل یې چې خپل رب ومنئ مونږ د هغه بلنه ومنله ، نو ای زمونږ باداره! کومه ګناه چې له مونږ څخه شوېده له هغې نه راتېرشه ، کومې بدۍ چې په مونږ کښې دي هغه ایسته کړه او په پای کښې راته دغوره خلکو ملګرتیا را په برخه کړه.

رَبَّنَاۤ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِیًا یُّنَادِیْ لِلْاِیْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّکُمْ فَاٰمَنَّا ۖ٭ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ کَفِّرْ عَنَّا سَیِّاٰتِنَا وَ تَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ (۱۹۳)

زمونږ خدایه ! کومې وعدې چې تا د خپلو رسولانو په وسیله راسره کړېدي هغه له مونږ سره تر سره کړه او د قیامت په ورځ مونږ له رسوایي سره مه مخامخ کوه ، په دې کښې شك نشته چې ته له خپلو وعدو نه مخالفت کوونکی نه يې ."

رَبَّنَا وَ اٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰی رُسُلِکَ وَ لَا تُخْزِنَا یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ اِنَّکَ لَا تُخْلِفُ الْمِیْعَادَ (۱۹۴)

د هغو رب ورته په ځواب کښې فرمايي :" زه له تاسي نه د هېڅ یوه عمل نه ضایع کوم ، که نارینه وي که ښځه ، تاسي ټول ځینې د ځینو همجنس یاست له دې امله کومو خلکو چې زما په خاطر خپل وطن پرېښود او له خپلو کورونو څخه وایستل شول او زما په لار کې وځورول شول او جګړه یې وکړه او د هغو ټولې ګناوې به زه ورته وبښم او هغوی به داسې باغونو ته ننباسم چې تر هغو لاندې به ویالې بهېږي دا د الله په وړاندې د هغو مکافات دی او ډېره غوره جزا له همدې الله سره ده.

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّیْ لَاۤ اُضِیْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْکُمْ مِّنْ ذَکَرٍ اَوْ اُنْثٰی ۚ بَعْضُکُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِیْنَ هَاجَرُوْا وَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ وَ اُوْذُوْا فِیْ سَبِیْلِیْ وَ قٰتَلُوْا وَ قُتِلُوْا لَاُکَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَیِّاٰتِهِمْ وَ لَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ (۱۹۵)

ای پیغمبره (ص) ! د نړۍ په هېوادونو کښې د خدای د نافرمانو بندګانو ګرځېدل دې تا ونه غولوي.

لَا یَغُرَّنَّکَ تَقَلُّبُ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا فِی الْبِلَادِ (۱۹۶) ؕ

دا صرف د څو ورځنې ژوند لږ غوندې خوند دی ، بیا به دوی ټول دوزخ ته لاړ شي چې ډېر بداستوګنځی دی.

مَتَاعٌ قَلِیْلٌ ۟ ثُمَّ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمِهَادُ (۱۹۷)

ددې پر خلاف کوم خلك چې له خپل خدای نه په وېرېدو ژوند تېروي د هغو له پاره داسې باغونه دي چې تر هغو لاندې ویالې بهېږي ، په هغو باغونو کښګې به دوی د تل له پاره اوسېږي ، دا د هغو له پاره د الله له لورې د میلمستیا وسایل دي ، او څه چې له خدای سره دي د غوره بندګانو له پاره هماغه ډېر غوره دي.

لٰکِنِ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ وَ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَیْرٌ لِّلْاَبْرَارِ (۱۹۸)

په اهل کتابو کښې هم څه کسان داسې شته چې الله مني ، پر هغه کتاب ایمان راوړي چې تاسې ته لیږل شویدی او پر هغه کتاب هم ایمان لري چې له دې نه مخکښې په خپله هماغو ته لیږل شوی وْ ، د الله په وړاندې یې سرونه ښکته دي ، او د الله ایتونه په لږ غوندې بیه نه پلوري، د هغو مکافات د هغو له پروردګار سره دي او د الله حساب اخیستنه ځنډیږي نه.

وَ اِنَّ مِنْ اَہْلِ الْکِتٰبِ لَمَنْ یُّؤْمِنُ بِاللّٰہِ وَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْکُمْ وَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْہِمْ خٰشِعِیْنَ لِلّٰہِ ۙ لَا یَشْتَرُوْنَ بِاٰیٰتِ اللّٰہِ ثَمَنًا قَلِیْلًا ؕ اُولٰٓئِکَ لَہُمْ اَجْرُہُمْ عِنْدَ رَبِّہِمْ ؕ اِنَّ اللّٰہَ سَرِیْعُ الْحِسَابِ (۱۹۹)

ای مؤمنانو ! له زغم نه کار واخلئ ، د باطل پرستانو په مقابل کښې مېړانه وښیئ ، د حق د خدمت له پاره ملاتینګه وتړئ ، او له الله نه وېرېدونکي اوسئ ، هیله ده چې بری ومومئ.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا وَ صَابِرُوْا وَ رَابِطُوْا ۟ وَ اتَّقُوا اللّٰہَ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ (۲۰۰)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ ٱللّٰهِ ٱلرَّحْمَٰنِ الرَّحِيْمِ

ای خلکو له خپل هغه رب نه ووېرېږئ چې هغه تاسې له یو تن څخه پیدا کړئ او له هماغه تن څخه یې د هغه جوړه مینځ ته راوړه او له دې دواړو نه یې په نړۍ کښې ډېر نارینه او ښځې خواره کړل ، له هغه خدای نه ووېرېږئ چې د هغه په وسیله تاسې یو له بل نه خپل حقوق غواړئ ، او د خپلولۍ او پیوندونو له غوڅولو نه ډډه وکړئ ، باور ولرئ چې الله پر تاسې څارونکی دی.

یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّکُمُ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَۃٍ وَّ خَلَقَ مِنْہَا زَوْجَہَا وَ بَثَّ مِنْہُمَا رِجَالًا کَثِیْرًا وَّ نِسَآءً ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰہَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِہٖ وَ الْاَرْحَامَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ عَلَیْکُمْ رَقِیْبًا (۱)

د پلار مړیو مالونه هغو ته بېرته وسپارئ ، ښه مال پر بد مال مه بدلوئ ، او دهغو مالونه له خپلو مالونو سره په ګډولو مه خورئ ، دا ډېره لویه ګناه ده.

وَ اٰتُوا الْیَتٰمٰۤی اَمْوَالَہُمْ وَ لَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِیْثَ بِالطَّیِّبِ ۪ وَ لَا تَاْکُلُوْۤا اَمْوَالَہُمْ اِلٰۤی اَمْوَالِکُمْ ؕ اِنَّہٗ کَانَ حُوْبًا کَبِیْرًا (۲)

که تاسې وېرېږئ چې له پلار مړیو (نجونو)سره به عدالت ونه شئ کړای؛ نو کومې (نورې) ښځې چې ستاسې خوښېږي دهغو له دوو دوو ، درېیو درېیو ، څلورو څلورو سره نکاح وکړئ ، خو که له تاسې سره دا اندېښنه وي چې له هغو سره به عدالت ونه شئ کړای؛ نو یوه ښځه وکړئ یاله هغو( وینزو)نه ازدواجي کارواخلئ چې تاسې ته په لاس درغلي دي( دهغو مالکان یاست) په دې توګه له بې عدالتۍ نه په ښه شان ژغورل کیدای شئ.

وَ اِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِی الْیَتٰمٰی فَانْکِحُوْا مَا طَابَ لَکُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰی وَ ثُلٰثَ وَ رُبٰعَ ۚ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَۃً اَوْ مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ ؕ ذٰلِکَ اَدْنٰۤی اَلَّا تَعُوْلُوْا ؕ(۳)

او د ښځو مهر په ښه زړه ( فرض ګڼلی ) ورکړئ ، البته که هغوی یې په خپله خوښه یو څه تاسې ته بخشش کړي؛ نو تاسې هغه په خوند سره خوړلای شئ چې حلال او بې ضرره دی.

وَ اٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِہِنَّ نِحْلَۃً ؕ فَاِنْ طِبْنَ لَکُمْ عَنْ شَیْءٍ مِّنْہُ نَفْسًا فَکُلُوْہُ ہَنِیْٓـًٔا مَّرِیْٓـًٔا (۴)

او خپل هغه مالونه چې الله هغه ستاسې له پاره دژوند د سمبالښت وسیله ګرځولې ده ، ناپوهانو ته مه سپارئ ، البته د هغو د خوراك او اغوستن له پاره یې ورکړئ او هغو ته سمه لارښوونه وکړئ.

وَ لَا تُؤْتُوا السُّفَہَآءَ اَمْوَالَکُمُ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰہُ لَکُمْ قِیٰمًا وَّ ارْزُقُوْہُمْ فِیْہَا وَ اکْسُوْہُمْ وَ قُوْلُوْا لَہُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا (۵)

او يتيمان ترازموينې لاندې ونيسئ تر دې پورې چې هغوی د نکاح کولو وړ منګ ته ورسيږي بيا که تاسې په هغو کښې اهليت وليد؛ نو د هغو شتمنی هغو ته وسپارئ داسې هېڅکله مه کوئ چې د انصاف له حد نه تيری وکړئ او له دې وېری نه د هغو شتمني په بيړه بيړه وخورئ چې که هغوی لوې شي خپل حقوق به درڅخه وغواړي. ديتيم کوم سرپرست چې بډای وي هغه دې له پرهيز ګاری نه کار واخلي . او کوم چې بيوزلی وي هغه دې په معروفه توګه وخوري بيا چې کله د هغه شتمنی هغه ته سپاري نو خلك دې پرې شاهدان ونيسي ، او د حساب اخيستلو له پاره الله کافي دی.

وَ ابۡتَلُوا الۡيَتٰمٰى حَتّٰۤى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنۡ اٰنَسۡتُمۡ مِّنۡهُمۡ رُشۡدًا فَادۡفَعُوۡۤا اِلَيۡهِمۡ اَمۡوَالَهُمۡ ۚ وَ لَا تَاۡكُلُوۡهَاۤ اِسۡرَافًا وَّ بِدَارًا اَنۡ يَّكۡبَرُوۡا ؕ وَ مَنۡ كَانَ غَنِيًّا فَلۡيَسۡتَعۡفِفۡ ۚ وَ مَنۡ كَانَ فَقِيۡرًا فَلۡيَاۡكُلۡ بِالۡمَعۡرُوۡفِ ؕ فَاِذَا دَفَعۡتُمۡ اِلَيۡهِمۡ اَمۡوَالَهُمۡ فَاَشۡهِدُوۡا عَلَيۡهِمۡ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيۡبًا (۶)

دنارينه وْ له پاره په هغه متروکه کښې برخه ده چې مور پلار او خپلوانو پريښې وي ، او د ښځو له پاره هم په هغه متروکه کښې برخه ده چې مور پلار او خپلوانو پريښې وي، که لږ وي او که ډېره ، او دا برخه (د الله له لوري ) ټاکله شوېده .

لِلرِّجَالِ نَصِيۡبٌ مِّمَّا تَرَكَ الۡوَالِدٰنِ وَ الۡاَقۡرَبُوۡنَ ۪ وَ لِلنِّسَآءِ نَصِيۡبٌ مِّمَّا تَرَكَ الۡوَالِدٰنِ وَ الۡاَقۡرَبُوۡنَ مِمَّا قَلَّ مِنۡهُ اَوۡ كَثُرَ ؕ نَصِيۡبًا مَّفۡرُوۡضًا (۷)

او کله چې د ويش په وخت کښې خپلوان او يتيمان او بيوزلي راشي نو په دې مال کښې هغو ته هم څه ورکړئ او له هغو سره په خوږه ژبه خبرې وکړئ.

وَ اِذَا حَضَرَ الۡقِسۡمَةَ اُولُوا الۡقُرۡبٰى وَ الۡيَتٰمٰى وَ الۡمَسٰكِيۡنُ فَارۡزُقُوۡهُمۡ مِّنۡهُ وَ قُوۡلُوۡا لَهُمۡ قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا (۸)

خلکو ته ددې خبرې په نظر کښې نيولو سره وېره کول په کار دي چې که هغوی په خپله له ځانه وروسته بيوسي او لادونه پرېږدي؛ نو د مرګ په وخت کښې به د خپلو اولادونو له پاره څنګه ځوريدلي وو ؛ نو بايد چې هغوی له خدايه ووېرېږئ او ريښتيا وينا وکړي.

وَ لۡيَخۡشَ الَّذِيۡنَ لَوۡ تَرَكُوۡا مِنۡ خَلۡفِهِمۡ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا خَافُوۡا عَلَيۡهِمۡ ۪ فَلۡيَتَّقُوا اللّٰهَ وَ لۡيَقُوۡلُوۡا قَوۡلًا سَدِيۡدًا (۹)

کوم خلك چې په ظلم سره د يتيمانو مالونه خوري په حقيقت کښې هغوی خپلې ګېډې له اوره ډکوي او هغوی به ارومرو ددوزخ تاوجن اورته ورننوځي.

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَاۡكُلُوۡنَ اَمۡوَالَ الۡيَتٰمٰى ظُلۡمًا اِنَّمَا يَاۡكُلُوۡنَ فِىۡ بُطُوۡنِهِمۡ نَارًا ؕ وَ سَيَصۡلَوۡنَ سَعِيۡرًا (۱۰)

ستاسې د اولادونو په باب الله تاسې ته لارښودنه کوي چې د نارينه برخه ددوو ښځو په اندازه ده، که ( د مړي وارثان ) له دوونه زياتې لونې وي نو هغو ته دې د ترکې له درېيو نه دوه برخې ورکړای شي او که صرف يوه لور وارثه وي نو نيمايي ترکه د هغې ده. که د مړي اولادونه وي نو د هغه مور او پلار هر يوه ته دې دترکې شپږمه برخه ورکړه شي او که يې اولاد نه وي او وارثان همدا مور او پلار وي نو مور ته دې درييمه برخه ورکړه شي. او که د مړي ورونه او خويندې هم وي نو مور به د شپږمې برخې حقداره وي ( دا ټولې برخې به ) هغه وخت بېلېږي چې که مړي وصيت کړی وي هغه پوره کړای شي او که پور وربانديې وي چې هغه ادا کړای شي تاسې نه پوهېږئ چې ستاسې د مور پلار او ستاسې له اولادنه کوم يو دګټې له پلوه درته ډېر نژدې دی دا برخې الله ټاکلي دي ، او په يقيني توګه الله عالم او د حکمت څښتن دی.

يُوۡصِيۡكُمُ اللّٰهُ فِىۡۤ اَوۡلَادِكُمۡ * لِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ الۡاُنۡثَيَيۡنِ ۚ فَاِنۡ كُنَّ نِسَآءً فَوۡقَ اثۡنَتَيۡنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۚ وَ اِنۡ كَانَتۡ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصۡفُ ؕ وَ لِاَبَوَيۡهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنۡهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنۡ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ ۚ فَاِنۡ لَّمۡ يَكُنۡ لَّهٗ وَلَدٌ وَّ وَرِثَهٗۤ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ فَاِنۡ كَانَ لَهٗۤ اِخۡوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ مِنۡۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٍ يُّوۡصِىۡ بِهَاۤ اَوۡ دَيۡنٍ ؕ اٰبَآؤُكُمۡ وَ اَبۡنَآؤُكُمۡ لَا تَدۡرُوۡنَ اَيُّهُمۡ اَقۡرَبُ لَكُمۡ نَفۡعًا ؕ فَرِيۡضَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا (۱۱)

او ستاسې ښځو چې څه پرېښي وي د هغه نيمايي برخه تاسې ته رسېږي که اولاد يې نه وي ، او که اولاد يې وي بيا د ترکې څلورمه برخه ستاسې ده البته که وصيت يې کړی وي دوصيت له پوره کيدو وروسته او که پوروړې وي د پور له ادا کيدو وروسته او ښځې به ستاسې له ترکې نه د څلورمې برخې حقدارې وي که تاسې بې اولاده وئ ، او که ستاسې اولادوْ نو بيا ستاسې له ترکې نه د هغو اتمه برخه ده ، وروسته د وصيت له پوره کولو نه که تاسې وصيت کړی وي او وروسته دپور له اداء کولو نه که پور وړې وئ. او که هغه نارينه يا ښځه ( چې د هغه ميراث بايد وويشل شي ) بې اولاده هم وي او مور پلار يې هم ژوندي نه وي ، خو يو ورور يا يوه خور يې موجوده وي نو ورور او خور هر يوه ته به شپږمه برخه ورسېږي، او که ورونه او خويندې له يوه نه زيات وي نو د ټولې ترکې په درېيمه برخه کښې به هغوی ټول برخه وال وي ، کله چې هغه وصيت پوره کړای شي چې کړی يې وي او هغه پور اداء شي چې وربانديې وي ، په دې شان چې زيان رسوونکی نه وي د اد الله له لوري حکم دی او الله پوه باخبره او نرم خويه دی.

وَ لَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَکَ اَزْوَاجُكُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْنَ بِهَاۤ اَوْ دَيْنٍ ؕ وَ لَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَاۤ اَوْ دَيْنٍ ؕ وَ اِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ وَّ لَهٗۤ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَاِنْ كَانُوْۤا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِکَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَاۤ اَوْ دَيْنٍ ۙ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ (١٢ؕ)

دا د الله ټاکل شوې پولې دي څوك چې د الله او د هغه د پېغمبر اطاعت وکړي الله به هغه داسې باغونو ته ننباسي چې تر هغه لاندې به ويالې بهېږي او هغوی به په کښې د تل له پاره استوګن وي او همدا ستر برياليتوب دی

تِلْکَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِکَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (١٣)

او څوك چې دالله او د هغه له پېغمبر څخه سرکشي وکړي او د هغه له ټاکل شوېو پولونه تيری وکړي الله به هغه په اور کښې
وغورځوي چې په هغه کښې به د تل له پاره استوګن وي او دهغه له پاره رسوا کوونکې سزا ده.

وَ مَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ يَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۪ وَ لَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ (١۴)

ستاسې له ښځو نه چې څوك بدلمنې وي پر هغو باندې له تاسې څخه څلور شاهدان ونيسئ ، او که څلور کسان شاهدي ووايي نو هغوی په کورونو کښې بنديانې کړئ تر هغه پورې چې هغو ته مرګ راشي يا الله د هغو له پاره څه لاره برابره کړي.

وَ الّٰتِىْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِى الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا (١۵)

او له تاسې نه دوه سړي که ددې فعل مرتکب شي نو هغوی دواړه وځوروئ، بيا که هغو توبه وايستله اوځانونه يې اصلاح کړل نو هغوی پرېږدئ يقيناِ ً الله ډېر ښه توبه قبلوونکی او رحم کوونکی دی.

وَ الَّذٰنِ يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا وَ اَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا (١٦)

هو په دې پوه شئ چې پر الله د توبې قبلولو حق د هغه کسانو لپاره دی چې د ناپوهۍ له امله کوم بد عمل ورڅخه صادر شي او ورپسې سمدلاسه توبه وباسي داسې خلکو ته بيا الله د خپلې مهربانۍ په نظر پاملرنه کوي او الله له ټولو خبرو خبردار دی او د حکمت او پوهې څښتن دی.

اِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللّٰهِ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِيْبٍ فَاُولٰٓئِکَ يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا (١٧)

خو د هغو خلکو له پاره توبه نشته چې پرله پسې بد کارونه کوي تر دې پورې چې کله له هغو نه د يو تن د مرگ نښې راڅرگندې شي؛ نو په هغه وخت کښې وايي چې اوس مې توبه وايستله او همدغه راز د هغو کسانو له پاره هم توبه نشته چې د مرگ تروخته پورې په کفر کښې پاتې شي . ددغه ډول خلکو له پاره خو مونږ دردناکه سزا تياره کړېده.

وَ لَيۡسَتِ التَّوۡبَۃُ لِلَّذِيۡنَ يَعۡمَلُوۡنَ السَّيِّاٰتِ ۚ حَتّٰۤى اِذَا حَضَرَ اَحَدَہُمُ الۡمَوۡتُ قَالَ اِنِّىۡ تُبۡتُ الۡـٰٔنَ وَ لَا الَّذِيۡنَ يَمُوۡتُوۡنَ وَ ہُمۡ كُفَّارٌ ؕ اُولٰٓئِکَ اَعۡتَدۡنَا لَہُمۡ عَذَابًا اَلِيۡمًا (١٨)

اى مؤمنانو! ستاسې له پاره دا روا نه ده چې د زور له لارې ځان د ښځو وارثان کړئ. او نه دا روا ده چې هغوى وربروئ او د هغه مهر ديوې برخې د وهلو هڅه وکړئ چې تاسې هغو ته ورکړى وي. هو که هغوى د کوم ښکاره ناکاره چلن کوونکې وي ( نو بيا تاسې د هغو د تنگولو حق لرى ) له هغو سره په ښه چلند ژوند تېر کړئ که ستاسې هغوى نه خوښېږي نو کيداى شي چې تاسې به يو شى نه خوښوئ؛ خو الله به په هغه کښې ډېرې ښېگڼې ايښې وي.

يٰۤاَيُّہَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا يَحِلُّ لَكُمۡ اَنۡ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرۡہًا ؕ وَ لَا تَعۡضُلُوۡہُنَّ لِتَذۡہَبُوۡا بِبَعۡضِ مَاۤ اٰتَيۡتُمُوۡہُنَّ اِلَّاۤ اَنۡ يَّاۡتِيۡنَ بِفَاحِشَۃٍ مُّبَيِّنَۃٍ ۚ وَ عَاشِرُوۡہُنَّ بِالۡمَعۡرُوۡفِ ۚ فَاِنۡ كَرِہۡتُمُوۡہُنَّ فَعَسٰۤى اَنۡ تَكۡرَہُوۡا شَيۡـًٔا وَّ يَجۡعَلَ اللّٰہُ فِيۡہِ خَيۡرًا كَثِيۡرًا (١٩)

او که تاسې د يوې ښځې پر ځاى د بلې ښځې راوستلو اراده وکړئ ، نو که تاسې هغې ته په پنډونو مال هم ورکړى وي، له هغه نه بېرته هېڅ شى مه اخلئ ايا تاسې په تورتپلو او څرگند ظلم کولو هغه بيرته اخلئ؟

وَ اِنۡ اَرَدۡتُّمُ اسۡتِبۡدَالَ زَوۡجٍ مَّكَانَ زَوۡجٍ ۙ وَّ اٰتَيۡتُمۡ اِحۡدٰہُنَّ قِنۡطَارًا فَلَا تَاۡخُذُوۡا مِنۡہُ شَيۡـًٔا ؕ اَتَاۡخُذُوۡنَہٗ بُہۡتَانًا وَّ اِثۡمًا مُّبِيۡنًا (٢٠)

او تاسې به هغه په څه شان اخلئ په داسې حال کښې چې تاسې يو له بل سره په مينه اوسيدلي يئ او هغوى له تاسې څخه پخه ژبنه اخيستې ده.

وَ كَيۡفَ تَاۡخُذُوۡنَہٗ وَ قَدۡ اَفۡضٰى بَعۡضُكُمۡ اِلٰى بَعۡضٍ وَّ اَخَذۡنَ مِنۡكُمۡ مِّيۡثَاقًا غَلِيۡظًا (٢١)

او له کومو ښځو سره چې ستاسې پلرونو نکاح کړې وي له هغوى سره هېڅکله نکاح مه کوئ ، خو څه چې مخکښې شويدي هغه شويدي، په حقيقت کښې دا يو د شرم کار دى ، ناوړه دى او بد چلن دى.

وَ لَا تَنۡكِحُوۡا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمۡ مِّنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَ ؕ اِنَّہٗ كَانَ فَاحِشَۃً وَّ مَقۡتًا ؕ وَ سَآءَ سَبِيۡلًا (٢٢)

پر تاسې حرامې کړاى شوې ستاسې مېندې ، لوڼې ، خويندې ، ترېندې، توړى ګانې ، وربرې، خورزې او ستاسې هغه مېندې چې تاسې ته يې شيدې درکړې وي ، او ستاسې دتې شريکې خويندې او ستاسې د ښځو ميندې ، او ستاسې د ښځو هغه لوڼې چې ستاسې په غېږو کښې پالل شوې وي د هغو مېرمنو لوڼې چې ستاسې ورسره د مېړه مېرمنې اړيکه راغلې وي او که ( يوازې نکاح ورسره تړل شوې وي او ) د مېړه مېرمنې تماس مو نه وي نيولى نو ( د هغو په پرېښودو او د هغو له لوڼو سره په نکاح کولو کښې ) پر تاسې څه گناه نشته او ستاسې د هغو زامنو مېرمنې چې ستاسې له پښت نه وي او دا هم پر تاسې حرامه ده چې په يوه نکاح کښې دوه خويندې يو ځاى کړئ، خو چې مخکښې څه شوي هغه شويدي، الله ښښونکى او رحم کوونکى دى.

حُرِّمَتۡ عَلَيۡكُمۡ اُمَّہٰتُكُمۡ وَ بَنٰتُكُمۡ وَ اَخَوٰتُكُمۡ وَ عَمّٰتُكُمۡ وَ خٰلٰتُكُمۡ وَ بَنٰتُ الۡاَخِ وَ بَنٰتُ الۡاُخۡتِ وَ اُمَّہٰتُكُمُ الّٰتِىۡۤ اَرۡضَعۡنَكُمۡ وَ اَخَوٰتُكُمۡ مِّنَ الرَّضَاعَۃِ وَ اُمَّہٰتُ نِسَآئِكُمۡ وَ رَبَآئِبُكُمُ الّٰتِىۡ فِىۡ حُجُوۡرِكُمۡ مِّنۡ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِىۡ دَخَلۡتُمۡ بِہِنَّ ۫ فَاِنۡ لَّمۡ تَكُوۡنُوۡا دَخَلۡتُمۡ بِہِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ ۫ وَ حَلَآئِلُ اَبۡنَآئِكُمُ الَّذِيۡنَ مِنۡ اَصۡلَابِكُمۡ ۙ وَ اَنۡ تَجۡمَعُوۡا بَيۡنَ الۡاُخۡتَيۡنِ اِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ كَانَ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (٢٣)

او هغه ښځې هم پر تاسې حرامې دي چې د کوم بل چا په نکاح کښې وي ( محصنات ) البته هغه ښځې له دې نه مستثنی دي چې ( په جنګ کښې ) درته په لاس درغلې وي . دا د الله هغه قانون دی چې پر تاسې يې اطاعت لازم کړای شويدی. له دې پرته چې نورې ځومره ښځې دي تاسې ته د خپلو مالونو په وسيله د هغو په لاس راوړل روا کړای شويدي ، په دې شرط چې د نکاح په چوکاټ کښې يې راولئ ، نه دا چې په ازادې شهوت رانۍ لاس پورې کړئ. نو بيا کله چې له هغو نه د ازدواجي ژوندانه خوند واخلئ د هغه په بدل کښې ورته په فرضي ډول مهر ورکړئ ، البته د مهر له قرارداد نه وروسته که ددواړو خواو په خوښه ستاسې په مينځ کښې څه کمول زياتول راشي نو څه باك يې نشته ، الله پوه او دحکمت څښتن دی.

وَّ الۡمُحۡصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُكُمۡ ۚ كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ ۚ وَ اُحِلَّ لَكُمۡ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمۡ اَنۡ تَبۡتَغُوۡا بِاَمۡوَالِكُمۡ مُّحۡصِنِيۡنَ غَيۡرَ مُسٰفِحِيۡنَ ؕ فَمَا اسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِهٖ مِنۡهُنَّ فَاٰتُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ فَرِيۡضَةً ؕ وَ لَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ فِيۡمَا تَرٰضَيۡتُمۡ بِهٖ مِنۡۢ بَعۡدِ الۡفَرِيۡضَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا (۲۴)

اوله تاسې څخه چې ځوك ددې مالې وس نه لري چې له اصيلو مسلمانو ښځو ( محصناتو ) سره نکاح وکړای شي هغه دې ستاسې د هغو وينزو له کومې يوې سره نکاح وکړي چې ستاسې په لاس کښې وي ، الله ستاسې دايمان پر حال ښه پوهيږي. تاسې ټول د يوې ډلې او يو ځوځات خلك ياست ، له دې امله د هغو د سرپر ستانو په اجازه له هغوی سره نکاح وکړئ او په ښه ( معروفه ) توګه د هغو مهر ورکړئ ، تر ځو چې هغوی د نکاح په بنديز کښې خوندي ( محصناتې ) پاتې شي ، په ازادې شهوت رانۍ پسې ونه ګرځي او نه په غلا او په پټه ياراني وکړي ؛ نو کله چې هغوی د نکاح په چوکاټ کښې خوندي شي او بيا وروسته له هغه کومه بد لمني غوره کړي نو پر هغو د هغه مجازات نيمايي دي چې د اصيلو ښځو ( محصناتو ) له پاره ټاکل شويدي دا اسانتيا له تاسې څخه د هغو کسانو له پاره مينځ ته راوړل شوېده چې له هغو سره د مېرمنې نه لرلو له مخې د حدودو ماتولو اندېښنه وي ؛ خو كه تاسې له زغم نه كار واخلئ؛ نو دا ستاسې له پاره غوره ده ، او الله ښنونکی او رحم کوونکی دی.

وَ مَنۡ لَّمۡ يَسۡتَطِعۡ مِنۡكُمۡ طَوۡلًا اَنۡ يَّنۡكِحَ الۡمُحۡصَنٰتِ الۡمُؤۡمِنٰتِ فَمِنۡ مَّا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُكُمۡ مِّنۡ فَتَيٰتِكُمُ الۡمُؤۡمِنٰتِ ؕ وَ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِاِيۡمَانِكُمۡ ؕ بَعۡضُكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡضٍ ۚ فَانۡكِحُوۡهُنَّ بِاِذۡنِ اَهۡلِهِنَّ وَ اٰتُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ بِالۡمَعۡرُوۡفِ مُحۡصَنٰتٍ غَيۡرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّ لَا مُتَّخِذٰتِ اَخۡدَانٍ ۚ فَاِذَاۤ اُحۡصِنَّ فَاِنۡ اَتَيۡنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيۡهِنَّ نِصۡفُ مَا عَلَى الۡمُحۡصَنٰتِ مِنَ الۡعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنۡ خَشِىَ الۡعَنَتَ مِنۡكُمۡ ؕ وَ اَنۡ تَصۡبِرُوۡا خَيۡرٌ لَّكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۲۵)

الله غواړي هغه چار چلن درته څرګند کړي او پر هغو لارو مو وخوځوي چې له تاسې نه مخکښې نيکان پرې روان وو هغه ستاسې لورې ته د خپل رحمت د پاملرنې اراده لري ، او الله هم دپوهې خاوند دی او هم د حکمت .

يُرِيۡدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمۡ وَ يَهۡدِيَكُمۡ سُنَنَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَ يَتُوۡبَ عَلَيۡكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ (۲۶)

هو ، الله تاسې ته له رحمت سره پاملرنه کول غواړي؛ خو کوم خلك چې د خپلو نفسي غوښتنو پيروي کوي هغوی داغواړي چې تاسې له سمې لارې نه ډېر لرې شئ.

وَ اللّٰهُ يُرِيۡدُ اَنۡ يَّتُوۡبَ عَلَيۡكُمۡ ۟ وَ يُرِيۡدُ الَّذِيۡنَ يَتَّبِعُوۡنَ الشَّهَوٰتِ اَنۡ تَمِيۡلُوۡا مَيۡلًا عَظِيۡمًا (۲۷)

الله پر تاسې د بنديزونو اسانول غواړي (ځکه چې) انسان بېوسې هست کړای شويدی.

يُرِيۡدُ اللّٰهُ اَنۡ يُّخَفِّفَ عَنۡكُمۡ ۚ وَ خُلِقَ الۡاِنۡسَانُ ضَعِيۡفًا (۲۸)

ای مؤمنانو ! په خپلو مینځو کښې یو دبل مالونه په ناروا توګه مه خورئ ، مګر خورئ یې چې راکړه ورکړه ددواړو خواو په خوښې سره (په روا توګه) وي او خپل ځانونه مه وژنئ باور ولرئ چې الله پر تاسې مهربان دی.

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْۤا اَمْوَالَكُمْ بَیْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّاۤ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ ۫ وَ لَا تَقْتُلُوْۤا اَنْفُسَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِیْمًا (۲۹)

څوك چې په ظلم او تیري سره داسې وکړي هغه به ارومرو مونږ اور ته ننباسو او داد الله له پاره څه ګران کار نه دی.

وَ مَنْ یَّفْعَلْ ذٰلِكَ عُدْوَانًا وَّ ظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِیْهِ نَارًا ؕ وَ كَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ یَسِیْرًا (۳۰)

که تاسې له هغو سترو ګناهونو څخه ډډه وکړئ چې تاسې ورڅخه منع کېږي؛ نو ستاسې وړې وړې ګناوې به مونږ له حسابه وغورځوو او تاسې به دعزت ځای ته ننباسو.

اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبَآىِٕرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَیِّاٰتِكُمْ وَ نُدْخِلْكُمْ مُّدْخَلًا كَرِیْمًا (۳۱)

او څه چې الله له تاسې نه ځینو ته د ځینو نورو په پرتله زیات ورکړیدي د هغو هیله مه کوئ د نارینه وْ برخه د هغو له کړنو سره سمه او د ښځو برخه د هغو له کړنو سره سمه ده هو ، له الله څخه د هغه د فضل دعاګانې غواړئ په دې کښې شك نشته چې الله په هرڅه پوه دی.

وَ لَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ لِلرِّجَالِ نَصِیْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ؕ وَ لِلنِّسَآءِ نَصِیْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ؕ وَ سْـَٔلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمًا (۳۲)

او مونږ د هرې هغې ترکې حقداران ټاکلي دي چې مور او پلار او خپلوان یې پرېږدي ، اوس پاتې شول هغه خلك چې له هغو سره ستاسې لوز او ترون وي نو د هغو برخه ورکړئ ، بې‌شکه چې الله پر هر څه څارونکی دی.

وَ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِیَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَ الْاَقْرَبُوْنَ ؕ وَ الَّذِیْنَ عَقَدَتْ اَیْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِیْبَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ شَهِیْدًا (۳۳)

نارینه پر ښځو مسلط اداره چیان دي ، له دې امله چې الله د هغو ځینو (نارینه و)ته پر ځینو نورو (ښځو) لوړتیا وربښلې ده ، او له دې کبله چې نارینه خپل مالونه لګوي ؛ نو کومې ښځې چې صالحې دي هغوی د فرمان منني خوی لري او د نارینه وْ په غیاب کښې د الله تر ساتنې او څارنې لاندې د هغو د حقوقو ساتنه کوي . او تاسې چې د کومو ښځو له سر غړونې څخه اندېښمن یاست ، هغوی پوه کړئ د خوب ځایونه ورڅخه جلا کړئ او ویې وهئ ، نو که هغوی ستاسې فرمان بردارې شي؛ نو هغو ته د لاس غځځونې له پاره بیځایه پلمې مه جوړوئ ، باور ولرئ چې له پاسه الله شته دی چې لوی او لوړ دی.

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّ بِمَاۤ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَیْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ وَ الّٰتِیْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَ اهْجُرُوْهُنَّ فِی الْمَضَاجِعِ وَ اضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَیْهِنَّ سَبِیْلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِیًّا كَبِیْرًا (۳۴)

او که تاسې د مېړه او مېرمنې د اړیکو د خرابېدو په باب اندېښمن یاست؛ نو یومنځګړی د مېړه له خپلوانو څخه او یو د مېرمنې له خپلوانو څخه وټاکئ ، که هغوی دواړه روغه جوړه کول وغواړي؛ نو الله به د هغو دواړو تر مینځ د توافق لاره برابره کړي ، الله په هر څه پوه او با خبره دی.

وَ اِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَیْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَ حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ یُّرِیْدَاۤ اِصْلَاحًا یُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَیْنَهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِیْمًا خَبِیْرًا (۳۵)

او تاسي ټول د الله بندګي وکړئ ، له هغه سره هيڅ شي شريك مه نيسئ، له مور او پلار سره غوره رويه وکړئ ، له خپلوانو ، يتيمانو او مسکينانو سره نيك چلن وکړئ ، او له خپلوانو ګاونډيو سره ، پرديوګاونډيو سره ، د څنګ له ملګري او پرديس سره او له هغو وينزو او غلامانو سره چي ستاسي په لاس کښي وي ، داحسان چار چلن وکړئ ، باور ولرئ چي الله يو داسي څوك نه خوښوي چي په خپله انګېرنه مغرور وي او په خپله لوړتيا وياړي

وَ اعۡبُدُوا اللّٰہَ وَ لَا تُشۡرِکُوۡا بِہٖ شَیۡئًا وَّ بِالۡوَالِدَیۡنِ اِحۡسَانًا وَّ بِذِی الۡقُرۡبٰی وَ الۡیَتٰمٰی وَ الۡمَسٰکِیۡنِ وَ الۡجَارِ ذِی الۡقُرۡبٰی وَ الۡجَارِ الۡجُنُبِ وَ الصَّاحِبِ بِالۡجَنۡۢبِ وَ ابۡنِ السَّبِیۡلِ ۙ وَ مَا مَلَکَتۡ اَیۡمَانُکُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُحِبُّ مَنۡ کَانَ مُخۡتَالًا فَخُوۡرَا ﴿۳۶﴾

او داسي کسان هم د الله نه خوښېږي چي بخيلي کوي او نورو ته هم د بخيلی کولو لارښوونه کوي او هغه څه (شتمنی)پټوي چي الله په خپله پېرزوينه هغو ته ورکړيدي ، ددغه راز نعمت منکرو خلکو له پاره مونږ رسوا کوونکی عذاب تيار ايښی دی.

الَّذِیۡنَ یَبۡخَلُوۡنَ وَ یَاۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبُخۡلِ وَ یَکۡتُمُوۡنَ مَاۤ اٰتٰہُمُ اللّٰہُ مِنۡ فَضۡلِہٖ ؕ وَ اَعۡتَدۡنَا لِلۡکٰفِرِیۡنَ عَذَابًا مُّہِیۡنًا ﴿ۚ۳۷﴾

او هغه خلك هم د الله نه خوښېږي چي خپل مالونه صرف خلکو ته د ښودلو له پاره لګوي او په حقيقت کښي نه پر الله ايمان لري نه د اخرت په ورځ ، رښتيا داده چي شيطان چي د چا ملګری شي د هغه ډېره بده ملګرتيا په برخه شوه .

وَ الَّذِیۡنَ یُنۡفِقُوۡنَ اَمۡوَالَہُمۡ رِئَآءَ النَّاسِ وَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ لَا بِالۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ ؕ وَ مَنۡ یَّکُنِ الشَّیۡطٰنُ لَہٗ قَرِیۡنًا فَسَآءَ قَرِیۡنًا ﴿۳۸﴾

پر دغو خلکو به څه شوي وو که دوی پر الله او د اخرت په ورځ ايمان راوړی وای او څه چي الله ورکړيدي له هغو نه يې لګولي وای که دوی داسي کولی نو له الله څخه ددوی دنيکی حال پټ نه پاتي کېږي ورباندي پوهېږي

وَ مَاذَا عَلَیۡہِمۡ لَوۡ اٰمَنُوۡا بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ اَنۡفَقُوۡا مِمَّا رَزَقَہُمُ اللّٰہُ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ بِہِمۡ عَلِیۡمًا ﴿۳۹﴾

الله پر هېچا د يوې ذرې په اندازه هم ظلم نه کوي، څوك چي يوه نيکي وکړي الله هغه څو چنده زياتوي او بيا له خپل لوري څخه ستر ثواب ورپه برخه کوي،

اِنَّ اللّٰہَ لَا یَظۡلِمُ مِثۡقَالَ ذَرَّۃٍ ۚ وَ اِنۡ تَکُ حَسَنَۃً یُّضٰعِفۡہَا وَ یُؤۡتِ مِنۡ لَّدُنۡہُ اَجۡرًا عَظِیۡمًا ﴿۴۰﴾

نو څير شئ چي دوی به په هغه وخت کښي څه وکړي چي مونږ له هرامت نه يو شاهد راولو او پر دغه امت باندې تا ( يعني محمد صلی الله عليه واله وسلم ) شاهد تېر کړو.

فَکَیۡفَ اِذَا جِئۡنَا مِنۡ کُلِّ اُمَّۃٍۭ بِشَہِیۡدٍ وَّ جِئۡنَا بِکَ عَلٰی ہٰۤؤُلَآءِ شَہِیۡدًا ﴿ؕ۴۱﴾

په هغه ورځ کښي به هغه ټول خلك چي کافر شول، د پېغمبر لارښووني يې ونه منلي او له هغه څخه يې سرکشي وکړه ، هيله وکړي چي کاشکي ځمکه وچوي او هغوی په کښي ننوځي اوپرې هواره شي، هلته به دوی خپله هيڅ کومه خبره له خدايه پټه نشي کړای.

یَوۡمَئِذٍ یَّوَدُّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ عَصَوُا الرَّسُوۡلَ لَوۡ تُسَوّٰی بِہِمُ الۡاَرۡضُ ؕ وَ لَا یَکۡتُمُوۡنَ اللّٰہَ حَدِیۡثًا ﴿۴۲﴾

ای مؤمنانو ! کله چي تاسي د نشي په حالت کښي ياست نو لمانځه ته مه نژدې کېږئ لمونځ بايد په داسي حال کښي وکړئ چي تاسي پوهېږئ چي څه واياست او همدا راز د جنابت په حالت کښي هم لمانځه ته مه نژدې کېږئ تر څو چي مو لمبلي نه وي مګر دا چي پر لاره تېرېدونکي ياست او که کله داسي وي چي تاسي ناروغان وئ، يا په سفر کښي وئ ، يا له تاسي نه څوك قضايي حاجت وکړي راشي ، ياتاسي ښځو ته لاس وروړی (جماع مو کړې) وي ، او بيا اوبه ونه مومئ؛ نوتيمم وکړئ له پاکي خاورې نه کار واخلئ او له هغې نه خپل مخونه او لاسونه مسح کړئ بېشکه الله له عفوې نه کار اخيستونکی او ښښنه کوونکی دی.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَقۡرَبُوا الصَّلٰوۃَ وَ اَنۡتُمۡ سُکٰرٰی حَتّٰی تَعۡلَمُوۡا مَا تَقُوۡلُوۡنَ وَ لَا جُنُبًا اِلَّا عَابِرِیۡ سَبِیۡلٍ حَتّٰی تَغۡتَسِلُوۡا ؕ وَ اِنۡ کُنۡتُمۡ مَّرۡضٰۤی اَوۡ عَلٰی سَفَرٍ اَوۡ جَآءَ اَحَدٌ مِّنۡکُمۡ مِّنَ الۡغَآئِطِ اَوۡ لٰمَسۡتُمُ النِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُوۡا مَآءً فَتَیَمَّمُوۡا صَعِیۡدًا طَیِّبًا فَامۡسَحُوۡا بِوُجُوۡہِکُمۡ وَ اَیۡدِیۡکُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ عَفُوًّا غَفُوۡرًا ﴿۴۳﴾

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ الضَّلٰلَةَ وَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ تَضِلُّوا السَّبِيْلَ (۴۴)

ايا تا هغه خلك ليدلي نه دي چې هغو ته د كتاب د علم يو څه برخه وركړه شوېده ؟ هغوى خو په خپله د ګمراهۍ خريداران ګرځېدلي دي او غواړي چې تاسي هم لاره وركه كړئ.

وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۙ وَّ كَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا (۴۵)

الله ستاسي دښمنان ښه پېژني او ستاسي د مرستي او ملاتړ له پاره يوازې الله كافي دى.

مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَ يَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَ عَصَيْنَا وَ اسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّ رَاعِنَا لَيًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ وَ طَعْنًا فِي الدِّيْنِ ؕ وَ لَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا وَ اسْمَعْ وَ انْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَ اَقْوَمَ ۙ وَ لٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا (۴۶)

كوم كسان چې يهوديان شويدي په هغو كښې ځيني كسان داسي دي چې الفاظو ته له خپلو ځايونو څخه تغيير وركوي ، او د حق دين پر خلاف د نيش وهلو له پاره خپلې ژبې اړوي رااړوي وايي (سمعنا وعصينا و اسمع غير مسمع او راعنا) په داسي حال كښې چې كه هغوى ويلي واى سمعنا واطعنا ، و اسمع و انظرنا؛ نو دا به د هغو له پاره غوره وه او ډېره سمه لاره وه ؛خو پر هغو باندي د هغو د باطل پرستۍ له امله لعنتونه وريدلي دي له دې كبله هغوى ډېر لږ ايمان راوړي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اٰمِنُوْا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا فَنَرُدَّهَا عَلٰۤى اَدْبَارِهَاۤ اَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّاۤ اَصْحٰبَ السَّبْتِ ؕ وَ كَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا (۴۷)

اى هغه خلكو چې كتاب در كړ شوى وْ ! هغه كتا ب و منئ چې مونږ اوس نازل كړيدى چې د هغه كتاب تصديق او رېښتينه كوي چې له پخوا نه له تاسي سره موجود وْ پر ده ايمان راوړئ مخكښې له هغه چې مونږ مخونه مسخ كړو او شاتې لوري ته يې وګرځوو يا دوى په هغه شان لعنتيان كړو لكه چې د سبت خاوندان مو كړي وو ، او (په ياد ولرئ چې) د الله حكم نافذېږي.

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَ يَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ۚ وَ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰۤى اِثْمًا عَظِيْمًا (۴۸)

الله يوازې شرك نه ښښي ، له دې نه پرته چې نورې هر څومره ګناوې دي چې د هغه چاته خوښه شي وربښي يې ، چا چې له الله سره كوم بل څوك شريك وګاڼه هغه ډېر غټ دروغ غوټه كړل او د ډېرې لويې ګناه خبره يې وكړه.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ اَنْفُسَهُمْ ؕ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ وَ لَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا (۴۹)

ايا تا هغه خلك ليدلي نه دي چې د خپلې زياتې پاك نفسۍ غورې وهي؟ په داسي حال كښې چې سپېڅلتيا خو چې الله چاته وغواړي وريه برخه كوي يې او ( كومو خلكو ته چې سپېڅلتيا نه ده وركړه شوې نو په حقيقت كښې ) پر هغو د يوې ذرې په اندازه هم ظلم نه كېږي.

اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَ كَفٰى بِهٖۤ اِثْمًا مُّبِيْنًا (۵۰)

ښه نو وګوره پر الله باندي د دروغو له تړلو نه ددوى چورت نه خرابېږي او ددوى د څرګندې ګناهګارۍ له پاره همدا يوه ګناه كافي ده.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ بِالْجِبْتِ وَ الطَّاغُوْتِ وَ يَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰۤؤُلَآءِ اَهْدٰى مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَبِيْلًا (۵۱)

ايا تا هغو خلكو ته نه دي كتلي چې د كتاب له علم څخه يو څه برخه وركړه شوېده او د هغو حالت دا دى چې جبت او طاغوت مني او دكافرانو په باب وايي چې له ايمان راوړونكيو څخه خو د همدوى لاره زياته سمه ده.

همداسې خلك دي چې الله پرې لعنت کړيدی او پر چا چې الله لعنت وکړي بيا ته د هغه له پاره هيڅ مرستندوی نه شې ميندلی.

أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۖ وَ مَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا (۵۲)

ايا په حکومت کښې هغوی برخه وال دي؟ که داسې وای نو دوی به نورو ته يو خلکی هم نه ؤ ورکړی.

اَمْ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَاِذًا لَّا يُؤْتُوْنَ النَّاسَ نَقِيْرًا (۵۳)

او ايا دوی پر نورو له دې امله رخه کوي چې الله پر هغو خپل فضل پيرزو کړيدی ؟ که دا خبره وي نو دوی ته دې معلومه وي چې مونږ خو د ابراهيم او لاد ته کتاب او حکمت ورکړی او ستره باچاهي مو ورښنلې ده.

اَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ عَلٰى مَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ فَقَدْ اٰتَيْنَآ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ وَ اٰتَيْنٰهُمْ مُّلْكًا عَظِيْمًا (۵۴)

خو له هغو (يهودانو)څخه ځېنو پرې ايمان راوړ او ځينو ورڅخه مخ واړو ، او مخ اړوونکيو ته خو يوازې د دوزخ تاوجن اور کافي دی.

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَ مِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ۖ وَ كَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيْرًا (۵۵)

کومو خلکو چې زمونږ د ايتونو له منلو څخه انکار کړيدی هغوی به ارومرو مونږ اور ته ننباسو او کله چې د هغوی د بدن پوټکي واليږل شي؛ نو د هغو پر ځای به نور پوټکي ورکړو ، چې هغوی د عذاب خوند ښه وڅکي- الله ډېر زورور دی او د خپلو فيصلو د عملي کولو پر حکمت ډېر ښه پوهيږي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِيْهِمْ نَارًا ۖ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ ۖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا حَكِيْمًا (۵۶)

او کومو خلکو چې ايمان راوړي (زمونږ ايتونه يې منلي) او غوره عملونه يې کړيدي هغوی به مونږ داسې باغونو ته ننباسو چې تر هغو لاندې به ويالې بهيږي ، هلته به هغوی د تل له پاره اوسيږي او هغو ته به سپېڅلې مېرمنې په برخه شي او هغو ته به مونږ په ګڼو سيورو کښې استوګنه ورکړو.

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۖ لَهُمْ فِيْهَآ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۫ وَّ نُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيْلًا (۵۷)

مسلمانانو ! الله تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو اهل ته وسپارئ ، او کله چې د خلکو په مينځ کښې فيصله کوئ نو په عدالت سره يې وکړئ ، الله تاسې ته په دې سره ډېر لوی نصيحت کوي او په باوري ډول الله اوريدونکي او ليدونکي دی.

اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا ۙ وَ اِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ ۖ اِنَّ اللّٰهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ ۖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيْعًا بَصِيْرًا (۵۸)

ای مؤمنانو ! د الله ، رسول او هغو کسانو اطاعت وکړئ چې له تاسې نه دامر خاوندان وي ، بيا که ستاسې تر مينځه په کومه چاره کښې شخړه پيښه شي؛ نو هغه د الله او رسول لوري ته محوله کړئ که تاسې په ريښتيا سره پر الله او د اخرت په ورځ ايمان لرئ همدا د کار يوه سمه طريقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ اُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَى اللّٰهِ وَ الرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۖ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّ اَحْسَنُ تَاْوِيْلًا (۵۹)

ای پيغمبره! ايا تا هغو خلکو ته نه دي کتلي چې دعوه خو کوي چې مونږ پر هغه کتاب چې تا ته راغلی دی او پر هغو کتابونو چې له تا څخه مخکښې نازل شوي وو ايمان راوړيدی؛ خو غواړي دا چې خپلې چارې د فيصلې له پاره د طاغوت لوري ته محولې کړي ، حال دا دی چې هغو ته له طاغوت نه د منکرېدو حکم شوی ؤ شيطان غواړي هغوی وغولوي او سمې لارې نه يې ډېر لرې باسي.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَ مَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا اِلَى الطَّاغُوْتِ وَ قَدْ اُمِرُوْٓا اَنْ يَّكْفُرُوْا بِهٖ ۖ وَ يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًا بَعِيْدًا (۶۰)

وَ اِذَا قِيْلَ لَہُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَ اِلَى الرَّسُوْلِ رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا (۶۱)

او کله چې هغو ته ویل کېږي چې راشئ د هغه شي لوري ته چې الله نازل کړیدی او راشئ د پېغمبر لوري ته ، نو ته به دغو منافقانو ته گورې چې ستا لوري ته له راتگ نه بیخي ځانونه گوښه کوي

فَكَيْفَ اِذَاۤ اَصَابَتْہُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْہِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ ۖ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَاۤ اِلَّاۤ اِحْسَانًا وَّ تَوْفِيْقًا (۶۲)

نو په هغه وخت کښې به څه کېږي چې ددوی له خپله لاسه جوړ کړی غم پرې ولوېږي؟ په هغه وخت کښې به دوی تا ته په قسمونو خوړلو راځي او وایي به چې په خدای قسم دی چې مونږ خو بې له ښېگڼې نور څه نه غوښتل او مونږ دا غوښتل چې ددواړو خواوْ تر مینځ روغه جوړه راشي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِيْ قُلُوْبِہِمْ ۗ فَاَعْرِضْ عَنْہُمْ وَ عِظْہُمْ وَ قُلْ لَّہُمْ فِيْۤ اَنْفُسِہِمْ قَوْلًاۢ بَلِيْغًا (۶۳)

الله پرې پوهېږي چې د هغو په زړونو کښې څه دي ، له هغو سره غرض مه کوه ، هغوی وپوهوه او داسې نصیحت ورته وکړه چې د هغو په زړونو کښې ځای ونیسي .

وَ مَاۤ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَ لَوْ اَنَّہُمْ اِذْ ظَّلَمُوْۤا اَنْفُسَہُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَ اسْتَغْفَرَ لَہُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا (۶۴)

هغوی ته څرگنده کړه چې ) مونږ هر پېغمبر ددې له پاره لېږلی )
که هغوی دا لاره .چې د خدای په حکم د هغه اطاعت وکړای شي
غوره کړې وای چې کله یې پر خپلو ځانونو ظلم کولی نو تا ته راتلای او له الله نه یې ښنه غوښتلای ، او پېغمبر هم ورته د ښنې غوښتنه کولی ، نو شك نشته چې الله به یې ښنونکی او رحم کوونکی . میندلای وْ

فَلَا وَ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَہُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْۤ اَنْفُسِہِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَ يُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا (۶۵)

نه ، ای محمده ! ستا په رب قسم چې دوی هېڅکله مؤمنان کېدای نه شي تر څو چې دوی په خپل منځي شخړو کښې تا فیصله کوونکی ونه مني ، بیا چې ته څه فیصله وکړې پر هغې باندې په خپلو زړونو کښې هم څه تنگي احساس نه کړي ؛ بلکې سر تر پایه یې ومني.

وَ لَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْہِمْ اَنِ اقْتُلُوْۤا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْہُمْ ؕ وَ لَوْ اَنَّہُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِہٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّہُمْ وَ اَشَدَّ تَثْبِيْتًا (۶۶)

که مونږ هغو ته حکم کړی وای چې خپل ځانونه ووژنئ یا له خپلو کورونو څخه ووځئ نو له هغو څخه به ډېر ولږو کسانو پرې عمل کړی وای په داسې حال کښې کوم نصیحت چې هغو ته کېږي که پر هغه یې عمل کړی وای نو دا به ورته د ډېر ښه والي او د زیاتې ډاډېنې موجب وْ

وَّ اِذًا لَّاٰتَيْنٰہُمْ مِّنْ لَّدُنَّـاۤ اَجْرًا عَظِيْمًا (۶۷)

او چې کله دویې داسې کولای نو مونږ به دوی ته له خپل لوري نه ډېر زیات ثواب ورکړی وای

وَّ لَہَدَيْنٰہُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا (۶۸)

او دوی ته به موسمه لاره ښودلې وای.

وَ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَ الرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْہِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَ الصِّدِّيْقِيْنَ وَ الشُّہَدَآءِ وَ الصّٰلِحِيْنَ ۚ وَ حَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا (۶۹)

څوك چې د الله او پېغمبر اطاعت وکړي دوی به د هغو خلکو ملگري وي چې پر هغو الله پېرزوینه کړېده ؛ یعنې پېغمبران ، صدیقان ، شهیدان او صالحان څومره ښه ده دهغو ملگرتیا چې چاته په برخه شي .

ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا (۷۰)

دا حقیقي پېرزوینه ده چې د الله له لوري کېږي او د حقیقت پوهنې له پاره یوازې د الله علم کافي دی.

يٰۤاَيُّہَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا (۷۱)

ای مؤمنانو ! هر وخت د مقابلې له پاره چمتو اوسئ ، بیا چې څنگه وخت مومئ د بېلابېلو ټولگېو په توگه ووځئ یا یو موټی .

هو ، هر څوك چي له تاسي نه داسي وي چي له جګړي نه ځان ګوښه كوي ، كه پر تاسي كوم مصيبت راشي؛ نو وايي الله پر ما لويه مهرباني وكړه چي زه له دې خلكو سره لاړ نه شوم.

وَ اِنَّ مِنۡكُمۡ لَمَنۡ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ فَاِنۡ اَصَابَتۡكُمۡ مُّصِيۡبَةٌ قَالَ قَدۡ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اِذۡ لَمۡ اَكُنۡ مَّعَهُمۡ شَهِيۡدًا (۷۲)

او كه د الله له لوري پر تاسي لورېنه وي ؛ نو وايي او په داسي شان يې وايي چي ګواكي ستاسي او د هغه تر منيځه ددوستى خو له سره كومه اړيكه نه وه چي كاشكي زه هم له هغو سره واى؛ نو پوره برياليتوب به مي تر لاسه كړى و.

وَ لَئِنۡ اَصَابَكُمۡ فَضۡلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوۡلَنَّ كَاَنۡ لَّمۡ تَكُنۡ بَيۡنَكُمۡ وَ بَيۡنَهٗ مَوَدَّةٌ يّٰلَيۡتَنِيۡ كُنۡتُ مَعَهُمۡ فَاَفُوۡزَ فَوۡزًا عَظِيۡمًا (۷۳)

داسي خلكو ته دې ښكاره وي چي ) د الله په لاره كښي جنګېدل ) هغو خلكو ته پكار دي چي داخرت په بدل كښي ددنيا ژوند پلوري ؛ نوڅوك چي د الله په لاره كښي وجنګېږي او ووژل شي يا برلاس شي هغه ته به مونږ ارومرو ستر ثواب ورپه برخه كړو.

فَلۡيُقَاتِلۡ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ الَّذِيۡنَ يَشۡرُوۡنَ الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا بِالۡاٰخِرَةِ ؕ وَ مَنۡ يُّقَاتِلۡ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ فَيُقۡتَلۡ اَوۡ يَغۡلِبۡ فَسَوۡفَ نُؤۡتِيۡهِ اَجۡرًا عَظِيۡمًا (۷۴)

اخر څه دليل دى چي تاسي د الله په لاره كښي د هغو بېوسي نارينه وُ ښځو او ماشومانو په خاطر نه جنګېږي چي كمزوري كړاى شوي تر فشار لاندې نيول شويدي او فريادونه كوي چي خدايه مونږ له دې وطنه چي اوسېدونكي يې ظالمان دي وباسي او له خپل لوري نه زمونږ كوم سرپرست او مرستندوى پيدا كړې.

وَ مَا لَكُمۡ لَا تُقَاتِلُوۡنَ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَ الۡمُسۡتَضۡعَفِيۡنَ مِنَ الرِّجَالِ وَ النِّسَآءِ وَ الۡوِلۡدَانِ الَّذِيۡنَ يَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَاۤ اَخۡرِجۡنَا مِنۡ هٰذِهِ الۡقَرۡيَةِ الظَّالِمِ اَهۡلُهَا ۚ وَ اجۡعَلۡ لَّنَا مِنۡ لَّدُنۡكَ وَلِيًّا ۚۙ وَّ اجۡعَلۡ لَّنَا مِنۡ لَّدُنۡكَ نَصِيۡرًا (ؕ۷۵)

كومو خلكو چي د ايمان لاره غوره كړېده ، هغوى د الله په لاره كښي جنګېږئ او كومو كسانو چي د كفر لاره غوره كړېده ، هغوى د طاغوت په لاره كښي جنګېږئ ، نو د شيطان له ملګرو سره وجنګګېږئ او باور ولرئ چي د شيطان د سيسي په حقيقت كښي ډېرې كمزوري دي.

اَلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا يُقَاتِلُوۡنَ فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ۚ وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا يُقَاتِلُوۡنَ فِيۡ سَبِيۡلِ الطَّاغُوۡتِ فَقَاتِلُوۡۤا اَوۡلِيَآءَ الشَّيۡطٰنِ ۚ اِنَّ كَيۡدَ الشَّيۡطٰنِ كَانَ ضَعِيۡفًا (۷۶)

ايا تا هغو خلكو ته كتلي نه دي چي هغو ته ويل شوي وو چي خپل لاسونه له جنګه منع كړئ ، لمونځ قائم كړئ او زكات وركړئ ؟ اوس چي هغو ته د جنګېدو امر وشو نو له هغو څخه يوه ډله له خلكو څخه داسي وېرېږي لكه څنګه چي له خدايه وېره پكار ده يا له دې نه هم څه زياته، وايي خدايه تا پر مونږ ولي د جنګېدو امر وليكه ؟ ولي دې مونږ ته لږ څه نور مهلت رانه كړ؟ دوى ته ووايه ، ددنيا د ژوند پانګه لږه ده ، او اخرت د پرهيز ګار انسان له پاره ډېر غوره دى، او پر تاسي به ديوې ذرې په اندازه هم ظلم ونه كړاى شي.

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ قِيۡلَ لَهُمۡ كُفُّوۡۤا اَيۡدِيَكُمۡ وَ اَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيۡهِمُ الۡقِتَالُ اِذَا فَرِيۡقٌ مِّنۡهُمۡ يَخۡشَوۡنَ النَّاسَ كَخَشۡيَةِ اللّٰهِ اَوۡ اَشَدَّ خَشۡيَةً ۚ وَ قَالُوۡا رَبَّنَا لِمَ كَتَبۡتَ عَلَيۡنَا الۡقِتَالَ ۚ لَوۡ لَاۤ اَخَّرۡتَنَاۤ اِلٰۤى اَجَلٍ قَرِيۡبٍ ؕ قُلۡ مَتَاعُ الدُّنۡيَا قَلِيۡلٌ ۚ وَ الۡاٰخِرَةُ خَيۡرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۟ وَ لَا تُظۡلَمُوۡنَ فَتِيۡلًا (۷۷)

پاتي شو مرګ نو چېرته چي ياست هغه په هر صورت درتلونكى دى كه تاسي په هر څومره محكمو كلاګانو كښي هم اوسئ . كه دوى ته څه ګټه رسېږي نو وايي دا د الله له لوري ده ، او كه څه زيان وراوړي نو وايي دا ستا له لاسه دي ، ورته ووايه هرڅه د الله له لوري دي اخر په دې خلكو څه شويدي چي په هېڅ خبره نه پوهېږي.

اَيۡنَ مَا تَكُوۡنُوۡا يُدۡرِكۡكُّمُ الۡمَوۡتُ وَ لَوۡ كُنۡتُمۡ فِيۡ بُرُوۡجٍ مُّشَيَّدَةٍ ؕ وَ اِنۡ تُصِبۡهُمۡ حَسَنَةٌ يَّقُوۡلُوۡا هٰذِهٖ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ۚ وَ اِنۡ تُصِبۡهُمۡ سَيِّئَةٌ يَّقُوۡلُوۡا هٰذِهٖ مِنۡ عِنۡدِكَ ؕ قُلۡ كُلٌّ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ؕ فَمَالِ هٰۤؤُلَآءِ الۡقَوۡمِ لَا يَكَادُوۡنَ يَفۡقَهُوۡنَ حَدِيۡثًا (۷۸)

مَاۤ اَصَابَکَ مِنۡ حَسَنَۃٍ فَمِنَ اللّٰہِ ۫ وَ مَاۤ اَصَابَکَ مِنۡ سَیِّئَۃٍ فَمِنۡ نَّفۡسِکَ ؕ وَ اَرۡسَلۡنٰکَ لِلنَّاسِ رَسُوۡلًا ؕ وَ کَفٰی بِاللّٰہِ شَہِیۡدًا (۷۹)

ای انسانه! تا ته چې هره ښېګڼه رسېږي د الله په پېرزوینه رسېږي، او په کوم غم چې اخته کېږې هغه ستا د خپلو کړنو له امله دی . ای محمده (ص) ! مونږ ته د خلکو له پاره د پېغمبر په حيث لېږلی يې او پردې د خدای شاهدي کافي ده ،

مَنۡ یُّطِعِ الرَّسُوۡلَ فَقَدۡ اَطَاعَ اللّٰہَ ۚ وَ مَنۡ تَوَلّٰی فَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰکَ عَلَیۡہِمۡ حَفِیۡظًا (۸۰ؕ)

چا چې د پېغمبر اطاعت وکړ هغه په اصل کښې د خدای اطاعت وکړ او چاچې مخ واړوه، نو په هر صورت مونږ پردې خلکو ته د څارونکي او ساتونکي په توګه نه يې لېږلی.

وَ یَقُوۡلُوۡنَ طَاعَۃٌ ۫ فَاِذَا بَرَزُوۡا مِنۡ عِنۡدِکَ بَیَّتَ طَآئِفَۃٌ مِّنۡہُمۡ غَیۡرَ الَّذِیۡ تَقُوۡلُ ؕ وَ اللّٰہُ یَکۡتُبُ مَا یُبَیِّتُوۡنَ ۚ فَاَعۡرِضۡ عَنۡہُمۡ وَ تَوَکَّلۡ عَلَی اللّٰہِ ؕ وَ کَفٰی بِاللّٰہِ وَکِیۡلًا (۸۱)

هغو ی په خوله وايي چې مونږ فرمانبردار يو ؛ خو کله چې ستا له څنګ نه لرې کېږئ نو د هغو يوه ډله د شپې له مخې راټولېږي ستا د خبرو پر خلاف مشوري کوي ،الله د هغو داټولي پټې مشوری ليکي ، ته د هغو پروا مه کوه اوپرالله توکل وکړه،او الله دساتونکی په توګه کافي دي

اَفَلَا یَتَدَبَّرُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ ؕ وَ لَوۡ کَانَ مِنۡ عِنۡدِ غَیۡرِ اللّٰہِ لَوَجَدُوۡا فِیۡہِ اخۡتِلَافًا کَثِیۡرًا (۸۲)

ايا دا خلك قرآن ته نه ځير کېږي ؟ که د اله الله نه پرته د کوم بل چا له لوري وای نو په ده کښې به ډېر ګډوډ بيان موندل کېده .

وَ اِذَا جَآءَہُمۡ اَمۡرٌ مِّنَ الۡاَمۡنِ اَوِ الۡخَوۡفِ اَذَاعُوۡا بِہٖ ؕ وَ لَوۡ رَدُّوۡہُ اِلَی الرَّسُوۡلِ وَ اِلٰۤی اُولِی الۡاَمۡرِ مِنۡہُمۡ لَعَلِمَہُ الَّذِیۡنَ یَسۡتَنۡۢبِطُوۡنَہٗ مِنۡہُمۡ ؕ وَ لَوۡ لَا فَضۡلُ اللّٰہِ عَلَیۡکُمۡ وَ رَحۡمَتُہٗ لَاتَّبَعۡتُمُ الشَّیۡطٰنَ اِلَّا قَلِیۡلًا (۸۳)

دوی چې کله کوم د ډاډ يا وېرې خبر اوري هغه خپر وي ، په داسې حال کښې چې که دوی هغه پېغمبر او د خپلې ډلې مسئولو کسانو ته ورسوي؛ نو پر هغه به داسې ډول خلك وپوهېږي چې ددوی په مينځ کښې د دې خبرې صلاحيت لري چې له هغې څخه سمه نتيجه واخيستلی شي. که پر تاسې د الله مهرباني او رحمت نه وای نو ( ستاسې نيمګړتياوې داسې وې چې ) له څو تنو پرته به نور ټول په شيطان پسې خوځېدلي وئ.

فَقَاتِلۡ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ ۚ لَا تُکَلَّفُ اِلَّا نَفۡسَکَ وَ حَرِّضِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ ۚ عَسَی اللّٰہُ اَنۡ یَّکُفَّ بَاۡسَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا ؕ وَ اللّٰہُ اَشَدُّ بَاۡسًا وَّ اَشَدُّ تَنۡکِیۡلًا (۸۴)

نو ای پېغمبره ! ته دالله په لار کښې وجنګېږه ، ته له خپله ځانه پرته د بل هېچا له پاره مسئول نه يې البته مؤمنان د جنګېدو له پاره وهڅوه ، لېرې نه ده چې الله د کافرانو زور مات کړي ، د الله زور تر ټولو ډېر زيات او د هغه سزا تر ټولو ډېره سخته ده.

مَنۡ یَّشۡفَعۡ شَفَاعَۃً حَسَنَۃً یَّکُنۡ لَّہٗ نَصِیۡبٌ مِّنۡہَا ۚ وَ مَنۡ یَّشۡفَعۡ شَفَاعَۃً سَیِّئَۃً یَّکُنۡ لَّہٗ کِفۡلٌ مِّنۡہَا ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ مُّقِیۡتًا (۸۵)

څوك چې د نيکی سپارښ وکړي هغه به له هماغې څخه برخه ومومي او څوك چې د بدئ سپارښ وکړي هغه به له هماغې نه برخه ومومي ، او الله په هر شي قدرت لرونکی دی.

وَ اِذَا حُیِّیۡتُمۡ بِتَحِیَّۃٍ فَحَیُّوۡا بِاَحۡسَنَ مِنۡہَاۤ اَوۡ رُدُّوۡہَا ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ حَسِیۡبًا (۸۶)

او څوك چې په درناوي سره تاسي ته سلام واچوي نو هغه ته له هغې نه په ښه توګه ځواب ورکړئ يا لږ تر لږه په هماغه شان ، الله د هرشي حساب اخيستونکی دی.

اَللّٰہُ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ؕ لَیَجۡمَعَنَّکُمۡ اِلٰی یَوۡمِ الۡقِیٰمَۃِ لَا رَیۡبَ فِیۡہِ ؕ وَ مَنۡ اَصۡدَقُ مِنَ اللّٰہِ حَدِیۡثًا (۸۷)

الله هغه دی چې له هغه پرته هېڅ کوم بل خدای نشته ، هغه به تاسې ټول د قيامت په هغه ورځ راټول کړي چې د هغې په راتګ کښې هېڅ کوم شك شبهه نشته ، او د الله له خبرې نه ډېره زياته رينښتينې خبره د بل چا کېدای شي؟

نو دا پر تاسي څه شويدي چي د منافقانو په باب ستاسي په مينځ کښي دوه مفکوري ميندل کيږي ، په داسي حال کښي کومي بدی چي هغو ګټلي دي د هغو له امله الله هغوی بېرته په شا ګرځولي دي ايا تاسي غواړئ ، چا ته چي الله هدايت نه وي کړی هغه ته تاسګي هدايت وکړئ؟ حال دا چي څوك چي الله له لاري واړوي د هغه له پاره ته کومه لاره نه شي پيدا کولی.

فَمَا لَكُمۡ فِي الۡمُنٰفِقِيۡنَ فِئَتَيۡنِ وَ اللّٰهُ اَرۡكَسَهُمۡ بِمَا كَسَبُوۡا ؕ اَتُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ تَهۡدُوۡا مَنۡ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَ مَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَلَنۡ تَجِدَ لَهٗ سَبِيۡلًا (۸۸)

هغوی خو دا غواړي لکه چي څنګه په خپله کافران دي هماغسي تاسي هم کافران شئ تر څو تاسي او هغوی ټول سره برابر شئ . له دې امله له هغو نه هيڅوك خپل دوستان مه نيسئ ترڅو چي هغوی د خدای په لار کښي هجرت ونه کړي ، او که هغوی له هجرت نه منع راوړي؛ نو چېرته يې چي ومومئ ويې نيسئ او ويې وژنئ او له هغوی نه هيڅ يو خپل دوست او مرستندوی مه ګرځوئ.

وَدُّوۡا لَوۡ تَكۡفُرُوۡنَ كَمَا كَفَرُوۡا فَتَكُوۡنُوۡنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوۡا مِنۡهُمۡ اَوۡلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوۡا فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ؕ فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَخُذُوۡهُمۡ وَ اقۡتُلُوۡهُمۡ حَيۡثُ وَجَدۡتُّمُوۡهُمۡ ۪ وَ لَا تَتَّخِذُوۡا مِنۡهُمۡ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيۡرًا (۸۹)

البته هغه منافقان له دې حکم څخه مستثنا دي چي له يو داسي قوم سره يو ځای شي چي له هغه سره ستاسي تړون وي دغه راز هغه منافقان هم مستثنا دي چي تاسي ته راځي او له جګړې نه زړه تورن دي ، نه له تاسي سره جنګېدل غواړي او نه له خپل قوم سره که الله غوښتلای نو هغوی به يې پر تاسي مسلط کړي وای او هغوی به هم درسره جنګېدلي وای له دې کبله که هغوی له تاسي نه څنګ وکړي او له جنګېدو نه لاس په سر شي او تاسي ته دروغي جوړې لاس اوږد کړي؛ نو الله ستاسي له پاره هغو ته د لاس اوږدولو کومه لاره نه ده پرې ايښي.

اِلَّا الَّذِيۡنَ يَصِلُوۡنَ اِلٰى قَوۡمٍۢ بَيۡنَكُمۡ وَ بَيۡنَهُمۡ مِّيۡثَاقٌ اَوۡ جَآءُوۡكُمۡ حَصِرَتۡ صُدُوۡرُهُمۡ اَنۡ يُّقَاتِلُوۡكُمۡ اَوۡ يُقَاتِلُوۡا قَوۡمَهُمۡ ؕ وَ لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمۡ عَلَيۡكُمۡ فَلَقٰتَلُوۡكُمۡ ۚ فَاِنِ اعۡتَزَلُوۡكُمۡ فَلَمۡ يُقَاتِلُوۡكُمۡ وَ اَلۡقَوۡا اِلَيۡكُمُ السَّلَمَ ۙ فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمۡ عَلَيۡهِمۡ سَبِيۡلًا (۹۰)

تاسي به يو بل ډول داسي منافقان مومئ چي غواړي له تاسي سره هم په امن واوسيږئ او له خپل قوم سره هم ، خو چي هر کله د فتني فرصت په لاس ورشي بې موجبه به په کښي ځان وغورځوي دغه راز خلك که ستاسي له مقابلي نه په څنګ نه شي او تاسي ته دروغي جوړې پيشنهاد ونه کړي او لاس وانخلي نو چي چېرته مو ومونډل ، ويې نيسئ او ويې وژنئ ، پر هغو د لاس پورته کولو له پاره مونږ تاسي ته ښکاره سند درکړيدی.

سَتَجِدُوۡنَ اٰخَرِيۡنَ يُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ يَّاۡمَنُوۡكُمۡ وَ يَاۡمَنُوۡا قَوۡمَهُمۡ ؕ كُلَّمَا رُدُّوۡۤا اِلَى الۡفِتۡنَةِ اُرۡكِسُوۡا فِيۡهَا ۚ فَاِنۡ لَّمۡ يَعۡتَزِلُوۡكُمۡ وَ يُلۡقُوۡۤا اِلَيۡكُمُ السَّلَمَ وَ يَكُفُّوۡۤا اَيۡدِيَهُمۡ فَخُذُوۡهُمۡ وَ اقۡتُلُوۡهُمۡ حَيۡثُ ثَقِفۡتُمُوۡهُمۡ ؕ وَ اُولٰٓئِكُمۡ جَعَلۡنَا لَكُمۡ عَلَيۡهِمۡ سُلۡطٰنًا مُّبِيۡنًا (۹۱)

دا د يو مؤمن کار نه دی چي بل مؤ من ووژني ، مګر دا چي خطائي ورڅخه وشي. او څوك چي کوم مؤمن په خطائی سره ووژني؛ نو د هغه کفاره دا ده چي يو مؤمن له غلامی نه ازاد کړي او د وژل شوي وارثانو ته د وينو بيه ورکړي ، مګر داچي هغوی خونی وبښي ؛خو که هغه وژل شوی مسلمان له کوم داسي قوم څخه وْ چي له هغه سره ستاسي دښمني وي؛ نو د هغه کفاره د يو مؤمن غلام ازادول دي. او که هغه وژل شوی مومن د کوم يو داسي نامسلمان قوم وګړی وْ چي له هغه سره ستاسي تړون وْ نو د هغه وارثانو ته به د وينو بيه ورکول او د يو مؤمن غلام ازادول وي. نو که څوك غلام ونه مومي پر له پسي دې دوه مياشتي روژه ونيسي . دا پردې ګناه الله ته د توبې ايستلو طريقه ده او الله د علم او پوهي خاوند دی.

وَ مَا كَانَ لِمُؤۡمِنٍ اَنۡ يَّقۡتُلَ مُؤۡمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَ مَنۡ قَتَلَ مُؤۡمِنًا خَطَـًٔا فَتَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ مُّؤۡمِنَةٍ وَّ دِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهۡلِهٖۤ اِلَّاۤ اَنۡ يَّصَّدَّقُوۡا ؕ فَاِنۡ كَانَ مِنۡ قَوۡمٍ عَدُوٍّ لَّكُمۡ وَ هُوَ مُؤۡمِنٌ فَتَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ مُّؤۡمِنَةٍ ؕ وَ اِنۡ كَانَ مِنۡ قَوۡمٍۢ بَيۡنَكُمۡ وَ بَيۡنَهُمۡ مِّيۡثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهۡلِهٖ وَ تَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ مُّؤۡمِنَةٍ ۚ فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ شَهۡرَيۡنِ مُتَتَابِعَيۡنِ ۫ تَوۡبَةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا (۹۲)

پاتې شو هغه څوك چې كوم مؤمن له پوهې او ادراك سره سره ووژني نو د هغه سزا دوزخ دی چې په هغه كښې به د تل له پاره استوګن وي پر هغه د الله غضب او لعنت دی او الله د هغه له پاره لوی عذاب تيار كړيدی.

وَ مَنۡ یَّقۡتُلۡ مُؤۡمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُہٗ جَہَنَّمُ خٰلِدًا فِیۡہَا وَ غَضِبَ اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَ لَعَنَہٗ وَ اَعَدَّ لَہٗ عَذَابًا عَظِیۡمًا (۹۳)

ای مؤمنانو ! كله چې د الله په لار كښې د جهاد له پاره ووځئ نو د دوست او دښمن په مينځ كښې توپير وكړئ او څوك چې تاسې ته سلام واچوي هغه ته سمدلاسه مه واياست چې ته مومن نه يې ، كه تاسې ددنيا ګټه غواړئ نو له الله سره ستاسې له پاره دولجې ډېرې زياتې شتمنی شته . اخر په همدې حالت كښې خو تاسې په خپله هم له دېنه مخكښې اخته شوي وئ. بيا الله پر تاسې مهربانه شو، له دې امله له غور نه كار واخلئ ، تاسې چې څه كوئ الله پرې خبر دی.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ فَتَبَیَّنُوۡا وَ لَا تَقُوۡلُوۡا لِمَنۡ اَلۡقٰۤی اِلَیۡکُمُ السَّلٰمَ لَسۡتَ مُؤۡمِنًا ۚ تَبۡتَغُوۡنَ عَرَضَ الۡحَیٰوۃِ الدُّنۡیَا ۫ فَعِنۡدَ اللّٰہِ مَغَانِمُ کَثِیۡرَۃٌ ؕ کَذٰلِکَ کُنۡتُمۡ مِّنۡ قَبۡلُ فَمَنَّ اللّٰہُ عَلَیۡکُمۡ فَتَبَیَّنُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرًا (۹۴)

له مسلمانانو څخه هغه كسان چې بې عذره په خپلو كورونو كښې ناست دي او هغه كسان چې د الله په لار كښې په سر او مال جهاد كوي ، ددواړو حيثيت يو شان نه دی. الله د ناستو په پرتله د هغو كسانو درجه چې په سر او مال جهاد كوي ډېره لوړه ګرځولې ده . كه څه هم له هر يوه سره الله دښېګڼې وعده كړېده ، خو د هغه په وړاندې د مجاهدينو د خدمتونو بدله له ناستو كسانو څخه ډېره زياته ده ،

لَا یَسۡتَوِی الۡقٰعِدُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ غَیۡرُ اُولِی الضَّرَرِ وَ الۡمُجٰہِدُوۡنَ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ بِاَمۡوَالِہِمۡ وَ اَنۡفُسِہِمۡ ؕ فَضَّلَ اللّٰہُ الۡمُجٰہِدِیۡنَ بِاَمۡوَالِہِمۡ وَ اَنۡفُسِہِمۡ عَلَی الۡقٰعِدِیۡنَ دَرَجَۃً ؕ وَ کُلًّا وَّعَدَ اللّٰہُ الۡحُسۡنٰی ؕ وَ فَضَّلَ اللّٰہُ الۡمُجٰہِدِیۡنَ عَلَی الۡقٰعِدِیۡنَ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۹۵)

د هغو له پاره د الله له خوا سترې درجې دي او بښنه او رحمت دی ، او الله لوی بښونكی او رحم كوونكی دی.

دَرَجٰتٍ مِّنۡہُ وَ مَغۡفِرَۃً وَّ رَحۡمَۃً ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا (۹۶)

كومو خلكو چې پر خپلو نفسونو (دهجرت په نه كولو) ظلم كاوه پرښتو له هغو څخه د هغو د سا اخيستلو په وخت كښې پوښتنه وكړه چې تاسې په څه حال كښې اخته وئ؟ هغوی ځواب وركړ چې مونږ په ځمكه كښې كمزوري او مجبور وو پرښتو وويل، ايا د خدای ځمكه پراخه نه وه چې تاسې په هغې كښې هجرت كړی وای؟ دا هغه خلك دي چې استوګنځی يې دوزخ دی او هغه ډېر بد استوګنځی دی.

اِنَّ الَّذِیۡنَ تَوَفّٰہُمُ الۡمَلٰٓئِکَۃُ ظَالِمِیۡۤ اَنۡفُسِہِمۡ قَالُوۡا فِیۡمَ کُنۡتُمۡ ؕ قَالُوۡا کُنَّا مُسۡتَضۡعَفِیۡنَ فِی الۡاَرۡضِ ؕ قَالُوۡۤا اَلَمۡ تَکُنۡ اَرۡضُ اللّٰہِ وَاسِعَۃً فَتُہَاجِرُوۡا فِیۡہَا ؕ فَاُولٰٓئِکَ مَاۡوٰىہُمۡ جَہَنَّمُ ؕ وَ سَآءَتۡ مَصِیۡرًا (۹۷)

هو ، كوم نارينه ، ښځې او ماشومان چې په رېښتيا بېوسې دي او د وتلو كومه لاره او وسيله نه مومي ، هغوې مستثنا دي

اِلَّا الۡمُسۡتَضۡعَفِیۡنَ مِنَ الرِّجَالِ وَ النِّسَآءِ وَ الۡوِلۡدَانِ لَا یَسۡتَطِیۡعُوۡنَ حِیۡلَۃً وَّ لَا یَہۡتَدُوۡنَ سَبِیۡلًا (۹۸)

نوكېدای شي چې الله هغو ته بښنه وكړي، الله لوی بښونكی او تيرېدونكی دی.

فَاُولٰٓئِکَ عَسَی اللّٰہُ اَنۡ یَّعۡفُوَ عَنۡہُمۡ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ عَفُوًّا غَفُوۡرًا (۹۹)

څوك چې د الله په لار كښې هجرت وكړي هغوی به په ځمكه كښې د پناه اخيستلو ډېر ځايونه او د ژوند تېرولو له پاره ډېره پراخي ومومي، او څوك چې له خپله كوره د الله او پيغمبر خوا ته د هجرت كولو له پاره ووځي ، بيا په لاره كښې ورته مرګ راشي د هغه ثواب د الله پر ذمه واجب شو، الله ډېر بښونكی او رحيم دی.

وَ مَنۡ یُّہَاجِرۡ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ یَجِدۡ فِی الۡاَرۡضِ مُرٰغَمًا کَثِیۡرًا وَّ سَعَۃً ؕ وَ مَنۡ یَّخۡرُجۡ مِنۡۢ بَیۡتِہٖ مُہَاجِرًا اِلَی اللّٰہِ وَ رَسُوۡلِہٖ ثُمَّ یُدۡرِکۡہُ الۡمَوۡتُ فَقَدۡ وَقَعَ اَجۡرُہٗ عَلَی اللّٰہِ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا (۱۰۰)

او کله چې تاسې په سفر ووتلئ نو څه باك نشته که په لمانځه کښې لنډوالی وکړئ ( په تېره بيا ) کله چې تاسې سره دا وېره وي چې کافران به مو وځوروي ځکه چې کافرانو په ښکاره ځرګنده ستاسې دښمنی ته ملا تړلې ده.

وَ اِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِی الۡاَرۡضِ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ اَنۡ تَقۡصُرُوۡا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنۡ خِفۡتُمۡ اَنۡ يَّفۡتِنَكُمُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا ؕ اِنَّ الۡكٰفِرِيۡنَ كَانُوۡا لَكُمۡ عَدُوًّا مُّبِيۡنًا (۱۰۱)

او ای پېغمبره ! کله چې ته د مسلمانانو په مينځ کښې يې او (دجنګ په حالت کښې ) له هغو سره په لمانځه ولاړ يې؛ نو په کار ده چې له هغو څخه يوه ډله دې له تا سره ودرېږي او وسله يې بايد اخيستې وي ، بيا چې کله هغوی سجده وکړه؛ نو په وروسته دې لاړ شي او هغه بله ډله چې تر اوسه يې لمونځ نه دی کړی رادې شي او له تا سره دې لمونځ وکړي او هغه دې هم تيارسې او په وسله سنبال اوسي، ځکه چې کافران دې ته څارو دي چې که تاسې له خپلو وسلو او خپلو تجهيزاتو نه لږ شان غافل شئ؛ نو هغوی به پر تاسې يو وار توی شي. البته که تاسې د باران له امله تکليف احساس کړئ يا ناروغان اوسئ نو په وسله ايښودلو کښې څه باك نشته ، خو بيا هم څارواوسئ . باور ولرئ چې الله د کافرانو له پاره رسوا کوونکی عذاب تيار کړيدی.

وَ اِذَا كُنۡتَ فِيۡهِمۡ فَاَقَمۡتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ فَلۡتَقُمۡ طَآئِفَةٌ مِّنۡهُمۡ مَّعَكَ وَ لۡيَاۡخُذُوۡۤا اَسۡلِحَتَهُمۡ ۟ فَاِذَا سَجَدُوۡا فَلۡيَكُوۡنُوۡا مِنۡ وَّرَآئِكُمۡ ۪ وَ لۡتَاۡتِ طَآئِفَةٌ اُخۡرٰى لَمۡ يُصَلُّوۡا فَلۡيُصَلُّوۡا مَعَكَ وَ لۡيَاۡخُذُوۡا حِذۡرَهُمۡ وَ اَسۡلِحَتَهُمۡ ۚ وَدَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡ تَغۡفُلُوۡنَ عَنۡ اَسۡلِحَتِكُمۡ وَ اَمۡتِعَتِكُمۡ فَيَمِيۡلُوۡنَ عَلَيۡكُمۡ مَّيۡلَةً وَّاحِدَةً ؕ وَ لَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ اِنۡ كَانَ بِكُمۡ اَذًى مِّنۡ مَّطَرٍ اَوۡ كُنۡتُمۡ مَّرۡضٰۤى اَنۡ تَضَعُوۡۤا اَسۡلِحَتَكُمۡ ۚ وَ خُذُوۡا حِذۡرَكُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابًا مُّهِيۡنًا (۱۰۲)

بيا کله چې له لمانځه څخه وزګار شئ نو دولاړې او ناستې او ملاستې په هر حالت کښې الله يادوئ . او کله چې ډاډه شئ نو پوره لمونځ ادا کړئ. لمونځ په حقيقت کښې يوداسې فرض دی چې دوخت له پابندی سره پر مؤمنانو لازم کړای شويدی.

فَاِذَا قَضَيۡتُمُ الصَّلٰوةَ فَاذۡكُرُوا اللّٰهَ قِيٰمًا وَّ قُعُوۡدًا وَّ عَلٰى جُنُوۡبِكُمۡ ۚ فَاِذَا اطۡمَاۡنَنۡتُمۡ فَاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ ۚ اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتۡ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ كِتٰبًا مَّوۡقُوۡتًا (۱۰۳)

ددښمنې ډلې په تعقيبولو کښې سستې مه کوئ که تاسې کړاوْ ګالئ نو ستاسې په شان هغوی هم کړاوْ ګالي . او تاسې له الله نه د هغه څه هيله من ياست چې هغوی يې هيله من نه دي الله پر هر څه پوهېږئ او الله د حکمت او پوهې خاوند دی.

وَ لَا تَهِنُوۡا فِی ابۡتِغَآءِ الۡقَوۡمِ ؕ اِنۡ تَكُوۡنُوۡا تَاۡلَمُوۡنَ فَاِنَّهُمۡ يَاۡلَمُوۡنَ كَمَا تَاۡلَمُوۡنَ ۚ وَ تَرۡجُوۡنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرۡجُوۡنَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا (۱۰۴)

ای پېغمبره ! مونږ دا کتاب په حقه ستا لوري ته درلېږلی دی تر څو هغه سمه لاره چې الله در ښودلې له هغې سره سمه د خلکو په منيځ کښې فيصله وکړې، ته د خائنانو له خوا جګړه کوونکی مه کېږه ،

اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ لِتَحۡكُمَ بَيۡنَ النَّاسِ بِمَاۤ اَرٰٮكَ اللّٰهُ ؕ وَ لَا تَكُنۡ لِّلۡخَآئِنِيۡنَ خَصِيۡمًا (۱۰۵)ۙ

له الله نه ښښنه وغواړه ، هغه ستر ښښونکی او رحيم دی.

وَّ اسۡتَغۡفِرِ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (۱۰۶)ۚ

کوم کسان چې له خپل ځان سره خيانت کوي ته د هغو ملاتړ مه کوه. د الله هغه څوك نه خوښېږي چې خائن او د ګناه پر لار روان وي.

وَ لَا تُجَادِلۡ عَنِ الَّذِيۡنَ يَخۡتَانُوۡنَ اَنۡفُسَهُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنۡ كَانَ خَوَّانًا اَثِيۡمًا (۱۰۷)ۚۙ

دا خلك کولای شي چې له انسانانو څخه خپل کړه وړه پټ کړي خو له خدای څخه يې نه شي پټولای، هغه خو په هغه وخت کښې هم له هغو سره وي چې کله دوی د شپې له مخې په پټه د هغه د رضا پر خلاف مشورې کوي. ددوی پر ټولو کړو وړو د الله علم چاپېر دی.

يَّسۡتَخۡفُوۡنَ مِنَ النَّاسِ وَ لَا يَسۡتَخۡفُوۡنَ مِنَ اللّٰهِ وَ هُوَ مَعَهُمۡ اِذۡ يُبَيِّتُوۡنَ مَا لَا يَرۡضٰى مِنَ الۡقَوۡلِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعۡمَلُوۡنَ مُحِيۡطًا (۱۰۸)

هو! تاسي خو په دنيوي ژوندانه کښي ددې مجرمانو جنګ پر خپل سرواخيست خو د قيامت په ورځ به ددوی له لوري څوك جګړه وکړي؟ ښه نو هلته به څوك ددوی وکالت وکړي؟

هٰۤاَنۡتُمۡ هٰۤؤُلَآءِ جٰدَلۡتُمۡ عَنۡهُمۡ فِی الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا ۟ فَمَنۡ یُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنۡهُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ اَمۡ مَّنۡ یَّكُوۡنُ عَلَیۡهِمۡ وَكِیۡلًا (۱۰۹)

که څوك بد عمل وکړي يا پر خپل ځان ظلم وکړي او له هغه وروسته له الله څخه ښنه وغواړي نو الله به ښنونکی او رحيم ومومي.

وَ مَنۡ یَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا اَوۡ یَظۡلِمۡ نَفۡسَهٗ ثُمَّ یَسۡتَغۡفِرِ اللّٰهَ یَجِدِ اللّٰهَ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا (۱۱۰)

خو څوك چې بدي وګټي نو د هغه دا ګټه به د هماغه له پاره وبال وي. الله پر ټولو خبرو خبر دی او هغه د پوهي او حکمت خاوند دی.

وَ مَنۡ یَّكۡسِبۡ اِثۡمًا فَاِنَّمَا یَكۡسِبُهٗ عَلٰی نَفۡسِهٖ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِیۡمًا حَكِیۡمًا (۱۱۱)

او چاچې کومه خطا يا ګناه وکړه او د هغې توريې پر کوم بې ګناه ولګاوه هغه نو د لوی بهتان او څرګندې ګناه پېټی وتاړه.

وَ مَنۡ یَّكۡسِبۡ خَطِیۡٓـَٔةً اَوۡ اِثۡمًا ثُمَّ یَرۡمِ بِهٖ بَرِیۡٓـًٔا فَقَدِ احۡتَمَلَ بُهۡتَانًا وَّ اِثۡمًا مُّبِیۡنًا (۱۱۲)

ای پېغمبره ! که د الله فضل پر تا نه وای او د هغه د رحمت نه برخمن نه وای نو د هغو يوې ډلې خو په غلط پوهنه کښي ستا د غورځولو فيصله کړې وه ، په داسي حال کښي چې په حقيقت کښي هغو له خپله ځانه پرته هيڅګوك په غلط پوهنه کښي نه غورځوه او تا ته يې هېڅ زيان نه شو اړولای. الله پر تا کتاب او حکمت نازل کړيدی او تا ته يې هغه څه ښودلي دي چې تا ته معلوم نه وو، او پر تا د الله مهرباني ډېره زياته ده.

وَ لَوۡ لَا فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَیۡكَ وَ رَحۡمَتُهٗ لَهَمَّتۡ طَّآئِفَةٌ مِّنۡهُمۡ اَنۡ یُّضِلُّوۡكَ ؕ وَ مَا یُضِلُّوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَهُمۡ وَ مَا یَضُرُّوۡنَكَ مِنۡ شَیۡءٍ ؕ وَ اَنۡزَلَ اللّٰهُ عَلَیۡكَ الۡكِتٰبَ وَ الۡحِكۡمَةَ وَ عَلَّمَكَ مَا لَمۡ تَكُنۡ تَعۡلَمُ ؕ وَ كَانَ فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَیۡكَ عَظِیۡمًا (۱۱۳)

د خلکو په پټو مجلسونو کښي زياتره څه ښېګڼه نه وي. هو ، که څوك په پټه توګه د صدقې او خيرات لارښوونه وکړي يا د کوم ښه کار له پاره ياد خلکو په چارو کښي د اصلاح کولو له پاره چاته څه ووايي نو البته دا ښه خبره ده ، او څوك چې د الله د خوشالولو په خاطر داسي وکړي هغه ته به مونږ لوی ثواب ور په برخه کړو؛

لَا خَیۡرَ فِیۡ كَثِیۡرٍ مِّنۡ نَّجۡوٰىهُمۡ اِلَّا مَنۡ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوۡ مَعۡرُوۡفٍ اَوۡ اِصۡلَاحٍۭ بَیۡنَ النَّاسِ ؕ وَ مَنۡ یَّفۡعَلۡ ذٰلِكَ ابۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ اللّٰهِ فَسَوۡفَ نُؤۡتِیۡهِ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۱۱۴)

خو چا چې د پېغمبر د ښمنی ته ملاتړلې وي او د مؤمنانو له طريقې نه پرته په کومه بله لاره لاړ شي ، په داسي حال کښي چې سمه لاره ورته څرګنده شوې وي؛ نو هغه به مونږ په هماغه لوري وخوځوو چې هغه لوري ته هغه په خپله ورګرځېدلی او هغه به دوزخ ته ننباسو چې خورا بد استوګنځی دی.

وَ مَنۡ یُّشَاقِقِ الرَّسُوۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا تَبَیَّنَ لَهُ الۡهُدٰی وَ یَتَّبِعۡ غَیۡرَ سَبِیۡلِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰی وَ نُصۡلِهٖ جَهَنَّمَ ؕ وَ سَآءَتۡ مَصِیۡرًا (۱۱۵)

د الله په وړاندې يوازې د شرك ښنه نشته ، له هغه پرته نور ټول څه ښنل کيدای شي چا ته چې هغه ښنه کول وغواړي. چاچې له الله سره څوك شريك وګاڼه هغه په ګمراهی کښي له حق نه ډېر ليرې لاړ.

اِنَّ اللّٰهَ لَا یَغۡفِرُ اَنۡ یُّشۡرَكَ بِهٖ وَ یَغۡفِرُ مَا دُوۡنَ ذٰلِكَ لِمَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ مَنۡ یُّشۡرِكۡ بِاللّٰهِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلٰلًۢا بَعِیۡدًا (۱۱۶)

هغوی له خدايه پرته د ښځينه بتانو بندګي کوي. هغوی هغه باغي شيطان معبود ګرځوي.

اِنۡ یَّدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اِلَّاۤ اِنٰثًا ۚ وَ اِنۡ یَّدۡعُوۡنَ اِلَّا شَیۡطٰنًا مَّرِیۡدًا (۱۱۷)

چې الله هغه لعنتي کړيدی ( هغوی د هغه شيطان اطاعت کوي ) چې هغه الله ته ويلي وو چې " زه به ستا له بندګانو نه يوه ټاکلې برخه واخلم ،

لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَ قَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنۡ عِبَادِكَ نَصِیۡبًا مَّفۡرُوۡضًا (۱۱۸)

وَّ لَاُضِلَّنَّہُمۡ وَ لَاُمَنِّیَنَّہُمۡ وَ لَاٰمُرَنَّہُمۡ فَلَیُبَتِّکُنَّ اٰذَانَ الۡاَنۡعَامِ وَ لَاٰمُرَنَّہُمۡ فَلَیُغَیِّرُنَّ خَلۡقَ اللّٰہِ ؕ وَ مَنۡ یَّتَّخِذِ الشَّیۡطٰنَ وَلِیًّا مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ فَقَدۡ خَسِرَ خُسۡرَانًا مُّبِیۡنًا (۱۱۹)ؕ

زه به هغوی منحرف کړم ، زه به هغوی په هیلو کښې لتاړ کړم، زه به هغو ته امر وکړم او هغوی به زما په امر د څارویو غوږونه څیرې کړي او زه به هغو ته امر وکړم او هغوی به زما په امر په خدایي ساخت او پیدایښت کښې ردوبدل راولي" چا چې دا شیطان د الله پر ځای خپل ولي او سرپرست ونیو هغه په ښکاره زیان کښې وغورځېد.

یَعِدُہُمۡ وَ یُمَنِّیۡہِمۡ ؕ وَ مَا یَعِدُہُمُ الشَّیۡطٰنُ اِلَّا غُرُوۡرًا (۱۲۰)

هغه له دې خلکو سره وعدې کوي، او هغوی په هیلو کښې اچوي، خوله دوې سره د شیطان ټولې وعدې له غولولو پرته نور څه نه دي .

اُولٰٓئِکَ مَاۡوٰىہُمۡ جَہَنَّمُ ۫ وَ لَا یَجِدُوۡنَ عَنۡہَا مَحِیۡصًا (۱۲۱)

ددې خلکو استوګنځی دوزخ دی چې له هغه نه به دوی د ژغورنې هېڅ لاره ونه مومي.

وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدۡخِلُہُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَاۤ اَبَدًا ؕ وَعۡدَ اللّٰہِ حَقًّا ؕ وَ مَنۡ اَصۡدَقُ مِنَ اللّٰہِ قِیۡلًا (۱۲۲)

پاتې شول هغه خلك چې ایمان راوړي او ښه کارونه وکړي، نو مونږ به هغوی داسې باغونو ته ننباسو چې تر هغو لاندې به ویالې بهېږي او هغوی به په کښې د تل له پاره استوګن وي. دا دالله رېښتینې وعده ده او له الله نه به زیات څوك په خپله خبره کښې رېښتینی وي.

لَیۡسَ بِاَمَانِیِّکُمۡ وَ لَاۤ اَمَانِیِّ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ ؕ مَنۡ یَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا یُّجۡزَ بِہٖ ۙ وَ لَا یَجِدۡ لَہٗ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ وَلِیًّا وَّ لَا نَصِیۡرًا (۱۲۳)

دچارو عاقبت نه ستاسې په هیلو پورې تړلی دی نه دا هل کتابو په هیلو پورې . هر څوك چې بد وکړي د هغه سزا به ومومي او د الله په مقابله کښې به د ځان له پاره هېڅ کوم ملاتړ او مرستندوی ونه شي میندلای.

وَ مَنۡ یَّعۡمَلۡ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنۡ ذَکَرٍ اَوۡ اُنۡثٰی وَ ہُوَ مُؤۡمِنٌ فَاُولٰٓئِکَ یَدۡخُلُوۡنَ الۡجَنَّۃَ وَ لَا یُظۡلَمُوۡنَ نَقِیۡرًا (۱۲۴)

او څوك چې ښه عملونه وکړي، که هغه نارینه وي او که ښځه ، په دې شرط چې هغه مؤمن وي، نو همداسې خلك به جنت ته ننوځي او د یوې ذرې په اندازه به پر هغو ظلم ونه شي.

وَ مَنۡ اَحۡسَنُ دِیۡنًا مِّمَّنۡ اَسۡلَمَ وَجۡہَہٗ لِلّٰہِ وَ ہُوَ مُحۡسِنٌ وَّ اتَّبَعَ مِلَّۃَ اِبۡرٰہِیۡمَ حَنِیۡفًا ؕ وَ اتَّخَذَ اللّٰہُ اِبۡرٰہِیۡمَ خَلِیۡلًا (۱۲۵)

له هغه چانه بل د چا دژوند لاره غوره کېدای شي چې هغه د الله په وړاندې د بندګۍ سر ښکته کړ او په نیکو کاری یې لاس پورې کړ په یوه لاره لورې روان شو د ابراهیم (ع) د مسلك پیروي یې وکړه ، د هغه ابراهیم د مسلك چې الله هغه په دوستۍ نیولی وْ.

وَ لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ بِکُلِّ شَیۡءٍ مُّحِیۡطًا (۱۲۶)

په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر څه دي د الله دي او د الله علم په هر څه چاپېر دی.

وَ یَسۡتَفۡتُوۡنَکَ فِی النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰہُ یُفۡتِیۡکُمۡ فِیۡہِنَّ ۙ وَ مَا یُتۡلٰی عَلَیۡکُمۡ فِی الۡکِتٰبِ فِیۡ یَتٰمَی النِّسَآءِ الّٰتِیۡ لَا تُؤۡتُوۡنَہُنَّ مَا کُتِبَ لَہُنَّ وَ تَرۡغَبُوۡنَ اَنۡ تَنۡکِحُوۡہُنَّ وَ الۡمُسۡتَضۡعَفِیۡنَ مِنَ الۡوِلۡدَانِ ۙ وَ اَنۡ تَقُوۡمُوۡا لِلۡیَتٰمٰی بِالۡقِسۡطِ ؕ وَ مَا تَفۡعَلُوۡا مِنۡ خَیۡرٍ فَاِنَّ اللّٰہَ کَانَ بِہٖ عَلِیۡمًا (۱۲۷)

خلك له تانه د ښځو په باب فتوی غواړي. ووایه الله تاسې ته د هغو په باب فتوی درکوي. او ددې ترڅنګ هغه حکمونه هم در زده کوي چې له پخوا راهیسې تاسې ته په دې کتاب کښې لوستل کېږي؛ یعنې د هغو یتیمو نجنو په باب حکمونه چې تاسې د هغو حقوق نه ورکوئ او له هغو سره نکاح کولو نه ډډه کوئ ( یا د دسیسې په اساس تاسې په خپله غواړئ چې نکاح ورسره وکړئ ) او د بیوزلو بېوسې ماشومانو په باب حکمونه. الله تاسې ته لارښوونه کوي چې د یتیمانو په حق کښې پر عدالت ولاړ اوسئ، او تاسې چې کومه ښېګڼه وکړئ هغه به د الله له علم نه پټه پاتې نه شي.

کله چې کومه ښځه د خپل مېړه له ناوړه چلن یا مخ اړونې څخه په وېره کښې وي نو هېڅ باك نشته که مېړه او مېرمن ( د څه حقوقو پر کمولو زیاتولو) په خپلو مینځو کښې روغه جوړه وکړي. روغه جوړه په هر حال ډېره ښه ده. نفس د زړه تنګۍ خوا ته ډېر ژر میلان کوي، خو که تاسې د احسان له لارې چلن وکړئ او له خدایه ووېرېږي ، نو باور ولرئ چې الله ستاسې له دې ډول کړو وړو نه با خبره دي.

وَ اِنِ امۡرَاَةٌ خَافَتۡ مِنۡۢ بَعۡلِهَا نُشُوۡزًا اَوۡ اِعۡرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَاۤ اَنۡ يُّصۡلِحَا بَيۡنَهُمَا صُلۡحًا ؕ وَ الصُّلۡحُ خَيۡرٌ ؕ وَ اُحۡضِرَتِ الۡاَنۡفُسُ الشُّحَّ ؕ وَ اِنۡ تُحۡسِنُوۡا وَ تَتَّقُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرًا (۱۲۸)

د ښځو په مینځ کښې په ټوله معنا عدالت ستاسې په وس کښې نشته. که تاسې وغواړی هم نه یې شئ کولای. له دې امله ( د ا لهي قانون د هدف تر سره کولو له پاره دا کافي ده چې) دیوې ښځې لوري ته دومره میلان مه کوئ چې هاخوا هغه بله بې برخلیکه پرېږدئ. که تاسې خپل کړه وړه سم کړئ او له الله نه په وېره کښې اوسئ نو الله ښښونکی او رحم کوونکی دی.

وَ لَنۡ تَسۡتَطِيۡعُوۡۤا اَنۡ تَعۡدِلُوۡا بَيۡنَ النِّسَآءِ وَ لَوۡ حَرَصۡتُمۡ فَلَا تَمِيۡلُوۡا كُلَّ الۡمَيۡلِ فَتَذَرُوۡهَا كَالۡمُعَلَّقَةِ ؕ وَ اِنۡ تُصۡلِحُوۡا وَ تَتَّقُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (۱۲۹)

خو که مېړه ارتینه یو له بله بېل هم شي ؛ نو الله به په خپل پراخ قدرت سره هر یو بل ته له محتاجۍ نه بې نیازه کړي. د الله دلوریني لمن ډېره ارته ده او هغه دحکمت خاوند دی.

وَ اِنۡ يَّتَفَرَّقَا يُغۡنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنۡ سَعَتِهٖ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيۡمًا (۱۳۰)

په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر څه دي ټول د همدې الله دي له تاسې نه مخکښې چې مونږ چاته کتاب ورکړی وْ هغو ته مو هم همدا لارښودنه کړې وه او تاسې ته هم اوس همدا لارښودنه کوو چې د خدای له وېرې سره کار وکړئ؛ خو که تاسې یې نه منئ نو مه یې منئ ، د اسمانونو اوځمکې د ټولو شیانوخښتن یوازې الله دی او هغه بې نیازه دی، د هرې ثنا ستاینې مستحق دی.

وَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ لَقَدۡ وَصَّيۡنَا الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَ اِيَّاكُمۡ اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَ اِنۡ تَكۡفُرُوۡا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيۡدًا (۱۳۱)

هو ، د هغو ټولو شیانو چې په اسمانونو او ځمکه کښې دي یوازې همدا الله مالك دی، او د کار سازۍ له پاره صرف هماغه کافي دی.

وَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيۡلًا (۱۳۲)

که هغه وغواړي نو ای خلکو تاسې به ایسته کړي او ستاسې پر ځای به نور خلك راولي، او هغه په دې پوره برلاسی دی.

اِنۡ يَّشَاۡ يُذۡهِبۡكُمۡ اَيُّهَا النَّاسُ وَ يَاۡتِ بِاٰخَرِيۡنَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيۡرًا (۱۳۳)

څوك چې صرف ددنیا د ثواب غوښتونکی وي هغه ته دې دا څرګنده وي چې له الله سره ددنیا ثواب هم شته او د اخرت ثواب هم ، او الله اورېدونکی او د هر څه لیدونکی دی.

مَنۡ كَانَ يُرِيۡدُ ثَوَابَ الدُّنۡيَا فَعِنۡدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنۡيَا وَ الۡاٰخِرَةِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ سَمِيۡعًۢا بَصِيۡرًا (۱۳۴)

ای مؤمنانو ! د عدالت علمبرداران او د خدای له پاره شاهدان اوسئ که څه هم چې ستاسې د عدالت کولو او شاهدۍ زیان په خپله تاسې یا ستاسې مور او پلار یا ستاسې خپلو خپلوانو ته راجع کېږي هم. د معاملې لوری شتمن وي او که بیوزلی ، الله له تاسې نه زیات د هغه خیر غوښتونکی دی. په دې اساس د خپلو نفسي غوښتنو د پیروۍ له امله عدالت مه پرېږدئ . او که تاسې ګډې وډې وواياست یا له رښتیا ویلو نه ډډه وکړئ نو وپوهېږئ تاسې چې څه کوئ الله پرې خبر دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كُوۡنُوۡا قَوّٰمِيۡنَ بِالۡقِسۡطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَ لَوۡ عَلٰٓى اَنۡفُسِكُمۡ اَوِ الۡوَالِدَيۡنِ وَ الۡاَقۡرَبِيۡنَ ۚ اِنۡ يَّكُنۡ غَنِيًّا اَوۡ فَقِيۡرًا فَاللّٰهُ اَوۡلٰى بِهِمَا ۫ فَلَا تَتَّبِعُوا الۡهَوٰٓى اَنۡ تَعۡدِلُوۡا ۚ وَ اِنۡ تَلۡوٗۤا اَوۡ تُعۡرِضُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرًا (۱۳۵)

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ الْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَ الْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَ مَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ كُتُبِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا (۱۳۶)

اى موْمنانو ! پر الله او پر رسول او پر هغه كتاب ايمان راوړئ چي الله پر خپل پيغمبر نازل كړيدى. او پر هر هغه كتاب چي له دي نه مخكښي يې نازل كړيدى چاچي له الله ، د هغه له پرښتو ، د هغه له كتابونو ، د هغه له رسولانو او د اخرت له ورځي نه انكار وكړ هغه په ګمراهى كښي سرګردان ډېر لري لاړ.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَ لَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا (۱۳۷)ؕ

پاتي شول هغه كسان چي ايمان يې راوړ بيا كافر شول ، بيا يې ايمان راوړ بيا كافر شول بيا په خپل كفر كښي يې زيات پر مختك وكړ؛ نو الله به هېڅكله هغو ته ښښنه ونه كړي او نه به هېڅكله هغو ته سمه لاروښيي

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا (۱۳۸)ۙ

او منافقانو ته (چي موْمنان پرېږدي له كافرانو سره ملګرتيا كوي) دا زيرى واوروه چي د هغو له پاره دردناكه سزا تياره ده.

الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا (۱۳۹)ؕ

هغه كسان چي مومنان پرېږدى، له كافرانو سره ددوستى اړيكي ټينګوى ايا دا خلك د عزت لاس ته راوړلو له پاره هغو ته ورځي؟ په داسي حال كښي چي هر راز عزت يوازې د الله له پاره دى.

وَ قَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَ يُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَ الْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا (۱۴۰)ۙ

الله په دې كتاب كښي تاسګي ته پخوا امر كړيدى چي كه په هر ځاى كښي واورئ چي د الله د ايتونو پر خلاف اواز پورته كېږي او مسخرې ورپورې كېږي هلته مه كښېنئ تر هغه چي خلك په كومه بله خبره كښي مصروف شي. اوس كه تاسي داسي كوئ نو تاسي هم د هغو په څېر ياست. باور ولرئ چي الله منافقان او كافران په دوزخ كښي يو ځاى راغونډوي.

الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ وَ اِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَ نَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَ لَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا (۱۴۱)

داكافران ستاسي په باب انتظار باسي، ( چي د تلې كومه پله درنېږي) ،كه د الله له لوري برى ستاسي په برخه شي نو رابه شي و به وايي ايا مونږ له تاسي سره نه وو؟ كه د كافرانو لپاره دبري څه برخه وي؛ نو هغو ته به ووايي چي ايا مونږ دانه شول كولاى چي ستاسي پر خلاف وجنګېږو او سره له دې هم مونږ تاسي له مسلمانانو څخه وساتلئ؟ ښه نو الله به ستاسي او د هغو معامله داخرت په ورځ فيصله كړي او ( په دې فيصله كښي ) الله د كافرانو له پاره پر مسلمانانو د بر لاس كيدو هېڅ كومه لاره نه ده جوړه كړې.

اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَ هُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَ اِذَا قَامُوْٓا اِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ۙ يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَ لَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا (۱۴۲)ۖ

دا منافقان له الله سره د غولوني كار كوي په داسي حال كښي چي په حقيقت كښي الله هغوى په غولېدنه كښي غورځولي دي. كله چي دوى لمانځه ته پاځېږي نو صرف خلكو ته د ښودانې له پاره مړ ژواندي پاځېږي او خداى ډېر لږ يادوي.

مُّذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَ لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ؕ وَ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا (۱۴۳)

د كفر او اسلام په مينځ كښي حيران او زړه نازړه دي. نه پوره دې خوا ته دي نه پوره ها خوا ته . څوك چي خداى ګمراه كړى وي ته هغه ته كومه لاره نه شي ميندلاى.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا (۱۴۴)

اى موْ منانو ! د موْمنانو په ځاى له كافرانو سره ملګرتيا مه كوئ، ايا تاسي دا غواړئ چي الله ته د ځان پر خلاف څرګند سند وركړئ؟

باور ولرئ چي منافقان به ددوزخ تر ټولو لاندينی طبقې ته لاړ شي او ته به هېڅوك د هغوی مرستندوی ونه مومې.

اِنَّ الۡمُنٰفِقِيۡنَ فِى الدَّرۡكِ الۡاَسۡفَلِ مِنَ النَّارِ‌ ۚ وَلَنۡ تَجِدَ لَهُمۡ نَصِيۡرًا (۱۴۵)

البته له هغو څخه چي کوم کسان توبه وباسي او خپل کړه وړه سم کړي او د الله دهدايت لمن ونيسي او خپل دين د الله له پاره خالص وګرځوي، داسي خلك له مؤمنانو سره دي او الله به مؤمنانو ته ارو مرو لوی ثواب په برخه کړي.

اِلَّا الَّذِيۡنَ تَابُوۡا وَاَصۡلَحُوۡا وَاعۡتَصَمُوۡا بِاللّٰهِ وَاَخۡلَصُوۡا دِيۡنَهُمۡ لِلّٰهِ فَاُولٰٓـئِكَ مَعَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ‌ ؕ وَسَوۡفَ يُؤۡتِ اللّٰهُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اَجۡرًا عَظِيۡمًا (۱۴۶)

كه تاسي شكر كوونكي بندګان اوسئ او دايمان لاره غوره كړئ نو دخدای په دې كښي څه دي چي ارومرو دې سزا دركړي. الله ډېر قدر دان او د ټولو په حال عالم دي.

مَا يَفۡعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمۡ اِنۡ شَكَرۡتُمۡ وَاٰمَنۡتُمۡ‌ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيۡمًا (۱۴۷)

الله دانه خوښوي چي انسان په بده وينا په ښكاره خوله پرانيزي ، مګر دا چي پر يو چاظلم شوی وي، او الله دهرڅه اورېدونكی او په هرڅه پوهيدونكی دی.

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الۡجَـهۡرَ بِالسُّوۡۤءِ مِنَ الۡقَوۡلِ اِلَّا مَنۡ ظُلِمَ‌ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيۡعًا عَلِيۡمًا (۱۴۸)

كه څه هم د مظلوميت په صورت كښي تاسي د بدې وينا حق لرئ) )
خو كه تاسي په ښكاره او په پټه ښېګڼه كوئ، يا لږ تر لږه له بدی
نه سترګي پټي كړئ، نو د الله هم همدا صفت دی چي هغه ستر
.ښنونكی دی په داسي حال كښي چي په سزا وركولو پوره قادر دی

اِنۡ تُبۡدُوۡا خَيۡرًا اَوۡ تُخۡفُوۡهُ اَوۡ تَعۡفُوۡا عَنۡ سُوۡۤءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيۡرًا (۱۴۹)

كوم خلك چي پر الله او د هغه پر پېغمبرانو كافر كېږي، او غواړي چي د خدای او د هغه د پېغمبرانو په مينځ كښي توپير وكړي، او وايي چي مونږ به ځيني ومنو او ځيني به ونه منو ، او د كفر او ايمان په مينځ كښي د يوې لارې ويستلو اراده لري،

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَكۡفُرُوۡنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ يُّفَرِّقُوۡا بَيۡنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيَقُوۡلُوۡنَ نُؤۡمِنُ بِبَعۡضٍ وَّنَكۡفُرُ بِبَعۡضٍ ۙ وَّيُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ يَّتَّخِذُوۡا بَيۡنَ ذٰلِكَ سَبِيۡلًا (۱۵۰)

هغوی ټول پاخه كافران دي او دداسي كافرانو له پاره مونږ هغه عذاب تيار كړيدی چي د هغو رسوا كوونكی او سپكوونكی به وي.

اُولٰٓـئِكَ هُمُ الۡكٰفِرُوۡنَ حَقًّا‌ ۚ وَاَعۡتَدۡنَا لِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابًا مُّهِيۡنًا (۱۵۱)

ددې پر خلاف كوم كسان چي الله او د هغه ټول پېغمبران ومني ، او د هغو تر مينځه توپير ونه كړي ، هغو ته به مونږ ارومرو د هغو ثواب وركړو ، او الله ډېر لوی ښنونكی او رحم كوونكی دی.

وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمۡ يُفَرِّقُوۡا بَيۡنَ اَحَدٍ مِّنۡهُمۡ اُولٰٓـئِكَ سَوۡفَ يُؤۡتِيۡهِمۡ اُجُوۡرَهُمۡ‌ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (۱۵۲)

دا اهل كتاب كه نن له تا څخه غوښتنه كوي چي له اسمان څخه كومه ليكنه پر هغو نازل كړه؛ نو له دې نه ډېرې غټې مجرمانه غوښتنې دوی مخكښي له موسی (ع) څخه كړيدي. هغه ته دوی ويلي وو چي مونږ ته په څرګند ډول خدای راوښيه او د همدې سركشی له امله په ناڅاپي توګه پرې تندر راالويدلی وُ. بيا دوی خوسكی خپل معبود ونيو، په داسي حال كښي چي دوی ښكاره څرګندې نښې نښاني ليدلي وې. د هغې له پاسه هم مونږ له دې ورتېر شو و. مونږ موسی (ع) ته ښكاره فرمان وركړ.

يَسۡـئَلُكَ اَهۡلُ الۡكِتٰبِ اَنۡ تُنَزِّلَ عَلَيۡهِمۡ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ‌ فَقَدۡ سَاَلُوۡا مُوۡسٰٓى اَكۡبَرَ مِنۡ ذٰلِكَ فَقَالُوۡۤا اَرِنَا اللّٰهَ جَهۡرَةً فَاَخَذَتۡهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلۡمِهِمۡ‌ ۚ ثُمَّ اتَّخَذُوا الۡعِجۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُمُ الۡبَيِّنٰتُ فَعَفَوۡنَا عَنۡ ذٰلِكَ‌ ۚ وَاٰتَيۡنَا مُوۡسٰى سُلۡطٰنًا مُّبِيۡنًا (۱۵۳)

او پردې خلكو مو طور راپورته كړ له دوی نه مو ( د هغه فرمان د اطاعت ) وعده واخيستله . مونږ دوی ته امر وكړ چي په دروازه كښي سجده كوونكي ننوځئ. مونږ دوی ته وويل چي د سبت قانون مه ماتوئ او پر هغه مو له دوی نه كلكه وعده واخيستله .

وَرَفَعۡنَا فَوۡقَهُمُ الطُّوۡرَ بِمِيۡثَاقِهِمۡ وَقُلۡنَا لَهُمُ ادۡخُلُوا الۡبَابَ سُجَّدًا وَّقُلۡنَا لَهُمۡ لَا تَعۡدُوۡا فِى السَّبۡتِ وَاَخَذۡنَا مِنۡهُمۡ مِّيۡثَاقًا غَلِيۡظًا (۱۵۴)

په پای کښي ددوی دوعدي ماتولو له امله ، او له دي کبله چي دوی د الله ایتونه ونه منل ، او يو شمېر پېغمبران يي په ناحقه ووژل ، او تر دي پوري يي وويل چي زمونږ زړونه پوښل شويدي ، په داسي حال کښي چي په حقيقت کښي ددوی د باطل پرستيو په سبب الله ددوی پر زړونو مهر لګولی دی او له همدې امله دوی ډېر لږ ایمان راوړي.

فَبِمَا نَقۡضِہِمۡ مِّیۡثَاقَہُمۡ وَ کُفۡرِہِمۡ بِاٰیٰتِ اللّٰہِ وَ قَتۡلِہِمُ الۡاَنۡۢبِیَآءَ بِغَیۡرِ حَقٍّ وَّ قَوۡلِہِمۡ قُلُوۡبُنَا غُلۡفٌ ؕ بَلۡ طَبَعَ اللّٰہُ عَلَیۡہَا بِکُفۡرِہِمۡ فَلَا یُؤۡمِنُوۡنَ اِلَّا قَلِیۡلًا (۱۵۵)

له دي کبله چي بيا يي په خپل کفر کښي دومره پر مختګ وکړ چي پر مريم يي غټ بهتان ولګاو ،

وَّ بِکُفۡرِہِمۡ وَ قَوۡلِہِمۡ عَلٰی مَرۡیَمَ بُہۡتَانًا عَظِیۡمًا (۱۵۶)

اوله دي امله چي په خپله يي وويل چي مونږ دالله پېغمبرمسيح عيسى بن مريم وژلی دی حال دا چي دواقعيت له مخي هغو نه هغه وژلی او نه يي په دار ځړولی دی؛ بلکي موضوع د هغو له پاره مشتبه وګرځول شوه او کومو خلکو چي د هغه په باب اختلاف کړيدی هغويي هم په اصل کښي په شك کښي لويدلي دي، له هغو سره په دي باب هېڅ علم نشته ، صرف د ګومان پيروي ده . هغوی په يقيني توګه مسيح نه دی وژلی ؛

وَّ قَوۡلِہِمۡ اِنَّا قَتَلۡنَا الۡمَسِیۡحَ عِیۡسَی ابۡنَ مَرۡیَمَ رَسُوۡلَ اللّٰہِ ۚ وَ مَا قَتَلُوۡہُ وَ مَا صَلَبُوۡہُ وَ لٰکِنۡ شُبِّہَ لَہُمۡ ؕ وَ اِنَّ الَّذِیۡنَ اخۡتَلَفُوۡا فِیۡہِ لَفِیۡ شَکٍّ مِّنۡہُ ؕ مَا لَہُمۡ بِہٖ مِنۡ عِلۡمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَ مَا قَتَلُوۡہُ یَقِیۡنًا (۱۵۷)

بلکي الله هغه خپل لوري ته اوچت کړ، الله ډېر زيات زوراور او د حکمت څښتن دی.

بَلۡ رَّفَعَہُ اللّٰہُ اِلَیۡہِ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ عَزِیۡزًا حَکِیۡمًا (۱۵۸)

او له اهل کتابو نه به هېڅوك داسي نه وي چي د هغه له مرګ نه مخکښي پر هغه ايمان را نه وړي او د قيامت په ورځ به هغه پر هغو شاهدي ووايي،

وَ اِنۡ مِّنۡ اَہۡلِ الۡکِتٰبِ اِلَّا لَیُؤۡمِنَنَّ بِہٖ قَبۡلَ مَوۡتِہٖ ۚ وَ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ یَکُوۡنُ عَلَیۡہِمۡ شَہِیۡدًا (۱۵۹)

لنډه دا چي ددي يهودي ګرځېدونکيو د همدې ظالمانه چار چلن له مخي ، مونږ پر دوی زياتره هغه پاك شيان حرام کړل چي مخکښي ورته حلال وو، او پردې اساس چي دوی د خدای له لارې څخه ډېر زيات منع کول کوي،

فَبِظُلۡمٍ مِّنَ الَّذِیۡنَ ہَادُوۡا حَرَّمۡنَا عَلَیۡہِمۡ طَیِّبٰتٍ اُحِلَّتۡ لَہُمۡ وَ بِصَدِّہِمۡ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ کَثِیۡرًا (۱۶۰)

او (بل په دې چي دوی) سوداخلي چي له هغه نه دوی منع کړای شوي وو ، او په ناروا توګه د خلکو مالونه خوري، او کوم خلك چي له دوی څخه کافران دي د هغو له پاره مونږ دردناك عذاب تيار کړيدی.

وَّ اَخۡذِہِمُ الرِّبٰوا وَ قَدۡ نُہُوۡا عَنۡہُ وَ اَکۡلِہِمۡ اَمۡوَالَ النَّاسِ بِالۡبَاطِلِ ؕ وَ اَعۡتَدۡنَا لِلۡکٰفِرِیۡنَ مِنۡہُمۡ عَذَابًا اَلِیۡمًا (۱۶۱)

خو په هغو کښي چي څوك د پاخه علم خاوندان دي او ايمان لرونکي دي هغوی ټول پر هغه هدايت ايمان راوړي چي ستا لوري ته نازل کړای شويدی او پر هغه چي له تا څخه مخکښي نازل کړای شوی وْ دغه ډول ايمان راوړونکو او د لمانځه او زکات ادا کوونکو او پر الله او د اخرت په ورځ ريښتيني عقيده لرونکو خلکو ته به مونږ ارو مرو ستر ثواب ور په برخه کړو.

لٰکِنِ الرّٰسِخُوۡنَ فِی الۡعِلۡمِ مِنۡہُمۡ وَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ یُؤۡمِنُوۡنَ بِمَاۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡکَ وَ مَاۤ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِکَ وَ الۡمُقِیۡمِیۡنَ الصَّلٰوۃَ وَ الۡمُؤۡتُوۡنَ الزَّکٰوۃَ وَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ ؕ اُولٰٓئِکَ سَنُؤۡتِیۡہِمۡ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۱۶۲)

ای محمده (ص) ! مونږ تا ته په هماغه شان وحيي لېږلي ده لکه چي نوح (ع) او له هغه وروسته پېغمبرانو ته مو لېږلي وه ، مونږ ابراهيم (ع) ، اسمعيل (ع) ، اسحق (ع) ، يعقوب (ع) او ديعقوب (ع) ځوځات ، عيسى (ع) ، ايوب (ع) ، يونس (ع) ، هارون (ع) او سليمان (ع) ته وحيي ولېږله او مونږ داوْد ته زبور ورکړ.

اِنَّاۤ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡکَ کَمَاۤ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلٰی نُوۡحٍ وَّ النَّبِیّٖنَ مِنۡۢ بَعۡدِہٖ ۚ وَ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلٰۤی اِبۡرٰہِیۡمَ وَ اِسۡمٰعِیۡلَ وَ اِسۡحٰقَ وَ یَعۡقُوۡبَ وَ الۡاَسۡبَاطِ وَ عِیۡسٰی وَ اَیُّوۡبَ وَ یُوۡنُسَ وَ ہٰرُوۡنَ وَ سُلَیۡمٰنَ ۚ وَ اٰتَیۡنَا دَاوٗدَ زَبُوۡرًا (۱۶۳)

وَ رُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْکَ مِنْ قَبْلُ وَ رُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْکَ ؕ وَ كَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا (۱۶۴)ۚ

او مونږ پر هغو پیغمبرانو هم وحیي نازله کړې چې د هغو یادونه مو له دې نه مخکښې تا ته کړېده او پر هغو پیغمبرانو هم چې د هغو یادونه مو تاته نه ده کړې . الله له موسی (ع) سره داسې خبرې کړې دي لکه څنګه چې خبرې کیږي ،

رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَ مُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ الرُّسُلِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا (۱۶۵)

دا ټول پیغمبران زیری ورکوونکي او وېروونکي لیږل شوي وو چې د هغو له پیغمبر کولو نه وروسته له خلکو سره د الله په مقابله کښې څه سند پاتې نه شي او الله په هر حال غالب او حکیم دی.

لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَاۤ اَنْزَلَ اِلَيْکَ اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ ۚ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا (۱۶۶)ؕ

که خلك يې نه مني نو نه دې مني ) خو الله شاهدي وهي چې څه ) چې هغه پر تا نازل کړيدي په خپل علم سره يې نازل کړيدي ، او پر دې پرښتې هم شاهداني دي که څه هم چې د ا لله شاهد کیدل بیخي .کفایت کوي

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ صَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَدْ ضَلُّوْا ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا (۱۶۷)

کوم خلك چې دده له منلو څخه هم په خپله منکرېږي او هم نور د خدای له لارې نه منع کوي هغوی په یقیني توګه له حق نه ډېر لرې په ګمراهۍ کښې لويدلي دي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ ظَلَمُوْا لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَ لَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا (۱۶۸)ۙ

په همدې ډول کومو کسانو چې د کفر او سرغړونې لاره غوره کړه او ظلم او تيري ته يې ملا وتړله الله به هیڅکله هغوی ته بښنه ونه کړي او هغوی ته به لاره ونه ښيي؛

اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ وَ كَانَ ذٰلِکَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا (۱۶۹)

مګر د دوزخ لاره چې هلته به هغوی تل اوسيدونکي وي. د الله له پاره دا څه ګرانه خبره نه ده.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ؕ وَ اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا (۱۷۰)

ای خلکو! دا پیغمبر تاسې ته ستاسې د رب له لوري له حق سره درغلی دی، نو ایمان راوړئ ، همدا ستاسې له پاره ډېره ښه ده ، او که ویې نه منئ وپوهيږئ چې په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر څه دي ، ټول د الله دي او الله هم د علم خاوند دی او هم د حکمت ،

يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ وَ لَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ اِنَّمَا الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ كَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَاۤ اِلٰى مَرْيَمَ وَ رُوْحٌ مِّنْهُ ۫ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ ۚ وَ لَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ ؕ اِنْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ؕ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ؕ سُبْحٰنَهٗۤ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ ۘ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الْاَرْضِ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا (۱۷۱)

ای اهل کتابو! په خپل دين کښې افراط مکوئ او الله ته له حقه پرته بله هیڅ خبره مه منسوبوئ. مسیح عیسی بن مریم له دې پرته چې د الله يوپيغمبر او يو فرمان وْ نور څه نه وْ چې الله مريم ته وليږه او د الله له لوري يو روح وْ ( چې د مريم په رحم کښې يې د ماشوم بڼه غوره کړه ) نو تاسې پر الله او د هغه پر پيغمبرانو ايمان راوړئ. او مه وائي چې (خدای) " درې " ګونی دي منع شئ ، همدا ستاسې له پاره ډېره ښه ده ، الله صرف همدا يو الله دی. هغه له دې نه لوړ دی چې کوم څوك د هغه زوی اوسي د اسمانونو او ځمکې ټول شيان د هغه ملکيت دی او د هغو دساتنې څارنې له پاره يوازې هماغه کافي دی.

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَ لَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ وَ مَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ يَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا (۱۷۲)

مسیح هیڅکله دا خبره شرم نه ګڼي چې هغه د الله يو بنده اوسي، او نه مقربې پرښتې دا خبره دځان له پاره شرم ګڼي. که څوك د الله بندګي د ځان له پاره شرم ګڼګي او لويي کوي نو يو وخت به راشي چې الله ټول را ايسار کړي خپلې مخې ته يې ودروي.

په هغه وخت کښې به هغه خلك چې ايمان يې راوړيدی او نيك عمل يې غوره کړيدی نو الله به هغوی ته د هغوی ثوابونه پوره ورکړي او د خپلې لورينې له مخې به هغو ته زيات اجر ور په برخه کړي، او کومو خلکو چې بندګي شرم ګڼلې او لويي يې کړېده هغو ته به الله دردناك عذاب ورکړي او له الله نه پرته چې هغوی د هرچا په ساتنه پالنه او مرسته ډاډه دي له هغو نه به هېڅوك هغوی هلته ونه مومي.

فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيۡهِمۡ اُجُوۡرَهُمۡ وَ يَزِيۡدُهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ ۚ وَ اَمَّا الَّذِيۡنَ اسۡتَنۡكَفُوۡا وَ اسۡتَكۡبَرُوۡا فَيُعَذِّبُهُمۡ عَذَابًا اَلِيۡمًا ۙ وَّ لَا يَجِدُوۡنَ لَهُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيۡرًا (۱۷۳)

ای خلکو! ستاسې درب له لوري تاسې ته روښانه دليل راغلی دی او مونږ ستاسې لوري ته داسې روښنايي درلېږلې ده چې تاسې ته په ښکاره څرګنده لارښوونکې ده.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدۡ جَآءَكُمۡ بُرۡهَانٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ وَ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكُمۡ نُوۡرًا مُّبِيۡنًا (۱۷۴)

اوس چې کوم کسان د الله خبره ومني او د هغه د پناه په لټه کښې شي الله به هغوی ته د خپل رحمت او د خپلې پېرزوينې او مهربانی په لمن کښې ځای ورکړي او خپل لوري ته دراتګ به ورته سمه لاره وښيي.

فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَ اعۡتَصَمُوۡا بِهٖ فَسَيُدۡخِلُهُمۡ فِىۡ رَحۡمَةٍ مِّنۡهُ وَ فَضۡلٍ ۙ وَّ يَهۡدِيۡهِمۡ اِلَيۡهِ صِرَاطًا مُّسۡتَقِيۡمًا (۱۷۵)ؕ

خلك له تاڅخه (د کلا له په باب) فتوی غواړي. ووايه الله تاسې ته دکلاله په هکله فتوی درکوي. که څوك بې اولاده ومري (اوپلار يې هم نه وي) او د هغه يوه خور وي؛ نو هغه به د هغه مړي نيمايي ترکه واخلي، او که خور بې اولاده ومري؛ نو ورور به د هغې وارث وي. که د مړي وارثان دوه خويندې وي نو هغوی به د ترکې له دريېو نه ددوو برخو حقدارې وي ، او که ډېر ورونه خويندې وي نو د هر نارينه به د هرې ښځې په تناسب دوه چنده برخه وي. الله تاسې ته حکمونه تشريح کوي ، چې تاسې لار ورکي نشئ او الله پر هر شي پوه دی.

يَسۡتَفۡتُوۡنَكَ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفۡتِيۡكُمۡ فِى الۡكَلٰلَةِ ؕ اِنِ امۡرُؤٌا هَلَكَ لَيۡسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّ لَهٗۤ اُخۡتٌ فَلَهَا نِصۡفُ مَا تَرَكَ ۚ وَ هُوَ يَرِثُهَاۤ اِنۡ لَّمۡ يَكُنۡ لَّهَا وَلَدٌ ؕ فَاِنۡ كَانَتَا اثۡنَتَيۡنِ فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا تَرَكَ ؕ وَ اِنۡ كَانُوۡۤا اِخۡوَةً رِّجَالًا وَّ نِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ الۡاُنۡثَيَيۡنِ ؕ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمۡ اَنۡ تَضِلُّوۡا ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ (۱۷۶)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ ٱللّٰهِ ٱلرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ای مؤمنانو! د عهدونو او بنديزونو پوره مراعات وکړئ ستاسې له پاره د څاروېو ټول ډولونه حلال وګرځول شول ، پرته له هغو چې وړاندې به تاسې ته وښودل شي. خو داحرام په حال کښې ښکار کول ځان ته مه روا کوئ، بېشکه الله چې څه غواړي حکم کوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَوۡفُوۡا بِالۡعُقُوۡدِ ؕ اُحِلَّتۡ لَكُمۡ بَهِيۡمَةُ الۡاَنۡعَامِ اِلَّا مَا يُتۡلٰى عَلَيۡكُمۡ غَيۡرَ مُحِلِّى الصَّيۡدِ وَ اَنۡتُمۡ حُرُمٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَحۡكُمُ مَا يُرِيۡدُ (۱)

ای موْ منانو ! د خدای پالنې د نښو نښانو بې حرمتي مه کوئ مه له حرامو میاشتو نه کومه یوه حلالوئ ، مه د قربانۍ څاروېو ته لاس غځوئ ، مه هغو څاروېو ته لاس ور وړئ چې د هغو په غاړو کښې خدای ته د نذرانې په توګه پټۍ اچول شوې وي، مه هغه خلك ځوروئ چې د خپل رب د فضل او د هغه د خوشالۍ په لټه کښې د ( کعبې ) د محترم کور په لوري ځي هو، کله چې داحرام حالت ایسته شي؛ نو تاسې ښکار کولای شئ او ګورئ یوې ډلې چې ستاسې له پاره د مسجد حرام لاره بنده کړېده؛ نو پر هغې ستاسې غوسه دې تاسې دومره تاوْجن نه کړي چې تاسې هم د هغو پر خلاف په ناروا تېرېو لاس پورې کړئ ،نه ! کوم کارونه چې د نیکۍ او خدای پالنې دي په هغو کښې له ټولو سره مرسته وکړئ او کوم کارونه چې د ګناه او تیري وي په هغوکښې د هېچا ملاتړ مه کوئ . له الله نه ووېرېږئ، د الله عذاب ډېر سخت دی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَ لَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَ لَا الْهَدْىَ وَ لَا الْقَلَآئِدَ وَ لَاۤ اٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَ رِضْوَانًا ؕ وَ اِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ۪ وَ لَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ ۪ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (۲)

پر تاسې حرامه کړای شوه مرداره ، وینه ، دخوګ غوښه ، هغه څاروی چې له خدایه پرته د کوم بل چا په نوم ذبحه کړای شوی وي، هغه چې په ستوني خپه کېدو ، په زخمي کېدو یا له لوړې نه په راغورځېدو ، مړ شوی وي، یا بل څاروي په ښکر وهلی مړ شوي وي یا هغه چې کوم ځناور څېرې کړی وي پرته له هغه چې تاسې هغه ژوندی موندلی او ذبحه کړی وي او هغه څاروی چې د کوم چا په دربار کښې ذبحه کړای شوی وي همدا رنګه دا هم ستاسې له پاره ناروا ده چې د فال پر غشو خپل اغبال وګورئ دا ټول کارونه فسق دی.نن کافران ستاسې ددین له خوا پوره ناهیلي شویدي نو تاسې له هغو څخه مه وېرېږي ؛ بلکې له مانه ووېرېږئ نن ما ستاسې دین ستاسې له پاره بشپړ کړیدی او خپل نعمت مې پر تاسې پوره کړیدی او ستاسې له پاره مې اسلام ستاسې ددین په توګه منظور کړیدی ( له دې کبله د حلالو او حرامو کوم بندیزونه چې پر تاسې لګول شویدي د هغو مراعات وکړئ ) البته څوك چې له لوږې نه اړ ووځي او له هغو نه څه شی وخوري بې له دې چې د ګناه خوا ته یې میلان وي؛ نو بېشکه چې الله ښنونکی او رحم کوونکی دی.

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَ الدَّمُ وَ لَحْمُ الْخِنْزِيْرِ وَ مَاۤ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَ الْمُنْخَنِقَةُ وَ الْمَوْقُوْذَةُ وَ الْمُتَرَدِّيَةُ وَ النَّطِيْحَةُ وَ مَاۤ اَكَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ ۟ وَ مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَ اَنْ تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ ؕ ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ؕ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَ اخْشَوْنِ ؕ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَ اَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِىْ وَ رَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ؕ فَمَنِ اضْطُرَّ فِىْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۳)

خلك له تانه پوښتنه کوي چې هغو ته څه شی حلال کړای شویدي ، ووایه تاسې ته ټول پاك شیان حلال کړای شویدي او کوم ښکاري ځناور چې تاسې اموخته کړی وي هغو ته مو د خدای درکړي علم په اساس دښکار تعلیم ورکړی وي هغه ځناور چې کوم شی ستاسې له پاره ونیسي د هغه خوراك هم تاسې ته روا دی ، البته پر هغه د الله نوم واخلئ او د الله د قانون له ماتولو نه ووېرېږئ ، د الله په حساب اخیستنه کښې څه ځنډ نه راځي.

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَاۤ اُحِلَّ لَهُمْ ؕ قُلْ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۙ وَ مَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ ۫ فَكُلُوْا مِمَّاۤ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَ اذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ ۪ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (۴)

اَلۡيَوۡمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ وَ طَعَامُ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمۡ ۖ وَ طَعَامُكُمۡ حِلٌّ لَّهُمۡ ۙ وَ الۡمُحۡصَنٰتُ مِنَ الۡمُؤۡمِنٰتِ وَ الۡمُحۡصَنٰتُ مِنَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ اِذَاۤ اٰتَيۡتُمُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ مُحۡصِنِيۡنَ غَيۡرَ مُسٰفِحِيۡنَ وَ لَا مُتَّخِذِىۡۤ اَخۡدَانٍ ؕ وَ مَنۡ يَّكۡفُرۡ بِالۡاِيۡمَانِ فَقَدۡ حَبِطَ عَمَلُهٗ ۫ وَ هُوَ فِى الۡاٰخِرَةِ مِنَ الۡخٰسِرِيۡنَ (٥)

نن ستاسي له پاره ټول پاك شيان حلال كړاى شويدي. دا هل كتابو خواړه ستاسي له پاره حلال دي او ستاسي خواړه د هغو له پاره حلال دي. او پاك لمنې ښځې هم ستاسي له پاره حلالې دي كه هغوى د مؤمنانو له ډلې څخه وي يا له هغو قومونو څخه چې هغو ته له تاسي نه مخكښې كتاب وركړ شوى وْ، په دې شرط چې تاسي د هغو مهر وركړئ په نكاح كښې د هغوى ساتونكي اوسئ ، نه دا چې په ازادې شهوت رانى لاس پورې كړئ يا په پټه په غلا يارانې وكړئ. او چا چې د ايمان پر تګلاره له تلو نه انكار وكړ ؛ نو د هغه د ژوند ټول كړه وړه بابېزه شول او هغه به په اخرت كښې تش لاس بيوزلى وي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا قُمۡتُمۡ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغۡسِلُوۡا وُجُوۡهَكُمۡ وَ اَيۡدِيَكُمۡ اِلَى الۡمَرَافِقِ وَ امۡسَحُوۡا بِرُءُوۡسِكُمۡ وَ اَرۡجُلَكُمۡ اِلَى الۡكَعۡبَيۡنِ ؕ وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوۡا ؕ وَ اِنۡ كُنۡتُمۡ مَّرۡضٰۤى اَوۡ عَلٰى سَفَرٍ اَوۡ جَآءَ اَحَدٌ مِّنۡكُمۡ مِّنَ الۡغَآئِطِ اَوۡ لٰمَسۡتُمُ النِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُوۡا مَآءً فَتَيَمَّمُوۡا صَعِيۡدًا طَيِّبًا فَامۡسَحُوۡا بِوُجُوۡهِكُمۡ وَ اَيۡدِيۡكُمۡ مِّنۡهُ ؕ مَا يُرِيۡدُ اللّٰهُ لِيَجۡعَلَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ حَرَجٍ وَّ لٰكِنۡ يُّرِيۡدُ لِيُطَهِّرَكُمۡ وَ لِيُتِمَّ نِعۡمَتَهٗ عَلَيۡكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ (٦)

اى مؤمنانو ! كله چې تاسي د لمانځه له پاره پاڅيدئ؛(اوبې اودسه يئ) نو بايد چې خپل مخونه او لاسونه تر څنګلو پورې ووينځئ ، پر سرونو باندې لاسونه راكاږئ او پښې تر پنكېو پورې ووينځئ. اوكه د جنابت په حال كښې ياست ؛ نو په لمبلو ځان پاك كړئ. كه ناروغان يا مسافر ياست ، يا له تاسي نه كوم څوك له حاجت پوره كولو نه راشي يا تاسي پر ښځو لاس لګولى (جماع مو كړي) وي ، او اوبه ونه مومئ ، نو له پاكې خاورې نه كار واخلئ، پر هغې لاسونه ووهئ پر خپلو مخونو او لاسو يې راكاږئ . الله نه غواړي چې ژوند در باندې تنګ كړي ، هغه خو غواړي چې تاسي سوتره كړي او خپل نعمت پر تاسي پوره كړي ، ښايي چې تاسي شكر ويستونكي شئ.

وَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ وَ مِيۡثَاقَهُ الَّذِىۡ وَاثَقَكُمۡ بِهٖۤ ۙ اِذۡ قُلۡتُمۡ سَمِعۡنَا وَ اَطَعۡنَا ۫ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ (٧)

الله چې تاسي ته كوم نعمت دركړيدى هغه په ياد ساتئ او هغه پوخ لوز او تړون مه هېروئ چې له هغه سره تاسي كړيدى؛ يعني ستاسي دا وينا چې "مونږ واورېدل او اطاعت مو ومانه " له الله نه ووېرېږئ، الله آن د زړه پر رازونو پوهېږي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كُوۡنُوۡا قَوّٰمِيۡنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالۡقِسۡطِ ۫ وَ لَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَاٰنُ قَوۡمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعۡدِلُوۡا ؕ اِعۡدِلُوۡا ۫ هُوَ اَقۡرَبُ لِلتَّقۡوٰى ۫ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيۡرٌۢ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ (٨)

اى مؤمنانو ! د الله له پاره پر رېښتينولى ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ د كومې ډلې دښمني دې تاسي دومره را ونه پاروي چې له عدالت نه واوړئ عدالت وكړئ ، دا له تقوا سره نژدې اړيكه لري. د الله له وېرې سره كار كوئ ، هر څه چې تاسي كوئ الله پرې پوره خبر دى.

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ لَهُمۡ مَّغۡفِرَةٌ وَّ اَجۡرٌ عَظِيۡمٌ (٩)

كوم كسان چې ايمان راوړي او غوره عملونه سرته رسوي الله له هغو سره وعده كړېده چې د هغوې ګناهونه به وبښل شي او هغو ته به ستر ثواب ور په برخه شي.

وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ الۡجَحِيۡمِ (١٠)

پاتې شول) هغه خلك چې كافر شي او د الله ايتونه دروغ وګڼي ، نو ) .هغوى دوزخ ته تلونكي دي

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتَ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ اِذۡ هَمَّ قَوۡمٌ اَنۡ يَّبۡسُطُوۡۤا اِلَيۡكُمۡ اَيۡدِيَهُمۡ فَكَفَّ اَيۡدِيَهُمۡ عَنۡكُمۡ ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ (١١)

اى مؤمنانو! د الله هغه احسان درياد كړئ چې هغه ( اوس اوس ) پر تاسي كړيدى چې يوې ډلې تاسي ته د لاس غځوني اراده كړې وه؛ خو الله پر تاسي د هغو لاسونه پورته كولو ته پرې نښودل. له الله نه په وېرېدو كار كوونكي اوسئ، د ايمان خاوندان بايد پر الله ډاډه وي.

الله له بني اسرائيلو نه پخه وعده اخيستي وه او په هغو کښې مونږ دولس نقيبان ټاکلي وو او هغو ته الله ويلي وو چې " زه له تاسي سره يم ، که تاسي لمونځ وکړ ، زکات مو ورکړ ، زما پيغمبران مو ومنل ، دهغو ملاتړ مو وکړ او خپل خدای ته مو ښه پور ورکړ؛ نو باور ولرئ چې زه به ستاسي ګناوې له تاسي څخه ايسته کړم او تاسي به داسي باغونو ته ننباسم چې تر هغو لاندې به ويالي بهيږي ، خو له دې وروسته چې له تاسي نه چا د کفر چلن غوره کړ؛ نو په حقيقت کښې هغه " دعدل او اعتدال سمه لاره" ورکه کړه ".

وَ لَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِىْ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَ بَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَىْ عَشَرَ نَقِيْبًا ؕ وَ قَالَ اللّٰهُ اِنِّىْ مَعَكُمْ ؕ لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَ اٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَ اٰمَنْتُمْ بِرُسُلِىْ وَ عَزَّرْتُمُوْهُمْ وَ اَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَ لَاُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ (۱۲)

بيا دا د هغو خپله وعده ماتول وو چې د هغي له امله مونږ هغوی له خپل رحمت څخه ليرې وغورځول او د هغو زړونه مو سخت کړل. اوس د هغو حال دادی چې الفاظ سرچپه اړوي له يو ډول خبرې نه بل ډول خبره جوړوي، کومه ښوونه چې هغو ته شوې وه د هغو زياته برخه يې هېره کړېده ، او هره ورځ تا ته د هغو يونه يو خيانت څرګندېږي. له هغوی څخه ډېر لږ کسان له دې عيب څخه ژغورل شويدي ( نو کله چې دغه حالت ته رسيدلي دي نو چې هر ډول بد عملي وکړي د هماغه هيله ورڅخه کېږي ) نو له دې امله هغوی ته ښنه وکړه او د هغو له حرکتونو څخه سترګي پټوونکی اوسه ، الله هغه خلك خوښوي چې د احسان چار چلن ولري.

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَ جَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَ نَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۚ وَ لَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَ اصْفَحْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ (۱۳)

په همدې ډول مونږ له هغو خلکو څخه هم پخه وعده اخيستي وه چې هغوويلي وو چې مونږ "نصارا " يو،خو هغو ته هم چې کوم درس ورکړای شوی وْ د هغه زياته برخه هغو هېره کړه ، په پای کښې مونږ د هغو په مينځ کښې تر قيامته پورې ددښمنی او په خپلو کښې د تاوْتريخوالي تخم وکره ، او ارو مرو به يو وخت راشي چې الله هغو ته وښيي چې هغوی په دنيا کښې څه جوړ کړيدي.

وَ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْا اِنَّا نَصٰرٰى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۪ فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَ الْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ وَ سَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ (۱۴)

ای اهل کتابو! زمونږ پيغمبر تاسي ته راغلی دی چې تاسي ته د ا لهی کتاب زياتره هغه خبرې لوڅوي چې تاسي ورباندې پرده غوړوله ، او له ډېرو خبرو نه در تېرېږي هم. تاسي ته د الله له لوري روښنايي راغلي ده او يو حق برسېرروونکی کتاب.

يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَ يَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ؕ قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّ كِتٰبٌ مُّبِيْنٌ (۱۵) ۙ

چې د هغه په وسيله الله تعالی هغو خلکو ته چې د هغه د رضا غوښتونکي دي د سلامتيا لارې ښيي. او په خپل امر سره هغوی له تړږميو څخه راباسي د رڼا لوري ته يې راولي او د سمې لارې په لوري د هغو رهبري کوي.

يَّهْدِىْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَ يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِهٖ وَ يَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۱۶)

هغه کسان په يقيني توګه کافر شول چې ويې ويل همدا مسيح بن مريم خدای دی. ای محمده ! دوی ته ووايه چې که خدای وغواړي چې مسيح بن مريم ، د هغه مور او د ځمکي ټول اوسيدونکي هلاك کړي؛ نو څوك کولای شي چې هغه له دغې ارادې نه منع کړای شي؟ الله خو داسمانونو او ځمکي او د ټولو هغو شيانو څښتن دی چې د ځمکي او اسمانونو په مينځ کښې ميندل کيږي، هر څه چې غواړي هستوي يې او الله په هر څه قادر دی.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ۭ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَ اُمَّهٗ وَ مَنْ فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۭ وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ۭ يَخْلُقُ مَا يَشَاۗءُ ۭ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۱۷)

يهوديان او نصارا وايي چې مونږ د الله زامن او د هغه ډير ګران دوستان يو ، له هغو نه پوښتنه وکړه ، نو هغه ستاسي په ګناهونو تاسي ته سزا ولي درکوي؟ په حقيقت کښې تاسي هم هماغسي انسانان ياست لکه چې نور انسانان خدای پيدا کړيدي هغه چې چا ته وغواړي ښښنه کوي او چاته يې چې خوښه شي سزا ورکوي. اسمانونه او ځمکه او د هغو تر منځ ټول موجودات د الله ملکيت دی، او د هماغه لوري ته د ټولو ورتګ دی.

وَ قَالَتِ الْيَهُوْدُ وَ النَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰۗؤُا اللّٰهِ وَ اَحِبَّاۗؤُهٗ ۭ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ۭ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ۡ وَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ (۱۸)

ای اهل کتابو! زمونږ دا پيغمبر په داسي وخت کښې تاسي ته راغلی دی او دين په څرګنده توګه در ښيي چې له يوې مودې راهيسي د پيغمبرانو د راتګ لړۍ بنده وه ، تر څو بيا تاسي دا ونه ويلای شئ چې مونږ ته کوم زيری کوونکی او ويروونکی نه دی راغلی؛ نو ګورئ ! اوس هغه زيری کوونکی او ويروونکی راغی او الله پر هر څه قادر دی.

يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَاۗءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَاۗءَنَا مِنْۢ بَشِيْرٍ وَّ لَا نَذِيْرٍ ۡ فَقَدْ جَاۗءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّ نَذِيْرٌ ۭ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۱۹)

په ياد ولرئ کله چې موسی خپل قوم ته ويلي وو چې " ای زما قومه ! د الله هغه نعمت در په زړه کړئ چې هغه تاسي ته درپه برخه کړی وْ هغه په تاسي کښې پيغمبران پيدا کړل ، تاسي يې فرمان روايان وګرځولئ، او تاسي ته يې هغه څه درکړل چې په نړۍ کښې يې هيچا ته نه وو ورکړي .

وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَاۗءَ وَ جَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ڰ وَّ اٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ (۲۰)

ای قومه ! هغه سپيڅلي ځمکي ته ننوځئ چې الله ستاسي له پاره ليکلې ده ، پر شا مه اوړئ که نه نو ناکام او نامراده به وګرځئ".

يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَ لَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ (۲۱)

هغوی په ځواب کښې وويل" ای موسی ! هلته خو ډير زور ور خلك اوسيږي ، مونږ به هيڅکله هلته لاړ نه شو تر څو هغوی له هغه ځايه ونه وځي. هوکه هغوی ووتل نومونږ به دور ننوتلو له پاره چمتو يو".

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ڰ وَ اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ (۲۲)

په هغو ويرېدونکو کښې دوه تنه داسي هم وو چې پر هغو الله خپل نعمت پيرزو کړی وْ هغوی وويل چې " ددې جبارانو د مقابلې له پاره له دروازې نه دننه ورشئ ، کله چې تاسي دننه ورسيږئ نو تاسي به برلاسي ياست . پر الله ډاډه اوسئ که تاسي مؤمنان يئ.

قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ غٰلِبُوْنَ ۚ وَ عَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۲۳)

خو هغوی بيا همدا وويل چې " ای موسی ! مونږ به هلته هيڅکله ورنه شو تر څو چې هغوی هلته وي. ته او ستا رب ، دواړه لاړ شئ او وجنګيږئ مونږ دلته ناست يو ".

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَ رَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ (۲۴)

موسی وویل " ای زما پروردګاره ، زما په واك کښي هيڅ نشته بې زما له خپله ځانه او زما له ورور نه ، نو ته مونږ له دغو سرکشانو څخه بېل کړه "

قَالَ رَبِّ اِنِّیۡ لَاۤ اَمۡلِکُ اِلَّا نَفۡسِیۡ وَ اَخِیۡ فَافۡرُقۡ بَیۡنَنَا وَ بَیۡنَ الۡقَوۡمِ الۡفٰسِقِیۡنَ (٢٥)

الله ځواب ورکړ" ښه نو هغه هېواد تر څلوېښتو کلونو پورې پر دوی حرام دی ، دوی به په ځمکه کښي لا لهانده سر ګردانه وګرځي ، ددې سرکشانو پر حالت اندېښمن کېږه مه ".

قَالَ فَاِنَّہَا مُحَرَّمَۃٌ عَلَیۡہِمۡ اَرۡبَعِیۡنَ سَنَۃً ۚ یَتِیۡہُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ ؕ فَلَا تَاۡسَ عَلَی الۡقَوۡمِ الۡفٰسِقِیۡنَ (٢٦)

او دوی ته د ادم د دووزامنو قصه هم ښېږه واوروه کله چي هغوی دواړو قرباني وکړه نو له هغو څخه د يوه قرباني قبوله شوه او د بل قبوله نه شوه . هغه وویل" زه به تا ووژنم " هغه ځواب ورکړ" الله خو يوازې د پرهيزګارانو نذرونه قبلوي ،

وَ اتۡلُ عَلَیۡہِمۡ نَبَاَ ابۡنَیۡ اٰدَمَ بِالۡحَقِّ ۘ اِذۡ قَرَّبَا قُرۡبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنۡ اَحَدِہِمَا وَ لَمۡ یُتَقَبَّلۡ مِنَ الۡاٰخَرِ ؕ قَالَ لَاَقۡتُلَنَّکَ ؕ قَالَ اِنَّمَا یَتَقَبَّلُ اللّٰہُ مِنَ الۡمُتَّقِیۡنَ (٢٧)

که ته زما د وژلو له پاره لاس پورته کړې نو زه ستا د وژلو له پاره لاس نه پورته کوم، زه له رب العملين الله څګخه وېرېږم .

لَئِنۡۢ بَسَطۡتَّ اِلَیَّ یَدَکَ لِتَقۡتُلَنِیۡ مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ یَّدِیَ اِلَیۡکَ لِاَقۡتُلَکَ ۚ اِنِّیۡۤ اَخَافُ اللّٰہَ رَبَّ الۡعٰلَمِیۡنَ (٢٨)

زه غواړم چي زما او ستا خپله ګناه ستا پرغاړه شي او دوزخي شي . همدا د ظالمانو د ظلم ور سزا ده "

اِنِّیۡۤ اُرِیۡدُ اَنۡ تَبُوۡٓاَ بِاِثۡمِیۡ وَ اِثۡمِکَ فَتَکُوۡنَ مِنۡ اَصۡحٰبِ النَّارِ ۚ وَ ذٰلِکَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِیۡنَ (٢٩)

په پای کښي د هغه نفس د خپل ورور وژل د هغه له پاره اسان کړل نو هغه يې وواژه او د هغه په وژلو له هغو خلکو څخه شو چي زيان كاران دي.

فَطَوَّعَتۡ لَہٗ نَفۡسُہٗ قَتۡلَ اَخِیۡہِ فَقَتَلَہٗ فَاَصۡبَحَ مِنَ الۡخٰسِرِیۡنَ (٣٠)

بيا الله يو کار غه ولېږه چي د ځمکي په کيندلو يې لاس پورې کړ چي هغه ته وښيي چي د خپل ورور جوسه څنګه پټه کړي. ددې کار په ليدلو هغه وويل افسوس پر ما ! ما ددې کارغه په څېر هم ونه شو کړای چي د خپل ورور د جوسې د پټولو تدبير مي کړی وای. له هغه وروسته يې په خپلو کړو ډېره پښمانيتا وکړه.

فَبَعَثَ اللّٰہُ غُرَابًا یَّبۡحَثُ فِی الۡاَرۡضِ لِیُرِیَہٗ کَیۡفَ یُوَارِیۡ سَوۡءَۃَ اَخِیۡہِ ؕ قَالَ یٰوَیۡلَتٰۤی اَعَجَزۡتُ اَنۡ اَکُوۡنَ مِثۡلَ ہٰذَا الۡغُرَابِ فَاُوَارِیَ سَوۡءَۃَ اَخِیۡ ۚ فَاَصۡبَحَ مِنَ النّٰدِمِیۡنَ (٣١)

له همدې امله مونږ پر بني اسرائيلو دا فرمان ليکلی وُ چي " چاچي يو انسان دوينې له بدلې يا په ځمکه کښي له فساد خورولو پرته (په ناحقه) وواژه داسي وګڼه لکه چي هغه ټول انسانان ووژل او چاچي څوك له مرګه وژغوره داسي وګڼه لکه چي هغه ټولو انسانانو ته ژوند ور وبښه"؛ خو د هغو حال دادی چي هغو ته زمونږ پېغمبران پرله پسي له روښانه څرګندو لار ښودنو سره راغلل سره له دې هم د هغو زياتره کسان په ځمکه کښي زياتی کوونکي دي.

مِنۡ اَجۡلِ ذٰلِکَ ۚۛ کَتَبۡنَا عَلٰی بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ اَنَّہٗ مَنۡ قَتَلَ نَفۡسًۢا بِغَیۡرِ نَفۡسٍ اَوۡ فَسَادٍ فِی الۡاَرۡضِ فَکَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِیۡعًا ؕ وَ مَنۡ اَحۡیَاہَا فَکَاَنَّمَاۤ اَحۡیَا النَّاسَ جَمِیۡعًا ؕ وَ لَقَدۡ جَآءَتۡہُمۡ رُسُلُنَا بِالۡبَیِّنٰتِ ۫ ثُمَّ اِنَّ کَثِیۡرًا مِّنۡہُمۡ بَعۡدَ ذٰلِکَ فِی الۡاَرۡضِ لَمُسۡرِفُوۡنَ (٣٢)

کوم خلك چي له الله او د هغه له پېغمبر سره جنګېږي او په ځمکه کښي ددې له پاره منډې ترړې کوي چي فساد را ولاړ کړي د هغو سزا داده چي ووژل شي، يا په دار وځړول شي ، يا د هغوی لاسونه او پښي ردوبدلې غوڅې کړای شي ، يا له وطنه وشړل شي . دا ذلت او سپکاوی خو د هغو له پاره په دنيا کښي دی او په اخرت کښي د هغو له پاره له دې نه لويه سزا ده .

اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِیۡنَ یُحَارِبُوۡنَ اللّٰہَ وَ رَسُوۡلَہٗ وَ یَسۡعَوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ فَسَادًا اَنۡ یُّقَتَّلُوۡۤا اَوۡ یُصَلَّبُوۡۤا اَوۡ تُقَطَّعَ اَیۡدِیۡہِمۡ وَ اَرۡجُلُہُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ اَوۡ یُنۡفَوۡا مِنَ الۡاَرۡضِ ؕ ذٰلِکَ لَہُمۡ خِزۡیٌ فِی الدُّنۡیَا وَ لَہُمۡ فِی الۡاٰخِرَۃِ عَذَابٌ عَظِیۡمٌ (٣٣)

خو كوم خلك چي توبه وباسي مخكښي له دې نه چي تاسي پرې تسلط ومومئ تاسي ته دې څرګنده وي چي الله ښنونکی او رحم کوونکی دی.

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ ۚ فَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۳۴)

ای مؤمنانو ! له الله نه ووېرېږئ او د هغه په حضور کښي د مشرف کېدو وسيله ولټوئ او د هغه په لاره کښي جد وجهد وکړئ ، ښايي چي تاسي ته برياليتوب در په برخه شي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ ابْتَغُوْۤا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ وَ جَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (۳۵)

ښه وپوهېږئ کومو کسانو چي د کفر رويه غوره کړېده ، که د هغو په لاس کښي د ټولي ځمکي شتمني وي او همدومره نوره هم ورسره ، او هغوی وغواړي چي هغه په فديه کښي ورکړي د قيامت دورځي له عذابه وژغورل شي ، بيا به هم ورڅخه قبوله نه کړای شي او هغو ته به دردناك عذاب ورسېږي.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّ مِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۳۶)

هغوی به غواړي چي ددوزخ له اور نه په تېښته ووځي خو نه به شي وتلای او هغوی ته به دائمي عذاب ورکړل شي.

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَ مَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنْهَا ۫ وَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ (۳۷)

او غل که نر وي که ښځه ، ددواړو لاسونه پرېکړئ ، د هغو د خپلي کړني بدله ده او د الله له لوري د عبرت وړ سزا. د الله قدرت پر ټولو غالب دی او هغه د پوهي او حکمت څښتن دی.

وَ السَّارِقُ وَ السَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْۤا اَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (۳۸)

نو څوك چي له ظلم كولو نه وروسته توبه وباسي او ځان اصلاح کړي نو الله به د هغه توبه قبوله کړي الله ډېر ښنونکی او رحم کوونکی دی.

فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَ اَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۳۹)

ايا ته نه پوهېږې چي الله د اسمانونو او ځمکي د سلطنت څښتن دی؟ چاته يي چي خوښه شي سزا ورکوي او چاته يي چي خوښه شي ښښنه کوي، الله په هرڅه قادر دی.

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ (۴۰)

ای پېغمبره! هغه خلك دې ستا د ځوريدو باعث نه وي چي د کفر په لاره کښي چټك ګامونه اوچتوي که هغوی له هغو کسانو څخه وي چي په خوله وايي مونږ ايمان راوړی دی خو د زړه له کومي يې ايمان نه دی راوړی يا له هغو کسانو څخه وي چي يهوديان شويدئ چي د هغو حال دادی چي د دروغو له پاره غوږ ږدي ، او د نورو خلكو له پاره ، چي تا ته هېڅكله نه دي راغلي ، غوږ باسي ګرځي راګرځي، سره له دې چي د كتاب الله د الفاظو صحيح ځايونه ټاكلي دي د هغو معناوې (حكمونه) له يو ځای نه بل ځای ته اړوي را اړوي، او خلكو ته وايي چي كه تاسي ته دا حكم دركړ شي نو ويې منئ كه نه نو مه يې منئ. الله چي په فتنه كښي د چا د غورځولو اراده كړي وي د الله له مواخذې څخه د هغه د ژغورلو له پاره ته هېڅ نه شي كولای، دا هغه كسان دي چي الله ددوی د زړونو پاكول نه دي غوښتي، ددوی له پاره په دنيا كښي رسوايي ده او په اخرت كښي سخت عذاب .

يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِی الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْۤا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَ لَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛۚ وَ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛۚ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ لَمْ يَاْتُوْكَ ؕ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَ اِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ؕ وَ مَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ ؕ لَهُمْ فِی الدُّنْيَا خِزْیٌ ۖۚ وَّ لَهُمْ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (۴۱)

دوی ددروغو اوریدونکي او د حرام مال خوړونکي دي، نو که دوی تا ته ( د خپلو دعوو په وړاندې کولو ) راشي نو تا ته واك درکول کیږي که دې خوښه وي د هغو فیصله وکړه او که نه نو انکار وکړه . که انکار وکړې نو دوی تا ته هیڅ زیان نه شي رسولای ، او که فیصله کوې نو د عدالت په اساس یې وکړه چې الله عدالت کوونکي خوښوي

سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ ؕ فَاِنْ جَآءُوْكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ وَ اِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْئًا ؕ وَ اِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ (۴۲)

او دوی تا څنګه فیصله کوونکی ټاکي چې له دوی سره تورات موجود دی په هغه کښې د الله حکم لیکل شویدی او سره له دې هم دوی ورڅخه مخ اړوي. اصلي خبره داده چې دا خلك له سره ایمان نه لري.

وَ كَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَ عِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَ مَاۤ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ (۴۳)

موږ تورات نازل کړ چې په هغه کښې لارښوونه او روښنايي وه. ټولو پېغمبرانو ، چې مسلمانان وو، له هماغه سره سمې ددغو کسانو چارې چې یهودیان شوي وو فیصله کولې ، او په همدې شان زاهدانو او عالمانو هم ( د فیصلو مدار هماغه ټاکلی وْ ) ځکه چې هغوی ته د الله د کتاب د ساتنې مسئولیت ورپه غاړه شوی وْ او هغوی پرې شاهدان وو ؛ نو ( ای د یهودو ډلې ! ) تاسې له خلکو نه مه وېرېږئ؛ بلکې له ما نه ووېرېږئ او د لږې بدلې اخیستلو په مقابل کښې زما د ایتونو پلورل پرېږدئ. کوم خلك چې د الله له نازل کړي قانون سره سمې فیصلې ونه کړي هماغوی کافران دي.

اِنَّاۤ اَنْزَلْنَا التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّ نُوْرٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَ الْاَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوْا مِنْ كِتٰبِ اللّٰهِ وَ كَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَ اخْشَوْنِ وَ لَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ (۴۴)

په تورات کښې موږ پر یهودیانو دا حکم لیکلی وْ چې د نفس په بدل کښې نفس ، د سترګې په بدل کښې سترګه ، د پوزې په بدل کښې پوزه د غوږ په بدل کښې غوږ ، د غاښ په بدل کښې غاښ ، او د ټولو زخمونو له پاره برابره بدله؛ نو که څوك قصاص صدقه کړي نو هغه د هغه له پاره کفاره ده. او کوم خلك چې د الله له نازل کړي قانون سره سمه فیصله ونه کړي هماغوی ظالمان دي.

وَ كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَاۤ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ ۙ وَ الْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَ الْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَ الْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَ السِّنَّ بِالسِّنِّ ۙ وَ الْجُرُوْحَ قِصَاصٌ ؕ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ ؕ وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۴۵)

بیا موږ له هغو پېغمبرانو وروسته د مریم (ع) زوی عیسی (ع) ولیږه . له تورات نه چې کوم شی د هغه په وړاندې موجود وْ د هغه رښتینی کوونکی وْ . او موږ هغه ته انجیل ورکړ چې په هغه کښې لارښوونه او روښنايي وه او هغه هم د تورات د هغه څه چې په هغه وخت کښې موجود وْ رښتینې کوونکی وْ او له خدای نه دوېرېدونکیو خلکو له پاره له سره ترپايه هدایت او نصیحت وْ.

وَ قَفَّيْنَا عَلٰۤى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ۪ وَ اٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى وَّ نُوْرٌ ۙ وَّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَ هُدًى وَّ مَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ (۴۶ؕ)

زموږ حکم وْ چې دا نجیل خاوندان دې له هغه قانون سره سمه فیصله وکړي چې الله په هغه کښې نازل کړیدی او کوم خلك چې د الله له نازل کړي قانون سره سمه فیصله ونه کړي هماغوی فاسقان دي.

وَ لْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ؕ وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ (۴۷)

او ای محمده ! مونږ تا ته دا کتاب درلیږلی چې په حقه راغلی دی او له الکتاب څخه چې څه دده په وړاندې موجو د دي د هغو ریښتیني کوونکی او د هغو ساتونکی او محافظ دی. نو له دي کبله ته د خدای له نازل کړي قانون سره سمې د خلکو چارې فیصله کړه او کوم حق چې تا ته راغلی دی له هغه نه په مخ اړولو سره د هغو د غوښتنو پیروي مه کوه. موګږ له تاسي نه د هر یوه له پاره یو شریعت او یوه عملي تګلاره ټاکلې ده. که څه هم چې که ستاسي خدای غوښتي وای نو تاسي ټول یې یو امت هم جوړولای شوئ ، خو هغه دا ددی له پاره وکړل چې څه شی چې یې تاسي ته درکړيدي په هغه کښې تاسي وازمائي . نو په غوره چارو کښې یو له بل نه دوړاندې کېدو هڅه وکړئ. په پای کښې ستاسي ټولو د خدای لوري ته ورګرځېدل دي، بیا به هغه تاسي ته اصلي حقیقت چې تاسي په کښې اختلاف کوئ دروښيي.

وَ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡکَ الۡکِتٰبَ بِالۡحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيۡنَ يَدَيۡهِ مِنَ الۡکِتٰبِ وَ مُهَيۡمِنًا عَلَيۡهِ فَاحۡکُمۡ بَيۡنَهُمۡ بِمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ وَ لَا تَتَّبِعۡ اَهۡوَآءَهُمۡ عَمَّا جَآءَکَ مِنَ الۡحَقِّ ؕ لِکُلٍّ جَعَلۡنَا مِنۡکُمۡ شِرۡعَةً وَّ مِنۡهَاجًا ؕ وَ لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَکُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّ لٰکِنۡ لِّيَبۡلُوَکُمۡ فِيۡ مَاۤ اٰتٰکُمۡ فَاسۡتَبِقُوا الۡخَيۡرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرۡجِعُکُمۡ جَمِيۡعًا فَيُنَبِّئُکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ فِيۡهِ تَخۡتَلِفُوۡنَ (۴۸)

نو ای محمده ! ته د الله له نازل کړي قانون سره سمه ددې خلکو د چارو فیصله وکړه او د هغو د خواهشاتو پیروي مه کوه . پام کوه چې دا خلك تا په فتنه کښې وانه چوي یوه ذره قدرې دي هم له هغه هدایت نه وانه ړوي چې خدای تا ته درلیږلی دی. نو که دوی ورڅخه مخ واړوي؛ نو وپوهیږه چې الله ددوی د ځینو ګناهونو په مجازات کښې په غم کښې ددوی د لتاړو لواراده کړېده، او دا حقیقت دی چې له دې خلکو نه زیاتره فاسقان دي.

وَ اَنِ احۡکُمۡ بَيۡنَهُمۡ بِمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ وَ لَا تَتَّبِعۡ اَهۡوَآءَهُمۡ وَ احۡذَرۡهُمۡ اَنۡ يَّفۡتِنُوۡکَ عَنۡۢ بَعۡضِ مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ اِلَيۡکَ ؕ فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاعۡلَمۡ اَنَّمَا يُرِيۡدُ اللّٰهُ اَنۡ يُّصِيۡبَهُمۡ بِبَعۡضِ ذُنُوۡبِهِمۡ ؕ وَ اِنَّ کَثِيۡرًا مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوۡنَ (۴۹)

که دوی د خدای له قانون څخه مخ اړوي ) نو ایا بیا د جاهلیت ) فیصله غواړي؟ په داسې حال کښې کوم خلك چې پر الله باور لري د هغو په نزد له الله نه بل غوره فیصله کوونکی هیڅ نشته .

اَفَحُکۡمَ الۡجَاهِلِيَّةِ يَبۡغُوۡنَ ؕ وَ مَنۡ اَحۡسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُکۡمًا لِّقَوۡمٍ يُّوۡقِنُوۡنَ (۵۰)

ای مؤمنانو! یهودیان او عیسائیان خپل ملګري مه نیسئ ، دوی په خپلو مینځو کښې سره ملګري دي. او که له تاسي نه څوك هغوی خپل ملګري نیسي نو بیا هغه هم په هماغو کښې شمېرل کیږي، په دې کښې شك نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوا الۡيَهُوۡدَ وَ النَّصٰرٰۤى اَوۡلِيَآءَ ؔۘ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ ؕ وَ مَنۡ يَّتَوَلَّهُمۡ مِّنۡکُمۡ فَاِنَّهٗ مِنۡهُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ (۵۱)

ته ګورې چې د چا په زړونو کښې چې د نفاق ناروغي ده هغوی په هماغوی کښې په منډو تړړو اوړي را اوړي. وایي "مونږ وېرېږو چې مونږ په کوم غم لتاړ نشو". خو لیرې نه ده چې کله الله تاسي ته غوڅ برې در په برخه کړي یا له خپل لوري نه کومه بله خبره څرګنده کړي نو دا خلك به په خپل دغه منافقت چې په زړونو کښې یې پټوي پښېمانه وي.

فَتَرَى الَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ يُّسَارِعُوۡنَ فِيۡهِمۡ يَقُوۡلُوۡنَ نَخۡشٰٓى اَنۡ تُصِيۡبَنَا دَآئِرَةٌ ؕ فَعَسَى اللّٰهُ اَنۡ يَّاۡتِىَ بِالۡفَتۡحِ اَوۡ اَمۡرٍ مِّنۡ عِنۡدِهٖ فَيُصۡبِحُوۡا عَلٰى مَاۤ اَسَرُّوۡا فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ نٰدِمِيۡنَ (۵۲ؕ)

او په هغه وخت کښې به مؤمنان ووایي " ایا د اهماغه خلك دي چې په الله باندې په کلکو کلکو قسمونو خوړلو یې باور درکاوه چې مونږ له تاسي سره یو"؟ د هغوی ټول عملونه بابېزه شول او په پای کښې دوی ناکام او نامراده پاتې شول.

وَ يَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيۡنَ اَقۡسَمُوۡا بِاللّٰهِ جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ ۙ اِنَّهُمۡ لَمَعَکُمۡ ؕ حَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ فَاَصۡبَحُوۡا خٰسِرِيۡنَ (۵۳)

ای مؤمنانو ! كه له تاسي نه څوك له خپل دين نه واوړي ( نو وادې وړي ) الله به نور ډېر داسي خلك پيدا كړي چي الله ته ګران وي او الله هغوی ته ګران وي ، چي له مؤمنانو سره به نرمي كوي او پر كافرانو سختي ، چي د الله په لار كښي به جدوجهد وكړي او د هيڅ ملامتوونكي له پېرې اچولو نه ونه وېرېږي. دا د الله فضل دی چاته يې چي خوښه شي ورپه برخه كوي يې الله د پراخه وسايلو څښتن او پر هر څه پوهېږي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِى اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَ يُحِبُّوْنَهٗٓ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۫ يُجَاهِدُوْنَ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ لَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (۵۴)

ستاسي ملګري خو په حقيقت كښي يوازي الله او د الله پېغمبر او هغه مؤمنان دي چي لمونځونه قائموي، زكات وركوي او د الله په وړاندي سرټيټوونكي دي.

اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ هُمْ رٰكِعُوْنَ (۵۵)

او څوك چي الله او د هغه پېغمبر او مؤمنان خپل ملګري نيسي هغه ته دي څرګنده وي چي همدا د الله ډله غالبېدونكي ده.

وَ مَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ (۵۶)

ای مؤمنانو! له تاسي نه د مخكېنيو اهل كتابو كومو خلكو چي ستاسي دين د ټوكو او ساعت تېرۍ مورد ګرځولی دی، هغوی او نور كافران خپل دوستان او ملګري مه نيسئ له الله نه ووېرېږئ كه مؤمنان ياست.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّ لَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَ الْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۵۷)

كله چي تاسي د لمانځه له پاره ندا كوئ؛ نو هغوی ورپوري ملنډي وهي او لوبي ورسره كوي. ددې دليل دادی چي هغوی داسي خلك دي چي پوهه نه لري.

وَ اِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّ لَعِبًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ (۵۸)

دوی ته ووايه ، " ای اهل كتابو ! تاسي چي په كومه خبره له مونږ سره وران ياست هغه له دې پرته نور څه دي چي مونږ پر الله او ددين په هغه ښوونه ايمان راوړيدی چي مونږ ته نازله شوېده او له مونږ نه مخكښي هم نازله شوې وه، او له تاسي نه زياتره خلك فاسقان دي"؟

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَ مَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَ اَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ (۵۹)

بيا ووايه" ايا زه هغه خلك دروښيم چي د هغو عاقبت د خدای په وړاندي د فاسقانو له عاقبت څخه هم ډېر بد دی؟ هغه كسان چي الله ورباندي لعنت كړی ، او غضب يې وربانديې نازل كړی ، چي له هغو څخه يې بيزوګاني او خوګان جوړ كړل ، چي هغوې د غير الله د قانون اطاعت وكړ. د هغو درجه لا ډېره زياته بده ده او هغوی دعدل او اعتدال له سمي لارې څخه ډېر زيات منحرف شويدي".

قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَ غَضِبَ عَلَيْهِ وَ جَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَ الْخَنَازِيْرَ وَ عَبَدَ الطَّاغُوْتَ ؕ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّ اَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ (۶۰)

كله چي دوی تاسي ته راځي نو وايي چي مونږ ايمان راوړی ، حال دا دی چي له كفر سره راغلي وو او له كفر سره بېرته لاړل او الله پر هغه څه ښه پوهېږي چي دوی په زړونو كښي پټ كړيدي.

وَ اِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَ قَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَ هُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ (۶۱)

ته ګورې چي له هغو څخه زياتره خلك د ګناه ، ظلم او زياتي په چارو كښي په منډو منډو ترړو اوړي را اوړي او حرام مال خوري. ډېر ناوړه عملونه دي چي دوی يې كوي.

وَ تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُوْنَ فِى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ وَ اَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۶۲)

ولې ددوی علماء او روحانيون دوی پرګناه له ژبې خوځولو او د حرامو له خوړلو څخه نه منع کوي؟ په باوري توګه د ژوند ډېره بده کارنامه ده چې هغوی يې تياروي.

لَوْ لَا يَنْهٰىهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَ الْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَ اَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ (۶۳)

يهوديان وايي د الله لاس تړل شويدی، وتړل شول ددوی لاسونه . او پر دوی لعنت و اورېده ددې بې ځايه ناوړه وينا په اساس چې دوی يې کوي دالله لاسونه ازاد دي ، څنګه يې چې خوښه شي لګښت کوي. حقيقت دا دی کوم کلام چې ستا د رب له لوري پر تا نازل شويدی هغه پرعکس له هغو څخه د زياترو خلکو د سرکشی او باطل پرستۍ د زياتوالي موجب ګرځيدلی دی، او ( ددې په بدله کښې ) مونږ د هغو په مينځ کښې تر قيامته پورې عداوت او دښمني اچولې ده ، کله چې دوی د جنګ اور په لمبو راولي الله هغه مړ کړي. دوی په ځمکه کښې د فساد خورولو هڅه کوي خو الله فساد راولاړوونکي هېڅکله نه خوښوي.

وَ قَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ؕ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ وَ لُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ۘ بَلْ يَدٰهُ مَبْسُوْطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَآءُ ؕ وَ لَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّ كُفْرًا ؕ وَ اَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَ الْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ كُلَّمَا اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ وَ يَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا ؕ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ (۶۴)

که ( ددې سرغړوني په ځای ) دغو اهل کتابو ايمان راوړی وای او له خدايه د وېرېدو کړنلاره يې غوره کړې وای؛ نو مونږ به ددوی بدۍ ورڅخه ايسته کړې وې او دوی به مو له نعمتونو څخه پور معمور وجنتونو ته ننويستلي وای.

وَ لَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَ اتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَ لَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ (۶۵)

کاشکې دوی تورات او انجيل او هغه نور کتابونه نافذ کړي وای چې ددوی د رب له لوري دوی ته لېږل شوي وو. که داسې يې کړي وای؛ نو ددوی له پاره به له پاسه روزي وربدله او له لاندې به راخوټېدله. که څه هم چې په دوی کښې ځيني خلك په سمه لاره تلونکي هم شته خو ددوی زياتره ډېر بد عمله دي.

وَ لَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِيْلَ وَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا مِنْ فَوْقِهِمْ وَ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ؕ مِنْهُمْ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ؕ وَ كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ (۶۶)

ای پېغمبره ! څه چې ستا د رب له لوري پر تا نازل کړی شويدي هغه خلکو ته ورسوه. که داسې دې ونه کړل ؛ نو د هغه د پېغمبری حق دې ادا نه کړ . الله د خلکو له شر څخه ستا ژغورونکی دی . باور ولره چې الله به هېڅکله ( ستا په مقابله کښې ) کافرانو ته د برې لاره ونه ښيي.

يٰاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ وَ اِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ (۶۷)

په صراحت سره ووايه چې " ای اهل کتابو! تاسې هېڅکله کوم اساس نه لرئ تر څو چې تورات ، انجيل او هغه نور کتابونه نافذ نه کړئ چې ستاسې د رب له لوري تاسې ته نازل کړای شويدي" دا فرمان به چې ستا درب له لوري پر تا نازل کړای شويدی ارومرو له هغو نه د زياترو سرغړونه او انکار زيات کړي؛ خو د منکرېدونکيو پر حال څه افسوس مه کوه.

قُلْ يٰاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَیْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِيْلَ وَ مَا اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَ لَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّا اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّ كُفْرًا ۚ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ (۶۸)

باور وکړه چې دلته هېڅوك تيکدار نشته ) مسلمانان وي که ) يهوديان صابيان وي که نصارا هر څوك چې پر الله او د اخرت په ورځ ايمان راوړي او نيك عمل وکړي بېشکه چې نه د هغه له پاره . د څه وېرې ځای شته او نه د خپګان

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ الَّذِيْنَ هَادُوْا وَ الصّٰبِئُوْنَ وَ النَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۶۹)

مونږ له بني اسرائيلو څخه کلکه ژبنه اخيستې او هغو ته مو ډېر پېغمبران لېږلي ، خو کله چې کوم پېغمبر هغو ته د هغو د نفسي غوښتنو پر خلاف څه شی راوړي دی نو چاته يې ددروغو نسبتونه کړي او څوك يې وژلي ،

لَقَدْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِیْۤ اِسْرَآءِيْلَ وَ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًا ؕ كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰۤى اَنْفُسُهُمْ ۙ فَرِيْقًا كَذَّبُوْا وَ فَرِيْقًا يَّقْتُلُوْنَ (۷۰*)

او له ځان سره يې دا انګېرلي ده چې څه فتنه راولاړه نه شي ، له دې امله ړانده کاڼه شول. بيا الله هغو ته ښښنه وکړه خو له هغو څخه زياتره کسان لا زيات ړانده کاڼه شول؛ الله د هغو دا ټول عملو نه ګوري.

وَ حَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا وَ صَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَ صَمُّوْا كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ ط وَ اللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ (٧١)

هغه کسان په يقيني توګه کافر شول چې هغوی وېل چې همدا مسيح بن مريم الله دی. په داسې حال کښې چې مسيح (ع) ويلي وْ چې " ای بني اسرائيلو ! دالله بندګي وکړئ چې هم زما رب دی او هم ستاسې " چا چې له الله سره څوك شريك وګڼه الله پر هغه جنت حرام کړی او د هغه استوګنځی دوزخ دی او دداسې ظالمانو هېڅ مرستندويان نشته .

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ط وَ قَالَ الْمَسِيْحُ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَ رَبَّكُمْ ط اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَ مَاْوٰىهُ النَّارُ ط وَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ (٧٢)

هغه خلك په يقيني توګه کافر شول چې ويې وېل الله په درېيو کښې يو دی، په داسې حال کښې چې له يوه خدايه پرته هېڅ کوم بل خدای نشته . که دا خلك له خپلو دغووېناوو څخه منع نه شي؛ نو له هغوی څخه چې هر څوك کافر شويدي هغوی ته به دردناك عذاب ورکړل شي.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ م وَ مَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ط وَ اِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (٧٣)

نو ايا دوی الله ته توبه نه باسي او له هغه نه ښښنه نه غواړي؟ الله ډېر ښښونکی او رحم کوونکی دی .

اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَ يَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ط وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٧٤)

مسيح (ع) بن مريم (ع) له يو پېغمبر نه پرته نورڅه نه وْ له هغه نه مخکښې هم نور زيات پيغمبران تير شوي وو، د هغه مور يوه رښتيا پاله ښځه وه ، او هغوی دواړو خواړه خوړل . ګوره مونږ په څه شان د هغوی په وړاندې د حقيقت نښانې څرګندې کړيدي، بيا وګوره دوی کوم لوري ته اړول کېږي.

مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ج قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ط وَ اُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ط كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ط اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ (٧٥)

دوی ته ووايه ، ايا تاسې له الله نه پرته دداسې شي بندګي کوئ چې نه تاسې ته د ضرر رسولو واك وس لري او نه د ګټې ؟ په داسې حال کښې چې د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی خو يوازې الله دی.

قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّ لَا نَفْعًا ط وَ اللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (٧٦)

ووايه، ای اهل کتابو! په خپل دين کښې ناحقه افراط مه کوئ او د هغو خلکو د افکارو پيروي مه کوئ چې له تاسې نه مخکښې په خپله هم ګمراه شول او ډېر نور يې هم بې لارې کړل او دعدل او اعتدال له سمې لارې نه واوښتل.

قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَ اَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّ ضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ (٧٧)

له بني اسرائيلو څخه چې کومو خلکو د کفر لاره غوره کړه پر هغوی د داوْد او عيسى ابن مريم په ژبه لعنت ووېل شو؛ ځکه چې هغوی سرکشه شوي وو او له حده په تيري کولو يې لاس پورې کړی وْ،

لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَ عِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ط ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّ كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ (٧٨)

هغوی د بدو چارو له سرته رسولو څخه يو د بل منع کول پرېښي وو، ناوړه کړنلاره وه چې هغوی غوره کړه .

كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ط لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ (٧٩)

نن ته له هغوی څخه زياتره داسې خلك وينې چې د مؤمنانو په مقابله کښې د کفارو ملاتړ او ملګرتيا کوي. په يقيني توګه ډېر بد عاقبت دی چې د هغوی نفسونو د هغوی له پاره تيار کړيدی دا چې الله پر هغوی په غضب شويدی او هغوی په همېشنې عذاب کښې لتاړېدونکي دي.

تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ط لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ اَنْفُسُهُمْ اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَ فِي الْعَذَابِ هُمْ خٰلِدُوْنَ (٨٠)

که په رېښتيا سره دا خلك د الله ، پېغمبراو هغه څه منوونکي وای چې پر پېغمبر نازل شوي وو؛ نو هېڅکله به يې د مؤمنانو په مقابله کښې کافران خپل دوستان نه نيول ؛ مګر له هغوی څخه زياتره خلك د خدای له اطاعت نه وتلي دي.

وَ لَوۡ كَانُوۡا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ النَّبِىِّ وَ مَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡهِ مَا اتَّخَذُوۡهُمۡ اَوۡلِيَآءَ وَ لٰكِنَّ كَثِيۡرًا مِّنۡهُمۡ فٰسِقُوۡنَ (٨١)

ته به د مؤمنانو په دښمنی کښې تر ټولو زيات سخت يهوديان او مشرکان وموميې ، او د مؤمنانو له پاره به په دوستی کښې ډېر نژدې هغه خلك وموميې چې هغوی ويلي وو چې مونږ نصارا يو. د اله دې امله چې په هغوی کښې عبادت کوونکي عالمان او تارك الدنيا فقيران ميندل کېږي او په هغوی کښې نفسي غرور نشته .

لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوا الۡيَهُوۡدَ وَ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا ۚ وَ لَتَجِدَنَّ اَقۡرَبَهُمۡ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوا الَّذِيۡنَ قَالُوۡۤا اِنَّا نَصٰرٰى ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنۡهُمۡ قِسِّيۡسِيۡنَ وَ رُهۡبَانًا وَّ اَنَّهُمۡ لَا يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ (٨٢)

کله چې هغوی هغه کلام واوري چې پر پېغمبر نازل شويدی؛ نو ته به وګورې چې د حق پېژندنې له امله د هغوی په سترګو کښګې اوښکې ډنډېږي. هغوی په لوړ غږ وايي چې " پروردګاره ! مونږ ايمان راوړ، زمونږ نوم په شاهدي ويونکو کښې وليکه "

وَ اِذَا سَمِعُوۡا مَاۤ اُنۡزِلَ اِلَى الرَّسُوۡلِ تَرٰۤى اَعۡيُنَهُمۡ تَفِيۡضُ مِنَ الدَّمۡعِ مِمَّا عَرَفُوۡا مِنَ الۡحَقِّ ۚ يَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَاۤ اٰمَنَّا فَاكۡتُبۡنَا مَعَ الشّٰهِدِيۡنَ (٨٣)

او هغوې وايي چې " ښه‌ګه نو مونږ ولې پر الله ايمان را نه وړو او کوم حق چې مونږ ته راغلی دی هغه ولې ونه منو په داسې حال کښګې چې مونږ ددې خبرې هيله من يو چې زمونږ رب دې مونږ په صالحانو کښې حساب کړي؟"

وَ مَا لَنَا لَا نُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَ مَا جَآءَنَا مِنَ الۡحَقِّ ۙ وَ نَطۡمَعُ اَنۡ يُّدۡخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الۡقَوۡمِ الصّٰلِحِيۡنَ (٨٤)

د هغوی ددې وينا له امله الله هغو ته داسې جنتونه ورکړل چې تر هغو لاندې ويالې بهېږي او هغوی به په کښې د تل له پاره اوسېږي. دادښې کړنلارې غوره کوونکو بدله ده.

فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوۡا جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزَآءُ الۡمُحۡسِنِيۡنَ (٨٥)

پاتې شول هغه کسان چې هغوی زمونږ دايتونو له منلو څخه سروغړوه او هغه يې دروغ وانګېرل ، نو هغوی ددوزخ وړ دي.

وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ الۡجَحِيۡمِ (٨٦)

ای مؤمنانو ! کوم پاك شيان چې الله ستاسې له پاره حلال کړيدي هغه مه حراموئ او له حد نه تيری مه کوئ ، تيری کوونکي د الله ډېر بدايسي،

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تُحَرِّمُوۡا طَيِّبٰتِ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمۡ وَ لَا تَعۡتَدُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡمُعۡتَدِيۡنَ (٨٧)

څه شی چې الله حلاله او پاکه روزي تاسې ته درکړېده هغه خورئ څښئ او د هغه خدای له نافرمانی څخه په څنګ اوسئ چې پر هغه مو ايمان راوړيدی.

وَ كُلُوۡا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا ۪ وَّ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىۡۤ اَنۡتُمۡ بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ (٨٨)

تاسې چې کومې بابېزه لوړې کوئ پر هغو مو الله نه نيسي ، خو کومې لوړې چې تاسې له پوهې او ادراك سره کوئ پر هغو به مو ارو مرو هغه ونيسي. ( دداسې قسمونو ماتولو ) کفاره داده چې لسو مسکينانو ته له هغو منځنی درجې خوړو څخه ورکړئ چې تاسې يې خپلې کورنی ته ورکوئ، يا هغوی په جامه پټ کړئ يا يو غلام ازاد کړئ ، او څوك چې ددې وس ونه لري هغه دې درې ورځې روژه ونيسي، دا ستاسې د قسمونو کفاره ده چې کله قسم وخورئ او مات يې کړئ. د خپلو قسمونو ساتنه وکړئ. په دې توګه الله خپل حکمونه تاسې ته څرګندوي په کار ده چې تاسې شکر وباسئ.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغۡوِ فِىۡۤ اَيۡمَانِكُمۡ وَ لٰكِنۡ يُّؤَاخِذُكُمۡ بِمَا عَقَّدۡتُّمُ الۡاَيۡمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗۤ اِطۡعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيۡنَ مِنۡ اَوۡسَطِ مَا تُطۡعِمُوۡنَ اَهۡلِيۡكُمۡ اَوۡ كِسۡوَتُهُمۡ اَوۡ تَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ ؕ فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ؕ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيۡمَانِكُمۡ اِذَا حَلَفۡتُمۡ ؕ وَ احۡفَظُوۡۤا اَيۡمَانَكُمۡ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمۡ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ (٨٩)

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَ الْمَيْسِرُ وَ الْاَنْصَابُ وَ الْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (٩٠)

ای مؤمنانو! دا شراب ، جواري، دادرشلي (بتان) او دفال نیولو غشي، دا ټول ناولي او شیطاني کارونه دي ، له هغو نه ډډه وکړئ، هیله ده چي تاسي ته به بری درپه برخه شي.

اِنَّمَا يُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّوْقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَ الْبَغْضَآءَ فِى الْخَمْرِ وَ الْمَيْسِرِ وَ يَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَ عَنِ الصَّلٰوةِ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ (٩١)

شیطان خو دا غواړي چي پر شرابو او قمار ستاسي په مینځ کښي دښمني او کینه واچوي او تاسي د خدای له یادولو او لمانځه منع کړي؛ نو ایا تاسي له دې چارو څخه لاس اخلئ؟

وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَ احْذَرُوْا ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْۤا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (٩٢)

د الله او د هغه د پېغمبر خبره ومنئ او رامنع شئ، خو که تاسي حکم ته شا کړه نو و پوهېږئ چي زمونږ پر پېغمبر د څرګند حکم رسولو مسئولیت وْ.

لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْۤا اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ثُمَّ اتَّقَوْا وَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّ اَحْسَنُوْا ؕ وَ اللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ (٩٣)

څوك چي ایمان راوړي او غوره چارې سرته ورسوي هغوی چي مخکښي څه خوړلي ښښتلي وو په هغو به ونه نیول شي په دې شرط چي په اینده کښي له هغو شیانو څخه ځان وژغوري چي حرام کړای شویدي او پر ایمان ټینګ ودرېږي او ښه کارونه وکړي، بیا چي له کومو شیانو منع وشي له هغو څخه لاس واخلي او څه چي د خدای امر وي هغه ومني ، بیا د خدای له وېرې سره ښه کړنلاره ونیسي. الله نیك عمله خلك خوښوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَىْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗۤ اَيْدِيْكُمْ وَ رِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (٩٤)

ای مؤمنانو! الله به تاسي پر هغه ښکار په سخته ازموینه کښي واچوي چي بیخي ستاسي د لاسونو او نیزو تر کنترول لاندې راغلی وي، ددې له پاره چي ولیدل شي چي له تاسي نه څوك له هغه نه نالیدلی وېرېږي، نو چا چي له دې اخطار نه وروسته د الله له ټاکل شوي حد نه تیری وکړ د هغه له پاره دردناك عذاب دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَ اَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ وَ مَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ؕ وَ مَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ؕ وَ اللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ (٩٥)

ای مؤمنانو! دا حرام په حالت کښي ښکار مه وژنئ، او که له تاسي نه چا په پوهه او ادراك سره داسي وکړل؛ نو کوم څاروی چي هغه وژلی وي نو د هماغه اندول یو څاروی به له هغو څارویو نه نذر ورکوي چي د هغه فیصله له تاسي نه دوه تنه عادلان وکړي، او دا نذرانه به کعبې ته رسوله کېږي، که دانه وي نو ددې ګناه په کفاره کښي به څو مسکینانو ته خواړه ورکوي، یا به د هغو په اندازه روژې نیسي ، تر څو چي هغه د خپلو کړو خوندوڅکي، مخکښي چي څه شوي هغه الله ښښلي ، خو اوس که چا بیا دا حرکت وکړ نو له هغه نه به الله غچ واخلي او الله پر ټولو بر لاس دی او د غچ اخیستني واك وس لري.

اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَ طَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَ لِلسَّيَّارَةِ ۚ وَ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىْۤ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ (٩٦)

ستاسي له پاره د سمندر ښکار او خواړه حلال کړای شول ، هر چېرته چي تاسي تمېږئ همالته یې هم خوراك درته روا دی او د کاروان له پاره یې د لارې توښه هم کولای شئ البته دوچي ښکار تر هغه وخته پورې پر تاسي حرام شویدی ، تر څو پورې چي تاسي دا حرام په حالت کښي یئ ، نو د هغه خدای له نافرمانۍ څخه ځان وژغورئ چي د هغه حضور ته به تاسي راغونډ شوي ورحاضرېږئ.

الله ددرناوي وړ ځای کعبه د خلکو له پاره ( د ټولنيز ژوندانه ) دسمبالښت وسيله ګرځولي او حرامه مياشت ، د قربانی څاروي او د غاړې پټی يې هم ( په دې کار کښې مرستندوی وګرځولي ) چې تاسې ته څرګنده شي چې الله د اسمانونو او ځمکې له ټولو حالاتو څخه باخبره دی. او له هغه سره د هر شي علم دی.

جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَ الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَ الْهَدْيَ وَ الْقَلَآئِدَ ؕ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ وَ اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۹۷)

خبر دار اوسئ ! الله په سزا ورکولو کښې هم ډېر سخت دی اوددې ترڅنګ ډېر ښونکی او رحم کوونکی هم دی

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ وَ اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (ؕ۹۸)

پر پېغمبر خو يوازې د پيغام رسولو مسئوليت دی ، نور ستاسې په ښکاره او پټو ټولو حالاتو پوهېدونکی الله دی.

مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَ مَا تَكْتُمُوْنَ (۹۹)

ای پېغمبره! دوی ته ووايه چې پاك او ناولي په هېڅ شان يو شانته نه دي که د ناپاکو ډېروالی هر څومره ستاسې له پاره جالب هم وي، نو ای هوښيارانو ! د الله له نافرمانۍ نه ځان وژغورئ هيله ده چې برياليتوب به مو په برخه شي.

قُلْ لَّا يَسْتَوِي الْخَبِيْثُ وَ الطَّيِّبُ وَ لَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (۱۰۰)

ای مؤمنانو! دداسې خبرو پوښتنه مه کوئ چې که درته څرګنده کړای شي نو تاسې ته ناوړه وي، خو که تاسې دهغو پوښتنه په داسې وخت کښې وکړئ چې قرآن نازلېږي نو هغه به درته څرګندې شي. تر اوسه چې تاسې څه کړيدي الله هغه دربښلي دي، هغه ښونکی او دزغم څښتن دی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ وَ اِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ (۱۰۱)

له تاسې نه مخکښې يوې ډلې همدا ډول پوښتنې کړې وې، بيا هغه خلك د همدې خبرو له امله په کفر کښې اخته شول.

قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ (۱۰۲)

الله نه کومه بحيره ټاکلي ده ( هغه څاروی چې شيدې يې د بتانو په نامه کېدې او چا ورڅخه کټه نه اخيستله) نه سائبه ( هغه څاروی چې د بتانو په نامه خوشې کېده) نه وصيله ( هغه اوښه چې پر له پسې يې ښځينه بچې زېږولي وي او بتانو ته نذر کيدله ) او نه حام ( هغه اوښ چې څو اوښې يې بلاربې کړې وې او بتانو ته نذر کيده ) خو دا کافران پر الله ددروغو تور لګوي او له هغو څخه زياتره ناپوهان دي ( چې داسې او هام مني).

مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّ لَا سَآئِبَةٍ وَّ لَا وَصِيْلَةٍ وَّ لَا حَامٍ ۙ وَّ لٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ (۱۰۳)

او کله چې هغو ته ويل کېږي چې د هغه قانون په لوري راشئ چې الله نازل کړيدی او د پېغمبر خوا ته راشئ نو هغوی په ځواب کښې وايي چې زمونږ له پاره خو صرف هماغه کړنلاره بس ده چې پر هغې مونږ خپل پلرونه نيکونه ميندلي دي. ايا دوی له پلرونو نيکونو څخه تقليد کوي که څه هم چې هغوی په هېڅ ونه پوهېږي او له سمې لارې نه خبر قدرې هم نه وي؟

وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَ اِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَ لَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْـًٔا وَّ لَا يَهْتَدُوْنَ (۱۰۴)

ای مؤمنانو ! د ځان فکر وکړئ، د بل چا بې لارېتوب تاسې ته څه زيان نه شي رسولای که تاسې په خپله پر سمه لار ياست ، د الله لوري ته ستاسې دټولو ورګرځېدل دي، بيا به هغه تاسې ته دروښيي چې تاسې څه کول.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ ۚ لَا يَضُرُّكُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۰۵)

ای مؤمنانو، کله چې له تاسې نه د کوم چا د مرګ وخت راشي او هغه وصيت کوي؛ نو د هغه له پاره د شاهدۍ نصاب دا دی چې له تاسې څخه دې دوه عادلان شاهدان ونيول شي ؛ يا که تاسې د پرديسی په حالت کښې ياست او هلته د مرګ مصيبت مخې ته راشي (که مسلمانان موجود نه وي) نو له غير مسلمانانو څخه دې دوه شاهدان ونيول شي . بيا که څه شك پيدا شي؛ نو له لمانځه نه وروسته دې دواړه شاهدان ( په جومات کښې ) ستانه کړای شي او هغوی دې پر خدای لوړه وکړي ودې وايي چې " مونږ د څه شخصي ګټې په بدل کښې د شاهدۍ پلورونکي نه يو ، او که څوك زمونږ څه خپلوان هم وي ( مونږ د هغه مراعات کوونکي نه يو ) ، او نه مونږ د خدای له پاره شاهدي پټوونکي يو ، که مونږ داسې وکړل نو په ګناهګارانو کښې دې وشمېرل شو.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنٰنِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ اَوْ اٰخَرٰنِ مِنْ غَيْرِكُمْ اِنْ اَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِی الْاَرْضِ فَاَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةُ الْمَوْتِ ؕ تَحْبِسُوْنَهُمَا مِنْۢ بَعْدِ الصَّلٰوةِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ اِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِیْ بِهٖ ثَمَنًا وَّ لَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰی ۙ وَ لَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ اللّٰهِ اِنَّاۤ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ (۱۰۶)

خو که ښکاره شي چې دغو دواړو خپل ځان په ګناه کښې اخته کړيدی نو بيا د هغو پر ځای دې دوه نور داسې کسان چې د هغوی په پرتله د شاهدۍ ويلو زيات اهليت ولري له هغو خلکو څخه دې راپاڅېږي چې د هغو حق خوړل شوی وي، او هغوی دې پر خدای قسم وخوري ودې وايي چې " زمونږ شاهدي د هغوی د شاهدۍ په پرتله زياته پر حقه ده اومونږ په خپله شاهدۍ کښې څه زياتی نه دی کړی ، که مونږ داسې وکړو؛ نو له ظالمانو څخه دې وشمېرل شو."

فَاِنْ عُثِرَ عَلٰۤی اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّاۤ اِثْمًا فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَاۤ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَ مَا اعْتَدَيْنَاۤ ۖ٘ اِنَّاۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ (۱۰۷)

په دې ترتيب زياته هيله کيدای شي چې خلك به بيخي رينښتيا رينښتيا شاهدي ووهي، يا به لږ تر لږه له دې خبرې ووېرېږي چې دهغو قسمونه وروسته نه چېرته په دوهمو قسمونو ترديد شي. له الله نه ووېرېږئ او واورئ ، الله نافرماني کوونکي له خپلې لارښودنې څخه بې برخې کوي.

ذٰلِكَ اَدْنٰۤی اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰی وَجْهِهَاۤ اَوْ يَخَافُوْۤا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌۢ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اسْمَعُوْا ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ (۱۰۸)

په هغه ورځ چې الله ټول پېغمبران راټول کړي پوښتنه وکړي چې تاسې ته څه ځواب درکړ شو، نو هغوی به عرض وکړي چې مونږ هيڅ نه پوهېږو ، همدا ته پر ټولو پټو حقايقو پوهېږې.

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَاۤ اُجِبْتُمْ ؕ قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ (۱۰۹)

بل هغه وخت درپه زړه کړه چې کله الله وفرمائي چې" ای د مريم زويه عيسی ! زما هغه نعمت دريادکړه چې ما پر تا او ستا پر مور پېرزو کړی وْ ما په سپېڅلي روح سره ستا مرسته وکړه ، تا په زانګو کښې هم له خلکو سره خبرې کولې او پاخه عمر ته په رسېدو هم ، ماتاته د کتاب ، حکمت ، تورات او انجيل ښوونه وکړه ، تا زما په حکم له مکنې ختې څخه د مرغی جوسه جوړوله او په هغې کښې دې پوکی کاوه او هغه زما په امر مرغی جوړېده ، تا مور زادي ړانده او پيس ناروغان زما په امر روغول، تا مړي زما په امر ژوندي راويستل ، بيا چې کله ته بني اسرائيلو ته له ځرګندو نښانو سره ورغلې نو څوك چې له هغو څخه د حق منکران وو هغوی وويل چې دانښانې له کوډ ګری نه پرته نور څه نه دي نو همدا ماته له هغو څخه وژغورلې ،

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَی ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِیْ عَلَيْكَ وَ عَلٰی وَالِدَتِكَ ۘ اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۫ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِی الْمَهْدِ وَ كَهْلًا ۚ وَ اِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ وَ التَّوْرٰىةَ وَ الْاِنْجِيْلَ ۚ وَ اِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِیْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًۢا بِاِذْنِیْ وَ تُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَ الْاَبْرَصَ بِاِذْنِیْ ۚ وَ اِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰی بِاِذْنِیْ ۚ وَ اِذْ كَفَفْتُ بَنِیْۤ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ (۱۱۰)

او کله چې ماحواريانو ته ا لهام وکړ چې پر ما او زما پر پېغمبر ايمان راوړئ نو هغوی ووېل چې مونږ ايمان راوړ اوته شاهد اوسه چې مونږ مسلمانان يو"

وَ اِذۡ اَوۡحَيۡتُ اِلَى الۡحَوَارِيّٖنَ اَنۡ اٰمِنُوۡا بِىۡ وَ بِرَسُوۡلِىۡ ۚ قَالُوۡۤا اٰمَنَّا وَ اشۡهَدۡ بِاَنَّنَا مُسۡلِمُوۡنَ (۱۱۱)

د حواريانو په لړ کښې ) دا پېښه هم په ياد لره چې کله حواريانو ) ووېل ای عيسی بن مريم ! ايا ستا رب پر مونږ له اسمانه د خوړويو د سترخوان راکوزولای شي؟ نو عيسی (ع) ووېل له الله نه .ووېرېږئ که مؤمنان ياست

اِذۡ قَالَ الۡحَوَارِيُّوۡنَ يٰعِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ هَلۡ يَسۡتَطِيۡعُ رَبُّكَ اَنۡ يُّنَزِّلَ عَلَيۡنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ؕ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ (۱۱۲)

هغوی وويل مونږ صرف دومره غواړو چې له دې دسترخوان نه خواړه وخورو او زمونږ زړه ډاډه وي او مونږ ته څرګنده شي چې تا چې مونږ ته څه ويلي دي هغه رېښتيا دي او مونږ ورباندې شاهدان اوسو.

قَالُوۡا نُرِيۡدُ اَنۡ نَّاۡكُلَ مِنۡهَا وَ تَطۡمَئِنَّ قُلُوۡبُنَا وَ نَعۡلَمَ اَنۡ قَدۡ صَدَقۡتَنَا وَ نَكُوۡنَ عَلَيۡهَا مِنَ الشّٰهِدِيۡنَ (۱۱۳)

له هغه وروسته عيسی ابن مريم دعا وکړه " خدايه ! زمونږ ربه! پر مونږ له اسمانه يو دسترخوان راکوز کړه چې زمونږ له پاره زمونږ د اوسنيو او راتلونکيو نسلونو له پاره دخوښۍ موسم وګرځي او ستا له لوري يوه نښانه وي، مونږ ته روزي راکړه او ته ډېر ښه روزي رسان يې".

قَالَ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَاۤ اَنۡزِلۡ عَلَيۡنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُوۡنُ لَنَا عِيۡدًا لِّاَوَّلِنَا وَ اٰخِرِنَا وَ اٰيَةً مِّنۡكَ ۚ وَ ارۡزُقۡنَا وَ اَنۡتَ خَيۡرُ الرّٰزِقِيۡنَ (۱۱۴)

الله ځواب ورکړ" زه پر تاسي د هغه راکوزوونکی يم ، خو وروسته له هغه چې له تاسي نه څوك کافر شي هغه ته به زه داسي سزا ورکړم چې په نړۍ کښې مې هېچا ته نه وي ورکړې".

قَالَ اللّٰهُ اِنِّىۡ مُنَزِّلُهَا عَلَيۡكُمۡ ۚ فَمَنۡ يَّكۡفُرۡ بَعۡدُ مِنۡكُمۡ فَاِنِّىۡۤ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّاۤ اُعَذِّبُهٗۤ اَحَدًا مِّنَ الۡعٰلَمِيۡنَ (۱۱۵)

لنډه دا کله چې ( ددې ښېګڼو په يادولو ) الله وفرمائي چې" ای عيسی ابن مريم ! ايا تا خلکو ته ويلي وو چې له خدايه پرته ما او زما مور هم په خدايی سره ونيسئ " ؟ نو هغه به په ځواب کښې عرض وکړي چې " سبحان الله! زما دا کار نه وْ چې هغه څه مې ويلي وای چې د هغې ويل زما له پاره حق نه وْ ، که ما داسي خبره کړې وي نو ته به ارومرو پرې عالم يې ، ته پوهېږې پر هغه څه چې زما په زړه کښې دي او زه پر هغه څه نه پوهېږم چې ستا په ذات کښې دي، ته خو پر ټولو پټو حقايقو عالم يې.

وَ اِذۡ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ ءَاَنۡتَ قُلۡتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوۡنِىۡ وَ اُمِّىَ اِلٰهَيۡنِ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ قَالَ سُبۡحٰنَكَ مَا يَكُوۡنُ لِىۡۤ اَنۡ اَقُوۡلَ مَا لَيۡسَ لِىۡ * بِحَقٍّ ؕ اِنۡ كُنۡتُ قُلۡتُهٗ فَقَدۡ عَلِمۡتَهٗ ؕ تَعۡلَمُ مَا فِىۡ نَفۡسِىۡ وَ لَاۤ اَعۡلَمُ مَا فِىۡ نَفۡسِكَ ؕ اِنَّكَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ (۱۱۶)

ما له هغه څه نه پرته نور هېڅ شی نه دي ويلي چې تا راته امر کړی وْ، دا چې د الله بندګي وکړئ چې هم زما رب دی او هم ستا سي رب زه تر هغه وخته پورې د هغو څارونکی وم چې تر څو پورې زه د هغو په مينځ کښې وم، کله چې تا زه بېرته دروغوښتم؛ نو ته پر هغو څارونکی وې او ته خو پر ټولو شيانو څارونکی يې.

مَا قُلۡتُ لَهُمۡ اِلَّا مَاۤ اَمَرۡتَنِىۡ بِهٖۤ اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ رَبِّىۡ وَ رَبَّكُمۡ ۚ وَ كُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا مَّا دُمۡتُ فِيۡهِمۡ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِىۡ كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ عَلَيۡهِمۡ ؕ وَ اَنۡتَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ (۱۱۷)

اوس که ته هغو ته سزا ورکړې نو هغوی ستا بندګان دي او که ښښنه ورته وکړې نو ته بر لاس او د حکمت خاوند يې".

اِنۡ تُعَذِّبۡهُمۡ فَاِنَّهُمۡ عِبَادُكَ ۚ وَ اِنۡ تَغۡفِرۡ لَهُمۡ فَاِنَّكَ اَنۡتَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ (۱۱۸)

هلته به الله وفرمائي" دا هغه ورځ ده چې په هغې کښګې رېښتينو ته د هغو رېښتينولي ګټه رسوي، د هغو له پاره داسي باغونه دي چې تر هغو لاندې ويالې بهېږي، هلته به هغوی د تل له پاره اوسېږي، الله له هغو نه راضي شو او هغوی له الله نه خوښ شول، همدا ستر برياليتوب دی".

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوۡمُ يَنۡفَعُ الصّٰدِقِيۡنَ صِدۡقُهُمۡ ؕ لَهُمۡ جَنّٰتٌ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَبَدًا ؕ رَضِىَ اللّٰهُ عَنۡهُمۡ وَ رَضُوۡا عَنۡهُ ؕ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِيۡمُ (۱۱۹)

داسمانونو او ځمکي او ټولو موجوداتو پاچاهي یوازې د الله ده او هغه پر هر څه قادر دی.

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا فِيْهِنَّ ؕ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۱۲۰)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ثنا ستاینه الله ته ده چې اسمانونه او ځمکه یې هست کړل ، رڼا او تیارې یې پیدا کړې. بیا هم هغه کسان چې د حقې بلنې له منلو نه یې انکار کړیدی نور شیان د خپل رب سیالان ګڼي .

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ جَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَ النُّوْرَ ؕ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ (۱)

هماغه ذات دی چې تاسې یې له خټې نه پیدا کړئ، بیا یې ستاسې له پاره د ژوند یوه نېټه وټاکله ، او یوه بله نېټه هم ده چې د هغه په وړاندې ټاکل شوېده. خو تاسې یئ چې په شك کښې لویدلي یاست.

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ طِيْنٍ ثُمَّ قَضٰى اَجَلًا ؕ وَ اَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ (۲)

هماغه یو خدای په اسمانونو کښګې هم دی او په ځمکه کښې هم ، ستاسې پر ښکاره او پټوټولو حالاتو پوهېږي او کومه بدي یا نیکي چې تاسې ګټئ له هغې څخه ښه خبر دی.

وَ هُوَ اللّٰهُ فِى السَّمٰوٰتِ وَ فِى الْاَرْضِ ؕ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَ جَهْرَكُمْ وَ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُوْنَ (۳)

د کافرانو حال دادی چې د هغو د پروردګار له نښانو څخه هېڅ کومه نښانه داسې نشته چې د هغو مخې ته راغلې وې او هغوی ورڅخه مخ نه وي اړولای.

وَ مَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ (۴)

لکه همدا اوس چې کوم حق هغو ته راغی؛ نو هغه یې هم دروغ وګاڼه. ښه نو ، په کوم شي پورې چې هغوی تر اوسه پورې مسخرې کوې ډېر ژر به د هغه په باب څه خبرونه هغو ته ورسېږي.

فَقَدْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ؕ فَسَوْفَ يَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۵)

ایا هغوی نه دي لیدلي چې له هغو نه مخکښې څومره داسې ملتونه مونږ تباه کړیدي چې د هر یوه په خپل خپل دور کښې نوم او واکمني وه؟ مونږ په ځمکه کښې هغو ته هغه وس واك وربښلی و چې تاسې ته مو نه دی دربښلی ، پر هغو مو له اسمانه ښه وربښتونه وکړل او تر هغو نه لاندې مو ویالې وبهولې ، (خو کله چې هغوی د نعمت ناشکري وکړه نو ) په پای کښې مونږ د هغو دګناهونو په مجازات کښې هغوی تباه کړل او د هغوی په ځای مو د بل دور ملتونه راپورته کړل.

اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ مَّكَّنّٰهُمْ فِى الْاَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ وَ اَرْسَلْنَا السَّمَآءَ عَلَيْهِمْ مِّدْرَارًا ۪ وَّ جَعَلْنَا الْاَنْهٰرَ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمْ فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ (۶)

ای پېغمبره ! که مونږ پر تا په کوم کاغذ کښې لیکلی کتاب هم نازل کړی وای او خلکو هغه په خپلو لاسونو سره لمس کړی لیدلی هم وای هله به هم هغو کسانو چې له حق څخه منکر شویدي همدا خبره کوله چې دا خو ښکاره کوډې دي.

وَ لَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا فِيْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ بِاَيْدِيْهِمْ لَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِنْ هٰذَا اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ (۷)

وایي چې پر دغه پېغمبر ولې کومه پرښته نه ده نازله شوې، که مونږه پرښته راکوزه کړې وای؛ نو تر اوسه به د وختـه فیصله شوې وه. بیا هغوی ته څه مهلت نه ورکول کېده.

وَ قَالُوْا لَوْ لَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ؕ وَ لَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ (۸)

او که مونږ پرښته راکوزه کړې وای بیا مو هم هغه په انساني بڼه کښې نازلوله او په دې ډول به مو دوی په هماغه شك کښې اخته کړې وو چې په هغه کښې اوس دوی اخته دي.

وَ لَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّ لَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُوْنَ (۹)

وَ لَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِکَ فَحَاقَ بِالَّذِیْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا کَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ (۱۰)

ای محمده ! له تا نه مخکښې هم په ډېرو پېغمبرانو پورې ملنډې وهل شویدي، خو پر هغو ملنډو وهونکيو په پای کښې هماغه حقیقت مسلط کړای شو چې هغوی پرې تمسخر کاوْ،

قُلْ سِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا کَیْفَ کَانَ عَاقِبَةُ الْمُکَذِّبِیْنَ (۱۱)

دوی ته ووایه ، د ځمکې پر مخ وګرځئ راوګرځئ وګورئ چې دروغ ګڼونکي له کوم برخلیك سره مخامخ شویدي.

قُلْ لِّمَنْ مَّا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ قُلْ لِّلّٰهِ ؕ کَتَبَ عَلٰی نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ؕ لَیَجْمَعَنَّکُمْ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ لَا رَیْبَ فِیْهِ ؕ اَلَّذِیْنَ خَسِرُوْا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ (۱۲)

له دوی نه پوښتنه وکړه ، په اسمانونو او ځمکه کښې چې څه دي هغه د چا دي؟ ووایه هر څه یوازې د الله دي، هغه د رحم او پېرزوینې کړنچاره پر خپل ځان لازمه کړېده ( له همدې امله په نافرمانیو او سرغړونو سره تاسې سمدلاسه نه نیسي ) د قیامت په ورځ به هغه تاسې ټول ارومرو راټول کړي، دا حقیقت هېڅ د اشتباه وړ نه دی، خو کومو خلکو چې په خپل لاس خپل ځانونه د تباهی په خطر کښې اچولي دي هغوی یې نه مني.

وَ لَهٗ مَا سَکَنَ فِی الَّیْلِ وَ النَّهَارِ ؕ وَ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ (۱۳)

د شپې په تړږمې او د ورځې په روښنایي کښې چې څه استوګن دي ، ټول د الله دي او هغه هر څه اوري او په هر څه پوهېږي .

قُلْ اَغَیْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِیًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ هُوَ یُطْعِمُ وَ لَا یُطْعَمُ ؕ قُلْ اِنِّیْۤ اُمِرْتُ اَنْ اَکُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ وَ لَا تَکُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ (۱۴)

ووایه ، ایا زه له الله څخه پرته کوم بل څوك د ځان سرپرست وټاکم ؟ هغه خدای پرېږدم چې داسمانونو او ځمکې هستوونکی دی او هغه چې روزي ورکوي روزي اخلي نه ؟ ووایه ، ماته خو همدا امر شویدی چې له هر چا څخه مخکښې زه د هغه په وړاندې د تسلیم سر ښکته کړم ( او په تاکید سره ویل شویدي چې که څوك مشرك کېږي شي دې ) ته په هیڅ صورت له مشرکانو څخه مه کېږه.

قُلْ اِنِّیْۤ اَخَافُ اِنْ عَصَیْتُ رَبِّیْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ (۱۵)

ووایه ، که زه له خپل خدای نه سروغړوم نو وېرېږم چې په یوه لویه ( هیبتناکه ) ورځ کښې به له عذاب سره مخامخ شم.

مَنْ یُّصْرَفْ عَنْهُ یَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَ ذٰلِکَ الْفَوْزُ الْمُبِیْنُ (۱۶)

په هغه ورځ چې څوك له عذابه وژغورل شو پر هغه الله ډېر لوی رحم وکړ او همدا څرګند بریالیتوب دی.

وَ اِنْ یَّمْسَسْکَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا کَاشِفَ لَهٗۤ اِلَّا هُوَ ؕ وَ اِنْ یَّمْسَسْکَ بِخَیْرٍ فَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ (۱۷)

که الله تا ته کوم ډول زیان ورسوي؛ نو له هغه پرته بل څوك نشته چې تا له هغه زیان څخه وژغورلای شي ، اوکه هغه تا ته پر کومه ښېګڼه ګټه درواړوي نو هغه د هر څه وس واك لري .

وَ هُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ وَ هُوَ الْحَکِیْمُ الْخَبِیْرُ (۱۸)

هغه پر خپلو بندګانو پوره برلاسی واکمن دی او د حکمت څښتن اوباخبره دی.

قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَکْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ شَهِیْدٌۢ بَیْنِیْ وَ بَیْنَکُمْ ۟ وَ اُوْحِیَ اِلَیَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَکُمْ بِهٖ وَ مَنْۢ بَلَغَ ؕ اَئِنَّکُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰی ؕ قُلْ لَّاۤ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّ اِنَّنِیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِکُوْنَ (۱۹)

له دوی نه پوښتنه وکړه ، دچا شاهدي تر هر چا لویه ده؟ ووایه ، زما او ستاسې تر مینځه الله شاهد دی، او دا قرآن ماته دوحې په وسیله رالېږل شویدی چې تاسې او هر هغه څوك چې داور ته رسېږي ټول خبر دار کړم. ایا په ریښتیا سره تاسې دا شاهدي وهلی شئ چې له الله سره نور خدایان هم شته ؟ ووایه ، زه خو دا شاهدي هېڅکله نه شم ویلای ووایه خدای خو هماغه یو دی او زه له هغه شرك څخه په قطعي ډول بیزار یم چې تاسې په کښې اخته یاست.

کومو کسانو ته چي مونږ کتاب ورکړيدی هغوی دا خبره داسي بې
له اشتباه ښخه پيژني لکه چي هغوی د خپلو زامنو په پيژندنه کښي
له هيڅ اشتباه سره نه مخامخ کيږي. خو کومو کسانو چي په خپله
خپل ځان په تباهی کښي اچولی دی هغوی دا نه مني.

اَلَّذِیۡنَ اٰتَیۡنٰہُمُ الۡکِتٰبَ یَعۡرِفُوۡنَہٗ کَمَا
یَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَہُمۡ ۘ اَلَّذِیۡنَ خَسِرُوۡۤا
اَنۡفُسَہُمۡ فَہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (٢٠)

او له هغه چانه به غټ ظالم څوك وي چي پر الله ددروغو بهتان
ووايي ، يا د الله نښاني دروغ وګڼي؟ دا يقيني ده داسي ظالمان
هيڅكله برى نه شي موندلای.

وَ مَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰہِ
کَذِبًا اَوۡ کَذَّبَ بِاٰیٰتِہٖ ؕ اِنَّہٗ لَا یُفۡلِحُ
الظّٰلِمُوۡنَ (٢١)

په کومه ورځ چي مونږ دوی ټول راپاڅوو او له مشرکانو څخه
پوښتنه وکړو چي اوس ستاسي هغه انګيرلي برخه وال چيرته دي
چي تاسي هغه خپل خدايان ګڼلي وو.

وَ یَوۡمَ نَحۡشُرُہُمۡ جَمِیۡعًا ثُمَّ نَقُوۡلُ لِلَّذِیۡنَ
اَشۡرَکُوۡۤا اَیۡنَ شُرَکَآؤُکُمُ الَّذِیۡنَ کُنۡتُمۡ
تَزۡعُمُوۡنَ (٢٢)

نو هغوی به له دې پرته بله فتنه راپورته نشي کړای چي ( پدې
دروغو ويلو خوله وازه کړي چي ) ای زمونږ باداره! پر تا باندې
قسم چي مونږ هيڅكله مشركان نه وو.

ثُمَّ لَمۡ تَکُنۡ فِتۡنَتُہُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ قَالُوۡا وَ اللّٰہِ
رَبِّنَا مَا کُنَّا مُشۡرِکِیۡنَ (٢٣)

وګوره ، په هغه وخت کښي به دوی په څه ډول خپله پر خپل ځان
دروغ وتپي ، او هلته به د هغو ټول خودساخته معبودان تري تم شي.

اُنۡظُرۡ کَیۡفَ کَذَبُوۡا عَلٰۤی اَنۡفُسِہِمۡ وَ
ضَلَّ عَنۡہُمۡ مَّا کَانُوۡا یَفۡتَرُوۡنَ (٢٤)

له دوی نه ځيني کسان داسي دي چي غوږ باسي ستا خبرې اوري
خو حال دا دی چي مونږ د هغوی پر زړونو پردې اچولي دي چي د
هغو له امله هغوی پرې هيڅ نه پوهيږي او د هغو په غوږونو
کښي مو کونوالی پيدا کړيدی( چي د هر څه له اوريدو سره سره هم
څه نه اوري) هغوی كه هره نښانه وګوري ، ايمان پرې نه راوړي.
ان تر دې چي کله هغوی تاته راشي درسره شخړه کوي نو له هغوی
څخه چي کومو کسانو دانکار فيصله کړيده هغوی ( دټولو خبرو له
اوريدو وروسته ) همدا وايي چي دا له يوې زړې کيسي پرته نور
څه نه دي.

وَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ یَّسۡتَمِعُ اِلَیۡکَ ۚ وَ جَعَلۡنَا
عَلٰی قُلُوۡبِہِمۡ اَکِنَّۃً اَنۡ یَّفۡقَہُوۡہُ وَ فِیۡۤ
اٰذَانِہِمۡ وَقۡرًا ؕ وَ اِنۡ یَّرَوۡا کُلَّ اٰیَۃٍ لَّا
یُؤۡمِنُوۡا بِہَا ؕ حَتّٰۤی اِذَا جَآءُوۡکَ
یُجَادِلُوۡنَکَ یَقُوۡلُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا اِنۡ ہٰذَاۤ
اِلَّاۤ اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ (٢٥)

هغوی ددې حق له منلو څخه خلك منع كوي او په خپله هم ورڅخه
ليرې تښتي. ( هغوی فكر كوي چي په خپل دغه حرکت سره تا ته
څه زيان اړولای شي ) پداسي حال کښي چي اصلاً هغوی په خپله د
خپلي تباهی وسايل برابروي خو هغوی ددې شعور نه لري.

وَ ہُمۡ یَنۡہَوۡنَ عَنۡہُ وَ یَنۡـَٔوۡنَ عَنۡہُ ۚ وَ اِنۡ
یُّہۡلِکُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡفُسَہُمۡ وَ مَا یَشۡعُرُوۡنَ
(٢٦)

کاشکي تا د هغه وخت حالت ليدلی شوای چي هغوی ددوزخ په غاړه
ودرول شي. په هغه وخت کښي به هغوی ووايي چي کاشکي څه
داسي چاره کيدای چي مونږ بېرته دنيا ته لیږل شوي واي اود
خپل رب نښاني به مو دروغ نه ګڼلي او ايمان به مو راوړی وْ.

وَ لَوۡ تَرٰۤی اِذۡ وُقِفُوۡا عَلَی النَّارِ فَقَالُوۡا
یٰلَیۡتَنَا نُرَدُّ وَ لَا نُکَذِّبَ بِاٰیٰتِ رَبِّنَا وَ
نَکُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (٢٧)

بَلْ بَدَا لَہُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَ لَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُہُوْا عَنْہُ وَ اِنَّہُمْ لَكٰذِبُوْنَ (۲۸)

په حقيقت کښې به هغوی دا خبره صرف له دې کبله وکړي چې په کوم حقيقت چې هغوی پرده غوړلې وه په هغه وخت کښې به هغه بې پردې څرګند د هغوی په مخ کښې ايښی وي ، او که هغوی بېرته د خپل پخواني ژوندانه لوري ته ولېږل شي؛ نو بيا به هماغه هر څه سرته ورسوي چې هغوی ورڅخه منع کړای شويدي، هغوی خو دي دروغجن ( له دې امله د خپلې دغې هيلې په څرګندولو کښې به هم له دروغو ويلو څخه کار واخلي)

وَ قَالُوْٓا اِنْ ہِیَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَ مَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ (۲۹)

نن دوی وايي ژوند چې هر څه دی صرف د همدې دنيا ژوند دی او مونږ به له مرګه وروسته هېڅکله دوهم ځل پانه څولی شو.

وَ لَوْ تَرٰی اِذْ وُقِفُوْا عَلٰی رَبِّہِمْ ؕ قَالَ اَلَيْسَ ہٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰی وَ رَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ (۳۰)

کاشکې تا هغه منظر ليدلی شوای چې کله دوی د خپل رب په وړاندې ودرولی شي. په هغه وخت کښې به د هغو رب له هغو څخه پوښتنه وکړي " ايا دا حقيقت نه دی؟" دوی به ووايي:" ولې نه ای زمونږ ربه ! همدا حقيقت دی" هغه به وفرمائي " ښه نو اوس له حقيقت څخه د خپل انکار په مجازات کښې د عذاب خوند واخلئ".

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰہِ ؕ حَتّٰٓی اِذَا جَآءَتْہُمُ السَّاعَۃُ بَغْتَۃً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰی مَا فَرَّطْنَا فِيْہَا ۙ وَ ہُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَہُمْ عَلٰی ظُہُوْرِہِمْ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ (۳۱)

زيانمن شول هغه کسان چې له الله سره د خپل يو ځای کېدو خبر يې دروغ وګڼه. کله چې په ناڅاپي ډول هغه ساعت راورسېږي نو همدا خلك به ووايي " خواشيني ده ! له مونږ نه په دې کار کښې څومره نيمګړتيا وشوه " او ددوی به دا حال وي چې په خپلو اوږو به يې د خپلو ګناهونو پيټی را اخيستی وي. وګوره ! څومره ناکاره پيټی دی چې دوی يې په اوږو را اخلي.

وَ مَا الْحَيٰوۃُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّ لَہْوٌ ؕ وَ لَلدَّارُ الْاٰخِرَۃُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۳۲)

ددنيا ژوند خو يوه لوبه او يوه ننداره ده، په حقيقت کښې هماغه د اخرت مېنه د هغو خلکو له پاره ډېره ښه ده چې غواړي له زيانکارۍ وژغورل شي. نو ايا تاسې له پوهې څخه کار نه اخلئ؟

قَدْ نَعْلَمُ اِنَّہٗ لَيَحْزُنُكَ الَّذِیْ يَقُوْلُوْنَ فَاِنَّہُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَ لٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰہِ يَجْحَدُوْنَ (۳۳)

ای محمده ! مونږ ته ښکاره ده چې کومې خبرې چې دا خلك جوړوي په هغو سره ته ځورېږې ، خو دا خلك تا نه دروغجن کوي، بلکې داظالمان اصلاً د الله له ايتونو څخه منکرېږي.

وَ لَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰی مَا كُذِّبُوْا وَ اُوْذُوْا حَتّٰٓی اَتٰہُمْ نَصْرُنَا ۚ وَ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰہِ ۚ وَ لَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِی الْمُرْسَلِيْنَ (۳۴)

له تانه مخکښې هم ډېر پېغمبران دروغجن ګڼل شويدي، خو هغوی په هغه دروغجن ګڼلو او پر هغو کړاوونو چې ورته ورسول شول صبر وکړ، تر دې پورې چې هغو ته زمونږ مرسته ورسېده . د الله د خبرو د بدلولو وس په هېچا کښې نشته ، او له مخکېنېو پېغمبرانو سره چې څه وشول د هغو خبرو نه تاته رسيدلي دي.

وَ اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ اِعْرَاضُہُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِیَ نَفَقًا فِی الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِی السَّمَآءِ فَتَاْتِيَہُمْ بِاٰيَۃٍ ؕ وَ لَوْ شَآءَ اللّٰہُ لَجَمَعَہُمْ عَلَی الْہُدٰی فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰہِلِيْنَ (۳۵)

بيا هم که د هغو خلکو مخ اړونه ستا له پاره د زغملو وړ نه وي نو که دې زور رسګېږي په ځمکه کښې تونل ولټوه يا اسمان ته زينه کېږده او هغوی ته د کومې نښانې راوړلو هڅه وکړه. که الله غوښتي وای نو هغوی ټول يې پر سمه لاره را غونډولای شول، نو ناپوهه کېږه مه.

د حق بلنې ته هغه خلك لبيك وايي چې اورېدونكي دي، پاتې شول مړي ، نو هغوی خو به الله له قبرونو څخه راپاڅوي او بيا به هغوی ( د هغه محكمې ته دوړاندې كېدو له پاره ) بېرته راوستل شي.

اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ ؕ وَ الْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ (صـ ۳۶)

دوی وايي چې پر دغه پېغمبر دده د رب له لوري كومه نښانه ولې نه نازلېږي؟ ووايه ، الله د نښانې نازلولو بشپړ وس واك لري، خو له هغو څخه زياتره خلك په ناپوهي كښې اخته دي.

وَ قَالُوْا لَوْ لَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۳۷)

په ځمكه كښې خوځېدونكي كوم ساكښ او په هوا كښې په وزرونو سره الوتونكي كوم مارغه ته وګورئ ! دا ټول همداستاسي په څېر انواع او ډولونه دي ، مونږ د هغود تقدير په ليكنه كښې څه نيمګړتيا نه ده پرېښې. بيا دا ټول د خپل رب لوري ته ورغونډېږي.

وَ مَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَ لَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّآ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ؕ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ (۳۸)

خو كوم خلك چې زمونږ نښانې دروغجنې ګڼي هغوی كاڼه او ګونګيان دي ، په تررمېو كښې لويدلي دي. الله چې چاته وغواړي ګمراه كوي يې او چاته يې چې خوښه شي پر سمه لاره يې برابروي.

وَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّ بُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ ؕ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يُضْلِلْهُ ؕ وَ مَنْ يَّشَاْ يَجْعَلْهُ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۳۹)

دوی ته ووايه، لږ شان غور وكړئ راوښيئ، كه كله پر تاسي د الله له لوري كوم لوی غم راځي يا وروستی ساعت رارسېږي نو ايا په هغه وخت كښې تاسي له الله نه پرته كوم بل څوك بلئ ؟ ووايئ كه رېښتيني ياست.

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ اَوْ اَتَتْكُمُ السَّاعَةُ اَغَيْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ۚ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۴۰)

بلكې په هغه وخت كښې تاسي همدا الله بلئ ، بيا كه د هغه خوښه شي نو د هغه غم راوستل چې تاسي نور ورته رابلئ پر تاسي څنډوي. په داسې وختونو كښې تاسي خپل انګېرلي شريكان هېروئ.

بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ وَ تَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ (۴۱)

له تا نه مخكښې مونږ ډېرو قومونو ته پېغمبران لېږلي او هغه قومونه مو په كړاوونو او غمونو لتاړ كړل تر څو هغوی له عاجزۍ سره زمونږ په وړاندې سر ښكته كړي.

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ وَ الضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ (۴۲)

نو كله چې زمونږ له لوري پر هغو سختي راغله نو هغوی ولې عاجزي غوره نه كړه؟ خو د هغوی زړونه لا نور هم سخت شول او شيطان هغوی ته داډېنه وركړه چې تاسي چې څه كوئ ښه كوئ.

فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَ لٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۴۳)

بيا كله چې هغوی هغه نصيحت هېر كړ چې ورته شوی وْ، نو مونږ د هر ډول سوكالۍ دروازې د هغو له پاره پرانيستې ، تر دې پورې چې كله هغوی په هغو نعمتونو كښې چې وربښل شوي وو ښه ډوب شول نو مونږ په ناڅاپي ډول هغوی ونيول او په دې وخت كښې د هغو دا حالت وْ چې له هرې ښېګڼې څخه ناهيلي وو.

فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ؕ حَتّٰٓى اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ (۴۴)

په دې توګه د هغو خلكو سټه وايستله شوه چې هغوی ظلم كړی وْ اوثنا ستاينه ده د الله رب العلمين له پاره ( چې د هغوی سټه يې وايستله).

فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ؕ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۴۵)

ای محمده ! دوی ته ووایه ، کله مو پر دې هم فکر کړیدی چي که الله ستاسي لیدنه او اورېدنه درڅخه واخلي او ستاسي زړونه مهر کړي نو له الله نه پرته بل کوم خدای شته چي تاسي ته دا قواوي بېرته درکړای شي؟ وګوره ، په څه شان مونږ بیا بیا خپلي نښاني دوی ته وړاندې کوو او بیا دوی ورڅخه په څه ډول سترګي اړوي.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَ اَبْصَارَكُمْ وَ خَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ (۴۶)

ووایه تاسي کله پردې فکر کړیدی چي د الله له لوري په ناڅاپي یا څرګند ډول پر تاسي عذاب راشي نو ایا له ظالمانو پرته به نور څوك هلاك شي؟

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ (۴۷)

مونږ چي کوم پېغمبران لېږو د همدې له پاره یې لېږو چي هغوی نیکانو ته زیری ورکوونکي او د بد عمله خلکو ویروونکي اوسي، نو چي کوم کسان د هغوی خبره ومني او خپله کړنچاره سمه کړي دهغوی له پاره هېڅ وېره او خپګان نشته.

وَ مَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَ مُنْذِرِيْنَ ۚ فَمَنْ اٰمَنَ وَ اَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۴۸)

او کوم خلك چي زمونږ ایتونه دروغ وګڼي هغوی ته به د خپلو سرغړونو په مجازات کښي عذاب ورسېږي.

وَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ (۴۹)

ای محمده ! دوی ته ووایه " زه تاسي ته دا نه وایم چي له ما سره د الله خزاني دي. نه زه د غیبو علم لرم او نه تاسي ته دا وایم چي زه پرښته یم. زه خو یوازې د هغې وحیې پیروي کوم چي ما ته رااستوله کېږي" بیا له دوینه پوښتنه وکړه ایا ړانده او سترګو ر دواړه برابر بېدای شي؟ ایا تاسي فکر نه کوئ؟

قُلْ لَّا اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَ لَا اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَ لَا اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰى اِلَيَّ ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَ الْبَصِيْرُ ؕ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ (۵۰)

او ای محمده (ص) ! ته ددې ( وحیې د علم ) په وسیله هغو خلکو ته نصیحت وکړه چي له دې خبرګ څخه وېرېږي چي د خپل رب حضور ته به یو وخت په داسي حال کښي وړاندې کړای شي چي له هغه پرته به هلته کوم ( داسي وسوال واکمن ) نه وي چي د هغوی ملاتړ مرستندوي وي ، یاد هغوی سپارښ وکړي، ښایي چي ( له دې نصیحت څخه په پند اخیستلو ) هغوی د خدای د وېرې کړنلاره غوره کړي.

وَ اَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّ لَا شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ (۵۱)

او کوم خلك چي شپه ورځ خپل رب ته لاس په دعادي او د هغه خوښي غواړي هغوی له خپله ځانه لیري مه شړه . دهغوی له حساب نه د هېڅ شي پېتی پر تا نشته او ستا له حساب نه د هېڅ شي پېتی پر هغوی نشته . ددې له پاسه هم که ته هغوی لیري وشړې نو په ظالمانو کښي به وشمېرل شي.

وَ لَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَ الْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ؕ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّ مَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ (۵۲)

په اصل کښي مونږ په دې توګه له دې خلکو څخه ځیني پر ځینو نورو په ازمېښت کښي اچولي دي چي هغوی دوی وګوري ووایي" ایا دغه دي هغه خلك چي پر دوی زمونږ په مینځ کښي د الله لورېنه او مهرباني شوېده "؟ هو! ایا خدای خپل شکر وېستونکي بندګان له دوی نه ډېر ښه نه پېژني؟

وَ كَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ (۵۳)

کله چي تا ته هغه خلك راشي چي زمونږ پر ایتونو ایمان راوړي نو هغوی ته ووایه" سلام پر تاسي او ستاسي رب د رحم او مهرباني کړنچاره پر خپل ځان لازمه کړېده . دا د هغه رحم او مهرباني ده چي که له تاسي نه څوك په ناپوهی سره د کومي بدی مرتکب شوي وي بیا له هغه وروسته تو به وباسي او خپله رویه اصلاح کړي نو هغه ورته ښنه کوي او له نرمی څخه کار اخلي".

وَ اِذَا جَآءَکَ الَّذِیۡنَ یُؤۡمِنُوۡنَ بِاٰیٰتِنَا فَقُلۡ سَلٰمٌ عَلَیۡکُمۡ کَتَبَ رَبُّکُمۡ عَلٰی نَفۡسِہِ الرَّحۡمَۃَ ۙ اَنَّہٗ مَنۡ عَمِلَ مِنۡکُمۡ سُوۡٓءًۢ ا بِجَہَالَۃٍ ثُمَّ تَابَ مِنۡۢ بَعۡدِہٖ وَ اَصۡلَحَ فَاَنَّہٗ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۵۴)

او پدي ډول مونږ خپلي نښاني په ډاګه څرګنده وړاندې کوو چي د مجرمانو لاره بیخي ښکاره شي.

وَ کَذٰلِکَ نُفَصِّلُ الۡاٰیٰتِ وَ لِتَسۡتَبِیۡنَ سَبِیۡلُ الۡمُجۡرِمِیۡنَ (۵۵)

ای محمده (ص) ! دوی ته ووایه چي تاسي چي له الله نه پرته نور بلئ د هغو له بندګی کولو نه زه منع کړای شوی یم. ووایه ، زه به ستاسي د نفسي غوښتنو پیروي ونه کړم، که ما داسي وکړل نو ګمراه شوم ، او دسمي لارې له میندونکو څخه نه شوم .

قُلۡ اِنِّیۡ نُہِیۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ الَّذِیۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ ؕ قُلۡ لَّاۤ اَتَّبِعُ اَہۡوَآءَکُمۡ ۙ قَدۡ ضَلَلۡتُ اِذًا وَّ مَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُہۡتَدِیۡنَ (۵۶)

ووایه ، زه د خپل رب له لوري څخه پر یو روښانه دلیل ولاړ یم او تاسي هغه دروغ ګڼلی دی، اوس زما په واك کښي هغه څه نشته چي د هغو له پاره تاسي تلوار نیولي یاست ، د فیصلي ټول واك د الله دی، هماغه حق بیانوي او هماغه ډېر ښه فیصله کوونکی دی.

قُلۡ اِنِّیۡ عَلٰی بَیِّنَۃٍ مِّنۡ رَّبِّیۡ وَ کَذَّبۡتُمۡ بِہٖ ؕ مَا عِنۡدِیۡ مَا تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ بِہٖ ؕ اِنِ الۡحُکۡمُ اِلَّا لِلّٰہِ ؕ یَقُصُّ الۡحَقَّ وَ ہُوَ خَیۡرُ الۡفٰصِلِیۡنَ (۵۷)

ووایه ، که هغه شی زما په واك کښي وای چي تاسي په تلوار سره د هغه غوښتنه کوئ نو زما او ستاسي تر مینځه به دوخته فیصله شوې وه ، خو الله ډېر ښه پوهېږي چي له ظالمانو سره څه معامله کول غواړي.

قُلۡ لَّوۡ اَنَّ عِنۡدِیۡ مَا تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ بِہٖ لَقُضِیَ الۡاَمۡرُ بَیۡنِیۡ وَ بَیۡنَکُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ اَعۡلَمُ بِالظّٰلِمِیۡنَ (۵۸)

له هماغه سره د غیبو کلیګاني دي چي له هغه نه پرته بل څوك پرې نه پوهېږي ، په وچه او لمده کښي چي هر څه دي له ټولو څخه هغه خبر دی، له ونې څخه کومه رالوېدونکې پاڼه داسي نشته چي هغه پرې عالم نه وي. د ځمکي په تړږمی پردو کښي کومه دانه داسي نشته چي هغه ورڅخه باخبرنه وي. وچ او لامده ټول په یو روښانه کتاب کښي لیکل شویدي.

وَ عِنۡدَہٗ مَفَاتِحُ الۡغَیۡبِ لَا یَعۡلَمُہَاۤ اِلَّا ہُوَ ؕ وَ یَعۡلَمُ مَا فِی الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ ؕ وَ مَا تَسۡقُطُ مِنۡ وَّرَقَۃٍ اِلَّا یَعۡلَمُہَا وَ لَا حَبَّۃٍ فِیۡ ظُلُمٰتِ الۡاَرۡضِ وَ لَا رَطۡبٍ وَّ لَا یَابِسٍ اِلَّا فِیۡ کِتٰبٍ مُّبِیۡنٍ (۵۹)

هماغه دی چي د شپې ستاسي ساګاني اخلي او دورځي چي څه کوئ پر هغو پوهېږي، بیا په بله ورځ هغه تاسي د همدې ژوند ژواك په نړئ کښګي راپاڅوي چي د ژوند ټاکلي موده سرته ورسېږي. په پای کښي د هماغه لوري ته ستاسي ورګرځېدل دي، بیا به هغه تاسي ته وښیي چي تاسي څه کول.

وَ ہُوَ الَّذِیۡ یَتَوَفّٰىکُمۡ بِالَّیۡلِ وَ یَعۡلَمُ مَا جَرَحۡتُمۡ بِالنَّہَارِ ثُمَّ یَبۡعَثُکُمۡ فِیۡہِ لِیُقۡضٰۤی اَجَلٌ مُّسَمًّی ۚ ثُمَّ اِلَیۡہِ مَرۡجِعُکُمۡ ثُمَّ یُنَبِّئُکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ (۶۰)

هغه پر خپلو بندګانو بشپړ وس واك لري او پر تاسي څارونکي پرښتي لېږي، تر دې چي کله له تاسي څخه د کوم یوه د مرګ نیټه رارسېږي نو د هغه لېږل شوي پرښتي د هغه سا اخلي او د خپلي فریضي په سرته رسولو کښي یو بڅری لنډون نه کوي،

وَ ہُوَ الۡقَاہِرُ فَوۡقَ عِبَادِہٖ وَ یُرۡسِلُ عَلَیۡکُمۡ حَفَظَۃً ؕ حَتّٰۤی اِذَا جَآءَ اَحَدَکُمُ الۡمَوۡتُ تَوَفَّتۡہُ رُسُلُنَا وَ ہُمۡ لَا یُفَرِّطُوۡنَ (۶۱)

بیا ټول د الله ، د خپل حقیقي بادار په لوري بېرته راوستل کېږي، خبردار اوسئ ، د فیصلي ټولي واکمنئ د هماغه په لاس کښي دي او هغه په حساب اخیستلو کښي ډېر چټك دی.

ثُمَّ رُدُّوۡۤا اِلَی اللّٰہِ مَوۡلٰىہُمُ الۡحَقِّ ؕ اَلَا لَہُ الۡحُکۡمُ ۟ وَ ہُوَ اَسۡرَعُ الۡحٰسِبِیۡنَ (۶۲)

ای محمده (ص)! له دوی نه پوښتنه وکړه ، د بېدیا او سمندر په تیارو کښې څوك تاسي له خطرونو څخه ژغوري؟ څوك دی چې له هغه څخه تاسي ( د کړاوْ په وخت کښې ) په زاریو او په پټه پټه دعاوې غواړئ؟ چاته وایئ چې که تا له دې بلا څخه مونږ وژغورلو نو مونږ به ارومرو شکر ویستونکي اوسو؟

قُلۡ مَنۡ يُّنَجِّيۡكُمۡ مِّنۡ ظُلُمٰتِ الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ تَدۡعُوۡنَهٗ تَضَرُّعًا وَّ خُفۡيَةً ۚ لَئِنۡ اَنۡجٰنَا مِنۡ هٰذِهٖ لَنَكُوۡنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيۡنَ (۶۳)

ووایه ، الله تاسي ته له هغې او له بل هر کړاوْ څخه نجات درکوي بیا تاسي نور له هغه سره شریکان ګڼئ.

قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيۡكُمۡ مِّنۡهَا وَ مِنۡ كُلِّ كَرۡبٍ ثُمَّ اَنۡتُمۡ تُشۡرِكُوۡنَ (۶۴)

ووایه، هغه پرډې قادر دی چې پر تاسي کوم عذاب له پاسه نازل کړي، یا ستاسي تر قدمونو لاندې نه یې راپورته کړي، یا تاسي پر ډلو وویشي پر یوې ډلې دبلې ډلې د زور خوند وڅکي. وګوره ، مونږ په څه شان په مکرره توګه له بېلابېلو لارونه خپلې نښانې دوی ته وړاندې کوو ښایي چې دوی پردې حقیقت وپوهېږي.

قُلۡ هُوَ الۡقَادِرُ عَلٰۤى اَنۡ يَّبۡعَثَ عَلَيۡكُمۡ عَذَابًا مِّنۡ فَوۡقِكُمۡ اَوۡ مِنۡ تَحۡتِ اَرۡجُلِكُمۡ اَوۡ يَلۡبِسَكُمۡ شِيَعًا وَّ يُذِيۡقَ بَعۡضَكُمۡ بَاۡسَ بَعۡضٍ‌ ؕ اُنۡظُرۡ كَيۡفَ نُصَرِّفُ الۡاٰيٰتِ لَعَلَّهُمۡ يَفۡقَهُوۡنَ (۶۵)

ستا قوم له هغه څخه انکار کوي حال دا دی چې هغه حقیقت دی. دوی ته ووایه ، چې زه پر تاسي دمحافظ په حیث نه یم مقرر شوی،

وَ كَذَّبَ بِهٖ قَوۡمُكَ وَ هُوَ الۡحَـقُّ‌ ؕ قُلْ لَّسۡتُ عَلَيۡكُمۡ بِوَكِيۡلٍ (ؕ۶۶)

د هر خبر د څرګندېدو یو وخت ټاکلی دی، ډېر ژر به تاسي په خپله پر عاقبت پوه شئ.

لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسۡتَقَرٌّ‌ ۚ وَّ سَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ (۶۷)

او ای محمده (ص) ! کله چې ته وګورې چې خلك زمونږ په ایتونو کښې نکتې لټوي نو د هغو له څنګ نه پاڅېږه تر دې پورې چې هغوی دا بحثونه پرېږدي په نورو خبرو پېل وکړي. او که کله شیطان تا په هېره کښې واچوي نو چې څه وخت دا خطا احساس کړې له هغه وروسته بیا ددې ظالمانو څنګ ته مه کښېنه.

وَ اِذَا رَاَيۡتَ الَّذِيۡنَ يَخُوۡضُوۡنَ فِىۡۤ اٰيٰتِنَا فَاَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ حَتّٰى يَخُوۡضُوۡا فِىۡ حَدِيۡثٍ غَيۡرِهٖ‌ ؕ وَ اِمَّا يُنۡسِيَنَّكَ الشَّيۡطٰنُ فَلَا تَقۡعُدۡ بَعۡدَ الذِّكۡرٰى مَعَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ (۶۸)

د هغوی له حساب څخه د هېڅ کوم شي مسئولیت پر پرهیز ګارانو نشته ، البته نصیحت کول یې فریضه ده ښایي چې هغوی له غلطۍ لارې راواوړي.

وَ مَا عَلَى الَّذِيۡنَ يَتَّقُوۡنَ مِنۡ حِسَابِهِمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ وَّ لٰـكِنۡ ذِكۡرٰى لَعَلَّهُمۡ يَتَّقُوۡنَ (۶۹)

هغه خلك پرېږده چې هغوی خپل دین لوبه او ننداره جوړه کړېده او ددنیا ژوندانه غولولي دي. هو، خو ددې قرآن په اوررولو نصیحت کوونکی او پند ورکوونکی او سه چې چېرته څوك د خپلو کړ نو په ګناه کښې هلاکت ته ونه سپارل شي ، او هلاکت هم په داسي حال کښې وي چې له الله نه د هغه د ژغورلو له پاره کوم ملاتړ او مرستندوی او سپارښ کوونکی نه وي او که هغه د هر ممکن شي په فدیه ورکولو دځان خلاصول وغواړي نو هغه به هم ورڅخه قبوله نه کړای شي، ځکه چې داسي خلك خو به د خپلو عملونو په نتیجه کښې ونیول شي، هغوته به له حق څخه د خپل انکار په مجازات کښې د ځښلو خوټېدلې اوبه او دردناك عذاب ورکړل شي.

وَ ذَرِ الَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا دِيۡنَهُمۡ لَعِبًا وَّ لَهۡوًا وَّ غَرَّتۡهُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا‌ وَ ذَكِّرۡ بِهٖۤ اَنۡ تُبۡسَلَ نَفۡسٌۢ بِمَا كَسَبَتۡ ‌ۖ لَيۡسَ لَهَا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَلِىٌّ وَّ لَا شَفِيۡعٌ‌ ۚ وَ اِنۡ تَعۡدِلۡ كُلَّ عَدۡلٍ لَّا يُؤۡخَذۡ مِنۡهَا‌ ؕ اُولٰۤـئِكَ الَّذِيۡنَ اُبۡسِلُوۡا بِمَا كَسَبُوۡا‌ ۚ لَهُمۡ شَرَابٌ مِّنۡ حَمِيۡمٍ وَّ عَذَابٌ اَلِيۡمٌۢ بِمَا كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ (۷۰)

قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَ لَا يَضُرُّنَا وَ نُرَدُّ عَلٰى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰنَا اللّٰهُ كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ لَهٗ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ط قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ط وَ اُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۷۱)

ای محمده (ص) ! له دوی څخه پوښتنه وکړه ایا مونږ له الله نه پرته هغه وبلو چې نه مونږ ته ګټه رسولای شي نه زیان ؟ او کله چې الله مونږ ته سمه لاره راښودلې ده نو ایا مونږ اوس پر خپلو پوندو شاته وګرځیږو؟ ایا مونږ خپل حالت د هغه چا په څیر کړو چې شیطانانو هغه په بیدیا کښې لار ورکې کړی وي او هغه حیران لا لهانده ګرځي راګرځي په داسې حال کښې چې ملګري یې ورته ناري وهي چې داسې راشه داسمه لاره ده؟ ووایه ، په حقیقت کښې خو سمه رهبري یوازې د الله رهبري ده او د هغه له خوا مونږ ته دا امر شویدی چې د کائناتو د څښتن په وړاندې د اطاعت سر ښکته کړئ ،

وَ اَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اتَّقُوْهُ ط وَ هُوَ الَّذِىْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ (۷۲)

لمونځ قائم کړئ، او د هغه له نافرمانی څخه ځان وژغورئ، د هماغه لوري ته ستاسې ټولو ورغونډېدل دي.

وَ هُوَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِالْحَقِّ ط وَ يَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ ط قَوْلُهُ الْحَقُّ ط وَ لَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ ط عٰلِمُ الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ ط وَ هُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ (۷۳)

هماغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه یې په حقه پیدا کړیدي. او په کومه ورځ چې هغه ووایي چې پاڅئ راټول شئ په هماغه ورځ به هغوی همداسې شي. دهغه وینا هو بهو حق ده، او په کومه ورځ چې شپیلۍ پو کړه شي په هغه ورځ به باچاهي د هماغه وي، هغه په پټو او ښکاره و هر څه پوه دی او حکمت والا او با خبر دی.

وَ اِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ج اِنِّىْ اَرٰىكَ وَ قَوْمَكَ فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (۷۴)

د ابراهیم (ع) ماجرا یاده کړه چې کله هغه خپل پلار ازر ته ویلي وو" ایا ته بتان په خدایی سره نیسې؟ زه خو تا او ستا قوم په ښکاره ګمراهۍ کښې وینم."

وَ كَذٰلِكَ نُرِىْ اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ لِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ (۷۵)

مونږ په دې ډول ابراهیم (ع) ته د اسمانونو او ځمکې د سلطنت نظام ورښوولی ؤ او ددې له پاره مو ورښوولی ؤ چې هغه له باور کوونکیو څخه شي.

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ج قَالَ هٰذَا رَبِّىْ ج فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَآ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ (۷۶)

لکه چې کله شپه پرې خوره شوه نو هغه یو ستوری ولید ، ویې ویل دا زما رب دی؛ (ستاسې په زعم) خو کله چې هغه پرېوته نو ویې ویل په پرېو تونکي پورې زما زړه تړلی نه دی.

فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّىْ ج فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِىْ رَبِّىْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ (۷۷)

بیا یې چې کله سپوږمۍ ځلانده تر سترګو شوه نو ویې ویل دا دی زما رب، (ستاسې په زعم ) خو کله چې هغه هم پرېوتله نو ویې ویل که زما رب ماته لارښوونه نه وای کړې نو زه به هم له ګمراهانو څخه شوی وای.

فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّىْ هٰذَآ اَكْبَرُ ج فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ (۷۸)

بیا چې کله یې لمر روښانه ولیده نو ویې ویل دا دی زما رب ، (ستاسې په زعم ) دا تر ټولو لوی دی، خو کله چې هغه هم پرېوت نو ابراهیم اواز وکړ" ای قومه ! زه له هغو ټولو نه بیزار یم چې تاسې هغه له خدای سره شریك ګڼئ.

اِنِّىْ وَجَّهْتُ وَجْهِىَ لِلَّذِىْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّ مَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۷۹)

ما خو یو لوري ته په میلان کولو د هغه ذات خوا ته مخ اړولی دی چې هغه اسمانونه او ځمکه پیدا کړیدي او زه هېڅکله له شرك کوونکیو څخه نه یم".

د هغه قوم له هغه سره په جګړه لاس پورې کړ نو هغه قوم ته وویل" ایا تاسي د الله په کار کښي له ما سره جنګیږئ؟ په داسي حال کښي چي هغه ماته سمه لاره راښودلي ده ، او زه ستاسي له انګیرلیو شریکانو څخه نه ویریږم، هو که زما د رب څه خوښه وي نو هغه ارومرو کیدای شي. زما درب علم پر هر څه خور شویدی، نو ایا تاسي فکر من کیږئ نه؟

وَ حَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ؕ قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّیْ فِی اللّٰهِ وَ قَدْ هَدٰىنِ ؕ وَ لَاۤ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ یَّشَآءَ رَبِّیْ شَیْـًٔا ؕ وَسِعَ رَبِّیْ كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ (۸۰)

او زه ستاسي له انګیرلیو خدایانو څخه ولي وویریږم چي کله تاسي له الله سره په خدایی کښي د هغو شیانو په شریکولو نه ویریږئ چي د هغو له پاره پر تاسي کوم سند ندی نازل کړی شوی؟ له مونږ دواړو ډلو نه کومه یوه زیاته دنه ویریدو او ډاډیني وړ ده؟ راوښیئ که تاسي څه علم لرئ.

وَ كَیْفَ اَخَافُ مَاۤ اَشْرَكْتُمْ وَ لَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ عَلَیْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ فَاَیُّ الْفَرِیْقَیْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۸۱)

په حقیقت کښي خو امنیت د هماغو کسانو له پاره دی او پر سمه لاره برابر هماغه کسان دي چي ایمان یې راوړی او خپل ایمان یې پر ظلم نه دی ملوث کړی."

اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ لَمْ یَلْبِسُوْۤا اِیْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَ هُمْ مُّهْتَدُوْنَ (۸۲)

داوْ زمونږ هغه حجت چي مونږ ابراهیم (ع) ته د هغه د قوم په مقابل کښي ورکړ. مونږ چي چاته وغواړو لوړي درجي ورپه برخه کوو. حق دادی چي ستا رب ډیر حکیم او د علم څښتن دی.

وَ تِلْكَ حُجَّتُنَاۤ اٰتَیْنٰهَاۤ اِبْرٰهِیْمَ عَلٰی قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِیْمٌ عَلِیْمٌ (۸۳)

او مونږ ابراهیم (ع) ته اسحق (ع) او دیعقوب (ع) غوندي ځوځات ورکړ او هر یوه ته مو سمه لاره وښودله . ( هماغه سمه لاره چي ) له دي نه مخکښي مو نوح ( ع) ته وربښودلي وه . او د هماغه له اولادي نه مونږ داود (ع) ، سلیمان (ع) ، ایوب (ع) ، یوسف (ع) ، موسی (ع) او هارون (ع) ته ( هدایت ورکړ) په دې توګه مونږ نیکي کوونکو ته د هغوی د نیکی مکافات ورکوو.

وَ وَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَ یَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَیْنَا ۚ وَ نُوْحًا هَدَیْنَا مِنْ قَبْلُ وَ مِنْ ذُرِّیَّتِهٖ دَاوٗدَ وَ سُلَیْمٰنَ وَ اَیُّوْبَ وَ یُوْسُفَ وَ مُوْسٰی وَ هٰرُوْنَ ؕ وَ كَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ (۸۴)

د هماغه له اولادي څخه مو ) زکریا (ع) ، یحیی (ع) ، عیسي ) .هغوی ټول نیکان وو ( (ع) ، او الیاس (ع) ته ( لاربښوونه وکړه

وَ زَكَرِیَّا وَ یَحْیٰی وَ عِیْسٰی وَ اِلْیَاسَ ؕ كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِیْنَ (۸۵)

دهماغه له کورنی څخه مو) اسماعیل (ع)،الیسع (ع) ، یونس (ع) ) او لوط (ع) ته ( لاره وښودله) له دوی نه هر یوه ته مونږ پر ټولو نړیوالو لوړتیا وروبښله ،

وَ اِسْمٰعِیْلَ وَ الْیَسَعَ وَ یُوْنُسَ وَ لُوْطًا ؕ وَ كُلًّا فَضَّلْنَا عَلَی الْعٰلَمِیْنَ (۸۶)

دغه راز د هغو له پلرونو نیکونو ، د هغو له اولادي او د هغوی له ورونو څخه پر زیاترو باندي مونږ پېرزوینه وکړه ، هغوی مو د خپل خدمت له پاره غوره کړل او هغوی ته مو د سمي لاري ښوونه وکړه.

وَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَ ذُرِّیّٰتِهِمْ وَ اِخْوَانِهِمْ ۚ وَ اجْتَبَیْنٰهُمْ وَ هَدَیْنٰهُمْ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ (۸۷)

دا د الله هدایت دی په هغه سره چي هغه له خپلو بندګانو څخه چا ته وغواړي لاربښوونه کوي، خو که هغوی شرك کړی وای نو د هغوی ټول عملونه به عبث ګرځیدلی وای.

ذٰلِكَ هُدَی اللّٰهِ یَهْدِیْ بِهٖ مَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَ لَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ (۸۸)

دا هماغه کسان وو چي مونږ ورته کتاب ، حکم او پېغمبري ورکړي وه. اوس که دا خلك د هغه له منلو څخه انکار کوي نو ( پروانشته ) مونږ څه نورو خلکو ته دانعمت ورسپارلی دی چي له هغه څخه منکران نه دي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْحُكْمَ وَ النُّبُوَّةَ ۚ فَاِنْ یَّكْفُرْ بِهَا هٰۤؤُلَآءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّیْسُوْا بِهَا بِكٰفِرِیْنَ (۸۹)

ای محمده (ص) ! هماغه کسان د الله له لوري هدایت میندونکي وو، د هماغو پر لاره ته هم لاړ شه ، او ووایه چې زه ( ددې تبلیغ او لارښوونې ) پر وظیفه له تاسې نه د کوم اجر غوښتونکی نه یم، دا د ټولو نړېوالو له پاره یو عمومي نصیحت دی.

أُولَٰئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ۗ قُلْ لَّا اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۗ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ (۹۰)

دوی د الله صحیح قدر او ستاینه ونه کړه چې کله یې وویل: الله پر کوم انسان څه نه دي نازل کړي. له دوی نه پوښتنه وکړه ، نو بیا هغه کتاب چې موسی (ع) راوړی وْ چې د ټولو انسانانو له پاره روښنایي او هدایت وْ ، چې تاسې هغه ټوټې کوئ، لږ څه ښکاره کوئ او ډېر څه پټوئ، او د هغه په وسیله تاسې ته هغه علم درکړ شو چې نه له تاسې سره وْ او نه ستاسې له پلار نیکه سره ، ښه نو د هغه نازلوونکی څوك وْ؟ صرف دومره ووایه چې الله ، بیایې په خپلو دلیل بازیو کښې لوبو کولو ته پرېږده.

وَ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَىْءٍ ۗ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِىْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّ هُدًى لِّلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا وَ تُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ وَ عُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَ لَآ اٰبَآؤُكُمْ ۗ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِىْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ (۹۱)

د هماغه کتاب په څېر) دا یو کتاب دی چې مونږ نازل کړیدی، له ) خیر او برکت نه ډك دی، دهغه څه تصدیق کوي چې له ده نه مخکښې راغلي وو. او ددې په خاطر نازل کړای شویدی چې ته په هغه سره د کلیو دا مرکز ( یعنې مکه ) او د هغې په شاوخوا کښې کوم خلك چې اخرت مني هغوی پر دې کتاب .اوسیدونکي تنبیه کړئ .ایمان راوړي او هغوی داسې دي چې د خپلو لمونځونو پابندي کوي

وَ هٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِىْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَ لِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَ مَنْ حَوْلَهَا ۗ وَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ (۹۲)

او له هغه چانه به بل لوی ظالم څوك وي چې په الله پورې ددروغو بهتان وتړي، یاووایي چې پر ما وحیې راغلې ده په داسې حال کښې چې پر هغه کومه وحیې نه وي نازله کړای شوې ، یا هغه څوك چې د الله د نازل کړي شي په مقابله کښې ووایي چې زه به هم داسې شی نازل کړم؟ کاشکې ته ظالمان په هغه حالت کښې ولیدلای شې چې هغوی د ځنکدن په سختیو کښې غوټې وهونکي وي او پرښتې په لاس غځولو ورته ویونکې وي چې " راوړئ وباسئ خپله سا ، نن به تاسې ته د هغو خبرو په مجازات کښې رسوا کوونکی عذاب درکړل شي چې تاسې په الله پورې د ناحقه تور په تپلو کولې او د هغه د ایتونو په مقابل کښې مو له سرغړونې او لویی کولو څخه کار اخیست ".

وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِىَ اِلَىَّ وَ لَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَىْءٌ وَّ مَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ۗ وَ لَوْ تَرٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِىْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۗ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَ كُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ (۹۳)

دادی اوس تاسې هماغسې يك تنها زمونږ په ( او الله به ووایي ) وړاندې حاضر شوئ لکه څنګه چې مونږ په لومړي ځل تاسې یوازې پیدا کړي وئ، څه چې مونږ تاسې ته په دنیا کښې درکړي وو هغه ټول تاسې شاته پرېښې راغلي یاست ، او اوس مونږ له تاسې سره ستاسې هغه سپارښ کوونکي هم نه وینو چې د هغو په باب ستاسې دا ګومان وْ چې ستاسې د چارو په برابرولو کښې هغوی هم یو څه برخه وال دي، ستاسې ټولې خپلمنځې اړیکې پرېکړ .شوې او هغه ټول درڅخه ورك شول چې تاسې د هغو ګومان درلود

وَ لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّ تَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَ مَا نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ۗ لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَ ضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ (۹۴)

ددانې او زړي چوونکی الله دی، هماغه ژوندی له مړي څخه باسي او هماغه مړی له ژوندي نه باسي . ددې ټولو چارو سرته رسوونکی خو الله دی ، نو تاسې کوم لوري ته اووښتونکي یاست ؟

اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَ النَّوٰى ۗ يُخْرِجُ الْحَىَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَ مُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَىِّ ۗ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ (۹۵)

هماغه د شپې پرده څیروي سهار را باسي . هماغه شپه د ارام کولو وخت ګرځولي ده، هماغه د لمر او سپوږمۍ د ختلو پریوتلو حساب ټاکلی دی. دا ټولې د هماغه ستر قدرت او علم لرونکي ټاکلي اندازې دي.

فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ۚ وَ جَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ حُسْبَانًا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ (۹۶)

او هماغه ذات دی چې ستاسې له پاره یې ستوري د بېدیا او سمندر په تررمېو کښې د لارې پېژندلو وسیله وګرځوله . وګورئ مونږ نښانې په ډاګه ښکاره بیان کړیدي د هغو خلکو له پاره چې علم لري.

وَ هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ النُّجُوْمَ لِتَهْتَدُوْا بِهَا فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَ الْبَحْرِ ؕ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ (۹۷)

او هماغه ذات دی چې تاسې یې له یو نفس څخه پیدا کړئ بیا د هر یوه له پاره د تقرر نیولو یو ځای دی او یو د هغه د ورسپارنې ځای . دا نښانې مونږ د هغو خلکو له پاره څرګندې کړیدي چې پوهه او ادراك لري.

وَ هُوَ الَّذِيْۤ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّ مُسْتَوْدَعٌ ؕ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ (۹۸)

او هماغه ذات دی چې له اسمانه یې اوبه ورولې ، بیامونږ د هغو په وسیله هر راز نباتات راوټوکول ، بیا مو ورڅخه شنه ښېرازه کښتونه او ونې پیدا کړې ، بیا مو ورڅخه لاندې باندې سپرې دانې راویستلې او د کجورو له ځانګو نه مو د مېوو وږې شنګلې پیدا کړې چې له ډېر بارنیولو نه ښکته زانګي، او دانګورو ، ښونو او انارو باغونه مو جوړ کړل چې د هغو میوې یو بل ته ځېرمه ورته هم دي او بیا د هرې یوې خصوصیات بېلابېل هم دي. داونې چې کله میوه نیسي نو په هغو کښې د میوې راوړلو او بیا یې د پخېدو څرنګوالي ته لږ ځیر شئ، په دې شیانو کښې نښانې دي د هغو کسانو له پاره چې ایمان راوړي.

وَ هُوَ الَّذِيْۤ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَ مِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّ جَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّ الزَّيْتُوْنَ وَ الرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّ غَيْرَ مُتَشَابِهٍ ؕ اُنْظُرُوْۤا اِلٰى ثَمَرِهٖۤ اِذَاۤ اَثْمَرَ وَ يَنْعِهٖ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۹۹)

ددې له پاسه هم کافرانو پیریان له الله سره شریکان وانګېرل ، په داسې حال کښې چې الله د هغو خالق دی، او بې پوهې او بې ادراکه یې د هغه له پاره زامن او لونې جوړې کړې، په داسې حال کښې چې الله له هغو خبرو څخه پاك او ډېر لوړ دی چې دوی یې کوي.

وَ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَ خَلَقَهُمْ وَ خَرَقُوْا لَهٗ بَنِيْنَ وَ بَنٰتٍۭ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يَصِفُوْنَ (۱۰۰)

هغه خو د اسمانونو او ځمکې هستوونکی دی، د هغه کوم زوی له کومه کیدای شي چې له سره ځوك دهغه د ژوند ملګرې نشته هغه هر څه پیدا کړیدي او هغه پر هر څه پوهیدونکی دی.

بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اَنّٰى يَكُوْنُ لَهٗ وَلَدٌ وَّ لَمْ تَكُنْ لَّهٗ صَاحِبَةٌ ؕ وَ خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ ۚ وَ هُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۱۰۱)

دا دی الله ستاسې رب، هېڅ کوم بل خدای له هغه پرته نشته ، د هر څه خالق ، نو له دې امله تاسې د هماغه بندګي وکړئ او هغه د هر شي ساتونکی ځارونکی دی،

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ۚ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ (۱۰۲)

کتنې هغه نه شي موندلای او هغه کتنې میندلی شي هغه ډېر زیات باریك بین او باخبره دی.

لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ ۫ وَ هُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ ۚ وَ هُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ (۱۰۳)

وګورئ ، تاسې ته ستاسې د رب له لورې نه د کتنې وړ روښنایی راغلې دي، اوس چې څوك له بینایی څخه کار واخلي د ځان له پاره به ګټه وکړي او څوك چې ځان ړوند واچوي خپل ځان ته به زیان واړوي، زه پر تاسې کوم پیره دار نه یم.

قَدْ جَآءَكُمْ بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ ۚ فَمَنْ اَبْصَرَ فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَ مَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا ؕ وَ مَاۤ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ (۱۰۴)

په دې ډول مونږ خپل ايتونه بيا بيا په بېلابېلو ډولونو بيا نوو او ددې له پاره يې بيانوو چې دا خلك به وايي تا له چا څخه زده کړه کړېده ، او کوم کسان چې عالمان دي د هغو له پاره مونږ حقيقت روښانه کړو.

وَ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ وَ لِيَقُوْلُوْا دَرَسْتَ وَ لِنُبَيِّنَہٗ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ (۱۰۵)

ای محمده (ص) ! د هغې وحيې پيروي کوونکی اوسه چې پر تا ستا د رب له لوري نازله شوېده . ځکه چې له هغه يو رب نه پرته بل کوم خدای نشته ، او په دې مشرکانو پسې پل مه وهه.

اِتَّبِعْ مَاۤ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۚ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ۚ وَ اَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ (۱۰۶)

که د الله خوښه وای نو ( هغه په خپله داسې لاره چاره برابرولی شوه چې ) دا خلك مشركان شوي نه وای ، ته مونږ پر هغو پيره دارنه يې ټاکلی او نه ته پر هغو باندې مسلط ساتونکی يې.

وَ لَوْ شَآءَ اللّٰہُ مَاۤ اَشْرَكُوْا ؕ وَ مَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْہِمْ حَفِيْظًا ۚ وَ مَاۤ اَنْتَ عَلَيْہِمْ بِوَكِيْلٍ (۱۰۷)

او ( ای مؤمنانو ! ) دا خلك چې له الله نه پرته څوك بلې هغوی ته کنځلې مه کوئ ، چېرته داسې ونه شي چې دوی له شرك نه په نور لاورانډې تګ سره د ناپوهی له امله الله ته کنځلې وکړي، مونږ خو په همدې ډول د هرې ډلې له پاره د هغې کړه وړه ښايسته کړيدي، بيا د هغوی د هماغه خپل رب په لوري ورګرځېدل دي، په هغه وخت کښې به هغه ورته څرګنده کړي چې هغوی څه کړيدي.

وَ لَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ فَيَسُبُّوا اللّٰہَ عَدْوًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ عَمَلَہُمْ ۪ ثُمَّ اِلٰى رَبِّہِمْ مَّرْجِعُہُمْ فَيُنَبِّئُہُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۱۰۸)

دوی له سختو قسمونو خوړلو سره وايي چې که مونږ ته کومه نښانه راشي نو مونږ پرې ايمان راوړو. ای محمده (ص) ! دوی ته ووايه چې " نښانې خو له الله سره دي". او تاسې څنګه وپوهول شئ چې که نښانې راهم شي؛ نو دوی ايمان راوړونکې نه دي.

وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰہِ جَہْدَ اَيْمَانِہِمْ لَئِنْ جَآءَتْہُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِہَا ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰہِ وَ مَا يُشْعِرُكُمْ ۙ اَنَّہَاۤ اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ (۱۰۹)

مونږ په هماغه شان ددوی زړونه او نظر اړوو لکه څنګه چې دوی لومړی ځل پرې ايمان نه وْ راوړی. مونږ دوی ددوی په همدې سرکشۍ کښې لا لهانده پرېږدو.

وَ نُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَہُمْ وَ اَبْصَارَہُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِہٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّ نَذَرُہُمْ فِيْ طُغْيَانِہِمْ يَعْمَہُوْنَ (۱۱۰)

که مونږ پر دوی پرښتې هم نازلې کړې وای او مړو له دوی سره خبرې کړې وای او د ټولې نړۍ شيان مو ددوی تر نظر لاندې راغونډ کړي وای بيا هم دوی ايمان راوړونکي نه وو، مګر دا چې د خدای همدا غوښتنه وي چې هغوی دې ايمان راوړي، خو زياتره خلك د ناپوهی خبرې کوي

وَ لَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَاۤ اِلَيْہِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَ كَلَّمَہُمُ الْمَوْتٰى وَ حَشَرْنَا عَلَيْہِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْاۤ اِلَّاۤ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰہُ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَہُمْ يَجْہَلُوْنَ (۱۱۱)

او مونږ خو تل همداسې شيطان انسانان او شيطان پيريان د هر پېغمبر دښمنان ګرځولې دي چې يو بل ته خوږې خبرې د غولونې او فريب له پاره رسوي. که ستا د رب اراده دا وای چې هغوی دې داسې ونه کړي نو هغوی به هېڅکله داسې نه کول. نو ته هغوی پر خپل حال پرېږده چې په دروغ تړلو کښې اخته وي.

وَ كَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَ الْجِنِّ يُوْحِيْ بَعْضُہُمْ اِلٰى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا ؕ وَ لَوْ شَآءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوْہُ فَذَرْہُمْ وَ مَا يَفْتَرُوْنَ (۱۱۲)

مونږ هغوی ته ددې هرڅه کولو وخت ځکه ورکوو چې) کوم خلك ) چې پر اخرت ايمان نه لري دهغوی زړونه ددې غولوونکې ښکلا په لوري مايل وي او هغوی پرې خوښ شي او د هغو ناوړو چارو په کړولاس پورې کړي چې هغوی يې کول غواړي،

وَ لِتَصْغٰۤى اِلَيْہِ اَفْـِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَ لِيَرْضَوْہُ وَ لِيَقْتَرِفُوْا مَا ہُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ (۱۱۳)

نو چي كله دا حال دى ايا زه له الله نه پرته كوم بل فيصله كوونكى ولټوم ، په داسي حال كښي چي هغه تاسي ته پوره مفصل كتاب لېږلى دى؟ او كومو خلكو ته چي مونږ ( له تا نه مخكښي ) كتاب وركړى وْ هغوى پوهېږي چي دا كتاب ستا د هماغه رب له لوري په حقه نازل شويدى نو له دې كبله ته له شك كوونكيو څخه مه كېږه.

اَفَغَيۡرَ اللّٰهِ اَبۡتَغِیۡ حَكَمًا وَّ ہُوَ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ اِلَيۡكُمُ الۡكِتٰبَ مُفَصَّلًا ؕ وَ الَّذِيۡنَ اٰتَيۡنٰہُمُ الۡكِتٰبَ يَعۡلَمُوۡنَ اَنَّہٗ مُنَزَّلٌ مِّنۡ رَّبِّکَ بِالۡحَقِّ فَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ (۱۱۴)

ستا درب وينا دريښتينولى او عدالت په اعتبار بشپړه ده، هېڅوك د هغه د فرمانونو بدلوونكى نه دى او هغه د هر څه اورېدونكى او پر هر څه پوهېدونكى دى.

وَ تَمَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّکَ صِدۡقًا وَّ عَدۡلًا ؕ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِہٖ ۚ وَ ہُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ (۱۱۵)

او اى محمده (ص) ! كه ته د هغو خلكو د اكثريت په خوله كار وكړې چي په ځمكه كښي ميشته دي نو هغوى به تا د الله له لارې واړوي. هغوى خو صرف په گومان روان او دانگېرنو برابرونكي دي.

وَ اِنۡ تُطِعۡ اَكۡثَرَ مَنۡ فِی الۡاَرۡضِ يُضِلُّوۡکَ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰہِ ؕ اِنۡ يَّتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ اِنۡ ہُمۡ اِلَّا يَخۡرُصُوۡنَ (۱۱۶)

په حقيقت كښي ستا رب ډېر ښه پوهېږي چي څوك د هغه له لارې اووښتي دي او هغه ښه پوهېږي چي څوك پر سمه لاره برابر دي.

اِنَّ رَبَّکَ ہُوَ اَعۡلَمُ مَنۡ يَّضِلُّ عَنۡ سَبِيۡلِہٖ ۚ وَ ہُوَ اَعۡلَمُ بِالۡمُہۡتَدِيۡنَ (۱۱۷)

نو كه تاسي د الله پر ايتونو ايمان لرئ نو پر كوم ځاروي چي د الله نوم اخيستل شوى وي د هغه غوښه وخورئ.

فَكُلُوۡا مِمَّا ذُكِرَ اسۡمُ اللّٰہِ عَلَيۡہِ اِنۡ كُنۡتُمۡ بِاٰيٰتِہٖ مُؤۡمِنِيۡنَ (۱۱۸)

ښه نو څه دليل دى چي تاسي هغه څه ونه خورئ چي پر هغه د الله نوم اخيستل شوى وي، په داسي حال كښي چي دكومو شيانو استعمال چي الله له اضطراري حالاتو نه پرته په نورو ټولو حالتونو كښي پر تاسي حرام كړيدي دهغو تفصيل يي تاسي ته دربښودلى دى زياتره خلك داسي دي چي له علم نه پرته صرف د خپلو خواهشاتو په اساس گمراه كوونكي خبرې كوي،ستا رب داله حده تېرېدونكي ډېر ښه پيژني.

وَ مَا لَكُمۡ اَلَّا تَاۡكُلُوۡا مِمَّا ذُكِرَ اسۡمُ اللّٰہِ عَلَيۡہِ وَ قَدۡ فَصَّلَ لَكُمۡ مَّا حَرَّمَ عَلَيۡكُمۡ اِلَّا مَا اضۡطُرِرۡتُمۡ اِلَيۡہِ ؕ وَ اِنَّ كَثِيۡرًا لَّيُضِلُّوۡنَ بِاَہۡوَآئِہِمۡ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ؕ اِنَّ رَبَّکَ ہُوَ اَعۡلَمُ بِالۡمُعۡتَدِيۡنَ (۱۱۹)

تاسي هم له ښكاره گناهونو څخه ځان وژغورئ او هم له پټو څخه ، څوك چي د گناه كسب كوي هغوى به د خپلي دغي گټي مجازات ومومي.

وَ ذَرُوۡا ظَاہِرَ الۡاِثۡمِ وَ بَاطِنَہٗ ؕ اِنَّ الَّذِيۡنَ يَكۡسِبُوۡنَ الۡاِثۡمَ سَيُجۡزَوۡنَ بِمَا كَانُوۡا يَقۡتَرِفُوۡنَ (۱۲۰)

او كوم ځاروي چي د الله د نوم په اخيستلو نه وي ذبحه كړاى شوي د هغه غوښه مه خورئ، دا كار فسق دى، شيطانان د خپلو ملگرو په زړونو كښي شكونه او اعتراضونه اچوي چي هغوى له تاسي سره شخړه وكړي. خو كه تاسي د هغوى اطاعت ومانه تاسي به په باوري توگه مشركان ياست.

وَ لَا تَاۡكُلُوۡا مِمَّا لَمۡ يُذۡكَرِ اسۡمُ اللّٰہِ عَلَيۡہِ وَ اِنَّہٗ لَفِسۡقٌ ؕ وَ اِنَّ الشَّيٰطِيۡنَ لَيُوۡحُوۡنَ اِلٰۤی اَوۡلِيٰٓئِہِمۡ لِيُجَادِلُوۡكُمۡ ۚ وَ اِنۡ اَطَعۡتُمُوۡہُمۡ اِنَّكُمۡ لَمُشۡرِكُوۡنَ (۱۲۱)

ايا هغه څوك چي مخكښي مړوْ بيا مونږ ورته ژوندوبښه او هغه رڼا مو وركړه چي د هغې په رڼاگو كښي هغه د خلكو په مينځ كښي د ژوند لاره وهي د هغه چا په څېر كيداى شي چي په تږرمېو كښي غورځېدلى وي او په هېڅ شان ورڅخه وتونكى نه وي؟ د كافرانو له پاره په همدې توگه د هغوى كړه وړه ښايسته كړاى شويدي.

اَوَ مَنۡ كَانَ مَيۡتًا فَاَحۡيَيۡنٰہُ وَ جَعَلۡنَا لَہٗ نُوۡرًا يَّمۡشِیۡ بِہٖ فِی النَّاسِ كَمَنۡ مَّثَلُہٗ فِی الظُّلُمٰتِ لَيۡسَ بِخَارِجٍ مِّنۡہَا ؕ كَذٰلِکَ زُيِّنَ لِلۡكٰفِرِيۡنَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (۱۲۲)

او په همدې ډول مونږ په هره سیمه کښې د هغې غټ غټ مجرمان بوخت کړیدي چې هلته د خپل مکر او ټګۍ جال وغوړوي. اصلاً هغوی د خپلې ټګۍ په لومه کښې په خپله نښتي دي، خو له هغو سره ددې شعور نشته .

وَ كَذٰلِكَ جَعَلۡنَا فِیۡ كُلِّ قَرۡیَۃٍ اَكٰبِرَ مُجۡرِمِیۡہَا لِیَمۡكُرُوۡا فِیۡہَا ؕ وَ مَا یَمۡكُرُوۡنَ اِلَّا بِاَنۡفُسِہِمۡ وَ مَا یَشۡعُرُوۡنَ (۱۲۳)

کله چې هغو ته کوم ایت راشي نو هغوی وايي" مونږ به يې تر هغه پورې ونه منو تر څو په خپله مونږ ته هغه څه رانه کړل شي چې د الله رسولانو ته ورکړل شويدي" الله ډېر ښه پوهېږي چې د خپلې پېغمبرۍ کار له چا نه واخلي او په څه شان يې واخلي. هغه وخت نژدې دی چې دا مجرمان د خپلو ټګیو په مجازات کښې د الله په وړاندې له رسوایی او سخت عذاب سره مخامخ شي.

وَ اِذَا جَآءَتۡہُمۡ اٰیَۃٌ قَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ حَتّٰی نُؤۡتٰی مِثۡلَ مَاۤ اُوۡتِیَ رُسُلُ اللّٰہِ ؕۘؔ اَللّٰہُ اَعۡلَمُ حَیۡثُ یَجۡعَلُ رِسَالَتَہٗ ؕ سَیُصِیۡبُ الَّذِیۡنَ اَجۡرَمُوۡا صَغَارٌ عِنۡدَ اللّٰہِ وَ عَذَابٌ شَدِیۡدٌۢ بِمَا كَانُوۡا یَمۡكُرُوۡنَ (۱۲۴)

نو( دا حقیقت دی) چاته چې الله د لارښووني اراده وکړي د هغه سینه د اسلام له پاره پرانیزي او چاته چې په ګمراهۍ کښې دغورځولو اراده وکړي د هغه سینه تنګوي او داسې فشار پرې راولي چې ( څنګه د اسلام تصور په ذهن کښې راګرځوي نو ) داسې ورته معلومېږي چې ته به وايي سايي د اسمان لوري ته راښکله کېږي. په دې توګه الله ( له حق څخه د تېښتې او کرکې ) ناپاکي پر هغو کسانو مسلطوي چې ایمان نه راوړي،

فَمَنۡ یُّرِدِ اللّٰہُ اَنۡ یَّہۡدِیَہٗ یَشۡرَحۡ صَدۡرَہٗ لِلۡاِسۡلَامِ ۚ وَ مَنۡ یُّرِدۡ اَنۡ یُّضِلَّہٗ یَجۡعَلۡ صَدۡرَہٗ ضَیِّقًا حَرَجًا كَاَنَّمَا یَصَّعَّدُ فِی السَّمَآءِ ؕ كَذٰلِكَ یَجۡعَلُ اللّٰہُ الرِّجۡسَ عَلَی الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۱۲۵)

پداسې حال کښې چې دا لاره ستا درب سمه لاره ده او د هغه مونږ نښانې د هغو خلکو له پاره څرګندې کړې دي چې نصیحت مني.

وَ ہٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسۡتَقِیۡمًا ؕ قَدۡ فَصَّلۡنَا الۡاٰیٰتِ لِقَوۡمٍ یَّذَّكَّرُوۡنَ (۱۲۶)

د هغوی له پاره د هغو له رب سره د سلامتیا کور دی او هغه د هغې سمې کړنچارې له امله د هغوی سرپرست دی چې هغوی غوره کړېده.

لَہُمۡ دَارُ السَّلٰمِ عِنۡدَ رَبِّہِمۡ وَ ہُوَ وَلِیُّہُمۡ بِمَا كَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ (۱۲۷)

په هغه ورځ چې الله ټول خلك تر محاصرې لاندې راټول کړي ، په هغه ورځ به هغه پیریانو ته په خطاب وفرمائي چې " ای د پیریانو ډلې! تاسې خو له انسانانو څخه ډېر د ځان تابع کړي دي" له انسانانو څخه چې څوك د هغوی ملګري وو هغوی به عرض وکړي " زمونږ پروردګاره! زمونږ هر یو له بل نه پوره استفاده کړیده، او اوس مونږ هغې نېټې ته رارسیدلي یو چې تا راته ټاکلې وه" الله به وفرمائي " ښه نو اوس ستاسې استوګنځی اور دی، په هغه کښې به تاسې د تل له پاره اوسېږئ" له هغه نه به یوازې هماغه کسان وژغورل شي چې الله د هغو ژغورل وغواړي ، بېشکه ستا رب حکیم او عالم دی.

وَ یَوۡمَ یَحۡشُرُہُمۡ جَمِیۡعًا ۚ یٰمَعۡشَرَ الۡجِنِّ قَدِ اسۡتَكۡثَرۡتُمۡ مِّنَ الۡاِنۡسِ ۚ وَ قَالَ اَوۡلِیٰٓؤُہُمۡ مِّنَ الۡاِنۡسِ رَبَّنَا اسۡتَمۡتَعَ بَعۡضُنَا بِبَعۡضٍ وَّ بَلَغۡنَاۤ اَجَلَنَا الَّذِیۡۤ اَجَّلۡتَ لَنَا ؕ قَالَ النَّارُ مَثۡوٰىكُمۡ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَاۤ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰہُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِیۡمٌ عَلِیۡمٌ (۱۲۸)

وګوره ، په دې ډول به مونږ ( په اخرت کښې ) ظالمان د هغو ګټو له امله چې هغوی ( په دنیا کښې یو له بله سره په ملګرې کېدو ) کولې په خپلو مینځو کښې سره دوستان وګرځوو.

وَ كَذٰلِكَ نُوَلِّیۡ بَعۡضَ الظّٰلِمِیۡنَ بَعۡضًۢا بِمَا كَانُوۡا یَكۡسِبُوۡنَ (۱۲۹)

" (په هغه وخت کښي به الله له هغو څخه دا پوښتنه هم وکړي چي ) ايا تاسي ته په خپله له همدا تاسي څخه !ای د پيريانو او انسانانو ډلي هغه پېغمبران نه وو راغلي چي تاسي ته يي زما ايتونه اورول او هو ، "هغوی به ووايي "دد‌ي ورځي له برخليك نه يي وېرولئ؟ نن د دنيا ژوندانه دا "مونږ د ځان پر خلاف په خپله شاهدي وهو خلك په غولو نه کښي اچولي دي، خو په هغه وخت کښي به هغوی .په خپله د ځان پرخلاف شاهدي ووهي چي هغوبکافران وو

يٰمَعۡشَرَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ اَلَمۡ يَاۡتِكُمۡ رُسُلٌ مِّنۡكُمۡ يَقُصُّوۡنَ عَلَيۡكُمۡ اٰيٰتِىۡ وَ يُنۡذِرُوۡنَكُمۡ لِقَآءَ يَوۡمِكُمۡ هٰذَا ؕ قَالُوۡا شَهِدۡنَا عَلٰٓى اَنۡفُسِنَا وَ غَرَّتۡهُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا وَ شَهِدُوۡا عَلٰٓى اَنۡفُسِهِمۡ اَنَّهُمۡ كَانُوۡا كٰفِرِيۡنَ (١٣٠)

دا شاهدي به له هغو څخه ددي له پاره واخيستله شي چي دا ثابته ) شي چي ) ستا رب په ظلم سره د کليو تباه کوونکی نه ؤ چي کله د .هغو استوګن له حقيقت څخه بي خبره وي

ذٰلِكَ اَنۡ لَّمۡ يَكُنۡ رَّبُّكَ مُهۡلِكَ الۡقُرٰى بِظُلۡمٍ وَّ اَهۡلُهَا غٰفِلُوۡنَ (١٣١)

دهر چا درجه د هغه د کړو وړو په تناسب ده او ستا رب د خلکو د کړو وړو څخه بي خبره نه دی.

وَ لِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوۡا ؕ وَ مَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعۡمَلُوۡنَ (١٣٢)

ستا رب بي نيازه دی او مهرباني د هغه خوی دی. که هغه وغواړي نو تاسي به له مينځه يوسي او ستاسي په ځای به نور هغه خلك راولي چي چاته د هغه خوښه وي لکه څنګه يي چي تاسي د ځينو نورو خلکو له ځوځات څخه راپورته کړي ياست.

وَ رَبُّكَ الۡغَنِىُّ ذُو الرَّحۡمَةِ ؕ اِنۡ يَّشَاۡ يُذۡهِبۡكُمۡ وَ يَسۡتَخۡلِفۡ مِنۡۢ بَعۡدِكُمۡ مَّا يَشَآءُ كَمَاۤ اَنۡشَاَكُمۡ مِّنۡ ذُرِّيَّةِ قَوۡمٍ اٰخَرِيۡنَ (١٣٣)ؕ

له تاسي سره چي د کوم شي وعده کېږي هغه ارومرو راتلونکی دی او تاسي د خدای د عاجز ولو وس نه لرئ.

اِنَّ مَا تُوۡعَدُوۡنَ لَاٰتٍ ۙ وَّ مَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ (١٣٤)

ای محمده (ص) ! ووايه چي ای خلکو ! تاسي په خپل ځای عمل کوونکي اوسئ او زه به هم په خپل ځای عمل کوم، ژربه درته څرګنده شي چي د چا عاقبت ښه کېږي، په هر صورت دا حقيقت دی چي ظالمان هېڅکله خلاصون نه شي موندلای.

قُلۡ يٰقَوۡمِ اعۡمَلُوۡا عَلٰى مَكَانَتِكُمۡ اِنِّىۡ عَامِلٌ ۚ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ۙ مَنۡ تَكُوۡنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ (١٣٥)

دي خلکو د الله له پاره په خپله د همغه له پيدا کړېو کښتونو او څاروېو څخه يوه برخه ټاکلي ده اووايي دا د الله له پاره ده، په خپل ګومان ، او دا زمونږ د انګېرلېو شريکانو له پاره ، نو کومه برخه چي د هغوی دانګېرلېو شريکانو له پاره د ه هغه خو الله ته نه رسېږي خو کومه چي د الله له پاره ده هغه د هغوی شريکانو ته رسېږي. څنګه بدي فيصلي کوي دا خلك.

وَ جَعَلُوۡا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الۡحَرۡثِ وَ الۡاَنۡعَامِ نَصِيۡبًا فَقَالُوۡا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعۡمِهِمۡ وَ هٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمۡ فَلَا يَصِلُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَ مَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ اِلٰى شُرَكَآئِهِمۡ ؕ سَآءَ مَا يَحۡكُمُوۡنَ (١٣٦)

او په همدي ډول د ډېرو مشرکانو له پاره د هغوی شريکانود خپل اولاد وژل ښايسته کړيدي چي هغوی له تباهی سره مخامخ کړي او هغوی د خپل دين په باب په اشتباه کښي واچوي. که الله غوښتي وای نو دوی به داسي نه وو کړي، نو دوی پرېږده چي په خپلو دروغو جوړولو کښي اخته وي.

وَ كَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيۡرٍ مِّنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ قَتۡلَ اَوۡلَادِهِمۡ شُرَكَآؤُهُمۡ لِيُرۡدُوۡهُمۡ وَ لِيَلۡبِسُوۡا عَلَيۡهِمۡ دِيۡنَهُمۡ ؕ وَ لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوۡهُ فَذَرۡهُمۡ وَ مَا يَفۡتَرُوۡنَ (١٣٧)

وايي دا څاروي او داکښت ممنوع دي، دا يوازې هغه خلك خوړلى شي چې مونږ يې پر هغوى خوړل وغواړو ، په داسې حال کښې چې دا بنديز هغوى له خپله ځانه لګولى دى. بل ځينې څاروي دي چې پر هغو سپرلي کول او پېټې وړل حرام کړاى شويدى او ځينې څاروي دي چې پر هغو د الله نوم نه اخلي، او دا هرڅه هغوى پر الله افترا کړېده ، ژر به الله دوى ته ددې دروغو جوړولو مجازات ورکړي.

وَ قَالُوْا هٰذِهٖۤ اَنْعَامٌ وَّ حَرْثٌ حِجْرٌ ۖ لَّا يَطْعَمُهَاۤ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَ اَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا وَ اَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ (۱۳۸)

او وايي څه چې ددې څارويو په ګېډه کښې دي دا په ځانګړي ډول زمونږ د نارينه وُ له پاره دي او زمونږ پرښځو حرام دي، خو که مړوي نو دواړه د هغه په خوړلو کښې شريکېداى شي. دا خبرې چې دوى غوټه کړيدي ددې خبرو مجازات به الله دوى ته ورکړي. بېشکه هغه حکيم او په هرڅه پوهېږي.

وَ قَالُوْا مَا فِيْ بُطُوْنِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُوْرِنَا وَ مُحَرَّمٌ عَلٰۤى اَزْوَاجِنَا ۚ وَ اِنْ يَّكُنْ مَّيْتَةً فَهُمْ فِيْهِ شُرَكَآءُ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ وَصْفَهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ (۱۳۹)

په باوري توګه هغه خلك زيانمن شول چې خپل اولادونه يې د جهالت او ناپوهۍ په اساس ووژل او د الله ورکړې روزي يې پر الله په دروغ تړلو سره حرامه وګڼله په يقيني ډول هغوى ګمراه شول او هېڅکله هغوى له سمې لارې ميندونکيو څخه نه وو.

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْۤا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّ حَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ؕ قَدْ ضَلُّوْا وَ مَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ (۱۴۰)

هماغه الله دى چې پر ځپرو خېژول شوي هسك او بې ځپرو پر ځمکه پراته (دانګورو) باغونه يې پيدا کړي او کجورې او کښتونه يې زرغون کړي چې له هغو څخه راز راز خواړه تر لاسه کېږي او د ښوون او انارو ونې يې پيدا کړي دي چې د هغو ميوې په رنګ سره ورته او په خوند کې بېلې وي. د هغو له پيدا وارو نه وخورئ چې کله ميوه ونيسي، او د الله حق ادا کړئ چې کله يې فصل ورېبئ، او له حده تيرى مه کوئ چې الله له حده تېرېدونکي نه خوښوي.

وَ هُوَ الَّذِيْۤ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّ غَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ وَّ النَّخْلَ وَ الزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ وَ الزَّيْتُوْنَ وَ الرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَّ غَيْرَ مُتَشَابِهٍ ؕ كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖۤ اِذَاۤ اَثْمَرَ وَ اٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ۖ وَ لَا تُسْرِفُوْا ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ (۱۴۱)ۙ

او هماغه ذات دى چې له څارويو څخه يې ځينې داسې پيدا کړيدي چې له هغو څخه د سپرلۍ او پيټي وړلو کار اخيستل کېږئ او ځينې داسې هم چې د خوړلو او فرشولو له پاره په کارېږي. له هغو شيانو څخه وخورئ چې الله درپه برخه کړيدي او د شيطان په پله مه ځئ چې ستاسې ښکاره دښمن دى.

وَ مِنَ الْاَنْعَامِ حَمُوْلَةً وَّ فَرْشًا ؕ كُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَ لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ (۱۴۲)ۙ

دا اته نر او ښځې دي، دوه د مېږو له ډوله او دوه د وزوله ډوله، اى محمده (ص)! له دوى نه پوښتنه وکړه چې الله د هغو نرحرام کړيدي که ښځې ، يا هغه بچې چې د مېږو او د وزو په ګېډه کښې وي ؟ له علم سره سم يې ماته راوښيئ که تاسې رېښتوني ياست.

ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَ مِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ نَبِّئُوْنِيْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۱۴۳)ۙ

او همدغه راز دوه د اوښ له ډوله او دوه د غوايي له ډوله دي. پوښتنه وکړه ددوی نر خدای حرام کړيدي که ښځې ، يا هغه بچي چي د اوښې او غوا په ګېډه کښي وي؟ ايا تاسي په هغه وخت کښي موجود وئ چي الله د هغو د حراموالي حکم درکړی وْ ؟ نو له هغه چانه به بل لوی ظالم څوك وي چي د الله لوري ته ددروغو وينا منسوب کړي چي له علم نه پرته خلکو ته غلطه لارښوونه وکړي. په باوري توګه الله دغه راز ظالمانو ته سمه لاره نه ښيي.

وَ مِنَ الۡاِبِلِ اثۡنَيۡنِ وَ مِنَ الۡبَقَرِ اثۡنَيۡنِ ؕ قُلۡ ءٰٓالذَّکَرَيۡنِ حَرَّمَ اَمِ الۡاُنۡثَيَيۡنِ اَمَّا اشۡتَمَلَتۡ عَلَيۡهِ اَرۡحَامُ الۡاُنۡثَيَيۡنِ ؕ اَمۡ کُنۡتُمۡ شُهَدَآءَ اِذۡ وَصّٰکُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا ۚ فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ (۱۴۴)

ای محمده (ص) ! دوی ته ووايه کومه وحي چي ماته راغلي ده په هغي کښي خوزه کوم داسي شی نه مومم چي پر کوم خوړونکي حرام وي، مګر دا چي هغه مرداره وي يا بهوله شوي وينه وي، يا د خوګ غوښه وي چي هغه ناپاکه ده، يافسق وي چي له الله نه پرته دبل چاپه نوم ذبحه کړای شوی وي. نو څوك چي داړتيا په حالت کښي ( له دغو شيانوڅخه کوم شی وخوري) پرته له دې نه چي هغه د نافرمانی اراده ولري او پرته له دې نه چي داړتيا له اندازې څخه زياتی وکړي، نو په دې کښي شك نشته چي ستا رب له تېرېدني څخه کار اخيستونکی او رحم کوونکی دی.

قُلۡ لَّاۤ اَجِدُ فِيۡ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا عَلٰی طَاعِمٍ يَّطۡعَمُهٗۤ اِلَّاۤ اَنۡ يَّکُوۡنَ مَيۡتَةً اَوۡ دَمًا مَّسۡفُوۡحًا اَوۡ لَحۡمَ خِنۡزِيۡرٍ فَاِنَّهٗ رِجۡسٌ اَوۡ فِسۡقًا اُهِلَّ لِغَيۡرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٍ وَّ لَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّکَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱۴۵)

او کومو خلکو چي يهوديت غوره کړ پر هغو مونږ ټول نوکانو والا ځناور حرام کړي وو، او د غوايانو او پسونو وازده هم ، له هغي نه پرته چي د هغو په پختيو ياد هغو په کولمو يا په هډوکو پورې نښتي وي، دا مونږ د هغو د سرغړوني سزا هغوی ته ورکړې وه او دا څه چي مونږ وايو بيخي ريښتيا وايو.

وَ عَلَی الَّذِيۡنَ هَادُوۡا حَرَّمۡنَا کُلَّ ذِيۡ ظُفُرٍ ۚ وَ مِنَ الۡبَقَرِ وَ الۡغَنَمِ حَرَّمۡنَا عَلَيۡهِمۡ شُحُوۡمَهُمَاۤ اِلَّا مَا حَمَلَتۡ ظُهُوۡرُهُمَاۤ اَوِ الۡحَوَايَاۤ اَوۡ مَا اخۡتَلَطَ بِعَظۡمٍ ؕ ذٰلِکَ جَزَيۡنٰهُمۡ بِبَغۡيِهِمۡ ۫ۖ وَ اِنَّا لَصٰدِقُوۡنَ (۱۴۶)

اوس که هغوی تا دروغجن وګڼي نو ورته ووايه چي ستاسي د رب د رحمت لمن ارته ده او له ګناهګارانو څخه د هغه د عذاب مخه ګرځول کيدای نه شي.

فَاِنۡ کَذَّبُوۡکَ فَقُلۡ رَّبُّکُمۡ ذُوۡ رَحۡمَةٍ وَّاسِعَةٍ ۚ وَ لَا يُرَدُّ بَاۡسُهٗ عَنِ الۡقَوۡمِ الۡمُجۡرِمِيۡنَ (۱۴۷)

دا مشرکان به ( ستاسي ددې خبرو په ځواب کښي ) ارو مرو ووايي چي" که الله غوښتلای نو نه به مونږ مشرکان شوي وو او نه زمونږ پلار نيکه ، او نه به مونږ کوم شی حرام ګڼلی وْ" دهمدغه راز خبرو په جوړولو له دوی نه مخکښي خلکو هم حق ته ددروغو نسبتونه کړي وو تر دې پورې چي په پای کښي يې زمونږ د عذاب خوند وڅکه دوی ته ووايه " ايا له تاسي سره څه علم شته چي هغه مونږ ته وړاندې کړای شئ؟ تاسي خو صرف په ګومان روان ياست او ځانګړې انګېرني کوئ".

سَيَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ اَشۡرَکُوۡا لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ مَاۤ اَشۡرَکۡنَا وَ لَاۤ اٰبَآؤُنَا وَ لَا حَرَّمۡنَا مِنۡ شَيۡءٍ ؕ کَذٰلِکَ کَذَّبَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ حَتّٰی ذَاقُوۡا بَاۡسَنَا ؕ قُلۡ هَلۡ عِنۡدَکُمۡ مِّنۡ عِلۡمٍ فَتُخۡرِجُوۡهُ لَنَا ؕ اِنۡ تَتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا تَخۡرُصُوۡنَ (۱۴۸)

بيا ووايه ( ستاسي ددې سند په مقابل کښي ) " حقيقت ته رسيدلی سند خو له الله سره دی ، بېشکه که الله غوښتي وای نو تاسي ټولو ته به يې لارښوونه کړې وه.

قُلۡ فَلِلّٰهِ الۡحُجَّةُ الۡبَالِغَةُ ۚ فَلَوۡ شَآءَ لَهَدٰىکُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ (۱۴۹)

دوی ته ووایه چې " خپل هغه شاهدان راولئ چې ددې خبرې شاهدي ووهي چې الله دا شیان حرام کړیدي" نو که هغوی شاهدي ووایي نو ته له هغوی سره شاهدي مه وایه او هیڅ کله د هغو خلکو په غوښتنو پسې مه ځه چې هغوی زمونږ ایتونو ته ددروغو نسبتو نه کړیدي، او له اخرت نه منکران دي، او نور له خپل رب سره شریکوي.

قُلۡ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ الَّذِيۡنَ يَشۡهَدُوۡنَ اَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ هٰذَا ۚ فَاِنۡ شَهِدُوۡا فَلَا تَشۡهَدۡ مَعَهُمۡ ۚ وَ لَا تَتَّبِعۡ اَهۡوَآءَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا وَ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ وَ هُمۡ بِرَبِّهِمۡ يَعۡدِلُوۡنَ (۱۵۰)

ای محمده (ص) ! دوی ته ووایه چې راشئ زه تاسې ته اوروم چې ستاسې رب پر تاسې څه بندیزونه لګولي دي: (۱) دا چې له هغه سره څوك مه شریکوئ، (۲) له مور او پلار سره ښه چار چلن وکړئ، (۳)خپل اولاد د مفسلی له وېرې مه وژنئ ، مونږ تاسې ته هم روزي درکوو او هغو ته به یې هم ورکړو، (٤)او دبې حیایې کارونو ته نژدې کېږئ هم مه که ښکاره وي او که پټې ، (٥)او هغه نفس چې الله هغه محترم ګرځولی دی مه وژنئ مګر په حق سره، دا خبرې دي چې ددې لارښودنه هغه تاسې ته کړېده ، تاسې باید له پوهې او ادراك نه کار واخلئ.

قُلۡ تَعَالَوۡا اَتۡلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمۡ عَلَيۡكُمۡ اَلَّا تُشۡرِكُوۡا بِهٖ شَيۡئًا وَّ بِالۡوَالِدَيۡنِ اِحۡسَانًا ۚ وَ لَا تَقۡتُلُوۡۤا اَوۡلَادَكُمۡ مِّنۡ اِمۡلَاقٍ ؕ نَحۡنُ نَرۡزُقُكُمۡ وَ اِيَّاهُمۡ ۚ وَ لَا تَقۡرَبُوا الۡفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنۡهَا وَ مَا بَطَنَ ۚ وَ لَا تَقۡتُلُوا النَّفۡسَ الَّتِىۡ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالۡحَقِّ ؕ ذٰلِكُمۡ وَصّٰكُمۡ بِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ (۱۵۱)

او دا چې د یتیم مال ته مه نژدې کېږي، مګر په داسې (٦) ۱۵۲ توګه چې ډېره غوره وي، تر دې پورې چې هغه د خپل رشد منګ ته ورسېږي، (٧) او په تول میچ کښې پوره انصاف وکړئ، مونږ پر هر چا د مسئولیت هماغوره پېټې ږدو څومره چې د هغه په وس کښې وي، (٨) او کله چې خبره کوئ په عدالت سره یې وکړئ که معامله د خپل خپلوان وي هم، (٩) او له الله سره تعهد پوره کړئ، ددې خبرو ښوونه تاسې ته الله کړېده په کار ده چې تاسې نصیحت .ومنئ

وَ لَا تَقۡرَبُوۡا مَالَ الۡيَتِيۡمِ اِلَّا بِالَّتِىۡ هِىَ اَحۡسَنُ حَتّٰى يَبۡلُغَ اَشُدَّهٗ ۚ وَ اَوۡفُوا الۡكَيۡلَ وَ الۡمِيۡزَانَ بِالۡقِسۡطِ ۚ لَا نُكَلِّفُ نَفۡسًا اِلَّا وُسۡعَهَا ۚ وَ اِذَا قُلۡتُمۡ فَاعۡدِلُوۡا وَ لَوۡ كَانَ ذَا قُرۡبٰى ۚ وَ بِعَهۡدِ اللّٰهِ اَوۡفُوۡا ؕ ذٰلِكُمۡ وَصّٰكُمۡ بِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُوۡنَ (۱۵۲)ۙ

دغه راز د هغه لارښوونه داده چې همدا زما سمه لاره ده نو (۱۰) تاسې پر همدې لاړ شئ او په نورو لارو مه ځئ چې هغه به تاسې له هغې لارې واړوي تیت پرك به مو کړي. دا دی هغه هدایت چې ستاسې رب درکړیدی، په کار ده چې تاسې له انحراف څخه ځان .وژغورئ

وَ اَنَّ هٰذَا صِرَاطِىۡ مُسۡتَقِيۡمًا فَاتَّبِعُوۡهُ ۚ وَ لَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمۡ عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ؕ ذٰلِكُمۡ وَصّٰكُمۡ بِهٖ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُوۡنَ (۱۵۳)

بیا مونږ موسی ته کتاب ورکړی وْ چې پرښه چلن غوره کوونکي انسان د نعمت بشپړول او دهر ضروري شي تفصیل او له سره ترپایه هدایت او رحمت وْ ( او ددې له پاره بني اسرائیلو ته ورکړ شوی وْ چې) ښایي خلك له خپل پروردګار سره په یو ځای کېدو ایمان راوړي.

ثُمَّ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِىۡۤ اَحۡسَنَ وَ تَفۡصِيۡلًا لِّكُلِّ شَىۡءٍ وَّ هُدًى وَّ رَحۡمَةً لَّعَلَّهُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّهِمۡ يُؤۡمِنُوۡنَ (۱۵۴)

او په همدې ډول مونږ دا کتاب نازل کړیدی، له برکته یو ډك کتاب ، نو تاسې د دې پیروي وکړئ او د تقوی کړنچاره غوره کړئ، لیری نه ده چې پر تاسې رحم وشي.

وَ هٰذَا كِتٰبٌ اَنۡزَلۡنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوۡهُ وَ اتَّقُوۡا لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۱۵۵)ۙ

اوس تاسې دانه شئ ویلای چې کتاب خو له مونږ نه مخکښې دوه وْ ډلو ته ورکړ شوی وْ، او مونږ هیڅ خبر نه وو چې هغوی څه زده کړه او ښوونه کوله.

اَنۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اُنۡزِلَ الۡكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيۡنِ مِنۡ قَبۡلِنَا ۖ وَ اِنۡ كُنَّا عَنۡ دِرَاسَتِهِمۡ لَغٰفِلِيۡنَ (۱۵۶)ۙ

اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ لَكُنَّآ اَهْدٰى مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ هُدًى وَّ رَحْمَةٌ ۚ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ صَدَفَ عَنْهَا ؕ سَنَجْزِى الَّذِيْنَ يَصْدِفُوْنَ عَنْ اٰيٰتِنَا سُوْٓءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يَصْدِفُوْنَ (۱۵۷)

او اوس تاسي دا پلمه هم نه شئ کولی چي که پر مونږ کتاب نازل کړای شوی وای نو مونږ به له هغو نه ښه هدایت میندونکي وو. تاسي ته ستاسي درب له لوري یو روښانه دلیل ، هدایت او رحمت راغلی دی، اوس به له هغه چا نه بل غټ ظالم څوك وي چي د الله ایتونه دروغ وګڼي او مخ ورڅخه واړوي. کوم کسان چي زمونږ له ایتونو څخه مخ اړوي مونږ به هغوی ته ددې مخ اړوني په مجازات کښي ډېره بده سزا ورکړو.

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَاْتِىَ رَبُّكَ اَوْ يَاْتِىَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ ؕ يَوْمَ يَاْتِىْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا اِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ اَوْ كَسَبَتْ فِىْٓ اِيْمَانِهَا خَيْرًا ؕ قُلِ انْتَظِرُوْٓا اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ (۱۵۸)

ایا اوس خلك دې ته سترګي په لار دي چي د هغوی مخي ته پرښتي راشي ودرېږي، یا ستا رب په خپله راشي او یا ستا درب ځیني ځرګندي نښاني ښکاره شي؟ په کومه ورځ چي ستا درب ځیني مخصوصي نښاني راڅرګندي شي بیا به یو داسګي چاته د هغه ایمان هیڅ ګټه ونه رسوي چي مخکښي یې ایمان نه وي راوړی یا یې په خپل ایمان کښي څه نیکي نه وي ګټلي . ای محمده (ص)! دوی ته ووایه چي ښه نو تاسي سترګي په لاره اوسئ مونږ هم انتظار باسو.

اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَ كَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِىْ شَىْءٍ ؕ اِنَّمَآ اَمْرُهُمْ اِلَى اللّٰهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ (۱۵۹)

کومو خلکو چي خپل دین ټوټه کړ او ډلي ډلي شول په یقیني توګه له هغو سره ستا هیڅ اړیکه نشته ، د هغو معامله الله ته سپارلي ده ، هماغه به هغوی ته وښیي چي هغو څه کړیدي.

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَ مَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۱۶۰)

څوك چي د الله حضور ته له نیکی سره راشي د هغه له پاره لس چنده ثواب دی ، او څوك چي له بدی سره راشي هغه ته به هماغومره بدله ورکړه شي څومره چي هغه قصور کړیدی، او پر هغوی به ظلم ونه کړای شي.

قُلْ اِنَّنِىْ هَدٰىنِىْ رَبِّىْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَ مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۱۶۱)

ای محمده (ص) ! ووایه زما رب په یقیني توګه ماته سمه لاره راښودلي ده ، بیخي صحیح دین چي په هغه کښي کوم کوږوالی نشته ، د ابراهیم ( ع) مسلك چي هغه یوه لوري ته په متمایل کېدو غوره کړی وْ او هغه له مشرکانو څخه نه وْ.

قُلْ اِنَّ صَلَاتِىْ وَ نُسُكِىْ وَ مَحْيَاىَ وَ مَمَاتِىْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۱۶۲)

ووایه ، زما لمونځ ، زما د عبادت ټول مراسم ، زما ژوند او زما مرګ هر څه د الله رب العلمین له پاره دي

لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَ بِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ (۱۶۳)

چي د هغه هیڅوك شریك نشته ، د هماغه امر ماته شویدی او تر ټولو لومړی داطاعت سر ټیټوونکی زه یم .

قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِىْ رَبًّا وَّ هُوَ رَبُّ كُلِّ شَىْءٍ ؕ وَ لَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ اِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَ لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۚ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ (۱۶۴)

ووایه ایا زه له الله نه پرته کوم بل رب ولټوم په داسي حال کښي چي هماغه د هر څه رب دی؟ هر څوك چي څه ګټي د هغه مسئول هغه په خپله دی ، هیڅ پورته کوونکی د بل پیټی نه پورته کوي ، بیا ستاسي ټولو د خپل رب لوري ته ګرځېدل دي، په هغه وخت کښي به هغه ستاسي د شخړو حقیقت تاسي ته لوڅ کړي.

وَ هُوَ الَّذِىْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَ رَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِىْ مَآ اٰتٰىكُمْ ؕ اِنَّ رَبَّكَ سَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖ وَ اِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۱۶۵)

هماغه ذات دی چي هغه تاسي د ځمکي خلیفه ګان وګرځولئ او له تاسي نه یې ځینو ته د ځینو نورو په مقابل کښي ډېرې لوړې درجي ورکړې ، چي تاسي ته یې څه درکړیدي په هغه کښي پر تاسي ازمېګښت وکړي. بېشکه ستا رب په سزا ورکولو کښي هم ډېر چټك دی او ډېر ښنونکی او رحم کوونکی هم دی.

داللہ په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی
اَ ، لَ ، مَ ، صَ ،

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ الرَّحِيۡمِ
الٓمٓصٓ (١)

دا يو کتاب دی چې تاته درليږل شوېدی نوای محمده! ستا په زړه کښې دې له ده نه څه اندېښنه نه وي. دده له نازلولو نه هدف دادی چې ته دده په وسيله (منکران) وويروې او د مومنانو لپاره يادونه وي.

كِتٰبٌ اُنۡزِلَ اِلَيۡکَ فَلَا يَكُنۡ فِيۡ صَدۡرِکَ حَرَجٌ مِّنۡہُ لِتُنۡذِرَ بِہٖ وَ ذِکۡرٰی لِلۡمُؤۡمِنِيۡنَ (٢)

ای خلکو ! څه چې ستاسې د رب له لوري پر تاسې نازل شويدي د هغو پيروي وکړئ او له خپل رب نه پرته د نورو سرپرستانو پيروي مه کوی ، خو تاسې نصيحت ډير لږ منئ .

اِتَّبِعُوۡا مَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكُمۡ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ وَ لَا تَتَّبِعُوۡا مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اَوۡلِيَآءَ ؕ قَلِيۡلًا مَّا تَذَکَّرُوۡنَ (٣)

څومره ودانی دي چې هغه مونږ تباه کړي ، پر هغو په ناڅاپي ډول د شپې زمونږ عذاب پرېووت ، يا په رڼا ورځ په داسې وخت کښې راغی چې هغوی استراحت کړی و.

وَ كَمۡ مِّنۡ قَرۡيَةٍ اَہۡلَکۡنٰہَا فَجَآءَہَا بَاۡسُنَا بَيَاتًا اَوۡ ہُمۡ قَآئِلُوۡنَ (٤)

او کله چې پر هغوی زمونږ عذاب راغی نو د هغوی په ژبه له دې وينا پرته نور څه نه وو چې مونږ په رښتيا سره ظالمان وو.

فَمَا کَانَ دَعۡوٰىہُمۡ اِذۡ جَآءَہُمۡ بَاۡسُنَاۤ اِلَّاۤ اَنۡ قَالُوۡۤا اِنَّا کُنَّا ظٰلِمِيۡنَ (٥)

نو دا کار ارومرو کيدونکی دی چې مونږ له هغو خلکو څخه حساب واخلو چې مونږ هغوی ته پېغمبران ورليږلي دي او له پېغمبرانو نه به هم پوښتنه وکړو ( چې هغوی د پېغام رسولو فريضه تر کومه ځايه سرته ورسوله او هغو ته په مقابل کښې څه ځواب ورکړ شو)

فَلَنَسۡـَٔلَنَّ الَّذِيۡنَ اُرۡسِلَ اِلَيۡہِمۡ وَ لَنَسۡـَٔلَنَّ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (٦)

بيا به مونږ په خپله په کامل علم سره ټوله ماجرا د هغوی مخې ته وړاندې کړو، او مونږ چېرته غائب نه وو.

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيۡہِمۡ بِعِلۡمٍ وَّ مَا کُنَّا غَآئِبِيۡنَ (٧)

او په هغه ورځ به تله کټ مټ حق وي . د چا چې پله درنه وي هماغوی به خلاصون ومومي.

وَ الۡوَزۡنُ يَوۡمَئِذِ ٟالۡحَقُّ ۚ فَمَنۡ ثَقُلَتۡ مَوَازِيۡنُہٗ فَاُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ (٨)

او د چا چې پلې سپکې شي هغوی به په زيان کښې د خپل ځان اخته کوونکي وي ځکه چې هغوی زمونږ له آيتونو سره له ظلمه ډك برخورد کاوه.

وَ مَنۡ خَفَّتۡ مَوَازِيۡنُہٗ فَاُولٰٓئِکَ الَّذِيۡنَ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَہُمۡ بِمَا کَانُوۡا بِاٰيٰتِنَا يَظۡلِمُوۡنَ (٩)

مونږ تاسې له وس واك سره په ځمکه کښې مېشته کړئ او ستاسې له پاره مو دلته د اوسيدو وسايل برابر کړل، خو تاسې ډېر کم شکر وېستونکي ياست.

وَ لَقَدۡ مَكَّنّٰكُمۡ فِی الۡاَرۡضِ وَ جَعَلۡنَا لَكُمۡ فِيۡہَا مَعَايِشَ ؕ قَلِيۡلًا مَّا تَشۡکُرُوۡنَ (١٠)

مونږ ستاسې (د پلار) هستونه پېل کړه ، بيا مو ستاسو (دپلار) صورت جوړ کړ ، بيا مو پرښتو ته وويل چې ادم ع ته سجده وکړئ ، په دې امر سره ټولو سجده وکړه خو ابليس په سجده کوونکو کښې شامل نه شو.

وَ لَقَدۡ خَلَقۡنٰكُمۡ ثُمَّ صَوَّرۡنٰكُمۡ ثُمَّ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِکَةِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ ٭ۖ فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِيۡسَ ؕ لَمۡ يَکُنۡ مِّنَ السّٰجِدِيۡنَ (١١)

پوښتنه يې وکړه " ته څه شي له سجدې کولو څخه منع کړې کله چې ما درته امر کړی و " ؟ ويې ويل : " زه له هغه نه غوره يم تازه له اوره پېدا کړی يم او هغه له خټې څخه ".

قَالَ مَا مَنَعَکَ اَلَّا تَسۡجُدَ اِذۡ اَمَرۡتُکَ ؕ قَالَ اَنَا خَيۡرٌ مِّنۡہُ ۚ خَلَقۡتَنِيۡ مِنۡ نَّارٍ وَّ خَلَقۡتَہٗ مِنۡ طِيۡنٍ (١٢)

ويې فرمايل : " نو ، ته له دې ځايه کوزشه ، ته حق نلرې چې دلته د لويې غرور وکړې . ووځه چې ته په حقيقت کښې له هغو کسانو څخه يې چې په خپله رسوايي غواړي".

قَالَ فَاہۡبِطۡ مِنۡہَا فَمَا يَکُوۡنُ لَکَ اَنۡ تَتَکَبَّرَ فِيۡہَا فَاخۡرُجۡ اِنَّکَ مِنَ الصّٰغِرِيۡنَ (١٣)

ويې ويل : " ماته تر هغې ورځې پورې مهلت راکړه چې دا ټول دوهم ځل راپاڅول شي".

قَالَ اَنۡظِرۡنِىۡ اِلٰى يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ (۱۴)

ويې فرمايل : " مهلت دى درته ".

قَالَ اِنَّکَ مِنَ الۡمُنۡظَرِيۡنَ (۱۵)

ويې ويل : " نو څنګه چې تا زه په ګمراهۍ کښې اخته کړى يم زه به هم اوس ستا د سمې لارې په سربانديې د غو انسانانو ته څاروکښېنم.

قَالَ فَبِمَاۤ اَغۡوَيۡتَنِىۡ لَاَقۡعُدَنَّ لَهُمۡ صِرَاطَکَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ (۱۶)

له وړاندې وروسته ، ښي خوا ، کيڼې خوا ، هر لورې به يې را ايسار کړم او ته به ددوى زياتره شکرويستونکي ونه مومې "

ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمۡ مِّنۡۢ بَيۡنِ اَيۡدِيۡهِمۡ وَ مِنۡ خَلۡفِهِمۡ وَ عَنۡ اَيۡمَانِهِمۡ وَ عَنۡ شَمَآئِلِهِمۡ‌ ؕ وَ لَا تَجِدُ اَكۡثَرَهُمۡ شٰكِرِيۡنَ (۱۷)

ويې فرمايل :" له دې ځايه سپك او رټل شوى ووځه . باور ولره چې له دوى څخه چې څوك ستاپېروي وکړي ، ستا په شمول به له هغو ټولونه دوزخ ډك کړم.

قَالَ اخۡرُجۡ مِنۡهَا مَذۡءُوۡمًا مَّدۡحُوۡرًا‌ ؕ لَمَنۡ تَبِعَکَ مِنۡهُمۡ لَاَمۡلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنۡكُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ (۱۸)

او اى ادمه !ته اوستا مېرمن دواړه په دې جنت کښې اوسېږئ ، هر چېرته چې هر شى ستاسې زړه غواړي خورئ يې، خو دغې ونې ته نژدې مه ورځئ که نه نو له ظالمانو څخه به وشمېرل شئ "

وَ يٰۤاٰدَمُ اسۡكُنۡ اَنۡتَ وَ زَوۡجُکَ الۡجَنَّةَ فَكُلَا مِنۡ حَيۡثُ شِئۡتُمَا وَ لَا تَقۡرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُوۡنَا مِنَ الظّٰلِمِيۡنَ (۱۹)

بيا شيطان هغوى تېرويستل تر څو چې د هغوى شرمځايونه چې يو له بله پټ کړاى شوي وو د هغوى په وړاندې بربنډشي . هغو ته يې وويل " ستاسې رب چې تاسې له دې ونې څخه منع کړي ياست ددې باعث له دې پرته نور څه نه دې چې چېرته تاسې پرښتې نه شئ ، يا تاسې ته دتل له پاره ژوند در په برخه نه شي،

فَوَسۡوَسَ لَهُمَا الشَّيۡطٰنُ لِيُبۡدِىَ لَهُمَا مَا وٗرِىَ عَنۡهُمَا مِنۡ سَوۡاٰتِهِمَا وَ قَالَ مَا نَهٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنۡ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّاۤ اَنۡ تَكُوۡنَا مَلَكَيۡنِ اَوۡ تَكُوۡنَا مِنَ الۡخٰلِدِيۡنَ (۲۰)

او هغه په لوړه کولو هغوى ته وويل چې زه ستاسې رښتينى خير غوښتونکى يم.

وَ قَاسَمَهُمَاۤ اِنِّىۡ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيۡنَ (۲۱)

پدې توګه يې په غولولو سره هغه دواړه کرار کرار خپلې لارې ته راواړول په پاى کښې چې کله هغوى د هغې ونې خوند و څکه نو د يو بل په وړاندې د هغوى سترمات شو او هغوى د جنت په پاڼو سره د خپلو بدنونو په پټولو لاس پورې کړ، په دې وخت کښې د هغو رب هغوى ته غږ وکړ : ګ ايا ما تاسې له دې ونې څخه نه وئ منع کړي او نه مى وْ درته ويلي چې شيطان ستاسې ښکاره دښمن دى ؟ "

فَدَلّٰٮهُمَا بِغُرُوۡرٍ‌ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتۡ لَهُمَا سَوۡاٰتُهُمَا وَ طَفِقَا يَخۡصِفٰنِ عَلَيۡهِمَا مِنۡ وَّرَقِ الۡجَنَّةِ‌ ؕ وَ نَادٰٮهُمَا رَبُّهُمَاۤ اَلَمۡ اَنۡهَكُمَا عَنۡ تِلۡكُمَا الشَّجَرَةِ وَ اَقُلْ لَّكُمَاۤ اِنَّ الشَّيۡطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ (۲۲)

دواړو وويل : " اى زمونږ ربه ! مونږ پر خپل ځان ظلم وکړ، اوس که تا مونږ ته ببښنه ونه کړه او پر مونږ دې رحم ونه کړ نو مونږ به ارومرو تباه شو".

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمۡنَاۤ اَنۡفُسَنَا . وَ اِنۡ لَّمۡ تَغۡفِرۡ لَنَا وَ تَرۡحَمۡنَا لَنَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡخٰسِرِيۡنَ (۲۳)

ويې فرمايل : " کوزشئ ، تاسې يو د بل دښمنان يئ ، او ستاسې لپاره تريوې ټاکلې مودې پورې په ځمکه کښې د اوسېدو ځاى او د ژوند وسايل دي "

قَالَ اهۡبِطُوۡا بَعۡضُكُمۡ لِبَعۡضٍ عَدُوٌّ‌ ۚ وَ لَكُمۡ فِى الۡاَرۡضِ مُسۡتَقَرٌّ وَّ مَتَاعٌ اِلٰى حِيۡنٍ (۲۴)

ويې فرمايل:" په همغې کښې ستاسې ژوند او ستاسې مرګ دى او له همغې څخه به په پاى کښې تاسې راوويستلى شى ".

قَالَ فِيۡهَا تَحۡيَوۡنَ وَ فِيۡهَا تَمُوۡتُوۡنَ وَ مِنۡهَا تُخۡرَجُوۡنَ (۲۵)

ای د آدم (ع) اولادې ! مونږ تاسي ته جامي نازلي کړي دي چي ستاسي دبدن شرم ځايونه وپوښي او ستاسي د بدن د ساتني او ښکلا وسيله هم وي. او ډېره غوره جامه د پرهېزګارۍ جامه ده . داد الله له نښانو څخه يوه نښانه ده ، په کار ده چي خلك ورڅخه درس واخلي.

يٰبَنِىۡۤ اٰدَمَ قَدۡ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكُمۡ لِبَاسًا يُّوَارِىۡ سَوۡاٰتِكُمۡ وَ رِيۡشًا ؕ وَ لِبَاسُ التَّقۡوٰى ۙ ذٰلِكَ خَيۡرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنۡ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُوۡنَ (۲۶)

ای بنياد مانو ! داسي دي نه وي چي شيطان تاسي بيا هماغه شان په فتنه کښي اخته کړي لکه څنګه چي هغه ستاسي مور پلار له جنت نه ويستلي وو او له هغو څخه يي د هغوی جامي ويستلي وي تر څو د هغو شرم ځايونه يو د بل په وړاندې لوڅ شي . هغه او د هغه ملګري تاسي له يو داسي ځای نه ويني چي له هغه ځايه تاسي هغوی نه شئ ليدلای. مونږ داشيطانان د هغو خلکو سرپرستان ګرځولي دي چي ايمان نه راوړي.

يٰبَنِىۡۤ اٰدَمَ لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ الشَّيۡطٰنُ كَمَاۤ اَخۡرَجَ اَبَوَيۡكُمۡ مِّنَ الۡجَنَّةِ يَنۡزِعُ عَنۡهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوۡاٰتِهِمَا ؕ اِنَّهٗ يَرٰٮكُمۡ هُوَ وَ قَبِيۡلُهٗ مِنۡ حَيۡثُ لَا تَرَوۡنَهُمۡ ؕ اِنَّا جَعَلۡنَا الشَّيٰطِيۡنَ اَوۡلِيَآءَ لِلَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ (۲۷)

کله چي دا خلك کوم د شرم وړ کار کوي نو وايي مونږ پر همدې کړنلاره خپل پلرونه نيکونه ميندلي دي او په خپله الله مونږ ته ددامي چارو سرته رسولو امر کړيدی. دوی ته ووايه الله هېڅکله دبې حيايی امر نه کوي. ايا تاسي د الله د نوم په اخيستلو هغه خبري کوئ چي د هغو په باب تاسي معلومات نلرئ ( چی هغه د الله له لوری څخه نه دي)

وَ اِذَا فَعَلُوۡا فَاحِشَةً قَالُوۡا وَجَدۡنَا عَلَيۡهَاۤ اٰبَآءَنَا وَ اللّٰهُ اَمَرَنَا بِهَا ؕ قُلۡ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاۡمُرُ بِالۡفَحۡشَآءِ ؕ اَتَقُوۡلُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۲۸)

ای محمده ! دوی ته ووايه ، زما رب خو د رښتينولی او عدالت امر کړيدی، او د هغه حکم خو دادی چي په هر عبادت کښي خپل لوري سم کړئ هماغه وبلئ خپل دين د همغه له پاره خالص کړئ . په کومه توګه چي هغه اوس پيدا کړي ياست په همدې ډول به بياتاسي پيدا کړلی شئ.

قُلۡ اَمَرَ رَبِّىۡ بِالۡقِسۡطِ ٝ وَ اَقِيۡمُوۡا وُجُوۡهَكُمۡ عِنۡدَ كُلِّ مَسۡجِدٍ وَّ ادۡعُوۡهُ مُخۡلِصِيۡنَ لَهُ الدِّيۡنَ ؕ كَمَا بَدَاَكُمۡ تَعُوۡدُوۡنَ (ؕ۲۹)

يوی ډلي ته خو هغه سمه لارښودلي ده ، خو پر بلي ډلي ګمراهي ثابته شويده ځکه چي هغوی د خدای په ځای شيطانان خپل سرپرستان نيولي دي او هغوی انګېري چي مونږ پر سمه لاره يو.

فَرِيۡقًا هَدٰى وَ فَرِيۡقًا حَقَّ عَلَيۡهِمُ الضَّلٰلَةُ ؕ اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيۡنَ اَوۡلِيَآءَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَ يَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ (۳۰)

ای بنيادمانو ! د هر عبادت په وخت کښي په خپله ښکلا سينګار اوسئ او خورئ څښئ او له حد نه تيری مه کوئ ، الله له حد نه تيري کوونکي نه خوښوي.

يٰبَنِىۡۤ اٰدَمَ خُذُوۡا زِيۡنَتَكُمۡ عِنۡدَ كُلِّ مَسۡجِدٍ وَّ كُلُوۡا وَ اشۡرَبُوۡا وَ لَا تُسۡرِفُوۡا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الۡمُسۡرِفِيۡنَ (۳۱)

ای محمده ص! دوی ته ووايه چا د الله هغه ښکلا حرامه کړېده چي هغه د خپلو بندګانو له پاره راويستلي وه او چا د خدای ښنل شوي پاك شيان منع کړل ؟ ووايه ، دا ټول شيان د دنيا په ژوندانه کښي هم د ايمان راوړونکو له پاره دي ، او د اخرت په ورځ خو به يوازې د همدوی له پاره وي . په دغه شان مونږ خپلي خبرې روښانوو د هغو خلکو له پاره چي عالمان دي.

قُلۡ مَنۡ حَرَّمَ زِيۡنَةَ اللّٰهِ الَّتِىۡۤ اَخۡرَجَ لِعِبَادِهٖ وَ الطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزۡقِ ؕ قُلۡ هِىَ لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا خَالِصَةً يَّوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ (۳۲)

ای محمده ص ! دوی ته ووایه چې زما رب چې کوم شیان حرام کړیدي هغه دادي : د بې حیایی چارې – که ښکاره وي او که پټې – او ګناه او د حق پر خلاف تیری او دا چې له الله سره تاسې کوم څوك شریك کړئ چې د هغه له پاره یې کوم سند نه دی نازل کړی او داچې د الله په نوم داسې کومه خبره وکړئ چې د هغې په باب تاسې معلومات ونلرئ چې هغه په حقیقت کښې کړېده.

قُلۡ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّیَ الۡفَوَاحِشَ مَا ظَہَرَ مِنۡہَا وَ مَا بَطَنَ وَ الۡاِثۡمَ وَ الۡبَغۡیَ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ وَ اَنۡ تُشۡرِکُوۡا بِاللّٰہِ مَا لَمۡ یُنَزِّلۡ بِہٖ سُلۡطٰنًا وَّ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا عَلَی اللّٰہِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۳۳)

د هر قوم له پاره د مهلت یوه ټاکلې نېټه ده ، بیا چې کله د کوم قوم وخت او نېټه پوره کیږي یو ساعت وروسته والی او مخکېوالی به هم پکښې نه راځی. (اوداخبره الله د مخلوق پیدا کولو په پېل کښې په ډاګه ښکاره کړې وه چې: )

وَ لِکُلِّ اُمَّۃٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُہُمۡ لَا یَسۡتَاۡخِرُوۡنَ سَاعَۃً وَّ لَا یَسۡتَقۡدِمُوۡنَ (۳۴)

ای بنیادمانو ! په یاد ولرئ ، که چېرته تاسې ته په خپله له تاسې نه داسې پېغمبران راشي چې تاسو ته زما ایتونه اوروي ، نو څوك چې له سرغړونې څخه ډډه وکړي او خپله کړنچاره سمه کړي د هغو له پاره څه وېره او کړاو نه شته

یٰبَنِیۡۤ اٰدَمَ اِمَّا یَاۡتِیَنَّکُمۡ رُسُلٌ مِّنۡکُمۡ یَقُصُّوۡنَ عَلَیۡکُمۡ اٰیٰتِیۡ ۙ فَمَنِ اتَّقٰی وَ اَصۡلَحَ فَلَا خَوۡفٌ عَلَیۡہِمۡ وَ لَا ہُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ (۳۵)

او څوك چې زمونږ ایتونه دروغ وګڼي او د هغو په مقابل کښې په سرکشی لاس پورې کړي هماغوی به دوزخیان وي د تل له پاره به پکښې استوګن وي.

وَ الَّذِیۡنَ کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا وَ اسۡتَکۡبَرُوۡا عَنۡہَاۤ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۳۶)

ښکاره خبره ده چې له هغه چانه به بل غټ ظالم څوك وي چې سراسر د دروغو خبرې د الله لورې ته منسوبې کړي یا د الله رښتیني ایتونه دروغ وګڼي. داسې خلك به د خپل تقدیر له لیکنې سره سمه خپله برخه ومومي. آن تر دې چې هغه ساعت به راشي چې کله زمونږ لېږل شوې پرښتې د هغو د ساکانو اخیستلو له پاره ور ورسیږي. په هغه وخت کښې به هغوی ورڅخه پوښتنه وکړي چې راوښیئ اوس چېرته دی ستاسې هغه معبودان چې تاسې هغه د خدای په ځای بلل ؟ هغوی به وایي چې "ټول له مونږ نه ورك شول"—او هغوی به په خپله د ځان په خلاف شاهدی ووایي چې مونږ په رښتیا سره له حق نه منکران وو.

فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰہِ کَذِبًا اَوۡ کَذَّبَ بِاٰیٰتِہٖ ؕ اُولٰٓئِکَ یَنَالُہُمۡ نَصِیۡبُہُمۡ مِّنَ الۡکِتٰبِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا جَآءَتۡہُمۡ رُسُلُنَا یَتَوَفَّوۡنَہُمۡ ۙ قَالُوۡۤا اَیۡنَ مَا کُنۡتُمۡ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ ؕ قَالُوۡا ضَلُّوۡا عَنَّا وَ شَہِدُوۡا عَلٰۤی اَنۡفُسِہِمۡ اَنَّہُمۡ کَانُوۡا کٰفِرِیۡنَ (۳۷)

الله به وفرمائي ځئ تاسو هم همغه دوزخ ته لاړ شئ چې هغه ته له تاسې څخه مخکښې د پیریانو او انسانانو تېرې شوې ډلې ورغلي دي. هره ډله چې کله دوزخ ته ننوځي نو پر خپله مخکینی ډله به لعنت ویونکی ننوځي. آن تر دې چې کله ټول هلته سره یو ځای شي نو هره وروستی ډله به د مخکینی ډلې په باب وایي چې ای پروردګاره دا خلك وو چې مونږ یې بې لارې کړو، نو له دې امله دوی ته د اور دوه چنده سزا ورکړه ، په ځواب کښې به وویل شي، د هرې یوې له پاره دوه چنده سزا ده خو تاسې پوهېږئ نه.

قَالَ ادۡخُلُوۡا فِیۡۤ اُمَمٍ قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِکُمۡ مِّنَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ فِی النَّارِ ؕ کُلَّمَا دَخَلَتۡ اُمَّۃٌ لَّعَنَتۡ اُخۡتَہَا ؕ حَتّٰۤی اِذَا ادَّارَکُوۡا فِیۡہَا جَمِیۡعًا ۙ قَالَتۡ اُخۡرٰىہُمۡ لِاُوۡلٰىہُمۡ رَبَّنَا ہٰۤؤُلَآءِ اَضَلُّوۡنَا فَاٰتِہِمۡ عَذَابًا ضِعۡفًا مِّنَ النَّارِ ۬ؕ قَالَ لِکُلٍّ ضِعۡفٌ وَّ لٰکِنۡ لَّا تَعۡلَمُوۡنَ (۳۸)

او لومړنی ډله به دوهمې ډلې ته ووایي چې ( که مونږ د پړې وړ وو) نو تاسې پر مونږ څه ښه توب درلود، اوس د خپلو کړنو په نتیجه کښې د عذاب خوند وڅکئ.

وَ قَالَتۡ اُوۡلٰىہُمۡ لِاُخۡرٰىہُمۡ فَمَا کَانَ لَکُمۡ عَلَیۡنَا مِنۡ فَضۡلٍ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا کُنۡتُمۡ تَکۡسِبُوۡنَ (۳۹)

اِنَّ الَّذِیۡنَ کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا وَ اسۡتَکۡبَرُوۡا عَنۡہَا لَا تُفَتَّحُ لَہُمۡ اَبۡوَابُ السَّمَآءِ وَ لَا یَدۡخُلُوۡنَ الۡجَنَّۃَ حَتّٰی یَلِجَ الۡجَمَلُ فِیۡ سَمِّ الۡخِیَاطِ ؕ وَ کَذٰلِکَ نَجۡزِی الۡمُجۡرِمِیۡنَ (۴۰)

باور ولرئ چا چې زمونږ ايتونه دروغ ګڼلي دي او د هغو په مقابل کښې يې سرغړولی دی د هغو له پاره به د اسمان دروازې هيڅکله پرانه نستل شي. جنت ته د هغو تګ دومره نا ممکن دی لکه د ستنې له سپم څخه د اوښ تېرېدل. مونږ مجرمان په همداسې مجازات محکوموو.

لَہُمۡ مِّنۡ جَہَنَّمَ مِہَادٌ وَّ مِنۡ فَوۡقِہِمۡ غَوَاشٍ ؕ وَ کَذٰلِکَ نَجۡزِی الظّٰلِمِیۡنَ (۴۱)

د هغو له پاره به ددوزخ لانديستونی او دهمدې دوزخ له پاسه اغوستونی وي. دغسې ده هغه بدله چې مونږ يې ظالمانو ته ورکوو.

وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَا نُکَلِّفُ نَفۡسًا اِلَّا وُسۡعَہَاۤ ۫ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّۃِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۴۲)

ددې پر خلاف کومو کسانو چې زمونږ ايتونه منلي دي او غوره عملونه يې کړيدي - او په دې باب مونږ هرڅوك د هغه د وسې په اندازه مسئول ګرځوو – هغوی جنتيان دي هلته به هغوی تل اوسيږي.

وَ نَزَعۡنَا مَا فِیۡ صُدُوۡرِہِمۡ مِّنۡ غِلٍّ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہِمُ الۡاَنۡہٰرُ ۚ وَ قَالُوا الۡحَمۡدُ لِلّٰہِ الَّذِیۡ ہَدٰىنَا لِہٰذَا ۟ وَ مَا کُنَّا لِنَہۡتَدِیَ لَوۡ لَاۤ اَنۡ ہَدٰىنَا اللّٰہُ ۚ لَقَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ رَبِّنَا بِالۡحَقِّ ؕ وَ نُوۡدُوۡۤا اَنۡ تِلۡکُمُ الۡجَنَّۃُ اُوۡرِثۡتُمُوۡہَا بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ (۴۳)

د هغو په زړونو کښې چې د يوبل په خلاف کوم خيری وي هغه به مونږ ايسته کړو. تر هغوی لاندې به ويالې بهيږي او هغوی به وايي چې " ثنا ستاينه الله ته ده چې هغه مونږ ته دا لاره وښودله ، مونږ په خپله لاره نه شوه ميندلی که الله مونږ ته لارښوونه نه وای کړې ، زمونږ د رب لېږل شوي پېغمبران په رښتيا سره په حقه راغلي وو " په هغه وخت کښې به اواز راشي چې " دا جنت چې تاسې د هغه وارثان ګرځېدلي ياست تاسې ته د هغو عملونو په بدل کښې درکړ شوېدی چې تاسې کول."

وَ نَادٰۤی اَصۡحٰبُ الۡجَنَّۃِ اَصۡحٰبَ النَّارِ اَنۡ قَدۡ وَجَدۡنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَہَلۡ وَجَدۡتُّمۡ مَّا وَعَدَ رَبُّکُمۡ حَقًّا ؕ قَالُوۡا نَعَمۡ ۚ فَاَذَّنَ مُؤَذِّنٌۢ بَیۡنَہُمۡ اَنۡ لَّعۡنَۃُ اللّٰہِ عَلَی الظّٰلِمِیۡنَ (۴۴)

بيا به دا جنتيان د وزخيانو ته اواز وکړي و به وايي " مونږ خو هغه ټولې ژبنې بشپړې وميندلې چې زمونږ پروردګار له مونږ سره کړې وې ، ايا تاسې هم هغه ژبنې پوره وميندلې چې ستاسې رب کړې وې ؟" هغوی به ځواب ورکړي "هو" په دې وخت کښې به يو اواز کوونکی د هغوی په مينځ کښې نارې کړي چې: " دخدای لعنت دې وي پر هغو ظالمانو،

الَّذِیۡنَ یَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ وَ یَبۡغُوۡنَہَا عِوَجًا ۚ وَ ہُمۡ بِالۡاٰخِرَۃِ کٰفِرُوۡنَ (۴۵)

چې د خدای له لارې نه يې خلك منع کول او د هغوی کوږوالی يې غوښت اوله اخرت نه منکران وو"-

وَ بَیۡنَہُمَا حِجَابٌ ۚ وَ عَلَی الۡاَعۡرَافِ رِجَالٌ یَّعۡرِفُوۡنَ کُلًّۢا بِسِیۡمٰہُمۡ ۚ وَ نَادَوۡا اَصۡحٰبَ الۡجَنَّۃِ اَنۡ سَلٰمٌ عَلَیۡکُمۡ ۟ لَمۡ یَدۡخُلُوۡہَا وَ ہُمۡ یَطۡمَعُوۡنَ (۴۶)

ددې دواړو ډلو ترمينځ به يوه پرده ( بريد ) وي چې د هغې د پاسه پر اعراف " به څه نور کسان وي. دوی به هره ډله د هغې له څېرې نه پېژني او جنتيانو ته به اواز وکړي و به وايي چې سلامتي دې وي پرتاسې داخلك به په جنت کښې ننوتلي نه وي خو د هغه هيله من به وي.

وَ اِذَا صُرِفَتۡ اَبۡصَارُہُمۡ تِلۡقَآءَ اَصۡحٰبِ النَّارِ ۙ قَالُوۡا رَبَّنَا لَا تَجۡعَلۡنَا مَعَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِیۡنَ (۴۷)

او کله چې د هغوی سترګې د دوزخيانو لوري ته واوړي نو و به وايي ، " ای پروردګاره : مونږ ددې ظالمانو ملګري کوه مه "

وَ نَادٰۤی اَصۡحٰبُ الۡاَعۡرَافِ رِجَالًا یَّعۡرِفُوۡنَہُمۡ بِسِیۡمٰہُمۡ قَالُوۡا مَاۤ اَغۡنٰی عَنۡکُمۡ جَمۡعُکُمۡ وَ مَا کُنۡتُمۡ تَسۡتَکۡبِرُوۡنَ (۴۸)

بيا به دا د اعراف خلك څو تنه غټ غټ دوزخيان د هغو په نښو نښانو سره وپېژني ورته به اواز وکړي چې " تاسې وليدل ، نن نه ستاسې ډلې ټپلې ستاسې څه درد دوا کړ نه مو هغه وسايل په کار شول چې تاسې لوی شيان ګڼل .

او ایا د اجنتیان همغه خلك نه دي چي د هغو په باب تاسي په قسمونو خوړلو ویل چي دوی ته خوبه خدای له خپل رحمت څخه هېڅ شی هم ورنه کړي؟ نن همغوی ته وویل شول چي ننوځئ جنت ته ، نه به درباندي وېره وي نه کړاو."

اَہٰۤؤُلَآءِ الَّذِیۡنَ اَقۡسَمۡتُمۡ لَا یَنَالُہُمُ اللّٰہُ بِرَحۡمَۃٍ ؕ اُدۡخُلُوا الۡجَنَّۃَ لَا خَوۡفٌ عَلَیۡکُمۡ وَ لَاۤ اَنۡتُمۡ تَحۡزَنُوۡنَ (۴۹)

او دوزخیان به جنتیانو ته اواز وکړي چي لږ غوندي او به پر مونږ راتوی کړئ یاله هغې روزۍ څخه چي الله تاسي ته درکړېده یو څه راوغورځوئ هغوی به ځواب ورکړي چي " الله دا دواړه شیان د حق پر هغو منکرانو حرام کړیدي.

وَ نَادٰۤی اَصۡحٰبُ النَّارِ اَصۡحٰبَ الۡجَنَّۃِ اَنۡ اَفِیۡضُوۡا عَلَیۡنَا مِنَ الۡمَآءِ اَوۡ مِمَّا رَزَقَکُمُ اللّٰہُ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّ اللّٰہَ حَرَّمَہُمَا عَلَی الۡکٰفِرِیۡنَ (۵۰)

چي هغوي خپل دین لوبه او ساعت تېرى ګرځولی وْ او د دنیا ژوند هغوی غولولي وو. الله فرمائي چي نن به مونږ هم هغوی په هماغه شان هېر کړو لکه څنګه چي هغوی ددې ورځي پېوستون هېر کړی وْ. او زمونږ له ایتونو څخه یې انکار کاوه "

الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا دِیۡنَہُمۡ لَہۡوًا وَّ لَعِبًا وَّ غَرَّتۡہُمُ الۡحَیٰوۃُ الدُّنۡیَا ۚ فَالۡیَوۡمَ نَنۡسٰہُمۡ کَمَا نَسُوۡا لِقَآءَ یَوۡمِہِمۡ ہٰذَا ۙ وَ مَا کَانُوۡا بِاٰیٰتِنَا یَجۡحَدُوۡنَ (۵۱)

مونږ د غو خلکو ته له یو داسي کتاب سره راغلي یو چي هغه مو د علم په اساس تشریح کړی دی ، د ایمان راوړونکو له پاره هدایت او رحمت دی.

وَ لَقَدۡ جِئۡنٰہُمۡ بِکِتٰبٍ فَصَّلۡنٰہُ عَلٰی عِلۡمٍ ہُدًی وَّ رَحۡمَۃً لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ (۵۲)

اوس نو ایا دا خلك له دې پرته کومي بلي خبري ته سترګي په لاره دي چي له هغه عاقبت سره مخامخ شي چي داکتاب د هغه خبر ورکوي.؟ په کومه ورځ چي له هغه عاقبت سره مخامخ شي نو چا چي مخکښي هغه له یاده ویستلی وْ هماغه خلك به ووایي چي په رښتیا سره زمونږ د پروردګار پېغمبران له حق سره راغلي وو، نو ایا اوس به زمونږ له پاره کوم سپارښګر وي چي زمونږ په باب سپارښ وکړي؟ یا مونږ دوهم ځل بېرته ولېږل شو تر څو د هغه څه په ځای چي مونږ پخوا کول اوس په بل ډول کار وکړو؟ هغوی په خپله خپل ځانونه زیانمن کړل او کوم دروغ چي هغوی تړل هغه ټول ورڅخه ورك شول.

ہَلۡ یَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا تَاۡوِیۡلَہٗ ؕ یَوۡمَ یَاۡتِیۡ تَاۡوِیۡلُہٗ یَقُوۡلُ الَّذِیۡنَ نَسُوۡہُ مِنۡ قَبۡلُ قَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ رَبِّنَا بِالۡحَقِّ ۚ فَہَلۡ لَّنَا مِنۡ شُفَعَآءَ فَیَشۡفَعُوۡا لَنَاۤ اَوۡ نُرَدُّ فَنَعۡمَلَ غَیۡرَ الَّذِیۡ کُنَّا نَعۡمَلُ ؕ قَدۡ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَہُمۡ وَ ضَلَّ عَنۡہُمۡ مَّا کَانُوۡا یَفۡتَرُوۡنَ (۵۳)

په حقیقت کښي ستاسي رب هماغه الله دی چي هغه اسمانونه او ځمکه په شپږو ورځو کښي پیدا کړل بیا یې پر عرش باندي استوا وکړه. شپه پر ورځي خورويٖ او بیا ورځ په شپې پسي په منده راځي. لمر او سپوږمی او ستوري یې پیدا کړل. ټول د هغه د امر تابع دي. خبردار اوسئ: د هماغه هستونه ده او د هماغه حکومت دی. الله دېر برکت څښتن دی. د ټولو مخلوقاتو مالك او پروردګار دی.

اِنَّ رَبَّکُمُ اللّٰہُ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ ۟ یُغۡشِی الَّیۡلَ النَّہَارَ یَطۡلُبُہٗ حَثِیۡثًا ۙ وَّ الشَّمۡسَ وَ الۡقَمَرَ وَ النُّجُوۡمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمۡرِہٖ ؕ اَلَا لَہُ الۡخَلۡقُ وَ الۡاَمۡرُ ؕ تَبٰرَکَ اللّٰہُ رَبُّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۵۴)

خپل رب وبلئ په زارېو زارېو او په پټه پټه ، د ایقیني ده چي هغه له حده تیری کوونکی نه خوښوي

اُدۡعُوۡا رَبَّکُمۡ تَضَرُّعًا وَّ خُفۡیَۃً ؕ اِنَّہٗ لَا یُحِبُّ الۡمُعۡتَدِیۡنَ (۵۵)

او په ځمکه کښي فساد مه راولاړوئ چي کله په هغې کښي اصلاحات راغلي دي او هماغه خدای له وېري او امید سره وبلئ ، په یقیني توګه د الله رحمت نېکانو ته نژدې دی.

وَ لَا تُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ بَعۡدَ اِصۡلَاحِہَا وَ ادۡعُوۡہُ خَوۡفًا وَّ طَمَعًا ؕ اِنَّ رَحۡمَتَ اللّٰہِ قَرِیۡبٌ مِّنَ الۡمُحۡسِنِیۡنَ (۵۶)

او همغه دالله ذات دی چې بادونه د خپل رحمت مخکښې مخکښې زیري ورکوونکي لیږي، بیا چې کله هغوی له اوبو څخه درنې شوې وریځې راالوزوي نو هغه د کومې مړې ځمکې پر لوري خوځوي او هلته د باران په ورولو ( له هماغې مړې ځمکې څخه ) رنګارنګ میوې راباسي – وګورئ ، په دې ډول مونږ مړي د مرګ له حالت نه راباسو ، په کار ده چې تاسي له دې کتنې څخه درس واخلئ.

وَ ہُوَ الَّذِیۡ یُرۡسِلُ الرِّیٰحَ بُشۡرًۢا بَیۡنَ یَدَیۡ رَحۡمَتِہٖ ؕ حَتّٰۤی اِذَاۤ اَقَلَّتۡ سَحَابًا ثِقَالًا سُقۡنٰہُ لِبَلَدٍ مَّیِّتٍ فَاَنۡزَلۡنَا بِہِ الۡمَآءَ فَاَخۡرَجۡنَا بِہٖ مِنۡ کُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ کَذٰلِکَ نُخۡرِجُ الۡمَوۡتٰی لَعَلَّکُمۡ تَذَکَّرُوۡنَ (۵۷)

کومه ځمکه چې ښه وي هغه د خپل پروردګار په امر سره ښې میوې داني، راوړي او کومه کرونده چې ناکاره وي له هغې څخه له بابیزه حاصلاتو نه پرته نور څه نه راووځي . په دې توګه مونږ د هغو خلکو له پاره بیا بیا نښاني وړاندې کوو چې شکر ویستونکي دي.

وَ الۡبَلَدُ الطَّیِّبُ یَخۡرُجُ نَبَاتُہٗ بِاِذۡنِ رَبِّہٖ ۚ وَ الَّذِیۡ خَبُثَ لَا یَخۡرُجُ اِلَّا نَکِدًا ؕ کَذٰلِکَ نُصَرِّفُ الۡاٰیٰتِ لِقَوۡمٍ یَّشۡکُرُوۡنَ (۵۸)

مونږ نوح ع د هغه د قوم لوري ته ولېږه. هغه وویل " ای زما قومه ! د الله بندګي وکړئ، له هغه پرته ستاسي هېڅ بل خدای نه شته . زه پرتاسي د یوې هېبتناکې ورځې له عذابه وېرېږم "

لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا اِلٰی قَوۡمِہٖ فَقَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰہَ مَا لَکُمۡ مِّنۡ اِلٰہٍ غَیۡرُہٗ ؕ اِنِّیۡۤ اَخَافُ عَلَیۡکُمۡ عَذَابَ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ (۵۹)

د هغه د قوم مشرانو ځواب ورکړ " مونږ ته خو داسي ښکاري چې ته په څرګنده ګمراهی کښېګي اخته یې ".

قَالَ الۡمَلَاُ مِنۡ قَوۡمِہٖۤ اِنَّا لَنَرٰىکَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ (۶۰)

هغه وویل" ای زما قومه ! زه په کومه ګمراهی کښې نه یم اخته شوی بلکې زه د رب العلمین پېغمبر یم ،

قَالَ یٰقَوۡمِ لَیۡسَ بِیۡ ضَلٰلَۃٌ وَّ لٰکِنِّیۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۶۱)

تاسي ته د خپل رب پېغامونه رسوم ستاسي خیر غوښتنوکی یم او ماته د الله له لوري د هغه څه معلومات راکړل شوي چې تاسي ته نه دي معلوم .

اُبَلِّغُکُمۡ رِسٰلٰتِ رَبِّیۡ وَ اَنۡصَحُ لَکُمۡ وَ اَعۡلَمُ مِنَ اللّٰہِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۶۲)

ایا تاسي په دې خبره حیران شوئ چې تاسي ته په خپله ستاسي له قوم نه د یو سړي په وسیله ستاسي د رب یادونه راغله تر څو چې ستاسي پاملرنه راواړوي او تاسي له انحراف نه ځان وژغورئ او پرتاسي رحم وشي"

اَوَ عَجِبۡتُمۡ اَنۡ جَآءَکُمۡ ذِکۡرٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ عَلٰی رَجُلٍ مِّنۡکُمۡ لِیُنۡذِرَکُمۡ وَ لِتَتَّقُوۡا وَ لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۶۳)

خو هغوی هغه دروغجن وګاڼه. په پای کښې مونږ هغه او د هغه ملګرو ته په یوه بېړۍ کښې نجات ورکړ او هغه خلك مو غرق کړل چې هغوی زمونږ ایتونه دروغ ګڼلي وو. په باوري توګه هغوی ړانده وو.

فَکَذَّبُوۡہُ فَاَنۡجَیۡنٰہُ وَ الَّذِیۡنَ مَعَہٗ فِی الۡفُلۡکِ وَ اَغۡرَقۡنَا الَّذِیۡنَ کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا قَوۡمًا عَمِیۡنَ (۶۴)

او د عادیانو لوري ته مونږ د هغو وروړهود ع ولېږه . هغه وویل" ای زما قومه ! دالله بندګي وکړئ ، له هغه پرته ستاسي هېڅ بل کوم خدای نه شته. نو ایا تاسي به له انحراف نه په ډډه نه شئ"؟

وَ اِلٰی عَادٍ اَخَاہُمۡ ہُوۡدًا ؕ قَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰہَ مَا لَکُمۡ مِّنۡ اِلٰہٍ غَیۡرُہٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوۡنَ (۶۵)

د هغه د قوم مشرانو چې د هغه د خبرې له منلو څخه انکار کاوه ، په ځواب کښې یې وویل" مونږ خو تا په ناپوهی کښې اخته ګڼو او زمونږ داګومان دی چې ته دروغجن یې "

قَالَ الۡمَلَاُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ قَوۡمِہٖۤ اِنَّا لَنَرٰىکَ فِیۡ سَفَاہَۃٍ وَّ اِنَّا لَنَظُنُّکَ مِنَ الۡکٰذِبِیۡنَ (۶۶)

هغه وویل"ای زما قومه ! زه په ناپوهی کښې اخته نه یم بلکې زه د رب العلمین پېغمبر یم ،

قَالَ یٰقَوۡمِ لَیۡسَ بِیۡ سَفَاہَۃٌ وَّ لٰکِنِّیۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۶۷)

تاسي ته د خپل رب پېغامونه رسوم ، او ستاسي خواخوږی یم چې ډاډینه وړباندې کېدای شي.

اُبَلِّغُکُمۡ رِسٰلٰتِ رَبِّیۡ وَ اَنَا لَکُمۡ نَاصِحٌ اَمِیۡنٌ (۶۸)

ایا تاسي په دې خبره په حیرانتیا کښي ولویدئ چي تاسي ته په خپله ستاسي د خپل قوم د یو سړي په وسیله ستاسي د رب یادونه راغله تر څو چي هغه تاسي متوجه کړي؟ مه هېروئ چي ستاسي رب د نوح ع له قوم نه وروسته تاسي د هغه په ځای کښېنولئ او تاسي یې ښه پیاوړي کړئ ، نو د خدای د قدرت ځلاوې په یاد ولرئ ، هیله ده چي ومور غیرږي "

اَوَ عَجِبۡتُمۡ اَنۡ جَآءَكُمۡ ذِكۡرٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَلٰی رَجُلٍ مِّنۡكُمۡ لِیُنۡذِرَكُمۡ ؕ وَ اذۡكُرُوۡۤا اِذۡ جَعَلَكُمۡ خُلَفَآءَ مِنۡۢ بَعۡدِ قَوۡمِ نُوۡحٍ وَّ زَادَكُمۡ فِی الۡخَلۡقِ بَصۜۡطَةً ۚ فَاذۡكُرُوۡۤا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ (۶۹)

هغوی ځواب ورکړ" ایا ته ددې له پاره مونږ ته راغلی یې چي مونږ یوازې د الله عبادت وکړو او هغه پرېدو چي زمونږ پلرونو نیکونو د هغو عبادت کړیدی؟ ښه نور او له هغه عذاب چي ته مونږ ته د هغه اخطار راکوې که ته رښتونی یې."

قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا لِنَعۡبُدَ اللّٰهَ وَحۡدَهٗ وَ نَذَرَ مَا كَانَ یَعۡبُدُ اٰبَآؤُنَا ۚ فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِیۡنَ (۷۰)

هغه وویل " ستاسي د رب نفرین دربانديې پرېووت او د هغه غضب دربانديې وغورځېده. ایا تاسي له ما سره په هغونومونو شخړې کوئ چي تاسي او ستاسي پلرونو او نیکونو ایښي دي ، چي د هغو له پاره الله کوم سند نه دی نازل کړی؟ ښه نو تاسي هم منتظر اوسئ او زه به هم له تاسي سره انتظار کوم "

قَالَ قَدۡ وَقَعَ عَلَیۡكُمۡ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ رِجۡسٌ وَّ غَضَبٌ ؕ اَتُجَادِلُوۡنَنِیۡ فِیۡۤ اَسۡمَآءٍ سَمَّیۡتُمُوۡهَاۤ اَنۡتُمۡ وَ اٰبَآؤُكُمۡ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا مِنۡ سُلۡطٰنٍ ؕ فَانۡتَظِرُوۡۤا اِنِّیۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُنۡتَظِرِیۡنَ (۷۱)

په پای کښي مونږ په خپلي مهرباني سره هود ع او د هغه ملګري وژغورل او د هغو خلکو موسته وایستله چي زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي وو او نه وو ایمان راوړونکي.

فَاَنۡجَیۡنٰهُ وَ الَّذِیۡنَ مَعَهٗ بِرَحۡمَةٍ مِّنَّا وَ قَطَعۡنَا دَابِرَ الَّذِیۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا وَ مَا كَانُوۡا مُؤۡمِنِیۡنَ (۷۲)

او ثمودیانو ته مونږ د هغه ورور صالح ع ولېږه. هغه وویل" ای زما قومه ! دالله بندګي وکړئ ، له هغه پرته ستاسي هېڅ بل خدای نه شته ، تاسي ته ستاسي درب روښانه دلیل راغلی دی. د الله دا اوښه ستاسي له پاره د یوې نښاني په ډول ده، نو هغه پرېږدئ چي د خدای په ځمکه کښي وڅري هغې ته په کوم ناوړه قصد لاس مه وروړئ که نه نو یو دردناك عذاب به تاسي ونیسي.

وَ اِلٰی ثَمُوۡدَ اَخَاهُمۡ صٰلِحًا ۘ قَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمۡ مِّنۡ اِلٰهٍ غَیۡرُهٗ ؕ قَدۡ جَآءَتۡكُمۡ بَیِّنَةٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ ؕ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمۡ اٰیَةً فَذَرُوۡهَا تَاۡكُلۡ فِیۡۤ اَرۡضِ اللّٰهِ وَ لَا تَمَسُّوۡهَا بِسُوۡٓءٍ فَیَاۡخُذَكُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۷۳)

اوهغه وخت درپه زړه کړئ چي کله الله د عادله قوم نه وروسته تاسي د هغوی په ځای کښېنولئ او تاسي ته یې په ځمکه کښي دا مقام درپه برخه کړ چي نن تاسي د هغې په هوارو میدانونو کښي لوړې ماڼۍ جوړوئ اودهغې غرونه دکورونو په شکل توروئ،نو دهغه دقدرت له ځلاوو(نعمتونو)څخه غافل کېږئ مه اوپه ځمکه کښي فسادمه راولاړوئ ".

وَ اذۡكُرُوۡۤا اِذۡ جَعَلَكُمۡ خُلَفَآءَ مِنۡۢ بَعۡدِ عَادٍ وَّ بَوَّاَكُمۡ فِی الۡاَرۡضِ تَتَّخِذُوۡنَ مِنۡ سُهُوۡلِهَا قُصُوۡرًا وَّ تَنۡحِتُوۡنَ الۡجِبَالَ بُیُوۡتًا ۚ فَاذۡكُرُوۡۤا اٰلَآءَ اللّٰهِ وَ لَا تَعۡثَوۡا فِی الۡاَرۡضِ مُفۡسِدِیۡنَ (۷۴)

د هغه د قوم هغو مشرانو چي تکبر یې غوره کړی وْ ، د ټیټې طبقې هغو خلکو ته چي ایمان یې راوړی وْ وویل" ایا تاسي په رښتیا سره په دې پوهېږئ. چي صالح ع دخپل رب پېغمبر دی " ؟ هغوی ځواب ورکړ " په دې کښي شك نشته له کوم پېغام سره چي هغه لېږل شوېدی مونږ هغه منو "

قَالَ الۡمَلَاُ الَّذِیۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡا مِنۡ قَوۡمِهٖ لِلَّذِیۡنَ اسۡتُضۡعِفُوۡا لِمَنۡ اٰمَنَ مِنۡهُمۡ اَتَعۡلَمُوۡنَ اَنَّ صٰلِحًا مُّرۡسَلٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلَ بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ (۷۵)

هغو تکبر کوونکو وویل" کوم شی چي تاسي منلی دی مونږ له هغه نه منکر یو"

قَالَ الَّذِیۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡۤا اِنَّا بِالَّذِیۡۤ اٰمَنۡتُمۡ بِهٖ كٰفِرُوۡنَ (۷۶)

بیا هغوی اوښه ووژله او له پوره سرغړوني سره یې د خپل رب له امر څخه مخالفت وکړ او صالح ع ته یې وویل چي " راوله هغه عذاب چي ته مونږ ته د هغه اخطار راکوې که ته په رښتیا سره له پېغمبرانو څخه یې . "

فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَ عَتَوۡا عَنۡ اَمۡرِ رَبِّهِمۡ وَ قَالُوۡا یٰصٰلِحُ ائۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الۡمُرۡسَلِیۡنَ (۷۷)

په پای کښې يو لړ زوونکي افت هغوی ونيول او هغوی پخپلو کورونو کښې پر مخې نسکور پراته پاتې شول

فَاَخَذَتۡہُمُ الرَّجۡفَۃُ فَاَصۡبَحُوۡا فِیۡ دَارِہِمۡ جٰثِمِیۡنَ (۷۸)

او صالح ع دا ويل د هغو له کليو څخه ووت چې " ای زما قومه ! ما دخپل رب پېغام تاسې ته ورسوه او ما ستاسې ډېره خواخوږي وکړه ، خو زه څه وکړم چې تاسې خپل خواخوږي نه خوښوئ."

فَتَوَلّٰی عَنۡہُمۡ وَ قَالَ یٰقَوۡمِ لَقَدۡ اَبۡلَغۡتُکُمۡ رِسَالَۃَ رَبِّیۡ وَ نَصَحۡتُ لَکُمۡ وَ لٰکِنۡ لَّا تُحِبُّوۡنَ النّٰصِحِیۡنَ (۷۹)

او لوط مونږ د پېغمبر په حيث ولېږه ، نو په ياده لره چې کله هغه خپل قوم ته وويل" ايا تاسې داسې بې حيا شوي ياست چې هغه شرمناك كار كوئ چې له تاسې نه مخكښې په نړۍ كښې هيچا نه دی كړی؟

وَ لُوۡطًا اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِہٖۤ اَتَاۡتُوۡنَ الۡفَاحِشَۃَ مَا سَبَقَکُمۡ بِہَا مِنۡ اَحَدٍ مِّنَ الۡعٰلَمِیۡنَ (۸۰)

تاسې ښځې پرېږدئ له نارينه وْ سره خپله غريزه مړوئ . حقيقت دادی چې تاسې بيخي له حده تېرېدونكي خلك ئي"

اِنَّکُمۡ لَتَاۡتُوۡنَ الرِّجَالَ شَہۡوَۃً مِّنۡ دُوۡنِ النِّسَآءِ ؕ بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ مُّسۡرِفُوۡنَ (۸۱)

خو د هغه د قوم ځواب له دې پرته نه وْ چې " دا خلك له خپلو كليو نه وباسئ ، دوی ډېر ځان پاكوونكي خلك دي"

وَ مَا کَانَ جَوَابَ قَوۡمِہٖۤ اِلَّاۤ اَنۡ قَالُوۡۤا اَخۡرِجُوۡہُمۡ مِّنۡ قَرۡیَتِکُمۡ ۚ اِنَّہُمۡ اُنَاسٌ یَّتَطَہَّرُوۡنَ (۸۲)

په پای كښې مونږ لوط ع او د هغه كورنى – د هغه له مېرمنې څخه پرته چې له شاته پاتې كيدونكو څخه وه . – روغ رمټ وايستل.

فَاَنۡجَیۡنٰہُ وَ اَہۡلَہٗۤ اِلَّا امۡرَاَتَہٗ ۫ۖ کَانَتۡ مِنَ الۡغٰبِرِیۡنَ (۸۳)

او پر هغه قوم مو يو باران وورووه ، نو وګوره چې د هغو مجرمانو څه عاقبت شو.

وَ اَمۡطَرۡنَا عَلَیۡہِمۡ مَّطَرًا ؕ فَانۡظُرۡ کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الۡمُجۡرِمِیۡنَ (۸۴)

او د مدين اوسيدونكو ته مونږ د هغوی ورور شعيب ع ولېږه ، هغه وويل " ای زما قومه ! دالله بندګی وكړئ ، له هغه پرته ستاسې هېڅ بل خدای نشته . تاسې ته ستاسې درب څرګنده لارښوونه راغلې ده ، نو تله او پېمانه پوره كوئ ، خلكو ته د هغو په شيانو كښې تاوان مه اړوئ ، او په ځمكه كښې فساد مه راولاړوئ چې كله د هغې اصلاح شوېده په همدې كښې ستاسې ښېګڼه ده كه تاسې په رښتيا مؤمنان ياست.

وَ اِلٰی مَدۡیَنَ اَخَاہُمۡ شُعَیۡبًا ؕ قَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰہَ مَا لَکُمۡ مِّنۡ اِلٰہٍ غَیۡرُہٗ ؕ قَدۡ جَآءَتۡکُمۡ بَیِّنَۃٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ فَاَوۡفُوا الۡکَیۡلَ وَ الۡمِیۡزَانَ وَ لَا تَبۡخَسُوا النَّاسَ اَشۡیَآءَہُمۡ وَ لَا تُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ بَعۡدَ اِصۡلَاحِہَا ؕ ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ (۸۵)

او ( د ژوند ) پر هره لاره د شكاونې له پاره مه كښېنئ چې خلك ووېروئ ، مؤمنان د خدای له لارې مه منع كوئ او د سمې لارې دكږولو په هڅه كښې مه اوسئ ، هغه وخت درپه زړه كړئ چې كله تاسې لږ شمېروئ بيا الله تاسې زيات كړئ ، او په غږېدلو سترګو وګورئ چې په نړۍ كښې فساد كوونكي په كوم سرنوشت اخته شوي دي.

وَ لَا تَقۡعُدُوۡا بِکُلِّ صِرَاطٍ تُوۡعِدُوۡنَ وَ تَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ مَنۡ اٰمَنَ بِہٖ وَ تَبۡغُوۡنَہَا عِوَجًا ۚ وَ اذۡکُرُوۡۤا اِذۡ کُنۡتُمۡ قَلِیۡلًا فَکَثَّرَکُمۡ ۪ وَ انۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الۡمُفۡسِدِیۡنَ (۸۶)

كه له تاسې څخه يوه ډله پر هغه هدايت چې زه ورسره ليږل شوی يم ايمان راوړي او بله ايمان نه راوړي ، نو له صبر سره سترګې په لاره اوسئ چې تر څو الله زمونږ په مينځ كښې فيصله وكړي، او همغه تر هر چا ښه فيصله كوونكی دی."

وَ اِنۡ کَانَ طَآئِفَۃٌ مِّنۡکُمۡ اٰمَنُوۡا بِالَّذِیۡۤ اُرۡسِلۡتُ بِہٖ وَ طَآئِفَۃٌ لَّمۡ یُؤۡمِنُوۡا فَاصۡبِرُوۡا حَتّٰی یَحۡکُمَ اللّٰہُ بَیۡنَنَا ۚ وَ ہُوَ خَیۡرُ الۡحٰکِمِیۡنَ (۸۷)

د هغه د قوم مشرانو ، چې د خپل تکبر په غرور کښې اخته وو، هغه ته وویل چې " ای شعیبه ع ! مونږ به تا او هغه خلك چې له تا سره یې ایمان راوړی دی له خپلې سیمې نه وباسو او یا به بېرته زمونږ ملت ته راواوښتونکي یاست " شعیب ع ځواب ورکړ" ایا مونږ به په زور واړول شو که زمونږ خوښه هم نه وي؟

قَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ اسْتَكْبَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَنُخْرِجَنَّكَ یٰشُعَیْبُ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ مِنْ قَرْیَتِنَاۤ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِیْ مِلَّتِنَا ؕ قَالَ اَوَ لَوْ كُنَّا كٰرِهِیْنَ (۸۸)

مونږ به په الله پورې دروغ تړونکي یو که بېرته ستاسې ملت ته دروګرځو کله چې الله مونږ ته له هغه نه نجات راپه برخه کړیدی ، زمونږ له پاره خو هغه لوري ته ورګرځېدل اوس په هېڅ ډول امکان نلري مګر دا چې زمونږ د رب الله همداسې خوښه شي. زمونږ د رب علم په هر څه پراخ چاپېر دی، پر هماغه مونږ اعتماد کړیدی. ای پروردګاره ! زمونږ او زمونږ د قوم په مینځ کښې په حقه فیصله وکړه او ته ډېر ښه فیصله کوونکی یې ،

قَدِ افْتَرَیْنَا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اِنْ عُدْنَا فِیْ مِلَّتِكُمْ بَعْدَ اِذْ نَجّٰىنَا اللّٰهُ مِنْهَا ؕ وَ مَا یَكُوْنُ لَنَاۤ اَنْ نَّعُوْدَ فِیْهَاۤ اِلَّاۤ اَنْ یَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّنَا ؕ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا ؕ عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ؕ رَبَّنَا افْتَحْ بَیْنَنَا وَ بَیْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَ اَنْتَ خَیْرُ الْفٰتِحِیْنَ (۸۹)

د هغه د قوم مشرانو چې د هغه د خبرې له منلو څخه یې انکار کړی وْ ، یخپلو کښې سره وویل" که تاسې د شعیب پېروی قبوله کړه نو تباه به شئ"

وَ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ لَىٕنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَیْبًا اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ (۹۰)

خو داسې پېښه شوه چې یو لړ زوونکي افت هغوی ونیول او هغوی په خپلو کورونو کښې پرمخې نسکور پراته پاتې شول.

فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دَارِهِمْ جٰثِمِیْنَ (۹۱)

کومو خلکو چې شعیب ع دروغجن وګاڼه هغوی داسې له مینځه لاړل چې ته به وایې هېڅکله په هغو کورونو کښې نه وو اوسیدلي، هماغه د شعیب ع دروغ ګڼونکي په پای کښې تباه شول.

الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا شُعَیْبًا كَاَنْ لَّمْ یَغْنَوْا فِیْهَا ۛۚ اَلَّذِیْنَ كَذَّبُوْا شُعَیْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِیْنَ (۹۲)

او شعیب ع په دې وینا کولو سره د هغو له سیمې څخه ووت چې " ای زما قومه ! ما د خپل رب پېغامونه تاسې ته ورسول او له تاسې سره د خواخوږۍ حق مې ادا کړ. اوس زه څنګه پر هغه قوم افسوس وکړم چې د حق له منلو څخه انکار کوي.

فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَ قَالَ یٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّیْ وَ نَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَیْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِیْنَ (۹۳)

هیڅکله داسې نه ده شوې چې مونږ کومې سیمې ته پېغمبر لېږلی وي او دهغې سېمې خلك مو مخکښې (دانکار له کبله) په تنګلاسی او کړاوونو کښې نه وي اخته کړي،په دې تدبیرچې ښایي هغوی په زاریو شي،

وَ مَاۤ اَرْسَلْنَا فِیْ قَرْیَةٍ مِّنْ نَّبِیٍّ اِلَّاۤ اَخَذْنَاۤ اَهْلَهَا بِالْبَاْسَآءِ وَ الضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ یَضَّرَّعُوْنَ (۹۴)

بیا مونږ د هغو بېوزلي پر سوکالی بدله کړه تر دې پورې چې د هغو ښه ورغېدله او په دې وینا یې خوله پرانستله چې " زمونږ پر پلرونو نیکونو هم ښې بدې ورځې راغلي دي" په پای کښې مونږ هغوی په ناڅاپي توګه ونیول او هغوی خبر قدرې هم نشول.

ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّیِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتّٰى عَفَوْا وَّ قَالُوْا قَدْ مَسَّ اٰبَآءَنَا الضَّرَّآءُ وَ السَّرَّآءُ فَاَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً وَّ هُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ (۹۵)

که د سیمو خلکو ایمان راوړی وای اود تقوی کړنلاره یې غوره کړې وای نو مونږ به پر هغو د آسمان او ځمکې د برکتونو دروازې پرانستې وای خو هغو ددروغو نسبت وکړ، نو مونږ څکه د هغې ناوړه ګټې په حساب کښې هغوی ونیول چې هغو راغونډوله.

وَ لَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰۤى اٰمَنُوْا وَ اتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَیْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ وَ لٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا یَكْسِبُوْنَ (۹۶)

او ايا د سيمو خلك اوس له دينه بې غمه شويدي چې زمونږ عذاب به كله په ناڅاپي ډول د شپې له مخې چې هغوی ويده پراته وي وربانديې رانشي؟

اَفَاَمِنَ اَهۡلُ الۡقُرٰۤى اَنۡ يَّاۡتِيَهُمۡ بَاۡسُنَا بَيَاتًا وَّ هُمۡ نَآئِمُوۡنَ (ؕ٩٧)

يا هغوی ډاډه شويدي چې زمونږ عذاب به كله په ناڅاپي توګه دورځې له مخې چې هغوی په لوبو اخته وي ور بانديې رانشي ؟

اَوَ اَمِنَ اَهۡلُ الۡقُرٰۤى اَنۡ يَّاۡتِيَهُمۡ بَاۡسُنَا ضُحًى وَّ هُمۡ يَلۡعَبُوۡنَ (٩٨)

ايا دوی د الله له پټ تدبير نه بې غمه دي؟ په داسې حال كښې چې د الله له پټ تدبير نه همغه قوم بې غمه كيږي چې تباه كېدونكی وي.

اَفَاَمِنُوۡا مَكۡرَ اللّٰهِ ۚ فَلَا يَاۡمَنُ مَكۡرَ اللّٰهِ اِلَّا الۡقَوۡمُ الۡخٰسِرُوۡنَ (٩٩)

او ايا هغو خلكو ته چې د ځمكې له پخوانيو اوسيدونكو نه وروسته د هغوی وارثان ګرځي ، دغه واقعيت څه درس نه دی وركړی چې كه مونږ وغواړو د هغوی پر ګناهونو هغوی نيولی شو؟ ( خو هغوی له عبرتناكو حقايقو څخه ځان په غفلت كښې اچوي) او مونږ د هغوی پر زړونو مهر وهو.بيا به هغوی هيڅ نه اوري .

اَوَ لَمۡ يَهۡدِ لِلَّذِيۡنَ يَرِثُوۡنَ الۡاَرۡضَ مِنۡۢ بَعۡدِ اَهۡلِهَاۤ اَنۡ لَّوۡ نَشَآءُ اَصَبۡنٰهُمۡ بِذُنُوۡبِهِمۡ ۚ وَ نَطۡبَعُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَسۡمَعُوۡنَ (١٠٠)

دا قومونه چې مونږ د هغو قصې درته اوروو ( ستا په وړانديې يې مثالونه شته ) د هغوی پېغمبران هغوی ته له ښكاره څرګندو نښانو سره راغلل ، خو كوم شی چې هغوی يو ځل دروغ ګڼلی وْ بيا د هغه منونكي نه وو، وګوره الله په دغه شان دحق د منكرانو پر زړونو مهر وهي.

تِلۡكَ الۡقُرٰى نَقُصُّ عَلَيۡكَ مِنۡ اَنۢۡبَآئِهَا ۚ وَ لَقَدۡ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُمۡ بِالۡبَيِّنٰتِ ۚ فَمَا كَانُوۡا لِيُؤۡمِنُوۡا بِمَا كَذَّبُوۡا مِنۡ قَبۡلُ ؕ كَذٰلِكَ يَطۡبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِ الۡكٰفِرِيۡنَ (١٠١)

مونږ د هغو په زياترو كښې د ژبنې څه وفا ونه موندله بلكې زياتره موفاسقان وميندل.

وَ مَا وَجَدۡنَا لِاَكۡثَرِهِمۡ مِّنۡ عَهۡدٍ ۚ وَ اِنۡ وَّجَدۡنَاۤ اَكۡثَرَهُمۡ لَفٰسِقِيۡنَ (١٠٢)

بيا له هغو قومونو څخه وروسته ( چې پاس ياد كړی شول ) مونږ موسی له خپلو نښانو سره فرعون او د هغه د قوم مشرانو ته ولېږه خو هغوی هم زمونږ له نښانو سره د ظلم چلند وكړ نو وګوره ! چې د هغو ورانكارو څه عاقبت شو.

ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ مُّوۡسٰى بِاٰيٰتِنَاۤ اِلٰى فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَا۫ئِهٖ فَظَلَمُوۡا بِهَا ۚ فَانۡظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُفۡسِدِيۡنَ (١٠٣)

موسی وويل " ای فرعونه ، زه د كائناتو د څښتن له خوا استازی راغلی يم ،

وَ قَالَ مُوۡسٰى يٰفِرۡعَوۡنُ اِنِّىۡ رَسُوۡلٌ مِّنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ (١٠٤)ۙ

زما دنده دا ده چې زه به دالله د نوم په اخيستلو له حقه پرته هېڅ كومه خبره نه كوم ، زه تاسې ته ستاسې د رب له لوري د ماموريت له څرګند دليل سره راغلی يم نو له دې امله بني اسرائيل له ما سره ولېږه "

حَقِيۡقٌ عَلٰۤى اَنۡ لَّاۤ اَقُوۡلَ عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الۡحَقَّ ؕ قَدۡ جِئۡتُكُمۡ بِبَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ فَاَرۡسِلۡ مَعِىَ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ (١٠٥)ؕ

فرعون وويل" كه تا كومه نښانه راوړې وي او په خپله دعوه كښې رښتونی يې نو هغه راوښيه "

قَالَ اِنۡ كُنۡتَ جِئۡتَ بِاٰيَةٍ فَاۡتِ بِهَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ (١٠٦)

موسی ع خپله همسا وغورځوله او هغه په ناڅاپي ډول يو ژوندی ګړندی ښامار وْ.

فَاَلۡقٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِىَ ثُعۡبَانٌ مُّبِيۡنٌ (١٠٧)ۚۖ

هغه له خپل ګرېوان نه لاس راوايست او ټولو كتونكو ته هغه سپين ځلېده .

وَّ نَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِىَ بَيۡضَآءُ لِلنّٰظِرِيۡنَ (١٠٨)

پدې سره د فرعون د قوم مشرانو پخپلو مينځو كښې وويل چې: " په يقيني توګه دا سړی ډېر ماهر كوډګر دی ،

قَالَ الۡمَلَاُ مِنۡ قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيۡمٌ (١٠٩)ۙ

غواړي له خپل هيوادنه ستاسې لاس و باسي ، اوس وواييئ څه واياست ؟ "

يُّرِيۡدُ اَنۡ يُّخۡرِجَكُمۡ مِّنۡ اَرۡضِكُمۡ ۚ فَمَاذَا تَاۡمُرُوۡنَ (١١٠)

بيا هغوی ټولو فرعون ته مشوره ورکړه چې دی او دده ورور په انتظار کښې پرېږده او ټولو ښارونو ته استازي واستوه

قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَ اَخَاهُ وَ اَرْسِلْ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ (١١١)ۙ

چې هر ماهر کوډګر درته راولي.

يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيْمٍ (١١٢)

همداسې وشول او کوډګران فرعون ته راغلل. هغوی وويل" که مونږ برلاسي شو نو مونږ ته خوبه ددې مکافات ارو مرو راکړل شي؟ .

وَ جَآءَ السَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ (١١٣)

فرعون ځواب ورکړ "هو او تاسې به د دربار نژدې کسان ياست "

قَالَ نَعَمْ وَ اِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ (١١٤)

بيا هغوی موسی ع ته وويل" ته يې غورځوې که مونږ يې وغورځوو ؟ "

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِىَ وَ اِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ (١١٥)

موسی ع ځواب ورکړ " تاسې يې وغورځوئ " هغوی چې د خپلو منترونو په ويلو خپل پړي او همساګانې وغورځولې نو سترګې يې مسحورې او زړونه يې په وېره کښې واچول او ډېرې غټې کوډې يې وکړې.

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ وَ اسْتَرْهَبُوْهُمْ وَ جَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ (١١٦)

مونږ موسی ع ته اشاره وکړه چې خپله همسا وغورځوه. څنګه چې يې وغورځوله په همغه شېبه کښې هغې د هغوی هغه ددروغو طلسم تيروه.

وَ اَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ (١١٧)ۚ

پدې ډول څه چې حق وْ هغه حق ثابت شو او څه چې هغوی جوړ کړي وو هغه باطل شول.

فَوَقَعَ الْحَقُّ وَ بَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١١٨)ۚ

فرعون او د هغه ملګري د مقابلې په ډګر کښې مغلوب شول او ( د برلاس کېدو په ځای ) په معکوس ډول خورا سپك شول.

فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَ انْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ (١١٩)ۚ

او د کوډګرو حالت داسې شو چې تا به ويل کوم شي له باطن څخه هغوی پر سجده وغورځول

وَ اُلْقِىَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ (١٢٠)ۖۚ

ويې ويل" مونږ رب العلمين ومانه ،

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (١٢١)ۙ

هغه رب چې موسی ع او هارون منلی دی ".

رَبِّ مُوْسٰى وَ هٰرُوْنَ (١٢٢)

فرعون وويل" تاسې وربāندې ايمان راوړ مخکښې له دينه چې زه اجازه درکړم؟په يقيني توګه دا کومه پټه دسيسه وه چې تاسې په دې پايتخت کښې په کار اچوله تر څو چې د هغه د واکمنانو لاس له واکمنی نه وباسئ. ښه نو اوس به ددې نتيجه تاسې ته څرګنده شي.

قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِى الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَآ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ (١٢٣)

زه به ستاسې لاسونه پښې ردې بدلې غوڅې کړم. او له هغه وروسته به تاسې ټول په دار وځړوم"-

لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ (١٢٤)

هغوی ځواب ورکړ " په هر حال زمونږ ورګرځېدل د همغه خپل رب په لوري دي.

قَالُوْٓا اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ (١٢٥)ۚ

ته چې په کومه خبره له مونږ څخه غچ اخيستل غواړې هغه له دې پرته نور څه نه ده چې زمونږ د رب نښانې چې کله زمونږ مخې ته وړاندې شوې نو مونږ هغه ومنلې . ای ربه ! پر مونږ صبر وورووه او مونږ له نړۍ نه بوځه خو په داسې حال کښې چې مونږ ستا فرمانبردار اوسو.".

وَ مَا تَنْقِمُ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا بِاٰيٰتِ رَبِّنَا لَمَّا جَآءَتْنَا ؕ رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّ تَوَفَّنَا مُسْلِمِيْنَ (١٢٦)

فرعون ته دهغه د قوم مشرانو وويل:ایا ته موسی ع او د هغه قوم همداسي پرېږدې چي په هیواد کښي فساد خپور کړي او ستا او ستا د خدایانو بندګي پرېږدي؟" فرعون ځواب ورکړ " زه به د هغو زامن ووژنم او د هغو ښځي به ژوندۍ پرېږدم . او مونږ پر هغو د قوت برلاسي لرو.

وَ قَالَ الۡمَلَاُ مِنۡ قَوۡمِ فِرۡعَوۡنَ اَتَذَرُ مُوۡسٰی وَ قَوۡمَہٗ لِیُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ وَ یَذَرَکَ وَ اٰلِہَتَکَ ؕ قَالَ سَنُقَتِّلُ اَبۡنَآءَہُمۡ وَ نَسۡتَحۡیٖ نِسَآءَہُمۡ ۚ وَ اِنَّا فَوۡقَہُمۡ قٰہِرُوۡنَ (۱۲۷)

موسی ع خپل قوم ته وویل" له الله نه مرسته وغواړئ او زغم ولرئ ځمکه د الله ده ، له خپلو بندګانو څخه یې چې چاته خوښه شي د هغې وارث یې ګرځوي، او وروستی کامیابي د همغو له پاره ده چې له هغه څخه په وېرېدو کار کوي"

قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِہِ اسۡتَعِیۡنُوۡا بِاللّٰہِ وَ اصۡبِرُوۡا ۚ اِنَّ الۡاَرۡضَ لِلّٰہِ ۟ۙ یُوۡرِثُہَا مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖ ؕ وَ الۡعَاقِبَۃُ لِلۡمُتَّقِیۡنَ (۱۲۸)

د هغه د قوم خلکو وویل " ستا له راتګ نه مخکښي هم مونږ ځورول کېدو او اوس ستا په راتګ هم ځورول کېږو " هغه ځواب ورکړ " نژدې دی هغه وخت چي ستاسي رب ستاسي دښمنان هلاك کړي او تاسي ته په ځمکه کښي خلافت درکړي بیا وګوري چي تاسي څنګه عمل کوئ.

قَالُوۡۤا اُوۡذِیۡنَا مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ تَاۡتِیَنَا وَ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جِئۡتَنَا ؕ قَالَ عَسٰی رَبُّکُمۡ اَنۡ یُّہۡلِکَ عَدُوَّکُمۡ وَ یَسۡتَخۡلِفَکُمۡ فِی الۡاَرۡضِ فَیَنۡظُرَ کَیۡفَ تَعۡمَلُوۡنَ (۱۲۹)

مونږ فرعونیان تر ډېرو کلونو پورې په کاتې او دحاصلاتو په کموالي کښي اخته کړل چي ښایي هغوی متوجه شي.

وَ لَقَدۡ اَخَذۡنَاۤ اٰلَ فِرۡعَوۡنَ بِالسِّنِیۡنَ وَ نَقۡصٍ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّہُمۡ یَذَّکَّرُوۡنَ (۱۳۰)

خو د هغو حالت داوْ چي کله به ښه وخت ورباندې راغی نو ویل به یې چي مونږ د همدې وړیو ، او کله به چي ناکاره وخت ورباندی راغی نو موسی ع او د هغه ملګري به یې د ځان له پاره په بد فال نیول ، په داسي حال کښي چي په حقیقت کښي خو د هغو شومتوب له الله سره وْ ، خو له هغو څخه زیاتره بې علمه وو،

فَاِذَا جَآءَتۡہُمُ الۡحَسَنَۃُ قَالُوۡا لَنَا ہٰذِہٖ ۚ وَ اِنۡ تُصِبۡہُمۡ سَیِّئَۃٌ یَّطَّیَّرُوۡا بِمُوۡسٰی وَ مَنۡ مَّعَہٗ ؕ اَلَاۤ اِنَّمَا طٰٓئِرُہُمۡ عِنۡدَ اللّٰہِ وَ لٰکِنَّ اَکۡثَرَہُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ (۱۳۱)

هغوی موسی ع ته وویل چي " که ته پر مونږ د کوډو کولو له پاره هره نښانه راوړې ، مونږ ستا د خبرې منونکي نه یو."

وَ قَالُوۡا مَہۡمَا تَاۡتِنَا بِہٖ مِنۡ اٰیَۃٍ لِّتَسۡحَرَنَا بِہَا ۙ فَمَا نَحۡنُ لَکَ بِمُؤۡمِنِیۡنَ (۱۳۲)

په پای کښي مونږ پر هغوی طوفان ولېږه ، د ملخانو سیل مو ورخوشي کړ، بېوکا مو خواره کړل ، چنګښي مو راوویستلي ، او وینې مو وورولې دا ټولې نښاني مو بېلابېلې وښودلې ، خو هغوی سرکشي غوره کړه او هغوی ډېر مجرمان خلك وو.

فَاَرۡسَلۡنَا عَلَیۡہِمُ الطُّوۡفَانَ وَ الۡجَرَادَ وَ الۡقُمَّلَ وَ الضَّفَادِعَ وَ الدَّمَ اٰیٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ ۟ فَاسۡتَکۡبَرُوۡا وَ کَانُوۡا قَوۡمًا مُّجۡرِمِیۡنَ (۱۳۳)

کله به چي پر هغوی بلا نازلېدله نو ویل به یې " ای موسی ع ! تا ته چي د خپل رب له لوري کومه مرتبه درکړه شوېده د هغې په اساس زمونږ په حق کښي دعا وکړه ، که اوس دې له مونږ نه دا بلا ایسته کړه نو مونږ به ستا خبره ومنو او بني اسرائیل به له تا سره ولېږو "

وَ لَمَّا وَقَعَ عَلَیۡہِمُ الرِّجۡزُ قَالُوۡا یٰمُوۡسَی ادۡعُ لَنَا رَبَّکَ بِمَا عَہِدَ عِنۡدَکَ ۚ لَئِنۡ کَشَفۡتَ عَنَّا الرِّجۡزَ لَنُؤۡمِنَنَّ لَکَ وَ لَنُرۡسِلَنَّ مَعَکَ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ (۱۳۴)ۚ

خو کله به چي مونږ له هغو څخه خپل عذاب دیوڅه ټاکلي وخت له پاره چي هغه ته په هر حال وررسیدونکي وو، ایسته کړ نو هغوی به کاملاً له خپلې ژبنې څخه اووښتل .

فَلَمَّا کَشَفۡنَا عَنۡہُمُ الرِّجۡزَ اِلٰۤی اَجَلٍ ہُمۡ بٰلِغُوۡہُ اِذَا ہُمۡ یَنۡکُثُوۡنَ (۱۳۵)

نو هله مونږ له هغو څخه غچ واخیست او هغوی مو په سمندر کښي ډوب کړل ځکه چي هغو زمونږ نښاني دروغ ګڼلي وې او له هغو څخه بې پروا شوي وو

فَانۡتَقَمۡنَا مِنۡہُمۡ فَاَغۡرَقۡنٰہُمۡ فِی الۡیَمِّ بِاَنَّہُمۡ کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا وَ کَانُوۡا عَنۡہَا غٰفِلِیۡنَ (۱۳۶)

او د هغوی په ځای مونږ هغه خلك چې کمزوري کړای شوي وو د هغې ځمکې د ختیځ او لویدیځ وارثان وګرځول چې مونږ هغه له برکتونو څخه پوره معموره کړې وه. په دې توګه د بني اسرائیلو په حق کښې ستا د رب د ښېګڼې وعده تر سره شوه ځکه چې هغوی هم له زغم نه کار اخیستی وْ او د فرعون او د هغه د قوم هغه هرڅه تباه کړی شول چې هغوی ودانول او لوړول .

وَ اَوۡرَثۡنَا الۡقَوۡمَ الَّذِيۡنَ كَانُوۡا يُسۡتَضۡعَفُوۡنَ مَشَارِقَ الۡاَرۡضِ وَ مَغَارِبَهَا الَّتِىۡ بٰرَكۡنَا فِيۡهَا ؕ وَ تَمَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ الۡحُسۡنٰى عَلٰى بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ ۙ بِمَا صَبَرُوۡا ؕ وَ دَمَّرۡنَا مَا كَانَ يَصۡنَعُ فِرۡعَوۡنُ وَ قَوۡمُهٗ وَ مَا كَانُوۡا يَعۡرِشُوۡنَ (۱۳۷)

مونږ بني اسرائیل له سمندر نه پورې ایستل ، بیا هغوی لاړل او په لاره کښې په یو داسې قوم تېر شول چې د خپلو څو بتانو په مینه کښې نښتي وو. ویې ویل " ای موسی ، زمونږ له پاره هم دغسې معبود جوړ کړه لکه چې ددې خلکو معبودان دي."موسی وویل " تاسې ډېرې د ناپوهۍ خبرې کوئ.

وَ جٰوَزۡنَا بِبَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ الۡبَحۡرَ فَاَتَوۡا عَلٰى قَوۡمٍ يَّعۡكُفُوۡنَ عَلٰۤى اَصۡنَامٍ لَّهُمۡ ۚ قَالُوۡا يٰمُوۡسَى اجۡعَلۡ لَّنَاۤ اِلٰهًا كَمَا لَهُمۡ اٰلِهَةٌ ؕ قَالَ اِنَّكُمۡ قَوۡمٌ تَجۡهَلُوۡنَ (۱۳۸)

دا خلك چې د کومې کړنلارې پېروي کوي هغه تباه کیدونکې ده او کوم عمل چې هغوی سرته رسوي هغه سرتاپایه باطل دی."

اِنَّ هٰۤؤُلَۤاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمۡ فِيۡهِ وَ بٰطِلٌ مَّا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (۱۳۹)

ورپسې موسی ع زیاته کړه " ایا زه ستاسې له پاره الله نه پرته کوم بل معبود ولټوم؟ په داسې حال کښې چې هماغه الله دی چې تاسې ته یې د ټولې نړۍ پر قومونو فضیلت دربښلی دی.

قَالَ اَغَيۡرَ اللّٰهِ اَبۡغِيۡكُمۡ اِلٰهًا وَّ هُوَ فَضَّلَكُمۡ عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ (۱۴۰)

او ( الله فرمائي ) هغه وخت یاد کړئ چې کله مونږ له فرعونیانو نه تاسې ته نجات درکړ چې هغوی تاسې سخت ځورولئ ، ستاسې زامن یې وژل او ستاسې لوڼې یې ژوندۍ پرېښودلې او په دې کښې ستاسې درب له لورې پر تاسې لویه ازموینه وه."

وَ اِذۡ اَنۡجَيۡنٰكُمۡ مِّنۡ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ يَسُوۡمُوۡنَكُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ ۚ يُقَتِّلُوۡنَ اَبۡنَآءَكُمۡ وَ يَسۡتَحۡيُوۡنَ نِسَآءَكُمۡ ؕ وَ فِىۡ ذٰلِكُمۡ بَلَآءٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَظِيۡمٌ (۱۴۱)

مونږ موسی ع ددېرشو شپو ورځو له پاره ( دسینا غره ته ) غوښتی وْ او وروسته مو لس ورځې نورې زیاتې کړې ، په دې ترتیب د هغه د رب ټاکلې موده پوره څلوېښت ورځې شوه. موسع دتلو په وخت کښې خپل ورور هارون ته وویل " له ما څخه وروسته ته زما په قوم کښې زما قائیمقام اوسه او د اصلاح فعالیت کوه او د ورانکارو په لاره مه ځه. "

وَ وٰعَدۡنَا مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً وَّ اَتۡمَمۡنٰهَا بِعَشۡرٍ فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً ۚ وَ قَالَ مُوۡسٰى لِاَخِيۡهِ هٰرُوۡنَ اخۡلُفۡنِىۡ فِىۡ قَوۡمِىۡ وَ اَصۡلِحۡ وَ لَا تَتَّبِعۡ سَبِيۡلَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ (۱۴۲)

کله چې هغه زمونږ په ټاکلې نېټه راورسید او د هغه رب له هغه سره خبرې وکړې نو هغه هیله وکړه چې "ای پروردګاره ! ما ته د لیدو چانس راکړه چې زه تا وګورم " ویې فرمایل : " ته ما نشې لیدلی . هو ، لږ شان د غره لورې ته وګوره که هغه پخپل ځای ولاړ پاتې شو نو البته ته ما لیدلی شې . " نو کله چې د هغه رب پر غره د دیدار وړانګې وغورځولې نو هغه یې مېده مېده کړ او موسع بېهوښه پرېووت . کله چې په سد شو نو ویې ویل" پاك دی ستا ذات ، زه ستا په دربار کښې توبه باسم او تر ټولو مخکښې ایمان راوړونکی زه یم.

وَ لَمَّا جَآءَ مُوۡسٰى لِمِيۡقَاتِنَا وَ كَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِىۡۤ اَنۡظُرۡ اِلَيۡكَ ؕ قَالَ لَنۡ تَرٰٮنِىۡ وَ لٰكِنِ انۡظُرۡ اِلَى الۡجَبَلِ فَاِنِ اسۡتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوۡفَ تَرٰٮنِىۡ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلۡجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّ خَرَّ مُوۡسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّاۤ اَفَاقَ قَالَ سُبۡحٰنَكَ تُبۡتُ اِلَيۡكَ وَ اَنَا اَوَّلُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۴۳)

ویې فرمایل "ای موسع ، ماتاته پر ټولو خلکو ترجېح درکړې غوره کړی مې یې چې زما پېغمبري وکړې او له ما سره هم کلام اوسه. نو څه چې زه درکړم هغه واخله او شکر ادا کړه."

قَالَ يٰمُوۡسٰۤى اِنِّى اصۡطَفَيۡتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِىۡ وَ بِكَلَامِىۡ ۖ فَخُذۡ مَاۤ اٰتَيۡتُكَ وَ كُنۡ مِّنَ الشّٰكِرِيۡنَ (۱۴۴)

له هغه وروسته مونږ موسىٰ ته د ژوند د هرې څانګې په باب نصيحت او د هر اړخ په باب هدايت پرتختو ليکلی ورکړ او هغه ته مو وويل : " دا هدايت په خپلو محکمو لاسونو واخله او خپل قوم ته امر وکړه چې ددې دغوره مفاهيمو پيروي وکړي. ژر به زه تاسو ته د فاسقانو کور دروښيم.

وَ كَتَبْنَا لَهٗ فِي الْاَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَّ تَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ ۚ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَّ اْمُرْ قَوْمَكَ يَاْخُذُوْا بِاَحْسَنِهَا ؕ سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ (١٤٥)

زه به له خپلو نښانو څخه د هغو خلکو سترګې واړوم چې په ناحقه په ځمکه کښې تکبر کوي، هغوی که هره نښانه وګوري هيڅکله به پرې ايمان رانه وړي که سمه لاره يې په مخ ورشي نو هغه به غوره نکړي او که کږه لاره يې تر سترګو شي نو پر هغې به وخوځيږي ، ځکه چې هغوی زمونږ نښاني دروغ وګڼلې او له هغو څخه يې بې پروايي وکړه.

سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ وَ اِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۚ وَ اِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ۚ وَ اِنْ يَّرَوْا سَبِيْلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوْهُ سَبِيْلًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ كَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ (١٤٦)

زمونږ نښاني چې چا دروغ وګڼلې او د اخرت له راتګ نه يې انکار وکړ د هغه ټول کړه وړه بابيزه شول. ايا خلك به له دې پرته بل څه بدله وميندلی شي چې څه وکړي هغه به وريبي؟"

وَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ لِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٤٧)

له موسىٰ نه وروسته د هغه قوم له خپلو ګاڼو څخه د يو خوسکي بت جوړ کړ چې له هغه څخه د غوايي غوندې رمباړه وتله . ايا هغو نه کتل چې نه ورسره هغه خبرې کوي نه په کومه چاره کښې ورته لارښوونه کوی؟ خو سره له دې يې هم هغه معبود ونيوه او هغوی سخت ظالمان وو.

وَ اتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ ؕ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَ لَا يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَ كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ (١٤٨)

بيا کله چې د هغوی د غولېدنې طلسم مات شو او هغو وليدل چې په حقيقت کښې هغوی ګمراه شويدي نو ويې ويل چې " که زمونږ رب پر مونږ رحم ونکړي او مونږ ته ښنه ونکړي نو مونږ به تباه شو"

وَ لَمَّا سُقِطَ فِيْٓ اَيْدِيْهِمْ وَ رَاَوْا اَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوْا ۙ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَ يَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ (١٤٩)

له هغې خوا چې موسىٰ له غوسې او اندېښنې ډك خپل قوم ته ستون شو . له راتلو سره سم هغه وويل"تاسې له ما وروسته ډېره ناوړه قايمقامې وکړه! ايا ستاسې دومره صبر رانغی چې د خپل رب د حکم انتظار مو کړی وای"؟ او تختې يې وغورځولې او د خپل ورور ( هارون ) د سروېښتان يې ونيول رايې ښکوده. هارون وويل" ای زما د مور زويه !دې خلکو پر ما فشار راوړ او نژدې وْ چې زه يې وژلی وای نو ته دښمنانو ته په ما پورې د خندا کولو زمينه مه برابروه او له دې ظالمې ډلې سره ما مه يوځای کوه.

وَ لَمَّا رَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۙ قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُوْنِيْ مِنْۢ بَعْدِيْ ۚ اَعَجِلْتُمْ اَمْرَ رَبِّكُمْ ۚ وَ اَلْقَى الْاَلْوَاحَ وَ اَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ يَجُرُّهٗٓ اِلَيْهِ ؕ قَالَ ابْنَ اُمَّ اِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُوْنِيْ وَ كَادُوْا يَقْتُلُوْنَنِيْ ۖ٘ فَلَا تُشْمِتْ بِيَ الْاَعْدَآءَ وَ لَا تَجْعَلْنِيْ مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ (١٥٠)

ای ربه ! ما او زما ورور ته ښنه وکړه او مونږ "بيا موسىٰ وويل "
.په خپل رحمت کښې داخل کړه. ته تر ټولو لوی رحيم يې

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَ لِاَخِيْ وَ اَدْخِلْنَا فِيْ رَحْمَتِكَ ۖ٘ وَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ (١٥١)

په ځواب کښې وويل شول چې ) کومو خلکو چې خوسکی معبود )
نيولی هغوی به ارومرو د خپل رب پر غضب اخته شي او ددنيا په ژوندانه کښې به له رسوايی سره مخامخ وي. دروغ تړونکو ته مونږ
.همدغه راز سزا ورکوو

اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَ ذِلَّةٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِيْنَ (١٥٢)

او کوم خلك چې بدې چارې سرته رسوي بيا توبه وباسي او ايمان راوړي نو په يقيني توګه له دې توبې او ايمان نه وروسته ستا رب ښنونکی او رحم کوونکی دی

وَ الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِهَا وَ اٰمَنُوْٓا ۫ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (١٥٣)

وَ لَمَّا سَكَتَ عَنْ مُّوْسَى الْغَضَبُ اَخَذَ الْاَلْوَاحَ ۖۚ وَ فِيْ نُسْخَتِهَا هُدًى وَّ رَحْمَةٌ لِّلَّذِيْنَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُوْنَ (۱۵۴)

بیا کله چې د موسىع غوسه سړه شوه نو هغه تختې یې راواخیستلې چې د هغو په لیکنه کښې لارښوونه او رحمت وْ د هغو خلکو لپاره چې له خپل رب څخه وېرېږي،

وَ اخْتَارَ مُوْسٰى قَوْمَهٗ سَبْعِيْنَ رَجُلًا لِّمِيْقَاتِنَا ۚ فَلَمَّا اَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُمْ مِّنْ قَبْلُ وَ اِيَّايَ ؕ اَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَآءُ مِنَّا ۚ اِنْ هِيَ اِلَّا فِتْنَتُكَ ؕ تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَآءُ وَ تَهْدِيْ مَنْ تَشَآءُ ؕ اَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَ ارْحَمْنَا وَ اَنْتَ خَيْرُ الْغٰفِرِيْنَ (۱۵۵)

او موسى ع د خپل قوم او یا تنه ټاکلي وو چې هغوی ( له هغه سره ) زمونږ په ټاکلي وخت حاضروي. کله چې داخلك یوې سختې زلزلې ونیول؛ نو موسى عرض وکړ ای زما واکمنه ! که تاغوښتې وای؛ نو لاپخوا دې دوی او زه هلاکولی شولو. ایا ته په هغې ګناه سره چې له مونږ څخه څوناپوهانو کړې وه، مونږ ټول هلاکوې ؟ دا خو ستا یوه ازموینه وه چې د هغې په وسیله چې ستا چاته خوښه شي هغوی په ګمراهی کښې اخته کوې او چاته دې چې خوښه شي سمه لار ورښيې. زمونږ سرپرست خو همدا ته یې نو مونږ ته ښښه وکړه او پر مونږ رحم وکړه ، ته ترټولو لوی ښښونکی یې.

وَ اكْتُبْ لَنَا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ اِنَّا هُدْنَآ اِلَيْكَ ؕ قَالَ عَذَابِيْۤ اُصِيْبُ بِهٖ مَنْ اَشَآءُ ۚ وَ رَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ؕ فَسَاَكْتُبُهَا لِلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ وَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ الَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِنَا يُؤْمِنُوْنَ (۱۵۶)

او زمونږ له پاره هم ددې دنیا نیکي ولیکه او هم د اخرت مونږ ستا لوري ته دروګرځیدو، په ځواب کښې وویل شول " سزا خو چې زه چاته وغواړم ورکوم یې ، خو زما رحمت پر هرڅه خورشویدی او هغه به زه د هغه چاله پاره ولیکم چې له سرغړونې څخه ډډه وکړي، زکات ورکړي او زما پر ایتونو ایمان راوړي".

اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَ الْاِنْجِيْلِ ۫ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَ يَنْهٰهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ يُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَ يُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ وَ يَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَ الْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَ عَزَّرُوْهُ وَ نَصَرُوْهُ وَ اتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْۤ اُنْزِلَ مَعَهٗۤ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (۱۵۷)

نو نن دا رحمت د هغه چا په برخه دی ) چې ددې نبي امی ) پیغمبر پېروي غوره کړي چې د هغه یادونه هغوی خپلې مخې ته په تورات او انجیل کښې لیکلی مومی. هغه دوی ته دنیکی حکم ورکوي، له بدی نه یې منع کوي، ددوی لپاره پاك شیان حلال او ناپاکه شیان حراموي، او له دوی څخه هغه پیتي کوزوي چې پر دوی دروند شوی و او هغه بندیزونه ماتوي چې په هغه کښې دوی کلك تړل شوي وو. نو کوم کسان چې پر ده ایمان راوړي او دده ملاتړ او مرسته وکړي او د هغې روښنایی پیروی غوره کړي چې له ده سره نازله شوېده هماغوی بری میندونکي دي.

قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ ۪ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَ كَلِمٰتِهٖ وَ اتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ (۱۵۸)

ای محمده !ووایه چې " ای انسانانو ! زه ستاسو ټولو لوري ته د هغه خدای استازی یم چې د اسمانونو او ځمکې د باچایی مالك دی ، له هغه پرته بل خدای نشته ، هماغه ژوند ښني او هماغه مرګ ورکوي، نو پر الله او د هغه پر هغه نبي اُمي استازي ایمان راوړئ چې الله او د هغه ښوونې مني، او د هغه پیروي غوره کړئ هیله ده چې تاسې سمه لاره ومومئ".

وَ مِنْ قَوْمِ مُوْسٰۤى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَ بِهٖ يَعْدِلُوْنَ (۱۵۹)

د موسى په قوم کښې هم یوه ډله وه چې له حق سره سمه ښوونه یې کوله او له حق سره سم یې عدالت کاوه.

او مونږ داقوم پر دولسو کورنیو ویشلی هغوی ته مو د ځانګړو ډلو بڼه ورکړې وه. او کله چې له موسی نه د هغه قوم او به وغوښتلې نو مونږ هغه ته اشاره وکړه چې پر فلاني ګټ خپله همسا ووهه. نو بیا له هغه ګټ نه په ناڅاپي ډول دولس چینې راوخوټېدلې او هرې ډلې د خپلو اوبو اخیستلو ځای وټاکه . مونږ پر هغوی وریځ سیوری کړه او پر هغوی مو ، من او سلوا نازل کړل – هغه پاك شیان خوری چې مونږ تاسې ته درپه برخه کړیدي. خو له هغه وروسته چې هغوی څه کړیدي نو پر مونږ یې ظلم نه دی کړی ؛ بلکې پر خپلو ځانونو یې ظلم وکړ.

وَ قَطَّعۡنٰہُمُ اثۡنَتَیۡ عَشۡرَۃَ اَسۡبَاطًا اُمَمًا ؕ وَ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلٰی مُوۡسٰۤی اِذِ اسۡتَسۡقٰىہُ قَوۡمُہٗۤ اَنِ اضۡرِبۡ بِّعَصَاکَ الۡحَجَرَ ۚ فَانۡۢبَجَسَتۡ مِنۡہُ اثۡنَتَا عَشۡرَۃَ عَیۡنًا ؕ قَدۡ عَلِمَ کُلُّ اُنَاسٍ مَّشۡرَبَہُمۡ ؕ وَ ظَلَّلۡنَا عَلَیۡہِمُ الۡغَمَامَ وَ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡہِمُ الۡمَنَّ وَ السَّلۡوٰی ؕ کُلُوۡا مِنۡ طَیِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰکُمۡ ؕ وَ مَا ظَلَمُوۡنَا وَ لٰکِنۡ کَانُوۡۤا اَنۡفُسَہُمۡ یَظۡلِمُوۡنَ (۱۶۰)

هغه وخت درپه زړه کړه چې کله هغو ته ویل شوي وو چې په دې سیمه کښې د اوسیدو له پاره ورشئ او د هغې له حاصلاتو نه چې څنګه مو خوښه وي روزي په لاس راوړئ او د حطهٔ حطه (وبښه) ویونکي ورشئ او د ښار په دروازو کښې سجده کوونکي ننوځئ،مونږبه ستاسو له خطاوو څخه درتېر شواودښه چلن پرغوره کوونکوبه خپله پېرزوینه لاپسې زیاته کړو.

وَ اِذۡ قِیۡلَ لَہُمُ اسۡکُنُوۡا ہٰذِہِ الۡقَرۡیَۃَ وَ کُلُوۡا مِنۡہَا حَیۡثُ شِئۡتُمۡ وَ قُوۡلُوۡا حِطَّۃٌ وَّ ادۡخُلُوا الۡبَابَ سُجَّدًا نَّغۡفِرۡ لَکُمۡ خَطِیۡٓـٰٔتِکُمۡ ؕ سَنَزِیۡدُ الۡمُحۡسِنِیۡنَ (۱۶۱)

خو د هغو تیري کوونکو کسانو هغه خبره چې هغو ته ویل شوې وه بدله کړه، او نتیجه داشوه چې مونږ د هغو د ظلم په مجازات کښې پر هغو له اسمانه عذاب ولېږه .

فَبَدَّلَ الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡہُمۡ قَوۡلًا غَیۡرَ الَّذِیۡ قِیۡلَ لَہُمۡ فَاَرۡسَلۡنَا عَلَیۡہِمۡ رِجۡزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا کَانُوۡا یَظۡلِمُوۡنَ (۱۶۲)

او له دوی نه د هغې سیمې د حال پوښتنه هم وکړه چې د سمندر په غاړه پرته وه. دوی ته هغه ماجرا ورپه زړه کړه چې د هغه ځای خلکو د سبت (شنبې ) دورځې له ا لهی احکامو نه سرغړونه کوله او داچې کبان د همدې سبت په ورځ سرته په راختلو د هغوی مخې ته راتلل او له سبت نه پرته په نورو ورځو کښې نه راتلل . دا ددې له پاره کیدل چې مونږ د هغوی د سرغړونو له امله هغوی په ازمېښت کښې اچول.

وَ سۡـَٔلۡہُمۡ عَنِ الۡقَرۡیَۃِ الَّتِیۡ کَانَتۡ حَاضِرَۃَ الۡبَحۡرِ ۘ اِذۡ یَعۡدُوۡنَ فِی السَّبۡتِ اِذۡ تَاۡتِیۡہِمۡ حِیۡتَانُہُمۡ یَوۡمَ سَبۡتِہِمۡ شُرَّعًا وَّ یَوۡمَ لَا یَسۡبِتُوۡنَ ۙ لَا تَاۡتِیۡہِمۡ ۚۛ کَذٰلِکَ ۚۛ نَبۡلُوۡہُمۡ بِمَا کَانُوۡا یَفۡسُقُوۡنَ (۱۶۳)

او هغوی ته دا هم ورپه زړه کړه چې کله د هغو یوې ډلې بلې ډلې ته ویلي وو چې " تاسې داسې خلکو ته ولی نصیحت کوئ چې الله د هغوی هلاکوونکی یا ورته د سختې سزا ورکوونکی دی" نو هغوی ځواب ورکړی وْ چې " مونږ دا هرڅه ستاسې درب حضور ته د خپل معذرت وړاندې کولو له پاره کوو. او په دې هیله یې کوو چې ښایي دا خلك د هغه له نافرمانۍ څخه په ډډه شي"

وَ اِذۡ قَالَتۡ اُمَّۃٌ مِّنۡہُمۡ لِمَ تَعِظُوۡنَ قَوۡمَۨا ۙ اللّٰہُ مُہۡلِکُہُمۡ اَوۡ مُعَذِّبُہُمۡ عَذَابًا شَدِیۡدًا ؕ قَالُوۡا مَعۡذِرَۃً اِلٰی رَبِّکُمۡ وَ لَعَلَّہُمۡ یَتَّقُوۡنَ (۱۶۴)

په پای کښې چې کله هغوی هغه ښوونې بیخي هېرې کړې چې هغو ته ور زده کړای شوې وې نو مونږ هغه خلك وژغورل چې له بدی نه یې منع کوله او نور پاتې ټول خلك چې ظالمان وو د هغو د نافرمانیو له امله مو پر سخت عذاب ونیول.

فَلَمَّا نَسُوۡا مَا ذُکِّرُوۡا بِہٖۤ اَنۡجَیۡنَا الَّذِیۡنَ یَنۡہَوۡنَ عَنِ السُّوۡٓءِ وَ اَخَذۡنَا الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا بِعَذَابٍۭ بَئِیۡسٍۭ بِمَا کَانُوۡا یَفۡسُقُوۡنَ (۱۶۵)

بیا کله چې هغوی په پوره سرکشۍ سره هماغه چارې پرله پسې سرته ورسولې چې هغوی ورڅخه منع کړای شوي وو، نو مونږ وویل چې بیزوګانې شئ.ذلیل او رسوا.

فَلَمَّا عَتَوۡا عَنۡ مَّا نُہُوۡا عَنۡہُ قُلۡنَا لَہُمۡ کُوۡنُوۡا قِرَدَۃً خٰسِئِیۡنَ (۱۶۶)

او یادکړه هغه وخت چې ستا رب اعلان وکړ چې" هغه به ترقیامته پورې پرله پسې داسې خلك پربني اسرائیلو مسلط کړي چې هغوی په ډېره بده توګه تعذیبوي" په رښتیا چې ستا رب په سزا ورکولو کښې چالاك دی. او په یقیني توګه هغه له تېرېدنې او رحم څخه هم کار اخیستونکی دی.

وَ اِذۡ تَاَذَّنَ رَبُّکَ لَیَبۡعَثَنَّ عَلَیۡہِمۡ اِلٰی یَوۡمِ الۡقِیٰمَۃِ مَنۡ یَّسُوۡمُہُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ ؕ اِنَّ رَبَّکَ لَسَرِیۡعُ الۡعِقَابِ ۚۖ وَ اِنَّہٗ لَغَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۱۶۷)

مونږ هغوی په ځمکه کښې ټوټې ټوټې پر ډېرو قومونو وویشل . ځینې خلك په هغو کښې نیکان وو او ځینې له هغو نه بل شان. او مونږ هغوی په ښو او بدو حالاتو سره په ازمېښت کښې واچول چې ګوندې دوی بېرته راوګرځي.

وَ قَطَّعۡنٰہُمۡ فِی الۡاَرۡضِ اُمَمًا ۚ مِنۡہُمُ الصّٰلِحُوۡنَ وَ مِنۡہُمۡ دُوۡنَ ذٰلِکَ ۫ وَ بَلَوۡنٰہُمۡ بِالۡحَسَنٰتِ وَ السَّیِّاٰتِ لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۱۶۸)

بیاله مخکینیو نسلونو نه وروسته داسې ناکاره خلکو د هغوی ځای ونیو چې د ا لهی کتاب وارثان شول، د همدې دنیا بې ارزښته ګټې راغونډوي او وایي هیله ده چې مونږ وبښل شو. او که بیا یې هماغه دنیوي ګټه په مخه ورشي بیا یې په منډه رااخلي. ایا له دوی څخه د کتاب ژبنه نه ده اخیستله شوې چې د الله په نوم دې هماغه خبره وکړي چې حقه وي؟ او دوی په خپله هغه څه لوستي دي چې په کتاب کښې لیکلي دي. داخرت استوګنځی خو یوازې له خدایه وېرېدونکو کسانو له پاره ډېر غوره دی، ایا تاسې په دومره قدرې خبره نه پوهیږئ؟

فَخَلَفَ مِنۡۢ بَعۡدِہِمۡ خَلۡفٌ وَّرِثُوا الۡکِتٰبَ یَاۡخُذُوۡنَ عَرَضَ ہٰذَا الۡاَدۡنٰی وَ یَقُوۡلُوۡنَ سَیُغۡفَرُ لَنَا ۚ وَ اِنۡ یَّاۡتِہِمۡ عَرَضٌ مِّثۡلُہٗ یَاۡخُذُوۡہُ ؕ اَلَمۡ یُؤۡخَذۡ عَلَیۡہِمۡ مِّیۡثَاقُ الۡکِتٰبِ اَنۡ لَّا یَقُوۡلُوۡا عَلَی اللّٰہِ اِلَّا الۡحَقَّ وَ دَرَسُوۡا مَا فِیۡہِ ؕ وَ الدَّارُ الۡاٰخِرَۃُ خَیۡرٌ لِّلَّذِیۡنَ یَتَّقُوۡنَ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ (۱۶۹)

کوم کسان چې پر کتاب عمل کوي او لمونځ یې قایم کړیدی ، دایقیني ده چې دداسې ښو خلکو اجربه مونږ ضایع نه کړو.

وَ الَّذِیۡنَ یُمَسِّکُوۡنَ بِالۡکِتٰبِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوۃَ ؕ اِنَّا لَا نُضِیۡعُ اَجۡرَ الۡمُصۡلِحِیۡنَ (۱۷۰)

دوی ته هغه وخت هم څه په یاددې چې مونږ غر را پورته کړی پر دوی مو داسې خور کړی وْ چې تا به ویل هغه چترۍ ده او دوی ګومان کاوه چې هغه به پر دوی راوغورځیږي او په هغه وخت کښې مونږ دوی ته ویلي وو چې کوم کتاب چې مونږ تاسې ته درکوو هغه کلك ونیسئ او څه چې په هغه کښې لیکلي دي هغه زده کړئ، هیله ده چې تاسې له انحراف نه وژغول شئ.

وَ اِذۡ نَتَقۡنَا الۡجَبَلَ فَوۡقَہُمۡ کَاَنَّہٗ ظُلَّۃٌ وَّ ظَنُّوۡۤا اَنَّہٗ وَاقِعٌۢ بِہِمۡ ۚ خُذُوۡا مَاۤ اٰتَیۡنٰکُمۡ بِقُوَّۃٍ وَّ اذۡکُرُوۡا مَا فِیۡہِ لَعَلَّکُمۡ تَتَّقُوۡنَ (۱۷۱)

او ای پېغمبره! خلکو ته هغه وخت ورپه زړه کړه چې ستا رب د بنیادمانو له شاګانو څخه د هغوی ځوځات راویستلی وْ او هغوی یې په خپله پر هغوی شاهدان ګرځولي وو او پوښتنه یې ورڅخه کړې وه " ایا زه ستاسې خدای نه یم " ؟ هغوی وویل" ارومرو همدا ته زمونږ رب یې ، مونږ پردې شاهدي وایو" دا مونږ ددې له پاره وکړل چې تاسې د قیامت په ورځ داونه وائي چې " مونږ له دې خبرې ناخبره وو،

وَ اِذۡ اَخَذَ رَبُّکَ مِنۡۢ بَنِیۡۤ اٰدَمَ مِنۡ ظُہُوۡرِہِمۡ ذُرِّیَّتَہُمۡ وَ اَشۡہَدَہُمۡ عَلٰۤی اَنۡفُسِہِمۡ ۚ اَلَسۡتُ بِرَبِّکُمۡ ؕ قَالُوۡا بَلٰی ۚۛ شَہِدۡنَا ۚۛ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ اِنَّا کُنَّا عَنۡ ہٰذَا غٰفِلِیۡنَ (۱۷۲)ۙ

یاداونه وائي چې " شرك خو زمونږ پلار نیکه له مونږ نه مخکښې پېل کړی وْ او مونږ وروسته د هغو له ځوځات څخه پیدا شوو ، نو ایا ته مونږ په هغه قصور نیسې چې منحرفو خلکو کړی وْ ".

اَوۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اَشۡرَکَ اٰبَآؤُنَا مِنۡ قَبۡلُ وَ کُنَّا ذُرِّیَّۃً مِّنۡۢ بَعۡدِہِمۡ ۚ اَفَتُہۡلِکُنَا بِمَا فَعَلَ الۡمُبۡطِلُوۡنَ (۱۷۳)

ګوره ، په دې توګه مونږ نښانې په څرګنده توګه وړاندې کوو او ددې له پاره یې وړاندې کوو چې دا خلك راواوړي.

وَ کَذٰلِکَ نُفَصِّلُ الۡاٰیٰتِ وَ لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۱۷۴)

او ای محمده ! دوی ته د هغه چا حال بیان کړه چې هغه ته مونږ د خپلو ایتونو علم ورکړی و. خو هغه د هغو له عملي کولو څخه ووت ، په پای کښې شیطان ورپسې شو تر دې پورې چې هغه له لار ورکو څخه شو.

وَ اتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَاَ الَّذِیۡۤ اٰتَيۡنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانۡسَلَخَ مِنۡهَا فَاَتۡبَعَهُ الشَّيۡطٰنُ فَكَانَ مِنَ الۡغٰوِيۡنَ (١٧٥)

که مونږ غوښتي وای نو هغه ته به مو د هغو ایتونو په وسیله لوړتیا ورپه برخه کړې وه. خو هغه د ځمکي لوري ته سرکوزی شو او د خپل نفس پېروي یې وکړه، نو د هغه حالت د سپي پشان شو چې که ته پرې حمله وکړې هم ژبه راځوړندوي او که پرې ایږدې هم ژبه راځوړندوي. همدغه د هغو خلکو مثال دی چې زمونږ ایتونه دروغ گڼي.ته داقصې دوی ته اوروه ، ښایي چې دوی څه غور او پاملرنه وکړي.

وَ لَوۡ شِئۡنَا لَرَفَعۡنٰهُ بِهَا وَ لٰكِنَّهٗۤ اَخۡلَدَ اِلَى الۡاَرۡضِ وَ اتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الۡكَلۡبِ ۚ اِنۡ تَحۡمِلۡ عَلَيۡهِ يَلۡهَثۡ اَوۡ تَتۡرُكۡهُ يَلۡهَثۡ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُ الۡقَوۡمِ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاقۡصُصِ الۡقَصَصَ لَعَلَّهُمۡ يَتَفَكَّرُوۡنَ (١٧۶)

د داسې خلکو ډېر زیات ناوړه مثال دی چې هغوی زمونږ ایتونه دروغ وګڼل او هغوی خپله پر خپل ځان ظلم کوي.

سَآءَ مَثَلَاۨ الۡقَوۡمُ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا وَ اَنۡفُسَهُمۡ كَانُوۡا يَظۡلِمُوۡنَ (١٧٧)

چاته چې الله هدایت ورپه برخه کړي یوازې هماغه سمه لاره مومي او څوك چې الله له خپلې لارښوونې څخه محروم کړي هماغوی ناکام او نامراده پاتې کېږي.

مَنۡ يَّهۡدِ اللّٰهُ فَهُوَ الۡمُهۡتَدِىۡ ۚ وَ مَنۡ يُّضۡلِلۡ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡخٰسِرُوۡنَ (١٧٨)

او داحقیقت دی چې زیاتره پیریان او انسانان داسې دي چې هغوی مو ددوزخ له پاره پیدا کړیدي. د هغوی زړونه شته خو هغوی ورباندې فکر نه کوي. د هغو سترګې شته خو څه ورباندې نهویني. د هغوی غوږونه شته خو څه پرې نه اوري. هغوی د څارویو په شان دي؛ بلکې له هغو نه هم لاپسې تېر ، دا هغه خلك دي چې په غفلت کښې لویدلي دي.

وَ لَقَدۡ ذَرَاۡنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيۡرًا مِّنَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ ۖ لَهُمۡ قُلُوۡبٌ لَّا يَفۡقَهُوۡنَ بِهَا ۡ وَ لَهُمۡ اَعۡيُنٌ لَّا يُبۡصِرُوۡنَ بِهَا ۡ وَ لَهُمۡ اٰذَانٌ لَّا يَسۡمَعُوۡنَ بِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ كَالۡاَنۡعَامِ بَلۡ هُمۡ اَضَلُّ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡغٰفِلُوۡنَ (١٧٩)

الله د غوره نومونو مستحق دی ، هغه په هماغه غوره نومونو سره وبلئ او هغه خلك پرېږدئ چې د هغه د نوم په اېښودلو کښې له رېښتینولی نه منحرف کېږي څه چې هغوی سرته رسوي د هغه بدله به ومومي.

وَ لِلّٰهِ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰى فَادۡعُوۡهُ بِهَا ۪ وَ ذَرُوا الَّذِيۡنَ يُلۡحِدُوۡنَ فِىۡۤ اَسۡمَآئِهٖ ؕ سَيُجۡزَوۡنَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (١٨٠)

زمونږ په مخلوق کښې یوه ډله داسې هم شته چې بیخي له حق سره سمه لارښوونه او له حق سره سم عدالت کوي.

وَ مِمَّنۡ خَلَقۡنَاۤ اُمَّةٌ يَّهۡدُوۡنَ بِالۡحَقِّ وَ بِهٖ يَعۡدِلُوۡنَ (١٨١)

پاتې شول هغه خلك چې زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي، نو هغوی به مونږ په تدریجي ډول په داسې شان له تباهی سره مخامخ کړو چې هغوی خبر قدرې هم نه وي،

وَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا سَنَسۡتَدۡرِجُهُمۡ مِّنۡ حَيۡثُ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (١٨٢)ۖ

زه هغو ته مهلت ورکوم ، زما پټ تدبیر هېڅ ماتیدونکی نه دی.

وَ اُمۡلِىۡ لَهُمۡ ؕ اِنَّ كَيۡدِىۡ مَتِيۡنٌ (١٨٣)

او ایا دې خلکو هېڅکله فکر نه دی کړی؟ ددوی په ملګري کښې د لیونتوب هېڅ نښه نشته . هغه خویو خبروونکی دی چې ( له بد عاقبت سره له مخامخ کېدو نه مخکښې ) په ښکاره څرګنده اخطار ورکوي.

اَوَ لَمۡ يَتَفَكَّرُوۡا ٜ مَا بِصَاحِبِهِمۡ مِّنۡ جِنَّةٍ ؕ اِنۡ هُوَ اِلَّا نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ (١٨٤)

اَوَ لَمۡ يَنۡظُرُوۡا فِيۡ مَلَكُوۡتِ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنۡ شَيۡءٍ ۙ وَّ اَنۡ عَسٰۤى اَنۡ يَّكُوۡنَ قَدِ اقۡتَرَبَ اَجَلُهُمۡ ۚ فَبِاَيِّ حَدِيۡثٍ ۭ بَعۡدَهٗ يُؤۡمِنُوۡنَ (۱۸۵)

ايادي خلكو د اسمان او ځمكې پر انتظام هيڅكله غور نه دى كړى او د خداى له هستونو څخه يې هيڅ شى هم په غړېدلو ستركو نه دى ليدلى؟ او ايا هغوى په دې هم فكر نه دى كړى چې ښايي د ژوند ددې مهلت دپوره كېدو وخت رانژدې شوى وي؟ ښه نو د پېغمبر له دې اخطار نه وروسته بله څه ډول خبره داسې كيداى شي چې پر هغې به دوى ايمان راوړي؟

مَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ؕ وَ يَذَرُهُمۡ فِيۡ طُغۡيَانِهِمۡ يَعۡمَهُوۡنَ (۱۸۶)

څوك چې الله له لارښووني نه بې برخې كړ د هغه له پاره بل هيڅوك لارښود نشته ، او الله دوى ددوى په همدې سركشى كښې لا لهاند ه پرېږدي.

يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرۡسٰهَا ؕ قُلۡ اِنَّمَا عِلۡمُهَا عِنۡدَ رَبِّيۡ ۚ لَا يُجَلِّيۡهَا لِوَقۡتِهَاۤ اِلَّا هُوَ ؕۘؔ ثَقُلَتۡ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ لَا تَاۡتِيۡكُمۡ اِلَّا بَغۡتَةً ؕ يَسۡـَٔلُوۡنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنۡهَا ؕ قُلۡ اِنَّمَا عِلۡمُهَا عِنۡدَ اللّٰهِ وَ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۱۸۷)

دوى له تا څخه د قيامت پوښتنه كوي چې هغه به څه وخت نازلېږي؟ ووايه " د هغه معلومات زما رب ته دى. هماغه به يې په خپل وخت راڅرگند كړي. په اسمانونو او ځمكه كښې به هغه سخت وخت وي هغه به پرتاسې ناڅاپي راشي" دوى د هغه په باب له تا څخه په داسې شان پوښتنه كوي لكه چې ته د هغه په پلټنه كښې بوخت يې. ووايه " دهغه معلومات يوازې الله ته دى خو زياتره خلك له دې حقيقت نه ناخبره دي.

قُلۡ لَّاۤ اَمۡلِكُ لِنَفۡسِيۡ نَفۡعًا وَّ لَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَ لَوۡ كُنۡتُ اَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ لَاسۡتَكۡثَرۡتُ مِنَ الۡخَيۡرِ ۚۛ وَ مَا مَسَّنِيَ السُّوۡٓءُ ۚۛ اِنۡ اَنَا اِلَّا نَذِيۡرٌ وَّ بَشِيۡرٌ لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ (۱۸۸)

اى محمده! دوى ته ووايه چې " زه د خپل ځان له پاره د څه گټې او زيان واك نلرم ، هماغه الله چې څه غواړي. هغه كېږي. او كه زه په غيبو عالم واى نو ما به ډېرې گټې ځان ته اړولې وې او ماته به هيڅكله څه زيان نه وْ رسيدلى زه خو صرف يو خبروونكى او زيرى كوونكى يم دهغو خلكو له پاره چې زما خبره مني".

هُوَ الَّذِيۡ خَلَقَكُمۡ مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَةٍ وَّ جَعَلَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا لِيَسۡكُنَ اِلَيۡهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰهَا حَمَلَتۡ حَمۡلًا خَفِيۡفًا فَمَرَّتۡ بِهٖ ۚ فَلَمَّاۤ اَثۡقَلَتۡ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنۡ اٰتَيۡتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوۡنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيۡنَ (۱۸۹)

هماغه الله دى چې تاسې يې له يوه نفس څخه پيدا كړئ او د هماغه له جنس نه يې د هغه جوړه مينځ ته راوړه تر څو چې له هغې سره بسيا شي.بيا كله چې نارينه ښځه وپوښله نو هغه بارداره شوه په سپك غوندې بار سره چې د هغه په اخيستلو وگرځېده راوگرځېده نو كله چې هغه د روند شو دواړو يو ځاى له الله ، خپل رب څخه غوښتنه وكړه چې كه تا مونږ ته ښه غوندې زوى راكړ نو مونږ به ستا شكر ويستونكي اوسو

فَلَمَّاۤ اٰتٰهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيۡمَاۤ اٰتٰهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ (۱۹۰)

خو كله چې الله هغوى ته يو صحيح روغ رمټ زوى وركړ نو هغو د هغه په دې بخشش او پېرزوينه كښې نورله هغه سره شريك وانگېرل. الله له هغو مشركانه خبرو څخه ډېر لوړ او پورته دى چې داخلك يې كوي.

اَيُشۡرِكُوۡنَ مَا لَا يَخۡلُقُ شَيۡـًٔا وَّ هُمۡ يُخۡلَقُوۡنَ (۱۹۱)ۖ

څومره ناپوه دي دا خلك چې هغه څه له خداى سره شريكوي چې هيڅ شى هم نه پيدا كوي. بلكې په خپله پيداكول كېږي،

وَ لَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ لَهُمۡ نَصۡرًا وَّ لَاۤ اَنۡفُسَهُمۡ يَنۡصُرُوۡنَ (۱۹۲)

چې نه له هغو سره مرسته كولى شي او نه له خپل ځان سره د مرستې وس لري.

وَ اِنۡ تَدۡعُوۡهُمۡ اِلَى الۡهُدٰى لَا يَتَّبِعُوۡكُمۡ ؕ سَوَآءٌ عَلَيۡكُمۡ اَدَعَوۡتُمُوۡهُمۡ اَمۡ اَنۡتُمۡ صَامِتُوۡنَ (۱۹۳)

كه تاسې هغوى ته د سمې لارې په لور د راتگ بلنه وركړئ نو هغوى به په تاسې پسې رانشي ، كه تاسې هغوى ته غږ وكړئ او كه چوپ اوسئ، په دواړو صورتونو كښې ستاسې له پاره يوشان دي.

تاسي چې له خدايه پرته کومو ته بلنه ورکوئ هغوی خو صرف بندګان دي لکه څنګه چې تاسي بندګان ياست، له هغو نه دعاګانې وغواړئ وګورئ، دوی دې ستاسي ددعاوو ځواب درکړي که ددوی په باب ستاسي انګېرنې صحيح وي.

اِنَّ الَّذِيۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ عِبَادٌ اَمۡثَالُكُمۡ فَادۡعُوۡهُمۡ فَلۡيَسۡتَجِيۡبُوۡا لَـكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۱۹۴)

ايا دوی پښې لري چې وربانديې لاړ شي؟ ايا دوی لاسونه لري چې په هغو سره ونيسي ؟ ايا دوی سترګې لري چې په هغو سره ووينې؟ ايا دوی غوږونه لري چې په هغو سره واوري؟ ای محمده ص ! دوی ته ووايه چې " خپل انګېرلي شريکان راوبلئ بيا تاسي ټول لاس يو کړئ زما پر خلاف د سيسي جوړې کړئ او ماته هېڅکله مهلت مه راکوئ.

اَلَهُمۡ اَرۡجُلٌ يَّمۡشُوۡنَ بِهَا ۡ اَمۡ لَهُمۡ اَيۡدٍ يَّبۡطِشُوۡنَ بِهَا ۡ اَمۡ لَهُمۡ اَعۡيُنٌ يُّبۡصِرُوۡنَ بِهَا ۡ اَمۡ لَهُمۡ اٰذَانٌ يَّسۡمَعُوۡنَ بِهَا ؕ قُلِ ادۡعُوۡا شُرَكَآءَكُمۡ ثُمَّ كِيۡدُوۡنِ فَلَا تُنۡظِرُوۡنِ (۱۹۵)

زما ملاتړ او مرستندوی هغه خدای دی چې هغه داکتاب نازل کړيدی او هغه د ښو خلکو ملاتړ کوي.

اِنَّ وَلِـیِّۦَ اللّٰهُ الَّذِىۡ نَزَّلَ الۡكِتٰبَ ۖ وَ هُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيۡنَ (۱۹۶)

اوددې پر خلاف چې له خدايه پرته کومو ته بلنه ورکوئ هغوی نه له تاسي سره مرسته کولی شي او نه ددې وړ دی چې له ځان سره مرسته وکړي.

وَ الَّذِيۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ لَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ نَصۡرَكُمۡ وَ لَاۤ اَنۡفُسَهُمۡ يَنۡصُرُوۡنَ (۱۹۷)

بلکې که تاسي د سمې لارې په لوري د راتګ ورته ووايأست نو هغوی ستاسي خبره هم نشي اورېدای. په ظاهره تاسي ته برېښي چې هغوی تاسي ته ګوري خو په واقع کښې هغوی هېڅ هم نه ويني".

وَ اِنۡ تَدۡعُوۡهُمۡ اِلَى الۡهُدٰى لَا يَسۡمَعُوۡا ؕ وَ تَرٰٮهُمۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَيۡكَ وَ هُمۡ لَا يُبۡصِرُوۡنَ (۱۹۸)

ای پېغمبره ! د نرمی او تېريدنې لاره غوره کړه، د ښو چارو ښوونکی اوسه ، او له ناپوهانو سره مه ښبله .

خُذِ الۡعَفۡوَ وَ اۡمُرۡ بِالۡعُرۡفِ وَ اَعۡرِضۡ عَنِ الۡجٰهِلِيۡنَ (۱۹۹)

که کله دې شيطان ولمسوی نودالله پناه وغواړه هغه دهرڅه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی.

وَ اِمَّا يَنۡزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيۡطٰنِ نَزۡغٌ فَاسۡتَعِذۡ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (۲۰۰)

په حقيقت کښې چې څوك پرهيزګاران دي د هغوی حال داوي چې که کله د شيطان له اغيزې نه ناوړه مفکوره ورسره پيدا کېږي نو سمدلاسه متوجه کېږي او بيا هغوی په څرګنده توګه ويني چې د هغو له پاره سمه کړنلاره کومه يوه ده .

اِنَّ الَّذِيۡنَ اتَّقَوۡا اِذَا مَسَّهُمۡ طٰۤـئِفٌ مِّنَ الشَّيۡطٰنِ تَذَكَّرُوۡا فَاِذَا هُمۡ مُّبۡصِرُوۡنَ (۲۰۱)ۚ

پاتې شول د شيطانانو ورونه ، نو هغوی په خپله کږه لاره راکاږي او د هغوی په منحرف کولو کښې هېڅ لنډون نه کوي .

وَ اِخۡوَانُهُمۡ يَمُدُّوۡنَهُمۡ فِى الۡغَىِّ ثُمَّ لَا يُقۡصِرُوۡنَ (۲۰۲)

ای پېغمبره کله چې ته دې خلکو ته کومه نښانه ( معجزه ) وړاندې نکړې نو دوی وايي چې تا د خپل ځان له پاره کومه نښانه ولې غوره نکړه ؟ دوی ته ووايه " زه خو صرف د هغې وحې پيروي کوم چې زما رب ماته رالېږلې ده. دا ستاسي درب له لوري د بصيرت روښنايي ،او لارښوونه او رحمت دی، د هغو خلکو له پاره چې ويې مني.

وَ اِذَا لَمۡ تَاۡتِهِمۡ بِاٰيَةٍ قَالُوۡا لَوۡ لَا اجۡتَبَيۡتَهَا ؕ قُلۡ اِنَّمَاۤ اَتَّبِعُ مَا يُوۡحٰٓى اِلَىَّ مِنۡ رَّبِّىۡ ۚ هٰذَا بَصَآئِرُ مِنۡ رَّبِّكُمۡ وَ هُدًى وَّ رَحۡمَةٌ لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ (۲۰۳)

کله چې ستاسي په وړاندې قرآن لوستل کيږی نو هغه په غور سره واوری او چوپ اوسئ ، ښايي چې پر تاسي رحم وشي."

وَ اِذَا قُرِئَ الۡقُرۡاٰنُ فَاسۡتَمِعُوۡا لَهٗ وَ اَنۡصِتُوۡا لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۲۰۴)

وَ اذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّ خِيْفَةً وَّ دُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَ الْاٰصَالِ وَ لَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ (٢٠٥)

اې پېغمبره ! خپل رب سهار او ماښام په زړه کښې له زارۍ او وېرې سره او په ژبه او ورو اواز سره يادوه . ته له دې خلکو څخه مه کېږه چې په غفلت کښې لويدلي دي.

اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ يُسَبِّحُوْنَهٗ وَ لَهٗ يَسْجُدُوْنَ (٢٠٦)

کومې پرښتې چې ستا درب په وړاندې د نژدې والي مرتبه لري هغوی هېڅکله د خپل تکبر په غرور کښې نه ډوبېږي چې د هغه له عبادت څخه مخ واړوي، هغه په پاکی سره ستايي او د هغه په وړاندې سر په سجده ټيټوي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

يَسْــَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَ الرَّسُوْلِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۪ وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗۤ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١)

له تا څخه د غنيمتونو په باب پوښتنه کوي؟ ووايه " دا غنيمتونو خو د الله او د هغه د پيغمبر دی ، نو تاسي له الله څخه ووېرېږئ او خپل منځي اړيکي سمي کړئ او د الله او د هغه د پيغمبر اطاعت وکړئ که تاسو مؤمنان ياست"

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَ اِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۚ (٢)

رښتيني مؤمنان هغه دي چې د هغو زړونه د الله دياد په اورېدلو لړزېږي او کله چې د هغو په وړاندې د الله ايتونه لوستل کېږي نو د هغو ايمان زياتېږي او هغوی پر خپل رب اعتماد لري،

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَ مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ؕ (٣)

هغه کسان چې لمونځ قائموي او څه چې مونږ هغو ته ورکړي دي له هغو څخه ( زمونږ په لار کښې ) لګوي.

اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَ مَغْفِرَةٌ وَّ رِزْقٌ كَرِيْمٌ ۚ (٤)

همداسې خلك حقيقي مؤمنان دي. د هغو لپاره د هغو له رب سره لوبې درجې دي، له ګناهونو څخه تېرېدنه او ډېره غوره روزي ده.

كَمَاۤ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۪ وَ اِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ ۙ (٥)

ددې ولجې د مالونو په باب هم هماغسې صورت را مينځ ته ) کېږي لکه څنګه چې په هغه وخت کښې رامينځ ته شوی وْ چې کله ) ستا رب ، ته له حق سره له خپله کوره ويستلی وې او له مؤمنانو . څخه ديوې ډلې لپاره دا ډېره بده برېښېدله

يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَ هُمْ يَنْظُرُوْنَ ؕ (٦)

هغوی ددې حق په باب له تا سره پر جګړه وو په داسې حال کښې چې هغه په ډاګه څرګنده ښکاره شوی وْ ، د هغو حال داوْ چې تا به ويل د سترګو ليدلي مرګ لوري ته وروستل کېږي.

وَ اِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآئِفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ وَ تَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ وَ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَ يَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ۙ (٧)

ياد کړئ هغه وخت چې الله له تاسي سره وعده کوله چې له دوو ډلو څخه به يوه تاسي ته په لاس درشي. تاسي غوښتل چې کمزورې ډله دې په لاس درشي. خو د الله اراده دا وه چې په خپلو لارښوونو سره حق ، حق ثابت وښيي او د کافرانو سټه و باسي.

لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَ يُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَ لَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ۚ (٨)

تر څو چې حق حق ثابت شي او باطل باطل پاتې شي که داد مجرمانو له پاره څومره ناکاره برېښي هم.

اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ (٩)

هغه وخت چې کله تاسي خپل پروردګار ته فرياد کاوه. په ځواب کښې هغه وفرمايل چې زه ستاسي د مرستي لپاره پرله پسې يو زر پرښتې درلېږم.

دا خبره الله تاسي ته صرف په دې خاطر دروښودله چي ستاسي لپاره زيرى وي او ستاسي زړونه پرې ډاډه شي، که نه نو مرسته خو چي هرکله کيږي د هماغه الله له لوري کيږي، په يقيني توگه الله برلاس او د حکمت څښتن دى.

وَ مَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَ لِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ ۚ وَ مَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (١٠)

هغه وخت چي کله الله له خپل لوري نه د پرېښاني په بڼه کښي پرتاسي د ډاډيني او نه وېرېدو کيفيت خوروه ، او له اسمانه يې پر تاسي او به راورولي تر څو چي تاسي پاك کړي او له تاسي څخه د شيطان اچولې پليدي ايسته کړي او ستاسي همت پياوړي کړي او د هغه په وسيله ستاسي قدمونه ټينگ کړي.

اِذْ يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً مِّنْهُ وَ يُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً لِّيُطَهِّرَكُمْ بِهٖ وَ يُذْهِبَ عَنْكُمْ رِجْزَ الشَّيْطٰنِ وَ لِيَرْبِطَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ وَ يُثَبِّتَ بِهِ الْاَقْدَامَ (١١ؕ)

هغه وخت چي کله ستا رب پرښتو ته اشاره کوله چي " زه له تاسي سره يم د مؤمنانو قدمونه ثابت کړئ ، زه به همدا اوس د کافرانو په زړونو کښي وېره اچوم، نو تاسي د هغوى پر غاړو گوزار وکړئ او بند بنديي ووهئ ".

اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ اَنِّيْ مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ سَاُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوْا فَوْقَ الْاَعْنَاقِ وَ اضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ (١٢ؕ)

دا ځکه چي دې خلکو له الله او د هغه له پيغمبر سره مقابله کړې ده او څوك چي له الله او د هغه له رسول سره مقابله وکړي الله هغه ته سخته سزا ورکوي.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ۚ وَ مَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (١٣)

دادى ستاسي مجازات ، اوس يې خوند وڅکئ ، او تاسي ته دې ښکاره وي چي د حق د منکرانو لپاره ددوزخ عذاب دى.

ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَ اَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ (١٤)

اى ايمان راوړونکو ! کله چي تاسي د يو لښکر په بڼه له کافرانو سره مخامخ ياست نو هغو ته شامه اړوئ.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ (١٥ۚ)

څوك چي په داسي موقع کښي شا واړوي، مگر دا چي د جنگي تاکتيك په ډول داسي وکړي ياله کوم بل پوځ سره د يوځاى کېدو لپاره، نو هغه به د خداى په غضب اخته شي، د هغه استوگنځي به دوزخ وي، او هغه د ورگرځېدو ډېر ناکاره ځاى دى.

وَ مَنْ يُّوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗٓ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ مَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (١٦)

نو حقيقت دادى چي تاسي هغوى ونه وژل بلکي الله هغوى ووژل او تا ونه ويشتلي بلکي الله وويشتلي ( او د مؤمنانو لاس چي په دې کار کښي په کار واچول شو ) نو داددي لپاره وُ چي الله مؤمنان له يوې ډېرې ښې ازموينې څخه په بري سره تېر کړي، په باوري توگه الله اورېدونکى او پوهيدونکى دى.

فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ قَتَلَهُمْ ۪ وَ مَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى ۚ وَ لِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُ بَلَآءً حَسَنًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (١٧)

دا معامله خو له تاسي سره ده او له کافرانو سره معامله داده چي الله د هغو د چلونو کمزورى کوونکى دى.

ذٰلِكُمْ وَ اَنَّ اللّٰهَ مُوْهِنُ كَيْدِ الْكٰفِرِيْنَ (١٨)

که تاسي فيصله غوښتله نو داده فيصله " (دې کافرانو ته ووايه ) مو مخي ته راغله . اوس که منع شئ نو همدا ستاسي لپاره ډېره ښه ده ، او که بيا وگرځئ او هماغه حماقت تکرار کړئ نو مونږ به هم هماغه سزا تکرار کړو او ستاسي ډله که هرڅومره زياته هم وي ستاسي په درد به هيڅ ونه شي خوړلاى. الله د مؤمنانو ملگرى دى".

اِنْ تَسْتَفْتِحُوْا فَقَدْ جَآءَكُمُ الْفَتْحُ ۚ وَ اِنْ تَنْتَهُوْا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَ اِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ ۚ وَ لَنْ تُغْنِيَ عَنْكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْـًٔا وَّ لَوْ كَثُرَتْ ۙ وَ اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ (١٩)

اى مؤمنانو ! د الله او د هغه د پيغمبر اطاعت وکړئ او د حکم له اورېدلو نه وروسته له هغه څخه غاړه مه غړوئ.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ اَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ (٢٠ۚۖ)

وَ لَا تَكُوۡنُوۡا كَالَّذِيۡنَ قَالُوۡا سَمِعۡنَا وَ هُمۡ لَا يَسۡمَعُوۡنَ (۲۱)

د هغو خلکو په شان مه کیږئ چي هغو وویل چي مونږ واورېدل په داسي حال کښي چي هغوی يې نه اوري.

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنۡدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الۡبُكۡمُ الَّذِيۡنَ لَا يَعۡقِلُوۡنَ (۲۲)

په يقيني توګه د خدای په نزد د ساکښانو ډېره بده نوعه هغه کاڼه ګونګيان خلك دي چي له پوهي نه کار نه اخلي.

وَ لَوۡ عَلِمَ اللّٰهُ فِيۡهِمۡ خَيۡرًا لَّاَسۡمَعَهُمۡ ؕ وَ لَوۡ اَسۡمَعَهُمۡ لَتَوَلَّوۡا وَّ هُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ (۲۳)

که الله دا ګڼلي وای چي په دوی کښي يو څه ښه توب هم شته نو اوروموو به يې دوی ته د اورېدو وس ورکړی وْ ( خو له ښه توب نه پرته ) که يې دوی اورولي وای نو په بې اعتنائی سره يې ورڅخه مخ اړوه.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اسۡتَجِيۡبُوۡا لِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوۡلِ اِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيۡكُمۡ ۚ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ يَحُوۡلُ بَيۡنَ الۡمَرۡءِ وَ قَلۡبِهٖ وَ اَنَّهٗۤ اِلَيۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ (۲۴)

ای ايمان راوړونکو ! د الله او د هغه د پيغمبر بلني ته لبيك ووايئ چي کله پيغمبر تاسي ته د هغه شي په لوري بلنه درکړي چي تاسي ته ژونددښونکی دی، او وپوهيږئ چي الله د انسان او د هغه د زړه تر مينځه حايل دی او د هماغه لوري ته به تاسي ورغونډ کړای شئ.

وَ اتَّقُوۡا فِتۡنَةً لَّا تُصِيۡبَنَّ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡكُمۡ خَآصَّةً ۚ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ (۲۵)

او له هغي فتني څخه ځان وژغورئ چي د هغي ناوړه اغيزه به په ځانګړې توګه يوازې په هغو خلکو پورې محدوده پاتې نه شي چي په تاسي کښي چا ګناه کړې وي . او وپوهيږئ چي الله سخت سزا ورکونکی دی.

وَ اذۡكُرُوۡۤا اِذۡ اَنۡتُمۡ قَلِيۡلٌ مُّسۡتَضۡعَفُوۡنَ فِى الۡاَرۡضِ تَخَافُوۡنَ اَنۡ يَّتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَاٰوٰىكُمۡ وَ اَيَّدَكُمۡ بِنَصۡرِهٖ وَ رَزَقَكُمۡ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ (۲۶)

هغه وخت درپه زړه کړئ چي کله تاسي لږ وئ، په ځمکه کښي تاسي کمزوري ګڼل کېدئ ، تاسي وېرېدلئ چي خلك مو له مينځه يونسي. بيا الله تاسي ته د پناه ځای برابر کړ،په خپله مرسته يې ستاسي مټ قوي کړ او ښه روزي يې درورسوله ، ښائي چي تاسي شکر ويستونکي اوسئ .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَخُوۡنُوا اللّٰهَ وَ الرَّسُوۡلَ وَ تَخُوۡنُوۡۤا اَمٰنٰتِكُمۡ وَ اَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۲۷)

ای مؤمنانو ، له پوهي او ادراك سره له الله او د هغه له پيغمبر سره خيانت مه کوئ، په خپلو امانتونو کښي ټګي مه کوئ،

وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّمَاۤ اَمۡوَالُكُمۡ وَ اَوۡلَادُكُمۡ فِتۡنَةٌ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ عِنۡدَهٗۤ اَجۡرٌ عَظِيۡمٌ (۲۸)

او وپوهيږئ چي ستاسي مالونه او ستاسي اولادونه په حقيقت کښي د ازمېښت وسايل دي او له الله سره د اجر ورکولو له پاره ډېر څه دي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنۡ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجۡعَلۡ لَّكُمۡ فُرۡقَانًا وَّ يُكَفِّرۡ عَنۡكُمۡ سَيِّاٰتِكُمۡ وَ يَغۡفِرۡ لَكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِيۡمِ (۲۹)

ای مؤمنانو ! که تاسي له خدايه ووېرېږئ نو الله به تاسي ته محك درپه برخه کړي او ستاسي بدئ به درڅخه ايسته کړي، او ستاسي قصور به دروبښي . الله لوی فضل کوونکی دی.

وَ اِذۡ يَمۡكُرُ بِكَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لِيُثۡبِتُوۡكَ اَوۡ يَقۡتُلُوۡكَ اَوۡ يُخۡرِجُوۡكَ ؕ وَ يَمۡكُرُوۡنَ وَ يَمۡكُرُ اللّٰهُ ؕ وَ اللّٰهُ خَيۡرُ الۡمٰكِرِيۡنَ (۳۰)

هغه وخت هم د يادوني وړ دی چي د حق منکرانو ستا پر خلاف دسيسي جوړولي چي تا بندي کړي، يا دي ووژني يا دي له وطنه وشړي، هغوی خپل تدبيرونه په کار اچول او الله خپل تدبير کاوه او الله تر ټولو ډېر ښه تدبير کوونکی دی.

وَ اِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُنَا قَالُوۡا قَدۡ سَمِعۡنَا لَوۡ نَشَآءُ لَقُلۡنَا مِثۡلَ هٰذَاۤ ۙ اِنۡ هٰذَاۤ اِلَّاۤ اَسَاطِيۡرُ الۡاَوَّلِيۡنَ (۳۱)

کله چي هغوی ته زمونږ ايتونه اورول کېدل نو ويل يې چي " هو وامو وريدل ، که مونږ وغواړو نو دغه راز خبرې مونږ هم جوړولی شو، دا خو همغه زړې افساني دي چي له پخوانيو خلکو څخه راپاتې دي".

او هغه خبره هم د یادونې وړ ده چې هغوی ویلي وو" خدایه که دا په رښتیا سره حق دی او ستا له لوري دی نو پر مونږ له اسمانه تیږې ووروه یا را باندې کوم دردناك عذاب راوله".

وَ اِذْ قَالُوا اللّٰہُمَّ اِنْ کَانَ ہٰذَا ہُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِکَ فَاَمْطِرْ عَلَیْنَا حِجَارَۃً مِّنَ السَّمَآءِ اَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ اَلِیْمٍ (۳۲)

په هغه وخت کښې خو الله پر هغوی د عذاب نازلوونکی نه وْ تر څو پورې چې ته د هغو په مینځ کښې موجود وې . او نه د الله دا عادت دی چې خلك ښښنه غوښتونکي وي، او هغه ورته سزا ورکړي.

وَ مَا کَانَ اللّٰہُ لِیُعَذِّبَہُمْ وَ اَنْتَ فِیْہِمْ ؕ وَ مَا کَانَ اللّٰہُ مُعَذِّبَہُمْ وَ ہُمْ یَسْتَغْفِرُوْنَ (۳۳)

خو اوس به ولې هغه وربانديې عذاب نه نازلوي چې هغوی د مسجد حرام لاره بندوي. په داسې حال کښې چې هغوی ددې مسجد مشروع متولیان نه دي. د هغه مشروع متولیان یوازې پرهیزګاران کیدلې شي. خو زیاتره خلك په دې خبره نه پوهېږي.

وَ مَا لَہُمْ اَلَّا یُعَذِّبَہُمُ اللّٰہُ وَ ہُمْ یَصُدُّوْنَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ مَا کَانُوْۤا اَوْلِیَآءَہٗ ؕ اِنْ اَوْلِیَآؤُہٗۤ اِلَّا الْمُتَّقُوْنَ وَ لٰکِنَّ اَکْثَرَہُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ (۳۴)

بیت الله ته ددې خلکو لمونځ څه وي خو شپیلۍ غږوي او چکچکې وهي. نو دادی اوس له حق څخه د خپل هغه انکار په مجازات کښې چې تاسې یې کوئ ددې عذاب خوند وڅکئ .

وَ مَا کَانَ صَلَاتُہُمْ عِنْدَ الْبَیْتِ اِلَّا مُکَآءً وَّ تَصْدِیَۃً ؕ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا کُنْتُمْ تَکْفُرُوْنَ (۳۵)

کومو خلکو چې د حق له منلو نه انکار کړی دی هغوی خپلې شتمنۍ د خدای له لارې نه د منع کولو لپاره لګوي او اوس به یې لازیات لګوي. خو په پای کښې به همدا هلې ځلې د هغو لپاره دپښېمانتیا سبب وګرځي، بیا به هغوی مغلوب وي، بیا به دا کافران ددوزخ لوري ته محاصره شوي ورشي

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَہُمْ لِیَصُدُّوْا عَنْ سَبِیْلِ اللّٰہِ ؕ فَسَیُنْفِقُوْنَہَا ثُمَّ تَکُوْنُ عَلَیْہِمْ حَسْرَۃً ثُمَّ یُغْلَبُوْنَ ؕ وَ الَّذِیْنَ کَفَرُوْۤا اِلٰی جَہَنَّمَ یُحْشَرُوْنَ (۳۶)

تر څو چې الله ناپاکي له پاکۍ نه بېله کړي او هر ډول ناپاکي سره یو ځای ډېرۍ کړي بیا هغه ټوله په دوزخ کښې وغورځوي. همدا خلك په اصل کښې مفلسان دي.

لِیَمِیْزَ اللّٰہُ الْخَبِیْثَ مِنَ الطَّیِّبِ وَ یَجْعَلَ الْخَبِیْثَ بَعْضَہٗ عَلٰی بَعْضٍ فَیَرْکُمَہٗ جَمِیْعًا فَیَجْعَلَہٗ فِیْ جَہَنَّمَ ؕ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۳۷)

ای پیغمبره ! دې کافرانو ته ووایه چې که اوس هم راواوړي نو څه چې مخکښې شوي دي له هغو څخه به تېرېدنه وشي، خو که دوی هماغه مخکینۍ چلند بیا تکرار کړي نو له پخوانیو قومونو سره چې څه شوي دي هغه ټولو ته ښکاره دي.

قُلْ لِّلَّذِیْنَ کَفَرُوْۤا اِنْ یَّنْتَہُوْا یُغْفَرْ لَہُمْ مَّا قَدْ سَلَفَ ۚ وَ اِنْ یَّعُوْدُوْا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْاَوَّلِیْنَ (۳۸)

ای مؤمنانو ! له دې کافرانو سره تر هغه پورې وجنګېږئ چې فتنه پاتې نه شي او ټول دین د الله لپاره شي. بیا که هغوی له فتنې نه لاس واخیسته نو دهغو د عملونو لیدونکی الله دی ،

وَ قَاتِلُوْہُمْ حَتّٰی لَا تَکُوْنَ فِتْنَۃٌ وَّ یَکُوْنَ الدِّیْنُ کُلُّہٗ لِلّٰہِ ۚ فَاِنِ انْتَہَوْا فَاِنَّ اللّٰہَ بِمَا یَعْمَلُوْنَ بَصِیْرٌ (۳۹)

او که هغوی ونه منله نو وپوهېږئ چې الله ستاسې سرپرست دی او هغه ډېرګرښه ساتونکی او مرستندوی دی.

وَ اِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰہَ مَوْلٰىکُمْ ؕ نِعْمَ الْمَوْلٰی وَ نِعْمَ النَّصِیْرُ (۴۰)

او تاسي ته دې معلومه وي چي دولجې څه مال چي تاسي په لاس راوړی دی د هغه پنځمه برخه د الله او د هغه د پیغمبر او د خپلو خپلوانو او د یتیمانو او د مسکینانو او د مسافرانو له پاره ده ، که تاسي پر الله او پر هغه شي ایمان راوړی وي چي د فیصلې په ورځ ، یعنې د دواړو لښکرو د مخامخ کېدو په ورځ مونږ پر خپل بنده نازل کړی وو( نو دا برخه په خوښی سره ادا کړئ ) . الله په هر څه قادر دی.

وَ اعْلَمُوْٓا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَ لِلرَّسُوْلِ وَ لِذِی الْقُرْبٰی وَ الْیَتٰمٰی وَ الْمَسٰکِیْنِ وَ ابْنِ السَّبِیْلِ ۙ اِنْ کُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ وَ مَاۤ اَنْزَلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا یَوْمَ الْفُرْقَانِ یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ (۴۱)

هغه وخت درپه زړه کړئ چي تاسي د ناو په دې غاړه کښې وئ او هغوی په هغه بله غاړه کښې دېره شوي وو او کاروان له تاسي نه لاندې ( د ساحل ) خواته وُ . که چېرته له مخکښې نه ستاسي او د هغو په مینځ کښې د مقابلې تړون شوی وای نوتاسي به ارومرو په دې وخت کښې ځنګ کړی وای، هر څه چي وشول هغه ددې لپاره وو چي د کومې خبرې فیصله چي الله کړې وه هغه مینځ ته راشي تر څو هلاکېدونکي له ښکاره دلیل سره هلاك شي او ځوك چي ژوندی پاتې کېدونکی دی هغه له روښانه دلیل سره ژوندی پاتې شي، په باوري ډول الله اورېدونکی او پوهېدونکی دی.

اِذْ اَنْتُمْ بِالْعُدْوَةِ الدُّنْیَا وَ هُمْ بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوٰی وَ الرَّکْبُ اَسْفَلَ مِنْکُمْ ؕ وَ لَوْ تَوَاعَدْتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِی الْمِیْعٰدِ ۙ وَ لٰکِنْ لِّیَقْضِیَ اللّٰهُ اَمْرًا کَانَ مَفْعُوْلًا ۬ۙ لِّیَهْلِکَ مَنْ هَلَکَ عَنْۢ بَیِّنَةٍ وَّ یَحْیٰی مَنْ حَیَّ عَنْۢ بَیِّنَةٍ ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَسَمِیْعٌ عَلِیْمٌ (۴۲)

او ای پیغمبره هغه وخت درپه زړه کړه چي خدای هغوی تاته په خوب کښی کم دروښودل. که چېرته یې د هغوی شمیر تاته زیات درښودلی وای نو تاسي به ارومرو خپل همت بایللی وُ او د جنګ په باب به مو شخړه پیل کړې وه، خو الله تاسي له دې نه وژغورلئ ، په یقیني توګه هغه آن د سینو په راز پوهېږي.

اِذْ یُرِیْکَهُمُ اللّٰهُ فِیْ مَنَامِکَ قَلِیْلًا ؕ وَ لَوْ اَرٰىکَهُمْ کَثِیْرًا لَّفَشِلْتُمْ وَ لَتَنَازَعْتُمْ فِی الْاَمْرِ وَ لٰکِنَّ اللّٰهَ سَلَّمَ ؕ اِنَّهٗ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (۴۳)

یاد کړئ چي کله د ښتې په وخت کښي خدای ستاسي په نظر ښمنان لږ راوستل او د هغوی په نظر یې تاسي لږ وروستلئ تر څو کوم کار چي کېدونکی وُ الله هغه وکړي. او په پای کښي ټولې چارې د هماغه الله لوري ته ورګرځي.

وَ اِذْ یُرِیْکُمُوْهُمْ اِذِ الْتَقَیْتُمْ فِیْۤ اَعْیُنِکُمْ قَلِیْلًا وَّ یُقَلِّلُکُمْ فِیْۤ اَعْیُنِهِمْ لِیَقْضِیَ اللّٰهُ اَمْرًا کَانَ مَفْعُوْلًا ؕ وَ اِلَی اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ (۴۴)

ای مؤمنانو ! کله چي له کومې ډلې سره ستاسي مقابله وي نو کلك ولاړ اوسئ او الله ډېر ډېر یادوئ ، هیله ده چي تاسي ته به بری درپه برخه وي.

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا لَقِیْتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوْا وَ اذْکُرُوا اللّٰهَ کَثِیْرًا لَّعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ (۴۵)

او د الله او د هغه د پیغمبرامر منونکي اوسئ او په خپلو مینځو کښي شخړه مه کوئ که نه نو په تاسي کښي به کمزوري پیدا شي برم به مو لاړ شي. له زغم نه کار واخلئ ، په یقیني توګه الله د صابرانو ملګری دی.

وَ اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا وَ تَذْهَبَ رِیْحُکُمْ وَ اصْبِرُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِیْنَ (۴۶)

او تاسي د هغو خلکو غوندې مه کیږئ چي له خپلو کورونو څخه ویاړلې او خلکو ته د ښودنې لپاره راووتل او کړنلاره یې داده چي ( خلك ) د الله له لارې څخه منع کوي هغوی چي څه کوي د خدای له مواخذې نه دباندې نه دي.

وَ لَا تَکُوْنُوْا کَالَّذِیْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ بَطَرًا وَّ رِئَآءَ النَّاسِ وَ یَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا یَعْمَلُوْنَ مُحِیْطٌ (۴۷)

او هغه وخت درپه زړه کړه چي شیطان ددې خلکو په نظر کښي ددې خلکو کړه وړه ښائسته برېښولي وو او دوی ته یې ویلي وو چي نن پر تاسي څوك نه شي بر لاس کیدای او دا چي زه به له تاسي سره یم ، خو کله چي دواړه ډلي سره مخامخ شوې نو هغه په پوندو په شاتاو شو او ویې ویل چي زه ستاسي له ملګرتیا نه بېزاریم ، زه هغه څه وینم چي تاسي یې نه وینئ ، زه له خدایه ویرېږم او خدای ډېر سخت سزا ورکونکی دی.

وَ اِذۡ زَيَّنَ لَہُمُ الشَّيۡطٰنُ اَعۡمَالَہُمۡ وَ قَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الۡيَوۡمَ مِنَ النَّاسِ وَ اِنِّیۡ جَارٌ لَّكُمۡ ۚ فَلَمَّا تَرَآءَتِ الۡفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰی عَقِبَيۡہِ وَ قَالَ اِنِّیۡ بَرِیۡٓءٌ مِّنۡكُمۡ اِنِّیۡۤ اَرٰی مَا لَا تَرَوۡنَ اِنِّیۡۤ اَخَافُ اللّٰہَ ؕ وَ اللّٰہُ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ (۴۸)

کله چي منافقانو او ټولو هغو خلکو چي زړونه یې پر ناروغی اخته دي ویل چي دا خلك خو ددوی دین سودائي او لیونیان کړي دي. په داسي حال کښي چي څوك پر الله توکل وکړي نو په باوري ډول الله زیات برلاسی او حکمت والا دی.

اِذۡ يَقُوۡلُ الۡمُنٰفِقُوۡنَ وَ الَّذِيۡنَ فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ غَرَّ ہٰۤؤُلَآءِ دِيۡنُہُمۡ ؕ وَ مَنۡ يَّتَوَكَّلۡ عَلَی اللّٰہِ فَاِنَّ اللّٰہَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ (۴۹)

کاشکي تا هغه حالت لیدلی شوای چي کله پرښتو د وژل شویو کافرانو ساګاني اخیستلي ، د هغوی پر مخونو او شاتونو یې ګوزارونه کول او ویل یې " دادی اوس د سوځېدو سزا وګالئ،

وَ لَوۡ تَرٰۤی اِذۡ يَتَوَفَّی الَّذِيۡنَ كَفَرُوا ۙ الۡمَلٰٓئِكَۃُ يَضۡرِبُوۡنَ وُجُوۡہَہُمۡ وَ اَدۡبَارَہُمۡ ۚ وَ ذُوۡقُوۡا عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ (۵۰)

دا هغه جزا ده چي د هغې وسایل ستاسي خپلو لاسونو د مخه تیار کړي وو، که نه نو الله خو پر خپلو بندګانو ظلم کوونکی نه دی".

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ وَ اَنَّ اللّٰہَ لَيۡسَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ (۵۱)

له هغو سره دا معامله په هماغه شان وشوه لکه څنګه چي له فرعونیانو او له هغو نه مخکینیو نورو خلکو سره شوې ده چي هغوی د الله د ایتونو له منلو څخه انکار وکړ او الله د هغوی پر ګناهونو هغوی ونیول الله قوی او سخت سزا ورکوونکی دی.

كَدَاۡبِ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ ۙ وَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰہِ فَاَخَذَہُمُ اللّٰہُ بِذُنُوۡبِہِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰہَ قَوِیٌّ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ (۵۲)

دا دالله له دې عادت سره سم وشول چي هغه هېڅ یو نعمت چي کوم قوم ته یې ور په برخه کړی وي تر هغه پورې نه بدلوي ترڅو چي هغه قوم خپله کړنلاره او کړنچاره نه وي بدله کړې. الله د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰہَ لَمۡ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعۡمَۃً اَنۡعَمَہَا عَلٰی قَوۡمٍ حَتّٰی يُغَيِّرُوۡا مَا بِاَنۡفُسِہِمۡ ۙ وَ اَنَّ اللّٰہَ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (۵۳)

له فرعونیانو او له هغو نه مخکینیو قومونو سره چي څه وشول هغه له همدې قانون سره سم وشول. هغوی د خپل رب ایتونه دروغ وګڼل هله بیا مونږ د هغوی د ګناهونو په مجازات کښي هغوی هلاك کړل او فرعونیان مو غرق کړل. دا ټول ظالمان وو.

كَدَاۡبِ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ ۙ وَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِ رَبِّہِمۡ فَاَہۡلَكۡنٰہُمۡ بِذُنُوۡبِہِمۡ وَ اَغۡرَقۡنَاۤ اٰلَ فِرۡعَوۡنَ ۚ وَ كُلٌّ كَانُوۡا ظٰلِمِيۡنَ (۵۴)

په یقیني توګه د الله په نزد پر ځمکه په خوځېدونکي مخلوق کښي تر ټولو بد تر هغه خلك دي چي د حق له منلو نه منکر شوي دي بیا په هېڅ ډول د هغه منلو ته حاضر نه دي.

اِنَّ شَرَّ الدَّوَآبِّ عِنۡدَ اللّٰہِ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا فَہُمۡ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ (۵۵)

په تېره بیا ) له دوی نه هغه خلك چي له هغو سره تاړښنه وکړه بیا ) هغوی په هر وخت کښي هغه ماتوي او یو بڅری له خدایه نه وېرېږي .

اَلَّذِيۡنَ عٰہَدۡتَّ مِنۡہُمۡ ثُمَّ يَنۡقُضُوۡنَ عَہۡدَہُمۡ فِیۡ كُلِّ مَرَّۃٍ وَّ ہُمۡ لَا يَتَّقُوۡنَ (۵۶)

نو که دا خلك تا ته په جګړه کښي په لاس درشي نو داسي څه ورسره وکړه چي له هغو وروسته چي نور څوك ددغه راز کړنچارې غوره کوونکي وي هغوی حواس بایلي. هیله ده چي د ژبني ماتوونکیو له دې عاقبت څخه هغوی درس واخلي.

فَاِمَّا تَثۡقَفَنَّہُمۡ فِی الۡحَرۡبِ فَشَرِّدۡ بِہِمۡ مَّنۡ خَلۡفَہُمۡ لَعَلَّہُمۡ يَذَّكَّرُوۡنَ (۵۷)

او که د کوم قوم له خیانت نه ستا ویره وي نو د هغه تړون په ښکاره ډول د هغه په وړاندې وغورځوه ، دایقیني ده چې الله خائنان نه خوښوي.

وَ اِمَّا تَخَافَنَّ مِنۡ قَوۡمٍ خِیَانَۃً فَانۡۢبِذۡ اِلَیۡہِمۡ عَلٰی سَوَآءٍ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُحِبُّ الۡخَآئِنِیۡنَ (۵۸)

دحق منکران دې په دې غلطه انګېرنه کښې نه وي چې هغوی لوبه وګټله ، دایقیني ده چې هغوی مونږ نه شي بې وسي کولای.

وَ لَا یَحۡسَبَنَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا سَبَقُوۡا ؕ اِنَّہُمۡ لَا یُعۡجِزُوۡنَ (۵۹)

او تاسي تر خپلې وسې وسې ډېر زیات طاقت او تیار زین کړي اسونه د هغوی دمقابلې لپاره برابر کړئ تر څو چې په دې وسیله د الله پر دښمنانو ، پر خپلو دښمنانو او پر هغو نورو دښمنانو هیبت راولئ چې تاسي یې نه پیژنئ خو الله یې پېژني. دالله په لاره کښې چې تاسي هرڅه ولګوئ دهغو پوره بشپړ مکافات به ستاسي لوري ته راوګرځول شي او له تاسي سره به هېڅکله ظلم ونه شي.

وَ اَعِدُّوۡا لَہُمۡ مَّا اسۡتَطَعۡتُمۡ مِّنۡ قُوَّۃٍ وَّ مِنۡ رِّبَاطِ الۡخَیۡلِ تُرۡہِبُوۡنَ بِہٖ عَدُوَّ اللّٰہِ وَ عَدُوَّکُمۡ وَ اٰخَرِیۡنَ مِنۡ دُوۡنِہِمۡ ۚ لَا تَعۡلَمُوۡنَہُمۡ ۚ اَللّٰہُ یَعۡلَمُہُمۡ ؕ وَ مَا تُنۡفِقُوۡا مِنۡ شَیۡءٍ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ یُوَفَّ اِلَیۡکُمۡ وَ اَنۡتُمۡ لَا تُظۡلَمُوۡنَ (۶۰)

او ای پیغمبره ! که دښمن دروغي جوړې خوا ته میلان ولري نو ته هم د هغې لپاره تیار اوسه او پر الله توکل وکړه ، په یقیني ډول هماغه د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهیدونکی دی.

وَ اِنۡ جَنَحُوۡا لِلسَّلۡمِ فَاجۡنَحۡ لَہَا وَ تَوَکَّلۡ عَلَی اللّٰہِ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ السَّمِیۡعُ الۡعَلِیۡمُ (۶۱)

او که هغوي ستا د غو لوني نیت ولري نو ستا لپاره الله کافي دی. هماغه ذات دی چې په خپله مرسته او د مؤمنانو په وسیله یې ستا ملاتړ وکړ.

وَ اِنۡ یُّرِیۡدُوۡۤا اَنۡ یَّخۡدَعُوۡکَ فَاِنَّ حَسۡبَکَ اللّٰہُ ؕ ہُوَ الَّذِیۡۤ اَیَّدَکَ بِنَصۡرِہٖ وَ بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۶۲)

او د مؤمنانو زړونه یې یو له بل سره ولګول. که تا د ځمکي د مخ ټولي خزاني لګولي هم وای نو ددې خلکو په زړونو کښې دې خپل مینځي مینه نشوه اچولی خو الله دی چې ددوی زړونه یې سره ولګول، په یقیني توګه هغه ډېر زورور او حکمت والا دی.

وَ اَلَّفَ بَیۡنَ قُلُوۡبِہِمۡ ؕ لَوۡ اَنۡفَقۡتَ مَا فِی الۡاَرۡضِ جَمِیۡعًا مَّاۤ اَلَّفۡتَ بَیۡنَ قُلُوۡبِہِمۡ وَ لٰکِنَّ اللّٰہَ اَلَّفَ بَیۡنَہُمۡ ؕ اِنَّہٗ عَزِیۡزٌ حَکِیۡمٌ (۶۳)

ای پیغمبره! ستا لپاره او ستا مؤمنانو پیروانو لپاره خویوازې الله کافي دی.

یٰۤاَیُّہَا النَّبِیُّ حَسۡبُکَ اللّٰہُ وَ مَنِ اتَّبَعَکَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۶۴)

ای پیغمبره! مؤمنان جنګ ته وهڅوه که له تاسي نه شل تنه صابران وي نو هغوی به پر دوو سوو بر لاسي شي او که سل تنه داسي وي نو دحق د منکرانو پر زرو تنو به بر لاسي شي ځکه چې هغوی داسي خلك دي چې پوهه نه لري.

یٰۤاَیُّہَا النَّبِیُّ حَرِّضِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ عَلَی الۡقِتَالِ ؕ اِنۡ یَّکُنۡ مِّنۡکُمۡ عِشۡرُوۡنَ صٰبِرُوۡنَ یَغۡلِبُوۡا مِائَتَیۡنِ ۚ وَ اِنۡ یَّکُنۡ مِّنۡکُمۡ مِّائَۃٌ یَّغۡلِبُوۡۤا اَلۡفًا مِّنَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا بِاَنَّہُمۡ قَوۡمٌ لَّا یَفۡقَہُوۡنَ (۶۵)

ښه نو اوس الله ستاسي پېټی سپك کړ او هغه ته معلومه شوه چې اوس په تاسي کښي کمزوري ده ، نو که له تاسي نه سل تنه صابران وي نو هغوی به پر دووسوو او که زر تنه داسي وي نو پر دوه زرو به د الله په حکم برلاسي شي، او الله د هغو خلکو ملګری دی چې صبر کوونکي دي.

اَلۡـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰہُ عَنۡکُمۡ وَ عَلِمَ اَنَّ فِیۡکُمۡ ضَعۡفًا ؕ فَاِنۡ یَّکُنۡ مِّنۡکُمۡ مِّائَۃٌ صَابِرَۃٌ یَّغۡلِبُوۡا مِائَتَیۡنِ ۚ وَ اِنۡ یَّکُنۡ مِّنۡکُمۡ اَلۡفٌ یَّغۡلِبُوۡۤا اَلۡفَیۡنِ بِاِذۡنِ اللّٰہِ ؕ وَ اللّٰہُ مَعَ الصّٰبِرِیۡنَ (۶۶)

له هېڅ پیغمبر سره دانه ښایي چې له هغه سره بندیان وي تر څو پورې چې هغه په ځمکه کښې دښمنان په ښه شان ونه ټکوي، تاسي د دنیا ګټه غواړئ ، په داسي حال کښې چې د الله تر نظر لاندې اخرت دی ، او الله برلاسی او حکمت والا دی.

مَا کَانَ لِنَبِیٍّ اَنۡ یَّکُوۡنَ لَہٗۤ اَسۡرٰی حَتّٰی یُثۡخِنَ فِی الۡاَرۡضِ ؕ تُرِیۡدُوۡنَ عَرَضَ الدُّنۡیَا ٭ۖ وَ اللّٰہُ یُرِیۡدُ الۡاٰخِرَۃَ ؕ وَ اللّٰہُ عَزِیۡزٌ حَکِیۡمٌ (۶۷)

که د الله لیکنه مخکښې نه وای شوې نو څه چې تاسې اخیستي دي د هغه په مجازات کښې به تاسې ته ډېره لویه سزا درکړه شوې وای.

لَوْ لَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيْمَآ اَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (۶۸)

نو کوم مالونه چې تاسې د ولجې په ډول په لاس راوړي دي هغه خورئ هغه حلال او پاك دي او له الله نه په وېره کښې اوسئ. په یقیني توګه الله تېرېدونکی او رحم کوونکی دی.

فَكُلُوْا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۶۹)

ای پیغمبره ! هغو بندیانو ته چې ستاسې په لاس کښې دي ووایه چې که الله ته معلومه وای چې ستاسې په زړونو کښې څه خیر شته نو هغه به تاسې ته له هغه څه نه زیات درکړي چې له تاسې نه اخیستل شوي دي او ستاسې خطاوې به وبښي ، الله ښښونکی او رحم کوونکی دی.

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْۤ اَيْدِيْكُمْ مِّنَ الْاَسْرٰۤى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّاۤ اُخِذَ مِنْكُمْ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۷۰)

او که هغوی له تا سره د خیانت اراده لري نو له دې نه مخکښې هغوی له الله سره خیانت کړی دی، لکه چې د هماغه کار سزا الله هغو ته ورکړه چې هغوی ستا لاس ته راغلي دي، الله په هر څه پوهېږي حکمت والا دی.

وَ اِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (۷۱)

کومو خلکو چې ایمان راوړ او هجرت یې وکړ او د الله په لاره کښې په خپل سر او مال وجنګېدل، او کومو خلکو چې مهاجرینو ته ځای ورکړ او له هغو سره یې مرسته وکړه، هماغوی په اصل کښې یو د بل دوستان دي. پاتې شول هغه خلك چې ایمان یې راوړی دی خو ( دارالاسلام ته یې ) هجرت نه دی کړی نو له هغو سره ستاسې کومه دوستانه اړیکه نشته تر څو پورې چې هغوی هجرت نه وي کړی. هو که هغوی ددین په باب له تاسې نه مرسته وغواړي نو د هغوی مرسته کول پر تاسې فرض دي خو دیوداسې قوم پر خلاف نه چې له هغه سره ستاسې تړون وي. تاسې چې څه کوئ الله هغهویني.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ هَاجَرُوْا وَ جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ الَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّ نَصَرُوْۤا اُولٰٓئِكَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ؕ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ لَمْ يُهَاجِرُوْا مَا لَكُمْ مِّنْ وَّلَايَتِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا ۚ وَ اِنِ اسْتَنْصَرُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ اِلَّا عَلٰى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۷۲)

کوم کسان چې له حقه منکر دي هغوی یو د بل حمایت کوي.که تاسې دا ونه کړئ نو په ځمکه کښې به فتنه او ستر فساد راولاړ وي.

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ؕ اِلَّا تَفْعَلُوْهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْاَرْضِ وَ فَسَادٌ كَبِيْرٌ (۷۳ؕ)

کومو خلکو چې ایمان راوړ او د الله په لار کښې یې هجرت وکړ او جهاد یې وکړ او کومو خلکو چې پناه ورکړه او مرسته یې وکړه هماغوی ریښتیني مؤمنان دي. د هغو لپاره د ګناهونو ښښنه او ډېره ښه روزي ده .

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ هَاجَرُوْا وَ جٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ الَّذِيْنَ اٰوَوْا وَّ نَصَرُوْۤا اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ رِزْقٌ كَرِيْمٌ (۷۴)

او کومو کسانو چې وروسته ایمان راوړ او بیایې هجرت وکړ او له تاسې سره یو ځای یې په جهاد لاس پورې کړ هغوی هم له تاسې څخه دي. خو د الله په کتاب کښې د ویني خپلوان یو د بل زیات حقدار دي ، په یقیني ډول الله پر هر څه پوهېږي.

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ وَ هَاجَرُوْا وَ جٰهَدُوْا مَعَكُمْ فَاُولٰٓئِكَ مِنْكُمْ ؕ وَ اُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۷۵)

دبېزارۍ اعلان دی د الله او د هغه د پیغمبر له خوا هغو مشرکانو ته چې له هغو سره تاسې تړون کړی وْ.

بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖۤ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ؕ(۱)

نو تاسې په هېواد کښې څلور میاشتې نور وګرځئ او په دې پوه شئ چې تاسې د الله عاجزوونکي نه یاست ، او دا چې الله د حق د منکرانو رسوا کوونکی دی.

فَسِيْحُوْا فِي الْاَرْضِ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّ اعْلَمُوْۤا اَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ ۙ وَ اَنَّ اللّٰهَ مُخْزِي الْكٰفِرِيْنَ (۲)

د الله او د هغه د رسول له لوري د حج اكبر په ورځ د ټولو خلكو له پاره عمومي اطلاع ده چې الله او هم د هغه پېغمبر له مشركانو نه بېزار دي اوس كه تاسې تو به وباسئ نو همدا ستاسې له پاره ښه ده او كه مخ واړوئ نو ښه وپوهېږئ چې تاسې دالله بېوسې كوونكي نه ياست . او اى پېغمبره! منكرانو ته د دردناك عذاب زيرى واوروه،

وَ اَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖۤ اِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِیْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِیْنَ ۙ۬ وَ رَسُوْلُهٗ ؕ فَاِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَیْرٌ لَّكُمْ ۚ وَ اِنْ تَوَلَّیْتُمْ فَاعْلَمُوْۤا اَنَّكُمْ غَیْرُ مُعْجِزِی اللّٰهِ ؕ وَ بَشِّرِ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِعَذَابٍ اَلِیْمٍ ۙ(۳)

پرته له هغو مشركانو نه چې له هغو سره تاسې تړونونه كړيدي او هغوى د خپل تړون په سرته رسولو كښې له تاسې سره څه نيمګړتيا نه ده كړې او نه يې ستاسې پر خلاف د چا ملاتړ كړيدى ، نو له داسې خلكو سره تاسې هم د تړون تر مودې پورې وفا وكړئ ځكه چې الله پرهيز ګاران خوښوي.

اِلَّا الَّذِیْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِیْنَ ثُمَّ لَمْ یَنْقُصُوْكُمْ شَیْـًٔا وَّ لَمْ یُظَاهِرُوْا عَلَیْكُمْ اَحَدًا فَاَتِمُّوْۤا اِلَیْهِمْ عَهْدَهُمْ اِلٰى مُدَّتِهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ الْمُتَّقِیْنَ (۴)

نو كله چې حرامې مياشتې تېرې شي نو مشركان ووژنئ چېرته يې چې وموموئ او هغوى ونيسئ او ايسار يې كړئ او په هر ځارنځي كښې د هغوى لپاره كښېنئ نو كه هغوى توبه وباسي او لمونځ قايم كړي او زكات وركړي نو خوشې يې كړئ. الله ښښونكى او رحم كوونكى دى.

فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِیْنَ حَیْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَ خُذُوْهُمْ وَ احْصُرُوْهُمْ وَ اقْعُدُوْا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَخَلُّوْا سَبِیْلَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ (۵)

او كه له مشركانو نه كوم څوك په پناه غوښتلو تا ته راشي ( تر څو چې د الله كلام واوري) نو هغه ته پناه وركړه تر دې پورې چې د الله كلام واوري. بيا هغه د هغه دامن تر ځايه ورسوه . دا ددې له پاره بايد وشي چې دوى علم نلري.

وَ اِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِیْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ حَتّٰى یَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا یَعْلَمُوْنَ (۶)

ددې مشركانو له پاره د الله او د هغه د پېغمبر په وړاندې كومه ژبنه ځنګه كېداى شي؟ - پرته له هغو خلكو څخه چې له هغو سره تاسې د مسجد حرام تر څنګ ژبنه كړې وه، نو ترڅو پورې چې هغوى له تاسې سره سم وي تاسې هم له هغو سره سم اوسئ ځكه چې الله متقيان خوښوي.

كَیْفَ یَكُوْنُ لِلْمُشْرِكِیْنَ عَهْدٌ عِنْدَ اللّٰهِ وَ عِنْدَ رَسُوْلِهٖۤ اِلَّا الَّذِیْنَ عٰهَدْتُّمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِیْمُوْا لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ الْمُتَّقِیْنَ (۷)

خو له دوى پرته له نورو مشركانو سره كوم تړون ځنګه كېداى شي چې كله هغوى داسې دي چې كه پرتاسې يې لاس بر شي نو نه به ستاسې په باب د كومې خپلوۍ لحا ظ وكړي نه د كومې معاهدې دمسئوليت . هغوى تش په خوله ستاسې د خوشحالولو هڅه كوي خو زړه يې نه مني او له هغو ځنې زياتره فاسقان دي.

كَیْفَ وَ اِنْ یَّظْهَرُوْا عَلَیْكُمْ لَا یَرْقُبُوْا فِیْكُمْ اِلًّا وَّ لَا ذِمَّةً ؕ یُرْضُوْنَكُمْ بِاَفْوَاهِهِمْ وَ تَاْبٰى قُلُوْبُهُمْ ۚ وَ اَكْثَرُهُمْ فٰسِقُوْنَ ۚ(۸)

هغوى د الله د ايتونو په بدل كښې لږ غوندې قيمت ومانه بيا د الله په لاره كښې خنډ شول. ډېربد كړه وړه وو چې دوى وكړل.

اِشْتَرَوْا بِاٰیٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِیْلًا فَصَدُّوْا عَنْ سَبِیْلِهٖ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ (۹)

د يو موْمن په باب نه دوى د خپلولۍ لحاظ ساتي او نه دكومې ژبنې مسئوليت . او تيرى تل د همدوى له لوري شويدى.

لَا یَرْقُبُوْنَ فِیْ مُؤْمِنٍ اِلًّا وَّ لَا ذِمَّةً ؕ وَ اُولٰٓىِٕكَ هُمُ الْمُعْتَدُوْنَ (۱۰)

نو كه دوى توبه وكړي، لمونځ قائم كړي او زكات وركړي نو ستاسې ديني وروڼه دي او د پوهېدونكو له پاره مونږ خپل حكمتونه تشريح كوو.

فَاِنْ تَابُوْا وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ فِی الدِّیْنِ ؕ وَ نُفَصِّلُ الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّعْلَمُوْنَ (۱۱)

او که دوی له ژبني کولو وروسته بیا خپلې لوړې ماتې کړي او ستاسي پر دین حملې کول شروع کړي نو د کفر له علمبردارانو سره وجنګېږئ ځکه چې د هغوی د لوړو څه اعتبار نشته . ښایي چې (بیا د توري په زور ) هغوی راوګرځي.

وَ اِنْ نَّكَثُوْۤا اَيْمَانَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَ طَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ فَقَاتِلُوْۤا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ اِنَّهُمْ لَاۤ اَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ (١٢)

تاسي ولې له داسي خلکو سره ونه جنګېږئ چې خپل تړونونه ماتوي او له وطن څخه یې د پېغمبر د ویستلو قصد کړی وْ او هماغوي لومړی په تیري لاس پوري کوونکي وو؟ ایا تاسي له هغو نه وېرېږئ؟ الله ددې ښه حقدار دی چې ورڅخه ووېرېږئ که تاسي مومنان یئ.

اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْۤا اَيْمَانَهُمْ وَ هَمُّوْا بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ وَ هُمْ بَدَءُوْكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ اَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَوْهُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٣)

له هغو سره وجنګېږئ ، الله به ستاسي په لاسونو هغوی ته سزا ورکړي او هغوی به ذلیل او خوار کړي او د هغو په مقابل کښي به ستاسي مرسته وکړي او د ډېرو مؤمنانو زړونه به یخ کړي

قَاتِلُوْهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ بِاَيْدِيْكُمْ وَ يُخْزِهِمْ وَ يَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَ يَشْفِ صُدُوْرَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ (١۴)

او دهغوی د زړونو تاوْبه ایسته کړي، او چاته یې چې خوښه شي د توبې توفیق به هم ورکړي. الله په هر څه پوهېدونکی حکمت والا دی.

وَ يُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَ يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (١٥)

ایا تاسي دا ګڼلي ده چې همداسي به پرېښودل شئ په داسي حال کښي چې تر اوسه پوري خو الله دانده څرګنده کړي چې له تاسي نه څوك هغه کسان دي چې هغوی ( د هغه په لاره کښي ) سرښندنه وکړه او له الله او پېغمبر او مومنانو څخه پرته یې څوك صمیمي دوست ونه نیو، تاسي چې څه کوئ الله ورڅخه خبر دی.

اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تُتْرَكُوْا وَ لَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَ لَمْ يَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَ لَا رَسُوْلِهٖ وَ لَا الْمُؤْمِنِيْنَ وَلِيْجَةً ؕ وَ اللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (١۶)

دادمشرکانو کار نه دی چې هغوی دالله د مسجدونو ودانوونکي او خدمتګاران شي په داسي حال کښي چې هغوی پر خپل ځان په خپله د کفر شاهدي وهي. د هغوی خو ټول عملونه ضایع شول او په دوزخ کښي د هغو د تل له پاره استوګنه ده.

مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يَّعْمُرُوْا مَسٰجِدَ اللّٰهِ شٰهِدِيْنَ عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ بِالْكُفْرِ ؕ اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ۚۖ وَ فِى النَّارِ هُمْ خٰلِدُوْنَ (١٧)

د الله د مسجدونو ودانوونکي ( مجاروان او خدمتګاران ) خو هماغه خلك کېدای شي چې الله او داخرت ورځ ومني او لمونځ قائم کړي، زکات ورکړي او له الله نه پرته له بل هیچا څخه نه وېرېږي. له هماغوی څخه دا توقع ده چې په سمه لاره به لاړ شي.

اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَ اٰتَى الزَّكٰوةَ وَ لَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ فَعَسٰۤى اُولٰٓئِكَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ (١٨)

ایا تاسي حاجیانو ته اوبه ورکول او د مسجد حرام ودانول او مجاوري کول د هغه چاله کار سره برابر ګڼلې دی چې پر الله او د اخرت په ورځ یې ایمان راوړ او د خدای په لار کښي یې جهاد وکړ؟د الله په وړاندي دادواړه برابرنه دي اوالله ظالمانو ته لارښوونه نه کوي.

اَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَآجِّ وَ عِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ جٰهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (١٩)

د الله په وړاندي د هماغو خلکو درجه لوړه ده چې ایمان یې راوْړ او د هغه په لار کښي یې هجرت او په سر او مال یې جهاد وکړ. هماغوی بریالي دي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ هَاجَرُوْا وَ جٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ (٢٠)

د هغو رب هغو ته د خپل رحمت او خوښۍ او داسي جنتونو زیری ورکوي چې هلته د هغو له پاره د ابدي ژوندانه وسایل دي.

يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَ رِضْوَانٍ وَّ جَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ (٢١)

هلته به هغوی تل اوسيږي. په يقيني توګه له الله سره د خدمتونو د بدلې ورکولو ډېر څه دي.

خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنۡدَهٗۤ اَجۡرٌ عَظِيۡمٌ (۲۲)

ای مومنانو ! خپل پلرونه او ورونه هم خپل دوستان مه نيسئ که هغوی پر ايمان کفر ته ترجيح ورکړي. له تاسې نه چې څوك هغوی په دوستۍ ونيسي همغوی به ظالمان وي،

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوۡۤا اٰبَآءَكُمۡ وَ اِخۡوَانَكُمۡ اَوۡلِيَآءَ اِنِ اسۡتَحَبُّوا الۡكُفۡرَ عَلَى الۡاِيۡمَانِ ؕ وَ مَنۡ يَّتَوَلَّهُمۡ مِّنۡكُمۡ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۲۳)

ای پېغمبره ! ووايه چې که ستاسې پلرونه ، ستاسې زامن ، ستاسې ورونه ، ستاسې ميرمنې ، ستاسې خپل خپلوان ، ستاسې هغه مالونه چې تاسې ګټلي دي، ستاسې هغه تجارت چې د هغه په ورانېدو انديښمن کېږئ او ستاسې د خوښې کورونه تاسې ته له الله او د هغه له پېغمبر او د هغه په لار کښې له جهاد نه ګران وي نو انتظار وباسئ تر دې پورې چې الله خپله فېصله ستاسې مخې ته راولی. او الله فاسقانو ته لارښوونه نه کوي.

قُلۡ اِنۡ كَانَ اٰبَآؤُكُمۡ وَ اَبۡنَآؤُكُمۡ وَ اِخۡوَانُكُمۡ وَ اَزۡوَاجُكُمۡ وَ عَشِيۡرَتُكُمۡ وَ اَمۡوَالُ ۣ اقۡتَرَفۡتُمُوۡهَا وَ تِجَارَةٌ تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا وَ مَسٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَاۤ اَحَبَّ اِلَيۡكُمۡ مِّنَ اللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ وَ جِهَادٍ فِىۡ سَبِيۡلِهٖ فَتَرَبَّصُوۡا حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ بِاَمۡرِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ (۲۴)

الله له دېنه مخکښې په ډېرو ځايونو کښې ستاسې مرسته کړېده. او اوس د حنين د غزا په ورځ ( به تاسې د هغه ملاتړ ليدلی وي ) په دې ورځ تاسې د خپل شمېر په زياتوالي غره وئ خو هغه ستاسې هېڅ په کار رانغی او ځمکه له خپل پراخوالي سره سره پر تاسې تنګه شوه او تاسې شا واړوله وتښتېدئ.

لَقَدۡ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِىۡ مَوَاطِنَ كَثِيۡرَةٍ ۙ وَّ يَوۡمَ حُنَيۡنٍ ۙ اِذۡ اَعۡجَبَتۡكُمۡ كَثۡرَتُكُمۡ فَلَمۡ تُغۡنِ عَنۡكُمۡ شَيۡـًٔا وَّ ضَاقَتۡ عَلَيۡكُمُ الۡاَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ثُمَّ وَلَّيۡتُمۡ مُّدۡبِرِيۡنَ (۲۵)

بيا الله خپله ډاډېنه پر خپل پېغمبر او پر مؤمنانو نازله کړه او هغه لښکر يې راکوز کړ چې تاسې نه ليده او د حق منکرانو ته يې سزا ورکړه چې همدا د هغو خلکو له پاره بدله ده چې له حقه منکر شي.

ثُمَّ اَنۡزَلَ اللّٰهُ سَكِيۡنَتَهٗ عَلٰى رَسُوۡلِهٖ وَ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَ اَنۡزَلَ جُنُوۡدًا لَّمۡ تَرَوۡهَا وَ عَذَّبَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزَآءُ الۡكٰفِرِيۡنَ (۲۶)

بيا ( به تاسې دا هم ليدلي وي چې ) له دا ډول سزا ورکولو نه وروسته چې الله چاته وغواړي د توبې توفيق هم ورببښي، الله ښښونکی او رحم کوونکی دی.

ثُمَّ يَتُوۡبُ اللّٰهُ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۲۷)

ای مؤمنانو ! مشرکان ناولي دي نو له سږ کال نه وروسته بايد دوی مسجد حرام ته ورنږدې نشي. او که تاسې له تنګلاسۍ نه په وېره کښې ياست نو لري نه ده چې که الله وغواړي نو تاسې به په خپل فضل سره شتمن کړي، الله په هر څه پوه دحکمت خاوند دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنَّمَا الۡمُشۡرِكُوۡنَ نَجَسٌ فَلَا يَقۡرَبُوا الۡمَسۡجِدَ الۡحَرَامَ بَعۡدَ عَامِهِمۡ هٰذَا ۚ وَ اِنۡ خِفۡتُمۡ عَيۡلَةً فَسَوۡفَ يُغۡنِيۡكُمُ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖۤ اِنۡ شَآءَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ (۲۸)

له اهل کتابو نه د هغو خلکو په خلاف وجنګېږئ چې په الله او د اخرت په ورځ ايمان نه راوړي او څه چې الله او دهغه پېغمبر حرام کړيدي هغه نه حراموي او حق دين خپل دين نه ګرځوي. ( له هغو سره وجنګېږئ) تر دې پورې چې په خپل لاس جزيه ورکړي او ذليل شي.

قَاتِلُوا الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ لَا بِالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ لَا يُحَرِّمُوۡنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَ رَسُوۡلُهٗ وَ لَا يَدِيۡنُوۡنَ دِيۡنَ الۡحَقِّ مِنَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ حَتّٰى يُعۡطُوا الۡجِزۡيَةَ عَنۡ يَّدٍ وَّ هُمۡ صٰغِرُوۡنَ (۲۹)

يهوديان وايي چې عزير د الله زوی دی او عيسائيان وائي چې مسيح د الله زوی دی. دابې حقيقته خبري دي چې هغوی يې له خپلو خولو څخه راباسي له هغو خلکو سره د سيالۍ له پاره چې له دوی نه مخکښې په کفر کښې اخته شوي وو. دوی خدای ووهل، دوی له کومې خواغولېږي.

وَ قَالَتِ الۡيَهُوۡدُ عُزَيۡرُ ۣ ابۡنُ اللّٰهِ وَ قَالَتِ النَّصٰرَى الۡمَسِيۡحُ ابۡنُ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ قَوۡلُهُمۡ بِاَفۡوَاهِهِمۡ ۚ يُضَاهِئُوۡنَ قَوۡلَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا مِنۡ قَبۡلُ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۚ اَنّٰى يُؤۡفَكُوۡنَ (۳۰)

دوی خپل عالمان او روحانیون له الله پرته خپل ارباب نیولي دي او همدغه راز مسیح ابن مریم هم . په داسې حال کښې چې دوی ته له یو معبود نه پرته د بل هیچا د بندګۍ کولو حکم نه وْ ورکړ شوی، هغه ذات چې له هغه پرته بل هیڅوك د عبادت وړ نشته ، پاك دی له هغو مشرکانه خبرو څخه چې دوی یې کوي.

اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَہُمْ وَ رُہْبَانَہُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰہِ وَ الْمَسِیْحَ ابْنَ مَرْیَمَ ۚ وَ مَاۤ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِیَعْبُدُوْٓا اِلٰـہًا وَّاحِدًا ۚ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ؕ سُبْحٰنَہٗ عَمَّا یُشْرِکُوْنَ (۳۱)

دا خلك غواړي چې د الله رڼا په خپلو پوکیو سره مړه کړي. خو الله دخپلې رڼا له بشپړولو پرته منونکی نه دی که کافرانو ته دا هر څومره ناکاره و بریښي هم .

یُرِیْدُوْنَ اَنْ یُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰہِ بِاَفْوَاہِہِمْ وَ یَاْبَی اللّٰہُ اِلَّاۤ اَنْ یُّتِمَّ نُوْرَہٗ وَ لَوْ کَرِہَ الْکٰفِرُوْنَ (۳۲)

هماغه الله دی چې خپل پیغمبر یې له هدایت او حق دین سره لیږلی دی تر څو چې هغه پر ټول (جنس) دین برلاسی کړي ، که مشرکانو ته دا څومره ناکاره بریښي هم .

ہُوَ الَّذِیْۤ اَرْسَلَ رَسُوْلَہٗ بِالْہُدٰی وَ دِیْنِ الْحَقِّ لِیُظْہِرَہٗ عَلَی الدِّیْنِ کُلِّہٖ ۙ وَ لَوْ کَرِہَ الْمُشْرِکُوْنَ (۳۳)

ای مومنانو! ددې اهل کتابو د زیاترو علماوو او روحانیونو حال دادی چې هغوی د خلکو مالونه په ناروا لارو خوري او هغوی د الله له لارې څخه منع کوي او هغه خلك چې سره او سپین زرخزانه کوي او هغه د خدای په لاره کښې نه لګوي . ددردناکې سزازیری ورکړه دوی ته

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ کَثِیْرًا مِّنَ الْاَحْبَارِ وَ الرُّہْبَانِ لَیَاْکُلُوْنَ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَ یَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰہِ ؕ وَ الَّذِیْنَ یَکْنِزُوْنَ الذَّہَبَ وَ الْفِضَّۃَ وَ لَا یُنْفِقُوْنَہَا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰہِ ۙ فَبَشِّرْہُمْ بِعَذَابٍ اَلِیْمٍ (۳۴ۙ)

یوه ورځ به راشي چې په همدې سرو سپینو زرو به د دوزخ اورګرم کړای شي او بیا به په هغو سره ددې خلکو وچولي اړخونه او شاګاني وداغل شي ، داده هغه خزانه چې تاسي د خپلو ځانونو له پاره غونډه کړې وه، واخلئ اوس د خپلې زیرمه کړې شتمنی خوند وڅکئ.

یَّوْمَ یُحْمٰی عَلَیْہَا فِیْ نَارِ جَہَنَّمَ فَتُکْوٰی بِہَا جِبَاہُہُمْ وَ جُنُوْبُہُمْ وَ ظُہُوْرُہُمْ ؕ ہٰذَا مَا کَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِکُمْ فَذُوْقُوْا مَا کُنْتُمْ تَکْنِزُوْنَ (۳۵)

حقیقت دادی چې د میاشتو شمیر له هماغه ورځې نه چې الله اسمانونه او ځمکه پیدا کړیده د الله په لیکنه کښې همدا دولس دي ، او له هغو نه څلور میاشتې حرامې دي. همدا سم صحیح قانون دی . نو په دې څلورو میاشتو کښې پر خپل ځان ظلم مه کوئ او ټول یو موټی شئ له مشرکانو سره وجنګیږئ لکه څنګه چې هغوی ټول یو ځای له تاسې سره جنګیږئ او وپوهیږئ چې الله د متقیانو ملګری دی.

اِنَّ عِدَّۃَ الشُّہُوْرِ عِنْدَ اللّٰہِ اثْنَا عَشَرَ شَہْرًا فِیْ کِتٰبِ اللّٰہِ یَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ مِنْہَاۤ اَرْبَعَۃٌ حُرُمٌ ؕ ذٰلِکَ الدِّیْنُ الْقَیِّمُ ۬ۙ فَلَا تَظْلِمُوْا فِیْہِنَّ اَنْفُسَکُمْ وَ قَاتِلُوا الْمُشْرِکِیْنَ کَآفَّۃً کَمَا یُقَاتِلُوْنَکُمْ کَآفَّۃً ؕ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰہَ مَعَ الْمُتَّقِیْنَ (۳۶)

نسی خو په کفر کښې یو بل زیات کافرانه حرکت دی چې په هغه سره داکافران په ګمراهی کښې غورځول کیږي. په یو کال کښې یوه میاشت حلالوي او په یو بل کال کښې هغه حراموي ، تر څو چې هم د الله د حرامو کړای شویو میاشتو شمیر پوره کړي او هم د الله حرام کړای شوي حلال کړي، د هغو ناوړه عملونه د هغو له پاره ښایسته کړای شویدي او الله د حق منکرانو ته لارښوونه نه کوي.

اِنَّمَا النَّسِیْٓءُ زِیَادَۃٌ فِی الْکُفْرِ یُضَلُّ بِہِ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا یُحِلُّوْنَہٗ عَامًا وَّ یُحَرِّمُوْنَہٗ عَامًا لِّیُوَاطِـُٔوْا عِدَّۃَ مَا حَرَّمَ اللّٰہُ فَیُحِلُّوْا مَا حَرَّمَ اللّٰہُ ؕ زُیِّنَ لَہُمْ سُوْٓءُ اَعْمَالِہِمْ ؕ وَ اللّٰہُ لَا یَہْدِی الْقَوْمَ الْکٰفِرِیْنَ (۳۷)

ای مومنانو ! پر تاسې څه شویدي چې کله تاسې ته د الله په لار کښې د وتلو له پاره وویل شول نو تاسې په ځمکه درانده کیناستلئ؟ ایا تاسې د اخرت په مقابل کښې ددنیا ژوند غوره کړی دی؟ که داسې ده نو تاسې ته دې معلومه وي چې ددنیوي ژوندانه دا ټول وسایل به په اخرت کښې ډیر لږ راووځي .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَا لَکُمْ اِذَا قِیْلَ لَکُمُ انْفِرُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰہِ اثَّاقَلْتُمْ اِلَی الْاَرْضِ ؕ اَرَضِیْتُمْ بِالْحَیٰوۃِ الدُّنْیَا مِنَ الْاٰخِرَۃِ ۚ فَمَا مَتَاعُ الْحَیٰوۃِ الدُّنْیَا فِی الْاٰخِرَۃِ اِلَّا قَلِیْلٌ (۳۸)

که تاسي پانڅیږئ نو خدای به تاسي ته دردناکه سزا درکړي، او ستاسي په ځای به کوم بل قوم را پاڅوي، او تاسي به خدای ته هیڅ زیان ونشئ رسولای ، الله په هرڅه قدرت لري.

اِلَّا تَنۡفِرُوۡا یُعَذِّبۡکُمۡ عَذَابًا اَلِیۡمًا ۬ۙ وَّ یَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَیۡرَکُمۡ وَ لَا تَضُرُّوۡہُ شَیۡئًا ؕ وَ اللّٰہُ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۳۹)

که تاسي د پیغمبر (ص) مرسته ونکړه نو هیڅ پروا نشته ،الله د هغه مرسته په هغه وخت کښي کړېده چي کله کافرانو هغه ویستلی وْ چي کله هغه صرف د دوه وْ دوهم وْ ، کله چي هغوی دواړه په سمڅه کښي وو کله چي هغه خپل ملګري ته وویل چي " مه خفه کېږه ، الله له مونږ سره دی" په هغه وخت کښي الله له خپل لوري نه پر هغه د زړه ډاډېنه نازله کړه او په داسي لښکرو سره یې د هغه ملاتړ وکړ چي تاسي نه لیدل او د کافرانو وینایي ټیټه کړه. او هماغه د الله وینا لوړه ده، الله زورور او پوه حکمت والا دی .

اِلَّا تَنۡصُرُوۡہُ فَقَدۡ نَصَرَہُ اللّٰہُ اِذۡ اَخۡرَجَہُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا ثَانِیَ اثۡنَیۡنِ اِذۡ ہُمَا فِی الۡغَارِ اِذۡ یَقُوۡلُ لِصَاحِبِہٖ لَا تَحۡزَنۡ اِنَّ اللّٰہَ مَعَنَا ۚ فَاَنۡزَلَ اللّٰہُ سَکِیۡنَتَہٗ عَلَیۡہِ وَ اَیَّدَہٗ بِجُنُوۡدٍ لَّمۡ تَرَوۡہَا وَ جَعَلَ کَلِمَۃَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوا السُّفۡلٰی ؕ وَ کَلِمَۃُ اللّٰہِ ہِیَ الۡعُلۡیَا ؕ وَ اللّٰہُ عَزِیۡزٌ حَکِیۡمٌ (۴۰)

ووځئ که سپك یئ که درانه ، او د الله په لار کښي په خپلو مالونو او په خپلو سرونو سره جهاد وکړئ ، داستاسي له پاره ډېره ښه ده که تاسي پوهېږئ.

اِنۡفِرُوۡا خِفَافًا وَّ ثِقَالًا وَّ جَاہِدُوۡا بِاَمۡوَالِکُمۡ وَ اَنۡفُسِکُمۡ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ ؕ ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۴۱)

ای پیغمبره ! که ګټه بي کړاوه لاس ته راتلای او سفراسانه وای نو هغوی ارومرو په تاپسي تلو ته چمتو کېدل ، مګر پر هغو خو دا لاره ډېره ستوغه شوه . اوس هغوی پر خدای قسمونه خوري وائي چي که مونږ تلای شوای نو ارومرو به له تاسي سره تللي وو، هغوی په خپله خپل ځانونه په هلاکت کښي غورځوي الله ښه پوهیږي چي هغوی دروغجن دي.

لَوۡ کَانَ عَرَضًا قَرِیۡبًا وَّ سَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوۡکَ وَ لٰکِنۡۢ بَعُدَتۡ عَلَیۡہِمُ الشُّقَّۃُ ؕ وَ سَیَحۡلِفُوۡنَ بِاللّٰہِ لَوِ اسۡتَطَعۡنَا لَخَرَجۡنَا مَعَکُمۡ ۚ یُہۡلِکُوۡنَ اَنۡفُسَہُمۡ ۚ وَ اللّٰہُ یَعۡلَمُ اِنَّہُمۡ لَکٰذِبُوۡنَ (۴۲)

ای پیغمبره ! الله دې تاته معافي وکړي، تا ولې هغوی رسخت کړل؟ ( تا باید په خپله رسخت نه وای ورکړی ) تر څو چي تاته څرګنده شوې وای چي کوم خلك رښتوني دي او دروغجن دې هم پېژندلي وای .

عَفَا اللّٰہُ عَنۡکَ ۚ لِمَ اَذِنۡتَ لَہُمۡ حَتّٰی یَتَبَیَّنَ لَکَ الَّذِیۡنَ صَدَقُوۡا وَ تَعۡلَمَ الۡکٰذِبِیۡنَ (۴۳)

کوم کسان چي پر الله او داخرت پر ورځ ایمان لري هغوی خو به هیڅکله له تا نه دا غوښتنه ونکړي چي هغوی دې په خپلو مالونو او سرونو سره له جهاد کولو نه معاف کړای شي ، الله پرهېزګاران ښه پېژني.

لَا یَسۡتَاۡذِنُکَ الَّذِیۡنَ یُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ اَنۡ یُّجَاہِدُوۡا بِاَمۡوَالِہِمۡ وَ اَنۡفُسِہِمۡ ؕ وَ اللّٰہُ عَلِیۡمٌۢ بِالۡمُتَّقِیۡنَ (۴۴)

داسي پوښتني یوازې هماغه خلك کوي چي پر الله او داخرت پر ورځ ایمان نلري ، په زړونو کښي یې شك دی او هغوی په هماغه خپل شك کښي سرګردانه دي.

اِنَّمَا یَسۡتَاۡذِنُکَ الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ ارۡتَابَتۡ قُلُوۡبُہُمۡ فَہُمۡ فِیۡ رَیۡبِہِمۡ یَتَرَدَّدُوۡنَ (۴۵)

که په رښتیا سره هغوی د وتلو اراده درلودلی نو هغوی به ددې له پاره څه تیاری نیولی وای، خو د هغو پاڅون له سره د الله خوښ نه وْ ځکه خو یې هغوی سست کړل او وویل شول چي کښینئ له ناستو سره .

وَ لَوۡ اَرَادُوا الۡخُرُوۡجَ لَاَعَدُّوۡا لَہٗ عُدَّۃً وَّ لٰکِنۡ کَرِہَ اللّٰہُ انۡۢبِعَاثَہُمۡ فَثَبَّطَہُمۡ وَ قِیۡلَ اقۡعُدُوۡا مَعَ الۡقٰعِدِیۡنَ (۴۶)

لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَّا زَادُوْكُمْ اِلَّا خَبَالًا وَّ لَاَاَوْضَعُوْا خِلٰلَكُمْ يَبْغُوْنَكُمُ الْفِتْنَةَ ۚ وَ فِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ (۴۷)

که هغوی له تاسي سره وتلي وای نو په تاسي کښې به يې له تخريب نه پرته نور څه نه وو زيات کړي. هغوی به ستاسي په مينځ کښې د فتني اچولو له پاره منډې ترړې کړې وای ، اوستاسي دډلي حالت دادی چې تر اوسه پورې پکښې ډېر داسي خلك شته چې د هغو خبرې ( ستاسی د ضرر له پاره ) اوري، الله داظالمان ښه پېژني.

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَ قَلَّبُوْا لَكَ الْاُمُوْرَ حَتّٰى جَآءَ الْحَقُّ وَ ظَهَرَ اَمْرُ اللّٰهِ وَ هُمْ كٰرِهُوْنَ (۴۸)

له دېنه مخکښې هم دوی د فتني راپورته کولو هلې ځلې کړيدي او ستا د ناکامولو له پاره دوی تدبيرونه سرچپه کړيدي تر دې پورې چې ددوی د خوښې پرخلاف حق راغی او د الله کار سرته ورسېده.

وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ ائْذَنْ لِّيْ وَ لَا تَفْتِنِّيْ ؕ اَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا ؕ وَ اِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ (۴۹)

له هغو نه ځوك داسي دي چې وايي " ماته رسخت راکړه او ما په فتنه کښې مه اچوه" واوره ! په فتنه کښې خو دوی غورځيدلي دي ، او دوزخ داکافران را ايسار کړي دي.

اِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۚ وَ اِنْ تُصِبْكَ مُصِيْبَةٌ يَّقُوْلُوْا قَدْ اَخَذْنَاۤ اَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَ يَتَوَلَّوْا وَّ هُمْ فَرِحُوْنَ (۵۰)

که تاته ښېگڼه رسيږي نو دوی ځوريږي او که پر تا څه کړاو راځي نو دوی مخ اړوي خوشحاله خوشحاله ګرځي او وايي چې ښه وشول مونږ د مخه خپل کار برابر کړی وْ .

قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَاۤ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا ۚ هُوَ مَوْلٰىنَا ۚ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ (۵۱)

دوی ته ووايه " مونږ ته هېڅکله څه ( ضرر ياښېگڼه ) نه رسيږي مگر هغه چې الله راته ليکلي دي هماغه الله زمونږ مولادی ، او مؤمنان بايد په هماغه توکل وکړي."

قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَاۤ اِلَّاۤ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ؕ وَ نَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمُ اللّٰهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهٖۤ اَوْ بِاَيْدِيْنَا ۖؗ فَتَرَبَّصُوْۤا اِنَّا مَعَكُمْ مُّتَرَبِّصُوْنَ (۵۲)

دوی ته ووايه ، " تاسي چې زمونږ په باب کوم شي ته سترگې په لاره ياست هغه له دې پرته بل څه دی چې له دوو ښېگڼو نه يوه ده . او مونږ چې ستاسي په باب کوم شي ته سترگې په لاره يو هغه دادی چې الله په خپله تاسي ته سزا درکوي يايې زمونږ په لاسونو درکوي ښه نو اوس تاسي هم انتظار وکړئ او مونږ هم له تاسي سره منتظر يو"

قُلْ اَنْفِقُوْا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ مِنْكُمْ ؕ اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ (۵۳)

دوی ته ووايه " که تاسي خپل مالونه په ښه زړه ولگوئ او که په بد زړه ، په هر حال هغه به قبول نکړای شي ځکه چې تاسي فاسقان ياست "

وَ مَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّاۤ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَ بِرَسُوْلِهٖ وَ لَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ اِلَّا وَ هُمْ كُسَالٰى وَ لَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَ هُمْ كٰرِهُوْنَ (۵۴)

د هغو د ورکړی شويو مالونو د نه قبلېدو دليل له دې پرته بل څه نه دی چې هغوی په الله او د هغه پر پېغمبر کافران شويدي ، لمانځه ته چې راځي نو زړه نا زړه راځي او د خدای په لار کښې چې لگښت کوي نو په بد زړه يې کوي

فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَ لَاۤ اَوْلَادُهُمْ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ تَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَ هُمْ كٰفِرُوْنَ (۵۵)

ددوی د مالونو او شتمنی او ددوی د اولادونو د زياتوالي په ليدلو مه غوليږه الله دا غواړي چې د همدې شيانو په وسيله دوی په دنيوي ژوندانه کښې هم په عذاب اخته کړي، او چې دوی ومري هم نوله حق نه د منکرتوب په حالت کښې ومري.

وَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ ؕ وَ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَ لٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَّفْرَقُوْنَ (۵۶)

هغوی پر خدای په لوړو کولو وايي چې مونږ له تاسي څخه يو ، په داسي حال کښې چې هغوی هېڅکله له تاسي نه نه دي.په اصل کښې هغوی داسي خلك دي چې له تاسي نه په وېره کښې دي.

لَوْ يَجِدُوْنَ مَلْجَاً اَوْ مَغٰرٰتٍ اَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا اِلَيْهِ وَ هُمْ يَجْمَحُوْنَ (۵۷)

که هغوی کوم د پناه ځای وموموي ، يا کومه سمڅه يا د ننوتلو ځای ، نو وبه ځغلي او په هغه کښې به ځانونه پټ کړي.

ای پیغمبره ! له هغو څخه ځيني خلك د صدقو په ويش كښي پرتا اعتراضونه كوي. كه له دي مال نه هغو ته څه وركړ شي نو خوشاله به شي او كه ورنكړل شي نو په غوسه كيږي.

وَ مِنۡهُمۡ مَّنۡ یَّلۡمِزُکَ فِی الصَّدَقٰتِ ۚ فَاِنۡ اُعۡطُوۡا مِنۡهَا رَضُوۡا وَ اِنۡ لَّمۡ یُعۡطَوۡا مِنۡهَاۤ اِذَا هُمۡ یَسۡخَطُوۡنَ (۵۸)

څه ښه به وای چي الله او پیغمبر چي هر څه هغو ته وركړي وو پر هغه خوشاله وای اوويلي يي وای چي " الله زمونږ له پاره كافي دی، هغه به په خپل فضل سره مونږ ته نور ډېر څه راكړي او د هغه پیغمبر به هم پر مونږ پیرزوينه وكړي، مونږ د الله په لوري سترګي نيولي دي "

وَ لَوۡ اَنَّهُمۡ رَضُوۡا مَاۤ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ وَ رَسُوۡلُهٗ ۙ وَ قَالُوۡا حَسۡبُنَا اللّٰهُ سَیُؤۡتِیۡنَا اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ وَ رَسُوۡلُهٗ ۙ اِنَّاۤ اِلَی اللّٰهِ رٰغِبُوۡنَ (۵۹)

دا صدقي خو په اصل كښي د فقيرانو او مسكينانو له پاره دي او د هغو خلكو له پاره دي چي د صدقو د چارو ما مورين وي، او د هغو له پاره چي د هغو زړونه په لاس راوړل مقصد وي. دغه راز داد غاړو د ازادولو او د پور وړو د مرستي له پاره دخدای په لار كښي او په مسافر پالنه كښي د استعمالولو له پاره دي د الله له لوري يوه فريضه ده او الله په هر څه پوهېدونكی او حكمت والا دی.

اِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلۡفُقَرَآءِ وَ الۡمَسٰکِیۡنِ وَ الۡعٰمِلِیۡنَ عَلَیۡهَا وَ الۡمُؤَلَّفَۃِ قُلُوۡبُهُمۡ وَ فِی الرِّقَابِ وَ الۡغٰرِمِیۡنَ وَ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ وَ ابۡنِ السَّبِیۡلِ ؕ فَرِیۡضَۃً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِیۡمٌ حَکِیۡمٌ (۶۰)

له دوی نه ځيني خلك دي چي په خپلو خبرو سره پیغمبر ځوروي او وائي چي دا سړی ټول غوږونه دي ( هره خبره اوري او اعتبار پرې كوي ) ووايه !" هغه ستاسي د ښېګڼي له پاره داسي دی ، پر الله ايمان لري او پر مؤمنانو اعتماد كوي او له تاسي نه چي څوك دايمان خاوندان دي د هغو له پاره له سره ترپايه رحمت دی. او كوم كسان چي د الله پیغمبر ځوروي د هغو له پاره دردناكه سزا ده".

وَ مِنۡهُمُ الَّذِیۡنَ یُؤۡذُوۡنَ النَّبِیَّ وَ یَقُوۡلُوۡنَ هُوَ اُذُنٌ ؕ قُلۡ اُذُنُ خَیۡرٍ لَّکُمۡ یُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَ یُؤۡمِنُ لِلۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَ رَحۡمَۃٌ لِّلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡکُمۡ ؕ وَ الَّذِیۡنَ یُؤۡذُوۡنَ رَسُوۡلَ اللّٰهِ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۶۱)

دوی ستاسي په وړاندي لوړې كوي ترڅو چي تاسي راضي كړي، په داسي حال كښي چي كه دوی مؤمنان وي نو الله او پیغمبر ددې زيات وړ دی چي دوی د هغو دراضي كولو فكر وكړي .

یَحۡلِفُوۡنَ بِاللّٰهِ لَکُمۡ لِیُرۡضُوۡکُمۡ ۚ وَ اللّٰهُ وَ رَسُوۡلُهٗۤ اَحَقُّ اَنۡ یُّرۡضُوۡهُ اِنۡ کَانُوۡا مُؤۡمِنِیۡنَ (۶۲)

ايا دوی ته معلومات نشته چي څوك چي له الله او پیغمبر سره مقابله كوي د هغه له پاره ددوزخ اور دی ، چي په هغه كښي به هغوی د تل له پاره اوسيږي، دا ډېره لويه رسوايي ده.

اَلَمۡ یَعۡلَمُوۡۤا اَنَّهٗ مَنۡ یُّحَادِدِ اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ فَاَنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِیۡهَا ؕ ذٰلِکَ الۡخِزۡیُ الۡعَظِیۡمُ (۶۳)

دا منافقان ويرېږي چي چېرته پر مسلمانانو كوم داسي سورت نازل نشي چي د هغو د زړونو راز را لوڅ كړي. ای پیغمبره ! دوی ته ووايه " وكوئ نوري مسخري ، الله د هغه څه رابرسېروونكی دی چي تاسي يي له برسېره كېدو څخه ويرېږئ "

یَحۡذَرُ الۡمُنٰفِقُوۡنَ اَنۡ تُنَزَّلَ عَلَیۡهِمۡ سُوۡرَۃٌ تُنَبِّئُهُمۡ بِمَا فِیۡ قُلُوۡبِهِمۡ ؕ قُلِ اسۡتَهۡزِءُوۡا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مُخۡرِجٌ مَّا تَحۡذَرُوۡنَ (۶۴)

كه له دوی نه پوښتنه وكړئ چي تاسي څه خبري كولي ، نو سمدلاسه به ووايي چي مونږ خو ټوكي مسخرې او ساعت تيري كوله. دوی ته ووايه ، " ايا ستاسي مسخرې ساعت تيري له الله او د هغه له ايتونو او د هغه له پیغمبره سره وه؟

وَ لَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ لَیَقُوۡلُنَّ اِنَّمَا کُنَّا نَخُوۡضُ وَ نَلۡعَبُ ؕ قُلۡ اَ بِاللّٰهِ وَ اٰیٰتِهٖ وَ رَسُوۡلِهٖ کُنۡتُمۡ تَسۡتَهۡزِءُوۡنَ (۶۵)

اوس عذرونه مه جوړوئ ، تاسي له ايمان نه وروسته كافر شوي ياست ، كه مونږ له تاسي نه يوه ډله وبښو هم نو بلي ډلي ته خو به مونږ ارو مرو سزا وركړو ځكه چي هغوی مجرمان دي.

لَا تَعۡتَذِرُوۡا قَدۡ کَفَرۡتُمۡ بَعۡدَ اِیۡمَانِکُمۡ ؕ اِنۡ نَّعۡفُ عَنۡ طَآئِفَۃٍ مِّنۡکُمۡ نُعَذِّبۡ طَآئِفَۃًۢ بِاَنَّهُمۡ کَانُوۡا مُجۡرِمِیۡنَ (۶۶)

اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَ الْمُنٰفِقٰتُ بَعْضُہُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۘ یَاْمُرُوْنَ بِالْمُنْکَرِ وَ یَنْہَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوْفِ وَ یَقْبِضُوْنَ اَیْدِیَہُمْ ؕ نَسُوا اللّٰہَ فَنَسِیَہُمْ ؕ اِنَّ الْمُنٰفِقِیْنَ ہُمُ الْفٰسِقُوْنَ (۶۷)

منافقان نارینه او منافقاني ښځې ټولې یو د بل په څیر دي په بدئ امر کوي او له نېکی نه منع کوي او خپل لاسونه له خیرنه موټی کړی ساتي . دوی الله هېر کړ نو الله هم دوي هېر کړل. په یقیني ډول دا منافقان همدوی فاسقان دي.

وَعَدَ اللّٰہُ الْمُنٰفِقِیْنَ وَ الْمُنٰفِقٰتِ وَ الْکُفَّارَ نَارَ جَہَنَّمَ خٰلِدِیْنَ فِیْہَا ؕ ہِیَ حَسْبُہُمْ ۚ وَ لَعَنَہُمُ اللّٰہُ ۚ وَ لَہُمْ عَذَابٌ مُّقِیْمٌ (۶۸)

ددې منافقانو نارینه وْ او ښځو او د کافرانو له پاره الله ددوزخ د اور وعده کړېده چې په هغه کښې به دوي تل اوسیږي ، هماغه ددوی له پاره مناسب دی. پر دوي الله لعنت کړي دی او د دوي له پاره نه ختمېدونکی عذاب دی.

کَالَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِکُمْ کَانُوْۤا اَشَدَّ مِنْکُمْ قُوَّۃً وَّ اَکْثَرَ اَمْوَالًا وَّ اَوْلَادًا ؕ فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِہِمْ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِکُمْ کَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِکُمْ بِخَلَاقِہِمْ وَ خُضْتُمْ کَالَّذِیْ خَاضُوْا ؕ اُولٰٓئِکَ حَبِطَتْ اَعْمَالُہُمْ فِی الدُّنْیَا وَ الْاٰخِرَۃِ ۚ وَ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۶۹)

ستاسي رنګ رونق هماغه دی چې ستاسي د پخوانیو وْ . هغوی له تاسي نه د زیات زور، زیاتو شتمنیو او زیاتو اولادونو خاوندان وو، نو هغوی په نړۍ کښنګې خپله برخه مزې چرچې وکړې او تاسي هم خپله برخه مزې چرچې هماغسې وکړې لکه چې هغوی کړې وې ، او په هماغسې خبرو اترو کښې تاسي هم بوخت شوئ لکه چې هغوی په کښې بوخت شوي وو، نو د هغو عاقبت دا شو چې په دنیا او اخرت کښې د هغو ټول کړه وړه بابیزه شول او هماغوی په تباهی کښې دي

اَلَمْ یَاْتِہِمْ نَبَاُ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِہِمْ قَوْمِ نُوْحٍ وَّ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ ۬ۙ وَ قَوْمِ اِبْرٰہِیْمَ وَ اَصْحٰبِ مَدْیَنَ وَ الْمُؤْتَفِکٰتِ ؕ اَتَتْہُمْ رُسُلُہُمْ بِالْبَیِّنٰتِ ۚ فَمَا کَانَ اللّٰہُ لِیَظْلِمَہُمْ وَ لٰکِنْ کَانُوْۤا اَنْفُسَہُمْ یَظْلِمُوْنَ (۷۰)

ایا دې خلکو ته د خپلو پخوانیو تاریخ نه دی رسېدلی ؟ دنوح دقوم ، د عادیانو ، ثمودیانو ،د ابراهیم د قوم ، د مدین د خلکو او د هغو کلیو چې نسکور کړای شول. دهغو پېغمبران هغو ته له ښکاره څرګندونښانو سره راغلل ، بیا داد الله کار نه وْ چې پر هغو یې ظلم کړی وای خو هغوی خپله پر خپلو ځانونو ظلم کوونکي وو،

وَ الْمُؤْمِنُوْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتُ بَعْضُہُمْ اَوْلِیَآءُ بَعْضٍ ۘ یَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ یَنْہَوْنَ عَنِ الْمُنْکَرِ وَ یُقِیْمُوْنَ الصَّلٰوۃَ وَ یُؤْتُوْنَ الزَّکٰوۃَ وَ یُطِیْعُوْنَ اللّٰہَ وَ رَسُوْلَہٗ ؕ اُولٰٓئِکَ سَیَرْحَمُہُمُ اللّٰہُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ (۷۱)

مؤمنان نارینه او مؤمناني ښځې ، داټول د یو بل دوستان دي ، په ښو چارو امر او له بدیو نه منع کوي ، لمونځونه قائموي ، زکات ورکوي او د الله او د هغه د پېغمبر اطاعت کوي دا هغه کسان دي چې پر هغو به د الله رحمت نازلېږي، بېشکه الله پر ټولو بر لاس اوحکیم دی .

وَعَدَ اللّٰہُ الْمُؤْمِنِیْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِہَا الْاَنْہٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْہَا وَ مَسٰکِنَ طَیِّبَۃً فِیْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ؕ وَ رِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰہِ اَکْبَرُ ؕ ذٰلِکَ ہُوَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ (۷۲)

له (دغو) مؤمنانو نارینه وْ او ښځو سره د الله وعده ده چې دوی ته به داسي باغونه ورکړي چې تر هغو لاندې به ویالې بهېږي او دوی به پکښې د تل له پاره اوسیږي. په هغو تل ښېرازه باغونو کښې به ددوی له پاره سوتره استوګنځي وي، او تر هر څه زیات دا چې د الله رضا به ور په برخه وي، همدا ستر بری دی.

یٰۤاَیُّہَا النَّبِیُّ جَاہِدِ الْکُفَّارَ وَ الْمُنٰفِقِیْنَ وَ اغْلُظْ عَلَیْہِمْ ؕ وَ مَاْوٰىہُمْ جَہَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِیْرُ (۷۳)

ای پېغمبره ! له کافرانو او منافقانو دواړو سره په پوره طاقت مقابله وکړه. او له هغو سره ډېر سخت برخورد وکړه ، په پای کښې د هغو هستوګنځی دوزخ دی او هغه د اوسېدو ډېر ناکاره ځای دی.

دا خلك پر خداى لوړې كوي وايي چې مونږ هغه خبره نه ده كړې په داسي حال كښې چې دوې ارومرو هغه د كفر خبره كړېده، دوې له اسلام راوړلو نه وروسته د كفر مرتكب شول او دوې د هغه څه دكولو اراده وكړه چې ويې نشو كړاى. ددوې دا ټوله غوسه په دې خبره ده چې الله او د هغه پېغمبر په خپلې لو ريني سره دوې شتمن كړيدى! اوس كه دوى له خپلې دغې كړنچارې نه راوګرځې نو د همدوى له پاره ښه ده او كه دوى راونګرځې نو الله به دوى ته ډېره دردناكه سزا وركړي، هم په دنيا كښې او هم په اخرت كښې او په ځمكه كښې هېڅوك داسي نشته چې ددوى ملاتړ او مرستندوى وي.

يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ مَا قَالُوْا ؕ وَ لَقَدْ قَالُوْا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَ كَفَرُوْا بَعْدَ اِسْلَامِهِمْ وَ هَمُّوْا بِمَا لَمْ يَنَالُوْا ۚ وَ مَا نَقَمُوْٓا اِلَّآ اَنْ اَغْنٰىهُمُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَ اِنْ يَّتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ فِى الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ۚ وَ مَا لَهُمْ فِى الْاَرْضِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّ لَا نَصِيْرٍ (۷۴)

له دوى نه ځيني داسي هم دي چې هغو له الله سره ژبنه كړې وه چې كه هغه په خپل فضل سره پر مونږ لورينه وكړه نو مونږ به خيرات وركړو او نيك عمله به شو .

وَ مِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ لَئِنْ اٰتٰىنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۷۵)

خو كله چې الله په خپل فضل سره هغوى شتمن كړل نو هغوى بخيلي غوره كړه او له خپلې ژبنې څخه داسي وګرځېدل چې پر هغې يې پر وا قدرې نشته ،

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَ تَوَلَّوْا وَّ هُمْ مُّعْرِضُوْنَ (۷۶)

نتيجه دا راووتله چې د هغوى ددې بدلوزى له امله چې له الله سره يې وكړه او د هغو دروغوله امله چې هغوى يې وايي الله دهغو په زړونو كښې نفاق واچوه چې د هغه حضور ته د هغو د وړاندې كېدو تر ورځې پورې به په هغه پسې تګ پرېنږدي.

فَاَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِىْ قُلُوْبِهِمْ اِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ اَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ (۷۷)

ايا دا خلك په دې نه دي پوهيدلي چې الله ته اّن د دوى پټ رازونه او پټې مشورې ښكاره دي او هغه له ټولو غيبي خبرو څخه په پوره ډول خبر دى؟

اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَ نَجْوٰىهُمْ وَ اَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ (۷۸)

هغه ښه پېژني هغه بخيل شتمن ) چې د هغو مؤمنانو پر مالي ) قربانيو تبصرې كوي چې په خوښه او مينه يې لګوي. او په هغو كسانو پورې مسخرې كوي چې له هغو سره ( د خداى په لار كښې د لګولو له پاره ) له دې پرته نور څه نشته چې هغوى پر خپل ځان تكليف تيروي او لګښت كوي. الله په دې ملنډو وهونكو پورې . مسخرې كوي او د هغو له پاره دردناكه سزا ده

اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِى الصَّدَقٰتِ وَ الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ ؕ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ ۫ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۷۹)

اى پېغمبره ! كه ته دداسي خلكو له پاره ښښنه وغواړې او كه يې ونه غواړې ، كه ته او يا ځله هم ددوى د ښښني هيله وكړې نو الله به دوې هيڅكله ونه ښښي. ځكه چې دوې پر الله او د هغه پر پېغمبر كافر شويدي . او الله فاسقانو ته درغېدو لاره نه ښيي.

اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ؕ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ (۸۰)

كومو خلكو ته چې د بېرته پاتې كېدو رسخت وركړ شوى وْ هغوى د الله له پېغمبر سره د ملګرتيا په نه كولو او په كور كښې پركېناستلو خوشحاله شول او دايي خوښه نشوه چې د الله په لاره كښې په سر او مال سره جهاد وكړي. هغوى خلكو ته وويل چې " په دې سخته ګرمى كښې مه ووځئ " دوى ته ووايه چې ددوزخ اورله دينه زيات ګرم دى، كاشكې دوى په دې پوهېدلاى " .

فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلٰفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَ كَرِهُوْٓا اَنْ يُّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ قَالُوْا لَا تَنْفِرُوْا فِى الْحَرِّ ؕ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا ؕ لَوْ كَانُوْا يَفْقَهُوْنَ (۸۱)

فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَّ لْيَبْكُوْا كَثِيْرًا ۚ جَزَآءً بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (۸۲)

اوس په کار ده چي دا خلك خندا کمه کړي او وژاړي زيات ، ځکه کومه بدي چي دوی کوي د هغې جزا همداسي ده ( چي دوی ته پر هغې باندی ژړا په کار ده )

فَاِنْ رَّجَعَكَ اللّٰهُ اِلٰى طَآئِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَاْذَنُوْكَ لِلْخُرُوْجِ فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا مَعِىَ اَبَدًا وَّ لَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِىَ عَدُوًّا ؕ اِنَّكُمْ رَضِيْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوْا مَعَ الْخٰلِفِيْنَ (۸۳)

که الله دهغو مينځ ته تابېرته راولي او په راتلونکي وخت کښي له هغو نه کومه ډله دجهاد له پاره له تا څخه دوتلو اجازه وغواړي نو په ډاګه ورته ووايه چي " اوس تاسي له ما سره هېڅکله نشئ تلای او نه زما په ملګرتيا کښي له کوم دښمن سره جنګېدای شئ. تاسي مخکښي ناستی غوره کړی وْ نو اوس پر کور ناستو کسانو سره کښېنئ".

وَ لَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا وَّ لَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ مَا تُوْا وَ هُمْ فٰسِقُوْنَ (۸۴)

او که په راتلونکي وخت کښي له هغو نه څوك ومري د هغه د جنازې لمونځ هم ته هېڅکله مه کوه او مه هېڅکله دهغه پر قبر درېږه؛ ځکه چي هغوی له الله او د هغه له پېغمبر نه انکار کړيدی او هغوی په داسی حال کښي مړه شوي دي چي فاسقان وو.

وَ لَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَ اَوْلَادُهُمْ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّعَذِّبَهُمْ بِهَا فِى الدُّنْيَا وَ تَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ وَ هُمْ كٰفِرُوْنَ (۸۵)

د هغو شتمني او د هغو د اولادونو زياتوالی دي تاونه غولوي. الله اراده کړې ده چي ددې مال او اولاد په وسيله هغو ته په دې دنيا کښي سزا ورکړي او د هغو ساګاني په داسي حال کښي وباسي چي هغوی کافران وي.

وَ اِذَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ اَنْ اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ جَاهِدُوْا مَعَ رَسُوْلِهِ اسْتَاْذَنَكَ اُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ وَ قَالُوْا ذَرْنَا نَكُنْ مَّعَ الْقٰعِدِيْنَ (۸۶)

کله به چي کوم سورت په دې مضمون نازل شو چي الله ومنئ او د هغه د پېغمبر په ملګرتيا کښي جهاد وکړئ نو تاوليدل چي کوم خلك چي له هغو څخه د قدرت خاوندان وو هماغوی له تا څخه غوښتنه وکړه چي هغوی دې په جهاد کښي له برخي اخيستلو نه معاف کړای شي او هغوی وويل چي مونږ پرېږده چي له ناستو کسانو سره پاتې شو.

رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ وَ طُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ (۸۷)

هغوی په کور ناستو کسانو کښي شاملېدل غوره کړل او د هغو پر زړونو مهر ووهل شو، ځکه خو هغوی اوس په هېڅ نه پوهيږي.

لٰكِنِ الرَّسُوْلُ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ ؕ وَ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْخَيْرٰتُ ۫ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (۸۸)

ددې پر عکس پېغمبر او هغو کسانو چي له پېغمبر سره يې ايمان راوړی وْ ، په خپل سر او مال يې جهاد وکړ او اوس ټولي ښېګڼي د هماغو له پاره دي او هماغوی برى مېندونکي دي.

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (۸۹)

الله د هغو له پاره داسي باغونه تيار کړيدي چي تر هغو لاندې ويالي بهيږي، په هغو کښي به د تل له پاره اوسيږي. دادی ډېر ستر برياليتوب .

وَ جَآءَ الْمُعَذِّرُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ لِيُؤْذَنَ لَهُمْ وَ قَعَدَ الَّذِيْنَ كَذَبُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ؕ سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۹۰)

له باندې چي عربو نه هم ډېر خلك راغلل چي هغوی عذرونه وکړل تر څو چي هغو ته هم د بېرته پاتي کېدو رسخت ورکړل شي په دې توګه هغه خلك چي هغوی له الله او دهغه له پېغمبر سره د ايمان دروغجنه ژبنه کړې وه کېناستل . له دې باندې چي‌انو‌نه چي کومو خلکو دکفر کړنلاره غوره کړېده ډېر ژر به هغوی له دردناك عذاب سره مخامخ شي.

کمزوري او ناروغان او هغه کسان چي په جهاد کښي د برخي اخيستلو له پاره مال نه مومي که بېرته پاتي شي نو څه باك نشته چي کله د زړه له کومي د الله او دهغه د پېغمبر وفادار وي. پرداسي نېکانو د اعتراض ځاى نشته او الله تېرېدونکى او رحم کوونکى دى.

لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ وَ لَا عَلَى الْمَرْضٰى وَ لَا عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ اِذَا نَصَحُوْا لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ؕ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۹۱)

په همدي ډول پر هغو خلکو هم د کوم اعتراض ځاى نشته چي هغوى په خپله راغلي او تا څخه يي غوښتنه کړي وه چي زمونږ له پاره دي سپرلى برابري کړاى شي ، او کله چي تا وويل چي زه ستاسي له پاره سپرلى نشم برابرولى نو هغوى مجبور شول بېرته لاړل او حال دا ؤ چي دهغو له سترګو اوښکي بهېدلي او هغوى په دې خبره ډېر ځورېدل چي هغوى په خپل مصرف سره په جهاد کښي د ګډون کولو وس چارنلري .

وَّ لَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَا اَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا اَجِدُ مَا اَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ ۪ تَوَلَّوْا وَّ اَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا اَلَّا يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ (ؕ۹۲)

البته د اعتراض مورد هغه کسان دي چي شتمن دي او بيا هم درڅخه هيله کوي چي هغوى په جهاد کښي له ګډون کولو څخه معاف کړاى شي. هغوى په کور کښي ناستو کسانو په جمله کښي شامليدل خوښ کړل او الله د هغو پر زړونو مهر ولګوه ، ځکه خو هغوى اوس په دې هېڅ نه پوهېږي ( چي د الله په وړاندي د هغو ددې کړنچارې څه نتيجه راوتونکې ده).

اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ وَ هُمْ اَغْنِيَآءُ ۚ رَضُوْا بِاَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ الْخَوَالِفِ ۙ وَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۹۳)

کله چي تاسي په راستنېدو دوى ته راورسېږي نو دوى به راز راز معذرتونه وړاندي کړي. خو ته په ډانګ پيبلي ووايه چي " پلمې مه کوئ، مونږ به ستاسي په هېڅ يوه خبره اعتبار ونکړو. الله ستاسي حالات مونږ ته لوڅ کړيدي. اوس به الله او د هغه پېغمبر ستاسي کړنچاره وګوري . بيا به تاسي د هغه ذات لوري ته وروګرځول شئ چي پر پټو او ښکاره هرڅه پوهېدونکى دى او هغه به تاسي ته دروښيي چي تاسي څه کول. "

يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ ؕ قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ ؕ وَ سَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَ رَسُوْلُهٗ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۹۴)

ستاسي د راستنېدو په وخت کښي به دوى ستاسي په وړاندې لوړې وکړي ترڅو چي تاسي ورڅخه صرفنظر وکړئ. نو په رېښتيا تاسي له دوى نه صرف نظر وکړئ ځکه چي دوى ناولي دي او ددوى اصلي ځاى دوزخ دى چي ددوى دکار په بدله کښي به ورپه برخه شي.

سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ؕ فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ ؕ اِنَّهُمْ رِجْسٌ ۫ وَّ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ جَزَآءً بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (۹۵)

دوى به ستاسي په وړاندې لوړې وکړي ترڅو چي تاسي ورڅخه راضي شئ. په داسي حال کښي چي که تاسي له دوى نه راضي هم شئ خو الله به هېڅکله له داسي فاسقانو څخه راضي نشي.

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۚ فَاِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ (۹۶)

دغه باندچيان عرب په کفر او نفاق کښي ډېر زيات کلك دي او د هغوى په باب ددې خبرې امکانات زيات دي چي دهغه دين له حدودونه بې خبره پاتي شي چي الله پر خپل پېغمبر نازل کړيدى. الله پر هر څه پوهېږي او حکيم دى.

اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّ نِفَاقًا وَّ اَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (۹۷)

پدې باندچیانو کښې داسې کسان شته چې د خدای په لار کښې چې
څه لګوي نو هغه پر خپل ځان د زور قلنګ ګڼي او ستاسې په باب د
زمانې د څرخ انتظار باسي ( چې که تاسې په کوم غم لتاړ شئ نو
هغوې به له خپلې غاړې نه ددغه نظام د اطاعت غاړکی ایسته کړي
چې تاسې د هغو په غاړه کښې اچولې ده ) په داسې حال کښې چې د
بدې څرخ په خپله پر همدوی مسلط دی او الله د هر څه اورېدونکی
او په هرڅه پوهېدونکی دی.

وَ مِنَ الۡاَعۡرَابِ مَنۡ یَّتَّخِذُ مَا یُنۡفِقُ مَغۡرَمًا وَّ یَتَرَبَّصُ بِکُمُ الدَّوَآئِرَ ؕ عَلَیۡہِمۡ دَآئِرَۃُ السَّوۡءِ ؕ وَ اللّٰہُ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ (۹۸)

او له همدې باندچیانو نه ځینې خلك داسې هم شته چې په الله او د
اخرت په ورځ ایمان لري او څه چې لګوي هغه الله ته د نژدې
کېدو او له پېغمبر نه در حمت ددعاګانو اخیستلو وسیله ګرځوي.
هو! هغه ارومرو د هغو له پاره د نژدېوالي وسیله ده او الله به
ارومرو هغوی په خپل رحمت کښې داخل کړي، په باوري ډول الله
تېرېدونکی اورحم کوونکی دی.

وَ مِنَ الۡاَعۡرَابِ مَنۡ یُّؤۡمِنُ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَ یَتَّخِذُ مَا یُنۡفِقُ قُرُبٰتٍ عِنۡدَ اللّٰہِ وَ صَلَوٰتِ الرَّسُوۡلِ ؕ اَلَاۤ اِنَّہَا قُرۡبَۃٌ لَّہُمۡ ؕ سَیُدۡخِلُہُمُ اللّٰہُ فِیۡ رَحۡمَتِہٖ ؕ اِنَّ اللّٰہَ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۹۹)

هغه مهاجرین او انصار چې هغوی تر ټولو د مخه دایمان بلنې ته په
لبیك ویلو کښې وړاندې شول ، دغه راز هغه کسان چې وروسته له
نیکۍ او ریښتینولۍ سره په هغو پسې راغلل ، الله له هغو نه خوښ
او هغوی له الله نه خوښ شول، الله د هغو له پاره داسې باغونه تیار
کړیدي چې تر هغو لاندې به ویالې بهیږي او هغوی به پکښې د تل
له پاره اوسیږي، همدا ډېر لوی بریالیتوب دی.

وَ السّٰبِقُوۡنَ الۡاَوَّلُوۡنَ مِنَ الۡمُہٰجِرِیۡنَ وَ الۡاَنۡصَارِ وَ الَّذِیۡنَ اتَّبَعُوۡہُمۡ بِاِحۡسَانٍ ۙ رَّضِیَ اللّٰہُ عَنۡہُمۡ وَ رَضُوۡا عَنۡہُ وَ اَعَدَّ لَہُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ تَحۡتَہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَاۤ اَبَدًا ؕ ذٰلِکَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ (۱۰۰)

اوستاسې شاوخوا ته چې کوم باندچیان او سیږي له هغو نه زیاتره
منافقان دي او په همدې توګه په خپله د مدینې په اوسېدونکو کښې
هم منافقان شته چې منافقت یې خوی ګرځېدلدی . ته هغوی نه
پېژنې موږ هغوی پېژنو. هغه وخت نژدې دی چې موږ هغو ته
دوه کرته سزا ورکړو بیا به هغوی دډېرې سترې سزا له پاره بېرته
بوتلل شي.

وَ مِمَّنۡ حَوۡلَکُمۡ مِّنَ الۡاَعۡرَابِ مُنٰفِقُوۡنَ ؕ وَ مِنۡ اَہۡلِ الۡمَدِیۡنَۃِ مَرَدُوۡا عَلَی النِّفَاقِ ۟ لَا تَعۡلَمُہُمۡ ؕ نَحۡنُ نَعۡلَمُہُمۡ ؕ سَنُعَذِّبُہُمۡ مَّرَّتَیۡنِ ثُمَّ یُرَدُّوۡنَ اِلٰی عَذَابٍ عَظِیۡمٍ (۱۰۱)ۚ

ځینې نور خلك دي چې هغوی په خپلو ګناهونو اعتراف کړیدی. د
هغوی عمل ګډوډ دی، څه ښه دی څه بد. لرې نه ده چې الله پر هغو
بیا مهربان شي ځکه هغه ښنونکی او رحم کوونکی دی.

وَ اٰخَرُوۡنَ اعۡتَرَفُوۡا بِذُنُوۡبِہِمۡ خَلَطُوۡا عَمَلًا صَالِحًا وَّ اٰخَرَ سَیِّئًا ؕ عَسَی اللّٰہُ اَنۡ یَّتُوۡبَ عَلَیۡہِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰہَ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۱۰۲)

ای پېغمبره ! ته د هغوی له مالونو څخه د صدقې په اخیستلو سره
هغوی پاك کړه او ( دنیکۍ په لاره کښې ) هغوی وهڅوه ، او د هغو
په حق کښې د رحمت دعا وکړه ځکه چې ستا دعا به د هغو له پاره
د ډاډینې وسیله وي، الله هر څه اوري او په هرڅه پوهیږي.

خُذۡ مِنۡ اَمۡوَالِہِمۡ صَدَقَۃً تُطَہِّرُہُمۡ وَ تُزَکِّیۡہِمۡ بِہَا وَ صَلِّ عَلَیۡہِمۡ ؕ اِنَّ صَلٰوتَکَ سَکَنٌ لَّہُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ (۱۰۳)

ایا دې خلکو ته معلومه نه ده چې هماغه الله دی چې د خپلو بندګانو
توبه قبلوي او د هغو خیراتونو ته منظوري وربښي ، او دا چې الله
ښه معاف کوونکی او رحیم دی؟

اَلَمۡ یَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰہَ ہُوَ یَقۡبَلُ التَّوۡبَۃَ عَنۡ عِبَادِہٖ وَ یَاۡخُذُ الصَّدَقٰتِ وَ اَنَّ اللّٰہَ ہُوَ التَّوَّابُ الرَّحِیۡمُ (۱۰۴)

او ای پېغمبره ! دوی ته ووایه چې تاسې عمل کوئ، الله او د هغه
پېغمبر او مؤمنان ټول به وګوري چې ستاسې کړه وړه اوس څه
دي.بیا به تاسې د هغه ذات لوري ته وروګرځول شئ چې پر پټو او
ښکاره وْ هر څه پوهیږي او هغه به تاسې ته دروښيي چې تاسې څه
کول.

وَ قُلِ اعۡمَلُوۡا فَسَیَرَی اللّٰہُ عَمَلَکُمۡ وَ رَسُوۡلُہٗ وَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ؕ وَ سَتُرَدُّوۡنَ اِلٰی عٰلِمِ الۡغَیۡبِ وَ الشَّہَادَۃِ فَیُنَبِّئُکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ (۱۰۵)ۚ

ځيني نور خلك دي چې د هغو معامله دالله تر حكم پورې موقوفه ده ، كه يې خوښه شي سزا به وركړي او كه يې خوښه شي پر هغو به بيا مهربان شي. الله په هر څه پوهيږي او د حكمت څښتن دی.

وَ اٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَ اِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (١٠٦)

ځيني نور خلك دي چې هغوی په دې غرض يو مسجد ودان كړ چې ( د حق بلنې ته ) تاوان ورسوي ، او ( د خدای د بندګی كولو په ځای ) كفر غوره كړي، او په مؤمنانو كښې تفرقه واچوي ، او ( دا په ظاهره عبادتځي ) د هغه چا له پاره څاروځی جوړ كړي چې له دېنه مخكښې يې د خدای او د هغه د پېغمبر پر خلاف په جګړه لاس پورې كړيدی. هغوی ارومرو په لوړو كولو سره به ووايي چې مونږ خو له نېكۍ پرته د كوم بل شي اراده نه درلودله . خو الله شاهد دی چې هغوی بيخي دروغجن دي.

وَ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّ كُفْرًا وَّ تَفْرِيْقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ اِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ ؕ وَ لَيَحْلِفُنَّ اِنْ اَرَدْنَا اِلَّا الْحُسْنٰى ؕ وَ اللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ (١٠٧)

ته هېڅكله په دغې ودانۍ كښې مه دريږه. كوم مسجد چې له لومړۍ ورځې نه د تقوی پربنسټ ودان شوی ؤ هماغه ددې ښه وړ دی چې ته په هغه كښې ( دعبادت له پاره ) ودريږې ، په هغه كښې داسي خلك دي چې سپيڅلتيا خوښوي او د الله همدغه سپېڅلتيا غوره كوونكي خوښ دي.

لَا تَقُمْ فِيْهِ اَبَدًا ؕ لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ اَحَقُّ اَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ؕ فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ؕ وَ اللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ (١٠٨)

نو ستاسي څه ګومان دی چې غوره انسان هغه دی چې هغه د خپلې ودانۍ بنسټ د خدای په وېره او د هغه د رضا په غوښتنه ايښی وي يا هغه چې خپله ودانۍ يې د يو كمر په كاواكه لغم خوړلي غاړه اودرولي وي او له هغه سره نېغ په نيغه ددوزخ په اور كښې وغورځيږي؟ الله داسي ظالمانو ته هېڅكله لاره نه ښيي.

اَفَمَنْ اَسَّسَ بُنْيَانَهٗ عَلٰى تَقْوٰى مِنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانٍ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ اَسَّسَ بُنْيَانَهٗ عَلٰى شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهٖ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (١٠٩)

دا ودانۍ چې هغوی جوړه كړېده، تل به د هغو په زړونو كښې دبې باورۍ جرړه وګرځي ( چې د هغې د ويستلو اوس كومه لاره چاره نشته ) پرته له دې نه چې د هغو زړونه ټوټه ټوټه شي. الله ډېر ښه خبر او د حكمت خاوند دی.

لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِيْ بَنَوْا رِيْبَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ اِلَّا اَنْ تَقَطَّعَ قُلُوْبُهُمْ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (١١٠)

حقيقت دادی چې الله له مؤمنانو څخه د هغوی نفسونه او د هغوی مالونه د جنت په بدله كښې پېرلي دي. هغوی د الله په لار كښې جنګيږي نو وژني او وژل كيږي. له هغو سره ( د جنت وعده ) د الله پر ذمه يوه كلكه ډېخه وعده ده. په تورات او په انجيل او قرآن كښې او څوك دی چې له الله نه زيات د خپلې ژبنې پوره كوونكی وي. نو خوښ اوسئ په خپلې دغې سودا چې تاسي له خدای سره كړيده همدا تر ټولو ستر برياليتوب دی.

اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ؕ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيَقْتُلُوْنَ وَ يُقْتَلُوْنَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِى التَّوْرٰىةِ وَ الْاِنْجِيْلِ وَ الْقُرْاٰنِ ؕ وَ مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ ؕ وَ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (١١١)

د الله لورې ته بيا بيا رجوع كوونكي ، دهغه بندګی په ځای راوړونكي د هغه ثنا ستاينه ويونكي ، د هغه په خاطر په ځمكه كښې ګرځېدونكي راګرځېدونكي ، دهغه په وړاندې ركوع او سجده كوونكي ، په نيكۍ حكم كوونكي، له بدۍ نه منع كوونكي، د الله د حدودو ساتونكي ، ( هغه مؤمنان همدغه شان وي چې له الله سره دراكړې وركړې دا معامله سرته رسوي ) او ای پېغمبره ! دغو مؤمنانو ته زېری وركړه.

اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ النَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ الْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ (١١٢)

له پېغمبر او هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړیدی ، نه ښايي چې د مشرکانو له پاره د بښنې دعاوې وکړي، اګر که هغوې ددوی خپلوان هم وي، کله چې دوی ته دا خبره روښانه شویده چې هغوی ددوزخ وړ دي.

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَ لَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ (۱۱۳)

ابراهیم چې د خپل پلار له پاره د بښنې کومه دعا کړې وه هغه خو د هغې وعدې له مخې وه چې هغه له خپل پلار سره کړې وه ، خو کله چې هغه ته دا خبره روښانه شوه چې د هغه پلار دخدای دښمن دی نو له هغه څخه بېزاره شو ، حق دادی چې ابراهیم ډېر زړه سواندی ، له خدایه وېرېدونکی او د زغم خاوند و.

وَ مَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَآ اِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗٓ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ؕ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ لَاَوَّاهٌ حَلِيْمٌ (۱۱۴)

د الله دا کړنلاره نه ده چې خلك له هدایت ورکولو نه وروسته بېرته په ګمراهۍ کښې اخته کړي تر څو پورې چې هغو ته په ډاګه څرګنده ونه ښیي چې هغوی باېد له کومو شیانو څخه ځان وژغوري په حقیقت کښې الله د هر شي علم لري.

وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ هَدٰىهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَّا يَتَّقُوْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۱۱۵)

او دا هم واقعیت دی چې د اسمانونو او ځمکې سلطنت د هماغه الله په لاس کښې دی، مرګ او ژوند د هماغه په واك کښې دی ، او ستاسې هېڅ داسې ملاتړ او مرستندوی نشته چې تاسې له هغه نه وژغورلی شي.

اِنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ ؕ وَ مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّ لَا نَصِيْرٍ (۱۱۶)

الله، پېغمبر او هغو مهاجرینو او انصارو ته بښنه وکړه چې هغوی په ډېر تنګ وخت کښې د پېغمبر ملګرتیا وکړه. که څه هم چې له هغو څخه د ځینو زړونه کوږوالي خواته مایل شوي وو، ( خو کله چې هغوی ددې انحراف پیروي ونکړه بلکې د پېغمبر ملګرتیا یې وکړه نو الله هغوی معاف کړل، بېشکه چې الله پر دوی مهربان او رحم کوونکی دی.

لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَ الْاَنْصَارِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّهٗ بِهِمْ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (۱۱۷)

او هغه درې تنه یې هم معاف کړل چې د هغوی معامله ځنډول شوې وه . کله چې ځمکه له خپلې ټولې پراختیا سره سره پر هغوی تنګه شوه. او د هغوې خپل ځانونه هم پر هغو پېټی شول او هغوی دا وګڼله چې له الله څخه دژغورل کېدو له پاره د پناه کوم بل ځای په خپله د الله درحمت له لمنې څخه پرته نشته ، نو الله په خپلې مهربانۍ سره د هغو لوري ته رجوع وکړه تر څو چې هغوی د هغه لوري ته راوګرځي، په باوري ډول هغه ښه معاف کوونکی او رحم کوونکی دی.

وَّ عَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ؕ حَتّٰٓى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَ ضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَ ظَنُّوْٓا اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّآ اِلَيْهِ ؕ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ (۱۱۸)

ای مؤمنانو ! له الله نه ووېرېږئ او دریښتینو خلکو ملګري شئ.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ (۱۱۹)

د مدینې اوسېدونکو او د شاوخوا باندچیانو ته دا هېڅکله نه ښایېدله چې د الله د پېغمبر یې پرینښی او په کور ناست وای او له هغه نه په بې پروایی سره د خپلو خپلو ځانونو په فکر کښې شوي وای. ځکه چې داسې به هېڅکله نه وي چې هغوی د الله په کار کښې د لوږې تندې او بدني تکلیف څه کړ او وګالي، او دحق دمنکرانو چې کومه لاره بدیسې هغوی پرې کوم ګام واخلي ، او له کوم دښمن څخه ( چې له حق سره یې دښمني وي ) څه غچ واخلي او د هغه په بدل کښې هغو ته یو نیك عمل ونه لیکل شي. دا باوري ده چې الله د نیکانو د خدمت حق نه ضایع کېږي.

مَا كَانَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ وَ مَنْ حَوْلَهُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ اَنْ يَّتَخَلَّفُوْا عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ وَ لَا يَرْغَبُوْا بِاَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهٖ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ لَا يُصِيْبُهُمْ ظَمَاٌ وَّ لَا نَصَبٌ وَّ لَا مَخْمَصَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ لَا يَطَئُوْنَ مَوْطِئًا يَّغِيْظُ الْكُفَّارَ وَ لَا يَنَالُوْنَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا اِلَّا كُتِبَ لَهُمْ بِهٖ عَمَلٌ صَالِحٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ (۱۲۰)

په همدې ډول دا به هم هېڅکله نه وي چې ( د خدای په لار کښې ) هغوی څه لږ ډېر لګښت کوي او ( د جهاد په منډو ترړو کښې ) هغوی کوم نا وووهي او د هغو په حق کښې هغه ونه لیکل شي تر څو چې الله دهغوی ددې غوره کړنچارې مکافات هغو ته ورکړي.

وَ لَا يُنْفِقُوْنَ نَفَقَةً صَغِيْرَةً وَّ لَا كَبِيْرَةً وَّ لَا يَقْطَعُوْنَ وَادِيًا اِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٢١)

او دا څه ضروري نه وه چې مؤمنان ټول له مخې وتلي وای ، خو داسې ولې ونشوه چې دهغوی د نفوسو له هرې برخې نه یو څه کسان وتلي وای او ددیني پوهې له تحصیل نه وروسته بېرته راستانه شوي او د خپلې سیمې اوسېدونکي يې خبردار کړي وای تر څو هغوی ( له غېر اسلامي چارچلند نه ) ډډه کړې وای.

وَ مَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً ؕ فَلَوْ لَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِى الدِّيْنِ وَ لِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ اِذَا رَجَعُوْۤا اِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ (١٢٢)

ای مؤمنانو ! د حق له هغو منکرانو سره وجنګېږئ چې تاسې ته نژدې دي. او باید هغوی په تاسې کښې سختي ومومي، او و پوهېږئ چې الله د پرهیز ګارانو ملګری دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ وَ لْيَجِدُوْا فِيْكُمْ غِلْظَةً ؕ وَ اعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ (١٢٣)

کله چې کوم نوی سورت نازلېږي نو له هغو څخه ځینې خلك ( د ملنډو په توګه له مسلمانانو نه پوښتنه کوي چې " ووایئ له تاسې نه د چا په ایمان کښې په ده سره زیاتوالی راغی؟ ( ددې ځواب دادی ) کومو کسانو چې ایمان راوړی دی د هغو په ایمان کښې خو په واقع کښې (هر نازلېدونکي سورت ) زیاتوالی راوستی دی او هغوی پرې خوشاله دي،

وَ اِذَا مَاۤ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖۤ اِيْمَانًا ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّ هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ (١٢٤)

البته د کومو خلکو په زړونو کښې چې د منافقت ناروغي لګېدلې وه د هغو پر پخوانۍ پلیدۍ ( هر نوي سورت ) یوه بله پلیدي زیاته کړه او هغوی د مرګ تر شېبو پورې په همدې کفر کښې اخته پاتې شول.

وَ اَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلٰى رِجْسِهِمْ وَ مَاتُوْا وَ هُمْ كٰفِرُوْنَ (١٢٥)

ایا دوی نه ګوري چې هر کال یو دوه ځلي په ازمېښت کښې اچول کېږي؟ خو په دې سره بیا هم نه توبه باسي او نه کوم درس اخلي.

اَوَ لَا يَرَوْنَ اَنَّهُمْ يُفْتَنُوْنَ فِىْ كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوْبُوْنَ وَ لَا هُمْ يَذَّكَّرُوْنَ (١٢٦)

کله چې کوم سورت نازلیږي نو دوی په سترګو سترګو کښې یو له بل سره غږېږي چې چېرته څوك خو تاسې نه وینئ ، بیا غلي ووځي تښتي. الله ددوی زړونه اړولي دي ځکه چې دوی ناپوه خلك دي.

وَ اِذَا مَاۤ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ ؕ هَلْ يَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ؕ صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ (١٢٧)

وګورئ تاسې ته یو پېغمبر راغلی دچې په خپله له همدا تاسې څخه دی، په زیان کښې ستاسې لوېدل پر هغه ګران تمامیږي، هغه ستاسې درغېدنې حرصناك دی ، د مؤمنانو له پاره هغه خواخوږی او زړه سواندی دی

لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (١٢٨)

اوس که دا خلك له تا څخه مخ اړوي. نو ای پېغمبره ! دوی ته ووایه چې " زما له پاره الله کافي دی، له هغه پرته بل هېڅ معبود نشته پر هماغه ماتوکل کړیدی او هغه دستر عرش څښتن دی".

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِىَ اللّٰهُ ۖ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَ هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ (١٢٩)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ا – ل- ر – دادهغه كتاب ايتونه دي چي له حكمت نه ډك دى.

الٓرٰ ۚ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡحَكِيۡمِ (١)

ايا د خلكو له پاره دا د حيرانتيا وړ خبره شوه چي مونږ له همغو څخه خپل يو سړي ته وحى وكړه چي ( په غفلت كښي لويدلي ) خلك راويښ كړه او څوك چي يې ومني هغو ته زيرى وركړه چي د هغو له پاره د هغو له رب سره ريښتونى عزت او سر لوړي ده؟ ايا همدا هغه خبره ده چي پر هغي منكرانو وويل چي دا سړى ښكاره كوډګر دى؟

اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنۡ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰى رَجُلٍ مِّنۡهُمۡ اَنۡ اَنۡذِرِ النَّاسَ وَ بَشِّرِ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنَّ لَهُمۡ قَدَمَ صِدۡقٍ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ؕؔ قَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيۡنٌ (٢)

حقيقت دادى چي ستاسي رب هماغه خداى دى چي آسمانونه او ځمكه يې په شپږو ورځو كښي پيدا كړل، بيا يې پر عرش استوا اوكړه، د كائناتو انتظام چلوي هيڅوك شفاعت ( سپارښ ) كوونكى نشته مګر دا چي د هغه له اجازې وروسته شفاعت وكړي. همدا الله ستاسي رب دى نو تاسي د همغه عبادت وكړئ ايا نو تاسي به په هوښ كښي رانشئ ؟

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِىۡ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ يُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ ؕ مَا مِنۡ شَفِيۡعٍ اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِ اِذۡنِهٖ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمۡ فَاعۡبُدُوۡهُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ (٣)

د همغه لوري ته ستاسي ټولو وركرځېدل دي دا د الله پخه وعده ده. بېشكه پېدايښت همغه پېل كوي ، بيا به يې همغه دوهم ځل پېدا كړي، تر څو كومو خلكو چي ايمان راوړيدى اوښه عملونه يې سرته رسولي دي هغو ته په پوره انصاف سره مكافات وركړي، او كومو كسانو چي د كفر مسلك غوره كړيدى هغوى به د حق د هغه انكار په مجازات كښي چي كاوه يې خوټيدلي او به وڅښي او دردناكه سزا به وګالي.

اِلَيۡهِ مَرۡجِعُكُمۡ جَمِيۡعًا ؕ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ اِنَّهٗ يَبۡدَؤُا الۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيۡدُهٗ لِيَجۡزِىَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ بِالۡقِسۡطِ ؕ وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَهُمۡ شَرَابٌ مِّنۡ حَمِيۡمٍ وَّ عَذَابٌ اَلِيۡمٌۢ بِمَا كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ (٤)

هماغه ذات دى چي لمر يې رڼو او سپوږمى يې روښانه پېدا كړېده او د سپوږمى د نري كېدو غټېدو پړاوونه يې په منظم ډول ټاكلي دي، چي تاسي په هغو سره د كلونو او نېټو حساب معلوم كړئ. الله دا هر څه ( د لوبې په ډول نه بلكي ) له يو مقصد سره پېدا كړيدي. هغه خپلي نښاني د هغو خلكو له پاره چي علم لري په روښانه ډګر ګنده توګه وړاندي كوي.

هُوَ الَّذِىۡ جَعَلَ الشَّمۡسَ ضِيَآءً وَّ الۡقَمَرَ نُوۡرًا وَّ قَدَّرَهٗ مَنَازِلَ لِتَعۡلَمُوۡا عَدَدَ السِّنِيۡنَ وَ الۡحِسَابَ ؕ مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالۡحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ (٥)

په يقيني ډول د شپې او ورځې په اووښتلو را اووښتلو كښي او په هر هغه شي كښي چي الله په اسمانونو او ځمكه كښي پېدا كړيدي، د هغو خلكو له پاره نښاني دي چي ( له ناوړه فكر او ناوړه چلند څخه) ډډه كول غواړي.

اِنَّ فِى اخۡتِلَافِ الَّيۡلِ وَ النَّهَارِ وَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّتَّقُوۡنَ (٦)

حقيقت دا دى كوم خلك چي له مونږ سره د يو ځاى كېدو هيله من نه دي او د همدې دنيا پر ژوندانه خوښ او ډاډه شويدي او هغه كسان چي زمونږ له نښانو څخه غافل دي ،

اِنَّ الَّذِيۡنَ لَا يَرۡجُوۡنَ لِقَآءَنَا وَ رَضُوۡا بِالۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَ اطۡمَاَنُّوۡا بِهَا وَ الَّذِيۡنَ هُمۡ عَنۡ اٰيٰتِنَا غٰفِلُوۡنَ ۙ(٧)

د هغو وروستى استوګنځى به دوزخ وي، د هغو ناوړو چارو په بدله كښي چي هغوى ( د خپلي دغي ناوړه عقيدې او غلطي كړنلارې له مخې) سرته رسولې.

اُولٰٓئِكَ مَاۡوٰىهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ (٨)

او دا هم حقيقت دى كومو كسانو چي ايمان راوړيدى ( يعني هغه ريښتينولى يې منلي دي چي په دې كتاب كښي وړاندې كړاې شويدي ) او غوره چارې يې سرته رسولي دي هغوى به د هغو رب د هغو د ايمان له امله پرسمه لاره وخوځوي، له نعمت څخه په ډكو جنتونو كښي به چي تر هغوى لاندې ويالي بهيږي ، ( ځاي وركړي )

اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ يَهۡدِيۡهِمۡ رَبُّهُمۡ بِاِيۡمَانِهِمۡ ۚ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهِمُ الۡاَنۡهٰرُ فِىۡ جَنّٰتِ النَّعِيۡمِ (٩)

هلته به د هغوی ویناوې داوي چې " پاك یې ته ای خدایه ! " دهغوی دعابه داوي چې " سلامتیا دې وي " او د هغوی هره وینا به په دې سره پای ته ورسیږي چې " ټوله ثنا ستاینه یوازې د الله رب العلمین له پاره ده.

دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَکَ اللّٰهُمَّ وَ تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ۚ وَ اٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (١٠)

که الله له خلکو سره په ناوړه چاره کښې هم همدومره تلوار کولای لکه څنګه چې هغوی ددنیوي ښېګڼې په غوښتنه کښې چټکي کوي نو د هغو د کړو وړو فرصت به یووخت پای ته رسول شوی وْ . ( خو زمونږ د ا عادت نه دی ) ، ځکه خو مونږه هغو خلکو ته چې له مونږ سره د یوځای کېدو هیله نلري په سرغړونه کښې د هغو د لا لهانده کېدو له پاره ورته فرصت ورکوو.

وَ لَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ لَقُضِيَ اِلَيْهِمْ اَجَلُهُمْ ؕ فَنَذَرُ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ (١١)

د انسان حال دادی چې کله پر هغه کوم سخت وخت راځي نو په ولاړې ، ناستي او ملاستي مونږ بلي ، خو کله چې مونږ د هغه کړاو ایسته کوو نو داسي ځي ووځي چې ته به وای هغه هېڅکله په خپله کومه بده ورځ کښې مونږ له سره بللي نه وو. په دې ډول له حده تیري کوونکو له پاره د هغوی کړه وړه ښایسته کړای شویدي .

وَ اِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْۢبِهٖۤ اَوْ قَاعِدًا اَوْ قَآئِمًا ۚ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهٗ مَرَّ كَاَنْ لَّمْ يَدْعُنَاۤ اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٢)

ای خلکو ، مونږ له تاسي نه مخکښې قومونه ( چې په خپل خپل وخت کښې د ژوند په لوړه پوړی کښې وو ) هلاك کړل، کله چې هغوی د ظلم چلند غوره کړ او د هغو پېغمبران هغو ته له ښکاره څرګندونښانو سره راغلل او هغوی له سره ایمان رانه وړ. په دې ډول مونږ مجرمانو ته د هغو دجرمونو بدله ورکوو.

وَ لَقَدْ اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا ۙ وَ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ وَ مَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِی الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ (١٣)

اوس له هغو نه وروسته مونږ تاسي ته په ځمکه کښې د هغوی ځای درکړیدی، تر څو وګورو چې تاسي څنګه عمل کوئ.

ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِی الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ (١٤)

کله چې دوی ته زمونږ روښانه خبرې اورول کېږي نو هغه خلك چې له مونږ سره د یوځای کېدو هیله من نه دي ، وایي چې " دده پر ځای کوم بل قران راوړه یا په ده کښې څه تعدیل راوله ". ای محمده ! دوی ته ووایه " زما دا کار نه دی چې له خپله ځانه په ده کښې څه تعدیل او ترمیم وکړم. زه خو صرف د هغې وحیې پېرو یم چې ماته لېږله کېږي. که زه د خپل رب له امر نه سروغړوم نو زه له یوې ډېرې هېبتناکي ورځي څخه وېرېږم "

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيَاتُنَا بَيِّنٰتٍ ۙ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَاۤ اَوْ بَدِّلْهُ ؕ قُلْ مَا يَكُوْنُ لِیْۤ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآئِ نَفْسِیْ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰۤى اِلَیَّ ۚ اِنِّیْۤ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّیْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ (١٥)

او ووایه " که د الله اراده همدا وای نو ما به دا قران تاسي ته هېڅکله نه وْ اورولی او الله به تاسي ته د هغه خبر قدرې هم نه وای درکړی. ښه نو ما خوله دېنه مخکښې ستاسي په مینځ کښې یو عمر تېر کړیدی، ایا تاسي له پوهې نه کار نه اخلئ ؟

قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَ لَاۤ اَدْرٰىكُمْ بِهٖ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيْكُمْ عُمُرًا مِّنْ قَبْلِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (١٦)

نو له هغه نه به غټ ظالم بل څوك وي چې یوه ددروغو خبره له ځانه جوړه کړي د الله لوري ته یې منسوب کړي او یا د الله واقعي ایتونه دروغ وګڼي. داباوري ده چې مجرمان هېڅکله نشي بریالي کیدای".

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُوْنَ (١٧)

دا خلك له خدايه پرته د هغه څه عبادت کوي چې نه ورته ګټه رسوی شي او نه تاوان او وائي چې دا د الله په وړاندې زمونږ سپاربښتګر دي.ای محمده (ص) ! دوی ته ووايه ، ايا تاسې الله له هغې خبرې نه خبروئ چې پر هغې هغه نه په اسمانو کښې پوهېږي نه په ځمکه کښې "؟ هغه له هغه شرك نه چې دوی يې کوي پاك دی او لوړ او پورته دی .

وَ يَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّہُمۡ وَ لَا يَنۡفَعُہُمۡ وَ يَقُوۡلُوۡنَ ہٰۤؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنۡدَ اللّٰهِ ؕ قُلۡ اَتُنَبِّـُٔوۡنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعۡلَمُ فِی السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ سُبۡحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰی عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ (۱۸)

په ابتداْ کښې ټول انسانان يو اُمت وْ . بيا وروسته هغوی بېلابېلې عقيدې او مسلکونه جوړ کړل، او که ستا د پروردګارله خوا لاله پخوا يوه خبره فيصله کړای شوې نه وای نو په کوم شي کښې چې هغوی پخپلو مينځو کښې اختلاف کوي د هغې به پرېکړه شوې وه.

وَ مَا كَانَ النَّاسُ اِلَّاۤ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخۡتَلَفُوۡا ؕ وَ لَوۡ لَا كَلِمَةٌ سَبَقَتۡ مِنۡ رَّبِّكَ لَقُضِیَ بَيۡنَہُمۡ فِيۡمَا فِيۡهِ يَخۡتَلِفُوۡنَ (۱۹)

او دا چې هغوی وايي چې پر دې پېغمبر دده درب له لورې څخه کومه نښانه ولې نازله نشوه ، نو دوی ته ووايه " د غېبو څښتن او واکمن خو يوازې الله دی ، ښه ده ، سترګې په لاره اوسئ ، زه هم له تاسې سره منتظر يم".

وَ يَقُوۡلُوۡنَ لَوۡ لَاۤ اُنۡزِلَ عَلَيۡهِ اٰيَةٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ ۚ فَقُلۡ اِنَّمَا الۡغَيۡبُ لِلّٰهِ فَانۡتَظِرُوۡا ۚ اِنِّیۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُنۡتَظِرِيۡنَ (۲۰)

د خلکو دا حال دی چې له کړاونه وروسته چې کله مونږ پر هغو د رحمت خوند وڅکو نو هغوی سمدلاسه زمونږ د نښانو په باب په د سيسو لاس پورې کوي. دوی ته ووايه الله په خپل تدبير کښې له تاسې نه ډېر تېز دی زمونږ پرښتې ستاسې ټول چلونه ليکي

وَ اِذَاۤ اَذَقۡنَا النَّاسَ رَحۡمَةً مِّنۡۢ بَعۡدِ ضَرَّآءَ مَسَّتۡہُمۡ اِذَا لَہُمۡ مَّكۡرٌ فِیۡۤ اٰيَاتِنَا ؕ قُلِ اللّٰهُ اَسۡرَعُ مَكۡرًا ؕ اِنَّ رُسُلَنَا يَكۡتُبُوۡنَ مَا تَمۡكُرُوۡنَ (۲۱)

هماغه الله دی چې تاسې په وچه او لمده کښې ګرځوي. لکه چې کله تاسې په بېړېو کښې په سپرېدو په موافق باد سره خوشاله سوکاله سفر کوئ او بيا په ناڅاپي ډول مخالف توند باد راالوزي او له هرې خوانه څپې څپانده کېږي او مسافران انګېري چې په طوفان کښې راګير شول، په هغه وخت کښې ټول خپل دين يوازې داالله له پاره خالصوي او داسې دعاګانې کوي چې " که تا مونږ ته له دې بلا څخه نجات راکړ نو مونږ به شکر ويستونکي بندګان شو.

ہُوَ الَّذِیۡ يُسَيِّرُكُمۡ فِی الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا كُنۡتُمۡ فِی الۡفُلۡكِ ۚ وَ جَرَيۡنَ بِہِمۡ بِرِيۡحٍ طَيِّبَةٍ وَّ فَرِحُوۡا بِہَا جَآءَتۡہَا رِيۡحٌ عَاصِفٌ وَّ جَآءَہُمُ الۡمَوۡجُ مِنۡ كُلِّ مَكَانٍ وَّ ظَنُّوۡۤا اَنَّہُمۡ اُحِيۡطَ بِہِمۡ ۙ دَعَوُا اللّٰهَ مُخۡلِصِيۡنَ لَهُ الدِّيۡنَ ۚ۬ لَئِنۡ اَنۡجَيۡتَنَا مِنۡ ہٰذِهٖ لَنَكُوۡنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيۡنَ (۲۲)

خو الله چې کله هغوی وژغورې نو بيا هماغه خلك له حق څخه په انحراف کولو په ځمکه کښې په سر کشۍ لاس پورې کوي. ای خلکو ! ستاسې دا سرکشي همدا ستاسې په زيان تمامه شوېده . ددنيا څو ورځنې خوندونه دي ( وايې خلئ ) بيا زمونږ لورې ته ستاسې راګرځېدل دي ، په هغه وخت کښې به مونږ دروښيو چې تاسې څه کول،

فَلَمَّاۤ اَنۡجٰہُمۡ اِذَا ہُمۡ يَبۡغُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَيۡرِ الۡحَقِّ ؕ يٰۤاَيُّہَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغۡيُكُمۡ عَلٰۤی اَنۡفُسِكُمۡ ۙ مَّتَاعَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۫ ثُمَّ اِلَيۡنَا مَرۡجِعُكُمۡ فَنُنَبِّئُكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ (۲۳)

ددنيا ددغه ژوندانه مثال ( چي تاسي د هغه په نشه كښي مست يئ زمونږ له نښانو څخه غفلت كوئ ) داسي دى لكه چي له اسمانه مونږ اوبه ورولي نو د ځمكي حاصلات چي انسانان او ځاروي تول يي خوري ، ښه ګن شول ، بيا بيدو په هماغه وخت كښي چي د ځمكي خپل پسرلى وْ او كښتونه ښكلي ښايسته پكي ولاړ وو او د هغي څښتنانو دا ګڼله چي اوس مونږ له دي نه په ګټه اخيستلو قادريو ، په ناڅاپي ډول د شپي يا دورځي زمونږ حكم راغى او مونږ هغه داسي تالا والا كړل چي ته به واى پرون هلته له سره څه شى نه وو په دي ډول مونږ خپلي نښاني د هغو خلكو لپاره په ډاګه څرګندوه وړاندي كوو چي فكر كوونكي پوهيدونكي دي ( تاسي په دې فاني ژوندانه غوليدلي يئ )

اِنَّمَا مَثَلُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَ الْاَنْعَامُ ؕ حَتّٰۤى اِذَاۤ اَخَذَتِ الْاَرْضُ زُخْرُفَهَا وَ ازَّيَّنَتْ وَ ظَنَّ اَهْلُهَاۤ اَنَّهُمْ قٰدِرُوْنَ عَلَيْهَاۤ ۙ اَتٰىهَاۤ اَمْرُنَا لَيْلًا اَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنٰهَا حَصِيْدًا كَاَنْ لَّمْ تَغْنَ بِالْاَمْسِ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ (۲۴)

او الله تاسي ته د سلامتيا د كور په لور بلنه دركوي. ( لارښوونه د هغه په واك كښي ده ) چا ته چي د هغه خوښه شي سمه لاره وربښيي .

وَ اللّٰهُ يَدْعُوْۤا اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ؕ وَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۲۵)

كومو كسانو چي د ښو چارو لاره غوره كړه د هغو له پاره ښيګڼه ده او زياته مهرباني، د هغو پر مخونو به توروالى او خواري خوره نشي . هغوى د جنت مستحق دي. هلته به هغوى د تل له پاره اوسيږي.

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَ زِيَادَةٌ ؕ وَ لَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّ لَا ذِلَّةٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۲۶)

او كومو خلكو چي د بديو ګټه كړېده د هغو چي څنګه بدي ده هماغسي بدله به ومومي ، خواري به ورباندي مسلطه وي ، هيڅوك به له الله نه د هغو ژغورونكى نه وي. د هغو پر مخونو به داسي ترږمى خوره شوي وي لكه چي د شپي توري پردي پري غوړيدلي وي، هغوى ددوزخ وړ دي هلته به هغوى د تل له پاره اوسيږي.

وَ الَّذِيْنَ كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا ۙ وَ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَاۤ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۲۷)

په كومه ورځ چي مونږ دوى ټول په يو ځاى ( په خپله محكمه كښي ) راپاڅوو بيا هغو خلكو ته چي شرك يي كړيدى ووايو چي په خپل خپل ځاى ايسار شئ هم تاسي او هم ستاسي جوړ كړي شريكان ، بيا به مونږ ددوى له مينځه دبيګانه توب پرده ايسته كړو او ددوى شريكان به ووايي چي " تاسي خو زمونږ عبادت نه كاوه.

وَ يَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا مَكَانَكُمْ اَنْتُمْ وَ شُرَكَآؤُكُمْ ۚ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَ قَالَ شُرَكَآؤُهُمْ مَّا كُنْتُمْ اِيَّانَا تَعْبُدُوْنَ (۲۸)

زمونږ او ستاسي په مينځ كښي د الله شاهدي كافي ده چي ( كه تاسي زمونږ عبادت كاوه هم خو ) مونږ ستاسي له دې عبادت نه بيخي بې خبره وو"

فَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًاۢ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِيْنَ (۲۹)

په هغه وخت كښي به هر څوك د خپلو پخوانيو كړنو خوند وڅكي ، ټول به د خپل حقيقي څښتن الله خوا ته وروګرځول شي او هغه ټول دروغ چي دوى جوړ كړي وو تريښه ورك به شي"

هُنَالِكَ تَبْلُوْا كُلُّ نَفْسٍ مَّاۤ اَسْلَفَتْ وَ رُدُّوْۤا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ وَ ضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ (۳۰)

له دوى نه پوښتنه وكړه : څوك تاسي ته له اسمان او ځمكي نه روزي دركوي؟ دا داوريدو او ليدوقواوي د چا په واك كښي دي؟ څوك له بې سانه ساكښ او له ساكښ نه بې سا راباسي ؟ څوك د مخلوقاتو ددې نظم تدبير كوي؟ هغوى به ارومرو ووايي چي الله ووايه : نو تاسي ( د حقيقت پر خلاف تګ كولو نه ) ډډه نه كوئ؟

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ اَمَّنْ يَّمْلِكُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ مَنْ يُّخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَ يُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَ مَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ ؕ فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ ۚ فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ (۳۱)

په دغو صفتونو سره خو همدا الله ستاسي حقيقي رب دی. نو له حقه وروسته له ګمراهی پرته نور څه پاتي شول؟ ښه نو تاسي کومي خوا ته اړول کېږئ؟

فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۚ فَمَا ذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ ۚۖ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ (۳۲)

پردغسي نافرماني غوره کوونکو ستا د (ای پېغمبره ! وګوره ) رب خبره رېښتيني شوه چي هغوی به منونکي نشي.

كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ (۳۳)

له دوی نه پوښتنه وکړه ، ستاسي په انګېرل شوېو شريکانو کښي څوك شته چي لومړی پيدا کول يې هم کړي وي او دوهم ځل پيدا کول هم وکړي؟ ووايه ! هغه يوازې الله دی چي لومړی پيدا کول هم کوي او دوهم ځل هم نو تاسي په کومه چپه لاره خوځول کېږئ.

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ؕ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ (۳۴)

له دوی نه پوښتنه وکړه ستاسي په ګڼل شوېو شريکانو کښي څوك داسي شته چي د حق لوري ته رهبري کوي؟ ووايه هغه يوازې الله دی چي د حق لارښوونه کوي. ښه نو وښيئ، څوك چي د حق خواته لارښوونه کوي هغه ددې زيات وړ دی چي د هغه پيروي وشي يا هغه چي په خپله لاره نه مومي مګر دا چي ورته لاره وښودله شي؟ نو پر تاسي څه شويدي څنګه چپه چپه فيصلي کوئ؟

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ ؕ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ؕ اَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ اَحَقُّ اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ اِلَّآ اَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۟ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ (۳۵)

حقيقت دادی چي له دوی نه زياتره خلك يوازې په انګېرني او ګومان پسي روان دي، په داسي حال کښي چي ګومان د حق اړتيا يو بڅری هم نه پوره کوي. څه چي دوی کوي الله ورباندې ښه پوهېږي.

وَ مَا يَتَّبِعُ اَكْثَرُهُمْ اِلَّا ظَنًّا ؕ اِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ (۳۶)

او دا قران هغه شی نه دی چي د الله له وحي او ښووني څخه پرته په دروغو تصنيف کړای شي. بلکي دا خو د هغه څه چي پخوا راغلي وو تصديق او د الکتاب تفصيل دی . په دې کښي هېڅ شك نشته چي دا د کائناتو د حکم چلوونکي رب العالمين له لوري څخه دی.

وَ مَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَ لٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَ تَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۳۷)

ايا دوی وايي چي پېغمبر دا په خپله تصنيف کړيدی؟ ووايه! " که تاسي په خپل دغه تور لګولو کښي رښتوني ياست نو دده په څېر يو سورت تصنيف کړی راوړئ او له يوه خدايه پرته چي نور هر څوك راغوښتلی شئ د مرستي له پاره يي راوغواړئ"

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَ ادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۳۸)

اصلي خبره دا ده چي کوم شی چي ددوی د علم په احاطه کښي نه دی راغلی او د کوم شي راتلونکي چي ددوی تر نظر لاندې نه ده راغلي دوی هغه ( ارومرو په اټکلي ډول ) دورغ وګڼله . په همدې ډول خو له دوی نه مخکښي خلکو هم ددروغو نسبتونه کړيدي نو وګوره د هغو ظالمانو څه عاقبت شو،

بَلْ كَذَّبُوْا بِمَا لَمْ يُحِيْطُوْا بِعِلْمِهٖ وَ لَمَّا يَاْتِهِمْ تَاْوِيْلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ (۳۹)

له دوی نه به ځيني خلك ورباندې ايمان راوړي او ځيني به يې ورباندې رانه وړي او ستا رب هغه مفسدان ښه پېژني

وَ مِنْهُمْ مَّنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ وَ مِنْهُمْ مَّنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهٖ ؕ وَ رَبُّكَ اَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِيْنَ (۴۰)

که دوی تا دروغجن ګڼي نو ووايه چي زما کړه وړه زما له پاره او ستاسي کړه وړه ستاسي له پاره دي، څه چي زه کوم د هغه له مسئوليت نه تاسي خلاص يئ او څه چي تاسي کوئ د هغه له مسئوليت نه زه خلاص يم."

وَ اِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَ لَكُمْ عَمَلُكُمْ ۚ اَنْتُمْ بَرِيْٓــُٔوْنَ مِمَّآ اَعْمَلُ وَ اَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ (۴۱)

په دوی کښې ډېر داسې خلك دي چې ستا خبرې اوري، خو ايا ته به کاڼه واوروې که هغوی پر هېڅ هم ونه پوهېږي؟

وَ مِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّسۡتَمِعُوۡنَ اِلَيۡكَ ؕ اَفَاَنۡتَ تُسۡمِعُ الصُّمَّ وَ لَوۡ كَانُوۡا لَا يَعۡقِلُوۡنَ (۴۲)

له دوی څخه زياتره کسان دي چې تا ته گوري، خو ايا ته ړندو ته لاره ښيې که هغوی هېڅ نهويني؟

وَ مِنۡهُمۡ مَّنۡ يَّنۡظُرُ اِلَيۡكَ ؕ اَفَاَنۡتَ تَهۡدِى الۡعُمۡىَ وَ لَوۡ كَانُوۡا لَا يُبۡصِرُوۡنَ (۴۳)

حقيقت دادی چې الله پر خلکو ظلم نه کوي، خلك خپله پر خپل ځان ظلم کوي.

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظۡلِمُ النَّاسَ شَيۡـًٔا وَّ لٰكِنَّ النَّاسَ اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ (۴۴)

نن په دې دنيوي ژوندانه کښې مست دي ) او په کومه ورځ چې )
الله دوی راپاڅوي نو ( همدغه ددنيا ژوند به دوی ته داسې ښکاره شي چې ) ته به وايې دوی صرف پوره يو ساعت په خپلو مينځو کښې د پيژندگلوی له پاره ځنډېدلي وو. ( په هغه وخت کښې به په پلټنه ثابته کړای شي چې ) په واقع کښې هغه کسان سخت له زيان سره مخامخ شول چې له الله سره يو ځای کېدل يې دروغ وگڼل او
.هېڅکله هغوی پر سمه لاره نه وو

وَ يَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ كَاَنۡ لَّمۡ يَلۡبَثُوۡۤا اِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُوۡنَ بَيۡنَهُمۡ ؕ قَدۡ خَسِرَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِلِقَآءِ اللّٰهِ وَ مَا كَانُوۡا مُهۡتَدِيۡنَ (۴۵)

له کوم ناوړه سرنوشت څخه چې مونږ هغوی وېروو د هغه يوه برخه به مونږ ستا په ژوند کښې دروښيو يا به له هغه نه مخکښې تا واخلو په هر حال ددوی راتگ زمونږ خواته دی او دوی چې څه کوي الله ورباندی شاهد دی .

وَ اِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعۡضَ الَّذِىۡ نَعِدُهُمۡ اَوۡ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ ثُمَّ اللّٰهُ شَهِيۡدٌ عَلٰى مَا يَفۡعَلُوۡنَ (۴۶)

د هرامت له پاره يو پېغمبر دی نو کله چې کوم امت ته د هغه پېغمبر راځي نو د هغه فيصله په پوره عدالت سره کېږي او پر هغه به يو بڅری ظلم هم نه کېږي.

وَ لِكُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوۡلٌ ۚ فَاِذَا جَآءَ رَسُوۡلُهُمۡ قُضِىَ بَيۡنَهُمۡ بِالۡقِسۡطِ وَ هُمۡ لَا يُظۡلَمُوۡنَ (۴۷)

وايي که ستاسې دا اخطار رېښتيا دی نو دا به کله تر سره کېږي؟

وَ يَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۴۸)

ووايه ، زما په واك کښې د خپل ځان گټه او زيان هم نشته ، هر څه د الله په خوښې پورې اړه لري د هرامت له پاره د مهلت يوه موده ده ، کله چې دا موده پوره کېږي نو پوره يو ساعت مخکېوالي وروسته والی به هم نه وي"

قُلۡ لَّاۤ اَمۡلِكُ لِنَفۡسِىۡ ضَرًّا وَّ لَا نَفۡعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ؕ اِذَا جَآءَ اَجَلُهُمۡ فَلَا يَسۡتَاۡخِرُوۡنَ سَاعَةً وَّ لَا يَسۡتَقۡدِمُوۡنَ (۴۹)

دوی ته ووايه ، تاسې کله په دې غور کړيدی چې که د الله عذاب په ناڅاپي ډول د شپې يا دورځې راشي (نو تاسې څه کولی شئ؟) ښه نو دا کوم داسې شی دی چې د هغه له پاره مجرمان تلوار کوي؟

قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ اَتٰٮكُمۡ عَذَابُهٗ بَيَاتًا اَوۡ نَهَارًا مَّاذَا يَسۡتَعۡجِلُ مِنۡهُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ (۵۰)

ايا کله چې هغه پرتاسې را پرېوځي په هماغه وخت کښې به يې ومنئ؟ . اوس ځان ژغورل غواړئ؟ په داسې حال کښې چې تاسې په خپله د هغه د چټک راتلو غوښتنه کوله !

اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنۡتُمۡ بِهٖ ؕ آٰلۡــٰٔنَ وَ قَدۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ (۵۱)

بيا به ظالمانو ته وويل شي چې اوس دا بدي عذاب خوند وڅکئ څه چې تاسې گټئ ايا د هغه له مجازات نه پرته بله څه بدله تاسې ته درکول کيدای شي؟

ثُمَّ قِيۡلَ لِلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ذُوۡقُوۡا عَذَابَ الۡخُلۡدِ ۚ هَلۡ تُجۡزَوۡنَ اِلَّا بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡسِبُوۡنَ (۵۲)

او له تا نه پوښتنه کوي ايا په واقعي ډول دا رېښتيا دي چې ته يې وايې؟ ووايه " زما په رب قسم ، دا بيخي رېښتيا دي او تاسې دومره زور نلرئ چې د هغه د مينځ ته راتگ مخه ونيسئ "

وَ يَسۡتَنۡۢبِــُٔوۡنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ؕ قُلۡ اِىۡ وَ رَبِّىۡۤ اِنَّهٗ لَحَقٌّ ؕ وَ مَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ (۵۳)

که له هر هغه چا سره چې ظلم يې کړيدی د ځمکې دمخ شتمني هم وي نو له هغه عذاب نه د ژغورل کېدو له پاره به په جريمه کښې د هغې ورکولو ته حاضر شي. کله چې دا خلك هغه عذاب وګوري نو په زړه زړه کښې به پښېمانه شي. خو د هغو په مينځ کښې به په پوره عدالت سره پريکړه وشي، هېڅ ظلم به پر هغو نه وي.

وَ لَوْ اَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِی الْاَرْضِ لَافْتَدَتْ بِهٖ ؕ وَ اَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ۚ وَ قُضِیَ بَیْنَهُمْ بِالْقِسْطِ وَ هُمْ لَا یُظْلَمُوْنَ (۵۴)

واورئ ! په اسمانو نو او ځمکه کښې چې هر څه دي د الله دي. واورئ ! د الله وعده رېښتيا ده خو زياتره انسانان نه پوهېږي.

اَلَاۤ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ (۵۵)

هماغه ژوند ښني او هماغه مرګ ورکوي او د همغه په لوري ستاسي ټولو ورګرځېدل دي.

هُوَ یُحْیٖ وَ یُمِیْتُ وَ اِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ (۵۶)

ای خلکو !تاسي ته ستاسي د رب له لوري نصحيت راغلی دی . دا هغه شی دی چې د زړونو د ناروغيو شفا ده او څوك چې هغه ومني د هغه له پاره هدايت او رحمت دی .

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ شِفَآءٌ لِّمَا فِی الصُّدُوْرِ ۙ۬ وَ هُدًی وَّ رَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِیْنَ (۵۷)

ای پېغمبره ووايه چې " داد الله فضل او د هغه مهرباني ده چې داشی يې واستوه پردې خو بايد خلك خوشالي وکړي. د اله ټولو هغه شيانو څخه ډېر غوره دی چې خلك يې راغونډوي" .

قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَ بِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْیَفْرَحُوْا ؕ هُوَ خَیْرٌ مِّمَّا یَجْمَعُوْنَ (۵۸)

ای پېغمبره ! دوی ته ووايه" تاسي کله په دې فکر کړيدی چې کومه روزي چې الله تاسي ته راکوزه کړې وه له هغې نه تاسي په خپله ځيني حرام او ځيني حلال وګرځول " ! له دوی نه پوښتنه وکړه ، الله تاسي ته ددې اجازه درکړې وه ؟ او که تاسي پر الله دروغ تړئ؟

قُلْ اَرَءَیْتُمْ مَّاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا وَّ حَلٰلًا ؕ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَی اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ (۵۹)

کوم کسان چې پر الله دا دروغ تړي د هغو څه ګومان دی چې د اخرت په ورځ به له هغو سره څه معامله وشي؟ الله خو پر خلکو د مهربانی نظر لري خو زياتره انسانان شکر نه باسي.

وَ مَا ظَنُّ الَّذِیْنَ یَفْتَرُوْنَ عَلَی اللّٰهِ الْكَذِبَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَی النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا یَشْكُرُوْنَ (۶۰)

ای پېغمبره ، ته چې په هر حالت کښې اوسې او له قران نه چې هر څه اوري ، او ای خلکو تاسي هم چې څه کوئ د هغو ټولو په دوران کښې مونږ تاسي ګورو . هېڅ د يو بڅري په اندازه شی په اسمان او ځمکه کښې داسي نشته ، نه وړوکی نه غټ ، چې ستا د پروردګار له نظره پټ وي او په يو روښانه دفتر کښې درج نه وي.

وَ مَا تَكُوْنُ فِیْ شَاْنٍ وَّ مَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّ لَا تَعْمَلُوْنَ مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَیْكُمْ شُهُوْدًا اِذْ تُفِیْضُوْنَ فِیْهِ ؕ وَ مَا یَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِی الْاَرْضِ وَ لَا فِی السَّمَآءِ وَ لَاۤ اَصْغَرَ مِنْ ذٰلِكَ وَ لَاۤ اَكْبَرَ اِلَّا فِیْ كِتٰبٍ مُّبِیْنٍ (۶۱)

واورئ ! څوك چې د الله دوستان دي، پر هغو کومه وېره او کړاو نشته.

اَلَاۤ اِنَّ اَوْلِیَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَ لَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ (۶۲)

هغوی چې ايمان يې راوړيدی او د تقوی کړنلاره يې غوره کړيده.

الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ كَانُوْا یَتَّقُوْنَ (۶۳)

ددنيا او اخرت دواړو په ژوندانه کښې د هغو له پاره زيری زيری دی. د الله خبرې نشي بدلېدای . همدا لوی بريالیتوب دی.

لَهُمُ الْبُشْرٰی فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَ فِی الْاٰخِرَةِ ؕ لَا تَبْدِیْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ (۶۴)

ای پېغمبره ! دا خلك چې په تا پورې کومې خبرې تړی هغه دې تا ونه ځوروي، عزت په تمامه معنا د خدای په واك کښې دی ، هغه هر څه اوري او په هر څه پوهېږي.

وَ لَا یَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِیْعًا ؕ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ (۶۵)

خبر اوسئ! د اسمانونو اوسېدونكي وي كه د ځمكي ، ټول د الله ملكيت دی. او كوم كسان چي له الله څخه پرته ( له ځانه جوړكړېو ) شريكانو ته بلنه وركوي هغه خالص دوهم او انګېرني پيروان دي او محضي اټكلونه كوي.

اَلَاۤ اِنَّ لِلّٰهِ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَنۡ فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ مَا يَتَّبِعُ الَّذِيۡنَ يَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ شُرَكَآءَ ؕ اِنۡ يَّـتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ اِنۡ هُمۡ اِلَّا يَخۡرُصُوۡنَ (۶۶)

هماغه الله دی چي ستاسي له پاره يي شپه پيدا كړېده چي په هغي كښي ارام و كړئ او ورځ يي روښانه ګرځولي ده . په دې كښي دهغو خلكو له پاره نښاني دي چي په خلاصو غوږونو ( د پېغمبرص بلنه ) اوري.

هُوَ الَّذِىۡ جَعَلَ لَكُمُ الَّيۡلَ لِتَسۡكُنُوۡا فِيۡهِ وَ النَّهَارَ مُبۡصِرًا ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّسۡمَعُوۡنَ (۶۷)

كافرانو وويل چي الله څوك زوی نيولی دی. سبحان الله ! هغه خوبې نيازه دی، په اسمانونو او ځمكه كښي چي څه دي ټول د هغه ملكيت دی. له تاسي سره ددې وينا له پاره هيڅ دليل نشته ايا تاسي د الله په باب هغه خبري كوئ چي ستاسي په علم كښي نشته ؟

قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبۡحٰنَهٗ ؕ هُوَ الۡغَنِىُّ ؕ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ اِنۡ عِنۡدَكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍۢ بِهٰذَا ؕ اَتَقُوۡلُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۶۸)

ای محمده ص ! ووايه چي كوم خلك چي پر الله ددروغو افترأ كوي هغوی هېڅكله برياليتوب نشي ميندلای.

قُلۡ اِنَّ الَّذِيۡنَ يَفۡتَرُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ الۡكَذِبَ لَا يُفۡلِحُوۡنَ (ؕ۶۹)

ددنيا په څو ورځني ژوندانه كښي دي مزې چړچې وكړي بيا زمونږ لوري ته د هغو راګرځېدل دي بيا به مونږ د هغه كفر په بدل كښي چي هغوی يي مرتكب كېږي پر هغو د سخت عذاب خوند وڅكو.

مَتَاعٌ فِى الدُّنۡيَا ثُمَّ اِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ ثُمَّ نُذِيۡقُهُمُ الۡعَذَابَ الشَّدِيۡدَ بِمَا كَانُوۡا يَكۡفُرُوۡنَ (۷۰)

دوی ته د نوح قصه واوروه ، د هغه وخت قصه چي كله هغه خپل قوم ته ويلي وو چي " ای زما قومه ! كه ستاسي په مينځ كښي زما اوسېدل او د الله د ايتونو په بيا بيا اورولو سره له غفلت نه ستاسي راويښول ستاسي له پاره له زغم نه پورته شويدي نو زما توكل پر الله دی ، تاسي د خپلو انګېرلو شريكانو په ملګرتيا سره يوه پرېكړه وكړئ او هر څه پلان چي ستاسي په نظر كښي وي پر هغه ښه فكر غور وكړئ تر څو چي د هغه كوم اړخ ستاسي له نظره پټ پاتي نشي، بيا زما پر خلاف هغه عملي كړئ او ماته هيڅكله مهلت مه راكوئ.

وَ اتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَاَ نُوۡحٍ ۘ اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖ يٰقَوۡمِ اِنۡ كَانَ كَبُرَ عَلَيۡكُمۡ مَّقَامِىۡ وَ تَذۡكِيۡرِىۡ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلۡتُ فَاَجۡمِعُوۡۤا اَمۡرَكُمۡ وَ شُرَكَآءَكُمۡ ثُمَّ لَا يَكُنۡ اَمۡرُكُمۡ عَلَيۡكُمۡ غُمَّةً ثُمَّ اقۡضُوۡۤا اِلَىَّ وَ لَا تُنۡظِرُوۡنِ (۷۱)

كه تاسي زما له نصيحت نه مخ واړوه ( نو ماته مو څه زيان ورسوه؟) زه له تاسي نه د كوم اجر غوښتونكی نه وم، زما اجر خود الله په ذمه دی. او ماته حكم شويدی چي ( كه څوك يي ومني كه يي ونه مني ) زه په خپله مسلم ( اطاعت كوونكی ) اوسم "

فَاِنۡ تَوَلَّيۡتُمۡ فَمَا سَاَلۡتُكُمۡ مِّنۡ اَجۡرٍ ؕ اِنۡ اَجۡرِىَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۙ وَ اُمِرۡتُ اَنۡ اَكُوۡنَ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ (۷۲)

دوی هغه دروغجن وګڼه او نتيجه دا شوه چي مونږ هغه او هغه خلك چي له هغه سره په بېړی كښي وو، وژغورل او هماغوی مو په ځمكه كښي جانشينان كړل او هغه ټول خلك مو غرق كړل چي زمونږ ايتونه يي دروغ ګڼلي وو،نو وګوره ! څوك چي تنبيه كرای شوي وو ( او بيا هم هغوی ونه منله ) د هغو څه عاقبت شو.

فَكَذَّبُوۡهُ فَنَجَّيۡنٰهُ وَ مَنۡ مَّعَهٗ فِى الۡفُلۡكِ وَ جَعَلۡنٰهُمۡ خَلٰٓئِفَ وَ اَغۡرَقۡنَا الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَانۡظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُنۡذَرِيۡنَ (۷۳)

بيا له نوح نه وروسته مونږ بېلابېل پېغمبران د هغو قومونو ته ولېږل چي هغو ته له ښکاره څرګندو نښانو سره هغوی راغلل خو کوم شی چي هغوی مخکښي دروغجن ګڼلي وْ هغه يې بيا ونه مانه. په دغه راز مونږ له حده تيري کوونکو پر زړونو مهر وهو.

ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ رُسُلًا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ فَجَآءُوۡہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ فَمَا کَانُوۡا لِیُؤۡمِنُوۡا بِمَا کَذَّبُوۡا بِہٖ مِنۡ قَبۡلُ ؕ کَذٰلِکَ نَطۡبَعُ عَلٰی قُلُوۡبِ الۡمُعۡتَدِیۡنَ (۷۴)

بيا له هغو وروسته مونږ موسی ع او هارون ع له خپلو نښانو سره فرعون او د هغه سردارانو ته ولېږل ، خو هغوی د خپلي لويی غرور وکړ او هغوی مجرمان وو،

ثُمَّ بَعَثۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِہِمۡ مُّوۡسٰی وَ ہٰرُوۡنَ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَا۠ئِہٖ بِاٰیٰتِنَا فَاسۡتَکۡبَرُوۡا وَ کَانُوۡا قَوۡمًا مُّجۡرِمِیۡنَ (۷۵)

نو کله چي له مونږ څخه حق د هغو مخي ته راغی نو هغو وويل چي دا خوښکاره کوډې دي.

فَلَمَّا جَآءَہُمُ الۡحَقُّ مِنۡ عِنۡدِنَا قَالُوۡۤا اِنَّ ہٰذَا لَسِحۡرٌ مُّبِیۡنٌ (۷۶)

موسی وويل: " تاسي حق ته دا وايئ چي کله هغه ستاسي مخي ته راغی؟ ايا دا کوډې دي؟ په داسي حال کښي چي کوډګران برياليتوب نشي ميندلای .

قَالَ مُوۡسٰۤی اَتَقُوۡلُوۡنَ لِلۡحَقِّ لَمَّا جَآءَکُمۡ ؕ اَسِحۡرٌ ہٰذَا ؕ وَ لَا یُفۡلِحُ السّٰحِرُوۡنَ (۷۷)

هغو په ځواب کښي وويل: ايا ته ددې له پاره راغلي يې چي مونږ له هغي تګلارې نه راواړوې چي پر هغې مونږ خپل پلرونه نيکونه موندلي دي او په ځمکه کښي ستاسي دواړو لويي بر قراره شي؟ مونږ خو ستاسي د خبرې منونکي نه يو."

قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا لِتَلۡفِتَنَا عَمَّا وَجَدۡنَا عَلَیۡہِ اٰبَآءَنَا وَ تَکُوۡنَ لَکُمَا الۡکِبۡرِیَآءُ فِی الۡاَرۡضِ ؕ وَ مَا نَحۡنُ لَکُمَا بِمُؤۡمِنِیۡنَ (۷۸)

او فرعون ( خپلو کسانو ته ) وويل چي " د کوډو په فن کښي هر ماهر ماته راولئ

وَ قَالَ فِرۡعَوۡنُ ائۡتُوۡنِیۡ بِکُلِّ سٰحِرٍ عَلِیۡمٍ (۷۹)

کله چي کوډګران راغلل نو موسی هغو ته وويل " تاسي چي د کومو شيانو غورځونکي ياست هغه وغورځوی".

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَۃُ قَالَ لَہُمۡ مُّوۡسٰۤی اَلۡقُوۡا مَاۤ اَنۡتُمۡ مُّلۡقُوۡنَ (۸۰)

نو کله چي هغوی خپل منترونه (همساګاني او پړي واچول نو موسی ع وويل" دا څه چي تاسي اچولي دي دا کوډې دي، الله همدا اوس دا باطلوي ، د مفسدانو کار ته الله سمون نه وربښي،

فَلَمَّاۤ اَلۡقَوۡا قَالَ مُوۡسٰی مَا جِئۡتُمۡ بِہِ ۙ السِّحۡرُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ سَیُبۡطِلُہٗ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُصۡلِحُ عَمَلَ الۡمُفۡسِدِیۡنَ (۸۱)

او الله په خپلو فرمانونو سره حق حق ښيي ، که د مجرمانو هغه هر څومره بد ښسي"

وَ یُحِقُّ اللّٰہُ الۡحَقَّ بِکَلِمٰتِہٖ وَ لَوۡ کَرِہَ الۡمُجۡرِمُوۡنَ (۸۲)

نو وګورئ چي ) موسی ع د هغه د قوم له څو تنو زلميانو نه پرته )
نور چا ونه مانه ، د فرعون له وېرې او په خپله د خپل قوم د مشرانو له وېرې څخه ( هغوی وېرېدل ) چي فرعون به هغوی په عذاب کښي اخته کړي. او واقعيت دادی چي فرعون په ځمکه کښي برلاسي درلودله او هغه له هغو خلکو څخه وْ چي په هېڅ پوله نه .تمېږي

فَمَاۤ اٰمَنَ لِمُوۡسٰۤی اِلَّا ذُرِّیَّۃٌ مِّنۡ قَوۡمِہٖ عَلٰی خَوۡفٍ مِّنۡ فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَا۠ئِہِمۡ اَنۡ یَّفۡتِنَہُمۡ ؕ وَ اِنَّ فِرۡعَوۡنَ لَعَالٍ فِی الۡاَرۡضِ ۚ وَ اِنَّہٗ لَمِنَ الۡمُسۡرِفِیۡنَ (۸۳)

موسی خپل قوم ته وويل چي " ای خلکو ! که تاسي په رښتيا سره پر الله ايمان لرئ نو پر هغه توکل وکړئ که مسلمانان يئ"

وَ قَالَ مُوۡسٰی یٰقَوۡمِ اِنۡ کُنۡتُمۡ اٰمَنۡتُمۡ بِاللّٰہِ فَعَلَیۡہِ تَوَکَّلُوۡۤا اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّسۡلِمِیۡنَ (۸۴)

هغو ځواب ورکړ" مونږ پرهمغه الله توکل وکړ، ای زمونږ ربه! مونږ د ظالمانو له پاره فتنه مه ګرځوه

فَقَالُوۡا عَلَی اللّٰہِ تَوَکَّلۡنَا ۚ رَبَّنَا لَا تَجۡعَلۡنَا فِتۡنَۃً لِّلۡقَوۡمِ الظّٰلِمِیۡنَ (۸۵)

او په خپل رحمت سره مونږ ته له کافرانو څخه نجات راکړه" –

وَ نَجِّنَا بِرَحۡمَتِکَ مِنَ الۡقَوۡمِ الۡکٰفِرِیۡنَ (۸۶)

او مونږ موسی او د هغه ورور ته وحی وکړه چي " په مصر کښي د خپل قوم له پاره څو کورونه تيار کړئ او خپل دغه کورونه قبله وګرځوئ او لمونځ قايم کړئ او مومنانو ته زيری ورکړئ "

وَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰی مُوۡسٰی وَ اَخِيۡهِ اَنۡ تَبَوَّاٰ لِقَوۡمِكُمَا بِمِصۡرَ بُيُوۡتًا وَّ اجۡعَلُوۡا بُيُوۡتَكُمۡ قِبۡلَةً وَّ اَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَ بَشِّرِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۸۷)

موسی دعا وکړه " ای زمونږ ربه ! تا پر فرعون او د هغه په سردارانو ددنيا په ژوند کښي ښکلا او مالونه لورولي دي. ای ربه ، ايا دا ددې له پاره دي چي هغوی خلك ستا له لارې نه بې لارې کړي؟ ای ربه ، د هغو مالونه تا لا والا کړه او د هغو پر زړونو مهر ووهه چي ايمان رانه وړي تر څو پورې يي چي دردناك عذاب نه وي کتلی"

وَ قَالَ مُوۡسٰی رَبَّنَاۤ اِنَّكَ اٰتَيۡتَ فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَاَهٗ زِيۡنَةً وَّ اَمۡوَالًا فِی الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِكَ ۚ رَبَّنَا اطۡمِسۡ عَلٰۤی اَمۡوَالِهِمۡ وَ اشۡدُدۡ عَلٰی قُلُوۡبِهِمۡ فَلَا يُؤۡمِنُوۡا حَتّٰی يَرَوُا الۡعَذَابَ الۡاَلِيۡمَ (۸۸)

الله تعالی په ځواب کښي وفرمايل " ستاسي د واړو دعا قبوله کړای شوه . ثابت قدم اوسئ او د هغو خلکو د کړنچارې پيروي هيڅکله مه کوئ چي علم نلري.

قَالَ قَدۡ اُجِيۡبَتۡ دَّعۡوَتُكُمَا فَاسۡتَقِيۡمَا وَ لَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيۡلَ الَّذِيۡنَ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۸۹)

او مونږ بني اسرائيل له سمندر نه پورې وېستل . نو فرعون او د هغه لښکر د ظلم او تيري په غرض په هغو پسې روان شول ، آن تر دې چي کله فرعون په غر قېدو شونو غږ يي وکړ: " ما ومنله چي له هغه ذات نه پرته بل حقيقي خدای نشته چي پر هغه بني اسرائيلو ايمان راوړيدی، او زه هم داطاعت سرټيټوونکو څخه يم ".

وَ جٰوَزۡنَا بِبَنِیۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ الۡبَحۡرَ فَاَتۡبَعَهُمۡ فِرۡعَوۡنُ وَ جُنُوۡدُهٗ بَغۡيًا وَّ عَدۡوًا ؕ حَتّٰۤی اِذَاۤ اَدۡرَكَهُ الۡغَرَقُ ۙ قَالَ اٰمَنۡتُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِیۡۤ اٰمَنَتۡ بِهٖ بَنُوۡۤا اِسۡرَآءِيۡلَ وَ اَنَا مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ (۹۰)

ځواب ورکړ شو ) اوس ايمان راوړې ! په داسي حال کښي چي له ( دېنه لږ مخکښي پورې خو دې نافرماني کوله او له فساد کوونکيو . څخه وې

آٰلۡـٰٔنَ وَ قَدۡ عَصَيۡتَ قَبۡلُ وَ كُنۡتَ مِنَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ (۹۱)

اوس به نو مونږ يوازې ستا جوسه وژغورو تر څو له تا نه وروسته ځوځات له پاره د عبرت نښه وګرځي که څه هم چي زياتره انسانان داسي دي چي زمونږ له نښانو څخه غفلت کوي".

فَالۡيَوۡمَ نُنَجِّيۡكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوۡنَ لِمَنۡ خَلۡفَكَ اٰيَةً ؕ وَ اِنَّ كَثِيۡرًا مِّنَ النَّاسِ عَنۡ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوۡنَ (۹۲)

مونږ بني اسرائيلو ته ډېر ښه استوګنځی ورکړ او هغو ته مو د ژوند ډېر سوتره وسايل وروبښل نو هغو په خپلو مينځو کښي اختلاف ونکړ مګر هغه وخت چي کله هغو ته علم راغلی وْ . په باوري ډول به ستا رب د قيامت په ورځ د هغو په مينځ کښي د هغه شي فيصله وکړي چي په هغه کښي هغوی اختلاف کوي.

وَ لَقَدۡ بَوَّاۡنَا بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ مُبَوَّاَ صِدۡقٍ وَّ رَزَقۡنٰهُمۡ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۚ فَمَا اخۡتَلَفُوۡا حَتّٰی جَآءَهُمُ الۡعِلۡمُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ يَقۡضِیۡ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ فِيۡمَا كَانُوۡا فِيۡهِ يَخۡتَلِفُوۡنَ (۹۳)

اوس که ستا د هغه هدايت له پلوه لږ غوندې شك هم وي چي مونږ پر تا نازل کړيدی نو له هغو خلکو نه پوښتنه وکړه چي له پخوا نه کتاب لولي. په واقع کښي دا ستا د رب له لوري تا ته حق راغلی دی، له دې کبله ته له شك کوونکو څخه مه کېږه

فَاِنۡ كُنۡتَ فِیۡ شَكٍّ مِّمَّاۤ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ فَسۡـَٔلِ الَّذِيۡنَ يَقۡرَءُوۡنَ الۡكِتٰبَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۚ لَقَدۡ جَآءَكَ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ (۹۴)

او په هغو خلکو کښي مه شاملېږه چي هغو د الله ايتونه دروغ ګڼلي دي، که نه نو له زيانکارانو څخه به يې.

وَ لَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَتَكُوۡنَ مِنَ الۡخٰسِرِيۡنَ (۹۵)

حقيقت دادی پر کومو خلکو چي ستا د رب خبره ريښتيني شوې ده هغوی هېڅکله ايمان نه راوړي

اِنَّ الَّذِيۡنَ حَقَّتۡ عَلَيۡهِمۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ (۹۶)

اګر که د هغو مخې ته هره نښه نښانه راشي تر څو مخامخ دردناك عذاب ونه ګوري.

وَ لَوۡ جَآءَتۡهُمۡ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰی يَرَوُا الۡعَذَابَ الۡاَلِيۡمَ (۹۷)

نو ایا داسي کوم مثال شته چي یوې سیمي د عذاب په لیدلو ایمان راوړی وي او د هغې ایمان د هغې له پاره ګټور ثابت شوی وي؟ دیونسع له قوم نه پرته ( دهغه کوم مثال نشته ). هغه قوم چي کله ایمان راوړی وُ نو البته مونږ په دنیوي ژوند کښي له هغو نه درسوايي عذاب ايسته کړی وُ او هغو ته مو تر يوې مودې پورې له ژوندانه څخه د ګټې اخيستلو مهلت ورکړی وُ.

فَلَوۡ لَا كَانَتۡ قَرۡيَةٌ اٰمَنَتۡ فَنَفَعَهَاۤ اِيۡمَانُهَاۤ اِلَّا قَوۡمَ يُوۡنُسَ ؕ لَمَّاۤ اٰمَنُوۡا كَشَفۡنَا عَنۡهُمۡ عَذَابَ الۡخِزۡىِ فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَ مَتَّعۡنٰهُمۡ اِلٰى حِيۡنٍ (۹۸)

که ستا درب اراده دا وای ( چي په ځمکه کښي دې ټول مؤمنان او فرمانبردار اوسي ) نو د ځمکي ټولو اوسېدونکو به ایمان راوړی وای. نو ایا ته خلك مجبور وې چي ایمان راوړي؟

وَ لَوۡ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنۡ فِى الۡاَرۡضِ كُلُّهُمۡ جَمِيۡعًا ؕ اَفَاَنۡتَ تُكۡرِهُ النَّاسَ حَتّٰى يَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ (۹۹)

هيڅ ساکښ د الله له اذن نه پرته ایمان نشي راوړلی ، او د الله کړنلاره داده چي کوم کسان چي له پوهې نه کار نه اخلي پر هغو چټلي اچوي.

وَ مَا كَانَ لِنَفۡسٍ اَنۡ تُؤۡمِنَ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰهِ ؕ وَ يَجۡعَلُ الرِّجۡسَ عَلَى الَّذِيۡنَ لَا يَعۡقِلُوۡنَ (۱۰۰)

دوی ته ووایه " په اسمانونو او ځمکه کښي څه دي هغه په غربدلو سترګو وګورئ" او کوم خلك چي له سره ایمان راوړل نه غواړي د هغو له پاره نښاني او اخطار ونه مدافع ګټور کیدای نه شي.

قُلِ انۡظُرُوۡا مَاذَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ مَا تُغۡنِى الۡاٰيٰتُ وَ النُّذُرُ عَنۡ قَوۡمٍ لَّا يُؤۡمِنُوۡنَ (۱۰۱)

اوس دوی له دې نه پرته د بل څه شي انتظار باسي چي همغه بدې ورځې وګوری چي له دوی نه مخکښي تېرو شوېو خلکو لیدلي دي؟ دوی ته ووایه " ښه نو انتظار وباسئ زه هم له تاسي سره منتظر یم"

فَهَلۡ يَنۡتَظِرُوۡنَ اِلَّا مِثۡلَ اَيَّامِ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ قُلۡ فَانۡتَظِرُوۡۤا اِنِّىۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُنۡتَظِرِيۡنَ (۱۰۲)

بیا ( کله چي داسي وخت راځي نو ) مونږ خپلو پېغمبرانو او هغو کسانو ته نجات ورکوو چي ایمان یې راوړی وي. زمونږ همدا کړنلاره ده . پر مونږ دا حق دی چي مؤمنان وژغورو .

ثُمَّ نُنَجِّىۡ رُسُلَنَا وَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا كَذٰلِكَ ۚ حَقًّا عَلَيۡنَا نُنۡجِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۰۳)

ای پېغمبره ! ووایه چي ای خلکو ، که تاسي تر اوسه پورې زما ددین په باب څه شك کښي یاست نو واورئ چي تاسي چي له الله نه پرته د کومو بندګي کوئ زه د هغو بندګي نه کوم بلکي یوازې د هغه خدای بندګي کوم چي ستاسي مرګ د هغه په واك کښي دی. ما ته حکم شویدی چي زه له ایمان راوړونکو څخه اوسم.

قُلۡ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنۡ كُنۡتُمۡ فِىۡ شَكٍّ مِّنۡ دِيۡنِىۡ فَلَاۤ اَعۡبُدُ الَّذِيۡنَ تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَ لٰكِنۡ اَعۡبُدُ اللّٰهَ الَّذِىۡ يَتَوَفّٰٮكُمۡ ۖۚ وَ اُمِرۡتُ اَنۡ اَكُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۰۴) ۙ

او ماته ویل شویدي چي ته یوې خواته اوسه خپل ځان سم سیخ پر دغه دین قائم کړه، او هېڅکله له مشرکانو څخه مه کېږه.

وَ اَنۡ اَقِمۡ وَجۡهَكَ لِلدِّيۡنِ حَنِيۡفًا ۚ وَ لَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ (۱۰۵)

او له الله نه پرته کومه داسي هستي مه بله چي نه درته ګټه رسولی شي نه زیان . که ته داسي وکړې نو له ظالمانو نه به یې.

وَ لَا تَدۡعُ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنۡفَعُكَ وَ لَا يَضُرُّكَ ۚ فَاِنۡ فَعَلۡتَ فَاِنَّكَ اِذًا مِّنَ الظّٰلِمِيۡنَ (۱۰۶)

که الله تا په کوم مصیبت کښي واچوي نو په خپله له هغه پرته بل څوك نشته چي د ا مصیبت ایسته کړي، او که هغه ستا په باب د کومي ښېګڼي اراده وکړي نو د هغه د فضل مخ اړوونکی هم څوك نشته . د هغه چي له خپلو بندګانو نه چاته خوښه شي خپل فضل وروباندې پېرزو کوي او هغه ښونکی او رحم کوونکی دی.

وَ اِنۡ يَّمۡسَسۡكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗۤ اِلَّا هُوَ ۚ وَ اِنۡ يُّرِدۡكَ بِخَيۡرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضۡلِهٖ ؕ يُصِيۡبُ بِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ ؕ وَ هُوَ الۡغَفُوۡرُ الرَّحِيۡمُ (۱۰۷)

اى محمده! ووايه چي" اى خلكو ! تاسي ته ستاسي د رب له لوري حق راغلى دى. اوس چي څوك سمه لاره غوره كړي د هغه سم حركت د هماغه له پاره گټور دى، او څوك چي گمراه پاتي شي د هغه گمراهي د هماغه له پاره تباه كوونكي ده. او زه پرتاسي كوم څارندوى نه يم "

قُلۡ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدۡ جَآءَكُمُ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّكُمۡ ۚ فَمَنِ اهۡتَدٰى فَاِنَّمَا يَهۡتَدِىۡ لِنَفۡسِهٖ ۚ وَ مَنۡ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيۡهَا ۚ وَ مَاۤ اَنَا عَلَيۡكُمۡ بِوَكِيۡلٍ (١٠٨)ؕ

او اى پېغمبره ، ته د هغې لارښووني پيروي كوه چي تا ته د وحي په وسيله ليږله كېږي، او صبر وكړه تر څو الله فيصله وكړي ، او همغه ډېر ښه فيصله كوونكى دى.

وَ اتَّبِعۡ مَا يُوۡحٰۤى اِلَيۡكَ وَ اصۡبِرۡ حَتّٰى يَحۡكُمَ اللّٰهُ ۖۚ وَ هُوَ خَيۡرُ الۡحٰكِمِيۡنَ (١٠٩)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ا ،ل ، ر ، داسي فرمان دى چي ايتونه يي په پاخه او مفصل ډول ويل شويدي، د يو حكيم او باخبره ذات له خوا ،

الٓرٰ ۟ كِتٰبٌ اُحۡكِمَتۡ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتۡ مِنۡ لَّدُنۡ حَكِيۡمٍ خَبِيۡرٍ ۙ(١)

چي تاسي بندگي مه كوئ مگر يوازې د الله . زه د هغه له لوري څخه ستاسي ويروونكى هم يم او زيرى دركوونكى هم.

اَلَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنَّنِىۡ لَكُمۡ مِّنۡهُ نَذِيۡرٌ وَّ بَشِيۡرٌ ۙ(٢)

او دا چي كه تاسي له خپل پروردگار نه ښښنه وغواړئ او د هغه لوري ته راوگرځئ نو هغه به تر يوې ټاكلي مودې پورې تاسي ته د ژوند ښه وسايل دركړي او هر د فضل خاوند ته به د هغه فضل وركړي. خو كه تاسي مخ واړوئ نو زه ستاسي په باب د يوې لويې هيبتناكي ورځي له عذاب څخه وېرېږم.

وَّ اَنِ اسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّكُمۡ ثُمَّ تُوۡبُوۡۤا اِلَيۡهِ يُمَتِّعۡكُمۡ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّ يُؤۡتِ كُلَّ ذِىۡ فَضۡلٍ فَضۡلَهٗ ؕ وَ اِنۡ تَوَلَّوۡا فَاِنِّىۡۤ اَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ كَبِيۡرٍ (٣)

د الله لوري ته ستاسي ټولو ورگرځېدل دي او هغه هر څه كولاى شي.

اِلَى اللّٰهِ مَرۡجِعُكُمۡ ۚ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ (٤)

وگورئ! دوى خپلي سيني تاووي تر څو له هغه نه ځان پټ كړي خبردار اوسئ ! كله چي دوى په جامو سره خپل ځان نغاړي، الله ددوى په پټو هم پوهېږي او په ښكاره وْ هم ، هغه خو پر هغو رازونو هم پوهېږي چي په سينو كښي دي.

اَلَاۤ اِنَّهُمۡ يَثۡنُوۡنَ صُدُوۡرَهُمۡ لِيَسۡتَخۡفُوۡا مِنۡهُ ؕ اَلَا حِيۡنَ يَسۡتَغۡشُوۡنَ ثِيَابَهُمۡ ۙ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّوۡنَ وَ مَا يُعۡلِنُوۡنَ ۚ اِنَّهٗ عَلِيۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ (٥)

په ځمكه كښي هېڅ داسي كوم خوځنده ساكښ نشته چي د هغه روزي د الله په غاړه نه وي او د هغه په باب هغه ونه پوهېږي چي هغه چېرته اوسېږي او چېرته هغه سپارل كېږي، هر څه په يو روښانه دفتر كښي ثبت دي.

وَ مَا مِنۡ دَآبَّةٍ فِى الۡاَرۡضِ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزۡقُهَا وَ يَعۡلَمُ مُسۡتَقَرَّهَا وَ مُسۡتَوۡدَعَهَا ؕ كُلٌّ فِىۡ كِتٰبٍ مُّبِيۡنٍ (٦)

او هماغه ذات دى چي اسمانونه او ځمكه يي په شپږو ورځو كښي پيدا كړل، چي له هغه نه مخكښي د هغه عرش پراوبو باندې وْ ، تر څو تاسي وازمايي وگوري، چي په تاسو كښي څوك د غوره كړو وړو خاوند دى. اوس كه اى محمده ! ته ووايي چي اى خلكو ! له مرگه وروسته به تاسي ددوهم ځل له پاره راپاڅول شئ نو منكران به سمدلاسه ووايي چي دا خوښكاره كوډې دي.

وَ هُوَ الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِىۡ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّ كَانَ عَرۡشُهٗ عَلَى الۡمَآءِ لِيَبۡلُوَكُمۡ اَيُّكُمۡ اَحۡسَنُ عَمَلًا ؕ وَ لَئِنۡ قُلۡتَ اِنَّكُمۡ مَّبۡعُوۡثُوۡنَ مِنۡۢ بَعۡدِ الۡمَوۡتِ لَيَقُوۡلَنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اِنۡ هٰذَاۤ اِلَّا سِحۡرٌ مُّبِيۡنٌ (٧)

او كه مونږ تر يوې ټاكلي مودې پورې د هغو عذاب وځنډوو نو هغوى به وايي چي كوم شي هغه ايسار كړيدى؟ واورئ په كومه ورځ چي د هغې سزا وخت راشي نو هغه به د هېچا په اړولو وانه ړوله شي او هماغه شى به هغوى را ايسار كړي چي هغوى وريورې ملنډې وهي.

وَ لَئِنۡ اَخَّرۡنَا عَنۡهُمُ الۡعَذَابَ اِلٰۤى اُمَّةٍ مَّعۡدُوۡدَةٍ لَّيَقُوۡلُنَّ مَا يَحۡبِسُهٗ ؕ اَلَا يَوۡمَ يَاۡتِيۡهِمۡ لَيۡسَ مَصۡرُوۡفًا عَنۡهُمۡ وَ حَاقَ بِهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ (٨)

اوكه چيږي موږ انسان ته خپل رحمت په برخه كړو او بيايې بېرته ورڅخه واخلو نو هغه ناهيلي كيږي او په ناشكرئ لاس پورې كوي.

وَ لَئِنْ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ ۚ اِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ (٩)

او كه له هغه كړاو نه وروسته چې پر هغه راغلى وْ مونږ پر هغه د نعمت خوند څكونو وايي زما ټوله بيوزلي ايسته شوه، بيا هغه ډېره خوښي كوي او وياړي.

وَ لَئِنْ اَذَقْنٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُوْلَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّىْ ؕ اِنَّهٗ لَفَرِحٌ فَخُوْرٌ (١٠)

له دې عيب نه كه څوك پاك دي نو صرف هغه كسان چې صبر كوونكي او نيكوكاران دي او همغوى دي چې د هغوى له پاره هم ښنه ده او هم لوى مكافات.

اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ اُولٰئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ اَجْرٌ كَبِيْرٌ (١١)

نو اى پېغمبره ! چېرته داسې نه وي چې ته له هغو شيانو څخه كوم شى ( له وينا نه ) پرېږدې چې تا ته وحې كيږي او پردې خبره زړه تنګى شي چې هغوى به ووايي چې " پردې سرې كومه خزانه ولې راتوى نشوه " يا دا چې " له ده سره كومه پرښته ولې رانغله " ته خو يوازې خبردارى وركوونكى يې ، هاخوا د هر څه څارونكى الله دى.

فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ وَ ضَآئِقٌۢ بِهٖ صَدْرُكَ اَنْ يَّقُوْلُوْا لَوْ لَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ جَآءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ؕ اِنَّمَاۤ اَنْتَ نَذِيْرٌ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ وَّكِيْلٌ (١٢ؕ)

ايا دوى وايي چې پېغمبر داكتاب له ځانه په دروغو جوړ كړى دى؟ ووايه " ښه كه داسې ده نو دده په څېر لس سورتونه په دروغو جوړكړي راوړئ او له الله نه پرته نور چې هرڅوك ( ستاسې معبودان ) دي هغوى كه د مرستې له پاره رابللى شئ.نو راويې بلئ كه تاسې ( ددوى په معبود ګڼلو كښې) رېښتينوني ياست

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهٖ مُفْتَرَيٰتٍ وَّ ادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (١٣)

اوس كه هغوى ( ستاسې معبودان ) ستاسې مرستې ته نه رسيږي نو وپوهيږئ چې دا د الله په علم سره نازل شويدى او داچې له الله نه پرته كوم بل حقيقي معبود نشته ، نو ايا تاسې ( ددې حق په وړاندې ) د منښتې سرښكته كوئ؟

فَاِلَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ فَاعْلَمُوْا اَنَّمَاۤ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَ اَنْ لَّاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ (١٤)

كوم خلك چې يوازې د همدې دنيا د ژوند او د هغې د ښكلاوْ غوښتونكي وي د هغو د كړو وړو ټوله ميوه مونږ همدلته وركوو او په دې كښې له هغو سره هېڅ كمى نه كيږي .

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ فِيْهَا وَ هُمْ فِيْهَا لَا يُبْخَسُوْنَ (١٥)

خو په اخرت كښې ددغه راز خلكو له پاره له اوره پرته نور څه نشته . ( هلته به معلومه شي چې ) څه چې هغوى په دنيا كښې كړيدي هغه ټول خاورې ايرې شول او اوس د هغو ټول كړه وړه محض باطل دي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَيْسَ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّارُ ۖ وَ حَبِطَ مَا صَنَعُوْا فِيْهَا وَ بٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١٦)

ښه نو هغه څوك چې د خپل رب له لورې يوه څرګنده شاهدي يې درلودله له هغې وروسته يو (بل ) شاهد هم د پروردګار له خوا ( ددې شاهدى په تائيد كښې ) راغى، او مخكښې د موسى ع كتاب هم د لارښود او رحمت په ډول راغلى موجود وْ ( ايا هغوى هم د ماديت پرستانو غوندې ورنه انكار كولى شي؟) داسې كسان خو به پرده ايمان راوړي. او له انساني ډلو نه چې هر څوك ورنه انكار وكړي نو د هغه له پاره چې د كوم ځاى وعده ده هغه دوزخ دى. نواى پېغمبره! ته ددې شي له پلوه په كوم شك كښې مه لوېږه دا حق دى ستا درب له لورې خو زياتره خلك يې نه مني.

اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ وَ يَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ وَ مِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰٓى اِمَامًا وَّ رَحْمَةً ؕ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَ مَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ ۚ فَلَا تَكُ فِیْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ * اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ (١٧)

او له هغه چانه به بل غټ ظالم څوك وي چې پر الله دروغ وتړي؟ دغه راز خلك به د خپل رب حضور ته وړاندې كړاى شي او شاهدان به شاهدي ووايي چې دادي هغه خلك چې پر خپل رب يې دروغ تړلي وو. واورئ ! پر ظالمانو د خداى لعنت دى.

وَ مَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰہِ کَذِبًا ؕ اُولٰٓئِکَ یُعۡرَضُوۡنَ عَلٰی رَبِّہِمۡ وَ یَقُوۡلُ الۡاَشۡہَادُ ہٰۤؤُلَآءِ الَّذِیۡنَ کَذَبُوۡا عَلٰی رَبِّہِمۡ ۚ اَلَا لَعۡنَۃُ اللّٰہِ عَلَی الظّٰلِمِیۡنَ (۱۸)

پر هغو ظالمانو چې د خداى له لارې نه خلك منع كوي، د هغه د لارې كوږ والى غواړي او له اخرت نه منكريږي،

الَّذِیۡنَ یَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ وَ یَبۡغُوۡنَہَا عِوَجًا ؕ وَ ہُمۡ بِالۡاٰخِرَۃِ ہُمۡ کٰفِرُوۡنَ (۱۹)

دوى په ځمكه كښې د الله بېوسې كوونكي نه وو او نه د الله په مقابل كښې څوك ددوى ملاتړ وُ دوى ته به اوس دوچند عذاب وركړل شي. دوى نه د بل چا اوريداى شوه او نه يې په خپله غور كاوه.

اُولٰٓئِکَ لَمۡ یَکُوۡنُوۡا مُعۡجِزِیۡنَ فِی الۡاَرۡضِ وَ مَا کَانَ لَہُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ مِنۡ اَوۡلِیَآءَ ۘ یُضٰعَفُ لَہُمُ الۡعَذَابُ ؕ مَا کَانُوۡا یَسۡتَطِیۡعُوۡنَ السَّمۡعَ وَ مَا کَانُوۡا یُبۡصِرُوۡنَ (۲۰)

دوى هغه خلك دي چې خپل ځان يې په خپله په زيان كښې واچو او هغه هر څه ورنه ورك شول چې دوى د روغ تړلي وو.

اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَہُمۡ وَ ضَلَّ عَنۡہُمۡ مَّا کَانُوۡا یَفۡتَرُوۡنَ (۲۱)

له دې پرته بله لاره نشته چې همدوى په اخرت كښې تر ټولو زيات زيانمن اوسي.

لَا جَرَمَ اَنَّہُمۡ فِی الۡاٰخِرَۃِ ہُمُ الۡاَخۡسَرُوۡنَ (۲۲)

پاتې شول هغه خلك چې ايمان يې راوړ او ښه كارونه يې وكړل او يوازې خپل رب ته په عاجزى شول، نو په يقيني ډول هغوى جنتيان دي او په جنت كښې به هغوى د تل له پاره اوسيږي.

اِنَّ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ اَخۡبَتُوۡۤا اِلٰی رَبِّہِمۡ ۙ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّۃِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۲۳)

ددې د واړو ډلو مثال داسې دى لكه چې يو انسان ړوند كوڼ وي او بل ليدونكى او اوريدونكى ، ايا دا دواړه يو شان كيداى شي؟ ايا تاسې له دې مثال نه څه درس نه اخلئ؟

مَثَلُ الۡفَرِیۡقَیۡنِ کَالۡاَعۡمٰی وَ الۡاَصَمِّ وَ الۡبَصِیۡرِ وَ السَّمِیۡعِ ؕ ہَلۡ یَسۡتَوِیٰنِ مَثَلًا ؕ اَفَلَا تَذَکَّرُوۡنَ (۲۴)

او همدغسې حالات وو چې ) مونږ نوح (ع) د هغه قوم ته لېږلى ) زه تاسې ته په ډاګه څرګنده خبردارى دركوم " ( وُ . ( هغه وويل

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا اِلٰی قَوۡمِہٖۤ ۫ اِنِّیۡ لَکُمۡ نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ (۲۵)

چې له الله ج نه پرته د هيچا بندګي ونه كړئ كه نه نو زه انديښمن يم چې پر تاسې به يوه ورځ دردناك عذاب نازل شي"

اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰہَ ؕ اِنِّیۡۤ اَخَافُ عَلَیۡکُمۡ عَذَابَ یَوۡمٍ اَلِیۡمٍ (۲۶)

په ځواب كښې دهغه د قوم هغو مشرانو چې د هغه د خبرې له منلو نه يې انكار كړى وُ ، وويل " زمونږ په نظر كښې خو ته له دې پرته نور څه نه يې چې صرف زمونږ غوندې يو انسان يې او مونږ ګورو چې زمونږ له قوم نه صرف هغو كسانو چې زمونږ په نزد ټيټ خلك وو او بې فكره اوبې سنجشه يې ستا پيروي غوره كړېده. او مونږ هيڅ شى هم داسې نه مومو چې په هغه كښې تاسې له مونږ نه څه تفوق ولرئ ، بلكې مونږ خو تاسې دروغجن ګڼو"

فَقَالَ الۡمَلَاُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ قَوۡمِہٖ مَا نَرٰىکَ اِلَّا بَشَرًا مِّثۡلَنَا وَ مَا نَرٰىکَ اتَّبَعَکَ اِلَّا الَّذِیۡنَ ہُمۡ اَرَاذِلُنَا بَادِیَ الرَّاۡیِ ۚ وَ مَا نَرٰی لَکُمۡ عَلَیۡنَا مِنۡ فَضۡلٍۭ بَلۡ نَظُنُّکُمۡ کٰذِبِیۡنَ (۲۷)

هغه وويل" اى زما قومه ! لږ شان فكر وكړئ چې كه زه د خپل رب له لوري پر يوې څرګندې شاهدى ولاړوم او بيا هغه زه په خپل ځانګړي رحمت سره هم سر لوړى كړم خو هغه تاسې ونشوه ليدلى ښه نو له مونږ سره څه وسيله ده چې تاسې منل نه غواړئ او مونږ په زوره هغه ستاسې پر سر وتپو؟

قَالَ یٰقَوۡمِ اَرَءَیۡتُمۡ اِنۡ کُنۡتُ عَلٰی بَیِّنَۃٍ مِّنۡ رَّبِّیۡ وَ اٰتٰىنِیۡ رَحۡمَۃً مِّنۡ عِنۡدِہٖ فَعُمِّیَتۡ عَلَیۡکُمۡ ؕ اَنُلۡزِمُکُمُوۡہَا وَ اَنۡتُمۡ لَہَا کٰرِہُوۡنَ (۲۸)

او ای قومه ! زه پردې وظیفه له تاسي نه کوم مال نه غواړم ، زما اجر خو پر الله دی. او زه د هغو خلکو شړونکی هم نه یم چې زما خبره یې منلې ده ، هغوی په خپله د خپل رب حضور ته ورتلونکي دي. خو زه ګورم چې تاسي جهالت غوره کوئ

وَ يٰقَوۡمِ لَاۤ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مَالًا ؕ اِنۡ اَجۡرِىَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ وَ مَاۤ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ؕ اِنَّهُمۡ مُّلٰقُوۡا رَبِّهِمۡ وَ لٰكِنِّىۡۤ اَرٰٮكُمۡ قَوۡمًا تَجۡهَلُوۡنَ (۲۹)

او ای قومه ! که زه دغه خلك وشړم نو د خدای له نیوني څخه به ما څوك وژغوري؟ ستاسي په ذهن کښي ایا دومره خبره هم نه کښیني؟

وَ يٰقَوۡمِ مَنۡ يَّنۡصُرُنِىۡ مِنَ اللّٰهِ اِنۡ طَرَدْتُّهُمۡ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ (۳۰)

او زه تاسي ته نه وایم چې له ما سره د الله خزاني دي، نه دا وایم چې زه د غېبو علم لرم ، نه دا دعوه کوم چې زه پرښته یم. او زه دا هم نشم ویلی چې کوم خلك چې ستاسي سترګي ورته په سپکه ګوري هغو ته به الله کومه ښېګڼه ورنه کړي د هغو د نفسونو پر حالت الله ډېر ښه پوهېږي که زه داسي ووایم نو ظالم به یم."

وَ لَاۤ اَقُوۡلُ لَـكُمۡ عِنۡدِىۡ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَ لَاۤ اَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ وَ لَاۤ اَقُوۡلُ اِنِّىۡ مَلَكٌ وَّ لَاۤ اَقُوۡلُ لِلَّذِيۡنَ تَزۡدَرِىۡۤ اَعۡيُنُكُمۡ لَنۡ يُّؤۡتِيَهُمُ اللّٰهُ خَيۡرًا ؕ اَللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ ۖۚ اِنِّىۡۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيۡنَ (۳۱)

په پای کښي هغوی وویل چې " ای نوح ع ! تا له مونږ سره جګړه وکړه او ډېره دې وکړه. اوس نو زیاتي هغه عذاب راوله چې ته مونږ ته د هغه اخطار راکوې که ریښتونی یې ".

قَالُوۡا يٰـنُوۡحُ قَدۡ جٰدَلۡتَنَا فَاَكۡثَرۡتَ جِدَالَنَا فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ (۳۲)

نوحع ځواب ورکړ" هغه خو به الله راولي ، که خوښه یې شي ، او تاسي دومره زور وس نلرئ چې د هغي مخنیوی وکړئ

قَالَ اِنَّمَا يَاۡتِيۡكُمۡ بِهِ اللّٰهُ اِنۡ شَآءَ وَ مَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ (۳۳)

او س که زه ستاسي څه خېر ښېګڼه هم وغواړم نو زما خیر غوښتنه تاسي ته هېڅ ګټه نشي رسولی کله چې الله ستاسي د بې لارې توب اراده کړې وي، همغه ستاسي رب دی او دهمغه لوري ته ستاسي ورستنېدل دي".

وَ لَا يَنۡفَعُكُمۡ نُصۡحِىۡۤ اِنۡ اَرَدْتُّ اَنۡ اَنۡصَحَ لَـكُمۡ اِنۡ كَانَ اللّٰهُ يُرِيۡدُ اَنۡ يُّغۡوِيَكُمۡ ؕ هُوَ رَبُّكُمۡ وَ اِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ (۳۴ؕ)

ای محمدهص ! ایا دا خلك وایي چې دغه سړي دا هر څه په خپله له ځانه دروغ جوړکړیدي؟ دوی ته ووایه " که ما دا له خپله ځانه دروغ غوټه کړي وي نو پر ما د خپل جرم مسئولیت دی، او کوم جرم چې تاسي کوئ د هغه له مسئولیت نه زه خلاص یم ".

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰٮهُ ؕ قُلۡ اِنِ افۡتَرَيۡتُهٗ فَعَلَىَّ اِجۡرَامِىۡ وَ اَنَا بَرِىۡٓءٌ مِّمَّا تُجۡرِمُوۡنَ (۳۵)

نوح ع ته وحي وشوه چې ستا له قوم نه چې کومو خلکو ایمان راوړ هغو راوړ نو ر نو کوم منونکی نشته ،د هغو پر کړو وړو غمجن کېدل پرېږده.

وَ اُوۡحِىَ اِلٰى نُوۡحٍ اَنَّهٗ لَنۡ يُّؤۡمِنَ مِنۡ قَوۡمِكَ اِلَّا مَنۡ قَدۡ اٰمَنَ فَلَا تَبۡتَئِسۡ بِمَا كَانُوۡا يَفۡعَلُوۡنَ (۳۶ۖۚ)

او زمونږ تر څارني لاندي زمونږ له ښووني سره سم ديوی بېړۍ په جوړولو لاس پورې کړه او ګوره ، کومو خلکو چې ظلم کړیدی دهغو په حق کښي ماته څه سپارښ مه کوه.دوی ټول اوس ډوبېدونکي دي.

وَ اصۡنَعِ الۡـفُلۡكَ بِاَعۡيُنِنَا وَ وَحۡيِنَا وَ لَا تُخَاطِبۡنِىۡ فِى الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ۚ اِنَّهُمۡ مُّغۡرَقُوۡنَ (۳۷)

نوح ع بېړۍ جوړوله او د هغه د قوم له مشرانو څخه به چې څوك د هغه له څنګه تېریده په هغه پورې به يې ملنډې وهلې. هغه وویل" که تاسي په مونږ پورې ملنډې وهئ نو مونږ هم په تاسي پورې ملنډې وهو ،

وَ يَصۡنَعُ الۡـفُلۡكَ وَ كُلَّمَا مَرَّ عَلَيۡهِ مَلَاٌ مِّنۡ قَوۡمِهٖ سَخِرُوۡا مِنۡهُ ؕ قَالَ اِنۡ تَسۡخَرُوۡا مِنَّا فَاِنَّا نَسۡخَرُ مِنۡكُمۡ كَمَا تَسۡخَرُوۡنَ (۳۸ؕ)

ډېر ژر به تاسي ته په خپله معلومه شي چې پر چا هغه عذاب راځي چې هغه به رسوا کاندي او پر چا به هغه بلا را پریوځي چې ایسته یې نشي کړای.

فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ ۙ مَنۡ يَّاۡتِيۡهِ عَذَابٌ يُّخۡزِيۡهِ وَ يَحِلُّ عَلَيۡهِ عَذَابٌ مُّقِيۡمٌ (۳۹)

تر دې پورې چې کله زمونږ حکم راغی او هغه تنور راوخوټېده نو مونږ ووېل" د هر ډول څناورو يوه يوه جوړه په بېړۍ کښې واچوه، خپله کورنۍ هم – پرته له هغو کسانو چې مخکښې د هغو په باب وينا شوېده په دې کښې سپاره کړه او هغه کسان هم کښېنوه چې ايمان يې راوړيدی" او لږ غوندې خلك وو چې له نوح ع سره يې ايمان راوړی وْ ،

حَتّٰۤى اِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَ فَارَ التَّنُّوْرُ ۙ قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَ اَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ وَ مَنْ اٰمَنَ ؕ وَ مَاۤ اٰمَنَ مَعَهٗۤ اِلَّا قَلِيْلٌ (۴۰)

نوح ع ووېل: " سپاره شئ په دې کښې ، د هماغه الله په نوم سره دې ددې روانېدل هم ددې دربدل هم، زما رب ډېر غفور او رحيم دی".

وَ قَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَ مُرْسٰىهَا ؕ اِنَّ رَبِّیْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۴۱)

بېړۍ هغه خلك راخيستي روانه وه او هره څپه لکه دغره په شان راپورته کېدله . د نوحع زوی په ليرې فاصله کښې وْ . نوح ع ورته غږ وکړ" زويه ! له مونږ سره سپور شه ، له کافرانو سره مه اوسه ".

وَ هِیَ تَجْرِیْ بِهِمْ فِیْ مَوْجٍ كَالْجِبَالِ ۟ وَ نَادٰى نُوْحُ ابْنَهٗ وَ كَانَ فِیْ مَعْزِلٍ يّٰبُنَیَّ ارْكَبْ مَّعَنَا وَ لَا تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ (۴۲)

هغه راوگرځېدځواب يې ورکړ " زه همدا اوس پر يوه غره خېژم چې ما له اوبو نه وژغوري"نوح ع ووېل" نن کوم شی د الله له حکم نه ژغورونکی نشته پرته له دېنه چې همغه الله پر چاباندې رحم وکړي" ، په دې ترڅ کښې يوه څپه ددواړو په مېنځ کښې پرده شوه او هغه هم له غرقېدونکو څخه شو.

قَالَ سَاٰوِیْۤ اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِیْ مِنَ الْمَآءِ ؕ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ ۚ وَ حَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ (۴۳)

حکم وشو " ای ځمکې ! خپلې ټولې اوبه جذب کړه او ای اسمانه بند شه " بيا اوبه په ځمکه کښې کېناستلې ، پريکړه سرته ورسېده، بېړۍ پر جودي تم شوه ، او ووېل شول چې ايسته دې شي د ظالمانو قوم!

وَ قِيْلَ يٰۤاَرْضُ ابْلَعِیْ مَآءَكِ وَ يٰسَمَآءُ اَقْلِعِیْ وَ غِيْضَ الْمَآءُ وَ قُضِیَ الْاَمْرُ وَ اسْتَوَتْ عَلَى الْجُوْدِیِّ وَ قِيْلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ (۴۴)

نوح خپل رب ته غږ وکړ ويې ويل" ای زما ربه ، زما زوی زما له کورنۍ څخه دی او ستا وعده رېښتيا ده او ته له ټولو حاکمانو څخه لوی او غوره حاکم يې".

وَ نَادٰى نُوْحٌ رَّبَّهٗ فَقَالَ رَبِّ اِنَّ ابْنِیْ مِنْ اَهْلِیْ وَ اِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَ اَنْتَ اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ (۴۵)

په ځواب کښې يې ووېل: ای نوحه ع ! هغه ستا له کورنۍ څخه نه دی، هغه خو يو فاسد عمل دی ، نو ته له ما څخه د هغې خبرې غوښتنه مه کوه چې ته د هغې پر حقيقت نه پوهېږې زه تا ته نصحيت کوم چې خپل ځان د جاهلانو غوندې ونه گرځوې"

قَالَ يٰنُوْحُ اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ ۚ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ٭ۖ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ اِنِّیْۤ اَعِظُكَ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ (۴۶)

نوح ع سمدلاسه عرض وکړ " ای زما ربه ! زه تا ته پنا درووړم له دېنه چې له تانه هغه څه وغواړم چې زه پرې نه پوهېږم. که ته ماته ببښنه ونه کړې او رحم راباندې ونکړې نو زه به برباد شم"

قَالَ رَبِّ اِنِّیْۤ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِیْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَ اِلَّا تَغْفِرْ لِیْ وَ تَرْحَمْنِیْۤ اَكُنْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ (۴۷)

حکم وشو" ای نوحع ! کوز شه ، زما له لوري سلامتيا ا وبرکتونه دې پر تا او پر هغو کسانو وي چې ستا ملگري دي، او ځيني ډلې داسې هم شته چې له نعمتونو څخه به يې برخمن کړو؛ خو بيا به هغو ته زمونږ له لوري دردناك عذاب ورسېږي"

قِيْلَ يٰنُوْحُ اهْبِطْ بِسَلٰمٍ مِّنَّا وَ بَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَ عَلٰۤى اُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَكَ ؕ وَ اُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۴۸)

ای محمدهص ! دا غيبي خبرونه دي چې مونږ يې تا ته وحي کوو. له دېنه مخکښې نه ته ورباندې پوهېدلې، نه ستا قوم؛ نو صبر وکړه، نتيجه د پرهېزگارانو په گټه ده.

تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهَاۤ اِلَيْكَ ۚ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَاۤ اَنْتَ وَ لَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هٰذَا ۛؕ فَاصْبِرْ ۛؕ اِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِيْنَ (۴۹)

او دعاديانو لوري ته مونږ د هغو ورور هود ولېږه. هغه وويل "اى قومه ! د الله بندگي وكړئ، له هغه پرته ستاسې بل هېڅ كوم خداى نشته . تاسې محض دروغ غوټه كړيدي.

وَ اِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ (۵۰)

اى قومه! پردې كارباندې زه له تاسې نه كوم اجر نه غواړم، زما اجر خو د هغه ذات په ذمه دى چې هغه زه پيدا كړى يم ، ايا تاسې له پوهې نه كار نه اخلئ؟

يٰقَوْمِ لَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ اَجْرِىَ اِلَّا عَلَى الَّذِىْ فَطَرَنِىْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۵۱)

او اى زما قومه! له خپل رب نه ښښنه وغواړئ ، بيا د هغه لوري ته وگرځئ، هغه به پرتاسې د اسمان ورخونه پرانيزي په شيبو باران به واوروي او ستاسې پر اوسني قوت سربېره به نور قوت در زيات كړي. د مجرمانو په څېر مخ مه اړوئ".

وَ يٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْۤا اِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا وَّ يَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ وَ لَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِيْنَ (۵۲)

هغو ځواب وركړ: " اى هوده ! ته مونږ ته له كومې څرگندې شاهدۍ سره نه يې راغلى ، او ستا په وينا سره مونږ خپل معبودان نشو پريښودلى، او پر تا مونږ ايمان راوړونكي نه يو.

قَالُوْا يٰهُوْدُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَّ مَا نَحْنُ بِتَارِكِىْۤ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَ مَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ (۵۳)

مونږ خو د اانگيرو چې پر تا زمونږ له معبودانو څخه د كوم يوه گوزار لگيدلى دى" هو د وويل" زه د الله شاهدي وړاندې كوم. او تاسې شاهدان اوسئ دا چې تاسې له الله څخه پرته نور په خدايۍ كښې برخه وال گڼلي دي زه ورڅخه بېزاريم.

اِنْ نَّقُوْلُ اِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوْٓءٍ ؕ قَالَ اِنِّىْۤ اُشْهِدُ اللّٰهَ وَ اشْهَدُوْۤا اَنِّىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ (۵۴)

تاسې ټول په لاس يو كولو زما پر خلاف په خپل اقدام كښې ايله مه كوئ او ماته يوه ذره مهلت مه راكوئ،

مِنْ دُوْنِهٖ فَكِيْدُوْنِىْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ (۵۵)

زما توكل پر الله دى چې زما رب هم دى او ستاسې رب هم. هېڅ ساكښ داسې نشته چې د هغه چوټي د هغه په لاس كښې نه وي. بيشكه زما رب پرسمه لار دى.

اِنِّىْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ رَبِّىْ وَ رَبِّكُمْ ؕ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَا ؕ اِنَّ رَبِّىْ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۵۶)

كه تاسې مخ اړوئ نو واړوئ. زه چې له كوم پېغام سره تاسې ته رالېږل شوى وم هغه مې تاسې ته رسولى دى. اوس به زما رب ستاسې په ځاى بل قوم راپاڅوي او تاسې به هغه ته هېڅ زيان ونه رسولشئ. په يقيني ډول زما رب پر هر څه څارونكى دى"

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ مَّاۤ اُرْسِلْتُ بِهٖۤ اِلَيْكُمْ ؕ وَ يَسْتَخْلِفُ رَبِّىْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ۚ وَ لَا تَضُرُّوْنَهٗ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ رَبِّىْ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ حَفِيْظٌ (۵۷)

بيا كله چې زمونږ حكم راغى نو مونږ په خپل رحمت سره هود او هغه خلك چې له هغه سره يې ايمان راوړى وْ وژغورل او له يو سخت عذاب نه مو هغو ته نجات وركړ.

وَ لَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُوْدًا وَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا ۚ وَ نَجَّيْنٰهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ (۵۸)

دغه دي عاديان ، دخپل رب له ايتونو څخه منكر شول، د هغه د پېغمبرانو خبره يې ونه منله ، او د حق د هر جابر دښمن پيروي يې وكړه.

وَ تِلْكَ عَادٌ ۟ۙ جَحَدُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ وَ عَصَوْا رُسُلَهٗ وَ اتَّبَعُوْۤا اَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ (۵۹)

په پاى كښې په دې دنيا كښې هم پر هغو لعنت وغورځېده او د قيامت په ورځ هم . واورئ! عاديان په خپل رب كافران شول. واورئ ! ليرې وغورځول شول عاديان ، د هود قوم.

وَ اُتْبِعُوْا فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ عَادًا كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ اَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُوْدٍ (۶۰)

او د ثمودیانو لوري ته مونږ د هغو ورور صالح ع ولیږه . هغه وویل " ای زما قومه ! د الله بندګي وکړئ ، له هغه پرته ستاسي هیڅ کوم بل خدای نشته هماغه ذات دی چي تاسي یي له ځمکي نه پیدا کړي یاست او دلته یي تاسي میشته کړي یئ. نو تاسي له هغه نه بښنه وغواړئ او دهغه لوري ته راوګرځئ، په باوري توګه زما رب نژدې دی او دهغه ددعاګانو ځواب ویونکی دی"

وَ اِلٰی ثَمُوْدَ اَخَاہُمْ صٰلِحًا ۘ قَالَ یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰہَ مَا لَکُمْ مِّنْ اِلٰہٍ غَیْرُہٗ ؕ ہُوَ اَنْشَاَکُمْ مِّنَ الْاَرْضِ وَ اسْتَعْمَرَکُمْ فِیْہَا فَاسْتَغْفِرُوْہُ ثُمَّ تُوْبُوْۤا اِلَیْہِ ؕ اِنَّ رَبِّیْ قَرِیْبٌ مُّجِیْبٌ (۶۱)

هغوی وویل" ای صالح ع : له دېنه مخکښي ته په مونږ کښي یو داسي سړی وې چي ډېرې هیلي در پوري تړلي وي. ایا ته غواړې مونږ د هغو معبودانو له عبادت نه منع کړې چي زمونږ پلرونو نیکونو د هغو عبادت کاوه؟ نو د کومي کړنلارې په لوري چي مونږ ته بلنه راکوې د هغې په باب مونږ سخت په اشتباه کښي یو چي مونږ یي په تشویش کښي اچولي یو".

قَالُوْا یٰصٰلِحُ قَدْ کُنْتَ فِیْنَا مَرْجُوًّا قَبْلَ ہٰذَاۤ اَتَنْہٰنَاۤ اَنْ نَّعْبُدَ مَا یَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا وَ اِنَّنَا لَفِیْ شَکٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَاۤ اِلَیْہِ مُرِیْبٍ (۶۲)

صالح وویل" ای قومه! تاسي پردې خبره څه فکر کړیدی چي که ما د خپل رب له لوري یوه روښانه شاهدي درلودله ، او بیا هغه زه په خپل رحمت سره هم سر لوړی کړم نو له دېنه وروسته به د الله له نیوني څخه څوك ما وژغوري که زه د هغه له حکم نه سرو غړوم؟ تاسي زما څه په درد خوړلی شئ پرته له دېنه چي مانور هم په زیان کښي وغورځوئ.

قَالَ یٰقَوْمِ اَرَءَیْتُمْ اِنْ کُنْتُ عَلٰی بَیِّنَۃٍ مِّنْ رَّبِّیْ وَ اٰتٰنِیْ مِنْہُ رَحْمَۃً فَمَنْ یَّنْصُرُنِیْ مِنَ اللّٰہِ اِنْ عَصَیْتُہٗ ۟ فَمَا تَزِیْدُوْنَنِیْ غَیْرَ تَخْسِیْرٍ (۶۳)

او ای زما قومه ! وګورئ دا د الله اوښه ستاسي له پاره یوه نښانه ده داد خدای په ځمکه کښي د څرېدو له پاره ازاده پرېږدئ. پردې هیڅ تعرض مه کوئ که نه نو څه زیات وخت به تېر نشي چي پر تاسي به د خدای عذاب راشي ".

وَ یٰقَوْمِ ہٰذِہٖ نَاقَۃُ اللّٰہِ لَکُمْ اٰیَۃً فَذَرُوْہَا تَاْکُلْ فِیْۤ اَرْضِ اللّٰہِ وَ لَا تَمَسُّوْہَا بِسُوْٓءٍ فَیَاْخُذَکُمْ عَذَابٌ قَرِیْبٌ (۶۴)

خو هغوی اوښه ټپي او ووژله. په دې سره صالح هغو ته خبرداری ورکړ چي " اوس صرف درې ورځي په خپلو کورونو کښي نور واوسیږئ دا داسي میعاد دی چي دروغ به ثابت نشي".

فَعَقَرُوْہَا فَقَالَ تَمَتَّعُوْا فِیْ دَارِکُمْ ثَلٰثَۃَ اَیَّامٍ ؕ ذٰلِکَ وَعْدٌ غَیْرُ مَکْذُوْبٍ (۶۵)

په پای کښي چي کله زمونږ د فیصلي وخت راغی نو مونږ په خپل رحمت سره صالح او هغه کسان چي له هغه سره یې ایمان راوړی وْ وژغورل او د هغې ورځي له رسوایي نه مو هغوی خوندي کړل. بیشکه همدا ستا رب په اصل کښي زورور او بر لاسی دی.

فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّیْنَا صٰلِحًا وَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَہٗ بِرَحْمَۃٍ مِّنَّا وَ مِنْ خِزْیِ یَوْمِئِذٍ ؕ اِنَّ رَبَّکَ ہُوَ الْقَوِیُّ الْعَزِیْزُ (۶۶)

پاتي شول هغه خلك چي هغوی ظلم کړی وْ نو یوې سختي زلزلي هغوی ونیول او هغوی په خپلو سیمو کښي بې حسه او بې حرکته مړه و غورځېدل :

وَ اَخَذَ الَّذِیْنَ ظَلَمُوا الصَّیْحَۃُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دِیَارِہِمْ جٰثِمِیْنَ (۶۷)

داسي چي تا به ویل هغوی هلته له سره اوسیدلي نه وو، واورئ ! ثمودیان په خپل رب کافر شول. واورئ ! ثمودیان لیرې وغورځول شول

کَاَنْ لَّمْ یَغْنَوْا فِیْہَا ؕ اَلَاۤ اِنَّ ثَمُوْدَاۡ کَفَرُوْا رَبَّہُمْ ؕ اَلَا بُعْدًا لِّثَمُوْدَ (۶۸)

او یقیناً ! ابراهیم ته زمونږپرښتي زیری ورکوونکي ورغلي. ویي ویل پر تا دې سلام وي. ابراهیم ځواب ورکړ: پر تاسي دې هم سلام وي. بیا ډېر وخت تېر نشو چي ابراهیم ( د هغو د میلمستیا له پاره ) یو وریت کړای شوی خوسی راوړ.

وَ لَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَاۤ اِبْرٰہِیْمَ بِالْبُشْرٰی قَالُوْا سَلٰمًا ؕ قَالَ سَلٰمٌ فَمَا لَبِثَ اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِیْذٍ (۶۹)

خو کله یې چې ولیدل چې د هغو لاسونه خوړوته نه رسیږي نو د هغه ورباندي اشتباه راغله او په زړه کښي یې ورڅخه وېره احساس کړه. هغو وویل" مه وېرېږه مونږ خو د لوط ع د قوم خوا ته لیږل شوي یو ".

فَلَمَّا رَاٰ اَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَ اَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيْفَةً ؕ قَالُوْا لَا تَخَفْ اِنَّاۤ اُرْسِلْنَاۤ اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ (ؕ۷۰)

د ابراهیم مېرمن هم ولاړه وه هغې ددې په اورېدو سره وخندل. بیا مونږ هغې ته د اسحاق او له اسحاق نه وروسته د یعقوب زېری ورکړ.

وَ امْرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ ۙ وَ مِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ (۷۱)

هغې وویل " های زما شامیته! اوس به زما اولاد وشي په داسي حال کښي چې زه ډېره زړه شوې یم او دغه زما مېړه هم زوړ شوی. دا خو ډېره حیرانوونکي خبره ده" .

قَالَتْ يٰوَيْلَتٰۤى ءَاَلِدُ وَ اَنَا عَجُوْزٌ وَّ هٰذَا بَعْلِىْ شَيْخًا ؕ اِنَّ هٰذَا لَشَىْءٌ عَجِيْبٌ (۷۲)

پرښتو وویل:" دالله پر حکم حیرانیږئ؟ ای د ابراهیمع کورنی پر تاسي خو د الله رحمت او د هغه برکتونه دي، او په باوري ډول الله دډېرې ستاینې وړ او دستر شان څښتن دی".

قَالُوْۤا اَتَعْجَبِيْنَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَ بَرَكٰتُهٗ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ ؕ اِنَّهٗ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ (۷۳)

بیا کله چې د ابراهیم وارخطائي ایسته شوه او ( د اولاد په زیري ) د هغه زړه خوشاله شو نو هغه د لوط دقوم په موضوع کښي له مونږ سره په شخړه لاس پورې کړ.

فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ الرَّوْعُ وَ جَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا فِىْ قَوْمِ لُوْطٍ (ؕ۷۴)

په حقیقت کښي ابراهیم ډېر زغم او نرم زړه خاوند ؤ او په هر حال کښي یې زمونږ لوري ته رجوع کوله.

اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ لَحَلِيْمٌ اَوَّاهٌ مُّنِيْبٌ (۷۵)

ای ابراهیمه ع ! له " (په پای کښي زمونږ پرښتو هغه ته وویل ) هغه نه لاس واخله ، ستا درب حکم شویدی او اوس پر هغو خلکو هغه عذاب راتلونکی دی چې د هیچا په مخنیوي یې مخه نشي نیول ".کیدای

يٰۤـاِبْرٰهِيْمُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ۚ اِنَّهٗ قَدْ جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ۚ وَ اِنَّهُمْ اٰتِيْهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُوْدٍ (۷۶)

او کله چې زمونږ پرښتي لوط ته ورغلی نو د هغو په راتګ سره هغه ډېر وارخطا او زړه تنګی شو او ویې ویل چې نن ډېره د غم ورځ ده.

وَ لَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوْطًا سِىْٓءَ بِهِمْ وَ ضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَّ قَالَ هٰذَا يَوْمٌ عَصِيْبٌ (۷۷)

ددغو مېلمنو له راتګ سره سم ) د هغه د قوم خلك د هغه د کور ) خوا ته په منډه منډه ورغلل. له پخوا نه هغوی له همدغسي بد کاریو ای قومه ! زما دالونې شته . "سره عادت وو. لوطع هغو ته وویل دوی ستاسي له پاره ډېرې پاکې دي، لږ له خدایه ووېرېږئ زما د میلمنو په باب مامه خجالت کوئ. ایا په تاسي کښي څوك هوښیار ".سړی نشته ؟

وَ جَآءَهٗ قَوْمُهٗ يُهْرَعُوْنَ اِلَيْهِ ؕ وَ مِنْ قَبْلُ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ قَالَ يٰقَوْمِ هٰۤؤُلَآءِ بَنَاتِىْ هُنَّ اَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ لَا تُخْزُوْنِ فِىْ ضَيْفِىْ ؕ اَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيْدٌ (۷۸)

هغو ځواب ورکړ" تاته خو معلومه ده چې ستا په لونو کښي زمونږ څه برخه نشته . او ته هم پرې پوهیږې چې مونږ څه غواړو"

قَالُوْا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِىْ بَنٰتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَ اِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيْدُ (۷۹)

لوطع وویل"کاشکي ماپرتاسي دومره زوردرلودلی چې تاسي مې سم کړي وای، یا کومه کلکه اسره وای چې هغې ته مې پناه وروړې وای"

قَالَ لَوْ اَنَّ لِىْ بِكُمْ قُوَّةً اَوْ اٰوِىْۤ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ (۸۰)

په دې وخت کښې پرښتو هغه ته وويل" ای لوطهع ! مونږ ستا درب لېږل شوې پرښتې يو ، دا خلك به تا ته هېڅ ضرر ونشي رسولای، نو چې يو څه شپه پاتې شي د خپل کور غړي دې درسره واخله وځه ، او ګوره ، له تاسي څخه دې هېڅوك شاته نه ګوري. مګر ستا مېرمن ( به ملګرتيا درسره ونه كړي) ځکه چې پر هغې هم هغه څه راتلونكي دي چې پردې خلكو راتلونکي دي ددوی د تباهی له پاره دسهار وخت ټاکل شويدی. ايا سهار نژدې ندی.

قَالُوۡا يٰلُوۡطُ اِنَّا رُسُلُ رَبِّکَ لَنۡ يَّصِلُوۡۤا اِلَيۡکَ فَاَسۡرِ بِاَہۡلِکَ بِقِطۡعٍ مِّنَ الَّيۡلِ وَ لَا يَلۡتَفِتۡ مِنۡکُمۡ اَحَدٌ اِلَّا امۡرَاَتَکَ ؕ اِنَّہٗ مُصِيۡبُہَا مَاۤ اَصَابَہُمۡ ؕ اِنَّ مَوۡعِدَہُمُ الصُّبۡحُ ؕ اَلَيۡسَ الصُّبۡحُ بِقَرِيۡبٍ (۸۱)

بيا كله چې زمونږ د فيصلې وخت راورسېده نو مونږ هغه سيمه په بل مخ نسکوره کړه او پر هغې مود پخې خټې د تيروباران وروره

فَلَمَّا جَآءَ اَمۡرُنَا جَعَلۡنَا عَالِيَہَا سَافِلَہَا وَ اَمۡطَرۡنَا عَلَيۡہَا حِجَارَۃً مِّنۡ سِجِّيۡلٍ ۬ۙ مَّنۡضُوۡدٍ (۸۲)

چې له هغو نه هره يوه تيره ستا د رب په وړاندې په نښه شوې نو مول شوې وه. او له ظالمانو نه دا عذاب څه ليرې نه دی.

مُّسَوَّمَۃً عِنۡدَ رَبِّکَ ؕ وَ مَا ہِیَ مِنَ الظّٰلِمِيۡنَ بِبَعِيۡدٍ (۸۳)

او د مدين خلكو ته مونږ د هغو ورور شعيبع ولېږه. هغه وويل" ای زما دقوم خلكو! د الله بندګي وكړئ له هغه پرته ستاسې هېڅ كوم بل خدای نشته او په تله او پيمانه کښې کمی مه کوئ. زه نن تاسي په ښه حالت کښې ګورم، خو زه وېرېږم چې سبا به پر تاسي داسي ورځ راشي چې د هغې عذاب به ټول راايسار کړي.

وَ اِلٰی مَدۡيَنَ اَخَاہُمۡ شُعَيۡبًا ؕ قَالَ يٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰہَ مَا لَکُمۡ مِّنۡ اِلٰہٍ غَيۡرُہٗ ؕ وَ لَا تَنۡقُصُوا الۡمِکۡيَالَ وَ الۡمِيۡزَانَ اِنِّیۡۤ اَرٰىکُمۡ بِخَيۡرٍ وَّ اِنِّیۡۤ اَخَافُ عَلَيۡکُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ مُّحِيۡطٍ (۸۴)

اوای قومه له عدالت سره سم تول او پيمانه کوئ او خلكو ته د هغو په شيانو کښې تاوان مه وراړوئ او په ځمكه كښې فساد مه خوروئ.

وَ يٰقَوۡمِ اَوۡفُوا الۡمِکۡيَالَ وَ الۡمِيۡزَانَ بِالۡقِسۡطِ وَ لَا تَبۡخَسُوا النَّاسَ اَشۡيَآءَہُمۡ وَ لَا تَعۡثَوۡا فِی الۡاَرۡضِ مُفۡسِدِيۡنَ (۸۵)

د الله درکړې زېرمه ستاسي له پاره ډېره ښه ده كه تاسي مومنان ئي او په هر حال زه پر تاسي څارونكی نه يم.

بَقِيَّتُ اللّٰہِ خَيۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ۬ۚ وَ مَاۤ اَنَا عَلَيۡکُمۡ بِحَفِيۡظٍ (۸۶)

هغوځواب ورکړ" ای شعيبه! ايا ستا لمونځ تا ته دادرښيي چې مونږ هغه ټول معبودان پرېږدو چې زمونږ پلرونو نيکونو د هغو عبادت کاوه؟ يا دا چې مونږ دې په خپلو مالونو کښې له خپلې خوښې سره سم د تصرف کولو واك ونه لرو؟ يوازې همدا ته يو لوړ ظرفي اوريښتونی انسان پاتې شوی يې"!

قَالُوۡا يٰشُعَيۡبُ اَصَلٰوتُکَ تَاۡمُرُکَ اَنۡ نَّتۡرُکَ مَا يَعۡبُدُ اٰبَآؤُنَاۤ اَوۡ اَنۡ نَّفۡعَلَ فِیۡۤ اَمۡوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّکَ لَاَنۡتَ الۡحَلِيۡمُ الرَّشِيۡدُ (۸۷)

شعيب وويل" ای قومه! تاسي په خپله فکر وکړئ چې كه زه د خپل رب له لوري پر يوې روښانې شاهدی وم او بيا هغه له خپل لوري نه ماته ښه روزي هم راكړه ( نو له دېنه وروسته زه ستاسي په ګمراهېو او حرام خوربو کښې له تاسي سره ګډون څنګه كولای شم ؟) او زه هېڅكله دانه غواړم چې له كومو خبرو نه چې زه تاسي منع كوم د هغو په خپله مرتکب شم. زه خو اصلاح كول غواړم تر څو پورې مې چې وس رسېږي. او زه چې د څه شي سرته رسول غواړم هغه په ټوله معنا د الله په توفيق پورې منحصر دي ، ما پر همغه توکل کړيدی او په هره معامله کښې د همغه لوري ته رجوع كوم.

قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ کُنۡتُ عَلٰی بَيِّنَۃٍ مِّنۡ رَّبِّیۡ وَ رَزَقَنِیۡ مِنۡہُ رِزۡقًا حَسَنًا ؕ وَ مَاۤ اُرِيۡدُ اَنۡ اُخَالِفَکُمۡ اِلٰی مَاۤ اَنۡہٰکُمۡ عَنۡہُ ؕ اِنۡ اُرِيۡدُ اِلَّا الۡاِصۡلَاحَ مَا اسۡتَطَعۡتُ ؕ وَ مَا تَوۡفِيۡقِیۡۤ اِلَّا بِاللّٰہِ ؕ عَلَيۡہِ تَوَکَّلۡتُ وَ اِلَيۡہِ اُنِيۡبُ (۸۸)

او ای قومه ! زما پر خلاف ستاسي ځيليتوب چېرته ددې وار رانه ولي چي په پای کښي پر تاسي هم هماغه عذاب راشي چي د نوحع ، یادهودع ، یا د صالح ع پر قوم راغلی وْ . او د لوط ع قوم خو له تاسي نه څه زيات ليرې هم نه دی.

وَ يٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيْٓ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِّثْلُ مَآ اَصَابَ قَوْمَ نُوْحٍ اَوْ قَوْمَ هُوْدٍ اَوْ قَوْمَ صٰلِحٍ ؕ وَ مَا قَوْمُ لُوْطٍ مِّنْكُمْ بِبَعِيْدٍ (۸۹)

ګورئ ! له خپل رب نه بښنه وغواړئ او د هغه لوري ته راوګرځئ ، بېشکه زما رب رحم کوونکی دی او له خپل مخلوق سره مينه لري".

وَ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ ؕ اِنَّ رَبِّيْ رَحِيْمٌ وَّدُوْدٌ (۹۰)

هغو ځواب ورکړ" ای شعيبه! ستاېر زياتره خبرو خو موږ له سره پوهېږو نه . او موږ وينو چي ته زموږ په مينځ کښي يو بېوسې انسان يې ، که ستا خپلوان نه وای نو موږ به دوخته ته سنګسار کړی وای، ستا مټ بازو خو دومره نه دی چي پر موږ دروندوي"

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَقُوْلُ وَ اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْنَا ضَعِيْفًا ۚ وَ لَوْ لَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ ۫ وَ مَآ اَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ (۹۱)

شعيبع وويل" ای قومه ! ايا زما خپلوان پر تاسي له الله نه زيات درانه دي چي تاسي ( له خپلوانو څخه ووېرېږئ او ) الله مو بيخي شاته وغورځوه؟ وپوهېږئ څه چي تاسي کوئ هغه د الله له محاکمې نه دباندې نه دي.

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَهْطِيْٓ اَعَزُّ عَلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَ اتَّخَذْتُمُوْهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ؕ اِنَّ رَبِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ (۹۲)

ای قومه ! تاسي په خپله کړنلاره فعاليت کوئ او زه په خپله کړنلاره فعاليت کوم، ډېر ژر به تاسي ته څرګنده شي چي پر چا رسوا کوونکی عذاب راځي او څوك دروغجن دی. تاسي هم انتظار وباسئ او زه هم له تاسي سره سترګي په لاره يم".

وَ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ؕ سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَ مَنْ هُوَ كَاذِبٌ ؕ وَ ارْتَقِبُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ رَقِيْبٌ (۹۳)

په پای کښي چي کله زموږ د فيصلې وخت راغی نو موږ په خپل رحمت سره شعيبع او د هغه مؤمنان ملګري وژغورل او کومو کسانو چي ظلم کړی وْ هغوی يوې سختې زلزلې داسي ونيول چي هغوی په خپلو کورونو کښي بې حسه بې حرکته يخ پراته پاتې شول.

وَ لَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَ اَخَذَتِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ (۹۴)

داسي چي تا به ويل هغوی له سره هېڅکله هلته اوسېدلي نه وو، واورئ ! د مدين خلك هم ليرې وغورځول شول لکه څنګه چي ثموديان غورځول شوي وو.

كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُوْدُ (۹۵)

او موسىع موږ له خپلو نښانو او د ماموريت له څرګند سند سره واستوه.

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَ سُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ (۹۶)

فرعون او د هغه د سلطنت لوړ رتبه کسانو ته ، خو هغو د فرعون د حکم پيروي وکړه په داسي حال کښي چي د فرعون حکم پر ريښتيني ولاړ نه وْ .

اِلٰى فِرْعَوْنَ وَ مَلَا۟ئِهٖ فَاتَّبَعُوْٓا اَمْرَ فِرْعَوْنَ ۚ وَ مَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ (۹۷)

د قيامت په ورځ به هغه د خپل قوم په وړاندې وړاندې وي او تر خپل قيادت لاندې به هغوي د دوزخ لوري ته بوځي. دورتګ ځومره نا کاره ځای دی دا چي څوك ورته ورسېږي !

يَقْدُمُ قَوْمَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَاَوْرَدَهُمُ النَّارَ ؕ وَ بِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُوْدُ (۹۸)

او پردې خلکو په دنيا کښي هم لعنت وغورځېده اود قيامت په ورځ به هم پرې وغورځېږي. څومره بده بدله ده داچي چاته ورکړه شي!

وَ اُتْبِعُوْا فِيْ هٰذِهٖ لَعْنَةً وَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ (۹۹)

دغه د څو کليو ماجرا ده چي موږ يې تا ته اوروو. له هغو نه ځيني اوس هم ولاړ دي او د ځينو کښتونه لوشويدي.

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ وَّ حَصِيْدٌ (۱۰۰)

وَ مَا ظَلَمْنٰهُمْ وَ لٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ الَّتِیْ یَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّکَ ؕ وَ مَا زَادُوْهُمْ غَیْرَ تَتْبِیْبٍ (۱۰۱)

مونږ پر هغو ظلم نه دی کړی، هغو خپله پر خپل ځان ظلم وکړ او کله چي د الله حکم راغی نو د هغو هغه معبودان چي هغو له الله نه پرته بلل د هغو هيڅ په کار رانه غلل او هغو له هلاکت او بربادي نه پرته هغو ته نوره څه ګټه ونه رسوله.

وَ كَذٰلِکَ اَخْذُ رَبِّکَ اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰی وَ هِیَ ظَالِمَةٌ ؕ اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِیْمٌ شَدِیْدٌ (۱۰۲)

او ستا رب چي کله کومي ظالمي سيمي نيسي نو بيا د هغه نيول همداسي وي ، په واقع کښي د هغه نيونه ډېره سخته او دردناکه وي.

اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ ؕ ذٰلِکَ یَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ ۙ لَّهُ النَّاسُ وَ ذٰلِکَ یَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ (۱۰۳)

حقيقت دادی چي په دې کښي د هر هغه چا له پاره يوه نښانه ده چي دا خرت له عذاب نه وېره وکړي. هغه به يوه داسي ورځ وي چي په هغي کښي ټول خلك راغونډوي او په هغه ورځ کښي چي بيا هر څه وي د ټولو تر نظر لاندې به وي.

وَ مَا نُؤَخِّرُهٗٓ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ (۱۰۴) ؕ

مونږ د هغي راوستل څه دومره ډېر زيات نه وروسته کوو، د هغي له پاره صرف يوه په شمار حساب موده ټاکلي ده.

یَوْمَ یَاْتِ لَا تَکَلَّمُ نَفْسٌ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِیٌّ وَّ سَعِیْدٌ (۱۰۵)

کله چي هغه راشي نو هيچا ته به د خبرې کولو مجال نه وي، مګر دا چي د خدای په اجازه څه عرض وکړي. نو څه خلك به په هغه ورځ بدمرغه وي او څه نيکمرغه .

فَاَمَّا الَّذِیْنَ شَقُوْا فَفِی النَّارِ لَهُمْ فِیْهَا زَفِیْرٌ وَّ شَهِیْقٌ (۱۰۶) ۙ

څوك چي بدمرغه وي هغوی به دوزخ ته لاړ شي ( چي هلته به د ګرمی او تندې له ډېرې سختی نه ) د هغوی ستمهار او پشهار وي

خٰلِدِیْنَ فِیْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَ الْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّکَ ؕ اِنَّ رَبَّکَ فَعَّالٌ لِّمَا یُرِیْدُ (۱۰۷)

او په همدغه حالت کښي به هغوی د تل له پاره اوسېږي تر څو پورې چي اسمانونه او ځمکه ولاړ وي، مګر دا چي ستا رب بل څه وغواړي. بېشکه ستا رب بشپړ واکمن دی چي څه غواړي کوي يې ،

وَ اَمَّا الَّذِیْنَ سُعِدُوْا فَفِی الْجَنَّةِ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَ الْاَرْضُ اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّکَ ؕ عَطَآءً غَیْرَ مَجْذُوْذٍ (۱۰۸)

پاتي شول هغه کسان چي نيکمرغه ثابت شي ، نو هغوی به جنت ته لاړ شي او هلته به د تل له پاره اوسېږي تر څو پورې چي اسمانونه او ځمکه بر قرار دي، مګر دا چي ستا رب نور څه وغواړي. پر هغو به دداسي ورکړې پېرزوينه وشي چي د هغي لړی به هېڅکله غوڅېدونکي نه وي.

فَلَا تَکُ فِیْ مِرْیَةٍ مِّمَّا یَعْبُدُ هٰٓؤُلَآءِ ؕ مَا یَعْبُدُوْنَ اِلَّا کَمَا یَعْبُدُ اٰبَآؤُهُمْ مِّنْ قَبْلُ ؕ وَ اِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ نَصِیْبَهُمْ غَیْرَ مَنْقُوْصٍ (۱۰۹)

نو ای پېغمبره ! ته د هغو معبودانو له پلوه په څه اشتباه کښي مه لوېږه چي دغه خلك د هغو عبادت کوي. دوی خو ( صرف درانده تقليد په اساس ) هماغسي عبادتونه کوی لکه څنګه چي مخکښي ددوی پلرونو نيکونو کول، او مونږ به ددوی برخه دوی ته بشپړه ورکړو بې له دې نه چي په هغي کښي څه کموالی وي.

وَ لَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْکِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِیْهِ ؕ وَ لَوْ لَا کَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّکَ لَقُضِیَ بَیْنَهُمْ ؕ وَ اِنَّهُمْ لَفِیْ شَکٍّ مِّنْهُ مُرِیْبٍ (۱۱۰)

مونږ له دېنه مخکښي موسی ته هم کتاب ورکړيدی او د هغه په باب هم اختلاف شوی وْ ( لکه څنګه چي نن ددغه کتاب په باب کېږي چي تا ته درکړ شويدی). که ستا درب له لوري له پخوا نه د يوی خبرې تصميم نه وای نيول شوی نو ددغو اختلاف کوونکو په مينځ کښي به لا دمخه پرېکړه شوې وه. دا واقعيت دی چي دوی د هغه له پلوه په شك او اشتباه کې لويدلي دي.

وَ اِنَّ کُلًّا لَّمَّا لَیُوَفِّیَنَّهُمْ رَبُّکَ اَعْمَالَهُمْ ؕ اِنَّهٗ بِمَا یَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ (۱۱۱)

او دا هم واقعيت دی چي ستا رب به دوی ته ددوی د عملونو پوره بشپړه بدله ورکړي، دا باوري ده چي هغه ددوی له ټولو عملونو نه باخبر دی.

نو ای محمده! ته اوستا هغه ملګري چي ( له کفر او سرغړوني نه د ایمان او غاړي اېښودلو لوري ته ) راووښتي دي، پر سمه لاره همغسي برابر ثابت قدم اوسئ لکه څنګه چي درته حکم شویدی. او د بندګی له حد نه تیری مه کوئ. څه چي تاسي کوئ هغه ستاسي د رب په نظر کښي دي.

فَاسْتَقِمْ كَمَاۤ اُمِرْتَ وَ مَنْ تَابَ مَعَكَ وَ لَا تَطْغَوْا ؕ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (۱۱۲)

ددغو ظالمانو لوري ته یو بخری مه کږېږئ که نه نو د وزخ به مو ونغاړي او تاسي به کوم داسي دوست او سرپرست و نه مومئ چي له خدای نه مو وژغورلی شي او له هېڅ یو ځای نه به تاسي ته مرسته ونه رسېږي.

وَ لَا تَرْكَنُوْۤا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ ۙ وَ مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ (۱۱۳)

او لمونځ د ورځي په دواړو خواوو کښي او څه د شپي په ساعتونو کښي قائم کړه. په حقیقت کښي نیکي بدئ له منیځه وړي ، داد هغو خلکو له پاره یوه یادونه ده چي د خدای په یاد لرونکي دي.

وَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَ زُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ (۱۱۴)ۚ

او صبر وکړه ، الله د نیکي کوونکو اجر هېڅکله نه ضایع کوي.

وَ اصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ (۱۱۵)

نو ولي په هغو قومونو کښي چي له تاسي نه مخکښي تېر شویدي د خېر خلك مو جود نشول چي خلك يې په ځمکه کښي له فساد راولاړولو نه منع کړي وای؟ دغسي خلك که را پیدا شول هم خو ډېر لږ ، چي مونږ هغوی له هغو قومونو نه وژغورل ، که نه نو ظالمان خلك خو په همغو خوند ونو پسي شول چي د هغو وسایل ورته پرېمانه ورکړل شوي وو او هغوی مجرمان وګرزېدل.

فَلَوْ لَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ اُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْاَرْضِ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّنْ اَنْجَيْنَا مِنْهُمْ ۚ وَ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَاۤ اُتْرِفُوْا فِيْهِ وَ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ (۱۱۶)

ستا رب داسي نه دی چي کلي په ناحقه تباه کړي په داسي حال کښي چي د هغو اوسېدونکي سمون راوستونکي وي.

وَ مَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّ اَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ (۱۱۷)

بېشکه که ستا رب غوښتلای نو ټول انسانان یي یوه ډله ګرزولی شول. مګر اوس خو به هغوی په بېلا بېلو لارو تل روان وي.

وَ لَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّ لَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ (۱۱۸)ۙ

او له لارو ورکی نه به یوازې هغه خلك وژغول شي چي پر هغو ستا درب رحمت دی. ( د ټاکلو او غوره کولو ) د همدغي ( ازادی ) له پاره خو یي هغوی پیدا کړي وو. او ستا د رب هغه خبره پوره شوه چي هغه ویلي وو چي زه به دوزخ له پېریانو او انسانانو ټولو نه ډك کړم.

اِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ ؕ وَ لِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ؕ وَ تَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَ النَّاسِ اَجْمَعِيْنَ (۱۱۹)

او ای محمده ص! داد پېغمبرانو کیسی چي مونږ یي تا ته اوروو دا هغه شیان دي چي د هغو په وسیله ستا زړه ډاډه کوو. په هغو کښي تاته د حقیقت علم په لاس درغی او ایمان راوړونکو ته نصیحت او وینتوب په برخه شو.

وَ كُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ ۚ وَ جَآءَكَ فِيْ هٰذِهِ الْحَقُّ وَ مَوْعِظَةٌ وَّ ذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ (۱۲۰)

او هغه خلك چي ایمان نه راوړي، هغو ته ووایه چي تاسي په خپله کړنلاره فعالیت کوونکي اوسئ او مونږ به یي په خپله کړنلاره کوو،

وَ قُلْ لِّلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ؕ اِنَّا عٰمِلُوْنَ (۱۲۱)ۙ

او د چارو پای ته تاسي هم سترګي په لاره اوسئ او مونږ هم سترګي په لاره یو.

وَ انْتَظِرُوْا ۚ اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ (۱۲۲)

په اسمانونو او ځمکه کښي چي څه پټ شويدي ټول د الله دوس واك په موټي کښي دي او ټوله معامله دهمغه لوري ته ورګرزول کيږي. نو ای پيغمبره ! ته د هغه بندګي وکړه او پر همغه توکل ولره، څه چي تاسي کوئ ستا رب له هغو نه بي خبره نه دی.

وَ لِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ اِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ فَاعْبُدْهُ وَ تَوَكَّلْ عَلَيْهِ ؕ وَ مَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ (١٢٣)

دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ا – ل – ر. دا د هغه کتاب ايتونه دي چي خپله مدعا ښکاره روښانه بيانوي.

الٓرٰ ۟ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۟(١)

مونږ هغه نازل کړيدی قرآن موګرځولی دی په عربي ژبه کښي، چي تاسي (عرب) پر هغه په ښه شان پوه شئ.

اِنَّاۤ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ (٢)

ای محمده (صلی الله عليه واله وسلم)! مونږ دا قرآن تاته وحي کړی په ډير ښه اسلوب سره ييښي او حقائق او تر ټولو ښه قصه درته بيانوو، که نه مخکښي له دينه خو ته (له دي قصي نه) بيخي بی خبره وی

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ اَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَاۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖۗ وَ اِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ (٣)

دا د هغه وخت يادونه ده چي کله يوسف (ع) خپل پلار ته وويل " ای پلاره! ، ما خوب ليدلی دی چي يوولس ستوري دي او لمر او سپوږمی ده او ومي ليدل چي هغوی ماته سجده کوي"

اِذْ قَالَ يُوْسُفُ لِاَبِيْهِ يٰۤاَبَتِ اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَعَشَرَ كَوْكَبًا وَّ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ رَاَيْتُهُمْ لِيْ سٰجِدِيْنَ (٤)

په ځواب کښي د هغه پلار وويل" زويکيه ! دا خوب دي خپلو ورونو ته مه وايه که نه نو هغوی به په دسيسه جوړولو ستا د ربړولو په هڅه کښي شي، حقيقت دادچي شيطان د انسان ښکاره دښمن دی.

قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰۤى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ (٥)

او همداسي به وي ( لکه څنګه چي تا په خوب کښي ليدلي دي چي ) ستا رب به تا ( د خپل کار له پاره ) وټاکي او تا ته به د خبرو تل پوري رسيدل د ر زده کړي. او پر تا او د يعقوب (ع) پر ټبر به خپل نعمت په هماغه شان پوره کړي لکه څنګه چي له دينه مخکښي يي ستا پر نيکونو ابراهيم (ع) او اسحاق عليه السلام پوره کړيدی دا يقيني ده چي ستا رب پوه حکمت والا دی"

وَ كَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَ يُعَلِّمُكَ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ وَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَ عَلٰۤى اٰلِ يَعْقُوْبَ كَمَاۤ اَتَمَّهَا عَلٰۤى اَبَوَيْكَ مِنْ قَبْلُ اِبْرٰهِيْمَ وَ اِسْحٰقَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (٦)

حقيقت دادی چي د يوسف (ع) اود هغه د ورونو په قصه کښي د دي پوښتونکو له پاره ستري نښاني دي

لَقَدْ كَانَ فِيْ يُوْسُفَ وَ اِخْوَتِهٖۤ اٰيٰتٌ لِّلسَّآئِلِيْنَ (٧)

دا (قصه داسي پيل کيږي) چي د هغه ورونو په خپل منځ کښي سره وويل " دا يوسف (ع) او د هغه ورور ، دواړه زمونږ پلار ته له مونږ ټولو نه زيات ګران دي په داسي حال کښي چي مونږ يو پوره ټولګی يو رښتيا خبره دا ده چي زمونږ پلار بيخي خطا شويدی.

اِذْ قَالُوْا لَيُوْسُفُ وَ اَخُوْهُ اَحَبُّ اِلٰۤى اَبِيْنَا مِنَّا وَ نَحْنُ عُصْبَةٌ ؕ اِنَّ اَبَانَا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنِ ۚ(٨)

ځئ يوسف (ع) ووژنئ يا هغه چيرته وغورځوئ چي ستاسي د پلار پاملرنه يوازي ستاسي لوري ته راواوړي اوددي کارله کولو نه وروسته بيرته نيکان شئ .

اقْتُلُوْا يُوْسُفَ اَوِ اطْرَحُوْهُ اَرْضًا يَّخْلُ لَكُمْ وَجْهُ اَبِيْكُمْ وَ تَكُوْنُوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ قَوْمًا صٰلِحِيْنَ (٩)

په دي سره له هغو نه يوه وويل" يوسف (ع) مه وژنئ ، بيا که څه کوئ نو هغه په کومه ترږمی ځا کښي وغورځوئ . کوم تلونکی راتلونکی کاروان به يي راوباسي".

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ وَ اَلْقُوْهُ فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ (١٠)

هغوی له دې ترون نه وروسته خپل پلار ته ورغلل ويې ويل:
"پلاره! څه خبره ده چې ته د يوسف (ع) په باب پر مونږ اعتماد نه کوې په داسې حال کښې چې مونږ خو د هغه ربښتياني خوا خوږي يو؟

قَالُوْا يٰاَبَانَا مَا لَکَ لَا تَاْمَنَّا عَلٰى يُوْسُفَ وَ اِنَّا لَهٗ لَنٰصِحُوْنَ (۱۱)

سبا هغه له مونږ سره وليږه ، يو څه ميوه دانه به وخوري او لوبې او ساعت تيري به هم وکړي. مونږ د هغه د ساتنې ځارنې لپاره موجود يو.

اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَّرْتَعْ وَ يَلْعَبْ وَ اِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ (۱۲)

پلار وويل" ستاسې له خوا د هغه بيول پر ما ګران تماميږي او زه ويريږم چې ليوه يې ونه خوري اوتاسې به ورڅخه په غفلت کښې ياست"

قَالَ اِنِّیْ لَيَحْزُنُنِیْۤ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَ اَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ الذِّئْبُ وَ اَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ (۱۳)

هغو ځواب ورکړ چې زمونږ په موجوديت کښې يې ليوه خوري په داسې حال کښې چې مونږ يوه قوي ډله يو نو بيا خو به مونږ ډير زيان کاري يو".

قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ وَ نَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّاۤ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ (۱۴)

په دغه شان ټينګار کولو سره يې چې هغه له ځانه سره بوت او هغوی وپتييله چې هغه په يوه ترږمې ځاکښې واچوي ، نو مونږ يوسف (ع) ته وحې وکړه چې" يو وخت به راشي چې ته به دوی ته دغه حرکت ور په زړه کړې دوی د خپل کار له نتائجو نه نا خبره دي"

فَلَمَّا ذَهَبُوْا بِهٖ وَ اَجْمَعُوْۤا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِیْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ ۚ وَ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِاَمْرِهِمْ هٰذَا وَ هُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ (۱۵)

ماښام هغوی په ژړا انګولاخپل پلار ته راغلل.

وَ جَآءُوْۤ اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ ؕ(۱۶)

او ويې ويل" پلاره! مونږ د ځغليدو په مسابقه بوخت وو او يوسف مو د خپلو اسبابونو څنګ ته پريښی وُ چې په دې ترڅ کښې ليوه راغی هغه يې وخوړ. ته به زمونږ په خبره باور ونه کړې که مونږ ريښتينی هم واوسو".

قَالُوْا يٰۤاَبَانَاۤ اِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَ تَرَكْنَا يُوْسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ الذِّئْبُ ۚ وَ مَاۤ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَ لَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ (۱۷)

او هغوی د يوسف (ع) کميس ددروغو په وينه لړلی له ځانه سره راوړی وُ. ددې په اورېدلو د هغو پلار وويل" بلکې ستاسې نفس ستاسې له پاره يو لوی کاراسانه کړ. ښه نو صبر به وکړم او په ښه شان به يې وکړم، کومه خبره چې تاسې غوټه کوئ پر هغې له الله نه مرسته غوښتل کيدای شي.

وَ جَآءُوْ عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ ؕ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ؕ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ؕ وَ اللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ (۱۸)

هاخوايو کاروان راغی او هغه خپل سقاو ( مشکي ) د اوبو راوړلو له پاره وليږه. سقاو چې په څا کښې بوکه وغورځوله نو د يوسف (ع) په ليدلو يې ناري کړې مبارك دې وي دلته خو يو هلك دی هغو خلكو هغه د تجارت مال وګاڼه پټ يې کړ، په داسې حال کښې څه چې هغوی کول خدای پرې خبر وُ .

وَ جَآءَتْ سَيَّارَةٌ فَاَرْسَلُوْا وَارِدَهُمْ فَاَدْلٰى دَلْوَهٗ ؕ قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ؕ وَ اَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ (۱۹)

په پای کښې هغوی هغه په لږغوندې بيه د څو درهمو په بدل کښې وپلوره او هغوی د هغه د بيې په موضوع کښې دومره زيات هيله من نه وو.

وَ شَرَوْهُ بِثَمَنٍۭ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ ۚ وَ كَانُوْا فِيْهِ مِنَ الزّٰهِدِيْنَ (۲۰)

دمصر کوم سړي چې هغه وپيره هغه خپلې ميرمنې ته وويل" دی په ښه شان ساته ، ليرې نه ده چې دی زمونږ له پاره ګټور ثابت شي يا مونږ دی په زويولی ونيسو " . په دې ډول مونږ د يوسف (ع) له پاره په هغه ځمکه کښې د ټينګښت زمينه برابره کړه او پر چارو د پوهيدو دور زده کولو انتظام مو وکړ. الله په برلاسی سره خپل کار کوي خو زياتره خلك پوهيږی نه .

وَ قَالَ الَّذِی اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَاَتِهٖۤ اَكْرِمِیْ مَثْوٰىهُ عَسٰۤى اَنْ يَّنْفَعَنَاۤ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ؕ وَ كَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ فِی الْاَرْضِ ۫ وَ لِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ ؕ وَ اللّٰهُ غَالِبٌ عَلٰۤى اَمْرِهٖ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ (۲۱)

او کله چې هغه پوره ځوانی ته ورسیده نو مونږ هغه ته د فیصلې قوت او علم ورکړ په دغه ډول مونږ نیکانو ته مکافات ورکوو.

وَ لَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗۤ اٰتَيۡنٰهُ حُكۡمًا وَّ عِلۡمًا ؕ وَ كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ (۲۲)

د کومې ښځې په کور کښې چې هغه وُ هغې خپل ځان ته د هغه توجه جلبوله او یوه ورځ یې ورونه وتړل او ویې ویل چې" زر راشه " یوسف (ع) وویل" پناه په خدای " زما رب خو ماته ښه منزلت راکړی ( او زه دا کار وکړم!) داسې ظالمان هیڅکله برې نشي میندلی.

وَ رَاوَدَتۡهُ الَّتِىۡ هُوَ فِىۡ بَيۡتِهَا عَنۡ نَّفۡسِهٖ وَ غَلَّقَتِ الۡاَبۡوَابَ وَ قَالَتۡ هَيۡتَ لَكَ ؕ قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اِنَّهٗ رَبِّىۡۤ اَحۡسَنَ مَثۡوَاىَ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ (۲۳)

هغه ښځه د هغه خوا ته ورمخکښې شوه او یوسف (ع) به هم د هغې لوري ته ورمخکښې شوی وای که د خپل رب برهان یې نه وای لیدلی. داسې وشول تر څو چې مونږ له هغه نه بدي او بې حیائي ایسته کړو، په حقیقت کښې هغه زمونږ له غوره کړای شویو بنده ګانو څخه وُ.

وَ لَقَدۡ هَمَّتۡ بِهٖ ۚ وَ هَمَّ بِهَا لَوۡ لَاۤ اَنۡ رَّاٰ بُرۡهَانَ رَبِّهٖ ؕ كَذٰلِكَ لِنَصۡرِفَ عَنۡهُ السُّوۡٓءَ وَ الۡفَحۡشَآءَ ؕ اِنَّهٗ مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُخۡلَصِيۡنَ (۲۴)

په پای کښې یوسف (ع) او هغې وړاندې وروسته د ورهٔ خواته منډه کړه. او هغې د شاله خوا د یوسف (ع) کمیس ( په راښکودلو ) سره څیرې کړ. په ورهٔ کښې دواړو د هغې میړه موجود وموندہ . د هغه په لیدو سره ښځې وویل:" د هغه چا څه سزا ده چې ستا کورنی ته خراب نیت ولري؟ له دې پرته بله یې څه سزا کیدلی شي چې بندي کړی شي یا دردناك عذاب ورکړ شي.

وَ اسۡتَبَقَا الۡبَابَ وَ قَدَّتۡ قَمِيۡصَهٗ مِنۡ دُبُرٍ وَّ اَلۡفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الۡبَابِ ؕ قَالَتۡ مَا جَزَآءُ مَنۡ اَرَادَ بِاَهۡلِكَ سُوۡٓءًا اِلَّاۤ اَنۡ يُّسۡجَنَ اَوۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۲۵)

یوسف (ع) وویل " دې زما د جلبولو هڅه کوله " د هغې ښځې له خپل ټبر نه یو چا ( دښښې بیلګې ) شاهدي وړاندې کړه. چې " که د یوسف (ع) کمیس له مخې نه شلیدلی وي نو ښځه ریښتینې ده او دی دروغجن ،

قَالَ هِىَ رَاوَدَتۡنِىۡ عَنۡ نَّفۡسِىۡ وَ شَهِدَ شَاهِدٌ مِّنۡ اَهۡلِهَا ۚ اِنۡ كَانَ قَمِيۡصُهٗ قُدَّ مِنۡ قُبُلٍ فَصَدَقَتۡ وَ هُوَ مِنَ الۡكٰذِبِيۡنَ (۲۶)

او که د هغه کمیس د شا له لوري شلیدلی وي نو ښځه دروغجنه ده او دی ریښتونی .

وَ اِنۡ كَانَ قَمِيۡصُهٗ قُدَّ مِنۡ دُبُرٍ فَكَذَبَتۡ وَ هُوَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ (۲۷)

کله چې میړه ولیدل چې د یوسف (ع) کمیس د شا له لوري شلیدلی دی نو ویې ویل" دا ستاسې ښځو مکرونه دي، په رښتیا چې ستاسې چلونه ډیر زیات دي.

فَلَمَّا رَاٰ قَمِيۡصَهٗ قُدَّ مِنۡ دُبُرٍ قَالَ اِنَّهٗ مِنۡ كَيۡدِكُنَّ ؕ اِنَّ كَيۡدَكُنَّ عَظِيۡمٌ (۲۸)

یوسفه ! له دې خبرې نه تیر شه، او اې ښځې ته د خپلې ګناه ښننه وغواړه" همدا ته په اصل کښې ګناهګاره وې.

يُوۡسُفُ اَعۡرِضۡ عَنۡ هٰذَا ٚ وَ اسۡتَغۡفِرِىۡ لِذَنۡۢبِكِ ۖۚ اِنَّكِ كُنۡتِ مِنَ الۡخٰطِئِيۡنَ (۲۹)

دښار ښځو په خپلو منځو کښې اوازه ګډه کړه چې" د عزیز میرمن په خپله خپل زلمي غلام پسې شوې ده ، مینې ناکراره کړیده، زمونږ په نزد خو هغه په څرګند ډول غلط کار کوي"

وَ قَالَ نِسۡوَةٌ فِى الۡمَدِيۡنَةِ امۡرَاَتُ الۡعَزِيۡزِ تُرَاوِدُ فَتٰىهَا عَنۡ نَّفۡسِهٖ ۚ قَدۡ شَغَفَهَا حُبًّا ؕ اِنَّا لَنَرٰىهَا فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ (۳۰)

فَلَمَّا سَمِعَتۡ بِمَكۡرِہِنَّ اَرۡسَلَتۡ اِلَيۡہِنَّ وَ اَعۡتَدَتۡ لَہُنَّ مُتَّكَاً وَّ اٰتَتۡ كُلَّ وَاحِدَۃٍ مِّنۡہُنَّ سِكِّيۡنًا وَّ قَالَتِ اخۡرُجۡ عَلَيۡہِنَّ ۚ فَلَمَّا رَاَيۡنَہٗۤ اَكۡبَرۡنَہٗ وَ قَطَّعۡنَ اَيۡدِيَہُنَّ وَ قُلۡنَ حَاشَ لِلّٰہِ مَا ہٰذَا بَشَرًا ؕ اِنۡ ہٰذَاۤ اِلَّا مَلَکٌ كَرِيۡمٌ (٣١)

هغې چې د هغو دغه له مكره ډكې خبرې واورېدې نو په هغو پسې يې استازې واستوه او د هغو لپاره يې د تكيه كولو مجلس جوړ كړ او په ميلمستيا كښې يې د هرې يوې په وړاندې يوه يوه چاړه كېښودله. ( بيا بيدو په همغه وخت كښې چې كله هغوی ميوې پرېكولې خوړلې يې ) هغې يوسف (ع) ته اشاره وكړه چې د هغوی مخې ته راووځه. كله چې د هغو ښځو نظر پر هغه ولګېده نو هغوی هكې پكې پاتې شوې او خپل لاسونه يې غوڅ كړل او غير اختياري يې وويل" هيڅكله نه ، دا سړی خوبشر نه دی، دی خو كومه لويه پرښته ده".

قَالَتۡ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيۡ لُمۡتُنَّنِيۡ فِيۡہِ ؕ وَ لَقَدۡ رَاوَدۡتُّہٗ عَنۡ نَّفۡسِہٖ فَاسۡتَعۡصَمَ ؕ وَ لَئِنۡ لَّمۡ يَفۡعَلۡ مَاۤ اٰمُرُہٗ لَيُسۡجَنَنَّ وَ لَيَكُوۡنًا مِّنَ الصّٰغِرِيۡنَ (٣٢)

د عزيز ميرمنې وويل: وګورئ دا دی هغه څوك چې د هغه په باب تاسې ما پورې ډېرې خبرې كولې. بيشكه چې مادده د جلبولو هڅه كړې وه خو دی وژغورل شو. كه دی زما وينا ونه منې نو بندي او ډېر ذليل او خوار به كړای شي.

قَالَ رَبِّ السِّجۡنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدۡعُوۡنَنِيۡۤ اِلَيۡہِ ۚ وَ اِلَّا تَصۡرِفۡ عَنِّيۡ كَيۡدَہُنَّ اَصۡبُ اِلَيۡہِنَّ وَ اَكُنۡ مِّنَ الۡجٰہِلِيۡنَ (٣٣)

يوسف (ع) وويل"ای زما ربه ! ددې په نسبت بندي كيدل ماته ښه دي چې زه هغه كار وكړم چې دا خلك يې له مانه غواړي. او كه ته د هغو دسيسې له مانه دفع نه كړې نو زه به د هغو په دام كښې ونښلم او په ناپوهانو كښې به شامل واوسم.

فَاسۡتَجَابَ لَہٗ رَبُّہٗ فَصَرَفَ عَنۡہُ كَيۡدَہُنَّ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ (٣٤)

دهغه رب د هغه دعا قبوله كړه او د هغو ښځو چلونه يې ورڅخه دفع كړل، بيشكه هماغه دی چې د هر چا اوري او په هر څه پوهيږي.

ثُمَّ بَدَا لَہُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا رَاَوُا الۡاٰيٰتِ لَيَسۡجُنُنَّہٗ حَتّٰى حِيۡنٍ (٣٥)

بيا هغو ته دافكر ورغی چې د يوې مودې لپاره هغه بندي كړي په داسې حال كښې چې هغوی ( د هغه د پاك لمنی او پخپله د خپلو ميرمنو د ناوړه چلند) څرګندې نښانې ليدلې وې.

وَ دَخَلَ مَعَہُ السِّجۡنَ فَتَيٰنِ ؕ قَالَ اَحَدُہُمَاۤ اِنِّيۡۤ اَرٰىنِيۡۤ اَعۡصِرُ خَمۡرًا ۚ وَ قَالَ الۡاٰخَرُ اِنِّيۡۤ اَرٰىنِيۡۤ اَحۡمِلُ فَوۡقَ رَاۡسِيۡ خُبۡزًا تَاۡكُلُ الطَّيۡرُ مِنۡہُ ؕ نَبِّئۡنَا بِتَاۡوِيۡلِہٖ ۚ اِنَّا نَرٰىکَ مِنَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ (٣٦)

بنديخانې ته دوه نور غلامان هم له هغه سره ننوتل. يوه ورځ له هغو نه يو تن هغه ته وويل " ما په خوب كښې ليدلي دي چې زه شراب ځبيښم، بل وويل " ماوليدل چې زما پر سر ډوډی ايښې دي او مرغان يې خوري " دواړو وويل " مونږ ته ددې تعبير وكړه، مونږ وينو چې ته يو ښه سړی يې".

قَالَ لَا يَاۡتِيۡكُمَا طَعَامٌ تُرۡزَقٰنِہٖۤ اِلَّا نَبَّاۡتُكُمَا بِتَاۡوِيۡلِہٖ قَبۡلَ اَنۡ يَّاۡتِيَكُمَا ؕ ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيۡ رَبِّيۡ ؕ اِنِّيۡ تَرَكۡتُ مِلَّۃَ قَوۡمٍ لَّا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ ہُمۡ بِالۡاٰخِرَۃِ ہُمۡ كٰفِرُوۡنَ (٣٧)

يوسف (ع) وويل" دلته چې كوم خواړه تاسې ته دركول كيږي د هغو له راتګ نه مخكښې به زه تاسې ته ددې خوبونو تعبير وكړم. دا علم له هغو علومو څخه دی چې زما رب ما ته راكړيدی. واقعيت دادی چې ما د هغو خلكو تګلاره پرېښې ده چې پر الله ايمان نه راوړي او له اخرت نه منكران دي،

وَ اتَّبَعۡتُ مِلَّۃَ اٰبَآءِيۡۤ اِبۡرٰہِيۡمَ وَ اِسۡحٰقَ وَ يَعۡقُوۡبَ ؕ مَا كَانَ لَنَاۤ اَنۡ نُّشۡرِکَ بِاللّٰہِ مِنۡ شَيۡءٍ ؕ ذٰلِکَ مِنۡ فَضۡلِ اللّٰہِ عَلَيۡنَا وَ عَلَى النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَشۡكُرُوۡنَ (٣٨)

د خپلو پلرونو نيكونو ابراهيم (ع) ، اسحاق (ع) او يعقوب (ع) تګلاره مې غوره كړېده. زمونږ دا كار نه دی چې له الله سره څوك شريك وانګيرو. په حقيقت كښې دا پر مونږ او پر ټولو انسانانو د الله فضل دی (چې هغه مونږ له خپله ځانه پرته د بل چا غلامان نه يو ګرزولي) خو زياتره خلك شكر نه باسی،

يٰصَاحِبَيِ السِّجۡنِ ءَاَرۡبَابٌ مُّتَفَرِّقُوۡنَ خَيۡرٌ اَمِ اللّٰہُ الۡوَاحِدُ الۡقَہَّارُ (ؕ٣٩)

ای د زندان ملګرو! تاسې پخپله فكر وكړئ چې ډېر بيلابيل ارباب ښه دي يا هغه يو الله چې پر ټولو برلاسی دی؟

له هغه پرته چې تاسې د چا بنده ګي کوئ هغوی له دې پرته نور هیڅ نه دي چې صرف څو نومونه دي چې تاسې او ستاسې پلرونو ایښې دي، الله د هغو لپاره کوم سند نه دی نازل کړی. د فرمانروائی قدرت له الله نه پرته د بل هیچا لپاره نشته . دهغه حکم دی چې پخپله له هغه نه پرته تاسې دبل هیچا بندګي مه کوئ. دا ژوند سمه سیخه لاره ده ، خو زیاتره خلك نه پوهیږي.

مَا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اِلَّاۤ اَسۡمَآءً سَمَّيۡتُمُوۡهَاۤ اَنۡتُمۡ وَ اٰبَآؤُكُمۡ مَّاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنۡ سُلۡطٰنٍ ؕ اِنِ الۡحُكۡمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ اَمَرَ اَلَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّاۤ اِيَّاهُ ؕ ذٰلِكَ الدِّيۡنُ الۡقَيِّمُ وَ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۴۰)

ای د زندان ملګرو! ستاسې د خوب تعبیر دادی چې له تاسې نه یو تن خوبه خپل رب ( د مصر باچا ) ته شراب ورکړي، پاتې شو دوهم نو هغه به په دار وځړول شي او مرغان به یې سر په ټونګو ټونګو وخوري. هغه خبره فیصله شوه چې تاسې یې پوښتنه کوله.

يٰصَاحِبَىِ السِّجۡنِ اَمَّاۤ اَحَدُكُمَا فَيَسۡقِىۡ رَبَّهٗ خَمۡرًا ۚ وَ اَمَّا الۡاٰخَرُ فَيُصۡلَبُ فَتَاۡكُلُ الطَّيۡرُ مِنۡ رَّاۡسِهٖ ؕ قُضِىَ الۡاَمۡرُ الَّذِىۡ فِيۡهِ تَسۡتَفۡتِيٰنِ (ؕ۴۱)

بیا له هغو نه چې د چا په باب دا ګومان وْ چې هغه به خوشې کړای شي هغه ته یوسف (ع) وویل چې " خپل رب ( د مصرباچا ) ته زما یادونه وکړه" خو شیطان هغه داسې په غفلت کښې وغورځوه چې هغه خپل رب ( د مصر باچا ) ته د هغه وریادول هیر کړل او یوسف (ع) ډیر کلونه په زندان کښې پاتې شو.

وَ قَالَ لِلَّذِىۡ ظَنَّ اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنۡهُمَا اذۡكُرۡنِىۡ عِنۡدَ رَبِّكَ فَاَنۡسٰهُ الشَّيۡطٰنُ ذِكۡرَ رَبِّهٖ فَلَبِثَ فِى السِّجۡنِ بِضۡعَ سِنِيۡنَ (ؕ۴۲)

یوه ورځ باچا وویل" ما په خوب کښې لیدلي دي چې اوه څربې غواوې دي چې اوه خوارې غواوې یې خوري، او دغلې اوه شنه وږي دي او نور اوه وچ. ای درباریانو، ماته ددې خوب تعبیر وښایاست که تاسې د خوبونو پر مطلب پوهیږئ".

وَ قَالَ الۡمَلِكُ اِنِّىۡۤ اَرٰى سَبۡعَ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاۡكُلُهُنَّ سَبۡعٌ عِجَافٌ وَّ سَبۡعَ سُنۡۢبُلٰتٍ خُضۡرٍ وَّ اُخَرَ يٰبِسٰتٍ ؕ يٰۤاَيُّهَا الۡمَلَاُ اَفۡتُوۡنِىۡ فِىۡ رُءۡيَاىَ اِنۡ كُنۡتُمۡ لِلرُّءۡيَا تَعۡبُرُوۡنَ (۴۳)

هغوی وویل" دا خو ګډوډ خوبونه دي او مونږ ددغه شان خوبونو پر مطلب نه پوهیږو".

قَالُوۡۤا اَضۡغَاثُ اَحۡلَامٍ ۚ وَ مَا نَحۡنُ بِتَاۡوِيۡلِ الۡاَحۡلَامِ بِعٰلِمِيۡنَ (۴۴)

له هغو دوو تنو بندیانو څخه چې یو تن ژغورل شوی وْ او هغه ته له یوې اوږدې مودې وروسته اوس خبره ور په زړه شوه. هغه وویل" زه تاسې ته ددې معنی دربښیم ، ما ( زندان ته یوسف ته ) ولیږی"

وَ قَالَ الَّذِىۡ نَجَا مِنۡهُمَا وَ ادَّكَرَ بَعۡدَ اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمۡ بِتَاۡوِيۡلِهٖ فَاَرۡسِلُوۡنِ (۴۵)

هغه ورغی ویې ویل" یوسفه (ع) : ای له سره ترپایه رښتونیه ، مونږ ته ددې خوب مطلب وښایه چې اوه څربې غواوې دي اوه خوارې غواوې یې خوري او اوه شنه وږي دي او اوه وچ . ښایي چې زه هغو خلکو ته بیرته ستون شم هیله ده چې هغوی وپوهیږي".

يُوۡسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيۡقُ اَفۡتِنَا فِىۡ سَبۡعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاۡكُلُهُنَّ سَبۡعٌ عِجَافٌ وَّ سَبۡعِ سُنۡۢبُلٰتٍ خُضۡرٍ وَّ اُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۙ لَّعَلِّىۡۤ اَرۡجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ (۴۶)

یوسف (ع) وویل" تر اووکلونو پورې به تاسې د کروندو کښتونو په کرکیله بوخت شئ. په دې دوران کښې چې تاسې کوم کښتونه لو کړل له هغو نه صرف لږ غوندې برخه چې ستاسې د خوراك لپاره په درد خوري، راوباسئ او نور پخپلو وږو کښې پریږدئ.

قَالَ تَزۡرَعُوۡنَ سَبۡعَ سِنِيۡنَ دَاَبًا ۚ فَمَا حَصَدْتُّمۡ فَذَرُوۡهُ فِىۡ سُنۡۢبُلِهٖۤ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّمَّا تَاۡكُلُوۡنَ (۴۷)

بیا به اوه کلونه ډیر سخت راشي . په هغه زمانه کښې به هغه ټوله غله وخوړله شي چې تاسې به یې د هغه وخت لپاره راغونډه کړئ. که څه وسپمیږي نو هماغه به وي چې تاسې خوندي ساتلې وي.

ثُمَّ يَاۡتِىۡ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ سَبۡعٌ شِدَادٌ يَّاۡكُلۡنَ مَا قَدَّمۡتُمۡ لَهُنَّ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّمَّا تُحۡصِنُوۡنَ (۴۸)

له هغه وروسته به يو کال داسې راشي چې په هغه کښې به درحمت په ورښتونو سره د خلکو فرياد واوريدل شي او هغوی به په هغه وخت کې شيره وزبيښي".

ثُمَّ يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَامٌ فِيْهِ يُغَاثُ النَّاسُ وَ فِيْهِ يَعْصِرُوْنَ (۴۹)

باچا وويل هغه ماته راولئ. خوکله چې استازی يوسف (ع) ته ورغئ نو هغه وويل: " خپل رب " باچا" ته بيرته ورشه او له هغه نه پوښتنه وکړه چې د هغو ښځو څه معامله ده چې خپل لاسونه يې پريکړي وو؟ زما رب د هغو له مکارۍ نه ښه خبر دی".

وَ قَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِيْ قَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ ؕ اِنَّ رَبِّيْ بِكَيْدِهِنَّ عَلِيْمٌ (۵۰)

باچا له هغو ښځو نه پوښتنه وکړه" تاسې د هغه وخت څه تجربه لرئ چې د يوسف(ع) د ميني جلبولو هڅه مو کړې وه"؟ ټولو په يو آواز وويل"حاش لله ، مونږ خو هغه کښې د بدۍ د بڅری قدرې هم ونه مونده ". د عزيز ميرمنې وويل" اوس حق څرګند شويدی، هغه خو همدا زه وم چې د هغه د مينې د راجلبولو هڅه مې کړې وه، بيشکه چې هغه بيخي رېښتونی دی".

قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ اِذْ رَاوَدْتُّنَّ يُوْسُفَ عَنْ نَّفْسِهٖ ؕ قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ ۫ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ وَ اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ (۵۱)

له دې نه زما مطلب دا وْ چې ( عزيز ) په دې " (يوسف(ع) وويل ) وپوهيږي چې ما پسې شا له هغه سره خيانت نه وْ کړی او دا چې .څوك خيانت کوي الله د هغو چلونه د برې په لاره نه سموي

ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ اَنِّيْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ (۵۲)

زه د خپل نفس ښه نه وايم، نفس خو پر بدی هڅوونکی دی مګر دا چې پر چا زما د رب رحمت وي، بيشکه زما رب ډير ښونکی او رحم کوونکی دی.

وَ مَآ اُبَرِّئُ نَفْسِيْ ۚ اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ اِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيْ ؕ اِنَّ رَبِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۵۳)

باچا وويل:" هغه ماته راولئ چې زه هغه د ځان لپاره مخصوص کړم" کله چې يوسف(ع) له هغه سره خبرې وکړې نو هغه وويل" اوس ته زما په وړاندې قدر او منزلت لرې او ستا پر امانتدارۍ پوره ډاډمن يم".

وَ قَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖٓ اَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِيْ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِيْنٌ اَمِيْنٌ (۵۴)

يوسف ع وويل:" د هيواد خزانې ماته وسپاره ، زه ساتونکی هم يم او عالم هم".

قَالَ اجْعَلْنِيْ عَلٰى خَزَآئِنِ الْاَرْضِ ۚ اِنِّيْ حَفِيْظٌ عَلِيْمٌ (۵۵)

په دې توګه مونږ په هغه هيواد کښې د يوسف (ع) لپاره د حاکميت لاره اواره کړه. د هغه خوښه وه چې په هغه ( هيواد ) کښې چې چيرته يې غوښتل ځانته ځای جوړ کړي. مونږ خپل رحمت چاته مو چې خوښه شي ورپه برخه کوو، د ښو کسانو اجر مونږ نه ضايع کوو.

وَ كَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ فِي الْاَرْضِ ۚ يَتَبَوَّاُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ؕ نُصِيْبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَّشَآءُ وَ لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ (۵۶)

او د آخرت اجر د هغو کسانو لپاره ډير غوره دی چې ايمان راوړي او د خدای له ويرې سره کار کوي.

وَ لَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ كَانُوْا يَتَّقُوْنَ (۵۷)

ديوسف (ع) ورونه مصر ته راغلل او د هغه په وړاندې حاضر شول، نو هغوی يې وپيژندل خو هغوی له هغه سره نا اشنا وو.

وَ جَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَ هُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ (۵۸)

بيا چې کله هغه د هغو څټه تياره کړله؛ نو د خوځيدو په وخت کښې يې هغو ته وويل " خپل ميرنی ورور ماته راولئ. نه ګورئ چې زه په څه شان پيمانه ډکه اړوم او څنګه ميلمه پالنه کوم.

وَ لَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاَخٍ لَّكُمْ مِّنْ اَبِيْكُمْ ۚ اَلَا تَرَوْنَ اَنِّيْٓ اُوْفِي الْكَيْلَ وَ اَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ (۵۹)

که تاسې هغه رانه ولئ نو له ما سره ستاسې لپاره څه غله نشته بلکې تاسې به ما ته نژدې هم رانشئ.

فَاِنْ لَّمْ تَاْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِنْدِيْ وَ لَا تَقْرَبُوْنِ (۶۰)

هغو وويل :"مونږ به هڅه وکړو چي پلار د هغه په ليږلو راضي شي. او مونږ به داکار هرو مرو وکړو".

قَالُوْا سَنُرَاوِدُ عَنْہُ اَبَاهُ وَ اِنَّا لَفٰعِلُوْنَ (۶۱)

یوسف (ع) غلامانو ته اشاره وکړه چي" دوی چي د غلي په بدل کښي کوم مال ورکړيدی هغه په پټه ددوی په څټو کښي کيږدئ" دا کار يو سف(ع) په دې هيله وکړ چي هغوی به کور ته په رسيدو سره خپل بيرته ورکړی شوی مال وپيژني ( يا به يې ددې پيرزويني احسان سترګي ونيسي ) او کيدای شي چي بيا راشي.

وَ قَالَ لِفِتْيٰنِہِ اجْعَلُوْا بِضَاعَتَہُمْ فِیْ رِحَالِہِمْ لَعَلَّہُمْ یَعْرِفُوْنَہَاۤ اِذَا انْقَلَبُوْۤا اِلٰۤی اَہْلِہِمْ لَعَلَّہُمْ یَرْجِعُوْنَ (۶۲)

کله چي هغوی خپل پلار ته ورغلل نو ويې ويل" پلاره په راتلونکي وخت کښي مونږ ته غله نه راکوله کيږي، نو ته زمونږ ورور له مونږ سره وليږه چي مونږ غله راواخلو رايې وړو. او دده ساتنه زمونږ پر غاړه ده".

فَلَمَّا رَجَعُوْۤا اِلٰۤی اَبِیۡہِمْ قَالُوْا یٰۤاَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْکَیْلُ فَاَرْسِلْ مَعَنَاۤ اَخَانَا نَکْتَلْ وَ اِنَّا لَہٗ لَحٰفِظُوْنَ (۶۳)

پلار ځواب ورکړ" آيا زه پر تاسي دده په باب همغسي اعتماد وکړم لکه چي له دينه مخکښي مي دده د ورور په باب دربانديې کړيدی؟الله ډير ښه ساتندوی دی او هغه تر ټولو زيات رحم کونکی دی"

قَالَ ہَلْ اٰمَنُکُمْ عَلَیْہِ اِلَّا کَمَاۤ اَمِنْتُکُمْ عَلٰۤی اَخِیْہِ مِنْ قَبْلُ ؕ فَاللّٰہُ خَیْرٌ حٰفِظًا ۪ وَّ ہُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِیْنَ (۶۴)

بيا کله چي هغوی خپلي څتي پرانيستلي نو ويې ليدل چي د هغو مال هم بيرته ورکړای شويدی. دايې چي وليدل هغو وويل" پلاره ، نور مونږ څه غواړو ، ګوره د ا زمونږ مال هم بيرته راکړی شويدی. نو اوس به مونږ ولاړ شو او د خپلي کورنی لپاره به غله راوړو، د خپل ورور ساتنه به هم وکړو او يو اوښ بار به نور هم زيات راوړو، دغو مره غله به په آسانی سره زياته شي"

وَ لَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَہُمْ وَجَدُوْا بِضَاعَتَہُمْ رُدَّتْ اِلَیْہِمْ ؕ قَالُوْا یٰۤاَبَانَا مَا نَبْغِیْ ؕ ہٰذِہٖ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ اِلَیْنَا ۚ وَ نَمِیْرُ اَہْلَنَا وَ نَحْفَظُ اَخَانَا وَ نَزْدَادُ کَیْلَ بَعِیْرٍ ؕ ذٰلِکَ کَیْلٌ یَّسِیْرٌ (۶۵)

د هغو پلار وويل" زه به هيڅ کله هغه له تاسي سره ونه ليږم تر څو پوري چي تاسي د الله په نوم له ما سره لوزونه کړئ چي دی به هرو مرو بيرته ما ته راولئ؛ مګر دا چي تاسي چيرته محاصره کړای شئ". کله چي هغو ورسره خپل خپل تعهد وکړ؛ نو هغه وويل" ګورئ! زمونږ پر دې وينا الله ساتونکی دی".

قَالَ لَنْ اُرْسِلَہٗ مَعَکُمْ حَتّٰی تُؤْتُوْنِ مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰہِ لَتَاْتُنَّنِیْ بِہٖۤ اِلَّاۤ اَنْ یُّحَاطَ بِکُمْ ۚ فَلَمَّاۤ اٰتَوْہُ مَوْثِقَہُمْ قَالَ اللّٰہُ عَلٰی مَا نَقُوْلُ وَکِیْلٌ (۶۶)

بيا هغه وويل" زما زامنو ، د مصر پائيتخت ته له يوې دروازې مه ننوځئ؛ بلکي له بيلا بيلو دروازو ورشئ، خو زه د الله له غوښتني څخه تاسي نه شم ژغورلای ، د الله له امر نه پرته د بل هيڅا امر نه چليږي، پر همغه ما توکل کړيدی او هر څوك چي توکل کوي پر هماغه دې وکړي".

وَ قَالَ یٰبَنِیَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّ ادْخُلُوْا مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَۃٍ ؕ وَ مَاۤ اُغْنِیْ عَنْکُمْ مِّنَ اللّٰہِ مِنْ شَیْءٍ ؕ اِنِ الْحُکْمُ اِلَّا لِلّٰہِ ؕ عَلَیْہِ تَوَکَّلْتُ ۚ وَ عَلَیْہِ فَلْیَتَوَکَّلِ الْمُتَوَکِّلُوْنَ (۶۷)

او پېښه همدا وشوه چي کله هغوی د خپل پلار له لارښووني سره سم ښار ته ( له بيلا بيلو دروازو نه ) ورداخل شول؛ نو د هغه دغه احتياطي تدبير دالله د غوښتني په مقابله کښي هغو ته هيڅ په درد و نشو خوړلی . خو صرف د يعقوب (ع) په زړه کښي چي يوه تلوسه وه د هغې پوره کولو لپاره هغه تر خپلي وسي هڅه وکړه . بيشکه هغه زمونږ د ورښودلي علم خاوندو خو زياتره خلك دموضوع پر حقيقت پو هيږی نه.

وَ لَمَّا دَخَلُوْا مِنْ حَیْثُ اَمَرَہُمْ اَبُوْہُمْ ؕ مَا کَانَ یُغْنِیْ عَنْہُمْ مِّنَ اللّٰہِ مِنْ شَیْءٍ اِلَّا حَاجَۃً فِیْ نَفْسِ یَعْقُوْبَ قَضٰىہَا ؕ وَ اِنَّہٗ لَذُوْ عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنٰہُ وَ لٰکِنَّ اَکْثَرَ النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ (۶۸)

دوی چې د یوسف (ع) حضور ته ورغلل نو هغه خپل ورور ځانته بیل وغوښت او ورته یې وویل چې" زه ستا همغه ورور یم ( چې ورك شوی وْ) . اوس ته د هغو چارو اندیښنه مه کوه چې دوی کړیدي".

وَ لَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰى اِلَيْهِ اَخَاهُ قَالَ اِنِّىْٓ اَنَا اَخُوْكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۶۹)

حضرت یوسف (ع) چې کله ددوی ځتې وترلې نو هغه د خپل سکني ورور په ځته کښې خپل جام کېښود. بیا یو آواز کوونکي ناري کړې" ای کاروانیانو! تاسې غله یئ".

فَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ فِىْ رَحْلِ اَخِيْهِ ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَيَّتُهَا الْعِيْرُ اِنَّكُمْ لَسٰرِقُوْنَ (۷۰)

هغوی راوګرځیدل پوښتنه یې وکړه" ستاسې څه شی ورك شوی"؟

قَالُوْا وَ اَقْبَلُوْا عَلَيْهِمْ مَّا ذَا تَفْقِدُوْنَ (۷۱)

د باچا نوکرانو وویل" مونږ د باچا جام ورك کړیدی" ( او د هغه خانه سامان وویل) . هر څوك یې چې راوړي د هغه لپاره د یو اوښ بار مکافات دی، دا به زما په غاړه وي".

قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَ لِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ وَّ اَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ (۷۲)

دغو ورونو وویل: " په خدای قسم دی ، تاسې ښه پوهیږئ چې مونږ دغه هیواد ته د فساد کولو لپاره راغلي نه یو او مونږ غله نه یو".

قَالُوْا تَاللّٰهِ لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِى الْاَرْضِ وَ مَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ (۷۳)

هغوی وویل" ښه نو " که ستاسې خبره دروغ ثابته شي نو دغله څه سزا ده؟

قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ كٰذِبِيْنَ (۷۴)

هغو وویل" د هغه سزا؟ د چا له ځتې نه چې څه شی راووت هغه دې خپله پخپله سزا کښې وساتل شي، زمونږ په نزدخو داسې ظالمانو ته د سزا ورکولو همدا مقررات دي".

قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ وُّجِدَ فِىْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِيْنَ (۷۵)

نو یوسف (ع) له خپل سکني ورور نه مخکښې د هغو دځتو په لټولو پیل وکړ، بیا یې د خپل ورور له ځتې نه ورك شوی شی په لاس راوړ. په دې ډول مونږ په خپل تدبیر سره د یوسف (ع) ملاتړ وکړ. د هغه دا کار نه وْ چې د باچا په دین ( یعني د مصر په باچائي قانون ) کښې یې خپل ورور نیولای وای؛ مګر دا چې الله همدغسې وغواړي. زمونږ چې چاته خوښه شي د هغه درجې لوړوو، او یو علم لرونکی داسې دی چې له هر عالم نه لوړ دی.

فَبَدَاَ بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ ؕ كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ؕ مَا كَانَ لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِىْ دِيْنِ الْمَلِكِ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ وَ فَوْقَ كُلِّ ذِىْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ (۷۶)

دوی وویل" که دی غلا وکړي نو هیڅ د حیرانتیا خبره نه ده، له دینه مخکښې دده ورور یوسف (ع) هم غلا کړیده" . یوسف(ع) دا خبره په زړه وزغمله خو حقیقت یې هغوی ته ځرګند نه کړ. صرف ( ترشونډو لاندې یې ) دومره وویل چې " ډیر زیات بد خلك یئ تاسې ( پر ماباندې چې مخامخ ) کوم تور لګوئ د هغه پر حقیقت خدای ډیر ښه پوهیږي".

قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ ۚ فَاَسَرَّهَا يُوْسُفُ فِىْ نَفْسِهٖ وَ لَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ ۚ قَالَ اَنْتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۚ وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَصِفُوْنَ (۷۷)

هغوی وویل:" ای د اقتدار واکمنه ( عزیزه ) دده پلار ډیر زیات سپین ږیری سړی دی، ته دده په ځای له مونږ نه کوم یو ونیسه ، مونږ تا ډیر نیك زړی انسان وینو".

قَالُوْا يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ اِنَّ لَهٗٓ اَبًا شَيْخًا كَبِيْرًا فَخُذْ اَحَدَنَا مَكَانَهٗ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ (۷۸)

یوسف(ع) وویل" خدای ته پناه وروړم ، بل څوك مونږ څنګه نیولی شو. که مونږ هغه څوك پریږدو چې مونږ له هغه سره مال موندلی دی او بل څوك ونیسو نو مونږ به ظالمان یو".

قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اَنْ نَّاْخُذَ اِلَّا مَنْ وَّجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهٗٓ ۙ اِنَّآ اِذًا لَّظٰلِمُوْنَ (۷۹)

کله چې هغوی له یوسف (ع) نه ناهیلي شول نو په یوه گوښه کښې یې پخپلو منیځو کښې په مشوره لاس پورې کړ. له هغو نه چې کوم یو تر ټولو مشر وْ هغه وویل" ایا تاسي نه پوهیږئ چې ستاسي پلار له تاسي نه د خدای په نوم څه تعهد او ژبنه اخیستې ده . او له دې نه مخکښې چې تاسي د یوسف (ع ) په باب کوم زیاتي کړیدی هغه هم تاسي ته معلوم دی ، اوس خو به زه له دې ځایه هیڅکله لاړ نه شم تر څو پورې چې زما پلار ماته اجازه رانه کړی، او یا الله زما په باب څه فیصله ونه کړي چې هغه تر ټولو ښه فیصله کوونکی دی.

فَلَمَّا اسْتَيْـَٔسُوْا مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ؕ قَالَ كَبِيْرُهُمْ اَلَمْ تَعْلَمُوْۤا اَنَّ اَبَاكُمْ قَدْ اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ وَ مِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُّمْ فِيْ يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْۤ اَبِيْۤ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ وَ هُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ (۸۰)

تاسي لاړ شئ خپل پلار ته ووایئ چې :" پلاره ! ستا زوی غلا کړیده. مونږ هغه په غلا نه دی لیدلی، څه چې مونږ ته معلوم شوي همغه بیا نوو، او دغیبو ساتنه خو مونږ نشو کولای .

اِرْجِعُوْۤا اِلٰۤى اَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يٰۤاَبَانَاۤ اِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَ مَا شَهِدْنَاۤ اِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَ مَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حٰفِظِيْنَ (۸۱)

ته د هغه کلي له خلکو نه پوښتنه وکړه چې مونږ په کښې وو. له هغه کاروان نه پوښتنه وکړه چې مونږ ورسره راغلي یو. مونږ پخپله وینا کښې بیخي رینتوني یو".

وَ سْـَٔلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَ الْعِيْرَ الَّتِيْۤ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ؕ وَ اِنَّا لَصٰدِقُوْنَ (۸۲)

پلار ددې سرگذشت په باب وویل" په اصل کښې ستاسي نفس ستاسي لپاره یوه بله ستره خبره اسانه بریښولې ده. ښه ده پردې به هم صبر وکړم او په ښه شان به یې وکړم. دا څه لیرې نه ده چې الله هغوی ټول له ما سره یوځای کړي، هغه په هر څه پوهیږي او د هغه ټول کارونه پر حکمت ولاړ دي.

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ؕ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ؕ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِيْ بِهِمْ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ (۸۳)

بیا یې له هغو نه مخ واړوه او ویې ویل چې هی هی یوسفه !" هغه په زړه غمونه زغمل او د سترگو تور یې سپین شوي و

وَ تَوَلّٰى عَنْهُمْ وَ قَالَ يٰۤاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَ ابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ (۸۴)

زامنو یې وویل " دخدای لپاره ! ته خو تل همدا یوسف یادوې. ددې وار رارسیدلی چې د هغه په غم کښې خپل ځان ویلې ویلې کړې یا خپل ځان هلاك کړې".

قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ (۸۵)

هغه وویل:" زه د خپل خپگان او د خپل غم فریاد له الله نه پرته بل چا ته نه کوم، او د الله لخوا نه چې څنگه زه خبر یم تاسي نه یاست ،

قَالَ اِنَّمَاۤ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَ حُزْنِيْۤ اِلَى اللّٰهِ وَ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ (۸۶)

زما زامنو، لاړ شئ د یوسف (ع) او د هغه د ورور څه پته ولټوئ، د الله له رحمت نه ناهیلي مه اوسئ ، د هغه له رحمت نه کافران نا هیلي کیږي".

يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَ اَخِيْهِ وَ لَا تَايْـَٔسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ لَا يَايْـَٔسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ (۸۷)

کله چې دا خلك مصر ته لاړل د یوسف (ع) حضور ته ورغلل نو یې عرض وکړ چې" ای واکمن سرداره ! مونږ او زمونږ کورنۍ په سخت کړاو کښې اخته یو، او مونږ یو څه ناچیزه غونډې پانگه له ځانه سره راوړیده ، ته مونږ ته پوره غله راکړه او خیرات راباندې وکړه، الله خیرات کوونکو ته مکافات ورکوي".

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلَيْهِ قَالُوْا يٰۤاَيُّهَا الْعَزِيْزُ مَسَّنَا وَ اَهْلَنَا الضُّرُّ وَ جِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰىةٍ فَاَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَ تَصَدَّقْ عَلَيْنَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَجْزِى الْمُتَصَدِّقِيْنَ (۸۸)

ددې په اوریدو یوسفع نور ځنډ ونه کړ هغه وویل" ایا تاسي ته د دې څه معلومات شته چې تاسي له یوسف (ع) او د هغه له ورور سره څه څه کړي وْ کله چې تاسي ناپوهان وئ" ؟

قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ بِيُوْسُفَ وَ اَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ (۸۹)

هغوی (ټکان وخوړ) ویې ویل، " ایا ته یوسف (ع) یې؟" هغه وویل هو، زه یوسف یم او دا زماورور دی. الله پر مونږ احسان وکړ. حقیقت دادی که څوك له تقوی او صبر نه کار واخلي نو د الله په وړاندې ددغسي نیکو خلکو بدله نه ضایع کیږئ".

قَالُوْٓا ءَاِنَّکَ لَاَنْتَ یُوْسُفُ ؕ قَالَ اَنَا یُوْسُفُ وَ ہٰذَاۤ اَخِیْ ۫ قَدْ مَنَّ اللّٰہُ عَلَیْنَا ؕ اِنَّہٗ مَنْ یَّتَّقِ وَ یَصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰہَ لَا یُضِیْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِیْنَ (۹۰)

هغوی وویل" په خدای قسم چې تا ته الله پرمونږ فضیلت دربښلی او په رښتیا چې مونږ خطا کاران وو".

قَالُوْا تَاللّٰہِ لَقَدْ اٰثَرَکَ اللّٰہُ عَلَیْنَا وَ اِنْ کُنَّا لَخٰطِئِیْنَ (۹۱)

هغه ځواب ورکړ" نن پر تاسې کومه پړه نشته ، الله دې تاسې ته ښنه وکړي، هغه تر ټولو زیات رحم کوونکی دی.

قَالَ لَا تَثْرِیْبَ عَلَیْکُمُ الْیَوْمَ ؕ یَغْفِرُ اللّٰہُ لَکُمْ ۫ وَ ہُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِیْنَ (۹۲)

ځئ زما دغه کمیس درسره یوسئ او زما د پلار پر مخ یې وغوړوئ ، د هغه بینائي به بیرته ورکړه شي، او خپله ټوله کورنی ما ته راولئ".

اِذْہَبُوْا بِقَمِیْصِیْ ہٰذَا فَاَلْقُوْہُ عَلٰی وَجْہِ اَبِیْ یَاْتِ بَصِیْرًا ۚ وَ اْتُوْنِیْ بِاَہْلِکُمْ اَجْمَعِیْنَ (۹۳)

کله چې دغه کاروان ( له مصر نه ) روان شو نو د هغو پلار ( په کنعان کښې ) وویل" زه د یوسفع خوشبوئي محسوسوم ، نه چې تاسي دا ووائي چې زه په زړښت کښې کاواکه شوی یم".

وَ لَمَّا فَصَلَتِ الْعِیْرُ قَالَ اَبُوْہُمْ اِنِّیْ لَاَجِدُ رِیْحَ یُوْسُفَ لَوْ لَاۤ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ (۹۴)

د کور خلکو وویل" په خدای قسم ته لا تر اوسه پورې په همغه زاړه سودائي توب کښې یې".

قَالُوْا تَاللّٰہِ اِنَّکَ لَفِیْ ضَلٰلِکَ الْقَدِیْمِ (۹۵)

نو کله چې زیری راوړونکی راغی هغه د یوسف (ع) کمیس د حضرت یعقوب (ع) پر مخ وغوړ او په ناڅاپي ډول د هغه د سترګو دید بیرته اعاده شو. په دې وخت کښې هغه وویل" ما تاسې ته نه وو ویلي چې زه د الله له لوري پر هغه څه پوهیږم چې تاسې وربانديږ نه پوهیږئ"؟

فَلَمَّاۤ اَنْ جَآءَ الْبَشِیْرُ اَلْقٰىہُ عَلٰی وَجْہِہٖ فَارْتَدَّ بَصِیْرًا ۚ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّکُمْ ۚۙ اِنِّیْۤ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰہِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ (۹۶)

ټولو وویل: پلاره اوس زمونږ د ګناهونو د ښنل کیدو لپاره دعا وکړه ، په رښتیا چې مونږ خطاکاران وو"

قَالُوْا یٰۤاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَاۤ اِنَّا کُنَّا خٰطِئِیْنَ (۹۷)

هغه وویل" زه به له خپل رب نه ستاسې لپاره ښنه وغواړم هغه ډیر ښنونکی او رحم کوونکی دی".

قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَکُمْ رَبِّیْ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ (۹۸)

نو کله چې دوی یوسف (ع) ته ورسیدل هغه خپل مور پلار له خپل ځانه سره کښینول او ( خپلې ټولې کورنی ته یې ) وویل: ځئ اوس مصر ته لاړ شئ، که د الله خوښه وي نو په امن اوبې غمې سره به اوسئ".

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰی یُوْسُفَ اٰوٰۤی اِلَیْہِ اَبَوَیْہِ وَ قَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰہُ اٰمِنِیْنَ (ؕ۹۹)

ښار ته له ننوتلو وروسته ) هغه خپل مور پلار پاڅول او له ځانه ) سره یې پر تخت کښینول او ټول د هغه په وړاندې بې واکه په سجده پلاره ! دا زما د هغه خوب تعبیر دی. "ټیټ شول. یوسف (ع) وویل چې ما مخکښې لیدلی وْ ، زما رب هغه حقیقت وګرځوه. دهغه د ښو پیرزوینه ده چې هغه زه له زندان نه راوویستلم ، او تاسې یې له بیدیا نه راوستلئ له ما سره یې یو ځای کړئ وروسته له هغه چې شیطان زما او زما د ورونو تر مینځ فساد اچولی وْ . واقعیت دا دی چې زما رب په نالیدلو تدبیرونو سره خپله غوښتنه تر سره کوي، .بېشکه هغه د علم او حکمت څښتن دی

وَ رَفَعَ اَبَوَیْہِ عَلَی الْعَرْشِ وَ خَرُّوْا لَہٗ سُجَّدًا ۚ وَ قَالَ یٰۤاَبَتِ ہٰذَا تَاْوِیْلُ رُءْیَایَ مِنْ قَبْلُ ۫ قَدْ جَعَلَہَا رَبِّیْ حَقًّا ؕ وَ قَدْ اَحْسَنَ بِیْۤ اِذْ اَخْرَجَنِیْ مِنَ السِّجْنِ وَ جَآءَ بِکُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْۢ بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ الشَّیْطٰنُ بَیْنِیْ وَ بَیْنَ اِخْوَتِیْ ؕ اِنَّ رَبِّیْ لَطِیْفٌ لِّمَا یَشَآءُ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الْعَلِیْمُ الْحَکِیْمُ (۱۰۰)

ای زما ربه! تا ماته حکومت راکړی او ماته دې د خبرو پر بیخ پوهیدل را زده کړي دي. د اسمانونو او ځمکې هستوونکیه ! همدا ته زما په دنیا او اخرت کښې سرپرست یې ، زما خاتمه پر اسلام وګرځوه او په پای کښې ما له صالحانو سره یو ځای کړه".

رَبِّ قَدْ اٰتَیْتَنِیْ مِنَ الْمُلْکِ وَ عَلَّمْتَنِیْ مِنْ تَاْوِیْلِ الْاَحَادِیْثِ ۚ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۟ اَنْتَ وَلِیّٖ فِی الدُّنْیَا وَ الْاٰخِرَۃِ ۚ تَوَفَّنِیْ مُسْلِمًا وَّ اَلْحِقْنِیْ بِالصّٰلِحِیْنَ (١٠١)

ای محمده ( صلی الله علیه واله وسلم) ! دغه قصه د غیبو له خبرونو څخه ده چې مونږ یې تا ته وحې کوو که نه نو په هغه وخت کښې خو ته ورسره موجود نه وې چې د یوسف (ع) ورونو پخپلو مینځو کښې په اتفاق د سیسه جوړه کړې وه؛

ذٰلِکَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَیْبِ نُوْحِیْهِ اِلَیْکَ ۚ وَ مَا کُنْتَ لَدَیْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْۤا اَمْرَهُمْ وَ هُمْ یَمْکُرُوْنَ (١٠٢)

خو ته که هرڅومره وغواړې له دوی نه زیاتره خلك منونکي نه دي".

وَ مَاۤ اَکْثَرُ النَّاسِ وَ لَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِیْنَ (١٠٣)

په داسې حال کښې چې ته په دې خدمت له دوی نه کومه اجوره هم نه غواړې . دا خو یو نصحیت دی چې د ټولو نړیوالو لپاره دی.

وَ مَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِکْرٌ لِّلْعٰلَمِیْنَ (١٠٤)

په اسمانونو او ځمکه کښې څومره نښانې دي چې پر هغو دوی تیریږي او یوه ذره پاملرنه ورته نه کوي.

وَ کَاَیِّنْ مِّنْ اٰیَۃٍ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ یَمُرُّوْنَ عَلَیْهَا وَ هُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ (١٠٥)

زیاتره له دوی نه الله نه مني او که یې مني خو په دې ډول چې له هغه سره نور شریکوي،

وَ مَا یُؤْمِنُ اَکْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَ هُمْ مُّشْرِکُوْنَ (١٠٦)

یادوی ډاډه دي چې د خدای د عذاب کومه بلا به دوی ونه نیسي ، یا به په بې خبرۍ کښې د قیامت ساعت په ناڅاپي ډول ورباندې رانه شي؟

اَفَاَمِنُوْۤا اَنْ تَاْتِیَهُمْ غَاشِیَۃٌ مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ اَوْ تَاْتِیَهُمُ السَّاعَۃُ بَغْتَۃً وَّ هُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ (١٠٧)

ته دوی ته په ډاګه ووایه زما لاره خو دغه ده، زه د الله لوري ته دعوت کوم، زه پخپله په پوره رڼا کښې خپله لاره وینم او زما ملګري هم ، او الله پاك دی او له مشرکانو سره زما څه اړیکه نشته ،

قُلْ هٰذِهٖ سَبِیْلِیْۤ اَدْعُوْۤا اِلَی اللّٰهِ ۟ عَلٰی بَصِیْرَۃٍ اَنَا وَ مَنِ اتَّبَعَنِیْ ؕ وَ سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَ مَاۤ اَنَا مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ (١٠٨)

ای محمده ( صلی الله علیه واله وسلم ) ! له تا نه مخکښې چې مونږ کوم پیغمبران لیږلي وو هغوی هم ټول انسانان وو، او د همدغو سیمو له اوسیدونکو څخه وو او د همغو لوري ته مونږ وحې لیږو. نو ایا دوی په زمکګه کښې ګرزي راګرزي نه چې د هغو قومونو عاقبت وګوري چې له دوی نه مخکښې تیر شویدي؟ په باوري ډول د آخرت کور د هغو کسانو لپاره لا زیات غوره دی چې هغوی ( د پیغمبرانو د وینا په منلو ) د تقوی کړنلاره غوره کړه. ایا اوس به هم تاسې نه پوهیږئ؟

وَ مَاۤ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِکَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِیْۤ اِلَیْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰی ؕ اَفَلَمْ یَسِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ فَیَنْظُرُوْا کَیْفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ وَ لَدَارُ الْاٰخِرَۃِ خَیْرٌ لِّلَّذِیْنَ اتَّقَوْا ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (١٠٩)

له پخواینو پیغمبرانو سره هم همدا شویدی چې هغوی ډیر وخت ) نصحیت وکړ او خلکو وانه وریده ) ان تر دې پورې چې کله پیغمبران له خلکو نه نا هیلې شول او خلکو هم د ا وانګیرله چې دعذاب په باب هغو ته دروغ ویل شوي وو، نو په ناڅاپي ډول پیغمبرانو ته زمونږ مرسته ورسیدله. کله چې دغسې وخت راځي نو زمونږ قانون دا دی چې چاته چې زمونږ خوښه شي نجات ورکوو .او پر مجرمانو زمونږ د عذاب د راتګ مخه نه شي نیول کیدای

حَتّٰۤی اِذَا اسْتَیْـَٔسَ الرُّسُلُ وَ ظَنُّوْۤا اَنَّهُمْ قَدْ کُذِبُوْا جَآءَهُمْ نَصْرُنَا ۙ فَنُجِّیَ مَنْ نَّشَآءُ ؕ وَ لَا یُرَدُّ بَاْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِیْنَ (١١٠)

د مخکينيو خلکو په دغو قصو کښې د پوهې لرونکو لپاره عبرت دی. دا څه چې په قرآن کښې بيانيږي داساختګي خبرې نه دي؛ بلکې کوم کتابونه چې له دينه مخکښې راوړل شويدی د هماغو تصديق او دهرشي تفصيل دی اود ايمان راوړونکو لپاره هدايت اورحمت.

لَقَدۡ كَانَ فِیۡ قَصَصِہِمۡ عِبۡرَۃٌ لِّاُولِی الۡاَلۡبَابِ ؕ مَا كَانَ حَدِیۡثًا یُّفۡتَرٰی وَ لٰكِنۡ تَصۡدِیۡقَ الَّذِیۡ بَیۡنَ یَدَیۡہِ وَ تَفۡصِیۡلَ كُلِّ شَیۡءٍ وَّ ہُدًی وَّ رَحۡمَۃً لِّقَوۡمٍ یُّؤۡمِنُوۡنَ (١١١)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

اَ – لَ – مَ – رَ. دغه د ا لهی کتاب ايتونه دي ، او څه چې ستا درب له لوري پر تا نازل کړای شويدي هغه ذاتاً حق دي، خو ( ستا د قوم ) زياتره خلك يې نه مني .

الٓـمّٓرٰ ۟ تِلۡكَ اٰیٰتُ الۡكِتٰبِ ؕ وَ الَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ الۡحَقُّ وَ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (١)

همغه الله دی چې هغه اسمانونه له ستنو پرته همداسې درولي دي چې تاسې يې په خپله ګورئ، بيا يې پر عرش استوا وکړه او هغه لمر او سپوږمۍ د يو قانون تابع ګرزولي دي. ددې ټول نظام هر شی تر يو ټاکلي وخت پورې چليږي او همغه الله ددې ټول کار تدبير کوي؛ هغه نښانې په ډاګه څرګنده بيانوي، ښائي چې تاسې له خپل رب سره په يو ځای کېدو باور وکړئ.

اَللّٰہُ الَّذِیۡ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَیۡرِ عَمَدٍ تَرَوۡنَہَا ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ وَ سَخَّرَ الشَّمۡسَ وَ الۡقَمَرَ ؕ كُلٌّ یَّجۡرِیۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّی ؕ یُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ یُفَصِّلُ الۡاٰیٰتِ لَعَلَّكُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّكُمۡ تُوۡقِنُوۡنَ (٢)

او همغه دی چې دا ځمکه يې غوړولي ده ، په دې کښې يې د غرونو ميخونه ټکوهلي دي او سيندونه يې بهولي دي. همغه د هر راز ميوو جوړې دوه پيدا کړی دی او همغه پر ورځې شپه خوروي . په دې ټولو شيانو کښې د هغو خلکو له پاره سترې نښانې دي چې له غور او فکر کولو څخه کار اخلي .

وَ ہُوَ الَّذِیۡ مَدَّ الۡاَرۡضَ وَ جَعَلَ فِیۡہَا رَوَاسِیَ وَ اَنۡہٰرًا ؕ وَ مِنۡ كُلِّ الثَّمَرٰتِ جَعَلَ فِیۡہَا زَوۡجَیۡنِ اثۡنَیۡنِ یُغۡشِی الَّیۡلَ النَّہَارَ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّتَفَكَّرُوۡنَ (٣)

او ، په ځمکه کښې بيلابېلې سيمې دی چې يو له بلې سره نښتې دي. دانګورو باغونه دي ، کښتونه دي، د کجورو ونې دي چې له هغو نه ځينې يو ستوې دي او ځينې غبرګې. ټولې په يو او بو خړوبېږئ خو مونږ د ځينو خوند ډير ښه کوو او د ځينو لږ . په دغو ټولو شيانو کښې د هغو خلکو له پاره ډېرې نښانې دي چې له پوهې نه کار اخلي.

وَ فِی الۡاَرۡضِ قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّ جَنّٰتٌ مِّنۡ اَعۡنَابٍ وَّ زَرۡعٌ وَّ نَخِیۡلٌ صِنۡوَانٌ وَّ غَیۡرُ صِنۡوَانٍ یُّسۡقٰی بِمَآءٍ وَّاحِدٍ ۟ وَ نُفَضِّلُ بَعۡضَہَا عَلٰی بَعۡضٍ فِی الۡاُكُلِ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّعۡقِلُوۡنَ (۴)

اوس که ته حيرانيږې نو د حيرانيتا وړ د خلکو داوينا ده چې " کله چې مونږ مړه شو خاورې شو نو ايا مونږ به بيا له سره راپيدا کړای شو"؟ دا هغه خلك دي چې دوی په خپل رب کافر شوي دي دا هغه کسان دي چې ددوی په غاړو کښې طوقونه غورځېدلي دي. دوی دوزخيان دي او په دوزخ کښې به د تل له پاره اوسېدونکي وي.

وَ اِنۡ تَعۡجَبۡ فَعَجَبٌ قَوۡلُہُمۡ ءَ اِذَا كُنَّا تُرٰبًا ءَ اِنَّا لَفِیۡ خَلۡقٍ جَدِیۡدٍ ۬ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا بِرَبِّہِمۡ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ الۡاَغۡلٰلُ فِیۡۤ اَعۡنَاقِہِمۡ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ ہُمۡ فِیۡہَا خٰلِدُوۡنَ (۵)

دوی له نيکۍ نه مخکښې د بدۍ له پاره تلوار کوي . په داسې حال کښې چې له دوي نه مخکښې ( چې کومو کسانو د غسې کړنلاره نيولي ده پر هغو د خدای د عذاب ) د عبرت وړ مثالونه تېر شويدي. حقيقت دادی چې ستا رب د خلکو له تيري سره سره هغو ته ښنه کوي او دا هم حقيقت دی چې ستا رب سخت سزا ورکوونکی دی.

وَ یَسۡتَعۡجِلُوۡنَكَ بِالسَّیِّئَۃِ قَبۡلَ الۡحَسَنَۃِ وَ قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِہِمُ الۡمَثُلٰتُ ؕ وَ اِنَّ رَبَّكَ لَذُوۡ مَغۡفِرَۃٍ لِّلنَّاسِ عَلٰی ظُلۡمِہِمۡ ۚ وَ اِنَّ رَبَّكَ لَشَدِیۡدُ الۡعِقَابِ (۶)

دغه خلك چې ستا د خبرې له منلو يې انکار کړيدی وائي چې " پر دغه سړي دده درب له لوري کومه نښانه ولې نازله نه کړای شوه؟ ته خو صرف خبر داروونکی يې ، او د هر قوم له پاره يو لاربښوددی.

وَ یَقُوۡلُ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡ لَاۤ اُنۡزِلَ عَلَیۡہِ اٰیَۃٌ مِّنۡ رَّبِّہٖ ؕ اِنَّمَاۤ اَنۡتَ مُنۡذِرٌ وَّ لِكُلِّ قَوۡمٍ ہَادٍ (۷)

الله د هرې حاملې له ګېډې نه خبر دی ، څه چې په هغې کښې جوړېږي پر هغه هم پوهېږي. او په هغه کښې چې څه کمې یا زیاتوالی راځي له هغه څخه هم با خبره دی. د هر شي له پاره یې یوه اندازه ټاکلې ده،

اَللّٰہُ یَعۡلَمُ مَا تَحۡمِلُ کُلُّ اُنۡثٰی وَ مَا تَغِیۡضُ الۡاَرۡحَامُ وَ مَا تَزۡدَادُ ؕ وَ کُلُّ شَیۡءٍ عِنۡدَہٗ بِمِقۡدَارٍ (۸)

هغه پر پټ او ښکاره هر څه عالم دی. هغه لوی او په هر حال کښې د لوړتیا خاوند دی.

عٰلِمُ الۡغَیۡبِ وَ الشَّہَادَۃِ الۡکَبِیۡرُ الۡمُتَعَالِ (۹)

له تاسې نه کوم څوک که په زوره وغږېږي یا ورو او څوک د شپې په تروږمی کښې پټ شوی وي یا د ورځې په رڼا ئې کښې روان وي، د هغه له پاره ټول یو شانته دي،

سَوَآءٌ مِّنۡکُمۡ مَّنۡ اَسَرَّ الۡقَوۡلَ وَ مَنۡ جَہَرَ بِہٖ وَ مَنۡ ہُوَ مُسۡتَخۡفٍۭ بِالَّیۡلِ وَ سَارِبٌۢ بِالنَّہَارِ (۱۰)

د هر چا وړاندې وروسته ټاکل شوي څارونکي دي چې د الله په حکم سره د هغه څارنه سانته کوي، حقیقت دا دی چې الله د هېڅ قوم حالت نه بدلوي تر څو پورې چې هغوی خپل اوصاف نه وي بدل کړي. او کله چې الله کوم قوم ته د سزا ورکولو فیصله وکړي نو د هغې مخنیوی د هیچا په وسیله نه شي کیدای، نه څوك د الله په مقابل کښې ددغسې قوم ملاتړ او ساتندوی ګرځیدلی شي.

لَہٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنۡۢ بَیۡنِ یَدَیۡہِ وَ مِنۡ خَلۡفِہٖ یَحۡفَظُوۡنَہٗ مِنۡ اَمۡرِ اللّٰہِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُغَیِّرُ مَا بِقَوۡمٍ حَتّٰی یُغَیِّرُوۡا مَا بِاَنۡفُسِہِمۡ ؕ وَ اِذَاۤ اَرَادَ اللّٰہُ بِقَوۡمٍ سُوۡٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَہٗ ۚ وَ مَا لَہُمۡ مِّنۡ دُوۡنِہٖ مِنۡ وَّالٍ (۱۱)

همغه ذات دی چې تاسې ته بریښنا ځلوي چې د هغې په لیدلو سره اندیښمن کېږئ هم او هیله من کېږئ هم. همغه ذات دی چې له اوبو نه ډکه وریځ راپورته کوي.

ہُوَ الَّذِیۡ یُرِیۡکُمُ الۡبَرۡقَ خَوۡفًا وَّ طَمَعًا وَّ یُنۡشِیُٔ السَّحَابَ الثِّقَالَ (۱۲)

د وریځې کړسهار د هغه له ثنا سره د هغه پاکي بیانوي او پرښتې د هغه له هیبت نه په لړزېدو د هغه تسبیح وائي. هغه کړسېدونکې بریښناوې لیږي او ( ډېر کرت ) پر چا یې چې خوښه شي تندر بیدو په هماغه حال کښې راغورځوي چې کله خلك د خدای په باب په شخړه اخته کیږي. په واقع کښې د هغه تدبیر ډېر قوي دی.

وَ یُسَبِّحُ الرَّعۡدُ بِحَمۡدِہٖ وَ الۡمَلٰٓئِکَۃُ مِنۡ خِیۡفَتِہٖ ۚ وَ یُرۡسِلُ الصَّوَاعِقَ فَیُصِیۡبُ بِہَا مَنۡ یَّشَآءُ وَ ہُمۡ یُجَادِلُوۡنَ فِی اللّٰہِ ۚ وَ ہُوَ شَدِیۡدُ الۡمِحَالِ (۱۳)

همغه ته بلنه ورکول حق دي. پاتې شوې هغه نورې هستۍ چې دوی ورته له هغه پرته بلنه ورکوي، هغوی ددوی ددعاګانو هیڅ ځواب نشي ورکولی. هغو ته بلنه ورکول خو داسې دي لکه څوك چې اوبو ته لاس اوږدکړي او ورنه وغواړي چې راشئ زما خولې ته ، په داسې حال کښې چې اوبه هغه ته رسېدونکې نه دي. کټ مټ همدغه شان د کافرانو دعاګانې هم هېڅ شی نه دی ؛ مګر یو بې هدفه باطل کار دی،

لَہٗ دَعۡوَۃُ الۡحَقِّ ؕ وَ الَّذِیۡنَ یَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِہٖ لَا یَسۡتَجِیۡبُوۡنَ لَہُمۡ بِشَیۡءٍ اِلَّا کَبَاسِطِ کَفَّیۡہِ اِلَی الۡمَآءِ لِیَبۡلُغَ فَاہُ وَ مَا ہُوَ بِبَالِغِہٖ ؕ وَ مَا دُعَآءُ الۡکٰفِرِیۡنَ اِلَّا فِیۡ ضَلٰلٍ (۱۴)

هغه خو همدا الله دی چې هغه ته د اسمانونو او ځمکې هر شی که خوښ وي که نا خوښ سجده کوي او د ټولو شیانو سیوري سهار او ماښام د هغه په وړاندې ټیټېږي.

وَ لِلّٰہِ یَسۡجُدُ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ طَوۡعًا وَّ کَرۡہًا وَّ ظِلٰلُہُمۡ بِالۡغُدُوِّ وَ الۡاٰصَالِ (۱۵)

له دوی نه پوښتنه وکړه ، داسمانونو او زمکې رب څوك دی؟ ووایه ، الله بیا دوی ته ووایه ،کله چې حقیقت دادی؛ نو ایا تاسی له هغه پرته داسې معبودان خپل کار جوړوونکي انګیرلي چې په خپله د خپل ځان له پاره هم د څه ګټې او زیان واك نه لري؟ ووایه ، ایا ړوند او سترګه ورسره برابریږي؟ ایا رڼا او تیاره یو شان وي؟او که داسې نه ده؛ نو ایا ددوی انګیرلیو شریکانو هم د الله غوندې څه شی پیدا کړیدي چې د هغه له امله د پیدا کولو موضوع پر دوی د اشتباه وړ وګرځیدله ؟ ووایه د هر شي هستوونکی یوازې الله دی او هغه ایکی یو پر ټولو بر لاس دی!

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ؕ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِیَآءَ لَا یَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّ لَا ضَرًّا ؕ قُلْ هَلْ یَسْتَوِی الْاَعْمٰی وَ الْبَصِیْرُ ۙ۬ اَمْ هَلْ تَسْتَوِی الظُّلُمٰتُ وَ النُّوْرُ ۚ۬ اَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوْا كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَیْهِمْ ؕ قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَیْءٍ وَّ هُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (۱۶)

الله له اسمانه اوبه ورولې او هر لښتي ويالي د خپل ظرفيت په تناسب راواخيستې و بهیدل بیا کله چې سیلاب راپورته شو؛ نو پر مخ یې ځګ هم راغی. او همدغسې ځګ پر هغو معدني جواهرو هم را پورته کیږي چې خلك هغه د ګاڼې ، لوښو او نورو شیانو جوړولو له پاره ویلې کوي. په همدې مثال سره الله دحق او باطل موضوع روښانوي. کوم چې ځك دی هغه بې ګټې له مینځه ځي او کوم شی چې د انسانانو له پاره ګټور دي هغه په ځمکه کښې تمیږي، په دې ډول الله په مثالونو سره د خپلې خبرې ښوونه کوي.

اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ اَوْدِیَةٌۢ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ السَّیْلُ زَبَدًا رَّابِیًا ؕ وَ مِمَّا یُوْقِدُوْنَ عَلَیْهِ فِی النَّارِ ابْتِغَآءَ حِلْیَةٍ اَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ یَضْرِبُ اللّٰهُ الْحَقَّ وَ الْبَاطِلَ ۬ؕ فَاَمَّا الزَّبَدُ فَیَذْهَبُ جُفَآءً ۚ وَ اَمَّا مَا یَنْفَعُ النَّاسَ فَیَمْكُثُ فِی الْاَرْضِ ؕ كَذٰلِكَ یَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ (۱۷ؕ)

کومو کسانو چې د خپل رب بلنه ومنله د هغو له پاره ښیګڼه ده، او چا چې هغه ونه منله هغوی که د زمکې د ټولې شتمنۍ مالکان هم وي او همدومره نوره ورسره کړي؛ نو هغوی به د خدای له نیونې څخه د ځان ژغورلو له پاره د فدیې په ډول د هغې ټولې ورکړې ته چمتو شي. دا هغه کسان دي چې په بده توګه به حساب ورڅخه واخیستل شي. او د هغو استوګنځی دوزخ دی؛ډېر بد استوګنځی.

لِلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنٰی ؔؕ وَ الَّذِیْنَ لَمْ یَسْتَجِیْبُوْا لَهٗ لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا وَّ مِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ ۙ۬ وَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمِهَادُ (۱۸)

ښه نو دا څنګه کیدای شي چې هغه څوك چې ستا درب دغه کتاب چې هغه پر تا نازل کړېدی حق پېژني، او هغه څوك چې ددې حقیقت له پلوه ړوند دی ، دواړه یو شان شي؟ نصیحت خو هوښیاران خلك مني.

اَفَمَنْ یَّعْلَمُ اَنَّمَاۤ اُنْزِلَ اِلَیْكَ مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ اَعْمٰی ؕ اِنَّمَا یَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ (۱۹ۙ)

او د هغو کړنلاره داوي چې له الله سره خپله ژمنه پوره کوي هغه له تړون نه وروسته نه ماتوي.

اَلَّذِیْنَ یُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَ لَا یَنْقُضُوْنَ الْمِیْثَاقَ (۲۰ۙ)

دهغو چلن داوي چې الله چې د کومو اړیکو ټینګولو حکم کړیدی هغه ټینګوي، له خپل رب نه وېرېږي او ددې خبرې په اندیښنه کښې وي چې نه چېرته له هغو څخه بدحساب واخیستل شي.

وَ الَّذِیْنَ یَصِلُوْنَ مَاۤ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖۤ اَنْ یُّوْصَلَ وَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَ یَخَافُوْنَ سُوْٓءَ الْحِسَابِ (۲۱ؕ)

دهغو داحال وي چې د خپل رب د رضا له پاره له زغم نه کار اخلي ، لمونځ قائموي، زمونږ له ورکړې روزۍ نه په پټه او ښکاره لګښت کوي، او د بدۍ مخنیوی په نیکۍ سره کوي. داخرت کور د همدغو خلکو له پاره دي،

وَ الَّذِیْنَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّ عَلَانِیَةً وَّ یَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّیِّئَةَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَی الدَّارِ (۲۲ۙ)

یعني داسې باغونه چې د هغو همیشنی استوګنځی به وي. هغوی به په خپله هم په کښې ننوځي او د هغو له پلرونو نیکونو اود هغو له مېرمنو او د هغو له اولادونو څخه چې هر څوك صالحان وي هغوی به هم له هغو سره هلته لاړ شي. ملایکې به له هرې خوا نه د هغو د هرکلي له پاره راشي.

جَنّٰتُ عَدْنٍ یَّدْخُلُوْنَهَا وَ مَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَ اَزْوَاجِهِمْ وَ ذُرِّیّٰتِهِمْ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ یَدْخُلُوْنَ عَلَیْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ (۲۳ۚ)

او هغو ته به ووائي چې " پر تاسې سلامتیا ده ، څنګه چې تاسګې په دنیا کښې له صبر څخه کار واخیست د هغه په برکت نن تاسې ددې وړ ګرځېدلي یاست " نو څه ښه دی دغه د اخرت کور!

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ (۲۴)

پاتې شول هغه خلك چې د الله ژمنه له کلك تړون نه وروسته ماتوي، او هغه اړیکې غوڅوي چې الله د هغو د پیوندولو حکم کړیدی، او په ځمکه کښې فساد خوروي ، هغوی د لعنت وړ دي او د هغو له پاره په اخرت کښې ډېر بد استوګنځی دی.

وَ الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ وَ يَقْطَعُوْنَ مَاۤ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖۤ اَنْ يُّوْصَلَ وَ يُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَ لَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ (۲۵)

چاته چې د الله خوښه شي پراخه روزي وربښي او چاته یې چې خوښه شي، لنډه تنګه روزي ورکوي. دا خلك په دنیوي ژوندانه کښې خوشاله دي. په داسې حال کښګې چې د اخرت په مقابل کښې د دنیا ژوند له ناچیزې متاع نه پرته نور هېڅ نه دی.

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ ؕ وَ فَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَ مَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِی الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ (۲۶)

دغه کسان چې ( د محمدی رسالت له منلو نه یې ) انکار کړیدی وائي" پر دغه سړي دده د رب له لوري کومه نښانه ولې نازله نه شوه " ووایه ، د الله چې چاته خوښه شي ګمراه کوي یې او هغه خپل لوري ته د ورتګ لاره هماغه چاته ښیي چې هغه لوري ته وروګرځي .

وَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ لَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَ يَهْدِیْۤ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ (۲۷)

همدغسې خلك هغه کسان دي چې هغو (ددې پېغمبر بلنه ) منلې ده او د هغو زړونو ته د الله په یاد سره ډاډینه وړپه برخه کېږئ. خبردار اوسئ ! همدغه د الله یاد هغه شی دی چې په هغه سره زړونو ته ډاډینه وړپه برخه کېږي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ تَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ (۲۸)

نو کومو کسانو چې د حق بلنه ومنله او ښه عملونه یې سرته ورسول همغوی نیکمرغه دي او د ښه عاقبت خاوندان دي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰی لَهُمْ وَ حُسْنُ مَاٰبٍ (۲۹)

ای محمدهص! په همدې شان سره مونږ ته په یو داسې قوم کښې د پېغمبر په حیث لېږلی یې چې له دوې نه مخکښې ډېر قومونه تېر شویدي، چې ته دوی ته هغه پېغام واوروې چې مونږ پر تا نازل کړیدی په داسې حال کښې چې دوې پر خپل مهربان خدای کافران شویدي. دوی ته ووایه چې هماغه ذات زما رب دی، له هغه پرته بل هېڅ معبود نشته پر هماغه ما توکل کړیدی او هماغه زما د ورګرځیدلو مرجع ده.

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِیْۤ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَاۤ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَاۡ عَلَيْهِمُ الَّذِیْۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ وَ هُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ؕ قُلْ هُوَ رَبِّیْ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَ اِلَيْهِ مَتَابِ (۳۰)

وَ لَوۡ اَنَّ قُرۡاٰنًا سُيِّرَتۡ بِہِ الۡجِبَالُ اَوۡ قُطِّعَتۡ بِہِ الۡاَرۡضُ اَوۡ کُلِّمَ بِہِ الۡمَوۡتٰی ؕ بَلۡ لِّلّٰہِ الۡاَمۡرُ جَمِیۡعًا ؕ اَفَلَمۡ یَایۡـَٔسِ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنۡ لَّوۡ یَشَآءُ اللّٰہُ لَہَدَی النَّاسَ جَمِیۡعًا ؕ وَ لَا یَزَالُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا تُصِیۡبُہُمۡ بِمَا صَنَعُوۡا قَارِعَۃٌ اَوۡ تَحُلُّ قَرِیۡبًا مِّنۡ دَارِہِمۡ حَتّٰی یَاۡتِیَ وَعۡدُ اللّٰہِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُخۡلِفُ الۡمِیۡعَادَ (۳۱)

او څه به شوي وو که کوم داسې قرآن نازل کړای شوی وای چې د هغه په زور سره غرونه خوځيدلي وای ، يا ځمکه څيرې شوې وای ، يا مړي له قبرو څخه راوتلي غږ پېدلي وای؟ ( ددغه ډول معجزو ښودل څه ګران نه دي )؛ بلکې ټوله واکمنی يوازې د الله په لاس کښې ده . نو ايا مؤمنان ( تر اوسه پورې د کافرانود غوښتنې په ځواب کښې د کومې معجزې راتګ ته په تمه ناست دی او په دې پوهېدلو سره ) نا هيلي شوي نه دي چې که الله غوښتي وای؛ نو ټولو انسانانو ته به يې هدايت کړېوْ ؟ کومو کسانو چې له خدای سره د کفر چلن غوره کړيدي پر هغو د هغو د کړو وړو له امله يو نه يو افت را پر پوتی دی، يا د هغو کور ته نژدې چېرته نازلېږي. دا لړی به تر هغه پورې روانه وې چې پر هغو د الله وعده ترسره شي دا باوري ده چې الله له خپلې وعدې نه مخالفت نه کوي.

وَ لَقَدِ اسۡتُہۡزِیَٔ بِرُسُلٍ مِّنۡ قَبۡلِکَ فَاَمۡلَیۡتُ لِلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا ثُمَّ اَخَذۡتُہُمۡ ۟ فَکَیۡفَ کَانَ عِقَابِ (۳۲)

له تانه مخکښې هم پر ډېرو پېغمبرانو ملنډې وهل شويدي، خو ما تل منکرانو ته مهلت ورکړی او په پای کښې مې هغوی نيولي دي، نو وګوره چې زما سزا څومره سخته وه.

اَفَمَنۡ ہُوَ قَآئِمٌ عَلٰی کُلِّ نَفۡسٍۭ بِمَا کَسَبَتۡ ۚ وَ جَعَلُوۡا لِلّٰہِ شُرَکَآءَ ؕ قُلۡ سَمُّوۡہُمۡ ؕ اَمۡ تُنَبِّـُٔوۡنَہٗ بِمَا لَا یَعۡلَمُ فِی الۡاَرۡضِ اَمۡ بِظَاہِرٍ مِّنَ الۡقَوۡلِ ؕ بَلۡ زُیِّنَ لِلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مَکۡرُہُمۡ وَ صُدُّوۡا عَنِ السَّبِیۡلِ ؕ وَ مَنۡ یُّضۡلِلِ اللّٰہُ فَمَا لَہٗ مِنۡ ہَادٍ (۳۳)

نوايا هغه ذات چې د هر تنفس کوونکي ګټلې يې تر نظر لاندې ده ( د هغه په مقابل کښې دا سپين سترګي کېږي چې ) خلکو له هغه سره شريکان نيولي دي؟ ای پېغمبره دوی ته ووايه ، ( که هغوی په ريښتيا سره د خدای خپل ټاکلي برخه وال وي نو ) تاسې يې نومونه واخلئ چې هغوی څوك دي؟ ايا تاسې الله په يوې داسې نوې خبرې خبروئ چې هغه ترې پخپله ځمکه کښې ناخبره دی؟ يا څه چې ستاسې په خوله راځي هغه وائي؟ حقيقت دادی چې کومو خلکو چې د حق بلنې له منلو څخه انکار کړيدی د هغو له پاره د هغو مکرونه ښايسته کړای شويدي او هغوی له سمې لارې څخه منع کړای شويدي او څوك چې الله په ګمراهی کښې وغورځوي هغه ته هيڅ لارښودونکی نشته .

لَہُمۡ عَذَابٌ فِی الۡحَیٰوۃِ الدُّنۡیَا وَ لَعَذَابُ الۡاٰخِرَۃِ اَشَقُّ ۚ وَ مَا لَہُمۡ مِّنَ اللّٰہِ مِنۡ وَّاقٍ (۳۴)

ددغسې خلکو له پاره ددنيا په ژوندانه کښې عذاب دی، او د اخرت عذاب له هغه نه هم ډېر سخت دی. هېڅوك داسې نشته چې له خدای نه د هغو ژغورونکی وي.

مَثَلُ الۡجَنَّۃِ الَّتِیۡ وُعِدَ الۡمُتَّقُوۡنَ ؕ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ ؕ اُکُلُہَا دَآئِمٌ وَّ ظِلُّہَا ؕ تِلۡکَ عُقۡبَی الَّذِیۡنَ اتَّقَوۡا ٭ۖ وَّ عُقۡبَی الۡکٰفِرِیۡنَ النَّارُ (۳۵)

له خدای نه دوېرېدونکو انسانانو له پاره چې د کوم جنت وعده شوېده دهغه شان دادی چې تر هغه لاندې ويالې بهېږي، د هغه ميوې نه ختمېدونکې دي او د هغه سيوری همېشنی دی. داد متقيانو عاقبت دی . او د حق د منکرانو عاقبت دادی چې د هغو له پاره ددوزخ اور دی.

وَ الَّذِیۡنَ اٰتَیۡنٰہُمُ الۡکِتٰبَ یَفۡرَحُوۡنَ بِمَاۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡکَ وَ مِنَ الۡاَحۡزَابِ مَنۡ یُّنۡکِرُ بَعۡضَہٗ ؕ قُلۡ اِنَّمَاۤ اُمِرۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ اللّٰہَ وَ لَاۤ اُشۡرِکَ بِہٖ ؕ اِلَیۡہِ اَدۡعُوۡا وَ اِلَیۡہِ مَاٰبِ (۳۶)

ای پېغمبره ! کومو خلکو ته چې مونږ مخکښې کتاب ورکړی وْ هغوی له دې کتاب نه چې مونږ پر تا نازل کړيدی، خوشاله دي او په بېلابېلو ډلو کښې ځينې خلك داسې هم شته چې دده ځينې خبرې نه مني . ته په ډاګه ووايه چې : " ما ته خو يوازې د الله د بندګۍ حکم راکړل شويدی او له دېنه منع کړای شوی يم چې څوك د هغه شريك وانګېرم له دې کبله زه دهماغه لوري ته بلنه ورکوم اودهماغه خوا ته زما ورګرزېدل دي"

له همدې لارښوونې سره مونږ دغه عربي فرمان پر تا نازل کړېدی. اوس كه تا ددې علم سره سره چې تا ته راغلی دی د خلكو د غوښتنو پيروي وكړه؛ نو د الله په مقابل كښې نه څوك ستا ملاتړ او مرستندوی دی او نه څوك د هغه له نيونې څخه تا ژغورلی شي.

وَ كَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ؕ وَ لَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّ لَا وَاقٍ (٣٧)

له تا څخه مخكښې هم مونږ ډېر پېغمبران لېږلي دي او مونږ هغوي د مېرمنو او اولادونو خاوندان گرځولي وو ، او د هېڅ يو پېغمبر هم ددې وس واك نه وْ چې بې د الله له اذن څخه په خپله يې كومه نښانه راوړې ښودلې وای. د هر وخت له پاره يو كتاب دی.

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ وَ جَعَلْنَا لَهُمْ اَزْوَاجًا وَّ ذُرِّيَّةً ؕ وَ مَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ (٣٨)

د الله چې څه ته خوښه شي له مېنځه يې وړي. او څه ته يې چې خوښه شي تثبيتوی يې ، او ام الكتاب له هماغه سره دی.

يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَ يُثْبِتُ ۚۖ وَ عِنْدَهٗۤ اُمُّ الْكِتٰبِ (٣٩)

او ای پېغمبره ص ! د كوم شوم عاقبت اخطار چې مونږ دغو خلكو ته وركوو د هغه كومه برخه كه مونږ ستا په ژوندانه كښې وروښيو يا د هغه له مينځ ته راتگ نه مخكښې مونږ تا وفات كړو، په هر حال ستا وظيفه يوازې پېغام رسول دي او حساب اخيستل زمونږ كار دی.

وَ اِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَ عَلَيْنَا الْحِسَابُ (٤٠)

ايا دغه خلك نه گوري چې مونږ پر دغې سيمې را روان يو او د هغې دايره له هرې خوا راتنگوو؟ (مسلمانانو ته يې وركوو) الله حكومت كوي، هېڅوك د هغه پر فيصلو تجديد نظر كوونكی نه شته ، او د هغه په حساب اخيستلو كښې څه ځنډ نه راځي.

اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّا نَاْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا ؕ وَ اللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ ؕ وَ هُوَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (٤١)

له دوی نه مخكښې چې كوم خلك تېر شويدي هغوی هم غټ غټ چلونه چلولي دي ، خو اصلي فيصله كوونكی تدبير په ټوله معنا يوازې د الله په لاس كښې دی. هغه پوهېږي چې څوك څه گټي ، او دغه د حق منكران به ډېر ژر وگوري چې عاقبت د چا په گټه تمامېږي.

وَ قَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ جَمِيْعًا ؕ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ؕ وَ سَيَعْلَمُ الْكُفّٰرُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ (٤٢)

دغه منكران وائي چې ته د خدای لېږل شوی نه يې . ووايه " زما او ستاسې په مينځ كښې دالله شاهدي كافي ده او ورپسې د هر هغه چا شاهدي ده چې د اسماني كتاب علم ولري".

وَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَسْتَ مُرْسَلًا ؕ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ۙ وَ مَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتٰبِ (٤٣)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَ- لَ _ رَ . ای پيغمبره! دا يو كتاب دی چې مونږ ستا لوري ته نازل كړيدی چې ته خلك له ترږمېونه راوباسې او رڼا ته يې راولې ، د هغو د رب په توفيق سره ، د هغه خدای لارې ته چې زورور او په خپل ذا ت كښې په خپله ستايل شويدی.

الٓرٰ ۚ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۬ۙ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۙ(١)

او د اسمانونو او ځمكې د ټولو هستيو څښتن دی. او سخته تباه كوونكې سزا ده د هغو حق نه منونكو له پاره

اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَ وَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ۙ(٢)

چې ددنيا ژوند ته پر اخرت ترجيح وركوي ، او د الله له لارې نه خلك منع كوي او غواړي چې دغه لاره ( د هغو له هيلو سره سمه ) كږه شي. دا خلك په گمراهی كښې ډېر لرې تللي دي.

الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ يَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ؕ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ (٣)

مونږ چې د خپل پیغام رسولو له پاره کله کوم پیغمبر لیږلی دی، هغه ته مو همآغه د خپل قوم په ژبه پیغام ورکړیدی چې هغه په ښه شان په روښانه توګه هغو ی په خبره پوه کړي. بیا چې د الله چاته خوښه شي ګمراه کوي یې او چاته یې چې خوښه شي سمه لاره ورښیې، هغه بر لاسی او د حکمت څښتن دی.

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوۡمِہٖ لِیُبَیِّنَ لَہُمۡ ؕ فَیُضِلُّ اللّٰہُ مَنۡ یَّشَآءُ وَ یَہۡدِیۡ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۴)

مونږ له دېنه مخکښې موسىٰ هم له خپلو نښانو سره لیږلی دی. هغه ته هم مونږ حکم کړیٔ وْ چې خپل قوم له تررږمیو نه رڼا ته راوباسه او هغو ته د الهی تاریخ ددرس اخیستنې وړپیښو په اورولو سره نصیحت وکړه. په دغو پیښو کښې د هر هغه چا له پاره ستري نښانې دي چې صبر او شکر کوونکي وي.

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰی بِاٰیٰتِنَاۤ اَنۡ اَخۡرِجۡ قَوۡمَکَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوۡرِ ۬ۙ وَ ذَکِّرۡہُمۡ بِاَیّٰىمِ اللّٰہِ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوۡرٍ (۵)

هغه وخت یاد کړه چې موسىٰ خپل قوم ته وویل " د الله هغه ښیګڼه په یاد ولرئ چې هغه پر تاسې کړېده. هغه تاسې له فګرعونیانو نه وژغورلئ چې تاسې یې سخت ربړولئ، ستاسې زامن یې وژل او ستاسې ښځې یې ژوندئ ساتلې .په دې کښې ستاسې د رب له لوري لوي ازمیښت وْ.

وَ اِذۡ قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِہِ اذۡکُرُوۡا نِعۡمَۃَ اللّٰہِ عَلَیۡکُمۡ اِذۡ اَنۡجٰىکُمۡ مِّنۡ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ یَسُوۡمُوۡنَکُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ وَ یُذَبِّحُوۡنَ اَبۡنَآءَکُمۡ وَ یَسۡتَحۡیُوۡنَ نِسَآءَکُمۡ ؕ وَ فِیۡ ذٰلِکُمۡ بَلَآءٌ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ عَظِیۡمٌ (۶)

او په یاد ولرئ، ستاسې رب خبردار کړي وئ چې که تاسې شکر و باسئ؛ نو پر تاسې به لا زیاته پیرزوینه وکړم او که د نعمت ناشکري وکړئ؛ نو زما سزا ډېره سخته ده"

وَ اِذۡ تَاَذَّنَ رَبُّکُمۡ لَئِنۡ شَکَرۡتُمۡ لَاَزِیۡدَنَّکُمۡ وَ لَئِنۡ کَفَرۡتُمۡ اِنَّ عَذَابِیۡ لَشَدِیۡدٌ (۷)

او موسى وویل چې" که تاسې کافر شئ او د زمکې ټول اوسېدونکي هم کافر شي نو الله بې نیازه او په خپل ذات کښې خپله ستایل شویدی".

وَ قَالَ مُوۡسٰۤی اِنۡ تَکۡفُرُوۡۤا اَنۡتُمۡ وَ مَنۡ فِی الۡاَرۡضِ جَمِیۡعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰہَ لَغَنِیٌّ حَمِیۡدٌ (۸)

ایا تاسې ته د هغو قومونو حالات نه دي رسیدلي چې له تاسې نه مخکښې تېر شویدي؟ د نوح قوم، عادیان، ثمودیان او له هغو وروسته راتلونکي ډېر قومونه چې د هغو شمیر یوازې الله ته معلوم دی؟ د هغو پیغمبران چې کله هغو ته له روښانه روښانه خبرو او ښکاره څرګندو نښانو سره راغلل نو هغو خپلې ګوتې په خوله کښې ونیولې او ویې ویل چې : " له کوم پیغام سره چې تاسې لیږل شوي یاست مونږ هغه نه منو او د کوم شي لوري ته چې تاسې بلنه راکوئ د هغه له پلوه مونږ په سخت اندیښناك شك کښې لویدلي یو".

اَلَمۡ یَاۡتِکُمۡ نَبَؤُا الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِکُمۡ قَوۡمِ نُوۡحٍ وَّ عَادٍ وَّ ثَمُوۡدَ ۬ؕۛ وَ الَّذِیۡنَ مِنۡۢ بَعۡدِہِمۡ ؕۛ لَا یَعۡلَمُہُمۡ اِلَّا اللّٰہُ ؕ جَآءَتۡہُمۡ رُسُلُہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ فَرَدُّوۡۤا اَیۡدِیَہُمۡ فِیۡۤ اَفۡوَاہِہِمۡ وَ قَالُوۡۤا اِنَّا کَفَرۡنَا بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ بِہٖ وَ اِنَّا لَفِیۡ شَکٍّ مِّمَّا تَدۡعُوۡنَنَاۤ اِلَیۡہِ مُرِیۡبٍ (۹)

د هغو پیغمبرانو وویل:" ایا د خدای په باب شك دی چې د اسمانونو او زمکې پیدا کوونکی دی؟ هغه تاسې ته بلنه درکوي چې ستاسې ګناهونه وبښي او تاسې ته تر یوې ټاکلې نیټې پورې مهلت درکړي هغو ځواب ورکړ" تاسې نور څه نه ئې مګر همآغسې انسانان لکه چې مونږ یو. تاسې غواړئ مونږ د هغو هستیو له بندګی نه منع کړئ چې د هغو بندګی زمونږ پلرونو نیکونو کوله ښه نو راوړئ مونږ ته کوم څرګند سند.

قَالَتۡ رُسُلُہُمۡ اَفِی اللّٰہِ شَکٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ یَدۡعُوۡکُمۡ لِیَغۡفِرَ لَکُمۡ مِّنۡ ذُنُوۡبِکُمۡ وَ یُؤَخِّرَکُمۡ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی ؕ قَالُوۡۤا اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُنَا ؕ تُرِیۡدُوۡنَ اَنۡ تَصُدُّوۡنَا عَمَّا کَانَ یَعۡبُدُ اٰبَآؤُنَا فَاۡتُوۡنَا بِسُلۡطٰنٍ مُّبِیۡنٍ (۱۰)

د هغو پيغمبرانو هغو ته وويل: " په رښتيا سره چې مونږ نور څه نه يو مګر ستاسي په څېر انسانان؛ خو الله چې کله له خپلو بندګانو نه پر چا وغواړي احسان کوي، او دا زمونږ په واك کښې نه ده چې تاسي ته کوم سند راوړو. سند خو يوازې د الله په اذن سره راتلای شي او په همغه الله دې مؤمنان توکل وکړي.

قَالَتۡ لَہُمۡ رُسُلُہُمۡ اِنۡ نَّحۡنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُکُمۡ وَ لٰکِنَّ اللّٰہَ یَمُنُّ عَلٰی مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖ ؕ وَ مَا کَانَ لَنَاۤ اَنۡ نَّاۡتِیَکُمۡ بِسُلۡطٰنٍ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰہِ ؕ وَ عَلَی اللّٰہِ فَلۡیَتَوَکَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ (۱۱)

او مونږ ولې پر الله توکل ونه کړو په داسي حال کښې چې هغه مونږ ته زمونږ د ژوند لارې راښودلې دي تاسي چې مونږ ته کوم کړاوونه رسوئ مونږ به پر هغو صبر وکړو او توکل کوونکو ته په کار ده چې پر الله توکل وکړي.

وَ مَا لَنَاۤ اَلَّا نَتَوَکَّلَ عَلَی اللّٰہِ وَ قَدۡ ہَدٰىنَا سُبُلَنَا ؕ وَ لَنَصۡبِرَنَّ عَلٰی مَاۤ اٰذَیۡتُمُوۡنَا ؕ وَ عَلَی اللّٰہِ فَلۡیَتَوَکَّلِ الۡمُتَوَکِّلُوۡنَ (۱۲)

په پای کښې منکرانو خپلو پېغمبرانو ته وويل چې " يا به تاسي بېرته زمونږ په دين کښې داخلېږئ که نه نو مونږ به تاسي له خپل هېوادنه وباسو"په دې وخت کښې د هغو رب هغو ته وحي ولېږله چې " مونږ به دغه ظالمان هلاك کړو.

وَ قَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا لِرُسُلِہِمۡ لَنُخۡرِجَنَّکُمۡ مِّنۡ اَرۡضِنَاۤ اَوۡ لَتَعُوۡدُنَّ فِیۡ مِلَّتِنَا ؕ فَاَوۡحٰۤی اِلَیۡہِمۡ رَبُّہُمۡ لَنُہۡلِکَنَّ الظّٰلِمِیۡنَ (۱۳)

او له هغو وروسته به تاسي په ځمکه کښې ميشته کړو. دا د هغه چا مکافات دي چې زما په حضور کښې له ځواب ويلو نه وېره لري او زما د عذاب له اخطار نه ډارېږي"

وَ لَنُسۡکِنَنَّـکُمُ الۡاَرۡضَ مِنۡۢ بَعۡدِہِمۡ ؕ ذٰلِکَ لِمَنۡ خَافَ مَقَامِیۡ وَ خَافَ وَعِیۡدِ (۱۴)

پيغمبرانو فيصله غوښتي وه ( نو دغسي دهغو فيصله وشوه ) او د حق هر جابر دښمن نامراده شو.

وَ اسۡتَفۡتَحُوۡا وَ خَابَ کُلُّ جَبَّارٍ عَنِیۡدٍ (۱۵)

بيا له دېنه هاخوا د هغه له پاره دوزخ دی. هلته به هغه ته دوينو زوو غوندې د څښلو اوبه ورکړی شي.

مِّنۡ وَّرَآئِہٖ جَہَنَّمُ وَ یُسۡقٰی مِنۡ مَّآءٍ صَدِیۡدٍ (۱۶)

چې په سختی سره به له ستوني څخه دهغو د تيرولو هڅه وکړي او په ډېره سختی سره به تيرې کړای شي. اومرګ به له هره پلوه پر هغه خورشي مګر هغه به ونه مري او وړاندې به يو سخت عذاب هغه ته سترګې پر لاره وي.

یَّتَجَرَّعُہٗ وَ لَا یَکَادُ یُسِیۡغُہٗ وَ یَاۡتِیۡہِ الۡمَوۡتُ مِنۡ کُلِّ مَکَانٍ وَّ مَا ہُوَ بِمَیِّتٍ ؕ وَ مِنۡ وَّرَآئِہٖ عَذَابٌ غَلِیۡظٌ (۱۷)

کوم خلك چې په خپل رب کافر شويدي د هغو د عملونو مثال د هغو ايرو په شان دی چې هغه د يوې طوفاني ورځې برېوکې الوزولې وي. هغوی به د خپلو کړو وړو هيڅ ميوه ونه شي ميندلی. همدا انتهائی ورکاوی دی.

مَثَلُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا بِرَبِّہِمۡ اَعۡمَالُہُمۡ کَرَمَادِ اشۡتَدَّتۡ بِہِ الرِّیۡحُ فِیۡ یَوۡمٍ عَاصِفٍ ؕ لَا یَقۡدِرُوۡنَ مِمَّا کَسَبُوۡا عَلٰی شَیۡءٍ ؕ ذٰلِکَ ہُوَ الضَّلٰلُ الۡبَعِیۡدُ (۱۸)

ايا ته نه وينې چې الله د اسمانونو او زمکې پيدايښت پر حق درولدی؟ که هغه وغواړي نو تاسي به له مينځه يوسي او يو نوی مخلوق به ستاسي پر ځای راولي.

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰہَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ ؕ اِنۡ یَّشَاۡ یُذۡہِبۡکُمۡ وَ یَاۡتِ بِخَلۡقٍ جَدِیۡدٍ (۱۹)

دغه کار الله ته هيڅ ګران نه دی.

وَّ مَا ذٰلِکَ عَلَی اللّٰہِ بِعَزِیۡزٍ (۲۰)

او دا خلك چې کله ټول يو ځای د الله په وړاندې ځرګند شي نو په هغه وخت کښې به (له دوی نه) هغه کسان چې په دنيا کښې کمزوري وو هغوی به هغو کسانو ته چې لوئي يې کوله " وائي " په دنيا کښې مونږ ستاسي پيروان وو، اوس ايا تاسي د الله له عذاب نه زمونږ د ژغورلو له پاره څه کولای شئ؟" هغوی به ځواب ورکړي " که الله مونږ ته د ژغورل کېدو کومه لاره ښودلې وای نو مونږ به ارو مرو تاسي ته هم ښودلې وای. اوس خو بې توپيره ده، که مونږ سرټکونه او بريګن وکړو يا صبر ، په هر حال زمونږ د ژغورنې څه لاره نشته"

وَ بَرَزُوۡا لِلّٰہِ جَمِیۡعًا فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِیۡنَ اسۡتَکۡبَرُوۡۤا اِنَّا کُنَّا لَکُمۡ تَبَعًا فَہَلۡ اَنۡتُمۡ مُّغۡنُوۡنَ عَنَّا مِنۡ عَذَابِ اللّٰہِ مِنۡ شَیۡءٍ ؕ قَالُوۡا لَوۡ ہَدٰىنَا اللّٰہُ لَہَدَیۡنٰکُمۡ ؕ سَوَآءٌ عَلَیۡنَاۤ اَجَزِعۡنَاۤ اَمۡ صَبَرۡنَا مَا لَنَا مِنۡ مَّحِیۡصٍ (۲۱)

او كله چې فيصله وكړای شي نو شيطان به ووائي " حقيقت دادی الله چې له تاسي سره كومې وعدې كړې وې هغه ټولې رېښتنې وې او ما چې له تاسي سره څومره وعدې وكړې له هغو نه مې يوه هم درسره پوره نه كړه، زما پر تاسي څه زورنه وْ، ما له دې پرته نور څه نه دي كړي، چې د خپلې لارې پر لورې مې تاسي ته بلنه دركړه او تاسي زما بلنې ته لبيك وويل. اوس پر ماپړه مه اچوئ، خپل ځانونه پړه وګڼئ. دلته نه زه ستاسي فرياد ته رسېدای شم او نه تاسي زما فرياد ته . له دې نه مخكښي چې تاسي زه په خدائی كښي شريك ګرځولی وم زه له هغې نه بری الذمه يم، دداسي ظالمانو له پاره خو په يقيني ډول دردناكه سزا ده".

وَ قَالَ الشَّيۡطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الۡاَمۡرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمۡ وَعۡدَ الۡحَقِّ وَ وَعَدۡتُّكُمۡ فَاَخۡلَفۡتُكُمۡ ؕ وَ مَا كَانَ لِيَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ اِلَّاۤ اَنۡ دَعَوۡتُكُمۡ فَاسۡتَجَبۡتُمۡ لِيۡ ۚ فَلَا تَلُوۡمُوۡنِيۡ وَ لُوۡمُوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ ؕ مَاۤ اَنَا بِمُصۡرِخِكُمۡ وَ مَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُصۡرِخِيَّ ؕ اِنِّيۡ كَفَرۡتُ بِمَاۤ اَشۡرَكۡتُمُوۡنِ مِنۡ قَبۡلُ ؕ اِنَّ الظّٰلِمِيۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۲۲)

ددې پر خلاف كومو كسانو چې په دنيا كښي ايمان راوړيدی او ښه عملونه يې كړيدي هغوې به په داسي باغونو كښي ننويستل شي چې تر هغو لاندې به ويالې بهېږي. هلته به هغوی د خپل رب په حكم سره د تل له پاره اوسېږي، او هلته به د هغو هركلی د سلامتيا په مباركۍ ويلو سره وشي.

وَ اُدۡخِلَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ ؕ تَحِيَّتُهُمۡ فِيۡهَا سَلٰمٌ (۲۳)

ايا ته نه ګورې چې الله دتوحيد د سپېڅلي كلمې مثال كوم شی ښودلی دی؟ د هغې مثال داسي دی لكه يوه ښه ذات لرونكې ونه، چې د هغې جرړې په ځمكه كښي ښخې شويدی او څانګې يې تر اسمانه رسېدلې دي،

اَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصۡلُهَا ثَابِتٌ وَّ فَرۡعُهَا فِي السَّمَآءِ (۲۴)

هغه په هر وخت كښي د خپل رب په حكم سره خپلې ميوې راوړي. دا مثالونه الله ددې له پاره خلكو ته بيانوي چې هغوې ورڅخه درس واخلي.

تُؤۡتِيۡۤ اُكُلَهَا كُلَّ حِيۡنٍۭ بِاِذۡنِ رَبِّهَا ؕ وَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡاَمۡثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ (۲۵)

اودكفر دناولې كلمې مثال ديوې بدذاتي ونې په څېردی چې د ځمكې له مخ نه راويستل شوې غورځول كيږي، د هغې له پاره هېڅ محكموالی نشته .

وَ مَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيۡثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيۡثَةِ اجۡتُثَّتۡ مِنۡ فَوۡقِ الۡاَرۡضِ مَا لَهَا مِنۡ قَرَارٍ (۲۶)

الله ايمان راوړونكو ته په دنيا او اخرت دواړو كښي د يوی ثابتی وينا پر بنسټ ثبات په برخه كوي او الله ظالمان ګمراه كوي د الله واك دی چې څه غواړي كوي يې.

يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِالۡقَوۡلِ الثَّابِتِ فِي الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَ فِي الۡاٰخِرَةِ ۚ وَ يُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيۡنَ ۙ۟ وَ يَفۡعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ (۲۷)

تا هغه خلك وليدل چې هغوی د الله نعمت وموند او هغه يې د نعمت په ناشكرۍ سره بدل كړ او ( له خپل ځان سره يې ) خپل قوم هم د هلاكت په كور كښي وغورځو؛

اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِيۡنَ بَدَّلُوۡا نِعۡمَتَ اللّٰهِ كُفۡرًا وَّ اَحَلُّوۡا قَوۡمَهُمۡ دَارَ الۡبَوَارِ (۲۸)

يعني دوزخ چې په هغه كښي به هغوی ننوځي او هغه د استوګنې ډېر بد ځای دی .

جَهَنَّمَ ۚ يَصۡلَوۡنَهَا ؕ وَ بِئۡسَ الۡقَرَارُ (۲۹)

او د الله يو څه سيالان يې وټاكل چې هغوی دوی د الله له لارې نه بې لارې كړي. دوی ته ووايه ، ښه ده خوندونه واخلئ، په پای كښي ستاسي ورګرځېدل دوزخ ته دي.

وَ جَعَلُوۡا لِلّٰهِ اَنۡدَادًا لِّيُضِلُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ؕ قُلۡ تَمَتَّعُوۡا فَاِنَّ مَصِيۡرَكُمۡ اِلَى النَّارِ (۳۰)

ای پیغمبره! زما کومو بندګانو چې ایمان راوړیدی هغو ته ووایه چې لمونځ قایم کړي او څه چې مونږ هغو ته ورکړیدي له هغو څخه ( د خیر په لاره کښې ) په پټه او ښکاره لګښت وکړي مخکښې له دینه چې هغه ورځ راشي چې په هغې کښې به نه پیرل پلورل وي او نه به د خپلوۍ پالنه وشي.

قُلۡ لِّعِبَادِیَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا یُقِیۡمُوا الصَّلٰوۃَ وَ یُنۡفِقُوۡا مِمَّا رَزَقۡنٰہُمۡ سِرًّا وَّ عَلَانِیَۃً مِّنۡ قَبۡلِ اَنۡ یَّاۡتِیَ یَوۡمٌ لَّا بَیۡعٌ فِیۡہِ وَ لَا خِلٰلٌ (۳۱)

الله هماغه ذات دی چې هغه اسمانونه او ځمکه پیدا کړل او له اسمانه یې اوبه ووروليې ، بیا یې د هغو په وسیله تاسې ته د روزۍ رسولو راز راز میوې پیدا کړې. هغه بېړۍ ستاسې له پاره په کار واچوله چې په سمندر کښې د هغه په حکم روانه شي او سیندونه یې ستاسې له پاره په کار واچول.

اَللّٰہُ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخۡرَجَ بِہٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزۡقًا لَّکُمۡ ۚ وَ سَخَّرَ لَکُمُ الۡفُلۡکَ لِتَجۡرِیَ فِی الۡبَحۡرِ بِاَمۡرِہٖ ۚ وَ سَخَّرَ لَکُمُ الۡاَنۡہٰرَ (۳۲)

او هغه لمر او سپوږمۍ ستاسې له پاره په کار واچول چې د قانون تابع چلیږي. او شپه او ورځ یې ستاسې له پاره په کار واچوله.

وَ سَخَّرَ لَکُمُ الشَّمۡسَ وَ الۡقَمَرَ دَآئِبَیۡنِ ۚ وَ سَخَّرَ لَکُمُ الَّیۡلَ وَ النَّہَارَ (۳۳)

او هغه ټول هغه څه تاسې ته درکړل چې تاسې وغوښتل . که تاسې وغواړئ چې د الله نعمتونه وشمیرئ؛ نو شمیرلی یې نه شئ. حقیقت دادی چې انسان ډیر بې انصافه او ناشکره دی.

وَ اٰتٰىکُمۡ مِّنۡ کُلِّ مَا سَاَلۡتُمُوۡہُ ؕ وَ اِنۡ تَعُدُّوۡا نِعۡمَتَ اللّٰہِ لَا تُحۡصُوۡہَا ؕ اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَظَلُوۡمٌ کَفَّارٌ (۳۴)

یاده کړه هغه وخت چې ابراهیم دعا کړې وه چې " پروردګاره! دا (دمکې) ښارد امن ښار وګرځوه او ما او زما اولاد له بت پرستۍ نه وساته.

وَ اِذۡ قَالَ اِبۡرٰہِیۡمُ رَبِّ اجۡعَلۡ ہٰذَا الۡبَلَدَ اٰمِنًا وَّ اجۡنُبۡنِیۡ وَ بَنِیَّ اَنۡ نَّعۡبُدَ الۡاَصۡنَامَ (۳۵)

زما ربه! دغو بتانو زیاتره خلك په ګمراهۍ کښې اچولي دي (کیدای شي چې دوی زما او لاده هم بې لارې کړي ځکه نو له دوی نه) چې څوك زما په کړنلاره لاړ هغه زما دی او څوك چې زما پر خلاف کړنلاره غوره کړي؛ نو په یقیني ډول ته بښونکی مهربان یې ،

رَبِّ اِنَّہُنَّ اَضۡلَلۡنَ کَثِیۡرًا مِّنَ النَّاسِ ۚ فَمَنۡ تَبِعَنِیۡ فَاِنَّہٗ مِنِّیۡ ۚ وَ مَنۡ عَصَانِیۡ فَاِنَّکَ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۳۶)

زموږ ربه! ما په یو بې اوبو وښو ناوکښې د خپل اولاد یوه برخه ستا د محترم کور تر څنګ میشته کړیده ، پروردګاره! دا ما ددې له پاره کړیدی چې دا خلك دلته لمونځ قائم کړي، نو ته د خلکو زړونه ددوی په تلوسه کړه او ته دوی ته د خوراك میوې ورکړه، ښائي چې دوی شکر ویستونکي شي.

رَبَّنَاۤ اِنِّیۡۤ اَسۡکَنۡتُ مِنۡ ذُرِّیَّتِیۡ بِوَادٍ غَیۡرِ ذِیۡ زَرۡعٍ عِنۡدَ بَیۡتِکَ الۡمُحَرَّمِ ۙ رَبَّنَا لِیُـقِیۡمُوا الصَّلٰوۃَ فَاجۡعَلۡ اَفۡئِدَۃً مِّنَ النَّاسِ تَہۡوِیۡۤ اِلَیۡہِمۡ وَ ارۡزُقۡہُمۡ مِّنَ الثَّمَرٰتِ لَعَلَّہُمۡ یَشۡکُرُوۡنَ (۳۷)

زموږ ربه! ته پر هغه څه چې مونږ یې پټوو یایې څرګند وو پوهیږې" او په رښتیا سره له الله څخه هیڅ شی نه په ځمکه کښې پټ دی نه په اسمان کښې"

رَبَّنَاۤ اِنَّکَ تَعۡلَمُ مَا نُخۡفِیۡ وَ مَا نُعۡلِنُ ؕ وَ مَا یَخۡفٰی عَلَی اللّٰہِ مِنۡ شَیۡءٍ فِی الۡاَرۡضِ وَ لَا فِی السَّمَآءِ (۳۸)

د هغه خدای شکر دی چې هغه ما ته په دې زوړوالي کښې اسماعیل او اسحاق غوندې زامن راکړل، حقیقت دادی چې زما رب ارومرو ددعااوریدونکی دی.

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰہِ الَّذِیۡ وَہَبَ لِیۡ عَلَی الۡکِبَرِ اِسۡمٰعِیۡلَ وَ اِسۡحٰقَ ؕ اِنَّ رَبِّیۡ لَسَمِیۡعُ الدُّعَآءِ (۳۹)

ای زما پروردګاره! ما د لمونځ قائموونکی وګرځوه او زما له اولاد نه هم ( داسې خلك راپورته کړه چې دغه عبادت ادا کړي) زموږ ربه! زما دعا قبوله کړه.

رَبِّ اجۡعَلۡنِیۡ مُقِیۡمَ الصَّلٰوۃِ وَ مِنۡ ذُرِّیَّتِیۡ ٭ۖ رَبَّنَا وَ تَقَبَّلۡ دُعَآءِ (۴۰)

زموږ ربه! ما ، زما مور پلار او ټولو مؤمنانو ته دحساب په ورځ بښنه وکړه.

رَبَّنَا اغۡفِرۡ لِیۡ وَ لِوَالِدَیَّ وَ لِلۡمُؤۡمِنِیۡنَ یَوۡمَ یَقُوۡمُ الۡحِسَابُ (۴۱)

اوس چې دغه ظالمان څه کوي ته الله له دوی نه غافل مه ګڼه. الله خو دوی د هغې ورځې له پاره ځنډوي چې کله داسې حالت وي چې سترګې ټيغې ردې پاتې وي،

وَ لَا تَحۡسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعۡمَلُ الظّٰلِمُوۡنَ ۬ؕ اِنَّمَا يُؤَخِّرُہُمۡ لِيَوۡمٍ تَشۡخَصُ فِيۡهِ الۡاَبۡصَارُ ‎(۴۲)

سرونه نيغ نيوونکې په تېښته به وي، پورته لورې ته به شخ ګوري ځان ته به کتلی نشي، او زړونه به يې الوزي.

مُہۡطِعِيۡنَ مُقۡنِعِیۡ رُءُوۡسِہِمۡ لَا يَرۡتَدُّ اِلَيۡہِمۡ طَرۡفُہُمۡ ۚ وَ اَفۡـِٕدَتُہُمۡ ہَوَآءٌ ‎(۴۳)

ای محمده ! ته دا خلك له هغې ورځې نه وويروه چې کله دوی ته عذاب راشي ، په هغه وخت کښې به دغه ظالمان ووائي چې " ای زمونږ ربه! مونږ ته لږ غوندې نور مهلت راکړه، مونږ به ستا دعوت ته لبيك ووايو او د پېغمبرانو پيروي به وکړو" ( خو دوی ته به په څرګند ډول ځواب ورکړ شي چې ) ايا تاسې همغه خلك نه يئ چې له دينه مخکښې مو په قسمونو خوړلو ويل چې مونږ هيڅکله زوال نه لرو؟

وَ اَنۡذِرِ النَّاسَ يَوۡمَ يَاۡتِيۡہِمُ الۡعَذَابُ فَيَقُوۡلُ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا رَبَّنَاۤ اَخِّرۡنَاۤ اِلٰۤی اَجَلٍ قَرِيۡبٍ ۙ نُّجِبۡ دَعۡوَتَکَ وَ نَتَّبِعِ الرُّسُلَ ؕ اَوَ لَمۡ تَکُوۡنُوۡۤا اَقۡسَمۡتُمۡ مِّنۡ قَبۡلُ مَا لَکُمۡ مِّنۡ زَوَالٍ ‎(۴۴)

په داسې حال کښې چې تاسې د هغو قومونو په کليو کښې اوسېدلئ چې هغو په خپله پر ځان ظلم کړی وْ او تاسې ته څرګنده شوه چې مونږ له هغو سره څه چلند وکړ او د هغو د مثالونو په راوړلو مونږ تاسې پوهولي هم وئ.

وَّ سَکَنۡتُمۡ فِیۡ مَسٰکِنِ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡۤا اَنۡفُسَہُمۡ وَ تَبَيَّنَ لَکُمۡ کَيۡفَ فَعَلۡنَا بِہِمۡ وَ ضَرَبۡنَا لَکُمُ الۡاَمۡثَالَ ‎(۴۵)

هغوی خپلې ټولې دسيسې په کار واچولې خو د هغوی د هرې دسيسې خنثی کول له الله سره وو که څه هم چې د هغو چلونه داسې قوي وو چې غرونه پرې له ځايه بې ځايه شي (يا د هغو چلونه خو داسې قوي نه وو چې غرونه پرې له ځايه بې ځايه شي يعنې د خدای د محکمو فيصلو مخه ونيسي)

وَ قَدۡ مَکَرُوۡا مَکۡرَہُمۡ وَ عِنۡدَ اللّٰهِ مَکۡرُہُمۡ ؕ وَ اِنۡ کَانَ مَکۡرُہُمۡ لِتَزُوۡلَ مِنۡهُ الۡجِبَالُ ‎(۴۶)

نو ای پېغمبره! ته هيڅکله دا ګومان مه کوه چې الله به په کوم وخت کښې له خپلو پېغمبرانو سره د کړيو وعدو پر خلاف کار وکړي. الله زورور او غچ اخيستونکی دی.

فَلَا تَحۡسَبَنَّ اللّٰهَ مُخۡلِفَ وَعۡدِهٖ رُسُلَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيۡزٌ ذُو انۡتِقَامٍ ‎(۴۷)

دوی له هغې ورځې نه وويروه چې کله ځمکه او اسمانونه بدل او له يو څه نه بل څه جوړ کړای شي او ټول به د يوه قهار خدای په وړاندې څرګند حاضر شي.

يَوۡمَ تُبَدَّلُ الۡاَرۡضُ غَيۡرَ الۡاَرۡضِ وَ السَّمٰوٰتُ وَ بَرَزُوۡا لِلّٰهِ الۡوَاحِدِ

په هغه ورځ به ته مجرمان وګورې چې په ځنځيرونو کښې به يې لاسونه پښې کلکې تړلې وي

الۡقَہَّارِ ‎(۴۸) وَ تَرَی الۡمُجۡرِمِيۡنَ يَوۡمَئِذٍ مُّقَرَّنِيۡنَ فِی الۡاَصۡفَادِ ‎(۴۹)

د قير جامې به يې اغوستې وي او د اورشغلې به د هغو پر مخونو خورېدونکې وي.

سَرَابِيۡلُہُمۡ مِّنۡ قَطِرَانٍ وَّ تَغۡشٰی وُجُوۡہَہُمُ النَّارُ ‎(۵۰)

دا به ځکه داسې وي چې الله هر تنفس کوونکې ته د هغه د کړ نو بدله ورکړي. دالله په حساب اخيستلو کښې څه ځنډ نه راځي.

لِيَجۡزِیَ اللّٰهُ کُلَّ نَفۡسٍ مَّا کَسَبَتۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيۡعُ الۡحِسَابِ ‎(۵۱)

دا د ټولو انسانانو له پاره يو پېغام دی، او دادي له پاره لېږل شويدی چې هغوی دده په وسيله خبردار کړای شي او هغوی وپوهېږی چې په حقيقت کښې خدای صرف ايکې يو دی او څوك چې پوهه لري هغوی متوجه شي.

ہٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَ لِيُنۡذَرُوۡا بِهٖ وَ لِيَعۡلَمُوۡۤا اَنَّمَا ہُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّ لِيَذَّکَّرَ اُولُوا الۡاَلۡبَابِ ‎(۵۲)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

اَ – لَ – رَ. دا د الهي کتاب او څرګندوونکي قرآن ايتونه دي.

الٓرٰ ۟ تِلۡکَ اٰيٰتُ الۡکِتٰبِ وَ قُرۡاٰنٍ مُّبِيۡنٍ ‎(۱)

| | |
|---|---|
| لیرې نه ده چې هغه وخت راشي چې هماغه خلك چې نن یې د اسلام ددعوت له منلو نه انکار کړیدی، په پښېمانتیا سره ووایي چې کاشکې مونږ د تسلیم سرښکته کړی وای. | رُبَمَا یَوَدُّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا لَوْ کَانُوْا مُسْلِمِیْنَ (۲) |
| پرېږده دوی چې وخوري و څښي او خوند ونه واخلي ، او د روغجنې هیلې یې په هېره کښې واچوي، ډېر ژر به دوی ته معلومه شي. | ذَرْہُمْ یَاْکُلُوْا وَ یَتَمَتَّعُوْا وَ یُلْہِہِمُ الْاَمَلُ فَسَوْفَ یَعْلَمُوْنَ (۳) |
| مونږ چې له دېنه مخکښې هره سیمه هلاکه کړېده د هغې له پاره مو د عمل یو ټاکلی مهلت لیکلی وُ. | وَ مَاۤ اَہْلَکْنَا مِنْ قَرْیَۃٍ اِلَّا وَ لَہَا کِتَابٌ مَّعْلُوْمٌ (۴) |
| هیڅ قوم نه له خپل ټاکلي وخت نه مخکښې هلاکېدای شي ، نه له هغه نه وروسته پرېښودل کیدای شي. | مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّۃٍ اَجَلَہَا وَ مَا یَسْتَاْخِرُوْنَ (۵) |
| دوی وائي" ای هغه سړیه چې ذکرپرې نازل شویدی،ته په رېښتیا سره لیونی یې. | وَ قَالُوْا یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْ نُزِّلَ عَلَیْہِ الذِّکْرُ اِنَّکَ لَمَجْنُوْنٌ (۶) |
| که ته رېښتونی یې نو زمونږ په وړاندې دې پرښتې ولې را نه وستلې"؟ | لَوْ مَا تَاْتِیْنَا بِالْمَلٰٓئِکَۃِ اِنْ کُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ (۷) |
| مونږ پرېښتې هسې نه نازلوو. هغوی چې کله کوزېږي نو له حق سره کوزېږي ، ا و بیا خلکو ته مهلت نه ورکول کېږي. | مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِکَۃَ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ مَا کَانُوْۤا اِذًا مُّنْظَرِیْنَ (۸) |
| پاتې شو دا ذکر ، دا مونږ نازل کړیدی او مونږ په خپله ددې ساتندویان یو. | اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّکْرَ وَ اِنَّا لَہٗ لَحٰفِظُوْنَ (۹) |
| او ای محمده! مونږ له تا نه مخکښې په ډیرو تېرو شویو قومونو کښې پېغمبران لیږلي دي. | وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِکَ فِیْ شِیَعِ الْاَوَّلِیْنَ (۱۰) |
| هیڅکله داسې نه ده شوې چې هغو ته کوم پېغمبر راغلی وي او هغوی ورپورې مسخرې نه وي کړې. | وَ مَا یَاْتِیْہِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا کَانُوْا بِہٖ یَسْتَہْزِءُوْنَ (۱۱) |
| دمجرمانو په زړونوکښې خو مونږدغه ذکر همدغسې ( د سیخانو په څېر ) ټومبو. | کَذٰلِکَ نَسْلُکُہٗ فِیْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِیْنَ (۱۲) |
| هغوی پرې ایمان نه راوړي، له پخوا نه ددغه ډول خلکو همدا کړنلاره ده. | لَا یُؤْمِنُوْنَ بِہٖ وَ قَدْ خَلَتْ سُنَّۃُ الْاَوَّلِیْنَ (۱۳) |
| که مونږ پر هغو د اسمان کومه دروازه پرانستې وای او هغوی په رڼا ورځ په کښې ختلي هم وای | وَ لَوْ فَتَحْنَا عَلَیْہِمْ بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِیْہِ یَعْرُجُوْنَ (۱۴) |
| بیا به یې هم همدا ویل چې زمونږ سترګې غولول کېږي، بلکې پر مونږ کوډې شویدی. | لَقَالُوْۤا اِنَّمَا سُکِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ (۱۵) |
| دا زمونږ چار جوړونه ده چې په آسمان کښې مونږ ډیرپاخه پرجونه جوړ کړي او هغه مو د نندارچیانو له پاره ښایسته کړیدي، | وَ لَقَدْ جَعَلْنَا فِی السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّ زَیَّنّٰہَا لِلنّٰظِرِیْنَ (۱۶) |
| او له هر رټل شوي شیطان څخه مو هغه خوندي ساتلي دي. | وَ حَفِظْنٰہَا مِنْ کُلِّ شَیْطٰنٍ رَّجِیْمٍ (۱۷) |
| هیڅ یو شیطان هغو ته لاره نه شي میندلی ، مګرداچې څه په پټه چل ول غوږ وباسي او کله چې هغوی په پټه چل ول د غوږنیولو هڅه کوي نو یوه روښانه پلوشه یې تعقیبوي، | اِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَاَتْبَعَہٗ شِہَابٌ مُّبِیْنٌ (۱۸) |
| او مونږ ځمکه غوړولې ، په هغې کښې مو غرونه نصب کړي، په هغې کښې مو هر ډول شینېلې په ټاکلې تللې اندازه راټوکولې، | وَ الْاَرْضَ مَدَدْنٰہَا وَ اَلْقَیْنَا فِیْہَا رَوَاسِیَ وَ اَنْۢبَتْنَا فِیْہَا مِنْ کُلِّ شَیْءٍ مَّوْزُوْنٍ (۱۹) |

وَ جَعَلۡنَا لَکُمۡ فِیۡہَا مَعَایِشَ وَ مَنۡ لَّسۡتُمۡ لَہٗ بِرٰزِقِیۡنَ (۲۰)

او په هغې کښې مو ژوندني وسايل برابر کړي، ستاسي له پاره هم او د هغو زياترو مخلوقاتو له پاره هم چې تاسي د هغو روزی رسوونکي نه يې.

وَ اِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا عِنۡدَنَا خَزَآئِنُہٗ ۫ وَ مَا نُنَزِّلُہٗۤ اِلَّا بِقَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ (۲۱)

هيڅ شی داسي نشته چې د هغه زيرمي له مونږ سره نه وي ، او مونږ چې هر شی نازلوو په يوه ټاکلي اندازه کښې يې نازلوو

وَ اَرۡسَلۡنَا الرِّیٰحَ لَوَاقِحَ فَاَنۡزَلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَسۡقَیۡنٰکُمُوۡہُ ۚ وَ مَاۤ اَنۡتُمۡ لَہٗ بِخٰزِنِیۡنَ (۲۲)

مونږ باردار وونکی بادونه ليږو، بيا له اسمانه اوبه ور وو او په هغو اوبو سره تاسي خړوبه کوو. ددې زېرمي خزانه داران تاسي نه ياست.

وَ اِنَّا لَنَحۡنُ نُحۡیٖ وَ نُمِیۡتُ وَ نَحۡنُ الۡوٰرِثُوۡنَ (۲۳)

ژوند او مرګ مونږ ورکوو، او همدا مونږ د ټولو وارثان يو.

وَ لَقَدۡ عَلِمۡنَا الۡمُسۡتَقۡدِمِیۡنَ مِنۡکُمۡ وَ لَقَدۡ عَلِمۡنَا الۡمُسۡتَاۡخِرِیۡنَ (۲۴)

له تاسي نه مخکښې چې کوم خلك تېر شويدي پر هغوی هم مونږ علم لرو او وروسته راتلونکي هم مونږ ته معلوم دي.

وَ اِنَّ رَبَّکَ ہُوَ یَحۡشُرُہُمۡ ؕ اِنَّہٗ حَکِیۡمٌ عَلِیۡمٌ (۲۵)

په باوري ډول به ستا رب دغه ټول راپاڅوي. هغه حکيم هم دی عليم هم.

وَ لَقَدۡ خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنۡ صَلۡصَالٍ مِّنۡ حَمَاٍ مَّسۡنُوۡنٍ (۲۶)

مونږ انسان د بوينا کې خټې له وچ کودړي نه پېدا کړ.

وَ الۡجَآنَّ خَلَقۡنٰہُ مِنۡ قَبۡلُ مِنۡ نَّارِ السَّمُوۡمِ (۲۷)

او له هغه نه مخکښې مونږ پيريان د اور له شغلي نه پېدا کړي وو.

وَ اِذۡ قَالَ رَبُّکَ لِلۡمَلٰٓئِکَۃِ اِنِّیۡ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنۡ صَلۡصَالٍ مِّنۡ حَمَاٍ مَّسۡنُوۡنٍ (۲۸)

او هغه وخت يادکړه چې ستا رب پرښتو ته وويل چې: " زه د بوېناکې خټې له وچ کودړی نه يو بشر پېدا کوم.

فَاِذَا سَوَّیۡتُہٗ وَ نَفَخۡتُ فِیۡہِ مِنۡ رُّوۡحِیۡ فَقَعُوۡا لَہٗ سٰجِدِیۡنَ (۲۹)

بيا کله چې زه هغه بشپړ کړم او له خپل روح نه يو څه په کښې پو کړم؛ نو تاسي ټول د هغه په وړاندې په سجده پرېوځئ"

فَسَجَدَ الۡمَلٰٓئِکَۃُ کُلُّہُمۡ اَجۡمَعُوۡنَ (۳۰)

نو ټولو پرښتو سجده وکړه.

اِلَّاۤ اِبۡلِیۡسَ ؕ اَبٰۤی اَنۡ یَّکُوۡنَ مَعَ السّٰجِدِیۡنَ (۳۱)

بې له ابليس نه چې هغه د سجده کوونکو له ملګرتيا نه انکار وکړ.

قَالَ یٰۤاِبۡلِیۡسُ مَا لَکَ اَلَّا تَکُوۡنَ مَعَ السّٰجِدِیۡنَ (۳۲)

پروردګار پوښتنه وکړه" ای ابليسه ! پرتا څه وشول چې تا له سجده کوونکو سره ملګرتيا ونه کړه؟"

قَالَ لَمۡ اَکُنۡ لِّاَسۡجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقۡتَہٗ مِنۡ صَلۡصَالٍ مِّنۡ حَمَاٍ مَّسۡنُوۡنٍ (۳۳)

هغه وويل" زما دا کار نه دی چې زه دغه بشر ته سجده وکړم چې تا هغه د بوېناکي خټې له وچ کودړي څخه پېدا کړيدی"

قَالَ فَاخۡرُجۡ مِنۡہَا فَاِنَّکَ رَجِیۡمٌ (۳۴)

پروردګار وفرمايل" ښه ده ته له دې ځايه وځه ځکه چې ته رټل شوی يې،

وَّ اِنَّ عَلَیۡکَ اللَّعۡنَۃَ اِلٰی یَوۡمِ الدِّیۡنِ (۳۵)

او اوس د جزاتر ورځې پورې پر تا لعنت دی"

قَالَ رَبِّ فَاَنۡظِرۡنِیۡۤ اِلٰی یَوۡمِ یُبۡعَثُوۡنَ (۳۶)

هغه عرض وکړ" زما پروردګاره ! چې دا خبره ده نو ته ما ته تر هغې ورځې پورې مهلت راکړه چې ټول انسانان دوهم ځل راپاڅول شي"

قَالَ فَاِنَّکَ مِنَ الۡمُنۡظَرِیۡنَ (۳۷)

اِلٰی یَوۡمِ الۡوَقۡتِ الۡمَعۡلُوۡمِ (۳۸)

ويې فرمايل" ښه ده تا ته تر هغې ورځې پورې مهلت دی.
چې د هغې وخت مونږ ته معلوم دی

قَالَ رَبِّ بِمَاۤ اَغۡوَیۡتَنِیۡ لَاُزَیِّنَنَّ لَہُمۡ فِی الۡاَرۡضِ وَ لَاُغۡوِیَنَّہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۳۹)

زما پروردګاره! څنګه چې تا زه بې لارې کړم په "هغه وويل "
هماغه شان به اوس زه په ځمکه کښې ددوی له پاره د غولوونکو وسايلو په وړاندې کولو دوی ټول بې لارې کړم،

| | |
|---|---|
| پرته ستا له هغو بندګانو څخه چې تا هغوی له دوی نه خالص کړي وي | اِلَّا عِبَادَکَ مِنۡہُمُ الۡمُخۡلَصِیۡنَ (۴۰) |
| .دا هغه لياره ده چې سمه سيخه ماته رارسيږدلې ده "ويې فرمايل " | قَالَ ہٰذَا صِرَاطٌ عَلَیَّ مُسۡتَقِیۡمٌ (۴۱) |
| بېشکه څوك چې زما رېښتياني بندګان دي پر هغو به ستازورونه رسيږي. ستا زور به يوازې پر هغو بې لېاري شويو خلکو ورسيږي چې ستا پيروي وکړي | اِنَّ عِبَادِیۡ لَیۡسَ لَکَ عَلَیۡہِمۡ سُلۡطٰنٌ اِلَّا مَنِ اتَّبَعَکَ مِنَ الۡغٰوِیۡنَ (۴۲) |
| او د هغو ټولو لپاره ددوزخ اخطار دی" | وَ اِنَّ جَہَنَّمَ لَمَوۡعِدُہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۴۳) |
| دا دوزخ ( چې د ابليس پيروانو ته يې اخطار ورکړ شويدی ) اوه دروازې لري. د هرې دروازې له پاره له هغو نه يوه برخه خاص کړای شوېده . | لَہَا سَبۡعَۃُ اَبۡوَابٍ ؕ لِکُلِّ بَابٍ مِّنۡہُمۡ جُزۡءٌ مَّقۡسُوۡمٌ (۴۴) |
| ددې پرخلاف پرهېزګاران به په باغونو او چينو کښې وي | اِنَّ الۡمُتَّقِیۡنَ فِیۡ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوۡنٍ (۴۵) |
| او هغو ته به وويل شي چې دې ته ورننوځئ له سلامتيا سره بې وېرې او بې خطره. | اُدۡخُلُوۡہَا بِسَلٰمٍ اٰمِنِیۡنَ (۴۶) |
| د هغو په زړونو کښې که لږ ډېر دخيرى رخه وي هغه به مونږ تربنه وباسو، هغوی به په خپلو مينځو کښې ورونه ورونه يو بل ته مخامخ پرتختونو کښېني. | وَ نَزَعۡنَا مَا فِیۡ صُدُوۡرِہِمۡ مِّنۡ غِلٍّ اِخۡوَانًا عَلٰی سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِیۡنَ (۴۷) |
| هغو ته به نه هلته څه کړاو ورسيږئ او نه به له هغه ځايه وويستل شي. | لَا یَمَسُّہُمۡ فِیۡہَا نَصَبٌ وَّ مَا ہُمۡ مِّنۡہَا بِمُخۡرَجِیۡنَ (۴۸) |
| ای پېغمبره! زما بندګانو ته خبر ورکړه چې زه ډېر ښه ښنونکی او مهربان يم. | نَبِّیٔۡ عِبَادِیۡۤ اَنِّیۡۤ اَنَا الۡغَفُوۡرُ الرَّحِیۡمُ (۴۹) |
| خو ددې ترڅنګ زما عذاب هم ډېر دردناك عذاب دی. | وَ اَنَّ عَذَابِیۡ ہُوَ الۡعَذَابُ الۡاَلِیۡمُ (۵۰) |
| او دوی ته د ابراهيمع دمېلمنو قصه واوروه. | وَ نَبِّئۡہُمۡ عَنۡ ضَیۡفِ اِبۡرٰہِیۡمَ (۵۱) |
| کله چې هغوی هغه ته راغلل او ويې ويل" پرتادی سلام وي". نو هغه وويل" مونږ له تاسې نه وېرېږو" | اِذۡ دَخَلُوۡا عَلَیۡہِ فَقَالُوۡا سَلٰمًا ؕ قَالَ اِنَّا مِنۡکُمۡ وَجِلُوۡنَ (۵۲) |
| هغو ځواب ورکړ" مه وېرېږه مونږ تا ته د يو ډېر ځيرك هلك زېرى درکوو" | قَالُوۡا لَا تَوۡجَلۡ اِنَّا نُبَشِّرُکَ بِغُلٰمٍ عَلِیۡمٍ (۵۳) |
| ابراهيم ع وويل " ايا تاسې په دې زوړوالي کښې ماته د اولاد زېرى راکوئ؟ لږ فکر وکړئ دا څنګه زېرى راکوئ؟ | قَالَ اَبَشَّرۡتُمُوۡنِیۡ عَلٰۤی اَنۡ مَّسَّنِیَ الۡکِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُوۡنَ (۵۴) |
| هغو ځواب ورکړ" مونږ تاته په حقه زېرى درکوو، ته ناهيلي کېږه مه " | قَالُوۡا بَشَّرۡنٰکَ بِالۡحَقِّ فَلَا تَکُنۡ مِّنَ الۡقٰنِطِیۡنَ (۵۵) |
| ابراهيم ع وويل " د خپل رب له رحمت نه خو ګمراهان ناهيلي کېږي" | قَالَ وَ مَنۡ یَّقۡنَطُ مِنۡ رَّحۡمَۃِ رَبِّہٖۤ اِلَّا الضَّآلُّوۡنَ (۵۶) |
| بيا ابراهيم ع پوښتنه وکړه " ای د خدای استازيو ! هغه څه خبره ده چې تاسې ورته راغلي ياست "؟ | قَالَ فَمَا خَطۡبُکُمۡ اَیُّہَا الۡمُرۡسَلُوۡنَ (۵۷) |
| هغو وويل" مونږ ديو مجرم قوم لوري ته لېږل شوي يو. | قَالُوۡۤا اِنَّاۤ اُرۡسِلۡنَاۤ اِلٰی قَوۡمٍ مُّجۡرِمِیۡنَ (۵۸) |
| يوازې د لوط ع کورنى مستثنا ده، هغوی ټول به مونږ وژغورو. | اِلَّاۤ اٰلَ لُوۡطٍ ؕ اِنَّا لَمُنَجُّوۡہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۵۹) |

| | |
|---|---|
| پرته د هغه له مېرمنې نه چې د هغې په باب ( الله فرمائي چې ) مونږ مقدره کړېده چې هغه به له بېرته پاتې کېدونکو څخه وي". | اِلَّا امْرَاَتَهٗ قَدَّرْنَا ۙ اِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ (۶۰) |
| بیا کله چې دغه استازي لوط ع ته ورسېدل | فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ٍالْمُرْسَلُوْنَ (۶۱) |
| نو هغه وویل " تاسي نا اشنا ښکاربږئ". | قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ (۶۲) |
| هغو ځواب ورکړ" نه بلکې مونږ له هماغه څه سره درته راغلي يو چې د هغه په راتګ کي دغه خلك شکمن وو. | قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ (۶۳) |
| مونږ تاته ریښتیا وایو چې مونږ له حق سره تاته راغلي يو | وَ اَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ وَ اِنَّا لَصٰدِقُوْنَ (۶۴) |
| نو اوس چې د شپې يو څه برخه پاتې شي ته له خپلې کورنۍ سره ووځه او په خپله د هغو شاشاته ځه. له تاسي نه دې هېڅوك شاته نه ګوري. سم سيخ هغې خوا ته لاړ شئ چې تاسي ته حکم کېږي" | فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَ اتَّبِعْ اَدْبَارَهُمْ وَ لَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ وَّ امْضُوْا حَيْثُ تُؤْمَرُوْنَ (۶۵) |
| او هغه ته مونږ خپله دغه فيصله ورسوله چې د سهار له راختلو سره به ددغو خلکو جرړې غوڅې کړاى شي. | وَ قَضَيْنَآ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ اَنَّ دَابِرَ هٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوْعٌ مُّصْبِحِيْنَ (۶۶) |
| په دې ترڅ کښي دښار خلك د خوښۍ په څپو کښي ډوب د لوط ع پر کور وروختل. | وَ جَآءَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ يَسْتَبْشِرُوْنَ (۶۷) |
| لوط ع وویل " دوی زما مېلمانه دي، مامه شرموئ، | قَالَ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ ضَيْفِيْ فَلَا تَفْضَحُوْنِ (۶۸) |
| له الله نه ووېرېږئ ما مه رسوا کوئ. | وَ اتَّقُوا اللّٰهَ وَ لَا تُخْزُوْنِ (۶۹) |
| هغو وویل" ایا مونږ په وارو وارو ته نه يې منع کړى چې د ټولې نړۍ ټيکداري مه کوه"؟ | قَالُوْٓا اَوَ لَمْ نَنْهَكَ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ (۷۰) |
| لوط په بېوسۍ سره وویل"که تاسي څه کول غواړئ نودغه زما لوڼې شته"! | قَالَ هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِيْٓ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ (۷۱) |
| ستا په روح قسم اى پېغمبره! په هغه وخت کښي پر هغو يوه نشه غوندې راغلې وه چې په هغې کښي هغوى له سده وتلي وو. | لَعَمْرُكَ اِنَّهُمْ لَفِيْ سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُوْنَ (۷۲) |
| په پاى کښي د لمرله څرك سره سم هغوى يوې قوي چاودنې ونيول | فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِيْنَ (۷۳) |
| او مونږ هغه سيمه پر بل مخ نسکوره کړه او پر هغو مو د پخې شوې خټې د تيږو باران وورووه. | فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيْلٍ (۷۴) |
| په دې پېښه کښي د ځيرکو خلکو له پاره ستري نښاني دي. | اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ (۷۵) |
| او هغه سيمه ( چې هلته دا واقعه پيښه شوې وه ) په لويه لاره کښي واقع ده، | وَ اِنَّهَا لَبِسَبِيْلٍ مُّقِيْمٍ (۷۶) |
| په هغې کښي د عبرت درس دی د هغو خلکو له پاره چې د ايمان خاوندان دي. | اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ (۷۷) |
| او د الايکې خلك (د ځنګل اوسيدونکي، دشعيب (ع) قوم)ظالمان وو. | وَ اِنْ كَانَ اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ لَظٰلِمِيْنَ (۷۸) |
| نو ګوره چې مونږ له هغو نه غچ واخيست او ددغو دواړو قومونو وراني شوې سيمې په لويه ښکاره لاره پرتې دي. | فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ ۘ وَ اِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ (۷۹) |

| | |
|---|---|
| د حجر خلکو (دکندې اوسيدونکو ثموديانو) هم پېغمبران دروغجن ګڼلي وو. | وَ لَقَدۡ كَذَّبَ اَصۡحٰبُ الۡحِجۡرِ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (۸۰) |
| مونږ هغو ته خپل ايتونه ولېږل خپلې نښانې مو هغو ته وښودلې خو هغو هر څه له نظره وغورځول، | وَ اٰتَيۡنٰهُمۡ اٰيٰتِنَا فَكَانُوۡا عَنۡهَا مُعۡرِضِيۡنَ (۸۱) |
| هغوی غرونه توږل کورونه يې جوړول او په خپل ځای بيخي بې تشويشه او ډاډه وو. | وَ كَانُوۡا يَنۡحِتُوۡنَ مِنَ الۡجِبَالِ بُيُوۡتًا اٰمِنِيۡنَ (۸۲) |
| په پای کښې يوې قوي چاودنې هغوی سهار مهال ونيول. | فَاَخَذَتۡهُمُ الصَّيۡحَةُ مُصۡبِحِيۡنَ (۸۳) |
| او د هغو ګټلي هغو ته هيڅ په درد ونه خوړل. | فَمَاۤ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ (۸۴) |
| مونږ اسمانونه او ځمکه او د هغو ټولې هستی له حق نه پرته پر کوم بل بنسټ نه دي پېدا کړي، او د پرېکړې ساعت ارومرو راتلونکی دی، نو ای محمده ص ! ته ( ددغو خلکو پر بابېزه چارو) له شريفانه تېرېدنې څخه کار واخله. | وَ مَا خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ مَا بَيۡنَهُمَاۤ اِلَّا بِالۡحَقِّ‌ ؕ وَ اِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ‌ فَاصۡفَحِ الصَّفۡحَ الۡجَمِيۡلَ (۸۵) |
| په يقيني ډول ستا رب د ټولو هستوونکی او په هر څه پوهېږي. | اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الۡخَلّٰقُ الۡعَلِيۡمُ (۸۶) |
| مونږ تاته اوه داسې ايتونه درکړيدی چې د بيا بيا تکرارولو وړ دي، او تا ته موستر قرآن درکړيدی. | وَ لَقَدۡ اٰتَيۡنٰكَ سَبۡعًا مِّنَ الۡمَثَانِىۡ وَ الۡقُرۡاٰنَ الۡعَظِيۡمَ (۸۷) |
| ته هغو دنيوی ګټو ته سترګې مه اړوه چې مونږ له دوی څخه بېلابېلو خلکو ته ورکړيدي، او مه ددوی پر حال خپل زړه ځوروه. دوی پرېږده د مؤمنانو خوا ته دخواخوږی او مهربانی پاملرنه وکړه. | لَا تَمُدَّنَّ عَيۡنَيۡكَ اِلٰى مَا مَتَّعۡنَا بِهٖۤ اَزۡوَاجًا مِّنۡهُمۡ وَ لَا تَحۡزَنۡ عَلَيۡهِمۡ وَ اخۡفِضۡ جَنَاحَكَ لِلۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۸۸) |
| او (نه منونکو ته) ووايه چې زه خو ښکاره څرګنداخطار ورکوونکی يم. | وَ قُلۡ اِنِّىۡۤ اَنَا النَّذِيۡرُ الۡمُبِيۡنُ (۸۹) |
| داهماغه شان اخطاردی لکه چې مونږ هغه تفرقه اچوونکو ته لېږلی وْ | كَمَاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَى الۡمُقۡتَسِمِيۡنَ (۹۰) |
| چې هغو قرآن ټوټې ټوټې کړيدی. | الَّذِيۡنَ جَعَلُوا الۡقُرۡاٰنَ عِضِيۡنَ (۹۱) |
| نو قسم دی ستا په رب، مونږ به ارومرو له دوی ټولو نه پوښتنه وکړو | فَوَ رَبِّكَ لَنَسۡـَٔلَنَّهُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ (۹۲) |
| چې دوی څه کړيدی. | عَمَّا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (۹۳) |
| نو ای پېغمبره! د کوم شي چې تا ته حکم کېږي هغه په لوړ اواز ووايه او د مشرکانو يو بخری پروا مه کوه . | فَاصۡدَعۡ بِمَا تُؤۡمَرُ وَ اَعۡرِضۡ عَنِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ (۹۴) |
| ستاله لوري مونږله هغوملنډووهونکو څخه دغچ اخيستلوله پاره کافي يو | اِنَّا كَفَيۡنٰكَ الۡمُسۡتَهۡزِءِيۡنَ (۹۵) |
| چې له الله سره بل څوك هم خدای ګرځوي. ډېر ژر به دوی ته معلومه شي. | الَّذِيۡنَ يَجۡعَلُوۡنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ‌ ۚ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ (۹۶) |
| اومونږ ته معلومه ده کومې خبرې چې دوی په تا پورې کوي په هغو سره ستا زړه ته خپګان رسيږي. | وَ لَقَدۡ نَعۡلَمُ اَنَّكَ يَضِيۡقُ صَدۡرُكَ بِمَا يَقُوۡلُوۡنَ (۹۷) |
| د خپل رب له حمد سره د هغه تسبيح ووايه ":ددې علاج دادی چې " ، د هغه په وړاندې سرپه سجده ښکته کړه، | فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ وَ كُنۡ مِّنَ السّٰجِدِيۡنَ (۹۸) |
| او تر هغه وروستي ساعت پورې د خپل رب بندګي کوه چې د هغه راتګ يقيني دی. | وَ اعۡبُدۡ رَبَّكَ حَتّٰى يَاۡتِيَكَ الۡيَقِيۡنُ (۹۹) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |

د الله فیصله راغله ، اوس د هغې له پاره تلوار مه کوئ. هغه پاك دی او له هغه شرك نه پورته اولوړ دی چې دوې يې کوي.

اَتٰی اَمۡرُ اللّٰہِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوۡہُ ؕ سُبۡحٰنَہٗ وَ تَعٰلٰی عَمَّا یُشۡرِکُوۡنَ (۱)

الله دغه روح چې پر خپل کوم بنده يې وغواړي په خپل حکم سره يې د پرښتې په وسیله نازلوی ( له دې لارښوونې سره چې خلك ) " وپوهوئ چې له ما څخه پرته هیڅوك ستاسې معبودنشته نو تاسې یوازې له مانه ووېرېږئ".

یُنَزِّلُ الۡمَلٰٓئِکَۃَ بِالرُّوۡحِ مِنۡ اَمۡرِہٖ عَلٰی مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖۤ اَنۡ اَنۡذِرُوۡۤا اَنَّہٗ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّاۤ اَنَا فَاتَّقُوۡنِ (۲)

هغه اسمانونه او ځمکه په حقه پیدا کړیدی، هغه له هغه شرك نه ډېر پورته او لوړ دی چې دوی يې کوي.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ ؕ تَعٰلٰی عَمَّا یُشۡرِکُوۡنَ (۳)

هغه انسان له لږ. غوندې نطفې نه پېدا کړ، او تر نظر لاندې لاندې په څرګند ډول له هغه نه یو جګړه مار موجود جوړ شو.

خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ مِنۡ نُّطۡفَۃٍ فَاِذَا ہُوَ خَصِیۡمٌ مُّبِیۡنٌ (۴)

هغه څاروی پېدا کړیدی چې په هغو کښې ستاسې له پاره پوښاك هم دی او خوراك هم ، او ډول ډول نورې ګټې هم.

وَ الۡاَنۡعَامَ خَلَقَہَا ۚ لَکُمۡ فِیۡہَا دِفۡءٌ وَّ مَنَافِعُ وَ مِنۡہَا تَاۡکُلُوۡنَ (۵)

په هغو کښې ستاسې له پاره ښکلا ده چې سهار يې د څرولو له پاره لېږئ او ماښام يې بېرته راولئ.

وَ لَکُمۡ فِیۡہَا جَمَالٌ حِیۡنَ تُرِیۡحُوۡنَ وَ حِیۡنَ تَسۡرَحُوۡنَ (۶)

هغوې ستاسې درانده پیټی تر داسې ځایونو پورې وړي چې هلته يې تاسې له ډېر ربړ ګاللو نه پرته نشئ رسولای. حقیقت دادیچې ستاسې رب ډېر زیات خواخوږی او مهربان دی.

وَ تَحۡمِلُ اَثۡقَالَکُمۡ اِلٰی بَلَدٍ لَّمۡ تَکُوۡنُوۡا بٰلِغِیۡہِ اِلَّا بِشِقِّ الۡاَنۡفُسِ ؕ اِنَّ رَبَّکُمۡ لَرَءُوۡفٌ رَّحِیۡمٌ ۙ(۷)

هغه اسونه ، قچر او خره پېدا کړي چې تاسې پرې سپاره شئ او هغه ستاسې د ژوند ښکلا وګرځي. هغه نور ډېر شیان ( ستاسې د ګټې له پاره ) پیدا کوي چې تاسې وربانديې پوه قدرې هم نه یاست.

وَّ الۡخَیۡلَ وَ الۡبِغَالَ وَ الۡحَمِیۡرَ لِتَرۡکَبُوۡہَا وَ زِیۡنَۃً ؕ وَ یَخۡلُقُ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۸)

او هماغه الله د سمې لارې ښودلو ذمه وار دی په داسې حال کښې چې کږې لارې هم شته. که هغه غوښتي وای نو تاسې ټولو ته به يې لارښوونه کړې وه.

وَ عَلَی اللّٰہِ قَصۡدُ السَّبِیۡلِ وَ مِنۡہَا جَآئِرٌ ؕ وَ لَوۡ شَآءَ لَہَدٰىکُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۹)

هماغه ذات دی چې ستاسې له پاره يې له اسمانه اوبه اورولې چې په هغو سره تاسې په خپله هم خړوبېږئ او له همدې نه ونې بوټي راټوکېږي چې تاسې په وښو ورشوکې څاروي څروئ.

ہُوَ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّکُمۡ مِّنۡہُ شَرَابٌ وَّ مِنۡہُ شَجَرٌ فِیۡہِ تُسِیۡمُوۡنَ (۱۰)

هغه ستاسې له پاره ددغو اوبو په وسیله کښتونه را زرغونوي او ښوون ، کجورې، انګور او نورې راز راز مېوې پیدا کوي، په دې کښې د هغو خلکو له پاره یوه ستره نښانه ده چې غور او فکر کوي.

یُنۡۢبِتُ لَکُمۡ بِہِ الزَّرۡعَ وَ الزَّیۡتُوۡنَ وَ النَّخِیۡلَ وَ الۡاَعۡنَابَ وَ مِنۡ کُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً لِّقَوۡمٍ یَّتَفَکَّرُوۡنَ (۱۱)

هغه ستاسې د ښېګڼې لپاره شپه او ورځ او لمر او سپوږمی په کار اچولي دي او ټول ستورې هم د هماغه په حکم په کار اچول شویدی، په دې کښې د هغو خلکو له پاره ډېرې نښانې دي چې له پوهې نه کار اخلي.

وَ سَخَّرَ لَکُمُ الَّیۡلَ وَ النَّہَارَ ۙ وَ الشَّمۡسَ وَ الۡقَمَرَ ؕ وَ النُّجُوۡمُ مُسَخَّرٰتٌۢ بِاَمۡرِہٖ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّعۡقِلُوۡنَ (۱۲)

او دا چې هغه ستاسې له پاره په ځمکه کښې ډېر رنګارنګ شیان پېدا کړیدی ، په دې کښې هم د هغو خلکو له پاره ارومرو نښانه ده چې درس اخیستونکي دي.

وَ مَا ذَرَاَ لَکُمۡ فِی الۡاَرۡضِ مُخۡتَلِفًا اَلۡوَانُہٗ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً لِّقَوۡمٍ یَّذَّکَّرُوۡنَ (۱۳)

هماغه ذات دی چې ستاسي له پاره يې سمندر په کار اچولی دی چې تاسي له هغه نه لمدې او تازه غوښې راواخلئ ويې خورئ او له هغه نه د ښائست هغه شيان راوباسئ چې تاسي يې اغوندئ . تاسي گورئ چې بېړۍ دسمندر سينه څيروونکی په کښې ځی، دا هر څه ددې له پاره دي چې تاسي د خپل رب فضل ولټوئ او د هغه شکر ويستونکي شئ.

وَ ہُوَ الَّذِیۡ سَخَّرَ الۡبَحۡرَ لِتَاۡکُلُوۡا مِنۡہُ لَحۡمًا طَرِیًّا وَّ تَسۡتَخۡرِجُوۡا مِنۡہُ حِلۡیَۃً تَلۡبَسُوۡنَہَا ۚ وَ تَرَی الۡفُلۡکَ مَوَاخِرَ فِیۡہِ وَ لِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِہٖ وَ لَعَلَّکُمۡ تَشۡکُرُوۡنَ (۱۴)

هغه په ځمکه کښې د غرو نو ميخونه ټکوهل چې ځمکه پر تاسو ونه ښرخېږي. هغه سيندونه وبهول او تخليقی لارې يې جوړې کړې چې تاسي لاره وموميئ.

وَ اَلۡقٰی فِی الۡاَرۡضِ رَوَاسِیَ اَنۡ تَمِیۡدَ بِکُمۡ وَ اَنۡہٰرًا وَّ سُبُلًا لَّعَلَّکُمۡ تَہۡتَدُوۡنَ (۱۵)

هغه په ځمکه کښې لارښوونکي نښاني وضع کړې، او پر ستورو هم خلك لاره مومي.

وَ عَلٰمٰتٍ ؕ وَ بِالنَّجۡمِ ہُمۡ یَہۡتَدُوۡنَ (۱۶)

نو ايا هغه څوك چې پيدا کوي او هغه څوك چې هيڅ هم نه پيدا کوي، دواړه يو شان دي؟ ايا تاسي پاملرنه نه کوئ؟

اَفَمَنۡ یَّخۡلُقُ کَمَنۡ لَّا یَخۡلُقُ ؕ اَفَلَا تَذَکَّرُوۡنَ (۱۷)

که تاسي د الله د نعمتونو شمېرل وغواړئ نو نه يې شئ شمېرلی ، حقيقت دادی چې هغه ډېر ښونکی او مهربان دی.

وَ اِنۡ تَعُدُّوۡا نِعۡمَۃَ اللّٰہِ لَا تُحۡصُوۡہَا ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَغَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۱۸)

په داسي حال کښې چې الله ستاسي له ښکاره وْ نه هم خبردی او له پټو نه هم.

وَ اللّٰہُ یَعۡلَمُ مَا تُسِرُّوۡنَ وَ مَا تُعۡلِنُوۡنَ (۱۹)

او هغه نورې هستئ چې له الله نه پرته يې خلك بلي، هغوي د هيڅ شي پيداکوونکي هم نه دي؛ بلکي په خپله مخلوق دي.

وَ الَّذِیۡنَ یَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ لَا یَخۡلُقُوۡنَ شَیۡئًا وَّ ہُمۡ یُخۡلَقُوۡنَ (۲۰ؕ)

مړه دي نه ژوندي او هغو ته هيڅ معلومه نه ده چې هغوې به کله (دوهم ځل ژوندي ) راپاڅول شي.

اَمۡوَاتٌ غَیۡرُ اَحۡیَآءٍ ۚ وَ مَا یَشۡعُرُوۡنَ ۙ اَیَّانَ یُبۡعَثُوۡنَ (۲۱)

ستاسي خداي يوازې همدا يو خدای دی. خو کوم خلك چې اخرت نه مني د هغو په زړونو کښې انکار ځای نيولی دی او هغوې په غرور کښې لوېدلي دي.

اِلٰـہُکُمۡ اِلٰہٌ وَّاحِدٌ ۚ فَالَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَۃِ قُلُوۡبُہُمۡ مُّنۡکِرَۃٌ وَّ ہُمۡ مُّسۡتَکۡبِرُوۡنَ (۲۲)

الله په يقيني ډول ددوې پر ټولو عملونو پوهېږي په پټو هم او په ښکاره وْ هم، هغه هيڅکله هغه خلك نه خوښوي چې د نفس په غرور کښې اخته وي.

لَاجَرَمَ اَنَّ اللّٰہَ یَعۡلَمُ مَا یُسِرُّوۡنَ وَ مَا یُعۡلِنُوۡنَ ؕ اِنَّہٗ لَا یُحِبُّ الۡمُسۡتَکۡبِرِیۡنَ (۲۳)

او کله چې څوك له هغو نه پوښتنه کوي چې ستاسي پروردگار څه نازل کړيدي؛ نو وائي: هغه خو د پخوانيو وختونو زړې قصې دي.

وَ اِذَا قِیۡلَ لَہُمۡ مَّا ذَاۤ اَنۡزَلَ رَبُّکُمۡ ۙ قَالُوۡۤا اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ (۲۴ۙ)

دغه خبرې هغوې ددې له پاره کوي چې د قيامت په ورځ خپل پيټي هم پورته کړي او ورسره ورسره يو څه د هغو خلکو پيټي هم يو ځای کړی چې دوی هغوی د جهالت په اساس بې لارې کوي. گورئ! څومره سخت مسئوليت دی چې دوې يې په خپله غاړه اخلي.

لِیَحۡمِلُوۡۤا اَوۡزَارَہُمۡ کَامِلَۃً یَّوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ ۙ وَ مِنۡ اَوۡزَارِ الَّذِیۡنَ یُضِلُّوۡنَہُمۡ بِغَیۡرِ عِلۡمٍ ؕ اَلَا سَآءَ مَا یَزِرُوۡنَ (۲۵)

له دوېنه مخکښې هم ډيرو خلکو ( د حق د ذليل ښودلو له پاره ) همداسي د سيسي جوړی کړيدي، خو گورئ چې الله د هغو ددسيسو کلا له بيخه ونړوله او د هغې چت له پاسه پر هغو راوغورزېده او له داسي لورې پر هغو عذاب راغي چې له هغه لوري يې د راتګ گومان قدرې هم نه وْ.

قَدۡ مَکَرَ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ فَاَتَی اللّٰہُ بُنۡیَانَہُمۡ مِّنَ الۡقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَیۡہِمُ السَّقۡفُ مِنۡ فَوۡقِہِمۡ وَ اَتٰىہُمُ الۡعَذَابُ مِنۡ حَیۡثُ لَا یَشۡعُرُوۡنَ (۲۶)

بیا د قیامت په ورځ به الله هغوي خوار او رسوا کړي او هغو ته به ووائي: راوښایاست اوس چېرته دي زما هغه شریکان چي د هغو له پاره تاسي ( د حق له پلویانو سره ) په جګړه وئ"؟ کومو خلکو چي په دنیا کښي علم درلود هغوي به ووائي" نن د کافرانو له پاره رسوائي او بدمرغي ده".

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُخْزِيْهِمْ وَ يَقُوْلُ اَيْنَ شُرَكَآءِىَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تُشَآقُّوْنَ فِيْهِمْ ؕ قَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَ السُّوْٓءَ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ (۲۷)

هو ، د هغو کافرانو له پاره چي پر خپلو ځانونو په ظلم کولو سره چي کله د پرښتو په لاسونو کښي را ګیرېږي نو ( له سرغړونی پرته سمدلاسه روغه جوړه وړاندي کوي او) وائي" مونږ خو کوم قصور نه کاوه". پرښتی ځواب ورکوي" څنګه مو نه کاوه! الله تعالی ستاسي له کړو وړو نه ښه خبر دی."

الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۪ فَاَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ بَلٰٓى اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۲۸)

اوس ځئ، ددوزخ په دروازو ننوځئ. همالته دتل لپاره ستاسي اوسېدل دي". نو حقیقت دادی چي د لوئي کوونکو لپاره ډېر ناکاره استوګنځی دی.

فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ (۲۹)

له بل پلوه کله چي له خدای وېرېدونکو خلکو نه پوښتنه کېږي چي داڅه شی دی چي ستاسي رب نازل کړي دی، نو هغوی ځواب ورکوي چي " ډېر ښه شی یې نازل کړی دی". ددغه راز نیکو کارانو لپاره په دې دنیا کښي هم ښېګڼه ده او د اخرت کور خو ارو مروددوی لپاره ډېر غوره دی. ډېر ښه کور دی د پرهېز ګارانو ،

وَ قِيْلَ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا مَاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ؕ قَالُوْا خَيْرًا ؕ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ؕ وَ لَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ ؕ وَ لَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ (۳۰)

د تل اوسېدو جنتونه ، چي په هغو کښی به ننوځي، لاندي به ترېنه ویالي بهېږي، او هر څه به هلته کټ مټ د هغو له هیلو سره سم وي. همدغسي مکافات ورکوي الله له خدایه وېرېدونکو ته.

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ ؕ كَذٰلِكَ يَجْزِى اللّٰهُ الْمُتَّقِيْنَ (۳۱)

هغو له خدایه وېرېدونکو ته چي کله پرښتي د سپېڅلتیا په حالت کښي د هغو ساګاني اخلي، نو وائي" سلام دي وي پر تاسي ، د خپلو عملونو په بدل کښي ځئ لاړ شئ جنت ته ".

الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ طَيِّبِيْنَ ۙ يَقُوْلُوْنَ سَلٰمٌ عَلَيْكُمُ ۙ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۳۲)

ای محمده ص ! اوس چي دغه خلك انتظار باسي نو له دې پرته اوس نور څه پاتي شویدی چي پرښتي ورته راشي یا ستا درب فیصله صادره شي؟ دغسي (سپین سترګي) له دوی نه مخکښی ډېرو خلکو کړېده ، بیا چي له هغو سره څه وشول هغه پر هغو د الله ظلم نه وْ؛ بلکي د هغو خپل ظلم وْ چي هغو په خپله پرځان وکړ.

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ يَاْتِيَ اَمْرُ رَبِّكَ ؕ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ وَ مَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَ لٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ (۳۳)

د هغو د کړو وړو مفاسد په پای کښي د هغو په لمن کښي ولوېدل او هماغه څه پر هغو مسلط شول چي هغو ورپوري ملنډې وهلي.

فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَ حَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۳۴)

دغه مشرکان وائي " که الله غوښتي وای نو نه به مونږ او نه به زمونږ پلرونو نیکونو له هغه پرته د کوم بل چا عبادت کړی وای او نه به مو د هغه له حکم نه پرته کوم شی حرام ګڼلی وای" همدغسي پلمي له دوی نه مخکښي خلکو هم جوړی کړیدی. نو ایا د پېغمبرانو پر غاړه له روښانه څرګند پیغام رسولو نه پرته نور څه مسئولیت هم شته ؟

وَ قَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ نَّحْنُ وَ لَآ اٰبَآؤُنَا وَ لَا حَرَّمْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ؕ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (۳۵)

مونږ په هرامت کښې يو پېغمبر ولېږه، او د هغه په وسيله مو ټول خبر کړل چې " د الله بندګي وکړئ او د طاغوت له بندګۍ نه ځان وژغورئ" له هغه وروسته له هغو نه ځا ته الله لاروښودله او پر ځا ګمراهي مسلطه شوه. نو په ځمکه کښې وګرځئ راوګرځئ وګورئ چې دروغ ګڼونکي له کوم برخليك سره مخامخ شول.

وَ لَقَدۡ بَعَثۡنَا فِيۡ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوۡلًا اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ وَ اجۡتَنِبُوا الطَّاغُوۡتَ ۚ فَمِنۡهُمۡ مَّنۡ هَدَى اللّٰهُ وَ مِنۡهُمۡ مَّنۡ حَقَّتۡ عَلَيۡهِ الضَّلٰلَةُ ؕ فَسِيۡرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ فَانۡظُرُوۡا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُكَذِّبِيۡنَ (۳۶)

ای محمدهص ! که ته ددوی د لار ميندنې لپاره هر څومره حرصناك يې ، خو الله چې څوك ګمراه کوي بيا هغه ته لار نه ښيي او ددغه راز خلکو لپاره هيڅ کوم مرستندوی نشته،

اِنۡ تَحۡرِصۡ عَلٰى هُدٰٮهُمۡ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِىۡ مَنۡ يُّضِلُّ وَ مَا لَهُمۡ مِّنۡ نّٰصِرِيۡنَ (۳۷)

دوی د الله په نوم د ترخو ترخو قسمونو په خوړلو سره وائي چې " الله به هيڅ مړکېدونکی بيا ژوندی راپانځوي " ولې به يې نه راپاڅوي، دا خويوه وعده ده چې د هغې تر سره کول هغه پر خپل ځان واجب کړيدی، خو زياتره خلك نه پوهېږي.

وَ اَقۡسَمُوۡا بِاللّٰهِ جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ ۙ لَا يَبۡعَثُ اللّٰهُ مَنۡ يَّمُوۡتُ ؕ بَلٰى وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقًّا وَّ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۳۸)

او داسې کېدل ددې لپاره ضروري دي چې الله دوی ته هغه حقيقت لوڅ کړي چې د هغه په باب دوی اختلاف کوي، او د حق منکرانو ته څرګنده شي چې هغوی دروغجن وو.

لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِىۡ يَخۡتَلِفُوۡنَ فِيۡهِ وَ لِيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اَنَّهُمۡ كَانُوۡا كٰذِبِيۡنَ (۳۹)

پاتې شول ددې کېدل نو ) پرمونږ به ديوشي د مينځ ته راوړلو ) نو "اِشه"لپاره له دېنه زيات څه کول نه وي چې هغه ته حکم وکړو .هغه کېږي

اِنَّمَا قَوۡلُنَا لِشَىۡءٍ اِذَاۤ اَرَدۡنٰهُ اَنۡ نَّقُوۡلَ لَهٗ كُنۡ فَيَكُوۡنُ (۴۰)

کومو خلکو چې د ظلم له زغملو نه وروسته د الله په خاطر هجرت کړېدی هغو ته به مونږ په همدې دنيا کښې ښه استوګنځی ورکړو او د اخرت ثواب خو ډېر لوی دی. کاشکې هغه مظلومان وپوهېږي

وَ الَّذِيۡنَ هَاجَرُوۡا فِى اللّٰهِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا ظُلِمُوۡا لَـنُبَوِّئَنَّهُمۡ فِى الدُّنۡيَا حَسَنَةً ؕ وَ لَاَجۡرُ الۡاٰخِرَةِ اَكۡبَرُ ۘ لَوۡ كَانُوۡا يَعۡلَمُوۡنَ (۴۱)

چې صبر يې کړيدی او د خپل رب په توکل کار کوي ( چې څه ډول عاقبت د هغو په انتظار کښې دی.)

الَّذِيۡنَ صَبَرُوۡا وَ عَلٰى رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُوۡنَ (۴۲)

ای محمده ! له تا نه مخکښې هم چې کله مونږ پېغمبران لېږلي دي د هغو خلکو لوري ته چې مونږ خپل پيغامونه ليږل له سړيو پرته مو بل څه نه دی ليږلی. له با خبرو خلکو نه پوښتنه وکړئ که تاسې په خپله نه پوهېږئ،

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوۡحِىۡۤ اِلَيۡهِمۡ فَسۡـئَلُوۡۤا اَهۡلَ الذِّكۡرِ اِنۡ كُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۴۳)

پخوانيو پېغمبرانو ته هم مونږ روښانه نښانې او کتابونه ورکړي لېږلي مو وو اوس مو دغه ذکر پر تا نازل کړيدی چې ته خلکو ته هغه ښوونه تشريح او توضيح کړې چې د هغو لپاره نازل کړای شوېده، او چې خلك ( په خپله هم ) غورا و فکر وکړي.

بِالۡبَيِّنٰتِ وَ الزُّبُرِ ؕ وَ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ الذِّكۡرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيۡهِمۡ وَ لَعَلَّهُمۡ يَتَفَكَّرُوۡنَ (۴۴)

ايا هغه خلك چې ( د پيغمبر د بلنې پر خلاف) ډېرې ناوړې دسيسې په کار اچوي له دې خبرې نه بيخي بې غمه شويدي چې الله به هغوی په ځمکه کښې ښخ کړي، يا به له داسې کوم لوري نه پرې عذاب راولي چې له هغه لوري نه د هغه دراتګ په باب د هغو وهم او ګومان قدرې هم نه وي،

اَفَاَمِنَ الَّذِيۡنَ مَكَرُوا السَّيِّاٰتِ اَنۡ يَّخۡسِفَ اللّٰهُ بِهِمُ الۡاَرۡضَ اَوۡ يَاۡتِيَهُمُ الۡعَذَابُ مِنۡ حَيۡثُ لَا يَشۡعُرُوۡنَ (۴۵)

يا هغوی ناڅاپه د ګرځېدو راګرځېدو په حال کښې ونيسي، دوی د الله د بيوسې کولو روزنه لري.

اَوۡ يَاۡخُذَهُمۡ فِىۡ تَقَلُّبِهِمۡ فَمَا هُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ (۴۶)

یا په داسي حال کښي هغوي ونیسي چي پر هغو په خپله دراتلونکي مصیبت اندیښنه پرته وي او هغوی له هغه نه د ځان ژغورلو په فکر کښي لك څك وي؟ (خو بیا هم ځان نشي ژغورلی)حقیقت دادی چي ستاسي رب ډېر خواخوږی او مهربان دی.

اَوۡ يَاۡخُذَہُمۡ عَلٰی تَخَوُّفٍ ؕ فَاِنَّ رَبَّكُمۡ لَرَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ (۴۷)

اوایا دوی د الله کوم پیدا کړی شی هم نه ویني چي د هغه سیوری په څه ډول د الله حضور ته په سجده کولو ښي او کیڼي خوا ته پریوځي؟ ټول په دغه ډول د خپلي عاجزۍ څرګندونه کوي.

اَوَ لَمۡ يَرَوۡا اِلٰی مَا خَلَقَ اللّٰہُ مِنۡ شَیۡءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُہٗ عَنِ الۡيَمِيۡنِ وَ الشَّمَآئِلِ سُجَّدًا لِّلّٰہِ وَ ہُمۡ دٰخِرُوۡنَ (۴۸)

په اسمانونو او ځمکه کښي چي هر څومره خوځنده مخلوقات دي او هر څومره پرښتي دي ټول د الله په وړاندي سر په سجده دي. هغوی هېڅکله سرنه غړوي ،

وَ لِلّٰہِ يَسۡجُدُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ مِنۡ دَآبَّۃٍ وَّ الۡمَلٰٓئِكَۃُ وَ ہُمۡ لَا يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ (۴۹)

له خپل رب نه چي د هغو د پاسه دی ، ویرېږي او څه چي ورته حکم کېږي له هماغه سره سم کار کوي.

يَخَافُوۡنَ رَبَّہُمۡ مِّنۡ فَوۡقِہِمۡ وَ يَفۡعَلُوۡنَ مَا يُؤۡمَرُوۡنَ (۵۰)

د الله فرمان دی چي " دوه خدایان مه نیسئ" خدای خو ایکی یو دی ، نو له ما نه ووېرېږئ.

وَ قَالَ اللّٰہُ لَا تَتَّخِذُوۡۤا اِلٰـہَيۡنِ اثۡنَيۡنِ ۚ اِنَّمَا ہُوَ اِلٰہٌ وَّاحِدٌ ۚ فَاِيَّایَ فَارۡہَبُوۡنِ (۵۱)

هر هغه څه چي په اسمانونو کښي دي او هر هغه څه چي په ځمکه کښي دي د هماغه دي او په خالصه توګه د همغه دین ( په ټولو کائناتو ) چلېږي. نو ایا له الله نه پرته تاسي له کوم بل چا نه ویرېږئ؟

وَ لَہٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ لَہُ الدِّيۡنُ وَاصِبًا ؕ اَفَغَيۡرَ اللّٰہِ تَتَّقُوۡنَ (۵۲)

تاسي ته چي هر نعمت درپه برخه شویدی د الله له لوري دی. بیا کله چي پر تاسي کوم سخت وخت راځي نو تاسي په چیغو سره د همغه لوري ته ورځغلئ.

وَ مَا بِكُمۡ مِّنۡ نِّعۡمَۃٍ فَمِنَ اللّٰہِ ثُمَّ اِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَاِلَيۡہِ تَجۡـَٔرُوۡنَ (۵۳)

خو کله چي الله هغه وخت درباندي تیروي نو نا څاپه له تاسي نه یوه ډله له خپل رب سره نور ( د هغه د مهربانی په شکریه کښي ) شریکوئ.

ثُمَّ اِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنۡكُمۡ اِذَا فَرِيۡقٌ مِّنۡكُمۡ بِرَبِّہِمۡ يُشۡرِكُوۡنَ (۵۴)

ددې لپاره چي موږ څه ورکړي دهغي ناشکري وکړي. ښه ده خوندونه واخلئ ډېر ژر به درته معلومه شي

لِيَكۡفُرُوۡا بِمَاۤ اٰتَيۡنٰہُمۡ ؕ فَتَمَتَّعُوۡا ۟ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ (۵۵)

او دوی زمونږ له ورکړي روزۍ نه د هغه چا برخه ټاکي چي د هغو له حقیقت نه خبر نه دی په خدای قسم دی چي هرومرو به له تاسي نه پوښتنه وشي چي دغه دروغ تاسي څنګه غوټه کړی وو؟

وَ يَجۡعَلُوۡنَ لِمَا لَا يَعۡلَمُوۡنَ نَصِيۡبًا مِّمَّا رَزَقۡنٰہُمۡ ؕ تَاللّٰہِ لَتُسۡـَٔلُنَّ عَمَّا كُنۡتُمۡ تَفۡتَرُوۡنَ (۵۶)

اودوی د خدای لپاره لوڼي ټاکي. سبحان الله ! او ددوی لپاره هغه څه چي په خپله یې غواړي؟ .

وَ يَجۡعَلُوۡنَ لِلّٰہِ الۡبَنٰتِ سُبۡحٰنَہٗ ۙ وَ لَہُمۡ مَّا يَشۡتَہُوۡنَ (۵۷)

کله چي له دوی نه یو چا ته د لور دزیږېدو زیری ورکول کېږي؛ نو مخ یې تور او ړي او هغه (د وینو غړپ) تیروي.

وَ اِذَا بُشِّرَ اَحَدُہُمۡ بِالۡاُنۡثٰی ظَلَّ وَجۡہُہٗ مُسۡوَدًّا وَّ ہُوَ كَظِيۡمٌ (۵۸)

له خلکو څخه پټ ګرځي چي ددغه ناکاره خبر له اورېدو وروسته به څنګه له چا سره مخامخ شي. فکر کوي چي له شرم سره لور وساتي او که په خارور کښي يي ومنډي؟ وګورئ څومره ناوړه حکم دی چي دوی يي د خدای په باب کوي.

يَتَوَارٰى مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ بِهٖ ؕ اَيُمْسِكُهٗ عَلٰى هُوْنٍ اَمْ يَدُسُّهٗ فِى التُّرَابِ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ (۵۹)

په ناوړو صفتونو سره د ستايل کېدو وړ خو هغه کسان دي چي پر اخرت باور نه لري. پاتي شو الله ، نو د هغه لپاره خو تر ټولو لوړ صفتونه دي، همغه پر ټولو برلاس او دحکمت څښتن دی.

لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۚ وَ لِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى ؕ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۶۰)

که الله خلك د هغو په ظلمونو سمدلاسه نيولی؛ نو د ځمکي پر مخ به هيڅ ساکښ نه وْ پاتي خو الله هغو ټولو ته تر يو ټاکلي وخت پوري مهلت ورکوي، بيا کله چي هغه وخت راځي نو له هغه څخه پوره يو ساعت هم وړاندي وروسته نه شي کيدای.

وَ لَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِمْ مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَآبَّةٍ وَّ لٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّ لَا يَسْتَقْدِمُوْنَ (۶۱)

او دغه خلك هغه څه د الله لپاره ټاکي چي د خپل ځان لپاره يي بديسي، او ددوی ژبي دا درواغ وائي چي ددوی لپاره ښېګڼه ده. ددوی لپاره خويوازې يو شی دی او هغه ددوزخ اور دی. ارو مرو به تر ټولو مخکښي دوی په هغه کښي وغورځول شي .

وَ يَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ وَ تَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ الْحُسْنٰى ؕ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَ اَنَّهُمْ مُّفْرَطُوْنَ (۶۲)

په خدای قسم دی، ای محمدهص! له تا نه مخکښي هم مونږ ډېرو قومونو ته پېغمبران ليرلي دي ( او مخکښي هم همداسي شويدی چي ) شيطان د هغو ناوړه کړه وړه هغو ته ښايسته کړل ( او هغو د پېغمبرانو خبره ونه منله ) همغه شيطان نن ددغو خلکو هم سرپرست شويدی او دوی ددردناك عذاب وړګرځيدلي دي.

تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۶۳)

مونږ دغه کتاب پر تا له دې کبله نازل کړيدی چي ته هغه اختلافونه دوی ته په حقيقی بڼه روښانه کړې چي دوی په کښی اخته شويدی. دغه کتاب د لارښود او رحمت په توګه نازل شويدی د هغو خلکو لپاره چي ويې مني.

وَ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۙ وَ هُدًى وَّ رَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۶۴)

تاسي په هر ورښت کښي وينئ چي ) الله له اسمانه اوبه وروليي او ) په ناڅاپي ډول د هغو په برکت يي په مړه ځمکه کښي ساواچوله. په باوري ډول په دې کښي د اورېدونکو لپاره يوه نښانه ده.

وَ اللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ (۶۵)

او ستاسي لپاره په څارويو کښي هم يو درس شته د هغو له ګيډي د خوشيو او ويني تر مينځه مونږ يو شی پر تاسو څښو ، يعني خالصه شيدې چي د څښونکو لپاره ډېرې په خوند تيريدونکي دي.

وَ اِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ؕ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِىْ بُطُوْنِهٖ مِنْۢ بَيْنِ فَرْثٍ وَّ دَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشّٰرِبِيْنَ (۶۶)

په همدې ډول مونږ د خرماوو او انګورو د ميوو له شيرو څخه هم يو شی پر تاسي څښو چي تاسي د نيشي مواد هم ورڅخه جوړوئ او پاکه روزی هم . په باوري ډول په دې کي له پوهي نه د کار اخيستونکو لپاره يوه نښانه ده.

وَ مِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَ الْاَعْنَابِ تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّ رِزْقًا حَسَنًا ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ (۶۷)

او(ګوره)!ستا رب دشاتو مچی ته دا وحي وکړه چي په غرونو کښي، په ونوکښي اوپر څپرو خيژول شويو نوتو کښي خپلې ځالي جوړې کړه.

وَ اَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِىْ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا وَّ مِنَ الشَّجَرِ وَ مِمَّا يَعْرِشُوْنَ (۶۸)

او د هر ډول میوو شیره وخوره او د خپل رب په هوارو کړیو لارو الوزه ددغه مچې له خیټې نه په بیلا بیلو رنګونو یو شربت راوځي چې په هغه کښې د خلکو لپاره شفا ده. په یقیني ډول په دې کښې هم د هغو خلکو لپاره یوه نښانه ده چې غور او فکر کوي.

ثُمَّ كُلِيْ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِيْ سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ؕ يَخْرُجُ مِنْۢ بُطُوْنِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ فِيْهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ (۶۹)

او (ګورئ)! الله تاسي پیدا کړئ، بیا هغه تاسي ته مرګ درکوي. او له تاسي نه څوك ډیر ناکاره عمر ته پریږدي چې پر هر څه له پوهیدو وروسته بیرته پر هیڅ ونه پوهیږي. حق دا دی چې یوازې الله هم د علم له پلوه بشپړ دی او هم دوس واك له پلوه.

وَ اللّٰهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ ۟ وَ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰۤى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ (۷۰)

او (ګورئ) ، الله له تاسي نه ځینو ته پر ځینو نورو په روزۍ کښې لوړتیا وربښلې ده؛ نو کومو کسانو ته چې دغه لوړتیا ورکړ شویده هغوی داسي نه دي چې خپله روزي یې د خپلو غلامانو لوري ته ګرځولې وي، چې دواړه په هغې روزۍ کښې برابر برخه وال واوسي؛ نو آیا دوی د الله له پیرزوینې نه منکر یږي؟

وَ اللّٰهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ فِى الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ؕ اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ (۷۱)

او همغه الله دئ چې ستاسي لپاره یې ستاسي له خپل جنس نه میرمنې و ګرځولې او همغه له دغو میرمنو نه تاسي ته زامن لمسي درکړیدي او ښه ښه خوراکي موادیي درپه برخه کړیدي. ایا نو دغه خلك ( ددې هر څه له لیدلو او پرې پوهیدلو سره هم ) باطل مني او د الله له پیرزوینې نه دوې انکار کوي.

وَ اللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَ حَفَدَةً وَّ رَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ (۷۲)

او له الله نه پرته د هغه شي بندګی کوي چې د هغه په لاس کښې نه له آسمان نه دوی ته څه روزي ورکول شته نه له زمکې نه او نه دا کار د هغوی له وسې پوره دی؟

وَ يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ شَيْئًا وَّ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ (۷۳)

نو د الله لپاره مثالونه مه جوړوئ، الله پوهیږي ، تاسي نه پوهیږي.

فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۷۴)

الله یو مثال راوړي . یو خو دی غلام ، چې د بل چا مملوك دی او په خپله څه واك نه لري. بل څوك داسي دي چې هغه ته مونږ له خپل لوري نه غوره روزي ورکړیده او هغه ورڅخه په ښکاره او پټه ښه لګښت کوي. وواياست ايا دغه دواړه سره برابر دي؟ الحمد لله خو زیاتره خلك ( پر دغې سمې خبرې) نه پوهیږي.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا لَّا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّ مَنْ رَّزَقْنٰهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَّ جَهْرًا ؕ هَلْ يَسْتَوٗنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۷۵)

الله یو بل مثال راوړي. دوه سړي دي. یو ګونګ کوڼ دی، هیڅ کار نه شي کولای ، پر خپل بادار پیټی دی هر چیرته یې چې واستوې کوم ښه کار ورڅخه نه صادریږي. دوهم سړی داسي دی چې پر عدالت حکم کوي او په خپله په سمه لار برابر دی. وواییئ ایا دغه دواړه سره یو شان دي ؟

وَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ اَحَدُهُمَاۤ اَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَيْءٍ وَّ هُوَ كَلٌّ عَلٰى مَوْلٰىهُ ۙ اَيْنَمَا يُوَجِّهْهُّ لَا يَاْتِ بِخَيْرٍ ؕ هَلْ يَسْتَوِيْ هُوَ ۙ وَ مَنْ يَّاْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَ هُوَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۷۶)

او د اسمانونو او ځمکې د پټو حقایقو علم خو یوزای له الله سره دي او دقیامت کیدو معامله به دومره ونه ځنډیږي مګر یوازې دومره چې په هغه کښې د انسان باڼه ورپیږي ، بلکې له دینه هم یو څه کم، حقیقت دادی چې الله هر څه کولای شي.

وَ لِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ مَاۤ اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۷۷)

الله تاسي ستاسي د میندو له ګیډو نه په داسي حالت کښې راوایستلئ چې تاسي په هیڅ نه پوهیدلئ. هغه تاسي ته غوږونه درکړل، سترګې یې درکړې، او فکر من زړونه یې درکړل، ددې لپاره چې تاسي شکر ویستونکي شئ.

وَ اللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا ۙ وَّ جَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ الْاَفْـِٕدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (۷۸)

ایا دغو خلکو کله الوتونکو ته نه دي کتلي چې په اسماني فضا کښي په څه شان مسخر دي؟ دوی له الله نه پرته چا ساتلي دي؟ په دې کښي د هغو کسانو لپاره ډيرې نښې نښانې شته چې ايمان راوړي.

اَلَمۡ يَرَوۡا اِلَى الطَّيۡرِ مُسَخَّرٰتٍ فِىۡ جَوِّ السَّمَآءِ ؕ مَا يُمۡسِكُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ (۷۹)

الله ستاسي لپاره ستاسي کورونه دآرام ځايونه وګرځول. هغه د څارويو له پوستکو نه ستاسي لپاره داسي کورونه پيدا کړل چې تاسي هغه د کوچ کولو او ديره کيدو په دواړو حالتونو کښي سپك مومئ. هغه د څارويو له وړيو ، اون او وژغنو څخه ستاسي د اغوستلو او غوړولو داستفادې لپاره ډېر شيان پيدا کړل چې د ژوند تر ټاکلي مودې پورې ستاسي په کار راځي.

وَ اللّٰهُ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنۡۢ بُيُوۡتِكُمۡ سَكَنًا وَّ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنۡ جُلُوۡدِ الۡاَنۡعَامِ بُيُوۡتًا تَسۡتَخِفُّوۡنَهَا يَوۡمَ ظَعۡنِكُمۡ وَ يَوۡمَ اِقَامَتِكُمۡ ۙ وَ مِنۡ اَصۡوَافِهَا وَ اَوۡبَارِهَا وَ اَشۡعَارِهَاۤ اَثَاثًا وَّ مَتَاعًا اِلٰى حِيۡنٍ (۸۰)

هغه د خپلو پيدا کړيو زياتره شيانو څخه ستاسي له پاره سيوري برابر کړل، په غرونو کښي يې ستاسي لپاره پناه ځايونه جوړ کړل، او تاسي ته يې داسي پوښاکونه درپه برخه کړيدي چې تاسي له ګرمی نه ساتي او ځيني نور پوښاکونه چې په خپل مينځي جګړو کښي ستاسي ساتنه کوي. په دغه ډول هغه پر تاسي خپل نعمتونه بشپړ وي ښايي چې تاسي امر مونکي شئ.

وَ اللّٰهُ جَعَلَ لَكُمۡ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا وَّ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنَ الۡجِبَالِ اَكۡنَانًا وَّ جَعَلَ لَكُمۡ سَرَابِيۡلَ تَقِيۡكُمُ الۡحَرَّ وَ سَرَابِيۡلَ تَقِيۡكُمۡ بَاۡسَكُمۡ ؕ كَذٰلِكَ يُتِمُّ نِعۡمَتَهٗ عَلَيۡكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تُسۡلِمُوۡنَ (۸۱)

اوس که دوي مخ اړوي ؛ نو ای محمده! پر تا د حق د پيغام په ډاګه څرګنده رسولو نه پرته بل کوم مسئوليت نه شته.

فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاِنَّمَا عَلَيۡكَ الۡبَلٰغُ الۡمُبِيۡنُ (۸۲)

دوی د الله ښيګڼه پيژني، بيا ورڅخه منکريږي. او په دې کښي زياتره خلك داسي دي چې د حق منلو ته تيار نه دي.

يَعۡرِفُوۡنَ نِعۡمَتَ اللّٰهِ ثُمَّ يُنۡكِرُوۡنَهَا وَ اَكۡثَرُهُمُ الۡكٰفِرُوۡنَ (۸۳)

دوی دیته څه پاملرنه لري چې په هغه ورځ به څه کيږي) چې کله ) مونږ. له هرامت څخه يو شاهد را پاڅوو، بيا به کافرانو ته نه د دليلو نو وړاندې کولو موقع ورکړل شي نه به له هغو نه د توبې ويستلو او .استغفار غوښتنه وکړای شي

وَ يَوۡمَ نَبۡعَثُ مِنۡ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيۡدًا ثُمَّ لَا يُؤۡذَنُ لِلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ لَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُوۡنَ (۸۴)

ظالمان چې يو ځل عذاب وګوري نو له هغه وروسته به نه د هغو په عذاب کښي څه اسانتيا راوستل شي او نه به يوه شيبه مهلت ورکړل شي.

وَ اِذَا رَاَ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوا الۡعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمۡ وَ لَا هُمۡ يُنۡظَرُوۡنَ (۸۵)

او کله چې هغه کسان چې په دنيا کښي يې شرك کړی وْ خپل انګيرلي شريکان ويني نو و به وايي " ای پروردګاره ، دغه دي زمونږ هغه شريکان چې له تا څخه پرته مونږ رابلل" نو د هغو معبودان به هغو ته په ډاګه ځواب ورکړي چې " تاسي دروغجن ياست ".

وَ اِذَا رَاَ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا شُرَكَآءَهُمۡ قَالُوۡا رَبَّنَا هٰۤؤُلَآءِ شُرَكَآؤُنَا الَّذِيۡنَ كُنَّا نَدۡعُوۡا مِنۡ دُوۡنِكَ ۚ فَاَلۡقَوۡا اِلَيۡهِمُ الۡقَوۡلَ اِنَّكُمۡ لَكٰذِبُوۡنَ (۸۶)

او په هغه وخت کښي به دوی ټول د الله په وړاندې غاړه کيږدي او د هغو هغه ټولي افتراګانې به له مينځه لاړې شي چې دوی په دنيا کښي کولې.

وَ اَلۡقَوۡا اِلَى اللّٰهِ يَوۡمَئِذِ ۨالسَّلَمَ وَ ضَلَّ عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَفۡتَرُوۡنَ (۸۷)

کومو خلکو چې پخپله د کفر لار غوره کړه او نور يې د الله له لارې نه واړول هغو ته به مونږ سپار په سپار عذابونه ورکړو د هغه فساد په بدل کښي چې هغوی په دنيا کښي کړی و.

اَلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ صَدُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ زِدۡنٰهُمۡ عَذَابًا فَوۡقَ الۡعَذَابِ بِمَا كَانُوۡا يُفۡسِدُوۡنَ (۸۸)

ای محمده ، دوی له هغې ورځې نه خبر کړه ) چې کله مونږ په ) هر امت کښې پخپله د هغه له مینځه یو شاهد راپاڅوو چې پر هغو شاهدي ووايي، او پر دغو خلکو د شاهدی وهلو لپاره مونږ تاراولو. او (داد همغې شاهدۍ تیاری دی) چې مونږ دغه کتاب پر تا نازل کړی دی چې په ډاګه ښکاره د هر شي څرګندوونکی دی او دهغو خلکو لپاره هدایت ، رحمت او زیری دی چې د امر منني غاړه یې .ایښې ده

وَ يَوْمَ نَبْعَثُ فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا عَلَيْهِمْ مِّنْ اَنْفُسِهِمْ وَ جِئْنَا بِكَ شَهِيْدًا عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ ؕ وَ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّ هُدًى وَّ رَحْمَةً وَّ بُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ (۸۹)

الله د عدل، ښیګڼې او خپلوی پالنې حکم کوي او له بدۍ ، بې حیایۍ او زور ظلم څخه منع کوي هغه تاسي ته نصیحت کوي چې تاسګې درس واخلئ.

اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَ الْاِحْسَانِ وَ اِيْتَآئِ ذِی الْقُرْبٰى وَ يَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْكَرِ وَ الْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ (۹۰)

د الله ژمنه پوره کړئ. چې کله تاسي له هغه سره کومه ژمنه کړې وي، او خپلې لوړې له پخولو نه وروسته مه ماتوئ چې کله تاسې الله پر خپل ځان شاهد نیولی وي. الله ستاسي له ټولو عملونو نه باخبر دی.

وَ اَوْفُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ اِذَا عٰهَدْتُّمْ وَ لَا تَنْقُضُوا الْاَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيْدِهَا وَ قَدْ جَعَلْتُمُ اللّٰهَ عَلَيْكُمْ كَفِيْلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ (۹۱)

ستاسي حالت دې د هغې ښځې په شانې نه شي چې هغې په خپل زیار سره د تارو کلك مزي ریچکی وریښل ، او بیا یې پخپله هغه اومه او ټوټی ټوټی کړل تاسي په خپل مینځې معاملو کښې قسمونه د تګی او غولونې وسیله ګرځوئ چې یوقوم له بل قوم نه زیاته ګټه په لاس راوړئ. په داسې حال کښې چې الله تعالی ددې ژمنې او تعهد په وسیله تاسې په ازموینه کښې اچوي، او هغه به د قیامت په ورځ هرومرو ستاسي د اختلافونو حقیقت درته لوڅ کړي.

وَ لَا تَكُوْنُوْا كَالَّتِيْ نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ اَنْكَاثًا ؕ تَتَّخِذُوْنَ اَيْمَانَكُمْ دَخَلًۢا بَيْنَكُمْ اَنْ تَكُوْنَ اُمَّةٌ هِيَ اَرْبٰى مِنْ اُمَّةٍ ؕ اِنَّمَا يَبْلُوْكُمُ اللّٰهُ بِهٖ ؕ وَ لَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ (۹۲)

که دالله اراده دا وای (چې په تاسي کښې دې څه اختلاف نه وي ) نو هغه به تاسي ټول یو امت ګرځولي وای؛ خو دهغه چې چاته اراده وي په ګمراهی کښې یې غورځوي او چاته یې چې اراده وشي سمه لیاره وربښیي . او هرو مرو به له تاسي نه ستاسو د کړو وړو پوښتنه وشي.

وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّ لٰكِنْ يُّضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۹۳)

تاسي خپلې لوړې په خپلو مینځو کښې یو دبل ( ! او ای مسلمانانو ) د غولولو وسیله مه ګرځوئ، چیرته داسي ونشي چې کوم قدم له ټینګیدو وروسته وښوئیږي او تاسي ددې جرم په مجازات کښې چې خلك مو د الله له لیارې نه منع کړل، ناوړه نتیجه وګورئ او غټه .سزا وګالئ

وَ لَا تَتَّخِذُوْٓا اَيْمَانَكُمْ دَخَلًۢا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوْتِهَا وَ تَذُوْقُوا السُّوْٓءَ بِمَا صَدَدْتُّمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَ لَكُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (۹۴)

د الله ژمنه د لږ غوندې ګټې په بدل کښې مه پلورئ ، څه چې له الله سره دي هغه ستاسي لپاره ډېر بهتره دي که پوهیږئ.

وَ لَا تَشْتَرُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ اِنَّمَا عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۹۵)

څه چې له تاسي سره دي هغه مصرف کیدونکي دي او څه چې له الله سره دي همغه باقي پاتې کیدونکي دي، او مونږ به هرومرو له صبر نه کار اخیستونکو ته د هغو اجر د هغو د ډیرو غوره عملونو سره سم ورکړو.

مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَ مَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ ؕ وَ لَنَجْزِيَنَّ الَّذِيْنَ صَبَرُوْٓا اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۹۶)

| | |
|---|---|
| هرڅوك چې ښه عمل وكړي، كه هغه نارينه وي او كه ښځه ، په دې شرط چې مؤمن وي، پر هغه به مونږ په دنيا كښې سپيڅلى ژوند تير كړو او ( اخرت كښې به ) دغسې خلكو ته د هغو اجر له ډيرو ښو عملونو سره سم وركړو. | مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ وَ لَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۹۷) |
| نو كله چې ته په قران لوستلو پيل وكړې نو له رټل شوي شيطان نه د خداى پناه وغواړه . | فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (۹۸) |
| د هغه پر هغو خلكو تسلط نه وي چې ايمان يې راوړى وي او پر خپل رب توكل كوي. | اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ (۹۹) |
| دهغه زور خو پر همغو خلكو رسيږي چې هغه خپل سرپرست گرځوي او د هغه په لمسونه شرك كوي. | اِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يَتَوَلَّوْنَهٗ وَ الَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ (۱۰۰) |
| كله چې مونږ د يوايت پر ځاى بل ايت نازلوو، او الله ښه پوهيږي چې څه نازل كړي؛ نو دا خلك وايي چې تا دا قرآن په خپله جوړ كړيدى، اصلي خبره داده چې له دوى نه زياتره خلك له حقيقت نه ناخبره دي. | وَ اِذَا بَدَّلْنَاۤ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ ۙ وَّ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوْۤا اِنَّمَاۤ اَنْتَ مُفْتَرٍ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۱۰۱) |
| دوى ته ووايه چې دا خو سپيڅلي پرښتې په صحيح توگه زما د رب له لوري په تدريج سره راوړيدى چې د ايمان راوړونكو ايمان پوخ كړي او امر منونكو ته د ژوند په چارو كښې سمه لياره وښيي او هغو ته د بري او نيك مرغى زيرى وركړي. | قُلْ نَزَّلَهٗ رُوْحُ الْقُدُسِ مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ لِيُثَبِّتَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ هُدًى وَّ بُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ (۱۰۲) |
| مونږ ته معلومه ده دوى ستا په باب وايي چې دغه سړي ته كوم انسان ښوونه لوستنه كوي. په داسې حال كښې چې د كوم انسان لوري ته چې هغوى اشاره كوي د هغه ژبه عجمي ده او دا سو چه عربي ژبه ده. | وَ لَقَدْ نَعْلَمُ اَنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ اِنَّمَا يُعَلِّمُهٗ بَشَرٌ ؕ لِسَانُ الَّذِیْ يُلْحِدُوْنَ اِلَيْهِ اَعْجَمِیٌّ وَّ هٰذَا لِسَانٌ عَرَبِیٌّ مُّبِيْنٌ (۱۰۳) |
| حقيقت دادى چې كوم كسان چې د الله ايتونه نه مني الله هيڅكله هغو ته سمې خبرې ته د رسيدو توفيق نه په برخه كوي او دداسې خلكو لپاره دردناك عذاب دى. | اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۙ لَا يَهْدِيْهِمُ اللّٰهُ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۱۰۴) |
| پيغمبر صلى الله عليه واله وسلم د دروغو خبرې نه جوړوي؛بلكې ) ) دروغ هغه كسان جوړوي چې د الله ايتونه نه مني ، همغوى په .حقيقت كښې دروغجن دي | اِنَّمَا يَفْتَرِی الْكَذِبَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ (۱۰۵) |
| څوك چې له ايمان راوړلو وروسته كافر شي ( هغه كه ) مجبور كړاى شوي وي او زړه يې پر ايمان ډاډه وي ( نو بيا خو خير دى ) خو چا چې په خوښى سره كفر ومانه پر هغه د الله غضب دى او د ټولو دغسې خلكو لپاره ستر عذاب دى. | مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ اِيْمَانِهٖۤ اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَ قَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّۢ بِالْاِيْمَانِ وَ لٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (۱۰۶) |
| داددې لپاره چې هغو د اخرت په مقابل كښې ددنيا ژوند خوښ كړ، او د الله قانون دى چې هغو خلكو ته د ژغورنې لياره نه ښيي چې د هغه د نعمت ناشكري وكړي | ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ ۙ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ (۱۰۷) |
| دا هغه كسان دي چې د هغو پر زړونو او غوږونو او سترگو الله مهر وهلى دى. دوي په غفلت كښې ډوب شويدي، | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَ سَمْعِهِمْ وَ اَبْصَارِهِمْ ۚ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ (۱۰۸) |
| حتمى ده چې په آخرت كښې به هم دوى په زيان او تباهى كښې اوسي. | لَاجَرَمَ اَنَّهُمْ فِی الْاٰخِرَةِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۱۰۹) |

ددې پر خلاف د کومو کسانو چې دا حال دی چې کله ( د ایمان راوړلو له امله ) وځورول شول؛ نو هغوی کور کلی پرېښود، هجرت یې وکړ ، د خدای په لیاره کښې یې جهاد وکړ او له صبر نه یې کار واخیست ، د هغو لپاره په یقیني ډول ستا رب په پایله کې بښونکی رحم کوونکی دی.

ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ هَاجَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا فُتِنُوْا ثُمَّ جٰهَدُوْا وَ صَبَرُوْٓا ۙ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۱۱۰)

ددغو ټولو فیصله به په هغه ورځ وي ) چې کله هر نفس دځان ) ژغورلو په اندېښنه کښې وي او هر چا ته به د هغه د کړنو بشپړه .بدله ورکړه شي او پر هیچا به یو بڅری ظلم هم ونشي

يَوْمَ تَاْتِيْ كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا وَ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۱۱۱)

الله د یوه کلي مثال راوړی دی. چې هغه د ډاډیني او بيغمی ژوند تیراوه او له هر لوري ورته پریمانه روزي رسیدله چې هغه د الله د پیرزوینو پر ناشکری لاس پورې کړ، نو بیا الله د هغو پر اوسیدونکو د هغو د کړو وړو دا خوند وڅکه چې د لوږې او ویرې غمونه پرې خواره شول،

وَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ وَ الْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ (۱۱۲)

هغو ته د هغو له خپل قوم نه یو پیغمبر راغی. خو هغوی هغه دروغ وګانه . په پای کښې هغوی عذاب ونیول کله چې هغوی ظالمان شوي وو.

وَ لَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ وَ هُمْ ظٰلِمُوْنَ (۱۱۳)

نو ای خلکو ! تاسي ته چې الله کومه حلاله او پاکه روزي دربښلې ده هغه خورئ او د الله د لورینې شکر اداْ کړئ که په ربښتیا د هغه بندګي کوونکي یاست .

فَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا ۪ وَّ اشْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ (۱۱۴)

الله چې کوم شیان پر تاسي حرام کړي دي هغه مرداره ، وینه ، د خوګ غوښه او هغه څاروي دي چې له الله نه پرته د کوم بل چا نوم پرې اخيستل شوی وي. البته که څوك د لوږې له مجبورۍ نه دغه شیان وخوري ، بې له دینه چې هغه د خدای له قانون څخه د سرغړونې اراده ولري، یا د اړتیا له حد نه تیری وکړي، نو په یقیني ډول الله بښونکی رحم کوونکی دی

اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَ الدَّمَ وَ لَحْمَ الْخِنْزِيْرِ وَ مَاۤ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّ لَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۱۱۵)

او دا چې ستاسي ژبې د دروغو حکمونه صادروي چې دا حلال او دا حرام دي، نو په دغه شان حکم کولو سره پر الله دروغ مه وایاست . څوك چې پر الله دروغ تړي هغوی هیڅکله برى نه مومي .

وَ لَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ وَّ هٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ (۱۱۶) ؕ

ددنیا خوندونه څو ورځې دي. په پای کښې د هغو لپاره دردناکه سزا ده.

مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۪ وَّ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۱۱۷)

هغه شیان مونږ په ځانګړي ډول د یهودو لپاره حرام کړي وو چې د هغو یادونه له دې مخکښې مونږ تاته کړیده . او دا پر هغو زمونږ ظلم نه و؛ بلکې د هغو خپل ظلم وْ چې پر ځان یې کاوه.

وَ عَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ ۚ وَ مَا ظَلَمْنٰهُمْ وَ لٰكِنْ كَانُوْا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ (۱۱۸)

البته کومو کسانو چې د ناپوهۍ له مخې ناوړه عمل وکړ او بیا یې د توبې په ویستلو سره خپل عمل سم کړ؛ نو په دې کښې شك نه شته چې له توبې او اصلاح نه وروسته ستا رب د هغو لپاره بښونکی رحم کوونکی دی.

ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِيْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَ اَصْلَحُوْٓا ۙ اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۱۱۹)

واقعیت دادی چې ابراهیم په خپل ذات کښې یو بشپړ امت وْ، د الله د امر منونکی او همدغه یو لوري ته مخ اړوونکی. هغه هیڅکله مشرك نه وْ .

اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيْفًا ؕ وَ لَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۱۲۰) ۙ

شَاكِرًا لِّاَنْعُمِهٖ ؕ اِجْتَبٰهُ وَ هَدٰىهُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۱۲۱)

د الله د پيرزوينو شکر ويستونکی وْ. الله هغه غوره کړ او سمه لاره يې وروښودله .

وَ اٰتَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً ؕ وَ اِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۱۲۲)ؕ

په دنيا کښې موږ هغه ته ښيګڼه ورکړه او په اخرت کښې به په يقيني ډول هغه له صالحانو څخه وي.

ثُمَّ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ اَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَ مَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۱۲۳)

بيا موږ تاته دغه وحې درولېږله چې يوه لوري ته په مخ اړولو د ابراهيم پر کړنلاره لاړشه او هغه له مشرکانو څخه نه وْ.

اِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ؕ وَ اِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ (۱۲۴)

پاتې شو سبت ، نو هغه موږ پر هغو خلکو مسلط کړی وْ چې هغو د هغه په احکامو کښې اختلاف وکړ په يقيني ډول به ستا رب د قيامت په ورځ د هغه ټولو خبرو فيصله وکړي چې هغوی په کښې اختلاف کوي.

اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَ الْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَ جَادِلْهُمْ بِالَّتِىْ هِىَ اَحْسَنُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ (۱۲۵)

ای پيغمبره صلی الله عليه واله وسلم ، د خپل رب د لارې لوري ته په حکمت او غوره نصيحت سره بلنه ورکړه ، او له خلکو سره په داسې ډول مباحثه وکړه چې ډېره غوره وي. ستا پروردګار ډېر ښه پوهيږي چې څوك د هغه له لارې نه اووښتی دی او څوك پر سمه لاره برابر دی.

وَ اِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ؕ وَ لَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ (۱۲۶)

که تاسې غچ اخلئ نو هغومره واخلئ چې څومره پر تاسې تيری شوی وي؛ خو که تاسې صبر وکړئ نو په دې کښې شك نه شته چې دا د صبر کوونکو لپاره ډيره ښه ده.

وَ اصْبِرْ وَ مَا صَبْرُكَ اِلَّا بِاللّٰهِ وَ لَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَ لَا تَكُ فِىْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ (۱۲۷)

ای محمده ! په حوصله کار کوه، او ستا دغه زغم د الله په توفيق سره دی،ددوی پر حرکتونو مه خوريږه او مه ددوی په دسيسو زړه تنګی کيږه.

اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّ الَّذِيْنَ هُمْ مُّحْسِنُوْنَ (۱۲۸)

الله د هغو کسانو ملګری دی چې تقوی غوره کوي او غوره چارې سرته رسوي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

سُبْحٰنَ الَّذِىْۤ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِىْ بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِيَهٗ مِنْ اٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ (۱)

پاك دی هغه ذات چې يوه شپه يې خپل بنده له مسجد حرام نه تر هغه ليرې مسجد (اقصى) پورې بوته چې د هغه چاپېريال مو برکتي کړی دی، چې پر هغه خپلې ځينې نښانې وګورو. په حقيقت کښې هماغه دی دهرڅه اورېدونکی او ليدونکی.

وَ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَ جَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِىْۤ اِسْرَآءِيْلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِىْ وَكِيْلًا ؕ(۲)

موږ له دې نه مخکښې موسی ته کتاب ورکړی وْ او هغه مود بنی اسرائيلو لپاره د هدايت وسيله ګرځولی وْ، له دی سپارښت سره چې له ما څخه پرته بل څوك خپل معتمد مه نيسئ .

ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا (۳)

تاسې د هغو خلکو ځوځات ياست چې موږ له نوحع سره په بېړی کښې سپاره کړي وو، او نوحع يو شکر کوونکی بنده وْ.

وَ قَضَيْنَاۤ اِلٰى بَنِىْۤ اِسْرَآءِيْلَ فِى الْكِتٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِى الْاَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَ لَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيْرًا (۴)

او موږ په خپل کتاب کښې بنی اسرائيل پر دې هم خبر کړي وو چې تاسې به په ځمکه کښې دوه ځله ډېر لوی فساد راولاړ کړئ او لويه سرکشی به وښاياست.

فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ اُوْلٰىهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَاۤ اُولِىْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ فَجَاسُوْا خِلٰلَ الدِّيَارِ ؕ وَ كَانَ وَعْدًا مَّفْعُوْلًا (۵)

نو کله چې د هغو د لومړۍ سرکشی وخت راغی؛ نو ای بني اسرائيلو موږ ستاسې د مقابلې لپاره خپل داسې بندګان راپاڅول چې په جنګ کې ډېر زورور او هغوی ستاسې په هېواد کښې په ننوتلو هر لوري ته خواره شول. دايوه پوره کېدونکې وعده وه.

له دي وروسته مونږ تاسي ته پر هغو دبرلاسی موقع درکړه او له تاسي سره مونږ د مال او اولاد په درکولو مرسته وکړه او ستاسي شمير مونږ له پخوا نه زيات کړ.

ثُمَّ رَدَدۡنَا لَکُمُ الۡکَرَّۃَ عَلَیۡہِمۡ وَ اَمۡدَدۡنٰکُمۡ بِاَمۡوَالٍ وَّ بَنِیۡنَ وَ جَعَلۡنٰکُمۡ اَکۡثَرَ نَفِیۡرًا (۶)

ګورئ ! که تاسي ښه وکړل نو هغه په خپله ستاسي لپاره ښه وو، او که بدمو وکړل نو هغه په خپله ستاسي لپاره بدي ثابته شوه ، بيا کله چي ددوهمي وعدي وخت راغی نو مونږ نور دښمنان پرتاسي مسلط کړل چي هغوی ستاسي څېرې ورانې کړي او په مسجد ( بيت المقدس ) کښي په همغه شان ننوځي لکه څنګه چي مخکښي دښمنان ننوتلي وو او پر کوم شي چي د هغو لاس برشي هغه تباه کړي.

اِنۡ اَحۡسَنۡتُمۡ اَحۡسَنۡتُمۡ لِاَنۡفُسِکُمۡ ۟ وَ اِنۡ اَسَاۡتُمۡ فَلَہَا ؕ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ الۡاٰخِرَۃِ لِیَسُوۡٓءٗا وُجُوۡہَکُمۡ وَ لِیَدۡخُلُوا الۡمَسۡجِدَ کَمَا دَخَلُوۡہُ اَوَّلَ مَرَّۃٍ وَّ لِیُتَبِّرُوۡا مَا عَلَوۡا تَتۡبِیۡرًا (۷)

کيدای شي چي اوس ستاسي رب پر تاسي رحم وکړي. خو که تاسي بيا خپل پخوانی چلن تکرار کړ نو مونږ به هم بيا خپل عذاب تکرار کړو، او نعمت منکرو کسانو ته مونږ دوزخ بنديخانه جوړه کړېده.

عَسٰی رَبُّکُمۡ اَنۡ یَّرۡحَمَکُمۡ ۚ وَ اِنۡ عُدۡتُّمۡ عُدۡنَا ۘ وَ جَعَلۡنَا جَہَنَّمَ لِلۡکٰفِرِیۡنَ حَصِیۡرًا (۸)

حقيقت دادی چي دغه قرآن هغه لاره ښيي چي بيخي سمه سيخه ده. کوم کسان چي هغه ومني ښې چارې سرته ورسوي هغو ته دازېری ورکوي چي د هغو لپاره ستراجر دی،

اِنَّ ہٰذَا الۡقُرۡاٰنَ یَہۡدِیۡ لِلَّتِیۡ ہِیَ اَقۡوَمُ وَ یُبَشِّرُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ الَّذِیۡنَ یَعۡمَلُوۡنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَہُمۡ اَجۡرًا کَبِیۡرًا ۙ(۹)

او کوم کسان چي اخرت و نه مني هغو ته دا خبر ورکوي چي د هغو لپاره مونږ دردناك عذاب تيار کړيدی.

وَّ اَنَّ الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَۃِ اَعۡتَدۡنَا لَہُمۡ عَذَابًا اَلِیۡمًا (۱۰)

انسان په هغه شان بدي غواړي کومسي چي د خير غوښتل پکار دي. انسان ډېر تلوار کوونکی دی.

وَ یَدۡعُ الۡاِنۡسَانُ بِالشَّرِّ دُعَآءَہٗ بِالۡخَیۡرِ ؕ وَ کَانَ الۡاِنۡسَانُ عَجُوۡلًا (۱۱)

ګورئ! مونږ شپه او ورځ دوه نښاني ګرځولي دي. د شپې نښانه مونږ بې نوره وګرځوله او دورځي نښانه مو روښانه کړه تر څو تاسي د خپل رب فضل ولټولی شئ او د مياشتو کلونو حساب معلوم کړای شئ. په دغه ډول مونږ هر شی په تفصيل سره يو له بله بېل کړيدي.

وَ جَعَلۡنَا الَّیۡلَ وَ النَّہَارَ اٰیَتَیۡنِ فَمَحَوۡنَاۤ اٰیَۃَ الَّیۡلِ وَ جَعَلۡنَاۤ اٰیَۃَ النَّہَارِ مُبۡصِرَۃً لِّتَبۡتَغُوۡا فَضۡلًا مِّنۡ رَّبِّکُمۡ وَ لِتَعۡلَمُوۡا عَدَدَ السِّنِیۡنَ وَ الۡحِسَابَ ؕ وَ کُلَّ شَیۡءٍ فَصَّلۡنٰہُ تَفۡصِیۡلًا (۱۲)

د هر انسان شاميت مونږ د هغه په خپله غاړه کښي ځوړند کړيدی او د قيامت په ورځ به مونږ يوه ليکنه هغه ته راوباسو چي هغه به يې د يو پرانستی کتاب غوندي ومومي –

وَ کُلَّ اِنۡسَانٍ اَلۡزَمۡنٰہُ طٰٓئِرَہٗ فِیۡ عُنُقِہٖ ؕ وَ نُخۡرِجُ لَہٗ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ کِتٰبًا یَّلۡقٰىہُ مَنۡشُوۡرًا (۱۳)

ولوله خپله عمل نامه نن د خپلي محاسبي لپاره ته په خپله کافي يې.

اِقۡرَاۡ کِتٰبَکَ ؕ کَفٰی بِنَفۡسِکَ الۡیَوۡمَ عَلَیۡکَ حَسِیۡبًا (ؕ۱۴)

څوك چي سمه لاره غوره کړي د هغه سم تګ په خپله د همغه لپاره ګټور دي. او څوك چي ګمراه وي د هغه د ګمراهی وبال پر همغه دی. هېڅ پېټی اخيستونکی به د بل پيټی وانخلی. او مونږ په عذابوونکي نه يو تر څو ( د حق او باطل پر توپير دخلکو د پوهولو لپاره ) يو پيغمبر (له پيغام سره) ونه لېږو.

مَنِ اہۡتَدٰی فَاِنَّمَا یَہۡتَدِیۡ لِنَفۡسِہٖ ۚ وَ مَنۡ ضَلَّ فَاِنَّمَا یَضِلُّ عَلَیۡہَا ؕ وَ لَا تَزِرُ وَازِرَۃٌ وِّزۡرَ اُخۡرٰی ؕ وَ مَا کُنَّا مُعَذِّبِیۡنَ حَتّٰی نَبۡعَثَ رَسُوۡلًا (۱۵)

او کله چي مونږ د کومي سيمي د هلا کولو اراده کوونو د هغي بډايانو ته حکم کوو او هغوی په کښي په نافرمانيو لاس پوري کوي، هله نو پر هغي سيمي د عذاب فيصله تطبيقېږي او مونږ هغه بيخي تباه کوو.

وَ اِذَاۤ اَرَدۡنَاۤ اَنۡ نُّہۡلِکَ قَرۡیَۃً اَمَرۡنَا مُتۡرَفِیۡہَا فَفَسَقُوۡا فِیۡہَا فَحَقَّ عَلَیۡہَا الۡقَوۡلُ فَدَمَّرۡنٰہَا تَدۡمِیۡرًا (۱۶)

وګورئ ! څومره نسلونه له نوح نه راپدیخوا زمونږ په حکم هلاك شول . ستا رب د خپلو بندګانو له ګناهونو څخه په پوره ډول باخبره دی او هر څه ویني.

وَ كَمْ اَہْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ ؕ وَ كَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا (١٧)

څوك چې د کومې سملاسي ګټې غوښتونکی وي، هغه ته یې مونږ همدلته ورکوو چې چا ته د یو څه ورکول وغواړو، بیا د هغه په برخه دوزخ لیکو چې هغه به ملامت او له رحمته محروم ورننووځي.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْہَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَہَنَّمَ ۚ يَصْلٰىہَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا (١٨)

او څوك چې داخرت هیله من وي او د هغه لپاره هلې ځلې وکړي هغسې هلې ځلې چې د هغه لپاره په کار دي او هغه وي مؤمن ، نو د هر دغسې وکړي هلو ځلو ته به د قدر په سترګه وکتل شي.

وَ مَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَ سَعٰى لَہَا سَعْيَہَا وَ ہُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُہُمْ مَّشْكُوْرًا (١٩)

هم دغو او هم هغو ، دواړو ډلو ته مونږ ( په دنیا کښې ) د ژوند وسایل ورکوو، داستا درب بخشش دی، او ستا درب دورکړې مخه نیوونکی هېڅوك نه شته .

كُلًّا نُّمِدُّ ہٰۤؤُلَآءِ وَ ہٰۤؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ؕ وَ مَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُوْرًا (٢٠)

خو ګوره ! په همدې دنیا کښې مونږ یوې ډلې ته پربلې څنګه فضیلت ورکړیدی، او په اخرت کښې به د هغې درجه لازیاته وی، او د هغې فضیلت به نور هم زیات لوړ وي.

اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَہُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ وَ لَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ وَّ اَكْبَرُ تَفْضِيْلًا (٢١)

نو له الله سره بل څوك معبود مه نیسه که نه نو پړ اوبې مرستندویه اوبې ملاتړه به پاتې شې.

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـہًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا (٢٢)

اوستا رب پریکړه کړیده چې: (١)تاسې د بل هیڅا عبادت مه کوئ مګر یوازې د هغه . (٢) له مور او پلار سره ښه چار چلن وکړئ. که له تا سره له هغو نه یو یا دواړه زړښت ته ورسیږي نو هغو ته اُف قدرې مه وایه، مه هغو ته په توربریبښ ځواب ورکوه، بلکې له هغو سره په درناوي خبرې کوه

وَ قَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُہُمَاۤ اَوْ كِلٰہُمَا فَلَا تَقُلْ لَّہُمَاۤ اُفٍّ وَّ لَا تَنْہَرْہُمَا وَ قُلْ لَّہُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا (٢٣)

او په نرمی او رحم سره د هغو په وړاندې مات غاړی اوسه ، او دادعا کوه چې " پروردګاره! پردوی رحم وکړه لکه څنګه چې دوی له زړه سوي او خواخوږئ سره په ماشومتوب کښې زه پاللی وم.

وَ اخْفِضْ لَہُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَ قُلْ رَّبِّ ارْحَمْہُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا (٢٤ؕ)

ستاسې رب ښه پوهیږي چې ستاسې په زړونو کښې څه دي. که تاسې صالحان اوسئ نو هغه ددغسې تولو کسانو لپاره ښښنه کوونکی دی چې خپل قصور ته په متوجه کېدو د بندګۍ دسمې کړنلارې لوري ته راواوړي.

رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا فِيْ نُفُوْسِكُمْ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا صٰلِحِيْنَ فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ غَفُوْرًا (٢٥)

دخپلوانو ،مسکینانو اومسافروحق پوره ورکړه اوبې ځایه لګښت (٣) .مهٔ کوه

وَ اٰتِ ذَاالْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَ الْمِسْكِيْنَ وَ ابْنَ السَّبِيْلِ وَ لَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا (٢٦)

بې ځایه لګښت کوونکي د شیطان ورونه دي او شیطان د خپل (٤) .رب ناشکره دی

اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْۤا اِخْوَانَ الشَّيٰطِيْنِ ؕ وَ كَانَ الشَّيْطٰنُ لِرَبِّهٖ كَفُوْرًا (٢٧)

یعنې اړو خپلوانو ، مسکینانو او مسافرو ) نه ) که ته له هغو (٥) څنګ وکړې ، په دې اساس چې تر اوسه د الله د هغه رحمت (مال) .په لټه کښې یې چې ته یې هیله من یې نو هغو ته نرم ځواب ورکړه

وَ اِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْہُمُ ابْتِغَآءَ رَحْمَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ تَرْجُوْہَا فَقُلْ لَّہُمْ قَوْلًا مَّيْسُوْرًا (٢٨)

مه خپل لاس تر غاړې تړه او مه یې بیخي داسې غځولی (٦) .پرېږده چې پړ اوبیوسې پاتې شې

وَ لَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ وَ لَا تَبْسُطْہَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُوْمًا مَّحْسُوْرًا (٢٩)

| | |
|---|---|
| ستا رب چې چاته غواړي روزي پراخوي او چاته يې چې خوښه شي تنګوي يې. هغه د خپلو بندګانو له حاله باخبر دی او هغوی وينی. | اِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ ؕ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًا بَصِيْرًا (٣٠) |
| خپل اولادونه د بيوزلۍ له ويرې مه وژنئ مونږ به هغو ته هم (٧) روزي ورکړو او تاسي ته هم . په حقيقت کښې د هغو وژل ستره ګناه ده. | وَ لَا تَقْتُلُوْۤا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَ اِيَّاكُمْ ؕ اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً كَبِيْرًا (٣١) |
| زناته مه نژدې کېږئ. هغه ډېر ناوړه کار دی او ډېره بده لياره ده . | وَ لَا تَقْرَبُوا الزِّنٰۤى اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً ؕ وَ سَآءَ سَبِيْلًا (٣٢) |
| د نفس وژنې مرتکب کېږئ مه ، د هغه چې الله حرام کړيدی مګر په حق سره. او څوك چې مظلوم وژل شوی وي د هغه وارث ته مونږ د غچ غوښتنې حق ورکړيدی نو پکار ده چې هغه په وژلو کښې له حده تيری ونه کړی ، له هغه سره به مرسته وشي. | وَ لَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِیْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ وَ مَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا فَلَا يُسْرِفْ فِّی الْقَتْلِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ مَنْصُوْرًا (٣٣) |
| ديتيم مال ته مه نژدې کېږئ مګر په ډېره ښه طريقه ، تر (١٠) هغه پورې چې هغه د خپلې ځوانئ منګ ته ورسيږي. (١١) د ژمنې پابنداوسئ ، دا يقيني ده چې د ژمنې په باب به تاسې .پوښتېدونې ياست | وَ لَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ ۪ وَ اَوْفُوْا بِالْعَهْدِ ۚ اِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْـُٔوْلًا (٣٤) |
| که په پيمانه ورکړه کوئ نو پوره يې ډکه کړئ، که تله کوئ (١٢) نو په سمه ترازو يې وکړئ. دابښه کړنلاره ده او د عاقبت له پلوه هم .همدا ډېره غوره ده | وَ اَوْفُوا الْكَيْلَ اِذَا كِلْتُمْ وَ زِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّ اَحْسَنُ تَاْوِيْلًا (٣٥) |
| هغه څه مه تعقيبوه چې تا ته د هغه علم نه وي، غوږونه (١٣) .سترګې او زړه هر څه ارومرو پوښتېدونې دي | وَ لَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ اِنَّ السَّمْعَ وَ الْبَصَرَ وَ الْفُؤَادَ كُلُّ اُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْـُٔوْلًا (٣٦) |
| په ځمکه کښې وياړلی مه ځه ، ته نه ځمکه څيرولی شې، نه (١٤) .دغرونو هسکوالی ته رسيدلی شې | وَ لَا تَمْشِ فِی الْاَرْضِ مَرَحًا ۚ اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَ لَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا (٣٧) |
| له دغو چارو نه د هر يو بدارخ ستا د پروردګار په نزد ناکاره دی. | كُلُّ ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهٗ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا (٣٨) |
| دا هغه د حکمت خبرې دي چې ستا رب تا ته وحيي کړيدي. او ګوره ! له الله سره کوم بل معبود مه نيسه که نه نو په دوزخ کښې به پر شوی او له هرې ښېګڼې نه محروم وغورځول شې. | ذٰلِكَ مِمَّاۤ اَوْحٰۤى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ؕ وَ لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ فَتُلْقٰى فِیْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا (٣٩) |
| څومره د حيرانتيا خبره ده چې ستاسې رب پر تاسې زامن پيرزو کړل او د خپل ځان لپاره يې پرښتې لونې ونيولې؟ ډېر غټ دروغ دي چې تاسې يې له خولې څخه راباسئ. | اَفَاَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَ اتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا ؕ اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا (٤٠) |
| مونږ په دې قرآن کښې په بېلابېلو ډولونو سره خلك وپوهول چې متوجه شی خو هغوی له حق نه لا زيات ليری کېږي. | وَ لَقَدْ صَرَّفْنَا فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِيَذَّكَّرُوْا ؕ وَ مَا يَزِيْدُهُمْ اِلَّا نُفُوْرًا (٤١) |
| ای محمده) ! دوی ته ووايه چې که له الله سره نور خدايان هم وای ) لکه چې دوی وايي، نو هغوی به د عرش د څښتن مقام ته درسېدو .هڅه ارومرو کړې وای | قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗۤ اٰلِـهَةٌ كَمَا يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِی الْعَرْشِ سَبِيْلًا (٤٢) |
| هغه پاك دی او له هغو خبرونه ډېر پورته او لوړ دی چې دوی يې کوي. | سُبْحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا (٤٣) |

د هغه پاکي خو اوه اسمانونه او ځمکه او هغه ټول شیان بیانوي چې په اسمانونو او ځمکه کښې دي هیڅ شی داسې نه شته چې د هغه له ستاینی سره د هغه پاکي نه بیانوي خو تاسې د هغو په پاکی بیانولو نه پوهیږئ. حقیقت دا دی چې هغه ډېر زغمونکی او بښونکی دی.

تُسَبِّحُ لَہُ السَّمٰوٰتُ السَّبۡعُ وَ الۡاَرۡضُ وَ مَنۡ فِیۡہِنَّ ؕ وَ اِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمۡدِہٖ وَ لٰکِنۡ لَّا تَفۡقَہُوۡنَ تَسۡبِیۡحَہُمۡ ؕ اِنَّہٗ کَانَ حَلِیۡمًا غَفُوۡرًا (۴۴)

کله چې ته قرآن لولې نو مونږ ستا او پر اخرت د ایمان نه راوړونکو تر منځ یوه پرده حائله ګرځوو،

وَ اِذَا قَرَاۡتَ الۡقُرۡاٰنَ جَعَلۡنَا بَیۡنَکَ وَ بَیۡنَ الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَۃِ حِجَابًا مَّسۡتُوۡرًا (۴۵)

او د هغو پر زړونو داسې پوښ اچوو چې هغوی پرې هیڅ نه پوهیږي او د هغو په غوږونو کښې کوڼ والی پیدا کوو او کله چې ته په قرآن کښې دخپل رب د یووالي یادونه کوې نو هغوی په کرکی سره مخ اړوي.

وَّ جَعَلۡنَا عَلٰی قُلُوۡبِہِمۡ اَکِنَّۃً اَنۡ یَّفۡقَہُوۡہُ وَ فِیۡۤ اٰذَانِہِمۡ وَقۡرًا ؕ وَ اِذَا ذَکَرۡتَ رَبَّکَ فِی الۡقُرۡاٰنِ وَحۡدَہٗ وَلَّوۡا عَلٰۤی اَدۡبَارِہِمۡ نُفُوۡرًا (۴۶)

مونږ ته معلومه ده چې کله هغوی ستا د خبرې اورېدو ته غوږ ږدي نو په اصل کښې څه اوري او کله چې کښیني په خپلو کښې پسپسکې کوي نو څه وائي. دغه ظالمان په خپلو مینځو کښې وایي چې دا خو یو کوډو وهلی سړی دی چې تاسې ورپسې روان یاست

نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَا یَسۡتَمِعُوۡنَ بِہٖۤ اِذۡ یَسۡتَمِعُوۡنَ اِلَیۡکَ وَ اِذۡ ہُمۡ نَجۡوٰۤی اِذۡ یَقُوۡلُ الظّٰلِمُوۡنَ اِنۡ تَتَّبِعُوۡنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسۡحُوۡرًا (۴۷)

ګوره ، دوی په تاپورې څنګه خبرې ترې، دوی بې لیارې شویدي . دوی د لیارې میندلو وس نه لري .

اُنۡظُرۡ کَیۡفَ ضَرَبُوۡا لَکَ الۡاَمۡثَالَ فَضَلُّوۡا فَلَا یَسۡتَطِیۡعُوۡنَ سَبِیۡلًا (۴۸)

هغوی وائي " کله چې مونږ نګه هډوکي او خاورې شو نو ایا مونږ به بیا له سره نوي ژوندي راپاځول شو؟

وَ قَالُوۡۤا ءَ اِذَا کُنَّا عِظَامًا وَّ رُفَاتًا ءَ اِنَّا لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ خَلۡقًا جَدِیۡدًا (۴۹)

که تاسي تیږه یا اوسپنه هم شئ ، "دوی ته ووایه "

قُلۡ کُوۡنُوۡا حِجَارَۃً اَوۡ حَدِیۡدًا (۵۰)

یا له دی نه هم کوم بل زیات سخت شی چې ستاسې په زړونو کښې د ژوندی کیدو استعداد هیڅ په کښې نه وي ( بیا به هم تاسي راپاڅیږئ) هغوی به ارومرو پوښتنه وکړي " څوك دی هغه چې مونږ بیا د ژوند لورې ته راواړوي"؟ ځګواب ورکړه " همغه ذات چې تاسي یې په لومړي ځل پیدا کړي ئې". هغوی به په سرخوځولو پوښتنه وکړي" ښه نو دا به کله وي؟" ته ووایه " ولی حیرانیږئ، هغه وخت نژدې راتلونکی دی.

اَوۡ خَلۡقًا مِّمَّا یَکۡبُرُ فِیۡ صُدُوۡرِکُمۡ ۚ فَسَیَقُوۡلُوۡنَ مَنۡ یُّعِیۡدُنَا ؕ قُلِ الَّذِیۡ فَطَرَکُمۡ اَوَّلَ مَرَّۃٍ ۚ فَسَیُنۡغِضُوۡنَ اِلَیۡکَ رُءُوۡسَہُمۡ وَ یَقُوۡلُوۡنَ مَتٰی ہُوَ ؕ قُلۡ عَسٰۤی اَنۡ یَّکُوۡنَ قَرِیۡبًا (۵۱)

په کومه ورځ چې هغه تاسې ته غږوکړی نو تاسي به دستاینې په حال کښې د هغه د بلنې په ځواب کښې را ووځئ او په هغه وخت کښې به ستاسې ګومان داوي چې مونږ د لږ وخت لپاره په دې حال کښې پاتې شوي یو"

یَوۡمَ یَدۡعُوۡکُمۡ فَتَسۡتَجِیۡبُوۡنَ بِحَمۡدِہٖ وَ تَظُنُّوۡنَ اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ اِلَّا قَلِیۡلًا (۵۲)

او ای محمدهص ! زما بندګانو ته ووایه چې له ژبې نه هغه خبره راوباسې چې ډېره ښه وي. په اصل کښې دا شیطان دی چې دانسانانو په مینځ کښې د فساد اچولو هڅه کوي. حقیقت دادی چې شیطان دانسان ښکاره دښمن دی.

وَ قُلۡ لِّعِبَادِیۡ یَقُوۡلُوا الَّتِیۡ ہِیَ اَحۡسَنُ ؕ اِنَّ الشَّیۡطٰنَ یَنۡزَغُ بَیۡنَہُمۡ ؕ اِنَّ الشَّیۡطٰنَ کَانَ لِلۡاِنۡسَانِ عَدُوًّا مُّبِیۡنًا (۵۳)

ستاسې رب ستاسې پر حال ډېر ښه خبر دی که هغه وغواړي نو پر تاسې به رحم وکړي او که یې خوښه شي نو عذاب به درکړي. او ای پیغمبره ، مونږ ته پر خلکو څارونکی نه یې لیږلی.

رَبُّکُمۡ اَعۡلَمُ بِکُمۡ ؕ اِنۡ یَّشَاۡ یَرۡحَمۡکُمۡ اَوۡ اِنۡ یَّشَاۡ یُعَذِّبۡکُمۡ ؕ وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنٰکَ عَلَیۡہِمۡ وَکِیۡلًا (۵۴)

وَ رَبُّکَ اَعۡلَمُ بِمَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ لَقَدۡ فَضَّلۡنَا بَعۡضَ النَّبِیّٖنَ عَلٰی بَعۡضٍ وَّ اٰتَیۡنَا دَاوٗدَ زَبُوۡرًا (۵۵)

ستا رب په اسمانونو او ځمکه کښې مخلوق ډېر ښه پيژني ، مونږ ځينو پېغمبرانوته په ځينو نورور زياتې مرتبې ورکړي اومونږ داوْدته زبور ورکړی وْ.

قُلِ ادۡعُوا الَّذِیۡنَ زَعَمۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِہٖ فَلَا یَمۡلِکُوۡنَ کَشۡفَ الضُّرِّ عَنۡکُمۡ وَ لَا تَحۡوِیۡلًا (۵۶)

دوی ته ووايه هغه معبودان وبلئ چې تاسې يې له خدايه پرته ( خپل کار جوړوونکي ) ګڼئ، هغوی نه له تاسې څخه کوم کړاوْ ايسته کولای شي او نه يې بدلولای شي.

اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ یَدۡعُوۡنَ یَبۡتَغُوۡنَ اِلٰی رَبِّہِمُ الۡوَسِیۡلَۃَ اَیُّہُمۡ اَقۡرَبُ وَ یَرۡجُوۡنَ رَحۡمَتَہٗ وَ یَخَافُوۡنَ عَذَابَہٗ ؕ اِنَّ عَذَابَ رَبِّکَ کَانَ مَحۡذُوۡرًا (۵۷)

دوی چې چاته بلنه ورکوي هغوی خو په خپله د خپل رب حضور ته درسېدو دوسيلې په لټه کښې دي چې کوم يو هغه ته زيات نژدې شي او هغوی د هغه درحمت هيله من او د هغه د عذاب نه وېرېدونکي دي حقيقت دا دی چې همدا ستا درب عذاب دويرې وړ دی.

وَ اِنۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ اِلَّا نَحۡنُ مُہۡلِکُوۡہَا قَبۡلَ یَوۡمِ الۡقِیٰمَۃِ اَوۡ مُعَذِّبُوۡہَا عَذَابًا شَدِیۡدًا ؕ کَانَ ذٰلِکَ فِی الۡکِتٰبِ مَسۡطُوۡرًا (۵۸)

او هېڅ داسې سيمه نه شته چې مونږ هغه (دهغې اوسيدونکي) له قيامته مخکې هلاك نه کړو يا سخت عذاب ورنه کړو. دا په الهي کتاب کښې ليکل شويدي.

وَ مَا مَنَعَنَاۤ اَنۡ نُّرۡسِلَ بِالۡاٰیٰتِ اِلَّاۤ اَنۡ کَذَّبَ بِہَا الۡاَوَّلُوۡنَ ؕ وَ اٰتَیۡنَا ثَمُوۡدَ النَّاقَۃَ مُبۡصِرَۃً فَظَلَمُوۡا بِہَا ؕ وَ مَا نُرۡسِلُ بِالۡاٰیٰتِ اِلَّا تَخۡوِیۡفًا (۵۹)

او مونږ د معجزو له لېږلو نه بل څه نه يو منع کړي مګر دغې خبرې چې له دې نه مخکښې خلکو هغه دروغ ګڼلې دي ( لکه وګورئ) ثموديانو ته مونږ په څرګنده او ښه راوستله او هغو ورباندې ظلم وکړ. مونږ معجزې ددې لپاره لېږو چې خلك د هغو په ليدلو ووېرېږي.

وَ اِذۡ قُلۡنَا لَکَ اِنَّ رَبَّکَ اَحَاطَ بِالنَّاسِ ؕ وَ مَا جَعَلۡنَا الرُّءۡیَا الَّتِیۡۤ اَرَیۡنٰکَ اِلَّا فِتۡنَۃً لِّلنَّاسِ وَ الشَّجَرَۃَ الۡمَلۡعُوۡنَۃَ فِی الۡقُرۡاٰنِ ؕ وَ نُخَوِّفُہُمۡ ۙ فَمَا یَزِیۡدُہُمۡ اِلَّا طُغۡیَانًا کَبِیۡرًا (۶۰)

ياد کړه ای محمدهص! مونږ تاته ويلي وو چې ستا رب دغه خلك ايسار کړيدي او دغه څه چې (دمعراج په شپه کې) مونږ تاته ښودلي دي او هغه ونه چې پر هغې په قرآن کښې لعنت کړای شويدی، مونږ ددغو خلکو لپاره يوازې يوه فتنه وګرځوله. مونږ دوی ته دا خطار له پاسه اخطار ورکوو، خو هر اخطار ددوی سرغړونه لاپسې زياتوي.

وَ اِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِکَۃِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِیۡسَ ؕ قَالَ ءَاَسۡجُدُ لِمَنۡ خَلَقۡتَ طِیۡنًا (۶۱)

اوياد کړه کله چې مونږ پرښتو ته وويل چې ادم ته سجده وکړئ ، نو ټولو سجده وکړه ، خو ابليس ونه کړه ، هغه وويل " ايا زه هغه چاته سجده وکړم چې تا هغه له خټې نه پيدا کړيدی؟

قَالَ اَرَءَیۡتَکَ ہٰذَا الَّذِیۡ کَرَّمۡتَ عَلَیَّ ۫ لَئِنۡ اَخَّرۡتَنِ اِلٰی یَوۡمِ الۡقِیٰمَۃِ لَاَحۡتَنِکَنَّ ذُرِّیَّتَہٗۤ اِلَّا قَلِیۡلًا (۶۲)

بيا يې وويل " ايا دی ددې وړوْ چې تا ده ته پر ما فضيلت ورکړ؟ که ته ماته د قيامت تر ورځې پورې مهلت راکړي نو زه به دده د ټول ځوځات ستېه وباسم ، يوازې لږ غوندې کسان به راڅخه وژغورل شي".

قَالَ اذۡہَبۡ فَمَنۡ تَبِعَکَ مِنۡہُمۡ فَاِنَّ جَہَنَّمَ جَزَآؤُکُمۡ جَزَآءً مَّوۡفُوۡرًا (۶۳)

الله تعالی وفرمايل " ښه ده لاړ شه ، له هغو نه چې هر څوك ستا پيروي وکړي ، ستا په شمول دهغو ټولو لپاره ددوزخ پوره بشپړه سزاده .

او هر هغه څوك چې په خپلې بلنې سره ښويو لاى شي ويې ښويوه، خپل سپاره پلې دې ورباندې راوله، په مالونو او اولادونو كښې ورسره برخه وال شه، او هغوى دوعدو په دام كښې ونښلوه، او له دوې سره د شيطان وعدې له يوې غولونې پرته نور هيڅ هم نه دي.

وَ اسۡتَفۡزِزۡ مَنِ اسۡتَطَعۡتَ مِنۡہُمۡ بِصَوۡتِکَ وَ اَجۡلِبۡ عَلَیۡہِمۡ بِخَیۡلِکَ وَ رَجِلِکَ وَ شَارِکۡہُمۡ فِی الۡاَمۡوَالِ وَ الۡاَوۡلَادِ وَ عِدۡہُمۡ ؕ وَ مَا یَعِدُہُمُ الشَّیۡطٰنُ اِلَّا غُرُوۡرًا (۶۴)

بېشكه زما پر بندګانو به ته كوم تسلط ونه لرې. او د توكل لپاره ستا رب كافي دى.

اِنَّ عِبَادِیۡ لَیۡسَ لَکَ عَلَیۡہِمۡ سُلۡطٰنٌ ؕ وَ کَفٰی بِرَبِّکَ وَکِیۡلًا (۶۵)

ستاسي " حقيقى " رب خو هغه دى چې په سمندر كښې ستاسي بېړۍ چلوي چې تاسي د هغه د فضل لټه وكړئ. حقيقت دا دى چې هغه ستاسي پر حال ډېر زيات مهربان دى.

رَبُّکُمُ الَّذِیۡ یُزۡجِیۡ لَکُمُ الۡفُلۡکَ فِی الۡبَحۡرِ لِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِہٖ ؕ اِنَّہٗ کَانَ بِکُمۡ رَحِیۡمًا (۶۶)

كله چې په سمندر كښې پر تاسي مصيبت راځي نو له هغه يوه ذات نه پرته چې نورو ته بلنه وركوئ هغه ټول وركيږي، خو كله چې هغه تاسي ژغوري وچې ته مو رسوي نو تاسي له هغه نه مخ اړوئ ، په رېښتيا چې انسان ډېر ناشكره دى.

وَ اِذَا مَسَّکُمُ الضُّرُّ فِی الۡبَحۡرِ ضَلَّ مَنۡ تَدۡعُوۡنَ اِلَّاۤ اِیَّاہُ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىکُمۡ اِلَی الۡبَرِّ اَعۡرَضۡتُمۡ ؕ وَ کَانَ الۡاِنۡسَانُ کَفُوۡرًا (۶۷)

نو ايا تاسي له دې خبرې نه بيخي بې غمه يئ چې خداى به كله پر همدې وچه تاسي په ځمكه كښې ننباسي، يا به پر تاسي تېرې ورونكى طوفان راوالوزوي او تاسي به له هغه نه هيڅ ژغورونكى ملاتړونه مومئ؟

اَفَاَمِنۡتُمۡ اَنۡ یَّخۡسِفَ بِکُمۡ جَانِبَ الۡبَرِّ اَوۡ یُرۡسِلَ عَلَیۡکُمۡ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوۡا لَکُمۡ وَکِیۡلًا (۶۸)

او ايا تاسي له دې نه څه ويره نه لرئ چې خداى به بيا په كوم وخت كښې تاسي سمندر ته بوځي او ستاسي د ناشكرۍ په بدله كښې به پر تاسي سخت طوفاني بادوالوزوي غرق به مو كړي او ستاسي به داسي څوك نه وي چې له هغه نه ستاسي ددغه عاقبت پوښتنه ګويګنه وكړاى شي؟

اَمۡ اَمِنۡتُمۡ اَنۡ یُّعِیۡدَکُمۡ فِیۡہِ تَارَۃً اُخۡرٰی فَیُرۡسِلَ عَلَیۡکُمۡ قَاصِفًا مِّنَ الرِّیۡحِ فَیُغۡرِقَکُمۡ بِمَا کَفَرۡتُمۡ ۙ ثُمَّ لَا تَجِدُوۡا لَکُمۡ عَلَیۡنَا بِہٖ تَبِیۡعًا (۶۹)

دا خو زمونږ پېرزوينه ده چې مونږ بنيادم ته لوئي وركړه او هغو ته مو په وچه او لمده كښې سپرلى وركړي او هغو ته مو له پاكوشيانو څخه روزي ورپه برخه كړه او پر خپلو زياترو مخلوقاتو مو ښكاره لوړتيا وروبښله.

وَ لَقَدۡ کَرَّمۡنَا بَنِیۡۤ اٰدَمَ وَ حَمَلۡنٰہُمۡ فِی الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ وَ رَزَقۡنٰہُمۡ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ وَ فَضَّلۡنٰہُمۡ عَلٰی کَثِیۡرٍ مِّمَّنۡ خَلَقۡنَا تَفۡضِیۡلًا (۷۰)

هغه ورځ په پام كښې ونيسه چې مونږ هره ډله د هغې له رهبرانو سره راوغواړو. په هغه وخت كښې چې كومو كسانو ته خپله عملنامه په ښى لاس كښې وركړل شوه هغوى به خپله عملنامه ولولي او پر هغو به يو بڅرى ظلم ونشي.

یَوۡمَ نَدۡعُوۡا کُلَّ اُنَاسٍۭ بِاِمَامِہِمۡ ۚ فَمَنۡ اُوۡتِیَ کِتٰبَہٗ بِیَمِیۡنِہٖ فَاُولٰٓئِکَ یَقۡرَءُوۡنَ کِتٰبَہُمۡ وَ لَا یُظۡلَمُوۡنَ فَتِیۡلًا (۷۱)

او څوك چې په دې دنيا كښې ړوند پاتې شو هغه به په اخرت كښې هم ړوند پاتې شي. بلكې په لار ميندنه كښې له ړندو نه هم زيات ناكام .

وَ مَنۡ کَانَ فِیۡ ہٰذِہٖۤ اَعۡمٰی فَہُوَ فِی الۡاٰخِرَۃِ اَعۡمٰی وَ اَضَلُّ سَبِیۡلًا (۷۲)

اى محمدهص ! دوى په دى هڅه كښې هيڅ سستي ونه كړه چې تا په فتنه كښې وغورځوي له هغې وحې نه دې راواړوي چې مونږ درلېږلې ده چې ته زمونږ پر نوم له خپله ځانه كومه خبره جوړه كړې. كه تا داسي كړي واى نو هغو هرومرو ته په دوستى نيولې

وَ اِنۡ کَادُوۡا لَیَفۡتِنُوۡنَکَ عَنِ الَّذِیۡۤ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡکَ لِتَفۡتَرِیَ عَلَیۡنَا غَیۡرَہٗ ٭ۖ وَ اِذًا لَّاتَّخَذُوۡکَ خَلِیۡلًا (۷۳)

او لېږي نه وه چې كه مونږ ته ټينګ كړى نه واى نو ته به د هغو لوري ته څه ناڅه ورمات شوى وې ،

وَ لَوۡ لَاۤ اَنۡ ثَبَّتۡنٰکَ لَقَدۡ کِدۡتَّ تَرۡکَنُ اِلَیۡہِمۡ شَیۡئًا قَلِیۡلًا (۷۴٭)

خو که تا داسې کړي وای نو مونږ به پر تا په دې دنیا کښې هم ددوه برابره عذاب خوند څکلی وای او په اخرت کښې به هم ددوه چنده عذاب ، بیا به زمونږ په مقابله کښې تا کوم مرستندوی نه وای موندلی.

اِذًا لَّاَذَقْنٰکَ ضِعْفَ الْحَيٰوةِ وَ ضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَکَ عَلَيْنَا نَصِيْرًا (۷۵)

او دوی دغې خبرې ته هم ملا تړلې ده چې له دغه هېوادنه ستا قدم ایسته کړي او تا له دې ځایه وباسي. خو که دوی دغه کار وکړي نو له تانه وروسته به په خپله دوی هم دلته دومره زیات وخت استوګنه ونشي کړای.

وَ اِنْ کَادُوْا لَيَسْتَفِزُّوْنَکَ مِنَ الْاَرْضِ لِيُخْرِجُوْکَ مِنْهَا وَ اِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَکَ اِلَّا قَلِيْلًا (۷۶)

دا زمونږ ځانګړې کړنلاره ده چې د هغو ټولو پېغمبرانو په باب مونږ چلولې ده چې له تانه مخکښې مونږ هغوی لیږلي وو، او زمونږ په کړنلاره کښې به ته کوم بدلون ونه مومې.

سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَکَ مِنْ رُّسُلِنَا وَ لَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيْلًا (۷۷)

لمونځ قایم کړه د لمر له زوال نه د شپې ترتږمې پورې او د سهار قرآت هم لوله ځکه چې د سهار پر قرآت لوستلو شاهدې وهله کېږي.

اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْکِ الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ وَ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ ؕ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ کَانَ مَشْهُوْدًا (۷۸)

او د شپې تهجد وکړه ، دا ستا لپاره نفل دي ، لیرې نه ده چې ستا رب تا د ستاینې وړ مقام خاوند کړي.

وَ مِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّکَ ۖ عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَکَ رَبُّکَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا (۷۹)

او دعا وکړه چې پروردګاره! ما چې چیرته بیایې له ریښتینولی سره مې بوځه او له هره ځایه مې چې باسې له ریښتینولی سره مې وباسه . او له خپل لورې نه یو قدرت زما مرستندوی وګرځوه.

وَ قُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّ اَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّ اجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْکَ سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا (۸۰)

او اعلان وکړه چې" حق راغی او باطل له مینځه لاړ، باطل له مینځه تلونکی دی".

وَ قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَ زَهَقَ الْبَاطِلُ ؕ اِنَّ الْبَاطِلَ کَانَ زَهُوْقًا (۸۱)

مونږ ددغه قرآن نازلولو په لړ کښې هغه څه نازلوو چې د منونکو لپاره خوشفا او رحمت دی، مګر د ظالمانو لپاره له زیان نه پرته بل څه نه زیاتوي.

وَ نُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّ رَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ وَ لَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا (۸۲)

دانسان دا حال دی چې کله مونږ پر هغه پیرزوینه کوو هغه مغروره کېږي او شا اړوي او کله چې لږ غوندې له کړاو سره مخامخ کېږي نو ناهیلی کېږي.

وَ اِذَآ اَنْعَمْنَا عَلَى الْاِنْسَانِ اَعْرَضَ وَ نَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ کَانَ يَـُٔوْسًا (۸۳)

ای پېغمبرهص! دوی ته ووایه چې " هر څوك په خپله کړنلاره عمل کوي، اوس په دې ستاسې رب ښه پوهېږی چې څوك پر سمه لاره دی".

قُلْ کُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاکِلَتِهٖ ؕ فَرَبُّکُمْ اَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ اَهْدٰى سَبِيْلًا (۸۴)

دوی له تانه د روح په باب پوښتنه کوي، ووایه " دا روح زما درب په حکم راځي، خو تاسې له علم نه لږه برخه موندلې ده".

وَ يَسْـَٔلُوْنَکَ عَنِ الرُّوْحِ ؕ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَ مَا اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا (۸۵)

او ای محمدهص! که مونږ وغواړو هغه ټول څه به له تا نه واخلو چې مونږ دوحی په وسیله تاته درکړیدي،بیا به ته زمونږ په مقابل کښې کوم ملاتړونه مومې چې هغه بیرته درکړای شي.

وَ لَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْکَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَکَ بِهٖ عَلَيْنَا وَکِيْلًا (۸۶)

دغه څه چې درکړای شویدي دخپل پروردګار په رحمت درکړای شوي دي، حقیقت دادی چې د هغه مهربانی پرتا ډیره زیاته ده.

اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّکَ ؕ اِنَّ فَضْلَهٗ کَانَ عَلَيْکَ کَبِيْرًا (۸۷)

قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَ الْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ ہٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِہٖ وَ لَوْ كَانَ بَعْضُہُمْ لِبَعْضٍ ظَہِيْرًا (۸۸)

ووايه که انسانان او پيريان ټول لاسونه يو کړي د دغه قران غوندې کوم شي دراوړلو هڅه وکړي نو رابه يې نه شي وړلی که ټول يو له بل سره مرسته وکړي هم.

وَ لَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِيْ ہٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ۫ فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا (۸۹)

مونږ په دې قرآن کښې خلك په هر هر ډول وپوهول، خو زياتره خلك پر انكار كلك ودرېدل،

وَ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْاَرْضِ يَنْۢبُوْعًا (۹۰)

اوويې ويل:" مونږ به ستا خبره تر هغه پورې ونه منو تر څو ته زمونږ لپاره ځمکه څيرې او يوه چينه ونه بهوې.

اَوْ تَكُوْنَ لَكَ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّ عِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْاَنْہٰرَ خِلٰلَہَا تَفْجِيْرًا (۹۱)

يا ستا لپاره د کجورو او انګورو يو باغ پيدا شي او ته په هغه کښې وياڼې رواني کړې،

اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا اَوْ تَاْتِيَ بِاللّٰہِ وَ الْمَلٰٓئِكَةِ قَبِيْلًا (۹۲)

يا ته پر مونږ اسمان ټوټه ټوټه راوغورځوې لکه چې دعوه کوې. يا خدای او پرښتې مونږ ته مخامخ راولې،

اَوْ يَكُوْنَ لَكَ بَيْتٌ مِّنْ زُخْرُفٍ اَوْ تَرْقٰى فِي السَّمَآءِ ؕ وَ لَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتّٰى تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتٰبًا نَّقْرَؤُہٗ ؕ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ ہَلْ كُنْتُ اِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا (۹۳)

يا ستا لپاره د سروزرو يو کور واوسي. يا ته اسمان ته وخيژې او ستا په ختلو به هم مونږ باور ونه کړو تر څو ته پر مونږ يوه داسې ليکنه نازله نه کړې چې مونږ يې ولولو" ای محمده ص! دوی ته ووايه " پاك دی زما پروردګار! ايا زه له يو پيغام راوړونکي انسان نه پرته بل څه يم؟.

وَ مَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَہُمُ الْہُدٰٓى اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰہُ بَشَرًا رَّسُوْلًا (۹۴)

کله چې خلکو ته هدايت راغی نو پر هغه له ايمان راوړلو نه هغوی کوم شي منع نه کړل، مګر د هغو د غې وينا چې: " ايا الله بشرپېغمبر ليږلی دی؟"

قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْہِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا (۹۵)

دوی ته ووايه که په ځمکه کښې پرښتې په ډاډينه ګرځېدای راګرځېدای نو مونږ به هرومرو له اسمانه کومه پرښته د هغو لپاره پېغمبر لېږلی وای.

قُلْ كَفٰى بِاللّٰہِ شَہِيْدًۢا بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّہٗ كَانَ بِعِبَادِہٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا (۹۶)

ای محمده! دوی ته ووايه چې زما اوستاسې په مينځ کښې يوازې د يو الله شاهدي کافي ده. هغه د خپلو بندګانو له حال نه خبردار دی او هر څه ويني.

وَ مَنْ يَّہْدِ اللّٰہُ فَہُوَ الْمُہْتَدِ ۚ وَ مَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَہُمْ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِہٖ ؕ وَ نَحْشُرُہُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْہِہِمْ عُمْيًا وَّ بُكْمًا وَّ صُمًّا ؕ مَاْوٰىہُمْ جَہَنَّمُ ؕ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰہُمْ سَعِيْرًا (۹۷)

چا ته چې الله لپاره وښيي هماغه لار ميندونکی دی، او څوك چې هغه په ګمراهی کښې وغورځوي، نو ته به دداسې خلکو لپاره له هغه پرته بل هېڅ ملاتړ او مرستندوی ونشې موندلی، دغه خلك به مونږ د قيامت په ورځ پر مخې راکاږو، ړانده ، ګونګيان ، کاڼه ، د هغو استوګنځی دوزخ دی. کله چې د هغه د اورتاوْ سستيږي مونږ به يې تاوْ لا زياتوو،

ذٰلِكَ جَزَآؤُہُمْ بِاَنَّہُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ قَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّ رُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا (۹۸)

داد هغو ددغه حرکت مجازات دی چې هغوی زمونږ له ايتونو منکر شول او ويې ويل " ايا کله چې مونږ يوازې هډوکي او خاورې پاتې شو نو مونږ به بياله سره نوی پيدا کړای شوي راپاڅول شو؟ ".

ایا هغوی پر دې غور نه دی کړی چې کوم خدای چې اسمانونه او ځمکه پیدا کړیدی هغه ددوی غوندې پیدا کولو هرومرو وس لرې؟ هغه ددوی ددوهم ژوند لپاره یوه نیټه ټاکلې ده چې د هغې راتګ یقیني دی، خو د ظالمانو دا ټینګار دی چې هغوی به له دې نه انکار وکړي.

اَوَ لَمۡ یَرَوۡا اَنَّ اللّٰہَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ قَادِرٌ عَلٰۤی اَنۡ یَّخۡلُقَ مِثۡلَہُمۡ وَ جَعَلَ لَہُمۡ اَجَلًا لَّا رَیۡبَ فِیۡہِ ؕ فَاَبَی الظّٰلِمُوۡنَ اِلَّا کُفُوۡرًا (۹۹)

ای محمده ص! دوی ته ووایه که زما درب درحمت خزانې ستاسې په لاس کښې وای نو تاسې به د هغې دلګېدو له ویرې هرومرو هغه زیرمه کړې ساتلې وای. په ربښتیا چې انسان ډېر تنګ زړی دی.

قُلۡ لَّوۡ اَنۡتُمۡ تَمۡلِکُوۡنَ خَزَآئِنَ رَحۡمَۃِ رَبِّیۡۤ اِذًا لَّاَمۡسَکۡتُمۡ خَشۡیَۃَ الۡاِنۡفَاقِ ؕ وَ کَانَ الۡاِنۡسَانُ قَتُوۡرًا (۱۰۰)

مونږ موسع ته نهه نښانې ورکړې وې چې په ډاګه څرګنده یې ښودلې. اوس دا په خپله ته له بنی اسرائیلو نه پوښتنه وکړه چې کله هغه ورته مخامخ راغلې نو فرعون همدا ویلې وو چې : " ای موسی ، زه دا ګڼم چې پر تا هرومرو کوډې شوي دي".

وَ لَقَدۡ اٰتَیۡنَا مُوۡسٰی تِسۡعَ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ فَسۡـَٔلۡ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ اِذۡ جَآءَہُمۡ فَقَالَ لَہٗ فِرۡعَوۡنُ اِنِّیۡ لَاَظُنُّکَ یٰمُوۡسٰی مَسۡحُوۡرًا (۱۰۱)

موسی د هغه په ځواب کښې وویل " ته ښه پوهېږې چې دغه سترګې پرانستونکې نښانې داسمانونواوزمکې له پروردګارنه پرته بل چا نه دی نازلې کړې اوزماګومان دادی چې ای فرعونه ستا هلاکت اوکم بختې راغلې ده".

قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَاۤ اَنۡزَلَ ہٰۤؤُلَآءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ بَصَآئِرَ ۚ وَ اِنِّیۡ لَاَظُنُّکَ یٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُوۡرًا (۱۰۲)

په پای کښې فرعون وپتیپله چې موسع او بنی اسرائیل له هېواد نه وشړي، خو مونږ هغه اود هغه ملګري یو ځای غرق کړل

فَاَرَادَ اَنۡ یَّسۡتَفِزَّہُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ فَاَغۡرَقۡنٰہُ وَ مَنۡ مَّعَہٗ جَمِیۡعًا (۱۰۳)ۙ

او له هغه وروسته مونږ بنی اسرائیلو ته وویل چې اوس تاسې په دې ځمکه کښې واوسېږئ، بیا کله چې داخرت وخت او نیټه پوره شي نو مونږ به تاسې ټول یو ځای را حاضر کړو.

وَّ قُلۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِہٖ لِبَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ اسۡکُنُوا الۡاَرۡضَ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ الۡاٰخِرَۃِ جِئۡنَا بِکُمۡ لَفِیۡفًا (۱۰۴)ؕ

دغه قرآن مونږ پر حقه نازل کړیدی او په حقه دی نازل شویدی، او ای محمدهص! ته مونږ له دی پرته د بلې وظیفې لپاره نه یې لېږلی چې (ځوك دې ومنې هغه ته ) زیري ورکړې او ( چې څوك دې ونه منی هغه ته) اخطار ورکړې.

وَ بِالۡحَقِّ اَنۡزَلۡنٰہُ وَ بِالۡحَقِّ نَزَلَ ؕ وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنٰکَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّ نَذِیۡرًا (۱۰۵)ۘ

او دغه قرآن مونږ بېلابیل کړی لېږلی مو دی چې ته یې په وقفه وقفه خلکو ته واوروې. او دا مونږ ( دوخت وخت په تناسب ) په تدریج سره نازل کړیدی.

وَ قُرۡاٰنًا فَرَقۡنٰہُ لِتَقۡرَاَہٗ عَلَی النَّاسِ عَلٰی مُکۡثٍ وَّ نَزَّلۡنٰہُ تَنۡزِیۡلًا (۱۰۶)

ای محمدهص! دغو خلکو ته ووایه چې که تاسې ومنئ او که یې ونه منئ کومو کسانو ته چې له دې نه مخکښې علم ورکړای شویدی هغو ته چې کله دا اورول کېږي نو هغوی پر مخې په سجده لوېږي

قُلۡ اٰمِنُوۡا بِہٖۤ اَوۡ لَا تُؤۡمِنُوۡا ؕ اِنَّ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ مِنۡ قَبۡلِہٖۤ اِذَا یُتۡلٰی عَلَیۡہِمۡ یَخِرُّوۡنَ لِلۡاَذۡقَانِ سُجَّدًا (۱۰۷)ۙ

او په لوړ غږ وائي" پاك دی زمونږ پروردګار، د هغه وعده خو پوره کیدونکې وه.

وَّ یَقُوۡلُوۡنَ سُبۡحٰنَ رَبِّنَاۤ اِنۡ کَانَ وَعۡدُ رَبِّنَا لَمَفۡعُوۡلًا (۱۰۸)

او هغوی پر مخې پر ژړا لوېږي او د هغه په اورېدو سره دهغو تواضع لاپسې زیاتیږي.

وَ یَخِرُّوۡنَ لِلۡاَذۡقَانِ یَبۡکُوۡنَ وَ یَزِیۡدُہُمۡ خُشُوۡعًا (۱۰۹)ٛ

ای پېغمبره! دوی ته ووایه ، که د الله په ویلو یې وبلئ او که د رحمان په ویلو په هر نامه یې چې وبلئ د هغه لپاره ټول غوره نومونه دي. او خپل لمونځ مه په ډېر لوړ اواز سره کوه او مه په ډېر ټیټ اواز سره ، ددې دواړو په مینځ کښې منځنی درجه لهجه غوره کړه.

قُلِ ادۡعُوا اللّٰہَ اَوِ ادۡعُوا الرَّحۡمٰنَ ؕ اَیًّامَّا تَدۡعُوۡا فَلَہُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی ۚ وَ لَا تَجۡہَرۡ بِصَلَاتِکَ وَ لَا تُخَافِتۡ بِہَا وَ ابۡتَغِ بَیۡنَ ذٰلِکَ سَبِیۡلًا (۱۱۰)

او ووایه ټوله ثنا ستاینه د هغه خدای لپاره ده چې هغه نه څوك په زوی ولی سره نیولی دی، نه په باچاهی کښې څوك ورسره شریك دی، او نه هغه بیوسی دی چې څوك د هغه ملاتړ وي". او د هغه لوئي بیان کړه کامله درجه لوئي.

وَ قُلِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدًا وَّ لَمۡ یَکُنۡ لَّہٗ شَرِیۡکٌ فِی الۡمُلۡکِ وَ لَمۡ یَکُنۡ لَّہٗ وَلِیٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَ کَبِّرۡہُ تَکۡبِیۡرًا (۱۱۱)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ثنا ستاینه الله ته ده چې هغه پر خپل بنده دغه کتاب نازل کړ او په هغه کښې یې کوم کوږوالی پرې نښوده

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰہِ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ عَلٰی عَبۡدِہِ الۡکِتٰبَ وَ لَمۡ یَجۡعَلۡ لَّہٗ عِوَجًا ؕ(۱)

د سمو سیخو خبرو ویونکی کتاب ، ترڅو چې خلکو ته د خدای د سخت عذاب اخطار ورکړي، او ایمان راوړونکو نیك عملو ته ددې زیری ورکړي چې د هغو له پاره غوره اجر دی

قَیِّمًا لِّیُنۡذِرَ بَاۡسًا شَدِیۡدًا مِّنۡ لَّدُنۡہُ وَ یُبَشِّرَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ الَّذِیۡنَ یَعۡمَلُوۡنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَہُمۡ اَجۡرًا حَسَنًا ۙ(۲)

چې په هغه کښې به هغوی د تل له پاره اوسیږي ،

مّٰاکِثِیۡنَ فِیۡہِ اَبَدًا ۙ(۳)

او هغه خلك وویروي چې وائي الله څوك په زوی ولی سره نیولی دی

وَّ یُنۡذِرَ الَّذِیۡنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰہُ وَلَدًا (۴)*

ددې خبرې نه هغوی څه علم لري او نه دهغو پلار نیکه درلود ستره خبره ده چې ددوی له خولې څخه راووځي ، هغوی محضې دروغ وائي

مَا لَہُمۡ بِہٖ مِنۡ عِلۡمٍ وَّ لَا لِاٰبَآئِہِمۡ ؕ کَبُرَتۡ کَلِمَۃً تَخۡرُجُ مِنۡ اَفۡوَاہِہِمۡ ؕ اِنۡ یَّقُوۡلُوۡنَ اِلَّا کَذِبًا (۵)

ښه نو (ای محمده (ص)!) ښائي ته په هغو پسې له غم خوړلو نه خپل ځان بایلې که دوی پر دغه ښوونه ایمان را نه وړي.

فَلَعَلَّکَ بَاخِعٌ نَّفۡسَکَ عَلٰۤی اٰثَارِہِمۡ اِنۡ لَّمۡ یُؤۡمِنُوۡا بِہٰذَا الۡحَدِیۡثِ اَسَفًا (۶)

حقیقت دا دی داڅه وسایل چې پرمخ دي هغه مونږ دځمکې ښکلا گرځولي دي. تر څو چې دوی وازمایو چې په دوی کښې څوك ښه عمل کونکی دی .

اِنَّا جَعَلۡنَا مَا عَلَی الۡاَرۡضِ زِیۡنَۃً لَّہَا لِنَبۡلُوَہُمۡ اَیُّہُمۡ اَحۡسَنُ عَمَلًا (۷)

په پای کښې له دغو ټولونه چې دهغې پر مخ دي مونږ یو هوار ډگر جوړوونکي یو

وَ اِنَّا لَجٰعِلُوۡنَ مَا عَلَیۡہَا صَعِیۡدًا جُرُزًا ؕ(۸)

ایا ته انگیرې چې د ځمځې اولوحې خاوندان زمونږ له کومو ډیرو حیرانوونکو نښانو څخه وو؟

اَمۡ حَسِبۡتَ اَنَّ اَصۡحٰبَ الۡکَہۡفِ وَ الرَّقِیۡمِ ۙ کَانُوۡا مِنۡ اٰیٰتِنَا عَجَبًا (۹)

کله چې څو تنو زلمیانو ځمځې ته پناه ور وړه او ویې ویل ''ای پروردگاره! مونږ په خپل ځانگړې رحمت سره سر لوړي کړه او زمونږ چاره سمه کړه.

اِذۡ اَوَی الۡفِتۡیَۃُ اِلَی الۡکَہۡفِ فَقَالُوۡا رَبَّنَاۤ اٰتِنَا مِنۡ لَّدُنۡکَ رَحۡمَۃً وَّ ہَیِّئۡ لَنَا مِنۡ اَمۡرِنَا رَشَدًا (۱۰)

نو مونږ هغوی په هماغې ځمځه کښې په غوږونو ټپولو تر اوږدو کلونو پورې په درانده خوب ویده کړل،

فَضَرَبۡنَا عَلٰۤی اٰذَانِہِمۡ فِی الۡکَہۡفِ سِنِیۡنَ عَدَدًا ۙ(۱۱)

بیا مونږ هغوی را پاڅول ترڅو وگورو د هغو له دوو ډلونه کومه یوه د خپلې استوگنې موده ښه شمیرلای شي.

ثُمَّ بَعَثۡنٰہُمۡ لِنَعۡلَمَ اَیُّ الۡحِزۡبَیۡنِ اَحۡصٰی لِمَا لَبِثُوۡۤا اَمَدًا (۱۲)

مونږ د هغو اصلي قصه تاته اوروو. هغوی څوتنه زلمیان ووچې پر خپل پروردگار یې ایمان راوړی وء اومونږ هغوته په هدایت کې پرمختگ ورپه برخه کړی و .

نَحۡنُ نَقُصُّ عَلَیۡکَ نَبَاَہُمۡ بِالۡحَقِّ ؕ اِنَّہُمۡ فِتۡیَۃٌ اٰمَنُوۡا بِرَبِّہِمۡ وَ زِدۡنٰہُمۡ ہُدًی (۱۳)*

مونږ د هغو زړونه په هغه وخت کښې محکم کړل چې کله هغوی پاڅېدل او اعلان یې وکړ چې''زمونږ رب خو فقط همغه ذات دی چې د اسمانونو او زمکې رب دی، مونږ به له هغه پرته نور کوم معبودان ونه بلو، که مونږ دغسې وکړو نو بیخې بابېزه خبره به مو کړی وي،،

وَّ رَبَطۡنَا عَلٰی قُلُوۡبِہِمۡ اِذۡ قَامُوۡا فَقَالُوۡا رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ لَنۡ نَّدۡعُوَا۠ مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اِلٰـہًا لَّقَدۡ قُلۡنَاۤ اِذًا شَطَطًا (۱۴)

بیا هغوی په خپلو مینځو کښې سره وویل) ''زمونږ دغه قوم خو د ) کائناتو له رب نه پرته نور په خدائی نیولي دي، دوی د هغو په معبود والي باندې کوم څرګند دلیل ولې نه راوړي؟ نو له هغه چانه غټ ظالم بل څوك کیدای شي چې پر الله دروغ وتړي؟

هٰٓؤُلَاۤءِ قَوۡمُنَا اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ لَوۡ لَا یَاۡتُوۡنَ عَلَیۡهِمۡ بِسُلۡطٰنٍۭ بَیِّنٍ ؕ فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا (ؕ۱۵)

کله چې اوس تاسي له هغو او د هغو له غیر الله معبودانو څخه خپلې اړیکې پریکړې دي، نو ځئ فلانی څمځي ته پناه یوسئ ستاسي رب به پرتاسي دخپل رحمت لمن پراخه کړي او ستاسي د کار له پاره به لارې چارې برابرې کړي،،

وَ اِذِ اعۡتَزَلۡتُمُوۡهُمۡ وَمَا یَعۡبُدُوۡنَ اِلَّا اللّٰهَ فَاۡوٗۤا اِلَی الۡکَهۡفِ یَنۡشُرۡ لَکُمۡ رَبُّکُمۡ مِّنۡ رَّحۡمَتِهٖ وَیُهَیِّئۡ لَکُمۡ مِّنۡ اَمۡرِکُمۡ مِّرۡفَقًا (۱۶)

که تا هغوی په څمځه کښې لیدلي وای نو داسي به درته ښکاره شوې وه چې لمر چې کله را خیژي نو د هغو څمځه پریږدي ښي لوري ته تاویږی او کله چې پر یوزی نو له هغو نه کیڼ لوري ته اوړي پر یوزي او هغوی په څمځه کښې دننه په یوه پراخ ځای کښې پراته دي. دا دالله له نښانو څخه یوه ده چاته چې الله سمه لاره وښیي همغه سمه لاره میندونکی دی او څوك چې الله بې لیارې کړي د هغه له پاره به ته کوم لاښود سرپرست ونشی میندلی.

وَ تَرَی الشَّمۡسَ اِذَا طَلَعَتۡ تَّزٰوَرُ عَنۡ کَهۡفِهِمۡ ذَاتَ الۡیَمِیۡنِ وَ اِذَا غَرَبَتۡ تَّقۡرِضُهُمۡ ذَاتَ الشِّمَالِ وَ هُمۡ فِیۡ فَجۡوَةٍ مِّنۡهُ ؕ ذٰلِکَ مِنۡ اٰیٰتِ اللّٰهِ ؕ مَنۡ یَّهۡدِ اللّٰهُ فَهُوَ الۡمُهۡتَدِ ۚ وَ مَنۡ یُّضۡلِلۡ فَلَنۡ تَجِدَ لَهٗ وَلِیًّا مُّرۡشِدًا (۱۷)

تا به د هغو په لیدلو انګېرلې وه چې هغوی ویښ دي، پداسي حال کښې چې هغوی ویده پراته وو مونږ هغوی په ښي او کیڼ اړخ باندې اړول رااړول او د هغو سپی د څمځی په خوله کښې ځنګلي غوړولي ناست وء که تا چیرته په یو پټ غوندي نظر هغوی لیدلي وای نو په شا به ور څخه په تیښته راګرځیدلی وای او پرتا به د هغو له لیدنې نه هیبت ناست وای

وَ تَحۡسَبُهُمۡ اَیۡقَاظًا وَّ هُمۡ رُقُوۡدٌ ٭ۖ وَّ نُقَلِّبُهُمۡ ذَاتَ الۡیَمِیۡنِ وَ ذَاتَ الشِّمَالِ ٭ۖ وَ کَلۡبُهُمۡ بَاسِطٌ ذِرَاعَیۡهِ بِالۡوَصِیۡدِ ؕ لَوِ اطَّلَعۡتَ عَلَیۡهِمۡ لَوَلَّیۡتَ مِنۡهُمۡ فِرَارًا وَّ لَمُلِئۡتَ مِنۡهُمۡ رُعۡبًا (۱۸)

او په دغسي حیرانوونکي صحنې سره مونږ هغوی را پاڅول ترڅو په خپلو مینځو کښې یو څه پوښتنه ګویګنه وکړي . له هغونه یو تن پوښتنه وکړه''وایاست څومره ځنډ پدې حال کښې پاتي شوي یئ،،؟ نورو ځواب ورکړ ''ښایئ پوره یوه ورځ یا له هغې نه لږ څه کم به پاتي شوي یو،، بیا هغو وویل''الله ښه پوهېږي چې زمونږ او ستاسي څو مره وخت په دغه حالت کې تېر شو، اوس له خپلو نه یو تن ته د سپینو زرو دغه سکه ورکړئ ښارته ئې ولیږئ او هغه دې وګوري چې تر ټولو ښه پاك خواړه چېرته میندل کیږي، له هغه ځایه دې هغه یو څه د خوراك له پاره درته راوړي. او باید چې لږ په هوښیاری او نرمی سره کار وکړي، داسي نه وي چې هغه څوك ستاسي له دلته استوګنې نه خبر کړي

وَ کَذٰلِکَ بَعَثۡنٰهُمۡ لِیَتَسَآءَلُوۡا بَیۡنَهُمۡ ؕ قَالَ قَآئِلٌ مِّنۡهُمۡ کَمۡ لَبِثۡتُمۡ ؕ قَالُوۡا لَبِثۡنَا یَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ یَوۡمٍ ؕ قَالُوۡا رَبُّکُمۡ اَعۡلَمُ بِمَا لَبِثۡتُمۡ ؕ فَابۡعَثُوۡۤا اَحَدَکُمۡ بِوَرِقِکُمۡ هٰذِهٖۤ اِلَی الۡمَدِیۡنَةِ فَلۡیَنۡظُرۡ اَیُّهَاۤ اَزۡکٰی طَعَامًا فَلۡیَاۡتِکُمۡ بِرِزۡقٍ مِّنۡهُ وَ لۡـیَتَلَطَّفۡ وَ لَا یُشۡعِرَنَّ بِکُمۡ اَحَدًا (۱۹)

که د هغو لا س پر تاسي برشي نو سنګسار به مو کړي یابه مو بېرته په زوره خپل دین ته واړوي، او که داسي وشول، نو تاسي به هېڅکله بری ونشئ میندلای،،

اِنَّهُمۡ اِنۡ یَّظۡهَرُوۡا عَلَیۡکُمۡ یَرۡجُمُوۡکُمۡ اَوۡ یُعِیۡدُوۡکُمۡ فِیۡ مِلَّتِهِمۡ وَ لَنۡ تُفۡلِحُوۡۤا اِذًا اَبَدًا (۲۰)

پدې ډول مونږ ښاريان د هغو له حاله خبر كړل تر څو چې خلك وپوهيږي چې دالله وعده رېښتوني ده او دا چې د قيامت ساعت به بې له شك شبهې نه راشي ، ( خو لږ شان پاملرنه وكړئ چې كله د غور كولو اصلي خبره دا وه) په هغه وخت كښې هغو په خپلو مينځو كښې پدې خبره باندې شخړه كوله چې له دغو (اصحاب كهفو) سره څه وكړای شي، ځينو وويل''پر دوی يو ديوال جوړ كړئ، پوازې ددوی رب دوی په چاره ښه پوهيږي،، خو كوم كسان چې د هغو په چارو برلاسي ووهغو وويل''مونږ به اورمرو پردوی باندې يوه عبادتخانه جوړه كړو،،

وَ كَذٰلِکَ اَعۡثَرۡنَا عَلَیۡہِمۡ لِیَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ وَعۡدَ اللّٰہِ حَقٌّ وَّ اَنَّ السَّاعَۃَ لَا رَیۡبَ فِیۡہَا ۚ٭ اِذۡ یَتَنَازَعُوۡنَ بَیۡنَہُمۡ اَمۡرَہُمۡ فَقَالُوا ابۡنُوۡا عَلَیۡہِمۡ بُنۡیَانًا ؕ رَبُّہُمۡ اَعۡلَمُ بِہِمۡ ؕ قَالَ الَّذِیۡنَ غَلَبُوۡا عَلٰۤی اَمۡرِہِمۡ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَیۡہِمۡ مَّسۡجِدًا (۲۱)

ځينې كسان به ووائي چې هغوی درې تنه وو او څلورم د هغو سپی وءاو ځينی نور به ووائې چې پنځه وو او شپږم د هغو سپی وء، دا ټولې بې ځايه د بې خبرئ وېناوې دي . ځينی نور خلك وائي چې اوه وو او اتم د هغو سپوء ووايه، زما رب ښه پوهيږي چې هغوی څوتنه وو لږو كسانو ته د هغو صحيح شمير معلوم دی . نو ته له سطحي خبرې زيات د هغو د شمير په برخه كښې له خلكو سره بحث مكوه، او مه د هغو په باب له چانه څه پوښتنه كوه.

سَیَقُوۡلُوۡنَ ثَلٰثَۃٌ رَّابِعُہُمۡ کَلۡبُہُمۡ ۚ وَ یَقُوۡلُوۡنَ خَمۡسَۃٌ سَادِسُہُمۡ کَلۡبُہُمۡ رَجۡمًۢا بِالۡغَیۡبِ ۚ وَ یَقُوۡلُوۡنَ سَبۡعَۃٌ وَّ ثَامِنُہُمۡ کَلۡبُہُمۡ ؕ قُلۡ رَّبِّیۡۤ اَعۡلَمُ بِعِدَّتِہِمۡ مَّا یَعۡلَمُہُمۡ اِلَّا قَلِیۡلٌ ۬ فَلَا تُمَارِ فِیۡہِمۡ اِلَّا مِرَآءً ظَاہِرًا ۪ وَّ لَا تَسۡتَفۡتِ فِیۡہِمۡ مِّنۡہُمۡ اَحَدًا (۲۲)

او پام كوه ديو شي په باب هيڅكله دامه وايه چې زه به سبا دا كار وكړم.

وَ لَا تَقُوۡلَنَّ لِشَایۡءٍ اِنِّیۡ فَاعِلٌ ذٰلِکَ غَدًا ﴿۲۳﴾

مګر داچې د الله اراده وشي كه په هېره (ته هيڅ نشې كولای) سره دې دغه ډول خبره له خولې نه ووځی نو سمدلاسه خپل رب ياد كړه او ووايه: '' هيله ده چې زما پروردګار به پدې معامله كښې نيكۍ ته د ډيرې نژدې كړ نچارې په لوري ماته لارښوونه وكړي ،،

اِلَّاۤ اَنۡ یَّشَآءَ اللّٰہُ ۫ وَ اذۡکُرۡ رَّبَّکَ اِذَا نَسِیۡتَ وَ قُلۡ عَسٰۤی اَنۡ یَّہۡدِیَنِ رَبِّیۡ لِاَقۡرَبَ مِنۡ ہٰذَا رَشَدًا (۲۴)

او هغوی په خپله ځمڅه كښې درې سوه كاله پاتې شول ، او(ځينو خلكو د مودې په حسابولو كښې) ۹كاله نور زيات كړيدي

وَ لَبِثُوۡا فِیۡ کَہۡفِہِمۡ ثَلٰثَ مِائَۃٍ سِنِیۡنَ وَ ازۡدَادُوۡا تِسۡعًا (۲۵)

ته ووايه ، الله دهغو د هستوګنې په موده ډير ښه پوهيږي، د اسمانونو او زمكې ټول پټ حالات همغه ته معلوم دي، هغه څومره ښه ليدونكی او اور پدونكی دی د زمكې او اسمان د مخلوقاتو هيڅ خبر اخيستونكی له هغه پرته نشته، او هغه په خپل حكومت كښې څوك نه شريكوي

قُلِ اللّٰہُ اَعۡلَمُ بِمَا لَبِثُوۡا ۚ لَہٗ غَیۡبُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ اَبۡصِرۡ بِہٖ وَ اَسۡمِعۡ ؕ مَا لَہُمۡ مِّنۡ دُوۡنِہٖ مِنۡ وَّلِیٍّ ۫ وَّ لَا یُشۡرِکُ فِیۡ حُکۡمِہٖۤ اَحَدًا (۲۶)

ای محمده (ص)! ستادپروردګار له كتاب نه چې څه تاته وحی كړای شويدي هغه(چې څنګه دي هماغسې يي ) واوروه، هيڅاته د هغه داوامرو بدلولوحق نشته،(او كه ته ديو چا له پاره په هغه كښې ردو بدل وكړې) نو له هغه پرته به د تېښتی له پاره هيڅ د پناه ځای ونه مومې

وَ اتۡلُ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیۡکَ مِنۡ کِتَابِ رَبِّکَ ۚ ؕ لَا مُبَدِّلَ لِکَلِمٰتِہٖ ۚ۟ وَ لَنۡ تَجِدَ مِنۡ دُوۡنِہٖ مُلۡتَحَدًا (۲۷)

او خپل زړه دهغو خلكو په ملګرتيا ډاډه كړه چې د خپل روزونكي پالونكي واكوال د خوښې غوښتونكي، سبا او ماښام هغه ته بلنه وركوي، او له هغو نه هيڅكله سترګې مه اړوه. ايا ته ددنيا ښكلا خوښوې ؟ د يو داسې چا اطاعت مكوه چې د هغه زړه مونږ له خپل ياد نه غافل كړيدی او هغه د خپل نفس پيروي غوره كړېده او دهغه كړنلاره په افراط او تفريط باندې ولاړه ده.

وَ اصۡبِرۡ نَفۡسَکَ مَعَ الَّذِیۡنَ یَدۡعُوۡنَ رَبَّہُمۡ بِالۡغَدٰوۃِ وَ الۡعَشِیِّ یُرِیۡدُوۡنَ وَجۡہَہٗ وَ لَا تَعۡدُ عَیۡنٰکَ عَنۡہُمۡ ۚ تُرِیۡدُ زِیۡنَۃَ الۡحَیٰوۃِ الدُّنۡیَا ۚ وَ لَا تُطِعۡ مَنۡ اَغۡفَلۡنَا قَلۡبَہٗ عَنۡ ذِکۡرِنَا وَ اتَّبَعَ ہَوٰىہُ وَ کَانَ اَمۡرُہٗ فُرُطًا (۲۸)

په ډاګه ووايه چي دغه حق دی ستاسي درب له لوري، اوس که د چازړه غواړي ودي مني او که د چا زړه غواړي منکر دي شي مونږ د(انکار کوونکو) ظالمانو له پاره داسي يو اورتيار کړيدی چي د هغه پردو هغوی ايسار کړيدي هلته که هغوی اوبه وغواړي نو پداسي اوبو سره به د هغو غوښتنه وپالل شي چي د تيلو د ځوښا غوندي به وي او دهغو مخونه به وريت کړي، ډېر ناکاره څښاك او ډېر ناوړه استوګنځی!

وَ قُلِ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّكُمۡ ۟ فَمَنۡ شَآءَ فَلۡيُؤۡمِنۡ وَّ مَنۡ شَآءَ فَلۡيَكۡفُرۡ ۙ اِنَّاۤ اَعۡتَدۡنَا لِلظّٰلِمِيۡنَ نَارًا ۙ اَحَاطَ بِهِمۡ سُرَادِقُهَا ؕ وَ اِنۡ يَّسۡتَغِيۡثُوۡا يُغَاثُوۡا بِمَآءٍ كَالۡمُهۡلِ يَشۡوِی الۡوُجُوۡهَ ؕ بِئۡسَ الشَّرَابُ ؕ وَ سَآءَتۡ مُرۡتَفَقًا (۲۹)

پاتي شول هغه کسان چي وېي مني (ايمان راوړي) او ښه عملونه وکړي، نو دايقيني ده چي مونږ د نيکوکارانو اجر نه ضايع کوو

اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اِنَّا لَا نُضِيۡعُ اَجۡرَ مَنۡ اَحۡسَنَ عَمَلًا (۳۰)

د هغو له پاره تل سمسور باغونه دي چي تر هغو لاندي به ويالي بهېږي، هلته به هغوی د سرو زرو په بنګړيو سينګار کړاشي، د نرېو وريښمو، اطلسو او مخملو شني جامي به واغوندي، او هسکو بالښتونوته به تکيه وهلي کښېني، ډېر ښه اجر او د لوړې درجي هستوګنځی!.

اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ جَنّٰتُ عَدۡنٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهِمُ الۡاَنۡهٰرُ يُحَلَّوۡنَ فِيۡهَا مِنۡ اَسَاوِرَ مِنۡ ذَهَبٍ وَّ يَلۡبَسُوۡنَ ثِيَابًا خُضۡرًا مِّنۡ سُنۡدُسٍ وَّ اِسۡتَبۡرَقٍ مُّتَّكِـِٕيۡنَ فِيۡهَا عَلَى الۡاَرَآئِكِ ؕ نِعۡمَ الثَّوَابُ ؕ وَ حَسُنَتۡ مُرۡتَفَقًا (۳۱)

ای محمده(ص)! دوېته يو مثال وړاندي کړه، دوه تنه وو، له هغونه يوه ته مونږ د انګورو دوه باغونه ورکړل او دهغو چارچاپېر مو د خرما وء د ونو قطار جوړ کړ او دهغو په مينځ کښي مو کرونده پيدا کړه،

وَ اضۡرِبۡ لَهُمۡ مَّثَلًا رَّجُلَيۡنِ جَعَلۡنَا لِاَحَدِهِمَا جَنَّتَيۡنِ مِنۡ اَعۡنَابٍ وَّ حَفَفۡنٰهُمَا بِنَخۡلٍ وَّ جَعَلۡنَا بَيۡنَهُمَا زَرۡعًا (ؕ۳۲)

باغونه ښه ښېرازه سمسور شول او بار نيولو کښي يې يو بخری کموالی هم رانه ووست،دننه په هغو باغونو کښي مونږ يوه ويالّه وبهوله

كِلۡتَا الۡجَنَّتَيۡنِ اٰتَتۡ اُكُلَهَا وَ لَمۡ تَظۡلِمۡ مِّنۡهُ شَيۡـًٔا ۙ وَّ فَجَّرۡنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا (۳۳)

او هغه ته يي ښه حاصلات ورکړل. ددغو شيانو په ميندلو يوه ورځ هغه خپل ګاونډي ته په خبرو اترو کښي وويل:''زه له تانه زيات شتمن يم او له تانه زيات قوي کسان لرم،،

وَّ كَانَ لَهٗ ثَمَرٌ ۚ فَقَالَ لِصَاحِبِهٖ وَ هُوَ يُحَاوِرُهٗۤ اَنَا اَكۡثَرُ مِنۡكَ مَالًا وَّ اَعَزُّ نَفَرًا (۳۴)

بياهغه خپل باغ ته ننووت او د خپل نفس په حق کښي تيری کوونکی شو ويې ويل''زه دانه ګڼم چي دغه شتمني اوباغ به يو وخت فناشي،

وَ دَخَلَ جَنَّتَهٗ وَ هُوَ ظَالِمٌ لِّنَفۡسِهٖ ۚ قَالَ مَاۤ اَظُنُّ اَنۡ تَبِيۡدَ هٰذِهٖۤ اَبَدًا (۳۵)

او زما باور نشته چي د قيامت ساعت به راشي بيا هم که کله د خپل رب حضورته زما ورګرځيدل شول نو ارو مرو به له دېنه هم زيات شاندار ځای ومومم،،

وَّ مَاۤ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً ۙ وَّ لَئِنۡ رُّدِدۡتُّ اِلٰى رَبِّىۡ لَاَجِدَنَّ خَيۡرًا مِّنۡهَا مُنۡقَلَبًا (۳۶)

د هغه ګاونډي په خبرو اترو کښي هغه ته وويل''ايا ته په هغه ذات کافر کېږې چي هغه، ته له خاورې او بيا له نطفي څخه پيدا کړې او ته يي يو بشپړ سړی جوړ کړې؟

قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَ هُوَ يُحَاوِرُهٗۤ اَكَفَرۡتَ بِالَّذِىۡ خَلَقَكَ مِنۡ تُرَابٍ ثُمَّ مِنۡ نُّطۡفَةٍ ثُمَّ سَوّٰٮكَ رَجُلًا (ؕ۳۷)

پاتي شوم زه، نو زما رب خو هماغه الله دی او زه له خپل رب سره هېڅوك نه شريکوم

لٰكِنَّا۟ هُوَ اللّٰهُ رَبِّىۡ وَ لَاۤ اُشۡرِكُ بِرَبِّىۡۤ اَحَدًا (۳۸)

او کله چي ته خپل بڼ ته ننوتلي نو په هغه وخت کښي ستا له خولي نه دا ولي راونه وتل چي مَاشَاالله، لا قوۍ الابالله؟که ته ما په مال او اولاد کښي له خپله ځانه ټيټ وينې

وَ لَوۡ لَاۤ اِذۡ دَخَلۡتَ جَنَّتَكَ قُلۡتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ ۙ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ اِنۡ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنۡكَ مَالًا وَّ وَلَدًا (۳۹)

فَعَسٰی رَبِّیْٓ اَنْ یُّؤْتِیَنِ خَیْرًا مِّنْ جَنَّتِکَ وَ یُرْسِلَ عَلَیْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ صَعِیْدًا زَلَقًا (۴۰)

نو لیرې نده چې زما رب ماته ستا له باغ نه ډېر غوره راپه برخه کړي او ستا په باغ باندې له اسمانه کوم افت راولېږي چې په هغه سره هغه سپېره ډاګ جوړ شي،

اَوْ یُصْبِحَ مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِیْعَ لَهٗ طَلَبًا (۴۱)

یاد هغه اوبه په زمکه کښې پریو ځي او بیاته هغه په هېڅ شان راونشې ویستلې،،.

وَ اُحِیْطَ بِثَمَرِهٖ فَاَصْبَحَ یُقَلِّبُ کَفَّیْهِ عَلٰی مَآ اَنْفَقَ فِیْهَا وَ هِیَ خَاوِیَةٌ عَلٰی عُرُوْشِهَا وَ یَقُوْلُ یٰلَیْتَنِیْ لَمْ اُشْرِکْ بِرَبِّیْٓ اَحَدًا (۴۲)

په پای کښې داسې وشول چې د هغه ټوله میوه تباه شوه او هغه د خپلو انګورو باغونه په څېرو باندې چپه غورځېدلي ولیدل په باغ کې په خپل لګښت باندې یې منګولې ومروړلې او ویې ویل چې((کاشکې!ماله خپل پروردګار سره څوك شریك نه وای ګڼلی

وَ لَمْ تَکُنْ لَّهٗ فِئَةٌ یَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَ مَا کَانَ مُنْتَصِرًا (۴۳)

دالله په پرېښودلو سره داسې و نشول چې له هغه سره کوم لښکر اوسي چې له هغه سره یې مرسته کړې وای، او نه هغه دا وکړای شول چې په خپله ددغه افت مخه ونیولای شي

هُنَالِکَ الْوَلَایَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ ؕ هُوَ خَیْرٌ ثَوَابًا وَّ خَیْرٌ عُقْبًا (۴۴)

په هغه وخت کښې څرګنده شوه چې دکار سازۍ واك برحق خدای ته دی، پیرزوینه هماغه بهتره ده چې هغه یې وکړي او عاقبت هماغه ښه دی چې هغه یې وښیي

وَ اضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا کَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِیْمًا تَذْرُوْهُ الرِّیٰحُ ؕ وَ کَانَ اللّٰهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ مُّقْتَدِرًا (۴۵)

او ای پېغمبره(ص)!دوېته ددنیا د ژوندانه حقیقت پدې مثال سره وپوهوه چې نن مونږ له اسمانه اوبه وورولې نو د ځمکی بوزغلی ښه زرغون شو، او سبا هماغه شنیلي بوس شول چې بادونه یې په هوا وړي ، الله په هرڅه باندې قادر دی

اَلْمَالُ وَ الْبَنُوْنَ زِیْنَةُ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۚ وَ الْبٰقِیٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَیْرٌ عِنْدَ رَبِّکَ ثَوَابًا وَّ خَیْرٌ اَمَلًا (۴۶)

دغه مال او دغه اولاد یوازې ددنیوي ژوندانه یوه موقتي ښکلا ده ، په اصل کښې خو پایښت لرونکې نیکۍ ستا د رب په نزد د نتیجې په لحاظ سره ډېرې غوره دي او همغو پورې ښې هیلې تړل کیدای شي،

وَ یَوْمَ نُسَیِّرُ الْجِبَالَ وَ تَرَی الْاَرْضَ بَارِزَةً ۙ وَّ حَشَرْنٰهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا (۴۷)

اندېښنه د هغې ورځې په کار ده چې کله مونږ غرونه وخوځوو، او ته زمکه بیخي لغړه وومومې، او مونږ به ټول انسانان پدغه ډول تر محاصرې لاندې راټول کړو چې (له مخکېنېو وروستنېونه) یو به هم پرېنږدو،

وَ عُرِضُوْا عَلٰی رَبِّکَ صَفًّا ؕ لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا کَمَا خَلَقْنٰکُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۫ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَکُمْ مَّوْعِدًا (۴۸)

او ټول به ستا درب حضورته لیکې لیکې وړاندې کړای شي،، دا دی حقیقت چې، راغلئ تاسې مونږ ته په همغه شان لکه چې مونږ تاسې لومړی ځل پیدا کړي وئ تاسې خو دا ګڼلې وه چې مونږ ستاسې له پاره د کومې وعدې وخت ندی ټاکلی

وَ وُضِعَ الْکِتٰبُ فَتَرَی الْمُجْرِمِیْنَ مُشْفِقِیْنَ مِمَّا فِیْهِ وَ یَقُوْلُوْنَ یٰوَیْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْکِتٰبِ لَا یُغَادِرُ صَغِیْرَةً وَّ لَا کَبِیْرَةً اِلَّآ اَحْصٰهَا ۚ وَ وَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا ؕ وَ لَا یَظْلِمُ رَبُّکَ اَحَدًا (۴۹)

او عملنا مې به مخې ته کېښودل شي، په هغه وخت کښې به ته وګورې چې مجرمان به د خپل ژوند د کتاب ثبت شوېو چارونه وېرېدونکي وي او وایي به چې های زمونږ بده بخته، دا څنګه کتاب دی چې زمونږ هېڅ وړوکی غټ حرکت داسې ندی پاتې چې پده کښې درج شوی نه وي، هرڅه چې هغوی کړي وو هغه ټول به خپلې مخې ته حاضر و مومي او ستا رب به پر هېچا یو بڅری ظلم ونه کړي.

يا دكړه چې كله مونږ پرښتوته وويل چې ادم(ع) ته سجده وكړئ نو
هغوی سجده وكړه خو ابليس ونه كړه هغه له پيريانو څخه وء ځكه د
خپل رب د حكم له منلونه ووت اوس ايا تاسې له ما څخه پرته هغه
او د هغه ځوځات خپل سرپرستان نيسئ پداسې حال كښې چې هغوی
ستاسې دښمنان دي؟ ډېره ناوړه بدله ده چې ظالمان يې غوره كوي

وَ اِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِكَۃِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ
فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِيۡسَ ؕ كَانَ مِنَ الۡجِنِّ
فَفَسَقَ عَنۡ اَمۡرِ رَبِّہٖ ؕ اَفَتَتَّخِذُوۡنَہٗ وَ
ذُرِّيَّتَہٗۤ اَوۡلِيَآءَ مِنۡ دُوۡنِيۡ وَ ہُمۡ لَكُمۡ
عَدُوٌّ ؕ بِئۡسَ لِلظّٰلِمِيۡنَ بَدَلًا (۵۰)

ما داسمانونو او زمكې د پيداكولو په وخت كښې هغوی نه وو رابللي
او نه مې په خپله د هغو په پيدايښت كښې هغوی شريك كړي وو زما
دا كار نه دی چې ګمراه كوونكي خپل مرستيالان وګرځوم.

مَاۤ اَشۡہَدۡتُّہُمۡ خَلۡقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ
وَ لَا خَلۡقَ اَنۡفُسِہِمۡ ۪ وَ مَا كُنۡتُ مُتَّخِذَ
الۡمُضِلِّيۡنَ عَضُدًا (۵۱)

او دغه كسان به په هغه ورځ څه وكړي چې د دوی رب دوېته
ووائي چې اوس هغه هستئ راوبلئ چې هغه مو له ماسره شريكان
ګڼلي وو، دوی به هغه وبلي، خو هغوی به ددوی مرستې ته رانشي
او مونږ به د هغو په مينځ كښې د تباهئ همدا يوه كنده شريكه كړو

وَ يَوۡمَ يَقُوۡلُ نَادُوۡا شُرَكَآءِيَ الَّذِيۡنَ
زَعَمۡتُمۡ فَدَعَوۡہُمۡ فَلَمۡ يَسۡتَجِيۡبُوۡا لَہُمۡ وَ
جَعَلۡنَا بَيۡنَہُمۡ مَّوۡبِقًا (۵۲)

ټول مجرمان به په هغه ورځ اور ويني او وبه انګيري چې اوس
هغوی پكښې لويدونكي دي او هغوی به له هغه څخه د ژغورل
كېدو هيڅ د پناه ځای ونه مومي

وَ رَاَ الۡمُجۡرِمُوۡنَ النَّارَ فَظَنُّوۡۤا اَنَّہُمۡ
مُّوَاقِعُوۡہَا وَ لَمۡ يَجِدُوۡا عَنۡہَا مَصۡرِفًا
(۵۳)

مونږ په دې قران كښې خلك په هر هر ډول مثالونو تكرارولو سره
وپوهول خو انسان ډېر زيات جګړه مار دی.

وَ لَقَدۡ صَرَّفۡنَا فِيۡ ہٰذَا الۡقُرۡاٰنِ لِلنَّاسِ
مِنۡ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَ كَانَ الۡاِنۡسَانُ اَكۡثَرَ
شَيۡءٍ جَدَلًا (۵۴)

هغو (خلكو ته) ته چې كله هدايت راغی نو دهغه له منلو (ايمان
راوړلو) دخپل رب له حضور څخه له ښښې غوښتلونه هغوی څه
شي منع كړل؟له دې پرته نور هيڅ ندي چې له هغو سره هم همغه
څه وشي چې له مخكېنيو قومونو سره شويدي، يا دا چې هغوی
عذاب مخامخ راتلونكی ويني

وَ مَا مَنَعَ النَّاسَ اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡۤا اِذۡ جَآءَہُمُ
الۡہُدٰی وَ يَسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّہُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ
تَاۡتِيَہُمۡ سُنَّۃُ الۡاَوَّلِيۡنَ اَوۡ يَاۡتِيَہُمُ الۡعَذَابُ
قُبُلًا (۵۵)

مونږ پېغمبران له دې كارنه پرته د كوم غرض له پاره نه لېږو
چې هغوی د زيري وركولو او اخطار وركولو د نده سرته ورسوي،
خو د كافرانو حال دادی چې هغوی د باطل وسله را اخيستې د حق د
ټيټ ساري ښودلو هڅه كوي او هغوی زمونږ ايتونه او هغه
اخطارونه چې وركړل شول ټوكې ګڼلي دي.

وَ مَا نُرۡسِلُ الۡمُرۡسَلِيۡنَ اِلَّا مُبَشِّرِيۡنَ وَ
مُنۡذِرِيۡنَ ۚ وَ يُجَادِلُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا
بِالۡبَاطِلِ لِيُدۡحِضُوۡا بِہِ الۡحَقَّ وَ اتَّخَذُوۡۤا
اٰيٰتِيۡ وَ مَاۤ اُنۡذِرُوۡا ہُزُوًا (۵۶)

او له هغه چانه غټ ظالم بل څوك دی چې هغه ته د هغه د
پروردګار د ايتونو په اورولو نصيحت وشي او هغه ور څخه مخ
واړوي او هغه ناوړه عاقبت هير كړي چې د هغه سر شته يې د ځان
له پاره په خپلو لاسونو سره كړېده؟ (كومو كسانو چې دغه كړنلاره
غوره كړېده) د هغو پر زړونو مونږ داسې پوښ اچولی دی چې نه
پرېږدي هغه د قرآن په خبرو وپوهېږي، او د هغو په غوږونو
كښې مونږ كوڼ والی پيدا كړيدی، ته كه هغوی هرڅومره د هدايت
خواته وبلې، هغوی به پدې حالت كښې هيڅكله سمه لاره ونه
مومي.

وَ مَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنۡ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّہٖ
فَاَعۡرَضَ عَنۡہَا وَ نَسِيَ مَا قَدَّمَتۡ
يَدٰہُ ؕ اِنَّا جَعَلۡنَا عَلٰی قُلُوۡبِہِمۡ اَكِنَّۃً اَنۡ
يَّفۡقَہُوۡہُ وَ فِيۡۤ اٰذَانِہِمۡ وَقۡرًا ؕ وَ اِنۡ
تَدۡعُہُمۡ اِلَی الۡہُدٰی فَلَنۡ يَّہۡتَدُوۡۤا اِذًا اَبَدًا
(۵۷)

ستا رب خورابښونکی او رحم کونکی دی. هغه که ددوی په کړو وړو باندې ددوی مواخذه کول غوښتلای نو سمدلاسه به یې عذاب لیږلی وای، خو ددوی له پاره دوعدې یوه نیټه ټاکل شوېده او دوی به له هغه نه د ځان ژغورلو او تېښتې هیڅ لاره ونه مومي.

وَ رَبُّکَ الۡغَفُوۡرُ ذُو الرَّحۡمَۃِ ؕ لَوۡ یُؤَاخِذُہُمۡ بِمَا کَسَبُوۡا لَعَجَّلَ لَہُمُ الۡعَذَابَ ؕ بَلۡ لَّہُمۡ مَّوۡعِدٌ لَّنۡ یَّجِدُوۡا مِنۡ دُوۡنِہٖ مَوۡئِلًا (۵۸)

دا په عذاب اخته شوي کلي ستاسې تر نظر لاندې موجود دي دوی چې کله ظلم وکړ نو مونږ دوی هلاك کړل، او ددوې هر یوه د هلاکت له پاره مونږ نیټه ټاکلې وه

وَ تِلۡکَ الۡقُرٰۤی اَہۡلَکۡنٰہُمۡ لَمَّا ظَلَمُوۡا وَ جَعَلۡنَا لِمَہۡلِکِہِمۡ مَّوۡعِدًا (۵۹)

دوېته هغه قصه واوروه چې موسی(ع) ته پېښه شوې وه) کله چې ) موسی(ع) خپل خدمتګار ته ویلي وء چې ''زه به تر هغه خپل سفر پای ته ونه رسوم تر څو چې ددواړو سیندونو یو ځای کیدو حد ته ونه رسېږم، که نه نو زه به تر ډیره وخته پورې همداسې روان یم،،

وَ اِذۡ قَالَ مُوۡسٰی لِفَتٰىہُ لَاۤ اَبۡرَحُ حَتّٰۤی اَبۡلُغَ مَجۡمَعَ الۡبَحۡرَیۡنِ اَوۡ اَمۡضِیَ حُقُبًا (۶۰)

نو کله چې هغوی دواړه د هغو دواړو د یو ځای کېدو حد ته ورسېدل نو له خپل کب نه غافل شول او هغه پداسې شان په سیند کښې لاړ لکه چې کومه پخه لاره جوړه شوې وي

فَلَمَّا بَلَغَا مَجۡمَعَ بَیۡنِہِمَا نَسِیَا حُوۡتَہُمَا فَاتَّخَذَ سَبِیۡلَہٗ فِی الۡبَحۡرِ سَرَبًا (۶۱)

وړاندې چې تېر شول موسی (ع) خپل خدمتګارته وویل'' راوړه زمونږ سبا ناری ، د نن ورځې په سفر کښې خو مونږ ډېر زیات ستومانه شوي یو،

فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰىہُ اٰتِنَا غَدَآءَنَا ۫ لَقَدۡ لَقِیۡنَا مِنۡ سَفَرِنَا ہٰذَا نَصَبًا (۶۲)

خدمتګار وویل ''تا ولیدل! دا څه وشول؟ کله چې مونږ د هغه ګټ سره دمه جوړه کړې وه په هغه وخت کښې کب ته زما پام نشو او شیطان زه داسې په غفلت کښې واچولم چې(تاته) د هغه یادول را څخه هېر شول. کب خو په عجیبه ډول وووت په سیندکې لاړ،،

قَالَ اَرَءَیۡتَ اِذۡ اَوَیۡنَاۤ اِلَی الصَّخۡرَۃِ فَاِنِّیۡ نَسِیۡتُ الۡحُوۡتَ ۫ وَ مَاۤ اَنۡسٰنِیۡہُ اِلَّا الشَّیۡطٰنُ اَنۡ اَذۡکُرَہٗ ۚ وَ اتَّخَذَ سَبِیۡلَہٗ فِی الۡبَحۡرِ ٭ۖ عَجَبًا (۶۳)

موسی(ع) وویل''مونږ خو د همدې په لټه کښې وو،، نو هغوی دواړه په خپلو پلونو قدم په قدم په شا ستانه شول

قَالَ ذٰلِکَ مَا کُنَّا نَبۡغِ ٭ۖ فَارۡتَدَّا عَلٰۤی اٰثَارِہِمَا قَصَصًا (۶۴)

او هلته هغوی زمونږ له بندګانو څخه یو بنده ومینده چې هغه مونږ په خپل رحمت سر لوړی کړی وءاو له خپل لوري نه مو یو خاص علم ورپه برخه کړی وء

فَوَجَدَا عَبۡدًا مِّنۡ عِبَادِنَاۤ اٰتَیۡنٰہُ رَحۡمَۃً مِّنۡ عِنۡدِنَا وَ عَلَّمۡنٰہُ مِنۡ لَّدُنَّا عِلۡمًا (۶۵)

موسی(ع) هغه ته وویل'' ایا زه له تاسره پاتې کیدای شم تر څو چې ته ماته هم هغه علم رازده کړې چې تاته درښودل شویدی،،؟

قَالَ لَہٗ مُوۡسٰی ہَلۡ اَتَّبِعُکَ عَلٰۤی اَنۡ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمۡتَ رُشۡدًا (۶۶)

هغه ځواب ورکړ((ته له ماسره صبر نشې کولای،

قَالَ اِنَّکَ لَنۡ تَسۡتَطِیۡعَ مَعِیَ صَبۡرًا (۶۷)

اوله کوم شي نه چې ته نه یې خبر پر هغه څنګه صبر کولای شې،،

وَ کَیۡفَ تَصۡبِرُ عَلٰی مَا لَمۡ تُحِطۡ بِہٖ خُبۡرًا (۶۸)

موسی(ع) وویل((انشد الله ته به ماصبر کوونکی بیا مومې او زه به په هیڅ چاره کښې ستا له امرنه سر ونه غړوم))

قَالَ سَتَجِدُنِیۡۤ اِنۡ شَآءَ اللّٰہُ صَابِرًا وَّ لَاۤ اَعۡصِیۡ لَکَ اَمۡرًا (۶۹)

هغه وویل((ښه ده،که ته له ماسره ځې نو له ما څخه د هیڅ خبرې پوښتنه مکوه تر څو چې ماپه خپله د هغې یادونه درته نه وي کړې،،

قَالَ فَاِنِ اتَّبَعۡتَنِیۡ فَلَا تَسۡـَٔلۡنِیۡ عَنۡ شَیۡءٍ حَتّٰۤی اُحۡدِثَ لَکَ مِنۡہُ ذِکۡرًا (۷۰)

نو بیا دواړه و خوځیدل، تر دې پورې چې کله هغوی په یوه بېړۍ کښې سپاره شول نو هغه په بېړۍ کښې سوری وکړ، موسی (ع) وویل((تا پدې کښې ددې له پاره سوری وکړ چې د بېړۍ سپرلی غرقه کړې؟ دا خو تا ډېر سخت حرکت وکړ،،

فَانْطَلَقَا ۚ حَتّٰی اِذَا رَکِبَا فِی السَّفِیْنَۃِ خَرَقَہَا ؕ قَالَ اَخَرَقْتَہَا لِتُغْرِقَ اَہْلَہَا ۚ لَقَدْ جِئْتَ شَیْـًٔا اِمْرًا (۷۱)

هغه وویل((ماتاته نه وو ویلي چې ته له ما سره صبر نشې کولای؟،،

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ اِنَّکَ لَنْ تَسْتَطِیْعَ مَعِیَ صَبْرًا (۷۲)

موسی(ع) وویل ((په هېره مې مه نیسه، زما په برخه کښې ته لږ غوندې له سختۍ نه کار مه اخله))

قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِیْ بِمَا نَسِیْتُ وَ لَا تُرْہِقْنِیْ مِنْ اَمْرِیْ عُسْرًا (۷۳)

بیا هغوی دواړه لاړل، تر دې پورې چې له یو هلك سره مخ شول او هغه سړي هغه ووژه موسی(ع) وویل((تایو بې ګناه ووژه پداسې حال کښې چې هغه څوك نه وو وژلې؟ دا کار خو دې ډېر ناوړه وکړ،

فَانْطَلَقَا ٝ حَتّٰۤی اِذَا لَقِیَا غُلٰمًا فَقَتَلَہٗ ۙ قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَکِیَّۃًۢ بِغَیْرِ نَفْسٍ ؕ لَقَدْ جِئْتَ شَیْـًٔا نُّکْرًا (۷۴)

هغه وویل((ما تاته نه وویلي چې ته له ماسره صبر نشی کولای؟،،

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّکَ اِنَّکَ لَنْ تَسْتَطِیْعَ مَعِیَ صَبْرًا (۷۵)

موسی(ع) وویل((له دېنه وروسته که ما در څخه د څه پوښتنه وکړه نو بیا ته ماله ځان سره مه پرېږده. دا ځل خو زما له لورې درته عذر وړاندې شو،،

قَالَ اِنْ سَاَلْتُکَ عَنْ شَیْءٍۭ بَعْدَہَا فَلَا تُصٰحِبْنِیْ ۚ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّیْ عُذْرًا (۷۶)

بیا هغوی وړاندې لاړل تردې پورې چې یوه کلي ته ورسېدل او دهغه ځای له خلکو نه یې خواړه وغوښتل، خو هغوی ددی دواړو له میلمه کولو نه انکار وکړ. هلته دوی یو دیوال ولیده چې نژدې وءولوېږي. هغه سړي هغه دیوال بېرته محکم ودر وه موسی(ع) وویل((که تا غوښتلای نو پدې کار باندې دې مزدودري اخیستلای شوه،،

فَانْطَلَقَا ٝ حَتّٰۤی اِذَاۤ اَتَیَاۤ اَہْلَ قَرْیَۃِۣ اسْتَطْعَمَاۤ اَہْلَہَا فَاَبَوْا اَنْ یُّضَیِّفُوْہُمَا فَوَجَدَا فِیْہَا جِدَارًا یُّرِیْدُ اَنْ یَّنْقَضَّ فَاَقَامَہٗ ؕ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَیْہِ اَجْرًا (۷۷)

هغه وویل((دازما او ستا ترمنځ بېلتون دی اوس زه تا دهغو خبرو په حقیقت خبروم چې پر هغه باندې تا صبر ونشو کړای

قَالَ ہٰذَا فِرَاقُ بَیْنِیْ وَ بَیْنِکَ ۚ سَاُنَبِّئُکَ بِتَاْوِیْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَّلَیْہِ صَبْرًا (۷۸)

د هغې بېړۍ موضوع داده چې هغه د څو تنو بېوزلو کسانو وه چې په سیندکښې یې د زیار کښې مزدوري کوله ما وغوښتل چې هغه عیبي کړم، ځکه چې له دوې نه وړاندې د یو داسې باچا سیمه وه چې هره بېړۍ یې په زوره اخیستله

اَمَّا السَّفِیْنَۃُ فَکَانَتْ لِمَسٰکِیْنَ یَعْمَلُوْنَ فِی الْبَحْرِ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِیْبَہَا وَ کَانَ وَرَآءَہُمْ مَّلِکٌ یَّاْخُذُ کُلَّ سَفِیْنَۃٍ غَصْبًا (۷۹)

پاتې شو هغه هلك، د هغه مور او پلار مومنان وو، مونږ ووېرېدو چې دغه هلك به په خپلې سرکشۍ او کفر سره هغوی تنګ کړي،

وَ اَمَّا الْغُلٰمُ فَکَانَ اَبَوٰہُ مُؤْمِنَیْنِ فَخَشِیْنَاۤ اَنْ یُّرْہِقَہُمَا طُغْیَانًا وَّ کُفْرًا (۸۰)

له دې امله مونږ و غوښتل چې د هغو رب دهغه په بدل کښې هغو ته داسې اولاد ورکړي چې په اخلاقو کښې هم له ده نه ښه وي اوله هغه نه د صله رحم هیله هم زیاته وي

فَاَرَدْنَاۤ اَنْ یُّبْدِلَہُمَا رَبُّہُمَا خَیْرًا مِّنْہُ زَکٰوۃً وَّ اَقْرَبَ رُحْمًا (۸۱)

او ددغه دیوال معامله داده چې داد دوو یتیمانو هلکانو دی چې پدغه ښار کښې اوسېږي، تر دغه دیوال لاندې ددغو ماشومانو له پاره یوه خزانه ښخه ده او د هغو پلار یو ښه سړی وء، له دې امله ستا رب وغوښتل چې دغه دواړه ماشومان د ځوانۍ منګ ته ورسېږي او خپله خزانه راوباسي دا ستا د رب د رحمت په اساس شویدي، ما په خپل سر څه ندي کړي دا دی دهغو خبرو حقیقت چې تا پرې صبر ونشو کړای ۶۰،،

وَ اَمَّا الْجِدَارُ فَکَانَ لِغُلٰمَیْنِ یَتِیْمَیْنِ فِی الْمَدِیْنَۃِ وَ کَانَ تَحْتَہٗ کَنْزٌ لَّہُمَا وَ کَانَ اَبُوْہُمَا صَالِحًا ۚ فَاَرَادَ رَبُّکَ اَنْ یَّبْلُغَاۤ اَشُدَّہُمَا وَ یَسْتَخْرِجَا کَنْزَہُمَا ٭ۖ رَحْمَۃً مِّنْ رَّبِّکَ ۚ وَ مَا فَعَلْتُہٗ عَنْ اَمْرِیْ ؕ ذٰلِکَ تَاْوِیْلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَیْہِ صَبْرًا (۸۲)

اوای محمده(ص)! دوی له تانه د ذوالقرنین په باب پوښتنه کوي دوېته ووایه: زه به دهغه یو څه حال تاسي ته واوروم.

وَ یَسْـَٔلُوْنَکَ عَنْ ذِی الْقَرْنَیْنِ ؕ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَیْکُمْ مِّنْہُ ذِکْرًا (ؕ۸۳)

مونږ هغه ته په زمکه کښي قدرت ورکړی وء او هر ډول وسایل او اسباب مو وربښلي وو

اِنَّا مَکَّنَّا لَہٗ فِی الْاَرْضِ وَ اٰتَیْنٰہُ مِنْ کُلِّ شَیْءٍ سَبَبًا (ۙ۸۴)

هغه (لومړی د لویدیز خواته دیو (اقدام ) اسباب برابر کړل.

فَاَتْبَعَ سَبَبًا (۸۵)

ان تر دې پورې چي کله هغه د لمر پر ېواته تر حده ورسېده نو هغه لمر په تورو اوبو کښي ډوبېدونکی ولیده او هلته یې یو قوم ومینده، مونږ وویل((ای ذوالقر نینه!ته دا وس هم لرې چي دوی په تکلیف کړې او دا هم چي ښه چار چلند ورسره وکړې))

حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَہَا تَغْرُبُ فِیْ عَیْنٍ حَمِئَۃٍ وَّ وَجَدَ عِنْدَہَا قَوْمًا ۬ؕ قُلْنَا یٰذَا الْقَرْنَیْنِ اِمَّاۤ اَنْ تُعَذِّبَ وَ اِمَّاۤ اَنْ تَتَّخِذَ فِیْہِمْ حُسْنًا (۸۶)

هغه وویل((څوك چي له دوېنه ظلم وکړي مونږ به هغه ته سزا ورکړو، بیا به هغه دخپل رب لوری ته وګرځول شي او هغه به ورته لا سخته سزا ور کړي.

قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُہٗ ثُمَّ یُرَدُّ اِلٰی رَبِّہٖ فَیُعَذِّبُہٗ عَذَابًا نُّکْرًا (۸۷)

او له دوېنه چي څوك ایمان راوړي او ښه عمل وکړي د هغه له پاره غوره مکافات دی او مونږ به ورته اسانه حکمونه ورکړو،،

وَ اَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَلَہٗ جَزَآءَۨ الْحُسْنٰی ۚ وَ سَنَقُوْلُ لَہٗ مِنْ اَمْرِنَا یُسْرًا (ؕ۸۸)

بیا هغه(د یو بل اقدام) تیاری ونیو.

ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا (۸۹)

تر دې پورې چي د لمر خا ته حد ته ورسېده. هلته یې ولیدل چي لمر په یو داسي قوم باندي را خیژي چي مونږ د هغه له پاره له تودوخي نه د ژغورل کیدو څه لاره چاره نده برابره کړې.

حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَہَا تَطْلُعُ عَلٰی قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّہُمْ مِّنْ دُوْنِہَا سِتْرًا (ۙ۹۰)

د هغو دغه حال وء او له ذوالقرنین سره چي څه وو په هغه باندې مونږ پوهېدو

کَذٰلِکَ ؕ وَ قَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَیْہِ خُبْرًا (۹۱)

بیا هغه(د یوبل اقدام) لارې چارې برابرې کړې

ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا (۹۲)

تردې پورې چي کله ددوو غرونو مینځ ته ورسېده نو له هغو سره هغه یو داسي قوم بیا موند چي په ډېره سختۍ سره په کومه خبره پوهېده

حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ بَیْنَ السَّدَّیْنِ وَجَدَ مِنْ دُوْنِہِمَا قَوْمًا ۙ لَّا یَکَادُوْنَ یَفْقَہُوْنَ قَوْلًا (۹۳)

هغو خلکو وویل چي''ای ذوالقرنینه! یا جوج او ما جوج پدې سیمه کښي فساد خوروي، نو ایا مونږ تاته ددې له پاره څه محصول درکړو چي ته زمونږ او دهغو په مینځ کښي یو بند واچوې؟،،

قَالُوْا یٰذَاالْقَرْنَیْنِ اِنَّ یَاْجُوْجَ وَ مَاْجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ فَہَلْ نَجْعَلُ لَکَ خَرْجًا عَلٰۤی اَنْ تَجْعَلَ بَیْنَنَا وَ بَیْنَہُمْ سَدًّا (۹۴)

هغه وویل'' څه چي زما پروردګار ماته راپه برخه کړیدي هغه ډېر دي تاسي په بشري قوه له ما سره مرسته وکړئ، زه ستاسي او دهغو په مینځ کښي بند اچوم

قَالَ مَا مَکَّنِّیْ فِیْہِ رَبِّیْ خَیْرٌ فَاَعِیْنُوْنِیْ بِقُوَّۃٍ اَجْعَلْ بَیْنَکُمْ وَ بَیْنَہُمْ رَدْمًا (ۙ۹۵)

ماته اهن چادر راوړئ،، په پای کښي چي کله هغه د دواړو غرونو تر مینځه کنډو ډك كړ نو خلکو ته یې وویل چي اوس اور په پوکولو بل کړئ، تر داسي اندازې پورې چي کله(دغه داوسپني دیوال) بیخي لکه داور په شان سور شو نو هغه وویل''راوړئ چي اوس پدې باندې ویلې کړي مس وڅڅوم،

اٰتُوْنِیْ زُبَرَ الْحَدِیْدِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا سَاوٰی بَیْنَ الصَّدَفَیْنِ قَالَ انْفُخُوْا ؕ حَتّٰۤی اِذَا جَعَلَہٗ نَارًا ۙ قَالَ اٰتُوْنِیْۤ اُفْرِغْ عَلَیْہِ قِطْرًا (ؕ۹۶)

یا جوج ما جوج ورباندې نشول را ختلای (دغه بند داسي وء چي) او په هغه کښي سوری کول له دېنه هم ورته زیات ګران وء

فَمَا اسْطَاعُوْۤا اَنْ یَّظْہَرُوْہُ وَ مَا اسْتَطَاعُوْا لَہٗ نَقْبًا (۹۷)

ذوالقرنين وويل''دا زما د پروردګار رحمت دی، خو کله چي زما درب دوعدې نيټه را ورسيږي نو دا به ميده ميده هوار کړي، او زما د پروردګار وعده حقه ده،،

قَالَ هٰذَا رَحۡمَةٌ مِّنۡ رَّبِّىۡ ۚ فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ رَبِّىۡ جَعَلَهٗ دَكَّآءَ ۚ وَ كَانَ وَعۡدُ رَبِّىۡ حَقًّا (۹۸)

او په هغه ورځ به مونږ خلك پريږدو چي(د سمندر د څپو غوندي) په خپلو مينځو کښي سره وپرځوي او شپيلۍ پو کړای شي او مونږ به ټول انسانان يو ځای راغونډ کړو.

وَ تَرَكۡنَا بَعۡضَهُمۡ يَوۡمَئِذٍ يَّمُوۡجُ فِىۡ بَعۡضٍ وَّ نُفِخَ فِى الصُّوۡرِ فَجَمَعۡنٰهُمۡ جَمۡعًا (۹۹)

او هماغه ورځ به وي چي مونږ دوزخ کافرانو ته ورمخي ته کړو،

وَّ عَرَضۡنَا جَهَنَّمَ يَوۡمَئِذٍ لِّلۡكٰفِرِيۡنَ عَرۡضًا (۱۰۰)

د هغو کافرانو مخي ته چي زما د نصيحت خواته ړانده شوي وو او د څه شي اوريدلو ته له سره تيار نه وو

الَّذِيۡنَ كَانَتۡ اَعۡيُنُهُمۡ فِىۡ غِطَآءٍ عَنۡ ذِكۡرِىۡ وَ كَانُوۡا لَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ سَمۡعًا (۱۰۱)

نو ايا دغه خلك چي کفر يې غوره کړيدی، دايې ګڼلي ده چي له ما څخه پرته زما بندګان خپل کار سازان ونيسي ؟ مونږ ددغسي کافرانو د ميلمستيا له پاره دوزخ تيار کړيدی.

اَفَحَسِبَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡۤا اَنۡ يَّتَّخِذُوۡا عِبَادِىۡ مِنۡ دُوۡنِىۡۤ اَوۡلِيَآءَ ؕ اِنَّاۤ اَعۡتَدۡنَا جَهَنَّمَ لِلۡكٰفِرِيۡنَ نُزُلًا (۱۰۲)

ای محمده(ص)! دوېته ووايه، ايا مونږ تاسي ته وښيو چي په خپلو عملونو کښي تر ټولو زيات ناکام او نامراده خلك څوك دي؟

قُلۡ هَلۡ نُنَبِّئُكُمۡ بِالۡاَخۡسَرِيۡنَ اَعۡمَالًا (۱۰۳)

هغه چي په دنيوي ژوندانه کښي يې هلي ځلي له سمي لارې منحرفي شوې او انګېرلي يې ده چي د هغو ټول کړه وړه ښه دي

اَلَّذِيۡنَ ضَلَّ سَعۡيُهُمۡ فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَ هُمۡ يَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ يُحۡسِنُوۡنَ صُنۡعًا (۱۰۴)

دا هغه خلك دي چي د خپل پروردګار د ايتونو له منلونه يې انکار وکړ او د هغه حضورته په وړاندي کيدلو يې باور ونکړ له دې کبله د هغو ټولو عملونه بابيزه شول،د قيامت په ورځ به مونږ ورته څه وزن ورنکړو.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمۡ وَ لِقَآئِهٖ فَحَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ فَلَا نُقِيۡمُ لَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ وَزۡنًا (۱۰۵)

د هغو سزا دوزخ دی دهغه کفر په بدله کښي چي هغوی غوره کړ او دهغو ملنډو په بدل کښي چي هغوی زما په ايتونو او زما په پېغمبرانو پورې ووهلي

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمۡ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوۡا وَ اتَّخَذُوۡۤا اٰيٰتِىۡ وَ رُسُلِىۡ هُزُوًا (۱۰۶)

البته کومو کسانو چي ايمان راوړ اوښه عملونه يې وکړل د هغو ميلمستون به د فردوس باغونه وي

اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَانَتۡ لَهُمۡ جَنّٰتُ الۡفِرۡدَوۡسِ نُزُلًا (۱۰۷)

چي هغوی به پکښي د تل له پاره اوسيږي او هيڅکله به له هغه ځايه وتل او چېرته تلل د هغو زړه ونه غواړي

خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَا لَا يَبۡغُوۡنَ عَنۡهَا حِوَلًا (۱۰۸)

ای محمده(ص)! ووايه چي که سمندر زما درب د خبرو د ليکلو له پاره سيايي شي نو هغه به ختمه شي خو زما درب خبرې به پای ته نه وي رسېدلي، بلکي که مونږ همدومره سيايي نوره هم راوړو نو هغه به هم بسنه ونه کړي

قُلۡ لَّوۡ كَانَ الۡبَحۡرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّىۡ لَنَفِدَ الۡبَحۡرُ قَبۡلَ اَنۡ تَنۡفَدَ كَلِمٰتُ رَبِّىۡ وَ لَوۡ جِئۡنَا بِمِثۡلِهٖ مَدَدًا (۱۰۹)

ای محمده(ص)! ووايه چي زه خو ستاسي په څير يو انسان يم. ماته وحی کېږي چي ستاسي خدای همدا يو خدای، دی نو څوك چي له خپل پروردګار سره ديو ځای کېدو په هيله وي هغه ته په کار ده چي ښه عمل وکړي اوپه بندګی کښي له خپل رب سره بل څوك شريك نکړي.

قُلۡ اِنَّمَاۤ اَنَا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ يُوۡحٰٓى اِلَىَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَمَنۡ كَانَ يَرۡجُوۡا لِقَآءَ رَبِّهٖ فَلۡيَعۡمَلۡ عَمَلًا صَالِحًا وَّ لَا يُشۡرِكۡ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖۤ اَحَدًا (۱۱۰)

دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ك، ه، ی، ع، ص.

كٓهٰيٰعٓصٓ (۱)

دهغه رحمت يادونه ده چي ستا رب پر خپل بنده زکريا کړی و،

ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا (٢)

کله چي هغه خپل رب په پټه پټه وباله

اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا (٣)

هغه عرض وکړ: ((ای پروردگاره! زما آن هډوکي کمزوري شويدي اوسر مي له ډېر زوړ والي نه بل وهي، ای پروردگاره! زه هېڅکله له تا څخه په دعا غوښتنه کښي نامراده نه يم پاتي شوی.

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَ اشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا وَّ لَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا (٤)

زه له ځانه وروسته د خپل قوم او خپلوانو له بديونه وېرېږم، او زما مېرمن شنډه ده نو ماته په خپله ځانګړي لورينه يو وارث راپه برخه کړه

وَ اِنِّيْ خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِيْ وَ كَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا فَهَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا (٥)

داسي چي زما وارث هم وي او د يعقوب د کورنی ميراث هم ومومي، اوای پروردگاره هغه يو غوره انسان وګرځوه،،

يَّرِثُنِيْ وَ يَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۖ وَ اجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا (٦)

ځواب ورکړ شو)''ای زکريا، مونږ تاته ديو هلك زيری د رکوو ) چي دهغه نوم به يحيی وي، مونږ په دې نامه له دېنه مخکښي هېڅ سړی نه دی پيدا کړی،،

يٰزَكَرِيَّا اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ اسْمُهٗ يَحْيٰى لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا (٧)

عرض يي وکړ،((پروردګاره، ښه نو زما به څنګه زوی وشي چي مېرمن مي شنډه ده او زه له زړښته وچ شوی يم،،؟

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ كَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا وَّ قَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا (٨)

ځواب ورکړ شو((همداسي به کيږي، ستا رب فرمائي چي دا خو زما له پاره يوه اسانه خبره ده، نه ګوري چي له دېنه مخکښي مي ته پداسي حال کښي پيدا کړي چي ته هېڅ شی نه وی،،؟

قَالَ كَذٰلِكَ ۚ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَّ قَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَ لَمْ تَكُ شَيْئًا (٩)

زکريا وويل، ((پروردګاره! زما له پاره کومه نښانه وټاکه)) ويې فرمايل "ستا له پاره نښانه دغه ده چي ته به پرله پسي دری ورځي له خلکو سره خبري ونشي کړای"

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ؕ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا (١٠)

نو هغه له محراب څخه راووت خپل قوم ته راغی او هغه په اشاره سره هغوته لار ښوونه وکړه چي سهار او ماښام پاکي بيانوئ.

فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّ عَشِيًّا (١١)

ای يحيی! دخدای کتاب ټينګ ونيسه)) مونږ هغه ته په ماشومتوب )) کښي((حکمت)) ورکړ.

يٰيَحْيٰى خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ؕ وَ اٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا (١٢)

او له خپل لوري نه مو هغه ته خوا خوږي او سپېڅلتيا ورکړه، او هغه خورا پرهيزګار وه.

وَّ حَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَ زَكٰوةً ؕ وَ كَانَ تَقِيًّا (١٣)

او د خپل مور او پلار حق پيژندونکی وه، هغه نه زور زياتی کوونکی وه نه سرغړوونکی.

وَّ بَرًّۢا بِوَالِدَيْهِ وَ لَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا (١٤)

اوسلام پر هغه په کومه ورځ چي هغه پيدا شو او په کومه ورځ چي هغه وفات شي او په کومه ورځ چي هغه ژوندی راپاڅول شي.

وَ سَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَ يَوْمَ يَمُوْتُ وَ يَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا (١٥)

او ای محمده(ص)! پدې کتاب کښي د مريم حال درياد کړه، چي کله هغه له خپلو اړوندو کسانو په بېلېدو ختيزه خوا کښي ګوښه شوی وه.

وَ اذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ ۘ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا (١٦)

او پرده یې نیولې له هغونه پټه ناسته وه. پدغه حالت کښې مونږ هغې ته خپل روح (یعنې پرښته) ولیږله او هغه د هغې په وړاندې په بشپړه انساني بڼه کښې څرګنده شوه.

فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِہِمْ حِجَابًا ۚ فَاَرْسَلْنَاۤ اِلَیْہَا رُوْحَنَا فَتَمَثَّلَ لَہَا بَشَرًا سَوِیًّا (۱۷)

مریم ناڅاپه ناري کړې چې ((که ته کوم له خدایه وېرېدونکی سړی یې نوزه له تانه د رحمن پناه غواړم،،

قَالَتْ اِنِّیْۤ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْکَ اِنْ کُنْتَ تَقِیًّا (۱۸)

هغه وویل ''زه ستا دپروردګار استازی یم او ددې له پاره لیږل شوی یم چې تاته یو سپیڅلی هلك درکړم،،

قَالَ اِنَّمَاۤ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّکِ ٭ۖ لِاَہَبَ لَکِ غُلٰمًا زَکِیًّا (۱۹)

مریم وویل((زما به څنګه هلك وشي چې کله زه کوم بشر لمس کړې قدرې نه یم او نه زه کومه بدکاره ښځه یم؟،،

قَالَتْ اَنّٰی یَکُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ وَّ لَمْ یَمْسَسْنِیْ بَشَرٌ وَّ لَمْ اَکُ بَغِیًّا (۲۰)

پرښتې وویل '' همداسې به کیږي، ستا رب فرمائي چې د غسې کول ماته ډېر اسانه دي، او مونږ به داددې له پاره وکړو چې هغه هلك د خلکو له پاره یوه نښانه شي او زمونږ له لوري یو رحمت، او داکار سرته رسیدونکی دی،،.

قَالَ کَذٰلِکِ ۚ قَالَ رَبُّکِ ہُوَ عَلَیَّ ہَیِّنٌ ۚ وَ لِنَجْعَلَہٗۤ اٰیَۃً لِّلنَّاسِ وَ رَحْمَۃً مِّنَّا ۚ وَ کَانَ اَمْرًا مَّقْضِیًّا (۲۱)

مریم ددغه ماشوم امینواره شوه او هغه له دې امینوارۍ سره یو لیرې ځای ته لاړه.

فَحَمَلَتْہُ فَانْتَبَذَتْ بِہٖ مَکَانًا قَصِیًّا (۲۲)

بیادلنګوال کړاوءورباندې دخرماتریوې ونې لاندې راغی هغې وویل ((کاشکې زه له دېنه مخکښې مړه وای اونوم نښان مې نه وای پاتې شوی،،

فَاَجَآءَہَا الْمَخَاضُ اِلٰی جِذْعِ النَّخْلَۃِ ۚ قَالَتْ یٰلَیْتَنِیْ مِتُّ قَبْلَ ہٰذَا وَ کُنْتُ نَسْیًا مَّنْسِیًّا (۲۳)

پرښتې له لاندې هغې ته غږ وکړ ویې ویل ((مه خپه کیږه، ستا پروردګار تر تالاندې یوه چینه بهولې ده،

فَنَادٰىہَا مِنْ تَحْتِہَاۤ اَلَّا تَحْزَنِیْ قَدْ جَعَلَ رَبُّکِ تَحْتَکِ سَرِیًّا (۲۴)

او ته لږ غوندې ددغې ونې دډوخوځوه پرتابه خوږې ښېرازه خر ما وې راتویې شي،

وَ ہُزِّیْۤ اِلَیْکِ بِجِذْعِ النَّخْلَۃِ تُسٰقِطْ عَلَیْکِ رُطَبًا جَنِیًّا (۲۵)

نو و خوره وڅښه او خپلې سترګې یخې کړه بیا که کوم یو انسان دې ولیده نو ورته ووایه چې ما درحمن له پاره روژه نذر منلې ده، له دې امله نن به زه له هیچا سره خبرې ونه کړم،،.

فَکُلِیْ وَ اشْرَبِیْ وَ قَرِّیْ عَیْنًا ۚ فَاِمَّا تَرَیِنَّ مِنَ الْبَشَرِ اَحَدًا ۙ فَقُوْلِیْۤ اِنِّیْ نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا فَلَنْ اُکَلِّمَ الْیَوْمَ اِنْسِیًّا (۲۶)

بیا هغه له دې ماشوم سره خپل قوم ته راغله خلکو وویل''ای مریم! د ا خو تا دعادت خلاف کار وکړ.

فَاَتَتْ بِہٖ قَوْمَہَا تَحْمِلُہٗ ؕ قَالُوْا یٰمَرْیَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَیْئًا فَرِیًّا (۲۷)

ای د هارون خورې، نه ستا پلار کوم بد سړی و ء او نه ستا مور کومه بدکاره ښځه وه،،.

یٰۤاُخْتَ ہٰرُوْنَ مَا کَانَ اَبُوْکِ امْرَاَ سَوْءٍ وَّ مَا کَانَتْ اُمُّکِ بَغِیًّا (۲۸)

مریم د ماشوم لوري ته اشاره وکړه خلکو وویل ((مونږ له هغه چا سره څه خبرې وکړو چې په زانګو کښې پروت یو ما شوم دی ))؟

فَاَشَارَتْ اِلَیْہِ ؕ قَالُوْا کَیْفَ نُکَلِّمُ مَنْ کَانَ فِی الْمَہْدِ صَبِیًّا (۲۹)

ماشوم غږ وکړ. زه دالله بنده یم، هغه ماته کتاب راکړ، او پیغمبر یې کړم.

قَالَ اِنِّیْ عَبْدُ اللّٰہِ ؕ اٰتٰنِیَ الْکِتٰبَ وَ جَعَلَنِیْ نَبِیًّا (۳۰)

او برکتي يې کړم هر چېرته چې اوسم، او د لمانځه او زکات د پابندۍ حکم يې راکړ تر څو پورې چې زه ژوندی اوسم،

وَّ جَعَلَنِیۡ مُبٰرَکًا اَیۡنَ مَا کُنۡتُ ۪ وَ اَوۡصٰنِیۡ بِالصَّلٰوۃِ وَ الزَّکٰوۃِ مَا دُمۡتُ حَیًّا (۳۱)

او دخپلې مور د حق ادا کوونکی يې وګرځولم ، او زه يې سر غړوونکی او بدبخته نه يم ګرځولی.

وَّ بَرًّۢا بِوَالِدَتِیۡ ۫ وَ لَمۡ یَجۡعَلۡنِیۡ جَبَّارًا شَقِیًّا (۳۲)

سلام دی پر ما په هغه ورځ چې زه پيدا شوم او په هغه ورځ چې مړشم او په هغه ورځ چې ژوندی راپاڅول شم،،.

وَ السَّلٰمُ عَلَیَّ یَوۡمَ وُلِدۡتُّ وَ یَوۡمَ اَمُوۡتُ وَ یَوۡمَ اُبۡعَثُ حَیًّا (۳۳)

دغه دی د مريم زوی عيسی او دغه ده دهغه په باب هغه رېښتيانی خبره چې په هغه کښې خلك شك کوي،

ذٰلِکَ عِیۡسَی ابۡنُ مَرۡیَمَ ۚ قَوۡلَ الۡحَقِّ الَّذِیۡ فِیۡہِ یَمۡتَرُوۡنَ (۳۴)

دالله دا کار نه دی چې هغه څوك په زوی ولې ونيسي هغه پاك ذات دی هغه چې کله دکومې خبرې فيصله کوي نو وائي چې شه، نو هماغسې کېږي.

مَا کَانَ لِلّٰہِ اَنۡ یَّتَّخِذَ مِنۡ وَّلَدٍ ۙ سُبۡحٰنَہٗ ؕ اِذَا قَضٰۤی اَمۡرًا فَاِنَّمَا یَقُوۡلُ لَہٗ کُنۡ فَیَکُوۡنُ ﴿ؕ۳۵﴾

او عيسی ويلي وه چې) ''الله زما رب هم دی اوستاسې رب هم ، نو ) ستاسي د هغه بندګي وکړئ، همدغه سمه لاره ده،،.

وَ اِنَّ اللّٰہَ رَبِّیۡ وَ رَبُّکُمۡ فَاعۡبُدُوۡہُ ؕ ہٰذَا صِرَاطٌ مُّسۡتَقِیۡمٌ (۳۶)

خو بيا بېلابېلو ډلو په خپلو مينځو کښې په اختلاف لاس پورې کړ، نو کوم خلك چې کافر شول د هغو له پاره به هغه وخت د سترې تباهۍ وي چې کله هغوی يوه لويه ورځ وګوري.

فَاخۡتَلَفَ الۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَیۡنِہِمۡ ۚ فَوَیۡلٌ لِّلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ مَّشۡہَدِ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ (۳۷)

کله چې هغوی زمونږ په وړاندې حاضر وي په هغه ورځ خو به د هغوی غوږونه هم ښه اورېدونکي وي او سترګې به يې هم ښې ليدونکې وي مګر نن دغه ظالمان په څرګنده ګمراهۍ کښې اخته دي.

اَسۡمِعۡ بِہِمۡ وَ اَبۡصِرۡ ۙ یَوۡمَ یَاۡتُوۡنَنَا لٰکِنِ الظّٰلِمُوۡنَ الۡیَوۡمَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ (۳۸)

ای محمده(ص)! پدغه حالت کښې چې دوی غافل دي او ايمان نه راوړي، دوی له هغې ورځې نه وويروه چې کله فيصله وکړای شي او له پښېمانتيا پرته بله چاره نه وي.

وَ اَنۡذِرۡہُمۡ یَوۡمَ الۡحَسۡرَۃِ اِذۡ قُضِیَ الۡاَمۡرُ ۘ وَ ہُمۡ فِیۡ غَفۡلَۃٍ وَّ ہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۳۹)

په پای کښې به همدا مونږ د ځمکې او دهغې د ټولو شيانو وارثان يو او ټول به زمونږ لورې ته راوګرځول شي.

اِنَّا نَحۡنُ نَرِثُ الۡاَرۡضَ وَ مَنۡ عَلَیۡہَا وَ اِلَیۡنَا یُرۡجَعُوۡنَ (۴۰)

او په دې کتاب کښې دابراهيم(ع) قصه ياده کړه، بېشکه هغه يوررېښتونی انسان او پېغمبروه.

وَ اذۡکُرۡ فِی الۡکِتٰبِ اِبۡرٰہِیۡمَ ۬ؕ اِنَّہٗ کَانَ صِدِّیۡقًا نَّبِیًّا (۴۱)

دوېته لږ هغه وخت ورياد کړه) چې کله هغه خپل پلارته وويل چې ) ''پلاره! ته ولې د هغو شيانو عبادت کوې چې نه څه اورې نه څه وينې او نه له تا نه کوم ضرر دفع کولاي شي؟

اِذۡ قَالَ لِاَبِیۡہِ یٰۤاَبَتِ لِمَ تَعۡبُدُ مَا لَا یَسۡمَعُ وَ لَا یُبۡصِرُ وَ لَا یُغۡنِیۡ عَنۡکَ شَیۡئًا (۴۲)

پلاره ماته يو داسې علم راغلی دی چې تاته نه دی راغلی، ته په ماپسې راځه، زه به تاته سمه لاره وښيم.

یٰۤاَبَتِ اِنِّیۡ قَدۡ جَآءَنِیۡ مِنَ الۡعِلۡمِ مَا لَمۡ یَاۡتِکَ فَاتَّبِعۡنِیۡۤ اَہۡدِکَ صِرَاطًا سَوِیًّا (۴۳)

پلاره! ته د شيطان بندګي مکوه ، شيطان خو له رحمن څخه سر غړوونکی دی.

یٰۤاَبَتِ لَا تَعۡبُدِ الشَّیۡطٰنَ ؕ اِنَّ الشَّیۡطٰنَ کَانَ لِلرَّحۡمٰنِ عَصِیًّا (۴۴)

پلاره ، زه وېرېږم چې ته به د رحمن په عذاب اخته شې او د شيطان ملګری به شې،،.

یٰۤاَبَتِ اِنِّیۡۤ اَخَافُ اَنۡ یَّمَسَّکَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ فَتَکُوۡنَ لِلشَّیۡطٰنِ وَلِیًّا (۴۵)

پلار وويل''ابراهيمه! ايا ته زما له معبودانونه اووښتی يې؟ که ته بېرته راوانهوړې نو زه به تا سنګسار کړم ته د تل له پاره له ما څخه بېل شه ،،.

قَالَ اَرَاغِبٌ اَنۡتَ عَنۡ اٰلِہَتِیۡ یٰۤاِبۡرٰہِیۡمُ ۚ لَئِنۡ لَّمۡ تَنۡتَہِ لَاَرۡجُمَنَّکَ وَ اہۡجُرۡنِیۡ مَلِیًّا (۴۶)

ابراهيم وويل: ((سلام دى تاته، زه به له خپل رب نه دعا وغواړم چي تا ته ښښنه وکړي ، زما رب پر ما ډېر زيات مهربان دى،

قَالَ سَلٰمٌ عَلَيْکَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَکَ رَبِّيْ ؕ اِنَّہٗ کَانَ بِيْ حَفِيًّا (۴۷)

زه تاسي هم پرېږدم او هغه هستى هم چي تاسي يې له خدايه پرته بلئ زه به خپل رب وبلم، هيله ده چي زه د خپل رب په بلنه بد مرغه ونه اوسم،،

وَ اَعْتَزِلُکُمْ وَ مَا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَ اَدْعُوْا رَبِّيْ ۫ۖ عَسٰۤى اَلَّاۤ اَکُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّيْ شَقِيًّا (۴۸)

نو كله چي هغه له هغو خلكونه او د هغو له غير الله معبودانونه بېل شو نو مونږ هغه ته اسحق او يعقوب غوندي اولاد ورکړ او هر يو مو پېغمبر کړ.

فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَ مَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۙ وَهَبْنَا لَہٗۤ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ ؕ وَ کُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا (۴۹)

اوهغوته موخپل رحمت ورپه برخه کړاوهغوى موريښتوني نوميالي کړل.

وَ وَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَ جَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا (۵۰)

او په دې کتاب کښي د موسى (ع) يادونه وکړه، هغه يو غوره کړاى شوى شخص وء او استازى پېغمبروء.

وَ اذْکُرْ فِي الْکِتٰبِ مُوْسٰۤى ۫ اِنَّہٗ کَانَ مُخْلَصًا وَّ کَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا (۵۱)

مونږ هغه د طورله ښي اړخ نه وباله او دراز په خبرو اترو سره مونږ نژدېوالى ور په برخه کړ

وَ نَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ وَ قَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا (۵۲)

او په خپلې مهربانى سره مو دهغه وروږهارون پېغمبر وګرځوه هغه ته مو(دمرستيال په ډول) ورکړ.

وَ وَهَبْنَا لَہٗ مِنْ رَّحْمَتِنَاۤ اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا (۵۳)

او پدې کتاب کښي د اسمعيل يادونه وکړه، هغه په وعده کښي ريښتونى وء او خاص استازى پېغمبر وء

وَ اذْکُرْ فِي الْکِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ ۫ اِنَّہٗ کَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَ کَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا (۵۴ۚ)

هغه خپلې کورنى ته د لمانځه او زکات حکم کاوء او دخپل رب په وړاندې يو غوره انسان وء.

وَ کَانَ يَاْمُرُ اَهْلَہٗ بِالصَّلٰوةِ وَ الزَّکٰوةِ ۪ وَ کَانَ عِنْدَ رَبِّہٖ مَرْضِيًّا (۵۵)

او پدې کتاب کښي دادريس يادونه وکړه، هغه يو رېښتونى انسان اويو پېغمبر وء

وَ اذْکُرْ فِي الْکِتٰبِ اِدْرِيْسَ ۫ اِنَّہٗ کَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا (۵۶ۙ)

او هغه مونږ لوړ مقام ته خيژولى وء.

وَّ رَفَعْنٰهُ مَکَانًا عَلِيًّا (۵۷)

دا(هغه پېغمبران دي چي پر هغو باندې الله پېرزوېنه کړېده د ادم (ع) له اولادې نه، او دهغو خلکو له ځوځات څخه چي مونږ هغوى له نوح سره په کشتى کښي سپاره کړي وو، او د ابراهيم (ع) له اولادې نه او داسرائيل (ع)له اولادې نه – او دوى له هغو خلکو څخه ووچي مونږ ورته لاربښوونه وکړه او غوره مو کړل او د هغو حال داوء چي كله به د رحمن ايتونه ورته اورول كېدل نو د ژړا په حال کښي به په سجده پر بوتل.

اُولٰٓئِکَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ مِنْ ذُرِّيَّةِ اٰدَمَ * وَ مِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ۫ وَّ مِنْ ذُرِّيَّةِ اِبْرٰهِيْمَ وَ اِسْرَآءِيْلَ ۫ وَ مِمَّنْ هَدَيْنَا وَ اجْتَبَيْنَا ؕ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ بُکِيًّا (۵۸ۤ)

بيا له هغووروسته هغه ناكاره خلكو د هغو ځاى ونيوه چي لمونځ يې ضايع کړ او دنفس د غوښتنو پيروي يې وکړه نو نژدې ده چي هغوى د ګمراهى له عاقبت سره مخامخ شي.

فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَ اتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا (۵۹ۙ)

البته ځوك چي توبه وباسي او ايمان راوړي او ښه عمل غوره کړي هغوى به جنت ته ننوځي او د هغو حق به تلف نشي،

اِلَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِکَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَ لَا يُظْلَمُوْنَ شَيْئًا (۶۰ۙ)

د هغو له پاره ددائمي استوګنې جنتونه دي چي رحمن له خپلو بندګانو سره د هغو ناليدلې وعده کړېده او دغه وعده په باوري توګه ترسره کېدونکې ده.

جَنّٰتِ عَدْنِ الَّتِيْ وَعَدَ الرَّحْمٰنُ عِبَادَہٗ بِالْغَيْبِ ؕ اِنَّہٗ کَانَ وَعْدُہٗ مَاْتِيًّا (۶۱)

هلته به هغوی کومه بابېزه خبره وانه وري سلام به واوري او دهغو روزي به ورته پرله پسي سهار او ماښام ورسيږي.

لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا اِلَّا سَلٰمًا ؕ وَ لَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيْهَا بُكْرَةً وَّ عَشِيًّا (۶۲)

دغه دی هغه جنت چې مونږ به دهغه وارثان له خپلو بندګانونه هغه کسان وګرځوو چې تقوی يې غوره کړېده.

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْ نُوْرِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا (۶۳)

ای محمد (ص) !مونږ (پرښتې) ستا درب له حکم نه پرته نه را کوزېږو څه چې زمونږ مخې ته دي او څه چې زمونږ شاته او څه چې ددې په مينځ کښې دي د هرڅه څښتن هماغه دی او ستا رب هېروونکی نه دی

وَ مَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ ۚ لَهٗ مَا بَيْنَ اَيْدِيْنَا وَ مَا خَلْفَنَا وَ مَا بَيْنَ ذٰلِكَ ۚ وَ مَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا (۶۴)

هغه د اسمانونو او زمکې او ټولو هغو شيانو رب دی چې د اسمان او زمکې تر مينځه دي نو ته دهغه بندګي وکړه او د همغه په بندګی باندې کلك اوسه ايا شته ستا په علم کښی کومه هستي دهغه سيال؟.

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَ اصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ ؕ هَلْ تَعْلَمُ لَهٗ سَمِيًّا (۶۵)

انسان وائي ايا په رښتيا کله چې زه ومرم بيا به ژوندی راوويستل شم؟

وَ يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ ءَ اِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ اُخْرَجُ حَيًّا (۶۶)

ايا انسان نه وریاد وي چې مونږ مخکښې دی پيدا کړيدی پداسې حال کښې چې دی هېڅ شی هم نه و؟

اَوَ لَا يَذْكُرُ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ وَ لَمْ يَكُ شَيْئًا (۶۷)

ستاپه رب قسم چې مونږ به ارو مرو دوی ټول اوله دوی سره شيطانان هم ايسار راولو، بيابه يې ددوزخ چار چاپېر سرکوزي په ګونډو را حاضر کړو.

فَوَ رَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَ الشَّيٰطِيْنَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا (۶۸)

بيا به له هرې ډلې نه هر هغه څوك په چاڼ راوباسو چې د رحمن په مقابل کښې زيات سرکشه شوی وء،

ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ اَيُّهُمْ اَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا (۶۹)

بيا پدې باندې مونږ ښه پوهېږو چې له هغو نه کوم يو تر ټولو زيات په دوزخ کښې د غورځيدو وړ دی

ثُمَّ لَنَحْنُ اَعْلَمُ بِالَّذِيْنَ هُمْ اَوْلٰى بِهَا صِلِيًّا (۷۰)

له تاسې نه هېڅوك داسې نشته چې دوزخ ته ورتلونکی نه وي ، داخو يوه فيصله شوې خبره ده چې دهغې ارومروترسره کول ستادرب په ذمه دي

وَ اِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا (۷۱)

بيابه مونږ هغه کسان وژغورو چې (په دنياکښې) پرهيزګاران وو او ظالمان به په همغه کښې پر ګونډو غورځيدلي پرېږدو.

ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّ نَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ فِيْهَا جِثِيًّا (۷۲)

دوېته چې کله زمونږ روښانه رو ښانه ايتونه اورول کېږي نو منکران مومنانوته وائي((وښاياست له مونږ دواړو ډلونه کومه يو ه په ښه حالت کښې ده او دچا غونډې زياتې شانداري دي،،؟

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۙ اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَّ اَحْسَنُ نَدِيًّا (۷۳)

پداسې حال کښې چې مونږ له دوېنه مخکښې څومره داسې قومونه هلاك کړيدي چې له دوېنه يې زيات وسايل درلودل او په ظاهري شان شوکت کښې له دوېنه پر مختللي وو.

وَ كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَحْسَنُ اَثَاثًا وَّ رِءْيًا (۷۴)

دوېته ووايه، څوك چې په ګمراهی کښې اخته کېږي هغه ته رحمن مهلت ورکوي تر دې پورې چې کله دغه راز خلك هغه څه وګوري چې له هغو سره يې وعده شوېده که هغه دالله عذاب وي او که د قيامت ساعت نو بيا هله ورته څرګندېږي او پوهېږي چې د چاحال خراب دی او دچا ډله کمزورې ده!

قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلٰلَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ مَدًّا ۚ حَتّٰى اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ اِمَّا الْعَذَابَ وَ اِمَّا السَّاعَةَ ؕ فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّ اَضْعَفُ جُنْدًا (۷۵)

| | |
|---|---|
| ددې پر خلاف کوم کسان چې سمه لاره غوره کوي الله هغوته دسمې لارې په تګ کښې پر مختګ ورپه برخه کوي اوباقي پاتې کېدونکي نيکۍ ستا درب په نزد د مکافات او عاقبت په اعتبار سره ډيرې ښې دي | وَ يَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى ؕ وَ الْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّ خَيْرٌ مَّرَدًّا (۷۶) |
| ايا تا هغه څوك وليده چې زمونږ د ايتونو له منلونه انكار كوي او وائي چې ماته خو به مال او اولاد همداسې را كول كېږي؟ | اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَ قَالَ لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّ وَلَدًا (۷۷) |
| ايا هغه په غيبو خبر شويدى يا يې له رحمن نه كومه ژمنه اخيستې ده؟ | اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا (۷۸) |
| هېڅكله داسې نده، دى چې څه وائي مونږ به هغه وليكو او هغه ته به عذاب لانور ور زيات كړو. | كَلَّا ؕ سَنَكْتُبُ مَا يَقُوْلُ وَ نَمُدُّ لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا (۷۹) |
| دى چې كوم وسايل او ډله لښكر ياد وي هغه ټول به مونږ ته پاتې شي او دى به ايكى يوازې زمونږ په وړاندې حاضر راشي. | وَّ نَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ وَ يَاْتِيْنَا فَرْدًا (۸۰) |
| دوى له الله نه پرته خپل څه خدايان نيولي دي ترڅو چې هغوې ددوې ملاتړ وي. | وَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا (۸۱) |
| هېڅ ملاتړ به يې نه وي، هغوى ټول به ددوى له عبادت نه منكر شي او پر عكس ددوې پر خلاف دريځ به ونيسي. | كَلَّا ؕ سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَ يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا (۸۲) |
| ايا تاته دې ليدلې چې مونږ د حق د غو منكرانو ته شيطانان خوشې كړيدي چې دوى په پوره ډول (د حق دښمنۍ ته) هڅوي؟ | اَلَمْ تَرَ اَنَّـا اَرْسَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ تَؤُزُّهُمْ اَزًّا (۸۳) |
| ښه نو، اوس پر دوى باندې د عذاب نازليدو له پاره تلوار مكوه مونږ ددوې ورځې شمار و. | فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا (۸۴) |
| هغه ورځ راتلونكې ده چې مونږ پرهيزګاران دميلمنو په څير درحمن حضورته وړاندې كړو، | يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا (۸۵) |
| او مجرمان به د تږو څارويو په شان ددوزخ لورې ته وشړو | وَّ نَسُوْقُ الْمُجْرِمِيْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ وِرْدًا (۸۶) |
| په هغه وخت كښې به خلك په كوم سپارښ راوړلو قادر نه وي بې له هغه چا څخه چې د رحمن له حضور څخه يې اجازه نامه اخيستې وي. | لَا يَمْلِكُوْنَ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا (۸۷) |
| هغوى وايي چې رحمن څوك په زوى ولى نيولى دى. | وَ قَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا (۸۸) |
| ډيره بابېزه خبره ده چې تاسې جوړه كړېده، | لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا اِدًّا (۸۹) |
| نژدې ده چې اسمانونه وچوي، زمكه څيرې شي او غرونه ټوټې ټوټې راوغورځېږي | تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَ تَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَ تَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا (۹۰) |
| په دې خبره چې خلكو د رحمن له پاره د اولاد د شته والي دعوه وكړه! | اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا (۹۱) |
| درحمن دا شان ندى چې هغه څوك زوى ونيسي. | وَ مَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا (۹۲) |
| په اسمانونو او ځمكه كښې چې هر څه دي ټول د خداى حضورته د بندګانو په حيث وړاندې كېدونكي دي. | اِنْ كُلُّ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ اِلَّا اٰتِى الرَّحْمٰنِ عَبْدًا (۹۳) |
| هغه پر ټولو محيط دى او هغوى يې پوره شميرلي دي. | لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَ عَدَّهُمْ عَدًّا (۹۴) |
| ټول به د قيامت په ورځ يو يو د هغه په وړاندې حاضر وي. | وَ كُلُّهُمْ اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا (۹۵) |
| دا باورې ده كومو خلكو چې ايمان راوړيدى او ښه عملونه يې كړيدې ډېر ژر به رحمن د هغو له پاره په زړونو كښې مينه پيدا كړي. | اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا (۹۶) |

نوای محمده! دغه کلام مونږ اسانه کړیدی ستا په ژبه مو د همدې له پاره نازل کړيدي چې ته پرهيزګارانو ته پرې زيرى ورکړې او متعصبو خلکوته پرې اخطار ورکړې.

فَاِنَّمَا يَسَّرۡنٰهُ بِلِسَانِکَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الۡمُتَّقِيۡنَ وَ تُنۡذِرَ بِهٖ قَوۡمًا لُّدًّا (۹۷)

اوله دوی نه مخکښې مونږ څومره قومونه هلاك کړيدي، نو نن چېرته ته د هغو دکوم يوه نښه نښانه مو مي يايي کښهار هم چېرته اورې؟.

وَ کَمۡ اَہۡلَکۡنَا قَبۡلَہُمۡ مِّنۡ قَرۡنٍ ؕ ہَلۡ تُحِسُّ مِنۡہُمۡ مِّنۡ اَحَدٍ اَوۡ تَسۡمَعُ لَہُمۡ رِکۡزًا (۹۸)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زيات رحم لرونکی دی

طه

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

طٰہٰ ۚ(۱)

مونږ دا قران پر تا باندې ددې له پاره ندی نازل کړی چې ته په کړاوءاخته شې.

مَاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡکَ الۡقُرۡاٰنَ لِتَشۡقٰۤی ۙ(۲)

دا خو د هر هغه چاله پاره يوه يادونه ده چې ووېرېږي.

اِلَّا تَذۡکِرَۃً لِّمَنۡ یَّخۡشٰی ۙ(۳)

د هغه ذات له لوري نازل کړای شويدی چې زمکه او هسك اسمانونه يې پيدا کړيدي.

تَنۡزِیۡلًا مِّمَّنۡ خَلَقَ الۡاَرۡضَ وَ السَّمٰوٰتِ الۡعُلٰی ؕ(۴)

هغه زيات مهربان پر عرش استوا وکړه.

اَلرَّحۡمٰنُ عَلَی الۡعَرۡشِ اسۡتَوٰی (۵)

د هغو ټولو شيانو څښتن دی چې په اسمانونو او زمکه کښې دي او د هغو چې د اسمان او زمکې تر مينځه دي او دهغو چې تر خاورو لاندې دي.

لَہٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ وَ مَا بَیۡنَہُمَا وَ مَا تَحۡتَ الثَّرٰی (۶)

که ته خپله خبره په لوړ غږ وکړې هغه خو په پټه ويل شوې خبره بلکې په بيخي زياته پټه خبره باندې هم پوهېږي.

وَ اِنۡ تَجۡہَرۡ بِالۡقَوۡلِ فَاِنَّہٗ یَعۡلَمُ السِّرَّ وَ اَخۡفٰی (۷)

هغه الله دی، له هغه پرته بل خدای نشته، د هغه لپاره ډېر غوره نومونه دي.

اَللّٰہُ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ؕ لَہُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی (۸)

او ايا تا ته دموسی(ع) څه خبر هم رسيدلی دی؟

وَ ہَلۡ اَتٰىکَ حَدِیۡثُ مُوۡسٰی ۘ(۹)

کله چې هغه يو اور وليده او خپلې کورنۍ ته يې وويل چې : ''لږ تم شئ ما يو اورليدلی دی ښائي چې تاسې ته يوه سکروټه راوړم، يا پدې اور باندې زه کوم لارښوونکی ومومم،،.

اِذۡ رَاٰ نَارًا فَقَالَ لِاَہۡلِہِ امۡکُثُوۡۤا اِنِّیۡۤ اٰنَسۡتُ نَارًا لَّعَلِّیۡۤ اٰتِیۡکُمۡ مِّنۡہَا بِقَبَسٍ اَوۡ اَجِدُ عَلَی النَّارِ ہُدًی (۱۰)

هلته چې ورسېده غږ وشو((ای موسی(ع)!

فَلَمَّاۤ اَتٰىہَا نُوۡدِیَ یٰمُوۡسٰی (ؕ۱۱)

زه ستا رب يم، پڼې دې وباسه، ته د طوی په سپيڅلي ناوءکښې يې

اِنِّیۡۤ اَنَا رَبُّکَ فَاخۡلَعۡ نَعۡلَیۡکَ ۚ اِنَّکَ بِالۡوَادِ الۡمُقَدَّسِ طُوًی (ؕ۱۲)

او ماته غوره کړی يې، واوره څه چې درته وحی کېږي.

وَ اَنَا اخۡتَرۡتُکَ فَاسۡتَمِعۡ لِمَا یُوۡحٰی (۱۳)

همدا زه الله يم، له ما څخه پرته بل خدای نشته، نو ته زما بندګي وکړه او زما د ياد له پاره لمونځ قايم کړه.

اِنَّنِیۡۤ اَنَا اللّٰہُ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّاۤ اَنَا فَاعۡبُدۡنِیۡ ۙ وَ اَقِمِ الصَّلٰوۃَ لِذِکۡرِیۡ (۱۴)

د قيامت ساعت ارومرو راتلونکی دی ، زه د هغه وخت پټ ساتل غواړم، چې هر څوك د خپلو هلو ځلو سره سمه بدله ومومي

اِنَّ السَّاعَۃَ اٰتِیَۃٌ اَکَادُ اُخۡفِیۡہَا لِتُجۡزٰی کُلُّ نَفۡسٍۭ بِمَا تَسۡعٰی (۱۵)

نو يو داسې څوك چې پر هغه ايمان نه راوړي او دخپلو نفسي غوښتنو بنده ګرځېدلی دی تادې دهغه ساعت له فکر نه منع نه کړي، که نه نو ته به په هلاکت کښې وغورځيږې.

فَلَا یَصُدَّنَّکَ عَنۡہَا مَنۡ لَّا یُؤۡمِنُ بِہَا وَ اتَّبَعَ ہَوٰىہُ فَتَرۡدٰی (۱۶)

او ای موسی(ع)! ((داستاپه ښي لاس کښې څه دي))؟

وَ مَا تِلۡکَ بِیَمِیۡنِکَ یٰمُوۡسٰی (۱۷)

موسی ځواب ورکړ((دا زما همسا ده، پدې باندې په تکيه کولو ګرځم، پدې سره د خپلو پسونو له پاره پاڼي څنډم، او هم نور ډېر کارونه ترېنه اخلم،،

قَالَ ہِیَ عَصَایَ ۚ اَتَوَکَّؤُا عَلَیۡہَا وَ اَہُشُّ بِہَا عَلٰی غَنَمِیۡ وَ لِیَ فِیۡہَا مَاٰرِبُ اُخۡرٰی (۱۸)

ويې فرمايل((دا وغورځوه ای موسی(ع) !))

قَالَ اَلۡقِہَا یٰمُوۡسٰی (۱۹)

هغه وغورځوله اوپه ناڅاپي ډول هغه يو ماروه‌چې ځغلېده،

فَاَلْقٰهَا فَاِذَا هِىَ حَيَّةٌ تَسْعٰى (٢٠)

ويې فرمايل((هغه ونيسه او وېرېږه مه، مونږ به دابېرته همغسي کړو لکه چې څنګه وه

قَالَ خُذْهَا وَ لَا تَخَفْ ٗ سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى (٢١)

او خپل لاس خپل ترخ ته ورو‌ړه، بې له کوم تکليف څخه به ځلانده راووځي دابله نښانه ده.

وَ اضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى (٢٢)

ددې له پاره چې مونږ تاته د خپلو سترو نښانو څخه دروښيو.

لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى (٢٣)

اوس ته فرعون ته ورشه هغه سرکشه شويدی،،.

اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى (٢٤)

موسی عرض وکړ((پروردګاره، زما سينه راته پرانيزه

قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِىْ صَدْرِىْ (٢٥)

او زما کار ماته اسانه کړه

وَ يَسِّرْ لِىْ اَمْرِىْ (٢٦)

او زما د ژبې غوټه وسپړه

وَ احْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِىْ (٢٧)

ترڅو چې خلك زما په خبره وپوهيدلی شي،

يَفْقَهُوْا قَوْلِىْ (٢٨)

او زما له پاره زما د خپلې کورنی نه يو مرستيال وټاکه،

وَ اجْعَلْ لِّىْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِىْ (٢٩)

هارون چې زما ورور دی،

هٰرُوْنَ اَخِى (٣٠)

دهغه په وسيله زما ملا پياوړی کړه

اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِىْ (٣١)

او هغه زما په کار کښي برخه وال کړه،

وَ اَشْرِكْهُ فِىْٓ اَمْرِىْ (٣٢)

تر څو چې مونږ ښه ستا پاکی بيان کړو

كَىْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا (٣٣)

او ښه ستا يادونه ستاينه خپره کړو.

وَّ نَذْكُرَكَ كَثِيْرًا (٣٤)

ته تل زمونږ د حال څارونکی يې،،.

اِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيْرًا (٣٥)

ويې فرمايل ((ای موسی، څه چې دې وغوښتل درکړای شول،

قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى (٣٦)

مونږ يو ځل بل هم پرتا احسان کړيدی.

وَ لَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً اُخْرٰى (٣٧)

ياد کړه هغه وخت چې مونږ ستا مورته اشاره وکړه ، داسې اشاره چې دوحيې په وسيله کيدای شي

اِذْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى اُمِّكَ مَا يُوْحٰى (٣٨)

چې دغه ماشوم په صندوق کښې واچوه او صندوق په سيندکښې لا هو کړه سيندبه هغه غاړې ته وباسي او هغه به زما د ښمن او ددغه ماشوم دښمن راواخلي ماله خپل لوري نه پرتا مينه خوره کړه او داسې انتظام مې وکړ چې ته زما په څارنه کښې وپالل شې

اَنِ اقْذِفِيْهِ فِى التَّابُوْتِ فَاقْذِفِيْهِ فِى الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَاْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّىْ وَ عَدُوٌّ لَّهٗ ؕ وَ اَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّىْ ۚ۬ وَ لِتُصْنَعَ عَلٰى عَيْنِىْ (٣٩)

ياد کړه هغه وخت چې ستا خور روانه وه، بيا يې په تلو ويل،''زه تاسي ته دهغه چا پته درکړم چې دغه ماشوم په ښه شان وروزي؟،، پدې ډول مونږ ته بېرته د خپلې مور غېږې ته ورسولې تر څو چې د هغې سترګې يخې شي او انديښمنه ونه اوسي (او دا هم درياد کړه چې) تا يو څوك وژلی وه، مونږ ته له دغه کړاوه نه وويستلې او ته مو له راز راز ازموينو څخه تېر کړې اوته د مدين په خلکو کښې ډېر کلونه واوسېدلې، نو اوس بېدو په خپل وخت کښې ستا راتګ دی ای موسی(ع).

اِذْ تَمْشِىْٓ اُخْتُكَ فَتَقُوْلُ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى مَنْ يَّكْفُلُهٗ ؕ فَرَجَعْنٰكَ اِلٰٓى اُمِّكَ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَ لَا تَحْزَنَ ؕ۬ وَ قَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنٰكَ مِنَ الْغَمِّ وَ فَتَنّٰكَ فُتُوْنًا ۟۬ فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ فِىْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۬ۙ ثُمَّ جِئْتَ عَلٰى قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى (٤٠)

ماته د خپل کار له پاره برابر کړی يې

وَ اصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِىْ (٤١)

ځئ ته او ستا ورور زما له نښانو سره او پام کوئ تاسي زما په ياد کښې لنډون مکوئ.

اِذْهَبْ اَنْتَ وَ اَخُوْكَ بِاٰيٰتِىْ وَ لَا تَنِيَا فِىْ ذِكْرِىْ (٤٢)

ځئ تاسي دواړه فرعون ته ورشئ چې هغه سرکشه شويدی.

اِذْهَبَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى (٤٣)

له هغه سره په نرمی خبرې وکړئ، ښائ چې هغه نصحيت ومني ياووېرېږي،،

فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى (٤٤)

| | |
|---|---|
| دواړو عرض وکړ((پروردګاره ! مونږ وېرېږو چې هغه به پر مونږ زیاتی وکړي یا به لازیاته سرکشي وکړي،، | قَالَا رَبَّنَآ اِنَّنَا نَخَافُ اَنۡ يَّفۡرُطَ عَلَيۡنَآ اَوۡ اَنۡ يَّطۡغٰى (۴۵) |
| ویې فرمایل: ((مه وېرېږئ، زه له تاسي سره یم، هرڅه اورم او وینم | قَالَ لَا تَخَافَاۤ اِنَّنِىۡ مَعَكُمَاۤ اَسۡمَعُ وَ اَرٰى (۴۶) |
| هغه ته ورشئ او ووایاست چې مونږ ستادرب استازي یو، بنی اسرائیل له مونږ سره تلو ته پرېږده او هغوی مه ربړوه، مونږ تاته ستا درب له نښاني سره راغلي یواوسلامتي ده دهغه چاله پاره چې دسمې لارې پیروي غوره کړي. | فَاۡتِيٰهُ فَقُوۡلَاۤ اِنَّا رَسُوۡلَا رَبِّكَ فَاَرۡسِلۡ مَعَنَا بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ ۙ وَ لَا تُعَذِّبۡهُمۡ‌ ؕ قَدۡ جِئۡنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنۡ رَّبِّكَ‌ ؕ وَ السَّلٰمُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الۡهُدٰى (۴۷) |
| مونږ ته په وحي سره ښودله شوېده چې عذاب دی د هغه چا له پاره چې ددروغو نسبت وکړي او مخ واړوي،، | اِنَّا قَدۡ اُوۡحِىَ اِلَيۡنَاۤ اَنَّ الۡعَذَابَ عَلٰى مَنۡ كَذَّبَ وَ تَوَلّٰى (۴۸) |
| فرعون وویل((ښه نو بیا ستاسي دواړو رب څوك دی ای موسی ،،؟ | قَالَ فَمَنۡ رَّبُّكُمَا يٰمُوۡسٰى (۴۹) |
| موسی ځواب ورکړ((زمونږ رب هغه ذات دی چې هر شي ته یې دهغه خپل ساختمان ورکړ، بیایې ورته لاروښودله،، | قَالَ رَبُّنَا الَّذِىۡۤ اَعۡطٰى كُلَّ شَىۡءٍ خَلۡقَهٗ ثُمَّ هَدٰى (۵۰) |
| فرعون وویل((او پخوا چې کوم نسلونه تېرشویدي نو دهغو څه حالت وء،،؟ | قَالَ فَمَا بَالُ الۡقُرُوۡنِ الۡاُوۡلٰى (۵۱) |
| موسی (ع) وویل((دهغې علم زما له رب سره په یوه لیکنه کښې ساتل شویدی زما رب نه غلطی کوي نه کوم شی هیروي | قَالَ عِلۡمُهَا عِنۡدَ رَبِّىۡ فِىۡ كِتٰبٍ‌ ۚ لَا يَضِلُّ رَبِّىۡ وَ لَا يَنۡسَى (۵۲) |
| همغه ذات چې ستاسي له پاره یې د زمکې فرش وغوړوه، او په هغې کښې یې ستاسي د تګ لارې جوړې کړې ، او له اسمانه یې اوبه واورولې،بیامو د هغو په وسیله راز راز حاصلات راو تو کول ، | الَّذِىۡ جَعَلَ لَـكُمُ الۡاَرۡضَ مَهۡدًا وَّ سَلَكَ لَـكُمۡ فِيۡهَا سُبُلًا وَّ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ؕ فَاَخۡرَجۡنَا بِهٖۤ اَزۡوَاجًا مِّنۡ نَّبَاتٍ شَتّٰى (۵۳) |
| وخورئ او خپل څاروي هم وڅروئ بېشکه په دې کښې د هوښیارانوله پاره ډېرې نښاني دي. | كُلُوۡا وَ ارۡعَوۡا اَنۡعَامَكُمۡ‌ ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰ لِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى النُّهٰى (۵۴) |
| له همدې زمکې نه مونږ تاسي پیدا کړي یاست، همدې ته به مو بېرته ورولو او همدېنه به مودوهم ځل راوباسو . | مِنۡهَا خَلَقۡنٰكُمۡ وَ فِيۡهَا نُعِيۡدُكُمۡ وَ مِنۡهَا نُخۡرِجُكُمۡ تَارَةً اُخۡرٰى (۵۵) |
| مونږ فرعون ته خپلې ټولې نښاني وښودلې خو هغه دروغ وګڼلې او ویې نه منلې . | وَ لَقَدۡ اَرَيۡنٰهُ اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَ اَبٰى (۵۶) |
| ویې ویل((ای موسی، ایا ته مونږ ته ددې له پاره راغلی یې چې د خپلو کوډو په زور سره مونږ زمونږ له هېواد نه وباسې؟ | قَالَ اَجِئۡتَنَا لِتُخۡرِجَنَا مِنۡ اَرۡضِنَا بِسِحۡرِكَ يٰمُوۡسٰى (۵۷) |
| ښه نو مونږ به هم ستا په مقابل کښې همد غسې کوډې راوړو وټاکه مقابله کول کله او چېرته دي نه به مونږ له دغې فیصلې نه اوړو نه به ته اوړې په سپین میدان کښې راوړاندې شه | فَلَنَاۡتِيَنَّكَ بِسِحۡرٍ مِّثۡلِهٖ فَاجۡعَلۡ بَيۡنَنَا وَ بَيۡنَكَ مَوۡعِدًا لَّا نُخۡلِفُهٗ نَحۡنُ وَ لَاۤ اَنۡتَ مَكَانًا سُوًى (۵۸) |
| موسی وویل((دجشن ورځ وټاکله شوه، او خلك دې دلمرله راپورته کېدو سره غونډ وي،،. | قَالَ مَوۡعِدُكُمۡ يَوۡمُ الزِّيۡنَةِ وَ اَنۡ يُّحۡشَرَ النَّاسُ ضُحًى (۵۹) |
| فرعون وګرځېده خپلې ټولې د سیسې یې راټولې کړې او مقابلې ته راغی | فَتَوَلّٰى فِرۡعَوۡنُ فَجَمَعَ كَيۡدَهٗ ثُمَّ اَتٰى (۶۰) |

موسی (ع) (په عین وخت کښې مقابل لوري ته په خطاب ) وویل''ای اجل نیولیو، پر الله باندي ددروغو تورونه مه تړئ، که نه نو یو سخت عذاب به تاسي تباه کړي. دروغ چي هر چا وتړل هغه نامراده شو،،

قَالَ لَہُمۡ مُّوۡسٰی وَیۡلَکُمۡ لَا تَفۡتَرُوۡا عَلَی اللّٰہِ کَذِبًا فَیُسۡحِتَکُمۡ بِعَذَابٍ ۚ وَ قَدۡ خَابَ مَنِ افۡتَرٰی (۶۱)

ددي په اوریدو د هغو په مینځ کښې نظري شخړه راغله او هغوی په خپلو کښې په پټو پټو مشورو لاس پوري کړ

فَتَنَازَعُوۡۤا اَمۡرَہُمۡ بَیۡنَہُمۡ وَ اَسَرُّوا النَّجۡوٰی (۶۲)

په پای کښې ځینو خلکو وویل چي((دادواړه خو صرف کوډګران دي. ددوی هدف دادی چي د خپلو کوډو په زور سره ستاسي لاس ستاسي له هېواد نه وباسي او ستاسي د ژوند مثالي کړنلارې ته خاتمه ورکړي.

قَالُوۡۤا اِنۡ ہٰذٰنِ لَسٰحِرٰنِ یُرِیۡدٰنِ اَنۡ یُّخۡرِجٰکُمۡ مِّنۡ اَرۡضِکُمۡ بِسِحۡرِہِمَا وَ یَذۡہَبَا بِطَرِیۡقَتِکُمُ الۡمُثۡلٰی (۶۳)

نن خپلې ټولې د سیسي را یو ځای کړئ او میدان کښې یوه لیکه شئ، نو داوګنئ چي نن چي هر څوك برلاسی شو همغه ژوند وګاټه،،

فَاَجۡمِعُوۡا کَیۡدَکُمۡ ثُمَّ ائۡتُوۡا صَفًّا ۚ وَ قَدۡ اَفۡلَحَ الۡیَوۡمَ مَنِ اسۡتَعۡلٰی (۶۴)

کوډګرو وویل،((ای موسی ! ته یې غورځوې او که مخکښې یې مونږ وغورځوو،،؟

قَالُوۡا یٰمُوۡسٰۤی اِمَّاۤ اَنۡ تُلۡقِیَ وَ اِمَّاۤ اَنۡ نَّکُوۡنَ اَوَّلَ مَنۡ اَلۡقٰی (۶۵)

موسی (ع) وویل((نه، تاسي یې وغورځوئ،، په نا څاپي ډول د هغو رسی ګانې او همساګانې د هغو د کوډو په زور سره موسی (ع) ته ځغلېدونکې وبرېښېدلې،

قَالَ بَلۡ اَلۡقُوۡا ۚ فَاِذَا حِبَالُہُمۡ وَ عِصِیُّہُمۡ یُخَیَّلُ اِلَیۡہِ مِنۡ سِحۡرِہِمۡ اَنَّہَا تَسۡعٰی (۶۶)

او موسی (ع) په خپل زړه کښې وویرېده

فَاَوۡجَسَ فِیۡ نَفۡسِہٖ خِیۡفَۃً مُّوۡسٰی (۶۷)

مونږ وویل((مه وېرېږه، همدا ته به برلاسی شي

قُلۡنَا لَا تَخَفۡ اِنَّکَ اَنۡتَ الۡاَعۡلٰی (۶۸)

وغورځوه څه چي ستا په لاس کښې دي، اوس ددوی ټول مصنوعي شیان تیروي دوی چي څه جوړ کړي راوړي دي دا خو د کوډګر ټګي ده،او کوډګر هېڅکله نشي بریالی کیدای که په هره بڼه راشي،،.

وَ اَلۡقِ مَا فِیۡ یَمِیۡنِکَ تَلۡقَفۡ مَا صَنَعُوۡا ؕ اِنَّمَا صَنَعُوۡا کَیۡدُ سٰحِرٍ ؕ وَ لَا یُفۡلِحُ السَّاحِرُ حَیۡثُ اَتٰی (۶۹)

په پای کښې همداسي وشول چي ټول کوډګران په سجده پرېوتل او غږیې وکړ ((مونږ د هارون او موسی رب ومانه،،

فَاُلۡقِیَ السَّحَرَۃُ سُجَّدًا قَالُوۡۤا اٰمَنَّا بِرَبِّ ہٰرُوۡنَ وَ مُوۡسٰی (۷۰)

فرعون وویل((تاسي ایمان راوړ مخکښې له دېنه چي ما درته اجازه درکړې وي؟ ښکاره شوه چي دی ستاسي لارښود دی چي تاسي ته یې کودګري ښوولي وه ښه نو، اوس به زه ستاسي لاسونه پښې ردو بدلې پریکړم او د خرماو په ونو کښې به مو په دار وځړوم. بیا به تاسي ته څرګنده شي چي له مونږ دواړونه د چا عذاب ډېر سخت او پایښت لرونکی دی،، (یعني زه تاسي ته ډېره سخته سزا درکولای شم که موسی)

قَالَ اٰمَنۡتُمۡ لَہٗ قَبۡلَ اَنۡ اٰذَنَ لَکُمۡ ؕ اِنَّہٗ لَکَبِیۡرُکُمُ الَّذِیۡ عَلَّمَکُمُ السِّحۡرَ ۚ فَلَاُقَطِّعَنَّ اَیۡدِیَکُمۡ وَ اَرۡجُلَکُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ وَّ لَاُصَلِّبَنَّکُمۡ فِیۡ جُذُوۡعِ النَّخۡلِ ۫ وَ لَتَعۡلَمُنَّ اَیُّنَاۤ اَشَدُّ عَذَابًا وَّ اَبۡقٰی (۷۱)

کوډګرو ځواب ورکړ((قسم په هغه ذات چي مونږ یې پیداکړي یو دا هیڅکله نشي کیدای چي مونږ د روښانه نښانو له راتګ نه وروسته هم (په ریښتینولی باندې) تاته ترجیح درکړو ستا چي څه خوښه وي هغه وکړه، ته خو ایله بیله د همدې دنیا د ژوند فیصله کولای شي.

قَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡثِرَکَ عَلٰی مَا جَآءَنَا مِنَ الۡبَیِّنٰتِ وَ الَّذِیۡ فَطَرَنَا فَاقۡضِ مَاۤ اَنۡتَ قَاضٍ ؕ اِنَّمَا تَقۡضِیۡ ہٰذِہِ الۡحَیٰوۃَ الدُّنۡیَا (۷۲ؕ)

اِنَّـآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا وَ مَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ؕ وَ اللّٰهُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى (۷۳)

مونږ خو په خپل رب ايمان راوړی، تر څو ز مونږ خطاوې راوبښي او له دغې كوډگرۍ نه، چې تاورباندې مجبور كړي وو، راتېرشي الله ډېر غوره او همغه باقي پاتې كېدونكی دی،،

اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ؕ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَ لَا يَحْيٰى (۷۴)

حقيقت دادی څوك چې له مجرموالي سره د خپل رب حضورته ورشي دهغه له پاره دوزخ دی چې په هغه كښې به نه مري نه به ژوندی كېږي

وَ مَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى (۷۵)

او څوك چې د هغه حضورته د مومن په حيثيت ورشي چې ښه عملونه يې كړي وي، ددغه راز ټولو خلكو له پاره لوړې درجې دي،

جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى (۷۶)

سمسور بې خزانه باغونه دي چې تر هغو لاندې به ويالې بهېږي، په هغو كښې به دتل له پاره هغوی اوسېږي داد هغه چامكافات دی چې سپڅلتيا غوره كړي.

وَ لَقَدْ اَوْحَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسٰۤى ۙ۬ اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيْقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا ۙ لَّا تَخٰفُ دَرَكًا وَّ لَا تَخْشٰى (۷۷)

مونږموسی (ع)ته وحی وكړه چې اوس شپې د شپې زما بندگان درسره واخله ځه، او دهغو له پاره سمندر كښې وچ سړك جوړ كړه ، ته د چا له شا درپسې تلونه هېڅ وېره مكوه او مه (د سمندر په مينځ كښې په تېرېدو) ډارېږه

فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ (ؕ۷۸)

له شانه فرعون له خپل لښكر سره را ورسېده او بيا سمندر پرې داسې خور شو لكه څنگه يې چې د خورېدو حق وه،

وَ اَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَ مَا هَدٰى (۷۹)

فرعون خپل قوم گمراه كړی وه ، كومه سمه لارښوونه يې نه وه كړې.

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ قَدْ اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ عَدُوِّكُمْ وَ وٰعَدْنٰكُمْ جَانِبَ الطُّوْرِ الْاَيْمَنَ وَ نَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَ السَّلْوٰى (۸۰)

ای بنی اسرائيلو، مونږ تاسې ته ستاسې له دښمن نه نجات دركړ، او د طور په ښی اړخ كښې مو ستاسې د حاضرېدو له پاره وخت وټاكه او پر تاسې مو، من او سلوا نازل كړل

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَ لَا تَطْغَوْا فِيْهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ ۚ وَ مَنْ يَّحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِيْ فَقَدْ هَوٰى (۸۱)

خورئ زمونږ پاكه دركړې روزي او د هغې په خوراك كښې سركشي مكوئ، او كه نه نو پر تاسې به زما غضب پرېوځي، او په چا باندې چې زما غضب نازل شو هغه نو وغورځېده.

وَ اِنِّيْ لَغَفَّارٌ لِّمَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهْتَدٰى (۸۲)

البته چا چې توبه وويستله او ايمان يې راوړ او ښه عمل يې وكړ ، بيا سم روان شو، دهغه له پاره زه ډېر ببښونكې يم

وَ مَاۤ اَعْجَلَكَ عَنْ قَوْمِكَ يٰمُوْسٰى (۸۳)

او څه شي ته له خپل قوم نه دمخه راوستلي ای موسی؟

قَالَ هُمْ اُولَآءِ عَلٰۤى اَثَرِيْ وَ عَجِلْتُ اِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضٰى (۸۴)

هغه عرض وكړ: ((هغوی زما تر شا را روان دي ما تلوار وكړ ستا حضورته راغلم ای زما ربه ، تر څو چې ته له ما څخه خوشاله شې. ،،

قَالَ فَاِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْۢ بَعْدِكَ وَ اَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ (۸۵)

ويې فرمايل((ښه ، نو واوره، مونږ ستا تر شا ستا قوم په ازموينه كښې واچوه او سامري هغوی گمراه كړل،،

فَرَجَعَ مُوْسٰۤى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۚ۬ قَالَ يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ؕ۬ اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ (۸۶)

موسی (ع) سخت د غوسې او خواشينې په حالت كښې خپل قوم ته راستون شو. چې ورغی ويې ويل! ای زماقومه آيا ستاسې رب له تاسې سره غوره وعدې نه وې كړې؟ ايا پر تاسې ورځې زياتې اووښتې دي؟ يا تاسې په ځان باندې د خپل رب غضب راتلل غوښتل چې تاسې له ماسره وعده خلافي وكړه،،؟

بني اسرائيلو موسی (ع) ته وويل: ((مونږ له تاسره په خپلواك وعده خلافي نه ده کړې، داسې وشول چې مونږ د خلکو د ګاڼو تر پيتې لاندې ستومانه شوي وو او مونږ هغه غورځولي وې،، بيا په همدې توګه سامري هم څه وغورځول

قَالُوْا مَا اَخْلَفْنَا مَوْعِدَکَ بِمَلْکِنَا وَ لٰکِنَّا حُمِّلْنَا اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنٰهَا فَکَذٰلِکَ اَلْقَی السَّامِرِیُّ (۸۷)

او د هغو له پاره يې د يو خوسکي بت راوويست چې له هغه څخه د غوئي غوندې رمباړه وتله خلکو غږ وکړ((همدغه دی ستاسې خدای او دموسی خدای، موسی دی هېر کړ،،

فَاَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ فَقَالُوْا هٰذَآ اِلٰـهُکُمْ وَ اِلٰهُ مُوْسٰی ۬ فَنَسِیَ (۸۸)

ايا هغو نه ليدل چې نه هغه د هغو د خبرې ځواب ورکوي او نه هغوته د ګټې او تاوان رسولو څه واك وس لري.

اَفَلَا يَرَوْنَ اَلَّا يَرْجِعُ اِلَيْهِمْ قَوْلًا ۙ وَّ لَا يَمْلِکُ لَهُمْ ضَرًّا وَّ لَا نَفْعًا (۸۹)

هارون (ع) (دموسی (ع) له راتګ نه مخکښې هغوته ويلي ووچې ((ای خلکو تاسې دده لا مله په فتنه کې غورځېدلي يې، ستاسې رب خو رحمن دی، نو تاسې زما پيروي وکړي او زما خبره ومنئ ،،

وَ لَقَدْ قَالَ لَهُمْ هٰرُوْنُ مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ ۚ وَ اِنَّ رَبَّکُمُ الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِیْ وَ اَطِيْعُوْٓا اَمْرِیْ (۹۰)

خو هغوی ورته وويل چې((مونږ خو به د همد غه بندګي کوو تر څو پورې چې موسی (ع) بېرته نه وي راستون شوی،،

قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عٰکِفِيْنَ حَتّٰی يَرْجِعَ اِلَيْنَا مُوْسٰی (۹۱)

موسی(ع)،(قوم ته له توربريښ کولونه وروسته دهارون لوري ته راوګرځېده او) ويې ويل((هارونه! تا چې کله ليدلي ووچې دوی ګمراه کېږي

قَالَ يٰهٰرُوْنُ مَا مَنَعَکَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا (۹۲)

نو څه شي ته منع کړی وې چې زما په کړنلاره عمل ونکړې ؟ ايا تا زما د حکم پر خلاف کار وکړ،،؟

اَلَّا تَتَّبِعَنِ ؕ اَفَعَصَيْتَ اَمْرِیْ (۹۳)

هارون ځواب ورکړ((ای زما د مور زويه، زماږيره مه نيسه مه زما د سر ويښتان راکاږه،زه له دېنه وېرېدم چې ته به راشې وبه وايې تا په بنی اسرائيلو کښې بېلتون راوءست او زما د خبرې مراعات دې ونه کړ،،

قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَاْخُذْ بِلِحْيَتِیْ وَ لَا بِرَاْسِیْ ۚ اِنِّیْ خَشِيْتُ اَنْ تَقُوْلَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَ لَمْ تَرْقُبْ قَوْلِیْ (۹۴)

موسی (ع) وويل((او سامريه، ستا څه خبره ده؟،،

قَالَ فَمَا خَطْبُکَ يٰسَامِرِیُّ (۹۵)

هغه ځواب ورکړ((ما هغه څه وليدل چې ددغو خلکو په نظر رانغلل، نو ما درسول (جبريل داس ) له نقش قدم نه يو موټی (خاوره) راپورته کړه او هغه مې (ددې بت په خوله کې) وغورځوله، زما نفس ماته همدغسې څه راوښودل

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوْا بِهٖ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ فَنَبَذْتُهَا وَ کَذٰلِکَ سَوَّلَتْ لِیْ نَفْسِیْ (۹۶)

موسی (ع) وويل: ((ښه نو ځه، اوس به ته په ټول ژوند کښې همدا ناری وهې چې ماته لاس مه راوړئ، او ستا له پاره د حساب کتاب يو وخت ټاکلی دی چې له تا سره به د هغه په باب هېڅ تخلف ونشي او ګوره خپل دغه خدای ته چې ته پرې مين شوی وې مونږ به هغه وسوځوو او مېده مېده به يې کړو په سيند کښې به يې لا هو کړو.

قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَکَ فِی الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ ۪ وَ اِنَّ لَکَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ ۚ وَ انْظُرْ اِلٰٓی اِلٰـهِکَ الَّذِیْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاکِفًا ؕ لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ فِی الْيَمِّ نَسْفًا (۹۷)

ا ی خلکو ! ستاسې خدای خو يوازې يو الله دی چې له هغه پرته کوم بل خدای نشته، په هرڅه باندې د هغه علم چاپېر دی،،

اِنَّمَآ اِلٰـهُکُمُ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ وَسِعَ کُلَّ شَیْءٍ عِلْمًا (۹۸)

ای محمده (ص) ! پدغه شان مونږ د مخکښې تېر شوېو حالاتو خبرونه تاته اوروو، او مونږ خاص له خپل لوري نه يو((ذکر(د نصيحت درس) درکړيدی.

کَذٰلِکَ نَقُصُّ عَلَيْکَ مِنْ اَنْۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَ قَدْ اٰتَيْنٰکَ مِنْ لَّدُنَّا ذِکْرًا ۖۚ (۹۹)

څوك چې له دېنه مخ واړوي هغه به د قیامت په ورځ د ګناه درون پیټی پورته کړي.

مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا (١٠٠)

او دغه راز ټول خلك به د تل له پاره د خپل درانده پیټي په عذاب کښې اخته اوسېږي، او د قیامت په ورځ به د هغو له پاره (ددغه جرم د مسئولیت پیټی) ډېر ربړ وونکی پیټی وي.

خٰلِدِيْنَ فِيْهِ ؕ وَ سَآءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا (١٠١)

په هغه ورځ چې کله شپېلۍ پو کړه شي او مونږ به مجرمان پدې حال کښې ایسار راولو چې د هغو سترګې به (هیبت وهلې) ړدې شنې ختلې وي.،

يَّوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ وَ نَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا (١٠٢)

په خپلو مینځو کښې په پټ پټ وو ایي چې په دنیا کښې به تاسې ایله بیله لس ورځې تېرې کړې وي،،.

يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا (١٠٣)

مونږ ته ښه معلومه ده چې هغو به څه وائي (مونږ پدې هم پوهېږو چې) له هغو څخه چې څوك ډېر زیات په احتیاط سره حساب کوونکی وي هغه به ووائي چې نه ، ستاسې ددنیا ژوندایکی یوه ورځ ژوند وء.

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ اِذْ يَقُوْلُ اَمْثَلُهُمْ طَرِيْقَةً اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا يَوْمًا (١٠٤)

دوی له تانه پوښتنه کوي چې په هغه ورځ به دغه غرونه چېرته لاړ شي؟ ووایه چې زما پروردګار به هغه خاورې ایرې کړي وابه يې لوزوي.

وَ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّىْ نَسْفًا (١٠٥)

او زمکه به یو داسې هوار سوتره میدان جوړ کړي.

فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا (١٠٦)

چې په هغه کښې به ته څه کوت او ګونځه ونه وینې.

لَّا تَرٰى فِيْهَا عِوَجًا وَّ لَاۤ اَمْتًا (١٠٧)

په هغه ورځ به ټول خلك د اواز کوونکي په بلنه سم سيخ راشي، يو بڅرى کوږوالى به ونشي ښودلای او غږونه به د رحمن په وړاندې خپ شي، له کښهارنه پرته به ته نور هېڅ وانه ورې

يَوْمَئِذٍ يَّتَّبِعُوْنَ الدَّاعِىَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَ خَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا (١٠٨)

په هغه ورځ به شفاعت په درد نه خوري، مګر دا چې چاته رحمن د هغه اجازه ورکړي او دهغه خبره اوربدل خوښ کړي

يَوْمَئِذٍ لَّا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَ رَضِىَ لَهٗ قَوْلًا (١٠٩)

هغه د خلکو په وړاندې وروسته ټول حال باندې پوهېږي او خلکو ته د هغه د ذات او علم په باب پوره معلومات نشته

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ وَ لَا يُحِيْطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا (١١٠)

د خلکو سرونه به د هغه تل تر تله ژوندي د کائناتو مدبر په وړاندې ټیټ شي نامراده به وي په هغه وخت کښې چا چې د ظلم دګناه پیټی را اخیستی وي.

وَ عَنَتِ الْوُجُوْهُ لِلْحَىِّ الْقَيُّوْمِ ؕ وَ قَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا (١١١)

او هغه چاته به د څه ظلم او حق ضايع کېدو خطر نه وي چې ښه عمل وکړي او ددې ترڅنګ هغه مومن هم وي

وَ مَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا وَّ لَا هَضْمًا (١١٢)

او ای محمده(ص) ! په همدې ډول مونږ دغه عربي قرآن نازل کړېدی او پده کښې مو راز راز اخطارونه ورکړېدي ښائي چې دوی له انحراف نه ځان وژغوري یاد ده په برکت په دوي کښې د متوجه کېدو څه نښاني پیدا شي.

وَ كَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا وَّ صَرَّفْنَا فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ اَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا (١١٣)

نو پورته او لوړ دی الله، حقیقی باچا. او (ګوره)، د قرآن په لوستلو کښې تلوار مکوه تر څو پورې چې تاته د هغه بشپړه وحی نه وي رسول شوې ، او دعا و کړه چې ای پروردګاره! ماته لا زیات علم راکړه

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ وَ لَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰۤى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ ۫ وَ قُلْ رَّبِّ زِدْنِىْ عِلْمًا (١١٤)

مونږ له دېنه مخکښې ادم(ع) ته يو حکم کړی وء خو هغه هېر کړ او مونږ په هغه کښې تصميم ونه مينده

وَ لَقَدۡ عَہِدۡنَاۤ اِلٰۤی اٰدَمَ مِنۡ قَبۡلُ فَنَسِیَ وَ لَمۡ نَجِدۡ لَہٗ عَزۡمًا (۱۱۵)

ياد کړه هغه وخت چې مونږ پرښتو ته ويلي وو چې ادم(ع) ته سجده وکړئ، هغو ټولو سجده وکړه مګر يو ابليس وء چې انکار يې وکړ

وَ اِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِکَۃِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِیۡسَ ؕ اَبٰی (۱۱۶)

پدې سره مونږ ادم(ع) ته وويل چې ((ګوره،دا ستا او ستا دمېرمنې دښمن دی، داسې نه چې دی تاسې له جنته وباسي او تاسې په غم لتاړ شئ

فَقُلۡنَا یٰۤاٰدَمُ اِنَّ ہٰذَا عَدُوٌّ لَّکَ وَ لِزَوۡجِکَ فَلَا یُخۡرِجَنَّکُمَا مِنَ الۡجَنَّۃِ فَتَشۡقٰی (۱۱۷)

دلته خو تا ته دا هوساينې شته چې نه وږی نه بې کاليوبيوزلی اوسېږې،

اِنَّ لَکَ اَلَّا تَجُوۡعَ فِیۡہَا وَ لَا تَعۡرٰی (۱۱۸)ۙ

نه دې دلته تنده او تودوخه ربړوي،،

وَ اَنَّکَ لَا تَظۡمَؤُا فِیۡہَا وَ لَا تَضۡحٰی (۱۱۹)

خو شيطان هغه تېر ويست ، ورته يې وويل((ای ادمه ! تاته هغه ونه دروښيم چې په هغې سره تل ترتله ژوند اونه ختمېدونکی سلطنت په لاس درځي ،،؟

فَوَسۡوَسَ اِلَیۡہِ الشَّیۡطٰنُ قَالَ یٰۤاٰدَمُ ہَلۡ اَدُلُّکَ عَلٰی شَجَرَۃِ الۡخُلۡدِ وَ مُلۡکٍ لَّا یَبۡلٰی (۱۲۰)

په پای کښې دواړو(مېړه مېرمنې) د هغې ونې ميوه و خوړله نتيجه دا شوه چې سمدلاسه دهغوستر يو دبل په وړاندې لوڅ شو او دواړه د جنت په پاڼو سره د خپلو ځانونو په پټولو باندې لګيا شول ادم (ع) د خپل رب نافرماني وکړه اوپه ناسم اجتهادسره له سمې لارې نه واو ښت

فَاَکَلَا مِنۡہَا فَبَدَتۡ لَہُمَا سَوۡاٰتُہُمَا وَ طَفِقَا یَخۡصِفٰنِ عَلَیۡہِمَا مِنۡ وَّرَقِ الۡجَنَّۃِ ۫ وَ عَصٰۤی اٰدَمُ رَبَّہٗ فَغَوٰی (۱۲۱)۪ۖ

بيادهغه رب هغه غوره کړاودهغه توبه يې قبوله کړه او هغه ته يې لارښوونه وکړه.

ثُمَّ اجۡتَبٰہُ رَبُّہٗ فَتَابَ عَلَیۡہِ وَ ہَدٰی (۱۲۲)

او ويې فرمايل ((تاسې دواړه(دلې، يعني انسان او شيطان ) له دې ځايه کوز شئ تاسې به يو دبل د ښمنان ياست اوس که زما له لورې تاسې ته کوم هدايت ورسيږي نو ځوك چې زما د هغه هدايت پيروي وکړي هغه به نه ګمراه شي نه به په بد بختی کښې اخته شي

قَالَ اہۡبِطَا مِنۡہَا جَمِیۡعًۢا بَعۡضُکُمۡ لِبَعۡضٍ عَدُوٌّ ۚ فَاِمَّا یَاۡتِیَنَّکُمۡ مِّنِّیۡ ہُدًی ۬ۙ فَمَنِ اتَّبَعَ ہُدَایَ فَلَا یَضِلُّ وَ لَا یَشۡقٰی (۱۲۳)

او ځوك چې زما له ((ذکر)) د نصيحت له درس ، نه مخ واړوی د هغه له پاره به په دنيا کښې تنګ ژوند وي او د قيات په ورځ به مونږ هغه ړوند راپاځوو،،

وَ مَنۡ اَعۡرَضَ عَنۡ ذِکۡرِیۡ فَاِنَّ لَہٗ مَعِیۡشَۃً ضَنۡکًا وَّ نَحۡشُرُہٗ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ اَعۡمٰی (۱۲۴)

هغه به ووائي((پروردګاره! په دنيا کښې خو زه سترګه وروم ، دلته دې ولې ړوند را پاځولم،،؟

قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرۡتَنِیۡۤ اَعۡمٰی وَ قَدۡ کُنۡتُ بَصِیۡرًا (۱۲۵)

الله تعالی به وفرمائي((هو ، په همدې شان دې زمونږ ايتونه چې تاته راغلي وو، تا هېر کړي وو، هماغسې نن ته هېرول کېږې،،

قَالَ کَذٰلِکَ اَتَتۡکَ اٰیٰتُنَا فَنَسِیۡتَہَا ۚ وَکَذٰلِکَ الۡیَوۡمَ تُنۡسٰی (۱۲۶)

پدې ډول مونږ له حده تيرى کوونکو او دخپل رب دايتونو نه منونکو ته (په دنيا کښې) مجازات ورکوو،او د اخرت عذاب خو يقيناًزيات سخت او ډېر پايښت لرونکی دی

وَ کَذٰلِکَ نَجۡزِیۡ مَنۡ اَسۡرَفَ وَ لَمۡ یُؤۡمِنۡۢ بِاٰیٰتِ رَبِّہٖ ؕ وَ لَعَذَابُ الۡاٰخِرَۃِ اَشَدُّ وَ اَبۡقٰی (۱۲۷)

او ايا دغو خلکو ته (دتاريخ له دغه درس نه) څه درس ور په برخه نشو چې له دېنه مخکښې مونږ څومره قومونه هلاك کړيدي چې د هغو (په وران شوېو) کلېو کښې نن دوی ځی راځی ؟ په حقيقت کښې پدې کښې د هغو خلکو له پاره ډېرې نښانې دي چې دروغې پوهې خاوندان دي.

اَفَلَمۡ یَہۡدِ لَہُمۡ کَمۡ اَہۡلَکۡنَا قَبۡلَہُمۡ مِّنَ الۡقُرُوۡنِ یَمۡشُوۡنَ فِیۡ مَسٰکِنِہِمۡ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّاُولِی النُّہٰی (۱۲۸)

كه ستاد رب له خوا مخكښي د يوې خبرې پريكړه نه واى شوې او دمهلت يوه موده نه واى ټاكله شوې نو ارومرو به ددو ی هم فيصله شوې واى

وَ لَوۡ لَا كَلِمَةٌ سَبَقَتۡ مِنۡ رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَّ اَجَلٌ مُّسَمًّى (١٢٩)

نواى محمده(ص)! دوى چې كومې خبرې جوړوي پر هغو صبر وكړه، او دخپل رب له ثنا ستاينې سره د هغه پاكي بيان كړه له لمر ختلو نه مخكښې او له لمر پرېوتلو نه مخكښې، او د شپې په وختونو كښې هم پاكي بيان كړه او د ورځې په څنډو كښې هم ښائي چې ته راضي شې

فَاصۡبِرۡ عَلٰى مَا يَقُوۡلُوۡنَ وَ سَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ قَبۡلَ طُلُوۡعِ الشَّمۡسِ وَ قَبۡلَ غُرُوۡبِهَا ۚ وَ مِنۡ اٰنَآئِ الَّيۡلِ فَسَبِّحۡ وَ اَطۡرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرۡضٰى (١٣٠)

او ددنيوي ژوندانه هغه ځل بل ته سترګې قدرې هم مه وراړ وه چې مونږ له دوى نه راز راز خلكو ته وركړيدي ، هغه خو مونږ په ازموينه كښې د هغو د اچولو له پاره وركړيدي، اوستاد رب دركړاى شوې حلاله روزي ډېره ښه اوپايښت لرونكي ده.

وَ لَا تَمُدَّنَّ عَيۡنَيۡكَ اِلٰى مَا مَتَّعۡنَا بِهٖۤ اَزۡوَاجًا مِّنۡهُمۡ زَهۡرَةَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۙ لِنَفۡتِنَهُمۡ فِيۡهِ ؕ وَ رِزۡقُ رَبِّكَ خَيۡرٌ وَّ اَبۡقٰى (١٣١)

خپلي كورنى ته د لمانځه توصيه وكړه او په خپله هم دهغه پا بند اوسه مونږ له تاڼه كومه روزي نه غواړو، روزي خو مونږ تاته دركوو او د عاقبت ښيګڼه د پرهيزګارى له پاره ده

وَ اۡمُرۡ اَهۡلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَ اصۡطَبِرۡ عَلَيۡهَا ؕ لَا نَسۡـَٔلُكَ رِزۡقًا ؕ نَحۡنُ نَرۡزُقُكَ ؕ وَ الۡعَاقِبَةُ لِلتَّقۡوٰى (١٣٢)

هغوى وائي چې دغه سړى د خپل رب له لوري نه كومه نښانه (معجزه) ولې نه راوړي؟او ايا دوى ته د مخكېنيو صحيفو ټولې ښووني په څرګند ډول بيان شوي ندي راغلي؟

وَ قَالُوۡا لَوۡ لَا يَاۡتِيۡنَا بِاٰيَةٍ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ اَوَ لَمۡ تَاۡتِهِمۡ بَيِّنَةُ مَا فِى الصُّحُفِ الۡاُوۡلٰى (١٣٣)

كه مونږ د هغه له راتګ نه مخكښي دوى په كوم عذاب سره هلاك كړي واى نو بيا به همدوى ويل چې اى زمونږ پروردګاره تا مونږ ته كوم پېغمبر ولې راونه لېږه چې مونږ له ذليل كېدو او رسوا كېدو نه مخكښي ستا دايتونو پيروي غوره كړې واى

وَ لَوۡ اَنَّـاۤ اَهۡلَكۡنٰهُمۡ بِعَذَابٍ مِّنۡ قَبۡلِهٖ لَقَالُوۡا رَبَّنَا لَوۡ لَاۤ اَرۡسَلۡتَ اِلَيۡنَا رَسُوۡلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ نَّذِلَّ وَ نَخۡزٰى (١٣٤)

اى محمده(ص) ، دوېته ووايه، هر يو د چارې عاقبت ته سترګې په لاره دى، نو اوس منتظر اوسئ ډېر ژر به در معلومه شي چې څوك په سمه لاره تلونكي دي او څوك د هدايت ميندونكي دي.

قُلۡ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوۡا ۚ فَسَتَعۡلَمُوۡنَ مَنۡ اَصۡحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِىِّ وَ مَنِ اهۡتَدٰى (١٣٥)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

را نژدې شويدى د خلكو د حساب وخت، او د هغو دا حالت دى چې په غفلت كښې مخ اړوونكي دي

اِقۡتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمۡ وَ هُمۡ فِىۡ غَفۡلَةٍ مُّعۡرِضُوۡنَ ۚ(١)

هغو ته چې هر نوى نصيحت د هغو د رب له لوري راځي هغه په تكلف سره اوري او په لوبو كښې اخته كېږي،

مَا يَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ ذِكۡرٍ مِّنۡ رَّبِّهِمۡ مُّحۡدَثٍ اِلَّا اسۡتَمَعُوۡهُ وَ هُمۡ يَلۡعَبُوۡنَ ۙ(٢)

د هغو زړونه (په نورو فكرونو كښې ) بوخت دي او ظالمان په خپلو مينځو كښې پټې خبرې كوي چې ((دا سړى خو ستاسي په څېر يو بشر دى ، نو ايا تاسي به ګورئ د كوډو په لومه كښې به نښلئ))؟

لَاهِيَةً قُلُوۡبُهُمۡ ؕ وَ اَسَرُّوا النَّجۡوَى ۖ الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ۖ هَلۡ هٰذَاۤ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ ۚ اَفَتَاۡتُوۡنَ السِّحۡرَ وَ اَنۡتُمۡ تُبۡصِرُوۡنَ (٣)

پېغمبر (ص) وويل زما رب په هرې هغې خبرې باندې پوهېږي چې په اسمان او زمكه كښې وشي، هغه اورېدونكى او پوه دى.

قٰلَ رَبِّىۡ يَعۡلَمُ الۡقَوۡلَ فِى السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ ۫ وَ هُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ (٤)

هغوى وائي((داتيت پرك خوبونه دي، بلكې دادده له ځانه جوړه كړې خبره ده، بلكې داسړى شاعردى كه نه نو دى دې داسي كوزمه نښانه راوړي لكه چې د پخوازماني پېغمبران له نښانو سره لېږل شوي وو،،

بَلۡ قَالُوۡۤا اَضۡغَاثُ اَحۡلَامٍۭ بَلِ افۡتَرٰٮهُ بَلۡ هُوَ شَاعِرٌ ۖۚ فَلۡيَاۡتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَاۤ اُرۡسِلَ الۡاَوَّلُوۡنَ (٥)

پداسي حال کښې چې له دوی نه مخکښې هېڅ يوه کلي هم ،ايمان رانه وړ، چې مونږ هغه هلاك کړ اوس ايا دوی به ايمان راوړي؟

مَاۤ اٰمَنَتۡ قَبۡلَہُمۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ اَہۡلَکۡنٰہَا ۚ اَفَہُمۡ یُؤۡمِنُوۡنَ (۶)

او ای محمده(ص)!له تانه مخکښې هم مونږ له انسانانو څخه پېغمبران لېږلي وو چې هغو ته مونږ وحی کوله، که تاسې ته معلومه نه وي نو له اهل کتابونه پوښتنه وکړئ.

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا قَبۡلَکَ اِلَّا رِجَالًا نُّوۡحِیۡۤ اِلَیۡہِمۡ فَسۡـَٔلُوۡۤا اَہۡلَ الذِّکۡرِ اِنۡ کُنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ (۷)

هغو پېغمبرانو ته مونږ داسې څه جسم نه وء ورکړی چې هغو خواړه نه خوړل او نه هغوی د تل له پاره ژوندي پاتې کېدونکي وو،

وَ مَا جَعَلۡنٰہُمۡ جَسَدًا لَّا یَاۡکُلُوۡنَ الطَّعَامَ وَ مَا کَانُوۡا خٰلِدِیۡنَ (۸)

بياوګورئ چې په پاي کښې مونږ له هغو سره خپلې وعدې پوره کړې او هغوی او هر څوك چې زمونږ خوښه شوه ومو ژغورل او له حده تيری کوونکي مو هلاك کړل.

ثُمَّ صَدَقۡنٰہُمُ الۡوَعۡدَ فَاَنۡجَیۡنٰہُمۡ وَ مَنۡ نَّشَآءُ وَ اَہۡلَکۡنَا الۡمُسۡرِفِیۡنَ (۹)

ای خلکو! مونږ تاسې ته داسې يو کتاب لېږلی دی چې په هغه کښې همدا ستاسې يادونه ده، ايا تاسې نه پوهېږئ؟

لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡکُمۡ کِتٰبًا فِیۡہِ ذِکۡرُکُمۡ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ (۱۰)

څومره ظالمې سيمې دي چې مونږ هغه ورانې ويجاړې کړې او له هغو وروسته مو نور قومونه راپاڅول،

وَ کَمۡ قَصَمۡنَا مِنۡ قَرۡیَۃٍ کَانَتۡ ظَالِمَۃً وَّ اَنۡشَاۡنَا بَعۡدَہَا قَوۡمًا اٰخَرِیۡنَ (۱۱)

کله چې هغوې زمونږ عذاب څرګندوليده نو هغو له هغه ځايه په تېښته لاس پورې کړ

فَلَمَّاۤ اَحَسُّوۡا بَاۡسَنَاۤ اِذَا ہُمۡ مِّنۡہَا یَرۡکُضُوۡنَ (۱۲ؕ)

وويل شول) ’’مه تښتئ ورشئ خپلو همغو کورونو او د عياشی ) وسايلو ته چې تاسې پکښې بې غمه اوسېدلئ، ښائي چې له تاسې نه پوښتنه وشي،،

لَا تَرۡکُضُوۡا وَ ارۡجِعُوۡۤا اِلٰی مَاۤ اُتۡرِفۡتُمۡ فِیۡہِ وَ مَسٰکِنِکُمۡ لَعَلَّکُمۡ تُسۡـَٔلُوۡنَ (۱۳)

ويې ويل((های زمونږ بدمرغی، بېشکه چې مونږ ظالمان وو،،

قَالُوۡا یٰوَیۡلَنَاۤ اِنَّا کُنَّا ظٰلِمِیۡنَ (۱۴)

او هغوی همدغه نارې وهلې تردې پورې چې مونږ هغوی لو کړل، مړه شول يخ کرخ پرېوتل.

فَمَا زَالَتۡ تِّلۡکَ دَعۡوٰىہُمۡ حَتّٰی جَعَلۡنٰہُمۡ حَصِیۡدًا خٰمِدِیۡنَ (۱۵)

مونږ دغه اسمان او زمکه او هر څه چې پدی دواړوکښې دي د لوبې په ډول ندي پيدا کړي،

وَ مَا خَلَقۡنَا السَّمَآءَ وَ الۡاَرۡضَ وَ مَا بَیۡنَہُمَا لٰعِبِیۡنَ (۱۶)

که مونږ څه د لوبو وسايل جوړول غوښتلی او همدغه زمونږ کړنچاره وای نو له خپل لوري به مو کړي وای،

لَوۡ اَرَدۡنَاۤ اَنۡ نَّتَّخِذَ لَہۡوًا لَّاتَّخَذۡنٰہُ مِنۡ لَّدُنَّاۤ ٭ۖ اِنۡ کُنَّا فٰعِلِیۡنَ (۱۷)

خو مونږ پر باطل باندې د حق ګوزار کوو چې د هغه سر ماتوي او هغه ګوري محوه کېږي او ستاسې له پاره د هغو خبرو له امله تباهي ده چې تاسې يې جوړ وئ

بَلۡ نَقۡذِفُ بِالۡحَقِّ عَلَی الۡبَاطِلِ فَیَدۡمَغُہٗ فَاِذَا ہُوَ زَاہِقٌ ؕ وَ لَکُمُ الۡوَیۡلُ مِمَّا تَصِفُوۡنَ (۱۸)

په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر مخلوق دی دالله دی او کومې پرښتې چې له هغه سره دي هغوی نه په لوئی کولو سره د هغه له بندګۍ نه سرغړوي او نه ستومانه کېږي

وَ لَہٗ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ مَنۡ عِنۡدَہٗ لَا یَسۡتَکۡبِرُوۡنَ عَنۡ عِبَادَتِہٖ وَ لَا یَسۡتَحۡسِرُوۡنَ (۱۹ۚ)

شپه او ورځ د هغه پاکي بيانوي وقفه پکښې نه راولي

یُسَبِّحُوۡنَ الَّیۡلَ وَ النَّہَارَ لَا یَفۡتُرُوۡنَ (۲۰)

ايا ددوې جوړکړی زمکني خدايان داسې دي چې کوم بې ساته د ساپه بخښلو سره )ژوندی را پاڅول کوی؟

اَمِ اتَّخَذُوۡۤا اٰلِہَۃً مِّنَ الۡاَرۡضِ ہُمۡ یُنۡشِرُوۡنَ (۲۱)

که په اسمان او زمکه کښې له يو الله نه پرته نور خدايان هم وای نو (دزمکې او اسمان دواړو نظام به وران شوی وء ، نو د عرش هستوونکی پالونکی الله له هغو خبرو څخه پاك دی چې دوی يې جوړوي

لَوۡ کَانَ فِیۡہِمَاۤ اٰلِہَۃٌ اِلَّا اللّٰہُ لَفَسَدَتَا ۚ فَسُبۡحٰنَ اللّٰہِ رَبِّ الۡعَرۡشِ عَمَّا یَصِفُوۡنَ (۲۲)

هغه د خپلو چارو له پاره(د چا په وړاندې ) پوښتيدونی ندی اودوی ټول پوښتيدوئي دي

لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَ هُمْ يُسْـَٔلُوْنَ (۲۳)

ايا له هغه پرته دوی نور خدايان نيولي دي؟ ای محمده(ص)! دوی ته ووايه چې راوړئ خپل دليل، دغه كتاب هم موجود دی چې په هغه كښې زما د زماني د خلكو له پاره نصيحت دی او هغه كتابونه هم موجود دي چې په هغو كښې له مانه د مخكښې خلكو له پاره نصيحت وه،، خو ددوی زياتره كسان له حقيقت نه نا خبره دي ، ځكه خو مخ اړوونكي دي

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ۚ هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِىَ وَ ذِكْرُ مَنْ قَبْلِىْ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۙ الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ (۲۴)

مونږ چې له تانه مخكښې هر پيغمبر ليږلی دی هغه ته مونږ همدغه وحی كړېده چې له ما څخه پرته بل خدای نشته نو تاسې همدا زما بندګي وكړئ

وَ مَاۤ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِىْۤ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ (۲۵)

دوی وائي((رحمن اولاد لري ،، سبحان الله، هغوی خو بندګان دي چې عزت وركړ شويدی،

وَ قَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ (۲۶)

د هغه له حضورنه په مخكښې كيدو خبره نكوي اويوازې د هغه په حكم عمل كوي

لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَ هُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ (۲۷)

څه چې د هغو په وړاندې دي هغه هم هغه (الله) ته معلوم دي او څه چې له هغو نه پټ دي په هغو باندې هم هغه پوه دی هغوی د هيچا سپارښ نكوي پرته له هغه چانه چې د هغه په حق كښې د سپارښ په اورېدلو باندې الله راضي وي،اوهغوی د هغه له ويرې نه لړزيدونكي دي

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ وَ لَا يَشْفَعُوْنَ ۙ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَ هُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ (۲۸)

او كه له هغو څخه څوك ووائي چې له الله څخه پرته زه هم يو خدای يم، نو هغه ته به مونږ ددوزخ سزاور كړو، زمونږ په وړاندې د ظالمانو همدغه مجازات دی

وَ مَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّىْۤ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِيْنَ (۲۹)

ايا هغه كسان چې (د پيغمبر د خبرې له منلونه يې) انكار كړيدی غورنكوي چې دغه ټول اسمانونه او زمكه يو له بله سره نښتي وو، بيا مونږ دوی دواړه بيل كړل، او له اوبونه مو هر ژوندی شی پيدا كړ ايا هغوی (زمونږ د غه خلاقيت) نه مني؟

اَوَ لَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا ؕ وَ جَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَىْءٍ حَىٍّ ؕ اَفَلَا يُؤْمِنُوْنَ (۳۰)

او مونږ په زمكه كښې غرونه ټكوهل تر څو چې په دوی باندې ونه خوځيږي، او په هغه كښې موار تې لياری جوړې كړې، ښائي چې خلك خپلې لياری معلومې كړي

وَ جَعَلْنَا فِى الْاَرْضِ رَوَاسِىَ اَنْ تَمِيْدَ بِهِمْ وَ جَعَلْنَا فِيْهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ يَهْتَدُوْنَ (۳۱)

او مونږ اسمان يو محفوظ چت جوړ كړ ، خو ددوی دا حالت دی چې د هغه د نښانو لوري ته هيڅ پاملرنه نكوي.

وَ جَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوْظًا ۖۚ وَّ هُمْ عَنْ اٰيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ (۳۲)

او هماغه الله دی چې شپه او ورځ او لمر او سپوږمی يې پيدا كړل، ټول په يو (بيل ) فلك كښې لامبو وهي

وَ هُوَ الَّذِىْ خَلَقَ الَّيْلَ وَ النَّهَارَ وَ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ ؕ كُلٌّ فِىْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ (۳۳)

او ای محمده! تل پايښت خو مونږ له تانه مخكښې هم كوم انسان ته ندی وركړی. كه ته مړ شوې نو ايا دوی به دتل له پاره ژوندي وي؟

وَ مَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ ؕ اَفَاۡئِنْ مِّتَّ فَهُمُ الْخٰلِدُوْنَ (۳۴)

هر ساكښ د مرګ د خوند څكونكی دی، او مونږ په ښو او ناوړه حالاتو كښې په غورځولو سره پر تاسې ټولو ازميښت كوو په پای كښې همدا زمونږ لوري ته ستاسې راګرځيدل دي

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ وَ نَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَ الْخَيْرِ فِتْنَةً ؕ وَ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ (۳۵)

دغه د حق منکران چي کله تا ويني نو په تا پوري ملنډې وهي وائي چي ايا دغه دی هغه څوك چي ستاسي د خدايانو يادونه کوي،،؟ او ددوی خپل حال دادی چي د رحمن له ذکر نه منکر دي.

وَ اِذَا رَاٰکَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ يَّتَّخِذُوْنَکَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا الَّذِیْ يَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ ۚ وَ هُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ (۳۶)

انسان تلوار کوونکی مخلوق دی همدا اوس زه تاسي ته خپلي نښاني دربښيم، تلوار مکوئ

خُلِقَ الْاِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ ؕ سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِیْ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ (۳۷)

دوی وائي ښه نو دغه اخطار به کله پوره کېږي که تاسي ريښتوني ياست ،،

وَ يَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۳۸)

کاشکي د غو کافرانو ته د هغه وخت څه علم وای چي دوی به له اوره نه خپل مخونه وژغورلای شي او نه خپلي شاگانی، او نه به دوې ته له کوم لوري نه مرسته ورسيدلای شي

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَ لَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَ لَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ (۳۹)

هغه بلا به په ناځاپې ډول ورباندي راشي او دوی به داسي يو دم ونيسي چي دوی به نه د هغې مخنيوي وکړای شي اونه به دوی ته يوه شېبه مهلت ورکړ شي

بَلْ تَاْتِيْهِمْ بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا وَ لَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ (۴۰)

له تانه مخکښي پېغمبرانو پوري هم ملنډې وهل شويدي، خو په هغو پوري ملنډې وهونکي په هماغه څه کښي اخته شول چي مسخرې يې پرې کولې

وَ لَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۴۱)

ای محمده(ص)!دوی ته ووايه،((څوك دی چي د شپې ياد ورځې تاسي له رحمن څخه وژغورلای شي؟،،خو دوی دخپل رب له نصيحت څخه مخ اړوونکي دي.

قُلْ مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ وَ النَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ ؕ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ (۴۲)

ايا دوې داسي څه خدايان لري چي زمونږ په ضد ددوی ملاتړ وکړي؟ هغوی خونه په خپله له خپل ځان سره مرسته کولای شي او نه زمونږ ملگرتيا ورپه برخه ده

اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ اَنْفُسِهِمْ وَ لَا هُمْ مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ (۴۳)

اصلي خبره داده چي دغو خلکوته او ددوی پلرونو نيکونو ته مونږ دژوند وسايل پر له پسې ورکړل ترڅو پوري چي پدوی باندې اوږده موده تېره شوه، خو ايا دوی نه گوري چي مونږ زمکه له هرې خوانه راکموو؟ (د مسلمانانو په لاس فتحه کېږي) نو ايا دوی به بر لاسي شي.

بَلْ مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَآءِ وَ اٰبَآءَهُمْ حَتّٰى طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ؕ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا نَاْتِی الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا مِنْ اَطْرَافِهَا ؕ اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ (۴۴)

دوی ته ووايه چي ((زه خو تاسي ته د وحی په اساس اخطار درکوم،، خو کوڼ غوږ بلنه نه اوري چي کله هغوی خبر دار کړل شي

قُلْ اِنَّمَاۤ اُنْذِرُكُمْ بِالْوَحْیِ ۖ وَ لَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَآءَ اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ (۴۵)

او که ستا د رب عذاب لږ غوندې هغو ته ورسيږي، نو سمدلاسه به فرياد وکړي چي های زمونږ بده بخته ، په ريښتياچي مونږ ظالمان وو.

وَ لَئِنْ مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُوْلُنَّ يٰوَيْلَنَاۤ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ (۴۶)

د قيامت په ورځ به مونږ برابرې تول کوونکي تلې کېږدو ، بيا به پر هيچا يو بڅری ظلم نه وي د چا چي داورې ددانې په اندازه هم څه کړه وړه وي هغه به مونږ ور مخې ته کړو او د حساب کولو له پاره مونږ کافي يو.

وَ نَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ؕ وَ اِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ؕ وَ كَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ (۴۷)

| Pashto | Arabic |
| --- | --- |
| مخکښي مونږ موسی (ع)او هارون(ع) ته فرقان، روښنائي او((ذکر)) ورکړیدی د پرهیزګارانو د ښيګڼي له پاره | وَ لَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسٰی وَ هٰرُوۡنَ الۡفُرۡقَانَ وَ ضِيَآءً وَّ ذِکۡرًا لِّلۡمُتَّقِيۡنَ (۴۸) |
| کوم چې ناليدلي له خپل رب څخه وېرېږي او په هغو باندې (دحساب) د هغه ساعت لړزه راغلې وي. | الَّذِيۡنَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ بِالۡغَيۡبِ وَ هُمۡ مِّنَ السَّاعَةِ مُشۡفِقُوۡنَ (۴۹) |
| او اوس مونږ دغه له برکته ډك((ذکر))(ستاسي له پاره) نازل کړیدی، نو ايا تاسي دده له منلونه منکر یاست؟ | وَ هٰذَا ذِکۡرٌ مُّبٰرَکٌ اَنۡزَلۡنٰهُ ؕ اَفَاَنۡتُمۡ لَهٗ مُنۡکِرُوۡنَ (۵۰) |
| له هغه نه مخکښي مونږ ابراهيم (ع) ته زيرکي ورکړې وه او مونږ هغه ښه پيرنده. | وَ لَقَدۡ اٰتَيۡنَاۤ اِبۡرٰهِيۡمَ رُشۡدَهٗ مِنۡ قَبۡلُ وَ کُنَّا بِهٖ عٰلِمِيۡنَ (۵۱) |
| کله چې هغه خپل پلار او خپل قوم ته ويلي وو چې ((دغه مجسمې څه دي چې تاسي د هغو ګروهمن کېږئ،،؟ | اِذۡ قَالَ لِاَبِيۡهِ وَ قَوۡمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيۡلُ الَّتِیۡۤ اَنۡتُمۡ لَهَا عٰکِفُوۡنَ (۵۲) |
| هغوپه ځواب کښي وويل((مونږ خپل پلرونه نيکونه ددی عبادت کوونکي ميندلي دي،، | قَالُوۡا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيۡنَ (۵۳) |
| هغه وويل((تاسي هم ګمراه یاست او ستاسي پلرونه نيکونه هم په ښکاره ګمراهۍ کښي غورځېدلي وو،، | قَالَ لَقَدۡ کُنۡتُمۡ اَنۡتُمۡ وَ اٰبَآؤُکُمۡ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ (۵۴) |
| هغو وويل((ايا ته مونږ ته خپله ريښتوني مفکوره وړاندې کوې او که ټوکي کوې ،،؟ | قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا بِالۡحَقِّ اَمۡ اَنۡتَ مِنَ اللّٰعِبِيۡنَ (۵۵) |
| هغه ځواب ورکړ((نه ، بلکې په ريښتيا سره ستاسي رب هماغه ذات دی چې د اسمانونو او ځمکي رب او دهغو پيدا کوونکی دی پدې باندې زه ستاسي په وړاندې له شاهدي وهونکو څخه يم | قَالَ بَلۡ رَّبُّکُمۡ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ الَّذِیۡ فَطَرَهُنَّ ۫ۖ وَ اَنَا عَلٰی ذٰلِکُمۡ مِّنَ الشّٰهِدِيۡنَ (۵۶) |
| اوپه خدای قسم چې زه به ستاسي د نشتوالي په صورت کښي چې له دې ځايه لاړ شئ شا واړوئ ارومرو ستاسي د بتانو څه چاره وکړم،، | وَ تَاللّٰهِ لَاَکِيۡدَنَّ اَصۡنَامَکُمۡ بَعۡدَ اَنۡ تُوَلُّوۡا مُدۡبِرِيۡنَ (۵۷) |
| بيا يې همداسې وکړل هغه يې ټوټې ټوټې کړل يوازې د هغو غټ يې پريښوده تر څو چې ښائي هغوی – دهغه لوري ته راوګرځي. | فَجَعَلَهُمۡ جُذٰذًا اِلَّا کَبِيۡرًا لَّهُمۡ لَعَلَّهُمۡ اِلَيۡهِ يَرۡجِعُوۡنَ (۵۸) |
| هغوی (چې راغلل د بتانو د غه حال يې وليده نو) ويې ويل((زمونږ پر خدايانو دغه حال چا راوستی دی؟ هغه ارومروکوم ظالم وء ،، | قَالُوۡا مَنۡ فَعَلَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَاۤ اِنَّهٗ لَمِنَ الظّٰلِمِيۡنَ (۵۹) |
| مونږ له يو زلمي څخه د هغو يادونه اورېدلي ))!ځينو خلکو) وويل ) وه چې د هغه نوم ابراهيم دی،، | قَالُوۡا سَمِعۡنَا فَتًی يَّذۡکُرُهُمۡ يُقَالُ لَهٗۤ اِبۡرٰهِيۡمُ (ؕ۶۰) |
| هغوی وويل((نو هغه ونيسئ دټولو په وړاندې يې حاضر کړئ تر څو چې خلك وګوري(له هغه سره څه برخورد کېږي،، | قَالُوۡا فَاۡتُوۡا بِهٖ عَلٰۤی اَعۡيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمۡ يَشۡهَدُوۡنَ (۶۱) |
| هغوی پوښتنه وکړه ((ای ابراهيمه! تازمونږ ( ابراهيم چې راغی) له خدايانو سره دغه حرکت کړیدی؟،، | قَالُوۡۤا ءَاَنۡتَ فَعَلۡتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا يٰۤاِبۡرٰهِيۡمُ (ؕ۶۲) |
| هغه ځواب ورکړ ((بلکې هرڅه ددوی دغه مشر کړيدی له دوی نه پوښتنه وکړئ که دوی خبرې کوي،، | قَالَ بَلۡ فَعَلَهٗ ٭ۖ کَبِيۡرُهُمۡ هٰذَا فَسۡـَٔلُوۡهُمۡ اِنۡ کَانُوۡا يَنۡطِقُوۡنَ (۶۳) |
| ددې په اورېدلو سره هغوی د خپل وجدان لوري ته راوګرځېدل او (په خپلو زړونو کښي يې ) وويل((په ريښتيا چې تاسي په خپله ظالمان يئ،، | فَرَجَعُوۡۤا اِلٰۤی اَنۡفُسِهِمۡ فَقَالُوۡۤا اِنَّکُمۡ اَنۡتُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۶۴) |
| خوبيا د سرکوزئ سره سره د هغو رايه واوښتله اوويې ويل (ته پوهېږې چې دوی نه غږېږي،، | ثُمَّ نُکِسُوۡا عَلٰی رُءُوۡسِهِمۡ ۚ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا هٰۤؤُلَآءِ يَنۡطِقُوۡنَ (۶۵) |

| | |
|---|---|
| ابراهيم وويل((نو ايا تاسي له الله نه پرته د هغو شيانو بندگي کوئ چي نه تاسي ته د گټي اړولو وس واك لري نه د زيان | قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْـًٔا وَّ لَا يَضُرُّكُمْ (۶۶) |
| لعنت دی پر تاسي او ستاسي پر دغو معبودانو چي تاسي له الله نه پرته ددوی عبادت کوئ. ايا تاسي هيڅ پوهه نلرئ،،؟ . | اُفٍّ لَّكُمْ وَ لِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۶۷) |
| هغوی وويل((دی وسوځوئ او د خپلو خدايانو ملاتړ وکړئ که تاسي څه کوونکي ياست،، | قَالُوْا حَرِّقُوْهُ وَ انْصُرُوْۤا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ (۶۸) |
| مونږ وويل((ای اوره په ابراهيم باندي يخ شه او سلامتيا جوړ شه،، | قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِیْ بَرْدًا وَّ سَلٰمًا عَلٰۤى اِبْرٰهِيْمَ (۶۹) |
| هغوی غوښتل چي ابراهيم ته د سيسه جوړه کړي ، خو مونږ هغوی په ناوړه توگه ناکام کړل | وَ اَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَخْسَرِيْنَ (۷۰) |
| او مونږ هغه او لوط وژغورل د هغه هيواد لوري ته مو بوتلل چي په هغه کښي مونږ د نړيوالو له پاره برکتونه ايښي دي | وَ نَجَّيْنٰهُ وَ لُوْطًا اِلَى الْاَرْضِ الَّتِیْ بٰرَكْنَا فِيْهَا لِلْعٰلَمِيْنَ (۷۱) |
| او مونږ هغه ته اسحق ورکړ او يعقوب پر هغه سربيره ، او ټول مو صالحان وگرځول. | وَ وَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ ؕ وَ يَعْقُوْبَ نَافِلَةً ؕ وَ كُلًّا جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ (۷۲) |
| او مونږ هغوی پيشوايان وگرځول چي زمونږ په امر سره يي لارښوونه کوله، او مونږ هغوته دوحي په وسيله دغوره چارولمانځه قائمولو اوزکات ورکولوهدايت ورکړاوهغوی زمونږ عبادت کوونکي وو | وَ جَعَلْنٰهُمْ اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا وَ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرٰتِ وَ اِقَامَ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَ كَانُوْا لَنَا عٰبِدِيْنَ (۷۳) |
| او لوط ته مونږ حکم او علم ورکړ او هغه مو له هغي سيمي نه په ژغورنه وويست چي بد کاری يي کولي په حقيقت کښي هغه ډير بد ، فاسق قوم وو | وَ لُوْطًا اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّ عِلْمًا وَّ نَجَّيْنٰهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِیْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰٓىِٕثَ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فٰسِقِيْنَ (۷۴) |
| او مونږ لوط(ع) په خپل رحمت کښي داخل کړ، هغه له صالحانو څخه وو | وَ اَدْخَلْنٰهُ فِیْ رَحْمَتِنَا ؕ اِنَّهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۷۵) |
| او همدغه نعمت مونږ نوح(ع) ته ورکړ ياد کړه هغه وخت چي له د غو ټولو نه مخکښي هغه مونږ ته غږ کړی وومونږ د هغه د عاقبوله کړه او هغه او د هغه کورنۍ ته مو له لوی کړ او نه نجات ورکړ. | وَ نُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَنَجَّيْنٰهُ وَ اَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ (۷۶) |
| او د هغه قوم په مقابل کښي موچي هغوی زمونږ ايتونه دروغ گڼلي وو د هغه (نوح) ملاتړ وکړ ، هغوی ډير بد خلك وونو ټول مو غرق کړل. | وَ نَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ (۷۷) |
| او په همدي نعمت سره مونږ داوءد(ع)اوسليمان (ع)سر لوړي کړل کله چي هغو دواړوديوکښت دعوه فيصله کوله چي په هغه کي دشپي له مخي دنورو خلکو پسونه څريدلي وو، او مونږ د هغو فيصله صادرول په خپله ليدل | وَ دَاوٗدَ وَ سُلَيْمٰنَ اِذْ يَحْكُمٰنِ فِی الْحَرْثِ اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ ۚ وَ كُنَّا لِحُكْمِهِمْ شٰهِدِيْنَ (۷۸) |
| نو په هغه وخت کښي مونږ د فيصلي صحيح صورت سليمان ته وښوده پداسي حال کښي چي مونږ حکم او علم دواړوته ورکړی وو له داوءد سره مونږ غرونه اوالوتونکي ايل کړي وو چي پاکي يي بيا نوله ، ددغه کار کوونکي همدا مونږ وو | فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ ۚ وَ كُلًّا اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّ عِلْمًا ۫ وَّ سَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَ الطَّيْرَ ؕ وَ كُنَّا فٰعِلِيْنَ (۷۹) |
| او مونږ هغه ته ستاسي د گټي له پاره د زغري جوړولو صنعت ورښودلی وو، تر څو چي تاسي يو د بل له گوزار نه وژغوري، نو ايا تاسي شکر ويستونکي ياست؟ | وَ عَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ (۸۰) |

او سلیمان ته مونږ توند باد ابل کړی وء چي د هغه په حکم سره د هغه هېواد لوري ته الوته چي په هغه کښي مونږ برکتونه ایښي دي، اومونږ د هرڅه علم لروونکي یو.

وَ لِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖۤ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَ كُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ (۸۱)

او له شیطانانو څخه مونږ داسي یو زیات شمېر د هغه تابع ګرځولي وو چي د هغه له پاره یې غوټې وهلې او پدې سربېره یې نوري چارې هم سرته رسولې د هغو ټولو څارونکي مونږ وو.

وَ مِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَ يَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَ كُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ (۸۲)

او همدغه (د زیرکی، حکم او علم نعمت) مونږ ایوب (ع)ته ورکړی وء کله چي هغه له خپل رب نه غوښتنه وکړه چي ((زه ناروغ یم او ته ارحم الرحمین یې،،

وَ اَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗۤ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ (۸۳)

مونږ د هغه د عا قبوله کړه اوله هغه څخه مو د هغه تکلیف ایسته کړ، او یوازې د هغه د کورنۍ غړي مو هغه ته ورنکړل بلکي پر هغو سربېره مو هماغو مره نور هم ورکړل، د خپل ځانګړي رحمت په ډول اوددې له پاره چي داد عبادت کوونکو له پاره یو درس وي.

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ وَّ اٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ وَ مِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَ ذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ (۸۴)

او همدغه نعمت مو اسمعیل او ادریس اوذوالکفل ته ورکړ چي دوی ټول صابران وو

وَ اِسْمٰعِيْلَ وَ اِدْرِيْسَ وَ ذَا الْكِفْلِ ؕ كُلٌّ مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ (۸۵)

او مونږ هغوی په خپل رحمت کښي داخل کړل چي هغوی له صالحانو څخه وو

وَ اَدْخَلْنٰهُمْ فِيْ رَحْمَتِنَا ؕ اِنَّهُمْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ (۸۶)

او مونږ د کب څښتن هم ونازوه، کله چي هغه په غصه تللی وء او انګېرلي یي وه چي مونږ به هغه مواخذه نکړو، په پای کښي هغه په تررړمیو کښي اوازو کړ چي :((نشته بل خدای مګرته یې، پاك دی ستا ذات ، بې‌شکه مالندېون وکړ.

وَ ذَا النُّوْنِ اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادٰى فِي الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ ۗ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ (۸۷)

هله نو مونږ د هغه د عاقبو له کړه او له غم نه مو هغه وژغوره او پدغه شان مونږ موءمنان ژغورو

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ ۙ وَ نَجَّيْنٰهُ مِنَ الْغَمِّ ؕ وَ كَذٰلِكَ نُــْۨجِي الْمُؤْمِنِيْنَ (۸۸)

او زکریا دریاد کړه ، کله چي هغه خپل رب ته غږ وکړ چي ((ای پروردګاره! ما یوازې مه پرېږده او ډېر غوره وارث خو همدا ته یې،،

وَ زَكَرِيَّاۤ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ فَرْدًا وَّ اَنْتَ خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ (۸۹)

نو مونږ د هغه د عاقبوله کړه او هغه ته مو یحی ورکړ او د هغه مېرمن مو د هغه له پاره مستعده کړه د غو کسانو دنیکۍ په چارو کښي منډې تورې کولي او مونږ یې له میلان اوویرې سره بللو، او زمونږ په وړاندې غاړه ایښودونکي وو.

فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ ۫ وَ وَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى وَ اَصْلَحْنَا لَهٗ زَوْجَهٗ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَ يَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّ رَهَبًا ؕ وَ كَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ (۹۰)

او هغه نجلی (دریاده کړه ) چي هغې د خپلې پاك لمنی ساتنه کړې وه مونږ په هغې کښي خپله روح پو کړ او هغه او د هغې زوی مو د ټولې نړۍ له پاره نښانه وګرځوله.

وَ الَّتِيْۤ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا وَ جَعَلْنٰهَا وَ ابْنَهَاۤ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ (۹۱)

دغه ستاسي امت په حقیقت کښي ایکي یو امت دی او زه ستاسي رب یم، نو تاسي زما عبادت وکړئ،

اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ وَّ اَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْنِ (۹۲)

خو(داد خلکو قصور دی چي) هغوی په خپلو مینځو کښي خپل دین ټوټې ټوټې کړ د ټولو زمونږ لوري ته راګرځېدل دي

وَ تَقَطَّعُوْۤا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ ؕ كُلٌّ اِلَيْنَا رٰجِعُوْنَ (۹۳)

فَمَنۡ يَّعۡمَلۡ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَ هُوَ مُؤۡمِنٌ فَلَا كُفۡرَانَ لِسَعۡيِهٖ ۚ وَ اِنَّا لَهٗ كٰتِبُوۡنَ (۹۴)

نو څوك چې ښه عمل وكړي، پداسې حال كښې چې هغه موءمن وي، نو دهغه د هلو ځلو بې قدري به ونشي، او مونږ هغه ليكو،

وَ حَرٰمٌ عَلٰى قَرۡيَةٍ اَهۡلَكۡنٰهَاۤ اَنَّهُمۡ لَا يَرۡجِعُوۡنَ (۹۵)

او دا نشې كيداى چې كومه سيمه چې مونږ هلاكه كړې وي هغه (دهغې اهل ) بېرته راوګرځيداى شي.

حَتّٰۤى اِذَا فُتِحَتۡ يَاۡجُوۡجُ وَ مَاۡجُوۡجُ وَ هُمۡ مِّنۡ كُلِّ حَدَبٍ يَّنۡسِلُوۡنَ (۹۶)

تردې پورې چې كله د ځو ځو ما ځوځو لاره پرانستله شي او هغوى له هرې هسكې نه په راكوزېدو شي

وَ اقۡتَرَبَ الۡوَعۡدُ الۡحَقُّ فَاِذَا هِىَ شَاخِصَةٌ اَبۡصَارُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا ؕ يٰوَيۡلَنَا قَدۡ كُنَّا فِىۡ غَفۡلَةٍ مِّنۡ هٰذَا بَلۡ كُنَّا ظٰلِمِيۡنَ (۹۷)

او د حقې وعدې د پوره كېدو وخت چې رالنډ شي نو په ناڅاپي توګه به د هغو كسانو سترګې ټېغې ټېغې ووځي چې هغوى كافر شوې وو وبه وائي((هاى زمونږ بده بخته، مونږ ددې شي له لوري په غفلت كښې لويدلي وو بلكې مونږ ظالمان وو،،

اِنَّكُمۡ وَ مَا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ؕ اَنۡتُمۡ لَهَا وٰرِدُوۡنَ (۹۸)

بېشكه تاسې او ستاسې هغه معبودان چې تاسې د هغو عبادت كوئ ددوزخ د سون مواد ياست،همالته ستاسې ورتګ دى

لَوۡ كَانَ هٰۤؤُلَاۤءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوۡهَا ؕ وَ كُلٌّ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ (۹۹)

كه دوى په رېښتيا خدايان واى نو هلته به نه ووتللي – اوس دټولو د تل له پاره همالته اوسېدل دي،

لَهُمۡ فِيۡهَا زَفِيۡرٌ وَّ هُمۡ فِيۡهَا لَا يَسۡمَعُوۡنَ (۱۰۰)

هلته به هغوى كوكارې وهي او حال به داوي چې په هغه كښې به هغوى اواز ته غوږ كښېنښولى شي.

اِنَّ الَّذِيۡنَ سَبَقَتۡ لَهُمۡ مِّنَّا الۡحُسۡنٰٓى ۙ اُولٰٓئِكَ عَنۡهَا مُبۡعَدُوۡنَ (۱۰۱)ۙ

پاتې شول هغه خلك چې د هغو له پاره زمونږ له پلوه د ښېګڼې فيصله دمخه شوې وي نو هغوى به په باوري ډول له هغه نه ليرې وساتل شي،

لَا يَسۡمَعُوۡنَ حَسِيۡسَهَا ۚ وَ هُمۡ فِىۡ مَا اشۡتَهَتۡ اَنۡفُسُهُمۡ خٰلِدُوۡنَ (۱۰۲)ۚ

د هغه كښنهار قدرې به هم وانه ورې او هغوى به د تل له پاره د خپلې خوښې شيانو په مينځ كښې او سېږي

لَا يَحۡزُنُهُمُ الۡفَزَعُ الۡاَكۡبَرُ وَ تَتَلَقّٰهُمُ الۡمَلٰۤئِكَةُ ؕ هٰذَا يَوۡمُكُمُ الَّذِىۡ كُنۡتُمۡ تُوۡعَدُوۡنَ (۱۰۳)

هغه د زياتې وارخطايۍ وخت به هغوى يو بخرى انديښمن نكړي، اوپرښتو به له هغو سره لاس ترلاسه نيولي وي چې دغه ستاسې همغه ورځ ده چې له تاسې سره د هغې وعده كېدله،،

يَوۡمَ نَطۡوِى السَّمَآءَ كَطَىِّ السِّجِلِّ لِلۡكُتُبِ ؕ كَمَا بَدَاۡنَاۤ اَوَّلَ خَلۡقٍ نُّعِيۡدُهٗ ؕ وَعۡدًا عَلَيۡنَا ؕ اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيۡنَ (۱۰۴)

هغه ورځ چې مونږ اسمان داسې ونغاړو لكه چې په د فتر كښې پاڼې تاوول كېږي، په كوم ډول چې مونږ لومړى ځل د هستونې پېل كړى وء په همغه شان به مونږ بيا هغه دوهم ځل تكرار كړو، دايوه وعده ده پر مونږ باندې اومونږ اور مروددې كاركوونكي يو

وَ لَقَدۡ كَتَبۡنَا فِى الزَّبُوۡرِ مِنۡۢ بَعۡدِ الذِّكۡرِ اَنَّ الۡاَرۡضَ يَرِثُهَا عِبَادِىَ الصّٰلِحُوۡنَ (۱۰۵)

اوپه زبور كښې مونږله نصيحت نه وروسته ليكلي دي چې د زمكې وارثان به زمونږ غوره بندګان وي،

اِنَّ فِىۡ هٰذَا لَبَلٰغًا لِّقَوۡمٍ عٰبِدِيۡنَ (۱۰۶)ؕ

پدې كښې يو غټ خبر دى د عبادت كوونكو له پاره.

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا رَحۡمَةً لِّلۡعٰلَمِيۡنَ (۱۰۷)

اى محمده (ص)!مونږ چې ته لېږلى يې داپه اصل كښې د نړېوالو په باب زمونږ رحمت دى. (مونږ دټولو مخلوقاتو له پاره ته رحمت ليږلى يې)

قُلۡ اِنَّمَا يُوۡحٰٓى اِلَىَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمۡ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ فَهَلۡ اَنۡتُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ (۱۰۸)

دوېته ووايه((ماته چې كومه وحى راځي هغه داده چې ستاسې خداى ايكې يو خداى دى،نو ايا تاسې د اطاعت سر ټيټوونكي يئ؟،،

كه هغوی مخ واړوي نو ووايه چې ما په ښکاره توګه تاسي ټولو ته مساوي خبر كړي ياست اوس زه پدې نه پوهېږم چې هغه څه چې تاسي سره د هغه وعده كېږي نژدي دی كه لیری.

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ عَلٰى سَوَآءٍ ؕ وَ اِنْ اَدْرِیْۤ اَقَرِیْبٌ اَمْ بَعِیْدٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ (۱۰۹)

الله په هغو خبرو هم پوهېږي چې په لوړ غږ ويل كېږي او په هغو هم چې تاسي يې په پټه كوئ.

اِنَّهٗ یَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ وَ یَعْلَمُ مَا تَكْتُمُوْنَ (۱۱۰)

زه څونه پوهېږم داسي فكر كوم چې ښائي دا (ځنډېدل) ستاسي له پاره يوه فتنه ده او تاسي ته د يوې ټاكلي نېټي پورې د خوندونو اخيستلو فرصت در كول كېږي

وَ اِنْ اَدْرِیْ لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَ مَتَاعٌ اِلٰى حِیْنٍ (۱۱۱)

پېغمبر(ص) وويل چې ((ای زما ربه ! په حقه سره (په پای كښې) فيصله وكړه ، او ای خلكو ! تاسي چې كومې خبرې جوړ وئ د هغو په مقابل كښې زمونږ مهربان رب زمونږ له پاره د مرستې .اسره ده،،

قٰلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ وَ رَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ (۱۱۲)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

ای خلكو ! د خپل رب له غضب نه ځان وژغورئ، حقيقت دادی چې د قيامت زلزله لوی (هولناك)شی دی.

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَیْءٌ عَظِیْمٌ (۱)

په هغه ورځ چې تاسي هغه وويئ، حال به دا وي چې هره تی وركوونكي به له خپل تي رودي ماشوم څخه غافله شي، او هره حامله به خپل حمل وغورځوي، او خلك به تاته بېسده ښكاره شي ، پداسي حال كښې چې هغوی به نشه نه وي بلكې دالله عذاب به ډېر سخت وي

یَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّاۤ اَرْضَعَتْ وَ تَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَ تَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى وَ مَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَ لٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِیْدٌ (۲)

ځيني خلك داسي دي چې بې علمه د الله په باب خبرې اړوي را اړوي او د هر سر كښه شيطان پيروي كوي،

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ یُّجَادِلُ فِی اللّٰهِ بِغَیْرِ عِلْمٍ وَّ یَتَّبِعُ كُلَّ شَیْطٰنٍ مَّرِیْدٍ ۙ(۳)

پداسي حال كښې چې د هغه په برخه كښې داليكلي دي چې څوك چې هغه دوست ونيسي نو هغه به يې ګمراه كړي او د دوزخ د عذاب لاره به ورو ښيي

كُتِبَ عَلَیْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ یُضِلُّهٗ وَ یَهْدِیْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِیْرِ (۴)

ای خلكو ! كه د مرګ نه وروسته ژوندانه په باب ستاسي څه شك وي نو تاسي ته دې ښكاره وي چې مونږ تاسي له خاورې نه پيدا كړي يئ، بيا له نطفې نه ، بيا دويني له ټوټې نه، بيا د غوښي له بوټې نه چې شكل لروونكې هم وي او بې شكله هم (دامونږ ددې له پاره ښيو) تر څو چې تاسي ته حقيقت ښكاره كړو مونږ چې كومه(نطفه) وغواړو تر يوې ټاكلي مودې پورې يې په رحمونو كښي تم كړي ساتو، بيا تاسي د يو ماشوم په بڼه راباسو (بيا ستاسي روزنه پالنه كوو) تر څو چې تاسي خپلې بشپړې ځوانی ته ورسېږئ.او له تاسي نه څوك د مخه بېرته غوښتل كېږي او څوك د ډېر ناكاره عمر خواته ګرځول كېږي تر څو چې په هرڅه باندې له پوهېدونه وروسته بيا په هيڅ ونه پوهېږي. او ته وينې چې زمكه وچه كلكه پرته ده، بيا چې په كوم ځای كښې مونږ پر هغې باران ووروه په ناڅاپي ډول و خوځيده ډېره شوه او هر راز ښايسته ښېرازه نباتات يې راوبركول.

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّ غَیْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَیِّنَ لَكُمْ ؕ وَ نُقِرُّ فِی الْاَرْحَامِ مَا نَشَآءُ اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْۤا اَشُدَّكُمْ ۚ وَ مِنْكُمْ مَّنْ یُّتَوَفّٰى وَ مِنْكُمْ مَّنْ یُّرَدُّ اِلٰۤى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَیْلَا یَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَیْـًٔا ؕ وَ تَرَى الْاَرْضَ هَامِدَةً فَاِذَاۤ اَنْزَلْنَا عَلَیْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَ رَبَتْ وَ اَنْۢبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِیْجٍ (۵)

دا هرڅه له دې امله دي چې همدغه الله حق دی او هغه مړي ژوندي كوي او هغه په هرڅه قادر دی ،

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَ اَنَّهٗ یُحْیِ الْمَوْتٰى وَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۙ(۶)

اودا (ددې خبرې دليل دی)چې د قيامت ساعت راتلونکی دی، په هغه کښې د څه شك ګنجايش نشته، او الله به ارومرو هغه خلك راپاڅوي چې په قبرونو کښې دي.

وَّ اَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيۡبَ فِيۡهَا ۙ وَ اَنَّ اللّٰهَ يَبۡعَثُ مَنۡ فِى الۡقُبُوۡرِ (٧)

ځيني نور خلك داسې دي چې له کوم علم ، هدايت او روښنائي ښونکي کتاب نه پرته د خدای په باب شخړه کوي

وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ يُّجَادِلُ فِى اللّٰهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٍ وَّ لَا هُدًى وَّ لَا كِتٰبٍ مُّنِيۡرٍ ۙ(٨)

سرغړونه ددې لپاره کوي چې خلك د خدای له لارې نه واړوي.دداسې شخص له پاره په دنيا کښې رسوائي ده او د قيامت په ورځ به مونږ په هغه باندې داور د عذاب خوند وڅکو

ثَانِىَ عِطۡفِهٖ لِيُضِلَّ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ؕ لَهٗ فِى الدُّنۡيَا خِزۡىٌ وَّ نُذِيۡقُهٗ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ (٩)

داده ستا هغه اينده چې ستا خپلو لاسونو ستا له پاره تياره کړېده که نه نو الله پرخپلو بندګانو ظلم کوونکی نه دی.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتۡ يَدٰكَ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَيۡسَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِيۡدِ (١٠)

او په خلکو کښې څوك داسې دي چې په څنګ باندې په اوړېدو سره دالله بندګي کوي که ګټه يې تر لاسه شوه نوپرې ډاډه شو او چې کوم کړاوء پرې راغی نو پر بل مخ راوګرځېده د هغه دنيا هم لاړه او اخرت هم . دغه ده څرګنده خساره.

وَ مِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّعۡبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرۡفٍ ۚ فَاِنۡ اَصَابَهٗ خَيۡرُ ٮِۨاطۡمَاَنَّ بِهٖ ۚ وَ اِنۡ اَصَابَتۡهُ فِتۡنَةُ ٮِۨانۡقَلَبَ عَلٰى وَجۡهِهٖ ۚ خَسِرَ الدُّنۡيَا وَ الۡاٰخِرَةَ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الۡخُسۡرَانُ الۡمُبِيۡنُ (١١)

بيا هغه له الله نه پرته هغو هستيو ته بلنه ورکوي چې نه هغه ته زيان رسولی شي نه ګټه، دادګمراهی انتها ده

يَدۡعُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ وَ مَا لَا يَنۡفَعُهٗ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الۡبَعِيۡدُ (١٢)

هغوی هغه هستی بلې چې د هغو زيان د هغو له ګټې نه ډېر نژدې دی، ډېربد دی د هغه دوست او ډېر بد دی د هغه ملګري

يَدۡعُوۡا لَمَنۡ ضَرُّهٗۤ اَقۡرَبُ مِنۡ نَّفۡعِهٖ ؕ لَبِئۡسَ الۡمَوۡلٰى وَ لَبِئۡسَ الۡعَشِيۡرُ (١٣)

ددې برعکس ) الله هغه کسان چې ايمان يې راوړ او نيك عملونه ) يې وکړل، په يقيني ډول داسې جنتونو ته به يې ننباسي چې تر هغو لاندې به ويالی رواني وي .الله کوي هغه څه چې خوښه يې شي

اِنَّ اللّٰهَ يُدۡخِلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفۡعَلُ مَا يُرِيۡدُ (١٤)

څوك چې دا ګومان کوي چې الله به په دنيا او اخرت کښې د هغه (پيغمبر) سره څه مرسته ونکړي هغه ته په کار ده چې د يوې رسۍ په وسيله تر اسمانه ځان ورسوي، بيا دې غوڅه کړي، بيا دې وګوري چې ايا د هغه تدبير د يو داسې شي مخنيوی کولای شي چې د هغه بد يسی؟

مَنۡ كَانَ يَظُنُّ اَنۡ لَّنۡ يَّنۡصُرَهُ اللّٰهُ فِى الدُّنۡيَا وَ الۡاٰخِرَةِ فَلۡيَمۡدُدۡ بِسَبَبٍ اِلَى السَّمَآءِ ثُمَّ لۡيَقۡطَعۡ فَلۡيَنۡظُرۡ هَلۡ يُذۡهِبَنَّ كَيۡدُهٗ مَا يَغِيۡظُ (١٥)

له دغسې روښانه روښانه خبرو سره مونږ د غه قرآن نازل کړيدی او الله چې چاته وغواړي لاره ورښيي.

وَ كَذٰلِكَ اَنۡزَلۡنٰهُ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ يَهۡدِىۡ مَنۡ يُّرِيۡدُ (١٦)

کومو کسانو چې ايمان راوړ، او کوم کسان چې يهوديان شول ، او صابئيان ، او نصارا ، او مجوسيان،او کوم خلك چې مشرك شول ، الله به دهغو ټولو په مينځ کښې دقيامت په ورځ فيصله وکړي، الله په هر څه عالم او شاهد دی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ الَّذِيۡنَ هَادُوۡا وَ الصّٰبِئِيۡنَ وَ النَّصٰرٰى وَ الۡمَجُوۡسَ وَ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا ۖ اِنَّ اللّٰهَ يَفۡصِلُ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ (١٧)

ايا ته نه ويني چې د الله په وړاندې سر په سجده دي هغه ټول مخلوقات چې په اسمانونو کښې دي او هغه چې په زمکه کښې دي، لمر، سپوږمۍ،ستوري، غرونه، ونې، ځاروي، زياتره انسانان؟ او زياتره کسان د عذاب وړ ګرځېدلي دي او الله چې څوك ذليل او رسوا کړي هغه ته بيا کوم عزت ورکوونکی نشته، الله چې څه غواړي کوي يې.

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسۡجُدُ لَهٗ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَنۡ فِى الۡاَرۡضِ وَ الشَّمۡسُ وَ الۡقَمَرُ وَ النُّجُوۡمُ وَ الۡجِبَالُ وَ الشَّجَرُ وَ الدَّوَآبُّ وَ كَثِيۡرٌ مِّنَ النَّاسِ ؕ وَ كَثِيۡرٌ حَقَّ عَلَيۡهِ الۡعَذَابُ ؕ وَ مَنۡ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنۡ مُّكۡرِمٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَفۡعَلُ مَا يَشَآءُ (۱۸)

دا دوه ډلي چې دهغو په مينځ کښې د خپل رب په باب جګړه ده له دوينه هغه کسان چې کافر شويدي دهغو له پاره داور جامې ځکختې شويدي.، د هغو د سرونو د پاسه به خوټېدلي اوبه واړولای شي

هٰذٰنِ خَصۡمٰنِ اخۡتَصَمُوۡا فِىۡ رَبِّهِمۡ‌ۚ فَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا قُطِّعَتۡ لَهُمۡ ثِيَابٌ مِّنۡ نَّارٍ ؕ يُصَبُّ مِنۡ فَوۡقِ رُءُوۡسِهِمُ الۡحَمِيۡمُ (۱۹)

چې په هغو سره به يوازې د هغو پوټکي نه ٱن د ګېډې دننه برخه به يې وريت شي

يُصۡهَرُ بِهٖ مَا فِىۡ بُطُوۡنِهِمۡ وَ الۡجُلُوۡدُ (۲۰ؕ)

او دهغو د تعذيب له پاره به د اوسپنې ګروزونه وي

وَ لَهُمۡ مَّقَامِعُ مِنۡ حَدِيۡدٍ (۲۱)

کله چې هغوی د وارخطائی لامله له دوزخ نه دوتلو هڅه کوي بېرته په همغه کښې ټېل وهل کېږي چې وڅکئ اوس د سوځېدلو د عذاب خوند –

كُلَّمَاۤ اَرَادُوۡۤا اَنۡ يَّخۡرُجُوۡا مِنۡهَا مِنۡ غَمٍّ اُعِيۡدُوۡا فِيۡهَا * وَ ذُوۡقُوۡا عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ (۲۲)

بل پلوته)کومو خلکو چې ايمان راوړو او نيك عملونه يې وکړل الله ) به هغوی داسې جنتونو ته ننباسي چې تر هغو لاندې به ويالې بهېږي، هلته به هغوی د سرو زرو په بنګړيو او مرغلرو سره سينګار کړای شي. او د هغو جامې به په جنت کښې وريښميني وي ،

اِنَّ اللّٰهَ يُدۡخِلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ يُحَلَّوۡنَ فِيۡهَا مِنۡ اَسَاوِرَ مِنۡ ذَهَبٍ وَّ لُؤۡلُؤًا ؕ وَ لِبَاسُهُمۡ فِيۡهَا حَرِيۡرٌ (۲۳)

هغو ته د سپېڅلې وينا (لا اله الا الله) قبلولو هدايت په برخه شو او هغوته د ستايل شوي خدای لاره وښودله شوه.

وَ هُدُوۡۤا اِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الۡقَوۡلِ ۖۚ وَ هُدُوۡۤا اِلٰى صِرَاطِ الۡحَمِيۡدِ (۲۴)

کوم کسان چې کافر شول او کوم کسان چې (نن)دالله له لارې نه او د هغه مسجد حرام له زيارت کولو نه (خلك) منع کوی چې مونږ هغه د ټولو خلکو له پاره جوړ کړيدی چې په هغه کښې د هغه ځای داوسېدونکو او بهرنيو راتلونکو حقوق برابردي (د هغو چارچلند په يقينې ډول د سزاوړ دی ).يدغه (مسجد حرام) کښې چې هر څوك له ريښتينولی نه په انحراف کولو د ظلم لاره غوره کړي په هغه باندې به مونږ ددرد ناك عذاب خوند وڅکو.

اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا وَ يَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ الَّذِىۡ جَعَلۡنٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءَ ۨالۡعَاكِفُ فِيۡهِ وَ الۡبَادِ ؕ وَ مَنۡ يُّرِدۡ فِيۡهِ بِاِلۡحَادٍ ۢ بِظُلۡمٍ نُّذِقۡهُ مِنۡ عَذَابٍ اَلِيۡمٍ (۲۵)

يادکړه هغه وخت چې مونږ د ابراهيم (ع) له پاره ددغه کور (دکعبې د خونې ) ځای ټاکلی وء (له دې هدايت سره) چې ''له ماسره هېڅ شی مه شريکوه او زما کور د طواف کوونکو اوقيام او رکوع او سجده کوونکو له پاره پاك کړه،

وَ اِذۡ بَوَّاۡنَا لِاِبۡرٰهِيۡمَ مَكَانَ الۡبَيۡتِ اَنۡ لَّا تُشۡرِكۡ بِىۡ شَيۡـًٔا وَّ طَهِّرۡ بَيۡتِىَ لِلطَّآئِفِيۡنَ وَ الۡقَآئِمِيۡنَ وَ الرُّكَّعِ السُّجُوۡدِ (۲۶)

او خلکو ته د حج له پاره عمومي اعلان وکړه چې هغوی تاته له هر ليرې مزله نه پلي او پر اوښانوسپاره راشي.

وَ اَذِّنۡ فِى النَّاسِ بِالۡحَجِّ يَاۡتُوۡكَ رِجَالًا وَّ عَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاۡتِيۡنَ مِنۡ كُلِّ فَجٍّ عَمِيۡقٍ (۲۷)

تر څو هغه ګټې ووينې چې دلته د هغو له پاره موجودې دي او په څو ټاکليو ورځو کښې پر هغو ځاروېو باندې دالله نوم واخلي چې هغه ورته روزي کړيدي ، په خپله يې هم وخورئ او تنګلاسو محتاجانو ته يې هم ورکړئ ،

لِّيَشۡهَدُوۡا مَنَافِعَ لَهُمۡ وَ يَذۡكُرُوا اسۡمَ اللّٰهِ فِىۡۤ اَيَّامٍ مَّعۡلُوۡمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمۡ مِّنۡۢ بَهِيۡمَةِ الۡاَنۡعَامِ‌ۚ فَكُلُوۡا مِنۡهَا وَ اَطۡعِمُوا الۡبَآئِسَ الۡفَقِيۡرَ (۲۸)

بیادې خپل خیرې ګردونه ایسته کړي اوخپل نذرونه (واجبات) دې پوره کړي او ددغه لرغوني کور طواف دې وکړي

ثُمَّ لْيَقْضُوْا تَفَثَهُمْ وَ لْيُوْفُوْا نُذُوْرَهُمْ وَ لْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ (٢٩)

داوء(د کعبې جوړولو هدف) او څوك چې دالله دوضع کړېو حرمتونو درناوی وکړي نو داد هغه درب په نزد په خپله د هماغه له پاره ډېره غوره ده او ستاسي لپاره څاروي حلال وګرځول شول پرته له هغو شیانو څخه چې تاسي ته ښودل شویدي، نو دبتانو له پلیتې نه ځان وساتئ، له دروغو ویناوءنه ډډه وکړئ،

ذٰلِكَ * وَ مَنْ يُّعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ؕ وَ اُحِلَّتْ لَكُمُ الْاَنْعَامُ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَ اجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ (٣٠)

یوې خواته په مخ اړولو د الله مخلص بندګان شئ ، له هغه سره څوك مه شریکوئ او څوك چې له الله سره شریك ونیسي نوداسي وګڼه چې هغه له اسمانه راوغورځېده، اوس به یا هغه الوتونکی په الوزولو وتښتوي یابه یې باد داسي ځای ته یو سي وبه یې غورځوي چې هلته هغه تخوري تخوري لاړ شي

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ؕ وَ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ (٣١)

دغه ده اصلي موضوع (وربانديې پوه شئ) او څوك چې دالله د ټاکلیو شعایرو درناوی وکړي نو دادزړونو له پرهیزګاری څخه ده.

ذٰلِكَ * وَ مَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ (٣٢)

تاسي تر یوې ټاکلي مودې پورې له هغو(د هديي له څاروېو ) څخه د ګټې اخیستلو حق لرئ، بیا د هغو ( دقربانۍ) ځای د هماغه لرغوني کور سره دی.

لَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَا اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ (٣٣)

د هر امت لپاره مونږ د قربانۍ یوه کړنلاره ټاکلې ده تر څو چې (د هغه امت ) وګړي په هغو څاروېو باندې دالله نوم واخلي چې هغه ورته په برخه کړیدي (پدغو بې‌لابېلو لارو کښې هدف هماغه یو دی) نو ستاسي خدای ایکې یو دی او تاسي د هماغه د امر اطاعت وکړئ او ای پېغمبره زیری ورکړه د عاجزۍ چلند غوره کو ونکوته

وَ لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ؕ فَاِلٰـهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَلَهٗۤ اَسْلِمُوْا ؕ وَ بَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ (٣٤)

هغوی چې کله دالله ذکر اوري نو زړونه یې لړزېږي، هر کړاوءچې وربانديې راځي صبر وربانديې کوي ، لمونځ قائموي، او هغوته چې مونږ کومه روزي ورکړېده له هغې نه لګښت کوي

الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَ الصّٰبِرِيْنَ عَلٰى مَاۤ اَصَابَهُمْ وَ الْمُقِيْمِى الصَّلٰوةِ ۙ وَ مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ (٣٥)

او (د قربانۍ) اوښان مونږستاسي له پاره په شعائر الله کښې شامل کړیدي په هغو کښې ستاسي لپاره ښېګڼه ده نو هغه ودرویءدالله نوم وربانديې واخلئ او کله چې (له قربانۍ څخه وروسته) د هغو اړخونه په زمکه باندې پرېوځي نو له هغو نه یې په خپله هم و خورئ. اوپه هغو کسانو باندې یې هم وخورئ چې قناعت کوونکي دي اوپه هغوکسانو باندې هم چې خپله اړتیاو ړاندې کړي .دغه څاروي مونږ په همدې ډول ستاسي لپاره ایل کړیدي ترڅو چې تاسي شکر وباسئ

وَ الْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۚ فَاِذَا وَجَبَتْ جُنُوْبُهَا فَكُلُوْا مِنْهَا وَ اَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَ الْمُعْتَرَّ ؕ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (٣٦)

نه دهغو غوښې الله ته رسېږي او نه یې ویني ، مګر هغه ته ستاسي تقوی رسېږي هغه ستاسي لپاره څاروي ښکیل کړیدي ترڅوچې تاسي د الله په درکړې لارښوونه دالله په لوئی قائل شئ او ای پېغمبره ! نیکو کارانوته زیری ورکړه .

لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَ لَا دِمَآؤُهَا وَ لٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ؕ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ ؕ وَ بَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ (٣٧)

اِنَّ اللّٰہَ یُدٰفِعُ عَنِ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُحِبُّ کُلَّ خَوَّانٍ کَفُوۡرٍ (۳۸)

بېشکه چې الله له هغو کسانو څخه دفاع کوي چې ایمان یې راوړیدی دا یقیني ده چې الله هېڅ یوخائن د نعمت منکرنه خوښوي .

اُذِنَ لِلَّذِیۡنَ یُقٰتَلُوۡنَ بِاَنَّہُمۡ ظُلِمُوۡا ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ عَلٰی نَصۡرِہِمۡ لَقَدِیۡرُۨ (۳۹)

هغو کسانو ته اجازه ورکړه شوه چې دهغو پرخلاف په جګړه لاس پورې کېږي ، ځکه هغوی مظلومان دي او الله په یقیني ډول دهغو د ملاتړ وس لري

الَّذِیۡنَ اُخۡرِجُوۡا مِنۡ دِیَارِہِمۡ بِغَیۡرِ حَقٍّ اِلَّاۤ اَنۡ یَّقُوۡلُوۡا رَبُّنَا اللّٰہُ ؕ وَ لَوۡ لَا دَفۡعُ اللّٰہِ النَّاسَ بَعۡضَہُمۡ بِبَعۡضٍ لَّہُدِّمَتۡ صَوَامِعُ وَ بِیَعٌ وَّ صَلَوٰتٌ وَّ مَسٰجِدُ یُذۡکَرُ فِیۡہَا اسۡمُ اللّٰہِ کَثِیۡرًا ؕ وَ لَیَنۡصُرَنَّ اللّٰہُ مَنۡ یَّنۡصُرُہٗ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَقَوِیٌّ عَزِیۡزٌ (۴۰)

داهغه کسان دی چې له خپلو کورونو څخه په ناحقه وویستل شول یوازې پدې جرم چې هغوی وائي زمونږ رب الله دی که الله خلك یو دبل په وسیله دفع نکړي نو خانقاګاني ، کلیساګاني ، عبادتخاني او جوماتونه چې په هغو کښې دالله نوم ډېر زیات اخیستل کېږي ړول به ونړول شي .الله به ارومروله هغو کسانو سره مرسته وکړي چې د هغه مرسته وکړی ، الله ډېر زورور او برلاسی دی

اَلَّذِیۡنَ اِنۡ مَّکَّنّٰہُمۡ فِی الۡاَرۡضِ اَقَامُوا الصَّلٰوۃَ وَ اٰتَوُا الزَّکٰوۃَ وَ اَمَرُوۡا بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ نَہَوۡا عَنِ الۡمُنۡکَرِ ؕ وَ لِلّٰہِ عَاقِبَۃُ الۡاُمُوۡرِ (۴۱)

داهغه کسان دي چې که مونږ دوېته په ځمکه کښې قدرت ورکړو نو لمونځ به قایم کړی . زکات به ورکړی ، په ښوچاروبه امر وکړي اوله بدیونه به منع وکړي ، او دټولو چارورپای دالله په لاس کښې دی .

وَ اِنۡ یُّکَذِّبُوۡکَ فَقَدۡ کَذَّبَتۡ قَبۡلَہُمۡ قَوۡمُ نُوۡحٍ وَّ عَادٌ وَّ ثَمُوۡدُ (۴۲)

وَ قَوۡمُ اِبۡرٰہِیۡمَ وَ قَوۡمُ لُوۡطٍ (۴۳)

ای پېغمبره ! که دوې تادروغجن ګڼي نو له دوې نه مخکښې دنوح (ع) قوم ، عادیانو ، ثمودیانو ،

دابراهیم (ع) قوم ، دلوط (ع) قوم

وَّ اَصۡحٰبُ مَدۡیَنَ ۚ وَ کُذِّبَ مُوۡسٰی فَاَمۡلَیۡتُ لِلۡکٰفِرِیۡنَ ثُمَّ اَخَذۡتُہُمۡ ۚ فَکَیۡفَ کَانَ نَکِیۡرِ (۴۴)

او دمدین خلکو هم د دروغونسبتونه کړيدي او موسٰی ( ع) هم دروغجن ګڼل شویدی . دحق دغو ټولو منکرانوته مالومړی مهلت ورکړ ، بیا مې ونیول . او اوس وګورئ چې زما عذاب څنګه وء

فَکَاَیِّنۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ اَہۡلَکۡنٰہَا وَ ہِیَ ظَالِمَۃٌ فَہِیَ خَاوِیَۃٌ عَلٰی عُرُوۡشِہَا وَ بِئۡرٍ مُّعَطَّلَۃٍ وَّ قَصۡرٍ مَّشِیۡدٍ (۴۵)

څومره منحرفي سېمې دي چې مونږ هغه تباه کړیدي او نن هغه په خپلو چتونو باندې نسکورې پرتې دي ، څومر څاګاني شړې او څومره ماڼۍ کنډوالي شویدي

اَفَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ فَتَکُوۡنَ لَہُمۡ قُلُوۡبٌ یَّعۡقِلُوۡنَ بِہَاۤ اَوۡ اٰذَانٌ یَّسۡمَعُوۡنَ بِہَا ۚ فَاِنَّہَا لَا تَعۡمَی الۡاَبۡصَارُ وَ لٰکِنۡ تَعۡمَی الۡقُلُوۡبُ الَّتِیۡ فِی الصُّدُوۡرِ (۴۶)

ایا دوی په ځمکه کښې ګرځېدلي راګرځېدلي ندي چې زړونه یې پوهېدونکي او غوږونه یې اورېدونکي شوي وای؟حقیقت دادی چې سترګې نه ړندېږي خو هغه زړونه ړندېږي چې په سینوکښې دي .

وَ یَسۡتَعۡجِلُوۡنَکَ بِالۡعَذَابِ وَ لَنۡ یُّخۡلِفَ اللّٰہُ وَعۡدَہٗ ؕ وَ اِنَّ یَوۡمًا عِنۡدَ رَبِّکَ کَاَلۡفِ سَنَۃٍ مِّمَّا تَعُدُّوۡنَ (۴۷)

دوی پرتا د عذاب لپاره بیړه کوي الله به هیڅکله د خپلې وعدې نه تخلف ونکړي خو ستادرب په نزد یوه ورځ ستاسې په حساب له زروکلونوسره برابر ېږي

وَ کَاَیِّنۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ اَمۡلَیۡتُ لَہَا وَ ہِیَ ظَالِمَۃٌ ثُمَّ اَخَذۡتُہَا ۚ وَ اِلَیَّ الۡمَصِیۡرُ (۴۸)

څومره سیمې دي چې ظالمې وې ، ماهغوته لومړی مهلت ورکړ، بیا مې ونیولې ،او دټولوبېرته ماته راتګ دی

ای محمده ! (ص) ووایه چي ای خلکو ! زه خو ستاسي لپاره یوازنی هغه سړی یم چي ( دبدي ورځي له راتګ نه مخکښي په ډاګه ځرګنده خبروونکی یم .

قُلۡ یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ اِنَّمَاۤ اَنَا لَکُمۡ نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ (۴۹)

نوکوم کسان چي ایمان راوړي اوښه عملونه وکړي دهغو لپاره ښښنه ده ، او پتمنه روزي

فَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَہُمۡ مَّغۡفِرَۃٌ وَّ رِزۡقٌ کَرِیۡمٌ (۵۰)

او کوم کسان چي زمونږ دایتونو د مغلوب ښودلو هڅه وکړي هغوی د دوزخ ملګري دی.

وَ الَّذِیۡنَ سَعَوۡا فِیۡۤ اٰیٰتِنَا مُعٰجِزِیۡنَ اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَحِیۡمِ (۵۱)

اوای محمده ! (ص) له تانه مخکښي مونږ نه کوم رسول داسي لیږلی دی او نه نبی (چي له هغه سره دغه معامله نه وي رامینځ ته شوی چي ) کله چي هغه تمنا وکړه ، شیطان دهغه په تمناکښي خلل واچوه ،نو شیطان چي هرڅه خلل اچوي الله هغه له مینځه وړي او خپل ایتونه محکموي ، الله د علم اوحکمت لرونکی دی

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِکَ مِنۡ رَّسُوۡلٍ وَّ لَا نَبِیٍّ اِلَّاۤ اِذَا تَمَنّٰۤی اَلۡقَی الشَّیۡطٰنُ فِیۡۤ اُمۡنِیَّتِہٖ ۚ فَیَنۡسَخُ اللّٰہُ مَا یُلۡقِی الشَّیۡطٰنُ ثُمَّ یُحۡکِمُ اللّٰہُ اٰیٰتِہٖ ؕ وَ اللّٰہُ عَلِیۡمٌ حَکِیۡمٌ (۵۲)

ترڅوچي دشیطان تخریب دهغو خلکو لپاره ( هغه ځکه داسي کوي ) ناروغي (فتنه وګرځوي چي دهغوپه زړونو کښي ( دمنافقت لګېدلي ده او دهغولپاره چي زړونه یي فاسد دي حقیقت دادی چي دغه ظالمان په دښمنی کښي له حقه ډېر لیرې شویدي

لِّیَجۡعَلَ مَا یُلۡقِی الشَّیۡطٰنُ فِتۡنَۃً لِّلَّذِیۡنَ فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ وَّ الۡقَاسِیَۃِ قُلُوۡبُہُمۡ ؕ وَ اِنَّ الظّٰلِمِیۡنَ لَفِیۡ شِقَاقٍۭ بَعِیۡدٍ (۵۳)

اوله علم څخه برخه لرونکي خلك وپوهېږي چي داحق دی ستا درب له لوري او هغوی وربانديې ایمان راوړي او دهغو زړونه د ده په وړانديې ښکته شي ، بېشکه الله ایمان راوړونکوته تل سمه لاره ښیي .

وَّ لِیَعۡلَمَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ اَنَّہُ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّکَ فَیُؤۡمِنُوۡا بِہٖ فَتُخۡبِتَ لَہٗ قُلُوۡبُہُمۡ ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ لَہَادِ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ (۵۴)

انکار کوونکي خوبه همداسي دهغه له پلوه په شك کښي پاتې وي تردې پورې چي یاخوپر هغو باندې په ناڅاپي ډول دقیامت ساعت راشي یادیوې شومې ورځي عذاب پرې نازل شي

وَ لَا یَزَالُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا فِیۡ مِرۡیَۃٍ مِّنۡہُ حَتّٰی تَاۡتِیَہُمُ السَّاعَۃُ بَغۡتَۃً اَوۡ یَاۡتِیَہُمۡ عَذَابُ یَوۡمٍ عَقِیۡمٍ (۵۵)

په هغه ورځ به باچائی یوازې دالله وي .او هغه به د دوی په مینځ کښي پرېکړه وکړي کوم کسان چي موءمنان او دغوره عملونوخاوندان وي هغوی به په نعمت ډکوجنتونوته لاړشي

اَلۡمُلۡکُ یَوۡمَئِذٍ لِّلّٰہِ ؕ یَحۡکُمُ بَیۡنَہُمۡ ؕ فَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِیۡ جَنّٰتِ النَّعِیۡمِ (۵۶)

او کوم کسان چي کافر شوي وي اوزمونږ ایتونه یي دروغ ګڼلي وي دهغو لپاره به رسوا کوونکی عذاب وي

وَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ کَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَا فَاُولٰٓئِکَ لَہُمۡ عَذَابٌ مُّہِیۡنٌ (۵۷)

اوکوموکسانو چي دالله په لاره کښي هجرت وکړ ، بیاو وژل شول یا په خپل مرګ مړه شول ، الله به هغوته غوره روزي ورکړي ، او بېشکه یوازې الله ډېر ښه روزي ورکوونکی دی

وَ الَّذِیۡنَ ہَاجَرُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ ثُمَّ قُتِلُوۡۤا اَوۡ مَاتُوۡا لَیَرۡزُقَنَّہُمُ اللّٰہُ رِزۡقًا حَسَنًا ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ لَہُوَ خَیۡرُ الرّٰزِقِیۡنَ (۵۸)

هغوی به داسي ځای ته ننباسي چي هغوی وربانديې خوشحاله شي بېشکه الله دپوهې او زغم څښتن دی

لَیُدۡخِلَنَّہُمۡ مُّدۡخَلًا یَّرۡضَوۡنَہٗ ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ لَعَلِیۡمٌ حَلِیۡمٌ (۵۹)

داخو دی دهغوی حال ، او څوك چي غچ واخلي ، هماغسي لکه چي له هغه سره وشول اوبیا پرهغه زیاتی وشي، نو الله به له هغه سره ارومرو مرسته وکړي الله معافی کوونکی او ښنونکی دی .

ذٰلِکَ ۚ وَ مَنۡ عَاقَبَ بِمِثۡلِ مَا عُوۡقِبَ بِہٖ ثُمَّ بُغِیَ عَلَیۡہِ لَیَنۡصُرَنَّہُ اللّٰہُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَعَفُوٌّ غَفُوۡرٌ (۶۰)

داد دې لپاره چي الله شپه په ورځ کښي او ورځ په شپه کښي ننباسي او الله اورېدونکی اولیدونکی دی

ذٰلِکَ بِاَنَّ اللّٰہَ یُوۡلِجُ الَّیۡلَ فِی النَّہَارِ وَ یُوۡلِجُ النَّہَارَ فِی الَّیۡلِ وَ اَنَّ اللّٰہَ سَمِیۡعٌۢ بَصِیۡرٌ (۶۱)

ذٰلِکَ بِاَنَّ اللّٰہَ ہُوَ الۡحَقُّ وَ اَنَّ مَا یَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِہٖ ہُوَ الۡبَاطِلُ وَ اَنَّ اللّٰہَ ہُوَ الۡعَلِیُّ الۡکَبِیۡرُ (۶۲)

داد دې لپاره چې يوازې الله حق دی او هغه ټول باطل دي چې دوی هغوی ته له الله نه پرته بلنه ورکوي اويوازې الله لوړ اولوی دی

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰہَ اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۫ فَتُصۡبِحُ الۡاَرۡضُ مُخۡضَرَّۃً ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَطِیۡفٌ خَبِیۡرٌ (۶۳)

اياته نه ګورې چې الله له اسمانه اوبه وروي او دهغوپه برکت زمکه زرغونېږي ؟حقيقت دادې چې هغه لطيف او باخبره دی

لَہٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ لَہُوَ الۡغَنِیُّ الۡحَمِیۡدُ (۶۴)

ټول هغه څه د همغه دي چې په اسمانونوکښې دي او څه چې په ځمکه کښې دي بېشکه همغه الله بې نيازه او ستايل شويدی

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰہَ سَخَّرَ لَکُمۡ مَّا فِی الۡاَرۡضِ وَ الۡفُلۡکَ تَجۡرِیۡ فِی الۡبَحۡرِ بِاَمۡرِہٖ ؕ وَ یُمۡسِکُ السَّمَآءَ اَنۡ تَقَعَ عَلَی الۡاَرۡضِ اِلَّا بِاِذۡنِہٖ ؕ اِنَّ اللّٰہَ بِالنَّاسِ لَرَءُوۡفٌ رَّحِیۡمٌ (۶۵)

اياته نه وينې چې الله ټول هغه څه ستاسې لپاره ايل کړيدي چې په ځمکه کښې دي ، او همغه بېړۍ د قانون تابع کړېده چې د هغه په حکم په سمندر کښې ګرځی راګرځي او همغه اسمان پداسې شان ساتي چې د هغه له اذن نه پرته هغه په ځمکه نشي راغورځېدلی ؟ واقعيت دادی چې الله د خلکو په حق کښې ډېر مهربان او نرمي کوونکی دی

وَ ہُوَ الَّذِیۡۤ اَحۡیَاکُمۡ ۫ ثُمَّ یُمِیۡتُکُمۡ ثُمَّ یُحۡیِیۡکُمۡ ؕ اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَکَفُوۡرٌ (۶۶)

همغه ذات دی چې تاسې ته يې ژوند دربښلی دی ، همغه تاسې ته مرګ درکوي او هماغه به تاسې بياراژوندي کړي ، په رېښتيا چې انسان ډېر زيات د حق منکر دی .

لِکُلِّ اُمَّۃٍ جَعَلۡنَا مَنۡسَکًا ہُمۡ نَاسِکُوۡہُ فَلَا یُنَازِعُنَّکَ فِی الۡاَمۡرِ وَ ادۡعُ اِلٰی رَبِّکَ ؕ اِنَّکَ لَعَلٰی ہُدًی مُّسۡتَقِیۡمٍ (۶۷)

مونږ دهرامت لپاره د عبادت يوه کړنلاره ټاکلې ده چې هغوی يې پيروي کوي ، نو ای محمده ! هغوی دې پدې باب له تاسره جګړه نکوي ته دخپل رب لورې ته بلنه ورکړه داباورې ده چې ته پرسمه برابره لاره يې

وَ اِنۡ جٰدَلُوۡکَ فَقُلِ اللّٰہُ اَعۡلَمُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ (۶۸)

او که هغوی له تا سره شخړه وکړي نو ووايه چې ((تاسې چې څه کوئ الله ته ښه معلوم دي ،

اَللّٰہُ یَحۡکُمُ بَیۡنَکُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ فِیۡمَا کُنۡتُمۡ فِیۡہِ تَخۡتَلِفُوۡنَ (۶۹)

الله به دقيامت په ورځ ستاسې په مينځ کښې دهغو ټولو خبرو پرېکړه وکړي چې تاسې پکښې اختلاف کوئ .

اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰہَ یَعۡلَمُ مَا فِی السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ اِنَّ ذٰلِکَ فِیۡ کِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِکَ عَلَی اللّٰہِ یَسِیۡرٌ (۷۰)

ايا ته نه پوهېږې چې داسمان او زمکې هر شی الله ته معلوم دي ؟ هر څه په يوکتاب کښې ثبت دي دالله لپاره داهېڅ ګرانه نده .

وَ یَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ مَا لَمۡ یُنَزِّلۡ بِہٖ سُلۡطٰنًا وَّ مَا لَیۡسَ لَہُمۡ بِہٖ عِلۡمٌ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِیۡنَ مِنۡ نَّصِیۡرٍ (۷۱)

دوی له الله نه پرته د هغه شي عبادت کوي چې دهغه لپاره نه هغه کوم سند نازل کړيدی او نه دوی په خپله د هغه په باب څه علم لري د دغو ظالمانو لپاره هېڅوك مرستندوی نشته .

وَ اِذَا تُتۡلٰی عَلَیۡہِمۡ اٰیٰتُنَا بَیِّنٰتٍ تَعۡرِفُ فِیۡ وُجُوۡہِ الَّذِیۡنَ کَفَرُوا الۡمُنۡکَرَ ؕ یَکَادُوۡنَ یَسۡطُوۡنَ بِالَّذِیۡنَ یَتۡلُوۡنَ عَلَیۡہِمۡ اٰیٰتِنَا ؕ قُلۡ اَفَاُنَبِّئُکُمۡ بِشَرٍّ مِّنۡ ذٰلِکُمۡ ؕ اَلنَّارُ ؕ وَعَدَہَا اللّٰہُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا ؕ وَ بِئۡسَ الۡمَصِیۡرُ (۷۲)

اوکله چې دوېته زمونږ روښانه څرګندايتونه اورول کېږي نوته ګورې چې د حق د منکرانو بڼې الوزي او داسې برېښي چې همدا اوس به هغوی پرهغو کسانو باندې ورټوپ کړي چې دوېته زمونږ ايتونه اوروي دوېته ووايه زه تاسې ته دروښيم چې له دېنه لازيات بدشی څه دی ؟ اور، الله دهغو کسانو په برخه کښې دهغه وعده کړېده چې د حق له منلو څخه انکار وکړي ، او هغه ډېر ناکاره هستوګنځی دی ،،

ای خلکو ! یو مثال راوړل کیږي په غور سره یې واورئ ، تاسي چي کوم معبودان له خدایه پرته بلئ که هغوی ټول په لاس یو کولو دیو مچ پیدا کول وغواړي نونه یې شي پیدا کولای بلکی که مچ له هغو څخه کوم شی وتښتوي نو هغوی هغه هم ورڅخه نشي راخلاصولی ، هم مرسته غوښتونکي کمزوري او هم هغه هستی کمزوري دي چي مرسته ورڅخه غوښتله کیږي

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّ لَوِ اجْتَمَعُوْا لَهٗ ؕ وَ اِنْ يَّسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْـًٔا لَّا يَسْتَنْقِذُوْهُ مِنْهُ ؕ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَ الْمَطْلُوْبُ (۷۳)

دغو کسانو دالله قدر په هغه شان ونه پیژنده لکه څنګه چي دهغه دپیژندلو حق دی ، واقعیت دادی چي دقوت او برلاسی څښتن خویوازی الله دی .

مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ (۷۴)

حقیقت دادی چي الله ( دخپلو فرمانونو لیږلو لپاره ) له پرښتونه هم پیغام رسوونکي ټاکي اوله انسانانونه هم یقیناً الله اورېدونکی او لیدونکی دی .

اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّ مِنَ النَّاسِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ (۷۵)

څه چي دهغو په وړاندې دي پرهغو باندې هم هغه پوهیږي او څه چي له هغونه پټ پناه دي په هغو باندې هم هغه خبر دی او ټولي چارې دهماغه لوري ته ورګرځول کیږي .

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ (۷۶)

ای موءمنانو ! رکوع اوسجده وکړئ ، دخپل رب بندګي وکړئ او ښې چارې سرته ورسوئ ښائي چي برى درپه برخه شي .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَ اسْجُدُوْا وَ اعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَ افْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (۷۷)

دالله په لارکښې همغسې جهاد وکړئ لکه څنګه چي د جهاد کولو حق دی . هغه تاسي د خپل کار لپاره غوره کړي یي او په دین کښې ئې پرتاسي څه تنګي نده راوستي ، ثابت اوسئ د خپل پلار ابراهیم پر ملت الله مخکښې هم ستاسي نوم ( مسلمان ) ایښی وء اوپدې ( قرآن ) کښې هم (ستاسي همدغه نوم دی ) ترڅو چي پیغمبرپرتاسي شاهدوي او تاسي پرخلکو شاهدان اوسئ نولمونځ قائم کړئ ، زکات ورکړئ اوپه الله پوري ځان مربوط کړئ ، هغه ستاسي مولا دی هغه ډېر غوره مولادی او ډېر غوره مرسستندوی

وَ جَاهِدُوْا فِى اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ ؕ هُوَ اجْتَبٰىكُمْ وَ مَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِى الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ ؕ مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ ؕ هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ ۙ۬ مِنْ قَبْلُ وَ فِيْ هٰذَا لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ وَ تَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ ۖۚ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ وَ اعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ ؕ هُوَ مَوْلٰىكُمْ ۚ فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَ نِعْمَ النَّصِيْرُ (۷۸)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

په باوري ډول هغو موءمنانو برى موندلی دی چي :

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ (۱)

په خپل لمانځه کښې عاجزي غوره کوي ،

الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ۙ (۲)

له عبثو څخه مخ اړوونکي وي

وَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ۙ (۳)

دزکات په کړنچارې عمل کوي

وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِلزَّكٰوةِ فٰعِلُوْنَ ۙ (۴)

دخپلو شرم ځایونو ساتنه کوي

وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ۙ (۵)

پرته له خپلو میړمنو او هغو ښځو څخه چي دهغو وینزې وي چي پرهغو باندې ( دشرم ځایونو په نه ساتنه کښې ) هغوی دپړکیدو وړندي ،

اِلَّا عَلٰۤى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ۚ (۶)

البته که څوك له هغې پرته نورڅه وغواړي همغوی زیاتی کوونکي دي.

فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ ۚ (۷)

دخپلو امانتونو او دخپلو ژمنو او تړونونو لحاظ ساتي .

وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَ عَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ۙ (۸)

او دخپلو لمونځونو ساتنه کوي

وَ الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَوٰتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ۘ (۹)

همدغه کسان هغه وارثان دي

أُولٰئِكَ هُمُ الْوٰرِثُوْنَ (١٠)

چې په میراث کښې به فردوس ومومي اوپه هغې کښې به دتل لپاره هستوګن وي .

الَّذِيْنَ يَرِثُوْنَ الْفِرْدَوْسَ ط هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (١١)

مونږ انسان له مکنې نرۍ ختې څخه جوړکړ ،

وَ لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ (١٢)

بيا موهغه په يو محفوظ ځای کښې په څڅېدلي څاڅکی تبديل کړ ،

ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ (١٣)

بيا موهغه څاڅکي ته د برغنډبنه ورکړه . بيا مو برغنډ بوټی وګرځوله ، بيا مو بوټی هډوکي جوړ کړل ، بيا مو هډوکوته غوښه ور واغوستله ، بيا موهغه يوبل مخلوق جوړ کړ، نو ډېر زيات برکتناك دی الله ،ترټولو پيدا کوونکو ښه پيدا کوونکی

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا * ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ ط فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ (١٤)

بياله هغه وروسته ارومرو ستاسي مړه کېدل دي ،

ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ (١٥)

بيا د قيامت په ورځ به په يقيني ډول تاسي راپاڅول شئ .

ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ (١٦)

او ستاسي دپاسه مونږ اوه لارې (اسمانونه ) پيدا کړی او مونږ له خپل مخلوق نه بې خبره نه يو

وَ لَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَآئِقَ * وَ مَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ (١٧)

او مونږ له اسمانه له صحيح حساب سره سمې په يوه ټاکلي اندازه اوبه واورولې او هغه موپه زمکه کښې تم کړې ، مونږ په باورې توګه د هغو (اوبو) په له منځه وړلو وسوال يو

وَ اَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ * وَ اِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ (١٨)

بيا د هغو اوبو په وسيله مونږ ستاسي لپاره د خرما وء او انګوروباغونه پيدا کړل ، ستاسي لپاره پدغو باغونو کښې ډېرې خوند ورې ميوې دي او له هغونه تاسي خورئ ،

فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّ اَعْنَابٍ ۘ لَكُمْ فِيْهَا فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّ مِنْهَا تَاْكُلُوْنَ (١٩)

او مونږ هغه ونه هم پيدا کړه چې له طور سينا نه راووځي ، تيل لري او دخوړونکو لپاره کتغ هم .

وَ شَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَ صِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ (٢٠)

او حقيقت دادی چې ستاسي لپاره په څاروېو کښې هم يو درس دی ، دهغو په ګېډوکښې چې څه دي له هماغونه مونږ يوشی په تاسی څښنو،او ستاسي لپاره په هغو کښې ډېرې نورې ګټې هم دي او تاسي هغه خورئ

وَ اِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ط نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا وَ لَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ وَّ مِنْهَا تَاْكُلُوْنَ (٢١)

اوپرهغواوبېړېو باندې تاسي سپرول کېږئ هم .

وَ عَلَيْهَا وَ عَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ (٢٢)

او مونږ نوح (ع) دهغه قوم ته ولېږه ، هغه وويل ( ای زما قومه ! دالله بندګي وکړئ ، له هغه پرته ستاسي لپاره کوم بل معبود نشته ، ايا تاسي نه وېرېږئ ؟)

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ط اَفَلَا تَتَّقُوْنَ (٢٣)

نو دهغه د قوم هغو سردار انو چې له منلونه يې انکار وکړوويل چې داسړی هېڅ ندی مګر يو بشردی ستاسي په څېر، د ده غوښتنه داده چې پرتاسي لوړ تياولري که الله لېږلی پرښته به يې لېږلې وه داخبره خو مونږ هېڅکله د خپل پلار نيکه په وختونوکښې له سره اورېدلې نده ( چې بشر د پېغمبر په توګه راشي ) .

فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا هٰذَا اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ط وَ لَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً ۚ مَّا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ (٢٤)

هېڅ نشته ، خبره داده چې په ده باندې دليونتوب حمله راغلې ده لږوخت نورهم ورته وګورئ (ښائي په سدشي ) ،،

اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌ بِهٖ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ (٢٥)

نوح (ع) وویل پروردګاره ! دغو خلکو چې زه دروغجن ګڼلی یم اوس همداته زما ملاتړ وکړه ،،

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ (۲۶)

مونږ هغه ته وحی وکړه چې زمونږ ترڅارنې لاندې او زمونږ له وحی سره سم بېړۍ جوړه کړه ، بیا کله چې زمونږ امر وشي او تنور وخوټېږي نوله هرډول څناورونه یوه یوه جوړه دوه دوه یو نر یوه ښځه درسره واخله په هغې کښې سپورشه ، او خپل اهل او کورنی هم درسره واخله له هغو کسانو څخه پرته چې دهغو پرخلاف مخکښې فیصله شوېده ، او د ظالمانو په باب ماته څه مه وایه ، دوی اوس غرقېدونکي دي

فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَ وَحْيِنَا فَاِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَ فَارَ التَّنُّوْرُ ۙ فَاسْلُكْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَ اَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۚ وَ لَا تُخَاطِبْنِيْ فِى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ (۲۷)

بیا کله چې ته له خپلو ملګرو سره په بېړۍ کښې سپورشوې نو ووایه هغه خدای ته شکر دی چې مونږته یې له ظالمانو څخه نجات راکړ ،

فَاِذَا اسْتَوَيْتَ اَنْتَ وَ مَنْ مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ نَجّٰنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ (۲۸)

اووایه پروردګاره ! ماپه برکتناك ځای کښې ښکته کړه او ته ډېرښه ځای ورکوونکی یې ،،

وَ قُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّ اَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ (۲۹)

پدې قصه کښې سترې نښانې دي او مونږ ازمېښت کوونکي یو

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ وَّ اِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِيْنَ (۳۰)

له هغو وروسته مونږ دیو بل دورقوم راپورته کړ .

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ (۳۱)

بیا مو په هغو کښې په خپله دهماغه قوم یو پېغمبر ولېږه ( چې هغوته بلنه ورکړه ) چې د الله بندګي وکړئ ، ستاسي لپاره له هغه پرته کوم بل معبود نشته ، ایا تاسي وېرېږئ نه؟

فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ (۳۲)

دهغه د قوم کومو مشرانو چې له منلونه انکار وکړ او داخرت راتګ یې دروغ وګڼه اوهغوی مونږ د دنیا په ژوندانه کې سوکاله ساتلي وو ، هغو وویل داسړی بل هیڅ ندی مګر ستاسي په څېر یوبشردی ، تاسي چې څه خورئ دی هماغه خوري او تاسي چې څه څښئ دی هماغه څښي .

وَ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَ اَتْرَفْنٰهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يَاْكُلُ مِمَّا تَاْكُلُوْنَ مِنْهُ وَ يَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُوْنَ (۳۳)

اوس که تاسي د خپل ځان په څېر د یو بشر اطاعت ومانه نو تاسي په زیان کښې ولوېدلئ

وَ لَئِنْ اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ (۳۴)

ایادی تاسي ته خبر درکوي چې کله تاسي مړه او خاورې شئ او دهډوکو ډېرئ درڅخه جوړه شي په هغه وخت کښې به تاسي ( له قبرونو څخه ) راوویستل شئ؟

اَيَعِدُكُمْ اَنَّكُمْ اِذَا مِتُّمْ وَ كُنْتُمْ تُرَابًا وَّ عِظَامًا اَنَّكُمْ مُّخْرَجُوْنَ (۳۵)

لیرې ده ، بیخي لیرې دغه وعده چې له تاسي سره کېږي

هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ (۳۶)

ژوند نورڅه ندی مګر یوازې دهمدې دنیا ژوند دی همدلته مرو او ژوندي کېږو او مونږ هېڅکله راپاڅول کېدونکي نه یو.

اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَ نَحْيَا وَ مَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ (۳۷)

دغه سړی د خدای په نوم باندې محضې دروغ جوړوي او مونږ هېڅکله د ده منونکي نه یو

اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلُ ِۨ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا وَّ مَا نَحْنُ لَهٗ بِمُؤْمِنِيْنَ (۳۸)

پېغمبروویل پروردګاره! دغو خلکو چې زه دروغجن ګڼلی یم اوس همداته زما مرسته وکړه ،،

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ (۳۹)

الله وفرمایل: نژدې دی هغه وخت چې کله دوی په خپلو کړوپښېمانه شي

قَالَ عَمَّا قَلِيْلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نٰدِمِيْنَ (۴۰)

په پای کښي بېدوبرابر له حق سره سم یوې ستري چغې هغوی ونیول او مونږ هغوی نیزوږ وغوندې وغورځول ایسته دې وي ظالم قوم !

فَاَخَذَتۡهُمُ الصَّيۡحَةُ بِالۡحَقِّ فَجَعَلۡنٰهُمۡ غُثَآءً ۚ فَبُعۡدًا لِّلۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ (۴۱)

بیا مونږ له هغو وروسته نور قومونه راپورته کړل

ثُمَّ اَنۡشَاۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ قُرُوۡنًا اٰخَرِيۡنَ (۴۲ؕ)

هیڅ یو قوم نه له خپل وخت نه مخکښي له مینځه لاړ او نه له هغه وروسته واوسیدلی شو

مَا تَسۡبِقُ مِنۡ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَ مَا يَسۡتَاۡخِرُوۡنَ (۴۳ؕ)

بیا مونږ پرله پسی خپل پېغمبران ولېږل هر قوم ته چي په هر دور کي دهغو پېغمبر راغی هغه یې دروغجن وګڼه ، اومونږ له یو قوم نه وروسته بل قوم پرله پسي هلاك كړل ان تردې پورې چي هغوی موافساني وګرځولې نفرین پرهغو خلكو چي ایمان نه راوړي

ثُمَّ اَرۡسَلۡنَا رُسُلَنَا تَتۡرَا ؕ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوۡلُهَا كَذَّبُوۡهُ فَاَتۡبَعۡنَا بَعۡضَهُمۡ بَعۡضًا وَّ جَعَلۡنٰهُمۡ اَحَادِيۡثَ ۚ فَبُعۡدًا لِّقَوۡمٍ لَّا يُؤۡمِنُوۡنَ (۴۴)

بیا مونږ موسٰی او دهغه ورور هارون له خپلو نښانو او ښرګند سند سره ولېږل

ثُمَّ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰى وَ اَخَاهُ هٰرُوۡنَ ۙ بِاٰيٰتِنَا وَ سُلۡطٰنٍ مُّبِيۡنٍ (۴۵ۙ)

فرعون او د هغه د سلطنت اراكینو ته ، خو هغوی تكبروكړ او ځان ئې لوړ وګڼه

اِلٰى فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَا۟ئِهٖ فَاسۡتَكۡبَرُوۡا وَ كَانُوۡا قَوۡمًا عَالِيۡنَ (۴۶ۚ)

ویې ویل ایا مونږ د ځان غوندې دو وانسانانو باندې ایمان راوړ و؟او انسانان هم داسي چي د دوی قوم زمونږ بندګي كوونكی دی

فَقَالُوۡۤا اَنُؤۡمِنُ لِبَشَرَيۡنِ مِثۡلِنَا وَ قَوۡمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوۡنَ (۴۷ۚ)

نوهغوی دواړه یې دروغجن وګڼل او له هلاكېدونكو څخه وګرځېدل،

فَكَذَّبُوۡهُمَا فَكَانُوۡا مِنَ الۡمُهۡلَكِيۡنَ (۴۸)

او موسٰی ته مونږ كتاب وركړ ترڅو چي خلك ورڅخه هدایت ترلاسه كړي .

وَ لَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ لَعَلَّهُمۡ يَهۡتَدُوۡنَ (۴۹)

او د مریم زوی او دهغه مور مونږ یوه نښانه وګرځوله او هغوېته موپه یوه هسكه مېنه كښي ځای وركړ چي د ډاډیني ځای و ء او چیني پكښي بهېدلې .

وَ جَعَلۡنَا ابۡنَ مَرۡيَمَ وَ اُمَّهٗۤ اٰيَةً وَّ اٰوَيۡنٰهُمَاۤ اِلٰى رَبۡوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَّ مَعِيۡنٍ (۵۰)

ای پېغمبرانو ! پاك شیان وخورئ او نیك عمل وكړئ ، تاسي چي هر څه كوئ زه ورباندې ښه پوهېږم .

يٰۤاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوۡا مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَ اعۡمَلُوۡا صَالِحًا ؕ اِنِّىۡ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ عَلِيۡمٌ (۵۱ؕ)

او داستاسي امت یوامت دی او زه ستاسي رب یم ، نو له همدا ماڅخه ووېرېږئ .

وَ اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّ اَنَا رَبُّكُمۡ فَاتَّقُوۡنِ (۵۲)

خو وروسته خلكو خپل دین په خپلو مینځو كښي ټوټه ټوټه كړ له هرې ډلې سره چي څه دی هغوی په همغه خوشاله دي

فَتَقَطَّعُوۡۤا اَمۡرَهُمۡ بَيۡنَهُمۡ زُبُرًا ؕ كُلُّ حِزۡبٍۢ بِمَا لَدَيۡهِمۡ فَرِحُوۡنَ (۵۳)

ښه نو پر ېږده دوی چي په خپل غفلت كښي تریوې ټاكلې نېټې پورې ډوب وي .

فَذَرۡهُمۡ فِىۡ غَمۡرَتِهِمۡ حَتّٰى حِيۡنٍ (۵۴)

ایادوی داانګېري چي مونږچي په مالونواولادونوكښي له دوی سره مرستهكوو

اَيَحۡسَبُوۡنَ اَنَّمَا نُمِدُّهُمۡ بِهٖ مِنۡ مَّالٍ وَّ بَنِيۡنَ (۵۵ۙ)

نو ګویا دوی ته په ښېګڼوور كولو كښي اخته یو ؟ نه ، داصلي موضوع له دوی سره شعور نشته.

نُسَارِعُ لَهُمۡ فِى الۡخَيۡرٰتِ ؕ بَلۡ لَّا يَشۡعُرُوۡنَ (۵۶)

په حقیقت كښي هغه كسان چي دخپل رب له وېرې لړزېږي ،

اِنَّ الَّذِيۡنَ هُمۡ مِّنۡ خَشۡيَةِ رَبِّهِمۡ مُّشۡفِقُوۡنَ (۵۷ۙ)

وَ الَّذِيْنَ ہُمْ بِاٰيٰتِ رَبِّہِمْ يُؤْمِنُوْنَ (۵۸)

او هغه كسان چې د خپل رب پر ايتونو ايمان راوړي ،

وَ الَّذِيْنَ ہُمْ بِرَبِّہِمْ لَا يُشْرِكُوْنَ (۵۹)

او هغه كسان چې له خپل رب سره هېڅوك نه شريكوي

وَ الَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ مَا اٰتَوْا وَّ قُلُوْبُہُمْ وَجِلَۃٌ اَنَّہُمْ اِلٰى رَبِّہِمْ رٰجِعُوْنَ (۶۰)

او دهغو داحال دى چې وركوي هر څه چې وركوي او زړونه يې له دې فكر نه لړزېږي چې د خپل رب لورى ته زمونږ وركرځېدل دي ،

اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ وَ ہُمْ لَہَا سٰبِقُوْنَ (۶۱)

همدا ( خلك ) دښېګنو خواته ځغليدونكي او دمسابقې په كولو د هغو تر لاسه كوونكى دي

وَ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَہَا وَ لَدَيْنَا كِتٰبٌ يَّنْطِقُ بِالْحَقِّ وَ ہُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۶۲)

مونږ هيڅوك د هغه له وسى نه پورته نه په تكليف كوو ، او له مونږ سره يو كتاب دى چې ( دهر يوه دحال ) رېښتيا رېښتيا ښوونكى دى ، او پر خلكو به په هېڅ حال تيرى ونكړاى شي

بَلْ قُلُوْبُہُمْ فِىْ غَمْرَۃٍ مِّنْ ہٰذَا وَ لَہُمْ اَعْمَالٌ مِّنْ دُوْنِ ذٰلِكَ ہُمْ لَہَا عٰمِلُوْنَ (۶۳)

خو ددغو خلكو زړونه له دې موضوع نه په غفلت كښې دي ، او د دوى عملونه هم د هغې كړنلارې ( چې پاس يې يادونه شوېده ) پرخلاف دي دوى به خپلو دغو عملونوته دوام وركړي

حَتّٰٓى اِذَآ اَخَذْنَا مُتْرَفِيْہِمْ بِالْعَذَابِ اِذَا ہُمْ يَجْـَٔرُوْنَ (۶۴)

تر هغه پورې چې كله مونږ د دوى عياشان په عذاب كښې راګير كړونو بيا به دوى په ټندار وشي .

لَا تَجْـَٔرُوا الْيَوْمَ اِنَّكُمْ مِّنَّا لَا تُنْصَرُوْنَ (۶۵)

اوس ټندارې مه وهئ ، اوس به زمونږ له لورې تاسې ته څه مرسته درنكړه شي

قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِىْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ (۶۶)

زما ايتونه دراورول كېدل خو تاسې ( د پېغمبردغږ په اورېدلو ) په خپلو پوند وشاته تاوېدونكې تښېدلئ ،

مُسْتَكْبِرِيْنَ بِہٖ سٰمِرًا تَہْجُرُوْنَ (۶۷)

دخپل غرور له امله موهغه له سره په زړه كښې نه راوستله ، په خپلو وستلونو كښې موپرې دشپې تبصرې او قصې كولې .

اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ اَمْ جَآءَہُمْ مَّا لَمْ يَاْتِ اٰبَآءَہُمُ الْاَوَّلِيْنَ (۶۸)

نو ايا دې خلكو هېڅكله پدې كلام باندې غورندى كړى يا هغه ورته داسې څه راوړې دي چې هيڅكله ددوى اسلافوته نه وو راغلي ؟

اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا رَسُوْلَہُمْ فَہُمْ لَہٗ مُنْكِرُوْنَ (۶۹)

يا داچې دوى له خپل پېغمبر سره هېڅكله اشنانه وو چې (دنااشنا سړي په توګه ) له هغه نه ترېږي ؟

اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِہٖ جِنَّۃٌ بَلْ جَآءَہُمْ بِالْحَقِّ وَ اَكْثَرُہُمْ لِلْحَقِّ كٰرِہُوْنَ (۷۰)

يادوې د دې خبرې قايل دي چې هغه ليونى دى ؟ نه ، بلكې هغه ورته حق راوړېدى او ددوې زياترو حق بدېسى

وَ لَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ اَہْوَآءَہُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَ الْاَرْضُ وَ مَنْ فِيْہِنَّ بَلْ اَتَيْنٰہُمْ بِذِكْرِہِمْ فَہُمْ عَنْ ذِكْرِہِمْ مُّعْرِضُوْنَ (۷۱)

او كه چېرته حق د دوى په غوښتنو پسې تللى واى نو د اسمانونو اوځمكې او دهغو د هر څه نظام به ګډوډ شوى وء نه، بلكې مونږ د دوى خپل ذكر دوې ته راوړېدى او دوى له خپل ذكر څخه مخ اړوي .

اَمْ تَسْـَٔلُہُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّ ہُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ (۷۲)

ايا ته له دوېنه څه اجر غواړې ؟ ستالپاره ستادرب دركړه ډېره ښه ده او هغه ډېر ښه روزي دركوونكى دى

وَ اِنَّكَ لَتَدْعُوْہُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (۷۳)

ته خو دوې سمې لارې ته بلې ،

وَ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَۃِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنٰكِبُوْنَ (۷۴)

خوكوم كسان چې اخرت نه منى هغوى له سمې لارې نه اوښتل غواړې.

وَ لَوْ رَحِمْنٰہُمْ وَ كَشَفْنَا مَا بِہِمْ مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوْا فِىْ طُغْيَانِہِمْ يَعْمَہُوْنَ (۷۵)

كه مونږ پردوې رحم كړى واى او هغه كړاوء موايسته كړى واى چې دوى اوس په كښې اخته دى نو دوى به په خپله سركشى كښې بيخې زيات لا لهانده شوې وو.

د دوی حال دادی چې مونږ دوی په کړاوء اخته کړل ، بیا هم دوی د خپل رب په وړاندې سربښکته نکړ او نه یې عاجزي غوره کړه

وَ لَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ وَ مَا يَتَضَرَّعُوْنَ (۷۶)

البته کله چې د دی وار راشي چې مونږ پر دوی باندې د سخت عذاب دروازه پرانیزو نو ته به په ناڅاپي ډول وګورې چې پدې حالت کښې دوی له هرې ښېګڼې نه ناهیلي دي .

حَتّٰى اِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ اِذَا هُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ (۷۷)

هغه خو د همدا الله ذات دی چې تاسي ته یې داوریدلو اولیدلو قواوې درکړې او دفکر کولو زړه یې درکړ ، خو تاسي ډیر لږ شکر ویستونکي یاست .

وَ هُوَ الَّذِيْ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ الْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ (۷۸)

هماغه ذات دی چې تاسي یې په زمکه کښې خواره کړئ او دهماغه لوري ته به تاسي یوځای وروستل شئ .

وَ هُوَ الَّذِيْ ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ (۷۹)

هماغه ژوند ښښي او هماغه مرګ ورکوي دشپو ورځو اوړېدل را اوړېدل د هماغه د قدرت په لاس کښې دي ، ایا تاسي پدې خبره نه پوهېږئ ؟

وَ هُوَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَ يُمِيْتُ وَ لَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ وَ النَّهَارِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۸۰)

خو دوی هماغه څه وائي چې د دوی مخکېنیوویلي دي

بَلْ قَالُوْا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُوْنَ (۸۱)

دوی وائي ایا کله چې مونږ مړه او خاورې شو او دهډوکو ډېرئ وګرځو نو مونږ به بېرته ژوندي راپاڅول شو ؟

قَالُوْٓا ءَ اِذَا مِتْنَا وَ كُنَّا تُرَابًا وَّ عِظَامًا ءَ اِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ (۸۲)

مونږ هم دغه وعدې ډېرې اورېدلي دي اوله مونږ نه مخکښې زمونږ پلرونو نیکو نو هم اورېدلي دي ، دامحضې زړې کیسې دي .

لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَ اٰبَآؤُنَا هٰذَا مِنْ قَبْلُ اِنْ هٰذَآ اِلَّا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ (۸۳)

دوېته ووایه وواياست که پوهېږئ چې دغه ځمکه او دهغې هرڅه دچادي ؟

قُلْ لِّمَنِ الْاَرْضُ وَ مَنْ فِيْهَآ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۸۴)

دوی به ارومرو ووائي دالله ، ووایه ، نو بیا تاسي ولې نه په خود کېږئ؟

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ؕ قُلْ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ (۸۵)

له دوېنه پوښتنه وکړه داوواسمانونو اوستر عرش څښتن څوك دی ؟

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ (۸۶)

دوی به ارومرو ووائي الله : ووایه نو تاسي ولې نه وېرېږئ ؟

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ؕ قُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ (۸۷)

ووایه دوی ته وواياست که پوهېږئ دهر څه وس واك دچا په لاس کښې دی ؟ او څوك دی هغه ذات چې پناه ورکوي او دهغه په مقابله کښې هېڅوك پناه نشي ورکولی ؟

قُلْ مَنْۢ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّ هُوَ يُجِيْرُ وَ لَا يُجَارُ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۸۸)

دوی به ارومرو ووائي چې داخو یوازې دالله کار دی ووایه : نو بیا تاسي له کومې خوا کوډو وهلي غولول کېږئ ؟

سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ؕ قُلْ فَاَنّٰى تُسْحَرُوْنَ (۸۹)

کومه چې حقه خبره ده هغه مونږ د دوی مخې ته راوړې ده او هېڅ شك نشته چې دوی دروغجن دي .

بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِالْحَقِّ وَ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ (۹۰)

الله هېڅوك خپل اولاد ندی نیولی ، او له هغه سره کوم بل خدای نشته که داسي وای نو هر خدای به خپل مخلوق رااخیستی بېل شوی به وء او بیا به یې یو پر بل باندې برلاسي کوله الله له دغو خبرونه پاك دی چې دوی یې جوړوي .

مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنْ وَّلَدٍ وَّ مَا كَانَ مَعَهٗ مِنْ اِلٰهٍ اِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ اِلٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ وَ لَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوْنَ (۹۱)

په ښکاره وء اوپټو پوهېدونکی دی الله له هغه شرك نه ډېر لوړ دی چې دوی يې کوي .

عٰلِمِ الۡغَيۡبِ وَ الشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰی عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ (۹۲)

ای محمده ! دعا وکړه چې پروردگاره ! دکوم عذاب چې دوېته اخطار ورکول کېږي که ته هغه زما په موجوديت کښې پرې راولې ،

قُلۡ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّیۡ مَا يُوۡعَدُوۡنَ (۹۳)

نو ای زما ربه! ماېدې ظالمانو کښې مه شامله .

رَبِّ فَلَا تَجۡعَلۡنِیۡ فِی الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ (۹۴)

او حقيقت دادی چې مونږ ستا تر نظر لاندې د هغه شي دراوستلو پوره قدرت لروچې دهغه اخطار مونږ دوېته ورکوو .

وَ اِنَّا عَلٰی اَنۡ نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمۡ لَقٰدِرُوۡنَ (۹۵)

ای محمده ! دبدئ مخنيوی په هغه توگه وکړه چې ډېره ښه وي ، کومې خبرې چې هغوې په تاپورې تړي هغه مونږ ته ښې څرگندې دي

اِدۡفَعۡ بِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ السَّيِّئَةَ ؕ نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَا يَصِفُوۡنَ (۹۶)

او دعا وکړه چې پروردگاره ! زه د شيطانانو له هڅونو څخه تاته پناه دروړم ،

وَ قُلۡ رَّبِّ اَعُوۡذُ بِكَ مِنۡ هَمَزٰتِ الشَّيٰطِيۡنِ (۹۷)

بلکې ای زما ربه ! زه خو له دې نه هم پناه غواړم چې هغوې ماته راشي ،،

وَ اَعُوۡذُ بِكَ رَبِّ اَنۡ يَّحۡضُرُوۡنِ (۹۸)

داخلك به له خپلو کړو وړونه لاس وانخلي ) ترد ې پورې چې کله ) له دوې نه کوم يوه ته مرگ راشي نو وبه وائي چې ای زما ربه : ما همغې دنيا ته بېرته ولېږ ه چې زه ورنه راغلی يم ،

حَتّٰٓی اِذَا جَآءَ اَحَدَهُمُ الۡمَوۡتُ قَالَ رَبِّ ارۡجِعُوۡنِ (۹۹)

هيله منديم چې زه اوس په شاته پريښې دنيا کې ښه عمل وکړم هېڅکله نه،داخوصرف يوه خبره ده چې هغه يې بابېزه وائي اوس د دې ټولو(مړه کېدونکو ترشاددوهم ژوندانه ترورځې پورې يوه پرده خنډ ده.

لَعَلِّیۡۤ اَعۡمَلُ صَالِحًا فِيۡمَا تَرَكۡتُ كَلَّا ؕ اِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ؕ وَ مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ بَرۡزَخٌ اِلٰی يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ (۱۰۰)

نوځنگه چې شپېلۍ پوکړای شوه ، بيا به په هغه ورځ ددوې په مينځ کښې کومه خپلولي پاتې نشي او نه به دوې يوله بل نه پوښتنه وکړي

فَاِذَا نُفِخَ فِی الصُّوۡرِ فَلَاۤ اَنۡسَابَ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَئِذٍ وَّ لَا يَتَسَآءَلُوۡنَ (۱۰۱)

په هغه وخت کښې چې دچا پله درنه وي هماغوی به بری ومومي ،

فَمَنۡ ثَقُلَتۡ مَوَازِيۡنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ (۱۰۲)

او دچا چې پله سپکه وي هماغه کسان به وي چې خپل ځانونه يې په زيان کښې وغورځول ، هغوی به په دوزخ کښې د تل لپاره اوسېږي،

وَ مَنۡ خَفَّتۡ مَوَازِيۡنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ فِیۡ جَهَنَّمَ خٰلِدُوۡنَ (۱۰۳)ۚ

اوربه دهغو دمخونو پوستکی وريت کړی او دهغو ژامې به لغړې راووځي

تَلۡفَحُ وُجُوۡهَهُمُ النَّارُ وَ هُمۡ فِيۡهَا كٰلِحُوۡنَ (۱۰۴)

ايا تاسې همغه خلك نه ئې چې زما ايتونه درته اورول کېدل خو تاسې هغه دروغ گڼل ؟

اَلَمۡ تَكُنۡ اٰيٰتِیۡ تُتۡلٰی عَلَيۡكُمۡ فَكُنۡتُمۡ بِهَا تُكَذِّبُوۡنَ (۱۰۵)

هغوی به ووائي ای زمونږ ربه ! زمونږ بدبختي پرمونږ خوره شوې وه په ريښتيا چې مونږ گمراه خلك وو .

قَالُوۡا رَبَّنَا غَلَبَتۡ عَلَيۡنَا شِقۡوَتُنَا وَ كُنَّا قَوۡمًا ضَآلِّيۡنَ (۱۰۶)

ای پروردگاره ! اوس مونږ له دې ځايه وباسه که بيا مونږ داسې قصور وکړ نو ظالمان به يو

رَبَّنَاۤ اَخۡرِجۡنَا مِنۡهَا فَاِنۡ عُدۡنَا فَاِنَّا ظٰلِمُوۡنَ (۱۰۷)

الله تعالٰی به ځواب ورکړي زماله مخې ليرې شئ په همغه کښې پراته اوسئ او له ماسره خبرې مکوئ

قَالَ اخۡسَـُٔوۡا فِيۡهَا وَ لَا تُكَلِّمُوۡنِ (۱۰۸)

تاسې خو هماغه خلك يئ چې زما ځينو بندګانوچې کله ويل چې ای زمونږ پروردګاره ! مونږ ايمان راوړ ، مونږ ته ببنه وکړه پرمونږ رحم وکړه ته ترټولو رحم کوونکو څخه زيات رحيم يې ،

اِنَّہٗ کَانَ فَرِیۡقٌ مِّنۡ عِبَادِیۡ یَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَاۤ اٰمَنَّا فَاغۡفِرۡ لَنَا وَ ارۡحَمۡنَا وَ اَنۡتَ خَیۡرُ الرّٰحِمِیۡنَ (۱۰۹)ۚۖ

نو تاسې په هغوپورې مسخرې وکړې ، تردې پورې چې دهغو دښمنۍ له تاسې نه زما ياد هېر کړ، او تاسې په هغو (مسلمانانو) پورې خندل

فَاتَّخَذۡتُمُوۡہُمۡ سِخۡرِیًّا حَتّٰۤی اَنۡسَوۡکُمۡ ذِکۡرِیۡ وَ کُنۡتُمۡ مِّنۡہُمۡ تَضۡحَکُوۡنَ (۱۱۰)

نن ماد هغود هغه صبر دغه ميوه ورکړېده چې همغوې بريالي دي

اِنِّیۡ جَزَیۡتُہُمُ الۡیَوۡمَ بِمَا صَبَرُوۡۤا ۙ اَنَّہُمۡ ہُمُ الۡفَآئِزُوۡنَ (۱۱۱)

بيا به الله تعالٰی له هغو (کافرانو) نه پوښتنه وکړي ووايئ تاسې په ځمکه کښې څومره کلونه واوسېدلئ ؟

قٰلَ کَمۡ لَبِثۡتُمۡ فِی الۡاَرۡضِ عَدَدَ سِنِیۡنَ (۱۱۲)

هغوی به ووائي مونږ يوه ورځ ياديوې ورځې يوڅه برخه هلته اوسېدلي يو ، له شمارکوونکو څخه پوښتنه وکړه

قَالُوۡا لَبِثۡنَا یَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ یَوۡمٍ فَسۡئَلِ الۡعَآدِّیۡنَ (۱۱۳)

وبه وايي: لږ وخت واوسېدلئ ، کاشکې تاسې پدې باندې په هغه وخت کښې پوهيدلای .

قٰلَ اِنۡ لَّبِثۡتُمۡ اِلَّا قَلِیۡلًا لَّوۡ اَنَّکُمۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۱۱۴)

ايا تاسې انګېرلې وه چې مونږ تاسې بابېزه پيدا کړي ياست او زمونږ لوري ته ستاسې هېڅکله راګرځېدل نشته ؟

اَفَحَسِبۡتُمۡ اَنَّمَا خَلَقۡنٰکُمۡ عَبَثًا وَّ اَنَّکُمۡ اِلَیۡنَا لَا تُرۡجَعُوۡنَ (۱۱۵)

نولوړ او پورته دی الله ، حقيقي باچا ، له هغه پرته بل هېڅ کوم خدای نشته ، دعزتمن عرش څښتن دی

فَتَعٰلَی اللّٰہُ الۡمَلِکُ الۡحَقُّ ۚ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ۚ رَبُّ الۡعَرۡشِ الۡکَرِیۡمِ (۱۱۶)

او څوك چې له خدای سره کوم بل معبود وبلي ، چې دهغه لپاره له هغه سره څه دليل نشته ، نو دهغه حساب د هغه له رب سره دی دغسې کافران هېڅکله نشي ژغورل کېدای.

وَ مَنۡ یَّدۡعُ مَعَ اللّٰہِ اِلٰـہًا اٰخَرَ ۙ لَا بُرۡہَانَ لَہٗ بِہٖ ۙ فَاِنَّمَا حِسَابُہٗ عِنۡدَ رَبِّہٖ ؕ اِنَّہٗ لَا یُفۡلِحُ الۡکٰفِرُوۡنَ (۱۱۷)

ای محمده ! ووايه زما ربه ببنه وکړه او رحم وکړه ، اوته ترټولو رحم کوونکو څخه ښه رحيم يې .

وَ قُلۡ رَّبِّ اغۡفِرۡ وَ ارۡحَمۡ وَ اَنۡتَ خَیۡرُ الرّٰحِمِیۡنَ (۱۱۸)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

دايو سورت دی چې مونږ دانازل کړيدی او دامونږ فرض کړيدی ، او پده کې مونږ روښانه روښانه لارښوونې نازل کړيدي ، چې تاسې درس واخلئ .

سُوۡرَۃٌ اَنۡزَلۡنٰہَا وَ فَرَضۡنٰہَا وَ اَنۡزَلۡنَا فِیۡہَاۤ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ لَّعَلَّکُمۡ تَذَکَّرُوۡنَ (۱)

زنا کاره ښځه او زناکار سړی ، له دواړو نه هر يو سل درُی ووهئ . او پردوی باندې د زړه سوې احساس دې دالله د دين په باب په تاسې کې نه پارېږي که تاسې پرالله تعالٰی او داخرت په ورځ باندې ايمان لرئ . او هغوته د سزاورکولو په وخت کښې دې د موءمنانو يوه ډله موجوده وي .

اَلزَّانِیَۃُ وَ الزَّانِیۡ فَاجۡلِدُوۡا کُلَّ وَاحِدٍ مِّنۡہُمَا مِائَۃَ جَلۡدَۃٍ ۪ وَّ لَا تَاۡخُذۡکُمۡ بِہِمَا رَاۡفَۃٌ فِیۡ دِیۡنِ اللّٰہِ اِنۡ کُنۡتُمۡ تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ ۚ وَ لۡیَشۡہَدۡ عَذَابَہُمَا طَآئِفَۃٌ مِّنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۲)

زنا کار نکاح نکوي ( يا نه دې کوي) مګر له زناکارې سره ياله مشرکې سره اوله زنا کارې سره نکاح نکوي ( يا نه دې کوي) مګر زناکار يا مشرك . او داحرامه کړای شوېده پر موءمنانو .

اَلزَّانِیۡ لَا یَنۡکِحُ اِلَّا زَانِیَۃً اَوۡ مُشۡرِکَۃً ۫ وَّ الزَّانِیَۃُ لَا یَنۡکِحُہَاۤ اِلَّا زَانٍ اَوۡ مُشۡرِکٌ ۚ وَ حُرِّمَ ذٰلِکَ عَلَی الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۳)

او څوك چې په پاك لمنوښځو باندې تورولګوي بيا څلور شاهدان تېرنکړي هغوی اتيا درُی ووهئ او دهغو شاهدي هېڅکله مه منئ ،او هغوی پخپله فاسقان دي ،

وَ الَّذِیۡنَ یَرۡمُوۡنَ الۡمُحۡصَنٰتِ ثُمَّ لَمۡ یَاۡتُوۡا بِاَرۡبَعَۃِ شُہَدَآءَ فَاجۡلِدُوۡہُمۡ ثَمٰنِیۡنَ جَلۡدَۃً وَّ لَا تَقۡبَلُوۡا لَہُمۡ شَہَادَۃً اَبَدًا ۚ وَ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡفٰسِقُوۡنَ ۙ(۴)

پرته له هغو خلکو څخه چې له دې حرکت نه وروسته توبه وباسي او ځان اصلاح کړي (نو ګناه به يې وبښل شي) الله غفوراو رحيم دی .

اِلَّا الَّذِيۡنَ تَابُوۡا مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ وَ اَصۡلَحُوۡا ۚ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۵)

او کوم کسان چې پر خپلو مېرمنو باندې تورلګوي اوله هغو سره پخپله دهغوله خپل ځان نه پرته نور شاهدان نه وي نوله هغو نه ديوتن شاهدي ( داده چې هغه ) څلور ځله په الله باندې په قسم خوړلو سره شاهدي ووائي چې هغه ( په خپل تور ويلو کښې ) رېښتونی دی

وَ الَّذِيۡنَ يَرۡمُوۡنَ اَزۡوَاجَهُمۡ وَ لَمۡ يَكُنۡ لَّهُمۡ شُهَدَآءُ اِلَّاۤ اَنۡفُسُهُمۡ فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمۡ اَرۡبَعُ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيۡنَ (۶)

او پنځم ځل ووائي چې پر هغه باندې دې دالله لعنت وي که هغه (په خپل تور ويلوکې ) دروغجن وي

وَ الۡخَامِسَةُ اَنَّ لَعۡنَتَ اللّٰهِ عَلَيۡهِ اِنۡ كَانَ مِنَ الۡكٰذِبِيۡنَ (۷)

اوله ښځې نه دسزا مخنيوی په دی ډول سره کيدای شي چې هغه څلور ځله په الله باندې په قسم خوړلوسره شاهدي ووهي چې دغه سړی ( په خپل تور ويلو کښې ) دروغجن دی .

وَ يَدۡرَؤُا عَنۡهَا الۡعَذَابَ اَنۡ تَشۡهَدَ اَرۡبَعَ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الۡكٰذِبِيۡنَ ۙ(۸)

او په پنځم ځل کښې ووائي چې پرهغې باندې دې دالله غضب وي که هغه ( په خپل تور ويلو کښې ) رېښتونی وي .

وَ الۡخَامِسَةَ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيۡهَاۤ اِنۡ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ (۹)

که پر تاسي خلکو دالله فضل او دهغه رحم نه وای او داخبره نه وای چې الله خورا ښه توبه قبلوونکی او دحکمت خاوند دی ، نو ( پر مېرمنو باندې د تور ويلو موضوع به تاسي په لوی کړکېچ کښې غورځولي وئ).

وَ لَوۡ لَا فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ وَ رَحۡمَتُهٗ وَ اَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيۡمٌ (۱۰)

کومو کسانو چې دغه بهتان جوړ کړيدی هغوی ستاسي له مينځ څخه يوه ډله ده . دغه پېښه د ځان په باب شرمه ګڼئ بلکې داهم ستاسي لپاره خير دی . چاچې په دې کښې هر څومره برخه واخيستله هغه هماغومره ګناه راغونډه کړه .او چا چې د دې مسوءليت لويه برخه په غاړه واخيستله دهغه لپاره خولوی عذاب دی .

اِنَّ الَّذِيۡنَ جَآءُوۡ بِالۡاِفۡكِ عُصۡبَةٌ مِّنۡكُمۡ ؕ لَا تَحۡسَبُوۡهُ شَرًّا لَّكُمۡ ؕ بَلۡ هُوَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ ؕ لِكُلِّ امۡرِیٍٴ مِّنۡهُمۡ مَّا اكۡتَسَبَ مِنَ الۡاِثۡمِ ۚ وَ الَّذِیۡ تَوَلّٰى كِبۡرَهٗ مِنۡهُمۡ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ (۱۱)

په کوم وخت کښې چې تاسي هغه اورېدلي وء په همغه وخت کې موءمنانو نارينه وء او موءمنو ښځو په خپله ولې ښه ګومان ونه کړاو ولې يې ونه ويل چې دا ښکاره بهتان دی ؟

لَوۡ لَاۤ اِذۡ سَمِعۡتُمُوۡهُ ظَنَّ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَ الۡمُؤۡمِنٰتُ بِاَنۡفُسِهِمۡ خَيۡرًا ۙ وَّ قَالُوۡا هٰذَاۤ اِفۡكٌ مُّبِيۡنٌ (۱۲)

هغوی ( دخپل تور داثبات لپاره ) څلور شاهدان ولې رانه وستل ؟ اوس چې هغوی .شاهدان نه راولي ، دالله په نزد همغوی دروغجن دی.

لَوۡ لَا جَآءُوۡ عَلَيۡهِ بِاَرۡبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ فَاِذۡ لَمۡ يَاۡتُوۡا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓـئِكَ عِنۡدَ اللّٰهِ هُمُ الۡكٰذِبُوۡنَ (۱۳)

که پرتاسي باندې په دنيا او اخرت کښې دالله فضل او رحم مهرباني نه وای نو په کومو خبروکې چې تاسي غورځېدلي وئ دهغو په مجازات کښې به لوی عذاب درته رسېدلی وء .

وَ لَوۡ لَا فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ وَ رَحۡمَتُهٗ فِى الدُّنۡيَا وَ الۡاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمۡ فِىۡ مَاۤ اَفَضۡتُمۡ فِيۡهِ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ (۱۴)

لږ ځيرشئ ، په هغه وخت کې تاسي څنګه سخته غلطي کوله ) ) چې کله ستاسي له يوې ژبې نه بلې ژبې ته دغه دروغ پرله پسې نقل کول او تاسي په خپلو خولو سره هغه څه ويل چې دهغه په باب تاسي څه علم نه درلود . تاسي دايوه عادي خبره ګڼله ، په داسي حال . کښې چې دالله په نزد داډېره لويه خبره وه

اِذۡ تَلَقَّوۡنَهٗ بِاَلۡسِنَتِكُمۡ وَ تَقُوۡلُوۡنَ بِاَفۡوَاهِكُمۡ مَّا لَيۡسَ لَكُمۡ بِهٖ عِلۡمٌ وَّ تَحۡسَبُوۡنَهٗ هَيِّنًا ‌ۖ وَّ هُوَ عِنۡدَ اللّٰهِ عَظِيۡمٌ (۱۵)

ولې تاسي د دې په اورېدلو سره ونه ويل چې : (( له موږ سره دغسي خبره له خولې څخه راويستل نه ښائېږي ، پاکي ده تا لره داخويولوی بهتان دی)).

وَ لَوۡ لَاۤ اِذۡ سَمِعۡتُمُوۡهُ قُلۡتُمۡ مَّا يَكُوۡنُ لَنَاۤ اَنۡ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ‌ۖ سُبۡحٰنَكَ هٰذَا بُهۡتَانٌ عَظِيۡمٌ (۱۶)

الله تاسي ته نصيحت كوي چي په اينده كښي هيڅكله داسي حركت ونه كړئ كه تاسي موءمنان ئي .

يَعِظُكُمُ اللّٰهُ اَنْ تَعُوْدُوْا لِمِثْلِهٖۤ اَبَدًا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٧)

الله تاسي ته روښانه روښانه هدايات دركوي او هغه پوه او حكمت لرونكى دى .

وَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (١٨)

كوم كسان چي غواړي چي د موءمنانو په ډله كښي فحشاء خوره كړي هغوى په دنيا او اخرت كښي د دردناك عذاب وړدي .الله پوهيږي او تاسي نه پوهيږئ .

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (١٩)

كه پرتاسي باندې دالله مهرباني او د هغه رحم او كرم نه واى او داخبره نه واى چي الله ډېر زيات نرمي كوونكى رحم كوونكى دى ( نو دغه شي به چي اوس اوس ستاسي په مينځ كښي خوركړاى شوى وء ډېرې ناوړه نتيجې مينځ ته راوړې وې ).

وَ لَوْ لَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهٗ وَ اَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (٢٠)

اى موءمنانو ! دشيطان پرنقش قدم مه ځئ ، هر څوك چي په شيطان پسي لاړ شي نو هغه خوبه ور ته د فحشاء او بدئ امر وكړي ، كه پر تاسي باندې دالله مهرباني او رحم او كرم نه واى نوله تاسي څخه هيڅ يونه شوتزكيه كېدلى . خو دالله چي هرچاته خوښه شي تزكيه كوي يې ،او الله اورېدونكى او پوهېدونكى دى .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ وَ مَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْكَرِ ؕ وَ لَوْ لَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا ۙ وَّ لٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ (٢١)

له تاسي نه چي كوم كسان د مالى وس او قدرت خاوندان دى هغوى دې د دې خبرې لوړه نه كوي چي له خپلوانو ، مسكينانو د خداى دلارې له مهاجرينو سره مرسته ونه كړي . هغوى بايد عفوه وكړي او ورڅخه تير دې شي. ايا تاسي نه غواړئ چي الله تاسي ته ښښنه وكړي؟ او دالله صفت دادى چي هغه ښنونكى مهربان دى .

وَ لَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَ السَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْۤا اُولِي الْقُرْبٰى وَ الْمَسٰكِيْنَ وَ الْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ وَ لْيَعْفُوْا وَ لْيَصْفَحُوْا ؕ اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٢٢)

كوم كسان چي پر پاك لمنونا خبرو موءمنو ښځو باندې تورونه تپى پر هغو باندې په دنيا او اخرت كښي لعنت وكړاى شو او دهغو لپاره لوى عذاب دى .

اِنَّ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ لُعِنُوْا فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ ۪ وَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (٢٣)

هغوى دې هغه ورځ نه هيروى چي كله دهغو خپلې ژبې او دهغو خپل لاسونه او پښې به دهغو په كړو وړو شاهدى ووهى .

يَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَ اَيْدِيْهِمْ وَ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (٢٤)

په هغه ورځ به الله تعالى هغه بدله هغوته بشپړه وركړي چي هغوى يې مستحق دي او ورته څرگنده به شي چي يوازې الله حق دى د رښتياوء رښتياو ښوونكى .

يَوْمَئِذٍ يُّوَفِّيْهِمُ اللّٰهُ دِيْنَهُمُ الْحَقَّ وَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ (٢٥)

نا پاكې ښځې دناپاكو نارينه وء لپاره دى او ناپاكه نارينه د ناپاكو ښځو لپاره . پاكې ښځې د پاكونارينه وء لپاره دي او پاك نارينه د پاكو ښځو لپاره . د دوى لمن له هغو خبرو څخه پاكه ده چي جوړ وونكى يې غوټه كوي ، د دوى لپاره ښښنه ده .اوښه روزي .

اَلْخَبِيْثٰتُ لِلْخَبِيْثِيْنَ وَ الْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيْثٰتِ ۚ وَ الطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَ الطَّيِّبُوْنَ لِلطَّيِّبٰتِ ۚ اُولٰٓئِكَ مُبَرَّءُوْنَ مِمَّا يَقُوْلُوْنَ ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ رِزْقٌ كَرِيْمٌ (٢٦)

اى موءمنانو ! له خپلو كورونو څخه پرته نوروكورونو ته ترهغه پورې مه ننوځئ .تر څوچي اجازه ترلاسه نه كړئ او پر كورنئ باندې سلام وانه چوئ داكړنلاره ستاسي لپاره ډېره ښه ده . ښائي چي تاسي به دې ته پاملرنه وكړئ .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَ تُسَلِّمُوْا عَلٰۤى اَهْلِهَا ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ (٢٧)

فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَا اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ لَكُمْ ۚ وَ اِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ (٢٨)

نو كه هلته موڅوك ونه ميندل نو مه ننوځئ ترڅوچي تاسي ته اجازه ونه شي .اوكه تاسي ته وويل شي چي بيرته وګرځئ نو بيرته لاړشئ ، داستاسي لپاره ډيره پاكه كړنلاره ده ، او تاسي چي څه كوئ الله وربانديښه پوهيږي .

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَ مَا تَكْتُمُوْنَ (٢٩)

البته ستاسي لپاره په دي كښي څه باك نشته چي داسي كورونوته ننوځئ چي دڅا دهستوګني ځاي نه وي او په هغه كښي ستاسي دګټي (پاكار) څه شی وي ، تاسي چي څه ښكاره كوئ او څه چي پټوئ په ټولو باندي الله پوهيږي.

قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَ يَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ؕ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ (٣٠)

ای پيغمبره! موءمنانو نارينه وء ته ووايه چي خپل نظر تركنترول لاندي وساتي او دخپلو شرمځيونو ساتنه وكړي ، دا دهغو لپاره ډيره پاكه كړنلاره ده ، هغوی چي څه كوي الله پری خبريږي .

وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَ لْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۪ وَ لَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْۤ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۪ وَ لَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ؕ وَ تُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (٣١)

او ای پيغمبره ! موءمنو ښځوته ووايه چي خپلي سترګي تركنترول لاندي وساتي . او دخپلو شرمځيونو ساتنه وكړي او خپله ځان جوړونه او سينګار دي نه ښكاره كوي پرته له هغه چي په خپله څرګند شي ، او پر خپلو سينو دي دخپلو پړونو پلوونه واچوي . هغوی دي خپله ځان جوړونه سينګارنه ښكاره كوي مګر د دي خلكو په وړاندي : ميړونه ، پلرونه ، دميړه پلرونه، خپل زامن ، دميړونو زامن ( بنزيان ) ، ورونه ، وربرونه ، خوريونه، د خپلي طبعي ښځي ، خپل مملوك ، خپل هغه لاس لاندي نارينه چي ښځو ته حاجت ونه لري ، اوهغه ماشومان چي لاتراوسه پوري دښځوله پټو خبروسره اشناشوی نه وي او هغوی دي پرځمكه باندي په زوره پښو وهلو سره په داسي شان تګ نه كوي چي دهغو دپټ كړي سينګار خلكوته معلومات وشي . ای موءمنانو ! تاسي ټول په ګډه سره الله ته توبه وباسئ ، ښايي چي بری درپه برخه شي.

وَ اَنْكِحُوا الْاَيَامٰى مِنْكُمْ وَ الصّٰلِحِيْنَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَ اِمَآئِكُمْ ؕ اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ (٣٢)

له تاسي نه چي كوم كسان (سړي يا ښځي) مجرد وي ، او ستاسي له وينزومريونو څخه چي څوك نيكان وي ، دهغونكاح وكړئ ، كه هغوی بيوزلي وي نو الله به په خپلي مهربانی سره هغوی شتمن كړي ، الله ښه پراختيا راوستونكی او د علم څښتن دی .

وَ لْيَسْتَعْفِفِ الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَ الَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِيْهِمْ خَيْرًا ۖ وَّ اٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْۤ اٰتٰىكُمْ ؕ وَ لَا تُكْرِهُوْا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَ مَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٣٣)

او څوك چي د نكاح (اسباب) ونه مومي هغوی بايد پاك لمني غوره كړي تردي پوري چي الله په خپلي پيرزويني سره هغوی شتمن كړي . او ستاسي له مريونو او وينز وڅخه چي كوم كسان د عوض وركولوپه بدل كښي دازادئ غوښتنه وكړي نو له هغوسره دمكاتبي عقد وكړئ كه تاسي ته معلومه وي چي په هغوكښي خير شته ، او هغوته له هغه مال څخه وركړئ چي الله تاسي ته دركړی دی . او خپلی وينزي د خپلو د نيوی ګټولپاره فاحشه توب ته مه اړباسئ كله چي هغوی په خپله دپاك لمنی ژوند تيرول غواړي ، او څوك چي هغوی اړباسي نو له دی اړويستني څخه وروسته الله دهغو (مجبورو) لپاره ښونكی مهربان دی .

مونږ تاسي ته روښانه روښانه لارښوونکي ايتونه درلېږلي دي ، او مونږ تاسي ته دهغو ملتونو د عبرت وړمثالونه هم وړاندي کړي دي چي له تاسي نه پخوا تېر شوي دي ، او مونږ هغه نصيحتونه کړي دي چي وېرېدونکوته کېږي .

وَ لَقَدْ اَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكُمْ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّ مَثَلًا مِّنَ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ وَ مَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ (۳۴)

الله داسمانونو او زمکي نور دی . ( په کائناتو کښي ) د هغه د نور مثال داسي دی لکه چي په يوه تا خچه کښي ډيوه بله شوې وي ، ډيوه په يوه ښيښه کښي وي ، ښيښه داسي وي لکه ځلانده ستوری ، او هغه ډيوه د ښوون ديوې داسي بختورې ونې له تيلو څخه بله شوې وي چي نه ختيزه وي نه لويد يزه ، چي دهغي تېل خود په خپله بلېږي که اور ورته ونه رسېږي هم ، (په دغه ډول) د رڼا د پاسه رڼا ( دزياتېدو ټول عوامل راغونډ شوي وي ).دالله چي هر چاته خوښه شي د خپل نور په لوري ورته لارښوونه کوي ، هغه په مثالونو سره خلك په خبره پوهوي ، هغه په هر شي ښه پوهيږي.

اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ ؕ اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّ لَا غَرْبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ وَ لَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ؕ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ ؕ يَهْدِي اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۳۵ۙ)

دهغه درڼا خواته لار ميندونکي ) په هغو کورونو (جوماتونو) ) کښي موندل کېږي چي الله د هغو دلوړ ولو او په هغوکښي د خپل نوم د يادولو حکم کړی دی . په هغو کښـي سهار او ماښام خلك د (هغه پاکي بيانوي (لمونځونه کوي

فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَ يُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ۙ يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَ الْاٰصَالِ (۳۶ۙ)

داسي سړي دي چي سوداګري او راکړه ورکړه هغوی د الله له يادنه ، د لمانځه له اداکولو او د زکات له ورکولو څخه نه غافل کوي .هغوی له هغي ورځي څخه وېرېږي چي په هغي کښي به دزړونو داوړېدورا اوړېدو او دسترګو د رېوختلو وار راشي ،

رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّ لَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ ۙ يَخَافُوْنَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيْهِ الْقُلُوْبُ وَ الْاَبْصَارُ (۳۷ۙ*)

او (هغوی داهر څه د دي لپاره کوي ) تر څوچي الله دهغو د ډېرو غوره عملونو مکافات ورکړي او لازيات يي په خپلې لورينې سره سرلوړي کړي ، الله بې حسابه روزي ور کوي هغه چاته چي خوښه يي شي .

لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَ يَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ (۳۸)

د دې پر خلاف ) کوم کسان چي کافر شول د هغود عملونو مثال ) چي ترې پرې (داسي دی لکه په وچه دشته کښي سراب (شګې ګل داوبوګومان کړی وء ، خو کله چي ورغی نو هيڅ يي ونه ميندل بلکي هلته يي الله موجود ومونده چي هغه ته يي دهغه پوره بشپړ . حساب (عذاب) ورکړ ، او د الله حساب اخيستل نه ځند بړي

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍۭ بِقِيْعَةٍ يَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ مَآءً ؕ حَتّٰۤى اِذَا جَآءَهٗ لَمْ يَجِدْهُ شَيْـًٔا وَّ وَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (۳۹ۙ)

يا خو دهغي مثال داسي دی لکه په يوژور سمندر کښي تړ.مې ، چي د پاسه يوه څپه خوره شوې ده ، د هغي د پاسه يوه بله څپه ، او د هغي د پاسه وريځ ، پر توږمې باندې ترږمې مسلطه ده . که (پريوتی)انسان خپل لاس و باسي نو هغه هم ونه شي ليدلی . چاته چي الله رڼاونه ښنې دهغه لپاره بيا هيڅ رڼا نشته .

اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِيْ بَحْرٍ لُّجِّيٍّ يَّغْشٰىهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ ؕ ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ؕ اِذَاۤ اَخْرَجَ يَدَهٗ لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا ؕ وَ مَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ (۴۰)

ايا ته نه وينې چي په پاکی سره الله ستايي ټول هغه مغلوقات چي په اسمانونواو ځمکه کښي دي او هغه الوتونکي چي په وزرونو غوړولو سره الوزي ؟ هر يود خپل لمانځه او ثنا ستاينې کړنلاره پېژني او دوی ټول چي څه کوي الله پرې پوهېږي.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُسَبِّحُ لَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ الطَّيْرُ صٰٓفّٰتٍ ؕ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَ تَسْبِيْحَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَفْعَلُوْنَ

داسمانونو او ځمکي باچائي يوازي دالله له پاره ده او د هماغه الله لوري ته د ټولو ورګرځېدل دي .

وَ لِلّٰهِ مُلۡکُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ وَ اِلَی اللّٰهِ الۡمَصِیۡرُ (۴۲)

ايا ته نه ويني چي الله وريځ ور وورو خو ځوي . بيا د هغي ټوټي سره يو ځای کوي بيا د هغی په راغونډ ولو سره يوه درنده وريځ تشکيلوي بيا ته ويني چي د هغي له پوښ نه د باران څاڅکي راڅڅېږي . او هغه له اسمانه (له پاسه) دهغوغرونو څخه چي په هغه کښي هسك ولاړدی ، ږلی وروي . نو چاته يي چي خوښه شي په هغي سره زيان اړوي او چاته يي چي خوښه شي له هغي نه يي ژغوري . دهغي د برق برېښنا سترګي بربښوي .

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ یُزۡجِیۡ سَحَابًا ثُمَّ یُؤَلِّفُ بَیۡنَہٗ ثُمَّ یَجۡعَلُہٗ رُکَامًا فَتَرَی الۡوَدۡقَ یَخۡرُجُ مِنۡ خِلٰلِہٖ ۚ وَ یُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنۡ جِبَالٍ فِیۡہَا مِنۡۢ بَرَدٍ فَیُصِیۡبُ بِہٖ مَنۡ یَّشَآءُ وَ یَصۡرِفُہٗ عَنۡ مَّنۡ یَّشَآءُ ؕ یَکَادُ سَنَا بَرۡقِہٖ یَذۡہَبُ بِالۡاَبۡصَارِ (ؕ۴۳)

الله شپي ورځي اړوی را اړوي .په دې کښي د سترګه ورولپاره يقيناٍ يو درس دی .

یُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّیۡلَ وَ النَّہَارَ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَعِبۡرَۃً لِّاُولِی الۡاَبۡصَارِ (۴۴)

او الله هر ساکښ له يو ډول اوبو څخه شته کړ ، نو ځوك په ګېډه ښوئېږي ځوك په دووپښو او ځوك په څلورو پښو باندې تګ کوي . دالله چي څه خوښه وي پيدا کوي يي ، الله دهر څه وس لري .

وَ اللّٰهُ خَلَقَ کُلَّ دَآبَّۃٍ مِّنۡ مَّآءٍ ۚ فَمِنۡہُمۡ مَّنۡ یَّمۡشِیۡ عَلٰی بَطۡنِہٖ ۚ وَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ یَّمۡشِیۡ عَلٰی رِجۡلَیۡنِ ۚ وَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ یَّمۡشِیۡ عَلٰۤی اَرۡبَعٍ ؕ یَخۡلُقُ اللّٰهُ مَا یَشَآءُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۴۵)

مونږ روښانه روښانه حقيقت ښوونکي ايتونه نازل کړي دي . دسمي سيخي لاري لوري ته چي دالله چاته خوښه شي لارښوونه کوي.

لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اٰیٰتٍ مُّبَیِّنٰتٍ ؕ وَ اللّٰهُ یَہۡدِیۡ مَنۡ یَّشَآءُ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ (۴۶)

دوی وايي چي مونږ پرالله او پيغمبر(ص) باندې ايمان راوړی دی او مونږ اطاعت منلی دی . خوله دي نه وروسته له دوي څخه يوه ډله ( له اطاعت نه ) مخ اړوي . دغسي خلك هيڅکله موءمنان نه دي .

وَ یَقُوۡلُوۡنَ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَ بِالرَّسُوۡلِ وَ اَطَعۡنَا ثُمَّ یَتَوَلّٰی فَرِیۡقٌ مِّنۡہُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِکَ ؕ وَ مَاۤ اُولٰٓئِکَ بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۴۷)

کله چي دالله او د پيغمبر (ص) لوري ته بلل کېږي ترڅو چي پيغمبر (ص) د دوی خپل منځي دعوه فيصله کړي نوله دوی نه يوه ډله په ځنګ کېږي .

وَ اِذَا دُعُوۡۤا اِلَی اللّٰهِ وَ رَسُوۡلِہٖ لِیَحۡکُمَ بَیۡنَہُمۡ اِذَا فَرِیۡقٌ مِّنۡہُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ (۴۸)

البته که حق د دوي په جانب وي نو پيغمبر(ص) ته دامر منونکو په بڼه مراجعه کوي .

وَ اِنۡ یَّکُنۡ لَّہُمُ الۡحَقُّ یَاۡتُوۡۤا اِلَیۡہِ مُذۡعِنِیۡنَ (ؕ۴۹)

ايا د دوي په زړونو کښي ( د منافقت ) ناروغي ده . ياپه شك کښي لويدلي دي ؟ يا دوي له دې څخه وېرېږي چي الله او دهغه پيغمبر(ص) به پردوي ظلم وکړي ؟ اصلی خبره داده چي ظالمان خوپه خپله همدوی دي .

اَفِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ اَمِ ارۡتَابُوۡۤا اَمۡ یَخَافُوۡنَ اَنۡ یَّحِیۡفَ اللّٰهُ عَلَیۡہِمۡ وَ رَسُوۡلُہٗ ؕ بَلۡ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۵۰)

دموءمنانو کار خودادی چي کله د خدای او پيغمبرلوري ته وبلل شي ترڅوچي پيغمبرد هغو شخړه فيصله کړي نو هغوی ووايي چي مونږ واورېدله او ومومنله . همدغه راز خلك دبري او نجات مېندونکي دي

اِنَّمَا کَانَ قَوۡلَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ اِذَا دُعُوۡۤا اِلَی اللّٰهِ وَ رَسُوۡلِہٖ لِیَحۡکُمَ بَیۡنَہُمۡ اَنۡ یَّقُوۡلُوۡا سَمِعۡنَا وَ اَطَعۡنَا ؕ وَ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ (۵۱)

وَ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَہٗ وَ يَخْشَ اللّٰهَ وَ يَتَّقْهِ فَاُولٰٓئِكَ ہُمُ الْفَآئِزُوْنَ (۵۲)

او هماغه کسان بريالي دي چې د الله او دهغه د پيغمبر امر ومني او له الله نه ووېرېږي او دهغه له نافرمانۍ څخه ډډه وکړي .

وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَہْدَ اَيْمَانِہِمْ لَئِنْ اَمَرْتَہُمْ لَيَخْرُجُنَّ ؕ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (۵۳)

دغه ( منافقان ) خلك د الله په نوم په کلکولوړو کولو سره وايي چې ((که ته حکم وکړې نو مونږ به له کورونو څخه وتلي تيارولاړيو )) دوې ته ووايه (( لوړې مه کوئ ، ستاسي د امر منني حال ځرګند دی ، ستاسي له کړو وړو څخه الله ښه خبر دی)) .

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْہِ مَا حُمِّلَ وَ عَلَيْكُمْ مَّا حُمِّلْتُمْ ؕ وَ اِنْ تُطِيْعُوْهُ تَہْتَدُوْا ؕ وَ مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (۵۴)

ووايه (( دالله دامر منونکي او د پيغمبر دفرمان تابع اوسئ . خوکه تاسي مخ واړوئ نوښه وپوهېږئ چې پيغمبرته چې کومه فريضه ورله غاړې شوې ده دهغې مسئول هغه دی اوپرتاسي چې دکومې فريضې پېټی ايښودل شوی دی دهغې مسئول تاسي ئی . که دهغه اطاعت وکړئ نوپه خپله به سمه لاره ومومئ .کنه نو دپيغمبر(ص) مسئوليت خو له دې پورته نور څه نه دی چې په ځرګنده روښانه توګه حکم ورسوي )).

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّہُمْ فِى الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِہِمْ ۠ وَ لَيُمَكِّنَنَّ لَہُمْ دِيْنَہُمُ الَّذِى ارْتَضٰى لَہُمْ وَ لَيُبَدِّلَنَّہُمْ مِّنْۢ بَعْدِ خَوْفِہِمْ اَمْنًا ؕ يَعْبُدُوْنَنِىْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِىْ شَيْئًا ؕ وَ مَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ ہُمُ الْفٰسِقُوْنَ (۵۵)

الله له تاسي نه دهغوکسانو سره چې ايمان راوړي اوښه عملونه وکړي وعده کړې ده چې هغوی په ځمکه کښې هماغه شان خليفه ګان وګرځوي لکه چې له هغونه مخکې تېر شوي خلك يې ګرځولي وو دهغو لپاره به دهغو هغه دين پرمحکمو بنسټونو ودروي چې هغه الله تعالٰی دهغو لپاره خوښ کړی دی . او د هغو د وېری ( اوسنی ) حالت به په امن ورته بدل کړي هغوی دې زما بندګي کوي اوله ماسره دې کوم شي نه شريکوي . او څوك چې له دې وروسته کفر غوره کړي نو همداسي کسان فاسقان دي .

وَ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ (۵۶)

او لمونځ قايم کړئ ، زکات ورکړئ. او دپيغمبر اطاعت وکړئ ، ترڅو چې پرتاسي رحم وکړای شي .

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِى الْاَرْضِ ۚ وَ مَاْوٰىہُمُ النَّارُ ؕ وَ لَبِئْسَ الْمَصِيْرُ (۵۷)

کوم کسان چې کافر دي دهغو په باب په دې غلطه انګېرنه کښې مه اوسه چې هغوی به په ځمکه کښې الله بې وسې کړي دهغو هستوګنځی دوزخ دی او هغه ډېر ناکاره هستوګنځی دی .

يٰٓاَيُّہَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ وَ الَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ؕ مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَ حِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّہِيْرَةِ وَ مِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ ؕ ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ ؕ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَ لَا عَلَيْہِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَہُنَّ ؕ طَوّٰفُوْنَ عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (۵۸)

ای موءمنانو ! لازمه ده چې ستاسي مملوکان او ستاسي هغه ماشومان چې لاتر اوسه پورې دپوهې منګ ته نه دي رسيدلي ، په دريو وختونو کښې دې داجازې په اخيستلو سره تاسي ته راځي د سهار له لمانځه نه مخکښې او غرمه چې کله تاسي جامې باسئ ، او دماسختن له لمانځه نه وروسته . دا درې وختونه ستاسي لپاره د ستروختونه دي . له دغو پرته که هغوی بې اجازې راشي نو نه پرتاسي څه ګناه شته نه پرهغو ، ستاسي يوبل ته بيا بيا راتګ وي په دې ډول الله ستاسي .لپاره دخپلو ويناوء ځرګندونه کوي ، اوهغه دپوهې او حکمت څښتن دی .

او کله چې ستاسې ماشومان دپوهې منګ ته ورسېږي نوباید همغسې داجازې په اخستلو راشي لکه څنګه چې دهغو مشران اجازه اخلي . په دغه راز الله خپل ایتونه تاسې ته روښانوي ، او هغه دپوهې او حکمت څښتن دی .

وَ اِذَا بَلَغَ الۡاَطۡفَالُ مِنۡكُمُ الۡحُلُمَ فَلۡيَسۡتَاۡذِنُوۡا كَمَا اسۡتَاۡذَنَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمۡ اٰيٰتِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ (۵۹)

اوپه کوموښځوباندې چې ځواني تېره ناستې وي ، دنکاح هیله منې نه وي ، که هغوی خپل پروني کېږدي نو پر هغو څه وبال نشته په دې شرط چې د ډول او سینګار څرګندوونکي نه وي . سره له دې که هغوی هم پټمني غوره کړي نود هغو په حق کښې ښه ده الله هر څه اوري او په هر څه پوهېږي .

وَ الۡقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِىۡ لَا يَرۡجُوۡنَ نِكَاحًا فَلَيۡسَ عَلَيۡهِنَّ جُنَاحٌ اَنۡ يَّضَعۡنَ ثِيَابَهُنَّ غَيۡرَ مُتَبَرِّجٰتٍۢ بِزِيۡنَةٍ ؕ وَ اَنۡ يَّسۡتَعۡفِفۡنَ خَيۡرٌ لَّهُنَّ ؕ وَ اللّٰهُ سَمِيۡعٌ عَلِيۡمٌ (۶۰)

هیڅ باك نشته که کوم ړوند ، یا ګوډ یا ناروغ ( دچاله کورنه خواړه وخوری ) او نه پرتاسې په دې کې څه باك شته چې له خپلو کورونو څخه خوراك وکړئ یاد خپل پلارنيکه له کور ونو څخه ، یاد خپلې مور او نیاله کورونو څخه یا دخپلو ورونو له کورونو څخه یاد خپلو خویندو له کورونو څخه ،یاد خپلو ترونو له کورونو څخه یا د خپلو ترورګانو له کورونو څخه یادخپلو ماماګانو له کورونو څخه یاد خپلو توریو له کورونو څخه ، یاله هغو کورونو څخه چې دهغو کلیګاني ستاسې په لاس کښې وي ، یاد خپلو دوستانو له کورونو څخه . د دی هم څه باك نشته چې تاسې په ګډه سره یو ځای خواړه وخورئ .. یا بېلابېل البته کله چې کورونوته ننوځئ نو خپلو کسانو ته سلام اچوئ ، دخیر دعا ، دالله له لورې ټاکل شوې ، ډېره برکتناکه او پاکه سوتره . په دغه ډول الله تعالٰی تاسې ته ایتونه بیانوي ترڅو چې تاسې له پوهې او ادارك نه کار واخلئ .

لَيۡسَ عَلَى الۡاَعۡمٰى حَرَجٌ وَّ لَا عَلَى الۡاَعۡرَجِ حَرَجٌ وَّ لَا عَلَى الۡمَرِيۡضِ حَرَجٌ وَّ لَا عَلٰٓى اَنۡفُسِكُمۡ اَنۡ تَاۡكُلُوۡا مِنۡۢ بُيُوۡتِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اٰبَآئِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اُمَّهٰتِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اِخۡوَانِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اَخَوٰتِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اَعۡمَامِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ عَمّٰتِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ اَخۡوَالِكُمۡ اَوۡ بُيُوۡتِ خٰلٰتِكُمۡ اَوۡ مَا مَلَكۡتُمۡ مَّفَاتِحَهٗۤ اَوۡ صَدِيۡقِكُمۡ ؕ لَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ اَنۡ تَاۡكُلُوۡا جَمِيۡعًا اَوۡ اَشۡتَاتًا ؕ فَاِذَا دَخَلۡتُمۡ بُيُوۡتًا فَسَلِّمُوۡا عَلٰٓى اَنۡفُسِكُمۡ تَحِيَّةً مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الۡاٰيٰتِ لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ (۶۱)

ریښتوني موءمنان هماغه دي چې الله او دهغه پیغمبر دزړه له کومې ومني او کله چې دکومې ټولنيزې چارې په وخت کښې له پیغمبر سره وي نو له هغه څخه له اجازې اخیستلوپرته دې نه ځي. کوم کسان چې له تانه اجازه غواړي همغوی دالله او دپیغمبر (ص) منونکي دي ، نو کله چې هغوی له تا نه د خپل کوم کار د پاره اجازه وغواړي نو چاته چې دې له هغوی نه خوښه شي اجازه ورکړه اوددغسې خلکو په حق کښې له الله نه دبښنې غوښتنه وکړه، الله په باورې توګه ښونکی خورامهربان دی.

اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ وَ اِذَا كَانُوۡا مَعَهٗ عَلٰٓى اَمۡرٍ جَامِعٍ لَّمۡ يَذۡهَبُوۡا حَتّٰى يَسۡتَاۡذِنُوۡهُ ؕ اِنَّ الَّذِيۡنَ يَسۡتَاۡذِنُوۡنَكَ اُولٰٓئِكَ الَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ ۚ فَاِذَا اسۡتَاۡذَنُوۡكَ لِبَعۡضِ شَاۡنِهِمۡ فَاۡذَنۡ لِّمَنۡ شِئۡتَ مِنۡهُمۡ وَ اسۡتَغۡفِرۡ لَهُمُ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۶۲)

ای مسلمانانو ! په خپل مینځ کښې د پیغمبربلل لکه ستاسې خپلو مینځو کښې دیو بل بلنې غوندې مه ګڼئ .الله په تاسې کښې هغه خلك ښه پېژني چې یوبل ته ځانونه پناه کوي او غلي غوندې په سکېدلو وځي . دپیغمبر(ص) له حکم څخه سرغړوونکي باید ووېرېږي چې په کومه فتنه کښې اخته نه شي یادردناك عذاب پرې رانشي .

لَا تَجۡعَلُوۡا دُعَآءَ الرَّسُوۡلِ بَيۡنَكُمۡ كَدُعَآءِ بَعۡضِكُمۡ بَعۡضًا ؕ قَدۡ يَعۡلَمُ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ يَتَسَلَّلُوۡنَ مِنۡكُمۡ لِوَاذًا ۚ فَلۡيَحۡذَرِ الَّذِيۡنَ يُخَالِفُوۡنَ عَنۡ اَمۡرِهٖۤ اَنۡ تُصِيۡبَهُمۡ فِتۡنَةٌ اَوۡ يُصِيۡبَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۶۳)

خبر دار اوسئ په اسمانونو او ځمکه کښې چې هرڅه دي دالله دي تاسې چې په هره ټګلاره یاست اللهورباندې پوهېږي . په کومه ورځ چې خلك د هغه لورې ته وګرځول شي الله به هغوته وروښيي چې هغوی څه کړي دي .الله په هر څه عالم دي .

اَلَاۤ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ قَدۡ يَعۡلَمُ مَاۤ اَنۡتُمۡ عَلَيۡهِ ؕ وَ يَوۡمَ يُرۡجَعُوۡنَ اِلَيۡهِ فَيُنَبِّئُهُمۡ بِمَا عَمِلُوۡا ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ (۶۴)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ډیر برکتناك دی هغه ذات چې هغه پرخپل بنده باندې دغه فرقان (قران ) نازل کړ تر څو چې دټولو نړیوالو لپاره وېرونکی وي .

تَبٰرَکَ الَّذِیۡ نَزَّلَ الۡفُرۡقَانَ عَلٰی عَبۡدِہٖ لِیَکُوۡنَ لِلۡعٰلَمِیۡنَ نَذِیۡرَا ۙ(۱)

هغه ذات چې د اسمانونو او ځمکي د باچایی څښتن دی او څوك یې زوی ندی نیولی ،او له هغه سره په باچایی کښې څوك شریك نشته ، هغه چې هر شی پیدا کړ بیایې دهغه یو سرنوشت وټاکه

الَّذِیۡ لَہٗ مُلۡکُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ لَمۡ یَتَّخِذۡ وَلَدًا وَّ لَمۡ یَکُنۡ لَّہٗ شَرِیۡکٌ فِی الۡمُلۡکِ وَ خَلَقَ کُلَّ شَیۡءٍ فَقَدَّرَہٗ تَقۡدِیۡرًا (۲)

خلکوله الله نه پرته داسي معبودان ونیول چې هیڅ شی نه پیدا کوي بلکې پخپله هستول کیږي ، پخپله د خپل ځان لپاره هم د څه کټې یا زیان واك نلري ، نه د وژلو وس لري نه د ژوندي کولو ، نه مړه شوي بیا راپاڅولی شي .

وَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اٰلِہَۃً لَّا یَخۡلُقُوۡنَ شَیۡئًا وَّ ہُمۡ یُخۡلَقُوۡنَ وَ لَا یَمۡلِکُوۡنَ لِاَنۡفُسِہِمۡ ضَرًّا وَّ لَا نَفۡعًا وَّ لَا یَمۡلِکُوۡنَ مَوۡتًا وَّ لَا حَیٰوۃً وَّ لَا نُشُوۡرًا (۳)

کومو کسانو چې د پیغمبر د خبرې له منلونه انکار کړیدی هغوې وایي چې دغه قران له ځانه جوړ کړی شوی شی دی چې دغه سړي په دروغو رامینځ ته کړی دی او ځینو نورو خلکو پدې کار کښې له ده سره مرسته کړېده . لوی ظلم او سخت دروغ دي چې دوی پرې درېدلي دي .

وَ قَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا اِنۡ ہٰذَاۤ اِلَّاۤ اِفۡکُ افۡتَرٰىہُ وَ اَعَانَہٗ عَلَیۡہِ قَوۡمٌ اٰخَرُوۡنَ ۚ فَقَدۡ جَآءُوۡ ظُلۡمًا وَّ زُوۡرًا ۚ(۴)

وائي دا دپخوانو خلکو ددروغو لیکل شوي شیان دي چې دی یې نکلونه کوي او هغه ده ته سهار او ماښام اورول کیږي .

وَ قَالُوۡۤا اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ اکۡتَتَبَہَا فَہِیَ تُمۡلٰی عَلَیۡہِ بُکۡرَۃً وَّ اَصِیۡلًا (۵)

ای محمده (ص) : دوی ته ووایه چې داهغه چا نازل کړېدی چې د اسمانونو او ځمکي په راز پوهیږي .حقیقت دادی چې هغه ستربښونکی او مهربان دی .

قُلۡ اَنۡزَلَہُ الَّذِیۡ یَعۡلَمُ السِّرَّ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ اِنَّہٗ کَانَ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا (۶)

وایي ((داڅنګه پیغمبردی چې خواړه خوري او په بازارونو کښې ګرځي راګرځي ؟ ولې ده ته کومه پرښته ونه لیږل شوه چې له ده سره وای او ( پرنه منونکو باندې ) ګواښ یې کولای ؟

وَ قَالُوۡا مَالِ ہٰذَا الرَّسُوۡلِ یَاۡکُلُ الطَّعَامَ وَ یَمۡشِیۡ فِی الۡاَسۡوَاقِ ؕ لَوۡ لَاۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡہِ مَلَکٌ فَیَکُوۡنَ مَعَہٗ نَذِیۡرًا ۙ(۷)

یا که نور هیڅ نه وای ده ته کومه خزانه راکوزه کړی شوې وای . یا د ده کوم بڼ وای چې له هغه نه یې ( په ډاډینه ) روزي ترلاسه کولای ،، ظالمان وائې : (( تاسې خوپه یوکوډ و وهلې سړې پسې روان ئې ،،

اَوۡ یُلۡقٰۤی اِلَیۡہِ کَنۡزٌ اَوۡ تَکُوۡنُ لَہٗ جَنَّۃٌ یَّاۡکُلُ مِنۡہَا ؕ وَ قَالَ الظّٰلِمُوۡنَ اِنۡ تَتَّبِعُوۡنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسۡحُوۡرًا (۸)

وګوره دوی څنګه عجیبه دلیلونه درته وړاندې کوي .داسې لارورکي دي چې هیڅ کومه دلارې چارې خبره په فکر کښې نه ورځي

اُنۡظُرۡ کَیۡفَ ضَرَبُوۡا لَکَ الۡاَمۡثَالَ فَضَلُّوۡا فَلَا یَسۡتَطِیۡعُوۡنَ سَبِیۡلًا (۹)

ډېر برکتناك دی هغه ذات چې که وغواړي د دوی له ټاکلو یاد کړای شویو شیانو څخه هم زیات غوره درکولی شي ، ( یونه ) ډېر باغونه چې ترهغو لاندې ویالې بهیدونکې وي ، او لوړې دنګې مانۍ .

تَبٰرَکَ الَّذِیۡۤ اِنۡ شَآءَ جَعَلَ لَکَ خَیۡرًا مِّنۡ ذٰلِکَ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ ۙ وَ یَجۡعَلۡ لَّکَ قُصُوۡرًا (۱۰)

اصلې خبره داده چې دوی قیامت دروغ ګڼلی دی او څوك چې قیامت دروغ وګڼي دهغه لپاره مونږ تاوء جنه لمبه وهونکی اور تیار کړیدی .

بَلۡ کَذَّبُوۡا بِالسَّاعَۃِ ۟ وَ اَعۡتَدۡنَا لِمَنۡ کَذَّبَ بِالسَّاعَۃِ سَعِیۡرًا ﴿ۚ۱۱﴾

هغه اورچې کله له لیرې څخه دوی ووینی نو دوی به د هغه د غضب او تاوء اوازونه واوري .

اِذَا رَاَتۡہُمۡ مِّنۡ مَّکَانٍۭ بَعِیۡدٍ سَمِعُوۡا لَہَا تَغَیُّظًا وَّ زَفِیۡرًا (۱۲)

او کله چې دوی لاسونه او پښې تړلي په هغه کښې يو تنګ ځای ته ورننويستل شي نو دخپل مرګ غوښتنه به وکړي

وَ اِذَآ اُلْقُوْا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيْنَ دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُوْرًا (ؕ١٣)

په هغه وخت کښې به ورته وويل شي چې ) نن يومرګ نه ډېر ) . مرګونه وغواړئ

لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُوْرًا وَّاحِدًا وَّ ادْعُوْا ثُبُوْرًا كَثِيْرًا (١٤)

له دوی څخه پوښتنه وکړه . دغه سرنوشت ښه دی او که هغه جاوداني جنت چې له خدايه وپرېدونکو پرهيز ګارانو سره دهغه وعده شوېده ؟ چې دهغو دکړو وړو مکافات او دهغو د سفر وروستی پړاوء به وي

قُلْ اَذٰلِكَ خَيْرٌ اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَّ مَصِيْرًا (١٥)

په هغه کښې به د هغو هره غوښتنه ترسره شوې وي چې په هغه کښې به هغوی دتل لپاره استوګن وي ، چې دهغه ورکړه ستا پررب باندې يوه واجب الادا وعده ده .

لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ خٰلِدِيْنَ ؕ كَانَ عَلٰى رَبِّكَ وَعْدًا مَّسْـُٔوْلًا (١٦)

او همغه ورځ به وي چې کله ( ستا پروردګار ) دغه خلك هم را ايسار کړي او د دوی هغه معبودان هم راوبلي چې نن دوی له الله نه پرته د هغو بندګي کوي ، بيا به الله له هغونه پوښتنه وکړي ((ايا تاسي زما بندګان ګمراه کړي وو؟ او که دوی پخپله له سمې لارې نه او وښتی بې لارې شوي وو ،،؟

وَ يَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَ مَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَقُوْلُ ءَاَنْتُمْ اَضْلَلْتُمْ عِبَادِيْ هٰٓؤُلَآءِ اَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيْلَ (ؕ١٧)

هغوی به عرض وکړي : پاك دی .ستاذات ، زمونږ لپاره خو د دې وړتيا هم نه وه چې له تا څخه پرته کوم بل څوك خپل سرپرست ونيسو ، خو تا دوی او د دوی پلرونو نيکو نو ته ښه ژوندني وسايل ورکړل آن تردې چې دوی درس هيرکړاو په هلاکت کښې ولوېدل ،،.

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِكَ مِنْ اَوْلِيَآءَ وَ لٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ وَ اٰبَآءَهُمْ حَتّٰى نَسُوا الذِّكْرَ ۚ وَ كَانُوْا قَوْمًۢا بُوْرًا (١٨)

دغسې به دروغ وګڼي هغوی ( ستاسي معبودان ) ستاسي هغه خبرې چې نن يې تاسي کوئ بيا به نه تاسي د خپل هلاکت مخنيوی وکړای شئ نه به له کومې خواڅخه مرسته ومیندلی شئ اوهر څوك چې له تاسي نه ظلم وکړي په هغه باندې به مونږ د سخت عذاب خوند وڅکو .

فَقَدْ كَذَّبُوْكُمْ بِمَا تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا وَّ لَا نَصْرًا ۚ وَ مَنْ يَّظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيْرًا (١٩)

ای محمده ! له تانه مخکښې چې مونږ هر څومره پېغمبران لېږلي وو هغوی ټول هم خواړه خوړونکي او په بازارونو کښې ګرزېدونکي خلك وو . په اصل کښې مونږ تاسئ ځيني د ځينو لپاره دازمېښت وسيله ګرزولي ياست ايا تاسي صبر کوئ ؟ ستارب هرڅه ويني .

وَ مَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّآ اِنَّهُمْ لَيَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ وَ يَمْشُوْنَ فِى الْاَسْوَاقِ ؕ وَ جَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً ؕ اَتَصْبِرُوْنَ ۚ وَ كَانَ رَبُّكَ بَصِيْرًا (٢٠)

کوم کسان چې زمونږ حضورته دوړاندې کېدوفکر نلري هغوی وايي ولې مونږ ته پر ښتې نه رالېږل کېږي ؟ يادې مونږ خپل رب ووينو ،، . دوی په خپل نفس کښې ډېر مغروره شول او په خپله سرکشۍ کښې له چتې ووتل .

وَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا لَوْ لَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلٰٓئِكَةُ اَوْ نَرٰى رَبَّنَا ؕ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ وَ عَتَوْ عُتُوًّا كَبِيْرًا (٢١)

په کومه ورځ چې دوی پرښتې ويني هغه به دمجرمانو لپاره دڅه زيرې ورځ نه وي،چيغه به کړي چې منع دې کړی شي په کلکي منعي سره

يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا (٢٢)

او هرڅه چې دهغو کړه وړه دې مونږ به هغه راواخلو د دوړې په څېر به يې والوزوو .

وَ قَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا (٢٣)

يوازې هماغه خلك چې د جنت حقدار دي په هغه ورځ به په ښه ځای کښې استوګن وي او دغرمې تېرولو ښکلي ډېره به ومومي

اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَّ اَحْسَنُ مَقِيْلًا (٢٤)

په هغه ورځ به په اسمان ځیروونکي یوه وریځ څرګنده شي او پرښتي به کتارکتار راکوزې کړې شي .

وَ يَوۡمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالۡغَمَامِ وَ نُزِّلَ الۡمَلٰٓئِكَةُ تَنۡزِيۡلًا (۲۵)

په هغه ورځ به حقیقی باچایي یوازې درحمان وي . او هغه به دکافرانو لپاره ډېره سخته ورځ وي .

اَلۡمُلۡكُ يَوۡمَئِذِ ۣ الۡحَقُّ لِلرَّحۡمٰنِ ؕ وَ كَانَ يَوۡمًا عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ عَسِيۡرًا (۲۶)

ظالم انسان به خپل لاسونه چیچي او وایي به کاشکي ما دپیغمبر ملګرتیا کړې وای

وَ يَوۡمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيۡهِ يَقُوۡلُ يٰلَيۡتَنِى اتَّخَذۡتُ مَعَ الرَّسُوۡلِ سَبِيۡلًا (۲۷)

هی زما بده بخته ، کاشکي ما فلانی سړی په دوستی سره نه وای نیولی

يٰوَيۡلَتٰى لَيۡتَنِىۡ لَمۡ اَتَّخِذۡ فُلَانًا خَلِيۡلًا (۲۸)

هغه تیر ویستلم ، هغه نصیحت مې ونه مانه چې ماته راغلی وء ، شیطان دانسان په حق کښې ډېر زیات بیوفا غولوونکی ثابت شو

لَقَدۡ اَضَلَّنِىۡ عَنِ الذِّكۡرِ بَعۡدَ اِذۡ جَآءَنِىۡ ؕ وَ كَانَ الشَّيۡطٰنُ لِلۡاِنۡسَانِ خَذُوۡلًا (۲۹)

او پیغمبر به ووایي چې ای زما ربه ! زما قوم دغه قران پرېښی وء،،،.

وَ قَالَ الرَّسُوۡلُ يٰرَبِّ اِنَّ قَوۡمِى اتَّخَذُوۡا هٰذَا الۡقُرۡاٰنَ مَهۡجُوۡرًا (۳۰)

ای محمده ! مونږ په همدغه شان مجرمان د هر پیغمبر د ښمنان ګرځولي دي او ستا لپار ه ستا رب لارښوونکی او مرستندوی کافي دی .

وَ كَذٰلِكَ جَعَلۡنَا لِكُلِّ نَبِىٍّ عَدُوًّا مِّنَ الۡمُجۡرِمِيۡنَ ؕ وَ كَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّ نَصِيۡرًا (۳۱)

منکران وایي (( ولې دې سړي باندې ټول قران په یو وخت کښې ولې نازل نکړل شو ؟ هو ، داسې ځکه شویدي چې داپه ښه شان مونږ ستا په ذهن کښې کښېنوو او ( دهمدې غرض لپاره ) مونږ هغه په یوه ځانګړي ترتیب سره دبېلابېلو برخو په بڼه په کراره درته لوستی دی

وَ قَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡ لَا نُزِّلَ عَلَيۡهِ الۡقُرۡاٰنُ جُمۡلَةً وَّاحِدَةً ۛۚ كَذٰلِكَ ۛۚ لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ وَ رَتَّلۡنٰهُ تَرۡتِيۡلًا (۳۲)

او ( په دې کښې دامصلحت هم دی ) چې کله هغوی تاته کومه بې سابقې خبره (یا حیرانوونکي پوښتنه ) راوړي دهغې سم ځواب مونږ په خپل وخت تاته درکړ او په ډېر ښه .ډول سره موخبره روښانه کړه

وَ لَا يَاۡتُوۡنَكَ بِمَثَلٍ اِلَّا جِئۡنٰكَ بِالۡحَقِّ وَ اَحۡسَنَ تَفۡسِيۡرًا (۳۳)

کوم کسان چې پړمخې د دوزخ لوري ته راښکودل کېدونکي دي دهغو دریځ ډېر ناوړه او دهغو لاره په نهائي درجه غلطه ده .

اَلَّذِيۡنَ يُحۡشَرُوۡنَ عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ اِلٰى جَهَنَّمَ ۙ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّ اَضَلُّ سَبِيۡلًا (۳۴)

مونږ موسی ته کتاب ورکړ او له هغه سره مو دهغه ورور هارون دمرستیال په توګه ملګری کړ

وَ لَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ وَ جَعَلۡنَا مَعَهٗۤ اَخَاهُ هٰرُوۡنَ وَزِيۡرًا (۳۵)

اوهغو ته مو وویل چې دواړه هغه قوم ته ورشئ .چې زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي . په پای کښې مونږ هغه خلك سخت تباه کړل

فَقُلۡنَا اذۡهَبَاۤ اِلَى الۡقَوۡمِ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا ؕ فَدَمَّرۡنٰهُمۡ تَدۡمِيۡرًا (۳۶)

دنوح د قوم همدغه حال شو چې کله یې یې پغمبران دروغجن وګڼل . مونږ هغوی غرق کړل او د نړیوالو لپاره مو دعبرت یوه نښه وګرځوله او د دې ظالمانو لپاره مونږ یو دردناك عذاب تیار کړیدی

وَ قَوۡمَ نُوۡحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ اَغۡرَقۡنٰهُمۡ وَ جَعَلۡنٰهُمۡ لِلنَّاسِ اٰيَةً ؕ وَ اَعۡتَدۡنَا لِلظّٰلِمِيۡنَ عَذَابًا اَلِيۡمًا (۳۷)

په همدغه شان عادیان . ثمودیان او دڅاخاوندان او دمنځنیو پېړیو زیاتره خلك تباه کړای شول .

وَّ عَادًا وَّ ثَمُوۡدَا۟ وَ اَصۡحٰبَ الرَّسِّ وَ قُرُوۡنًا ۢ بَيۡنَ ذٰلِكَ كَثِيۡرًا (۳۸)

له هغونه هر یوه ته مونږ ( دمخکېنیو تباه کېدونکو ) مثالونه وړاندې کړل او په پای کښې هر یوموتار مار کړ .

وَ كُلًّا ضَرَبۡنَا لَهُ الۡاَمۡثَالَ ۫ وَ كُلًّا تَبَّرۡنَا تَتۡبِيۡرًا (۳۹)

او پر هغې سیمې باندې خو دوی تېر شویدي چې ډېر ناکاره باران پرې اوروول شوی وه . ایا دوی به د هغې حال نه وي لیدلی ؟ خو دوی له مرګه وروسته د بیا ژوندون هیله من ندي .

وَ لَقَدۡ اَتَوۡا عَلَى الۡقَرۡيَةِ الَّتِىۡۤ اُمۡطِرَتۡ مَطَرَ السَّوۡءِ ؕ اَفَلَمۡ يَكُوۡنُوۡا يَرَوۡنَهَا ۚ بَلۡ كَانُوۡا لَا يَرۡجُوۡنَ نُشُوۡرًا (۴۰)

دوی چې کله تا ویني نو ملنډې درپورې وهي . ( وایي) ایا دغه سړی دی چې خدای د پېغمبر په توګه رالېږلی دی ؟

وَ اِذَا رَاَوۡكَ اِنۡ يَّتَّخِذُوۡنَكَ اِلَّا هُزُوًا ؕ اَهٰذَا الَّذِىۡ بَعَثَ اللّٰهُ رَسُوۡلًا (۴۱)

ده خوبه مونږ بې لارې کړي د خپلو معبودانو څخه به یې اړوولي وای که مونږ دهغو پر عقیدتمندۍ باندې ټینګار نه وای کړی ښه هغه وخت لرې ندی چې د عذاب په لېدلو دوی ته پخپله څرګنده شي چې څوك په ګمراهۍ کښې لیرې وتې وو،

اِنۡ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنۡ اٰلِهَتِنَا لَوۡ لَاۤ اَنۡ صَبَرۡنَا عَلَيۡهَا ؕ وَ سَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ حِيۡنَ يَرَوۡنَ الۡعَذَابَ مَنۡ اَضَلُّ سَبِيۡلًا (۴۲)

ته کله د هغه چا حال ته ځیر شوی یې چې هغه خپل نفسي خواهش خپل خدای ګرځولی وي ؟ ایاته پرسمه لاره باندې دداسې چا درااړولومسئولیت پرغاړه اخیستلی شې ؟

اَرَءَيۡتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰٮهُ ؕ اَفَاَنۡتَ تَكُوۡنُ عَلَيۡهِ وَكِيۡلًا (۴۳)

ایاته انګېرې چې له دوی نه زیاتره کسان اوري او پوهېږي ؟ دوی خود څارویو په شان دي بلکې له هغونه هم ها خوا لار ورکي دي.

اَمۡ تَحۡسَبُ اَنَّ اَكۡثَرَهُمۡ يَسۡمَعُوۡنَ اَوۡ يَعۡقِلُوۡنَ ؕ اِنۡ هُمۡ اِلَّا كَالۡاَنۡعَامِ بَلۡ هُمۡ اَضَلُّ سَبِيۡلًا (۴۴)

ته نه ګورې چې ستارب په څه ډول سیوری خوروي . که هغه غوښتي وای نو هغه به یې دایمي سیوری ګرځولی وه . بیا مونږه لمرپرهغه دلیل وګرځوه ،

اَلَمۡ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ كَيۡفَ مَدَّ الظِّلَّ ۚ وَ لَوۡ شَآءَ لَجَعَلَهٗ سَاكِنًا ۚ ثُمَّ جَعَلۡنَا الشَّمۡسَ عَلَيۡهِ دَلِيۡلًا (۴۵)

بیا چې لمر هر څومره پورته کېږي (مونږ د هغه سیوری کرار کرار خپل لوري ته راغونډ وو .

ثُمَّ قَبَضۡنٰهُ اِلَيۡنَا قَبۡضًا يَّسِيۡرًا (۴۶)

او هغه دهماغه الله ذات دی چې شپه یې ستاسې لپاره جامه ، او خوب یې د ارام او ورځ یې د پاڅېدو وخت وګرځوه .

وَ هُوَ الَّذِىۡ جَعَلَ لَـكُمُ الَّيۡلَ لِبَاسًا وَّ النَّوۡمَ سُبَاتًا وَّ جَعَلَ النَّهَارَ نُشُوۡرًا (۴۷)

او هماغه ذات دی چې دخپل رحمت په مخکښې یې بادونه دزیری په توګه لېږلي . بیا مونږ له اسمانه پاکې او به نازلې کړي دي

وَ هُوَ الَّذِىۡۤ اَرۡسَلَ الرِّيٰحَ بُشۡرًۢا بَيۡنَ يَدَىۡ رَحۡمَتِهٖ ۚ وَ اَنۡزَلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوۡرًا (۴۸)

ترڅوچې دهغو په وسیله یوه مړه ځمکه ژوندی کړو او له خپل مخلوق نه زیاتره څاروي او انسانان خړوبه کړو

لِّنُحۡیِۦَ بِهٖ بَلۡدَةً مَّيۡتًا وَّ نُسۡقِيَهٗ مِمَّا خَلَقۡنَاۤ اَنۡعَامًا وَّ اَنَاسِىَّ كَثِيۡرًا (۴۹)

دغه کارنامه مونږ بیابیا دوی ته وربښیو .ترڅوچې دوی یوڅه درس واخلي . خو زیاتره خلك دکفر او ناشکرۍ څخه پرته دکوم بل چارچلند له غوره کولو څخه انکار کوي .

وَ لَقَدۡ صَرَّفۡنٰهُ بَيۡنَهُمۡ لِيَذَّكَّرُوۡا ۖ فَاَبٰٓى اَكۡثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوۡرًا (۵۰)

که زمونږ خوښه وای نو په هر کلي کښې به مویو یو وېروونکی راپاخولی وه .

وَ لَوۡ شِئۡنَا لَبَعَثۡنَا فِىۡ كُلِّ قَرۡيَةٍ نَّذِيۡرًا (۵۱)

نو ای پیغمبره ! د کافرانو خبره هیڅکله مه منه او داقرآن درسره واخله له هغو سره ستر جهاد وکړه .

فَلَا تُطِعِ الۡكٰفِرِيۡنَ وَ جَاهِدۡهُمۡ بِهٖ جِهَادًا كَبِيۡرًا (۵۲)

او داهماغه ذات دی چې دوه سمندرونه يې سره يو ځای کړي دي . يو خوږاو خوند ور ، بل ترېخ او تر يو ، او د دواړو په مينځ کښې يوه پرده حائله ده.يوخنډ دی چې هغه يې له ګډېدلونه ساتلی منع کړی دی.

وَ هُوَ الَّذِیْ مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّ هٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ وَ جَعَلَ بَیْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا (۵۳)

او هماغه ذات دی چې له اوبونه يې يو بشر پېدا کړ ، بيا يې له هغه نه دنسب او خسرګنی دوه بيلابيلی لړی وغځولې . ستاپروردګار دستر قدرت څښتن دی .

وَ هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّ صِهْرًا ؕ وَ كَانَ رَبُّكَ قَدِیْرًا (۵۴)

له دغه خدايه پرته خلك دهغوشيانو بندګي کوي چې نه دوی ته ګټه رسولی شي نه زيان . او د دی له پاسه داچې کافر د خپل رب پر خلاف د هر سرکش ملاتړ ګرځېدلی دی .

وَ یَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَنْفَعُهُمْ وَ لَا یَضُرُّهُمْ ؕ وَ كَانَ الْكَافِرُ عَلٰی رَبِّهٖ ظَهِیْرًا (۵۵)

ای محمده!ته خومونږ يوازی يو زيری ورکوونکی اوويروونکی لېږلی يي

وَ مَاۤ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّ نَذِیْرًا (۵۶)

دوی ته ووايه چې زه پدې وظيفه باندې له تاسې نه څه اجرت نه غواړم زما اجرت صرف دادی چې د چاچې زړه وغواړي هغه دې دخپل رب لاره غوره کړي .

قُلْ مَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ اِلَّا مَنْ شَآءَ اَنْ یَّتَّخِذَ اِلٰی رَبِّهٖ سَبِیْلًا (۵۷)

ای محمده ! پر هغه خدای توکل وکړه چې ژوندی دی او هېڅکله مړکېدونکی ندی د هغه له ستاينې سره د هغه پاکي بيان کړه . دخپلو بندګانو له ګناهونو څخه يوازې د همغه باخبر توب کافی دی .

وَ تَوَكَّلْ عَلَی الْحَیِّ الَّذِیْ لَا یَمُوْتُ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِهٖ ؕ وَ كَفٰی بِهٖ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِیْرًا (۵۸)

هغه ذات چې په شپږو ورځو کښې يې اسمانونه او ځمکه او ټول هغه څه پېدا کړل چې داسمانونو او ځمکې په مېنځ کښې دي بيا هغه پر عرش باندې استوای وکړه ، رحمان ، دهغه دشان پوښتنه له کوم پوهيدونکي څخه وکړه .

الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ مَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ ۚۛ اَلرَّحْمٰنُ فَسْـَٔلْ بِهٖ خَبِیْرًا (۵۹)

کله چې دوی ته ويل کېږي چې رحمان ته سجده وکړئ نو وائي رحمان څه وي؟ ايا ته چې څوك وايې نو مونږ به هماغه ته سجده کوو ؟ دغه بلنه دهغو کرکه برعکس لازياتوي .

وَ اِذَا قِیْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوْا وَ مَا الرَّحْمٰنُ * اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا وَ زَادَهُمْ نُفُوْرًا (۶۰)

ډير مبارك دی هغه ذات چې په اسمان کښې يې برجونه پېداکړل او په هغه کښې يې يوه ډيوه او يوه ځلانده سپوږمی روڼه کړه .

تَبٰرَكَ الَّذِیْ جَعَلَ فِی السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّ جَعَلَ فِیْهَا سِرٰجًا وَّ قَمَرًا مُّنِیْرًا (۶۱)

همغه ذات چې شپه او ورځ يې يوه د بلې جانشينه کړه . دهر هغه چالپاره چې غواړي درس واخلي يا غواړي شکر ويستونکی شي .

وَ هُوَ الَّذِیْ جَعَلَ الَّیْلَ وَ النَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ اَرَادَ اَنْ یَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا (۶۲)

درحمان اصلي بندګان هغه دی چې پر ځمکه باندې په وروځي او که جاهلان يې مخې ته راشي نو وائي تاسې ته سلام .

وَ عِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِیْنَ یَمْشُوْنَ عَلَی الْاَرْضِ هَوْنًا وَّ اِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ قَالُوْا سَلٰمًا (۶۳)

هغه کسان چې د خپل پروردګار په وړاندې په سجدو او قيام شپې تېروي

وَ الَّذِیْنَ یَبِیْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّ قِیَامًا (۶۴)

هغه کسان چې دُعا ګانې کوي چې ای زمونږ پروردګاره ! مونږ د دوزخ له عذابه وساته ، دهغه عذاب راپسې کېدونکی دی

وَ الَّذِیْنَ یَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ * اِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا (۶۵*)

هغه ډېر ناكاره استوګنځى او ځاى دى

اِنَّہَا سَآءَتۡ مُسۡتَقَرًّا وَّ مُقَامًا (۶۶)

هغه كسان چي كله لګښت كوي نو نه بېځايه لګښت كوي او نه بخيلي بلكه د هغو لګښت د دغو دواړو سرحدونو په مينځ كښي په ميانه روى ولاړ وي .

وَ الَّذِيۡنَ اِذَاۤ اَنۡفَقُوۡا لَمۡ يُسۡرِفُوۡا وَ لَمۡ يَقۡتُرُوۡا وَ كَانَ بَيۡنَ ذٰلِكَ قَوَامًا (۶۷)

هغه كسان چي له الله نه پرته كوم بل معبود نه بلى ، هغه نفس په ناحقه نه وژني چي خداى حرام كړى وي ، او نه دزنا مرتكب كېږي (خو) هر څوك چي دغه كار وكړي هغه به د خپلى ګناه بدله ومومي .

وَ الَّذِيۡنَ لَا يَدۡعُوۡنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـہًا اٰخَرَ وَ لَا يَقۡتُلُوۡنَ النَّفۡسَ الَّتِىۡ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالۡحَقِّ وَ لَا يَزۡنُوۡنَ ۚ وَ مَنۡ يَّفۡعَلۡ ذٰلِكَ يَلۡقَ اَثَامًا (۶۸)

د قيامت په ورځ به هغه ته مُكرّر عذاب وركړل شي او په همغه كښي به هغه دتل لپاره ذليل پروت وي

يُّضٰعَفۡ لَہُ الۡعَذَابُ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ وَ يَخۡلُدۡ فِيۡہٖ مُہَانًا (۶۹)

مګر داچي چا ( له دغو ګناهو نو څخه وروسته ) توبه ويستلي وي او ايمان يي راوړى وى او غوره عمل يي كړى وي . د دغسي خلكو بدى به الله په نيكيو بدلي كړي . او الله ښه ښنونكى اوخورا مهربان دى .

اِلَّا مَنۡ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِہِمۡ حَسَنٰتٍ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (۷۰)

څوك چي توبه وباسي او نيك عمل وكړي هغه نو د خداى لوري ته داسي راګرځي لكه څنګه چي دګرځېدلو حق دى

وَ مَنۡ تَابَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَاِنَّہٗ يَتُوۡبُ اِلَى اللّٰهِ مَتَابًا (۷۱)

او د رحمان بندګان هغه دى ) چي د دروغو شاهدي نه وايي او كه )
په كوم بابيزه شي باندي ورشي نو د شريفو انسانانو په څېر . ورڅخه تېرېږي

وَ الَّذِيۡنَ لَا يَشۡہَدُوۡنَ الزُّوۡرَ ۙ وَ اِذَا مَرُّوۡا بِاللَّغۡوِ مَرُّوۡا كِرَامًا (۷۲)

او هغو ته كه د هغو د پروردګار د ايتونو په اورېدلو نصيحت كېږي . نو هغوى پرې ځان ړوند كوڼ نه اچوي .

وَ الَّذِيۡنَ اِذَا ذُكِّرُوۡا بِاٰيٰتِ رَبِّہِمۡ لَمۡ يَخِرُّوۡا عَلَيۡہَا صُمًّا وَّ عُمۡيَانًا (۷۳)

او هغه كسان چي دعا ګاني كوي چي اى زمونږ پروردګاره! مونږ ته له خپلو ميرمنو او اولادونو څخه د سترګو يخنى راكړه او مونږ د پرهېزګارانو امامان كړه

وَ الَّذِيۡنَ يَقُوۡلُوۡنَ رَبَّنَا هَبۡ لَنَا مِنۡ اَزۡوَاجِنَا وَ ذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ اَعۡيُنٍ وَّ اجۡعَلۡنَا لِلۡمُتَّقِيۡنَ اِمَامًا (۷۴)

دغه دي هغه كسان چي د خپل صبر مېوه به د دنګي مانى په بڼه كښي ومومي . په آدابو او سلامونو سره به هلته دهغو هر كلى كېږي.

اُولٰٓئِكَ يُجۡزَوۡنَ الۡغُرۡفَةَ بِمَا صَبَرُوۡا وَ يُلَقَّوۡنَ فِيۡہَا تَحِيَّةً وَّ سَلٰمًا (۷۵)

هغوى به دتل لپاره هلته اوسېږي څومره ښه دى هغه استوګنځى او هغه ځاى .

خٰلِدِيۡنَ فِيۡہَا ؕ حَسُنَتۡ مُسۡتَقَرًّا وَّ مُقَامًا (۷۶)

اى محمده ! خلكو ته ووايه زما رب تاسي ته څه اړتيا لري كه تاسي هغه ونه بلئ اوس چي تاسي د دروغو نسبت كړېدى . ډېر ژربه هغه سزاومومئ . چي ځان ژغورل به درته محال شي .

قُلۡ مَا يَعۡبَؤُا بِكُمۡ رَبِّىۡ لَوۡ لَا دُعَآؤُكُمۡ ۚ فَقَدۡ كَذَّبۡتُمۡ فَسَوۡفَ يَكُوۡنُ لِزَامًا (۷۷)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ط س – م –

طٰسٓمٓ (۱)

داد روښانوونكي كتاب ايتونه دي .

تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ (۲)

اى محمده ! ښائي ته پدې غم كښي خپل ځان بايلې چي دغه خلك ايمان نه راوړى .

لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفۡسَكَ اَلَّا يَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ (۳)

كه مونږ وغواړونو له اسمانه داسي نښانه نازلولى شو چي د دوى غاړي دهغي په وړاندي ښكته شى .

اِنۡ نَّشَاۡ نُنَزِّلۡ عَلَيۡہِمۡ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتۡ اَعۡنَاقُہُمۡ لَہَا خٰضِعِيۡنَ (۴)

او دغو خلكو ته چي درحمان له لوري هر نوى نصيحت راځى دوى ورڅخه مخ اړوي .

وَ مَا يَاۡتِيۡہِمۡ مِّنۡ ذِكۡرٍ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ مُحۡدَثٍ اِلَّا كَانُوۡا عَنۡہُ مُعۡرِضِيۡنَ (۵)

| | |
|---|---|
| اوس چې دوی د دروغو نسبت کړیدی ، ډیر ژربه دوی ته دهغه شی حقیقت ( له بیلابیلو لارونه )څرګند شي چې دوی په هغه پوری ملنډې وهې. | فَقَدْ كَذَّبُوْا فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۶) |
| او ایا دوی کله ځمکې ته ندې کتلې چې مونږ څومره زیات هر ډول عمده نباتات پکښې راټوکولی دي ؟ | اَوَ لَمْ يَرَوْا اِلَى الْاَرْضِ كَمْ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ (۷) |
| په یقینی توګه پدې کې یوه نښانه ده ، خوله دوی نه زیاتره منونکې ندې | اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُ هُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۸) |
| او حقیقت دادی چې ستا رب زور ور هم دی او رحیم هم . | وَ اِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ (۹) |
| او دوی ته دهغه وخت قصه واوروه چې کله ستا رب موسی (ع) ته ناری کړې (( ظالم قوم ته ورشه | وَ اِذْ نَادٰي رَبُّكَ مُوْسٰۤى اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (ۙ۱۰) |
| دفرعون قوم ته ایا هغوی نه ویریږي ؟)) | قَوْمَ فِرْعَوْنَ ؕ اَلَا يَتَّقُوْنَ (۱۱) |
| هغه عرض وکړ : (( ای زما ربه ویریږم چې هغوې به ما دروغجن وګڼې . | قَالَ رَبِّ اِنِّيْۤ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ (ؕ۱۲) |
| زما سینه تنګیږي او زما ژبه نګرځي . ته هارون ته رسالت ولیږه . | وَ يَضِيْقُ صَدْرِيْ وَ لَا يَنْطَلِقُ لِسَانِيْ فَاَرْسِلْ اِلٰى هٰرُوْنَ (۱۳) |
| او پر ما باندې د هغو په وړاندې د یو جرم تور هم شته ، ځکه نوزه ویریږم چې هغوی به ما ووژنې )). | وَ لَهُمْ عَلَيَّ ذَنْۢبٌ فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ (ۚ۱۴) |
| ویې فرمایل (( هیڅکله نه تاسې دواړه لاړ شئ زمونږ نښانې درسره واخلئ ، مونږ به له تاسې سره هر څه اورو . | قَالَ كَلَّا ۚ فَاذْهَبَا بِاٰيٰتِنَاۤ اِنَّا مَعَكُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ (۱۵) |
| فرعون ته ورشئ او هغه ته وواياست : مونږ ربُّ العلمين د دې لپاره رالیږلې یو | فَاْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُوْلَاۤ اِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (ۙ۱۶) |
| چې ته بنی اسرائیل له مونږ سره تلوته پریږ دې )) | اَنْ اَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ (ؕ۱۷) |
| فرعون وویل : (( ایا مونږ ته له ځان سره داولاد په څیر نه وې پاللی ؟ تا د خپل عمر ډیر کلونه له مونږ سره تیر کړل | قَالَ اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّ لَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ (ۙ۱۸) |
| او له هغه وروسته دې وکړل څه چې دې وکړل ته خو را ښیګڼه هیروونکی سړی یې )). | وَ فَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِيْ فَعَلْتَ وَ اَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ (۱۹) |
| موسی ( ع) ځواب ورکړ په هغه وخت کښی ماهغه کار په ناپوهی سره کړی و ء . | قَالَ فَعَلْتُهَاۤ اِذًا وَّ اَنَا مِنَ الضَّآلِّيْنَ (ؕ۲۰) |
| بیا زه ستاسې له ویرې نه وتښتیدم له هغه وروسته زما رب ماته حکم راکړ او زه یې په پیغمبرانو کښې شامل کړم | فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِيْ رَبِّيْ حُكْمًا وَّ جَعَلَنِيْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ (۲۱) |
| پاتی شوه ستا ښیګڼه چې تاله ماسره کړیده نو دهغې حقیقت دادی چې تا بنی اسرائیل خپل غلامان ګرځولي وو )) | وَ تِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ (ؕ۲۲) |
| فرعون وویل (( او داربُّ العٰلمّین څه دي ))؟ | قَالَ فِرْعَوْنُ وَ مَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ (ؕ۲۳) |
| موسی (ع) ځواب ورکړ : داسمانونو او ځمکې رب ، او د ټولو هغو شیانورب چې داسمان او ځمکې په مینځ کښې دي ، که تاسې باور کوونکې یاست )). | قَالَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ؕ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ (۲۴) |
| فرعون خپلو خواوشا خلکوته وویل : ایا نه اورئ؟ | قَالَ لِمَنْ حَوْلَهٗۤ اَلَا تَسْتَمِعُوْنَ (۲۵) |

| | |
|---|---|
| موسی وویل : ستاسي رب هم او ستاسي دهغو پلرونو نیکونورب هم چي مخکښي تیر شویدي )). | قَالَ رَبُّكُمْ وَ رَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ (۲۶) |
| فرعون ( حاضرینوته ) وویل : (( ستاسي دا ( پیغمبر چي تاسي ته رالیږل شویدی بیخی لیونی ښکار یږي )). | قَالَ اِنَّ رَسُوْلَكُمُ الَّذِیْٓ اُرْسِلَ اِلَيْكُمْ لَمَجْنُوْنٌ (۲۷) |
| موسی وویل : دختیزاو لویدیز او هر څه چي د دې په مینځ کښي دي دهغو ټولو رب ، که تاسي څه پوهه لرئ ))، | قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَ الْمَغْرِبِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ؕ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ (۲۸) |
| فرعون وویل : (( که تا له ماپرته کوم بل معبود ومانه نو تابه هم په هغو خلکو کښي شامل کړم چي په بندیخانو کښي پراته ورستیږي )) . | قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰـهًا غَيْرِیْ لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ (۲۹) |
| موسی وویل : ((اګر که زه تاته یو څرګند شی راوړم هم))؟ | قَالَ اَوَ لَوْ جِئْتُكَ بِشَیْءٍ مُّبِيْنٍ (۳۰) |
| فرعون وویل : ((ښه نو راوړه که ته ریښتونی یی )). | قَالَ فَاْتِ بِهٖۤ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ (۳۱) |
| دهغه له خولې نه د دې خبرې له وتلو سره سم ) موسی خپله ) همساوغورځوله اوپه ناڅاپي ډول هغه یو ښکاره ښامار وء . | فَاَلْقٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِیَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ (۳۲) |
| بیایي خپل لاس (له ترخ نه ) راوویست او هغه د ټولو کتونکو په وړاندې ځلیده . | وَّ نَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِیَ بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ (۳۳) |
| فرعون خپلو خواوشا سردارانو ته وویل : ((داسړی په یقینی ډول یو ماهر کوډګردی | قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗۤ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ (۳۴) |
| غواړی چي د خپلو کوډو په زور تاسي ستاسي له هیواد نه و باسي . اوس وواياست تاسي څه حکم کوئ)) | يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ ۖ فَمَا ذَا تَاْمُرُوْنَ (۳۵) |
| هغوی وویل :(( دی او د ده ورور ایسار کړه او په ښارونو کښي ماسلان وګرځوه | قَالُوْۤا اَرْجِهْ وَ اَخَاهُ وَ ابْعَثْ فِی الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ (۳۶) |
| چي هریو ماهر کوډ ګر درته راولي)) . | يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ (۳۷) |
| لکه چي یوه ورځ په ټاکلي وخت کوډګران راغونډ کړای شول | فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ (۳۸) |
| او خلکو ته وویل شول (( ایا تاسي به غونډې ته ورشئ ؟ | وَّ قِيْلَ لِلنَّاسِ هَلْ اَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ (۳۹) |
| ښائي چي مونږ د کوډ ګرو په دین شو که هغوی برلاسی شي)). | لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ اِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ (۴۰) |
| نو کله چي کوډګر میدان ته راغلل هغوی فرعون ته وویل (( مونږ ته خو به انعام وي که چیرته مونږ بری وګټو؟)) | فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوْا لِفِرْعَوْنَ اَئِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ (۴۱) |
| هغه وویل : (( هو او تاسي به بیا په هغه وخت کښي په نژدیو کسانو کښي شمار یاست ، | قَالَ نَعَمْ وَ اِنَّكُمْ اِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ (۴۲) |
| موسی وویل : وغورځوئ دڅه چي تاسي غور ځوونکي يئ )) | قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰۤى اَلْقُوْا مَاۤ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ (۴۳) |
| نو هغوې سمدلاسه خپلې رسی او همساوې وغورځولې او ویې ویل د فرعون په بخت به همدا مونږ بری میندونکي یو . | فَاَلْقَوْا حِبَالَهُمْ وَ عِصِيَّهُمْ وَ قَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ اِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ (۴۴) |
| بیا موسی خپله همساوغورځوله نو په ناڅاپي ډول هغې د هغو د دروغوکارنامي خوړلې تیرولې | فَاَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِیَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ (۴۵) |
| پدې سره ټول کوډ ګران سمدلاسه په سجده پریوتل | فَاُلْقِیَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ (۴۶) |

او غړيي وکړ چي مونږ رب العلمين ومانه
قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۴۷)

د موسى او هارون رب .
رَبِّ مُوْسٰى وَ هٰرُوْنَ (۴۸)

فرعون وويل : (( تاسي د موسى خبره ومنله مخکښي له دې نه چي ماتاسي ته اجازه درکړې واى ! هرو مرو داستاسي مشر دى چي تاسي ته يي کوډې درښودلي دي . ښه نو ، همدا اوس به وپوهيږئ زه به ستاسي لاسونه او پښي رد بدل غوڅ کړم او تاسي ټول به په داروځړوم .
قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۚ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۬ۥ لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَ اَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّ لَاُوصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ (۴۹)

هغوى ځواب ورکړ:هيڅ پروانشته،مونږبيرته دخپل رب حضورته ورتلونکي يو
قَالُوْا لَا ضَيْرَ ۫ اِنَّا اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ (۵۰)

او مونږ هيله من يو چي زمونږ رب به زمونږ گناهونه وبښي ځکه چي مونږ تر ټولو مخکي ايمان راوړيدى )).
اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَا اَنْ كُنَّا اَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ (۵۱)

او مونږ موسى ته وحى وليږله چي د شپې شپې زما بندگان درسره واخله ووځه ، تاسي به تعقيب کړاى شئ .
وَ اَوْحَيْنَا اِلٰى مُوْسٰى اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِيْ اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ (۵۲)

پدې سره فرعون ( د لښکر وبرابر ولو لپاره ) ښارونوته ماسلان وليږل
فَاَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِى الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ (۵۳)

چي دايو موټى لږ شان خلك دى ، (اوپدې وينايي وليږل )
اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ (۵۴)

او دوى ډيرپه غوسه کړي يو ،
وَ اِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُوْنَ (۵۵)

او مونږ داسي يوه ډله يو چي هر وخت بيداريو )).
وَ اِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ (۵۶)

پدې ډول مونږ هغوى راوويستل دهغو له باغونو ، چينو ،
فَاَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّ عُيُوْنٍ (۵۷)

خزانو او دهغو له ډيرو ښوهستوگنځيو ځخه .
وَّ كُنُوْزٍ وَّ مَقَامٍ كَرِيْمٍ (۵۸)

داخو وشول له هغو سره ، او ( بلي خواته ) مونږ بنى اسرائيل د دغو ټولو شيانو وارثان وگرځول .
كَذٰلِكَ ۗ وَ اَوْرَثْنٰهَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ (۵۹)

سهار شو دوى دهغوى په تعقيبولو کښي شول .
فَاَتْبَعُوْهُمْ مُّشْرِقِيْنَ (۶۰)

کله چي دواړه ډلي سره مخامخ شوې نو ( دموسى (ع) ملگرو چيغه کړه چي مونږ خو ونيول شوو))
فَلَمَّا تَرَآءَ الْجَمْعٰنِ قَالَ اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ (۶۱)

موسى (ع) وويل : هيڅکله نه ، له ماسره زمارب دى . هغه به هرو مرو ماته لارښوونه وکړي
قَالَ كَلَّا ۚ اِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ (۶۲)

مونږ موسى ته دوحى په وسيله حکم وکړ چي ووهه په خپلي همساسره سمندر په ناڅاپي ډول سمندر وچاوده او دهغه هره ټوټه ديولوى غره په څير شوه
فَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنِ اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ۗ فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ (۶۳)

همالته مونږ بله ډله نژدې راوستله .
وَ اَزْلَفْنَا ثَمَّ الْاٰخَرِيْنَ (۶۴)

موسى او ټول هغه کسان چي له هغه سره وو ، مونږ وژغورل ،
وَ اَنْجَيْنَا مُوْسٰى وَ مَنْ مَّعَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ (۶۵)

او نور مو غرق کړل .
ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ (۶۶)

پدې پيښه کښي يوه نښانه ده،خو له دغو خلکو نه زياتره منونکي نه وو.
اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۗ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (۶۷)

او حقيقت دادى چي ستا رب زورورهم دى او ډير زيات مهربان هم .
وَ اِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ (۶۸)

او دوى ته دابراهيم قصه واوروه
وَ اتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ اِبْرٰهِيْمَ (۶۹)

| | |
|---|---|
| کله چې هغه له خپل پلار او خپل قوم څخه پوښتنه کړې وه چې داڅه شیان دي چې تاسې یې عبادت کوئ ؟ | اِذۡ قَالَ لِاَبِیۡہِ وَ قَوۡمِہٖ مَا تَعۡبُدُوۡنَ (۷۰) |
| هغو ځواب ورکړ یوڅه بُتان دي چې مونږ یې عبادت کوو او مونږ د همدوی په خدمت بوخت یو | قَالُوۡا نَعۡبُدُ اَصۡنَامًا فَنَظَلُّ لَہَا عٰکِفِیۡنَ (۷۱) |
| هغه پوښتنه وکړه:ایا دوی ستاسې اوري کله چې تاسې دوی ته بلنه ورکوئ ؟ | قَالَ ہَلۡ یَسۡمَعُوۡنَکُمۡ اِذۡ تَدۡعُوۡنَ (ۙ۷۲) |
| یا دوی تاسې ته څه ګټه یازیان رسوي ؟ | اَوۡ یَنۡفَعُوۡنَکُمۡ اَوۡ یَضُرُّوۡنَ (۷۳) |
| هغو ځواب ورکړ : نه بلکې مونږ خپل پلار نیکه د همدې کار په کولو میندلي دي . | قَالُوۡا بَلۡ وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا کَذٰلِکَ یَفۡعَلُوۡنَ (۷۴) |
| ابراهیم وویل : کله هم تاسې ( په غږېدلو سترګو هغو شیانو ته کتلي چې د هغو بندګي مو کړې ده ؟ | قَالَ اَفَرَءَیۡتُمۡ مَّا کُنۡتُمۡ تَعۡبُدُوۡنَ (ۙ۷۵) |
| تاسې او ستاسې مخکینیو پلرونو نیکونو | اَنۡتُمۡ وَ اٰبَآؤُکُمُ الۡاَقۡدَمُوۡنَ (ۚ۷۶) |
| زما خو دا ټول د ښمنان دي ، له یو رب العلمین نه پرته | فَاِنَّہُمۡ عَدُوٌّ لِّیۡۤ اِلَّا رَبَّ الۡعٰلَمِیۡنَ (ۙ۷۷) |
| چې هغه زه پیدا کړي یم ، بیا هماغه راته لارښوونه کوي . | الَّذِیۡ خَلَقَنِیۡ فَہُوَ یَہۡدِیۡنِ (ۙ۷۸) |
| هغه ذات چې ماته خوراك ، څښاك راکوي | وَ الَّذِیۡ ہُوَ یُطۡعِمُنِیۡ وَ یَسۡقِیۡنِ (ۙ۷۹) |
| او کله چې ناروغېږم هماغه مې روغوي . | وَ اِذَا مَرِضۡتُ فَہُوَ یَشۡفِیۡنِ (ۙ۸۰) |
| هغه ذات چې مرګ به راکړي او بیا به مې دوهم ځل ژوندی کړي . | وَ الَّذِیۡ یُمِیۡتُنِیۡ ثُمَّ یُحۡیِیۡنِ (ۙ۸۱) |
| هغه ذات چې له هغه څخه زه هیله لرم چې هغه دجزاپه ورځ زماخطامعاف کړي. | وَ الَّذِیۡۤ اَطۡمَعُ اَنۡ یَّغۡفِرَ لِیۡ خَطِیۡٓئَتِیۡ یَوۡمَ الدِّیۡنِ (ؕ۸۲) |
| له دې وروسته ابراهیم دعا وکړه ) ای زما ربه ! ماته حکم راوښیه ) او ماله صالحانو سره یو ځای کړه | رَبِّ ہَبۡ لِیۡ حُکۡمًا وَّ اَلۡحِقۡنِیۡ بِالصّٰلِحِیۡنَ (ۙ۸۳) |
| او په وروسته نسلونو کښې رېښتیانی نو میالیتوب راپه برخه کړه . | وَ اجۡعَلۡ لِّیۡ لِسَانَ صِدۡقٍ فِی الۡاٰخِرِیۡنَ (ۙ۸۴) |
| او ماله نعمتونو څخه د مالامال جنت له وارثانو څخه وګرځوه | وَ اجۡعَلۡنِیۡ مِنۡ وَّرَثَۃِ جَنَّۃِ النَّعِیۡمِ (ۙ۸۵) |
| او زما پلارته ښښنه وکړه چې پیشکه هغه له ګمراهانو څخه دی | وَ اغۡفِرۡ لِاَبِیۡۤ اِنَّہٗ کَانَ مِنَ الضَّآلِّیۡنَ (ۙ۸۶) |
| اوماپه هغه ورځ مه رسواکوه چې کله ټول خلك ژوندي راپاڅول شي . | وَ لَا تُخۡزِنِیۡ یَوۡمَ یُبۡعَثُوۡنَ (ۙ۸۷) |
| کله چې نه مال څه ګټه ورسوي نه اولاد ، | یَوۡمَ لَا یَنۡفَعُ مَالٌ وَّ لَا بَنُوۡنَ (ۙ۸۸) |
| پرته له دې نه چې څوك له روغ سپیڅلي زړه سره دالله حضورته ورغلی وي)). | اِلَّا مَنۡ اَتَی اللّٰہَ بِقَلۡبٍ سَلِیۡمٍ (ؕ۸۹) |
| په هغه ورځ به ) جنت پرهیزګارانو ته نژدې راوستل شي ) | وَ اُزۡلِفَتِ الۡجَنَّۃُ لِلۡمُتَّقِیۡنَ (ۙ۹۰) |
| او دوزخ به د ګمراه شویو خلکو لپاره پرانستل شي . | وَ بُرِّزَتِ الۡجَحِیۡمُ لِلۡغٰوِیۡنَ (ۙ۹۱) |
| او له هغونه به پوښتنه وشي چې اوس چېرته دي هغه هستی چې تاسې د هغو عبادت کاوه ؟ | وَ قِیۡلَ لَہُمۡ اَیۡنَمَا کُنۡتُمۡ تَعۡبُدُوۡنَ (ۙ۹۲) |
| له خدایه پرته ایا هغوی له تاسې سره څه مرسته کولای شي یا پخپله ځان ژغورلای شي ؟ | مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ ؕ ہَلۡ یَنۡصُرُوۡنَکُمۡ اَوۡ یَنۡتَصِرُوۡنَ (ؕ۹۳) |
| بیابه هغه معبودان اودغه ګمراه شوي کسان په هغه کښې پرمخې وغورځول شي. | فَکُبۡکِبُوۡا فِیۡہَا ہُمۡ وَ الۡغَاوٗنَ (ۙ۹۴) |
| او دابلیس لښکر ټول | وَ جُنُوۡدُ اِبۡلِیۡسَ اَجۡمَعُوۡنَ (ؕ۹۵) |

| ترجمه | آیت |
|---|---|
| هلته به دوی تول په خپلو مینځو کښي په ناندریو شخړه وکړي | قَالُوْا وَ ہُمْ فِیْہَا یَخْتَصِمُوْنَ (۹۶) |
| او دغه گمراهان به ( خپلو معبودانوته ) ووائي چي (( په خدای قسم ، مونږ خوپه ښکاره گمراهی کښي اخته وو | تَاللّٰہِ اِنْ کُنَّا لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ (۹۷) |
| چي تاسي ته مو د رب العٰلمین سره برابره درجه درکوله . | اِذْ نُسَوِّیْکُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (۹۸) |
| او هغه کسان مجرمان ووچي مونږ یي پدې گمراهی کښي وغورځولو . | وَ مَاۤ اَضَلَّنَاۤ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ (۹۹) |
| اوس نه زمونږ څوك سپاربښت کوونکی شته . | فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِیْنَ (۱۰۰) |
| او نه څوك صمیمی دوست . | وَ لَا صَدِیْقٍ حَمِیْمٍ (۱۰۱) |
| کاشکي مونږ ته یو ځل بیا دبیرته گرځیدو موقع په لاس راشی نو مونږ به موءمنان شو | فَلَوْ اَنَّ لَنَا کَرَّۃً فَنَکُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ (۱۰۲) |
| په باوری توگه پدې کښي یوه ستره نښانه ده، خو له دوی نه زیاتره خلك ایمان راوړونکي ندي. | اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً ؕ وَ مَا کَانَ اَکْثَرُہُمْ مُّؤْمِنِیْنَ (۱۰۳) |
| او حقیقت دادی چي ستارب زورورهم دئ او خو را مهربان هم . | وَ اِنَّ رَبَّکَ لَہُوَ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ (۱۰۴) |
| د نوح قوم پیغمبران دروغجن وگڼل . | کَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ الْمُرْسَلِیْنَ (۱۰۵) |
| دریا د کړه کله چي دهغو ورور نوح هغوته ویلي وو . ایا تاسي نه ویریږئ ؟ | اِذْ قَالَ لَہُمْ اَخُوْہُمْ نُوْحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ (۱۰۶) |
| زه ستاسي لپاره یو امانتگر پیغمبر یم . | اِنِّیْ لَکُمْ رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ (۱۰۷) |
| نو تاسي له الله وویریږئ او زما اطاعت وکړئ | فَاتَّقُوا اللّٰہَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۱۰۸) |
| زه پدې کار باندي له تاسي نه دځه اجرت غوښتونکی نه یم زما اجر خو دمخلوقاتو د پالونکي په ذمه دی . | وَ مَاۤ اَسْئَلُکُمْ عَلَیْہِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (۱۰۹) |
| نو تاسي له الله نه وویریږئ او ( په زغرده ) زما اطاعت وکړی . | فَاتَّقُوا اللّٰہَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۱۱۰) |
| هغو ځواب ورکړ : ایا مونږ تاومنو پداسي حال کښي چي ستا پیروی ډیرو رذیلو (خوارو) خلکو غوره کړیده؟ | قَالُوْۤا اَنُؤْمِنُ لَکَ وَ اتَّبَعَکَ الْاَرْذَلُوْنَ (۱۱۱) |
| نوح وویل : زه څه پوهیږم چي دهغو عمل څنگه دی . | قَالَ وَ مَا عِلْمِیْ بِمَا کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ (۱۱۲) |
| دهغوحساب خوزمادرب په ذمه دی،کاشکي تاسي له یو څه شعورنه کار واخلئ . | اِنْ حِسَابُہُمْ اِلَّا عَلٰی رَبِّیْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ (۱۱۳) |
| زما داکار ندی چي څوك ایمان راوړي . زه هغوی وشړم . | وَ مَاۤ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِیْنَ (۱۱۴) |
| زه خو فقط یوښکاره څرگنده تنبیه کوونکی انسان یم . | اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ (۱۱۵) |
| هغو وویل : ای نوحه ! که تالاس وانخیست نو په ویشتل شو یو کسانو کښي به شامل شي | قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَہِ یٰنُوْحُ لَتَکُوْنَنَّ مِنَ الْمَرْجُوْمِیْنَ (۱۱۶) |
| نوح دعا وکړه ای زما پروردگاره ! زما قوم زه دروغجن وگڼلم . | قَالَ رَبِّ اِنَّ قَوْمِیْ کَذَّبُوْنِ (۱۱۷) |
| اوس زما او د دوی ترمینځه غوځه فیصله وکړه او ماته او زما ملگرو مومناتوته نجات راکړه | فَافْتَحْ بَیْنِیْ وَ بَیْنَہُمْ فَتْحًا وَّ نَجِّنِیْ وَ مَنْ مَّعِیَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ (۱۱۸) |
| په پای کښي مونږ هغه او دهغه ملگري په یوه ډکه شوې بیړۍ کښي وژغورل. | فَاَنْجَیْنٰہُ وَ مَنْ مَّعَہٗ فِی الْفُلْکِ الْمَشْحُوْنِ (۱۱۹) |
| او له هغي وروسته موباقي نور خلك غرق کړل . | ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبٰقِیْنَ (۱۲۰) |
| په یقیني توگه پدې کښي یوه نښانه ده خو له دوی نه زیاتره خلك منونکي ندي . | اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً ؕ وَ مَا کَانَ اَکْثَرُہُمْ مُّؤْمِنِیْنَ (۱۲۱) |
| او حقیقت دادی چي ستارب برلاسی هم دئ او خورا مهربان هم . | وَ اِنَّ رَبَّکَ لَہُوَ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ (۱۲۲) |
| عادیانو پیغمبران دروغجن وگڼل. | کَذَّبَتْ عَادُ ۣالْمُرْسَلِیْنَ (۱۲۳) |

| | |
|---|---|
| اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ هُوْدٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ (۱۲۴) | یا دکړه هغه وخت چې دهغو وروړهو د هغوی ته ویلي وو:ایانه وېرېږئ؟ |
| اِنِّیْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ (۱۲۵) | زه ستاسي لپاره یو امانتدار پیغمبریم. |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۱۲۶) | نو تاسي له الله نه وویرېږئ او زما اطاعت وکړئ . |
| وَ مَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (۱۲۷) | زه پدی کار باندې له تاسي نه دڅه اجر غوښتونکی نه یم .زما اجر خو درب العٰلمین په ذمه دی . |
| اَتَبْنُوْنَ بِكُلِّ رِیْعٍ اٰیَةً تَعْبَثُوْنَ (۱۲۸) | ایا تاسي پرهره هسکه بابیزه یوه نښانه یادګاري ودانی جوړ وئ . |
| وَ تَتَّخِذُوْنَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُوْنَ (۱۲۹) | او لویې لویې ښکلي ماڼی ودانوئ چې ته به وایي دلته ستاسي ابدي هستوګنه ده . |
| وَ اِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِیْنَ (۱۳۰) | او کله چې په چاباندې لاس پورته کوئ دجبّاریت په توګه یي پورته کوئ . |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۱۳۱) | نو تاسي له الله نه وویرېږئ او زما اطاعت وکړئ . |
| وَ اتَّقُوا الَّذِیْۤ اَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُوْنَ (۱۳۲) | له هغه ذات څخه وویرېږئ چې تاسي ته یي هغه څه درکړیدي چې تاسي پرې وپوهیږئ . |
| اَمَدَّكُمْ بِاَنْعَامٍ وَّ بَنِیْنَ (۱۳۳) | تاسي ته یي څاروي درکړل ، او لادونه یي درکړل ، |
| وَ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوْنٍ (۱۳۴) | باغونه یي درکړل او چیني یي درکړي . |
| اِنِّیْۤ اَخَافُ عَلَیْكُمْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ (۱۳۵) | زه ستاسي په باب دیوې لویې ورځې له عذابه ویرېږم ، |
| قَالُوْا سَوَآءٌ عَلَیْنَاۤ اَوَ عَظْتَ اَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوٰعِظِیْنَ (۱۳۶) | هغوځواب ورکړ:ته که نصیحت وکړې که یي ونکړې،زمونږ لپاره یي تفاوته ده. |
| اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا خُلُقُ الْاَوَّلِیْنَ (۱۳۷) | دا خبرې خوهمدغسي له پخوانه شویدي. |
| وَ مَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِیْنَ (۱۳۸) | او مونږ په عذاب اخته کیدونکي نه یو |
| فَكَذَّبُوْهُ فَاَهْلَكْنٰهُمْ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً ؕ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِیْنَ (۱۳۹) | په پای کښې یې هغه دروغجن وګاڼه او مونږ هغوې هلاك کړل . په باوري ډول پدې کښي یوه نښانه ده . خوله هغونه زیاتره منونکي ندي . |
| وَ اِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ (۱۴۰) | او حقیقت دادی چې ستارب برلاسی هم دی او خورا مهربان هم . |
| كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ الْمُرْسَلِیْنَ (۱۴۱) | ثمودیانو پیغمبران دروغجن وګڼل . |
| اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ صٰلِحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ (۱۴۲) | یادکړه هغه وخت چې دهغو ورور صالح هغو ته وویل :ایا تاسي نه ویرېږئ ؟ |
| اِنِّیْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِیْنٌ (۱۴۳) | زه ستاسي لپاره یو امانتګر پیغمبریم . |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۱۴۴) | نو تاسي له الله نه وویرېږئ او زما اطاعت وکړئ |
| وَ مَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَیْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ (۱۴۵) | زه په دې کار باندې له تاسي نه دڅه اجرت غوښتونکی نه یم ، زما اجر خو درب العلمین په ذمه دی . |
| اَتُتْرَكُوْنَ فِیْ مَا هٰهُنَاۤ اٰمِنِیْنَ (۱۴۶) | ایا تاسي به د ټولو هغو شیانوپه مینځ کې چې دلته دي ، همداسې په ډاډینی سره اوسیدوته پریښودل شئ . |
| فِیْ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوْنٍ (۱۴۷) | پدغو باغونو او چینو کښي ؟ |
| وَّ زُرُوْعٍ وَّ نَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِیْمٌ (۱۴۸) | پدغو کښتونو او خرمابڼونو کښي چې وږي یي له باره ډك دي ؟ |

| | |
|---|---|
| تاسي غرونه توړی ،. په ویاړ سره پکښې ودانی جوړوئ . | وَ تَنۡحِتُوۡنَ مِنَ الۡجِبَالِ بُیُوۡتًا فٰرِہِیۡنَ (۱۴۹) |
| له الله نه وویریږئ او زما اطاعت وکړئ . | فَاتَّقُوا اللّٰہَ وَ اَطِیۡعُوۡنِ (۱۵۰) |
| دهغو بې قیزې خلکو اطاعت مکوئ | وَ لَا تُطِیۡعُوۡۤا اَمۡرَ الۡمُسۡرِفِیۡنَ (۱۵۱) |
| چې په ځمکه کښې فساد خپروي او څه اصلاح نکوي. | الَّذِیۡنَ یُفۡسِدُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ وَ لَا یُصۡلِحُوۡنَ (۱۵۲) |
| هغو ځواب ورکړ : ته محضې یو کو ډو وهلی انسان یې | قَالُوۡۤا اِنَّمَاۤ اَنۡتَ مِنَ الۡمُسَحَّرِیۡنَ (۱۵۳) |
| ته زمونږ په څیر یوانسان نه پرته نور څه نه یې راوړه کومه نښانه که رښتونی یې | مَاۤ اَنۡتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُنَا ۚۖ فَاۡتِ بِاٰیَۃٍ اِنۡ کُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِیۡنَ (۱۵۴) |
| صالح وویل : دا اوښه ده . یوه ورځ د هغې د څښلو ده او یوه ورځ ستاسې ټولو داوبو اخیستلو . | قَالَ ہٰذِہٖ نَاقَۃٌ لَّہَا شِرۡبٌ وَّ لَکُمۡ شِرۡبُ یَوۡمٍ مَّعۡلُوۡمٍ (۱۵۵) |
| له هغې سره هیڅکله غرض مکوئ کنه نو دیوې لویې ورځې عذاب به مو ونیسی . | وَ لَا تَمَسُّوۡہَا بِسُوۡٓءٍ فَیَاۡخُذَکُمۡ عَذَابُ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ (۱۵۶) |
| خو هغوی دهغې سپینې ووهلې اوپه پای کښې پښیمانه شول . | فَعَقَرُوۡہَا فَاَصۡبَحُوۡا نٰدِمِیۡنَ (۱۵۷) |
| عذاب هغوی ونیول په باوري ډول پدې کښې یوه نښانه ده خوله هغوی نه زیاتره منونکي ندي | فَاَخَذَہُمُ الۡعَذَابُ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً ؕ وَ مَا کَانَ اَکۡثَرُہُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ (۱۵۸) |
| او حقیقت دادی چې ستارب برلاسی هم دی او خورا مهربان هم . | وَ اِنَّ رَبَّکَ لَہُوَ الۡعَزِیۡزُ الرَّحِیۡمُ (۱۵۹) |
| دلوط قوم پیغمبران دروغجن وګڼل . | کَذَّبَتۡ قَوۡمُ لُوۡطِ ۣ الۡمُرۡسَلِیۡنَ (۱۶۰) |
| هغه وخت یاد کړه چې دهغو ورور لوط هغوته ویلي وو ایا تاسي نه ویریږ ئ ؟ | اِذۡ قَالَ لَہُمۡ اَخُوۡہُمۡ لُوۡطٌ اَلَا تَتَّقُوۡنَ (۱۶۱) |
| زه ستاسي لپاره یو امانتګر پیغمبریم . | اِنِّیۡ لَکُمۡ رَسُوۡلٌ اَمِیۡنٌ (۱۶۲) |
| نو تاسي له الله نه وویریږئ ، اوزما اطاعت وکړئ . | فَاتَّقُوا اللّٰہَ وَ اَطِیۡعُوۡنِ (۱۶۳) |
| زه له تاسي نه پدې کار باندې د څه اجرت غوښتونکی نه یم ، زما اجرخو درب العلمین په ذمه دی . | وَ مَاۤ اَسۡـَٔلُکُمۡ عَلَیۡہِ مِنۡ اَجۡرٍ ۚ اِنۡ اَجۡرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۱۶۴) |
| ایا تاسي دنړی له خلکو نه نارینه وء ته ورځئ | اَتَاۡتُوۡنَ الذُّکۡرَانَ مِنَ الۡعٰلَمِیۡنَ (۱۶۵) |
| اوستاسي په میرمنو کښې چې ستاسي رب ستاسي لپاره څه پیداکړیدي هغه پریږ دئ ؟ بلکې تاسي له حده تیر شوي خلك یاست . | وَ تَذَرُوۡنَ مَا خَلَقَ لَکُمۡ رَبُّکُمۡ مِّنۡ اَزۡوَاجِکُمۡ ؕ بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ عٰدُوۡنَ (۱۶۶) |
| هغوی وویل (( ای لوط که تاله دې خبرونه لاس وانخیست نو کوم خلك چې زمونږ له کلیونه ویستل شویدي په هغو کښې به ته هم شامل کړای شې )). | قَالُوۡا لَئِنۡ لَّمۡ تَنۡتَہِ یٰلُوۡطُ لَتَکُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُخۡرَجِیۡنَ (۱۶۷) |
| هغه وویل: (( کوم خلك چې ستاسي له کړوو ړو څخه کرکجن دي زه له هغو څخه یم | قَالَ اِنِّیۡ لِعَمَلِکُمۡ مِّنَ الۡقَالِیۡنَ (۱۶۸) |
| ای پروردګاره ! ماته او زما کورنی ته د دوی له بدعملیو څخه نجات راکړه )) | رَبِّ نَجِّنِیۡ وَ اَہۡلِیۡ مِمَّا یَعۡمَلُوۡنَ (۱۶۹) |
| په پای کښې مونږ هغه او دهغه ټوله کورنی وژغورله | فَنَجَّیۡنٰہُ وَ اَہۡلَہٗۤ اَجۡمَعِیۡنَ (۱۷۰) |
| پرته له یوې بوډۍ ښځې نه چې په بیرته پاتې کیدونکو کښې وه . | اِلَّا عَجُوۡزًا فِی الۡغٰبِرِیۡنَ (۱۷۱) |
| بیا مو پاتې خلك تباه کړل . | ثُمَّ دَمَّرۡنَا الۡاٰخَرِیۡنَ (۱۷۲) |

او پرهغو مويو اوربښت وكړ ډير ناكاره باران وء چې پرهغو ويرول شويو واورول شو.

وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ (١٧٣)

په باوري ډول پدې كښې يوه نښانه ده،خوله دوې نه زياتره منونكي ندي

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٧۴)

او حقيقت دا دی چې ستا رب برلاسی هم دی او خوارمهربان هم .

وَ اِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ (١٧٥)

دګڼ ځنګل خاوندانو پيغبران دروغجن وګڼل

كَذَّبَ اَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ (١٧۶)

هغه وخت يادكړه چې شعيب (ع) هغوته ويلی وو : ايا تاسي نه ويريږئ.

اِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ (١٧٧)

زه ستاسي لپاره يو امانتګرپيغمبريم .

اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ (١٧٨)

نو تاسي له الله نه وويريږئ او زما اطاعت وكړئ .

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوْنِ (١٧٩)

زه پدې كار باندې له تاسي نه څه اجرت نه غواړم . زما اجر خو درب العلمين په ذمه دی .

وَ مَاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (١٨٠)

پيماني ښې ډكوئ او چاته زيان مه اړوئ .

اَوْفُوا الْكَيْلَ وَ لَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ (١٨١)

په سمه تراز وتول كوئ

وَ زِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ (١٨٢)

او خلكو ته دهغو شيان كم مه وركوئ . په ځمكه كښې فساد مه خپروئ

وَ لَا تَبْخَسُوا النَّاسَ اَشْيَآءَهُمْ وَ لَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ (١٨٣)

اوله هغه ذات نه وويريږئ چې هغه تاسي او پخواني نسلونه پيداكړي دي .

وَ اتَّقُوا الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَ الْجِبِلَّةَ الْاَوَّلِيْنَ (١٨۴)

هغوې وويل : ته محضی يو كوډ ولاندې كړی سړی يې

قَالُوْۤا اِنَّمَاۤ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ (١٨٥)

او ته نور هيڅ نه يې مګر زمونږ په څير يوانسان او مونږ خو تابيخی دروغجن ګڼو.

وَ مَاۤ اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَ اِنْ نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ (١٨۶)

كه ته رېښتونی يې نو پرمونږ داسمان كومه ټوټه را وغورځوه .

فَاَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ (١٨٧)

شعيب وويل: زما پروردګار په هغه څه پوهيږي چې تاسي يې كوئ.

قَالَ رَبِّيْۤ اَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (١٨٨)

هغوې دی دروغجن وګاڼه ، په پای كښې پرهغو باندې دچترئ ورځي عذاب راغئ ، او هغه دويروونكي لويي ورځي عذاب وء .

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ (١٨٩)

په باوري ډول پدې كښې يوه نښانه ده ، خو له هغو نه زياتره منونكي ندي .

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٩٠)

او حقيقت دادی چې ستارب برلاسی هم دی او خورا مهربان هم .

وَ اِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ (١٩١)

دا درب العلمين نازل كړی شی دی .

وَ اِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (١٩٢)

اما نتګر روح له دې سره نازل شويدی .

نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ (١٩٣)

ستا پرزړه باندې تر څو چې ته له هغو خلكو څخه او سی چې ( دخدای لخوا د خدای دبند ګانو ) تنبيه كوونكي دي

عَلٰى قَلْبِكَ لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ (١٩۴)

په روښانه ځرګنده عربی ژبه كښې .

بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ (١٩٥)

او دمخكينيو خلكو په كتابو نو كښې هم داشته .

وَ اِنَّهٗ لَفِيْ زُبُرِ الْاَوَّلِيْنَ (١٩۶)

| Arabic | Pashto |
| --- | --- |
| اَوَ لَمۡ يَكُنۡ لَّهُمۡ اٰيَةً اَنۡ يَّعۡلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ (۱۹۷)ؕ | ایا د دوی ( دمکي دخلکو ) لپاره دایوه نښانه نده چي پده باندي دبني اسرائیلو علماوء پوهيږي ؟ |
| وَ لَوۡ نَزَّلۡنٰهُ عَلٰى بَعۡضِ الۡاَعۡجَمِيۡنَ (۱۹۸)ۙ | خو د دوي تعصب تردي اندازي پوري دی چي ) که دامونږ ) پرکوم عجمی باندي هم نازل کړی وای |
| فَقَرَاَهٗ عَلَيۡهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ مُؤۡمِنِيۡنَ (۱۹۹)ؕ | او دغه ( فصیح عربي کلام ) هغه دوي ته لوستی اورولی وای بیا به هم دوي نه وءمنلی . |
| كَذٰلِكَ سَلَكۡنٰهُ فِىۡ قُلُوۡبِ الۡمُجۡرِمِيۡنَ (۲۰۰)ؕ | په همدي ډول مونږ دغه ( انکار ) د مجرمانو په زړونوکښي ايښی دی . |
| لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِهٖ حَتّٰى يَرَوُا الۡعَذَابَ الۡاَلِيۡمَ (۲۰۱)ۙ | هغوی وربانديِ ایمان نه راوړی ترڅو پوري چي دردناك عذاب ونه وینی ، |
| فَيَاۡتِيَهُمۡ بَغۡتَةً وَّ هُمۡ لَا يَشۡعُرُوۡنَ (۲۰۲)ۙ | بیا کله چي هغه په ناڅاپي ډول پر هغو باندي راځي او هغوي ناخبره وي. |
| فَيَقُوۡلُوۡا هَلۡ نَحۡنُ مُنۡظَرُوۡنَ (۲۰۳)ؕ | په هغه وخت کښي هغوي وايي چي ایا اوس مونږ ته څه مهلت راکول کيدای شي ؟ |
| اَفَبِعَذَابِنَا يَسۡتَعۡجِلُوۡنَ (۲۰۴) | نو ایا دوی زمونږ د عذاب لپاره بیړه کوي ؟ |
| اَفَرَءَيۡتَ اِنۡ مَّتَّعۡنٰهُمۡ سِنِيۡنَ (۲۰۵)ۙ | تاڅه فکر کړیدی ، که مونږ دوی ته دکلونو کلونو مزو چړچومهلت هم ورکړو |
| ثُمَّ جَآءَهُمۡ مَّا كَانُوۡا يُوۡعَدُوۡنَ (۲۰۶)ۙ | او بیا هماغه څه وربانديِ راشي چي له هغه نه دوي ويرول کيږي |
| مَاۤ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يُمَتَّعُوۡنَ (۲۰۷)ؕ | نو هغه ژوندني وسایل چي دوی ته ورکړل شوي دي دوی ته به څه په درد ونه خوري |
| وَ مَاۤ اَهۡلَكۡنَا مِنۡ قَرۡيَةٍ اِلَّا لَهَا مُنۡذِرُوۡنَ (۲۰۸) | گوره ! ) مونږ هيڅکله کوم کلی له دي پرته ندی تباه کړی مګر ) دهغه لپاره تنبيه کوونکي وو |
| ذِكۡرٰى ۛ وَ مَا كُنَّا ظٰلِمِيۡنَ (۲۰۹) | د نصیحت د حق اداکوونکي (موجود وو). او مونږ ظالمان نه وو . |
| وَ مَا تَنَزَّلَتۡ بِهِ الشَّيٰطِيۡنُ (۲۱۰) | دا ( څرګند کتاب ) شيطانانونه دی راوړی |
| وَ مَا يَنۡۢبَغِىۡ لَهُمۡ وَ مَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ (۲۱۱)ؕ | نه داکار له هغو سره وړ دی او نه هغوي داسي کولای شي |
| اِنَّهُمۡ عَنِ السَّمۡعِ لَمَعۡزُوۡلُوۡنَ (۲۱۲)ؕ | هغوی خو ان د ده له اوریدلو نه هم لرې ساتل شویدی . |
| فَلَا تَدۡعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ فَتَكُوۡنَ مِنَ الۡمُعَذَّبِيۡنَ (۲۱۳)ۚ | نو ای محمده! له الله سره کوم معبود مه بله کنه نو ته به هم له سزاموندونکو څخه شي. |
| وَ اَنۡذِرۡ عَشِيۡرَتَكَ الۡاَقۡرَبِيۡنَ (۲۱۴)ۙ | خپل ډیرنیږدي خپلوان ووېروه . |
| وَ اخۡفِضۡ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۲۱۵)ۚ | او له موءمنانو څخه چي کوم کسان ستا پیروي غوره کړي له هغو سره دتواضع چلندوکړه . |
| فَاِنۡ عَصَوۡكَ فَقُلۡ اِنِّىۡ بَرِىۡٓءٌ مِّمَّا تَعۡمَلُوۡنَ (۲۱۶)ۚ | خوکه هغوی ستا نافرماني وکړي نو هغوته ووایه تاسي چي څه کوئ زه ورڅخه بری الذمه یم. |
| وَ تَوَكَّلۡ عَلَى الۡعَزِيۡزِ الرَّحِيۡمِ (۲۱۷)ۙ | او په هغه برلاسي او رحمت والاباندي توکل وکړه |
| الَّذِىۡ يَرٰٮكَ حِيۡنَ تَقُوۡمُ (۲۱۸)ۙ | چي تاپه هغه وخت کښي ويني چي ته پاڅيږې ، |
| وَ تَقَلُّبَكَ فِى السّٰجِدِيۡنَ (۲۱۹) | اوپه سجده کوونکو کښي ستاګرځېدو راګرځېدو ته ګوري . |
| اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيۡعُ الۡعَلِيۡمُ (۲۲۰) | هغه دهر څه اوریدونکی او په هر څه پوهیدونکی دی . |
| هَلۡ اُنَبِّئُكُمۡ عَلٰى مَنۡ تَنَزَّلُ الشَّيٰطِيۡنُ (۲۲۱)ؕ | ای خلکو ! ایا زه تاسي ته وښیم چي شیطانان په چاباندي نازليږي ؟ |

هغه په هر دروغ جوړونکي بدکار باندې نازليږي .

تَنَزَّلُ عَلٰى كُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ (٢٢٢)ۙ

داوريدوخبرې په غوږونوكښې پُوكوي او له هغونه زياتره دروغجن وي .

يُّلْقُوْنَ السَّمْعَ وَ اَكْثَرُہُمْ كٰذِبُوْنَ (٢٢٣)ؕ

پاتې شول شاعران په هغو پسې غوليدلي گمراه شوي خلك ځي .

وَ الشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُہُمُ الْغَاوٗنَ (٢٢٤)ؕ

ايا ته نه وينې چې هغوی په هر نا وء كښې سرگردانه دي

اَلَمْ تَرَ اَنَّہُمْ فِىْ كُلِّ وَادٍ يَّہِيْمُوْنَ (٢٢٥)ۙ

او داسې خبرې كوي چې عملي كوي يې نه .

وَ اَنَّہُمْ يَقُوْلُوْنَ مَا لَا يَفْعَلُوْنَ (٢٢٦)ۙ

پرته له هغو كسانو نه چې ايمان يې راوړ ، غوره عملونه يې وكړل او الله يې ډير ياد كړ او كله چې پرې ظلم وشو نو صرف غچ يې واخيست او ظالمانوته به ډيره ژرمعلومه شي چې هغوی له څه سرنوشت سره مخامخ كيږي .

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ ذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّ انْتَصَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا ؕ وَ سَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْۤا اَىَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ (٢٢٧)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونكی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ط ، س ، دا دقران او دڅرگندوونكي كتاب ايتونه دي .

طٰسٓ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَ كِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۙ(١)

لاربنوونه او زيری د موءمنانو لپاره

ہُدًى وَّ بُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ(٢)

دهغو لپاره چې لمونځ قائموي او زكات وركوي ، اوبل هغوی داسې خلك دي چې پر اخرت باندې پوره باور لري .

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ ہُمْ بِالْاٰخِرَةِ ہُمْ يُوْقِنُوْنَ (٣)

حقيقت دادی كوم كسان چې اخرت نه مني دهغو لپاره مونږ دهغو كړه وړه ښايسته كړيدی ، له دې امله هغوی حيران سرگردانه دي.

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَہُمْ اَعْمَالَہُمْ فَہُمْ يَعْمَہُوْنَ ؕ(٤)

داهغه كسان دی چې دهغو لپاره بده سزا ده او په اخرت كښې همدوی تر ټولو زيات په زيان كښې اخته پاتې كېدونكي دي .

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَہُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَ ہُمْ فِى الْاٰخِرَةِ ہُمُ الْاَخْسَرُوْنَ (٥)

او(ای محمده !) ته بېشكه دا قرآن ديوحكيم او عليم ذات لخوا مومې .

وَ اِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ (٦)

دوی ته دهغه وخت قصه واوروه ) كله چې موسٰی خپلو كور ) والاوءته وويل چې ماته يواور غوندې په نظر راغلی دی ، زه به همدا اوس تاسې ته له هغه ځايه كوم خبر له ځانه سره راوړم يابه . كومه سكروټه را اخيستې درته راوړم ترڅوچې تاسې تاوده شئ

اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَہْلِہٖۤ اِنِّىْۤ اٰنَسْتُ نَارًا ؕ سَاٰتِيْكُمْ مِّنْہَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِہَابٍ قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ (٧)

هلته چې ورسيده نو اواز راغی چې (( مبارك دی هغه چې پدې اوركښې دی او هغه چې د ده په چاپيريال كښې دی . پاك دی الله ، دټولو مخلوقاتو پروردگار

فَلَمَّا جَآءَہَا نُوْدِىَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ فِى النَّارِ وَ مَنْ حَوْلَہَا ؕ وَ سُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (٨)

ای موسی ! دازه يم الله زورور او دحكمت خاوند.

يٰمُوْسٰٓى اِنَّہٗۤ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۙ(٩)

او وغورځوه خپله همسا،څنگه چې موسی وكتل چې همسا د مار په څېر خوځېږي نو شايې واړوله وتښتيد او شاته يې وه هم نه كتل، ای موسی مه ويريږه . زما په وړاندې پېغمبران نه ويريږي .

وَ اَلْقِ عَصَاكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰہَا تَہْتَزُّ كَاَنَّہَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّ لَمْ يُعَقِّبْ ؕ يٰمُوْسٰى لَا تَخَفْ ۟ اِنِّىْ لَا يَخَافُ لَدَىَّ الْمُرْسَلُوْنَ (١٠)

مگر داچې چا قصور كړی وی بيا كه هغه له بدی څخه وروسته په نيكی سره (خپل فعل ) بدل كړ نو زه ښښونكی مهربان يم .

اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًۢا بَعْدَ سُوْٓءٍ فَاِنِّىْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (١١)

وَ اَدۡخِلۡ یَدَکَ فِیۡ جَیۡبِکَ تَخۡرُجۡ بَیۡضَآءَ مِنۡ غَیۡرِ سُوۡٓءٍ ۟ فِیۡ تِسۡعِ اٰیٰتٍ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ وَ قَوۡمِہٖ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا قَوۡمًا فٰسِقِیۡنَ (۱۲)

او خپل لاس پخپل گرایوان کښې ننباسه . څلانده به راووځي بې له څه عیبه . دا ( دوه نښانې ) له نهونښانو څخه دي دفرعون او دهغه د قوم لوري ته ( دتلو لپاره ) هغوی ډېر بدکاران له اطاعت نه سرغړوونکي دي .

فَلَمَّا جَآءَتۡہُمۡ اٰیٰتُنَا مُبۡصِرَۃً قَالُوۡا ہٰذَا سِحۡرٌ مُّبِیۡنٌ ﴿ۚ۱۳﴾

خوکله چې زمونږه څرگنده روښانه نښانې د هغو مخې ته راغلې نو هغوی وویل چې داخوښکاره کوډې دي ،

وَ جَحَدُوۡا بِہَا وَ اسۡتَیۡقَنَتۡہَاۤ اَنۡفُسُہُمۡ ظُلۡمًا وَّ عُلُوًّا ؕ فَانۡظُرۡ کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الۡمُفۡسِدِیۡنَ (۱۴)

هغوی له سره ترپایه دظلم او غرورله لارې له دغو نښانو څخه انکار وکړ پداسې حال کښې چې زړونه یې پرې قائل شوي وو ، اوس وگورئ چې دهغو مفسدانو عاقبت څنگه شو .

وَ لَقَدۡ اٰتَیۡنَا دَاوٗدَ وَ سُلَیۡمٰنَ عِلۡمًا ۚ وَ قَالَا الۡحَمۡدُ لِلّٰہِ الَّذِیۡ فَضَّلَنَا عَلٰی کَثِیۡرٍ مِّنۡ عِبَادِہِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۱۵)

له بلې خوا ) مونږ داوءد او سلیمان ته علم ورکړ او هغوی وویل ) هغه خدای ته شکر دی چې مونږ ته یې پرخپلو زیاترومومنو . بندگانو باندې لوړتیا راپه برخه کړه

وَ وَرِثَ سُلَیۡمٰنُ دَاوٗدَ وَ قَالَ یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ عُلِّمۡنَا مَنۡطِقَ الطَّیۡرِ وَ اُوۡتِیۡنَا مِنۡ کُلِّ شَیۡءٍ ؕ اِنَّ ہٰذَا لَہُوَ الۡفَضۡلُ الۡمُبِیۡنُ (۱۶)

او سلیمان د داوءد وارث شو . او هغه وویل (( ای خلکو ! مونږ ته دمرغانو خبرې رازده کړای شویدی او مونږ ته هر ډول شیان راکړل شویدی ، بېشکه دا ( دالله ) ښکاره لورینه ده .

وَ حُشِرَ لِسُلَیۡمٰنَ جُنُوۡدُہٗ مِنَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ وَ الطَّیۡرِ فَہُمۡ یُوۡزَعُوۡنَ (۱۷)

د سلیمان لپاره د پیریانو او انسانانو او مرغانو لښکرې راغونډې کړای شوې وې او هغوی تر پوره انضباط لاندې ساتل کېدل .

حَتّٰۤی اِذَاۤ اَتَوۡا عَلٰی وَادِ النَّمۡلِ ۙ قَالَتۡ نَمۡلَۃٌ یّٰۤاَیُّہَا النَّمۡلُ ادۡخُلُوۡا مَسٰکِنَکُمۡ ۚ لَا یَحۡطِمَنَّکُمۡ سُلَیۡمٰنُ وَ جُنُوۡدُہٗ ۙ وَ ہُمۡ لَا یَشۡعُرُوۡنَ (۱۸)

یو ځل یې له هغوسره سفر کاوه ) تردې پورې چې کله دوی ټول ) دمېږیانو ناوءته ورسیدل نو یو مېږې وویل ای مېږیانو ! پخپلو غارونو کښې ننوځئ ، نه چېرته داسې وشي چې سلیمان او دهغه . لښکرې موچیت کړي او هغوی به خبر هم نه وي

فَتَبَسَّمَ ضَاحِکًا مِّنۡ قَوۡلِہَا وَ قَالَ رَبِّ اَوۡزِعۡنِیۡۤ اَنۡ اَشۡکُرَ نِعۡمَتَکَ الَّتِیۡۤ اَنۡعَمۡتَ عَلَیَّ وَ عَلٰی وَالِدَیَّ وَ اَنۡ اَعۡمَلَ صَالِحًا تَرۡضٰىہُ وَ اَدۡخِلۡنِیۡ بِرَحۡمَتِکَ فِیۡ عِبَادِکَ الصّٰلِحِیۡنَ (۱۹)

سلیمان دهغه په خبره مسکی په خندا شو او ویې ویل ای زما ربه ! ماته ا لهام وکړه چې زه ستا دهغې لورینې شکر گوزاراوسم چې تا پرما او زما پرمور او پلار باندې کړېده او داسې نیك عمل وکړم چې ستا خوښ شي او پخپل رحمت سره ما پخپلو صالحو بندگانو کښې داخل کړه .

وَ تَفَقَّدَ الطَّیۡرَ فَقَالَ مَا لِیَ لَاۤ اَرَی الۡہُدۡہُدَ ۫ۖ اَمۡ کَانَ مِنَ الۡغَآئِبِیۡنَ (۲۰)

یو کرت بل ) سلیمان د مرغانو پلټنه وکړه او ویې ویل څه خبره ده ) چې زه هُد هُد نه وینم .ایا هغه چېرته غائب شویدی ؟

لَاُعَذِّبَنَّہٗ عَذَابًا شَدِیۡدًا اَوۡ لَاَاذۡبَحَنَّہٗۤ اَوۡ لَیَاۡتِیَنِّیۡ بِسُلۡطٰنٍ مُّبِیۡنٍ (۲۱)

زه به هغه ته سخته سزا ورکړم ، یابه یې ذبح کړم ، یا به هغه ارومرو ماته معقول دلیل وړاندې کوي .

فَمَکَثَ غَیۡرَ بَعِیۡدٍ فَقَالَ اَحَطۡتُّ بِمَا لَمۡ تُحِطۡ بِہٖ وَ جِئۡتُکَ مِنۡ سَبَاٍۭ بِنَبَاٍ یَّقِیۡنٍ (۲۲)

لاڅه زیات وخت نه وءتېر شوی چې هغه راغی ویې ویل (( ما هغه معلومات ترلاسه کړی دي چې ستاپه علم کښې نشته . زه د سبا په باب له باورې خبر سره درته راغلی یم ،

اِنِّیۡ وَجَدۡتُّ امۡرَاَۃً تَمۡلِکُہُمۡ وَ اُوۡتِیَتۡ مِنۡ کُلِّ شَیۡءٍ وَّ لَہَا عَرۡشٌ عَظِیۡمٌ (۲۳)

ماهلته یوه ښځه ومیندله چې دهغه قوم حکمرانه ده هغې ته هر راز وسایل ورکړل شویدی او دهغې ډېر لوی تخت دی .

وَجَدۡتُّہَا وَ قَوۡمَہَا یَسۡجُدُوۡنَ لِلشَّمۡسِ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ وَ زَیَّنَ لَہُمُ الشَّیۡطٰنُ اَعۡمَالَہُمۡ فَصَدَّہُمۡ عَنِ السَّبِیۡلِ فَہُمۡ لَا یَہۡتَدُوۡنَ ﴿ۙ۲۴﴾

ماهغه داسې ومیندله چې هغه او دهغې قوم دالله په ځای د لمرپه وړاندې سجده کوي شیطان دهغو عملونه د هغو لپاره ښایسته کړي او هغوی یې له لارې اړولي دي، له دې امله هغوی سمه لاره نه مومي .

هغه خدای ته سجده نه کوي چې داسمانونو او ځمکې پټ شيان برخېره کوي او هغه په ټولو هغوشيانو پوهېږي چې تاسې يې پټوئ او ښکاره کوئ ئې .

اَلَّا يَسۡجُدُوۡا لِلّٰهِ الَّذِيۡ يُخۡرِجُ الۡخَبۡءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ يَعۡلَمُ مَا تُخۡفُوۡنَ وَ مَا تُعۡلِنُوۡنَ (۲۵)

الله چې له هغه پرته بل هېڅوك د عبادت وړنشته ، چې دلوی عرش څښتن دی .

اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ الۡعَرۡشِ الۡعَظِيۡمِ (۲۶)

سليمان وويل همدا اوس به مونږ ګوروچې تارښتيا ويلي دي او که ته له دروغجنو څخه يې

قَالَ سَنَنۡظُرُ اَصَدَقۡتَ اَمۡ كُنۡتَ مِنَ الۡكٰذِبِيۡنَ (۲۷)

زما دغه ليك يوسه او هغو خلکو ته يې وغورځوه بيا ورڅخه ها خوابيل شه وګوره چې هغوی څه عکس العمل ښکاره کوي .

اِذۡهَبۡ بِّكِتٰبِيۡ هٰذَا فَاَلۡقِهۡ اِلَيۡهِمۡ ثُمَّ تَوَلَّ عَنۡهُمۡ فَانۡظُرۡ مَا ذَا يَرۡجِعُوۡنَ (۲۸)

ملکې وويل (( زما درباريانو ! ماته يو ډېر مهم ليك غورځول شويدی

قَالَتۡ يٰۤاَيُّهَا الۡمَلَؤُا اِنِّيۡۤ اُلۡقِيَ اِلَيَّ كِتٰبٌ كَرِيۡمٌ (۲۹)

هغه دسليمان لخوا دی او درحمٰن اورحيم الله په نوم سره پيل کړای شويدی .

اِنَّهٗ مِنۡ سُلَيۡمٰنَ وَ اِنَّهٗ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ (۳۰)

زما په مقابل کښې سرکشي مکوئ او زما )) مضمون دادی) چې) (( حضور ته مسلمانان راشئ

اَلَّا تَعۡلُوۡا عَلَيَّ وَ اۡتُوۡنِيۡ مُسۡلِمِيۡنَ (۳۱)

د ليك له لوستلو وروسته ) ملکې وويل (( ای زما د قوم مشرانو ! ) زما پدغې موضوع کښې ماته مشوره راکړئ ، زه له تاسې پرته د . (( هېڅ کار پريکړه نه صادروم

قَالَتۡ يٰۤاَيُّهَا الۡمَلَؤُا اَفۡتُوۡنِيۡ فِيۡۤ اَمۡرِيۡ ۚ مَا كُنۡتُ قَاطِعَةً اَمۡرًا حَتّٰى تَشۡهَدُوۡنِ (۳۲)

هغو ځواب ورکړ (( مونږ تکړه قوي اوجنګيالی خلك يو نوره فيصله ستا په لاس کښې ده ته پخپله وګوره چې څه حکم کوې ))

قَالُوۡا نَحۡنُ اُولُوۡا قُوَّةٍ وَّ اُولُوۡا بَاۡسٍ شَدِيۡدٍ ۙ وَّ الۡاَمۡرُ اِلَيۡكِ فَانۡظُرِيۡ مَاذَا تَاۡمُرِيۡنَ (۳۳)

ملکې وويل چې : باچايان چې کله يو هيواد ته ننوځي نو هغه ورانوي او دهغه عزتمند خلك ذليله کوي . هغوی همدغه کارکوي .

قَالَتۡ اِنَّ الۡمُلُوۡكَ اِذَا دَخَلُوۡا قَرۡيَةً اَفۡسَدُوۡهَا وَ جَعَلُوۡۤا اَعِزَّةَ اَهۡلِهَاۤ اَذِلَّةً ۚ وَ كَذٰلِكَ يَفۡعَلُوۡنَ (۳۴)

زه دغو خلکو ته يو سوغات لېږم ، بيا ګورم چې زما ځانګړی استاذی له څه ځواب سره بېرته راستنېږی .

وَ اِنِّيۡ مُرۡسِلَةٌ اِلَيۡهِمۡ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌۢ بِمَ يَرۡجِعُ الۡمُرۡسَلُوۡنَ (۳۵)

کله چې هغه ( د ملکې سفېر ) سليمان عليه السلام ته ورغی نو هغه وويل (( ايا تاسې غواړئ په مال سره زما مرسته وکړئ ؟ څه چې خدای ماته راکړيدی هغه له هغه نه ډېر زيات دی چې تاسې ته يې درکړيدی ستاسې سوغات دې همدا تاسې ته مبارك وي چې پرې خوښ يئ

فَلَمَّا جَآءَ سُلَيۡمٰنَ قَالَ اَتُمِدُّوۡنَنِ بِمَالٍ ۫ فَمَاۤ اٰتٰنِۦَ اللّٰهُ خَيۡرٌ مِّمَّاۤ اٰتٰىكُمۡ ۚ بَلۡ اَنۡتُمۡ بِهَدِيَّتِكُمۡ تَفۡرَحُوۡنَ (۳۶)

ای استازيه !) د خپلو لېږونکو لوري ته بېرته ستون شه . مونږ ) به هغوته له داسې لښکر سره ورشو چې هغوی يې مقابله ونکړای شي او مونږ به هغوی پداسې رسوائی سره له هغه ځايه وباسو چې .(( ذليل وګرځي

اِرۡجِعۡ اِلَيۡهِمۡ فَلَنَاۡتِيَنَّهُمۡ بِجُنُوۡدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمۡ بِهَا وَ لَنُخۡرِجَنَّهُمۡ مِّنۡهَاۤ اَذِلَّةً وَّ هُمۡ صٰغِرُوۡنَ (۳۷)

سليمان عليه السلام وويل (( ای درباريانو ! له تاسې نه به کوم يو دهغې تخت ماته راوړي مخکښې له دې نه چې هغوی اطاعت کوونکي ماته راشي ؟

قَالَ يٰۤاَيُّهَا الۡمَلَؤُا اَيُّكُمۡ يَاۡتِيۡنِيۡ بِعَرۡشِهَا قَبۡلَ اَنۡ يَّاۡتُوۡنِيۡ مُسۡلِمِيۡنَ (۳۸)

له پيريانو څخه يوه د قوي جوسې خاوند عرض وکړ زه به يې درته راوړم مخکښې له دې نه چې ته له خپله ځايه پاڅېږې .زه د دې وس لرم او امانتداريم.

قَالَ عِفۡرِيۡتٌ مِّنَ الۡجِنِّ اَنَا اٰتِيۡكَ بِهٖ قَبۡلَ اَنۡ تَقُوۡمَ مِنۡ مَّقَامِكَ ۚ وَ اِنِّيۡ عَلَيۡهِ لَقَوِيٌّ اَمِيۡنٌ (۳۹)

له کوم سړي سره چې د کتاب يو علم وء هغه وويل (( زه ستا د بنوله رپيدونه مخکښي هغه درته راوړم )) . ځنګه چې سليمان عليه السلام هغه تخت له خپل ځان سره اېښودل شوی وليده ، وی ويل دا زما د رب فضل دی ترڅو چې هغه ما وازمائي چې زه شکر کوم او که د نعمت ناشکري کوم . او ځوك چې شکر کوي دهغه شکر پخپله دهمغه لپاره ګټور دی ، اوکه څوك ناشکري وکړي نو زما رب بې نيازه او دکرم خاوند دی.

قَالَ الَّذِیۡ عِنۡدَهٗ عِلۡمٌ مِّنَ الۡکِتٰبِ اَنَا اٰتِیۡکَ بِهٖ قَبۡلَ اَنۡ یَّرۡتَدَّ اِلَیۡکَ طَرۡفُکَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسۡتَقِرًّا عِنۡدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنۡ فَضۡلِ رَبِّیۡ ۟ۖ لِیَبۡلُوَنِیۡۤ ءَاَشۡکُرُ اَمۡ اَکۡفُرُ ؕ وَ مَنۡ شَکَرَ فَاِنَّمَا یَشۡکُرُ لِنَفۡسِهٖ ۚ وَ مَنۡ کَفَرَ فَاِنَّ رَبِّیۡ غَنِیٌّ کَرِیۡمٌ ﴿۴۰﴾

سليمان عليه السلام وويل (( د هغې تخت ناګاره نا اشنا دهغې مخې ته کېږدئ ، ګورو چې هغه صحيح خبرې ته رسېږي اوکه له هغو کسانو څخه ده چې سمه لاره نه مومي))

قَالَ نَکِّرُوۡا لَهَا عَرۡشَهَا نَنۡظُرۡ اَتَهۡتَدِیۡۤ اَمۡ تَکُوۡنُ مِنَ الَّذِیۡنَ لَا یَهۡتَدُوۡنَ ﴿۴۱﴾

ملکه چې راغله نو هغې ته وويل شول ايا ستا تخت همدغسې دی ؟ هغې وويل ((داخولکه چې همغه دی . مونږ خولا پخوا پوهيدلي وو او مونږ داطاعت سرښکته کړی وء. ( يا مونږ مسلمان شوي وو )

فَلَمَّا جَآءَتۡ قِیۡلَ اَهٰکَذَا عَرۡشُکِ ؕ قَالَتۡ کَاَنَّهٗ هُوَ ۚ وَ اُوۡتِیۡنَا الۡعِلۡمَ مِنۡ قَبۡلِهَا وَ کُنَّا مُسۡلِمِیۡنَ ﴿۴۲﴾

هغه چې کوم شي ( له ايمان راوړلو نه ) منع کړې وه هغه دهغه وخت معبودانو عبادت وء چې هغې له الله څخه پرته هغوته کاوه ، ځکه چې هغه له يوکافر قوم څخه وه .

وَ صَدَّهَا مَا کَانَتۡ تَّعۡبُدُ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهَا کَانَتۡ مِنۡ قَوۡمٍ کٰفِرِیۡنَ ﴿۴۳﴾

هغې ته وويل شول چې بنګلي ته ننوځه . هغې چې وکتل نو ګمان يې وکړ چې داوبو حوض دی او دورکوزېدولپاره هغې خپلې پايڅې بډ وهلې . سليمان وويل دادښيښې روڼ هوار فرش دی .هغې وويل ای زما ربه ! ( ترنن ورځې پورې ) ما پرخپل نفس ډېر ظلم وکړ ، او اوس ماله سليمان عليه السلام سره د الله رب العٰالمين اطاعت ته غاړه کېښودله .

قِیۡلَ لَهَا ادۡخُلِی الصَّرۡحَ ۚ فَلَمَّا رَاَتۡهُ حَسِبَتۡهُ لُجَّةً وَّ کَشَفَتۡ عَنۡ سَاقَیۡهَا ؕ قَالَ اِنَّهٗ صَرۡحٌ مُّمَرَّدٌ مِّنۡ قَوَارِیۡرَ ۟ؕ قَالَتۡ رَبِّ اِنِّیۡ ظَلَمۡتُ نَفۡسِیۡ وَ اَسۡلَمۡتُ مَعَ سُلَیۡمٰنَ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿۴۴﴾

او ثمودیانو ته مونږ د هغو ورور صالح ( له دی پيغام سره ) ولېږه چې د الله بندګي وکړئ ، نو په ناڅاپي ډول هغوی دوه دښمنې ډلې شوې .

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلٰی ثَمُوۡدَ اَخَاهُمۡ صٰلِحًا اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ فَاِذَا هُمۡ فَرِیۡقٰنِ یَخۡتَصِمُوۡنَ ﴿۴۵﴾

صالح وويل (( ای زماقومه ! له نيکی نه مخکښې دبدی لپاره ولې تلوار کوئ ؟ ولې له الله نه ښښنه نه غواړئ ؟ ښائي چې پرتاسې رحم وشي)) ؟

قَالَ یٰقَوۡمِ لِمَ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ بِالسَّیِّئَةِ قَبۡلَ الۡحَسَنَةِ ۚ لَوۡ لَا تَسۡتَغۡفِرُوۡنَ اللّٰهَ لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ ﴿۴۶﴾

هغوی وويل (( مونږ خوته او ستا ملګري د شومتوب نښه ميندلي يئ )) . صالح ځواب ورکړ : ستاسې دښه اوبد فال معامله له خدای سره ده . اصلی خبره دا ده چې پر تاسې ازموينه کېږي .

قَالُوا اطَّیَّرۡنَا بِکَ وَ بِمَنۡ مَّعَکَ ؕ قَالَ طٰٓئِرُکُمۡ عِنۡدَ اللّٰهِ بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ تُفۡتَنُوۡنَ ﴿۴۷﴾

په هغه ښار کښې نهه قبايلي مشران وو چې په هيواد کښې يې فساد خوروه او کوم داصلاح کاريې نه کاوه

وَ کَانَ فِی الۡمَدِیۡنَةِ تِسۡعَةُ رَهۡطٍ یُّفۡسِدُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ وَ لَا یُصۡلِحُوۡنَ ﴿۴۸﴾

هغوی پخپلو مينځو کښې سره وويل په خدای باندې په قسم خوړلو سره ژمنه وکړئ چې مونږ به دشپې له مخې په يرغل کولو سره صالح (عليه السلام او دهغه کورنی ووژنو او بيابه دهغه ولي ته ووايو چې مونږ دهغه دکورنی دوژنې په وخت کښې موجودنه وو ، مونږ بيخي ريښتيا وايو .

قَالُوۡا تَقَاسَمُوۡا بِاللّٰهِ لَنُبَیِّتَنَّهٗ وَ اَهۡلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوۡلَنَّ لِوَلِیِّهٖ مَا شَهِدۡنَا مَهۡلِکَ اَهۡلِهٖ وَ اِنَّا لَصٰدِقُوۡنَ ﴿۴۹﴾

دا دسیسه خو هغوی جوړه کړه او بیا مونږ یو تدبیر ونیوه چې هغوی ورڅخه خبرنه وو .

وَ مَكَرُوْا مَكْرًا وَّ مَكَرْنَا مَكْرًا وَّ هُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ (۵۰)

اوس وګوره چې دهغوی د دسیسې عاقبت څه شو . مونږ هغوی او د هغو ټول قوم تباه کړل

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ ۙ اَنَّا دَمَّرْنٰهُمْ وَ قَوْمَهُمْ اَجْمَعِيْنَ (۵۱)

دغه د هغوی تش پراته کورونه دي دهغه ظلم لامله چې هغوی کاوه پدې کښې دعبرت یوه نښه ده .دهغو خلکو لپاره چې علم لري .

فَتِلْكَ بُيُوْتُهُمْ خَاوِيَةًۢ بِمَا ظَلَمُوْا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ (۵۲)

او مونږ هغه خلك وژغورل چې ایمان یې راوړی وء او له سر غړوني څخه یې ډ ډه کړې وه .

وَ اَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ كَانُوْا يَتَّقُوْنَ (۵۳)

او مونږ لوط ولیږه . یادکړه هغه وخت چې هغه خپل قوم ته وویل ایا تاسي پداسې حال کښې چې په سترګو وینئ بدکاری کوئ ؟

وَ لُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَ اَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ (۵۴)

ایاستاسي همداکړنلاره ده چې ښځې پریږدئ نارینه وء ته دشهوترانی لپاره ورځی ؟ حقیقت دا دی چې تاسې سخت د جهالت کار کوئ

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ (۵۵)

خو دهغه دقوم ځواب له دې پرته بل څه نه وء چې هغو وویل له خپل کلی نه دلوط کورنی وباسئ دوی داسې کسان دي چې ډېر ځانونه پاك پاك کوي .

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوْۤا اَخْرِجُوْۤا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ (۵۶)

په پای کښې مونږ هغه او دهغه کورنی وژغورله ، پرته دهغه له میرمنې څخه چې دهغې بیرته پاتې کیدل مونږ ټاکلی وو ،

فَاَنْجَيْنٰهُ وَ اَهْلَهٗۤ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۫ قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ (۵۷)

او وموراوروه پرهغو خلکو باندې یو ورښت ، هغه ډېر بد ورښت وء د هغو خلکو له پاره چې تنبیه کړای شوي وو .

وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ (۵۸)

ووایه ، ثنا ستاینه ده دالله لپاره او سلام دهغه ( ! ای پیغمبره ) له دوی نه پوښتنه وکړه ) الله )پرهغو بندګانو چې هغه غوره کړل غوره دی که هغه معبودان چې دوی یې له هغه سره شریکان ګرځوي ؟

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَ سَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى ؕ آٰللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۵۹ؕ)

ښه نو هغه څوك دی چې آسمانو نه او ځمکه یې پیداکړل او ستاسې لپاره یې له آسمانه او به واورولې بیا مونږ دهغو په وسیله هغه ښایسته باغونه زرغون کړل چې دهغود ونو زرغونول ستاسې له وسې پوره نه وو ؟ ایاله الله سره کوم بل خدای هم ( پدغوچاروکښې شریك ) دی ؟ (نه) بلکې همدوی له سمې لارې نه اووښتي دي

اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ اَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ۚ مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ؕ ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ (۶۰ؕ)

او هغه څوك دی چې هغه ځمکه ارامځی وګرځوله اوپه هغې کښې یې سیندونه وبهول او په هغې کښې یې ( دغرونو میخونه ) ټکوهل او داوبو د دوو ذخیرو په مینځ کښې یې پرده حائل کړه ؟ایا له الله سره کوم بل خدای هم ( پدغو چاروکښې شریك ) دی ؟ نه ، بلکې له دوی نه زیاتره خلك ناپوهان دي .

اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّ جَعَلَ خِلٰلَهَاۤ اَنْهٰرًا وَّ جَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَ جَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ؕ ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۶۱ؕ)

څوك دی چې دبیکس بیوس دعا اوري کله چې هغه یې وبلې او څوك دهغه کړاوء ایسته کوي ؟ او ( څوك دی چې ) تاسې د ځمکې خلفاء ګرځوي ؟ ایا له الله سره کوم بل خدای هم ( د دې کار کوونکی ) دی ؟ تاسې بیخي لږ غور کوئ .

اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَ يَكْشِفُ السُّوْٓءَ وَ يَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ؕ ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ (۶۲ؕ)

او هغه څوك دی چې دوچې او سمندر په تړو میوکښې تاسي ته لاره ښيي او څوك د خپل رحمت نه وړاندې بادونه زيری وركوونكی لېږي ؟ ايا له الله سره كوم بل خدای هم (د دغه كار كوونكی ) شته ؟ ډېر پورته او لوړ دی الله له هغه شرك نه چې دغه خلك يې كوي.

اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَ الْبَحْرِ وَ مَنْ يُّرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۶۳)

او هغه څوك دی چې دپېدایښت پیل كوي اوبيا هغه تكراروی ؟ او څوك تاسي ته له آسمان او ځمكې نه روزي دركوي ؟ ايا له الله سره كوم بل خدای هم ( پدغو چاروكښې برخه وال ) شته ؟ ووايه چې راوړئ خپل دليل كه تاسي رښتوني يئ .

اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ ؕ ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۶۴)

دوی ته ووايه په اسمانونو او ځمكه كښې هېڅوك له الله پرته دغيبو علم نلري او هغوی نه پوهېږي چې كله به هغوی راپاځول كېږي .

قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَ مَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ (۶۵)

بلكې داخرت علم خوله دغو خلكونه بيخي ورك شويدی ، بلكې دوی دهغه له پلوه په شك كښې دي ، بلكې دوی له هغه نه ړانده دي

بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ ٝ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْهَا ٝ بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ (۶۶)

دغه منكران وائي ايا كله چې مونږ او زمونږ پلرونه ، نيكونه خاورې شوي او سو، نو مونږ به په رښتيا سره له قبرونو څخه راوويستل شو ؟

وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا ءَ اِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّ اٰبَآؤُنَا اَئِنَّا لَمُخْرَجُوْنَ (۶۷)

دغه خبرونه مونږ ته هم ډېر راكړی شويدي او مخكښې زمونږ پلرونو ته هم وركړای شويدي ، خو دا فقط افساني دي چې له پخوانيو وختونو څخه اورول كېږي

لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا نَحْنُ وَ اٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ (۶۸)

ووايه په ځمكه كښې وګرځئ راوګرځئ وګورئ چې د مجرمانو څه عاقبت شويدی .

قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ (۶۹)

ای پېغمبره ! د دوی په حال باندې مه خوربېږه او مه د دوی په دسيسو باندې زړه تنګی اوسه

وَ لَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَ لَا تَكُنْ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ (۷۰)

هغوی وائي چې دغه تور بريښ به كله پوره كېږي كه تاسي رښتوني ياست.

وَ يَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۷۱)

ووايه دكوم عذاب لپاره چې تاسي بيړه كوئ كيدی شي دهغه يوه برخه تاسي ته بيخي نژدې شوې وي .

قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ تَسْتَعْجِلُوْنَ (۷۲)

اوحقيقت دا دی چې ستا رب خوپر خلكو باندې ډېر زيات فضل كوونكی دی مګر زياتره خلك شكرنه باسي .

وَ اِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ (۷۳)

بېشكه ستا رب ښه پوهېږي په هغه څه چې د دوی سينو پخپل د ننه كښې پټ كړيدي او په هغه څه چې دوی يې ښكاره كوي

وَ اِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَ مَا يُعْلِنُوْنَ (۷۴)

په اسمان او ځمكه كښې هېڅ كوم پټ شی داسي نشته چې په يوڅرګندكتاب كښې ليكل شوی موجود نه وي .

وَ مَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ (۷۵)

دا واقعيت دی چې دغه قرآن بنی اسرائيلو ته د زياترو هغو خبروحقيقت ښيي چې هغوی پكښې اختلاف لري .

اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَقُصُّ عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَكْثَرَ الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ (۷۶)

او دا هدايت او رحمت دی د موءمنانوله پاره .

وَ اِنَّهٗ لَهُدًى وَّ رَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ (۷۷)

بېشكه ( همدغسې به ) ستا رب د دوی په مينځ كښې پخپل حكم سره پرېكړه وكړي او هغه برلاسی او په هرڅه پوهېدونكی دی .

اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ بِحُكْمِهٖ ۚ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْعَلِيْمُ (۷۸)

نو ای پیغمبره پر الله توکل ولره . په باوري ډول ته په ځرګند حق باندې يې .

فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِيْنِ (۷۹)

ته مړي نشې اورولی ، نه هغو کڼوته خپل اّواز رسولی شې چې شااړوي تښتي .

اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَ لَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ (۸۰)

او نه ړانده په لارښوونې سره له ګمراهی نه ژغورلی شې . ته خوخپله خبره هماغو کسانوته اورولی شې چې زمونږ په ايتونو باندې ايمان راوړي او بيا امر منونکي ګرځي .

وَ مَاۤ اَنْتَ بِهٰدِى الْعُمْىِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ (۸۱)

او کله چې پر هغو باندې زمونږ د خبرې ډپوره کېدو (قيامت) وخت راورسيږي نومونږ به دهغو لپاره يو ځناورله ځمکې نه راوباسو چې له دوی سره به خبرې وکړي چې خلکو زمونږ پرايتونو باندې باور نه کاوه .

وَ اِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ الْاَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ ۙ اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا لَا يُوْقِنُوْنَ (۸۲)

او هغه ورځ په تصور کښې راوله چې کله مونږ له هر اُمّت نه دهغو کسانو يو بشپړ پوځ محاصره راولو چې زمونږ ايتونه يې دروغ ګڼل ، بيا به هغوی ( دهغو د اقسامو په لحاظ سره درجه پدرجه ) ترتيب کړل شي

وَ يَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّنْ يُّكَذِّبُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ (۸۳)

تر دې پورې چې کله ټول راشي نو ( دهغو رب به له هغونه ) پوښتنه وکړي چې ايا تاسي زما ايتونه دروغ وګڼل پداسي حال کښې چې تاسي دهغو علمی ځيړنه ( احاطه ) نه وه کړې ؟ که داسي نه وه نو نور تاسي څه کول ؟

حَتّٰۤى اِذَا جَآءُوْ قَالَ اَكَذَّبْتُمْ بِاٰيٰتِىْ وَ لَمْ تُحِيْطُوْا بِهَا عِلْمًا اَمَّا ذَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۸۴)

او دهغو د ظلم لامله به دعذاب وعده پر هغو باندې پوره شي ، بيا به نو هغوی هيڅ هم ونشی ويلی .

وَ وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ بِمَا ظَلَمُوْا فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ (۸۵)

ايا هغوی ته بصيرت نه وء ورکړ شوی چې مونږ شپه د هغو لپاره داّرام کولو وخت ګرځولې وه او ورځ موروښانه کړې وه ؟ په همدې کښې دهغو خلکو لپاره ډېرې نښاني وې چې ايمان يې راوړ .

اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا الَّيْلَ لِيَسْكُنُوْا فِيْهِ وَ النَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۸۶)

او څه به تېر شي په هغه ورځ کله چې شپېلی پوکړه شي او هغه ټول هيبت وهلي شي چې په اسمانونو او ځمکه کښې دي پرته له هغو کسانو چې الله له دې هيبت نه دهغو ژغورل وغواړي او ټول به ځوړ غوړونه د هغه په وړاندې حاضر شي .

وَ يَوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَفَزِعَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَنْ فِى الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ؕ وَ كُلٌّ اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ (۸۷)

نن ته غرونه وينې او ګومان کوې چې ښه کلك ښخ شويدي . خو په هغه وخت کښې به داد وريځو په څېر الوتونکي وي ، دابه دالله د قدرت نښانه وي چې هر شی يې په حکمت سره برقرار کړيدی . هغه ښه خبر دي چې تاسي څه کوئ .

وَ تَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّ هِىَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ؕ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِىْۤ اَتْقَنَ كُلَّ شَىْءٍ ؕ اِنَّهٗ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ (۸۸)

څوك چې له نيکی سره راشي هغه ته به له هغې نه زياته غوره بدله ورکړه شي او دغه راز خلك به د هغې ورځې له هيبت نه خوندي وي .

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَ هُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ (۸۹)

او څوك چې له بدۍ سره راشي دغه راز ټول خلك به پړمخې په اورکښې وغورځول شي . ايا تاسي له دې پرته بله بدله موندلی شئ چې څنګه وکړئ همغسي واخلئ ؟

وَ مَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِى النَّارِ ؕ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۹۰)

ای محمده دوی ته ووایه ) ماته خو همدا حکم شوېدی چې د دغه ) ښار درب بندګي وکړم چې هغه داحرام ګرځولی دی او هغه ذات چې د هر شي څښتن دی . ماته حکم شوېدی چې زه مسلمان واوسم

اِنَّمَآ اُمِرۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الۡبَلۡدَةِ الَّذِىۡ حَرَّمَهَا وَ لَهٗ كُلُّ شَىۡءٍ وَّ اُمِرۡتُ اَنۡ اَكُوۡنَ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ (۹۱)

او داقران په لوستلو سره واوروم . اوس چې څوك هدايت غوره کړي هغه به د خپلې ښېګڼې لپاره سمه لاره غوره کړي او څوك چې ګمراه وي هغه ته ووایه چې زه خو فقط خبرداروونکی یم .

وَ اَنۡ اَتۡلُوَا الۡقُرۡاٰنَ فَمَنِ اهۡتَدٰى فَاِنَّمَا يَهۡتَدِىۡ لِنَفۡسِهٖ وَ مَنۡ ضَلَّ فَقُلۡ اِنَّمَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُنۡذِرِيۡنَ (۹۲)

دوی ته ووایه ، ثنا ستاینه یوازې الله لره ده ، ډېر ژربه هغه تاسې ته خپلې نښانې در وښيي او تاسې به هغه وپېژنئ ، او ستا رب له هغو عملونو څخه ناخبره ندی چې تاسې يې کوئ .

وَ قُلِ الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ سَيُرِيۡكُمۡ اٰيٰتِهٖ فَتَعۡرِفُوۡنَهَا وَ مَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ (۹۳)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ط ، س – م

طٰسٓمّٓ (۱)

دا دځرګندوونکي کتاب ایتونه دي

تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ (۲)

مونږ دموسی او فرعون یوڅه حال سم صحیح تاته اوروو ، د داسې خلکو دګټې لپاره چې ایمان راوړي .

نَتۡلُوۡا عَلَيۡكَ مِنۡ نَّبَاِ مُوۡسٰى وَ فِرۡعَوۡنَ بِالۡحَقِّ لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ (۳)

خبره داده چې فرعون په ځمکه کښې سرکشي وکړه او دهغې اوسېدونکي يې په ډلو وویشل .له هغو څخه یوه ډله یې ذلیله کوله ، دهغو هلکان يې وژل او دهغو نجونې يې ژوندئ پرېښودلې . په واقع کښې هغه له فساد کوونکو څخه وء .

اِنَّ فِرۡعَوۡنَ عَلَا فِى الۡاَرۡضِ وَ جَعَلَ اَهۡلَهَا شِيَعًا يَّسۡتَضۡعِفُ طَآئِفَةً مِّنۡهُمۡ يُذَبِّحُ اَبۡنَآءَهُمۡ وَ يَسۡتَحۡىٖ نِسَآءَهُمۡ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ (۴)

او مونږ دا اراده درلودله چې پرهغو خلکو مهرباني وکړو چې په ځمکه کښې ذلیل ګرځول شوي وو او هغوی رهبران وګرځوو او هماغوی وارثان وګرځوو

وَ نُرِيۡدُ اَنۡ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيۡنَ اسۡتُضۡعِفُوۡا فِى الۡاَرۡضِ وَ نَجۡعَلَهُمۡ اَئِمَّةً وَّ نَجۡعَلَهُمُ الۡوٰرِثِيۡنَ (۵)

او په ځمکه کښې حکومت ورکړو او له هغونه به فرعون او هامان او دهغو لښکرو ته همغه څه وروښیوچې له هغو سره يې وېره وه .

وَ نُمَكِّنَ لَهُمۡ فِى الۡاَرۡضِ وَ نُرِىَ فِرۡعَوۡنَ وَ هَامٰنَ وَ جُنُوۡدَهُمَا مِنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَحۡذَرُوۡنَ (۶)

مونږ د موسی مورته اشاره وکړه چې (( ده ته تی ورکړه ، بیا کله چې له تاسره دهغه د سرخطروي نو هغه په سیند کښې وغورځوه او هېڅ وېره او اندېښنه مه کوه مونږ به هغه همدا تاته بېرته راولو او هغه به د پېغمبرانو په ټولي کښې شامل کړو .

وَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰٓى اُمِّ مُوۡسٰٓى اَنۡ اَرۡضِعِيۡهِ فَاِذَا خِفۡتِ عَلَيۡهِ فَاَلۡقِيۡهِ فِى الۡيَمِّ وَ لَا تَخَافِىۡ وَ لَا تَحۡزَنِىۡ اِنَّا رَآدُّوۡهُ اِلَيۡكِ وَ جَاعِلُوۡهُ مِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (۷)

په پای کښې د فرعون کورنی هغه ( له سیندنه ) راوویست ترڅوچې هغه د هغو لپاره دښمن او دهغو لپاره د خپګان سبب شي ، خبره داده چې فرعون ، هامان او دهغو لښکر ( پخپله دسیسه کښې ) غلط شوي وو .

فَالۡتَقَطَهٗۤ اٰلُ فِرۡعَوۡنَ لِيَكُوۡنَ لَهُمۡ عَدُوًّا وَّ حَزَنًا اِنَّ فِرۡعَوۡنَ وَ هَامٰنَ وَ جُنُوۡدَهُمَا كَانُوۡا خٰطِئِيۡنَ (۸)

د فرعون مېرمن ( هغه ته ) وویل دی زما او ستا لپاره د سترګويخوونکی دی ، مه يې وژنئ ، کېدای شي چې دی زمونږ لپاره ګټور ثابت شي یابه يې موږ په ځویولی ونیسو او هغوی له عاقبت نه ناخبره وو .

وَ قَالَتِ امۡرَاَتُ فِرۡعَوۡنَ قُرَّتُ عَيۡنٍ لِّىۡ وَ لَكَ لَا تَقۡتُلُوۡهُ عَسٰٓى اَنۡ يَّنۡفَعَنَاۤ اَوۡ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا وَّ هُمۡ لَا يَشۡعُرُوۡنَ (۹)

ها خواته د موسی د مور زړه بې صبره درزېده . هغې به دهغه راز لوڅ کړی وء که مونږ د هغې زړه نه وای داډه کړی تر څوچې هغه (زمونږپر وعدوباندې ) له ایمان راوړونکو څخه واوسي .

وَ اَصۡبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوۡسٰى فٰرِغًا اِنۡ كَادَتۡ لَتُبۡدِىۡ بِهٖ لَوۡلَاۤ اَنۡ رَّبَطۡنَا عَلٰى قَلۡبِهَا لِتَكُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۱۰)

هغې د هلك خورته وويل په هغه پسې ورشه وروسته څه . نو هغې له کوښې نه هغه په داسې شان ترنظر لاندې وساته چې ( دښمنان) پرې ونه پوهېدل .

وَ قَالَتْ لِاُخْتِہٖ قُصِّیْہِ ۫ فَبَصُرَتْ بِہٖ عَنْ جُنُبٍ وَّ ہُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ (۱۱)

او مونږ پرهلك باندې لادمخه د شيد و ورکوونکو تيونه حرام کړي وو . ( د دغه حالت په ليدلو سره ) هغې نجلی هغوته وويل ((ايا زه تاسې ته ديو داسې کور څرك درکړم چې دهغه اوسېدونکي ستاسې له پاره د ده پالنه پرغاړه واخلي او په خير خواهی سره يې وساتي ؟

وَ حَرَّمْنَا عَلَیْہِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ فَقَالَتْ ہَلْ اَدُلُّکُمْ عَلٰۤی اَہْلِ بَیْتٍ یَّکْفُلُوْنَہٗ لَکُمْ وَ ہُمْ لَہٗ نٰصِحُوْنَ (۱۲)

په دې توګه مونږ موسی بېرته خپلې مور ته راوءست ترڅوچې دهغې سترګې يخې شي او غمجنه ونه اوسي اوهغه په دې وپوهېږي چې دالله وعده رينښتيا نی وه ، خوزياتره خلك په دې خبره نه پوهېږي .

فَرَدَدْنٰہُ اِلٰۤی اُمِّہٖ کَیْ تَقَرَّ عَیْنُہَا وَ لَا تَحْزَنَ وَ لِتَعْلَمَ اَنَّ وَعْدَ اللّٰہِ حَقٌّ وَّ لٰکِنَّ اَکْثَرَہُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ (۱۳)

اوکله چې موسی (ع) د خپلې ځوانۍ پوره منګ ته ورسيده اود هغه وده بشپړه شوه نو مونږ هغه ته حکم او علم ورکړ ، مونږ نيکانوته همدغسې مکافات ورکوو .

وَ لَمَّا بَلَغَ اَشُدَّہٗ وَ اسْتَوٰۤی اٰتَیْنٰہُ حُکْمًا وَّ عِلْمًا ؕ وَ کَذٰلِکَ نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ (۱۴)

يوه ورځ ) هغه ښارته په داسې وخت کښې ننووت چې .د ښار ) خلك په غفلت کښې وو . هلته هغه وميندل چې دوه تنه په جګړه دي . دا يود هغه د خپل قوم څخه وء او دا بل دهغه د دښمن په قوم پورې مربوط وء . د هغه دقوم سړي د دښمن د قوم دوګړي پرخلاف له هغه نه مرسته وغوښتله موسی هغه يوسوك وواهه او دهغه کارپې پای ته ورساوه . ( د دې حرکت له صادرېدلو سره سم ) موسی وويل (( دادشيطان په لمسون کار دی ، هغه سخت دښمن اوښکاره بېلارې کوونکی دی )).

وَ دَخَلَ الْمَدِیْنَۃَ عَلٰی حِیْنِ غَفْلَۃٍ مِّنْ اَہْلِہَا فَوَجَدَ فِیْہَا رَجُلَیْنِ یَقْتَتِلٰنِ ٭۫ ہٰذَا مِنْ شِیْعَتِہٖ وَ ہٰذَا مِنْ عَدُوِّہٖ ۚ فَاسْتَغَاثَہُ الَّذِیْ مِنْ شِیْعَتِہٖ عَلَی الَّذِیْ مِنْ عَدُوِّہٖ ۙ فَوَکَزَہٗ مُوْسٰی فَقَضٰی عَلَیْہِ ٭۫ قَالَ ہٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّیْطٰنِ ؕ اِنَّہٗ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِیْنٌ (۱۵)

بيايې وويل : ای زما پروردګاره! ماپرخپل ځان ظلم وکړ ، ماته ښننه وکړه نو الله هغه ته ښننه وکړه ، هغه ښه ښنونکی او خورا مهربان دی ،

قَالَ رَبِّ اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ فَاغْفِرْ لِیْ فَغَفَرَ لَہٗ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ (۱۶)

موسی ژمنه وکړه چې (( ای زما ربه ! دغه احسان چې تاپر مابانډې کړيدی . له دې وروسته به زه هېڅکله د مجرمانو ملاتړ نه شم .

قَالَ رَبِّ بِمَاۤ اَنْعَمْتَ عَلَیَّ فَلَنْ اَکُوْنَ ظَہِیْرًا لِّلْمُجْرِمِیْنَ (۱۷)

بله ورځ هغه سهار په توره خړه وېرېدونکی او له هرې خوا د خطرپه احساسولو څارونکی په ښار کښې روان وء چې په ناڅاپي ډول څه ګوري چې هماغه سړی چې پرون يې له ده نه ننګه غوښتې وه نن بيا ده ته د فرياد غږ کوي .موسی وويل ته خو ښکاره ګمراه سړی يې .

فَاَصْبَحَ فِی الْمَدِیْنَۃِ خَآئِفًا یَّتَرَقَّبُ فَاِذَا الَّذِی اسْتَنْصَرَہٗ بِالْاَمْسِ یَسْتَصْرِخُہٗ ؕ قَالَ لَہٗ مُوْسٰۤی اِنَّکَ لَغَوِیٌّ مُّبِیْنٌ (۱۸)

بيا کله چې موسی اراده وکړه چې . ددوې دواړو د ښمن قوم ته په منسوب سړی باندې حمله وکړي نو هغه وويل (( ای موسی ! اياته نن غواړې ماهم هماغسې ووژنې لکه څنګه چې دې پرون يو سړی وژلی دی ته همدا غواړی چې په دې هېواد کښې دغټ جابر په حيث واوسېږې او اصلاح کول نه غواړې))

فَلَمَّاۤ اَنْ اَرَادَ اَنْ یَّبْطِشَ بِالَّذِیْ ہُوَ عَدُوٌّ لَّہُمَا ۙ قَالَ یٰمُوْسٰۤی اَتُرِیْدُ اَنْ تَقْتُلَنِیْ کَمَا قَتَلْتَ نَفْسًۢا بِالْاَمْسِ ٭ۖ اِنْ تُرِیْدُ اِلَّاۤ اَنْ تَکُوْنَ جَبَّارًا فِی الْاَرْضِ وَ مَا تُرِیْدُ اَنْ تَکُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِیْنَ (۱۹)

له هغه وروسته) يو سړى دښار له لېرې ګوښې نه په منډه راغى )
او ويې ويل : (( اى موسى ! سرداران په خپلو كې ستا په هكله مشوره كوي چې تا ووژني ، له دې ځايه ووځه، زه ستا خواخوږى (( يم

وَ جَآءَ رَجُلٌ مِّنۡ اَقۡصَا الۡمَدِيۡنَةِ يَسۡعٰى ۫ قَالَ يٰمُوۡسٰۤى اِنَّ الۡمَلَاَ يَاۡتَمِرُوۡنَ بِكَ لِيَقۡتُلُوۡكَ فَاخۡرُجۡ اِنِّىۡ لَكَ مِنَ النّٰصِحِيۡنَ (٢٠)

د دې خبر له اورېدلو سره سم موسى (ع) وېرېده او په ځارنه ځارنه انديښمن ووت او دادعا يې وكړه چې (( اى زما ربه ! ماله ظالمانو څخه وژغوره )).

فَخَرَجَ مِنۡهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ ۫ قَالَ رَبِّ نَجِّنِىۡ مِنَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ (٢١)

له مصرنه په وتلو سره ) چې كله موسى دمدين خواته مخه كړه نو )
ويې ويل : هيله ده چې زما رب ما پرسمه لاره سيخ كړي

وَ لَمَّا تَوَجَّهَ تِلۡقَآءَ مَدۡيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّىۡۤ اَنۡ يَّهۡدِيَنِىۡ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ (٢٢)

او كله چې هغه د مدين ځاته ورسېده نو ويې ميندل (ويې ليدل) چې ډېر خلك خپل ځاروي او به كوي او له هغو نه بېلې يوې خواته دوه ښځې خپل ځاروي ايساروي موسى له دغو ښځونه پوښتنه وكړه (( تاسې وواييئ څنګه انديښمني يئ ؟ هغوى وويل مونږ خپلو ځارويوته اوبه نشو وركولى ترڅو پورې چې دغه شپانه خپل ځاروي بونځي ، او زمونږ پلار ډېر زيات سپين ږيرى سړى دى .

وَ لَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدۡيَنَ وَجَدَ عَلَيۡهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسۡقُوۡنَ ۬ وَ وَجَدَ مِنۡ دُوۡنِهِمُ امۡرَاَتَيۡنِ تَذُوۡدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطۡبُكُمَا ؕ قَالَتَا لَا نَسۡقِىۡ حَتّٰى يُصۡدِرَ الرِّعَآءُ . وَ اَبُوۡنَا شَيۡخٌ كَبِيۡرٌ (٢٣)

حضرت موسى (ع) دهغو ځاروي اوبه (د دې په اورېدلو سره) پروردګاره ! هره : كړل ، بيا يوه سيورې ځاى ته لاړ او ويې ويل . ښېګڼه چې تا پرما نازله كړې زه هغې ته اړيم

فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰۤى اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّىۡ لِمَاۤ اَنۡزَلۡتَ اِلَىَّ مِنۡ خَيۡرٍ فَقِيۡرٌ (٢٤)

له هغو دو ښځو څخه يوه په شرم او (څه ځنډلانه وءشوى چې )
زما پلار تاغواړي ))حيا سره راروانه ، ده ته راغله او ويې ويل
تر څو تا چې زمونږ لپاره ځارويوته اوبه وركړيدى دهغه اجر دركړي )) موسى عليه السلام چې كله هغه ته ورغى او هغه ته يې خپله ټوله قصه واوروله نوهغه وويل هېڅ مه ويرېږه ، اوس ته له . ظالمانو څخه ژغورل شوى يې

فَجَآءَتۡهُ اِحۡدٰىهُمَا تَمۡشِىۡ عَلَى اسۡتِحۡيَآءٍ ۫ قَالَتۡ اِنَّ اَبِىۡ يَدۡعُوۡكَ لِيَجۡزِيَكَ اَجۡرَ مَا سَقَيۡتَ لَنَا ؕ فَلَمَّا جَآءَهٗ وَ قَصَّ عَلَيۡهِ الۡقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفۡ ٝ نَجَوۡتَ مِنَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ (٢٥)

له هغو دوو ښځونه يوې خپل پلارته وويل (( پلاره ، دغه سړى نوكر ونيسه ، يو ډېر ښه سړى چې ته يې نوكر نيسې هماغه كېداى شي چې قوى او امانتدار وي )) .

قَالَتۡ اِحۡدٰىهُمَا يٰۤاَبَتِ اسۡتَاۡجِرۡهُ ۫ اِنَّ خَيۡرَ مَنِ اسۡتَاۡجَرۡتَ الۡقَوِىُّ الۡاَمِيۡنُ (٢٦)

دهغې پلار ( موسى (ع) ته ) وويل : زه غواړم چې له خپلو دغو دوو لونو څخه يوه تاته په نكاح دركړم ، پدې شرط چې ته تراتوكلونو پورې له ماسره نوكري وكړې ، او كه لس كاله پوره كړې نو داستا خپله خوښه . زه پرتا سختى كول نه غواړم . ته به ما انشاء الله ښه سړى ومومې )).

قَالَ اِنِّىۡۤ اُرِيۡدُ اَنۡ اُنۡكِحَكَ اِحۡدَى ابۡنَتَىَّ هٰتَيۡنِ عَلٰۤى اَنۡ تَاۡجُرَنِىۡ ثَمٰنِىَ حِجَجٍ ۚ فَاِنۡ اَتۡمَمۡتَ عَشۡرًا فَمِنۡ عِنۡدِكَ ۚ وَ مَاۤ اُرِيۡدُ اَنۡ اَشُقَّ عَلَيۡكَ ؕ سَتَجِدُنِىۡۤ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ (٢٧)

موسٰى (عليه السلام) ځواب وكړ : داخبره زما او ستا په مينځ كښې تصويب شوه . له دغو دواړو مودونه چې هره يوه زه پوره كړم له هغه وروسته به بيا پرما كوم زياتى نه وي ، او څه لوز او ژمنه چې مونږ كوو الله وربانديې ساتونكى دى )).

قَالَ ذٰلِكَ بَيۡنِىۡ وَ بَيۡنَكَ ؕ اَيَّمَا الۡاَجَلَيۡنِ قَضَيۡتُ فَلَا عُدۡوَانَ عَلَىَّ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوۡلُ وَكِيۡلٌ (٢٨)

كله چې موسى(عليه السلام) موده پوره كړه او هغه له خپل اهل اوعيال سره روان شو نو د طور خواته يو اور په نظر ورغى . هغه خپلو كوروالاوء ته وويل:((تاسې اوسئ مااورليدلى دى ښائى زه له هغه ځايه څه خبر درته راوړم ياله هغه اورنه كومه سكروټه راواخلم چې تاسې پرې تاوده شئ )).

فَلَمَّا قَضٰى مُوۡسَى الۡاَجَلَ وَ سَارَ بِاَهۡلِهٖۤ اٰنَسَ مِنۡ جَانِبِ الطُّوۡرِ نَارًا ۚ قَالَ لِاَهۡلِهِ امۡكُثُوۡۤا اِنِّىۡۤ اٰنَسۡتُ نَارًا لَّعَلِّىۡۤ اٰتِيۡكُمۡ مِّنۡهَا بِخَبَرٍ اَوۡ جَذۡوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمۡ تَصۡطَلُوۡنَ (٢٩)

فَلَمَّا اَتٰىهَا نُوْدِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْاَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ اَنْ يّٰمُوْسٰى اِنِّيْ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ (۳۰)

هلته چې ورسېده نو د ناوه د ښي غاړې په برکتي ټوټه ځمکه کښې له يوې ونې څخه غږ وشوچې (( ای موسی همدا زه الله يم ، دعالمونو مالك )).

وَ اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّ لَمْ يُعَقِّبْ ؕ يٰمُوْسٰى اَقْبِلْ وَ لَا تَخَفْ ۟ اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِيْنَ (۳۱)

او ( حکم ورکړ شوچې ) وغورځوه خپله همسا، څنګه چې موسی وليدله هغه همسا دمار په څېر خوځېدې نو شايي واوړله وتښتېده او هغه بېرته ترشاهم ونه کتل .( امر وشو ) ای موسٰی ! راوګرځه او مه وېرېږه ته بيخی په امن يې .

اُسْلُكْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ۫ وَّ اضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَ مَلَا۟ئِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ (۳۲)

خپل لاس په خپل ګرېوان کښې ننباسه ، ځلېدونکی به راووځي بې له څه تکليف نه . ا و له وېرې نه دڅ غورل کېدو لپاره خپل مټ درجوخت کړه . دا دوه روښانه نښانې دي ستا درب له لورې د فرعون او دهغه د درباريانو مخې ته دوړاندې کولو لپاره، هغوی ډېر نافرمانه خلك دي)).

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ (۳۳)

موسٰی عرض وکړ (( زما ربه ! ماخو د هغو يوسړی وژلی دی ، وېرېږم چې هغوی به ما ووژني .

وَ اَخِيْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْاً يُّصَدِّقُنِيْٓ ۫ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ (۳۴)

او زما ورور هارون له مانه زيات خوله وردی هغه له ماسره د مرستيال په توګه ولېږه ترڅو چې هغه زما تائيد وکړي زه وېرېږم چې هغوی به ما دروغجن وګڼي )) .

قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِيْكَ وَ نَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطٰنًا فَلَا يَصِلُوْنَ اِلَيْكُمَا ۚۛ بِاٰيٰتِنَاۤ ۚۛ اَنْتُمَا وَ مَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُوْنَ (۳۵)

ويې فرمايل (( مونږ به ستا دورور په وسيله ستامټ قوي کړو اوتاسي دواړوته به داسي برلاسي دربه برخه کړو چې هغوی تاسي ته هېڅ ضرر ونشي رسولای . زمونږ دنښانو په زور سره به غلبه ستاسي دواړو او ستاسي دپيروانو وي )).

فَلَمَّا جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى وَّ مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ (۳۶)

بيا کله چې موسٰی عليه السلام هغو خلکو ته زمونږ له روښانه څرګندو نښانو سره ورغی نو هغوی وويل چې داله ساختګي کوډونه پرته نور څه ندي . او دا خبرې خو مونږ د پلا ر نيکه په زمانه کښې هېڅکله ندي اورېدلي .

وَ قَالَ مُوْسٰى رَبِّيْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ وَ مَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ (۳۷)

موسٰی عليه السلام ځواب ورکړ (( زما رب دهغه چا په حال ښه خبر دی چې دهغه له لوري له هدايت سره راغلی دی او هماغه ډېر ښه پوهېږي چې وروستی عاقبت د چاښه کېدونکی دی . حقه داده چې ظالمان هېڅکله فلاح نه مومي )).

وَ قَالَ فِرْعَوْنُ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِيْ ۚ فَاَوْقِدْ لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ فَاجْعَلْ لِّيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَطَّلِعُ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى ۙ وَ اِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ (۳۸)

او فرعون وويل : ای د دربار خلکو ! زه له خپله ځانه پرته ستاسي کوم بل خدای نه پيژنم . ای ها مانه ! ته د خښتوپه پخولوسره زما لپاره يوه دنګه ودانی جوړه کړه ښائي پرهغې باندې په ختلو سره زه دموسٰی خدای وليدلای شم ، زه خو دی دروغجن ګڼم )).

وَ اسْتَكْبَرَ هُوَ وَ جُنُوْدُهٗ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَ ظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اِلَيْنَا لَا يُرْجَعُوْنَ (۳۹)

هغه او دهغه لښکرې په ځمکه کښې ناحقه متکبرمغرور شول او دايې وانګېرله چې هغوی هېڅکله زمونږ لوري ته راګرځېدونکي ندی .

فَاَخَذْنٰهُ وَ جُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ (۴۰)

په پای کښې مونږ هغه او دهغه لښکرې ونيول اوپه سمندرکښې مو وغورځول . اوس وګوره چې دهغو ظالمانو څه عاقبت شو .

وَ جَعَلْنٰهُمْ اَئِمَّةً يَّدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ۚ وَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا يُنْصَرُوْنَ (۴۱)

مونږ هغوی د دوزخ لوري ته بلونکي رهبران وګرځول او دقيامت په ورځ به هغوی له هيڅ لوري مرسته ونشي ميندلی .

مونږ په دې دنيا کښې په هغو پسې لعنت وتاکه او دقيامت په ورځ به هغوی په زياته غندنه اخته وي

وَ اَتۡبَعۡنٰهُمۡ فِیۡ هٰذِهِ الدُّنۡیَا لَعۡنَةً ۚ وَ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ هُمۡ مِّنَ الۡمَقۡبُوۡحِیۡنَ (۴۲)

مونږدمخکېنيونسلو نوله هلاکولووروسته موسی ته کتاب ورکړ. د خلکو لپاره د ذهني روښنائيو سبب ، لارښوونکی او رحمت وء تر څوچې خلك درس واخلي .

وَ لَقَدۡ اٰتَیۡنَا مُوۡسَی الۡکِتٰبَ مِنۡۢ بَعۡدِ مَاۤ اَهۡلَکۡنَا الۡقُرُوۡنَ الۡاُوۡلٰی بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَ هُدًی وَّ رَحۡمَةً لَّعَلَّهُمۡ یَتَذَکَّرُوۡنَ (۴۳)

ای محمده ! ) ته په هغه وخت کې په لوېديزه څنډه کښې موجود نه ) وې کله چې مونږ موسٰی (عليه السلام) ته د شريعت دغه فرمان ورکړ اونه ته په شاهدانو کښې شامل وې

وَ مَا کُنۡتَ بِجَانِبِ الۡغَرۡبِیِّ اِذۡ قَضَیۡنَاۤ اِلٰی مُوۡسَی الۡاَمۡرَ وَ مَا کُنۡتَ مِنَ الشّٰهِدِیۡنَ (۴۴)

بلکې له هغه وروسته ( ستا ترزمانې پورې ) مونږ ډېر نسلو نه مينځ ته راوړيدي او پر هغو باندې ډېره زمانه تېره شوېده . ته د مدين د خلکو په مينځ کښې هم موجود نه وې چې هغوته دې زمونږ ايتونه اوررولای ، خو ( دهغه وخت د دغو خبرونو ) لېږونکې مونږ يو

وَ لٰکِنَّاۤ اَنۡشَاۡنَا قُرُوۡنًا فَتَطَاوَلَ عَلَیۡهِمُ الۡعُمُرُ ۚ وَ مَا کُنۡتَ ثَاوِیًا فِیۡۤ اَهۡلِ مَدۡیَنَ تَتۡلُوۡا عَلَیۡهِمۡ اٰیٰتِنَا ۙ وَ لٰکِنَّا کُنَّا مُرۡسِلِیۡنَ (۴۵)

اوته دطورپه لمن کې هم په هغه وخت کښې موجودنه وې کله چې مونږ ( موسٰی عليه السلام ته لومړی ځل ) او از کړی وء، خو داستا درب رحمت دی ( چې تاته دغه معلومات درکول کېږي ) ترڅوچې ته هغه خلك وويروې چې هغو ته له تانه مخکښې کوم وېروونکی ندی راغلی ښائي چې هغوی متوجه شي .

وَ مَا کُنۡتَ بِجَانِبِ الطُّوۡرِ اِذۡ نَادَیۡنَا وَ لٰکِنۡ رَّحۡمَةً مِّنۡ رَّبِّکَ لِتُنۡذِرَ قَوۡمًا مَّاۤ اَتٰهُمۡ مِّنۡ نَّذِیۡرٍ مِّنۡ قَبۡلِکَ لَعَلَّهُمۡ یَتَذَکَّرُوۡنَ (۴۶)

او دامونږ د دې لپاره وکړل چې ) چېرته داسې نه وي چې کله ) چې د هغو د خپلو کړو وړو لامله پرهغو باندې کوم مصيبت راشي نو هغوی ووائي : ای پروردگاره ! تاولې مونږ ته کوم پېغمبرونه لېږه چې مونږ ستا دايتونو پېروي کړې وای او له موءمنانو څخه . شوي وای

وَ لَوۡ لَاۤ اَنۡ تُصِیۡبَهُمۡ مُّصِیۡبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتۡ اَیۡدِیۡهِمۡ فَیَقُوۡلُوۡا رَبَّنَا لَوۡ لَاۤ اَرۡسَلۡتَ اِلَیۡنَا رَسُوۡلًا فَنَتَّبِعَ اٰیٰتِکَ وَ نَکُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۴۷)

مګر کله چې زمونږ له خوا هغوته حق (قرآن)راغی نو هغو وويل ولې ده (محمد) ته هغه څه ورنکړای شول چې موسٰی عليه السلام ته ورکړای شوي وو ؟ ايا دوی له هغه څه نه منکر شوي ندي چې له دې نه مخکښې موسٰی عليه السلام ته ورکړای شوي وو؟ دوی وويل دواړه کوډې دي چې يوه دبلې تائيد کوي .او ويې ويل (( مونږ هيڅ يونه منو )).

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الۡحَقُّ مِنۡ عِنۡدِنَا قَالُوۡا لَوۡ لَاۤ اُوۡتِیَ مِثۡلَ مَاۤ اُوۡتِیَ مُوۡسٰی ؕ اَوَ لَمۡ یَکۡفُرُوۡا بِمَاۤ اُوۡتِیَ مُوۡسٰی مِنۡ قَبۡلُ ۚ قَالُوۡا سِحۡرٰنِ تَظٰهَرَا ۟ۙ وَ قَالُوۡۤا اِنَّا بِکُلٍّ کٰفِرُوۡنَ (۴۸)

ای پېغمبره !) دوی ته ووايه نو تاسې دالله له لوري داسې کوم ) کتاب راوړئ چې له دغو دواړونه زيات هدايت ښنونکی وي که تاسې رېښتوني ئې ، زه به دهماغه پيروي وکړم

قُلۡ فَاۡتُوۡا بِکِتٰبٍ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ هُوَ اَهۡدٰی مِنۡهُمَاۤ اَتَّبِعۡهُ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ (۴۹)

اوس که هغوی ستا دغه غوښتنه نه پوره کوي نو وپوهېږه چې په اصل کښې دوی دخپلو خواهشاتو پېروان دي اوله هغه چانه به څوك زيات ګمراه وي چې له خدائی هدايت نه پرته فقط د خپلو خواهشاتو پيروي وکړي ؟ الله دغسې ظالمانو ته هېڅکله هدايت نکوي.

فَاِنۡ لَّمۡ یَسۡتَجِیۡبُوۡا لَکَ فَاعۡلَمۡ اَنَّمَا یَتَّبِعُوۡنَ اَهۡوَآءَهُمۡ ؕ وَ مَنۡ اَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰىهُ بِغَیۡرِ هُدًی مِّنَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَهۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِیۡنَ (۵۰)

او مونږ پرله پسې هغوته ( دنصيحت ) خبره رسولې ده ترڅو چې هغوی له غفلت نه راويښ شي .

وَ لَقَدۡ وَصَّلۡنَا لَهُمُ الۡقَوۡلَ لَعَلَّهُمۡ یَتَذَکَّرُوۡنَ (۵۱ؕ)

کومو خلکوته چې مونږ له دې نه مخکښې کتاب ورکړی وه هغوی پدې قرآن باندې ایمان راوړي

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ (۵۲)

او کله چې داهغوته اورول کیږي نو هغوی وائي چې مونږ پده باندې ایمان راوړدا په ریښتیا سره زمونږ درب لخوا حق دی ، مونږ خو لاد دې نه مخکې مسلمان یو .

وَ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْۤا اٰمَنَّا بِهٖۤ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَاۤ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ (۵۳)

داهغه کسان دي چې دوی ته به د دوی اجر دوه ځله ورکړشي. دهغه زغم ټینګار په بدل کښې چې هغوی وښوده ، هغوی دبدی مخنیوی په نیکی سره کوي او کومه روزي چې مونږ هغوته ورکړېده له هغې نه (دالله په لار کښې) لګښت کوي .

اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوْا وَ يَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ وَ مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ (۵۴)

اوکله چې يې بابېزه خبره واورېدله نو پدې ويناسره ورڅخه په ډډه شول چې ((زمونږ عملونه زمونږ لپاره او ستاسې عملونه ستاسې لپاره دي تاسې ته سلام دی ، مونږ د جاهلانو غوندې کړنلاره غوره کول نه غواړو)).

وَ اِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ اَعْرَضُوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا لَنَاۤ اَعْمَالُنَا وَ لَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۫ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ۫ لَا نَبْتَغِی الْجٰهِلِيْنَ (۵۵)

ای پېغمبره ! ته چې چاته وغواړې او خوښ دې وي هغه ته هدایت نشې ورکولی ، مګر الله چې چاته وغواړي هدایت ورکوي ، الله هغه خلك ښه پيژني چې د هدایت منونکي دي .

اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ (۵۶)

هغوی وائی که مونږ له تاسې سره د دغه هدایت پیروي غوره کړو نو له خپل هېواد څخه به وتښتول شو .ایا داسې نده چې مونږ یوامنځی حرم د دوی لپاره استوګنځی وګرځوه چې د هغه لوري ته هر راز میوې راروانې دي ، زمونږ له لوري د روزی په توګه ؟خوله دوی نه زیاتره خلك نه پوهېږي .

وَ قَالُوْۤا اِنْ نَّتَّبِعِ الْهُدٰى مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ اَرْضِنَا ؕ اَوَ لَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰۤى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَیْءٍ رِّزْقًا مِّنْ لَّدُنَّا وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۵۷)

او څومره داسې کلي مونږ تباه کړېدي چې دهغو خلك پخپل ژوند ژواك کښې مغرور شوي وو . نو ګورئ هغه دهغو لوېدلي مېنې دي چې له هغو وروسته پکښې ډېر کم وخت څوك او سېدلي دی په پای کښې همدا مونږ وارثان شوو .

وَ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ مَعِيْشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيْلًا ؕ وَ كُنَّا نَحْنُ الْوٰرِثِيْنَ (۵۸)

او ستا رب د کليو هلاکوونکی نه وه ترڅو چې دهغو مرکزته به یې یو پېغمبر نه وءلېږلی چې هغوته یې زمونږ ایتونه اورلي وای.اونه مونږ دکليو هلاکوونکي وو ترڅو پورې چې دهغو اوسېدونکي ظالمان شوي نه وای .

وَ مَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ فِیْۤ اُمِّهَا رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۚ وَ مَا كُنَّا مُهْلِكِی الْقُرٰۤى اِلَّا وَ اَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ (۵۹)

تاسې ته چې هرڅه درکړی شویدی هغه محضې د دنیوي ژوندانه وسائل او دهغه ښکلا ده ، اوڅه چې له الله سره دي هغه له دې نه ډېر غوره او بیخی باقی پاتې کېدونکي دي ، ایا تاسې له پوهې نه کارنه اخلئ ؟

وَ مَاۤ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتُهَا ۚ وَ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (۶۰)

ښه نو هغه څوك چې له هغه سره مونږ ښه وعده کړې وي او هغه د هغې میندونکی وي ایا دهغه چاپه څېر کېدای شي چې هغه ته مویوازې د دنیوي ژوندانه وسائل ورکړي وي او بیا هغه د قیامت په ورځ د سزا لپاره له وروستل کېدونکو څخه وي؟

اَفَمَنْ وَّعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيْهِ كَمَنْ مَّتَّعْنٰهُ مَتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ (۶۱)

او ( دوی دې نه هېروي ) هغه ورځ چې کله الله دوی ته غږ وکړي او پوښتنه وکړي چېرته دي زما هغه شريکان چې تاسې پرې ګومان درلوده ؟

وَ يَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ اَيْنَ شُرَكَآءِیَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ (۶۲)

دغه ويناچي په كومو كسانو باندي تطبيقيږي هغوی به ووائي (( ای زمونږ ربه بيشكه همدغه خلك دي چي مونږ هغوی گمراه كړي وو . مونږ دوی هماغسي گمراه كړل لكه څنگه چي مونږ پخپله گمراه شوو . مونږ ستا په حضور كښي دبيزاری څرگندونه كوو. دوی زمونږ بندگي نه كوله)).

قَالَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَغْوَيْنَا ۚ اَغْوَيْنٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۚ تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ۙ مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ (۶۳)

بيا به دوی ته وويل شي چي بلنه وركړئ اوس خپلو انگيرليوشريكانو ته دوی به هغو ته بلنه وركړي خو هغوی به دوی ته څه ځواب ورنكړي . او دوی به عذاب وگوري .كاشكي چي دوی د هدايت غوره كوونكي وای .

وَ قِيْلَ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَ رَاَوُا الْعَذَابَ ۚ لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَهْتَدُوْنَ (۶۴)

او ( دوی دي نه هيروي ) هغه ورځ چي كله الله دوی ته غږ وكړي او پوښتنه وكړي كوم پيغمبران چي درليږل شوي وو هغوته تاسي څه ځواب وركړی وء؟

وَ يَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ (۶۵)

په هغه وخت كښي به دوی ته هيڅ ځواب په فكر كښي ورنشي او نه به دوی په خپلو مينځو كښي يوله بل نه پوښتنه وكړای شي .

فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْاَنْۢبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُوْنَ (۶۶)

البته چاچي نن توبه وويستله او ايمان يي راوړ او نيك عمل يي وكړ هماغه داهيله كولای شي چي هلته به له فلاح ميندونكو څخه وي .

فَاَمَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا فَعَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ (۶۷)

ستا رب پيداكوي هر څه چي غواړي او ( هغه پخپله د خپل كار لپاره چي چاته يي خوښه شي ) غوره كوي يي ، دغه ټاكنه د دغو خلكو د كولو كار ندی ، الله پاك دی او ډير لوړ دی له هغه شرك نه چي دوی يي كوي .

وَ رَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَ يَخْتَارُ ؕ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۶۸)

ستا رب پوهيږي په هغه څه چي دوی يي په زړونو كښي پټوي او په هغه څه چي دوی يي ښكاره كوي .

وَ رَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَ مَا يُعْلِنُوْنَ (۶۹)

هماغه يو الله چي له هغه پرته بل څوك د عبادت مستحق نشته دهماغه لپاره ثنا ستاينه ده په دنيا كښي هم او په اخرت كښي هم فرمانروائی دهماغه لپاره ده او د هماغه لوري ته تاسي ټول ورگرځيدونكي ياست .

وَ هُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَ الْاٰخِرَةِ ۫ وَ لَهُ الْحُكْمُ وَ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ (۷۰)

ای پيغمبره ! دوی ته ووايه تاسي كله غور وكړ چي كه الله ترقيامته پوري پرتاسي دتل لپاره شپه خوره كړي نوله الله نه پرته هغه كوم معبود دی چي تاسي ته رڼائي راولي ؟ ايا تاسي نه اورئ ؟

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ (۷۱)

له دوی نه پوښتنه وكړه ، تاسي كله فكر وكړ چي كه الله ترقيامته پوري پرتاسي دتل لپاره ورځ خوره كړي نوله الله نه پرته هغه كوم معبود دی چي تاسي ته شپه راولي ترڅوچي تاسي په هغي كښي استراحت وكړای شئ ؟ ايا تاسي بصيرت نلرئ ؟

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ (۷۲)

دا دهماغه رحمت دی چي هغه ستاسي لپاره شپه او ورځ مينځ ته راوړيدي ترڅوچي تاسي ( په شپه كښي ) استراحت وكړئ او( په ورځ كښي ) دخپل رب فضل ولټوئ ، ښائي چي تاسي شكر ويستونكي شئ .

وَ مِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَ النَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (۷۳)

هغه ورځ چې کله الله دوی ته غږ وکړي بيا (دوی دې په يادولري ) پوښتنه وکړي (( چيرته دي زما هغه شريکان چې په هغو تاسې گومان درلوده ))؟

وَ يَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ فَيَقُوۡلُ اَيۡنَ شُرَكَآءِىَ الَّذِيۡنَ كُنۡتُمۡ تَزۡعُمُوۡنَ (۷۴)

او مونږ به له هرامت نه يو شاهد راوباسو بيا به ووايو چې (( راوړئ اوس خپل دليل )) په هغه وخت کښې به دوی ته څرگنده شي چې حق دالله پلوته دی . او د دوی هغه ټول دروغ به ورك شي چې دوی له ځانه جوړول .

وَ نَزَعۡنَا مِنۡ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيۡدًا فَقُلۡنَا هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ فَعَلِمُوۡۤا اَنَّ الۡحَقَّ لِلّٰهِ وَ ضَلَّ عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَفۡتَرُوۡنَ (۷۵)

دايو واقعيت دی چې قارون د موسٰی (عليه السلام) د قوم يو فرد وء ، بيا هغه د خپل قوم پر خلاف سرغړاوی وکړ . او مونږ هغه ته دومره خزانې ورکړې وې چې دهغو کليگانې دقوي کسانو يوه ټولي ايله بيله په سختی سره پورته کولی شوې. کله چې د هغه د قوم خلکو هغه ته وويل : مه وياړيږه ، الله وياړيدونې نه خوښوي .

اِنَّ قَارُوۡنَ كَانَ مِنۡ قَوۡمِ مُوۡسٰى فَبَغٰى عَلَيۡهِمۡ ۪ وَ اٰتَيۡنٰهُ مِنَ الۡكُنُوۡزِ مَاۤ اِنَّ مَفَاتِحَهٗ لَتَنُوۡٓاُ بِالۡعُصۡبَةِ اُولِى الۡقُوَّةِ * اِذۡ قَالَ لَهٗ قَوۡمُهٗ لَا تَفۡرَحۡ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡفَرِحِيۡنَ (۷۶)

کومه شتمني چې الله تاته درکړېده په هغې سره داخرت دکور جوړولو فکر وکړه اوله دنيا نه هم خپله برخه مه هېروه . احسان وکړه لکه څنگه چې الله له تاسره احسان کړېدی او په ځمکه کښې د فساد ولاړولو هڅه مکوه ، الله فساد کوونکي نه خوښوي

وَ ابۡتَغِ فِيۡمَاۤ اٰتٰىكَ اللّٰهُ الدَّارَ الۡاٰخِرَةَ وَ لَا تَنۡسَ نَصِيۡبَكَ مِنَ الدُّنۡيَا وَ اَحۡسِنۡ كَمَاۤ اَحۡسَنَ اللّٰهُ اِلَيۡكَ وَ لَا تَبۡغِ الۡفَسَادَ فِى الۡاَرۡضِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡمُفۡسِدِيۡنَ (۷۷)

هغه وويل ((داهر څه ماته دهغه علم په اساس راکړای شويدي چې زه يې لرم )) ايا هغه پدې پوه نه وء چې الله له ده نه مخکښې ډېر داسې خلك هلاك کړيدي چې له هغه نه يې زيات قوت او زياته شتمني يې درلودله ؟ له مجرمانو څخه خو دهغو دگناه پوښتنه نکيږي .

قَالَ اِنَّمَاۤ اُوۡتِيۡتُهٗ عَلٰى عِلۡمٍ عِنۡدِىۡ ؕ اَوَ لَمۡ يَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ قَدۡ اَهۡلَكَ مِنۡ قَبۡلِهٖ مِنَ الۡقُرُوۡنِ مَنۡ هُوَ اَشَدُّ مِنۡهُ قُوَّةً وَّ اَكۡثَرُ جَمۡعًا ؕ وَ لَا يُسۡـَٔلُ عَنۡ ذُنُوۡبِهِمُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ (۷۸)

يوه ورځ هغه دخپل قوم په وړاندې په خپل شان شوکت کښې راووت . کوم کسان چې د دنيوي ژوند غوښتونکي وو دهغه په ليدلوسره يې وويل (( کاشکې زمونږ هم هماغه څه وای چې قارون ته ورکړشويدي ، دی خو دلويي برخې خاوند دی )).

فَخَرَجَ عَلٰى قَوۡمِهٖ فِىۡ زِيۡنَتِهٖ ؕ قَالَ الَّذِيۡنَ يُرِيۡدُوۡنَ الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا يٰلَيۡتَ لَنَا مِثۡلَ مَاۤ اُوۡتِىَ قَارُوۡنُ ۙ اِنَّهٗ لَذُوۡ حَظٍّ عَظِيۡمٍ (۷۹)

خو کوم کسان چې د علم خاوندان وو هغو وويل (( خو اشيني ده ستاسې په حال باندې ، دالله ثواب دهغه چاليپاره ډېر بهتره دی چې ايمان راوړي او نيك عمل وکړي او دانه ورکول کيږي مگر د زغم خاوندانوته )).

وَ قَالَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ وَيۡلَكُمۡ ثَوَابُ اللّٰهِ خَيۡرٌ لِّمَنۡ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا ۚ وَ لَا يُلَقّٰهَاۤ اِلَّا الصّٰبِرُوۡنَ (۸۰)

په پای کښې مونږ هغه او دهغه کورپه ځمکه کښې ننويست . بيا د هغه د مرسته کوونکو هېڅ کومه ډله نه وه چې دالله په مقابل کښې دهغه مرستې ته راغلې وای او نه يې خپله مرسته پخپله وکړای شوه .

فَخَسَفۡنَا بِهٖ وَ بِدَارِهِ الۡاَرۡضَ ۟ فَمَا كَانَ لَهٗ مِنۡ فِئَةٍ يَّنۡصُرُوۡنَهٗ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ * وَ مَا كَانَ مِنَ الۡمُنۡتَصِرِيۡنَ (۸۱)

اوس همغوخلکو چې پرون يې دهغه د منزلت هيله کوله وويل ((افسوس ، مونږ هيره کړې وه چې الله له خپلو بندگانو څخه چې د چا روزي غواړي پراخوي يې او چاته يې چې خوښه شي پرې تنگوي يې . که الله پرمونږ احسان نه وای کړي نو مونږ به يې هم په ځمکه کښې ننويستلي وو.افسوس،زمونږ په ياد پاتې نشوه چې کافران فلاح نه مومي)).

وَ اَصۡبَحَ الَّذِيۡنَ تَمَنَّوۡا مَكَانَهٗ بِالۡاَمۡسِ يَقُوۡلُوۡنَ وَيۡكَاَنَّ اللّٰهَ يَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ يَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ وَ يَقۡدِرُ ۚ لَوۡ لَاۤ اَنۡ مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيۡنَا لَخَسَفَ بِنَا ؕ وَيۡكَاَنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الۡكٰفِرُوۡنَ (۸۲)

داخرت هغه کور خو به دهغو خلکو لپاره مخصوص کړو چې په ځمکه کښې خپله لوئي نه غواړي او نه د فساد کولو اراده لري . او نيك عاقبت يوازې د پرهيزگارانو لپاره دی .

تِلۡكَ الدَّارُ الۡاٰخِرَةُ نَجۡعَلُهَا لِلَّذِيۡنَ لَا يُرِيۡدُوۡنَ عُلُوًّا فِى الۡاَرۡضِ وَ لَا فَسَادًا ؕ وَ الۡعَاقِبَةُ لِلۡمُتَّقِيۡنَ (۸۳)

څوك چي له نيكۍ سره راشي د هغه له پاره له هغې نه زياته ښه نيكي ده او څوك چي له بدۍ سره راشي نو دبدو عملونو سرته رسوونكوته به همغسي بدله وركړه شي لكه څنګه چي يې عمل كاوه .

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَ مَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۸۴)

اى پېغمبره ! باور ولره چاچي د دې قرآن مسئوليت پرتا اچولى دى هغه يودېرښه عاقبت ته ستارسوونكى دى . دغو خلكو ته ووايه چي زما رب ښه پوهېږي چي له هدايت سره څوك راغلى دى او په ښكاره ګمراهى كښي څوك اخته دى )).

اِنَّ الَّذِىْ فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ ؕ قُلْ رَّبِّىْٓ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى وَ مَنْ هُوَ فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (۸۵)

ته هيڅكله د دې خبرې هيله من نه وې چي پرتا دې كتاب نازل كړاى شي ، داخو محضې ستا درب په مهربانۍ سره ( پرتا نازل شويدى ) نوته د كافرانو ملاتړ مه كېږه .

وَ مَا كُنْتَ تَرْجُوْٓا اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ ظَهِيْرًا لِّلْكٰفِرِيْنَ (۸۶)

او داسي دې هيڅكله ونشي چي دالله آيتونه چي كله پرتاباندي نازل شي نو كافران تاله هغو څخه راواړوي . د خپل رب لوري ته بلنه وركړه او هيڅكله په مشركانو كښي مه شاملېږه

وَ لَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَ ادْعُ اِلٰى رَبِّكَ وَ لَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (۸۷)

او له الله سره كوم معبود مه بله له هغه پرته بل هيڅ معبود نشته دهغه له ذات نه پرته هرشى هلاكېدونكى دى . فرمانروايئ د همغه ده اودهمغه لوري ته تاسي ټول وركرځېدونكي ياست .

وَ لَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ ۘ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۟ كُلُّ شَىْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ ؕ لَهُ الْحُكْمُ وَ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ (۸۸)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى

الف – ل – م .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الٓمّٓ ۚ (۱)

ايا خلكو داګنلي ده چي هغوى به يوازې په همدومره ويلو پريښودل شي (( چي مونږ ايمان راوړ )) او هغوى به ونه ازمويل شي ؟

اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا وَ هُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ (۲)

پداسي حال كښي چي مونږ هغه ټول خلك از مويلي دي چي له دوى نه مخكښي تيرشويدي الله خوبه هرومرو داګوري چي رېښتيني څوك دي او درواغجن څوك.

وَ لَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَ لَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ (۳)

او ايا هغه كسان چي ناوړه عملونه كوي دايي انګيرلي ده چي هغوى به له مونږ نه ميدان يوسي ؟ دا ډېر غلط حكم دى چي هغوى ئې كوي .

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ (۴)

څوك چي له الله سره ديو ځاى كيدوهيله من وي ( هغه بايد پدې وپوهيږي چي )) دالله ټاكل كړاى شوى وخت ارومرو راتلونكى دى . او الله ډېر ښه اورېدونكى او ښه پوهېدونكى دى.

مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ ؕ وَ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (۵)

هرڅوك چي جهاد وكړي دخپل ځان د ښګيڼي لپاره به يې وكړي ، يقيني ده چي الله له مخلوقاتو څخه بې نيازه دى .

وَ مَنْ جَاهَدَ فَاِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِىٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ (۶)

او كوم كسان چي ايمان راوړي او نيك عملونه وكړي دهغو بدۍ به مونږ له هغو نه ايسته كړو او هغوته به دهغو د ډيرو غوره عملونو مكافات وركړو .

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَ لَنَجْزِيَنَّهُمْ اَحْسَنَ الَّذِىْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۷)

مونږ انسان ته توصيه كړيده چي له خپل مور او پلار سره نيك سلوك وكړه . خوكه هغوى پرتا فشار راوړي چي ته له ماسره داسي كوم ( معبود ) شريك ونيسه چي ته يې زما دشريك په توګه نه پيژني نو دهغو خبره مه منه . همدا زما لوري ته ستاسي ټولو راګرځيدل دي . بيا به زه تاسي ته وښيم چي تاسي څه كول .

وَ وَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ؕ وَ اِنْ جَاهَدٰكَ لِتُشْرِكَ بِىْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ؕ اِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۸)

او کومو کسانو چې ایمان راوړی وي او نیك عملونه یې کړي وي هغوی به مونږ ارومرو په صالحانو کښې داخل کړو .

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُدْخِلَنَّہُمْ فِی الصّٰلِحِيْنَ (۹)

له خلکو نه څوك داسې دي چې وايي مونږ پرالله ایمان راوړی خوکله چې هغه دالله په معامله کښې وځورول شو نو هغه د خلکو لخوا اچول شوي ازموینه دالله د عذاب په څیر وګڼله . اوس که ستا د رب لخوا فتح او نصرت راغی نو همدغه سړی به ووايي چې (( مونږ خوله تاسې سره وو)) ایا د نړی والو د زړه حال الله ته ښه معلوم نه دی ؟

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰہِ فَاِذَاۤ اُوْذِیَ فِی اللّٰہِ جَعَلَ فِتْنَۃَ النَّاسِ کَعَذَابِ اللّٰہِ ؕ وَ لَئِنْ جَآءَ نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّکَ لَیَقُوْلُنَّ اِنَّا کُنَّا مَعَکُمْ ؕ اَوَ لَیْسَ اللّٰہُ بِاَعْلَمَ بِمَا فِیْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ (۱۰)

او الله خوبه ارومرو داګوري چې موءمنان څوك دي او منافقان څوك .

وَ لَیَعْلَمَنَّ اللّٰہُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ لَیَعْلَمَنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ (۱۱)

دغه کافران موءمنانوته وايي چې تاسې زمونږ دکړنلارې پیروي وکړئ او ستاسې خطاوې به مونږ پرځان واخلو . پداسې حال کښې چې دهغوله خطاوء نه هیڅ شی هم هغوی پرځان اخیستونکي نه دي . هغوی په قطعي ډول دروغ وايي .

وَ قَالَ الَّذِيْنَ کَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبِعُوْا سَبِيْلَنَا وَ لْنَحْمِلْ خَطٰیٰکُمْ ؕ وَ مَا ہُمْ بِحٰمِلِيْنَ مِنْ خَطٰیٰہُمْ مِّنْ شَیْءٍ ؕ اِنَّہُمْ لَکٰذِبُوْنَ (۱۲)

هو، هغوی به ارومروخپل پیټي هم واخلي او دخپلو پیټوسره نور ډیر پیټی هم . او دقیامت په ورځ به په یقیني ډول له هغونه د دغو درواغو پوښتنه کیږي چې هغوی یې جوړوي.

وَ لَیَحْمِلُنَّ اَثْقَالَہُمْ وَ اَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِہِمْ ۫ وَ لَیُسْـَٔلُنَّ یَوْمَ الْقِیٰمَۃِ عَمَّا کَانُوْا یَفْتَرُوْنَ (۱۳)

مونږ نوح دهغه قوم ته ولیږه او هغه پنځوس کم یوزرکاله دهغو په منځ کښې واوسیده . په پای کښې هغه خلك طوفان ونیول پداسې حال کښې چې هغوی ظالمان وو .

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰی قَوْمِہٖ فَلَبِثَ فِیْہِمْ اَلْفَ سَنَۃٍ اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا ؕ فَاَخَذَہُمُ الطُّوْفَانُ وَ ہُمْ ظٰلِمُوْنَ (۱۴)

بیا نوح او دبیړۍ خلك مونږ وژغورل او هغه مو د نړیوالو لپاره د عبرت یوه نښانه وګرځوله .

فَاَنْجَیْنٰہُ وَ اَصْحٰبَ السَّفِیْنَۃِ وَ جَعَلْنٰہَاۤ اٰیَۃً لِّلْعٰلَمِيْنَ (۱۵)

او ابراهیم مو ولیږه کله چې هغه خپل قوم ته وویل دالله بندګي وکړئ او له هغه نه وویرېږئ ، داستاسې لپاره ډیره ښه ده که تاسې پوهیږئ .

وَ اِبْرٰہِیْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِہِ اعْبُدُوا اللّٰہَ وَ اتَّقُوْہُ ؕ ذٰلِکُمْ خَیْرٌ لَّکُمْ اِنْ کُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۱۶)

تاسې چې له الله نه پرته دچابندګي کوئ هغوی خو محضې بتان دي او تاسې یو دروغ جوړوئ . په حقیقت کښې چې له الله نه پرته تاسې د چابندګي کوئ هغوی تاسې ته دکومې روزی درکولو هم واك نلري . روزي له الله نه وغواړئ او د هماغه بندګي وکړئ او دهغه شکر ادا کړئ د هماغه لوري ته تاسې ورګرځیدونکي یئ .

اِنَّمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ اَوْثَانًا وَّ تَخْلُقُوْنَ اِفْکًا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ لَا یَمْلِکُوْنَ لَکُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوْا عِنْدَ اللّٰہِ الرِّزْقَ وَ اعْبُدُوْہُ وَ اشْکُرُوْا لَہٗ ؕ اِلَیْہِ تُرْجَعُوْنَ (۱۷)

اوکه تاسې د دروغو نسبت کوئ نوله تاسې مخکښې ډیر وقومونو د دروغو نسبتونه کړي دي ، او پرپیغمبرباندې له روښانه څرګند پیغام رسولو پرته بل مسئولیت نشته .

وَ اِنْ تُکَذِّبُوْا فَقَدْ کَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِکُمْ ؕ وَ مَا عَلَی الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (۱۸)

ایا دوی کله ندي لیدلي چې الله په څه ډول دهستوګنې پیل کوي ، بیا د هغو اعاده کوي ؟ په یقیني توګه دا ( اعاده خو ) دالله لپاره لازیاته اسانه ده .

اَوَ لَمْ یَرَوْا کَیْفَ یُبْدِئُ اللّٰہُ الْخَلْقَ ثُمَّ یُعِیْدُہٗ ؕ اِنَّ ذٰلِکَ عَلَی اللّٰہِ یَسِيْرٌ (۱۹)

دوی ته ووایه چې په ځمکه کښې وګرځئ او وګورئ چې الله د هستونې پیل په څه ډول کړیدی ، بیا به الله دوهم ځل هم ژوند درپه برخه کړي ، دایقیني ده چې الله په هرڅه قدرت لري .

قُلْ سِيْرُوْا فِی الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا کَیْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰہُ یُنْشِئُ النَّشْاَۃَ الْاٰخِرَۃَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ (۲۰)

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَ يَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَ اِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ (۲۱)

چاته چي وغواړي سزا به ورکړي او په چاباندې چې خوښه یې شي رحم وکړي . دهماغه لوري ته تاسي ورګرځیدونکي یاست .

وَ مَا اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِى الْاَرْضِ وَ لَا فِى السَّمَآءِ ۫ وَ مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّ لَا نَصِيْرٍ (۲۲)

تاسي نه په ځمکه کښي دالله بې وسي کوونکي ئي نه په آسمان کښي اوستاسي لپاره له الله نه پرته کوم ژغورونکی، سرپرست او مرستندوی نشته .

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ لِقَآئِهٖۤ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ وَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۲۳)

کوم خلك چې دالله له ایتونو او دهغه له ملاقات نه منکر شوي هغوی زما له رحمت نه ناهیلي شویدي او دهغو لپاره دردناکه سزاده .

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۲۴)

بيا دهغه ( ابراهيم ) د قوم ځواب له دې پرته نورڅه نه وء چې هغوی وويل : دی ووژنئ يايي وسوځئ په پای کښي الله تعالی هغه له اوره وژغوره په يقينی ډول پدې کښي نښانې دي دهغو خلکو لپاره چې ايمان راوړونکي دي .

وَ قَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّ يَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ۫ وَّ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَ مَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ (۲۵)

او (ابراهيم خپل قوم ته ) وويل : تاسي خو د دنيا په ژوند کښي له الله نه پرته بتان پخپل منځ کښي د ميني وسيله ګرځولي دي خودقيامت په ورځ به تاسي يوله بل نه انکار او يو پربل به لعنت وکړئ او اوربه ستاسي هستوګنځی وي او هيڅوك به ستاسي مرستندويان نه وي .

فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَ قَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۲۶)

په هغه وخت کښي لوط پر هغه ايمان راوړ. او ابراهيم وويل : زه د خپل رب لوري ته هجرت کوم هغه يقيناً برلاسی دی او حکمت والادی .

وَ وَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَ يَعْقُوْبَ وَ جَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَ الْكِتٰبَ وَ اٰتَيْنٰهُ اَجْرَهٗ فِى الدُّنْيَا ۚ وَ اِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ (۲۷)

او مونږ هغه ته اسحاق او يعقوب ( غوندې اولادونه ) پيرزوکړل او دهغه په ځوځات کښي موپيغمبري او کتاب کيښودل او هغه ته موپه دنيا کښي دهغه اجر ورکړ اوپه اخرت کښي به هغه په باوري ډول له صالحانو څخه وي .

وَ لُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ ۫ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ (۲۸)

او مونږ لوط وليږه کله چې هغه خپل قوم ته وويل : تاسي خو هغه فحش کارکوئ چې له تاسي نه مخکښي له نړيوالو څخه هيچاندی کړی

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ وَ تَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ ۙ۬ وَ تَاْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ؕ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ (۲۹)

ايا ستاسي داحال دی چې نارينه وءته ورځئ اولارې وهئ او پخپلو غونډو کښي بدې چارې کوئ ؟ نو دهغه له قوم سره بل هيڅ ځواب نه وء پرته له دې چې هغوی وويل راوله مونږ ته دالله عذاب که ته ريښتينی يې ؟

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِيْنَ (۳۰)

لوط وويل : ای زما ربه ! د دغو مفسدانو په مقابله کښي زما ملاتړ وکړه.

وَ لَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَاۤ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى ۙ قَالُوْۤا اِنَّا مُهْلِكُوْۤا اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ ۚ اِنَّ اَهْلَهَا كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ (۳۱)

او کله چې زمونږ استازي ابراهيم ته له زيري سره ورغلل نو هغوی هغه ته وويل : مونږ د دغه کلي د خلکو هلاکوونکي يو ، د ده خلك ډير ظالمان شويدي .

قَالَ اِنَّ فِيْهَا لُوْطًا ؕ قَالُوْا نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَنْ فِيْهَا ۫ لَنُنَجِّيَنَّهٗ وَ اَهْلَهٗۤ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۫ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ (۳۲)

ابراهيم وويل : هلته خو لوط موجود دی . هغوی وويل : مونږ ښه پوهيږو چې هلته څوك څوك موجود دي مونږ به هغه او دهغه له ميرمنې پرته دهغه ټوله کورنی وژغورو . دهغه ميرمن له بيرته پاتې کيدونکو څخه وه .

| | |
|---|---|
| وَ لَمَّاۤ اَنْ جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوْطًا سِیْٓءَ بِہِمْ وَ ضَاقَ بِہِمْ ذَرْعًا وَّ قَالُوْا لَا تَخَفْ وَ لَا تَحْزَنْ ۟ اِنَّا مُنَجُّوْکَ وَ اَہْلَکَ اِلَّا امْرَاَتَکَ کَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِیْنَ (۳۳) | بیا کله چې زمونږ استاځي لوط ته ورغلل نو دهغو په راتګ باندې هغه سخت خپه او زړه تنګی شو . هغو وویل (( مه ویرېږه او مه خپګان ګوه ، مونږ به تا اوستا کورنی وژغورو ، پرته ستاله میرمنې څخه چې له بیرته پاتې کیدونکو څخه ده . |
| اِنَّا مُنْزِلُوْنَ عَلٰۤی اَہْلِ ہٰذِہِ الْقَرْیَۃِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا کَانُوْا یَفْسُقُوْنَ (۳۴) | مونږ د دغه کلی پرخلکو له اسمانه دعذاب نازلوونکي یو دهغه فسق له امله چې دوی یې کوي . |
| وَ لَقَدْ تَّرَکْنَا مِنْہَاۤ اٰیَۃًۢ بَیِّنَۃً لِّقَوْمٍ یَّعْقِلُوْنَ (۳۵) | او مونږ دهغه کلي یوه څرګنده نښانه پرېښې ده دهغو کسانو لپاره چې له عقل څخه کار اخلي . |
| وَ اِلٰی مَدْیَنَ اَخَاہُمْ شُعَیْبًا ۙ فَقَالَ یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰہَ وَ ارْجُوا الْیَوْمَ الْاٰخِرَ وَ لَا تَعْثَوْا فِی الْاَرْضِ مُفْسِدِیْنَ (۳۶) | او مدین ته مونږ دهغو وروړشعیب ولیږه . هغه وویل : ای زماقومه ! دالله بندګي وکړئ او دوروستی ورځې ، داخرت د سعادت هیله منداوسئ . اوپه ځمکه کښې فساد کوونکي تیری کوونکي مه ګرځئ . |
| فَکَذَّبُوْہُ فَاَخَذَتْہُمُ الرَّجْفَۃُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دَارِہِمْ جٰثِمِیْنَ (۳۷) | خو هغوی هغه دروا‌غجن وګاڼه . په پای کښې یوې سختې زلزلې هغوی ونیول او سهار پخپلو کورونو کښې مړه پراته پاتې شول . |
| وَ عَادًا وَّ ثَمُوْدَاۡ وَ قَدْ تَّبَیَّنَ لَکُمْ مِّنْ مَّسٰکِنِہِمْ ۟ وَ زَیَّنَ لَہُمُ الشَّیْطٰنُ اَعْمَالَہُمْ فَصَدَّہُمْ عَنِ السَّبِیْلِ وَ کَانُوْا مُسْتَبْصِرِیْنَ (۳۸) | او مونږ عادیان او ثمودیان هلاك کړل ، تاسې هغه ځایونه وینئ چې هلته هغوی اوسیدل . دهغو کړه وړه شیطان دهغو لپاره ښایسته کړل او هغوی یې له سمې لارې نه واړول پداسې حال کښې چې هغوی پوهه او ادراك درلوده . |
| وَ قَارُوْنَ وَ فِرْعَوْنَ وَ ہَامٰنَ ۟ وَ لَقَدْ جَآءَہُمْ مُّوْسٰی بِالْبَیِّنٰتِ فَاسْتَکْبَرُوْا فِی الْاَرْضِ وَ مَا کَانُوْا سٰبِقِیْنَ (۳۹) | او مونږ قارون ، فرعون او هامان هلاك کړل . موسی هغوته له څرګندو معجزوسره ورغی خوهغوی په ځمکه کښې دخپلې لویۍ ګومان وکړ پداسې حال کښې چې د مسابقې ګټونکي نه وو . |
| فَکُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِہٖ ۚ فَمِنْہُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَیْہِ حَاصِبًا ۚ وَ مِنْہُمْ مَّنْ اَخَذَتْہُ الصَّیْحَۃُ ۚ وَ مِنْہُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِہِ الْاَرْضَ ۚ وَ مِنْہُمْ مَّنْ اَغْرَقْنَا ۚ وَ مَا کَانَ اللّٰہُ لِیَظْلِمَہُمْ وَ لٰکِنْ کَانُوْۤا اَنْفُسَہُمْ یَظْلِمُوْنَ (۴۰) | په پای کښې مونږ هریو دهغه په ګناه سره ونیوه ، بیا له هغونه په چاباندې مونږ کاڼي اوروونکی باد ولیږه ، او څوك یوې قوي چاودنې ونیول اوڅوك موپه ځمکه کښې ننویستل اوڅوك موغرق کړل.الله پر هغوی باندې ظلم کوونکی نه وء،مګرهغوی خپله پرخپل ځان ظلم کاوه. |
| مَثَلُ الَّذِیْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ اَوْلِیَآءَ کَمَثَلِ الْعَنْکَبُوْتِ ۚۖ اِتَّخَذَتْ بَیْتًا ؕ وَ اِنَّ اَوْہَنَ الْبُیُوْتِ لَبَیْتُ الْعَنْکَبُوْتِ ۘ لَوْ کَانُوْا یَعْلَمُوْنَ (۴۱) | کومو کسانو چې له الله نه پرته نور سرپرستان نیولي دي دهغو مثال د غنې غوندې دی چې خپل ځان ته یوکورجوړوي اوله ټولو کورونو څخه ډیر کمزوری کور دغڼو کوروي . کاشکې دغو خلکو علم درلودلای . |
| اِنَّ اللّٰہَ یَعْلَمُ مَا یَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِہٖ مِنْ شَیْءٍ ؕ وَ ہُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ (۴۲) | دوی چې له الله نه پرته هر شی بولي ، الله ته هغه ښه معلوم دي او هماغه برلاسی او دحکمت څښتن دی . |
| وَ تِلْکَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُہَا لِلنَّاسِ ۚ وَ مَا یَعْقِلُہَاۤ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ (۴۳) | دغه مثالونه د خلکو دپوهونې لپاره راوړو ، خوپدې باندې هماغه کسان پوهیږي چې دعلم خاوندان دي ، |
| خَلَقَ اللّٰہُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیَۃً لِّلْمُؤْمِنِیْنَ (۴۴) | الله اسمانونه او ځمکه په حقه پیداکړي دي . په حقیقت کښې پدې کښې یوه نښانه ده دموءمنانو لپاره . |

ای پیغمبره : ) هغه کتاب ولوله چې تاته دوحی په واسطه درلیږل ) شویدی او لمونځ قایم کړه په باوري ډول لمونځ له فحشاء او ناوړو الله .چاروڅخه منع کوي او دالله یادله دي نه هم ډېر لوی شی دی . پوهیږي په هغه څه چې تاسي یې کوئ

أُتْلُ مَا أُوْحِيَ اِلَيْکَ مِنَ الْکِتٰبِ وَ اَقِمِ الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْکَرِ ؕ وَ لَذِکْرُ اللّٰهِ اَکْبَرُ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ (۴۵)

او له اهل کتابوسره بحث مکوئ مګر په غوره ډول پرته له هغو خلکو چې له هغو څخه ظالمان وي او هغوته ووایئ چې مونږ ایمان راوړیدی په هغه کتاب باندې هم چې مونږ ته لیږل شویدی او په هغه کتاب باندې هم چې تاسي ته لیږل شوی وء . زمونږ خدای او ستاسي خدای ایکی یودی او مونږ د هماغه مسلمانان ( فرمان منونکي ) یو .

وَ لَا تُجَادِلُوْا اَهْلَ الْکِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ٭ۖ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَ قُوْلُوْا اٰمَنَّا بِالَّذِيْ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَ اُنْزِلَ اِلَيْکُمْ وَ اِلٰـهُنَا وَ اِلٰـهُکُمْ وَاحِدٌ وَّ نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ (۴۶)

ای پیغمبره !) مونږ په همدې ډول تاته کتاب نازل کړیدي له دې ) کبله هغه خلك چې مونږ هغوته مخکښې کتاب ورکړی وء اوس هغوی په ده باندې ایمان راوړي ، او له دغو خلکو ( مشرکانو ) نه هم ځیني پده باندې ایمان راوړي او زمونږ له ایتونونه یوازې . کافران منکریږي

وَ کَذٰلِکَ اَنْزَلْنَا اِلَيْکَ الْکِتٰبَ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْکِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۚ وَ مِنْ هٰۤؤُلَآءِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ ؕ وَ مَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا الْکٰفِرُوْنَ (۴۷)

اې پیغمبره ! ) تاله دې نه مخکښې کوم کتاب نه لوسته او نه دې ) پخپل ښي لاس سره لیکه ، که داسي وای نو باطل پرستان به په شك .کښې لویدلی وو

وَ مَا کُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ کِتٰبٍ وَّ لَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِکَ اِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ (۴۸)

په اصل کښې داروښانه نښانې دي دهغوخلکو په زړونو کښې چې هغوته علم ورکړشویدی. او زمونږ له ایتونو څخه نه منکریږي مګر هغه کسان چې ظالمان دي.

بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ ؕ وَ مَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ (۴۹)

دغه خلك وايي چې ولې پدغه سړي باندې د ده درب لخوا نښانې نازلې نشوې ؟ووایه : نښانې خوله الله سره دي او زه یوازې خبر داروونکی یم په ډاګه څرګنده .

وَ قَالُوْا لَوْ لَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ اِنَّمَاۤ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ (۵۰)

او ایا د دوی لپاره دغه ( نښانه ) کافي نده چې مونږ پرتا باندې کتاب نازل کړ چې دوی ته په لوستلو اورول کیږي ؟ په حقیقت کښې پدې کښې دهغو خلکو لپاره رحمت او نصیحت دی چې ایمان راوړي .

اَوَ لَمْ يَکْفِهِمْ اَنَّاۤ اَنْزَلْنَا عَلَيْکَ الْکِتٰبَ يُتْلٰی عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِکَ لَرَحْمَةً وَّ ذِکْرٰی لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۵۱)

ای پیغمبره !) ووایه چې زما او ستاسي په منځ کښې الله د شاهدی ) له پاره کافي دی . هغه په اسمانونو او ځمکه کښې په هرڅه باندې پوهیږي. کوم کسان چې باطل مني اوپه الله باندې کافر کیږي . همغوی په زیان کښې لویدونکي دي

قُلْ کَفٰی بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَکُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَ کَفَرُوْا بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِکَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۵۲)

دغه خلك له تاڅخه د عذاب ژر راوستلو غوښتنه کوي . که یوه نیټه ټاکلې شوې نه وای ، نو پردوی به عذاب راغلی وای . او یقیني ده (پخپل وخت به ) په ناڅاپي توګه هغه راشي . پداسي حال کښې چې دوی به خبر هم نه وي

وَ يَسْتَعْجِلُوْنَکَ بِالْعَذَابِ ؕ وَ لَوْ لَاۤ اَجَلٌ مُّسَمًّی لَّجَآءَهُمُ الْعَذَابُ ؕ وَ لَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّ هُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ (۵۳)

دوی له تا څخه د عذاب ژر راوستلو غوښتنه کوي پداسي حال کښې چې دوزخ ددغو کافرانو محاصره کوونکی دی

يَسْتَعْجِلُوْنَکَ بِالْعَذَابِ ؕ وَ اِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌۢ بِالْکٰفِرِيْنَ (۵۴)

او دوی ته به معلومه شي ) په هغه ورځ چې عذاب دوی له پاسه ) هم ونغاړي اوله پښولاندې څخه هم او وايي چې اوس دهغو . عملونو خوند څکئ چې تاسي کول

يَوْمَ يَغْشٰهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ وَ يَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۵۵)

ای زما موءمنو بندگانو ! زما ځمکه پراخه ده ، نو تاسي همدا زما بندگی وکړئ

يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ (۵۶)

هر ساکښ د مرگ د خوند څکونکی دی بیا به تاسي ټول همدا زما لوري ته راوگرځول شئ .

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ (۵۷)

کومو کسانو چي ایمان راوړی دی او ښه عملونه يې کړيدي هغوی به مونږ د جنت په لوړو دنگو ماڼیو کښي استوگن کړو چي ترهغو لاندي به ويالي بهيږي هلته به هغوی د تل لپاره اوسيږي ، څه غوره اجر دی د عمل کوونکو لپاره .

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ (۵۸)

دهغو کسانو لپاره چي هغوی صبر کړیدی او په خپل رب باندي توکل کوي .

الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَ عَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ (۵۹)

څومره ژوي دي چي خپله روزي په شابار کړي نه گرځي ، الله هغوته روزي ورکوي اوستاسي روزي رسان هم همغه دی ، هغه هرڅه اوري او پوهيږي .

وَ كَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا ۖ اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَ اِيَّاكُمْ ۖ وَ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (۶۰)

که ته له دغو خلکو نه پوښتنه وکړي چي اسمانونه او ځمکه چاپیداکړي دي او لمراوسپوږمئ چاښکیل کړي دي نو ارو مرو به ووايي چي الله بیا نو دوی له کوم لوري غولول کيږي ؟

وَ لَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ سَخَّرَ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۚ فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ (۶۱)

هماغه الله دی چي له خپلو بندگانو څخه چي چاته يي خوښه شي روزي يي پراخوي او چاته يي چي خوښه شي تنگوي يي په باوري توگه الله په هرڅه پوهيدونکی دی .

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَ يَقْدِرُ لَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۶۲)

اوکه ته له دوی نه پوښتنه وکړي چي چاله اسمانه اوبه واورولي اودهغو په وسيله يي مړه ځمکه ژوندۍ کړه ، نو دوی به ارومرو ووايي ، الله، ووايه: الحمدلله . خوزياتره خلك نه پوهيږي .

وَ لَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ (۶۳)

او دغه د دنيا ژوند هيڅ ندی مگر يوه لوبه اوزړه خوښونه . داصلی ژوندانه کورخو داخرت کور دی . کاشکي دغه خلك پوهيدلای .

وَ مَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَاۤ اِلَّا لَهْوٌ وَّ لَعِبٌ ؕ وَ اِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ (۶۴)

کله چي دغه خلك په بيړی کښي سپريږي نو دالله نه په خالص اعتقاد سره دعا غواړي ، بیا کله چي الله دوی وژغوري وچي ته يي راولي نو ناڅاپه دوی بیا په شرك کولو لاس پوري کړي

فَاِذَا رَكِبُوْا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ (۶۵)

ترڅوچي دوی زمونږ د ورکړي نعمت (نجات) نا شکري وکړي او ( د دنيا ژوندانه ) خوندونه واخلي . ښه ده ډېر ژربه دوی وپوهيږي.

لِيَكْفُرُوْا بِمَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ ۚۛ وَ لِيَتَمَتَّعُوْا ۫ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ (۶۶)

ايا دوی نه ويني چي مونږ يوله امن څخه ډك حرم پيدا کړيدی پداسي حال کښي چي د دوی خواوشا خلك تښتول کيږي ؟ ايا بيا هم داخلك باطل مني او دالله د نعمت ناشکري کوي .

اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا وَّ يُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَ بِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ (۶۷)

له هغه چانه به غټ ظالم څوك وي چي پرالله باندي درواغ وتړي يا حق ته د درواغو نسبت وکړي چي کله هغه ته راوړل کيږی . ايا د دغسي کافرانو استوگنځی دوزخ نه دی ؟

وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ (۶۸)

کوم کسان چي زمونږ په خاطر مجاهده وکړي هغوته به مونږ خپلي لياري وروښيو اوپه باوري ډول الله دنيکو کارانو ملگری دی .

وَ الَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ (۶۹)

داالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى

بِسْمِ ٱللّٰهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ الرَّحِيْمِ

ا – ل – م

الٓمٓ ۚ(١)

روميان مغلوب شوي دي .

غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۙ(٢)

په نژدې هېوداكې اوله خپل دغه مغلوبوالي نه وروسته به هغوې برلاسي شي.

فِيْۤ اَدْنَى الْاَرْضِ وَ بُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِہِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۙ(٣)

په څوكلونوكې دننه، يوازې داالله واك دى مخكښې هم او په وروسته كښې هم . او هغه به هغه ورځ وي چې مسلمانان خوشحالى وكړي .

فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۬ؕ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَ مِنْۢ بَعْدُ ؕ وَ يَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۙ(۴)

داالله په ببنل شوي بري باندې الله مرسته په برخه كوي چاته ئې چې خوښه شي او هغه برلاسى او رحيم دى

بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ بُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۙ(۵)

دا وعده الله كړې ده . الله هيڅكله له خپلې وعدې څخه تخلف نكوي خو زياتره خلك نه پوهيږي .

وَعْدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ (۶)

خلك يوازې د دنيا دژوند په ظاهري اړخ باندې پوهيږي اوله اخرت نه پخپله هماغوى غافل دي .

يَعْلَمُوْنَ ظَاہِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚۖ وَ بُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ بُمْ غٰفِلُوْنَ (٧)

ايا هغوى كله پخپل ځان كښې غور او فكر ندى كړي ؟ الله اسمانونه او ځمكه او هغه ټول شيان چې دهغو په مينځ كښې دي په حقه او ديوې ټاكلې مودې لپاره پيدا كړي دي . خو زياتره خلك د خپل رب له ملاقات نه منكر دي .

اَوَ لَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْۤ اَنْفُسِہِمْ ۟ مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ مَا بَيْنَہُمَاۤ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَ اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّہِمْ لَكٰفِرُوْنَ (٨)

او ايا دغه خلك كله په ځمكه كښې ګرځېدلي راګرځېدلي ندي چې دوى ته دهغو خلكو عاقبت په نظر ورغلى واى چې له دوى نه مخكښې تير شويدي ؟ هغوى له دوى نه زيات قوي وو هغوى ځمكه ښه سپړلې وه او هغه يې دومره ودانه كړې وه چې دوى هغومره نده ودانه كړې . هغوته د هغو پيغمبران له څرګندونښانو سره راغلل . نو الله خو پر هغو باندې ظلم كوونكى نه وء خو هغوى پخپله پرځان ظلم كاوه .

اَوَ لَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَۃُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِہِمْ ؕ كَانُوْۤا اَشَدَّ مِنْہُمْ قُوَّةً وَّ اَثَارُوا الْاَرْضَ وَ عَمَرُوْبَاۤ اَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْبَا وَ جَآءَتْہُمْ رُسُلُہُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ؕ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَہُمْ وَ لٰكِنْ كَانُوْۤا اَنْفُسَہُمْ يَظْلِمُوْنَ ؕ(٩)

په پاى كښې دهغو خلكو عاقبت چې بدئ يې كړې وې ډېر بدشو ، ځكه چې هغو داالله ايتونوته د درواغو نسبت كړى وء اوپه هغو پورې يې ملنډې وهلې .

ثُمَّ كَانَ عَاقِبَۃَ الَّذِيْنَ اَسَآءُوا السُّوْۤاٰى اَنْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ كَانُوْا بِہَا يَسْتَہْزِءُوْنَ (١٠)

همدا الله دهستونې پيل كوي بيا به هماغه دهغې اعاده كوي بيابه دهماغه لوري ته تاسې ورستانه شئ .

اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ثُمَّ اِلَيْہِ تُرْجَعُوْنَ (١١)

اوكله چې هغه ساعت برپاشي په هغه ورځ به مجرمان هك پك ناهيلي پاتې شي .

وَ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَۃُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ (١٢)

د هغو په انګيرل شويو شريكانو كښې به هيڅوك دهغو سپارښګرنه وي او هغوى به له خپلو شريكانو څخه منكر شي .

وَ لَمْ يَكُنْ لَّہُمْ مِّنْ شُرَكَآئِہِمْ شُفَعٰٓؤُا وَ كَانُوْا بِشُرَكَآئِہِمْ كٰفِرِيْنَ (١٣)

په كومه ورځ چې هغه ساعت برپاوي په هغه ورځ به ( ټول انسانان ) په بيلا بيلو ډلو وويشل شي .

وَ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَۃُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ (١۴)

كومو كسانو چې ايمان راوړيدى او ښه عملونه يې كړيدي هغوى به په يوباغ كښې خوښ خوشحاله وساتل شي .

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَہُمْ فِيْ رَوْضَۃٍ يُّحْبَرُوْنَ (١۵)

او كوم كسان چې كافر شويدي او زمونږ آيتونه او داخرت ملاقات يې درواغ ګڼلى دى هغوى به په عذاب كښې حاضر كړاى شي .

وَ اَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ لِقَآئِ الْاٰخِرَةِ فَاُولٰٓئِكَ فِى الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ (١۶)

فَسُبۡحٰنَ اللّٰہِ حِیۡنَ تُمۡسُوۡنَ وَ حِیۡنَ تُصۡبِحُوۡنَ (۱۷)

نوداللہ تسبیح وکړئ کله چې تاسې ماښام کوئ او کله چې سهار کوئ.

وَ لَہُ الۡحَمۡدُ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ عَشِیًّا وَّ حِیۡنَ تُظۡہِرُوۡنَ (۱۸)

په اسمانونو او ځمکه کښې دهمغه لپاره ثنا ستاينه ده . او ( دهغه تسبيح وکړئ ) مازيګر او کله چې پرتاسې د ماسپښين وخت راځي .

یُخۡرِجُ الۡحَیَّ مِنَ الۡمَیِّتِ وَ یُخۡرِجُ الۡمَیِّتَ مِنَ الۡحَیِّ وَ یُحۡیِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِہَا ؕ وَ کَذٰلِکَ تُخۡرَجُوۡنَ (۱۹)

هغه له مړي نه ژوندی راباسي اوله ژوندي نه مړی راباسي او ځمکي ته دهغي له مرګه وروسته ژوند ښښي . په همدې توګه به تاسې هم ( د مرګ له حالت نه ) راوويستل شئ.

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنۡ خَلَقَکُمۡ مِّنۡ تُرَابٍ ثُمَّ اِذَاۤ اَنۡتُمۡ بَشَرٌ تَنۡتَشِرُوۡنَ (۲۰)

دهغه له نښانونه داده چې هغه تاسې له خاورې څخه پيداکړئ نو تاسې بشر ياست چې په ناڅاپي ډول ( په ځمکه کښې ) خورېږئ .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنۡ خَلَقَ لَکُمۡ مِّنۡ اَنۡفُسِکُمۡ اَزۡوَاجًا لِّتَسۡکُنُوۡۤا اِلَیۡہَا وَ جَعَلَ بَیۡنَکُمۡ مَّوَدَّۃً وَّ رَحۡمَۃً ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّتَفَکَّرُوۡنَ (۲۱)

او دهغه له نښانو څخه ( بله ) داده چې ستاسې لپاره همدا ستاسې له جنس نه يې ميرمني پيدا کړې ترڅوچې تاسې له هغو سره ارام ترلاسه کړئ او ستاسې ( ښځي او خاوند ) په مينځ کښې يې مينه او خواخوږي پيداکړه . په باوری ډول پدې کښې دهغو خلکو لپاره ډيرې نښاني دي چې غور او فکر کوي .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖ خَلۡقُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ اخۡتِلَافُ اَلۡسِنَتِکُمۡ وَ اَلۡوَانِکُمۡ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّلۡعٰلِمِیۡنَ (۲۲)

او دهغه له نښانو څخه داسمانونو او ځمکي پيدايښت او ستاسي دژبو او ستاسي درنګونو بيلابيلوالی دی . په باوري ډول پدې کښې دپوهانو لپاره ډيرې نښاني دي .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖ مَنَامُکُمۡ بِالَّیۡلِ وَ النَّہَارِ وَ ابۡتِغَآؤُکُمۡ مِّنۡ فَضۡلِہٖ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّسۡمَعُوۡنَ (۲۳)

او دهغه له نښانوڅخه په شپه کې ستاسي ويده کيدل او په ورځ کې دهغه د فضل (روزی) لټول دي .په باوري توګه پدې کښې دهغو خلکو لپاره ډيرې نښاني دی چې په ( غور سره ) اوري .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖ یُرِیۡکُمُ الۡبَرۡقَ خَوۡفًا وَّ طَمَعًا وَّ یُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَیُحۡیٖ بِہِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِہَا ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّعۡقِلُوۡنَ (۲۴)

او دهغه له نښانو څخه داده چې هغه تاسي ته دبريښنا ځلادرښيي له ويرې سره هم اوله تمي سره هم . اوله اسمانه اوبه اوروي ، بيا دهغو په وسيله ځمکي ته دهغي له مرګه وروسته ژوند ښښي په باوري ډول پدې کښې دهغوخلکو لپاره ډيرې نښاني دي چې له پوهي نه کار اخلي .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنۡ تَقُوۡمَ السَّمَآءُ وَ الۡاَرۡضُ بِاَمۡرِہٖ ؕ ثُمَّ اِذَا دَعَاکُمۡ دَعۡوَۃً ٭ۖ مِّنَ الۡاَرۡضِ ٭ۖ اِذَاۤ اَنۡتُمۡ تَخۡرُجُوۡنَ (۲۵)

او دهغه له نښانو څخه داده چې اسمان او ځمکه دهغه په حکم ټينګ دي بيا څنګه چې هغه تاسې ته له ځمکي نه بلنه درکړي ، فقط په همدې يوه ناره به تاسي په ناڅاپي ډول (له قبرونو) راووځئ .

وَ لَہٗ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ کُلٌّ لَّہٗ قٰنِتُوۡنَ (۲۶)

په اسمانونو او ځمکه کښې چې هرڅوك دي دهغه بندګان دي ټول دهمغه د فرمان تابع دي .

وَ ہُوَ الَّذِیۡ یَبۡدَؤُا الۡخَلۡقَ ثُمَّ یُعِیۡدُہٗ وَ ہُوَ اَہۡوَنُ عَلَیۡہِ ؕ وَ لَہُ الۡمَثَلُ الۡاَعۡلٰی فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۲۷)

هماغه ذات چې دهستوني پيل کوي ، بيا به هماغه د هغي اعاده وکړي او دادهغه لپاره لازياته اسانه ده . په اسمانونو او ځمکه کښې دهغه صفت ترټولو لوړ دی او هغه برلاسی او د حکمت څښتن دی .

هغه تاسي ته پخپله همداستاسي له جنس نه يو مثال راوړي ، ايا ستاسي له هغو غلامانو څخه چي ستاسي په ملکيت کښي دي ځيني غلامان داسي هم شته چي زمونږ په درکړای شوي مال او شتمنۍ کښي له تاسي سره مساوي برخه وال وي او تاسي له هغونه هماغسي وويريږئ لکه څنګه چي پخپلو مينځو کښي له خپلو سيالانونه ويريږئ ؟ پدې ډول مونږ ايتونه څرګند وړاندي کوو ( دهغو خلکو لپاره چي له پوهي نه کار اخلي.

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ۖ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ ۖ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ (٢٨)

خو دغه ظالمان بې پوهي او ادراکه پخپلو انګيرنو پسي خوځيدلي دي . اوس څوك هغه چاته لاره ښودلی شي چي الله هغه ګمراه کړی وي . ددغسي خلکو خو هيڅ مرستندوی نشي پيداکيدلی .

بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ۖ وَ مَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ (٢٩)

نو (( ای پيغمبره ص (خپلو پيروانو سره دې) په يولوری کيدوسره خپل مخ د دغه دين خواته برقرار وساته ، پرهغه فطرت محکم شه چې پرهغه باندې الله تعالی انسانان پيدا کړي دي . دالله جوړکړی فطري دين نشي بدليدای ، همدغه بيخی سم صحيح دين دی ، خو زياتره خلك نه پوهيږي .

فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۖ فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۖ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۖ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ (٣٠)

ټينګ اوسئ پدې خبره باندې ) دالله لوري ته رجوع کوونکي ، او ) له هغه نه وويريږئ ، او لمونځ قائم کړئ ، اومه کيږئ له مشرکانو څخه .

مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَ اتَّقُوْهُ وَ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ لَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (٣١)

چي هغوی خپل خپل دين بيل کړيدی اوپه ډلو ويشل شويدي ، له هرې يوې ډلي سره چي څه دي په هماغي کښي هغه خوشحاله ده .

مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَ كَانُوْا شِيَعًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ (٣٢)

د خلکو حال دادی چي کله هغوی ته تکليف رسيږي نو دخپل رب لوري ته په رجوع کولو سره هغه بولي . بيا کله چي الله د خپل رحمت يوڅه خوند په هغو باندې وڅکي نو په ناڅاپي ډول له هغونه ځيني خلك په شرك کولو لاس پوري کوي .

وَ اِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَآ اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ (٣٣)

ترڅو چي زمونږ دکړي احسان ناشکري وکړي ښه نو مزې چړچې وکړئ ، ډير ژربه درمعلومه شي .

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۖ فَتَمَتَّعُوْا ۗ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ (٣٤)

ايا مونږ کوم داسي سند او دليل پردوی باندې نازل کړی دی چي دهغه شرك په ريښتينولی باندې شاهدي وائي چي دوی يې کوي ؟

اَمْ اَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ يُشْرِكُوْنَ (٣٥)

کله چي مونږ په خلکو باندې درحمت خوند څکو نو هغوی وربانديې وياړيږي او کله چي دهغوی له خپلو کړو وړونه پرهغوباندې کومه بلاراځي نو ناڅاپه هغوی ناهيلي کيږي .

وَ اِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوْا بِهَا ۖ وَ اِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ (٣٦)

ايا دغو خلکو ندي ليدلي چي هماغه الله روزي پراخوي چاته چي يې خوښه شي او تنګوي يې ( چاته يې چي خوښه شي ) . په باوري ډول پدې کښي دهغو خلکو لپاره ډيری نښاني دي چي ايمان راوړي .

اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ ۖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (٣٧)

نو ( ای موءمنه ) خپلوان ته دهغه حق ورکړه او مسکين او مسافرته (دهغه حق ) . دا کړنلاره دهغو خلکو لپاره ډيره غوره ده چي دالله خوښي غواړي ، او همغوی بری موندونکي دی .

فَاٰتِ ذَاالْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَ الْمِسْكِيْنَ وَ ابْنَ السَّبِيْلِ ۖ ذٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ ۫ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (٣٨)

وَ مَاۤ اٰتَیۡتُمۡ مِّنۡ رِّبًا لِّیَرۡبُوَاۡ فِیۡۤ اَمۡوَالِ النَّاسِ فَلَا یَرۡبُوۡا عِنۡدَ اللّٰہِ ۚ وَ مَاۤ اٰتَیۡتُمۡ مِّنۡ زَکٰوۃٍ تُرِیۡدُوۡنَ وَجۡہَ اللّٰہِ فَاُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡمُضۡعِفُوۡنَ (۳۹)

کوم سود چې تاسې ورکوئ ترڅو چې د خلکو په مالونو کښې په ګډېدلو سره هغه زيات شي ، دالله په نزد هغه نه زياتېږي ، او کوم زکات چې تاسې دالله د خوښې ترلاسه کولوپه اراده ورکوئ ، دهماغه ورکوونکي په حقيقت کښې خپل مال زياتوي

اَللّٰہُ الَّذِیۡ خَلَقَکُمۡ ثُمَّ رَزَقَکُمۡ ثُمَّ یُمِیۡتُکُمۡ ثُمَّ یُحۡیِیۡکُمۡ ؕ ہَلۡ مِنۡ شُرَکَآئِکُمۡ مَّنۡ یَّفۡعَلُ مِنۡ ذٰلِکُمۡ مِّنۡ شَیۡءٍ ؕ سُبۡحٰنَہٗ وَ تَعٰلٰی عَمَّا یُشۡرِکُوۡنَ (۴۰)

همدا الله دی چې تاسې يې پيدا کړئ ، بيا يې تاسې ته روزي درکړه بيا به هغه تاسې ته مرګ درکړي بيابه هغه تاسې ژوندي کړي . ايا ستاسې له انګيزرل شويو شريکانو څخه کوم يوداسې شته چې له دغو چارو څخه کومه يوه هم وکړي ؟ پاك دى هغه اوډېر لوړ او چت دی له هغه شرك نه چې دغه خلك يې کوي .

ظَہَرَ الۡفَسَادُ فِی الۡبَرِّ وَ الۡبَحۡرِ بِمَا کَسَبَتۡ اَیۡدِی النَّاسِ لِیُذِیۡقَہُمۡ بَعۡضَ الَّذِیۡ عَمِلُوۡا لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۴۱)

په وچه او لمده کښې فساد برپا شويدی د خلکو د خپلو لاسونو په عملونو سره ترڅو چې په هغو باندې دهغو د ځينو عملونو خوند وڅکي ، ښايي چې هغوی راوګرځي .

قُلۡ سِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ فَانۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلُ ؕ کَانَ اَکۡثَرُہُمۡ مُّشۡرِکِیۡنَ (۴۲)

ای پيغمبره ! ) دوی ته ووايه چې په ځمکه کښې وګرځئ وګورئ ) چې د مخکښې تيرو شويو قومونو عاقبت څه شويدی ، له هغونه زياتره مشرکان وو ،

فَاَقِمۡ وَجۡہَکَ لِلدِّیۡنِ الۡقَیِّمِ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ یَّاۡتِیَ یَوۡمٌ لَّا مَرَدَّ لَہٗ مِنَ اللّٰہِ یَوۡمَئِذٍ یَّصَّدَّعُوۡنَ (۴۳)

نو ( ای پيغمبره ! ) خپل مخ په کلکه د دغه رېښتوني دين لوري ته بر قراره کړه مخکښې له دې چې هغه ورځ راشي چې دهغې د مخنيوی هيڅ صورت دالله لخوا نشته. په هغه ورځ به خلك تيت پرك يوله بله بيل شي .

مَنۡ کَفَرَ فَعَلَیۡہِ کُفۡرُہٗ ۚ وَ مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنۡفُسِہِمۡ یَمۡہَدُوۡنَ (۴۴)

څوك چې کافرشويدی د هغه د کفر وبال پرهمغه باندې دی او کومو خلکو چې نيك عمل کړيدی . هغوی د خپل ځان لپاره په (( جنت کې)) ځايونه برابروي.

لِیَجۡزِیَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنۡ فَضۡلِہٖ ؕ اِنَّہٗ لَا یُحِبُّ الۡکٰفِرِیۡنَ (۴۵)

ترڅوچې الله ايمان راوړونکو او نيك عمل کوونکو ته پخپل فضل سره مکافات ورکړي . داباوري ده چې الله کافران په هيڅ ډول نه خوښوي

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنۡ یُّرۡسِلَ الرِّیَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّ لِیُذِیۡقَکُمۡ مِّنۡ رَّحۡمَتِہٖ وَ لِتَجۡرِیَ الۡفُلۡکُ بِاَمۡرِہٖ وَ لِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِہٖ وَ لَعَلَّکُمۡ تَشۡکُرُوۡنَ (۴۶)

دهغه له نښانونه داده چې هغه زيری ورکوونکي بادونه ليږي او له خپل رحمت نه ستاسې د مستفيد ګرځولو لپاره او د دې غرض لپاره چې بيړی د هغه په حکم وچليږي او تاسې دهغه فضل ولټوئ او دهغه شکر ويستونکي شئ .

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِکَ رُسُلًا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ فَجَآءُوۡہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ فَانۡتَقَمۡنَا مِنَ الَّذِیۡنَ اَجۡرَمُوۡا ؕ وَ کَانَ حَقًّا عَلَیۡنَا نَصۡرُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۴۷)

او مونږ له تا څخه مخکښې پيغمبران دهغو قوم ته وليږل او هغوی له روښانه نښانو سره هغو ته راغلل بياچې چا جرم وکړ . له هغونه مونږ غچ واخيست او پرمونږ داحق وء چې مونږ له موءمنانوسره مرسته وکړو.

اَللّٰہُ الَّذِیۡ یُرۡسِلُ الرِّیٰحَ فَتُثِیۡرُ سَحَابًا فَیَبۡسُطُہٗ فِی السَّمَآءِ کَیۡفَ یَشَآءُ وَ یَجۡعَلُہٗ کِسَفًا فَتَرَی الۡوَدۡقَ یَخۡرُجُ مِنۡ خِلٰلِہٖ ۚ فَاِذَاۤ اَصَابَ بِہٖ مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖۤ اِذَا ہُمۡ یَسۡتَبۡشِرُوۡنَ (۴۸)

همدا الله دی چې بادونه ليږي او هغه وريځې راپورته کوي بيا هغه دغه وريځې په اسمان کښې خوروي څنګه يې چې خوښه شي او برغنډ برغنډ يې ويشي بياته وينې چې دباران څاڅکي له وريځې نه راوريږي دغه باران چې کله الله له خپلو بندګانو نه په چاباندې غواړي ويې اوروي نو هغوی په ناڅاپي ډول خوښې او خوشالي کوي

وَ اِنۡ کَانُوۡا مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ یُّنَزَّلَ عَلَیۡہِمۡ مِّنۡ قَبۡلِہٖ لَمُبۡلِسِیۡنَ (۴۹)

پداسې حال کښې چې هغوی د باران له نازليدونه مخکښې ناهيلي کيدل .

نووګوره دالله درحمت نښانې چې مړه ځمکه په څه ډول راژوندۍ کوي ، په یقیني توګه هغه دمړو ژوندي کوونکی دی او هغه په هرڅه باندې قادر دی .

فَانْظُرْ اِلٰی اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰی ۚ وَ هُوَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ (۵۰)

او که مونږ داسې بادولیږو چې دهغه په اثر هغوی خپل کښتونه مړاوي ژیړ ومومي نو هغوی بیا کفر غوره کوي .

وَ لَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ (۵۱)

ای پیغمبره ! ) ته مړي نشې اورولی نه هغو کڼوته خپل غږ ) . اورولی شې چې شا اړولي روان وي

فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰی وَ لَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ (۵۲)

نه ته ( د فکر ) ړانده له ګمراهۍ نه راویستلی شې نه هغوته سمه لاره ښودلی شې ته خویوازې هماغوته اورولی شې چې زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړي او منلو ته یې سرټیټوي .

وَ مَاۤ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْیِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ (۵۳)

الله پاك هغه ذات دی چې تاسې یې ( دکوچنی توب ) په کمزورۍ بڼه پیدا کړئ ، بیا له هغې کمزورۍ نه وروسته یې تاسې ته قوت دروبښه بیاله هغه قوت نه وروسته یې تاسې کمزورۍ او زوړوالي ته ورسولېء هغه چې هر څه غواړي پیدا کوي یې ، هغه په حقیقت پوهیدونکی ، په هرڅه باندې قدرت لرونکی دی .

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّ شَيْبَةً ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَ هُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ (۵۴)

او کله چې هغه ساعت (قیامت ) برپاوي نو مجرمان به دقسمونوپه خوړلوسره ووائي چې مونږ له پوره یوساعت نه زیات نه یوځنډیدلي په همدغه ډول هغوی د دنیا په ژوندانه کښې له حقه اړولي چلیدل .

وَ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ۬ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ؕ كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ (۵۵)

خو کوم کسان چې له علم او ایمان څخه مستفید ګرځول شوي دي هغوی به ووائي چې دخدای په لیکنه کښې خو تاسې د حشر تر ورځې پورې ( په مودومودو ) ځنډیدلي یئ ، اوس داهماغه د حشر ورځ ده خو تاسې نه پوهیدلئ .

وَ قَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَ الْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِیْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰی يَوْمِ الْبَعْثِ ۫ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَ لٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ (۵۶)

نو دابه هماغه ورځ وي چې په هغې کښې به ظالمانوته دهغو عذر وړاندې کول هیڅ ګټه ونه رسوي او نه به ورته له الله نه دبښنې غوښتلو لپاره وویل شي .

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَ لَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ (۵۷)

مونږ پدې قرآن کښې خلك راز راز مثالونو سره پوهولي دي ، ته که (هره) نښانه راوړې کوموخلکو چې له منلونه انکار کړیدی هغوی به همدا ووائي چې تاسې په باطل باندې یئ.

وَ لَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِیْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَ لَئِنْ جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ لَّيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُبْطِلُوْنَ (۵۸)

پدې توګه الله دهغو خلکو پرزړونو باندې ټاپه وهي چې بې علمه دي. ( له حق سره دښمني کوي )

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ (۵۹)

نو ( ای پیغمبره ! ) صبر وکړه ، په یقیني ټوګه دالله وعده ریښتیانې ده ، او هیڅکله دې هغه خلك تابې ثباته ونه مومي چې باور نکوي .

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ لَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ (۶۰)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اْ - ل – م.

الٓمّٓ ۚ (۱)

دا دحکمت در لودونکي کتاب ایتونه دي ،

تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ۙ (۲)

هدایت او رحمت دنیکو کارو لپاره

هُدًی وَّ رَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ۙ (۳)

هغه کسان چي لمونځ قايموي زکات ورکوي او پر اخرت باور لري،

اَلَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَ يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ ہُمْ بِالْاٰخِرَةِ ہُمْ يُوْقِنُوْنَ ؕ(۴)

همدغه خلك د خپل رب له لوري پرسمه لاره دي ، او همدوي برى ميندونكي دي .

اُولٰٓئِکَ عَلٰى ہُدًى مِّنْ رَّبِّہِمْ وَ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (۵)

اوله همدي انسانانونه داسي څوك هم شته چي بابيزه خبري پيري چي خلك د الله له لياري په بي علمی سره گمراه كړي او ددغي لاري په بلني پوري مسخري وكړي د دغسي خلكو لپاره سخت سپكوونكی عذاب دی .

وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِىْ لَہْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰہِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ٭ۖ وَّ يَتَّخِذَہَا ہُزُوًا ؕ اُولٰٓئِکَ لَہُمْ عَذَابٌ مُّہِيْنٌ (۶)

هغه ته چي كله زمونږ آيتونه اورول كيږي نو هغه په ډېر غرور سره په داسي شان مخ اړوي لكه چي هغه له سره اوريدلي نه دي ، گواكي چي د هغه غوږونه كانه دي . نو زيری وركړه هغه ته ديو درد ناك عذاب.

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْہِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْہَا كَاَنَّ فِىْٓ اُذُنَيْہِ وَقْرًا ۚ فَبَشِّرْہُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ (۷)

كوم خلك چي ايمان راوړي او ښه عملونه وكړي د هغو لپاره په نعمت پور معمورجنتونه دي .

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَہُمْ جَنّٰتُ النَّعِيْمِ ۙ(۸)

چي په هغوكښي به دتل لپاره او سيږي ، دا دالله پخه وعده ده او هغه برلاسى او دحكمت څښتن دى.

خٰلِدِيْنَ فِيْہَا ؕ وَعْدَ اللّٰہِ حَقًّا ؕ وَ ہُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۹)

هغه اسمانونه بي ستنوپيداكړل چي تاسي يي وينئ . هغه په ځمكه كښي غرونه ښخ كول ترڅو چي هغه په تاسي ونه گرځي . هغه په ځمكه كښي هر راز خځنده ژوي خواره كول اوله اسمانه مو اوبه واورولي بيا په ځمكه كښي مو راز راز غوره شيان زرغون كړل.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَہَا وَ اَلْقٰى فِى الْاَرْضِ رَوَاسِىَ اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَ بَثَّ فِيْہَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ؕ وَ اَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَنْۢبَتْنَا فِيْہَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ (۱۰)

داخودي دالله پيداكول ،اوس ماته راوښايئ ،له هغه پرته دغونورو څه پيدا كړيدي ؟_ اصلي خبره داده چي دغه ظالمان په څرگنده گمراهی كښي غور ځيدلي دي .

ہٰذَا خَلْقُ اللّٰہِ فَاَرُوْنِىْ مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِہٖ ؕ بَلِ الظّٰلِمُوْنَ فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (۱۱)

يقيناًمونږلقمان ته حكمت وركړی وْچي د الله شكر گذار اوسه . هر څوك چي شكر وباسي دهغه شكر دهغه د خپل ځان لپاره گټوردی . او څوك چي كافر شي نو په حقيقت كښي الله بي نيازه او خود پخپله ستايل شويدى.

وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ اَنِ اشْكُرْ لِلّٰہِ ؕ وَ مَنْ يَّشْكُرْ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِہٖ ۚ وَ مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰہَ غَنِىٌّ حَمِيْدٌ (۱۲)

يادكړه هغه وخت چي لقمان خپل زوی ته نصيحت كاوه نو هغه وويل: زويه ! له خدای سره څوك مه شريكوه . حق دادی چي شرك ډيرلوی ظلم دی ،،

وَ اِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِہٖ وَ ہُوَ يَعِظُہٗ يٰبُنَىَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰہِ ؕؔ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ (۱۳)

او مونږانسان ته دخپل مور او پلار د حق پيژندني تاكيد كړی دی . د هغه مور دكمزوری دپاسه كمزوری په حال كي هغه را اخيستی په خپله گيډه كي يي وساته او دوه كلونه يي په تي وركولو ولگيدل . ( له همدي امله مونږهغه ته نصيحت وكړچي ) زما شكر وكړه او دخپل مور او پلار شكر پرځاكړه ، همدا زما لوري ته ستا راگرځيدل دي .

وَ وَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْہِ ۚ حَمَلَتْہُ اُمُّہٗ وَہْنًا عَلٰى وَہْنٍ وَّ فِصٰلُہٗ فِىْ عَامَيْنِ اَنِ اشْكُرْ لِىْ وَ لِوَالِدَيْکَ ؕ اِلَىَّ الْمَصِيْرُ (۱۴)

خوکه هغوي پرتا فشار راولي چي له ماسره ته داسي څه شريك کړي چي تاته د هغه معلومات نه وي نو دهغو خبره هيڅکله مه منه ، په دنيا کي له هغو سره غوره چارچلند کوه ، خو پيروي دهغه چا دلارې وکړه چي هغه زما لوري ته رجوع کړې ده . بيا ستاسي ټولو راګرځيدل همدا زما لوري ته دي په هغه وخت کي به زه تاسي ته در وښيم چي تاسي څه عمل کاوه .

وَ اِنْ جَاہَدٰکَ عَلٰۤی اَنْ تُشْرِکَ بِیْ مَا لَیْسَ لَکَ بِہٖ عِلْمٌ ۙ فَلَا تُطِعْہُمَا وَ صَاحِبْہُمَا فِی الدُّنْیَا مَعْرُوْفًا ۫ وَّ اتَّبِعْ سَبِیْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَیَّ ۚ ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُکُمْ فَاُنَبِّئُکُمْ بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۵)

ز ويکيه ! يوشی (نيکي يا بدي) که داوري (او لقمان ويلي ووچي ) ددانې په اندازه هم وي او په کوم لوی ګټ يا په آسمانونو يا ځمکه کي پټ شوی وي الله به هغه راوباسي . الله باريك بين او باخبره دی .

یٰبُنَیَّ اِنَّہَاۤ اِنْ تَکُ مِثْقَالَ حَبَّۃٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَکُنْ فِیْ صَخْرَۃٍ اَوْ فِی السَّمٰوٰتِ اَوْ فِی الْاَرْضِ یَاْتِ بِہَا اللّٰہُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَطِیْفٌ خَبِیْرٌ (۱۶)

زويکيه ! لمونځ قايم کړه ، په نيکی امر وکړه ، له بدئ نه منع وکړه اوهر مصيبت چي دربانديِ راشي وربانديِ صبر وکړه داهغه مهمي خبري دي چي د هغو ډېرتاکيد شوی دی .

یٰبُنَیَّ اَقِمِ الصَّلٰوۃَ وَ اْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَ انْہَ عَنِ الْمُنْکَرِ وَ اصْبِرْ عَلٰی مَاۤ اَصَابَکَ ؕ اِنَّ ذٰلِکَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ (۱۷)

اوله خلکو سره په مخ اړولوخبرې مه کوه ، پر ځمکه خيالولی مه ځه ، الله هيڅ يوپه ځان مين او وياړ ښکاره کوونکی انسان نه خوښوي

وَ لَا تُصَعِّرْ خَدَّکَ لِلنَّاسِ وَ لَا تَمْشِ فِی الْاَرْضِ مَرَحًا ؕ اِنَّ اللّٰہَ لَا یُحِبُّ کُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ (۱۸)

پخپل تګ کي ميانه روي غوره کړه او خپل غږلږټيټ کړه ، له ټولو اوازونو څخه ډير بد اوازد خرووي .

وَ اقْصِدْ فِیْ مَشْیِکَ وَ اغْضُضْ مِنْ صَوْتِکَ ؕ اِنَّ اَنْکَرَ الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ (۱۹)

ايا تاسي نه وينئ چي الله د اسمانونو او ځمکي ټول شيان ستاسي له پاره مسخر کړي دي او خپل ښکاره او پټ نعمتونه يې پرتاسي تمام کړي دي ؟ خوحال دادی چي له انسانانوڅخه ځيني خلك دي چي د الله په باب شخړې کوي بې له دې چي له هغوې سره څه علم وي ، يا هدايت ياکوم روښنايئ ښودونکی کتاب .

اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰہَ سَخَّرَ لَکُمْ مَّا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الْاَرْضِ وَ اَسْبَغَ عَلَیْکُمْ نِعَمَہٗ ظَاہِرَۃً وَّ بَاطِنَۃً ؕ وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ یُّجَادِلُ فِی اللّٰہِ بِغَیْرِ عِلْمٍ وَّ لَا ہُدًی وَّ لَا کِتٰبٍ مُّنِیْرٍ (۲۰)

اوکله چي هغوته ويل کيږي چي د هغه شي پيروي وکړئ چي الله نازل کړی دی ، نو وايي چي مونږدهغه شي پيروي کوو چي پر هغه باندې زمونږپلرونو، نيکونو عمل کړی دی . آيا دوی دهماغو پيروي کوي اګر که يې شيطان دلمبه وهونکي اور خواته بولي هم .

وَ اِذَا قِیْلَ لَہُمُ اتَّبِعُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰہُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَیْہِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَ لَوْ کَانَ الشَّیْطٰنُ یَدْعُوْہُمْ اِلٰی عَذَابِ السَّعِیْرِ (۲۱)

هر څوك چي ځان الله ته وسپاري او هغه نيکوکاروي ، هغه په واقع کي يوه داعتماد وړ اسره ونيوله ، او دټولو چارو وروستی پريکړه يوازې د الله په لاس کي ده .

وَ مَنْ یُّسْلِمْ وَجْہَہٗۤ اِلَی اللّٰہِ وَ ہُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَکَ بِالْعُرْوَۃِ الْوُثْقٰی ؕ وَ اِلَی اللّٰہِ عَاقِبَۃُ الْاُمُوْرِ (۲۲)

اوس چي څوك کافر کيږي نو دهغه کفر دي تاپه خفګان کي وانه چوي ، د هغو بېرته راتګ همدازمونږپه لوري دی ، بيا به مونږهغوته و ښيوچي هغوې له څه عمل سره راغلي دي . په باوري ډول الله آن د سينو په پټورا زونو باندې پوهيږي .

وَ مَنْ کَفَرَ فَلَا یَحْزُنْکَ کُفْرُہٗ ؕ اِلَیْنَا مَرْجِعُہُمْ فَنُنَبِّئُہُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (۲۳)

مونږدلږوخت له پاره هغوته په دنياکي د خوند اخيستلو موقع ورکوو ، بيا به هغوی بېوسي کړو ديو سخت عذاب لوري ته به يې راکاږو .

نُمَتِّعُہُمْ قَلِیْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّہُمْ اِلٰی عَذَابٍ غَلِیْظٍ (۲۴)

وَ لَئِنْ سَاَلْتَہُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ لَیَقُوْلُنَّ اللّٰہُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰہِ ؕ بَلْ اَکْثَرُہُمْ لَا یَعْلَمُوْنَ (۲۵)

که ته دوی نه پوښتنه وکړې چې اسمانونه او ځمکه چا پیدا کړي دي ، نودوی به ارومرو ووایي چې الله . ووایه ، الحمدلله . خوله دوی څخه زیاتره کسان نه پوهېږي

لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ ہُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ (۲۶)

په آسمانونو اوځمکه کې چې هر څه دي د الله دي ، بیشکه الله بې نیازه او خود پخپله ستایل شوی دی .

وَ لَوْ اَنَّ مَا فِی الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَۃٍ اَقْلَامٌ وَّ الْبَحْرُ یَمُدُّہٗ مِنْۢ بَعْدِہٖ سَبْعَۃُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ کَلِمٰتُ اللّٰہِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ (۲۷)

په ځمکه کې چې څومره ونې بوټې دي که هغه قلمونه شي او سمندر ( مشوانې شي ) چې هغه ته او وه نور سمندرونه سیاهي برابره کړي بیا به هم دالله خبرې په لیکلو پای ته ونه رسیږي . بیشکه الله برلاسی او دحکمت څښتن دی .

مَا خَلْقُکُمْ وَ لَا بَعْثُکُمْ اِلَّا کَنَفْسٍ وَّاحِدَۃٍ ؕ اِنَّ اللّٰہَ سَمِیْعٌۢ بَصِیْرٌ (۲۸)

ستاسي ټولوانسانانوپیدا کول او بیا دوهم ځل ژوندي کول خو (دهغه له پاره ) داسي دي لکه دیو ساکښ (پیدا کول او بیا ژوندي کول ) . حقیقت دادی چې الله د هر څه اورېدونکی اولیدونکی دی.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰہَ یُوْلِجُ الَّیْلَ فِی النَّہَارِ وَ یُوْلِجُ النَّہَارَ فِی الَّیْلِ وَ سَخَّرَ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ ۫ کُلٌّ یَّجْرِیْۤ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی وَّ اَنَّ اللّٰہَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ (۲۹)

آیا ته نه وینې چې الله شپه په ورځ کې ننغښتي راولي او ورځ په شپه کې . او هغه لمر او سپوږمی ایل کړي دي ، ټول تر یوټاکلې وخت پورې روان دي او ( آیا ته نه پوهېږې ) چې هر څه تاسي کوئ الله پرې ښه خبردی .

ذٰلِکَ بِاَنَّ اللّٰہَ ہُوَ الْحَقُّ وَ اَنَّ مَا یَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِہِ الْبَاطِلُ ۙ وَ اَنَّ اللّٰہَ ہُوَ الْعَلِیُّ الْکَبِیْرُ (۳۰)

داهر څه له دې امله دي چې یوازې الله حق دی اوله هغه پرته چې دغه خلك کوم نورشیان بولي هغه ټول باطل دي ، او( له دې امله چې ) یوازې الله لوړ اولوی دی.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْکَ تَجْرِیْ فِی الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰہِ لِیُرِیَکُمْ مِّنْ اٰیٰتِہٖ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوْرٍ (۳۱)

آیاته نه وینې چې په سمندر کې بېړۍ د الله په فضل سره چلېږي تر څو چې هغه تاسي ته خپلې ځینې نښانې دروښیي . په حقیقت کې په دې کې ډېرې نښانې دي دهر هغه چاله پاره چې صبر او شکر کوونکی وي .

وَ اِذَا غَشِیَہُمْ مَّوْجٌ کَالظُّلَلِ دَعَوُا اللّٰہَ مُخْلِصِیْنَ لَہُ الدِّیْنَ ۬ۚ فَلَمَّا نَجّٰہُمْ اِلَی الْبَرِّ فَمِنْہُمْ مُّقْتَصِدٌ ؕ وَ مَا یَجْحَدُ بِاٰیٰتِنَاۤ اِلَّا کُلُّ خَتَّارٍ کَفُوْرٍ (۳۲)

اوکله چې ( په سمندرکې ) پردوی یوه څپه د چتریو غوندې خوره شي نو دوی الله بولي د هماغه له پاره د خپل دین په بیخي خالص کولوسره ، بیا کله چې هغه په ژغور لو سره دوی وچې ته رسوي نوله دوی نه څوك سمون ، میانه روي او اعتدال غوره کوي، او زمونږله نښانو څخه نه منکرېږي مګنکر هغه څوك چې بې لوزي اونا شکره دي .

یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّکُمْ وَ اخْشَوْا یَوْمًا لَّا یَجْزِیْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِہٖ ۫ وَ لَا مَوْلُوْدٌ ہُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِہٖ شَیْئًا ؕ اِنَّ وَعْدَ اللّٰہِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّکُمُ الْحَیٰوۃُ الدُّنْیَا ٝ وَ لَا یَغُرَّنَّکُمْ بِاللّٰہِ الْغَرُوْرُ (۳۳)

ای خلکو ! دخپل رب له غضب نه ځان وساتئ اوله هغې ورځې نه ووېرېږئ چې هېڅ یو پلاربه دخپل زوی له خوا بدله ورنکړي او نه به کوم زوی د خپل پلارله خواڅه بدله ورکوونکی وي . په واقع کې دالله وعده ریښتونې ده ، نود دنیا دغه ژوند دې تاسي ونه غولوي او نه دې دالله په معامله کې غولوونکې تاسي وغولوي .

اِنَّ اللّٰہَ عِنْدَہٗ عِلْمُ السَّاعَۃِ ۚ وَ یُنَزِّلُ الْغَیْثَ ۚ وَ یَعْلَمُ مَا فِی الْاَرْحَامِ ؕ وَ مَا تَدْرِیْ نَفْسٌ مَّاذَا تَکْسِبُ غَدًا ؕ وَ مَا تَدْرِیْ نَفْسٌۢ بِاَیِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلِیْمٌ خَبِیْرٌ (۳۴)

یقیناًد هغه ساعت (قیامت ) علم له الله سره دی هماغه باران وروي ،هماغه پوهیږي چې د میندو په ګېډوکې څه روزل کېږي ، هیڅ یو نفس نه پوهېږي چې سباهغه دڅه کار کوونکی دی او نه څوك په دې خبر دي چې په کومه ځمکه کې هغه ته مرګ راتلونکی دی ، یوازې الله په هر څه پوهېدونکی او با خبره دی.

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ا،ل، م

الٓـمّٓ ﴿۱﴾

دغه کتاب بیشکه اوبې شبهې درب العلمین لخوا نازل شوی دی.

تَنۡزِیۡلُ الۡکِتٰبِ لَا رَیۡبَ فِیۡہِ مِنۡ رَّبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ؕ﴿۲﴾

ایا دوې وایي چې دغه سړي داله خپله ځانه جوړ کړی دی ، نه بلکې داحق دی ستا د رب لخوا تر څو چې ته یوداسې قوم ته خبرداری ورکړې چې هغوته له تاڅخه مخکښې کوم تنبیه کوونکی نه دی راغلی ، ښایي چې هغوی سمه لاره ومومي .

اَمۡ یَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰىہُ ۚ بَلۡ ہُوَ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّکَ لِتُنۡذِرَ قَوۡمًا مَّاۤ اَتٰىہُمۡ مِّنۡ نَّذِیۡرٍ مِّنۡ قَبۡلِکَ لَعَلَّہُمۡ یَہۡتَدُوۡنَ ﴿۳﴾

هماغه الله دی چې هغه اسمانونه او ځمکه او هغه ټول شیان چې دهغو په مینځ کښې دي په شپږو ورځوکښې پېداکړل . له هغه وروسته یې پر عرش استوا وکړه ، له هغه پرته نه ستاسې څوك ملاتړ او مرستندوی شته او نه څوك دهغه په وړاندې سپارښت کوونکی ، نوایا تاسې په هوښ کښې نه راځئ؟

اَللّٰہُ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ مَا بَیۡنَہُمَا فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ ؕ مَا لَکُمۡ مِّنۡ دُوۡنِہٖ مِنۡ وَّلِیٍّ وَّ لَا شَفِیۡعٍ ؕ اَفَلَا تَتَذَکَّرُوۡنَ ﴿۴﴾

هغه له اسمانه تر ځمکې پورې د نړۍ چارې اداره کوي اود دې ادارې رپوټ پاس دهغه حضور ته ورځي په یوه داسې ورځ کښې چې دهغې اندازه ستاسې د شمیرله مخې یورزکاله ده .

یُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ مِنَ السَّمَآءِ اِلَی الۡاَرۡضِ ثُمَّ یَعۡرُجُ اِلَیۡہِ فِیۡ یَوۡمٍ کَانَ مِقۡدَارُہٗۤ اَلۡفَ سَنَۃٍ مِّمَّا تَعُدُّوۡنَ ﴿۵﴾

همغه دی په هرپټ او ښکاره باندې پوهیدونکی ، برلاسی او مهربان دی

ذٰلِکَ عٰلِمُ الۡغَیۡبِ وَ الشَّہَادَۃِ الۡعَزِیۡزُ الرَّحِیۡمُ ۙ﴿۶﴾

هغه چې هرشی پیداکړ ډېرښه یې پېداکړ او هغه د انسان دهستونې پیل له پخې شوې ختې څخه وکړ

الَّذِیۡۤ اَحۡسَنَ کُلَّ شَیۡءٍ خَلَقَہٗ وَ بَدَاَ خَلۡقَ الۡاِنۡسَانِ مِنۡ طِیۡنٍ ۚ﴿۷﴾

بیایې دهغه ځوځات له یوې داسې څڅنده جوهر څخه وغځوه چې دحقیرو اوبو په څیردی .

ثُمَّ جَعَلَ نَسۡلَہٗ مِنۡ سُلٰلَۃٍ مِّنۡ مَّآءٍ مَّہِیۡنٍ ۚ﴿۸﴾

بیایې هغه ته سمون ورکړ ، هغه یې بې عېبه بې نیمګړتیا جوړ کړ او په هغه کښې یې دهغه (یا خپل) روح پوکړ ، اوتاسوته یې غوږونه درکړل سترګې یې درکړې او زړونه یې درکړل . تاسې بیخې لږشکر ویستونکې یئ.

ثُمَّ سَوّٰىہُ وَ نَفَخَ فِیۡہِ مِنۡ رُّوۡحِہٖ وَ جَعَلَ لَکُمُ السَّمۡعَ وَ الۡاَبۡصَارَ وَ الۡاَفۡـِٕدَۃَ ؕ قَلِیۡلًا مَّا تَشۡکُرُوۡنَ ﴿۹﴾

او دغه خلك وایي : کله چې مونږپه خاوره کښې ګډوډ شوي اوسو نو ایا مونږبه بیاله نوي سره پیدا کړلی شو ؟ اصلي خبره داده چې دوی له خپل رب سره یوځای کېدل نه مني .

وَ قَالُوۡۤا ءَ اِذَا ضَلَلۡنَا فِی الۡاَرۡضِ ءَ اِنَّا لَفِیۡ خَلۡقٍ جَدِیۡدٍ ۬ؕ بَلۡ ہُمۡ بِلِقَآیِٔ رَبِّہِمۡ کٰفِرُوۡنَ ﴿۱۰﴾

دوې ته ووایه : دمرګ هغه پرښته چې پرتاسې موظفه کړای شوې ده ستاسې روح به په پوره بشپړه توګه تر خپلې قبضې لاندې راولي . اوبیا به تاسې دخپل رب لوري ته وګرځول شئ .

قُلۡ یَتَوَفّٰىکُمۡ مَّلَکُ الۡمَوۡتِ الَّذِیۡ وُکِّلَ بِکُمۡ ثُمَّ اِلٰی رَبِّکُمۡ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۱﴾

کاشکې ته ووینې هغه وخت چې دغه مجرمان ځوړند سر دخپل رب په وړاندې ولاړوي ( په هغه وخت کښې به دوې وایي ) : (( ای زمونږربه مونږښه ولېدل او وامو وربدل ، اوس مونږبېرته ولېږه تر څو مونږنېك عمل وکړو ، اوس زمونږباور راغلی دی ))

وَ لَوۡ تَرٰۤی اِذِ الۡمُجۡرِمُوۡنَ نَاکِسُوۡا رُءُوۡسِہِمۡ عِنۡدَ رَبِّہِمۡ ؕ رَبَّنَاۤ اَبۡصَرۡنَا وَ سَمِعۡنَا فَارۡجِعۡنَا نَعۡمَلۡ صَالِحًا اِنَّا مُوۡقِنُوۡنَ ﴿۱۲﴾

په ځواب کښې به وویل شي ) : که مونږغوښتلی نولا پخوابه ) موهر نفس ته دهغه هدایت ورکړی و . خوزما هغه خبره ترسره شوه چې ما ویلي ووچې زه به دوزخ له پیریانواو انسانانو ټولوڅخه ډك کړم .

وَ لَوۡ شِئۡنَا لَاٰتَیۡنَا کُلَّ نَفۡسٍ ہُدٰىہَا وَ لٰکِنۡ حَقَّ الۡقَوۡلُ مِنِّیۡ لَاَمۡلَـَٔنَّ جَہَنَّمَ مِنَ الۡجِنَّۃِ وَ النَّاسِ اَجۡمَعِیۡنَ ﴿۱۳﴾

نو اوس دخپل دغه عمل خوند وڅکئ چی تاسي د دغې ورځې
ملاقات هېرکړ. مونږاوس تاسي هېرکړي ياست ، نووڅکئ دخپلو
کړنو په مجازات کښې د هميشني عذاب خوند .

فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ اِنَّا
نَسِيْنٰكُمْ وَ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا
كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۴)

زمونږپه ايتونو باندې خو هغه خلك ايمان راوړي چې ددغو ايتونوپه
اورولو سره چې كله هغوته نصيحت كېږي نو په سجده پرېوځي او
دخپل رب له ثنا ستاينې سره دهغه پاكي بيانوي او لويي نه كوي –

اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا
خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ سَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَ
هُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ (۱۵)

اړخونه يې له بستروڅخه بيل وي ، خپل رب ته له وېرې اوهيلې
سره خپله غوښتنه وړاندې كوی . او څه روزي چې مونږ هغوته
وركړې ده له هغې نه لګښت كوي.

تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ
يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّ طَمَعًا ۫ وَّ مِمَّا
رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ (۱۶)

نو دسترګويخېدوكوم وسائل چې د هغو د عملونو په مكافات كښې د
هغولپاره پټ كړای شوي دي هيڅ نفس پرې خبرنه دی .

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّاۤ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ
اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۱۷)

ښه نوايا داكېدای شي چې څوك چې مؤمن وي هغه دې دهغه چاپه
څېر شي چې فاسق وي ، دغه دواړه نشي برابرېدای.

اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا ؕ ؔ
لَا يَسْتَوٗنَ (۱۸)صـ

كوموكسانوچې ايمان راوړی دی او غوره عملونه يې كړي دي
دهغولپاره خو د جنتونو استوګنځي دي . دمېلمستيا په ډول دهغو
دعملونو په بدل كې.

اَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ
فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَاْوٰى ۫ نُزُلًا بِمَا كَانُوْا
يَعْمَلُوْنَ (۱۹)

او كومو كسانو چې فسق غوره كړی دی دهغو هستوګنځی دوزخ
دی. هركله چې هغوی له هغه نه وتل وغواړي بېرته به په هغه
كښې وغورځول شي او هغوته به وويل شي چې اوس د همغه
اوردعذاب خوند وڅكئ چې تاسې هغه درواغ ګڼله .

وَ اَمَّا الَّذِيْنَ فَسَقُوْا فَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ
كُلَّمَاۤ اَرَادُوْۤا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَاۤ اُعِيْدُوْا
فِيْهَا وَ قِيْلَ لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ
الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ (۲۰)

له هغه لوی عذاب نه مخكښې به مونږپه همدې دنيا كښې (ديونه يو
واړه ) عذاب خوند په دوی باندې وڅكو ، ښايي چې دوې ( دخپلې
سركشۍ له كړنلارې نه ) راواوړي ،

وَ لَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ
الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ (۲۱)

اوله هغه نه به لوی ظالم څوك وي چې هغه ته دهغه درب دايتونو
په وسيله نصيحت وشي او بياهغه له هغونه مخ واړوي . له دغسې
مجرمانونه مونږغچ اخيستونكي يو .

وَ مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ
اَعْرَضَ عَنْهَا ؕ اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ
مُنْتَقِمُوْنَ (۲۲)

له دې نه مخكې مونږموسی (ع) ته كتاب وركړی دی ، نو بايد دهغه
كتاب په وركول كېدوكښې ستاڅه شك نه وي . او هغه كتاب مونږد
بني اسرائيلولپاره هدايت ګرځولی و ،

وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ
فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ وَ جَعَلْنٰهُ هُدًى
لِّبَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ (۲۳)

او كله چې هغوې صبروكړاوزمونږپه ايتونو باندې يې باور وكړنو
په هغوكښې مونږداسې لارښودونكي پېداكړل چې زمونږپه امر يې
لار ښوونه كوله .

وَ جَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا
صَبَرُوْا ؕ ؔ وَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ
(۲۴)

په يقيني توګه به همداستا رب دقيامت په ورځ دهغو خبرو فېصله
وكړي چې په هغوكښې ( بني اسرائيلو ) پخپلو مينځوكښې سره
اختلاف كړی دی .

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ
فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ (۲۵)

او ايا دغوخلكوته ( په دغوتاريخي پېښوكښې ) كوم هدايت نه دی
په برخه شوی چې له دوی نه مخكښې مونږڅومره قومونه هلاك
كړي دي چې دهغو په مېنو كښې دوې نن ګرځي راګرځي.په دې
كښې غټې نښانې دي ايادوی نه اوري؟

اَوَ لَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ
الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ
ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ ؕ اَفَلَا يَسْمَعُوْنَ (۲۶)

او ایا دغوخلکو دغه منظر هیڅکله نه دی لیدلی چي مونږدبوې شاړې ځمکي لوری ته او به جاري کوو ، او بیاله هماغي ځمکي نه هغه کښت راټوکیږي چي له هغه نه هم ددوې څاروي خوراك کوي او هم دوې پخپله ؟ایا دوې نه ځیرکیږي.

اَوَ لَمۡ یَرَوۡا اَنَّا نَسُوۡقُ الۡمَآءَ اِلَی الۡاَرۡضِ الۡجُرُزِ فَنُخۡرِجُ بِہٖ زَرۡعًا تَاۡکُلُ مِنۡہُ اَنۡعَامُہُمۡ وَ اَنۡفُسُہُمۡ ؕ اَفَلَا یُبۡصِرُوۡنَ (۲۷)

دغه خلك وایي چي (( دغه فیصله به کله وي که تاسي رښتوني یئ )) ؟

وَ یَقُوۡلُوۡنَ مَتٰی ہٰذَا الۡفَتۡحُ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ (۲۸)

دوې ته ووایه (( د فیصلي په ورځ به ایمان راوړل د هغو خلکو لپاره هیڅ ګټور نه وي چي هغوې کافر شوي دي او بیا به هغوته کوم مهلت ورنکړل شي ))

قُلۡ یَوۡمَ الۡفَتۡحِ لَا یَنۡفَعُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا اِیۡمَانُہُمۡ وَ لَا ہُمۡ یُنۡظَرُوۡنَ (۲۹)

ښه نو دوې پخپل حال پریږده او انتظار باسه دوې هم منتظر دي .

فَاَعۡرِضۡ عَنۡہُمۡ وَ انۡتَظِرۡ اِنَّہُمۡ مُّنۡتَظِرُوۡنَ (۳۰)

دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ای پیغمبره ! له الله نه ویریږه او دکافرانو او منافقانو اطاعت مه کوه ،یقیناً هماغه الله علیم او حکیم دی .

یٰۤاَیُّہَا النَّبِیُّ اتَّقِ اللّٰہَ وَ لَا تُطِعِ الۡکٰفِرِیۡنَ وَ الۡمُنٰفِقِیۡنَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ عَلِیۡمًا حَکِیۡمًا ۙ(۱)

دهغي خبرې پیروي کوه چي ستا درب له لوري تاته د هغي وحی کیږي . الله له هرې هغي چارې باخبر دی چي تاسي یې کوئ

وَّ اتَّبِعۡ مَا یُوۡحٰۤی اِلَیۡکَ مِنۡ رَّبِّکَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرًا ۙ(۲)

پرالله توکل وکړه ، هماغه الله دوکالت لپاره کافي دی .

وَّ تَوَکَّلۡ عَلَی اللّٰہِ ؕ وَ کَفٰی بِاللّٰہِ وَکِیۡلًا (۳)

الله دچاپه ګوګل کښي دوه زړونه نه دي ایښي ، اونه یې ستاسي هغه میرمني چي تاسي دهغوشاګاني دخپلو میندو له شاګانو سره تشبیه کوئ ستاسي میندي ګرځولي دي او نه یې ستاسي په خوله بللي زامن ، ستاسي حقیقي زامن ګرځولي دي . داخو ستاسي هغه خبرې دي چي تاسي یې له خپلو خولوڅخه راباسئ ، خوالله حقه خبره کوي او هماغه دسمي لارې ښوونه کوي .

مَا جَعَلَ اللّٰہُ لِرَجُلٍ مِّنۡ قَلۡبَیۡنِ فِیۡ جَوۡفِہٖ ۚ وَ مَا جَعَلَ اَزۡوَاجَکُمُ الّٰٓیۡٔ تُظٰہِرُوۡنَ مِنۡہُنَّ اُمَّہٰتِکُمۡ ۚ وَ مَا جَعَلَ اَدۡعِیَآءَکُمۡ اَبۡنَآءَکُمۡ ؕ ذٰلِکُمۡ قَوۡلُکُمۡ بِاَفۡوَاہِکُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ یَقُوۡلُ الۡحَقَّ وَ ہُوَ یَہۡدِی السَّبِیۡلَ (۴)

په خوله بللي زامن دهغو خپلو پلرونوته په منسوبولو وبولئ ، دا دالله په نزد زیاته عادلانه خبره ده . اوکه تاسي ته معلوم نه وي چي دهغو پلرونه څوك دي نو هغوی ستاسي دیني ورونه او ملګري دي . په ناپوهی سره که تاسي کومه خبره وکړئ پرهغي باندې تاسي نه نیول کیږئ .مګرپه هغي خبره باندې ارومرو نیونه شته چي تاسي له زړه نه دهغي اراده وکړئ الله ښنونکی او مهربان دی .

اُدۡعُوۡہُمۡ لِاٰبَآئِہِمۡ ہُوَ اَقۡسَطُ عِنۡدَ اللّٰہِ ۚ فَاِنۡ لَّمۡ تَعۡلَمُوۡۤا اٰبَآءَہُمۡ فَاِخۡوَانُکُمۡ فِی الدِّیۡنِ وَ مَوَالِیۡکُمۡ ؕ وَ لَیۡسَ عَلَیۡکُمۡ جُنَاحٌ فِیۡمَاۤ اَخۡطَاۡتُمۡ بِہٖ ۙ وَ لٰکِنۡ مَّا تَعَمَّدَتۡ قُلُوۡبُکُمۡ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ غَفُوۡرًا رَّحِیۡمًا (۵)

پیغمبر خو دمومنانو لپاره دهغوله خپله ځانه ګران دی. اودپیغمبر بیبیاني د هغومیندي دي ، خو دالله د کتاب له مخي دعامو مومنانو او مهاجرینو په پرتله خپلوان یوله بله زیات حقدار دي ، البته که له خپلو ملګروسره تاسي څه روابنیګڼه ( کول غواړئ نو) کولای شئ . دغه حکم په ا لهي کتاب کښي لیکل شوی دی .

اَلنَّبِیُّ اَوۡلٰی بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ مِنۡ اَنۡفُسِہِمۡ وَ اَزۡوَاجُہٗۤ اُمَّہٰتُہُمۡ ؕ وَ اُولُوا الۡاَرۡحَامِ بَعۡضُہُمۡ اَوۡلٰی بِبَعۡضٍ فِیۡ کِتٰبِ اللّٰہِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَ الۡمُہٰجِرِیۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ تَفۡعَلُوۡۤا اِلٰۤی اَوۡلِیٰٓئِکُمۡ مَّعۡرُوۡفًا ؕ کَانَ ذٰلِکَ فِی الۡکِتٰبِ مَسۡطُوۡرًا (۶)

او ( اي پېغمبره ) هغه ژمنه او پېمان په ياد ولره چې مونږله ټولو پېغمبرانو څخه اخېستى دى ، له تا څخه هم اوله نوح ، ابراهيم ، موسي او عېسىٰ ابن مريم څخه هم . له ټولو نه مونږپخه ژمنه اخېستي ده .

وَ اِذۡ اَخَذۡنَا مِنَ النَّبِیّٖنَ مِیۡثَاقَہُمۡ وَ مِنۡکَ وَ مِنۡ نُّوۡحٍ وَّ اِبۡرٰہِیۡمَ وَ مُوۡسٰی وَ عِیۡسَی ابۡنِ مَرۡیَمَ ۪ وَ اَخَذۡنَا مِنۡہُمۡ مِّیۡثَاقًا غَلِیۡظًا ۙ(۷)

ترڅو چې له رېښتينو خلکو څخه ( دهغو رب ) د هغو دريښتينولئ په باب پوښتنه وکړي ، او د کافرانو لپاره خو هغه درد ناك عذاب تيار کړی دی .

لِّیَسۡـَٔلَ الصّٰدِقِیۡنَ عَنۡ صِدۡقِہِمۡ ۚ وَ اَعَدَّ لِلۡکٰفِرِیۡنَ عَذَابًا اَلِیۡمًا (۸)

ای مومنانو! دالله هغه پيرزوينه در په زړه کړئ چې ( همداوس اوس ) هغه پرتاسي کړي ده . کله چې لښکرو پرتاسي يرغل وکړنو مونږپرهغويو سخت طوفان ولېږه او داسي پوځونه مو ولېږل چې ستاسي په نظر نه راتلل . الله هغه هرڅه لېدل چې تاسي په دې وخت کښي کول .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوا اذۡکُرُوۡا نِعۡمَۃَ اللّٰہِ عَلَیۡکُمۡ اِذۡ جَآءَتۡکُمۡ جُنُوۡدٌ فَاَرۡسَلۡنَا عَلَیۡہِمۡ رِیۡحًا وَّ جُنُوۡدًا لَّمۡ تَرَوۡہَا ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرًا ۚ(۹)

کله چې هغوی له پاسه اوله لاندې پر تاسي يرغل وکړ. کله چې سترگي له وېرې ټېغي وختلي ، زړونه خولي ته راغلل . اوتاسي د الله په باب راز راز گومانونه وکړل .

اِذۡ جَآءُوۡکُمۡ مِّنۡ فَوۡقِکُمۡ وَ مِنۡ اَسۡفَلَ مِنۡکُمۡ وَ اِذۡ زَاغَتِ الۡاَبۡصَارُ وَ بَلَغَتِ الۡقُلُوۡبُ الۡحَنَاجِرَ وَ تَظُنُّوۡنَ بِاللّٰہِ الظُّنُوۡنَا (۱۰)

په هغه وخت کښي مومنان ښه وازمايل شول او سخت ولړزول شول .

ہُنَالِکَ ابۡتُلِیَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ وَ زُلۡزِلُوۡا زِلۡزَالًا شَدِیۡدًا (۱۱)

يادکړه هغه وخت چې کله منافقانو او ټولو هغو خلکوچې د هغو په زړونو کښي ناروغي وه په ډاگه څرگنده ويل چې الله او دهغه پېغمبر ص چې له مونږسره کومي وعدې کړې وې هغه له غولوني پرته نور څه نه وې .

وَ اِذۡ یَقُوۡلُ الۡمُنٰفِقُوۡنَ وَ الَّذِیۡنَ فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللّٰہُ وَ رَسُوۡلُہٗۤ اِلَّا غُرُوۡرًا (۱۲)

کله چې له هغو نه يوې ډلې وويل چې ای ديثرب خلکو ! ستاسي لپاره نوره د ايسارېدو موقع نشته بېرته وگرځئ .او دهغو يوې ډلې په دې وينا سره له پيغمبر (صلى الله عليه وسلم) نه د رخصت غوښتنه کوله چې (( زمونږکورونه بې سرپرسته تر خطر لاندې دي)) په داسي حال کښي چې هغه بې سرپرسته تر خطر لاندې نه وو . په اصل کښي هغوی غوښتل ( د جنگ له محاذنه ) وتښتي .

وَ اِذۡ قَالَتۡ طَّآئِفَۃٌ مِّنۡہُمۡ یٰۤاَہۡلَ یَثۡرِبَ لَا مُقَامَ لَکُمۡ فَارۡجِعُوۡا ۚ وَ یَسۡتَاۡذِنُ فَرِیۡقٌ مِّنۡہُمُ النَّبِیَّ یَقُوۡلُوۡنَ اِنَّ بُیُوۡتَنَا عَوۡرَۃٌ ؕۛ وَ مَا ہِیَ بِعَوۡرَۃٍ ۚۛ اِنۡ یُّرِیۡدُوۡنَ اِلَّا فِرَارًا (۱۳)

که دښار له اطرافونه دښمن راننويستل شوی وای اوپه هغه وخت کښي هغوته دفتني لوري ته بلنه ورکړه شوې وای دوی به پکښي ځان غور ځولی و او گرانه وه چې دوی دې دفتني په شريکېد وکښي څه درنگ دريغ کړی وای .

وَ لَوۡ دُخِلَتۡ عَلَیۡہِمۡ مِّنۡ اَقۡطَارِہَا ثُمَّ سُئِلُوا الۡفِتۡنَۃَ لَاٰتَوۡہَا وَ مَا تَلَبَّثُوۡا بِہَاۤ اِلَّا یَسِیۡرًا (۱۴)

دغو خلکو له دې نه مخکي له الله سره ژمنه کړې وه چې دوی به شانه اړوي او له الله سره دشوې وعدې پوښتنه ارو مروکېدونکې ده .

وَ لَقَدۡ کَانُوۡا عَاہَدُوا اللّٰہَ مِنۡ قَبۡلُ لَا یُوَلُّوۡنَ الۡاَدۡبَارَ ؕ وَ کَانَ عَہۡدُ اللّٰہِ مَسۡـُٔوۡلًا (۱۵)

اي پېغمبره! دوی ته و وايه ، که تاسي له مرگ يا وژل کېدونه وتښتئ نو دغه تېښتنه به تاسي ته هېڅ گټه ونه رسوي. له هغه وروسته دژوند دخوندونو اخېستلو ډېر لږفرصت به تاسي ته درپه برخه شي .

قُلۡ لَّنۡ یَّنۡفَعَکُمُ الۡفِرَارُ اِنۡ فَرَرۡتُمۡ مِّنَ الۡمَوۡتِ اَوِ الۡقَتۡلِ وَ اِذًا لَّا تُمَتَّعُوۡنَ اِلَّا قَلِیۡلًا (۱۶)

دوي ته ووايه چې څوك دى چې تاسې له الله نه وژغورلاى شي كه هغه تاسې ته ضرر رسول وغواړي ؟ اوڅوك دهغه درحمت مخه نيولاى شي كه هغه پرتاسې مهرباني كول وغواوي ؟ دالله په مقابل كښې خو دغه خلك كوم ملاتړ او مرستندوى نشي ميندلى .

قُلْ مَنْ ذَا الَّذِىْ يَعْصِمُكُمْ مِّنَ اللّٰهِ اِنْ اَرَادَ بِكُمْ سُوْٓءًا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ؕ وَ لَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيْرًا (١٧)

الله له تاسې نه هغه كسان ښه پېژني چې ( دجنګ په كار كښې) خنډونه اچوونكي دي ، او خپلو ورونوته وايي چې (( راشئ زمونږخواته )) اوكه په جنګ كښې برخه اخلي هم نو صرف تش په نامه .

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَ الْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَ لَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ۙ (١٨)

چې له تاسې سره په ملګرتيا كولو كښې سخت بخيلان دي . كه د خطر وخت راشي نوګورې به يې چې تاته په داسې شان د ستركوكاتې اړوي را اړوي لكه چې پركوم چاباندې دځنكدن بې سدي خوريږي ، خوكله چې خطر تېرشي نو همدغه كسان دګټو په حرص كښې د بياتې په شان تېرو ژبو سره ستاسې هر كلي ته راځي .دوې هېڅكله ايمان نه دى راوړى ، له همدې امله الله د دوې ټول عملونه بابېزه كړل . او دغسې كول د الله لپاره ډېر اسانه دي .

اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖۚ فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ كَالَّذِىْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ؕ اُولٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ ؕ وَ كَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا (١٩)

دوې انګېري چې يرغلګر لاتر اوسه پورې نه دي تللي . اوكه بيا يرغل وكړي نو د دوې زړه غواړي چې په هغه فرصت كښې دوې چېرته په بېديا كښې د بانډ چيانو په منيځ كښې اوسې اوله هماغه ځايه ستاسې د حالاتو پوښتنې وكړي . بياهم كه دوې ستاسې په مينځ كښې پاتې وي نوپه جګړه كښې به بېخي لږه برخه واخلي .

يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا ۚ وَ اِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِى الْاَعْرَابِ يَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ ؕ وَ لَوْ كَانُوْا فِيْكُمْ مَّا قٰتَلُوْٓا اِلَّا قَلِيْلًا (٢٠)

په حقيقت كښې ستاسې لپاره د الله په رسول كښې يوه خورا غوره نمونه وه، دهر هغه چا لپاره چې دالله او د اخرت دورځې هېله من وي او الله ډېر ډېر ياد كړي .

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِىْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَ الْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَ ذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا ؕ (٢١)

او دريښتينو مؤمنانو ( حال په هغه وخت كښې داو) چې كله هغوې يرغلګر ولېدل نو ويې ويل چې (( داهماغه څه دي چې الله او دهغه رسول له مونږسره دهغه وعده كړې وه . دالله اودهغه رسول خبره بېخي رښتيا وه )) . دغې پېښې دهغو ايمان او غاړه ايښودل لازيات كړل .

وَ لَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ ۙ قَالُوْا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ وَ صَدَقَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ ۫ وَ مَا زَادَهُمْ اِلَّآ اِيْمَانًا وَّ تَسْلِيْمًا ؕ (٢٢)

له مؤمنانو څخه ځينى داسې شخصيتونه شته چې هغوې له الله سره كړې ژمنه رښتيا كړې ده ، له هغو نه چا خپل نذر پوره كړ او څوك دوخت راتلو ته انتظار باسي . هفوې پخپله كړنلاره كښې هيڅ تبديلي رانه وستله

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ ۖۚ وَ مَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا ۙ (٢٣)

دا هرڅه ددې لپاره وشول ) تر څو چې الله صادقانو ته د هغو د ) صداقت مكافات وركړي او منافقانو ته كه يې خوښه شي سزا وركړي او كه يې خوښه شي نود هغو توبه قبوله كوي . بيشكه الله . غفور اورحيم دى

لِّيَجْزِىَ اللّٰهُ الصّٰدِقِيْنَ بِصِدْقِهِمْ وَ يُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ اِنْ شَآءَ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۚ (٢٤)

وَ رَدَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوْا خَيْرًا ؕ وَ كَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ الْقِتَالَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا عَزِيْزًا ﴿۲۵﴾

الله دكافرانو مخ واړوه ، هغوی له کومی ګټی ترلاسه کولو پرته د خپلو زړونو له تاو سره همداسي بېرته ستانه شول ، او د مومنانولخوا هماغه الله د جنګېدو لپاره کافي شو ، الله ډير زورور او برلاسی دی .

وَ اَنْزَلَ الَّذِيْنَ ظَاهَرُوْهُمْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ صَيَاصِيْهِمْ وَ قَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ وَ تَاْسِرُوْنَ فَرِيْقًا ﴿۲۶﴾

او له اهل کتابونه چي کومو کسانو د دغو يرغلګرو ملګرتياکړې وه ، الله د هغو له کلاګانو څخه هغوی راکوز کړل او دهغوپه زړونو کښي يي داسي وېره واچوله چي نن تاسي له هغو نه يوه ډله وژنئ او بله ډله بندي کوئ .

وَ اَوْرَثَكُمْ اَرْضَهُمْ وَ دِيَارَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ وَ اَرْضًا لَّمْ تَطَئُوْهَا ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿۲۷﴾

تاسي يي د هغو دځمکي او دهغو دکورونو او دهغو د مالونو وارثان وګرځولئ ، اوهغه سميه يي تاسي ته درکړه چي تاسي هغه هېڅکله تر پښو لاندي نه وه کړې . الله په هر څه باندي قادر دی.

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَ زِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَ اُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿۲۸﴾

اي پيغمبره! خپلو مېرمنوته ووايه ،که تاسي دنيا او دهغي ښکلاغواوئ نوراشئ چي زه تاسي ته څه درکړم او په ښه وضعيت سره مورخصتي کړم .

وَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۲۹﴾

اوکه تاسي الله او دهغه رسول او داخرت کور غواړئ نو وپوهېږئ چي له تاسي نه چي څوك نېکوکارې دي الله د هغو لپاره لوی اجر تهيه کړی دی .

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ؕ وَ كَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

ای د پيغمبر مېرمنو ! له تاسي نه چي څوك د ښکاره فحشاْ حرکت مرتکبه شي هغي ته به دوه چنده سزا ورکړه شي ، دالله لپاره داډېر اسانه کار دي .

وَ مَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ تَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَاۤ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ ۙ وَ اَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا ﴿۳۱﴾

اوله تاسي نه چي څوك د الله او دهغه درسول امرته غاړه کېږدي اونيك عمل وکړي هغي ته به مونږدوه چنده اجر ورکړو ، او مونږدهغي لپاره غوره روزي تهيه کړې ده .

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ وَّ قُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ﴿۳۲﴾

ای د پيغمبر ميرمنو ! تاسي د عامو مېرمنو غوندې نه يئ . که تاسي له الله نه وېرېږ ونکي يئ نو په داسي لهجه خبرې مه کوئ چي دزړه په خرابوالي اخته کوم سړی تمه پيدا کړي ، بلکي سمي ځيرې خبرې کوئ.

وَ قَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَ لَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى وَ اَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَ اٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَ اَطِعْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ؕ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَ يُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا ﴿۳۳﴾

پخپلو کورونو کښي مېشتي اوسئ ، او دتېرجاهلي دور غوندې سينګار کړې بې سَتره مه ګرځئ . لمونځ قايم کړئ ، زکات ورکړئ او دالله او دهغه درسول اطاعت وکړئ . الله خو دا غواړي چي له تاسي نبوي کورنی څخه چټلي ايسته کړي او تاسي په پوره ډول سُتره کړي .

وَ اذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ وَ الْحِكْمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا ﴿۳۴﴾

په ياد ولرئ د الله آيتونه او دحکمت هغه خبرې چي ستاسي په کورونو کښي اورول کيږي . بيشکه الله باريك بين او باخبره دی .

اِنَّ الۡمُسۡلِمِيۡنَ وَ الۡمُسۡلِمٰتِ وَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَ الۡمُؤۡمِنٰتِ وَ الۡقٰنِتِيۡنَ وَ الۡقٰنِتٰتِ وَ الصّٰدِقِيۡنَ وَ الصّٰدِقٰتِ وَ الصّٰبِرِيۡنَ وَ الصّٰبِرٰتِ وَ الۡخٰشِعِيۡنَ وَ الۡخٰشِعٰتِ وَ الۡمُتَصَدِّقِيۡنَ وَ الۡمُتَصَدِّقٰتِ وَ الصَّآئِمِيۡنَ وَ الصّٰٓئِمٰتِ وَ الۡحٰفِظِيۡنَ فُرُوۡجَهُمۡ وَ الۡحٰفِظٰتِ وَ الذّٰكِرِيۡنَ اللّٰهَ كَثِيۡرًا وَّ الذّٰكِرٰتِ ۙ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمۡ مَّغۡفِرَةً وَّ اَجۡرًا عَظِيۡمًا (۳۵)

بېشکه مسلمان نارينه او مسلماني ښځي ، مؤمنان نارينه او مؤمني ښځي، امر منونکي نارينه او امر منونکي ښځي ، ريښتيني نارينه او ريښتوني ښځي ، صبر کوونکي نارينه او صبر کوونکي ښځي ، د الله په وړاندې سرټيټوونکي نارينه او سرټيټوونکي ښځي ، صدقه ورکوونکي نارينه او صدقه ورکوونکي ښځي ، روژتيان نارينه او روژ تياني ښځي ، د خپلو شرمځايونو ساتونکي نارينه او ساتونکي ښځي دالله ډېرډېر يادوونکي نارينه اودالله يادوونکي ښځي ، دا (لس واړه ډوله) خلك هغه کسان دي چي الله د هغو لپاره ښښنه او لوي اجر تهيه کړي دی.

وَ مَا كَانَ لِمُؤۡمِنٍ وَّ لَا مُؤۡمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَ رَسُوۡلُهٗۤ اَمۡرًا اَنۡ يَّكُوۡنَ لَهُمُ الۡخِيَرَةُ مِنۡ اَمۡرِهِمۡ ؕ وَ مَنۡ يَّعۡصِ اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيۡنًا (۳۶ؕ)

هيڅ يو مؤمن او هيڅ يوه مومنه داحق نه لري چي کله الله او دهغه رسول(صلي الله عليه وسلم ) دکومي معاملي فيصله وکړي چي هغه ته پخپله د خپلي هغي معاملي د فيصله کولو اختيار حاصل اوسي . اوڅوك چي له الله او دهغه له رسول نه سرغړاوی وکړي نو هغه په ځرګنده ګمراهی کښي وغـورځيده .

وَ اِذۡ تَقُوۡلُ لِلَّذِىۡۤ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَ اَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِ اَمۡسِكۡ عَلَيۡكَ زَوۡجَكَ وَ اتَّقِ اللّٰهَ وَ تُخۡفِىۡ فِىۡ نَفۡسِكَ مَا اللّٰهُ مُبۡدِيۡهِ وَ تَخۡشَى النَّاسَ ۚ وَ اللّٰهُ اَحَقُّ اَنۡ تَخۡشٰهُ ؕ فَلَمَّا قَضٰى زَيۡدٌ مِّنۡهَا وَطَرًا زَوَّجۡنٰكَهَا لِكَىۡ لَا يَكُوۡنَ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ حَرَجٌ فِىۡۤ اَزۡوَاجِ اَدۡعِيَآئِهِمۡ اِذَا قَضَوۡا مِنۡهُنَّ وَطَرًا ؕ وَ كَانَ اَمۡرُ اللّٰهِ مَفۡعُوۡلًا (۳۷)

ای پېغمبره! هغه وخت درياد کړه چي تاهغه چاته چي پر هغه باندې الله او تالورينه کړي وه ويل چي (( خپله مېرمن مه پرېږده او له الله نه وويرېږه)) په هغه وخت کښي تا پخپل زړه کښي هغه خبره پټه کړې وه چي الله دهغې ښکاره کول غوښتل . ته له خلکونه وېرېدلې ، په داسي حال کښي چي الله ددې زيات حقدار دی چي ته ورڅخه ووېرېږې ، بيا کله چي زيد له هغې نه خپل حاجت پوره کړ نو مونږ هغه ( طلاقه شوې مېرمن) تاته په نکاح کړه تر څوچي پرمومنانو دخپلو په خوله بلليو زامنو دمېرمنو په باب څه ستونزه پاتي نشي کله چي هغوی ترې خپل حاجت پوره کړی وي . او دالله حکم خوبايد عملي شوی وای .

مَا كَانَ عَلَى النَّبِىِّ مِنۡ حَرَجٍ فِيۡمَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ؕ سُنَّةَ اللّٰهِ فِى الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلُ ؕ وَ كَانَ اَمۡرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَّقۡدُوۡرَا ۙ(۳۸)

پرپېغمبرباندې په داسي يوه کار کښي څه بنديزنشته چي الله د هغه لپاره ټاکلی وي . د الله همدغه کړنلاره د ټولو هغو پېغمبرانو په باب راغلې ده چي پخواتېر شوي دي او دالله حکم يوه غوڅه سرته رسول شوې پرېکړه وي .

الَّذِيۡنَ يُبَلِّغُوۡنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَ يَخۡشَوۡنَهٗ وَ لَا يَخۡشَوۡنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيۡبًا (۳۹)

داد الله کړنلاره ده دهغو خلکو لپاره ) چي دالله پېغامونه رسوي او ) له هماغه څخه وېرېږي ، اوله يوه خدايه پرته له بل هيچاڅخه نه . وېرېږي ، او دمحاسبې لپاره همدا الله کافي دی

مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَاۤ اَحَدٍ مِّنۡ رِّجَالِكُمۡ وَ لٰكِنۡ رَّسُوۡلَ اللّٰهِ وَ خَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمًا (۴۰)

صلی الله عليه واله وسلم) ستاسي له نارينه )ای خلکو !) محمد ) وڅخه د هيچا پلارنه دی مګر هغه د الله رسول او خاتم النبيين دی ، . او الله دهر شی علم لرونکی دی

يٰۤاَيُّهَاالَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اذۡكُرُوا اللّٰهَ ذِكۡرًا كَثِيۡرًا(۴۱)

ای مومنانو الله ډېر ډېر يادوئ .

وَّ سَبِّحُوۡهُ بُكۡرَةً وَّ اَصِيۡلًا (۴۲)

او سهار اومابنام دهغه تسبيح کوونکي اوسئ .

هُوَ الَّذِىۡ يُصَلِّىۡ عَلَيۡكُمۡ وَ مَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخۡرِجَكُمۡ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوۡرِ ؕ وَ كَانَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ رَحِيۡمًا (۴۳)

هماغه ذات دی چې پرتاسې رحمت کوي او دهغه پرښتې ستاسې لپاره د رحمت دُعا کوي ترڅو چې هغه تاسې له تیارونه رڼاته راوباسي ، هغه پرمومنانو ډېر مهربان دی .

تَحِيَّتُهُمۡ يَوۡمَ يَلۡقَوۡنَهٗ سَلٰمٌ ۖۚ وَ اَعَدَّ لَهُمۡ اَجۡرًا كَرِيۡمًا (۴۴)

په کومه ورځ چې هغوی له الله سره یوځای شي دهغو هرکلی به په سلام سره وي ، او دهغو لپاره الله دعزت اجر برابر کړی دی.

يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ شَاهِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِيۡرًا (۴۵)

ای پېغمبره! مونږ ته شاهد او زېری ورکوونکی او وېروونکی لیږلی یې.

وَّ دَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذۡنِهٖ وَ سِرَاجًا مُّنِيۡرًا (۴۶)

او دالله په اجازه دهغه لوري ته بلونکی او بله ډیوه مو وګرځولې.

وَ بَشِّرِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ بِاَنَّ لَهُمۡ مِّنَ اللّٰهِ فَضۡلًا كَبِيۡرًا (۴۷)

زېری ورکړه هغو خلکوته چې (پرتایی) ایمان راوړی دی چې دهغو لپاره د الله لخوا لوی فضل دی.

وَ لَا تُطِعِ الۡكٰفِرِيۡنَ وَ الۡمُنٰفِقِيۡنَ وَ دَعۡ اَذٰىهُمۡ وَ تَوَكَّلۡ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيۡلًا (۴۸)

او هیڅکله د کافرانو او منافقانو تراغیزې لاندې مه راځه ، دهغو د ضرر رسولو هېڅ پروامه کوه او پرالله توکل وکړه ، هماغه الله د دې لپاره کافي دی چې انسان خپلې چارې ورته وسپاري .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا نَكَحۡتُمُ الۡمُؤۡمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقۡتُمُوۡهُنَّ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ تَمَسُّوۡهُنَّ فَمَا لَكُمۡ عَلَيۡهِنَّ مِنۡ عِدَّةٍ تَعۡتَدُّوۡنَهَا ۚ فَمَتِّعُوۡهُنَّ وَ سَرِّحُوۡهُنَّ سَرَاحًا جَمِيۡلًا (۴۹)

ای مؤمنانو! کله چې تاسې له مؤمنو ښځو سره نکاح وکړئ او بیا هغوته له لاس وروړلو مخکښې طلاق ورکړئ نو ستاسې لخوا پر هغوې څه عدت لازم نه دی چې د هغه دپوره کولو تاسې غوښتنه وکولی شئ ، له دې کبله هغو ته څه مال ورکړئ او په ښه توګه یې رخصت کړئ .

يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ اِنَّاۤ اَحۡلَلۡنَا لَكَ اَزۡوَاجَكَ الّٰتِىۡۤ اٰتَيۡتَ اُجُوۡرَهُنَّ وَ مَا مَلَكَتۡ يَمِيۡنُكَ مِمَّاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلَيۡكَ وَ بَنٰتِ عَمِّكَ وَ بَنٰتِ عَمّٰتِكَ وَ بَنٰتِ خَالِكَ وَ بَنٰتِ خٰلٰتِكَ الّٰتِىۡ هَاجَرۡنَ مَعَكَ ۡ وَ امۡرَاَةً مُّؤۡمِنَةً اِنۡ وَّهَبَتۡ نَفۡسَهَا لِلنَّبِىِّ اِنۡ اَرَادَ النَّبِىُّ اَنۡ يَّسۡتَنۡكِحَهَا * خَالِصَةً لَّكَ مِنۡ دُوۡنِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ؕ قَدۡ عَلِمۡنَا مَا فَرَضۡنَا عَلَيۡهِمۡ فِىۡۤ اَزۡوَاجِهِمۡ وَ مَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُمۡ لِكَيۡلَا يَكُوۡنَ عَلَيۡكَ حَرَجٌ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا (۵۰)

ای پېغمبره ! مونږستالپاره ستا هغه مېرمنې حلالې کړې دي چې تا دهغومهر اداءکړی دی ، او هغه ښځې چې د الله له درکړای شویو وینزونه ستا تر ملکیت لاندې راشي او ستا هغه دتره لونې ، دترور لونې ، د ماما لونې ، دتووی لونې چې هغوې له تاسره هجرت کړی دی او هغه مومنه ښځه چې هغې خپل ځان د پېغمبر (صلی الله علیه واله وسلم) لپاره هبه کړی وي که پېغمبرله هغې سره نکاح کول وغواړي ، دارعایت په ځانګړي ډول ستا لپاره دی ، دنورو مؤمنانو لپاره نشته . مونږته معلومه ده چې مونږپرعامو مؤمنانو دهغو د مېرمنو او وینزو په باب کوم کوم حدود وضع کړي دي . ( ته موله دغو حدودونه د دې لپاره مستثنا کړی یې ) څو چې پرتا څه تنګي نه وي ، او الله غفور او رحیم دی .

تُرۡجِىۡ مَنۡ تَشَآءُ مِنۡهُنَّ وَ تُـْٔوِىۡۤ اِلَيۡكَ مَنۡ تَشَآءُ ؕ وَ مَنِ ابۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ عَزَلۡتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكَ ؕ ذٰلِكَ اَدۡنٰۤى اَنۡ تَقَرَّ اَعۡيُنُهُنَّ وَ لَا يَحۡزَنَّ وَ يَرۡضَيۡنَ بِمَاۤ اٰتَيۡتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ؕ وَ اللّٰهُ يَعۡلَمُ مَا فِىۡ قُلُوۡبِكُمۡ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَلِيۡمًا (۵۱)

تاته واك درکول کیږي چې له خپلو مېرمنو څخه چې دې چاته خوښه شي له ځانه یې بېله کړې ، چاته چې دې خوښه شي له خپل ځان سره یې وساتې او چاته چې دې خوښه شي له بېلولو نه وروسته یې ځان ته راوبلې . په دې باب پرتا باندې هېڅ تکلیف نشته . په دې ډول زیاته هېله مندې ده چې د هغو سترګې یخې شي او هغوې غمجنې ونه اوسي او هر څه چې ته هغوته ورکوې پر هغه هغوې ټولې راضي شي . الله پوهېږي په هغه څه چې ستاسې په زړونو کښې دي ، او الله پوهېدونکی او زغمونکی دی.

له دي وروسته ستا لپاره نوري ښځي روانه دي اونه د دي اجازه ده چي د دوی په ځای نوري ښځي راولي اگر که دهغو ښکلا ستا هر څومره خوښه وي ، البته دوينزو درته اجازه ده الله په هر شي باندي څارونکی دی .

لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْۢ بَعْدُ وَ لَآ اَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ اَزْوَاجٍ وَّ لَوْ اَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ اِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ ۗ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيْبًا (۵۲)

ای مؤمنانو ! د پيغمبر کورونو ته مه ننوځئ .مگر دا چي د ډوډۍ خوړلو لپاره اجازه درکړه شي، سره له دي هم (بي وخته ورتگ سره) د ډوډۍ خوړلو منتظر پاتي نشئ. خوکه تاسي خوراك ته وبلل شئ نو ارو مرو راشئ . خوکله چي خواړه وخورئ نو خواره شئ ، په خبروکولو کښي مه بوختيږی . ستاسي دغه حرکتونه پيغمبر (صلي الله عليه وسلم) ته تکليف ورکوي خو هغه دحيا له امله څه نه وايي او الله دحقي خبري په ويلو نه شرميږي . دپيغمبر له ميرمنو څخه که تاسي څه متاع غواړئ نو دپردي ترشايي وغواړئ ، داستاسي او دهغو د زړونو د سپيڅلتيا لپاره ډيره مناسبه کړنلاره ده ستاسي لپاره داهيڅکله روانه ده چي دالله رسول صلي الله عليه وسلم ته تکليف ورکړئ ، اونه هيڅکله داروا ده چي له هغه نه وروسته دهغه له ميرمنو سره نکاح وکړئ،دا کارمو دالله په نزد ډيره ستره گناه ده .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّآ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ ۙ وَ لٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَ لَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ۗ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ ۫ وَ اللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ ۗ وَ اِذَا سَاَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ۗ ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَ قُلُوْبِهِنَّ ۗ وَ مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ لَآ اَنْ تَنْكِحُوْٓا اَزْوَاجَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖٓ اَبَدًا ۗ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا (۵۳)

تاسي که څه خبره ښکاره کړئ ياپي پټه کړئ،الله په هرشي عالم دی.

اِنْ تُبْدُوْا شَيْـًٔا اَوْ تُخْفُوْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا (۵۴)

د پيغمبر صلي الله عليه وسلم د بيبيانو لپاره په دي کښي هيڅ باك نشته چي دهغو پلرونه ، دهغو زامن ، دهغو وروڼه ، دهغو وريرونه ، دهغو خوريونه ، دهغو انډيوالاني ښځي . او دهغو وينزي مريونه کورونو ته ورشي .( ای ښځو! ) تاسي بايد دالله له نافرمانی نه ډډه وکړئ . الله په هرڅه باندي نظر لري .

لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِيْٓ اٰبَآئِهِنَّ وَ لَآ اَبْنَآئِهِنَّ وَ لَآ اِخْوَانِهِنَّ وَ لَآ اَبْنَآءِ اِخْوَانِهِنَّ وَ لَآ اَبْنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ وَ لَا نِسَآئِهِنَّ وَ لَا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ ۚ وَ اتَّقِيْنَ اللّٰهَ ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا (۵۵)

الله او دهغه پرښتي پر پيغمبر درود وايي ، ای مومنانو ! تاسي هم پر هغه درود او سلام و وايئ .

اِنَّ اللّٰهَ وَ مَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ ۗ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَ سَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا (۵۶)

کوم خلك چي الله او دهغه رسول ته اذيت رسوي پر هغو په دنيا او اخرت کښي الله لعنت کړی دی او دهغو لپاره يي رسوا کوونکی عذاب تيار کړی دی .

اِنَّ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ وَ اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِيْنًا (۵۷)

اوکوم کسان چي مومنو نارينه و او مؤمنو ښځو ته بي گناه په ناحقه اذيت رسوي هغوی ديوغټ بهتان او ښکاره گناه پيټي پر خپلو اوږواخيستي دی .

وَ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا فَقَدِ احْتَمَلُوْا بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِيْنًا (۵۸)

ای پيغمبره ! خپلو ميرمنو او لونو او دمومنانو ښځوته ووايه چي پرخپل ځان باندي د خپلوتکريو پلوونه خواره کړي . دا ډيره مناسبه کړنچاره ده تر څوچي هغوی وپيژندلي شي او ونه ځورول شي. الله تعالی غفور او رحيم دی.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَ بَنٰتِكَ وَ نِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ۗ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۗ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا (۵۹)

که منافقان او هغه خلك چې د هغوپه زړونوکښې فساد دی او هغه کسان چې په مدینه کښې د احساس پاروونکو افواها تو خپروونکي دي ، له خپلو حرکتونو څخه لاس وانخلي نو مونږبه دهغو پرخلاف مبارزې لپاره تا راپا څوو بیابه هغوې په دې ښار کښې په ډېره مشکله توګه ستا تر څنګ و اوسېدای شي .

لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ وَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّ الْمُرْجِفُوْنَ فِي الْمَدِيْنَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ فِيْهَاۤ اِلَّا قَلِيْلًا ‌ۛ‌ۚ (۶۰)

پرهغوبه له هرې خواد لعنت ورښت وي ، هر چېرته چې وموندل شي وبه نیول شي او په بده توګه به ووژل شي .

مَّلْعُوْنِيْنَ ‌ۛۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْۤا اُخِذُوْا وَ قُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا (۶۱)

دا دالله کړنلاره ده چې د دغسې خلکو په باب له پخوانه را روانه ده او ته به دالله په کړنلاره کښې هېڅ تبدیلي ونه مومې .

سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَ لَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا (۶۲)

خلك له تانه پوښتنه کوي چې دقیامت ساعت به کله راشي ؟ ووایه ، دهغه علم خو یوازې الله ته دی . ته څه خبرېږې ، ښایي چې قیامت ډېر رانژدې شوی وي .

يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَ مَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا (۶۳)

په هر حال دایقیني خبره ده چې الله پرکافرانو لعنت کړی دی او دهغولپاره یې لمبه شوی اور تیار کړی دی

اِنَّ اللّٰهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَ اَعَدَّ لَهُمْ سَعِيْرًا ۙ (۶۴)

چې په هغه کښې به هغوې دتل لپاره او سيږي ، کوم ملاتړ او مرستندوی به ونه مومي .

خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيْرًا ۚ (۶۵)

په کومه ورځ چې دهغو مخونه په اورباندې واړول راواړول شي په هغه وخت کښې به هغوې و وایي چې (( کاشکې مونږد الله او رسول صلي الله علیه وسلم اطاعت کړی وای ))

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُوْلُوْنَ يٰلَيْتَنَاۤ اَطَعْنَا اللّٰهَ وَ اَطَعْنَا الرَّسُوْلَا (۶۶)

اووبه وایي : ای زمونږربه ! مونږدخپلو سردارانو او دخپلو مشرانو اطاعت وکړاو هغوې مونږله سمې لارې نه بې لارې کړو

وَ قَالُوْا رَبَّنَاۤ اِنَّاۤ اَطَعْنَا سَادَتَنَا وَ كُبَرَآءَنَا فَاَضَلُّوْنَا السَّبِيْلَا (۶۷)

ای ربه ! هغوته دوه چنده عذاب ورکړه او پر هغو سخت لعنت وکړه

رَبَّنَاۤ اٰتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَ الْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيْرًا (۶۸)

ای مومنانو! دهغو خلکو په شان مه کېږئ چې هغوی موسی علیه السلام ته اذیتونه رسولي وو، بیا الله دهغوې له جوړ وکړیو خبرونه هغه ته براءت ورکړ، او هغه د الله په وړاندې عزتمند وْ.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اٰذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا ؕ وَ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا ؕ (۶۹)

ای مومنانو ! له الله نه ووېرېږئ او سمه خبره کوئ .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ قُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۙ (۷۰)

الله به ستاسې عملونه درسم کړي اوستاسې له ګناهونه څخه به درتېرشي . هر څوك چې دالله او دهغه درسول اطاعت وکړي هغه لوی بریالیتوب ترلاسه کړ.

يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ؕ وَ مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا (۷۱)

مونږچې دغه امانت اسمانونو ځمکې او غرونو ته وړاندې کړ نو هغوې یې پورته کولوته تیار نشول او ورڅخه ووېرېدل ، خوانسان هغه پورته کړ بېشکه هغه غټ ظالم او جاهل دی .

اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ الْجِبَالِ فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَ اَشْفَقْنَ مِنْهَا وَ حَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ؕ اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا ۙ (۷۲)

دامانت د دغه پېټي پورته کولو لازمي نتیجه داده چې الله منافقو نارینه و او ښځو ، او مشرکونارینه و او ښځو ته سزا ورکړي او دموْمنو نارینه و او ښځو توبه قبوله کړي ، الله بخښونکی او رحیم دی.

لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَ الْمُنٰفِقٰتِ وَ الْمُشْرِكِيْنَ وَ الْمُشْرِكٰتِ وَ يَتُوْبَ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا (۷۳)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ټوله ثنا ستاينه د هغه خداى لپاره ده چې داسمانونو او ځمکى هر شي څښتن دى او په اخرت کښې هم دهماغه لپاره ثنا ستاينه ده هغه حکمت والا اوباخبره دى .

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ وَ لَهُ الۡحَمۡدُ فِی الۡاٰخِرَةِ ؕ وَ ہُوَ الۡحَکِیۡمُ الۡخَبِیۡرُ (۱)

څه چې په ځمکه کښې ننوځي او څه چې له هغې نه راوځي ، څه چې له اسمانه راکوزيږي او څه چې ورته خيږي ، هغه په هرڅه باندې پوهيږي ، هغه رحيم او غفور دى .

یَعۡلَمُ مَا یَلِجُ فِی الۡاَرۡضِ وَ مَا یَخۡرُجُ مِنۡہَا وَ مَا یَنۡزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَ مَا یَعۡرُجُ فِیۡہَا ؕ وَ ہُوَ الرَّحِیۡمُ الۡغَفُوۡرُ (۲)

منکران وايي قيامت پرمونږنه راځي ! ووايه قسم دى زما په عالم الغيب پروردگار ، هغه به پرتاسې راشي . له هغه نه ديوه بځري په اندازه کوم شى نه په اسمانونو کښې پټ دى او نه په ځمکه کې نه له بځري نه غټ اونه له هغه نه کوچنى ، هر څه په يوځرگنددفتر کښې درج دي .

وَ قَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا لَا تَاۡتِیۡنَا السَّاعَةُ ؕ قُلۡ بَلٰی وَ رَبِّیۡ لَتَاۡتِیَنَّکُمۡ ۙ عٰلِمِ الۡغَیۡبِ ۚ لَا یَعۡزُبُ عَنۡہُ مِثۡقَالُ ذَرَّةٍ فِی السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِی الۡاَرۡضِ وَ لَاۤ اَصۡغَرُ مِنۡ ذٰلِکَ وَ لَاۤ اَکۡبَرُ اِلَّا فِیۡ کِتٰبٍ مُّبِیۡنٍ ٭ۙ(۳)

اوقيامت به ددې لپاره راشي چې الله هغو خلکوته مکافات ورکړي چې ايمان يې راوړى دى او غوره عملونه يې کړي دي . دهغو لپاره بخښنه ده او غوره روزي .

لِّیَجۡزِیَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ اُولٰٓئِکَ لَہُمۡ مَّغۡفِرَةٌ وَّ رِزۡقٌ کَرِیۡمٌ (۴)

اوکومو کسانو چې زمونږدايتونو د مغلوبولو لپاره خپله وسه کړې ده ، دهغو لپاره ډېر ناوړه ډول درد ناك عذاب دى .

وَ الَّذِیۡنَ سَعَوۡ فِیۡۤ اٰیٰتِنَا مُعٰجِزِیۡنَ اُولٰٓئِکَ لَہُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِیۡمٌ (۵)

اى پيغمبره پوهان ښه پوهيږي ، څه چې ستادرب لخوا پرتا نازل کړاى شوي دي هغه په ټوله معنا حق دي او دبرلاسي اوستايل شوي خداى لاره ښيي .

وَ یَرَی الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ الَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ اِلَیۡکَ مِنۡ رَّبِّکَ ہُوَ الۡحَقَّ ۙ وَ یَہۡدِیۡۤ اِلٰی صِرَاطِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَمِیۡدِ (۶)

منکران خلکوته وايي (( مونږتاسې ته داسې سړى دروښيوچې خبردرکوي چې کله چې ستاسې د جسم بځرى بځرى تيت پرك شوى وي په هغه وخت کښې به تاسې بياله نوي سره پيدا کړاى شئ ؟

وَ قَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا ہَلۡ نَدُلُّکُمۡ عَلٰی رَجُلٍ یُّنَبِّئُکُمۡ اِذَا مُزِّقۡتُمۡ کُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ اِنَّکُمۡ لَفِیۡ خَلۡقٍ جَدِیۡدٍ ۚ(۷)

نه ده معلومه چې دغه سړى د الله په نامه دروغ جوړوي او که ليونتوب پرې راغلى دى)). نه، بلکې کوم کسان چې اخرت نه مني هغوى په عذاب کښې اخته کيدونکي دي . او هماغوى په ناوړه توگه گمراه شوي دي .

اَفۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا اَمۡ بِہٖ جِنَّةٌ ؕ بَلِ الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ فِی الۡعَذَابِ وَ الضَّلٰلِ الۡبَعِیۡدِ (۸)

ايا دوى هيڅکله هغه اسمان او ځمکه نه دي ليدلى چې ددوى له وړاندې وروسته څخه راچاپېر شوي دي ؟ که مونږوغواړو نو دوى به په ځمکه کښې ننباسو ، يا به داسمان څه ټوټې پردوى را وغورځوو . په حقيقت کښې په دې کښې دهر هغه بنده لپاره يوه نښانه ده چې دخداى خواته ورگرځيدونکى وي .

اَفَلَمۡ یَرَوۡا اِلٰی مَا بَیۡنَ اَیۡدِیۡہِمۡ وَ مَا خَلۡفَہُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ اِنۡ نَّشَاۡ نَخۡسِفۡ بِہِمُ الۡاَرۡضَ اَوۡ نُسۡقِطۡ عَلَیۡہِمۡ کِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیَةً لِّکُلِّ عَبۡدٍ مُّنِیۡبٍ (۹)

مونږداود ته له خپل لوري څخه لوى فضل په برخه کړى وْ . (مونږحکم وکړچې ) اى غرونو ! له هغه سره هماهنگي وکړئ ( اوهمدغه حکم مونږ) مرغانو ته وکړ . مونږاوسپنه د هغه لپاره پسته کړه

وَ لَقَدۡ اٰتَیۡنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضۡلًا ؕ یٰجِبَالُ اَوِّبِیۡ مَعَہٗ وَ الطَّیۡرَ ۚ وَ اَلَنَّا لَہُ الۡحَدِیۡدَ ۙ(۱۰)

له دې لاربنوونې سره چې زغرې جوړې کړه او دهغو کوى په سمه اندازه . (اى آل داوده !) نيك عمل وکړئ ، تاسې چې څه کوئ زه هغه وينم .

اَنِ اعۡمَلۡ سٰبِغٰتٍ وَّ قَدِّرۡ فِی السَّرۡدِ وَ اعۡمَلُوۡا صَالِحًا ؕ اِنِّیۡ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرٌ (۱۱)

او دسليمان لپاره مونږ.باد اېل کړ ، دسهار په مهال کښې دهغه چلېدل ديوې مياشتې ترمسافې پورې او دشپې له مخې ديوې مياشتې ترمسافې پورې. مونږ.دهغه لپاره د ويلې شويوميسوچينه و بهوله ، او داسې پېريان مود هغه تابع وګرځول چې د خپل پروردګار په حکم سره يې دهغه په مخکښې کار کاوه . له هغونه به چې چازمونږ.له حکم نه سرغړاوی کاوه په هغه باندې مونږ.دلمبه شوې اورخوند څکه .

وَ لِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّ رَوَاحُهَا شَهْرٌ ۚ وَ اَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ ؕ وَ مِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ؕ وَ مَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ (۱۲)

دهغه لپاره هغه څه هغوی جوړول چې هغه غوښتل ، دنګې ودانۍ ، تصويرونه ، دلويولويو تالاوونو غوندې لګنونه او له خپله ځايه نهٔ خوځېدونکې درانده ديګونه . ای ال داوده! عمل وکړئ دشکر په کړنلاره. زمايه بندګانو کښې ډېرخې لږشکر ويستونکې دي

يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَ تَمَاثِيْلَ وَ جِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَ قُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ؕ اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا ؕ وَ قَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ (۱۳)

بيا کله چې پرسليمان (ع) باندې مونږد مرګ فيصله نافذه کړه نو پېريانو ته دهغه دمرګ معلومات ورکوونکی کوم شی له هغه چينجي نه پرته نه و چې دهغه همسايې خوړله . په دې ډول کله چې سليمان (ع) راولوېده نو پېريانو ته داخبره څرګنده شوه چې که دوی په غيبو باندې پوهېدونکې وای نو ددغه ذلت په عذاب کښې به اخته نه ووپاتې شوي .

فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ۚ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِى الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ (۱۴ؕ)

دسبادخلکو لپاره دهغوپه هماغه خپل استوګنځي کښې يوه نښانه موجوده وه دوه باغونه ښي اوکيڼ لوري ته ،دخپل رب درکړې روزي خورئ او دهغه شکر ادا کوئ ، هېواد دی غوره او سوتره او پروردګار دی بخښونکی .

لَقَدْ كَانَ لِسَبَاٍ فِىْ مَسْكَنِهِمْ اٰيَةٌ ۚ جَنَّتٰنِ عَنْ يَّمِيْنٍ وَّ شِمَالٍ ؕ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَ اشْكُرُوْا لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَّ رَبٌّ غَفُوْرٌ (۱۵)

مګر هغوی مخ واړوه . په پای کښې مونږپرهغو بند نړوونکی سېلاب ولېږه ، او دهغو دمخکېنېو دوو باغونو په ځای مو دوه نور باغونه ورکړل چې په هغو کښې ترخې کرغېړنې مېوې او دغزوونې وې اويوڅه لږغوندې بېرې .

فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَ بَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَىْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّ اَثْلٍ وَّ شَىْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ (۱۶)

داوه دهغو دکفربدله چې مونږ.هغوته ورکړه اوله ناشکره انسانانو پرته مونږ.دغسې بدله بل چاته نه ورکوو

ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ وَ هَلْ نُجٰزِىْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ (۱۷)

او مونږدهغو او هغو سيموتر مينځ چې مونږ.هغوته برکت په برخه کړی و ، ښکاره کلي مېشته کړي وو اوپه هغو کښې مودسفر مسافې له يوې اندازې سره تاکلې وې په دغولاروکښې شپه ورځ وګرځئ راوګرځئ له پوره امن سره .

وَ جَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَ بَيْنَ الْقُرَى الَّتِىْ بٰرَكْنَا فِيْهَا قُرًى ظَاهِرَةً وَّ قَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِىَ وَ اَيَّامًا اٰمِنِيْنَ (۱۸)

مګر هغوی وويل (( ای زمونږربه ، زمونږدسفر مسافې اوږدې کړه)) هغوی پرخپل ځان پخپله ظلم وکړ . په پای کښې مونږ.هغوی افسانه وګرځول او هغوی موبېخې تارپه تار کړل .په يقيني ډول په دې کښې دهر هغه چا لپاره نښانې دي چې ډېرزغمونکی اوشکر کوونکی وي .

فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا وَ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَ مَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ (۱۹)

دهغوپه باب ابليس خپل ګومان صحيح ومونده او هغوی دهماغه پېروي وکړه ، پرته له يوې کوچنۍ ډلې نه چې مومنان وو .

وَ لَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ (۲۰)

ابلیس پر هغوڅه برلاسي نه درلودله مګر څه چې وشول هغه له دې کبله وشول چې مونږدالیدل غوښتل چې څوك داخرت منونکی دی او څوك دهغه له پلوه په شك کښې غورځېدلی دی ستارب پر هر څه باندې څارونکی ساتونکی دی .

وَ مَا كَانَ لَهٗ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ اِلَّا لِنَعۡلَمَ مَنۡ يُّؤۡمِنُ بِالۡاٰخِرَةِ مِمَّنۡ هُوَ مِنۡهَا فِىۡ شَكٍّ ؕ وَ رَبُّكَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ حَفِيۡظٌ (۲۱)

دغومشرکانوته ) ووایه چی خپل هغه معبودان وبلئ ! ای پیغمبره ) چې تاسې هغوې له الله نه پرته خپل معبودان انګېرئ . هغوي نه په اسمانونوکښې دیوبخري په اندازه دکوم شي څښتنان دي نه په ځمکه کښې. هغوی د اسمان او ځمکې په ملکیت کښې برخه وال هم نه دي . له هغونه هېڅ یو دالله مرستندوی هم نه دی

قُلِ ادۡعُوا الَّذِيۡنَ زَعَمۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ۚ لَا يَمۡلِكُوۡنَ مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ فِى السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِى الۡاَرۡضِ وَ مَا لَهُمۡ فِيۡهِمَا مِنۡ شِرۡكٍ وَّ مَا لَهٗ مِنۡهُمۡ مِّنۡ ظَهِيۡرٍ (۲۲)

او دالله په حضور کښې کوم شفاعت هم دچا لپاره ګټور کېدای نشي پرته له هغه چاچې دهغه لپاره الله دشفاعت اجازه ورکړې وی. آن تردې پورې چې کله دخلکوله زړونونه وارخطائي ایسته شي نو هغوی به ( له سپارښت کوونکونه ) پوښتنه وکړي چې ستاسې رب څه ځواب درکړ. هغوي به ووایي چې سم ځواب راکړ شوی دی او هغه لوړ او لوی دی .

وَ لَا تَنۡفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنۡدَهٗۤ اِلَّا لِمَنۡ اَذِنَ لَهٗ ؕ حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنۡ قُلُوۡبِهِمۡ قَالُوۡا مَاذَا ۙ قَالَ رَبُّكُمۡ ؕ قَالُوا الۡحَقَّ ۚ وَ هُوَ الۡعَلِىُّ الۡكَبِيۡرُ (۲۳)

ای پیغمبره !) له دوي نه پوښتنه وکړه (( څوك تاسې ته له الله ، اوس )) :اسمانونو او ځمکې نه روزي درکوي ؟) ووایه ارومرو له مونږاو تاسې نه یولوری پرسمه لاره دی یاپه ښکاره . (( ګمراهی کښې لوېدلی دی

قُلۡ مَنۡ يَّرۡزُقُكُمۡ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ وَ اِنَّاۤ اَوۡ اِيَّاكُمۡ لَعَلٰى هُدًى اَوۡ فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ (۲۴)

دوي ته ووایه (( کوم قصور چې مونږکړی وي دهغه څه پوښتنه به له تاسې نه نه وي او څه چې تاسې کوئ دهغه به له مونږنه پوښتنه ونشي )).

قُلۡ لَّا تُسۡــَٔلُوۡنَ عَمَّاۤ اَجۡرَمۡنَا وَ لَا نُسۡــَٔلُ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ (۲۵)

ووایه (( زمونږرب به مونږراغونډ کړي ، بیا به زمونږپه مینځ کښې سمه صحیح پرېکړه وکړي . هغه داسې قوي حاکم دی چې په هر څه باندې پوهیږي )) .

قُلۡ يَجۡمَعُ بَيۡنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفۡتَحُ بَيۡنَنَا بِالۡحَقِّ ؕ وَ هُوَ الۡفَتَّاحُ الۡعَلِيۡمُ (۲۶)

دوي ته ووایه (( ماته لږې راڅرګندې کړئ چې هغه کومې هستی دي چې تاسې هغوي له هغه سره شریکې کړې دي )) . هېڅکله نه ، ځواکمن اود حکمت خاوند خو فقط هماغه الله دی .

قُلۡ اَرُوۡنِىَ الَّذِيۡنَ اَلۡحَقۡتُمۡ بِهٖ شُرَكَآءَ كَلَّا ؕ بَلۡ هُوَ اللّٰهُ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ (۲۷)

او ( اې پیغمبره ! ) مونږته دټولو انسانانو لپاره زېری ورکوونکی او وېروونکی لیږلی یې ، خوزیاتره خلك نه پوهېږي.

وَ مَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيۡرًا وَّ نَذِيۡرًا وَّ لٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۲۸)

دوي تاته وایي چې هغه ( دقیامت ) وعده به کله ترسره شي که تاسې رښتوني یئ ؟

وَ يَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۲۹)

ووایه ستاسې لپاره دیوې داسې ورځې نېټه ټاکل شوې ده چې دهغې په راتګ کښې نه تاسې پوره یوساعت تاخیر راوستلای شئ ، اونه پوره یوساعت مخکښې هغه راوستلای شئ .

قُلۡ لَّكُمۡ مِّيۡعَادُ يَوۡمٍ لَّا تَسۡتَاۡخِرُوۡنَ عَنۡهُ سَاعَةً وَّ لَا تَسۡتَقۡدِمُوۡنَ (۳۰)

دغه کافران وایي چي (( مونږ به هیڅکله داقرآن ونه منو او نه به له ده مخکېنی راغلی کوم کتاب ومنو )) کاشکي ته ددوی حال په هغه وخت کښي ووینې چي کله دغه ظالمان دخپل رب په حضور کښي ولاړ وي . په هغه وخت کښي به دوی یوپر بل باندي پړه اچوي . کوم کسان چي په دنیا کښي ترفشار لاندي نیول شوي وو هغوي به تکبر غوره کوونکو ته ووایي چي ((که تاسي نه وای نو مونږ به مومنان شوي وو )).

وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَ لَا بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ وَ لَوْ تَرٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ مَوْقُوْفُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۖۚ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضِ اِۨلْقَوْلَ ۚ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لَوْ لَاۤ اَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ (۳۱)

هغه تکبر کوونکي به د غومستضعفینو ته ځواب ورکړي (( ایا مونږتاسي له هغه هدایت نه منع کړي وئ چي تاسي ته راغلی و ؟ نه ، بلکی تاسي پخپله مجرمان وئ ))

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْۤا اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ (۳۲)

هغه مستضعف خلك به دغو تکبر کوونکوته ووایي (( نه ، بلکی دشپي اوورځي مکاري وه چي تاسي مونږته ویل چي مونږدې له الله نه منکر شو او نور دهغه شریکان وانګېرو )) . په پای کښي چي کله دغه خلك عذاب وګوري . نو پخپلو زړونو کښي به پښېمانه شي او مونږبه د دغو منکرانو په غاړو کښي طوقونه واچوو . ایا خلکو ته له دې نه پرته چي څنګه یې عملونه ووهماغسي جزا وموميِ بله بدله ورکول کېدا شي؟

وَ قَالَ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ وَ النَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَاۤ اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ وَ نَجْعَلَ لَهٗۤ اَنْدَادًا ؕ وَ اَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ؕ وَ جَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْۤ اَعْنَاقِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۳۳)

هیڅکله داسي نه دي شوي چي مونږکومي سیمي ته یو خبر داروونکی لېږلی وي او دهغې سیمي بډایانو دانه وي ویلي چي کوم پیغام چي تاسي راوړی دی مونږ هغه نه منو .

وَ مَاۤ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَاۤ ۙ اِنَّا بِمَاۤ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ (۳۴)

هغوي تل همدا ویل چي مونږله تاسي نه زیات مالونه اولادونه لرواو مونږ هیڅکله سزا موندونکي نه یو .

وَ قَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّ اَوْلَادًا ۙ وَّ مَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ (۳۵)

اي پیغمبره ! دوی ته ووایه زما رب چي چاته وغواړي پراخه روزي ورکوي او چاته چي یي خوښه شي سرونوك یې ورکوي خو زیاتره خلك ددې په حقیقت نه پوهېږي .

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ (۳۶)

داستاسي شتمني او ستاسي اولادونه هغه څه نه دي چي تاسي مونږته نږدې کوي . هو ، خوڅوك چي ایمان راوړي او ښه عمل وکړي ، همدغه خلك دي چي دهغو لپاره دهغو دعمل دوچند مکافات دی ، او هغوی به په دنګواو هسکومانیوکښي په ډاډېنه اوسېږي .

وَ مَاۤ اَمْوَالُكُمْ وَ لَاۤ اَوْلَادُكُمْ بِالَّتِيْ تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفٰۤى اِلَّا مَنْ اٰمَنَ وَ عَمِلَ صَالِحًا ۫ فَاُولٰٓىِٕكَ لَهُمْ جَزَآءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوْا وَ هُمْ فِي الْغُرُفٰتِ اٰمِنُوْنَ (۳۷)

پاتي شول هغه خلك چي زمونږدایتونو دمغلوبولو لپاره مندې ترړې کوي نو هغوی به په عذاب کښي حاضر کړی شوی اخته وي .

وَ الَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓىِٕكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ (۳۸)

اي پیغمبره ! دوی ته ووایه (( زما رب چي له خپلو بندګانونه چاته یي اراده وشي پراخه روزي ورکوي اوچاته چي وغواړي سرونوك یې ورکوي . څه چي تاسي لګوئ دهغه په ځای هماغه الله تاسي ته نور درکوي ، هغه ترټولو روزي ورکوونکوښه روزي ورکوونکی دی .

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَ يَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَ مَاۤ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَ هُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ (۳۹)

په کومه ورځ چي هغه ټول انسانان راغونډ کړي بیا به له پرښتونه پوښتنه وکړي ((ایا دغوخلکو ستاسي بندګی کوله ؟)).

وَ يَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ يَقُوْلُ لِلْمَلٰٓىِٕكَةِ اَهٰۤؤُلَآءِ اِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ (۴۰)

نو هغوی به ځواب ووايي چې (( پاك دی ستا ذات ، زمونږ ارتباط خوله تاسره دی نه له دوی سره . په اصل کښې دوی زمونږنه! بلکې دپيريانو عبادت يې کاوه ، له دوی نه زياترو په هماغو باندې ايمان راوړی و )).

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ اَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ الْجِنَّ ۚ اَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُّؤْمِنُوْنَ (۴۱)

په هغه ورځ به مونږووايو چې ) نن له تاسي نه هيڅوك نه چاته ) اوظالمانوته به مونږووايو چې اوس . ګټه رسولای شي نه زيان . دهغه دوزخ خوند وڅکئ چې تاسي هغه دروغ ګڼله

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَّ لَا ضَرًّا ؕ وَ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ (۴۲)

دوی ته چې کله زمونږ څرګندروښانه ايتونه اورول کيږي نو دوی وايي چې (( دغه سړی خو فقط داغواړي چې تاسي له هغو معبودانو نه واوړي چې ستاسي پلارنيکه د هغو عبادت کاوه )) . او وايي چې (( دا (قرآن) محضې له ځانه جوړ شوي دروغ دي )) . دغوکافرانو ته چې کله حق راغی نو دوی وويل چې (( داخوښکاره کوډې دي )).

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَاۤ اِلَّا رَجُلٌ يُّرِيْدُ اَنْ يَّصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُكُمْ ۚ وَ قَالُوْا مَا هٰذَاۤ اِلَّاۤ اِفْكٌ مُّفْتَرًى ؕ وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ (۴۳)

په داسي حال کښې چې نه مونږدغو خلکو ته مخکښې کوم کتاب ورکړی وْ چې دوی هغه لوستی وي اونه موله تانه مخکښې دوی ته کوم تنبيه کوونکی ليږلی وْ .

وَ مَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا وَ مَاۤ اَرْسَلْنَاۤ اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ ؕ(۴۴)

له دوی نه مخکښې تيرو شويو خلکود دروغو نسبتونه کړی دي . څه چې مونږ هغوته ورکړي وودهغې لسمې برخې ته هم دوی نه دي رسيدلي . مګر کله چې هغوی زما پيغمبران درواغجن وګڼل نو وګوره چې زما سزا څنګه سخته وه .

وَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۙ وَ مَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ فَكَذَّبُوْا رُسُلِيْ ٙ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ (۴۵)

ای پيغمبره ! دوی ته ووايه چې زه تاسي ته فقط ديوې خبرې نصيحت کوم .دخدای لپاره تاسي يويواو دوه دوه يو ځای شئ خپل ماغزه وجنګوئ او فکر وکړئ ستاسي په ملګري کښې کومه داسي خبره ده چې دليونتوب وي ؟ هغه خود يو سخت عذاب له راتګ نه مخکښې ستاسي متوجه کوونکی دی.

قُلْ اِنَّمَاۤ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ ۚ اَنْ تَقُوْمُوْا لِلّٰهِ مَثْنٰى وَ فُرَادٰى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا ٙ مَا بِصَاحِبِكُمْ مِّنْ جِنَّةٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ (۴۶)

دوی ته ووايه ((که ماله تاسي نه کوم اجر غوښتی وي نو هغه دي همدا تاسي ته مبارك وی . زما اجر خو پرالله دی او هغه په هر څه باندې شاهد دی )) .

قُلْ مَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۚ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ (۴۷)

دوی ته ووايه (( زما رب ( ماته) حق راليږي او هغه په ټولو پټو حقيقتونو باندې پوهيدونکی دی ))

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَقْذِفُ بِالْحَقِّ ۚ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ (۴۸)

ووايه : حق راغلی دی باطل نه کوم شی نوی پيدا کولی شي نه يې بيا له سره ژوندی را پاځولی شي.

قُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَ مَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَ مَا يُعِيْدُ (۴۹)

ووايه (( که زه ګمراه شوی اوسم نوزما دګمراهی وبال زما پرغاړه دی ، اوکه زه پرسمه لاره يم نود هغې وحی په اساس ده چې زمارب يې ماته راليږي ، هغه هرڅه اوري او خورانږدې دی)).

قُلْ اِنْ ضَلَلْتُ فَاِنَّمَاۤ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِيْ ۚ وَ اِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوْحِيْۤ اِلَيَّ رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ (۵۰)

کاشکي ته دوی په هغه وخت کښې ووينې چې کله دوی وارخطا شوي وي او هيچيرته ځان نشي ژغورلای،بلکې له ډيرنږدې ځای څخه ونيول شي

وَ لَوْ تَرٰۤى اِذْ فَزِعُوْا فَلَا فَوْتَ وَ اُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ (۵۱)

په هغه وخت کښې به دوی ووايي چې مونږ پر الله ايمان راوړ . په داسې حال کښې چې اوس دوی ته ډېرليرې شوی شی کله په لاس ورتلای شي .

وَّ قَالُوۡۤا اٰمَنَّا بِہٖ ۚ وَ اَنّٰی لَہُمُ التَّنَاوُشُ مِنۡ مَّکَانٍۭ بَعِیۡدٍ ﴿ۚۖ۵۲﴾

له دې نه مخکښې دوی پرې کافر شوي وو اوبې له تحقيق څخه يې دليرې ليرې نه خبرې پېوند ولې .

وَّ قَدۡ کَفَرُوۡا بِہٖ مِنۡ قَبۡلُ ۚ وَ یَقۡذِفُوۡنَ بِالۡغَیۡبِ مِنۡ مَّکَانٍۭ بَعِیۡدٍ ﴿۵۳﴾

په هغه وخت کښې چې دوی دکوم شي هيله کوونکي وي ددوی او د هغه تر منځ په پردې درولو به دوې له هغه نه محروم کړای شي لکه څنګه چې د دوی مخکيني هم مسلکان محروم کړای شوي وو . دوی په ډېر ګمراه کوونکي شك کښې لوېدلي وو .

وَ حِیۡلَ بَیۡنَہُمۡ وَ بَیۡنَ مَا یَشۡتَہُوۡنَ کَمَا فُعِلَ بِاَشۡیَاعِہِمۡ مِّنۡ قَبۡلُ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا فِیۡ شَکٍّ مُّرِیۡبٍ ﴿۵۴﴾

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ثنا ستاينه دالله لپاره ده چې داسمانونو اوځمکې جوړوونکی او دپيغام رسوونکو پرښتو ټا کونکی دی ، ( داسې پرښتې ) چې دهغو دوه دوه او درې درې او څلور څلور وز رونه دې دهغه چې څنګه خوښه وي دخپل مخلوق په جوړښت کښې زيات والی راولي . په يقيني ډول الله په هر څه باندې قادر دی .

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰہِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ جَاعِلِ الۡمَلٰٓئِکَۃِ رُسُلًا اُولِیۡۤ اَجۡنِحَۃٍ مَّثۡنٰی وَ ثُلٰثَ وَ رُبٰعَ ؕ یَزِیۡدُ فِی الۡخَلۡقِ مَا یَشَآءُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ ﴿۱﴾

الله چې دهر رحمت دروازه دخلکو لپاره پرانيزي څوك دهغې بندوونکی نشته او کومه چې هغه وتړي له الله نه وروسته بيا کوم بل څوك دهغې پرانستونکی نشته . هغه څواکمن او د حکمت خاوند دی .

مَا یَفۡتَحِ اللّٰہُ لِلنَّاسِ مِنۡ رَّحۡمَۃٍ فَلَا مُمۡسِکَ لَہَا ۚ وَ مَا یُمۡسِکۡ ۙ فَلَا مُرۡسِلَ لَہٗ مِنۡۢ بَعۡدِہٖ ؕ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۲﴾

ای خلکو ! پرتاسې چې دالله کومې پېرزوينې دي هغه په ياد ولرئ ايا له الله نه پرته کوم بل هستوونکی هم شته چې تاسې ته له اسمان او ځمکې نه روزي درکړي ؟ له هغه پرته بل هيڅ معبود نشته تاسې له کوم لوري غولول کېږئ .

یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ اذۡکُرُوۡا نِعۡمَتَ اللّٰہِ عَلَیۡکُمۡ ؕ ہَلۡ مِنۡ خَالِقٍ غَیۡرُ اللّٰہِ یَرۡزُقُکُمۡ مِّنَ السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ ۫ۖ فَاَنّٰی تُؤۡفَکُوۡنَ ﴿۳﴾

اوس که ( ای پيغمبره !) دوی تا درواغجن ګڼي ( نو داکومه نوې خبره نده)له تانه مخکښې هم ډېر پيغمبران درواغجن ګڼل شويدي ، او ټولې چارې په پای کښې دالله لوري ته ورګرځېدونکي دي .

وَ اِنۡ یُّکَذِّبُوۡکَ فَقَدۡ کُذِّبَتۡ رُسُلٌ مِّنۡ قَبۡلِکَ ؕ وَ اِلَی اللّٰہِ تُرۡجَعُ الۡاُمُوۡرُ ﴿۴﴾

اې خلکو ! دالله وعده په باوري ډول برحقه ده ، له دې امله د دنيا ژوند دې تاسې ونه غولوي او نه دې هغه لوی غولوونکی (شيطان) تاسې دالله په باب وغولوي .

یٰۤاَیُّہَا النَّاسُ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰہِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّکُمُ الۡحَیٰوۃُ الدُّنۡیَا ٝ وَ لَا یَغُرَّنَّکُمۡ بِاللّٰہِ الۡغَرُوۡرُ ﴿۵﴾

په حقيقت کښې شيطان ستاسې دښمن دی نوتاسې هم هغه خپل دښمن وګڼئ . هغه خپل پيروان خپلې لارې ته د دې لپاره رابولي چې هغوی د دوزخيانوله جملې نه شي .

اِنَّ الشَّیۡطٰنَ لَکُمۡ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوۡہُ عَدُوًّا ؕ اِنَّمَا یَدۡعُوۡا حِزۡبَہٗ لِیَکُوۡنُوۡا مِنۡ اَصۡحٰبِ السَّعِیۡرِ ؕ﴿۶﴾

کوم کسان چې کافر شوي دي دهغو لپاره سخت عذاب دی او کوم کسان چې ايمان يې راوړي اوښه عملونه يې کړي دي دهغو لپاره مغفرت اولوی اجر دی.

اَلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا لَہُمۡ عَذَابٌ شَدِیۡدٌ ۬ؕ وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَہُمۡ مَّغۡفِرَۃٌ وَّ اَجۡرٌ کَبِیۡرٌ ﴿۷﴾

ښه نو څه مقام دی دهغه چادګمراهی ) چې دهغه لپاره دهغه ناوړه ) عمل ښايسته کړی شوی وي او هغه يې ښه ګڼي ؟ حقيقت دادی چې دالله چاته خوښه شي په ګمراهی کښې يې اچوي اوچاته يې چې خوښه شي سمه لاره ورښيي . نو( ای پيغمبره ! ) ته خپل ځان ددغوخلکو په خاطر په غم او افسوس کښې مه ويلې کوه . څه چې . دوې کوي الله ورباندې ښه پوهيږي

اَفَمَنۡ زُیِّنَ لَہٗ سُوۡٓءُ عَمَلِہٖ فَرَاٰہُ حَسَنًا ؕ فَاِنَّ اللّٰہَ یُضِلُّ مَنۡ یَّشَآءُ وَ یَہۡدِیۡ مَنۡ یَّشَآءُ ۫ۖ فَلَا تَذۡہَبۡ نَفۡسُکَ عَلَیۡہِمۡ حَسَرٰتٍ ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلِیۡمٌۢ بِمَا یَصۡنَعُوۡنَ ﴿۸﴾

هماغه الله دی چې بادونه لېږي ، بيا هغه ورېځې راپورته کوي بيا مونږ هغه ديوې شاړې سيمې خواته بيايو او هغه ځمکه پرې راژوندۍ کووچې مړه پرته وه . دمړو شويوانسانانو ژوندي کېدل به هم په همدغه شان وي .

وَ اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَسُقْنٰهُ اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَحْيَيْنَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ (۹)

څوك چې عزت غواړي هغه بايد وپوهېږي چې عزت ټول د الله دی . دهغه حضورته چې څه شی پاس ورخېږي هغه صرف سپېڅلي ويناده او ښه عمل هغه وينا پورته خېږوي . پاتې شول هغه کسان چې ناوړه دسيسې جوړوي دهغو لپاره سخت عذاب دی او دهغو مکر پخپله له مينځه تلونکی دی .

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا ؕ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَ الْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ ؕ وَ الَّذِيْنَ يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ وَ مَكْرُ اُولٰٓئِكَ هُوَ يَبُوْرُ (۱۰)

الله تاسې له خاورې نه پيدا کړئ ، بياله نطفې نه ، بيايې ستاسې جوړې پيدا کړې ( يعنې نر او ښځه ). هېڅ ښځه نه حامله کېږي او نه ماشوم زېږوي مګر داهر څه د الله په علم کښې دي . هېڅ عمر موندونکی عمر نه مومي او نه دچاپه عمر کښې څه کموالی راځي مګر داهر څه په يوکتاب کښې ليکل شويدي . دالله لپاره داډېر اسانه کار دی .

وَ اللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ اَزْوَاجًا ؕ وَ مَا تَحْمِلُ مِنْ اُنْثٰى وَ لَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلْمِهٖ ؕ وَ مَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّ لَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖٓ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ (۱۱)

او د دواړو سيندونو او به يوشانته ندي . يوډول يې خوږې او تنده ماتوونکې دي ، ښې څښل کېږي ، اوبل ډول يې سختې ترخې مالګينې دي چې نه شي څښل کېداى . خوله دواړو نه تاسې تازه غوښه په لاس راوړئ ، داغوستلو لپاره دګاڼې وسايل ترېنه راباسئ او په همدې اوبوکښې تاسې ګورئ چې بېړۍ دهغو سينه څيروي وړاندې ځي ترڅو چې تاسې د الله فضل ولټوئ او دهغه شکر وېستونکي شئ .

وَ مَا يَسْتَوِي الْبَحْرٰنِ ۖ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ شَرَابُهٗ وَ هٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ؕ وَ مِنْ كُلٍّ تَاْكُلُوْنَ لَحْمًا طَرِيًّا وَّ تَسْتَخْرِجُوْنَ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَ تَرَى الْفُلْكَ فِيْهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ (۱۲)

هغه په ورځ کښې شپه او په شپه کښې ورځ زېږېدلې راولي . لمر او سپوږمۍ يې ايل کړيدي . دا هر څه به ترېوې ټاکلې نيټې پورې چلېږي هماغه الله ( چې دهغه په لاس کښې داټولې چارې دي ) ستاسې رب دی باچاهي دهماغه ده . له هغه پرته چې تاسې نور بولئ هغوی ديوخلکي څښتنان هم ندي .

يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَ يُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۙ وَ سَخَّرَ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ؕ وَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ (۱۳)

که هغوی وبولئ نو هغوی ستاسې دعاوې نشي او رېدلی او که يې واورې نو تاسې ته يې څه ځواب نشي درکولای . اود قيامت په ورځ به هغوی ستاسې له شرك نه منکر شي . دحال له حقيقت نه داسې کوم صحيح خبر تاته له يو با خبره ذات نه پرته بل څوك نشي درکولای .

اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ ۚ وَ لَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ ؕ وَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُوْنَ بِشِرْكِكُمْ ؕ وَ لَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيْرٍ (۱۴)

ای خلکو ! همدا تاسې الله ته اړيئ او الله خوبې نيازه خود پخپله ستايل شويدی .

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَ اللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ (۱۵)

که هغه وغواړي نو تاسې به ايسته کړي او کوم نوی نسل به ستاسې په ځای راولي ،

اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَ يَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ (۱۶)

دغسې کار کول د الله لپاره هېڅ ګران ندي.

وَ مَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ (۱۷)

هيڅ كوم پېټى اخيستونكى به دكوم بل چاپېټى وانخلي اوكه كوم دروند بارشوى نفس دخپل پېټي پورته كولو لپاره بلنه وركړي نو دهغه دپېټي ديوې وړې غوندې برخې داوچتولو لپاره به هم څوك رانشي كه هغه يې ډېر نږدې خپلوان وي هم . ( اى پيغمبره !) ته يوازې هماغه خلك تنبيه كولى شې چې ناليدلي له خپل رب نه وېرېږي او لمونځ قائموي . هر څوك چې سپېڅلتيا غوره كوي دخپلې ښېګڼې لپاره يې كوي . او وركرځېدل دټولو دهماغه الله خواته دي .

وَ لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ وَ اِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ اِلٰى حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَّ لَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ؕ اِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَ مَنْ تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ؕ وَ اِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ (۱۸)

ړوند او ليدونكى برابرندي .

وَ مَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَ الْبَصِيْرُ (۱۹)

نه تيارې او رڼا يوشانته دي .

وَ لَا الظُّلُمٰتُ وَ لَا النُّوْرُ (۲۰)

نه يخ سيورى او تود لمر يوشانته دي

وَ لَا الظِّلُّ وَ لَا الْحَرُوْرُ (۲۱)

او نه ژوندي او مړي سره مساوي دي . دالله چې چاته خوښه شي ور اوروي يې ، خو ( اې پيغمبره !) ته هغه خلك نشې اورولى چې په هديروكښې ښخ شويدي .

وَ مَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ وَ لَا الْاَمْوَاتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُسْمِعُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَ مَا اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ (۲۲)

ته خو فقط يو خبرداروونكى يې .

اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِيْرٌ (۲۳)

مونږته له حق سره لېږلى يې زيرى وركوونكى او وېروونكى. او هيڅ كوم امت داسې ندى تېر شوى چې هغه ته كوم تنبيه كوونكى نه وي راغلى .

اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا ؕ وَ اِنْ مِّنْ اُمَّةٍ اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ (۲۴)

اوس كه دغه خلك تا دروغجن ګڼي نوله دوى نه مخكښې تېر شويو خلكو هم د دروغو نسبتونه كړيدي . هغو ته دهغو پيغمبران له څرګندو دليلونو او صحيفو او روښانه هداياتو وركوونكي كتاب سره راغلي وو .

وَ اِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ وَ بِالزُّبُرِ وَ بِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ (۲۵)

بيا كومو خلكو چې ونه منل ماهغوى ونيول او وګوره چې زما سزا څومره سخته وه .

ثُمَّ اَخَذْتُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ (۲۶)

اياته نه وينې چې الله له اسمانه اوبه اورولي او بيا دهغو په وسيله مونږراز راز ميوې راباسو چې مختلف رنګونه يې وي . په غرونوكښې هم سپينې ، سرې اوتكې تورې ليكې موندل كېږي چې بېلابېل رنګونه يې وي.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهَا ؕ وَ مِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ وَّ حُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا وَ غَرَابِيْبُ سُوْدٌ (۲۷)

او په همدې ډول دانسانانو او ځناور و او څارويو رنګونه هم مختلف دي . حقيقت دادى چې دالله له بندګانو نه يوازې عالمان له هغه نه وېرېږي. بېشكه الله برلاسى او بښونكى دى .

وَ مِنَ النَّاسِ وَ الدَّوَآبِّ وَ الْاَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ كَذٰلِكَ ؕ اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ غَفُوْرٌ (۲۸)

كوم كسان چې دالله كتاب لولي او لمونځ قائموي او څه چې مونږ هغوته روزي وركړېده له هغې نه په ښكاره او پټه لګښت كوي ، په يقينې ډول هغوى د داسې يوې سوداګرۍ هيله مند دي چې په هغې كښې به هېڅكله زيان نه وي .

اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ (۲۹)

پدغې سودا ګرۍ کښې هغوی خپل هر څه د دې لپاره داوکړيدي) ) ترڅو چې الله دهغو اجر په پوره توګه هغوی ته ورکړي اوله خپلې پېرزويني څخه لازياته ورپه برخه کړي . بيشکه الله بخشش (کوونکی او قدر دان دی.

لِيُوَفِّيَهُمْ اُجُوْرَهُمْ وَ يَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ (٣٠)

ای پيغمبره !) کوم کتاب چې مونږتاته دوحی په وسيله درلېږلی ) دی همغه حق دی دهغو کتابو تصديقوونکی دی چې له ده نه مخکې راغلي وو. بېشکه الله دخپلو بندګانو له حاله باخبراو په هرشي باندې نظر لرونکی دی.

وَ الَّذِيْۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهٖ لَخَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ (٣١)

بيا مو هغه کسان ددې کتاب وارثان کړل چې مونږ هغوی (د دغه ميراث ورلو لپاره ). له خپلو بندګانو نه غوره کړل . اوس نوله هغونه څوك پرخپل نفس ظلم کوونکی دي او څوك ميانه رودي ، او څوك دالله په اذن سره په نيکيو کې وړاندې تلونکي دي ، همدا ډېر لوی فضل دی .

ثُمَّ اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ وَ مِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ وَ مِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِالْخَيْرٰتِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ (٣٢ؕ)

دتل ترتله هستوګنې جنتونه دي چې هغوته به دوی ورننوځي . هلته به دوی د سرو زرو په بنګړيو او مرغلرو سره سينګار کړای شي ، هلته به د دوی جامې دور ښمو وي .

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّ لُؤْلُؤًا ۚ وَ لِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ (٣٣)

او دوی به ووايي چې شکر دی دهغه خدای چې له مونږنه يې غم ايسته کړ ، په يقيني ډول زمونږرب ښنونکی او قدردان دی.

وَ قَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْۤ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ؕ اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرُ ۙ (٣٤)

هغه ذات چې مونږيې پخپلې لورينې سره په ابدي استوګنځي کښې ميشته کړو، اوس دلته نه پر مونږکړاو راځي او نه راته ستوماني رسېږي

اۨلَّذِيْۤ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا نَصَبٌ وَّ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا لُغُوْبٌ (٣٥)

او کوم کسان چې کافر شويدي دهغو لپاره د دوزخ اور دی . نه به مره کېږي چې داستان يې پای ته ورسېږي او نه به دهغوی لپاره د دوزخ په عذاب کې څه کموالی راوستل شي . پدې ډول مونږ هر هغه چاته سزا ورکوو چې کفر کوونکی وي ،

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا وَ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ كُلَّ كَفُوْرٍ (٣٦ۚ)

هغوی به هلته فرياد واويلاوکړي چې ((ای زمونږربه ! مونږله دې ځايه وباسه ترڅوچې مونږښه عمل وکړو ، نه هغسې عملونه چې پخوا موکول )) . ( ځواب به ورکړل شی ) (( ايا مونږتاسي ته دومره عمرنه و درکړی چې که چاپه هغه کښې عبرت اخيستل غوښتلی نو عبرت يې اخيستلای شو ؟ اوتاسې ته تنبيه کوونکی هم درغلی و . نواوس خوند وڅکئ دلته دظالمانو کوم مرستندوې نشته )).

وَ هُمْ يَصْطَرِخُوْنَ فِيْهَا ۚ رَبَّنَاۤ اَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَ لَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَ جَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ (٣٧)

بېشکه الله داسمانونو او ځمکې له هرپټ شي نه خبردی ، هغه خوآن د سينو په پټو رازونو پوهېږي .

اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (٣٨)

هماغه ذات دی چې تاسې يې په ځمکه کښې خلفاء ګرځولي ئي . اوس چې هرڅوك کافر کېږي دهغه دکفر وبال پرهمغه دی ، او کافرانوته دهغو کفر له دې پرته بل هېڅ پرمختګ نشي ورکولای چې دهغو درب غضب پرهغو لازيات په تاو راځي . دکافرانو لپاره دزيان له زياتېدو پرته نورڅه پرمختګ نشته .

هُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْاَرْضِ ؕ فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهٗ ؕ وَ لَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ كُفْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ اِلَّا مَقْتًا ۚ وَ لَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ كُفْرُهُمْ اِلَّا خَسَارًا (٣٩)

قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ شُرَكَآءَكُمُ الَّذِيۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ اَرُوۡنِىۡ مَاذَا خَلَقُوۡا مِنَ الۡاَرۡضِ اَمۡ لَهُمۡ شِرۡكٌ فِى السَّمٰوٰتِ ۚ اَمۡ اٰتَيۡنٰهُمۡ كِتٰبًا فَهُمۡ عَلٰى بَيِّنَتٍ مِّنۡهُ ۚ بَلۡ اِنۡ يَّعِدُ الظّٰلِمُوۡنَ بَعۡضُهُمۡ بَعۡضًا اِلَّا غُرُوۡرًا (۴۰)

ای پیغمبره !) دوی ته ووایه (( ایا تاسي کله خپل هغه شریکان ) لیدلي دي چي له خدایه پرته یي بولئ ؟ ماته راوښيئ ، هغوی په ځمکه کښي څه پيدا کړيدي ؟ یا په اسمانونوکښي د هغوڅه ونډه ده؟ که دوی ځواب نشي ويلی نوله دوی نه پوښتنه وکړه ) ایا ) (( مونږدوی ته کوم لیك ور کړیدی چي دهغه پراساس دوی ( دخپل شرك لپاره )کوم څرګند سند و ښيي ؟ نه بلکي دغه ظالمان یوبل ته . په دروغو دوکي ورکوي

اِنَّ اللّٰهَ يُمۡسِكُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ اَنۡ تَزُوۡلَا ۚ۬ وَ لَئِنۡ زَالَتَاۤ اِنۡ اَمۡسَكَهُمَا مِنۡ اَحَدٍ مِّنۡۢ بَعۡدِهٖ ؕ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيۡمًا غَفُوۡرًا (۴۱)

حقیقت دادی چي یوازې همدا الله دی چي اسمانونه او ځمکه يي له مينځه تلو نه ساتلي دي ، اوکه هغه بې ځايه شي نوله الله نه وروسته کوم بل څوك دهغو راټينګوونکی نشته . بېشکه الله ډېر زغمونکی اوبښونکی دی .

وَ اَقۡسَمُوۡا بِاللّٰهِ جَهۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ لَئِنۡ جَآءَهُمۡ نَذِيۡرٌ لَّيَكُوۡنُنَّ اَهۡدٰى مِنۡ اِحۡدَى الۡاُمَمِ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمۡ نَذِيۡرٌ مَّا زَادَهُمۡ اِلَّا نُفُوۡرًا ۙ (۴۲)

دوی پر الله دکلکوکلکو قسمونوپه خوړلو سره وايي چي که دوی ته کوم تنبيه کوونکی راغلی وای نو دوی به دنړی له بل هر قوم نه زيات پرسمه لاره وو. مګر کله چي دوی ته تنبيه کوونکی راغی نود هغه راتلوپه دوی کښي له حق نه تېښتي څخه پرته بل څه زيات نکړل .

اسۡتِكۡبَارًا فِى الۡاَرۡضِ وَ مَكۡرَ السَّيِّئِ ؕ وَ لَا يَحِيۡقُ الۡمَكۡرُ السَّيِّئُ اِلَّا بِاَهۡلِهٖ ؕ فَهَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا سُنَّتَ الۡاَوَّلِيۡنَ ۚ فَلَنۡ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَبۡدِيۡلًا ۚ۬ وَ لَنۡ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَحۡوِيۡلًا (۴۳)

دوی په ځمکه کښي لازیات تکبر اختیارکړ او دناوړه دسیسوپه کاراچول یي شروع کړل ، پداسي حال کښي چي ناوړه دسيسي همدي خپلو کار اچوونکو ته ورله غاړې کېږي نو ایا دوی دېته سترګي په لاره دي چي له پخوانیو قومونو سره چي دالله کومه کړنلاره وه همااغه له دوی سره هم وشي که داخبره وي نوته به هېڅکله دالله په کړنلاره کښي څه بدلون ونه مومي او ته به هېڅکله ونه ویني چي دالله کړنچاره دهغه له ټاکلي لاري نه کوم ځواك واړولای شي .

اَوَ لَمۡ يَسِيۡرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ فَيَنۡظُرُوۡا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ وَ كَانُوۡۤا اَشَدَّ مِنۡهُمۡ قُوَّةً ؕ وَ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعۡجِزَهٗ مِنۡ شَىۡءٍ فِى السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَلِيۡمًا قَدِيۡرًا (۴۴)

ایا دوی کله په ځمکه کښي ګرځېدلي راګرځېدلي ندي چي دوی دهغو خلکو عاقبت لیدلی وای چي له دوی نه ډېر زيات ځواکمن وو؟ هېڅ شی دالله بېوسي کوونکی ندی ، نه په اسمانونواو نه په ځمکه کښي . هغه په هر څه باندې پوهېږی او په هرڅه باندې قدرت لري .

وَ لَوۡ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوۡا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهۡرِهَا مِنۡ دَآبَّةٍ وَّ لٰكِنۡ يُّؤَخِّرُهُمۡ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمۡ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيۡرًا (۴۵)

که چیرته الله تعالی خلك دهغو په عملونو باندې نیولای نو دځمکي پرمخ به يي هيڅ ساکښ ژوندی نه وای پرينښی خوهغه (ج) دوی ته تریوي ټاکلي نېټي پوری مهلت ورکوي ، بیا چي کله د دوی نیټه پوره شي نو الله تعالی د خپلو بندګانو کتونکی دی .

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

دالله په نوم چي ډیر مهربان زيات رحم لرونکی دی

يٰسٓ ۚ (۱)

يٰسن .

وَ الۡقُرۡاٰنِ الۡحَكِيۡمِ ۙ (۲)

قسم دی په قرآن حکیم

اِنَّكَ لَمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ ۙ (۳)

چي ته په يقيني ډول له رسولانو څخه يي

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ؕ (۴)

پر سمه لاره يي ،

تَنۡزِيۡلَ الۡعَزِيۡزِ الرَّحِيۡمِ ۙ (۵)

دبرلاسي او رحیم ذات له لوري نازل کړای شویدی ( او داقرآن )

تر څو چې ته يوداسې قوم ووېروې چې دهغو پلرونه نيكو نه وېرول شوي نه و واوله دې كبله هغوى په غفلت كښې غورځيدلي دي.

لِتُنۡذِرَ قَوۡمًا مَّاۤ اُنۡذِرَ اٰبَآؤُہُمۡ فَہُمۡ غٰفِلُوۡنَ (۶)

حقه داده چې له دوى نه زياتره خلك دعذاب دفيصلې وړګرځيدلي دي نو له همدې امله هغوى ايمان نه راوړى

لَقَدۡ حَقَّ الۡقَوۡلُ عَلٰۤی اَکۡثَرِہِمۡ فَہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۷)

مونږدهغو په غاړوكښې طوقونه اچولي دي چې د هغوى تر زنوپورې رسيدلي دي له دې امله هغوى سرونه پورته نيولي ولاړ دي .

اِنَّا جَعَلۡنَا فِیۡۤ اَعۡنَاقِہِمۡ اَغۡلٰلًا فَہِیَ اِلَی الۡاَذۡقَانِ فَہُمۡ مُّقۡمَحُوۡنَ (۸)

اومونږيوديوال دهغو په مخ كښې درولى دى او يو ديوال دهغو تر شا مونږدهغوى سترګې پوښلي دي هغوى اوس هيڅ نه ويني

وَ جَعَلۡنَا مِنۡۢ بَیۡنِ اَیۡدِیۡہِمۡ سَدًّا وَّ مِنۡ خَلۡفِہِمۡ سَدًّا فَاَغۡشَیۡنٰہُمۡ فَہُمۡ لَا یُبۡصِرُوۡنَ (۹)

دهغو لپاره بې تفاوته ده كه ته هغوى خبردار كړې اوكه يې نكړې هغوى به ايمان را نه وړي

وَ سَوَآءٌ عَلَیۡہِمۡ ءَاَنۡذَرۡتَہُمۡ اَمۡ لَمۡ تُنۡذِرۡہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۱۰)

ته خوهماغه څوك خبردار كولاى شې چې دنصيحت پېروى وكړى اوله ناليدلي رحمان ( خداى ) نه وويريږي هغه ته دبښنې اوغوره اجرزيرى وركړه .

اِنَّمَا تُنۡذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّکۡرَ وَ خَشِیَ الرَّحۡمٰنَ بِالۡغَیۡبِ ۚ فَبَشِّرۡہُ بِمَغۡفِرَۃٍ وَّ اَجۡرٍ کَرِیۡمٍ (۱۱)

مونږپه باوري توګه يوه ورځ دمړو ژوندي كوونكي يو، كومې چارې چې هغوى سرته رسولي دي مونږهغه ثبتولې ليكو . او كوم آثار چې هغوى وروسته پرې ايښي هغه مونږثبتو و مونږهرڅه په يوه ښكاره كتاب كښې درج كړيدي

اِنَّا نَحۡنُ نُحۡیِ الۡمَوۡتٰی وَ نَکۡتُبُ مَا قَدَّمُوۡا وَ اٰثَارَہُمۡ ؕ وَ کُلَّ شَیۡءٍ اَحۡصَیۡنٰہُ فِیۡۤ اِمَامٍ مُّبِیۡنٍ (۱۲)

دوى ته دمثال په ډول دهغه كلي دخلكو قصه واوروه چې كله هغه ته پيغمبران راغلي وو .

وَ اضۡرِبۡ لَہُمۡ مَّثَلًا اَصۡحٰبَ الۡقَرۡیَۃِ ۘ اِذۡ جَآءَہَا الۡمُرۡسَلُوۡنَ (۱۳)

كله چې مونږهغوته دوه رسولان وليږل او هغوى دواړه درواغجن وګڼل . بيا مونږدريم دمرستې لپاره وليږه او هغوى ټولو وويل (( مونږتاسې ته درسولانو په توګه ليږل شوي يو))

اِذۡ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلَیۡہِمُ اثۡنَیۡنِ فَکَذَّبُوۡہُمَا فَعَزَّزۡنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوۡۤا اِنَّاۤ اِلَیۡکُمۡ مُّرۡسَلُوۡنَ (۱۴)

دكلي خلكو وويل (( تاسې بل څه نه يې ٔ مګر زمونږپه څېر څوانسانان ، اورحمان خداى هيڅكله كوم شى ندي نازل كړي ، تاسې محضې درواغ وايئ .

قَالُوۡا مَاۤ اَنۡتُمۡ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُنَا ۙ وَ مَاۤ اَنۡزَلَ الرَّحۡمٰنُ مِنۡ شَیۡءٍ ۙ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا تَکۡذِبُوۡنَ (۱۵)

رسولانو وويل: زمونږرب پوهيږي مونږارو مروتاسې ته دپيغمبرانو په توګه ليږل شوي يو ،

قَالُوۡا رَبُّنَا یَعۡلَمُ اِنَّاۤ اِلَیۡکُمۡ لَمُرۡسَلُوۡنَ (۱۶)

اوپرمونږباندې له روښانه ښكاره پيغام رسولو نه پرته نورڅه مسئوليت نشته ،

وَ مَا عَلَیۡنَاۤ اِلَّا الۡبَلٰغُ الۡمُبِیۡنُ (۱۷)

دكلي خلكو وويل (( مونږخوتاسې دځان لپاره بد شګوم ګڼوكه تاسې لاس وانخلئ نو مونږبه تاسې سنګسار كړو اوزمونږلخوابه تاسې ته دردناك عذاب ورسيږي .

قَالُوۡۤا اِنَّا تَطَیَّرۡنَا بِکُمۡ ۚ لَئِنۡ لَّمۡ تَنۡتَہُوۡا لَنَرۡجُمَنَّکُمۡ وَ لَیَمَسَّنَّکُمۡ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۱۸)

رسولانو ځواب وركړ (( ستاسې بدفال خو پخپله له تاسې سره دى ايا داخبرې تاسې له دې كبله كوئ چې تاسې ته نصيحت وشو ؟ اصلي خبره داده چې تاسې له حده وتلي خلك يئ

قَالُوۡا طَآئِرُکُمۡ مَّعَکُمۡ ؕ اَئِنۡ ذُکِّرۡتُمۡ ؕ بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ مُّسۡرِفُوۡنَ (۱۹)

پدې ترڅ كښې دښار له لېرې ګوښې نه يو سړى په منډه راغى او ويې ويل (( اى زما قومه ! درسولانو پيروي غوره كړئ .

وَ جَآءَ مِنۡ اَقۡصَا الۡمَدِیۡنَۃِ رَجُلٌ یَّسۡعٰی قَالَ یٰقَوۡمِ اتَّبِعُوا الۡمُرۡسَلِیۡنَ (۲۰)

| | |
|---|---|
| دهغو خلکو پیروي وکړئ چي له تاسي نه څه اجرنه غواړي او پرسمه لاره دي . | اتَّبِعُوْا مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ اَجْرًا وَّ ہُمْ مُّہْتَدُوْنَ (٢١) |
| اوزه نو ولي د هغه ذات بندګي ونه کړم چي هغه زه پيدا کړی يم او دهغه لوري ته ستاسي ټولو ورګرځېدل دي ؟ | وَ مَا لِیَ لَاۤ اَعْبُدُ الَّذِیْ فَطَرَنِیْ وَ اِلَیْہِ تُرْجَعُوْنَ (٢٢) |
| ايا زه له هغه پرته نور معبودان ونيسم ؟ پداسي حال کښي چي که رحمان خدای ماته دڅه زيان رسولو اراده وکړي نو نه دهغو شفاعت ماته څه په کار راتلای شي او نه هغوی ما ژغورلای شي | ءَاَتَّخِذُ مِنْ دُوْنِہٖۤ اٰلِہَۃً اِنْ یُّرِدْنِ الرَّحْمٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغْنِ عَنِّیْ شَفَاعَتُہُمْ شَیْـًٔا وَّ لَا یُنْقِذُوْنِ (٢٣) |
| که زه داکار وکړم نو زه به په ښکاره ګمراهی کښي اخته شم | اِنِّیْۤ اِذًا لَّفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ (٢٤) |
| ماخوستاسي په رب باندي ايمان راوړی تاسي هم زماخبره واورئ . | اِنِّیْۤ اٰمَنْتُ بِرَبِّکُمْ فَاسْمَعُوْنِ (٢٥) |
| په پای کښي هغو خلکو هغه و واژه او) هغه ته وويل شول چي ) ننوځه جنت ته هغه وويل (( کاشکي زماقوم ته معلومه وای | قِیْلَ ادْخُلِ الْجَنَّۃَ ؕ قَالَ یٰلَیْتَ قَوْمِیْ یَعْلَمُوْنَ (٢٦) |
| چي زما رب دڅه شي له امله ماته ببښنه وکړه او زه يي په عزتمندو خلکو کښي داخل کړم)) | بِمَا غَفَرَ لِیْ رَبِّیْ وَ جَعَلَنِیْ مِنَ الْمُکْرَمِیْنَ (٢٧) |
| له هغه وروسته دهغه پرقوم مونږله آسمانه کوم لښکر راکوز نه کړ . دلښکر لېږلوته زمونږڅه اړتيا نه وه . | وَ مَاۤ اَنْزَلْنَا عَلٰی قَوْمِہٖ مِنْۢ بَعْدِہٖ مِنْ جُنْدٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَ مَا کُنَّا مُنْزِلِیْنَ (٢٨) |
| فقط يوه زلزله وشوه او په ناڅاپي ډول هغوی ټول مړه يخ کرخ ولوېدل . | اِنْ کَانَتْ اِلَّا صَیْحَۃً وَّاحِدَۃً فَاِذَا ہُمْ خٰمِدُوْنَ (٢٩) |
| افسوس دبندګانو پر حال باندي هغوته چي هر پيغمبر راغی په هغه پوري يي ملنډې مسخرې وکړې | یٰحَسْرَۃً عَلَی الْعِبَادِ ۚؑ مَا یَاْتِیْہِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا کَانُوْا بِہٖ یَسْتَہْزِءُوْنَ (٣٠) |
| ايا هغوی ندي ليدلي چي مونږله هغو نه مخکښي څومره قومونه هلاك کړيدي چي بياهغوی هيڅکله ددوی خواته راستانه نشول ؟ | اَلَمْ یَرَوْا کَمْ اَہْلَکْنَا قَبْلَہُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ اَنَّہُمْ اِلَیْہِمْ لَا یَرْجِعُوْنَ (٣١) |
| دوی ټول به يوه ورځ زمونږپه وړاندي حاضرېږي . | وَ اِنْ کُلٌّ لَّمَّا جَمِیْعٌ لَّدَیْنَا مُحْضَرُوْنَ (٣٢) |
| او د دوی لپاره مړه ځمکه يوه نښانه ده مونږهغه ژوندۍ کړه اوله هغې نه موغله راوويستله چي دوی يي خوري . | وَ اٰیَۃٌ لَّہُمُ الْاَرْضُ الْمَیْتَۃُ ۚۖ اَحْیَیْنٰہَا وَ اَخْرَجْنَا مِنْہَا حَبًّا فَمِنْہُ یَاْکُلُوْنَ (٣٣) |
| مونږپه هغې کښي دخرما و او انګور وباغونه پيدا کړل اوله هغې نه مو چيني راوخو ټولي ، | وَ جَعَلْنَا فِیْہَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِیْلٍ وَّ اَعْنَابٍ وَّ فَجَّرْنَا فِیْہَا مِنَ الْعُیُوْنِ (٣٤) |
| ترڅوچي دوی دهغې ميوې وخوري . داهر څه د دوی دخپلو لاسونو پيدا وار ندي . نو ايا دوی شکر نه باسي . | لِیَاْکُلُوْا مِنْ ثَمَرِہٖ ۙ وَ مَا عَمِلَتْہُ اَیْدِیْہِمْ ؕ اَفَلَا یَشْکُرُوْنَ (٣٥) |
| پاك دی هغه ذات چي هغه دټولو اقساموجوړې پيدا کړي که هغه دځمکي له نباتاتوڅخه وي يا پخپله د دوی له جنس ( يعني انسانی نوعي) څخه يا له هغو شيانو څخه چي دوی يي حتی پېژني قدرې هم نه | سُبْحٰنَ الَّذِیْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ کُلَّہَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَ مِنْ اَنْفُسِہِمْ وَ مِمَّا لَا یَعْلَمُوْنَ (٣٦) |
| ددوی لپاره يوه بله نښانه شپه ده ، مونږدهغې له پاسه ورځ ايسته کوو نو پر دوی تياره خورېږي . | وَ اٰیَۃٌ لَّہُمُ الَّیْلُ ۚۖ نَسْلَخُ مِنْہُ النَّہَارَ فَاِذَا ہُمْ مُّظْلِمُوْنَ (٣٧) |
| اولمر دخپل ټاکلی ځاي خواته ځي دادخورا ډېر ځواکمن پوه ذات وضع کړی حساب دی . | وَ الشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّہَا ؕ ذٰلِکَ تَقْدِیْرُ الْعَزِیْزِ الْعَلِیْمِ (٣٨) |

او سپوږمی ، ته مونږپړاوو نه ټاکلي دي تردې پورې چي له هغونه په تېرېد لو سره بیا هغه دخرما وچي څانګي غوندې شي .

وَ الۡقَمَرَ قَدَّرۡنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالۡعُرۡجُوۡنِ الۡقَدِيۡمِ (۳۹)

نه دلمر په وس کښي داشته چي هغه سپوږمی ونیسي اونه شپه پر ورځي مخکښي کېدلای شي . داټول په يويو فلك کښي لامبووهي.

لَا الشَّمۡسُ يَنۡۢبَغِىۡ لَهَاۤ اَنۡ تُدۡرِكَ الۡقَمَرَ وَ لَا الَّيۡلُ سَابِقُ النَّهَارِ ؕ وَ كُلٌّ فِىۡ فَلَكٍ يَّسۡبَحُوۡنَ (۴۰)

د دوی لپاره داهم يوه نښانه ده چي موږد دوی ځوځات په ډکه شوې بيړۍ کښي سپاره کړل

وَ اٰيَةٌ لَّهُمۡ اَنَّا حَمَلۡنَا ذُرِّيَّتَهُمۡ فِى الۡفُلۡكِ الۡمَشۡحُوۡنِ (۴۱)

او بيا مو ددوی لپاره همغسي بېړۍ نوري پيدا کوې چي دوی پکښي سپرېږي .

وَ خَلَقۡنَا لَهُمۡ مِّنۡ مِّثۡلِهٖ مَا يَرۡكَبُوۡنَ (۴۲)

که مونږو غواړ ونو دوی به غرق کړو ، هېڅوك به د دوی فرياد اورېدونکی نه وي او دوی ته به په هېڅ ډول نجات ورنه کړل شي .

وَ اِنۡ نَّشَاۡ نُغۡرِقۡهُمۡ فَلَا صَرِيۡخَ لَهُمۡ وَ لَا هُمۡ يُنۡقَذُوۡنَ (۴۳)

فقط همدا زمونږرحمت دی چي دوی پورې باسي اوتر يوې ټاکلې مودې پورې له ژوند نه دګټې اخيستلو فرصت ورکوي .

اِلَّا رَحۡمَةً مِّنَّا وَ مَتَاعًا اِلٰى حِيۡنٍ (۴۴)

دوی ته چي کله ويل کېږي چي له هغه عاقبت نه ځان وژغورئ چي ستاسی مخي ته راځي او ستاسي ترشاتېر شويدی ، شايد پرتاسي رحم وکړای شي ( نو دوی ځان ناګاره اچوي)

وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّقُوۡا مَا بَيۡنَ اَيۡدِيۡكُمۡ وَ مَا خَلۡفَكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۴۵)

دوی ته چي د دوی درب له ايتونو څخه هدايت راځي دوی د هغه لوري ته التفات نکوي .

وَ مَا تَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ مِّنۡ اٰيٰتِ رَبِّهِمۡ اِلَّا كَانُوۡا عَنۡهَا مُعۡرِضِيۡنَ (۴۶)

اوکله چي دوی ته ويل کېږي چي الله تاسي ته کومه روزي درکړيده له هغې نه يوڅه دالله په لاره کښي هم ولګوئ نو دغه کسان چي کافر شويدی ايمان راوړونکو ته په ځواب کښي وايي (( ايا مونږهغو ته خواړه ورکړوکه الله غوښتې وای نو پخپله به يې هغوته خواړه ورکړي وو ؟ تاسي خو بيخي ګمراه شوي يئ ؟))

وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ اَنۡفِقُوۡا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ۙ قَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنُطۡعِمُ مَنۡ لَّوۡ يَشَآءُ اللّٰهُ اَطۡعَمَهٗۤ ‌ۖ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ (۴۷)

دوی وايي چي :دغه دقيامت اخطار به کله تر سره شي ؟ وښئي که تاسي رښتوني يئ .

وَ يَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (۴۸)

په اصل کښي چي دوی کوم شي ته سترګي په لاره دي هغه فقط يوه هيبتناکه چيغه ده چي په ناڅاپي ډول به دوی بېدو په هغه حالت کښي راګير کړي چي دوی ( پخپلو دنيوي چاروکښي ) شخړه کوونکي وي ،

مَا يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّا صَيۡحَةً وَّاحِدَةً تَاۡخُذُهُمۡ وَ هُمۡ يَخِصِّمُوۡنَ (۴۹)

اوپه هغه وخت کښي به دوی وصيت قدرې هم ونه کړای شي . نه به خپلو کورونيوته ، بېرته وګرځېدای شي .

فَلَا يَسۡتَطِيۡعُوۡنَ تَوۡصِيَةً وَّ لَاۤ اِلٰٓى اَهۡلِهِمۡ يَرۡجِعُوۡنَ (۵۰)

بيا به يوه شپېلۍ پوکړه شي او په ناڅاپي ډول به دوی دخپل رب حضور ته دوړاندې کېدولپاره له خپلو قبرونو څخه راووځي .

وَ نُفِخَ فِى الصُّوۡرِ فَاِذَا هُمۡ مِّنَ الۡاَجۡدَاثِ اِلٰى رَبِّهِمۡ يَنۡسِلُوۡنَ (۵۱)

په وارخطايي سره به ووايي اوه ، داچا مونږله خپلو قبرونو راپاڅولو ؟ داهمغه شی دی چي رحمان خدای دهغه وعده کړې وه او د پيغمبرانو خبره رښتيا وه

قَالُوۡا يٰوَيۡلَنَا مَنۡۢ بَعَثَنَا مِنۡ مَّرۡقَدِنَا ۜ هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحۡمٰنُ وَ صَدَقَ الۡمُرۡسَلُوۡنَ (۵۲)

صرف يو قوي اواز به وي او ټول به زمونږپه وړاندې حاضر کړای شی.

اِنۡ كَانَتۡ اِلَّا صَيۡحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمۡ جَمِيۡعٌ لَّدَيۡنَا مُحۡضَرُوۡنَ (۵۳)

نن به پر هيڅا ديو بڅري په اندازه ظلم ونشي او تاسي ته به هغسي بدله درکړه شي لکه څنګه چي تاسي عمل کاوه

فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَّ لَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۵۴)

نن جنتيان په خوند ونو اخيستلو کښي بوخت دي .

اِنَّ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِيْ شُغُلٍ فٰكِهُوْنَ (۵۵)

هغوی او دهغوميږرمني به په ګڼو سيور وکښي وي پر تختونو ناست بالښتو نو ته تکيه کوونکي

هُمْ وَ اَزْوَاجُهُمْ فِيْ ظِلٰلٍ عَلَى الْاَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔوْنَ (۵۶)

د خوراك ښباك هر راز خوندور شيان هلته دهغو لپاره موجود دي هرڅه چي هغوی وغواړي دهغو لپاره حاضر دي ،

لَهُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّ لَهُمْ مَّا يَدَّعُوْنَ (۵۷)

دمهربان پروردګار لخوا هغوته سلام ويل شويدی

سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ (۵۸)

او ای مجرمانو ، نن تاسي بېل شیء

وَ امْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ (۵۹)

دآدم او لادونو ، ايا ماتاسي ته هدايت نه وکړی چي دشيطان بندګي مه کوئ هغه ستاسي ښکاره دښمن دی ،

اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَيْكُمْ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اَنْ لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطٰنَ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ (۶۰)

او يوازې زما بندګي وکړئ دغه سمه لاره ده؟

وَّ اَنِ اعْبُدُوْنِيْ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ (۶۱)

خوسره له دې هغه له تاسي نه يوه لويه ډله ګمراه کړه . ايا تاسي نه پوهيدلئ

وَ لَقَدْ اَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيْرًا اَفَلَمْ تَكُوْنُوْا تَعْقِلُوْنَ (۶۲)

داهمغه دوزخ دی چي له هغه نه تاسي وېرول کېدلئ .

هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ (۶۳)

کوم کفر چي تاسي په دنيا کښي کاوه دهغه په بدله کښي اوس دده دسون مواد شئ.

اِصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ (۶۴)

نن مونږد دوی خولي په مهرولو بندو و ، د دوی لاسونه به له مونږسره وغږيږي او د دوی پښي به شاهدي ووايي چي دوی په دنيا کښي څه کارونه کول.

اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰى اَفْوَاهِهِمْ وَ تُكَلِّمُنَا اَيْدِيْهِمْ وَ تَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (۶۵)

که مونږوغواړو نو د دوی سترګي به پوښلي هوارې کړو ، بيا دې دوی دلارې خواته په ځغاستلو وګوري ، څنګه به دوی لاره و ويني ؟

وَ لَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلٰى اَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى يُبْصِرُوْنَ (۶۶)

که مونږوغواړو نو مونږبه دوی پرهمدې ځپل ځای پداسي شان مسخ کړي پرېږ. دوچي دوی نه وړاندي د تلو وس ولري او نه دبېرته ستنېدلو

وَ لَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنٰهُمْ عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مُضِيًّا وَّ لَا يَرْجِعُوْنَ (۶۷)

چاته چي مونږاوږد عمر ورکړو دهغه ساخت مونږسرچپه کوو ، ايا د دغو حالاتو په ليدلوسره دوی نه پوهېږي ؟ .

وَ مَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ (۶۸)

مونږدغه پيغمبر ته شعر ندی ورزده کړی او نه شاعري له ده سره ښايي.ږي داخو يو نصيحت دی او روښانه لوستل کېدونکی کتاب

وَ مَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَ مَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّ قُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ (۶۹)

ترڅو چي هر هغه څوك تنبيه کړي چي ژوندي وي اوپر انکار کوونکو باندې اتمام حجت وشي .

لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَيًّا وَّ يَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ (۷۰)

ايا دوی نه ويني چي مونږپخپلو لاسونو (قدرت) سره جوړ وشويو شيانوڅخه ددوی لپاره څاروي پيداکړل اواوس دوی دهغوخاوندان دي،

اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَاۤ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ (۷۱)

مونږ هغه پداسي شان دوی ته ښکېل کړيدي چي له هغونه پرځينو باندی دوی سپرېږی دځينو دوی غوښه خوري

وَ ذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ وَ مِنْهَا يَاْكُلُوْنَ (۷۲)

او په هغوکښې د دوی لپاره راز راز ګټې او دڅښلوشیان دي نو ایا دوی شکر نه باسي ؟

وَ لَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَ مَشَارِبُ ؕ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ (٧٣)

له دې هرڅه سره سره دوی له الله جل جلاله نه پرته نور خدایان نیولي دي او داهیله لري چې له دوی سره به مرسته وکړای شي .

وَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لَّعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ (٧٤ؕ)

هغوی له دوی سره هیڅ مرسته نشي کولی: بلکې برعکس دوی دهغو لپاره تیارسی لښکر جوړ شویدی .

لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ ۙ وَ هُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ (٧٥)

ښه نو ، کومې خبرې چې دوی جوړوي . هغه دې تا ونه ځوروي . د دوی په پټواو ښکاره ټولو خبر وباندې مونږپوهېږو

فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَ مَا يُعْلِنُوْنَ (٧٦)

ایا انسان نه ده لیدلي چې مونږهغه له نطفې نه پیدا کړ او بیا هغه ښکاره شخړه کوونکی شو ؟

اَوَ لَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ (٧٧)

اوس هغه پرمونږپورې مثالونه ترې او خپل پیدایښت هېروي وایي : ((څوك به دغه هډوکي راژوندي کړي . چې کله داوراسته شوي وي ؟ ))

وَ ضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّ نَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَ هِيَ رَمِيْمٌ (٧٨)

ده ته ووایه ، دابه هماغه ذات ژوندي کوي چې هغه مخکښې داپیدا کړي وو ، او هغه د تخلیق په هر کار پوهېږي

قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَ هُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُۨ (٧٩)

هماغه ذات چې ستاسې لپاره یې له شنې سمسورې ونې څخه اور پیدا کړ او تاسې له دې نه خپل نغرې بلوئ

الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ (٨٠)

ایا هغه ذات چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړل پردې باندې قادر نه دی چې د دوی په څېر پیدا کړای شي ؟ ولې نه پداسې حال کښې چې هغه ماهر خلاق دی .

اَوَ لَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ؕ ﺻﮯ بَلٰى * وَ هُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ (٨١)

هغه خوچې کله دیوشي اراده کوي ، نو دهغه کار همدومره دی چې ورته حکم وکړي چې شه او هغه کېږي

اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَيْئًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ (٨٢)

پاك دی هغه ذات چې دهغه په لاس کښې دهر شي بشپړ وس واك دی ، او دهماغه لورې ته تاسې ورګرځول کېدونکي یاست .

فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ (٨٣)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

پرکتار کتار صف تړونکو باندې قسم ،

وَ الصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ۙ(١)

بیاپه هغو باندې قسم چې اخطار ورکونکي شړونکي دي ،

فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ۙ(٢)

بیا په هغو باندې قسم چې د نصیحت د کلام او روونکي دي ،

فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ۙ(٣)

بېشکه ستاسې حقیقي معبود صرف ایکي یو دی

اِنَّ اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ (٤ؕ)

هغه ذات چې داسمانونو او ځمکې او دټولو هغو شیانو رب دی چې په ځمکه او آسمان کې دي ، او دټولو ختیځونو څښتن.

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا وَ رَبُّ الْمَشَارِقِ ؕ(٥)

مونږد دنیا آسمان دستور وپه ښایست سره سینګار کړی دی

اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِزِيْنَةِ ِۨ الْكَوَاكِبِ ۙ(٦)

اوله هر سرغړوونکي شیطان څخه موخوندي ساتلی دی .

وَ حِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ مَّارِدٍ ۚ(٧)

دغه شیطانان دپاسنی نړۍ خبرې نشي اورېدلی ، له هرې خوا ویشتل کېږي،

لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى وَ يُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ *ۖ(٨)

شړل کېږي او د هغو له پاره پرله پسې عذاب دی .

دُحُوْرًا وَّ لَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ ۙ(٩)

بیاهم که له هغونه کوم یوڅه وتښتوي نویوه تیزه سوځوونکې لمبه یې تعقیبوي.

اِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ (١٠)

| | |
|---|---|
| اوس له دوی نه پوښتنه وکړه د دوی پيدايښت ډېر ګران دی که دهغوشيانو چې مونږپيدا کړي دي ؟ دوي خو مونږله سريښناکي خټې څخه پيدا کړيدي . | فَاسْتَفْتِهِمْ اَہُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمْ مَّنْ خَلَقْنَا ؕ اِنَّا خَلَقْنٰہُمْ مِّنْ طِيْنٍ لَّازِبٍ (١١) |
| ته ( دالله دقدرت نښانوته ) حيران يئ او دوی ورپورې ملنډې وهي . | بَلْ عَجِبْتَ وَ يَسْخَرُوْنَ (١٢) |
| که پوهول کيږي نو ځان نه پوهوي . | وَ اِذَا ذُكِّرُوْا لَا يَذْكُرُوْنَ (١٣) |
| که کومه نښانه ويني نو مسخرې او خنداوې ورپورې کوي | وَ اِذَا رَاَوْا اٰيَةً يَّسْتَسْخِرُوْنَ (١٤) |
| او وايي : ((داخوښکاره کوډې دي | وَ قَالُوْٓا اِنْ ہٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ (١٥) |
| ښه نو چيرته داسې کيدای شي چې کله مونږمړه شوي او سو او خاورې شواو دهډوکو مجموعه شو ، په هغه وخت کې مونږبيا ژوندي را پاڅول شو. | ءَ اِذَا مِتْنَا وَ كُنَّا تُرَابًا وَّ عِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ (١٦) |
| او آيا زمونږدتيږ و وختونو پلرونه ، نيکونه به هم راپاڅول شي ؟ )) | اَوَ اٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ (١٧) |
| دوی ته ووايه هو ، او تاسې دخدای په وړاندې بيوسې يئ . | قُلْ نَعَمْ وَ اَنْتُمْ دَاخِرُوْنَ (١٨) |
| فقط يوټکان به وي او په ناڅاپي ډول به دوی پخپلو سترګو ( دهغه هر څه چې دوی ته خبرورکول کيږي ) ليدونکي وي . | فَاِنَّمَا ہِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا ہُمْ يَنْظُرُوْنَ (١٩) |
| په هغه وخت کې به دوی ووايي هی زمونږبده شاميته، داخو دجزا ورځ ده- | وَ قَالُوْا يٰوَيْلَنَا ہٰذَا يَوْمُ الدِّيْنِ (٢٠) |
| دا دهمغې ورځې فيصله ده چې تاسې درواغ ګڼله | ہٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِہٖ تُكَذِّبُوْنَ (٢١) |
| امر به وشي ) را غونډکړئ ټول ظالمان او ددوی ملګري او هغه ) معبودان چې دوی دهغو بندګي کوله | اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَ اَزْوَاجَہُمْ وَ مَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ (٢٢) |
| له الله نه پرته ، نو دغوټولوته د دوزخ لاره وښيئ. | مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ فَاہْدُوْہُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ (٢٣) |
| او دوی معطل کړئ له دوی نه پوښتنه کيږي | وَ قِفُوْہُمْ اِنَّہُمْ مَّسْئُوْلُوْنَ (٢٤) |
| په تاسې څه وشول ولې يودبل مرسته نه کوئ ؟ | مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُوْنَ (٢٥) |
| هوبلکې! دوی خو پخپله خپل ځانونه سپاری ، | بَلْ ہُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ (٢٦) |
| له هغه وروسته به دوی يوبل ته مخ واړوي او يوله بله به پوښتنې شروع کړي | وَ اَقْبَلَ بَعْضُہُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ (٢٧) |
| پيروان به خپلو رهبرانوته ) ووايي تاسې مونږته له ښي لوري ) راتلئ | قَالُوْٓا اِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ (٢٨) |
| هغوی به ځواب ورکړي : نه ، بلکې تاسې پخپله ايمان راوړونکي نه وئ . | قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ (٢٩) |
| زمونږپرتاسې څه زورنه وْ ، بلکې تاسې پخپله سرغړوونکي وئ ، | وَ مَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ ۚ بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ (٣٠) |
| په پای کې مونږدخپل رب د دغې فيصلې مستحق شوو چې مونږدعذاب خوند څکونکي يو ، | فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ٭ۖ اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ (٣١) |
| مونږتاسې بې لارې کړئ ، موږپخپله بې لارې شوي وو . | فَاَغْوَيْنٰكُمْ اِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ (٣٢) |

په دې توګه به هغوی ټول په هغه ورځ په عذاب کې شريك وي.
فَاِنَّهُمۡ يَوۡمَئِذٍ فِى الۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُوۡنَ (٣٣)

مونږ له مجرمانوسره همدغه څه کوو ،
اِنَّا كَذٰلِكَ نَفۡعَلُ بِالۡمُجۡرِمِيۡنَ (٣٤)

داهغه کسان ووچې کله به دوی ته ويل کېدل چې له الله نه پرته بل هيڅ برحق معبود نه شته ، نو دوی به مغروره کېدل
اِنَّهُمۡ كَانُوۡۤا اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۙ يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ (٣٥)

او ويل به يې : ((ايا مونږدې ولېوني شاعرپه خاطر خپل معبودان پرېږدو ؟))
وَ يَقُوۡلُوۡنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوۡۤا اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجۡنُوۡنٍ (٣٦)

په داسې حال کې چې هغه حق له ځانه سره راوړی وْ او هغه د پېغمبرانو تصديق کړی وْ .
بَلۡ جَآءَ بِالۡحَقِّ وَ صَدَّقَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (٣٧)

بېشکه تاسې ارومرو د دردناك عذاب خوند څکونکي يئ
اِنَّكُمۡ لَذَآئِقُوا الۡعَذَابِ الۡاَلِيۡمِ (٣٨)

اوتاسې ته چې هره بدله درکول کېږي دهماغو عملونو درکول کېږي چې تاسې کړي دي .
وَ مَا تُجۡزَوۡنَ اِلَّا مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ (٣٩)

خو دالله غوره شوي بندګان به ( له دغه ناوړه عاقبت نه) محفوظ وي
اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الۡمُخۡلَصِيۡنَ (٤٠)

د دوی له پاره معلومه روزي ده ،
اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ رِزۡقٌ مَّعۡلُوۡمٌ (٤١)

هر راز خوند ورشيان او دوې به معزز وی
فَوَاكِهُ ۚ وَ هُمۡ مُّكۡرَمُوۡنَ (٤٢)

اوله نعمتونو ډك جنتونه چې هغوی به په کې واوسول شي .
فِىۡ جَنّٰتِ النَّعِيۡمِ (٤٣)

پرتختونو به يوبل ته مخامخ کښېني .
عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيۡنَ (٤٤)

دشرابو له چينو نه ډك جامونه به دهغوی په مينځ کې وګرځول شي ،
يُطَافُ عَلَيۡهِمۡ بِكَاۡسٍ مِّنۡ مَّعِيۡنٍ (٤٥)

ځلانده، رانه شراب چې دڅښونکو له پاره به خوندر وي.
بَيۡضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيۡنَ (٤٦)

نه به دهغو جسم ته له هغونه څه ضرر وي او نه به يې عقل ته ترېنه تاوان رسېږي.
لَا فِيۡهَا غَوۡلٌ وَّ لَا هُمۡ عَنۡهَا يُنۡزَفُوۡنَ (٤٧)

اوله هغو سره به دنظر ژغورونکي ښايسته سترګې لرونکې ښځې وي ،
وَ عِنۡدَهُمۡ قٰصِرٰتُ الطَّرۡفِ عِيۡنٌ (٤٨)

داسې نازکې لکه دهګی تر پوټکي لاندې پټه شوې پرده.
كَاَنَّهُنَّ بَيۡضٌ مَّكۡنُوۡنٌ (٤٩)

بيا به هغوی يو بل ته په مخ اړولو د حالاتو پوښتنه وکړي .
فَاَقۡبَلَ بَعۡضُهُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ يَّتَسَآءَلُوۡنَ (٥٠)

له هغونه يوتن به ووايي : په دنيا کې زما يو ملګری وْ .
قَالَ قَآئِلٌ مِّنۡهُمۡ اِنِّىۡ كَانَ لِىۡ قَرِيۡنٌ (٥١)

ماته به يې ويل ايا ته له هغو تصديق کوونکو څخه يې ؟
يَّقُوۡلُ اَئِنَّكَ لَمِنَ الۡمُصَدِّقِيۡنَ (٥٢)

ايا دارښتياده چې کله مونږمړه شو ، او خاورې شو او دهډوکو ډانچه شو نو مونږته به سزا او جزا راکړه شي ؟
ءَ اِذَا مِتۡنَا وَ كُنَّا تُرَابًا وَّ عِظَامًا ءَ اِنَّا لَمَدِيۡنُوۡنَ (٥٣)

اوس آيا تاسې ليدل غواړئ چې هغه چېرته دی ؟
قَالَ هَلۡ اَنۡتُمۡ مُّطَّلِعُوۡنَ (٥٤)

له دې ويلو وروسته چې څنګه هغه لاندې وګوري نو د دوزخ په تل کې به هغه ويني
فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِىۡ سَوَآءِ الۡجَحِيۡمِ (٥٥)

اوهغه ته په خطاب کولوسره به ووايي ((په خدای قسم تا خو زماتباه کول غوښتل
قَالَ تَاللّٰهِ اِنۡ كِدۡتَّ لَتُرۡدِيۡنِ (٥٦)

| | |
|---|---|
| که زما د رب فضل راباندې نه وای نو نن به زه هم له هغوکسانوڅخه وم چې نیول شوي راوستل شوي دي . | وَ لَوْ لَا نِعْمَةُ رَبِّیْ لَکُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِیْنَ (۵۷) |
| ښه نو اوس (دايقيني نده چې ) مونږله مره کېدونکو څخه نه یو ؟ | اَفَمَا نَحْنُ بِمَیِّتِیْنَ (۵۸) |
| کوم مرګ چې مونږته راتلونکی و هغه خو مخکې راغی اوس به مونږته هيڅ عذاب نه وي ؟ | اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰی وَ مَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِیْنَ (۵۹) |
| په یقیني ډول همدغه ستربريالیتوب دی . | اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِیْمُ (۶۰) |
| دهمدغسې بريالیتوب له پاره بايد عمل کوونکي عمل وکړي . | لِمِثْلِ هٰذَا فَلْیَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ (۶۱) |
| ايا دغه میلمستیا ښه ده او که دزقوم ونه ؟ | اَذٰلِکَ خَیْرٌ نُّزُلًا اَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ (۶۲) |
| مونږهغه ونه د ظالمانو له پاره فتنه ګرځولې ده . | اِنَّا جَعَلْنٰهَا فِتْنَةً لِّلظّٰلِمِیْنَ (۶۳) |
| هغه يوه ونه ده چې د دوزخ له تل نه را وځي. | اِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِیْ اَصْلِ الْجَحِیْمِ (۶۴) |
| دهغې غوټې داسې دي لکه دشيطانانو سرونه | طَلْعُهَا کَاَنَّهٗ رُءُوْسُ الشَّیٰطِیْنِ (۶۵) |
| دوزخيان به هغه وخوري اوله هماغې نه به خپلې ګېډې ډکې کړي | فَاِنَّهُمْ لَاٰکِلُوْنَ مِنْهَا فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ (۶۶) |
| بیا به د هغې دپاسه د څښلوله پاره هغوته خوټېدلې اوبه ورکړې شي . | ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَیْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِیْمٍ (۶۷) |
| اوله هغه وروسته به دهغو ورستنېدل هماغه د دوزخ داورخواته وي . | ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاْ اِلَی الْجَحِیْمِ (۶۸) |
| داهغه خلك دي چې خپل پلرونه نيکونه يې ګمراه موندل | اِنَّهُمْ اَلْفَوْا اٰبَآءَهُمْ ضَآلِّیْنَ (۶۹) |
| او دوی دهماغو پر پله باندې وځغلېدل . | فَهُمْ عَلٰۤی اٰثٰرِهِمْ یُهْرَعُوْنَ (۷۰) |
| په داسې حال کې چې له دوی نه مخکې دېرپخواني خلك ګمراه شوي وو | وَ لَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ اَکْثَرُ الْاَوَّلِیْنَ (۷۱) |
| اوپه هغوکې مونږتنبیه کوونکي پېغمبران لېږلي وو . | وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا فِیْهِمْ مُّنْذِرِیْنَ (۷۲) |
| اوس وګورئ چې دهغو تنبیه کېدونکو څه عاقبت شو . | فَانْظُرْ کَیْفَ کَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِیْنَ (۷۳) |
| له دغه بد عاقبت نه فقط دالله هغه بندګان ژغورل شوي دي چې هغه دخپل ځان له پاره غوره کړي دي . | اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِیْنَ (۷۴) |
| مونږته ( له دې نه مخکې ) نوح غږکړی و ، نوګوره چې مونږڅنګه ښه ځواب ورکوونکي وو . | وَ لَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِیْبُوْنَ (۷۵) |
| مونږهغه او دهغه کورنۍ له يو سترغم نه وژغورله | وَ نَجَّیْنٰهُ وَ اَهْلَهٗ مِنَ الْکَرْبِ الْعَظِیْمِ (۷۶) |
| او د هغه ځوځات موباقي پرېښوده ، | وَ جَعَلْنَا ذُرِّیَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِیْنَ (۷۷) |
| او په و روستيو نسلونوکې مو د هغه صفت او ستاينه پرېښودله . | وَ تَرَکْنَا عَلَیْهِ فِی الْاٰخِرِیْنَ (۷۸) |
| سلام دی پر نوح په ټولو نړيوالو کې | سَلٰمٌ عَلٰی نُوْحٍ فِی الْعٰلَمِیْنَ (۷۹) |
| مونږنيکی کوونکو ته همدغسې غوره بدله ورکوو . | اِنَّا کَذٰلِکَ نَجْزِی الْمُحْسِنِیْنَ (۸۰) |
| په حقيقت کې هغه زمونږله مومنو بندګانو څخه وْ . | اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِیْنَ (۸۱) |
| بیا بله ډله مونږ غرقه کړه . | ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِیْنَ (۸۲) |
| او دهمدې نوح پرکړنلاره باندې تلونکی ابراهيم (ع) وْ . | وَ اِنَّ مِنْ شِیْعَتِهٖ لَاِبْرٰهِیْمَ (۸۳) |
| کله چې هغه دخپل رب حضور ته له سالم پاك زړه سره راغی . | اِذْ جَآءَ رَبَّهٗ بِقَلْبٍ سَلِیْمٍ (۸۴) |

کله چې هغه خپل پلار او قوم ته وویل : داڅه شیان دي چې تاسې یې عبادت کوئ ؟

اِذۡ قَالَ لِاَبِيۡهِ وَ قَوۡمِهٖ مَاذَا تَعۡبُدُوۡنَ (۸۵)

آیا له الله نه پرته په دروغجوړ شوي معبودان غواړئ.

اَئِفۡكًا اٰلِهَةً دُوۡنَ اللّٰهِ تُرِيۡدُوۡنَ (۸۶)

نو دالله رب العلمین په باب ستاسې څه ګومان دی ؟

فَمَا ظَنُّكُمۡ بِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ (۸۷)

بیا هغه ستوروته یو نظر وکړ

فَنَظَرَ نَظۡرَةً فِى النُّجُوۡمِ (۸۸)

او ویې ویل زما طبیعت خراب دی .

فَقَالَ اِنِّىۡ سَقِيۡمٌ (۸۹)

نو خلکو هغه پرېښود او په شا اړولو سره ترې روان شول .

فَتَوَلَّوۡا عَنۡهُ مُدۡبِرِيۡنَ (۹۰)

دهغو په غیاب کې هغه په پټه د هغو د معبودانو درمسال ته ننووت او ویې ویل : تاسې ولې خوراك نه کوئ ؟

فَرَاغَ اِلٰٓى اٰلِهَتِهِمۡ فَقَالَ اَلَا تَاۡكُلُوۡنَ (۹۱)

څه شوي دي پرتاسې خبرې هم نه کوئ ؟

مَا لَكُمۡ لَا تَنۡطِقُوۡنَ (۹۲)

له هغه و روسته یې سمدلاسه پرهغو پټه حمله وکړه او په ښي لاس سره یې ښه ګوزارونه وکړل .

فَرَاغَ عَلَيۡهِمۡ ضَرۡبًۢا بِالۡيَمِيۡنِ (۹۳)

. هغوی په منډه منډه هغه ته راغلل(بېرته په راستنېدو )

فَاَقۡبَلُوۡۤا اِلَيۡهِ يَزِفُّوۡنَ (۹۴)

هغه وویل : آیا تاسې پرخپل لاس دتوړل شویو شیانو بندګي کوئ ؟

قَالَ اَتَعۡبُدُوۡنَ مَا تَنۡحِتُوۡنَ (۹۵)

پداسې حال کې چې الله تاسې هم پیدا کړي یئ او هغه شیان هم چې تاسې یې جوړوئ

وَ اللّٰهُ خَلَقَكُمۡ وَ مَا تَعۡمَلُوۡنَ (۹۶)

هغو پخپلو منځوکې سره وویل : ((د ده له پاره داور ډېرى تیاره کړئ اودی دتاوجن اور په لمبوکې وغور ځوئ)) .

قَالُوا ابۡنُوۡا لَهٗ بُنۡيَانًا فَاَلۡقُوۡهُ فِى الۡجَحِيۡمِ (۹۷)

هغوی د ده پرخلاف غوښتل یو اقدام وکړي ، خو مونږ.هغوی لاندې راوستل .

فَاَرَادُوۡا بِهٖ كَيۡدًا فَجَعَلۡنٰهُمُ الۡاَسۡفَلِيۡنَ (۹۸)

ابراهیم (ع) وویل : زه دخپل رب لوري ته ځم ، هغه به ماته لارښوونه وکړي.

وَ قَالَ اِنِّىۡ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّىۡ سَيَهۡدِيۡنِ (۹۹)

ای زما پروردګاره ! ماته داسې زوی راکړه چې له صالحانو څخه وي.

رَبِّ هَبۡ لِىۡ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ (۱۰۰)

مونږ.هغه ته دیو حلیم ( زغمونکي ) هلك (د دې دعا په ځواب کې ) .زېرى ورکړ

فَبَشَّرۡنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيۡمٍ (۱۰۱)

هغه هلك چې کله له هغه سره دمنډو ترړوکولو منګ ته ورسېده نو ( یوه ورځ ) ابراهیم هغه ته وویل : زویه ! زه په خوب کې وینم چې زه تا ذبحه کوم ، اوس ته ووایه چې ستانظر څه دی ؟ هغه وویل : ((پلاره ! څه چې تاته حکم کېږي هغه وکړه ، ته به انشاءالله ماله صابرانو څخه ومومې)).

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعۡىَ قَالَ يٰبُنَىَّ اِنِّىۡۤ اَرٰى فِى الۡمَنَامِ اَنِّىۡۤ اَذۡبَحُكَ فَانۡظُرۡ مَاذَا تَرٰى ؕ قَالَ يٰۤاَبَتِ افۡعَلۡ مَا تُؤۡمَرُ ۖ سَتَجِدُنِىۡۤ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيۡنَ (۱۰۲)

په پای کې چې کله دغو دواړو دمنښتې سر ښکته کړ او ابراهیم زوی پرمخې څملاوه

فَلَمَّاۤ اَسۡلَمَا وَ تَلَّهٗ لِلۡجَبِيۡنِ (۱۰۳)

او مونږ.غږ.وکړ چې: ((ای ابراهیمه ،

وَ نَادَيۡنٰهُ اَنۡ يّٰۤاِبۡرٰهِيۡمُ (۱۰۴)

تا خوب رښتیا کړ. مونږ.نېکي کوونکو ته همدغسې غوره مکافات ورکوو

قَدۡ صَدَّقۡتَ الرُّءۡيَا ۚ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ (۱۰۵)

په باوري ډول دایوه څرګنده ازموینه وه

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الۡبَلٰٓـؤُا الۡمُبِيۡنُ (۱۰۶)

او مونږ.یوه لویه قرباني په فدیه کې ورکړه ، هغه هلك موخوشې کړ.

وَ فَدَيۡنٰهُ بِذِبۡحٍ عَظِيۡمٍ (۱۰۷)

او دتل له پاره مو د هغه ستاینه په وروستیو نسلو نوکې پرېښودله سلام دی پر ابراهیم .

وَ تَرَكۡنَا عَلَيۡهِ فِى الۡاٰخِرِيۡنَ (۱۰۸)

سَلٰمٌ عَلٰٓى اِبۡرٰهِيۡمَ (۱۰۹)

| | |
|---|---|
| مونږنيکي کوونکو ته همدغسي غوره بدله ورکوو | كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ (١١٠) |
| په باوري ډول هغه زمونږله مومنو بندگانو څخه وْ . | اِنَّهٗ مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (١١١) |
| او مونږ هغه ته داسحق زېرى ورکړ. يو پيغمبرله صالحانو څخه . | وَ بَشَّرۡنٰهُ بِاِسۡحٰقَ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ (١١٢) |
| او هغه اواسحق ته مو برکت ورکړ. اوس د دغو دو اړوله نبيرې نه څوك نېکو کار دي او څوك پرخپل خان څرگند ظلم کوونکي دي . | وَ بٰرَكۡنَا عَلَيۡهِ وَ عَلٰٓى اِسۡحٰقَ ؕ وَ مِنۡ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحۡسِنٌ وَّ ظَالِمٌ لِّنَفۡسِهٖ مُبِيۡنٌ (١١٣) |
| او په رېښتيا سره مونږپرموسىٰ او هارون باندې پېرزوينه وکړه ، | وَ لَقَدۡ مَنَنَّا عَلٰى مُوۡسٰى وَ هٰرُوۡنَ (١١٤)ۚ |
| هغو او د هغو قوم ته موله لوى کړ اونه نجات ورکړ، | وَ نَجَّيۡنٰهُمَا وَ قَوۡمَهُمَا مِنَ الۡكَرۡبِ الۡعَظِيۡمِ (١١٥)ۚ |
| له هغو سره مو مرسته وکړه چې دهغي له امله هماغوى برلاسي شول ، | وَ نَصَرۡنٰهُمۡ فَكَانُوۡا هُمُ الۡغٰلِبِيۡنَ (١١٦)ۚ |
| هغوى ته مو ډېر څرگند کتاب ورکړ ، | وَ اٰتَيۡنٰهُمَا الۡكِتٰبَ الۡمُسۡتَبِيۡنَ (١١٧)ۚ |
| هغوته مو سمه لاره وښودله | وَ هَدَيۡنٰهُمَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ (١١٨)ۚ |
| اوپه وروستيو نسلونوکې مو دهغو ښه ياد باقي پرېښوده. | وَ تَرَكۡنَا عَلَيۡهِمَا فِى الۡاٰخِرِيۡنَ (١١٩)ۙ |
| سلام دى وي پر موسىٰ (ع) او هارون (ع) . | سَلٰمٌ عَلٰى مُوۡسٰى وَ هٰرُوۡنَ (١٢٠) |
| مونږنيکي کوونکو ته همدغسي غوره بدله ورکوو ، | اِنَّا كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ (١٢١) |
| په حقيقت کې هغوى زمونږله مومنوبندگانو څخه وو . | اِنَّهُمَا مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (١٢٢) |
| اوالياس (ع) هم په يقيني ډول له مرسلينو څخه وْ . | وَ اِنَّ اِلۡيَاسَ لَمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (١٢٣)ؕ |
| ياد کړه کله چې هغه خپل قوم ته ويلى وو چې (( تاسې وېرېږئ نه)) ؟ | اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖۤ اَلَا تَتَّقُوۡنَ (١٢٤) |
| ايا تاسې بعل بت بولئ او احسن الخالقين پرېږدئ ، | اَتَدۡعُوۡنَ بَعۡلًا وَّ تَذَرُوۡنَ اَحۡسَنَ الۡخَالِقِيۡنَ (١٢٥)ۙ |
| هغه الله چې ستاسې او ستاسې دوړاندې وروسته پلرونو نيکونو رب دى ؟ | اللّٰهَ رَبَّكُمۡ وَ رَبَّ اٰبَآئِكُمُ الۡاَوَّلِيۡنَ (١٢٦) |
| خو هغوى هغه درواغجن وگاڼه نو اوس په يقيني ډول هغوى دسزاله پاره حاضرراوستل کېدونکي دي | فَكَذَّبُوۡهُ فَاِنَّهُمۡ لَمُحۡضَرُوۡنَ (١٢٧)ۙ |
| پرته دخداى له بندگانو څخه چې هغوى غوره کړاى شوي وو . | اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الۡمُخۡلَصِيۡنَ (١٢٨) |
| او دالياس دښويا دمونږپه وروستيو نسلو نوکې باقي پرېښوده | وَ تَرَكۡنَا عَلَيۡهِ فِى الۡاٰخِرِيۡنَ (١٢٩)ۙ |
| سلام دې وي پر الياس | سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلۡ يَاسِيۡنَ (١٣٠) |
| مونږنيکى کوونکو ته همداسي غوره بدله ورکوو . | اِنَّا كَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ (١٣١) |
| په رښتياسره هغه زمونږله مومنو بندگانو څخه وْ . | اِنَّهٗ مِنۡ عِبَادِنَا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (١٣٢) |
| او لوط (ع) هم له هماغه کسانو څخه و چې درسولانو په توگه لېږل شوى دى . | وَ اِنَّ لُوۡطًا لَّمِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ (١٣٣)ؕ |
| يا دکړه هغه وخت چې مونږ هغه او دهغه ټولې کورنى ته نجات ورکړ | اِذۡ نَجَّيۡنٰهُ وَ اَهۡلَهٗۤ اَجۡمَعِيۡنَ (١٣٤)ۙ |
| پرته له يوې سپين سرې نه چې له بېرته پاتې کېدونکو څخه وه . | اِلَّا عَجُوۡزًا فِى الۡغٰبِرِيۡنَ (١٣٥) |
| بيا مو نور ټول تار مار کړل ، | ثُمَّ دَمَّرۡنَا الۡاٰخَرِيۡنَ (١٣٦) |
| نن تاسې دورځې (سهار سبا) دهغو پر ورانو مېنو باندې تېرېږئ . | وَ اِنَّكُمۡ لَتَمُرُّوۡنَ عَلَيۡهِمۡ مُّصۡبِحِيۡنَ (١٣٧) |
| اودشپې هم نوآيا تاسې له پو هې نه کارنه اخلئ ؟ | وَ بِالَّيۡلِ ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ (١٣٨) |

| | |
|---|---|
| اوپه یقیني ډول یونس هم له رسولانو څخه وْ . | وَ اِنَّ یُوۡنُسَ لَمِنَ الۡمُرۡسَلِیۡنَ (١٣٩)ؕ |
| چې هغه دیوې ډکې بېړۍ خواته په تېښته ووت ، | اِذۡ اَبَقَ اِلَی الۡفُلۡکِ الۡمَشۡحُوۡنِ (١٤٠)ۙ |
| بیا په ایسك اچوونکو کې شریك شو او په هغې کې یې ماتې وخوړله . | فَسَاہَمَ فَکَانَ مِنَ الۡمُدۡحَضِیۡنَ (١٤١)ۚ |
| په پای کې هغه کب تېر کړ او هغه پړو . | فَالۡتَقَمَہُ الۡحُوۡتُ وَ ہُوَ مُلِیۡمٌ (١٤٢) |
| نوکه هغه له تسبیح کوونکو څخه نه وای | فَلَوۡ لَاۤ اَنَّہٗ کَانَ مِنَ الۡمُسَبِّحِیۡنَ (١٤٣)ۙ |
| نو دقیامت تر ورځې پورې به دهماغه کب په ګېډه کې پاتې شوی وْ . | لَلَبِثَ فِیۡ بَطۡنِہٖۤ اِلٰی یَوۡمِ یُبۡعَثُوۡنَ (١٤٤)ۚ |
| په پای کې موږهغه د ډېرې رنځورتیا په حالت کې پریوه ځمکه وغورځاوه . | فَنَبَذۡنٰہُ بِالۡعَرَآءِ وَ ہُوَ سَقِیۡمٌ (١٤٥)ۚ |
| اوپرهغه مو جلغداره ونه راز رغونه کړه . | وَ اَنۡۢبَتۡنَا عَلَیۡہِ شَجَرَۃً مِّنۡ یَّقۡطِیۡنٍ (١٤٦)ۚ |
| له هغه وروسته مونږهغه یو لك یاله دې نه زیاتوخلکو ته ولېږه | وَ اَرۡسَلۡنٰہُ اِلٰی مِائَۃِ اَلۡفٍ اَوۡ یَزِیۡدُوۡنَ (١٤٧)ۚ |
| هغو ایمان راوړ او مونږتریوې خاصې نېټې پورې هغوی باقې پرېښودل . | فَاٰمَنُوۡا فَمَتَّعۡنٰہُمۡ اِلٰی حِیۡنٍ (١٤٨)ؕ |
| نوله دوی نه پوښتنه وکړه آیا ( د دوی زړه داخبره مني چې ) ستا د رب له پاره دې لوڼې وي او د دوی له پاره زامن ! | فَاسۡتَفۡتِہِمۡ اَلِرَبِّکَ الۡبَنَاتُ وَ لَہُمُ الۡبَنُوۡنَ (١٤٩)ۙ |
| آیا په رښتیا سره مونږپرېښتې ښځې ګر ځولي دي او دوی دسترګو لیدلی حال وایې ؟ | اَمۡ خَلَقۡنَا الۡمَلٰٓئِکَۃَ اِنَاثًا وَّ ہُمۡ شٰہِدُوۡنَ (١٥٠) |
| ښه واوره په اصل کې دوی له ځانه جوړه کړې خبره کوي | اَلَاۤ اِنَّہُمۡ مِّنۡ اِفۡکِہِمۡ لَیَقُوۡلُوۡنَ (١٥١)ۙ |
| چې الله تعالیٰ اولادلري او په واقع کې دوی درواغجن دي | وَلَدَ اللّٰہُ ۙ وَ اِنَّہُمۡ لَکٰذِبُوۡنَ (١٥٢) |
| آیا الله د زامنو په ځای لوڼې ځانته غوره کړې ؟ | اَصۡطَفَی الۡبَنَاتِ عَلَی الۡبَنِیۡنَ (١٥٣)ؕ |
| پرتاسې څه شوي څنګه حکم صادروئ . | مَا لَکُمۡ ۟ کَیۡفَ تَحۡکُمُوۡنَ (١٥٤) |
| ایا تاسې په هوښ کې نه راځئ ؟ | اَفَلَا تَذَکَّرُوۡنَ (١٥٥)ۚ |
| یاداچې له تاسې سره د دغو خبروله پاره کوم څرګند سند دی ، | اَمۡ لَکُمۡ سُلۡطٰنٌ مُّبِیۡنٌ (١٥٦)ۙ |
| نو راوړئ خپل هغه کتاب که تاسې ریښتونی یئ . | فَاۡتُوۡا بِکِتٰبِکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ (١٥٧) |
| دوی دالله اوپیریانوتر منځه د نسب پیوند جوړ کړی دی ، پداسې حال کې چې پیریان ښه پوهېږي چې دغه خلك دمجرمانو په توګه وړاندې کېدونکې دي | وَ جَعَلُوۡا بَیۡنَہٗ وَ بَیۡنَ الۡجِنَّۃِ نَسَبًا ؕ وَ لَقَدۡ عَلِمَتِ الۡجِنَّۃُ اِنَّہُمۡ لَمُحۡضَرُوۡنَ (١٥٨)ۙ |
| الله له هغو صفتو نو څخه پاك دی ( او هغوی وایې چې ) | سُبۡحٰنَ اللّٰہِ عَمَّا یَصِفُوۡنَ (١٥٩)ۙ |
| چې دهغه له خالصو بندګانو څخه پرته نور خلك یې ورته منسوبوي . | اِلَّا عِبَادَ اللّٰہِ الۡمُخۡلَصِیۡنَ (١٦٠) |
| نوتاسې اوستا سې دغه معبودان | فَاِنَّکُمۡ وَ مَا تَعۡبُدُوۡنَ (١٦١)ۙ |
| له الله نه هیڅوك نشئ اړولی | مَاۤ اَنۡتُمۡ عَلَیۡہِ بِفٰتِنِیۡنَ (١٦٢)ۙ |
| مګر صرف هغه څوك چې د دوزخ په لمبه شوي اورکې وریتېدونکی وي. | اِلَّا مَنۡ ہُوَ صَالِ الۡجَحِیۡمِ (١٦٣) |

| | |
|---|---|
| او زمونږ حال خودادی چې له مونږنه دهر یوه یو مقام ټاکلی دی | وَ مَا مِنَّاۤ اِلَّا لَهٗ مَقَامٌ مَّعْلُوْمٌ (۱۶۴)ۙ |
| او مونږ په لیکه کې ولاړ خدمتګاران یو | وَّ اِنَّا لَنَحْنُ الصَّاۤفُّوْنَ (۱۶۵)ۚ |
| اوبېشکه مونږ تسبیح کوونکي یو . | وَ اِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُوْنَ (۱۶۶) |
| دغو خلکو خو ېخوا ویل | وَ اِنْ كَانُوْا لَيَقُوْلُوْنَ (۱۶۷)ۙ |
| چې کاشکې له مونږسره هغه((ذکر))وای چې مخکېنیو قومونوته ورکړشوی و، | لَوْ اَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ (۱۶۸)ۙ |
| نو مونږبه د الله غوره شوي بندګان وو . | لَكُنَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ (۱۶۹) |
| خو( کله چې هغه راغئ ) نو دوی ترېنه انکار وکړ . اوس به ډېره ژردوی ته (د دغې کړنچارې نتیجه ) ځرګنده شي . | فَكَفَرُوْا بِهٖ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ (۱۷۰) |
| له خپلو لېږل شو یو بندګانو سره مونږلاپخوا وعده کړې ده | وَ لَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ (۱۷۱)ۖۚ |
| چې په یقیني ډول به له هغو سره مرسته وشي | اِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ (۱۷۲)۪ |
| او همدا زمونږلښکر به برلاسی شي | وَ اِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ (۱۷۳) |
| نوای پیغمبره ! ترېوې مودې پورې دوی پخپل حال پرېږده | فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ (۱۷۴)ۙ |
| اولیدونکی یې اوسه ، ډېرژربه دوی پخپله هم وګوري . | وَّ اَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ (۱۷۵) |
| آیا دوی زمونږدعذاب له پاره بیړه کوي ؟ | اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ (۱۷۶) |
| کله چې (عذاب) د دوی په غولې کې راکوزشي ، نو هغه ورځ به دهغوکسانو له پاره ډېره بده وي چې هغوی تنبیه کړای شوي دي ، | فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ (۱۷۷) |
| نو دیوې مودې له پاره دوی پرېږده | وَ تَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ (۱۷۸)ۙ |
| اولیدونکی اوسه ، ډېر ژربه دوی پخپله ووینې . | وَّ اَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ (۱۷۹) |
| پاك دی ستارب ، دعزت څښتن ، له ټولو هغو خبرونه چې دوی یې جوړوي . | سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ (۱۸۰)ۚ |
| او سلام دی پرمرسلانو ، | وَ سَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ (۱۸۱)ۚ |
| او ټوله ستاینه یوازې دالله رب العلمین له پاره ده . | وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۱۸۲) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| ص ، قسم دی له نصیحت نه پرډك قران | صٓ وَ الْقُرْاٰنِ ذِی الذِّكْرِ ؕ(۱) |
| بلکې همدغه خلك چې له منلونه یې انکار کړیدی په سخت تکبر او ځېل کښې اخته دي . | بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِیْ عِزَّةٍ وَّ شِقَاقٍ (۲) |
| له دوی نه مخکې مونږ همدغسې څوقومونه هلاك کړیدي (اوکله چې دهغو کم بختی راغلی دی ) نو هغوی چیغې وهلې دي ، خو هغه دژغورل کیدو وخت نه دی . | كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّ لَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ (۳) |
| دوی پردې خبره سخت تعجب وکړ چې دوی ته پخپله له همدوی نه یو ویروونکی راغی . کافرانو وویل چې: دی کوډګر دی ، ډېر درواغجن دی، | وَ عَجِبُوْۤا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ ۫ وَ قَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ۖۚ(۴) |
| ایا ده دټولو خدایانو پرځای فقط همدایو خدای وګرځاوه ؟داخوډیره دتعجب وړ خبره ده | اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰـهًا وَّاحِدًا ۖۚ اِنَّ هٰذَا لَشَیْءٌ عُجَابٌ (۵) |

او دقوم سرداران له دې وينا سره ووتل چې)) ځئ او دخپلو )) معبودانو پرعبادت ټينګ اوسئ . داخبره خو دکوم بل غرض لپاره کيږي

وَ انْطَلَقَ الْمَلَاُ مِنْهُمْ اَنِ امْشُوْا وَ اصْبِرُوْا عَلٰى اٰلِهَتِكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَشَيْءٌ يُّرَادُ (۶)

داخبره مونږدنږدې زماني په ملت کښې له هيچانه نده اوريدلې . دانور هيڅ نده مګر يوه له ځانه جوړه شوې خبره.

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۚ اِنْ هٰذَا اِلَّا اخْتِلَاقٌ (۷)

ايا زمونږپه مينځ کښې همدغه ايکې يوسړی پاتې شوی وء چې پرده باندې دالله ذکر نازل کړای شو ؟ اصلي خبره داده چې دوی زما په ذکر کښې شك کوي او داټولې خبرې د دې لپاره کوي چې دوی زما دعذاب خوند نه دی څکلی .

ءَ اُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْۢ بَيْنِنَا ؕ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْ ذِكْرِيْ ۚ بَلْ لَّمَّا يَذُوْقُوْا عَذَابِ ؕ(۸)

ايا ستا دبخښش وا لا او برلاسي پروردګار د رحمت زيرمې د دوی په ولکه کښې دي ؟

اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيْزِ الْوَهَّابِ (۹)

يا دوی داسمانونو او ځمکې او دهغو په مينځ کښې شيانو څښتنان دي ؟ ښه نو دوی دې دعالم اسباب څوکوته وخيږي ودې ګوري !

اَمْ لَهُمْ مُّلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا ۫ فَلْيَرْتَقُوْا فِي الْاَسْبَابِ (۱۰)

داخوله ډلونه يوه داسې کوچنۍ غوندې ډله ده چې په همدې ځای کښې ماتې خوړونکې ده .

جُنْدٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُوْمٌ مِّنَ الْاَحْزَابِ (۱۱)

له دوی نه مخکې دنوح(ع) قوم ، عاديانو ، دميخونو څښتن فرعون ،

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّ عَادٌ وَّ فِرْعَوْنُ ذُو الْاَوْتَادِ (۱۲)

ثموديانو ، دلوط (ع) قوم ، دځنګله خلکو (دشعيب قوم) د درواغو نسبتونه کړي دي همدا کسان لويې لويې ډلې وې .

وَ ثَمُوْدُ وَ قَوْمُ لُوْطٍ وَّ اَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ ؕ اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ (۱۳)

له هغونه هرې يوې ډلې پيغمبران درواغجن وګڼل او زما د عذاب فيصله پرې تطبيق شوه .

اِنْ كُلٌّ اِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ (۱۴)

دغه خلك هم فقط ديوې زلزلې انتظار باسي چې هغه به ځنډېدونکې نه وي .

وَ مَا يَنْظُرُ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً مَّا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ (۱۵)

او دوی وايي چې ای زمونږربه ! دحساب له ورځې نه مخکې زمونږبرخه مونږته په بيړه راکړه .

وَ قَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ (۱۶)

اې پيغمبره ! په هغو خبروباندې صبر وکړه چې دوی يې جوړوي ، دوی ته زمونږدبنده داوْد قصه بيان کړه چې دسترو قواووڅښتن وء .بيشکه هغه په هره معامله کښې الله ته رجوع کوونکی وء .

اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَ اذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِ ۚ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ (۱۷)

مونږله هغه سره غرونه ايل کړي ووچې سهار او ماښام يې له هغه سره پاکي بيا نوله .

اِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَ الْاِشْرَاقِ (۱۸)

الوتونکي راغونډ يدل او ټول دهغه تسبيح کولو ته متوجه کېدل .

وَ الطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً ؕ كُلٌّ لَّهٗٓ اَوَّابٌ (۱۹)

مونږدهغه سلطنت محکم کړی وْ ، هغه ته موحکمت ورکړی و او دفيصله کوونکو خبرو صلاحيت مو ورپه برخه کړی وْ .

وَ شَدَدْنَا مُلْكَهٗ وَ اٰتَيْنٰهُ الْحِكْمَةَ وَ فَصْلَ الْخِطَابِ (۲۰)

او تاته دهغو شخړه کوونکو څه خبر رسيدلی دی چې پرديوال راختلي دهغه حجرې ته ننوتلي وو ؟

وَ هَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ ۘ اِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ (۲۱)

كله چې هغوى داود (ع) ته ورغلل نو هغه دهغوپه ليدلو ووېرېده. هغوى وويل مه ويرېږه مونږد دعوې دوه لوري يو چې يوه پربل تيرى كړى دى . ته زمونږپه مينځ كښې له حق سره سمه فيصله وكړه ، بې انصافي مه كوه او مونږته سمه لاره راوښيه .

اِذْ دَخَلُوْا عَلٰى دَاوٗدَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوْا لَا تَخَفْ ۚ خَصْمٰنِ بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَ لَا تُشْطِطْ وَ اهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ (٢٢)

دا زما ورور دى ، له ده سره نهه نوي ميږې دي اوله ماسره صرف يوه مېږه ده . ده ماته وويل چې دغه يوه مېږه هم ماته راوسپاره اوده په خبرو اتروكښې زه مغلوب كړم .

اِنَّ هٰذَاۤ اَخِيْ ۟ لَهٗ تِسْعٌ وَّ تِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّ لِيَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ ۟ فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا وَ عَزَّنِيْ فِي الْخِطَابِ (٢٣)

داوٗد (ع) ځواب وركړ : ((دغه سړي له خپلو مېږو سره ستادميږې ديوځاى كولو په غوښتنه په رېښتيا سره پرتا ظلم وكړ ، اوواقعيت دادى چې خلط ملط اوسيدونكې خلك زياتره يوپربل ظلمونه كوي . فقط هماغه كسان له دې نه ژغورل شويدي چې ايمان لري اوښه عملونه كوي او دغسې خلك بيخي لږدي)) . ( د دغو خبروپه ترڅ كښې ) داوٗد پوه شوچې داخو مونږپه اصل كښې پرده ازميښت كړى دى نو هغه له خپل رب نه معافي وغوښتله اوپه سجده پريوت اورجوع يې وكړه .

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰى نِعَاجِهٖ ؕ وَ اِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِيْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ قَلِيْلٌ مَّا هُمْ ؕ وَ ظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَ خَرَّ رَاكِعًا وَّ اَنَابَ (٢٤)

هله نومونږدغه قصور وبښه اوپه يقيني ډول زمونږپه وړاندې دهغه لپاره دنږديوالي مقام او غوره عاقبت دى .

فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ ؕ وَ اِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَ حُسْنَ مَاٰبٍ (٢٥)

اې داوٗده ! مونږته په ځمكه كښې خليفه ( مونږهغه ته وويل ) گرځولى يې له دې كبله ته دخلكو په مينځ كښې په حقه حكم وكړه او دنفسي غوښتنې پيروي مه كوه چې هغه به تا دالله له لارې نه واړوي . كوم كسان چې دالله له لارې نه بې لارې كيږي په يقيني . ډول دهغولپاره سخته سزاده چې هغودحساب ورځ هيره كړه

يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَ لَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ (٢٦)

مونږدغه اسمان اوځمكه او دغه دنيا چې دهغو په مينځ كښې ده بابېزه نه دي پيدا كړي داخو دهغو خلكو گومان دى چې كافرشوي دي او ددغسې كافرانو لپاره بربادي ده د دوزخ له اوره .

وَ مَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَ الْاَرْضَ وَ مَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ؕ ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ (ؕ٢٧)

ايامونږهغه خلك چې ايمان راوړي او نيك عملونه كوي او هغه كسان چې په ځمكه كښې فساد كوونكي دي يوشانته كوو ؟ ايا مونږپرهيزگاران دفاجرانو په شان وگرځوو؟

اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۫ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ (٢٨)

دايوډير بركتناك كتاب دى چې مونږتاته ( اى پيغمبره) نازل كړيدى ترڅوچې دوى د ده پرايتونو غوروكړي او دپوهې او فكر خاوندان ترينه درس واخلي .

كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْۤا اٰيٰتِهٖ وَ لِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ (٢٩)

او داوٗد ته مونږسليمان ( غوندي زوى ) وركړ ، ډيرښه بنده ، دخپل رب خواته ډير ډير رجوع كوونكى .

وَ وَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ ؕ نِعْمَ الْعَبْدُ ؕ اِنَّهٗۤ اَوَّابٌ (ؕ٣٠)

هغه وخت دياودنې وړ دى چې په ماښام مها ل كښې دهغه مخې ته گړندي او اصيل اسونه وړاندې كړاى شول

اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ (ۙ٣١)

نو هغه وويل ((ما د دغه مال مينه دخپل رب دياد (جهاد) له امله غوره كړى ده . ترډې پورې چې كله هغه اسونه له سترگو پناه شول

فَقَالَ اِنِّيْۤ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ (ۙ٣٢)

نو ( هغه امر وکړ چې ) دابېرته ماته راولئ ، بیا یې دهغو پر پنډ یو او غاړو باندې لاس رابنکل شروع کړل (یو شمیر مفسرینو له (توارت بالحجاب) نه د لمر ډوبېدل له( عن ذکر ربی) نه لمونځ او له (مسحًا بالسوق والاعناق) نه دا سونو ذبح کول معنا اخیستې ده ګګ).

رُدُّوۡہَا عَلَیَّ ؕ فَطَفِقَ مَسۡحًۢا بِالسُّوۡقِ وَ الۡاَعۡنَاقِ (۳۳)

او ( ګوره چې ) مونږ سلیمان هم په ازموینه کښې واچاوه دهغه دکرسی دپاسه مویوه جوسه وغورځوله . بیا هغه رجوع وکړه (الله ته)

وَ لَقَدۡ فَتَنَّا سُلَیۡمٰنَ وَ اَلۡقَیۡنَا عَلٰی کُرۡسِیِّہٖ جَسَدًا ثُمَّ اَنَابَ (۳۴)

او ویې ویل چې: ((ای پروردګاره ! ماته ښښنه وکړه او ماته هغه باچایي راکړه چې له مانه وروسته دهیچا لپاره وړنه وي ، بېشکه همداته اصلي بخښش کوونکی یې)).

قَالَ رَبِّ اغۡفِرۡ لِیۡ وَ ہَبۡ لِیۡ مُلۡکًا لَّا یَنۡۢبَغِیۡ لِاَحَدٍ مِّنۡۢ بَعۡدِیۡ ۚ اِنَّکَ اَنۡتَ الۡوَہَّابُ (۳۵)

هله نومونږ هغه ته بادایل کړ چې دهغه په امر به په نرمی سره لګیده چېرته چې هغه غوښتل ،

فَسَخَّرۡنَا لَہُ الرِّیۡحَ تَجۡرِیۡ بِاَمۡرِہٖ رُخَآءً حَیۡثُ اَصَابَ (۳۶)

اوشیطانان موایل کړل ، دهر ډول ودانیو جوړوونکي او غوټه وهونکي

وَ الشَّیٰطِیۡنَ کُلَّ بَنَّآءٍ وَّ غَوَّاصٍ (۳۷)

او نورچې په زنځیر ونو تړل شوي وو .

وَّ اٰخَرِیۡنَ مُقَرَّنِیۡنَ فِی الۡاَصۡفَادِ (۳۸)

دازمونږدرکړه ده ، ته واکمن یې چاته چې )) (مونږ هغه ته وویل) دې خوښه شي ورېې کړې اوچاته چې وغواړې ورېې نه کړې ، څه . ((حساب نشته

ہٰذَا عَطَآؤُنَا فَامۡنُنۡ اَوۡ اَمۡسِکۡ بِغَیۡرِ حِسَابٍ (۳۹)

په یقیني ډول دهغه لپاره زمونږ په وړاندې دنږدې والي مقام اوغوره پای دی

وَ اِنَّ لَہٗ عِنۡدَنَا لَزُلۡفٰی وَ حُسۡنَ مَاٰبٍ (۴۰)

او زموږدبنده ایوب یادونه وکړه کله چې هغه خپل رب ته غږوکړ چې شیطان زه په سخت تکلیف او عذاب کښې اچولی یم .

وَ اذۡکُرۡ عَبۡدَنَاۤ اَیُّوۡبَ ۘ اِذۡ نَادٰی رَبَّہٗۤ اَنِّیۡ مَسَّنِیَ الشَّیۡطٰنُ بِنُصۡبٍ وَّ عَذَابٍ (۴۱)

خپله پښه پرځمکه ووهه ، دادې یخې اوبه (مونږ هغه ته امروکړ) . دلمبلو لپاره او دڅښلو لپاره

اُرۡکُضۡ بِرِجۡلِکَ ۚ ہٰذَا مُغۡتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّ شَرَابٌ (۴۲)

مونږ هغه ته دهغه اهل اوعیال بېرته بیاورکړاو دهغو ترڅنګ همغومره نور له خپل لوري درحمت په ډول،اودېوهې اوفکردخاوندانو لپاره د درس په توګه.

وَ وَہَبۡنَا لَہٗۤ اَہۡلَہٗ وَ مِثۡلَہُمۡ مَّعَہُمۡ رَحۡمَۃً مِّنَّا وَ ذِکۡرٰی لِاُولِی الۡاَلۡبَابِ (۴۳)

یو موټې ډکې (جارو) راواخله او (او مونږ هغه ته وویل ) یقینامونږ هغه دزغم خاوند . ګوزارپرې وکړه ، اوخپل قسم مه ماتوه .ومونده ، ډیرښه بنده ، د خپل رب خواته ډیر رجوع کوونکی

وَ خُذۡ بِیَدِکَ ضِغۡثًا فَاضۡرِبۡ بِّہٖ وَ لَا تَحۡنَثۡ ؕ اِنَّا وَجَدۡنٰہُ صَابِرًا ؕ نِعۡمَ الۡعَبۡدُ ؕ اِنَّہٗۤ اَوَّابٌ (۴۴)

او زمونږدبندګانو ابراهیم (ع)، اسحاق (ع) او یعقوب (ع) یادونه وکړه . د ډیر عملي قوت درلودونکي اوسترګه ورخلك وو .

وَ اذۡکُرۡ عِبٰدَنَاۤ اِبۡرٰہِیۡمَ وَ اِسۡحٰقَ وَ یَعۡقُوۡبَ اُولِی الۡاَیۡدِیۡ وَ الۡاَبۡصَارِ (۴۵)

مونږ هغوي دیو خالص صفت پراساس غوره کړي وو ، اوهغه داخرت یادوْ

اِنَّاۤ اَخۡلَصۡنٰہُمۡ بِخَالِصَۃٍ ذِکۡرَی الدَّارِ (۴۶)

په یقیني توګه زمونږ په نزد هغوی په غوره شویو نیکو کسانو کښې شماردي .

وَ اِنَّہُمۡ عِنۡدَنَا لَمِنَ الۡمُصۡطَفَیۡنَ الۡاَخۡیَارِ (۴۷)

اوداسماعیل ، الیسع اوذوالکفل یادونه وکړه داټول له غوره کسانو څخه وو.

وَ اذۡکُرۡ اِسۡمٰعِیۡلَ وَ الۡیَسَعَ وَ ذَاالۡکِفۡلِ ؕ وَ کُلٌّ مِّنَ الۡاَخۡیَارِ (۴۸)

دایوه یادونه وه . ( اوس واورئ چې ) د پرهیزګارانو لپاره په یقیني ډول ډیرښه استوګنځئ دی ،

هٰذَا ذِكۡرٌ ؕ وَ اِنَّ لِلۡمُتَّقِيۡنَ لَحُسۡنَ مَاٰبٍ (۴۹)

تل ترتله جنتونه چې دروازې به یې دهغو لپاره پرانستې وي .

جَنّٰتِ عَدۡنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الۡاَبۡوَابُ (۵۰)

هغوی به په کښې تکیه وهونکي ناست وي ، دښوښنو مېوو او څښلو وړشیانو غوښتونکي به وي .

مُتَّكِـِٕيۡنَ فِيۡهَا يَدۡعُوۡنَ فِيۡهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيۡرَةٍ وَّ شَرَابٍ (۵۱)

اوله هغوسره به حیاداري همزولې میرمنې وي .

وَ عِنۡدَهُمۡ قٰصِرٰتُ الطَّرۡفِ اَتۡرَابٌ (۵۲)

داهغه شیان دي چې له تاسې سره دحساب په ورځ دهغو د درکولو وعده کیږي .

هٰذَا مَا تُوۡعَدُوۡنَ لِيَوۡمِ الۡحِسَابِ (۵۳)

دازمونږروزي ده چې هیڅکله پای ته رسیدونکې نه ده

اِنَّ هٰذَا لَرِزۡقُنَا مَا لَهٗ مِنۡ نَّفَادٍ (۵۴)

داخودی دپرهیزګارانو عاقبت . او دسرغړوونکو لپاره ډیر ناکاره استوګنځی دی

هٰذَا ؕ وَ اِنَّ لِلطّٰغِيۡنَ لَشَرَّ مَاٰبٍ (۵۵)

دوزخ چې په هغه کښې به هغوی ننوځي ، ډیر بد ټاټوبی

جَهَنَّمَ ۚ يَصۡلَوۡنَهَا ۚ فَبِئۡسَ الۡمِهَادُ (۵۶)

دادی دهغو لپاره ، نو هغوی دې خوند وڅکي د خوټیدلو اوبو ، وینو زوو

هٰذَا ۙ فَلۡيَذُوۡقُوۡهُ حَمِيۡمٌ وَّ غَسَّاقٌ (۵۷)

او دهمدې ډول نورو عذابونو

وَّ اٰخَرُ مِنۡ شَكۡلِهٖۤ اَزۡوَاجٌ (۵۸)

هغوی به د دوزخ خواته د خپلو پیروانو دراتګ په لیدو سره پخپلو ) مینځو کښې سره ووایي ) دایولښکر ستاسې سره ځنګ ته په سختۍ ننوتونکی را روان دی،دوی ته هیڅ کوم هرکلی نشته، دوی په ((اورکښې ننوتونکي دي

هٰذَا فَوۡجٌ مُّقۡتَحِمٌ مَّعَكُمۡ ۚ لَا مَرۡحَبًۢا بِهِمۡ ؕ اِنَّهُمۡ صَالُوا النَّارِ (۵۹)

هغوی به ورته ځواب ورکړي (( نه بلکې همدا تاسې وسوځئ ، هیڅ کوم ښه راغلاست ستاسې لپاره نشته . همدا تاسې دغه برخلیك زمونږمخې ته راوستی دی ، څومره بد دی دغه استوګنځی )).

قَالُوۡا بَلۡ اَنۡتُمۡ ۟ لَا مَرۡحَبًۢا بِكُمۡ ؕ اَنۡتُمۡ قَدَّمۡتُمُوۡهُ لَنَا ۚ فَبِئۡسَ الۡقَرَارُ (۶۰)

ای زمونږربه ! چاچې دغه برخلیك ته زمونږدرسولو لاری )) چارې جوړې کړې هغه ته د دوزخ دوه چنده زیات عذاب ورکړه )).

قَالُوۡا رَبَّنَا مَنۡ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدۡهُ عَذَابًا ضِعۡفًا فِى النَّارِ (۶۱)

او هغوی به پخپلو کې سره ووایې ((څه دې مونږ لره چې مونږ هغه کسان چېرته نه وینوچې مونږ هغوی په دنیاکښې اشرارګڼل؟

وَ قَالُوۡا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمۡ مِّنَ الۡاَشۡرَارِ (۶۲)

مونږ (په ناحقه) هغوی مسخره کړي وو ، اوکه هغوی چېرته له نظره پناه دي ؟

اَتَّخَذۡنٰهُمۡ سِخۡرِيًّا اَمۡ زَاغَتۡ عَنۡهُمُ الۡاَبۡصَارُ (۶۳)

بیشکه داخبره رښتیاده ، په دوزخیانوکښې همداسې شخړې کیدونکې دي .

اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ اَهۡلِ النَّارِ (۶۴)

ای پیغمبره ! ) دوی ته ووایه زه ((خو فقط خبردار وونکی یم هیڅ ) حقیقی معبود نشته مګر الله چې یو دی ، پرټولو غالب ،

قُلۡ اِنَّمَاۤ اَنَا مُنۡذِرٌ ۖ وَّ مَا مِنۡ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ الۡوَاحِدُ الۡقَهَّارُ (۶۵)

داسمانونو اوځمکې او دټولو هغو شیانو څښتن چې دهغو په مینځ کښې دي ، برلاسی او خورا ښونکی))

رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَ مَا بَيۡنَهُمَا الۡعَزِيۡزُ الۡغَفَّارُ (۶۶)

دوی ته ووایه ((دایولوی خبردی

قُلۡ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيۡمٌ (۶۷)

چې دهغه په اوریدلو تاسې مخ اړوئ)) .

اَنۡتُمۡ عَنۡهُ مُعۡرِضُوۡنَ (۶۸)

دوی ته ووایه ) زه له هغه وخت نه هیڅ خبرنه وم چې په پاسنۍ ) . نړۍ کښې پرښتوسره شخړه کوله

مَا كَانَ لِىَ مِنۡ عِلۡمٍۭ بِالۡمَلَاِ الۡاَعۡلٰٓى اِذۡ يَخۡتَصِمُوۡنَ (۶۹)

| | |
|---|---|
| ماته خو دوحی په وسیله دغه خبري صرف ددې لپاره ښودل کیږي چې زه روښانه څرګند خبردار وونکی یم)) | اِنۡ یُّوۡحٰۤی اِلَیَّ اِلَّاۤ اَنَّمَاۤ اَنَا نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ (۷۰) |
| کله چې ستارب پرښتوته وویل(( زه له خټې نه دبشر پیداکوونکی یم ، | اِذۡ قَالَ رَبُّکَ لِلۡمَلٰٓئِکَۃِ اِنِّیۡ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنۡ طِیۡنٍ (۷۱) |
| بیا کله چې زه هغه په بشپړه توګه جوړ کړم او په هغه کښې خپل روح پوکړم نوتاسي دهغه په وړاندې په سجده پریوځئ . | فَاِذَا سَوَّیۡتُہٗ وَ نَفَخۡتُ فِیۡہِ مِنۡ رُّوۡحِیۡ فَقَعُوۡا لَہٗ سٰجِدِیۡنَ (۷۲) |
| له دغه حکم سره سم پرښتې ټولې په سجده پریوتلې ، | فَسَجَدَ الۡمَلٰٓئِکَۃُ کُلُّہُمۡ اَجۡمَعُوۡنَ (۷۳) |
| خوابلیس خپلې لویې ته غاوره شو او هغه له کافرانو څخه شو . | اِلَّاۤ اِبۡلِیۡسَ ؕ اِسۡتَکۡبَرَ وَ کَانَ مِنَ الۡکٰفِرِیۡنَ (۷۴) |
| رب وفرمایل ((ای ابلیسه ! ته څه شي هغه چاته له سجدې کولونه منع کړې چې ماهغه پخپلو دواړولاسونو ( علم اوقدرت ) سره جوړ کړیدی؟ ایاته تکبر کوې که دلوېي درجې له خاوند انو څخه یې)) ؟ | قَالَ یٰۤاِبۡلِیۡسُ مَا مَنَعَکَ اَنۡ تَسۡجُدَ لِمَا خَلَقۡتُ بِیَدَیَّ ؕ اَسۡتَکۡبَرۡتَ اَمۡ کُنۡتَ مِنَ الۡعَالِیۡنَ (۷۵) |
| هغه ځواب ورکړ ((زه له هغه نه غوره یم ، تازه له اوره پیداکړی یم اوهغه دې له خټې نه پیدا کړی دی )) . | قَالَ اَنَا خَیۡرٌ مِّنۡہُ ؕ خَلَقۡتَنِیۡ مِنۡ نَّارٍ وَّ خَلَقۡتَہٗ مِنۡ طِیۡنٍ (۷۶) |
| ویې فرمایل : ((ښه نوله دې ځایه ووځه، ته رټل شوی یې | قَالَ فَاخۡرُجۡ مِنۡہَا فَاِنَّکَ رَجِیۡمٌ (۷۷) |
| اوپرتا باندې دجزا تروروځې پورې زما لعنت دی )). | وَّ اِنَّ عَلَیۡکَ لَعۡنَتِیۡۤ اِلٰی یَوۡمِ الدِّیۡنِ (۷۸) |
| هغه وویل چې ((ای زما ربه ! چې داخبره ده نو بیا ماته تر هغه وخت پورې مهلت راکړه چې دوې دوهم ځل راژوندي کوالی شي)) | قَالَ رَبِّ فَاَنۡظِرۡنِیۡۤ اِلٰی یَوۡمِ یُبۡعَثُوۡنَ (۷۹) |
| ویې فرمایل ((ښه ده تا ته تر هغې ورځې پورې مهلت دی | قَالَ فَاِنَّکَ مِنَ الۡمُنۡظَرِیۡنَ (۸۰) |
| چې دهغې نیټه ماته معلومه ده | اِلٰی یَوۡمِ الۡوَقۡتِ الۡمَعۡلُوۡمِ (۸۱) |
| هغه وویل ،ستاپر عزت قسم زه به دوی ټول ګمراه کړم | قَالَ فَبِعِزَّتِکَ لَاُغۡوِیَنَّہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۸۲) |
| پرته ستاله هغو بندګانو څخه چې تا هغوی د دوی له جملې نه غوره کړیدی | اِلَّا عِبَادَکَ مِنۡہُمُ الۡمُخۡلَصِیۡنَ (۸۳) |
| وې فرمایل ((نوحق دادی او زه همداحق وایم | قَالَ فَالۡحَقُّ ۫ وَ الۡحَقَّ اَقُوۡلُ (۸۴) |
| چې زه به دوزخ له تا او هغو ټولو کسانو څخه ډك کړم چې له دغو انسانانو نه ستا پیروي وکړي)) . | لَاَمۡلَئَنَّ جَہَنَّمَ مِنۡکَ وَ مِمَّنۡ تَبِعَکَ مِنۡہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۸۵) |
| ای پیغمبره ! ) دوی ته ووایه چې زه پردغه تبلیغ باندې له تاسي ) نه څه اجوره نه غواړم ، او نه زه دساختګي چارو جوړوونکو خلکو . له جملې څخه یم | قُلۡ مَاۤ اَسۡـَٔلُکُمۡ عَلَیۡہِ مِنۡ اَجۡرٍ وَّ مَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُتَکَلِّفِیۡنَ (۸۶) |
| داخو یو نصیحت دی دټولو نړیوالو لپاره . | اِنۡ ہُوَ اِلَّا ذِکۡرٌ لِّلۡعٰلَمِیۡنَ (۸۷) |
| اولږوخت به تېرشي چې تاسي ته د ده حال پخپله معلوم شي . | وَ لَتَعۡلَمُنَّ نَبَاَہٗ بَعۡدَ حِیۡنٍ (۸۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| دغه کتاب دبرلاسي او باحکمته الله لخوا نازل شویدی . | تَنۡزِیۡلُ الۡکِتٰبِ مِنَ اللّٰہِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَکِیۡمِ (۱) |
| ای محمده!)مونږدغه کتاب تاته په حقه نازل کړی دی،له دې کبله ) .ته دهماغه الله بندګي وکړه دهماغه لپاره ددین په خالص کولو سره | اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡکَ الۡکِتٰبَ بِالۡحَقِّ فَاعۡبُدِ اللّٰہَ مُخۡلِصًا لَّہُ الدِّیۡنَ ؕ (۲) |

خبردار ، دين خالص دالله حق دی . پاتې شول هغه کسان چې هغوی له هغه پرته نور سرپرستان نيولي دي ( اودخپل دغه کار دا توجيه کوي چې ) مونږخود هغو عبادت صرف په دی خاطر کوو چې هغوی مونږالله ته ورسوي ، الله به په يقيني ډول دهغو په منځ کښې دټولو هغو خبرو پريکړه وکړي چې هغوی په کښې اختلاف کوي . الله داسي يوچاته هدايت نه کړي چې درواغجن اودحق منکر وي .

اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ؕ وَ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ ۘ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَاۤ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ (٣)

که الله غوښتلای ځوك زوی ونيسي نوله خپل مخلوق نه يې چې چاته خوښه وای غوره کړی به يې و ، پاك دی هغه له دې نه ( چې ځوك دهغه زوی وي ) هغه الله دی ايکی يو او پرټولو برلاسی .

لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (٤)

هغه اسمانونه او ځمکه په حقه پيدا کړيدي . هغه پرورځ شپه او پرشپه ورځ نغاړي . هغه لمر او سپوږمی په داسي شان ايل کړي دي چې هريو تريو ټاکلي وخت پورې روان دي . وپوهيږئ هغه زورور او ښه ښنونکی دی .

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَ يُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ وَ سَخَّرَ الشَّمْسَ وَ الْقَمَرَ ؕ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ (٥)

همغه تاسي له يوځان نه پيدا کړئ ، بيا همغه دی چې له هغه ځان نه يې دهغه جوړه پيداکړه . اوهماغه ستاسي لپاره له څارويونه اته جوړې پيداکړې. هغه ستاسي دميندوپه ګېډوکښې له دريوتيارو پردونه دننه تاسي ته يوپه بل پسې دخلقت يوه بڼه درکوي . همدغه الله ( چې دغه چارې سرته رسوي ) ستاسي رب دی ، باچايي دهماغه ده ، له هغه پرته هيڅ معبود نشته ، نوتاسي کوم لورې ته اړول کيږئ ؟

خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَ اَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ؕ يَخْلُقُكُمْ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ (٦)

که تاسي کافر شئ نو الله له تاسي نه بې نيازه دی ، خوهغه دخپلو بندګانو لپاره کفرنه خوښوي ، اوکه تاسي شکر وباسئ نو هغه دا شکر ستاسي لپاره خوښوي . هيڅ پېټې اخيستونکی به دکوم بل چاپېټې وانخلي . په پای کښې ستاسي ټولو دخپل رب خواته ورګرځيدل دي ، بيا به هغه تاسي ته دروښيي چې تاسي څه کول ، يقينا هغه د سينو پرټو رازونو عالم دی .

اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ ۟ وَ لَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ ۚ وَ اِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ لَكُمْ ؕ وَ لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (٧)

پرانسان چې کله کوم آفت راځي نو هغه دخپل رب خواته په رجوع کولو سره هغه بولي . بيا کله چې دهغه رب هغه پخپل نعمت سره سرلوړی کوي نو هغه بيا هغه مصيبت هيروي چې دهغه له امله يې مخکښې بلنه کوله او نور دالله سيالان ګرځوي ترڅوچې دهغه له لارې نه ( نور خلك هم ) واړوي ( ای پېغمبره !) هغه ته ووايه چې لږورځې له خپل کفر نه خوند واخله ، ته په يقيني ډول دوزخ ته تلونکی يې .

وَ اِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهٗ مُنِيْبًا اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ نِعْمَةً مِّنْهُ نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوْۤا اِلَيْهِ مِنْ قَبْلُ وَ جَعَلَ لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيْلًا ۖۗ اِنَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ (٨)

ايا ددغه انسان کړنلاره غوره ده او که دهغه چا )چې امرمنونکی ) دی ، دشپې په ساعتونوکښې ولاړوي او سجدې کوي ، له اخرت نه وېرېږي او دخپل رب رحمت ته هيله من کيږي ؟ له دوی نه پوښتنه وکړه ، ايا پوهيدونکي او نه پوهيدونکي يو شانته کيدای . شي ؟ نصيحت خود پوهې خاوندان مني

اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّ قَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَ يَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ؕ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ (٩)

ووایه چې ای دخدای بندګانو چې ایمان ( ! ای پېغمبره ) موراوړیدی له خپل رب نه ووېرېږئ . کوموکسانو چې په دی دنیا کښې نیك چلند غوره کړي دی دهغو لپاره ښېګڼه ده او دخدای ځمکه پراخه ده ، صبر کوونکو ته به خپل اجر بې حسابه ورکړشی .

قُلْ يٰعِبَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ؕ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ؕ وَ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ ؕ اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ (۱۰)

ای پېغمبره !) دوی ته ووایه ، ماته امر شویدی چې دالله لپاره د ) دین په خالصولو سره دهغه بندګي وکړم ،

قُلْ اِنِّىْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ۙ(۱۱)

اوماته امر شویدی چې ترټولو دمخه زه پخپله مسلم ( امر منونکی ، اطاعت کوونکی ) شم .

وَ اُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ (۱۲)

ووایه ، که زه دخپل رب نافرماني وکړم نوزه دیوې سترې ورځې له عذاب نه وېرېږم .

قُلْ اِنِّىْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّىْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ (۱۳)

ووایه چې زه خوبه دالله لپاره ددین په خالصولو سره دهمغه بندګي وکړم ،

قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهٗ دِيْنِىْ ۙ(۱۴)

تاسې چې له هغه پرته دهر هر چا بندګي کول غواړئ کوئ يې . ووایه ، اصلي مفلسان خوهمغه کسان دي چې خپل ځانونه او خپلې کورنی یې دقیامت دورځې په زیان کښې واچول . ښه واورئ ، همدغه ښکاره مفلسي ده .

فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ ؕ قُلْ اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَ اَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ (۱۵)

پرهغو به داورچترئ له پاسه هم خورې وي او دلاندې نه هم . داهغه برخليك دی چې له هغه نه الله خپل بندګان وېروي ، نوای زما بندګانو ! زما له غضب نه ځان وساتئ .

لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَ مِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ؕ ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ؕ يٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ (۱۶)

ددې پرخلاف کومو خلکو چې دطاغوت له بندګی نه ډډه وکړه او دالله خواته يې رجوع وکړه دهغو لپاره زېری دی. نو(ای پېغمبره ! ) زېری ورکړه زما هغو بندګانوته

وَ الَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَ اَنَابُوْٓا اِلَى اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ۙ(۱۷)

چې خبره په غور سره اورې او دهغې د ډېر ښه اړخ پيروي کوي . داهغه خلك دي چې هغوته الله تعالی هدايت کړيدی او هم دوی پوهان دي .

الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَ اُولٰٓئِكَ هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ (۱۸)

ای پېغمبره ! ) هغه چاته څوك نجات ورکولی شي چې پرهغه ) باندې دعذاب کلمه تطبيق شوې وي ؟ اياته هغه چاته نجات ورکولی شې چې په اور کښې غور ځېدلی وي ؟

اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ؕ اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِى النَّارِ ۚ(۱۹)

البته کوم کسان چې له خپل رب څخه ووېرېږی دهغو لپاره لوړې مانۍ دي پوړ پرپوړ جوړې شوې . چې ترهغو لاندې به ويالې بهېږې دا دالله وعده ده ، الله هېڅکله له وعدې نه تخلف نه کوي .

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ ۙ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ وَعْدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِيْعَادَ (۲۰)

ايا ته نه وينې چې الله له اسمانه اوبه ورولې ، بيا يې هغه دکاريزونو او چينو او سيندونو په شکل په ځمکه کښې وبهولې ، بيا ددغو اوبو په وسيله هغه راز راز کښتونه راباسي چې بېلابېل رنګونه لري ، بيا هغه کښتونه په پخېدوسره وچېږي ، بيايې ته وينې چې هغه ژېړ شول ، بيا په پای کښې يې الله په ميده کولو سره بوس ګرځوي په حقيقت کښې دپوهه لرونکو لپاره په دې کښې يو درس دی .

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَلَكَهٗ يَنَابِيْعَ فِى الْاَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهٗ حُطٰمًا ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِاُولِى الْاَلْبَابِ (۲۱)

ایا نو هغه څوك چې الله دهغه سینه داسلام لپاره پرانستله او هغه دخپل رب خواته په یوه رڼا باندې روان دی ( دهغه چاپه شان کېدای شي چې له دغو خبرونه یې څه درس وانخیست ؟ ) تباهي ده دهغو خلکو لپاره چې زړونه یې دالله په نصیحت سره لازیات سخت شول هغوی په ښکاره ګمراهی کښې غور ځېدلي دي .

اَفَمَنۡ شَرَحَ اللّٰهُ صَدۡرَهٗ لِلۡاِسۡلَامِ فَهُوَ عَلٰی نُوۡرٍ مِّنۡ رَّبِّهٖ ؕ فَوَیۡلٌ لِّلۡقٰسِیَۃِ قُلُوۡبُهُمۡ مِّنۡ ذِکۡرِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِکَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ (۲۲)

الله ډېر غوره کلام نازل کړی دی ، داسې یوکتاب چې دهغه ټولې برخې یوه بلې ته ورته دي او مضامین په کښې په وارو وارو تکرار شویدي . دهغه په اورېدو سره دهغو خلکو غوني زیګه کېږي چې له خپل رب نه وېرېدونکي دي ، اوبیا دهغو دجسم او دهغو دزړه په نرمېدوسره دالله د ذکر خواته میلان کوي . دا دالله هدایت دی چاته یې چې خوښه شي په دی سره یې سمې لارې ته راولي . او چاته چې الله هدایت ونه کوي دهغه لپاره بیا هېڅ هدایت کوونکی نشته .

اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحۡسَنَ الۡحَدِیۡثِ کِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِیَ ٭ۖ تَقۡشَعِرُّ مِنۡهُ جُلُوۡدُ الَّذِیۡنَ یَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ ۚ ثُمَّ تَلِیۡنُ جُلُوۡدُهُمۡ وَ قُلُوۡبُهُمۡ اِلٰی ذِکۡرِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِکَ هُدَی اللّٰهِ یَهۡدِیۡ بِهٖ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ مَنۡ یُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنۡ هَادٍ (۲۳)

اوس ته دهغه چا دبدحالۍ څه اټکل کولی شي چې دقیامت په ورځ پرخپل مخ باندې دعذاب سخت ګوزار واخلي ؟ دغسې ظالمانو ته خوبه وویل شي چې اوس دهغې ګټې خوند وڅکئ چې تاسې کوله .

اَفَمَنۡ یَّتَّقِیۡ بِوَجۡهِهٖ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ ؕ وَ قِیۡلَ لِلظّٰلِمِیۡنَ ذُوۡقُوۡا مَا کُنۡتُمۡ تَکۡسِبُوۡنَ (۲۴)

له دې نه مخکښې هم ډېرو کسانو همدغسې د درواغو نسبتونه کړیدي په پای کښې ورباندې له داسې لورې عذاب راغئ چې له هغه لورې نه دهغو ګومان هم نشو کېدلی .

کَذَّبَ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ فَاَتٰىهُمُ الۡعَذَابُ مِنۡ حَیۡثُ لَا یَشۡعُرُوۡنَ (۲۵)

بیا الله د دنیا په ژوندانه کښې درسوایی خوند په هغو باندې وڅکه ، او داخرت عذاب خوله دې نه لازیات سخت دی کاشکې دوی پوهېدلای .

فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الۡخِزۡیَ فِی الۡحَیٰوۃِ الدُّنۡیَا ۚ وَ لَعَذَابُ الۡاٰخِرَۃِ اَکۡبَرُ ۘ لَوۡ کَانُوۡا یَعۡلَمُوۡنَ (۲۶)

مونږپه دې قرآن کښې خلکوته راز راز مثالونه بیان کړي دي چې دوی په هوښ کښې راشي .

وَ لَقَدۡ ضَرَبۡنَا لِلنَّاسِ فِیۡ هٰذَا الۡقُرۡاٰنِ مِنۡ کُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمۡ یَتَذَکَّرُوۡنَ (۲۷)

داسې قرآن چې په عربي ژبه کښې دی ، څه کوږوالی په کښې نشته ، ترڅوچې دوی له ناوړه عاقبت نه په ډډه شي .

قُرۡاٰنًا عَرَبِیًّا غَیۡرَ ذِیۡ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمۡ یَتَّقُوۡنَ (۲۸)

الله یو مثال بیانوی . یوخو هغه سړی (مریی) دی چې دهغه په ملکیت کې یوشمېړ بدخویه باداران برخه وال دي هر یو یې خپل خپل لورې ته راکاږي او بل سړی په ټوله معنٰی دایکی یو بادار غلام دی . ایا د دغو دواړو حال یو شانته کیدای شي ؟ الحمدلله بلکې ډېر خلك نه پوهیږي.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِیۡهِ شُرَکَآءُ مُتَشٰکِسُوۡنَ وَ رَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ ؕ هَلۡ یَسۡتَوِیٰنِ مَثَلًا ؕ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ ۚ بَلۡ اَکۡثَرُهُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ (۲۹)

ای پېغمبره ! ) ته هم مړکېدونکی یې او دوی هم مړه کېدونکي دی.

اِنَّکَ مَیِّتٌ وَّ اِنَّهُمۡ مَّیِّتُوۡنَ (۳۰)

په پای کښې به تاسې ټول دخپل رب حضور ته خپله خپله دعوه وړاندې کوئ .

ثُمَّ اِنَّکُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ عِنۡدَ رَبِّکُمۡ تَخۡتَصِمُوۡنَ (۳۱)

له هغه چانه به غټ ظالم بل څوك وي چې پرالله یې دروغ وتړل او کله چې یې مخې ته رېښتینولي راغله نو هغې ته یې د درواغو نسبت وکړ. ایا د دغسې کافرانو له پاره په دوزخ کې استوګنځی نه شته ؟

فَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنۡ کَذَبَ عَلَی اللّٰهِ وَ کَذَّبَ بِالصِّدۡقِ اِذۡ جَآءَهٗ ؕ اَلَیۡسَ فِیۡ جَهَنَّمَ مَثۡوًی لِّلۡکٰفِرِیۡنَ (۳۲)

او كوم سړي چې ريښتينولي راوړه اوكوموكسانو چې هغه ريښتونی وګاڼه همغوی متقيان، له عذاب نه په څنګ كېدونكي دي .

وَ الَّذِیۡ جَآءَ بِالصِّدۡقِ وَ صَدَّقَ بِہٖۤ اُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡمُتَّقُوۡنَ (۳۳)

هغوته به دخپل رب په وړاندې هر هغه څه وركړی شي چې هغوی يې هيله وكړي . دغه ده دنيكي كوونكو بدله .

لَہُمۡ مَّا یَشَآءُوۡنَ عِنۡدَ رَبِّہِمۡ ؕ ذٰلِکَ جَزٰٓؤُا الۡمُحۡسِنِیۡنَ (۳۴)

ترڅوكوم ډېر ناوړه عملونه چې هغوی كړي ووالله هغه دهغو له حسابه وغورځوي او كوم ښه عملونه چې هغوی وكړل دهغو په لحاظ سره به هغوی ته اجرووركړي .

لِیُکَفِّرَ اللّٰہُ عَنۡہُمۡ اَسۡوَاَ الَّذِیۡ عَمِلُوۡا وَ یَجۡزِیَہُمۡ اَجۡرَہُمۡ بِاَحۡسَنِ الَّذِیۡ کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ (۳۵)

ای پېغمبره ! ) ايا الله دخپل بنده لپاره كافي نه دی ؟ دوی له هغه ) پداسې حال كښې چې الله چې څوك . نه پرته له نور وڅخه تاوېروي په ګمراهی كښې وغورځوي دهغه لپاره كوم لارښوونكی نشته ،

اَلَیۡسَ اللّٰہُ بِکَافٍ عَبۡدَہٗ ؕ وَ یُخَوِّفُوۡنَکَ بِالَّذِیۡنَ مِنۡ دُوۡنِہٖ ؕ وَ مَنۡ یُّضۡلِلِ اللّٰہُ فَمَا لَہٗ مِنۡ ہَادٍ (۳۶)

اوچاته چې هغه هدايت وكړي دهغه ګمراه كوونكی هم څوك نشته ، ايا الله برلاسی اوغچ اخستونكی نه دی ؟

وَ مَنۡ یَّہۡدِ اللّٰہُ فَمَا لَہٗ مِنۡ مُّضِلٍّ ؕ اَلَیۡسَ اللّٰہُ بِعَزِیۡزٍ ذِی انۡتِقَامٍ (۳۷)

كه ته له دوی نه پوښتنه وكړې چې اسمانونه او ځمكه چا پيدا كړيدي نو دوی به پخپله ووايي چې الله . دوی ته ووايه ، كله چې حقيقت دادی نو ستاسې څه ګومان دی چې كه الله ماته څه زيان رسول وغواړي نو ايا ستاسې دغه معبودان چې له الله نه پرته يې بولئ . مابه دهغه رسول شوي زيان څخه وژغوري ؟ يا كه الله پرما باندې مهرباني كول وغواړي نو ايا دوی به دهغه درحمت مخنيوي وكړای شي ؟ نو دوی ته ووايه چې زما لپاره همدا الله كافي دی ، توكل كوونكي پرهمغه توكل كوي .

وَ لَئِنۡ سَاَلۡتَہُمۡ مَّنۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ لَیَقُوۡلُنَّ اللّٰہُ ؕ قُلۡ اَفَرَءَیۡتُمۡ مَّا تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ اِنۡ اَرَادَنِیَ اللّٰہُ بِضُرٍّ ہَلۡ ہُنَّ کٰشِفٰتُ ضُرِّہٖۤ اَوۡ اَرَادَنِیۡ بِرَحۡمَۃٍ ہَلۡ ہُنَّ مُمۡسِکٰتُ رَحۡمَتِہٖ ؕ قُلۡ حَسۡبِیَ اللّٰہُ ؕ عَلَیۡہِ یَتَوَکَّلُ الۡمُتَوَکِّلُوۡنَ (۳۸)

دوی ته په صراحت سره ووايه چې ای زما قومه ! تاسې پخپل ځای خپل كار كوئ ، زه به خپل كار كوم ، ډېر ژربه تاسې ته معلومه شي ،

قُلۡ یٰقَوۡمِ اعۡمَلُوۡا عَلٰی مَکَانَتِکُمۡ اِنِّیۡ عَامِلٌ ۚ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ (۳۹)

چې په چاباندې رسوا كوونكی عذاب راځي او چاته هغه سزا وركول كېږي چې هېڅكله ايسته كېدونكي نه ده .

مَنۡ یَّاۡتِیۡہِ عَذَابٌ یُّخۡزِیۡہِ وَ یَحِلُّ عَلَیۡہِ عَذَابٌ مُّقِیۡمٌ (۴۰)

مونږدټولو انسانانو لپاره دغه برحق كتاب پرتا ( ! ای پېغمبره ) نازل كړی دی . نو څوك چې سمه لاره غوره كړي دځان له پاره به يې غوره كوي او څوك چې منحرف شي دهغه دانحراف وبال به پر .همغه وي، ته پر هغوی ساتونكی نه يې

اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡکَ الۡکِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالۡحَقِّ ۚ فَمَنِ اہۡتَدٰی فَلِنَفۡسِہٖ ۚ وَ مَنۡ ضَلَّ فَاِنَّمَا یَضِلُّ عَلَیۡہَا ۚ وَ مَاۤ اَنۡتَ عَلَیۡہِمۡ بِوَکِیۡلٍ (۴۱)

هغه همدغه الله دی چې دمرګ په وخت كښې ساګانې اخلي او څوك چې لاتر اوسه پورې نه دی مړ شوي دهغه روح په خوب كښې قبض كوي ، بيا چې هغه دمرګ فيصله پر چاباندې نافذوي ، هغه ساتي او د نورو ساګاني تر يو ټاكلي وخت پورې بېرته (جسدونوته) لېږي . په دی كښې غټې نښانې دي دهغوكسانو لپاره چې غور او فكر كوونكي دي .

اَللّٰہُ یَتَوَفَّی الۡاَنۡفُسَ حِیۡنَ مَوۡتِہَا وَ الَّتِیۡ لَمۡ تَمُتۡ فِیۡ مَنَامِہَا ۚ فَیُمۡسِکُ الَّتِیۡ قَضٰی عَلَیۡہَا الۡمَوۡتَ وَ یُرۡسِلُ الۡاُخۡرٰۤی اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّتَفَکَّرُوۡنَ (۴۲)

ايا له هغه خدای نه پرته دوی نور سپارښت كوونكي نيولي دي ؟ دوی ته ووايه ايا هغوی به شفاعت وكړي كه دهغو په واك كښې هېڅ هم نه وي او پوهه هم ونه لري ؟

اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ شُفَعَآءَ ؕ قُلۡ اَوَ لَوۡ کَانُوۡا لَا یَمۡلِکُوۡنَ شَیۡئًا وَّ لَا یَعۡقِلُوۡنَ (۴۳)

ووايه شفاعت په ټوله معنا دالله په واك كښې دی ، داسمانونو او ځمكې دباچاهۍ مالك هماغه دی ، بيا دهماغه لورې ته تاسې وركرځول كېدونكي ياست .

قُلۡ لِّلّٰہِ الشَّفَاعَۃُ جَمِیۡعًا ؕ لَہٗ مُلۡکُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ ثُمَّ اِلَیۡہِ تُرۡجَعُوۡنَ (۴۴)

کله چي یوازې دالله یادونه کېږي نو پراخرت باندي د ایمان نه لرونکو زړونه په درزېدو شي ، اوکله چي له هغه پرته دنورو یادونه کېږي نو په ناڅاپي ډول هغوی له خوښی نه غوړېږي .

وَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ اشْمَاَزَّتْ قُلُوْبُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ ۚ وَ اِذَا ذُكِرَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ (۴۵)

ووایه ، خدایه ! داسمانونو اوځمکي پیدا کوونکیه ، پر پټ او ښکاره باندي پوهېدونکیه ! همداته به دخپلو بندګانو په مینځ کښي دهغه شي فیصله وکړې چي هغوی په کښي اختلاف کوي.

قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيْ مَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ (۴۶)

که له دغو ظالمانو سره دځمکي ټوله شتمني هم وي ، او همدومره نوره هم نودوی به دقیامت له ناوړه عذاب نه دخلاصون لپاره په فدیه کښي دهر څه ورکولو لپاره چمتوشي . هلته به دالله لخوا دهغو مخي ته هغه څه راشي چي هغوی هېڅکله د هغه فکر نه دی کړی .

وَ لَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّ مِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَ بَدَا لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ (۴۷)

هلته به دخپلي ګټي ټولي ناوړه نتیجي هغوته څرګندي شي او هماغه شی به ورباندې مسلط شي چي دوی ورپورې ټوکي کولي .

وَ بَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا وَ حَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۴۸)

همدغه انسان چي کله لږغوندي غم یې سکونډي نوموږبولي او کله چي موږدی له خپل لوري نه دنعمت په ورکولو سره ناز وو نو وایي چي داخوماته دعلم پراساس راکړل شویدي ! نه ، بلکي دا ازمینت دی ، خوله دوی نه زیاتره خلك نه پوهېږي .

فَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ۫ ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ نِعْمَةً مِّنَّا ۙ قَالَ اِنَّمَاۤ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ ؕ بَلْ هِىَ فِتْنَةٌ وَّ لٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ (۴۹)

همدغه خبره له دوی نه مخکښي تېرو شویو خلکو هم کړېده ، خوڅه چي هغوی ګټل هغه دهغو هېڅ په درد ونه خوړل ،

قَدْ قَالَهَا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَمَاۤ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (۵۰)

بیا هغوی دخپلی ګټي ناوړه نتیجي وزغملي ، اوله دغو خلکو نه هم چي څوك ظالمان دي هغوی به ډېر ژر دخپلی ګټي ناوړه نتیجي وګالي ، دوی زموږ عاجزوونکي نه دي .

فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ؕ وَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰۤؤُلَاۤءِ سَيُصِيْبُهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ۙ وَ مَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ (۵۱)

او ایا دوی ته معلومه نه ده چي دالله چاته خوښه شي روزي يې پراخوي او چاته یې چي خوښه شي تنګوي یې ؟ په دې کښي نښاني دي دهغو کسانو لپاره چي ایمان راوړي .

اَوَ لَمْ يَعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ (۵۲)

ای پیغمبره !) هغو بندګانو ته مي ووایه کوموکسانو چي پرخپلو ) ځانونو تیری کړی دی ، چي دالله له رحمت نه مه ناهیلي کېږئ ، . په یقیني ډول الله ټولي ګناوې ښني هغه ښنونکی اومهربان دی

قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ (۵۳)

او راوګرځئ دخپل رب خواته او امر منونکي شئ دهغه ،مخکښي له دې نه چي پرتاسي عذاب راشي او بیا له هېڅ لوري نه درته مرسته ونشي رسېدلای .

وَ اَنِيْبُوْۤا اِلٰى رَبِّكُمْ وَ اَسْلِمُوْا لَهٗ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ (۵۴)

او دخپل رب دلېږل شوي کتاب ډېر غوره اړخ غوره کړئ ، مخکښي له دې نه چي پرتاسي ناڅاپي عذاب راشي او تاسي خبر هم ونه اوسئ .

وَ اتَّبِعُوْۤا اَحْسَنَ مَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَّ اَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ (۵۵)

داسي نه چي وروسته څوك ووایي چي ((افسوس زما پرهغه تقصیر چي مادالله په شان کښي وکړ بلکي زه خو په ملنډو وهونکو کښي شامل وم))

اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ وَ اِنْ كُنْتُ لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ (۵۶)

یا ووایي ((کاشکي الله ماته هدایت کړی وای نو زه به هم له پرهیز ګارانو څخه وم))

اَوْ تَقُوْلَ لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِيْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ (۵۷)

يا دعذاب په ليدلو سره ووايي ((كاشكي ماته يوبل فرصت په لاس راشي او زه هم دښه عمل له كوونكو څخه شم)).

اَوْ تَقُوْلَ حِيْنَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ اَنَّ لِيْ كَرَّةً فَاَكُوْنَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ (۵۸)

اوپه هغه وخت كښې ورته داځواب وركړ شي چي ) ولې نه ، تاته ) زما ايتونه راغلي وو ، بيا تا هغه درواغ وګڼل اوتكبردې وكړ او ته . ((له كافرانو څخه وې

بَلٰى قَدْ جَآءَتْكَ اٰيٰتِيْ فَكَذَّبْتَ بِهَا وَ اسْتَكْبَرْتَ وَ كُنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ (۵۹)

نن چي كومو كسانو پرخداى درواغ تړلي دي دقيامت په ورځ به ته هغوى ووينې چي مخونه به يې توروي . ايا په دوزخ كې دلوئي كوونكوكافرانوله پاره كافى ځاى نه شته ؟

وَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ (۶۰)

د دې برعكس كوموكسانو چي دلته پرهېزګاري كړې ده ، دهغودبرياليتوب دأسبابو له امله به الله هغوى ته نجات وركړي هغوى ته به نه څه افت ورسيږى اونه به هغوى غمجن وي .

وَ يُنَجِّى اللّٰهُ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ ۫ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْٓءُ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ (۶۱)

الله دهر شي هستوونكى دى او هماغه دهر شي ساتونكى دى.

اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۫ وَّ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ (۶۲)

داسمانونو او ځمكي دخزانو كليګاني له همغه سره دي . او كوم كسان چي دالله پرايتونو باندې كافران شوي دي هماغوى په زيان كي غور ځېدونكي دي .

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۶۳)

اى پيغمبره!) دوى ته ووايه : (( نو ايا اى جاهلانو ! تاسي له الله نه ) .((پرته دكوم بل چادبندګى كولو له پاره ماته واياست ؟

قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ (۶۴)

داخبره بايد ته هغوته په ډاګه څرګنده وكړى ځكه چي ) تاته او له ) تانه مخښكي تير شويو ټولو پيغمبرانو ته دغه وحي لېږل شوېده چي كه تا شرك وكړ نو ستا عمل به بابېږه شي او ته به په زيان كښې لويدلى اوسې

وَ لَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَ اِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَ لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ (۶۵)

له دې كبله ( اى پيغمبره ! ) ته يوازې دالله بندګي وكړه اوله شكركوونكو بندګانو څخه شه .

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَ كُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ (۶۶)

دوى هغسي دالله قدر ونه كړ لكه څنګه چي دهغه دقدر كولو حق دى (دهغه كامل قدرت خو داسي دى چي ) دقيامت په ورځ به ټوله ځمكه دهغه په موټي كښې وي او اسمانونه به دهغه په ښي لاس كښې نغښتل شوي وي . پاك اولوړ دى هغه له هغه شرك نه چي دوى يې كوى .

وَ مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ۖ وَ الْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ السَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ بِيَمِيْنِهٖ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۶۷)

او په هغه ورځ به شپيلى پوكړه شي او هغه ټول چي په اسمانونو اوځمكه كي دي مره به راوغورځېږي پرته له هغوى چي الله دهغوژوند غواړي ، بيا به يوه بله شپيلى پوكړه شي او په ناڅاپي ډول به ټول را پاڅېږي كوري به.

وَ نُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ؕ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ (۶۸)

ځمكه به دخپل رب په نور سره ځلانده شي ، دعملنامو كتاب به كېښودل شي ، پېغمبران او ټول شاهدان به را حاضر كړاى شي ، دخلكو په مينځ كښې به له حق سره سمه فيصله وكړاى شي او پرهغو به هېڅ ظلم نه وي ،

وَ اَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا وَ وُضِعَ الْكِتٰبُ وَ جِايْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَ الشُّهَدَآءِ وَ قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (۶۹)

او هر چاته به هرڅه عمل يې چي كړى و دهغه پوره بشپړه بدله وركړه شي خلك چي هرڅه كوي الله پرې ښه پوهېږي .

وَ وُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ (۷۰)

هغه کسان چي کافر شوي وو ډله ډله به (له دغي فيصلي وروسته) د دوزخ خواته وشړل شي ، تردي پوري چي کله هغوی هلته ورسيږي نو دهغه دروازي به پرانستل شي او دهغه کارکنان به هغوته ووايي چي (( ايا تاسي ته ستاسي له خپلوخلکو نه داسي رسولان نه وو راغلي چي هغوي تاسي ته ستاسي درب ايتونه اورولي وي او تاسي يي له دي خبري نه وېرولي ياست چي يووخت به تاسي دغه ورځ هم وينئ ؟)) . هغوی به ځواب ورکړي ، ((هو! ((راغلي وو خو دعذاب فيصله پرکافرانو تطبيق شوه

وَ سِيْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَ قَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ وَ يُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا بَلٰى وَ لٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ (۷۱)

وبه ويل شي ، ننوځئ د دوزخ په دوراز وکښي ، دلته اوس ستاسي هميشنی استوګنه ده ډېر بد استوګنځی دی دا دمتکبرانو (لپاره) .

قِيْلَ ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ (۷۲)

اوکومو کسانو چي دخپل رب له نافرمانی نه ډ ډه کوله هغوی به ډلي ډلي دجنت خواته بوتلل شي . تردي پوري کله چي هغوی هلته ورسيږي ، او دهغه دروازي به لادمخه پرانستل شوي وي . نو دهغه منتظمين به هغوته ووايي چي ،سلام دي وي پرتاسي ، ډېرښه راغلئ ، ننوځئ په ده کښي دتل لپاره)).

وَ سِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا وَ فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَ قَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ (۷۳)

او هغوی به ووايي (( شکر دی دهغه خدای چي له مونږسره يي خپله وعده رښتوني کړه او مونږيي (دجنت) د ځمکی وارثان وګرځولو ، اوس چي مونږپه جنت کښي هرچيرته وغواړو خپل ځای جوړ ولی شو )). نو ډېر ښه اجر دی دعمل کوونکو لپاره.

وَ قَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ صَدَقَنَا وَعْدَهٗ وَ اَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ (۷۴)

او ته به وګوري چي پرښتي دعرش چارچاپېر حلقه جوړي شوي دخپل رب ثنا ويونکي او پاکي بيانوونکي به وي ، او دخلکو په مينځ کښي به له حق سره سمه فيصله صادره کړای شي ، او غږبه وشي ثنا ستاينه ده د الله رب العلمين لپاره.

وَ تَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ وَ قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَ قِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۷۵)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حَ – مَ –

حٰمٓ ۚ (۱)

ددغه کتاب نازلېدل دالله لخوا دي چي برلاسی دی ، په هرڅه باندې پوهېدونکی دی ،

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۙ (۲)

دګناه معافوونکی او توبه قبلوونکی دی ، سخت سزاورکوونکی او ډېر دفضل خاوند دی . له هغه پرته هيڅ معبود نشته دهماغه لوري ته دتولو ورګرځېدل دي .

غَافِرِ الذَّنْۢبِ وَ قَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ۙ ذِي الطَّوْلِ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ (۳)

دالله په ايتونو کښي جګړې نه کوي مګر يوازې هغه کسان چي هغوی کافر شويدي .له دي وروسته دي دنړی په هېواد ونو کښي دهغو ګرځېدل راګرځېدل تاپه څه فريب کښي وانه چوي .

مَا يُجَادِلُ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ (۴)

له دوی نه مخکښې د نوح ع قوم هم د درواغونسبت کړی دی ، اوله هغونه وروسته ډېرو نورو ډلو هم دغه کار کړی دی. هرقوم پرخپل پيغمبر باندې ناوړه قصد اوحمله وکړه ترڅوچي هغه ونيسي . هغوی ټولو دباطل په وسلي سره دحق د مغلوب ښودلو هڅه وکړه ، خوپه پای کښي ماهغوی ونيول ، نو وګوره چي زما عذاب څنګه سخت وُ .

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۪ وَ هَمَّتْ كُلُّ اُمَّةٍۭ بِرَسُوْلِهِمْ لِيَاْخُذُوْهُ وَ جٰدَلُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ فَاَخَذْتُهُمْ ۫ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ (۵)

په همدې ډول ستا درب دافیصله هم پرتولو هغو کسانو باندې تطبیق شوېده چې دکفر مرتکب شوي دي چې هغوی دوزخ ته تلونکي دي.

وَ كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ۘ(۶)

دا لهی عرش حاملې پرښتې چې دعرش شاوخوا حاضرې او سېږي ، ټولې دخپل رب له ثناستاینې سره دهغه پاکې بیا نوي . هغوی پرالله ایمان لري او دمومنانو په حق کښې دښښنې دعا کوي . هغوی وایي (( ای زمونږ.ربه ! ته پخپل رحمت اوپه خپل علم سره په هر شي باندې خور شوی یې ، نو هغو کسانو ته ښښنه وکړه او د دوزخ له اوره یې وژغوره چې هغوی توبه وېستلې ده او ستالاره یې غوره کړې ده .

اَلَّذِيْنَ يَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ وَ مَنْ حَوْلَهٗ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَ يَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّ عِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا وَ اتَّبَعُوْا سَبِيْلَكَ وَ قِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ (۷)

ای زمونږ.ربه ، او هغوی هغو جاوداني جنتونوته داخل کړه چې تایې وعده له هغو سره کړېده ، اودهغو له مور پلار او مېرمنو او اولادونو څخه چې څوك صالحان وي ( هغوی هم له هغو سره یوځای هلته بوځه). ته بېشکه قادر مطلق او دحکمت څښتن یې

رَبَّنَا وَ اَدْخِلْهُمْ جَنّٰتِ عَدْنِ الَّتِيْ وَعَدْتَّهُمْ وَ مَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَ اَزْوَاجِهِمْ وَ ذُرِّيّٰتِهِمْ ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۙ(۸)

او وژغوره هغوی له بدیونه . تاچې څوك دقیامت دورځې له بدیونه وژغوره پرهغه دې لوی رحم وکړ ، همدغه ستربریالیتوب دی .

وَ قِهِمُ السَّيِّاٰتِ ؕ وَ مَنْ تَقِ السَّيِّاٰتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ ؕ وَ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (۹)

کوم کسان چې کافران شویدي دقیامت په ورځ به هغوته په اوازکولو وویل شي (( نن چې تاسې څومره سخت خپل ځان ته په غوسه کېږئ الله له دې نه زیات پرتاسې هغه وخت په غوسه کېده چې تاسې ایمان ته رابلل کېدئ او تاسې کفر کاوه )).

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ فَتَكْفُرُوْنَ (۱۰)

هغوی به وایي ، (( ای زمونږ.ربه ! تاپه ریښتیا سره مونږ.ته دوه ځله مرګ او دوه ځله ژوند راکړی دی ، اوس مونږ.پر خپلو ګناهونوباندې اعتراف کوو ، ایا اوس له دې ځایه دوتلو څه لاره شته ؟)).

قَالُوْا رَبَّنَا اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَ اَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا فَهَلْ اِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ (۱۱)

دغه حالت چې تاسې په کښې اخته یې ، له ( ځواب به ورکړشي ) دې امله دی چې کله یوازې دالله خواته بلنه کېدله نوتاسې نه منله او کله چې له هغه سره نور یوځای کېدل نو تاسې منله . اوس فیصله دلوی او لوړ خدای په لاس کښې ده .

ذٰلِكُمْ بِاَنَّهٗ اِذَا دُعِيَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ كَفَرْتُمْ ۚ وَ اِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ تُؤْمِنُوْا ؕ فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ (۱۲)

هماغه ذات دی چې تاسې ته خپلې نښانې درښیي اوله اسمانه ستاسې لپاره روزي نازلوي ، خو ( ددغو نښانوپه لېدلو سره ) درس یوازې هماغه څوك اخلي چې دالله لوري ته رجوع کوونکی وي .

هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ وَ يُنَزِّلُ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ رِزْقًا ؕ وَ مَا يَتَذَكَّرُ اِلَّا مَنْ يُّنِيْبُ (۱۳)

هماغه الله وبولئ دهغه لپاره دخپل دین په ( ! نوای رجوع کوونکو ) خالص ګرځولو سره ، اګرکه ستاسې دغه کار دکافرانو هرڅومره بداېسي .

فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَ لَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ (۱۴)

هغه دلوړو درجو خاوند ، دعرش څښتن دی . له خپلو بندګانو نه په هر چا باندې چې وغواړي په خپل حکم سره روح (دوحې پرښته) نازلوی ترڅوچې هغه دملاقات له ورځې نه خلك ووېروي.

رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ ۚ يُلْقِي الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ۙ(۱۵)

هغه ورځ چې ټول خلك بې پردې وي . له الله نه به دهغو هېڅ خبره هم پټه نه وي . ( په هغه ورځ به په لوړ اواز پوښتنه وشي ) نن باچاهي دچاده ؟ ( ټول مخلوق به غږوكړي) ديوه قهار خداى.

يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ؕ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ؕ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ (١٦)

وبه ويل شي ) نن به هر چا ته دهغې كړنې بدله وركړه شي چې ) هغه كړې وي . نن به پرهېچا څه ظلم نه وي او الله په حساب . اخيستلو كښې ډېر ګړندى دى

اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ؕ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ (١٧)

اى پېغمبره ! دوى له هغې ورځې نه وډار كړه چې رانږدې شوېده كله چې زړونه خولې ته راغلي وي او خلك غلي ولاړ غم ګوټوي د ظالمانو به نه كوم خوا خوږى دوست وي او نه كوم سپارښت ګر چې خبره يې ومنله شي .

وَ اَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كٰظِمِيْنَ ۚ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّ لَا شَفِيْعٍ يُّطَاعُ ؕ(١٨)

الله اّن دستركو پرغلا باندې پوهېږي او اّن په هغه راز باندې پوهېږي چې سينوپټ ساتلى دى .

يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَ مَا تُخْفِى الصُّدُوْرُ (١٩)

او الله به له حق سره سمه فيصله وكړي . پاتې شول هغه چې ( دغه مشركان يې ) له الله نه پرته بولي ، هغوى دهېڅ شي فيصله كوونكي هم نه دي بېشكه همدالله دهر څه اورېدونكى اولېدونكى دى .

وَ اللّٰهُ يَقْضِىْ بِالْحَقِّ ؕ وَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ (٢٠)

ايا دوى كله په ځمكه كښې ګرځېدلي نه دي چې دوى دهغو خلكو عاقبت ليدلى واى چې له دوى نه مخكې تېرشوي دي ؟ هغوى له دوى نه زيات قوي وو اوله دوى نه زياتې قوي نښې نښانې يې په ځمكه كښې پرې اېښې دى . خوالله دهغو پرګناهونو هغوى ونيول اوله الله نه دهغو ژغورونكى هېڅوك نه وْ .

اَوَ لَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ كَانُوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّ اٰثَارًا فِى الْاَرْضِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَ مَا كَانَ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ (٢١)

له دې امله دهغوى دغه عاقبت شوچې هغوته دهغو رسولان له ځرګندو دليلونو سره راغلل او هغوى يې له منلونه انكار وكړ .په پاى كښې الله هغوى ونيول ، په يقيني ډول هغه د ډېر قوت خاوند او په سزا وركولو كښې ډېر سخت دى .

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ قَوِىٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (٢٢)

او مونږموسى له خپلو نښانو او دماموريت له ځرګند سند سره وليږه .

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَ سُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ (٢٣)

فرعون ، هامان او قارون ته خو هغوې وويل : كوډګر دى ډېر درواغجن دى.

اِلٰى فِرْعَوْنَ وَ هَامٰنَ وَ قَارُوْنَ فَقَالُوْا سٰحِرٌ كَذَّابٌ (٢٤)

بيا كله چې هغه زمونږلخوا هغوى ته حق راوړ نو هغوى وويل ((كوموكسانو چې ايمان راوړى له ده سره ملګري شويدي دهغو ټولو زامن ووژنئ او لونې يې ژوندى پرېږدئ )) خودكافرانو دسيسه ناكامه شوه .

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوْا اَبْنَآءَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ وَ اسْتَحْيُوْا نِسَآءَهُمْ ؕ وَ مَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ (٢٥)

يوه ورځ) فرعون خپلو درباريانو ته وويل (( ماپرېږدئ زه موسٰي ) وژنم ، اودى دې خپل رب ته غږكړي . زه وېرېږم چې دى به . ((ستاسې دين بدل كړي ، يابه په هېواد كښې فساد راولاړكړي

وَ قَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِىْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى وَ لْيَدْعُ رَبَّهٗ ۚ اِنِّىْٓ اَخَافُ اَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ فِى الْاَرْضِ الْفَسَادَ (٢٦)

موسى وويل (( ماخود هرهغه متكبر په مقابل كښې چې دحساب پرورځ ايمان نه لري خپل رب اوستاسې رب ته پناه ور وړېده )) .

وَ قَالَ مُوْسٰى اِنِّىْ عُذْتُ بِرَبِّىْ وَ رَبِّكُمْ مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ (٢٧)

په دې وخت کښې له ال فرعون څخه یو مومن سړي چې خپل ایمان یې پټ کړی و غږوکړ (( ایا تاسې یو سړی صرف په دې اساس وژنيء چې هغه وایي زما رب الله دی ؟ په داسې حال کښې چې هغه ستاسې درب لخوا تاسې ته له څرګندو دلیلونو سره راغلی . که هغه درواغجن وي نو دهغه درواغ به پخپله پرهماغه ور واړوي خوکه هغه رینښتونی وي نودکومو هولناکو نتیجو نه چې هغه تاسې وېروي له هغونه خو به یوڅه پرتاسې ارومرو راشي . الله داسې یوچاته هدایت نه کوي چې له حده تېرېدونکی او ډېر درواغجن وي.

وَ قَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ ۖ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗٓ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ وَ قَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ مِنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَ اِنْ يَّكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهٗ ۚ وَ اِنْ يَّكُ صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ يَعِدُكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ (۲۸)

ای زماقومه! نن له تاسې سره باچاهي ده اوپه ځمکه کښې تاسې برلاسي يئ ، خو که دخدای عذاب پرمونږراغی تو بیا څوك دی چې له مونږسره مرسته وکړای شي . فرعون وویل (( زه خوتاسې ته همغه رایه درکوم چې ماته مناسبه ښکارېږي او زه دهماغې لارې په لورې تاسې ته لارښوونه کوم چې سمه ده)).

يٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۫ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا مِنْ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا ؕ قَالَ فِرْعَوْنُ مَاۤ اُرِيْكُمْ اِلَّا مَاۤ اَرٰى وَ مَاۤ اَهْدِيْكُمْ اِلَّا سَبِيْلَ الرَّشَادِ (۲۹)

هغه سړي چې ایمان یې راوړی و ویې ویل (( ای زما قومه ! زه وېرېږم چې نه چېرته پرتاسې هغه ورځ راشي چې له دې نه مخکښې پرډېرو ډلو باندې راغلې ده .

وَ قَالَ الَّذِيْۤ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اِنِّيْۤ اَخَافُ عَلَيْكُمْ مِّثْلَ يَوْمِ الْاَحْزَابِ (۳۰)

لکه څنګه ورځ چې د نوح پرقوم او دعایانو او ثمودیانو اوله هغو نه وروسته قومونو باندې راغلې وه . او حقیقت دادی چې الله پرخپلو بندګانو دظلم هېڅ اراده نه لري.

مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ وَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕ وَ مَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ (۳۱)

ای قومه ! زه وېرېږم چې نه چېرته پرتاسې دفریاد اوسرټکونې ورځ راشي

وَ يٰقَوْمِ اِنِّيْۤ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ (۳۲)

هغه وخت چې تاسې (یوبل ته غږوکړئ) او په تېښته تېښته په شا وګرځئ ، مګر ، په هغه وخت کښې به له الله نه ستاسې کوم ژغورونکی نه وي . رینښتیا داده چې الله چې څوك ګمراه کړي هغه ته بیا هېڅوك لارښوونکی نه وي .

يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ وَ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ (۳۳)

له دې مخکښې یوسف تاسې ته له څرګندو دلیلونو سره راغلی و خو تاسې دهغه دراوړې لارښوونې لخوا په شك کښې وغورځېدلئ . بیا کله چې هغه وفات شو نو تاسې وویل له ده وروسته به الله هېڅکله کوم پېغمبرونه لېږي په همدې ډول الله ټول هغه کسان په ګمراهی کښې اچوي چې له حده تېرېدونکي اوشکي وي .

وَ لَقَدْ جَآءَكُمْ يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُمْ بِهٖ ؕ حَتّٰۤى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا ؕ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابُ ۚ (۳۴)

او دغه خلك دالله په ایتونو کښې جګړې کوي بې له دې چې هغوته کوم سندیا دلیل راغلی وي . دغه کړنلاره دالله او دومنانو په نزد سخته کرکجنه ده . په همدې ډول الله دهر متکبر او جبار پرزړه ټاپه وهي .

الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْۤ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ ؕ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ وَ عِنْدَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ (۳۵)

فرعون وویل (( ای هامانه ! زما لپاره یوه لوړه ماڼی جوړه کړه ترڅوچې زه ترلارو پورې ورسېدای شم.

وَ قَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْۤ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ (۳۶)

داسمانونو ترلارو پورې ، او دموسى خداى لږووينم ، ماته خو دغه موسى درواغجن ښكارېږي )) په دې توگه دفرعون لپاره دهغه بد عملي ښايسته كړاى شوه او هغه له سمې لارې نه منع كړاى شو . د فرعون ټولې دسيسې ( دهغه دخپلې) تباهى په لاره كښې په كار واچول شوې .

اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَاَطَّلِعَ اِلٰى اِلٰهِ مُوْسٰى وَ اِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ؕ وَ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَ صُدَّ عَنِ السَّبِيْلِ ؕ وَ مَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِيْ تَبَابٍ (٣٧)

هغه سړي چې ايمان يې راوړى وُ وويل (( اى زما قومه ! زما خبره ومنئ . زه تاسې ته سمه لاره ښيم .

وَ قَالَ الَّذِيْٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ اَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ ۚ(٣٨)

اى قومه ! دغه دنيوي ژوند خو څوورځې دى ، دتل ترتله استوگنې ځاى اخرت دى .

يٰقَوْمِ اِنَّمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ ۫ وَّ اِنَّ الْاٰخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ (٣٩)

څوك چې بدي وكړي هغه ته به هماغومره بدله وركړه شي څومره چې هغه بدي كړې وي . او څوك چې ښه عمل وكړي كه هغه نارينه وي او كه ښځه ، په دې شرط چې وي هغه مومن ، دغسې ټول خلك به جنت ته داخل شي چې هلته به هغوته بې حسابه روزي وركړه شي.

مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا ۚ وَ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ (٤٠)

اى قومه ! ښه نو داڅه پېښه ده چې زه خوتاسې دخلاصون خواته رابولم اوتاسې ماداور خواته بولئ .

وَ يٰقَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَ تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَى النَّارِ ؕ(٤١)

تاسې ماته ددې خبرې بلنه راكوئ چې زه له الله نه انكار وكړم او له هغه سره هغه هستى شريكې وگڼم چې زه يې نه پېژنم . په داسې حال كښې چې زه تاسې دبرلاسي ښښونكي خداى خواته بولم .

تَدْعُوْنَنِيْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَ اُشْرِكَ بِهٖ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ۫ وَّ اَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ (٤٢)

نه ، حقه داده او ددې پرخلاف نشي كېداى دكومو خواته چې تاسې مابولئ دهغو لپاره نه په دنيا كښې څه بلنه شته او نه په اخرت كښې ، او زمونږټولو ورگرځېدل فقط د الله خواته دي ، او يقيناً همدغه له حده تېرې كوونكي اورته تلونكي دي .

لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا وَ لَا فِي الْاٰخِرَةِ وَ اَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَى اللّٰهِ وَ اَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ (٤٣)

نن چې زه څه وايم ډېر ژر به هغه وخت راشي چې تاسې به هغه درياد كړئ . او خپله معامله زه الله ته سپارم . الله دخپلو بندگانو ليدونكى دى .

فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ ؕ وَ اُفَوِّضُ اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ (٤٤)

په پاى كښې (هغوكسانو چې ډېرې ناوړه دسيسې يې دهغه موءمن پرضد په كار واچولې) ، الله له هغوټولونه هغه وساته ، او دفرعون ملگري پخپله په ډېر بدعذاب كښې راگير شول .

فَوَقٰىهُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا وَ حَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْٓءُ الْعَذَابِ ۚ(٤٥)

د دوزخ اور دى چې هغه ته سهار او ماښام (په عالم برزخ كې) هغوى وړاندې كولى شي ، اوكله چې دقيامت ساعت راشي نو امربه وشي چې آل فرعون ډېر سخت عذاب ته ورننباسئ .

اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّ عَشِيًّا ۚ وَ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۫ اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ (٤٦)

او هغه وخت يادكړه چې دوى به په دوزخ كښې يوله بل سره جگړه كوونكي وي . په دنيا كښې چې كوم كسان كمزوري وو هغوى به تكبر كوونكو ته وايي چې (( مونږستاسې تابع وو . اوس ايادلته به تاسې د دوزخ داور له كړاوء څخه څه لږډېر مونږوژغورئ ؟))

وَ اِذْ يَتَحَآجُّوْنَ فِي النَّارِ فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا نَصِيْبًا مِّنَ النَّارِ (٤٧)

هغه تكبر كوونكي به ځواب وركړي چې (( مونږټول دلته په يو حال كښې يو او الله دبندگانو په مينځ كښې فيصله كړېده )) .

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُلٌّ فِيْهَآ ۙ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ (٤٨)

بيا به په دوزخ كښې دغه لوېدلي كسان د دوزخ دچارو موظفينو ته وايي (( له خپل رب نه دعا وكړئ چې زموږپه عذاب كې فقط ديوې ورځې تخفيف راولي)) .

وَ قَالَ الَّذِيْنَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوْا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ (٤٩)

هغوی به پوښتنه وکړي (( ایا تاسي ته ستاسي رسولان له څرګندو دلیلونو سره نه وو درغلي ؟)) هغوی به ووایي ((هو)) د دوزخ دچارو موظفین به ووایي (( نو تاسي پخپله دعاوکړئ ، اودکافرانو دعا بې ګټي ده)).

قَالُوْٓا اَوَ لَمْ تَکُ تَاْتِیْکُمْ رُسُلُکُمْ بِالْبَیِّنٰتِ ؕ قَالُوْا بَلٰی ؕ قَالُوْا فَادْعُوْا ۚ وَ مَا دُعٰٓؤُا الْکٰفِرِیْنَ اِلَّا فِیْ ضَلٰلٍ (۵۰)

باور ولرئ چې مونږد خپلو پېغمبرانو او مومنانو مرسته ارومرو د دې دنیا په ژوند کښي هم کوو او په هغه ورځ به یې هم وکړو چې کله شاهدان ولاړوي ،

اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا وَ یَوْمَ یَقُوْمُ الْاَشْهَادُ (۵۱)

په هغه ورځ چې ظالمانو ته دهغو معذرت هېڅ ګټه ونه رسوي او پرهغوی لعنت ولوېږي او دهغو په برخه ډېر بد استوګنځی ورسېږي ،

یَوْمَ لَا یَنْفَعُ الظّٰلِمِیْنَ مَعْذِرَتُهُمْ وَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَ لَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ (۵۲)

ښه نو، وګوره چې موسی ته مونږلارښوونه وکړه او بني اسرائیل مودهغه کتاب وارثان وګرځول

وَ لَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْهُدٰی وَ اَوْرَثْنَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ الْکِتٰبَ (۵۳)

چې دعقل او پوهې لرونکو لپاره هدایت او نصیحت وْ.

هُدًی وَّ ذِکْرٰی لِاُولِی الْاَلْبَابِ (۵۴)

نو ای پېغمبره ! صبروکړه دالله وعده برحقه ده ، دخپل امت دقصور ښښنه وغواړه او سهار او ماښام دخپل رب له ثنا ستاینې سره دهغه پاکي بیا نوه .

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ اسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِکَ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ بِالْعَشِیِّ وَ الْاِبْکَارِ (۵۵)

حقیقت دادی چې کوم کسان چې له کوم سند او حجت نه پرته چې هغوته راغلي وي ، دالله په ایتونوکښي جګړې کوي دهغو زړونه له کبره ډک شویدي ، خو هغوی دغې لویې ته هیڅکېږي رسیدای نشي نو د الله پناه وغواړه هغه ښه اورېدونکی او ښه لیدونکی دی.

اِنَّ الَّذِیْنَ یُجَادِلُوْنَ فِیْٓ اٰیٰتِ اللّٰهِ بِغَیْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰهُمْ ۙ اِنْ فِیْ صُدُوْرِهِمْ اِلَّا کِبْرٌ مَّا هُمْ بِبَالِغِیْهِ ۚ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْبَصِیْرُ (۵۶)

داسمانو نو او ځمکي پیدا کول دانسانانو دپیداکولو په پرتله په باوري ډول ډېر لوی کار دی ، خو زیاتره خلك نه پوهېږي .

لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ اَکْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَ لٰکِنَّ اَکْثَرَ النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ (۵۷)

او دانشي کېدای چې ړوند او بینا یو شانته شي او ایماندار او صالح خلك او بدکار برابر شي خو تاسي بیخي لږمتوجه کېږئ .

وَ مَا یَسْتَوِی الْاَعْمٰی وَ الْبَصِیْرُ ۙ۬ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ لَا الْمُسِیْٓءُ ؕ قَلِیْلًا مَّا تَتَذَکَّرُوْنَ (۵۸)

په یقیني ډول دقیامت ساعت راتلونکی دی ، دهغه په راتلو کښي هېڅ شك نشته ، مګر زیاتره خلك پرې ایمان نه راوړي .

اِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِیَةٌ لَّا رَیْبَ فِیْهَا وَ لٰکِنَّ اَکْثَرَ النَّاسِ لَا یُؤْمِنُوْنَ (۵۹)

ستاسي رب وایي (( ماوبولئ زه به ستاسي دعاوې قبولې کړم ، کوم کسان چې په غرور کولو سره زما له عبادت نه مخ اړوي هغوی به ارومرو ذلیل او خوار دوزخ ته ورننوځي )).

وَ قَالَ رَبُّکُمُ ادْعُوْنِیْٓ اَسْتَجِبْ لَکُمْ ؕ اِنَّ الَّذِیْنَ یَسْتَکْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِیْ سَیَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِیْنَ (۶۰)

همدا الله هغه ذات دی چې ستاسي لپاره یې شپه پیدا کړه ترڅو چې تاسي په کښي استراحت وکړئ او ورځ یې ځلانده کړه . حقیقت دادی چې الله پرخلکو لوی فضل کوونکی دی ، خو زیاتره خلك شکرنه باسي .

اَللّٰهُ الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمُ الَّیْلَ لِتَسْکُنُوْا فِیْهِ وَ النَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَی النَّاسِ وَ لٰکِنَّ اَکْثَرَ النَّاسِ لَا یَشْکُرُوْنَ (۶۱)

هماغه الله ( چې ستاسي لپاره یې دغه څه کړیدي ) ستاسي رب دی ، دهر شي خالق دی . له هغه پرته هېڅ معبود نه شته نوتاسي کوم لورې ته اړول کېږئ ؟

ذٰلِکُمُ اللّٰهُ رَبُّکُمْ خَالِقُ کُلِّ شَیْءٍ ۘ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۫ؗ فَاَنّٰی تُؤْفَکُوْنَ (۶۲)

په همدې ډول هغه کسان اړول شویدي چې دالله له ایتونو نه یې انکار کاوه .

کَذٰلِکَ یُؤْفَکُ الَّذِیْنَ کَانُوْا بِاٰیٰتِ اللّٰهِ یَجْحَدُوْنَ (۶۳)

هغه خو همدا الله دی چې ستاسې لپاره يې ځمکه ارام ځای وګرځوله او پاس يې داسمان ګنبذه جوړه کړه . هغه ستاسې صورت جوړ کړ او ډېرښکلی يې جوړ کړ هغه تاسې ته دپاکوشيانو روزي درکړه . هماغه الله ( چې دغه يې کارونه دي ) ستاسې رب دی . الله دبې حسابه برکتونو څښتن دی هغه د مخلوقاتو رب دی .

اَللّٰهُ الَّذِیۡ جَعَلَ لَکُمُ الۡاَرۡضَ قَرَارًا وَّ السَّمَآءَ بِنَآءً وَّ صَوَّرَکُمۡ فَاَحۡسَنَ صُوَرَکُمۡ وَ رَزَقَکُمۡ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ ؕ ذٰلِکُمُ اللّٰهُ رَبُّکُمۡ ۚۖ فَتَبٰرَکَ اللّٰهُ رَبُّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۶۴)

همغه تل تر تله ژوندی دی . له هغه پرته هيڅ معبود نه شته ، تاسې همغه وبولئ دهغه لپاره دخپل دين په خالص ګرځولوسره . ټوله ثنا ستاينه دالله رب العلمين لپاره ده .

هُوَ الۡحَیُّ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادۡعُوۡهُ مُخۡلِصِیۡنَ لَهُ الدِّیۡنَ ؕ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۶۵)

ای پيغمبره ! دوی ته ووايه چې زه خودهغو هستيوله عبادت نه منع کړای شوی يم چې تاسې هغه له الله نه پرته بولئ . ( زه داکار څنګه کولای شم ) کله چې ماته زما درب لخوا ښکاره دليلونه راغلي دي ماته امر شوی دی چې زه درب العلمين په وړاندې دتسليم سر ښکته کړم .

قُلۡ اِنِّیۡ نُهِیۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ الَّذِیۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ لَمَّا جَآءَنِیَ الۡبَیِّنٰتُ مِنۡ رَّبِّیۡ ۫ وَ اُمِرۡتُ اَنۡ اُسۡلِمَ لِرَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ (۶۶)

الله هماغه دی چې هغه تاسې له خاورې نه پيدا کړئ ، بياله نطفې نه ، بيا دوينې له پرغنډ نه ، بيا هغه تاسې دماشوم په بڼه راباسي ، بيا تاسې غټوي ترڅو چې تاسې خپل پوره قوت ته ورسيږئ ، بيا مونور پسې غټوي ترڅو چې تاسې دزوړ والي منګ ته ورسيږئ اوله تاسې نه څوك لادمخه بېرته غوښتل کيږي . داهرڅه د دې لپاره کول کيږي ترڅوچې تاسې خپل ټاکلي وخت ته ورسيږئ او د دې لپاره چې تاسې په حقيقت باندې وپوهيږئ .

هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَکُمۡ مِّنۡ تُرَابٍ ثُمَّ مِنۡ نُّطۡفَةٍ ثُمَّ مِنۡ عَلَقَةٍ ثُمَّ یُخۡرِجُکُمۡ طِفۡلًا ثُمَّ لِتَبۡلُغُوۡۤا اَشُدَّکُمۡ ثُمَّ لِتَکُوۡنُوۡا شُیُوۡخًا ۚ وَ مِنۡکُمۡ مَّنۡ یُّتَوَفّٰی مِنۡ قَبۡلُ وَ لِتَبۡلُغُوۡۤا اَجَلًا مُّسَمًّی وَّ لَعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ (۶۷)

هماغه ذات دی ژوند ورکوونکی او هماغه دمرګ ورکوونکی دی . هغه چې دهرې خبرې فيصله کوي ،فقط يوامرکوي چې شه او هغه کيږي.

هُوَ الَّذِیۡ یُحۡیٖ وَ یُمِیۡتُ ۚ فَاِذَا قَضٰۤی اَمۡرًا فَاِنَّمَا یَقُوۡلُ لَهٗ کُنۡ فَیَکُوۡنُ (۶۸)

تاهغه کسان وليدل چې دالله په ايتونو کښې جګړې کوي ،کوم لورې ته هغوی ګرځول کيږي ؟

اَلَمۡ تَرَ اِلَی الَّذِیۡنَ یُجَادِلُوۡنَ فِیۡۤ اٰیٰتِ اللّٰهِ ؕ اَنّٰی یُصۡرَفُوۡنَ (ۚۖ۶۹)

دغه خلك چې دغه کتاب او ټول هغه کتابونه چې مونږله خپلو رسولانو سره لېږلي وو درواغ ګڼي ډېر ژر به دوی ته معلومه شي

اَلَّذِیۡنَ کَذَّبُوۡا بِالۡکِتٰبِ وَ بِمَاۤ اَرۡسَلۡنَا بِهٖ رُسُلَنَا ۟ۛ فَسَوۡفَ یَعۡلَمُوۡنَ (ۙ۷۰)

کله چې طوقونه او ځنځيرونه ددوی په غاړو کښې وي چې له هغونه په رانيولو سره دوی راښکودل شي

اِذِ الۡاَغۡلٰلُ فِیۡۤ اَعۡنَاقِهِمۡ وَ السَّلٰسِلُ ؕ یُسۡحَبُوۡنَ (ۙ۷۱)

دخوټېدلو او بوخواته او بيا بېرته د دوزخ اورته ننوېستل شي .

فِی الۡحَمِیۡمِ ۬ۙ ثُمَّ فِی النَّارِ یُسۡجَرُوۡنَ (ۚ۷۲)

بيا به ورڅخه پوښتنه وشي چې اوس چېرته دي له الله نه پرته نور خدايان چې تاسې هغوی له الله سره شريکول ؟

ثُمَّ قِیۡلَ لَهُمۡ اَیۡنَ مَا کُنۡتُمۡ تُشۡرِکُوۡنَ (ۙ۷۳)

دوی به ځواب ووايي ((ورك شول هغوی له مونږنه ،بلکې مونږدېنه مخکښې د هيڅ شي عبادت نه دی کړی په دې ډول به الله دکافرانو ګمراهي اثبات کړي .

مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ؕ قَالُوۡا ضَلُّوۡا عَنَّا بَلۡ لَّمۡ نَکُنۡ نَّدۡعُوۡا مِنۡ قَبۡلُ شَیۡئًا ؕ کَذٰلِکَ یُضِلُّ اللّٰهُ الۡکٰفِرِیۡنَ (۷۴)

هغوته به وويل شي چې (( ځکه ستاسې دغه عاقبت شوچې تاسې په ځمکه کښې پرناحق خوښ وئ او بيا موږ هغه په غرور سره تينګار کاوه

ذٰلِکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ تَفۡرَحُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ وَ بِمَا کُنۡتُمۡ تَمۡرَحُوۡنَ (ۚ۷۵)

اوس ځئ د دوزخ په دروازو ننوځئ تل ترتله هماغلته ستاسي استوګنه ده ، ډېربد استوګنځی دی د متکبرانو )) .

اُدۡخُلُوۡۤا اَبۡوَابَ جَہَنَّمَ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَا ۚ فَبِئۡسَ مَثۡوَی الۡمُتَکَبِّرِیۡنَ (۷۶)

نو ای پېغمبره ! صبر وکړه دالله وعده برحقه ده . اوس که مونږتاته د دوی دهغو ناوړه نتیجو کومه برخه در وښیوچې له هغونه مونږدوی ویروو ، یا ( له هغې نه مخکښی ) تاله دنیا نه پورته کړو نو د دوی بېرته راستنېدل خو همد از مونږخواته دي .

فَاصۡبِرۡ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰہِ حَقٌّ ۚ فَاِمَّا نُرِیَنَّکَ بَعۡضَ الَّذِیۡ نَعِدُہُمۡ اَوۡ نَتَوَفَّیَنَّکَ فَاِلَیۡنَا یُرۡجَعُوۡنَ (۷۷)

ای پیغمبره ! له تانه مخکښې مونږډېر پېغمبران لېږلي دي چي له هغونه دځینو حالات مونږتاته ویلي دي او دځینو مونه دي درته ویلي دهېڅ یو پېغمبر داوس واك نه ؤ چي دالله له اذن نه پرته په خپله یې کومه نښانه راوړې وای . بیا کله چي دالله حکم راغی نو دحق سره سمه فیصله وکړای شوه اوپه هغه وخت کې باطل پرستان په زیان کې وغور ځیدل .

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلًا مِّنۡ قَبۡلِکَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ قَصَصۡنَا عَلَیۡکَ وَ مِنۡہُمۡ مَّنۡ لَّمۡ نَقۡصُصۡ عَلَیۡکَ ؕ وَ مَا کَانَ لِرَسُوۡلٍ اَنۡ یَّاۡتِیَ بِاٰیَۃٍ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰہِ ۚ فَاِذَا جَآءَ اَمۡرُ اللّٰہِ قُضِیَ بِالۡحَقِّ وَ خَسِرَ ہُنَالِکَ الۡمُبۡطِلُوۡنَ (۷۸)

همدا الله ستاسي لپاره دغه څاوري پیدا کړیدي ترڅوچي تاسي له هغونه پرځینو سپاره شئ او دځینو نورو غوښې وخورئ .

اَللّٰہُ الَّذِیۡ جَعَلَ لَکُمُ الۡاَنۡعَامَ لِتَرۡکَبُوۡا مِنۡہَا وَ مِنۡہَا تَاۡکُلُوۡنَ (۷۹)

په هغوکې ستاسي لپاره نورې ډېرې ګټې هم شته هغه دې ته هم په کار راځي چي ستاسي په زړونو کښې چې چېرته دتلوارتیاوي هلته تاسي پرهغو ورسیدای شئ پر هغو هم او پر بېړیو هم تاسي سپرول کېږئ

وَ لَکُمۡ فِیۡہَا مَنَافِعُ وَ لِتَبۡلُغُوۡا عَلَیۡہَا حَاجَۃً فِیۡ صُدُوۡرِکُمۡ وَ عَلَیۡہَا وَ عَلَی الۡفُلۡکِ تُحۡمَلُوۡنَ (ؕ۸۰)

الله تاسي ته خپلې دغه نښانې درښیي ، نو تاسي به دهغه له کومو کومونښانو څخه منکر شئ .

وَ یُرِیۡکُمۡ اٰیٰتِہٖ ٭ۖ فَاَیَّ اٰیٰتِ اللّٰہِ تُنۡکِرُوۡنَ (۸۱)

نو ایا دوی په ځمکه کښې ګرځېدلي نه دي چي دوی دهغو خلکو عاقبت لیدلی وای چي له دوی نه پخوا تېر شوي دي ؟ له دوی نه په شمېر کښې زیات وو ، له دوی نه زیات قوی وو او په ځمکه کښې یې له دوی نه زیات ځلنده اثار پرې ایښي دي . څه ګټه چي هغوی کړې وه هغه د هغو په څه درد دوا نشوه .

اَفَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ فَیَنۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ کَانُوۡۤا اَکۡثَرَ مِنۡہُمۡ وَ اَشَدَّ قُوَّۃً وَّ اٰثَارًا فِی الۡاَرۡضِ فَمَاۤ اَغۡنٰی عَنۡہُمۡ مَّا کَانُوۡا یَکۡسِبُوۡنَ (۸۲)

کله چي دهغو رسولان هغوی ته له ښکاره دلیلونو سره راغلل نو هغوی پرهماغه علم وویاړېدل چي پخپله له هغوسره ؤ . او بیا په هماغه شي کښې راګیرشول چي هغوی ورپورې ټوکې وشتې کولې .

فَلَمَّا جَآءَتۡہُمۡ رُسُلُہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ فَرِحُوۡا بِمَا عِنۡدَہُمۡ مِّنَ الۡعِلۡمِ وَ حَاقَ بِہِمۡ مَّا کَانُوۡا بِہٖ یَسۡتَہۡزِءُوۡنَ (۸۳)

کله چي هغو زمونږعذاب ولیده نوویې ویل چي مونږالله وحده لاشریك ومانه او مونږله ټولو هغو معبودانو څخه انکار کوو چي مونږهغوی شریکان ګڼل .

فَلَمَّا رَاَوۡا بَاۡسَنَا قَالُوۡۤا اٰمَنَّا بِاللّٰہِ وَحۡدَہٗ وَ کَفَرۡنَا بِمَا کُنَّا بِہٖ مُشۡرِکِیۡنَ (۸۴)

خو زمونږدعذاب له لیدلونه وروسته دهغو ایمان هغوته هېڅ ګټه نشوه رسولای ، ځکه چي همدغه دالله ټاکلي کړنلاره ده چي تل دهغه په بندګانو کښې نافذه شوې ده اوپه دې وخت اوځای کښې کافران په زیان کښې وغورځېدل .

فَلَمۡ یَکُ یَنۡفَعُہُمۡ اِیۡمَانُہُمۡ لَمَّا رَاَوۡا بَاۡسَنَا ؕ سُنَّتَ اللّٰہِ الَّتِیۡ قَدۡ خَلَتۡ فِیۡ عِبَادِہٖ ۚ وَ خَسِرَ ہُنَالِکَ الۡکٰفِرُوۡنَ (۸۵)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

حٰ – م –

حٰمٓ ۚ (۱)

داد مهربان اوبښونکی خدای نازل کړی قران دی ،

تَنۡزِیۡلٌ مِّنَ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۚ (۲)

یوداسي کتاب چي د هغه آیتونه په تفصیل سره بیان کړای شوي دي ، دعربي ژبې قرآن ، دهغوخلکو لپاره چي علم لري

کِتٰبٌ فُصِّلَتۡ اٰیٰتُہٗ قُرۡاٰنًا عَرَبِیًّا لِّقَوۡمٍ یَّعۡلَمُوۡنَ ۙ (۳)

زېرى وركوونكى او وېروونكى دى . خوله دغو خلكو نه زياترو ترېنه مخ واړوه او غوږ ورته نه ږدي .

بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا ۚ فَاَعْرَضَ اَكْثَرُہُمْ فَہُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ (۴)

وايي (( دكوم شي خواته چي ته موږته بلنه راكوې دهغه لپاره زموږ زړونه پردو پوښلي دي ، زموږ غوږونه كاڼه شوي دي او زموږ اوستاتر مينځه يوه پرده حائل شوې ده . ته خپل كار كوه موږ به خپل كار كوو )).

وَ قَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّۃٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْہِ وَ فِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّ مِنْۢ بَيْنِنَا وَ بَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ (۵)

اى پېغمبره! دوى ته ووايه زه خويو بشريم ستاسي غوندي ، ماته دوحي په وسيله ښودله كېږي چي ستاسي خداى ايكى يو خداى دى ، له دې امله تاسي مخامخ د هماغه لورى غوره كړئ اوله هغه نه ښنه وغواړئ. او دمشركانو لپاره تباهي ده

قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰـہُكُمْ اِلٰہٌ وَّاحِدٌ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْہِ وَ اسْتَغْفِرُوْہُ ؕ وَ وَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ (۶)

چي زكات نه وركوي اوله آخرت نه منكردي.

الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوۃَ وَ ہُمْ بِالْاٰخِرَۃِ ہُمْ كٰفِرُوْنَ (۷)

پاتي شول هغه كسان چي هغوى ايمان راوړ اونيك عملونه يې وكړل ، دهغولپاره په يقيني ډول داسي اجردى چي دهغه لړۍ هېڅكله پاى ته رسېدونكي نه ده .

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَہُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ (۸)

اى پيغمبره ! دوى ته ووايه ، ايا تاسي پر هغه خداى باندې كافركېږئ او نورد هغه سيالان گرځوئ چي هغه ځمكه په دوو ورځو كښي پيدا كړه ؟ هماغه خو د ټولو مخلوقاتو رب دى .

قُلْ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ بِالَّذِيْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ وَ تَجْعَلُوْنَ لَہٗٓ اَنْدَادًا ؕ ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ (۹)

هغه ( دځمكي له مينځ ته راوړلو نه وروسته ) پر هغې دپاسه غرونه مېخ كړل او په هغې كښي يې بركتونه واچول اوپه هغې كښي يې دټولو غوښتونكو لپاره دهر يوه له غوښتني او اړتيا سره سم په صحيح اندازه خوراكي مواد برابر كړل . دغه ټولي چارې په څلورو ورځوكښي سرته ورسېدلي .

وَ جَعَلَ فِيْہَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِہَا وَ بٰرَكَ فِيْہَا وَ قَدَّرَ فِيْہَآ اَقْوَاتَہَا فِيْٓ اَرْبَعَۃِ اَيَّامٍ ؕ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِيْنَ (۱۰)

بيا هغه داسمانو خواته متوجه شوچي په هغه وخت كښي محضي لوگى و . هغه اسمان او ځمكي ته وويل (( مينځ ته راشئ ، كه تاسي وغواړئ اوكه ونه غواړئ )). دواړو وويل (( موږ رامينځ ته شوو دفرمان منونكو په توگه )).

ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ وَ ہِيَ دُخَانٌ فَقَالَ لَہَا وَ لِلْاَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا اَوْ كَرْہًا ؕ قَالَتَآ اَتَيْنَا طَآئِعِيْنَ (۱۱)

هله نو هغه په دوه ورځوكښي اوه آسمانونه پيداكړل اوپه هراسمان كښي يې دهغه قانون مقرر كړ. او موږد دنيا اسمان په ډيوو سره سينگار كړ او هغه موښه محفوظ كړ. داهر څه ديو برلاسي پوه ذات پلان دى .

فَقَضٰىہُنَّ سَبْعَ سَمٰوَاتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ وَ اَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَہَا ؕ وَ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ ۖ وَ حِفْظًا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ (۱۲)

اوس كه دوى مخ اړوي نو دوى ته ووايه چي زه تاسي له همغسي يو ناڅاپي رالوېدونكي عذاب څخه وېروم لكه چي پرعاديانو او ثموديانو باندې نازل شوى وء .

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَۃً مِّثْلَ صٰعِقَۃِ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ (۱۳)

كله چي دخداى استازي هغوته له وړاندې وروسته هرې خوانه راغلل او هغوى يې وپوهول چي له الله نه پرته دهېچا بندگي مه كوئ نو هغوى وويل (( كه زموږرب غوښتلى نو پرښتي به يې لېږلي وې ، له دې امله موږ هغه خبره نه منوچي دهغې لپاره تاسي لېږل شوي ياست )).

اِذْ جَآءَتْہُمُ الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْہِمْ وَ مِنْ خَلْفِہِمْ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰہَ ؕ قَالُوْا لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَۃً فَاِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِہٖ كٰفِرُوْنَ (۱۴)

دعادیانو حال داوء چې هغوی په ځمکه کښي په ناحقه تکبر وکړ او
ویي ویل (( له مونږنه زیات زور ورخوك دي)) . هغوی دافکر ونه
کړ چې کوم خدای چې هغوی پیدا کړي دی هغه له دوی نه زیات
زورور دی ؟ هغوی زمونږله آیتونونه انکار کاوه ، .

فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِی الْاَرْضِ
بِغَيْرِ الْحَقِّ وَ قَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ
اَوَ لَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ
مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ وَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ
(۱۵)

په پای کښي مونږپه څو شومو ورځوکښي پرهغوسخت طوفاني باد
والوزاوه . ترڅو چې پر هغوباندي دهمدې دنیا په ژوند کښي د ذلت
او رسوایی د عذاب خوند وڅکو او داخرت عذاب خوله دې نه هم
زیات رسوا کوونکی دی . هلته به هیڅوك د هغو مرستندوی نه وي
.

فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِیْ
اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْیِ
فِی الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَ لَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ
اَخْزٰی وَ هُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ (۱۶)

پاتې شول ثمودیان هغوته مونږسمه لاره وړاندې کړه خو هغوی د
لارې لیدلو پر ځای ( دګمراهی ) ړوند توب غوره کړ. په پای
کښي دهغو دعملونو له امله پرهغو باندې د ذلت سخت لړزوونکی
عذاب راوغورځېده

وَ اَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰی
عَلَی الْهُدٰی فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ
الْهُوْنِ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (۱۷)

او مونږهغه خلك وژغورل چې ایمان یې راوړی و اوله ګمراهی
اوبد عملی نه یې ډډه کوله .

وَ نَجَّيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ كَانُوْا يَتَّقُوْنَ
(۱۸)

اوهغه ورځ درياده کړه چې کله دالله دغه دښمنان دوزخ ته دتلو لپاره
ډلې ډلې محاصره کړي راوستل شي .

وَ يَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَی النَّارِ فَهُمْ
يُوْزَعُوْنَ (۱۹)

دهغو مخکیني به دوروستنیوتر راتلوپورې ایسارکړی شي) ، بیا )
کله چې ټول هلته ورشي نو دهغو غوږونه او دهغو سترګي او دهغو
دجسم پوستکی به پرهغو شاهدي ووایي چې هغوی په دنیا کې څه
. کول

حَتّٰۤی اِذَا مَا جَآءُوْهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ
سَمْعُهُمْ وَ اَبْصَارُهُمْ وَ جُلُوْدُهُمْ بِمَا
كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۲۰)

هغوی به دخپل جسم پوستکوته ووایي (( تاسي زمونږپرخلاف ولې
شاهدي وویله ))؟ هغوی به ځواب ورکړي : (( مونږهمغه خدای
غږولي یو چې هغه هرشی غږولی دی . همااغه تاسي لومړی ځل
پیداکړي وئ او اوس دهمااغه لوري ته تاسي بېرته راوستل کېږئ
.

وَ قَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ؕ
قَالُوْۤا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِیْۤ اَنْطَقَ كُلَّ شَیْءٍ
وَّ هُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّ اِلَيْهِ
تُرْجَعُوْنَ (۲۱)

تاسي چې کله په دنیا کښي په پټه جرمونه کول نو له تاسي سره
دافکر نه و چې یو وخت به ستاسي خپل غوږونه اوستاسي سترګي
او ستاسي دجسم پوستکي پرتاسي شاهدي ووایي ،بلکې تاسي خولا دا
ګڼله چې ستاسي له زیاترو عملونو څخه خدای هم خبرنه دي

وَ مَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ
سَمْعُكُمْ وَ لَاۤ اَبْصَارُكُمْ وَ لَا جُلُوْدُكُمْ
وَ لٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا
مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ (۲۲)

ستاسي همدغه ګومان چې تاسي په خپل رب باندي کړی و ، تاسي
هلاك کړئ او دهمااغه له امله تاسي زیانمن شویء)).

وَ ذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِیْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ
اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ
(۲۳)

په دې حالت کښي که هغوی صبر وکړي ( اوکه یې ونه کړي ) اور
به دهغواستوګنځی وي ، او که دبېرته ستنېدو فرصت وغواوي نو
هیڅ فرصت به هغوته ورنه کړل شي .

فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًی لَّهُمْ ۚ وَ اِنْ
يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ (۲۴)

مونږ پر هغو باندې داسې ملګري مسلط کړي وو چې هغوته يې وړاندې وروسته هرڅه ښايسته کړي وو ، په پای کښې پر هغوباندې هم دعذاب همغه فيصله تطبيق شوه چې له هغوڅخه دمخکښې تېر شويو پيريانو او انسانانو پرډلو باندې تطبيق شوې وه ، په يقيني ډول هغوی زيان کاران وو .

وَ قَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ فَزَيَّنُوْا لَهُمْ مَّا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ مَا خَلْفَهُمْ وَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَ الْاِنْسِ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ (۲۵)

او دغه دحق منکران وايي : (( دغه قرآن هيڅکله مه اورئ اوکله چې داواورول شي نوپه ده کښې خلل واچوئ ، ښايي چې په دې توګه تاسې برلاسي شئ ))

وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ وَ الْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ (۲۶)

پردغو کافرانو به مونږدسخت عذاب خوند وڅکو ، اودوی ته به دهغو خوراډېر و ناوړو حرکتونوچې دوی يې کوي بشپړه بدله ورکړو .

فَلَنُذِيْقَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّ لَنَجْزِيَنَّهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۲۷)

هغه دوزخ دی چې دالله دښمنانو ته به په بدله کښې ورکړشي . په هماغه کښې به تل ترتله د دوی کور وي . داده ددې جرم سزاچې هغوی زمونږله ايتونو څخه انکار کاوه.

ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ ۚ لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ ؕ جَزَآءً بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ (۲۸)

هلته به دغه کافران ووايي چې (( ای زمونږربه مونږته هغه پيريان او انسانان راوښيه چې هغوی مونږګمراه کړي وو ، مونږبه هغوی تر پښو لاندې پامال کړو ترڅوچې هغوی خوراذليل او خوار شي )) .

وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ وَ الْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ (۲۹)

کومو خلکو چې وويل الله زمونږرب دی او بيا هغوی په دې باندې ثابت قدم پاتې شول . په يقيني ډول پر هغوباندې پرښتې نازلېږي او هغو ته وايي چې (( مه وېرېږئ ، مه غم کوئ او خوښ اوسئ دهغه جنت په زيري سره چې له تاسې سره دهغه وعده کړی شوې ده .

اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَ لَا تَحْزَنُوْا وَ اَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ (۳۰)

مونږدې دنيا په ژوند کښې هم ستاسې ملګري يو او په اخرت کښې هم ، هلته چې تاسې هرڅه وغواړئ دربه کړل شي اوهر شی چې تاسې دهغه هيله وکړئ هغه به ستاسې وي

نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ فِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَ لَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ اَنْفُسُكُمْ وَ لَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ (۳۱ؕ)

دادې دميلمستيا وسايل دهغه ذات له خوا چې ښونکی او خورا مهربان دی )).

نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ (۳۲)

او دهغه چاله خبرې نه به ښه خبره دبل چاوي چې هغه دالله خواته بلنه ورکړه اونيك عمل يې وکړ او ويې ويل چې زه مسلمان يم .

وَ مَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَ عَمِلَ صَالِحًا وَّ قَالَ اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ (۳۳)

او ای پيغمبره ! نيکي او بدي يو شانته نه دي ته دبدی مخنيوی په هغې نيکی سره وکړه چې هغه ډېره ښه وي ته به وګورې چې له تا سره چې دچادښمني لوېدلې وه هغه دې لکه صميمي دوست ګرځېدلی دی .

وَ لَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَ لَا السَّيِّئَةُ ؕ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَ بَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ (۳۴)

دغه صفت نه په برخه کېږي مګر هغو خلکوته چې صبر کوي ، اودغه مقام نه په برخه کېږي مګر هغو خلکو ته چې دغتې برخې خاوندان دي

وَ مَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا ۚ وَ مَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا ذُوْحَظٍّ عَظِيْمٍ (۳۵)

اوکه ته دشيطان له خوا کوم لمسون محسوس کړې نو پرالله پناه وغواړه ، هغه هرڅه اورې او پوهېږي .

وَ اِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (۳۶)

وَ مِنۡ اٰیٰتِہِ الَّیۡلُ وَ النَّہَارُ وَ الشَّمۡسُ وَ الۡقَمَرُ ؕ لَا تَسۡجُدُوۡا لِلشَّمۡسِ وَ لَا لِلۡقَمَرِ وَ اسۡجُدُوۡا لِلّٰہِ الَّذِیۡ خَلَقَہُنَّ اِنۡ کُنۡتُمۡ اِیَّاہُ تَعۡبُدُوۡنَ (۳۷)

دغه شپه او ورځ ، لمر او سپوږمی دالله له نښانوڅخه دي . لمر او سپوږمی ته سجده مه کوئ بلکې هغه خدای ته سجده وکړئ چې دايي پيدا کړي دي که په ريښتيا سره تاسي دهغه عبادت کوونکي يئ .

فَاِنِ اسۡتَکۡبَرُوۡا فَالَّذِیۡنَ عِنۡدَ رَبِّکَ یُسَبِّحُوۡنَ لَہٗ بِالَّیۡلِ وَ النَّہَارِ وَ ہُمۡ لَا یَسۡـَٔمُوۡنَ (۳۸)

خو که دوی په غرورکولو سره پرخپله خبره ټينګار وکړي نو باك يې نشته ، کومې پرښتې چې ستارب ته مقربې دي هغوی شپه ورځ دهغه تسبيح کوي او هيڅکله نه ستړي کيږي .

وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنَّکَ تَرَی الۡاَرۡضَ خَاشِعَۃً فَاِذَاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡہَا الۡمَآءَ اہۡتَزَّتۡ وَ رَبَتۡ ؕ اِنَّ الَّذِیۡۤ اَحۡیَاہَا لَمُحۡیِ الۡمَوۡتٰی ؕ اِنَّہٗ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۳۹)

او دالله له نښانو څخه يوه داده چې ته ګورې چې ځمکه وېده پرته ده ، بيا څنګه چې مونږپرهغې باندې او به وا ورولې ، په ناڅاپي ډول هغه برکيږي او غوړيږي . په يقيني ډول کوم خدای چې دغه مړه لوېدلې ځمکه ژوندی کوي هغه دمړو ژوندی کوونکی هم دی . په باوري ډول هغه په هر څه باندې قدرت لري .

اِنَّ الَّذِیۡنَ یُلۡحِدُوۡنَ فِیۡۤ اٰیٰتِنَا لَا یَخۡفَوۡنَ عَلَیۡنَا ؕ اَفَمَنۡ یُّلۡقٰی فِی النَّارِ خَیۡرٌ اَمۡ مَّنۡ یَّاۡتِیۡۤ اٰمِنًا یَّوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ ؕ اِعۡمَلُوۡا مَا شِئۡتُمۡ ۙ اِنَّہٗ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرٌ (۴۰)

کوم کسان چې زمونږدآيتونو سرچپه معنا کوي هغوی له مونږنه پټ نه دي . پخپله فکر وکړئ چې ايا هغه څوك ډېر ښه دی چې په اورکښې غورځېدونکی دی اوکه هغه څوك چې دقيامت په ورځ به دامن په حالت کښې حاضر وي ؟ کوئ څه چې غواړئ الله ستاسې ټول عملونه ويني .

اِنَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا بِالذِّکۡرِ لَمَّا جَآءَہُمۡ ۚ وَ اِنَّہٗ لَکِتٰبٌ عَزِیۡزٌ (۴۱)

هغه کسان(له مونږ نه پټ نه دي) چې کله دنصيحت کلام ورته راغی نو دهغه له منلونه يې انکار وکړ ، خو حقيقت دادی چې دايو پياوړی کتاب د ی .

لَّا یَاۡتِیۡہِ الۡبَاطِلُ مِنۡۢ بَیۡنِ یَدَیۡہِ وَ لَا مِنۡ خَلۡفِہٖ ؕ تَنۡزِیۡلٌ مِّنۡ حَکِیۡمٍ حَمِیۡدٍ (۴۲)

باطل نه مخامخ پرې راتلای شي نه دشالخوا .داد يوحکمت والاستايل شوي ذات نازل کړی شوی کتاب دی .

مَا یُقَالُ لَکَ اِلَّا مَا قَدۡ قِیۡلَ لِلرُّسُلِ مِنۡ قَبۡلِکَ ؕ اِنَّ رَبَّکَ لَذُوۡ مَغۡفِرَۃٍ وَّ ذُوۡ عِقَابٍ اَلِیۡمٍ (۴۳)

ای پيغمبره ! تاته چې څه ويل کيږي په هغه کښې هيڅ شی داسې نشته چې له تانه پخوا تېر شويو پېغمبرانو ته نه وي ويل شوي. بېشکه ستارب ډېر بښونکی دی او ددې ترڅنګ دلويې دردناکې سزاور کوونکی هم دی .

وَ لَوۡ جَعَلۡنٰہُ قُرۡاٰنًا اَعۡجَمِیًّا لَّقَالُوۡا لَوۡ لَا فُصِّلَتۡ اٰیٰتُہٗ ؕ ءَؔاَعۡجَمِیٌّ وَّ عَرَبِیٌّ ؕ قُلۡ ہُوَ لِلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا ہُدًی وَّ شِفَآءٌ ؕ وَ الَّذِیۡنَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ فِیۡۤ اٰذَانِہِمۡ وَقۡرٌ وَّ ہُوَ عَلَیۡہِمۡ عَمًی ؕ اُولٰٓئِکَ یُنَادَوۡنَ مِنۡ مَّکَانٍۭ بَعِیۡدٍ (۴۴)

که مونږدادعجمي قرآن په بنه لېږلی وای نو دوی به ويلي وو (( ولې د ده آيتونه په تفصيل سره بيان نه کړی شول ؟ څه عجيبه خبره ده چې کلام عجمي دی او مخاطب عربي ؟)) . دوی ته ووايه دغه قرآن دايمان راوړونکو لپاره هدايت او شفاده ، خوکوم کسان چې ايمان نه راوړي دهغو لپاره دا دغوږونو پلته او دسترګو پټی ده . دهغو حال خو داسې دی لکه چې هغوته له لېرې نه نارې وهل کيږي .

وَ لَقَدۡ اٰتَیۡنَا مُوۡسَی الۡکِتٰبَ فَاخۡتُلِفَ فِیۡہِ ؕ وَ لَوۡ لَا کَلِمَۃٌ سَبَقَتۡ مِنۡ رَّبِّکَ لَقُضِیَ بَیۡنَہُمۡ ؕ وَ اِنَّہُمۡ لَفِیۡ شَکٍّ مِّنۡہُ مُرِیۡبٍ (۴۵)

له دې نه مخکښې مونږموسیٰ ته کتاب ورکړئ وْ او دهغه په برخه کښې هم همدغه اختلاف شوی و . که ستارب لادمخه يوه خبره فيصله کړې نه وای ،نو د دغو اختلاف کوونکو په مينځ کښې به فيصله شوې وه او په باوري ډول دوی په تشويش ناك شك کښې غورځېدلي دي.

مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفۡسِہٖ وَ مَنۡ اَسَآءَ فَعَلَیۡہَا ؕ وَ مَا رَبُّکَ بِظَلَّامٍ لِّلۡعَبِیۡدِ (۴۶)

څوك چې ښه عمل وکړي دخپل ځان لپاره به ښه وکړي ، څوك چې بدي وکړي دهغې وبال به پرهمغه باندې وي ، اوستا رب د خپلو بندګانوپه حق کښې ظالم نه دی.

دهغه ساعت (قیامت) علم خدای ته راجع کېږي ، همغه پرهغو تولو میوو پوهېږي چې له خپلو غوټیو څخه راوځي ، هماغه ته معلومه ده چې کومه ماده حامله شوېده او کومې بچې زېږولی دی . اوپه کومه ورځ چې هغه دوی ته غږوکړي چې هغه زما شریکان چېرته دي ؟ دوی به ووایي (( مونږدرته عرض کړی دی ، نن له مونږڅخه هېڅوك د دې شاهدي ویونکی نه شته)).

اِلَيۡهِ يُرَدُّ عِلۡمُ السَّاعَةِ ؕ وَ مَا تَخۡرُجُ مِنۡ ثَمَرٰتٍ مِّنۡ اَكۡمَامِهَا وَ مَا تَحۡمِلُ مِنۡ اُنۡثٰى وَ لَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلۡمِهٖ ؕ وَ يَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ اَيۡنَ شُرَكَآءِىۡ ۙ قَالُوۡۤا اٰذَنّٰكَ ۙ مَا مِنَّا مِنۡ شَهِيۡدٍ (۴۷)

په هغه وخت کښې به له دوی نه ټول هغه معبودان ورك شي چې دوی له دې نه مخکښې هغوی بلل ، او دوی به وانګېري چې د دوی لپاره اوس دپناه هېڅ کوم ځای نشته

وَ ضَلَّ عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَدۡعُوۡنَ مِنۡ قَبۡلُ وَ ظَنُّوۡا مَا لَهُمۡ مِّنۡ مَّحِيۡصٍ (۴۸)

انسان دنیکی په دّعا غوښتلو هېڅکله نه ستومانه کېږي اوکله چې وربانديې کوم آفت راځي نو ناهېلی او زړه ماتي کېږي ،

لَا يَسۡـَٔمُ الۡاِنۡسَانُ مِنۡ دُعَآءِ الۡخَيۡرِ ۫ وَ اِنۡ مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَـُٔوۡسٌ قَنُوۡطٌ (۴۹)

خو څنګه چې د سخت وخت له تېرېدونه وروسته مونږورباندې دخپل رحمت خوند څکودی وایي چې (( زه دهمدې مستحق یم ، اوزه ګومان نه کوم چې قیامت به راشي، خوکه په ریښتیا سره زه دخپل رب خواته وګرځول شم نو هلته به هم ښېګڼه را په برخه وي )). په داسې حال کښې چې مونږبه کافرانوته ارومرو وښیو چې هغوی څه کړي دي او په هغو باندې به مونږد ډېر سخت عذاب خوند وڅکو .

وَ لَئِنۡ اَذَقۡنٰهُ رَحۡمَةً مِّنَّا مِنۡۢ بَعۡدِ ضَرَّآءَ مَسَّتۡهُ لَيَقُوۡلَنَّ هٰذَا لِىۡ ۙ وَ مَاۤ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآئِمَةً ۙ وَّ لَئِنۡ رُّجِعۡتُ اِلٰى رَبِّىۡۤ اِنَّ لِىۡ عِنۡدَهٗ لَلۡحُسۡنٰى ۚ فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِمَا عَمِلُوۡا ۫ وَ لَنُذِيۡقَنَّهُمۡ مِّنۡ عَذَابٍ غَلِيۡظٍ (۵۰)

انسان ته چې کله مونږنعمت ورکوونو هغه مخ اړوي اوپه ډډه تاوېږي اوکله چې کوم آفت ورته رسېږي نو بیا پر اوږدو اوږدو دعّاوّ باندې لاس پورې کوي .

وَ اِذَاۤ اَنۡعَمۡنَا عَلَى الۡاِنۡسَانِ اَعۡرَضَ وَ نَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوۡ دُعَآءٍ عَرِيۡضٍ (۵۱)

ای پیغمبره ! دوی ته ووایه ایا تاسې کله په دې فکر کړی دی چې که په ریښتیا سره دغه قرآن دخدای له خواوي او تاسې ترېنه انکار وکړئ نوله هغه چانه به زیات ګمراه بل څوك وي چې د ده (قرآن ) په دښمنی کښې ترلیرې پورې وتلی وي ؟

قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كَانَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ ثُمَّ كَفَرۡتُمۡ بِهٖ مَنۡ اَضَلُّ مِمَّنۡ هُوَ فِىۡ شِقَاقٍۢ بَعِيۡدٍ (۵۲)

ډېر ژربه مونږدوی ته خپلی نښانې په آفاقو کښې هم وښیو او د دوی پخپلو نفسونوکښې هم تر دې پورې چې دوی ته داخبره څرګنده شی چې دغه قرآن په ریښتیا سره برحق دی . ایا داخبره کافي نه ده چې ستارب پر هر څه شاهد دی ؟

سَنُرِيۡهِمۡ اٰيٰتِنَا فِى الۡاٰفَاقِ وَ فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمۡ اَنَّهُ الۡحَـقُّ ؕ اَوَ لَمۡ يَكۡفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ (۵۳)

خبردار اوسئ ، دوی دخپل رب په ملاقات کښې شك لري ، واورئ هغه په یقیني توګه په هر څه چاپېر دئ .

اَلَاۤ اِنَّهُمۡ فِىۡ مِرۡيَةٍ مِّنۡ لِّقَآءِ رَبِّهِمۡ ؕ اَلَاۤ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَىۡءٍ مُّحِيۡطٌ (۵۴)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

حَ م،

حٰمٓ ۚ (۱)

عَ سَ قَ –

عٓسٓقٓ (۲)

په همدې ډول برلاسی او حکمت والا خدای تاته تل وحی کوي اوله تاڅخه مخکښې تیر شویو ( پیغمبرانو ) ته ( یې وحی کړی ده ) .

كَذٰلِكَ يُوۡحِىۡۤ اِلَيۡكَ وَ اِلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۙ اللّٰهُ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ (۳)

په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر څه دي د همغه دي ، هغه لوړ او لوي دی .

لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ هُوَ الۡعَلِىُّ الۡعَظِيۡمُ (۴)

نږدې ده چې اسمانونه له پاسه وچوي راولوېږي . پرښتې دخپل رب له ثنا ستاينې سره دهغه تسبيح کوي او دځمکي داوسيدونکو په حق کښې ښښنه غواړي . خبر دار اوسئ ، په حقيقت کښې الله ښښونکی مهربان دی .

تَکَادُ السَّمٰوٰتُ یَتَفَطَّرۡنَ مِنۡ فَوۡقِہِنَّ وَ الۡمَلٰٓئِکَۃُ یُسَبِّحُوۡنَ بِحَمۡدِ رَبِّہِمۡ وَ یَسۡتَغۡفِرُوۡنَ لِمَنۡ فِی الۡاَرۡضِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ اللّٰہَ ہُوَ الۡغَفُوۡرُ الرَّحِیۡمُ (۵)

کومو کسانو چې له هغه پرته خپل څه نور سرپرستان نيولي دي ، الله پر هغوی ساتونکی (څارونکی) دی ، ته پر هغوی مسلط کړی شوي نه يې .

وَ الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اَوۡلِیَآءَ اللّٰہُ حَفِیۡظٌ عَلَیۡہِمۡ ۫ۖ وَ مَاۤ اَنۡتَ عَلَیۡہِمۡ بِوَکِیۡلٍ (۶)

هو ، په همدې ډول ای پيغمبره ! دغه عربي قرآن مونږتاته وحی کړی دی ترڅو چې ته دکليومرکز ( دمکې ديښار ) او دهغه د خوا اوشا اوسيدونکي خبردار کړې او دغونډيد وله ورځې نه يې وويروې چې دهغې په راتګ کې هيڅ شك نه شته ديوې ډلې تلل جنت ته او دبلې دوزخ ته دي .

وَ کَذٰلِکَ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡکَ قُرۡاٰنًا عَرَبِیًّا لِّتُنۡذِرَ اُمَّ الۡقُرٰی وَ مَنۡ حَوۡلَہَا وَ تُنۡذِرَ یَوۡمَ الۡجَمۡعِ لَا رَیۡبَ فِیۡہِ ؕ فَرِیۡقٌ فِی الۡجَنَّۃِ وَ فَرِیۡقٌ فِی السَّعِیۡرِ (۷)

که الله غوښتي وای نو دوی ټول به يې يوامّت ګرځولي وو ، خو دهغه چې چا ته خوښه شي پخپل رحمت کښې يې داخلوي ، او دظالمانو ، نه څوك سرپرست شته نه مرستندوی

وَ لَوۡ شَآءَ اللّٰہُ لَجَعَلَہُمۡ اُمَّۃً وَّاحِدَۃً وَّ لٰکِنۡ یُّدۡخِلُ مَنۡ یَّشَآءُ فِیۡ رَحۡمَتِہٖ ؕ وَ الظّٰلِمُوۡنَ مَا لَہُمۡ مِّنۡ وَّلِیٍّ وَّ لَا نَصِیۡرٍ (۸)

ايا ( دوی داسې ناپوهان دي چې ، دوی له هغه پرته نور دوستان نيولي دي ؟دوست خوالله دی ، هماغه مړي ژوندي کوي او هغه پر هر شي باندې قادر دی .

اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اَوۡلِیَآءَ ۚ فَاللّٰہُ ہُوَ الۡوَلِیُّ وَ ہُوَ یُحۡیِ الۡمَوۡتٰی ۫ وَ ہُوَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۹)

په هره چاره کښې چې ستاسې ترمينځه اختلاف وي دهغې فيصله کول دالله کار دی . هماغه الله زمارب دی ، پر هغه باندې ماتوکل وکړ، او دهغه لوري ته زه رجوع کوم .

وَ مَا اخۡتَلَفۡتُمۡ فِیۡہِ مِنۡ شَیۡءٍ فَحُکۡمُہٗۤ اِلَی اللّٰہِ ؕ ذٰلِکُمُ اللّٰہُ رَبِّیۡ عَلَیۡہِ تَوَکَّلۡتُ ٭ۖ وَ اِلَیۡہِ اُنِیۡبُ (۱۰)

دآسمانونو اوځمکې پيداکوونکی ، چې ستاسې له خپل جنس څخه يې ستاسې لپاره جوړې پيدا کړې او همداسې يې په څارويو او ځناورو کښې هم ( دهمغوهم جنس ) جوړې پيدا کړې او په دې توګه هغه ستاسې ځوځات خوروي . دکائناتو هيڅ شی هغه ته ورته څيرمه نشته ، هغه دهر څه اوريدونکی اوليدونکی دی ،

فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ جَعَلَ لَکُمۡ مِّنۡ اَنۡفُسِکُمۡ اَزۡوَاجًا وَّ مِنَ الۡاَنۡعَامِ اَزۡوَاجًا ۚ یَذۡرَؤُکُمۡ فِیۡہِ ؕ لَیۡسَ کَمِثۡلِہٖ شَیۡءٌ ۚ وَ ہُوَ السَّمِیۡعُ الۡبَصِیۡرُ (۱۱)

داسمانونو او ځمکې دخزانو کليګانې له هماغه سره دي چاته يې چې خوښه شي پراخه روزي ورکوي اوچاته يې چې خوښه شي لنډه تنګه روزي ورکوي ، هغه په هرڅه پوهيږي .

لَہٗ مَقَالِیۡدُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ یَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ یَّشَآءُ وَ یَقۡدِرُ ؕ اِنَّہٗ بِکُلِّ شَیۡءٍ عَلِیۡمٌ (۱۲)

هغه ستاسې لپاره د دين همغه کړنلاره ټاکلې ده چې دهغې حکم يې نوح ته کړی و او چې اوس ای محمده ص ، تاته مود وحی په وسيله درليږلې دی ، اوچې دهغه حکم مو ابراهيم ، موسی او عيسی ته کړی دی ، په دې سپارښت سره چې دغه دين برقرار کړئ اوپه ده کښې تيت پرك کيږئ مه همداخبره د دغومشرکانو ډيره ترپامه بده راغلې ده چې دهغې خواته ( ای محمده ) ته دوی ته بلنه ورکوې . دالله چې چاته خوښه شي ځان ته يې غوره کوي او هغه خپل لوري ته دراتلو لاره همغه چاته ورښيي چې دهغه خواته رجوع وکړي .

شَرَعَ لَکُمۡ مِّنَ الدِّیۡنِ مَا وَصّٰی بِہٖ نُوۡحًا وَّ الَّذِیۡۤ اَوۡحَیۡنَاۤ اِلَیۡکَ وَ مَا وَصَّیۡنَا بِہٖۤ اِبۡرٰہِیۡمَ وَ مُوۡسٰی وَ عِیۡسٰۤی اَنۡ اَقِیۡمُوا الدِّیۡنَ وَ لَا تَتَفَرَّقُوۡا فِیۡہِ ؕ کَبُرَ عَلَی الۡمُشۡرِکِیۡنَ مَا تَدۡعُوۡہُمۡ اِلَیۡہِ ؕ اَللّٰہُ یَجۡتَبِیۡۤ اِلَیۡہِ مَنۡ یَّشَآءُ وَ یَہۡدِیۡۤ اِلَیۡہِ مَنۡ یُّنِیۡبُ (۱۳)

په خلکو کښې چې کومه تفرقه راغله هغه له دې وروسته راغله چې هغوته علم راغلی و اوپه دې اساس راغله چې هغوی پخپل منځ کښې یوپربل باندې تیری کول غوښتل . که ستارب دمخه دانه وای ویلي چې تریوې ټاکلي نیټې پورې دې فیصله وځنډوله شي ،نو د دوې ترمنځ پریکړه به صادره کړی شوې وه . او حقیقت دادی چې له پخوانیونه وروسته چې کوم کسان د کتاب وارثان وګرځول شول هغوی دهغه (قرآن) له پلوه په لوی اندیښناك شك کښې غورځېدلي دي .

وَ مَا تَفَرَّقُوْۤا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَہُمُ الْعِلْمُ بَغْیًۢا بَیْنَہُمْ ؕ وَ لَوْ لَا کَلِمَۃٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّکَ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی لَّقُضِیَ بَیْنَہُمْ ؕ وَ اِنَّ الَّذِیْنَ اُوْرِثُوا الْکِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِہِمْ لَفِیْ شَکٍّ مِّنْہُ مُرِیْبٍ (۱۴)

نو ای پیغمبره ! همدې توحیدته بلنه کوه او لکه څنګه چې تاته حکم شوی دی پرهغه باندې کلك ثابت اوسه ، او د دوی په غوښتنوپسی مه ځه ، او دوی ته ووایه چې : (( الله چې هرکتاب نازل کړی دی ماپرهغه باندې ایمان راوړی . ماته امرشوی دی چې زه ستاسې په مینځ کښې عدل وکړم . همغه الله زمونږرب هم دی او ستاسې رب هم . زمونږعملونه زمونږلپاره دي اوستاسې عملونه ستاسې لپاره دي . زمونږاوستاسې په مینځ کښې کومه جګړه نه شته الله به یوه ورځ مونږټول غونډ کړي او دهماغه لوري ته دټولو ورتګ دی )).

فَلِذٰلِکَ فَادْعُ ۚ وَ اسْتَقِمْ کَمَاۤ اُمِرْتَ ۚ وَ لَا تَتَّبِعْ اَہْوَآءَہُمْ ۚ وَ قُلْ اٰمَنْتُ بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰہُ مِنْ کِتٰبٍ ۚ وَ اُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَیْنَکُمْ ؕ اَللّٰہُ رَبُّنَا وَ رَبُّکُمْ ؕ لَنَاۤ اَعْمَالُنَا وَ لَکُمْ اَعْمَالُکُمْ ؕ لَا حُجَّۃَ بَیْنَنَا وَ بَیْنَکُمْ ؕ اَللّٰہُ یَجْمَعُ بَیْنَنَا ۚ وَ اِلَیْہِ الْمَصِیْرُ (ؕ۱۵)

دالله بلنې ته له لبیك ویل کیدو وروسته چې کوم کسان ( له لبیك ویونکوسره ) دالله ددین په باب جګړې کوي دهغو دلیل تراشي دهغو درب په نزد باطله ده ، اوپرهغو باندې غضب دی او دهغو لپاره سخت عذاب دی .

وَ الَّذِیْنَ یُحَآجُّوْنَ فِی اللّٰہِ مِنْۢ بَعْدِ مَا اسْتُجِیْبَ لَہٗ حُجَّتُہُمْ دَاحِضَۃٌ عِنْدَ رَبِّہِمْ وَ عَلَیْہِمْ غَضَبٌ وَّ لَہُمْ عَذَابٌ شَدِیْدٌ (۱۶)

همغه الله دی چې هغه په حقه دغه کتاب اوتله نازل کړیدي . او ته څه خبریې ښایي چې دفیصلې ساعت رانږدې شوی وي .

اَللّٰہُ الَّذِیْۤ اَنْزَلَ الْکِتٰبَ بِالْحَقِّ وَ الْمِیْزَانَ ؕ وَ مَا یُدْرِیْکَ لَعَلَّ السَّاعَۃَ قَرِیْبٌ (۱۷)

کوم کسان چې دهغه پر راتګ ایمان نه لري هغوی خو دهغه لپاره بیړه کوي مګر څوك چې پر هغه ایمان لري هغوی ورڅخه ویریږي او پوهیږي چې په باوري ډول هغه راتلونکی دی . ښه واورئ ، کوم کسان چې دهغه ساعت په راتلوکښې شك اچوونکي بحثونه کوي هغوی په ګمراهۍ کښې ډیرلیرې وتي دي .

یَسْتَعْجِلُ بِہَا الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِہَا ۚ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مُشْفِقُوْنَ مِنْہَا ۙ وَ یَعْلَمُوْنَ اَنَّہَا الْحَقُّ ؕ اَلَاۤ اِنَّ الَّذِیْنَ یُمَارُوْنَ فِی السَّاعَۃِ لَفِیْ ضَلٰلٍۭ بَعِیْدٍ (۱۸)

الله پرخپلو بندګانو ډیر مهربان دی . چاته چې یې څه خوښه وي روزي ورکوي ، او هغه ډیرزور ور او برلاسی دی

اَللّٰہُ لَطِیْفٌۢ بِعِبَادِہٖ یَرْزُقُ مَنْ یَّشَآءُ ۚ وَ ہُوَ الْقَوِیُّ الْعَزِیْزُ (۱۹)

څوك چې داخرت کښت کرونده غواړي مونږد هغه په کښت کښې زیاتوالی راولو، اوڅوك چې د دنیا کښت کرونده غواړي هغه ته یې له همدې دنیا څخه ورکوو خو په اخرت کښې دهغه هیڅ برخه نه شته .

مَنْ کَانَ یُرِیْدُ حَرْثَ الْاٰخِرَۃِ نَزِدْ لَہٗ فِیْ حَرْثِہٖ ۚ وَ مَنْ کَانَ یُرِیْدُ حَرْثَ الدُّنْیَا نُؤْتِہٖ مِنْہَا وَ مَا لَہٗ فِی الْاٰخِرَۃِ مِنْ نَّصِیْبٍ (۲۰)

ایا دغه خلك له خدای سره داسې شریکان نیسی چې د دوی لپاره یې د دین داسې طریقې غوره کړی چې الله دهغې اجازه نده کړې ؟ که دفیصلې خبره مخکښې نه وای سرته رسول شوې نو د دوی ترمنځ پریکړه به صادره کړاې شوې وه په باوري توګه د دغو ظالمانو لپاره درد ناك عذاب دی .

اَمْ لَہُمْ شُرَکٰٓؤُا شَرَعُوْا لَہُمْ مِّنَ الدِّیْنِ مَا لَمْ یَاْذَنْۢ بِہِ اللّٰہُ ؕ وَ لَوْ لَا کَلِمَۃُ الْفَصْلِ لَقُضِیَ بَیْنَہُمْ ؕ وَ اِنَّ الظّٰلِمِیْنَ لَہُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ (۲۱)

تَرَی الظّٰلِمِیْنَ مُشْفِقِیْنَ مِمَّا کَسَبُوْا وَ ہُوَ وَاقِعٌۢ بِہِمْ ؕ وَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِیْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ ۚ لَہُمْ مَّا یَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّہِمْ ؕ ذٰلِکَ ہُوَ الْفَضْلُ الْکَبِیْرُ (۲۲)

ته به وګورې چې دغه ظالمان به په هغه وخت کښې دخپلو عملونو له عاقبت نه ویریدونکي وي او هغه به پردوی راشي . د دې پرخلاف کومو خلکو چې ایمان راوړیدی او نیك عملونه یې کړیدي هغوی به دجنت په باغچوکښې وي ، هغوی چې هرڅه وغواړي دخپل رب په وړاندې به یې وموممي ، همدغه لوی فضل دی .

ذٰلِکَ الَّذِیْ یُبَشِّرُ اللّٰہُ عِبَادَہُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ قُلْ لَّاۤ اَسْـَٔلُکُمْ عَلَیْہِ اَجْرًا اِلَّا الْمَوَدَّۃَ فِی الْقُرْبٰی ؕ وَ مَنْ یَّقْتَرِفْ حَسَنَۃً نَّزِدْ لَہٗ فِیْہَا حُسْنًا ؕ اِنَّ اللّٰہَ غَفُوْرٌ شَکُوْرٌ (۲۳)

دغه دی هغه شی چې الله دهغه زیری خپلو هغو بندګانوته ورکوي چې هغوی ایمان راوړ اونیك عملونه یې وکړل . اې پېغمبره ! دوی ته ووایه چې زه پردغه کار باندې له تاسې نه دڅه اجورې غوښتونکی نه یم . البته دخپلولی مینه ارومرو غواړم. څوك چې دنیکی ګټه وکړي مونږبه دهغه لپاره په هغې نیکی کښې ښه والی زیات کړو بیشکه الله ښه ښونکی او قدر دان دی .

اَمْ یَقُوْلُوْنَ افْتَرٰی عَلَی اللّٰہِ کَذِبًا ۚ فَاِنْ یَّشَاِ اللّٰہُ یَخْتِمْ عَلٰی قَلْبِکَ ؕ وَ یَمْحُ اللّٰہُ الْبَاطِلَ وَ یُحِقُّ الْحَقَّ بِکَلِمٰتِہٖ ؕ اِنَّہٗ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (۲۴)

ایا دوی وایي چې دغه سړی پرالله باندې د درواغو بهتان تړلی دی ؟ که الله وغواړي نوستاپر زړه به مهر ووهي . الله باطل له مینځه وړي او حق پخپلو فرمانونو سره حق ثابتوي هغه دسینو په پټو رازونو پوهېږي .

وَ ہُوَ الَّذِیْ یَقْبَلُ التَّوْبَۃَ عَنْ عِبَادِہٖ وَ یَعْفُوْا عَنِ السَّیِّاٰتِ وَ یَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ (۲۵)

الله هماغه ذات دی چې له خپلو بندګانو څخه توبه قبلوي اوله ګناهونو څخه تیریږي ، پداسې حال کښې چې ستاسې ټولې کړنې هغه ته معلومې دي .

وَ یَسْتَجِیْبُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ یَزِیْدُہُمْ مِّنْ فَضْلِہٖ ؕ وَ الْکٰفِرُوْنَ لَہُمْ عَذَابٌ شَدِیْدٌ (۲۶)

هغه دایمان راوړونکو او دنیك عمل کوونکو خلکو دوعا قبلوي اوپخپل فضل سره هغوته لازیات ورکوي پاتې شول کافران نودهغو لپاره دردناکه سزاده .

وَ لَوْ بَسَطَ اللّٰہُ الرِّزْقَ لِعِبَادِہٖ لَبَغَوْا فِی الْاَرْضِ وَ لٰکِنْ یُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا یَشَآءُ ؕ اِنَّہٗ بِعِبَادِہٖ خَبِیْرٌۢ بَصِیْرٌ (۲۷)

که الله خپلو ټولو بندګانو ته پراخه روزي ورکړې وای نوهغوی به په ځمکه کښې دسرکشۍ طوفان برپا کړی و ، خو هغه په یوحساب سره چې څومره غواړي نازلوي یې ، په باوري ډول هغه له خپلو بندګانونه باخبر دی او هغوی وینې .

وَ ہُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ الْغَیْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَ یَنْشُرُ رَحْمَتَہٗ ؕ وَ ہُوَ الْوَلِیُّ الْحَمِیْدُ (۲۸)

هماغه ذات دی چې دخلکو له ناهیلي کیدونه وروسته باران اوروي او خپل رحمت خوروي ، او هماغه دستاینې وړسرپرست دی .

وَ مِنْ اٰیٰتِہٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَثَّ فِیْہِمَا مِنْ دَآبَّۃٍ ؕ وَ ہُوَ عَلٰی جَمْعِہِمْ اِذَا یَشَآءُ قَدِیْرٌ (۲۹)

دهغه له نښانوڅخه دي ددغو اسمانونو او ځمکې پیداینت او دغه ساکښ مخلوقات چې هغه په دې دواړو کښې خپاره کړیدي . هغه چې کله وغواړي دوی راغونډولی شی .

وَ مَاۤ اَصَابَکُمْ مِّنْ مُّصِیْبَۃٍ فَبِمَا کَسَبَتْ اَیْدِیْکُمْ وَ یَعْفُوْا عَنْ کَثِیْرٍ (۳۰ؕ)

پرتاسې چې هر مصیبت راغلی دی ، ستاسې دخپلو لاسونو له عملونو نه راغلی دی ، اوله ډیروګناهونو څخه هغه همداسې تیریږي ،

وَ مَاۤ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِیْنَ فِی الْاَرْضِ ۚۖ وَ مَا لَکُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰہِ مِنْ وَّلِیٍّ وَّ لَا نَصِیْرٍ (۳۱)

تاسې په ځمکه کښې دخپل خدای بیوسې کوونکې نه یئ او دالله په مقابل کښې تاسې کوم ملاتړاو مرستندوی نه لرئ

وَ مِنْ اٰیٰتِہِ الْجَوَارِ فِی الْبَحْرِ کَالْاَعْلَامِ (۳۲ؕ)

دهغه له نښانو څخه دغه بیړۍ دي چې په سمندر ونوکښې دغرونو په شان ښکاریږي

الله که وغواړي بادبه غلی کړي . او دوی به دسمندر پرشاتې ولاړې پاتي شي په دې کښي ستري نښاني دي دهر هغه چالپاره چي خورا زيات صبرکوونکی او شکر کوونکی وي .

اِنۡ يَّشَاۡ يُسۡكِنِ الرِّيۡحَ فَيَظۡلَلۡنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهۡرِهٖ ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوۡرٍ ‏(۳۳)

يا( په هغوکښي دسپريدونکو ) دگناهونو په مجازات کښي هغه ډوبې کړي ، خو هغه له ډيرو گناه هونو څخه تيريږي

اَوۡ يُوۡبِقۡهُنَّ بِمَا كَسَبُوۡا وَ يَعۡفُ عَنۡ كَثِيۡرٍ ‏(۳۴)

اوپه هغه وخت کښي به زمونږپه ايتونوکښي جګړه کوونکو ته معلومه شي چي دهغو لپاره دپناه کوم ځای نه شته .

وَّ يَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ يُجَادِلُوۡنَ فِىۡ اٰيٰتِنَا ؕ مَا لَهُمۡ مِّنۡ مَّحِيۡصٍ ‏(۳۵)

تاسي ته چې هرڅه درکړل شوي دي هغه محضې ددنيا دځو ورځني ژوندانه متاع ده ، او څه چې له الله سره دي هغه غوره هم دي او دوامدارهم . هغه د هغو خلکو لپاره دي چي ايمان يې راوړی دی اوپرخپل رب توکل کوي .

فَمَاۤ اُوۡتِيۡتُمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ فَمَتَاعُ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۚ وَ مَا عِنۡدَ اللّٰهِ خَيۡرٌ وَّ اَبۡقٰى لِلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَلٰى رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُوۡنَ ‏(۳۶)

هغه کسان چې له لويوګناهونو او دبې حيايې له چاروڅخه ډډه کوي اوکه په غوسه شي نو عفوه کوي .

وَ الَّذِيۡنَ يَجۡتَنِبُوۡنَ كَبٰٓئِرَ الۡاِثۡمِ وَ الۡفَوَاحِشَ وَ اِذَا مَا غَضِبُوۡا هُمۡ يَغۡفِرُوۡنَ ‏(۳۷)

هغه کسان چي دخپل رب حکم مني ، لمونځ قايموي ، خپلې چارې پخپل منځي مشورې سره سرته رسوي ، مونږچي هرڅه روزي هغوته ورکړي ده له هغې نه (دالله په لار کښي) لګښت کوي .

وَ الَّذِيۡنَ اسۡتَجَابُوۡا لِرَبِّهِمۡ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ ۪ وَ اَمۡرُهُمۡ شُوۡرٰى بَيۡنَهُمۡ ۪ وَ مِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ‏(۳۸)

اوهغه کسان کله چې پرهغوباندې تيری کيږي نو دهغه مقابله کوي .

وَ الَّذِيۡنَ اِذَاۤ اَصَابَهُمُ الۡبَغۡىُ هُمۡ يَنۡتَصِرُوۡنَ ‏(۳۹)

دبدی بدله همغسې بدي د ه، بيا څوك چي معافي وکړي او اصلاح وکړي دهغه اجرپرالله دی ، الله ظالمان نه خوښوي .

وَ جَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثۡلُهَا ۚ فَمَنۡ عَفَا وَ اَصۡلَحَ فَاَجۡرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيۡنَ ‏(۴۰)

اوکوم کسان چې له مظلوم واقع کيدونه وروسته غچ واخلي هغوی نه شي پړه کيدلی

وَ لَمَنِ انۡتَصَرَ بَعۡدَ ظُلۡمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ سَبِيۡلٍ ؕ‏ (۴۱)

ډيرې وړخوهغه کسان دي چې پرنورو ظلم کوي اوپه ځمکه کښي په ناحقه تيری کوي . د دغه راز خلکو لپاره دردناك عذاب دی .

اِنَّمَا السَّبِيۡلُ عَلَى الَّذِيۡنَ يَظۡلِمُوۡنَ النَّاسَ وَ يَبۡغُوۡنَ فِى الۡاَرۡضِ بِغَيۡرِ الۡحَقِّ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ‏(۴۲)

البته څوك چي له صبرنه کاراواخلي او ښښنه وکړي نو داډير دلوړې ارادې له چارو څخه ده .

وَ لَمَنۡ صَبَرَ وَ غَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ ‏(۴۳)

الله چې څوك په گمراهی کښې وغورځوي له الله نه وروسته هيڅوك د هغه متوجه کوونکی خواخوږی نه شته . ته به ووينې چې دغه ظالمان چي کله دخدای عذاب وګوري نوو به وايي ايا اوس دبيرته ستنيدولپاره کومه لاره شته ؟

وَ مَنۡ يُّضۡلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنۡ وَّلِىٍّ مِّنۡۢ بَعۡدِهٖ ؕ وَ تَرَى الظّٰلِمِيۡنَ لَمَّا رَاَوُا الۡعَذَابَ يَقُوۡلُوۡنَ هَلۡ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنۡ سَبِيۡلٍ ‏(۴۴)

اوته به ووينې چې دوی کله دوزخ ته راوستل شي نو خوارئ وهلي سرکوزي به روان وي اوهغه ته به دنظرپه اړولو دسترګوپه کونجونو سره غلي غلي گوري . په هغه وخت کښې به هغه کسان چې ايمان يې راوړی و ووايي چې په ربښتيا سره اصلي زيانمن هغه کسان دي چې هغوی دقيامت په ننني ورځ کښي خپل ځانونه او خپل اړونده کسان په زيان کښي واچول . خبردار اوسئ ظالمان به په هميشني عذاب کښي وي

وَ تَرٰٮهُمۡ يُعۡرَضُوۡنَ عَلَيۡهَا خٰشِعِيۡنَ مِنَ الذُّلِّ يَنۡظُرُوۡنَ مِنۡ طَرۡفٍ خَفِىٍّ ؕ وَ قَالَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنَّ الۡخٰسِرِيۡنَ الَّذِيۡنَ خَسِرُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ وَ اَهۡلِيۡهِمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ الظّٰلِمِيۡنَ فِىۡ عَذَابٍ مُّقِيۡمٍ ‏(۴۵)

او دهغوبه هيڅ ملاتړ کوونکي اوسرپرستان نه وي چې دالله په مقابل کښې دهغوي مرستې ته راشي . الله چې څوك په گمراهى کښې وغورځوي دهغه لپاره دژغورنې څه لاره نه شته .

وَ مَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ وَ مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ ؕ(۴۶)

ومنئ دخپل رب خبره مخکښې له دې چې هغه ورځ راشي چې دهغې د مخنيوي هيڅ صورت دالله لخوا څخه نه شته . په هغه ورځ به ستاسې دپناه کوم ځاى نه وي او نه به څوك ستاسې دحال دبدلولو هڅه کوونکى وي .

اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَئِذٍ وَّ مَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ (۴۷)

اوس که دوى مخ اړوي نو اى پيغمبره ، مونږ خوته پردوى دساتندوى په توگه نه يې ليږلى . پرتا خو صرف دخبرې رسولو مسوليت دى . دانسان داحال دى چې کله مونږ وربانديې دخپل رحمت خوند څکو نوپه دې خوښيږي ، او که د دوي دخپلو لاسونو کړي بدعملونه دکوم مصيبت په بڼه کښې پردوې را اوړي نو انسان ډير ناشکره کيږي .

فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَمَا اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ؕ اِنْ عَلَيْكَ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَ اِنَّاۤ اِذَاۤ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا ۚ وَ اِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَاِنَّ الْاِنْسَانَ كَفُوْرٌ (۴۸)

الله داسمانونو او ځمکې دباچايى مالك دى ، څه چې غواړي پيداکوي يې ، چاته يې چې خوښه شي نجونې ورکوي ، چاته يې چې خوښه شى هلکان ورکوي .

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ (۴۹)

او چاته چې يې خوښه شي هلکان او نجونې گډوډ ورکوي اوچاته يې چې خوښه شي شنډوي يې . هغه ته هرڅه معلوم دي اوپه هرڅه قادر دى .

اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّ اِنَاثًا ۚ وَ يَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ (۵۰)

هيڅ بشر دامقام نه لري چې الله له هغه سره مخامخ خبرې وکړي . ياخود هغه خبرې په وحى ( اشارې ) سره وي يا دپردې ترشا، ياکوم پيغام راوړونکې ( پرښته ) ليږي او پرښته د الله په حکم سره هرڅه چې هغه غواړي وحى کوي ، هغه لوړ او دحکمت خاونددى .

وَ مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ (۵۱)

اوپه همدې ډول ( اى محمده!) مونږپه خپل حکم سره يو روح تاته وحي کړى دى . ته هيڅ نه پوهيدلې چې کتاب څه وي او ايمان څه وي ، خو هغه روح (قرآن) مونږيوه رڼاوگرځوله چې په هغې سره مونږله خپلو بندگانونه چې چاته موخوښه شي لاره ښيو . په يقيني ډول ته دسمې لارې لورې ته رهبري کوې ،

وَ كَذٰلِكَ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؕ مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَ لَا الْاِيْمَانُ وَ لٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِيْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ؕ وَ اِنَّكَ لَتَهْدِيْۤ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۙ(۵۲)

دهغه خداى دلارې لورې ته چې داسمانونو او ځمکې هرشي مالك دى . خبردار اوسئ ، ټولې چارې دالله خواته ورگرځي .

صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ؕ اَلَاۤ اِلَى اللّٰهِ تَصِيْرُ الْاُمُوْرُ (۵۳)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکى دى

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

حَ ـ مَ ـ

حٰمٓ ۚ(۱)

قسم دى په دغه ښکاره کتاب

وَ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۙ(۲)

چې مونږداد عربي ژبې قرآن گرځولى دى ترڅوچې تاسې وربانډى وپوهيږئ .

اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۚ(۳)

اودا په حقيقت کښې په ام الکتاب (لوح محفوظ) کښې ثبت دى ، زمونږپه وړاندې دلوړې مرتبې خاوند اوله حکمته ډك کتاب .

وَ اِنَّهٗ فِيْۤ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيْمٌ ؕ(۴)

نوايا مونږله تاسې نه په بيزاريدو سره تاسې ته دنصيحت د دغه درس ليږل صرف په دې خاطر پريږدوچې تاسې له حده تيږ شوي خلك ياست ؟

اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِيْنَ (۵)

په پخوانيو تېرشويو قومونوکښې هم په وارووارومونږپېغمبران لېږلي دي

وَ كَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِی الْاَوَّلِيْنَ (۶)

هيڅکله داسې نه ده شوې چې کوم پيغمبر هغوته راغلی وي او هغوی په هغه پورې ټوکې وشتې نه وي کړې .

وَ مَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۷)

نوکوم خلك چې له دوی نه ډيرزيات زورور وو مونږهغوی هلاك كړل، د مخکېنېوقومونو مثالونه تېر شوي دی .

فَاَهْلَكْنَآ اَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَّ مَضٰى مَثَلُ الْاَوَّلِيْنَ (۸)

که ته له دوی نه پوښتنه وکړې چې اسمانونه او ځمکه چاپيدا کړي دي نو دوی به پخپله ووايي چې داهماغه برلاسي په هرڅه پوه ذات پيدا کړي دي.

وَ لَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيْزُ الْعَلِيْمُ (۹)

هماغه ذات دی چې ستاسي لپاره يې دغه ځمکه زانګو وګرځوله اوپه دې کښې يې ستاسې لپاره لارې جوړی کړې ترڅو چې تاسي دخپل منزل مقصود لاره وموندلی شی.

الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ مَهْدًا وَّ جَعَلَ لَكُمْ فِيْهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ (۱۰)

هغه ذات چې په يوه خاصه اندازه کښې يې له آسمانه اوبه نازلې کړې او دهغو په وسيله مو مړه ځمکه راژوندی کړه ،په همدې ډول به يوه ورځ تاسي له ځمکي نه راوويستل شئ.

وَ الَّذِیْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ ۚ فَاَنْشَرْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ (۱۱)

هماغه ذات چې دغه ټولې جوړې يې پېدا کړې اوستاسې لپاره يې دبېړيواوڅارويو سپرلی پيداکړې.

وَ الَّذِیْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا وَ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْفُلْكِ وَ الْاَنْعَامِ مَا تَرْكَبُوْنَ (۱۲)

ترڅوچې تاسې دهغو (هريوه) پر شاهم سپاره شئ او کله چې پرهغه کښېنئ نو دخپل رب احسان ياد کړئ اوو وايئ چې : (( پاك دی هغه ذات چې زمونږلپاره يې دغه شی مسخر کړ که نه مونږترکنترول لاندې دده دراوستلووس نه در لوده ،

لِتَسْتَوٗا عَلٰى ظُهُوْرِهٖ ثُمَّ تَذْكُرُوْا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ اِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَ تَقُوْلُوْا سُبْحٰنَ الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَ مَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ (۱۳)

او يوه ورځ ارومرو دخپل رب خواته زمونږګرځېدل دي)) .

وَ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ (۱۴)

په دې هرڅه باندې له پوهېدلو اوددې هرڅه له منلو سره هم ) دوی دهغه له بندګانونه ځينې دهغه جز وګرځول حقيقت دادی چې انسان ښکاره احسان هېروونکی دی .

وَ جَعَلُوْا لَهٗ مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا ؕ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ مُّبِيْنٌ (۱۵)

ايا الله له خپل مخلوق نه دځان لپاره لوڼې غوره کړې اوتاسې يې په زامنو سره سرلوړي کړي يې ؟

اَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنٰتٍ وَّ اَصْفٰكُمْ بِالْبَنِيْنَ (۱۶)

اوحال دادی کوم اولادچې دوی رحمان خدای ته منسوبوي دهغه دزېږندې زيری چې کله پخپله له دوی نه يوچاته ورکول کېږی نو مخ يې له ډيره غمه تور اوړي.

وَ اِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّ هُوَ كَظِيْمٌ (۱۷)

اياداالله په برخه هغه اولادورسېده چې په ګانوکښې يې پالنه کېږي اوپه خبرواو استدلال کښې خپله مدعاپه پوره ډول ښکاره کولی هم نه شي؟

اَوَ مَنْ يُّنَشَّؤُا فِی الْحِلْيَةِ وَ هُوَ فِی الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِيْنٍ (۱۸)

دوی ملائکې چې د رحمان (خدای) خاص بندګان دی ښځې وګڼلی ايا دوی دهغو دجسم ساخت ليدلی دی ؟ د دوی شاهدي به وليکل شی او دوی به دهغی په باب پوښتيدوني وي

وَ جَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا ؕ اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ ؕ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ وَ يُسْئَلُوْنَ (۱۹)

دوی وايي (( که رحمان (خدای) غوښتلای ( چې مونږدهغو عبادت ونه کړو ) نو مونږبه هيڅکله دهغو عبادت نه وْ کړی)) . دوی دهغې معاملې پرحقيقت باندې هيڅ نه پوهېږي،دوی محضې اټکلونه چلوي

وَ قَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ ؕ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ * اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ (۲۰)

ايا مونږله دې نه مخکښې دوی ته کوم کتاب ورکړی و چې دوی له ځان سره ( دېرښتو دپرستش لپاره ) دهغه کوم سند ولري ؟

اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا مِّنْ قَبْلِهٖ فَهُمْ بِهٖ مُسْتَمْسِكُوْنَ (۲۱)

نه، بلکي دوی وايي چې مونږ خپل پلار نيکه پريوې کړنلارې باندې مونډلي دي د هماغو پر نقش قدم باندې روان يو .

بَلۡ قَالُوۡۤا اِنَّا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا عَلٰۤى اُمَّةٍ وَّ اِنَّا عَلٰۤى اٰثٰرِہِمۡ مُّہۡتَدُوۡنَ (۲۲)

په همدې ډول له تانه مخکښې چې هر کلې ته مونږ کوم ويروونکی ولېږه دهغه هوساشتمنو خلکو همداوويل چې مونږ خپل پلارنيکه پريوه کړنلاره باندې مونډلي دي او مونږدهماغوی دنقش قدم پيروي کوو.

وَ کَذٰلِکَ مَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِکَ فِیۡ قَرۡیَۃٍ مِّنۡ نَّذِیۡرٍ اِلَّا قَالَ مُتۡرَفُوۡہَاۤ ۙ اِنَّا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا عَلٰۤی اُمَّۃٍ وَّ اِنَّا عَلٰۤی اٰثٰرِہِمۡ مُّقۡتَدُوۡنَ (۲۳)

پيغمبر به هغو ته ويل: ايا تاسي به پر هماغې ويرانه ځىءچې پر هغې باندې تاسي خپل پلارنيکه مونډلي اګر که زه له هغې لارې نه ډېره صحيح لاره تاسي ته دروښيم ؟ هغوې ټولو پېغمبرانو ته همدغه ځواب ورکړ چې دکوم دين خواته دبلنې لپاره چې تاسي لېږل شوي يې مونږپه هغه باندې کافران يو .

قٰلَ اَوَ لَوۡ جِئۡتُکُمۡ بِاَہۡدٰی مِمَّا وَجَدۡتُّمۡ عَلَیۡہِ اٰبَآءَکُمۡ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّا بِمَاۤ اُرۡسِلۡتُمۡ بِہٖ کٰفِرُوۡنَ (۲۴)

په پای کښې مونږله هغو نه غچ واخيست او ګوره چې د درواغ ګڼونکو عاقبت څنګه شو .

فَانۡتَقَمۡنَا مِنۡہُمۡ فَانۡظُرۡ کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الۡمُکَذِّبِیۡنَ (۲۵)

يادکوه هغه وخت چې ابراهيم خپل پلار او خپل قوم ته ويلي وو چې (( تاسي چې دکومو شيانو بندګي کوىء زما له هغو سره هيڅ اړيکه نه شته .

وَ اِذۡ قَالَ اِبۡرٰہِیۡمُ لِاَبِیۡہِ وَ قَوۡمِہٖۤ اِنَّنِیۡ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعۡبُدُوۡنَ (۲۶)

زما اړيکه يوازې له هغه ذات سره ده چې زه يې پيدا کړی يم، هماغه به ماته لارښوونه وکړي )).

اِلَّا الَّذِیۡ فَطَرَنِیۡ فَاِنَّہٗ سَیَہۡدِیۡنِ (۲۷)

او ابراهيم همدغه کلمه له ځانه وروسته پخپل اولادکښې پرېښودله ترڅوچې هغوی د دې لورې ته رجوع وکړي

وَ جَعَلَہَا کَلِمَۃًۢ بَاقِیَۃً فِیۡ عَقِبِہٖ لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۲۸)

ددی له پاسه هم چې کله دغو خلکو دنور و په بندګۍ لاس پورې ) کړ نو مادوی له مينځه يونه وړل ) بلکې مادوی او د دوی پلار نيکه ته دنيوي متاع ورکړه ترديې پورې چې دوی ته حق او څرګند . بيانوونکی پېغمبر راغی

بَلۡ مَتَّعۡتُ ہٰۤؤُلَآءِ وَ اٰبَآءَہُمۡ حَتّٰی جَآءَہُمُ الۡحَقُّ وَ رَسُوۡلٌ مُّبِیۡنٌ (۲۹)

خوکله چې دوی ته هغه حق راغی نو دوی وويل چې داخو کوډې دي او مونږ د دې له منلونه انکار کوو

وَ لَمَّا جَآءَہُمُ الۡحَقُّ قَالُوۡا ہٰذَا سِحۡرٌ وَّ اِنَّا بِہٖ کٰفِرُوۡنَ (۳۰)

وايي دغه قرآن د دووښارونو (مکې اوطايف) له لويوسړيونه پريوچا باندې ولې نازل نه کړی شو ؟

وَ قَالُوۡا لَوۡ لَا نُزِّلَ ہٰذَا الۡقُرۡاٰنُ عَلٰی رَجُلٍ مِّنَ الۡقَرۡیَتَیۡنِ عَظِیۡمٍ (۳۱)

اياستادرب درحمت ويش دوی کوي ؟ د دوی د دنيوي ژوندانه تېرولو وسايل خو مونږد دوی په مينځ کښې ويشلي دي ، او د دوی ځينو ته پرځينو نور وباندې په درجو سره پورته والی مونږورکړی دی ترڅوچې دوی يوبل استخدام کړي . اوستا درب رحمت له هغې شتمنی نه زيات قيمتي دی چې ( د دوی مشران يې) راغونډوي .

اَہُمۡ یَقۡسِمُوۡنَ رَحۡمَتَ رَبِّکَ ؕ نَحۡنُ قَسَمۡنَا بَیۡنَہُمۡ مَّعِیۡشَتَہُمۡ فِی الۡحَیٰوۃِ الدُّنۡیَا وَ رَفَعۡنَا بَعۡضَہُمۡ فَوۡقَ بَعۡضٍ دَرَجٰتٍ لِّیَتَّخِذَ بَعۡضُہُمۡ بَعۡضًا سُخۡرِیًّا ؕ وَ رَحۡمَتُ رَبِّکَ خَیۡرٌ مِّمَّا یَجۡمَعُوۡنَ (۳۲)

که داوېره نه وای چې ټول خلك به ديوې کړنلارې پيروان شي نو مونږبه په رحمان خدای باندې دکافرکېدونکو دکور ونو چتونه، او دهغوی زينې چې هغوی وربانديې بامونوته خيژي ، دسپينو زرو ګرځولي وو

وَ لَوۡ لَاۤ اَنۡ یَّکُوۡنَ النَّاسُ اُمَّۃً وَّاحِدَۃً لَّجَعَلۡنَا لِمَنۡ یَّکۡفُرُ بِالرَّحۡمٰنِ لِبُیُوۡتِہِمۡ سُقُفًا مِّنۡ فِضَّۃٍ وَّ مَعَارِجَ عَلَیۡہَا یَظۡہَرُوۡنَ (۳۳)

او همدارنګه دهغوی دکورونو دروازې ، او دهغوی تختونه چې هغوی وربانديې تکيه وهونکي کښېنې ( هم د سپينوزرو ګرځولي وو).

وَ لِبُیُوۡتِہِمۡ اَبۡوَابًا وَّ سُرُرًا عَلَیۡہَا یَتَّکِـُٔوۡنَ (۳۴)

او دسرو زرو، دا هرڅه خو محضې د دنیوي ژوندانه متاع ده او آخرت ستا درب په وړاندې صرف د تقوا دارو خلکو لپاره دی .

وَ زُخۡرُفًا ؕ وَ اِنۡ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ؕ وَ الۡاٰخِرَةُ عِنۡدَ رَبِّكَ لِلۡمُتَّقِيۡنَ (۳۵)

څوك چې د رحمان خدای له ذکرنه ځان په غفلت کښې اچوي، مونږپرهغه باندې یوشیطان مسلطو و او هغه یې ملګری کېږي .

وَ مَنۡ يَّعۡشُ عَنۡ ذِكۡرِ الرَّحۡمٰنِ نُقَيِّضۡ لَهٗ شَيۡطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيۡنٌ (۳۶)

داشیطانان دغسې خلك پرسمه لاره باندې له تلوڅخه منع کوي . اوهغوی له ځانه سره داګومان کوي چې مونږسم روان یو .

وَ اِنَّهُمۡ لَيَصُدُّوۡنَهُمۡ عَنِ السَّبِيۡلِ وَ يَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ (۳۷)

په پای کښې چې کله دغه انسان زمونږحضورته راشي نو خپل شیطان ته به و وایي ((کاشکې زما او ستاتر مینځه دختیځ او لویدیځ لیرې والی وای ، ته خو ډېر بد ملګری شوې ))

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَنَا قَالَ يٰلَيۡتَ بَيۡنِىۡ وَ بَيۡنَكَ بُعۡدَ الۡمَشۡرِقَيۡنِ فَبِئۡسَ الۡقَرِيۡنُ (۳۸)

په هغه وخت کښې به دوی ته وویل شي چې کله چې تاسې ظلم کړی دی نو نن ستاسې لپاره داخبره هېڅ ګټوره نه ده چې تاسې او ستاسې شیطانان په عذاب کښې یوځای ییء.

وَ لَنۡ يَّنۡفَعَكُمُ الۡيَوۡمَ اِذۡ ظَّلَمۡتُمۡ اَنَّكُمۡ فِى الۡعَذَابِ مُشۡتَرِكُوۡنَ (۳۹)

نو ایا ای پیغمبره! ته به کاڼه واوروې ؟ یا به ړندوته او په څرګنده ګمراهۍ کښې غورځېدلېو خلکو ته لاره وښیې ؟ .

اَفَاَنۡتَ تُسۡمِعُ الصُّمَّ اَوۡ تَهۡدِى الۡعُمۡىَ وَ مَنۡ كَانَ فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ (۴۰)

اوس نومونږدوی ته په غچ اخیستلوسزاورکوونکي یوکله چې تاله نړۍنه بوځو

فَاِمَّا نَذۡهَبَنَّ بِكَ فَاِنَّا مِنۡهُمۡ مُّنۡتَقِمُوۡنَ (۴۱)

یاتاته په سترګو د دوی هغه عاقبت وښیوچې مونږله دوی سره دهغه وعده کړې ده یقیناًمونږپردوی باندې پوره برلاسي یو .

اَوۡ نُرِيَنَّكَ الَّذِىۡ وَعَدۡنٰهُمۡ فَاِنَّا عَلَيۡهِمۡ مُّقۡتَدِرُوۡنَ (۴۲)

ته په هر حال هغه کتاب ټینګ ونیسه چې دوحی په وسیله تاته لېږل شوی دی ، په یقیني ډول ته پرسمه لاره یې .

فَاسۡتَمۡسِكۡ بِالَّذِىۡۤ اُوۡحِىَ اِلَيۡكَ‌ ۚ اِنَّكَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ (۴۳)

حقیقت دادی چې دغه کتاب ستاالپاره اوستادقوم لپاره یو ډېر لوی شرف دی او ډېر ژر به تاسې د ده په باب پوښتېدوني شئ .

وَ اِنَّهٗ لَذِكۡرٌ لَّكَ وَ لِقَوۡمِكَ‌ ۚ وَ سَوۡفَ تُسۡـَٔلُوۡنَ (۴۴)

له تانه مخکښې چې مونږڅومره پیغمبران لېږلي وو له هغوټولو نه پوښتنه وکړه ، ایا مونږله رحمٰن خدای نه پرته نور خدایان هم دخلکو معبودان ګرځولي وو چې دهغوبندګي وشي ؟

وَ سۡـَٔلۡ مَنۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ مِنۡ رُّسُلِنَاۤ اَجَعَلۡنَا مِنۡ دُوۡنِ الرَّحۡمٰنِ اٰلِهَةً يُّعۡبَدُوۡنَ (۴۵)

مونږموسٰی له خپلو نښانو سره فرعون او دهغه دسلطنت اراکینوته ولېږه او هغه ورغی ویې ویل چې زه درب العلمین پیغمبریم

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰى بِاٰيٰتِنَاۤ اِلٰى فِرۡعَوۡنَ وَ مَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّىۡ رَسُوۡلُ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ (۴۶)

بیا کله چې هغه زمونږنښاني هغوته وړاندې کړې نو هغوی ورپورې (په کړس کړس) وخندل .

فَلَمَّا جَآءَهُمۡ بِاٰيٰتِنَاۤ اِذَا هُمۡ مِّنۡهَا يَضۡحَكُوۡنَ (۴۷)

مونږدیوې له پاسه یوه داسې نښانه هغوی ته ښودله چې له مخکېنۍ نه به لازیاته غټه وه ، او مونږهغوی بیا بیا په عذاب کښې راګیرکړل تر څوچې هغوی له خپل چال چلند نه راوګرځي .

وَ مَا نُرِيۡهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ اِلَّا هِىَ اَكۡبَرُ مِنۡ اُخۡتِهَا‌ ۡ وَ اَخَذۡنٰهُمۡ بِالۡعَذَابِ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ (۴۸)

دهر عذاب په وخت کښې به هغوی ویل : ای کوډګره ! دخپل رب لخوا چې کوم منصب درپه برخه شویدی دهغه پراساس زمونږلپاره له هغه نه دعا وکړه ، مونږبه ارو مرو پرسمه لاره برابر شو .

وَ قَالُوۡا يٰۤاَيُّهَ السّٰحِرُ ادۡعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنۡدَكَ‌ ۚ اِنَّنَا لَمُهۡتَدُوۡنَ (۴۹)

خوڅنګه به چې مونږله هغونه عذاب ایسته کاوه هغوی به له خپلې خبرې نه اووښتل .

فَلَمَّا كَشَفۡنَا عَنۡهُمُ الۡعَذَابَ اِذَا هُمۡ يَنۡكُثُوۡنَ (۵۰)

يوه ورځ فرعون دخپل قوم په مينځ کښي په لوړ غږوويل ((ای خلکو! ايا دمصرباچاهي زمانه ده ، اودغه ويالي ترمالاندي نه بهيږی ؟ ايا تاسي نه وينئ ؟

وَ نَادٰی فِرْعَوْنُ فِیْ قَوْمِہٖ قَالَ یٰقَوْمِ اَلَیْسَ لِیْ مُلْکُ مِصْرَ وَ ہٰذِہِ الْاَنْہٰرُ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِیْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ (۵۱ؕ)

زه ښه يم که دغه سړی چي ذليل او حقيردی او خپله خبره هم څرګنده نشي بيانولی ؟

اَمْ اَنَا خَیْرٌ مِّنْ ہٰذَا الَّذِیْ ہُوَ مَہِیْنٌ ۙ وَّ لَا یَکَادُ یُبِیْنُ (۵۲)

ولي پرده باندي دسر وزروبنګري راښکته نشول ؟ يا دپرښتو يوټولی دهغه په اردل کښي رانغی ؟

فَلَوْ لَاۤ اُلْقِیَ عَلَیْہِ اَسْوِرَۃٌ مِّنْ ذَہَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَہُ الْمَلٰٓئِکَۃُ مُقْتَرِنِیْنَ (۵۳)

هغه خپل قوم سپك وګڼه او هغوی دهغه اطاعت وکړ، په حقيقت کښي هغوی فاسقان خلك وو

فَاسْتَخَفَّ قَوْمَہٗ فَاَطَاعُوْہُ ؕ اِنَّہُمْ کَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِیْنَ (۵۴)

په پای کښي چي کله هغوی مونږپه غوسه کړونو مونږله هغونه غچ واخيست او هغوی موټول يوځای غرق کړل

فَلَمَّاۤ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْہُمْ فَاَغْرَقْنٰہُمْ اَجْمَعِیْنَ (۵۵ۙ)

او دور وستيونسلونو لپاره مو اسلاف او دپنداخيستلو ورنمونه وګرځول.

فَجَعَلْنٰہُمْ سَلَفًا وَّ مَثَلًا لِّلْاٰخِرِیْنَ (۵۶)

او دابن مريم دمثال وړاندي کولو سره سم ستا دقوم خلکو پرهغه باندي شور زوږجوړ کړ

وَ لَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْیَمَ مَثَلًا اِذَا قَوْمُکَ مِنْہُ یَصِدُّوْنَ (۵۷)

او ويې ويل چي زمونږمعبودان ښه دي اوکه هغهٔ دغه مثال هغوی تاته محضي دخبرواړولو را اړولو لپاره وړاندي کړی دی حقيقت دادی چي دوی جګړه مار خلك دي .

وَ قَالُوْۤا ءَاٰلِہَتُنَا خَیْرٌ اَمْ ہُوَ ؕ مَا ضَرَبُوْہُ لَکَ اِلَّا جَدَلًا ؕ بَلْ ہُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ (۵۸)

ابن مريم له دي پرته بل څه نه و يوبنده و چي مونږورباندي پېرزوينه وکړه او دبني اسرائيلو لپاره مود خپل قدرت يوه نمونه وګرځاوه

اِنْ ہُوَ اِلَّا عَبْدٌ اَنْعَمْنَا عَلَیْہِ وَ جَعَلْنٰہُ مَثَلًا لِّبَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ (۵۹ؕ)

که مونږغوښتي وای نو ستاسي پرځای به موپرښتي پيداکړي وي چي په ځمکه کښي ستاسي جانشينان وای .

وَ لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنْکُمْ مَّلٰٓئِکَۃً فِی الْاَرْضِ یَخْلُفُوْنَ (۶۰)

اوهغه په اصل کښي دقيامت يوه نښانه ده ، نو تاسي په هغه کښي شك مه کوئ او زما خبره او متابعت ومنئ ، همدغه سمه سيخه لاره ده .

وَ اِنَّہٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَۃِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِہَا وَ اتَّبِعُوْنِ ؕ ہٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِیْمٌ (۶۱)

داسي دي نه وي چي شيطان تاسي له هغي نه منع کړي چي هغه ستاسي ښکاره دښمن دی .

وَ لَا یَصُدَّنَّکُمُ الشَّیْطٰنُ ۚ اِنَّہٗ لَکُمْ عَدُوٌّ مُّبِیْنٌ (۶۲)

اوکله چي عيسیٰ له څرګندونښانو سره راغلی وْ نو هغه ويلي وو چي ((زه تاسي ته له حکمت سره راغلی يم ، اوددي لپاره راغلی يم چي تاسي ته دځينو هغو خبروحقيقت ښکاره کړم چي په هغو کښي تاسي اختلاف کوئ ، په دې اساس تاسي له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ.

وَ لَمَّا جَآءَ عِیْسٰی بِالْبَیِّنٰتِ قَالَ قَدْ جِئْتُکُمْ بِالْحِکْمَۃِ وَ لِاُبَیِّنَ لَکُمْ بَعْضَ الَّذِیْ تَخْتَلِفُوْنَ فِیْہِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰہَ وَ اَطِیْعُوْنِ (۶۳)

حقيقت دادی چي الله زمارب هم دی او ستاسي رب هم . تاسي دهمغه عبادت وکړئ همدغه سمه سيخه لاره ده )) .

اِنَّ اللّٰہَ ہُوَ رَبِّیْ وَ رَبُّکُمْ فَاعْبُدُوْہُ ؕ ہٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِیْمٌ (۶۴)

خو ( دهغه له دغي روښانه ښووني سره سره) ډلو په خپلو مينځو کښي اختلاف وکړ، نو تباهي ده دهغو خلکو لپاره چي هغوی ظلم وکړ ديوې دردناکي ورځي له عذاب نه .

فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَیْنِہِمْ ۚ فَوَیْلٌ لِّلَّذِیْنَ ظَلَمُوْا مِنْ عَذَابِ یَوْمٍ اَلِیْمٍ (۶۵)

ايا دوی اوس فقط دهمدغه شي منتظر دي چي په ناڅاپي ډول پردوی قيامت راشي او دوی خبر هم نه وي ؟

ہَلْ یَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَۃَ اَنْ تَاْتِیَہُمْ بَغْتَۃً وَّ ہُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ (۶۶)

| | |
|---|---|
| اَلْاَخِلَّآءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ (٦٧) | کله چې هغه ورځ راشي نوله تقوادارو خلکو پرته نور ټول دوستان به يو دبل دښمنان شي . |
| يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَ لَا اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ (٦٨) | په هغه ورځ به هغو خلکو ته چې زمونږ پرآيتونويي ايمان راوړی وٌ اوامر منونکي وو وويل شي چې ((ای زما بندګانو ! نن ستاسي لپاره څه وېره نه شته اونه به دربانديې څه غم راشي . |
| اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا وَ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ (٦٩) | په هغه ورځ به هغو خلکوته چې زمونږ پر ايتونويي ايمان راوړی و او مسلمانان وو وويل شي چې : |
| اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ وَ اَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُوْنَ (٧٠) | ننوځیء جنت ته تاسي اوستاسي مېرمني،تاسي به خوشحاله کړای شئ. |
| يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ وَّ اَكْوَابٍ ۚ وَ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ وَ تَلَذُّ الْاَعْيُنُ ۚ وَ اَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (٧١) | دهغو په مخکښي به دسرو زروګيلاسونه اوجيکونه ګرځول کېږي او هرزړه خو ښوونکي او سترګي خوږوونکی شی به هلته موجود وي . دوی ته به وويل شي تاسي به اوس دلته دتل لپاره اوسېږئ . |
| وَ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (٧٢) | تاسي د دغه جنت وارثان دخپلو هغو کړنوله امله ګرځېدلي يیء چې په دنيا کښي موکول . |
| لَكُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَاْكُلُوْنَ (٧٣) | ستاسي لپاره دلته پريمانه ښې غوره ميوې شته چې تاسي به يې خورئ. |
| اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ (٧٤) | پاتي شول مجرمان نو هغوی به دتل لپاره د دوزخ په عذاب کښي اخته وي ، |
| لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَ هُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ (٧٥) | هېڅکله به يې په عذاب کښي کموالی نه راوستل کېږي ، او په هغه کښي به هغوی ناهيلي پراته وي . |
| وَ مَا ظَلَمْنٰهُمْ وَ لٰكِنْ كَانُوْا هُمُ الظّٰلِمِيْنَ (٧٦) | پر هغو مونږظلم نه دی کړی بلکي هغوی خپله پرخپل ځان ظلم وکړ. |
| وَ نَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ؕ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ (٧٧) | هغوی به غږوکړي (( ای ښتنه ! (خازنه)که ستارب زمونږکارپای ته ورسوي نو ښه ده )) .هغه به ځواب ورکړی : ((تاسي به همداسي اوسېږئ، |
| لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ (٧٨) | مونږتاسي ته له حق سره راغلي وو، خو له تاسي نه دزياتر و حق بداېسېده )) . |
| اَمْ اَبْرَمُوْا اَمْرًا فَاِنَّا مُبْرِمُوْنَ (٧٩) | ايا دوی دڅه اقدام کولو کلکه پرېکړه کړی ده ؟ ښه نو مونږهم بيا ديوې فيصلي صادر وونکي يو . |
| اَمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَ نَجْوٰىهُمْ ؕ بَلٰى وَ رُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُوْنَ (٨٠) | ايا دوی داګڼلي ده چې مونږد دوی رازونه او پټي خبري نه اورو؟ مونږهرڅه اورو او زمونږپرښتي له دوی سره دي ليکنه کوي . |
| قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ (٨١) | دوی ته ووايه (( که په ريښتيا سره درحمان څه اولاد وای نو تر ټولو مخکښي عبادت کوونکی به يي زه وم )) . |
| سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ (٨٢) | پاك دی داسمانونو او ځمکي فرمانروا، دعرش ښتنن له هغو ټولو خبرونه چې دوی يې هغه ته منسوبوي |
| فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَ يَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ (٨٣) | ښه ده ، دوی پرېږدو باطلو مفکور وکښي غرق او پخپله لوبه کښي لا لهانده پرېږده ، تردې پورې چې دوی خپله هغه ورځ وګوري چې دوې ترېنه وېرول کېږي . |
| وَ هُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّ فِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ ؕ وَ هُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ (٨٤) | همغه ايکي يو په اسمان کښي هم خدای دی او په ځمکه کښي هم خدای دی ، او همغه دحکمت ښتنن او په هرڅه پوه دی . |

ډېر لوړ او لوی دی هغه ذات چې دهغه په ولكه كښې د اسمانونو او ځمكې او هرهغه شي باچاهی ده چې دځمكې او آسمان په مينځ كښې دي او همغه ته دقيامت ساعت معلوم دی او دهماغه لورې ته تاسې ټول ورګرځول كېدونكي يئ

وَ تَبٰرَكَ الَّذِیْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَیْنَهُمَا ۚ وَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَ اِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ (۸۵)

له هغه پرته چې دوی كوم نور بولي هغوی دكوم شفاعت واك نه لري مګر داچې څوك دعلم پراساس دحق شاهدي ووايي.

وَ لَا یَمْلِكُ الَّذِیْنَ یَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَ هُمْ یَعْلَمُوْنَ (۸۶)

اوكه ته له دوی نه پوښتنه وكړې چې دوی چا پيداكړيدي نو دوی به پخپله ووايي چې الله . نو له كوم لورې دوی غولول كېږي ،

وَ لَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ لَیَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَاَنّٰى یُؤْفَكُوْنَ (۸۷)

قسم دی دپيغمبر پردې قول باندې چې ای ربه ، داهغه خلك دي چې ايمان نه راوړي.

وَ قِیْلِهٖ یٰرَبِّ اِنَّ هٰۤؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا یُؤْمِنُوْنَ (۸۸)

ښه نو ، ای پېغمبره ! له دوی نه مخ واړوه او ووايه چې سلام دی تاسې ته (ستاسې له شره سلامتي غواړم) ډېر ژربه دوی ته معلومه شي .

فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَ قُلْ سَلٰمٌ ؕ فَسَوْفَ یَعْلَمُوْنَ (۸۹)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

ح م ،

حٰمٓ (۱)

قسم دی پردغه څرګند وونكي كتاب

وَ الْكِتٰبِ الْمُبِیْنِ (۲)

چې مونږداپه يوه ډېره بركتناكه او غوره شپه كښې نازل كړی دی ، ځكه چې مونږدخلكو دتنبيه كولو اراده درلودله .

اِنَّاۤ اَنْزَلْنٰهُ فِیْ لَیْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِیْنَ (۳)

داهغه شپه وه چې په هغې كښې دهرې معاملې پرحكمت ولاړه فيصله صادرېږي .

فِیْهَا یُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِیْمٍ (۴)

زمونږپه امر، مونږ (ديو پېغمبر) لېږونكي يو ،

اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا ؕ اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِیْنَ (۵)

ستا درب درحمت په توګه . په باورې ډول هماغه دهرڅه اورېدونكی اوپه هرڅه پوهېدونكی دی .

رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ (۶)

داسمانونو او ځمكې رب او دهرهغه شي رب چې داسمان او ځمكې په مينځ كښې دی كه تاسې په ريښتيا باور كوونكي ئی .

رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَیْنَهُمَا ۘ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِیْنَ (۷)

له هغه پرته هيڅ معبود نشته . همغه ژوند وركوي او هماغه مرګ وركوي . ستاسې رب او ستاسې دهغو پلرونو نيكونو رب چې مخكښې تېرشويدي .

لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ یُحْیٖ وَ یُمِیْتُ ؕ رَبُّكُمْ وَ رَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِیْنَ (۸)

خوپه واقع كښې د دوی با ور نه شته) ، بلكې دوی پخپل شك كښې ) . لوبدلې لوبېږي

بَلْ هُمْ فِیْ شَكٍّ یَّلْعَبُوْنَ (۹)

ښه نو،انتظار وكړه دهغې ورځې چې داسمان غاړې ته يوڅرګندلوګی ښكاره شي

فَارْتَقِبْ یَوْمَ تَاْتِی السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِیْنٍ (۱۰)

او هغه پرخلكو باندې خپورشي ، دغه دردناكه سزاده

یَّغْشَى النَّاسَ ؕ هٰذَا عَذَابٌ اَلِیْمٌ (۱۱)

پروردګاره،له مونږڅخه دغه عذاب ايسته كړه )) (اوس وايي چې) ((مونږايمان راوړونكي يو

رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ (۱۲)

د دوی غفلت چېرته ايسته كېږي ؟ د دوی حال خو دادی چې دوی ته رسول ښكاره بيا نوونكی راغی

اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى وَ قَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِیْنٌ (۱۳)

بيا هم دوی دهغه خواته التفات ونه كړ او ويې ويل چې (( دايوليونی دی چې ښوونه ورته شوې ده )) ؟

ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَ قَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ (۱۴)

| | |
|---|---|
| که مونږلرِشانته عذاب ایسته کوو،تاسي به بیاهماغه څه وکړئ چي مخکښې موکول. | اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ (١٥) |
| کومه ورځ چي مونږسخته نیونه کوو هغه ورځ به وي چي کله مونږله تاسي نه غچ اخلو . | يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ (١٦) |
| مونږله دي نه مخکښې د فرعون قوم په همدي ازموېنه کښې وغورځاوه . هغوته (زمونږ له خوا) یو عزتمند پېغمبر ورغی | وَ لَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ (١٧) |
| او هغه وویل (( دالله بندگان ماته وسپارئ ، زه ستاسي لپاره یوامانتدار پېغمبریم . | اَنْ اَدُّوْا اِلَيَّ عِبَادَ اللّٰهِ اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ (١٨) |
| او دالله په مقابل کښې سرغړاوی مه کوئ . زه تاسي ته ( دخپل ماموریت ) څرگند سند وړاندې کوم. | وَّ اَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِنِّيْ اٰتِيْكُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ (١٩) |
| او ما دخپل رب او ستاسي درب پناه غوښتي ده . له دې نه چي تاسي پرماپه تیږو ویشتلو سره یرغل وکړئ . | وَ اِنِّيْ عُذْتُ بِرَبِّيْ وَ رَبِّكُمْ اَنْ تَرْجُمُوْنِ (٢٠) |
| که تاسي زما خبره نه منئ نوپرما باندې له لاس پورته کولونه ډډه وکړئ | وَ اِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا لِيْ فَاعْتَزِلُوْنِ (٢١) |
| په پای کښې هغه خپل رب ته دعا وکړه چي دغه خلك مجرمان دي . | فَدَعَا رَبَّهٗ اَنَّ هٰؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ (٢٢) |
| ځواب ورکړشو) ښه نو دشپي شپي زما بندگان درسره بوځه . په ) . تاسي پسي به تعقیب کېږي | فَاَسْرِ بِعِبَادِيْ لَيْلًا اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ (٢٣) |
| او سمندر پخپل حال پرانستی پرېږده . دغه ټول لښکر غرقېدونکی دی)) . | وَ اتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا اِنَّهُمْ جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ (٢٤) |
| څومره یي پرېښودل باغونه ، چینې ، | كَمْ تَرَكُوْا مِنْ جَنّٰتٍ وَّ عُيُوْنٍ (٢٥) |
| کښتونه او ځلانده محلونه . | وَّ زُرُوْعٍ وَّ مَقَامٍ كَرِيْمٍ (٢٦) |
| څومره ژوندني وسایل ، چي هغوی پکښې مزې چړچې (کولې له هغوی نه وروسته پاتې شول). | وَّ نَعْمَةٍ كَانُوْا فِيْهَا فٰكِهِيْنَ (٢٧) |
| داشود هغوعاقبت ، او مونږنورخلك د دغو شیانو وارثان وگرځول . | كَذٰلِكَ وَ اَوْرَثْنٰهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ (٢٨) |
| نونه خوپرهغوباندې اسمان وژړل او نه ځمکی ، او لږشانته مٌهلت هم هغوته ورنه کړل شو . | فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَ الْاَرْضُ وَ مَا كَانُوْا مُنْظَرِيْنَ (٢٩) |
| په دې ډول مونږبني اسرائیلوته له ډېرسپکوونکي عذاب څخه نجات ورکړ | وَ لَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيْ اِسْرَآءِيْلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ (٣٠) |
| له فرعون څخه نجات، چي په باوري ډول له حد څخه اوښتونکو کښې ډېر زیات تیری کوونکی و . | مِنْ فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِيْنَ (٣١) |
| اودهغو دحالت په پېژندنه مو هغوته دنړی پرنورو قومونو باندې ترجیح ورکړه ، | وَ لَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰى عِلْمٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (٣٢) |
| او هغوته مو داسي نښاني وښودلې چي په هغوکښې څرگنده ازموینه وه . | وَ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنَ الْاٰيٰتِ مَا فِيْهِ بَلٰٓؤٌا مُّبِيْنٌ (٣٣) |
| دوی خو دا وایي چي | اِنَّ هٰؤُلَآءِ لَيَقُوْلُوْنَ (٣٤) |
| زمونږله لومړني مرگ نه پرته نور څه نشته له هغه وروسته بیا دوهم ځل مونږراپاڅول کېدونکی نه یو . | اِنْ هِيَ اِلَّا مَوْتَتُنَا الْاُوْلٰى وَ مَا نَحْنُ بِمُنْشَرِيْنَ (٣٥) |
| که تاسي رېښتوني یئ نو زمونږپلرونه نیکونه راولئ ،، | فَاْتُوْا بِاٰبَآئِنَا اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (٣٦) |

| | |
|---|---|
| دوی ښه دي که دتُبع قوم اوله هغونه مخکښي کسان ؟ مونږهغوی په همدې اساس تباه کړل چې هغوی مجرمان شوي وو . | اَہُمۡ خَیۡرٌ اَمۡ قَوۡمُ تُبَّعٍ ۙ وَّ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ اَہۡلَکۡنٰہُمۡ ۫ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا مُجۡرِمِیۡنَ (۳۷) |
| دغه اسمانونه او ځمکه او د دوی ترمینځه شیان مونږد لوبو لپاره نه دي پیدا کړي . | وَ مَا خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ مَا بَیۡنَہُمَا لٰعِبِیۡنَ (۳۸) |
| مونږداپه حقه پیدا کړیدي ، خوزیاتره خلك په دې نه پو هیږي . | مَا خَلَقۡنٰہُمَاۤ اِلَّا بِالۡحَقِّ وَ لٰکِنَّ اَکۡثَرَہُمۡ لَا یَعۡلَمُوۡنَ (۳۹) |
| د دوی ټولو د پاخولو لپاره ټاکلی وخت دفیصلې ورځ ده ، | اِنَّ یَوۡمَ الۡفَصۡلِ مِیۡقَاتُہُمۡ اَجۡمَعِیۡنَ (۴۰) |
| هغه ورځ چې هيڅ يوخوا خوږی خپلوان به خپل کوم خواخوږی دوست ته په هيڅ درد دوانشي او نه به له کوم لوري هغوی ته څه مرسته ورسيږي . | یَوۡمَ لَا یُغۡنِیۡ مَوۡلًی عَنۡ مَّوۡلًی شَیۡئًا وَّ لَا ہُمۡ یُنۡصَرُوۡنَ (۴۱) |
| پرته له دې چې الله پرچا باندې رحم وکړي ، همغه برلاسی او خورا مهربان دی . | اِلَّا مَنۡ رَّحِمَ اللّٰہُ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الرَّحِیۡمُ (۴۲) |
| دزقوم ونه به | اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوۡمِ (۴۳) |
| دګناهګار خوراك وي | طَعَامُ الۡاَثِیۡمِ (۴۴) |
| دتیلو دخیرې غوندې ، په ګیډه کښي به داسي وابشيږي | کَالۡمُہۡلِ ۚۛ یَغۡلِیۡ فِی الۡبُطُوۡنِ (۴۵) |
| لکه خوټيدلي اوبه چې ځوښ وهي | کَغَلۡیِ الۡحَمِیۡمِ (۴۶) |
| وبه ویل شي) دی ونیسئ او په رسوایی سره یې د دوزخ مینځ ته ) راکاږئ | خُذُوۡہُ فَاعۡتِلُوۡہُ اِلٰی سَوَآءِ الۡجَحِیۡمِ (۴۷) |
| او پرسريې دخوټيدلو اوبو عذاب ور واړوئ. | ثُمَّ صُبُّوۡا فَوۡقَ رَاۡسِہٖ مِنۡ عَذَابِ الۡحَمِیۡمِ (۴۸) |
| وڅکه د دې خوند ، ( هوکنه !) ته ډير برلاسی عزتمند سړی يې! | ذُقۡ ۚۙ اِنَّکَ اَنۡتَ الۡعَزِیۡزُ الۡکَرِیۡمُ (۴۹) |
| دا همغه شی دی چې دهغه په راتلوکښي تاسي شك درلود )) . | اِنَّ ہٰذَا مَا کُنۡتُمۡ بِہٖ تَمۡتَرُوۡنَ (۵۰) |
| له خدايه وېرېدونکي خلك به دامن په ځای کښي وي . | اِنَّ الۡمُتَّقِیۡنَ فِیۡ مَقَامٍ اَمِیۡنٍ (۵۱) |
| په باغونو او چينو کښي ، | فِیۡ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوۡنٍ (۵۲) |
| دمزيو اوپربړو وريښمو جامي په تن ، يو بل ته مخامخ به ناست وي ، | یَّلۡبَسُوۡنَ مِنۡ سُنۡدُسٍ وَّ اِسۡتَبۡرَقٍ مُّتَقٰبِلِیۡنَ (۵۳) |
| دابه وي دهغو شان او مونږبه سپيني سرې ښايسته اهوچشمي پېغلي هغوته واده کړو . | کَذٰلِکَ ۟ وَ زَوَّجۡنٰہُمۡ بِحُوۡرٍ عِیۡنٍ (۵۴) |
| هلته به هغوی په ډاډېنه هرراز خوندور شيان غواړي . | یَدۡعُوۡنَ فِیۡہَا بِکُلِّ فَاکِہَۃٍ اٰمِنِیۡنَ (۵۵) |
| هلته به دمرګ خوند هغوی هيڅکله ونه څکي ، فقط په دنيا کښي چې کوم مرګ راغی . خو راغی . او الله به هغوی د دوزخ له عذاب نه وژغوري ، | لَا یَذُوۡقُوۡنَ فِیۡہَا الۡمَوۡتَ اِلَّا الۡمَوۡتَۃَ الۡاُوۡلٰی ۚ وَ وَقٰہُمۡ عَذَابَ الۡجَحِیۡمِ (۵۶) |
| ستا درب په فضل سره همدا ستر برياليتوب دی . | فَضۡلًا مِّنۡ رَّبِّکَ ؕ ذٰلِکَ ہُوَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ (۵۷) |
| ای پېغمبره ! مونږدغه کتاب ستاپه ژبه اسانه کړی دی ترڅو دغه خلك پندواخلي . | فَاِنَّمَا یَسَّرۡنٰہُ بِلِسَانِکَ لَعَلَّہُمۡ یَتَذَکَّرُوۡنَ (۵۸) |
| اوس ته هم انتظار کوه ، دوی هم منتظر دي . | فَارۡتَقِبۡ اِنَّہُمۡ مُّرۡتَقِبُوۡنَ (۵۹) |
| دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |

حَ ـ مَ ـ:

حٰمٓ ‌ۚ(۱)

د دغه کتاب نازليدل دالله لخوا دي چې برلاسی او د حکمت څښتن دی .

تَنۡزِيۡلُ الۡكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَكِيۡمِ (۲)

حقيقت دادی چې په اسمانونو او ځمکه کښې بې شميره نښانې دي دايمان راوړونکو لپاره

اِنَّ فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ لَاٰيٰتٍ لِّلۡمُؤۡمِنِيۡنَ ؕ(۳)

او ستاسې پخپل پيدايښت کښې او په هغو حيواناتو کښې چې الله هغه ( په ځمکه کښې ) خور وي ، سترې نښانې دي دهغو کسانو لپاره چې باور کوونکي دی .

وَ فِىۡ خَلۡقِكُمۡ وَ مَا يَبُثُّ مِنۡ دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ لِّقَوۡمٍ يُّوۡقِنُوۡنَ ۙ(۴)

او دشپې او ورځې په توپير اوبل رنګی کې، اود روزی په هغو اسبابوکې چې الله هغه له اسمانه نازلوي بيا دهغې په وسيله مړه ځمکه راژوندی کوي او د بادونو په ګرځيد وکښې ډيرې نښانې دي دهغو خلکو لپاره چې له پوهې څخه کار اخلي ،

وَ اخۡتِلَافِ الَّيۡلِ وَ النَّهَارِ وَ مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنۡ رِّزۡقٍ فَاَحۡيَا بِهِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا وَ تَصۡرِيۡفِ الرِّيٰحِ اٰيٰتٌ لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ (۵)

دا دالله نښانې دي چې مونږيې تاته په حقه سمې لولو بيانوو ، ښه نو له الله او دهغه له آيتونو وروسته به بله څه خبره وي چې دوی به پرې ايمان راوړي .

تِلۡكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتۡلُوۡهَا عَلَيۡكَ بِالۡحَقِّ ۚ فَبِاَىِّ حَدِيۡثٍۢ بَعۡدَ اللّٰهِ وَ اٰيٰتِهٖ يُؤۡمِنُوۡنَ (۶)

تباهي ده دهر هغه دراوغجن بدعمله انسان لپاره

وَيۡلٌ لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيۡمٍ ۙ(۷)

چې دهغه په وړاندې دالله ايتونه لوستل کيږي او هغه يې اوري بيا په پوره تکبر سره پرخپل کفر باندې داسې ټينګار کوي چې ګواکې هغه يې هيڅ نه دي اوريدلي. دغسې انسان ته د درد ناك عذاب زيری واوروه

يَّسۡمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتۡلٰى عَلَيۡهِ ثُمَّ يُصِرُّ مُسۡتَكۡبِرًا كَاَنۡ لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا ۚ فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ (۸)

کله چې هغه زمونږله ايتونو څخه په کومه خبره باندې پوهيږی نو په هغې پورې ټوکې وشتې کوي ددغه رازټولوخلکو لپاره دذلت عذاب دی.

وَ اِذَا عَلِمَ مِنۡ اٰيٰتِنَا شَيۡئَا اتَّخَذَهَا هُزُوًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ مُّهِيۡنٌ ؕ(۹)

دهغو ترشا دوزخ دی . هرڅه چې هغوی په دنيا کښې ګټلي دي د هغو نه به هيڅ شی هغو ته په دردونه خوري نه به دهغو هغه سرپرستان دهغو لپاره څه وکړای شي چې هغوی له الله نه پرته هغه خپل سرپرستان نيولي دي . دهغو لپاره لوی عذاب دی .

مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ جَهَنَّمُ ۚ وَ لَا يُغۡنِىۡ عَنۡهُمۡ مَّا كَسَبُوۡا شَيۡئًا وَّ لَا مَا اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَوۡلِيَآءَ ۚ وَ لَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ؕ(۱۰)

دغه قرآن له سره تر پايه هدايت دی ، او دهغو خلکو لپاره د مصيبت دردناك عذاب دی چې هغوی دخپل رب دآيتونو له منلو نه انکار وکړ.

هٰذَا هُدًى ۚ وَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمۡ لَهُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِيۡمٌ (۱۱)

همدا دالله ذات دی چې ستاسې لپاره يې سمندر ابل کړتر څو چې دهغه په امر په هغه کښې بېړۍ وچليږي او تاسې دهغه دفضل لټون وکړئ او شکر کوونکې اوسئ .

اَللّٰهُ الَّذِىۡ سَخَّرَ لَـكُمُ الۡبَحۡرَ لِتَجۡرِىَ الۡفُلۡكُ فِيۡهِ بِاَمۡرِهٖ وَ لِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِهٖ وَ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ ۚ(۱۲)

هغه د اسمانونو او ځمکې ټول شيان ستاسې لپاره مسخر کړل ، هر څه له خپل لوري نه، پدې کښې سترې نښانې دي دهغو خلکو لپاره چې غور او فکر کوونکې دي .

وَ سَخَّرَ لَـكُمۡ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ جَمِيۡعًا مِّنۡهُ ؕ اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّتَفَكَّرُوۡنَ (۱۳)

ای پېغمبره ! ايمان راوړونکوته ووايه چې کوم کسان چې دالله (ج) لخوا دبدو ورځو دراتلو څخه ويره نه لري . دهغوی پر حرکتونو باندې له تېريدنې څخه کار واخلې ترڅو چې الله پخپله يوې ډلې ته دهغې د کړنو بدله ورکړي .

قُلۡ لِّلَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا يَغۡفِرُوۡا لِلَّذِيۡنَ لَا يَرۡجُوۡنَ اَيَّامَ اللّٰهِ لِيَجۡزِىَ قَوۡمًۢا بِمَا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ (۱۴)

څوك چې ښه عمل وکړي د خپل ځان لپاره به يې وکړي او څوك چې بدې وکړي هغه به پخپله دهغې نتيجه وګالي . بيا ورټلل ستاسې ټولو دخپل رب خواته دي .

مَنۡ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفۡسِهٖ ۚ وَ مَنۡ اَسَآءَ فَعَلَيۡهَا ۖ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمۡ تُرۡجَعُوۡنَ (۱۵)

له دې نه مخکښې بني اسرائيلو ته مونږکتاب ، حکم اونبوت ورکړی و ء هغوته مونږد ژوند غوره وسايل ورکړل د ټولې نړۍ پرخلکو مو هغوته فضيلت ورکړ .

وَ لَقَدْ اٰتَيْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ وَ الْحُكْمَ وَ النُّبُوَّةَ وَ رَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَ فَضَّلْنٰهُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (١٦)

او د دين په چاروکښې مو هغوته ځرګند هدايات ورکړل . بيا چې دهغو په مېنځ کښې کوم اختلاف را پيدا شو هغه ( دنا خبرتيا له امله نه ،بلکې) دعلم له راتلونه وروسته وشواو په دې اساس وشو چې هغوی غوښتل پخپلو مينځو کښې يو پربل باندې تېری وکړي، ستا رب به دقيامت په ورځ دهغو چارو فيصله وکړي چې هغوی پکښې اختلاف کوي .

وَ اٰتَيْنٰهُمْ بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْاَمْرِ ۚ فَمَا اخْتَلَفُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ ۙ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ؕ اِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ (١٧)

له دې وروسته اوس ای پېغمبره ! مونږد دين په باب په يوه روښانه لاره (شريعت) باندې ته برابر کړی يې . له دې کبله ته پر هماغې باندی لاړشه او دهغو کسانو د نفسي غوښتنو پيروي مه کوه چې علم نه لري .

ثُمَّ جَعَلْنٰكَ عَلٰى شَرِيْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَ لَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ (١٨)

دالله په مقابل کې هغوی تاته هيڅ په درد نشي خوړلی . ظالمان پخپلو کښې يو دبل ملګري دي او دپرهېزګار و خلکو ملګری الله دی .

اِنَّهُمْ لَنْ يُّغْنُوْا عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَ اللّٰهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ (١٩)

دادبصيرت روښنايی دې دټولو خلکولپاره او هدايت او رحمت دهغو خلکو لپاره چې باوروکړي .

هٰذَا بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَ هُدًى وَّ رَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ (٢٠)

ايا هغه کسانو چې هغوی دبدئ مرتکب شويدي دا انګېرلي ده چې مونږبه هغوی او ايمان راوړونکي اونيك عمل کوونکي سره برابر کړو چې دهغو ژوند او مرګ يوشانته شي ؟ ډېره ناوړه فيصله ده چې دوی يې صادر وي .

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَ مَمَاتُهُمْ ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ (٢١)

الله خو اسمانونه او ځمکه په حقه پيدا کړيدي او د دې لپاره يې کړيدي چې هر چاته دهغه دکړنو بدله ورکړه شي پرخلکو به هيڅکله ظلم ونه شي .

وَ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَ لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ وَ هُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ (٢٢)

نو ايا تا کله دهغه چاپه حال باندې غورکړی دی چې هغه خپل نفسي خواهش خپل خدای وګرځاوه او الله له علم سره هغه په ګمراهی کښې وغورځاوه او دهغه پرزړه او غوږونو باندې يې مهر وواهه او دهغه پرسترګو يې پردې وغوړولې ؟ له الله نه وروسته اوس بل څوك دی چې هغه ته هدايت وکړي ؟ ايا تاسې څه درس نه اخلئ ؟

اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰـهَهٗ هَوٰىهُ وَ اَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّ خَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَ قَلْبِهٖ وَ جَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ (٢٣)

دوی وايي چې ژوند فقط همدغه زمونږدنيوي ژوند دی ، همدلته زمونږمره کيدل او ژوندي کيدل دي او دورځو له څرخ نه پرته بل کوم شی نه شته چې مونږهلاکوي ،، په حقيقت کښې په دې باب له دوی سره څه علم نه شته دوی محضې دګومان پر اساس دغه خبرې کوي.

وَ قَالُوْا مَا هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَ نَحْيَا وَ مَا يُهْلِكُنَآ اِلَّا الدَّهْرُ ۚ وَ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ (٢٤)

او کله چې زمونږځرګند ايتونه دوی ته اورول کيږي نو له دوی سره پرته له دې کوم حجت نه وي چې که تاسې رېښتوني يې نو زمونږپلرونه نيکونه راولئ .

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآئِنَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (٢٥)

ای پېغمبره ! دوی ته ووایه الله تاسي ته ژوند دربښي بیا همغه درته مرګ درکوي ، بیا همغه به تاسي دقیامت په هغه ورځ راغونډ کړي چي دهغې په راتګ کښي هیڅ شك نشته ، خوزیاتره خلك نه پوهېږي

قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَ لٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ (۲۶)

داسمانونو او ځمکي باچاهي دالله ده ، او په کومه ورځ چي دقیامت ساعت راغلی وي په هغه ورځ به باطل پرستان په خساره کښي وغور ځيږي .

وَ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ يَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ (۲۷)

په هغه وخت کښي به ته هره ډله پرزنګنونو باندې پراته وګورې . هرې ډلې ته به بلنه ورکړه شي چي راشئ او خپله عملنامه وګورئ . هغوته به وویل شي : (( نن به تاسي ته دهغو عملونو بدله درکړه شي چي تاسي کول .

وَ تَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً ۫ كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا ؕ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۲۸)

دازمونږتیاره کړې عملنامه ده چي پرتاسي سمه صحیح شاهدي وهي ، تاسي چي هرڅه کول مونږ هغه لیکل ))

هٰذَا كِتٰبُنَا يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ ؕ اِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۲۹)

نو کومو کسانو چي ایمان راوړی و او نیك عملونه یې کړي وو دهغو رب به هغوی پخپل رحمت کښي داخل کړي او همدا ښرکند بریالیتوب دی .

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ (۳۰)

او کوم کسان چي کافر شوي وو هغوته به وویل شي ((ایا زما ایتونه تاسوته نه وو اورول شوي ؟ خو تاسي تکبر وکړ اومجرمان شوئ

وَ اَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۫ اَفَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ وَ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ (۳۱)

او کله چي ویل کیدل چي دالله وعده برحقه ده اود قیامت په راتلوکښي څه شك نشته نوتاسي به ویل چي مونږنه پوهېږوقیامت څه وي مونږخو فقط یوګومان غوندې لرو ، اوزمونږباورنه راځي .

وَ اِذَا قِيْلَ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ السَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيْهَا قُلْتُمْ مَّا نَدْرِيْ مَا السَّاعَةُ ۙ اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّ مَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِيْنَ (۳۲)

په هغه وخت کښي به هغوته دعملونو بدئ ښرګندې شي او هغوی به په همغه څه کښي راګیر شي چي په هغه پورې هغوی ټوکي وښتي کولې ،

وَ بَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا وَ حَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ (۳۳)

او هغوته به وویل شي چي (( نن مونږ هم تاسي په همغه شان هیروو لکه چي تاسي د دغې ورځي ملاقات هېر کړی و . ستاسی هستوګنځی اوس دوزخ دی او هیڅوك ستاسي مرستندوی نشته .

وَ قِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا وَ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَ مَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ (۳۴)

تاسي له دې عاقبت سره ځکه مخامخ شوي یئ چي تاسی دالله په ایتونو پورې ملنډې وهلې او د دنیا ژوندانه تاسی غولولي وئ پدې اساس نن به نه دغه خلك له دوزخ نه راوویستل شي او نه به ورته وویل شي چي دبښني په غوښتلوسره خپل رب راضي کړیء .

ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّ غَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ مِنْهَا وَ لَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ (۳۵)

نو ثناستاینه دهماغه الله لپاره ده چي داسمانونو او ځمکي مالك او دټولو مخلوقاتو روزونکی پالونکی دی

فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبِّ الْاَرْضِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۳۶)

په آسمانونو او ځمکه کښي لویي دهمغه لپاره ده او هغه برلاسی او حمکت والا دی .

وَ لَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۪ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۳۷)

دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ح _ م .

حٰمٓ (۱)

د دغه کتاب نازلیدل دبرلاسي او حکمت والا خدای لخوا دي

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ (۲)

مونږ اسمانونه او ځمکه او ټول هغه شیان چې دهغو په منځ کښې دي په حقه او دیوې ځانګړي مودې له پاکلو سره پیدا کړی دي خو دغه کافران له هغه حقیقت څخه مخ اوړونکي دي چې دوی ته دهغه اخطار ورکړ شوی دی

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ مَا بَيْنَهُمَا اِلَّا بِالْحَقِّ وَ اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّا اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ (۳)

ای پیغمبره ! دوی ته ووایه (( ایا تاسي کله په غړېدلو سترګولیدلي دي چې هغه موجودات څه دي چې تاسي له خدایه پرته هغه بولئ ؟ لږشان ماته راوښیئ چې په ځمکه کښې هغوی څه پیدا کړیدي یا داسمانونو په هستونه او تدبیرکښي دهغو څه برخه ده . له دې نه مخکښي کوم راغلی کتاب یا دعلم څه بقیه که ( د دغو عقیدو په اثبات کښي ) له تاسي سره وي نو همغه راوړئ که تاسي رښتوني يئ،،

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَرُوْنِیْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِی السَّمٰوٰتِ ؕ اِیْتُوْنِیْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَاۤ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (۴)

ښه نوله هغه چانه به زيات ګمراه شوی انسان بل څوك وي چې له الله نه پرته هغه موجودات وبلي چې ترقیامته پورې هغه ځواب نشي ورکولای . بلکي له دې نه هم ناخبره دي چې دوې هغوته بلنه ورکوي .

وَ مَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗۤ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَ هُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ (۵)

اوکله چې ټول انسانان راغونډکړای شي په هغه وخت کښي به هغوی دخپلو بلونکو دښمنان او دهغوله عبادت نه به منکران وي .

وَ اِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً وَّ كَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ كٰفِرِيْنَ (۶)

دوی ته چې کله زمونږروښانه څرګند ایتونه اورول کېږي او حق یې مخې ته راځي نو دغه کافران دهغه په باب وایي چې داخو څرګندي کوډې دي .

وَ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ؕ(۷)

ایا دوی داوایي چې پیغمبر ص داله خپله ځانه جوړکړي دی ؟ دوی ته ووایه (( که ما داله ځانه جوړ کړی وي نو تاسي به مادخدای له نیوني څخه هیڅ ونشئ ژغورلی ، کومې خبرې چې تاسي جوړوئ الله وربلندې ښه پوهېږي ، زما او ستاسي په منځ کښي همغه دشاهدئ ویلوله پاره بیخي کافي دی او هغه ډیر بښونکی او خورا مهربان دی! ))

اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَلَا تَمْلِكُوْنَ لِیْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ؕ كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًۢا بَيْنِیْ وَ بَيْنَكُمْ ؕ وَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ (۸)

دوې ته ووایه ، زه خو کوم لومړنی بې سابقې پیغمبرنه یم ، زه نه پوهېږم چې سباله تاسي سره څه کېدونکي دي اوله ماسره څه کیدونکي دي ،زه خوصرف دهغې وحې پیروي کوم چې ماته رالیږله کیږي او زه له یو څرګند ښکاره متوجه کوونکي څخه پرته بل څه نه یم)).

قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَ مَاۤ اَدْرِیْ مَا يُفْعَلُ بِیْ وَ لَا بِكُمْ ؕ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰۤى اِلَیَّ وَ مَاۤ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ (۹)

ای پیغمبره ! دوی ته ووایه آیا تاسي کله په دې کښې فکر کړی دی چې که دغه کلام دالله لخوا وي او تاسي ترېنه انکار وکړ( نو ستاسي عاقبت به څه وي ؟) او د همدې په څېړیو کلام باندې خو دبني اسرائیلویو شاهد ، شاهدي هم ویلې ده هغه ایمان راوړ او تاسي پخپل غرورکښي وغورځېدلئ دغسې ظالمانوخلکوته الله هدایت نه کوي )).

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَ كَفَرْتُمْ بِهٖ وَ شَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِیْۤ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ فَاٰمَنَ وَ اسْتَكْبَرْتُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ (۱۰)

کومو خلکو چې له منلونه انکار کړیدی هغوی د مومنانو په باب وایي چې که د دغه کتاب منل کوم ښه کاروای نو دغه خلك په دې معامله کښي له مونږنه نه شول مخکښي کېدای . څنګه چې دوی له هغه نه هدایت ونه موندہ له دې کبله اوس به دوی ارومرو ووایي چې دا خوزاړه درواغ دي ،

وَ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُوْنَاۤ اِلَيْهِ ؕ وَ اِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَاۤ اِفْكٌ قَدِيْمٌ (۱۱)

په داسي حال کښي چي له دې نه مخکښي دموسی کتاب دلاربنود او رحمت په توګه راغلی دی ، اوداکتاب په عربي ژبه کښي د هغه تصديقوونکی راغلی دی ترڅو چي ظالمانوته اخطار ورکړي او دښي کرنلارې غوره کوونکو ته زيری ورکړي .

وَ مِنۡ قَبۡلِہٖ کِتٰبُ مُوۡسٰۤی اِمَامًا وَّ رَحۡمَۃً ؕ وَ ہٰذَا کِتٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِیًّا لِّیُنۡذِرَ الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا ٭ۖ وَ بُشۡرٰی لِلۡمُحۡسِنِیۡنَ (۱۲)

په باوري ډول کوموکسانو چي وويل يوازې الله زمونږرب دی ، بيا ورباندې ټينګ پاتي شول ، دهغو لپاره نه څه وېره شته او نه به هغوی غمجن وي .

اِنَّ الَّذِیۡنَ قَالُوۡا رَبُّنَا اللّٰہُ ثُمَّ اسۡتَقَامُوۡا فَلَا خَوۡفٌ عَلَیۡہِمۡ وَ لَا ہُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ (۱۳)

ټول دغسي خلك جنت ته تلونكي دي چي هلته به هغوی دتل لپاره اوسېږي.دخپلو هغو عملونوپه مكافات كي چي هغوې په دنياكښي كول.

اُولٰٓئِکَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّۃِ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَا ۚ جَزَآءًۢ بِمَا کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ (۱۴)

مونږانسان ته هدايت وكړ چي هغه له خپل پلار او مور سره غوره سلوك وكړي .دهغه مور كړ او وګاله هغه يي په ګېده كښي وساته او دكړاو په ګاللوسره يي هغه وزيږاوه او دهغه په حمل اوتي وركولو كښي يي دېرش مياشتي ولګېدلي . تردې پورې چي هغه كله د خپل قوت منګ ته ورسيده او دڅلوېښتو كلونو شو نو هغه وويل (( ای زما ربه ! ماته توفيق راكړه چي زه ستا دهغو نعمتونو شكر ادا كړم چي تا ماته او زما مور او پلار ته وركويدی ، او داسي نيك عمل وكړم چي په هغه سره ته راضي كېږې او زما اولاده هم نېكان كړه ما بېغمه كړه ، زه ستا حضورته توبه كوم اوله فرمان منونكو يعني مسلمانانو بندګانو څخه يم)).

وَ وَصَّیۡنَا الۡاِنۡسَانَ بِوَالِدَیۡہِ اِحۡسٰنًا ؕ حَمَلَتۡہُ اُمُّہٗ کُرۡہًا وَّ وَضَعَتۡہُ کُرۡہًا ؕ وَ حَمۡلُہٗ وَ فِصٰلُہٗ ثَلٰثُوۡنَ شَہۡرًا ؕ حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ اَشُدَّہٗ وَ بَلَغَ اَرۡبَعِیۡنَ سَنَۃً ۙ قَالَ رَبِّ اَوۡزِعۡنِیۡۤ اَنۡ اَشۡکُرَ نِعۡمَتَکَ الَّتِیۡۤ اَنۡعَمۡتَ عَلَیَّ وَ عَلٰی وَالِدَیَّ وَ اَنۡ اَعۡمَلَ صَالِحًا تَرۡضٰہُ وَ اَصۡلِحۡ لِیۡ فِیۡ ذُرِّیَّتِیۡ ۚؕ اِنِّیۡ تُبۡتُ اِلَیۡکَ وَ اِنِّیۡ مِنَ الۡمُسۡلِمِیۡنَ (۱۵)

له دغه ډول خلكوڅخه مونږدهغو ډېر ښه عملونه قبلوو او دهغو له بديو څخه تېرېږو دوی به په جنتيانو كښي شامل وي دهغې رېښتيانې وعدی سره سم چي له هغو سره كېږي

اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ نَتَقَبَّلُ عَنۡہُمۡ اَحۡسَنَ مَا عَمِلُوۡا وَ نَتَجَاوَزُ عَنۡ سَیِّاٰتِہِمۡ فِیۡۤ اَصۡحٰبِ الۡجَنَّۃِ ؕ وَعۡدَ الصِّدۡقِ الَّذِیۡ کَانُوۡا یُوۡعَدُوۡنَ (۱۶)

او هغه څوك چي مور او پلار ته يي وويل (( اف ، تنګ كړم تاسي ، ايا تاسي ماله دې نه ډاروئ چي زه به له مرګه وروسته بيا له قبرڅخه راوويستل شم ؟ پداسي حال كښي چي له مانه مخكښي ډېر نسلونه تېر شويدي ( له هغونه خو هېڅ يو هم بېرته رانغی ) ،، مور او پلار الله ته په فرياد كولو وايي (( ای كم بخته ، ومنه دالله وعده رېښتيا ده )) خو هغه وايي (( داټولي دتېر ووختو زړې افساني دي )).

وَ الَّذِیۡ قَالَ لِوَالِدَیۡہِ اُفٍّ لَّکُمَاۤ اَتَعِدٰنِنِیۡۤ اَنۡ اُخۡرَجَ وَ قَدۡ خَلَتِ الۡقُرُوۡنُ مِنۡ قَبۡلِیۡ ۚ وَ ہُمَا یَسۡتَغِیۡثٰنِ اللّٰہَ وَیۡلَکَ اٰمِنۡ ٭ۖ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰہِ حَقٌّ ۚۖ فَیَقُوۡلُ مَا ہٰذَاۤ اِلَّاۤ اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ (۱۷)

داهغه خلك دي چي دخدای دعذاب فيصله ورباندې تطبيق شوېده. له دوی نه مخكښي چي دپېريانو او انسانانو كومي ډلي ( دهمدې ډول كړنلارې خاوندان ) تېر شويدي په همغوی كښي به دوی هم شامل وي . بېشكه دوی په زيان كښي اخته كېدونكی خلك دي .

اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ حَقَّ عَلَیۡہِمُ الۡقَوۡلُ فِیۡۤ اُمَمٍ قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ مِّنَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا خٰسِرِیۡنَ (۱۸)

له دواړو ډلونه دهرې يوې درجي دهغو د عملونو په لحاظ سره دي . ترڅو چي الله دهغو دكړنو پوره بشپړه بدله هغوته وركړي . پرهغوبه هېڅكله ظلم ونه كړای شي.

وَ لِکُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوۡا ۚ وَ لِیُوَفِّیَہُمۡ اَعۡمَالَہُمۡ وَ ہُمۡ لَا یُظۡلَمُوۡنَ (۱۹)

بیا کله چې دغه کافران اورته وړاندې کړی شي نو دوی ته به وویل شي(( تاسې خپله برخه نعمتونه پخپل دنیوي ژوند کښې پای ته ورسول او تاسې دهغوخوند واخیست . نو کوم تکبرچې تاسې په ځمکه کښې په ناحقه وکړاو کومې نافرمانۍ چې تاسې وکړې دهغو په مجازات کښې به نن تاسې ته د ذلت عذاب درکړشي .

وَ یَوۡمَ یُعۡرَضُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا عَلَی النَّارِ ؕ اَذۡہَبۡتُمۡ طَیِّبٰتِکُمۡ فِیۡ حَیَاتِکُمُ الدُّنۡیَا وَ اسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِہَا ۚ فَالۡیَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ عَذَابَ الۡہُوۡنِ بِمَا کُنۡتُمۡ تَسۡتَکۡبِرُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ وَ بِمَا کُنۡتُمۡ تَفۡسُقُوۡنَ (۲۰)

دوی ته لږشان دعا دیانو دورور ( هود) قصه واوروه کله چې هغه په احقاف کښې خپل قوم ته خبرداری ورکړی و او دغسې خبر داری ورکوونکي له هغه نه مخکښې هم تېر شوي وو له هغه نه وروسته هم راغلل چې له الله نه پرته دهيچابندګي مه کوئ ، زه ستاسې په حق کښې دیوې لویې هولناکې ورځې له عذاب نه ویره لرم ))

وَ اذۡکُرۡ اَخَا عَادٍ ؕ اِذۡ اَنۡذَرَ قَوۡمَہٗ بِالۡاَحۡقَافِ وَ قَدۡ خَلَتِ النُّذُرُ مِنۡۢ بَیۡنِ یَدَیۡہِ وَ مِنۡ خَلۡفِہٖۤ اَلَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰہَ ؕ اِنِّیۡۤ اَخَافُ عَلَیۡکُمۡ عَذَابَ یَوۡمٍ عَظِیۡمٍ (۲۱)

هغوی وویل(( ایاته د دې لپاره راغلی یې چې مونږ.تېر باسې له خپلو معبودانو څخه موواړوې ؟ ښه نو راوله خپل هغه عذاب دې چې له هغه څخه مونږ.وېروې که واقعاً ته ریښتونی یې .))

قَالُوۡۤا اَجِئۡتَنَا لِتَاۡفِکَنَا عَنۡ اٰلِہَتِنَا ۚ فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنۡ کُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِیۡنَ (۲۲)

هغه وویل چې (( ددې علم خوله الله سره دی ، زه صرف هغه پیغام تاسې ته رسوم چې زه له هغه سره لېږل شوی یم . خوزه ګورم چې تاسې جهالت غوره کوئ ))

قَالَ اِنَّمَا الۡعِلۡمُ عِنۡدَ اللّٰہِ ۫ۖ وَ اُبَلِّغُکُمۡ مَّاۤ اُرۡسِلۡتُ بِہٖ وَ لٰکِنِّیۡۤ اَرٰىکُمۡ قَوۡمًا تَجۡہَلُوۡنَ (۲۳)

بیا کله چې هغوی دخپلو ناوونو خواته هغه عذاب راتلونکی ولیده نو وې ویل (( داوریځه ده چې مونږ.به خړوب کړي)) نه ،بلکې داهماغه شی دی چې دهغه لپاره تاسې بېړه کوله داد باد طوفان دی چې په هغه کښې دردناك عذاب راروان دی ،

فَلَمَّا رَاَوۡهُ عَارِضًا مُّسۡتَقۡبِلَ اَوۡدِیَتِہِمۡ ۙ قَالُوۡا ہٰذَا عَارِضٌ مُّمۡطِرُنَا ؕ بَلۡ ہُوَ مَا اسۡتَعۡجَلۡتُمۡ بِہٖ ؕ رِیۡحٌ فِیۡہَا عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۲۴)

دخپل رب په حکم سره به هرشی تباه کړي )) . په پای کښې دهغو حالت داشو چې دهغو له استوګنځیونه پرته هلته نور هېڅ په نظر نه راتلل . په دې ډول مجرمانو ته مونږ.مجازات ورکوو .

تُدَمِّرُ کُلَّ شَیۡءٍۭ بِاَمۡرِ رَبِّہَا فَاَصۡبَحُوۡا لَا یُرٰۤی اِلَّا مَسٰکِنُہُمۡ ؕ کَذٰلِکَ نَجۡزِی الۡقَوۡمَ الۡمُجۡرِمِیۡنَ (۲۵)

هغوی ته مونږ.د قوت او قدرت هغه څه ورکړي وو چې تاسې ته مونه دي درکړي . هغوته مونږ.غوږونه سترګې او زړونه هرڅه ورکړي وو . خونه غوږونه دهغو په کار راغلل ، نه سترګې، نه زړونه ، ځکه چې هغوی دالله له ایتونو څخه انکار کاوء او هغوی په همغه شي کښې راګیر شول چې په هغه پورې یې ټوکې وشتې کولې .

وَ لَقَدۡ مَکَّنّٰہُمۡ فِیۡمَاۤ اِنۡ مَّکَّنّٰکُمۡ فِیۡہِ وَ جَعَلۡنَا لَہُمۡ سَمۡعًا وَّ اَبۡصَارًا وَّ اَفۡـِٕدَۃً ۫ۖ فَمَاۤ اَغۡنٰی عَنۡہُمۡ سَمۡعُہُمۡ وَ لَاۤ اَبۡصَارُہُمۡ وَ لَاۤ اَفۡـِٕدَتُہُمۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِذۡ کَانُوۡا یَجۡحَدُوۡنَ ۙ بِاٰیٰتِ اللّٰہِ وَ حَاقَ بِہِمۡ مَّا کَانُوۡا بِہٖ یَسۡتَہۡزِءُوۡنَ (۲۶)

ستاسې په شاو خوا سیموکښې مونږ.ډیرکلي هلاك کړیدي ، مونږ.دخپلو آیتونو په لېږلوسره بیا بیا په بېلا بېلو ډولونو سره هغوی وپوهول ، ښائي چې هغوی راوګرځي .

وَ لَقَدۡ اَہۡلَکۡنَا مَا حَوۡلَکُمۡ مِّنَ الۡقُرٰی وَ صَرَّفۡنَا الۡاٰیٰتِ لَعَلَّہُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ (۲۷)

نو ولې نه هغو موجوداتو له هغو سره مرسته وکړه چې هغوی له الله نه پرته هغه الله ته دنږدې کېدو وسیله ګڼل په خدایيْ سره یې نیولي وو . بلکې هغه خوله دوی نه ورك شول او داوْد هغو د درواغو او دهغو ساختګي عقیدو پای چې هغوی له ځانه جوړې کړې وې

فَلَوۡ لَا نَصَرَہُمُ الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰہِ قُرۡبَانًا اٰلِـہَۃً ؕ بَلۡ ضَلُّوۡا عَنۡہُمۡ ۚ وَ ذٰلِکَ اِفۡکُہُمۡ وَ مَا کَانُوۡا یَفۡتَرُوۡنَ (۲۸)

وَ اِذۡ صَرَفۡنَاۤ اِلَیۡکَ نَفَرًا مِّنَ الۡجِنِّ یَسۡتَمِعُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ ۚ فَلَمَّا حَضَرُوۡهُ قَالُوۡۤا اَنۡصِتُوۡا ۚ فَلَمَّا قُضِیَ وَلَّوۡا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ مُّنۡذِرِیۡنَ (۲۹)

او هغه پېښه هم ديادوني وړده) . كله چي مونږد پېريانو يوه ډله ) ستا خواته راوستي وه تر څو چي قران واوري كله چي هغوی هغه ځای ته ورسېدل (چي هلته تا قرآن لوسته ) نو هغوی پخپلو منځو كښي سره وويل چوپ شئ بيا كله چي هغه ولوستل شونو دوی . خبردار وونكي دخپل قوم لوري ته ستانه شول

قَالُوۡا یٰقَوۡمَنَاۤ اِنَّا سَمِعۡنَا کِتٰبًا اُنۡزِلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰی مُصَدِّقًا لِّمَا بَیۡنَ یَدَیۡہِ یَہۡدِیۡۤ اِلَی الۡحَقِّ وَ اِلٰی طَرِیۡقٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ (۳۰)

هغوی (پيريانو) خپل قوم ته په ورتلوسره وويل (( ای زمونږقومه ! مونږيوكتاب اورېدلی دی چي له موسی نه وروسته نازل كړی شوی دی ، تصديقوونكی دی دهغو كتابو نو چي له ده نه مخكښي راغلي دي ، لارښوونه كوي دحق او سمي لارې خواته

یٰقَوۡمَنَاۤ اَجِیۡبُوۡا دَاعِیَ اللّٰہِ وَ اٰمِنُوۡا بِہٖ یَغۡفِرۡ لَکُمۡ مِّنۡ ذُنُوۡبِکُمۡ وَ یُجِرۡکُمۡ مِّنۡ عَذَابٍ اَلِیۡمٍ (۳۱)

ای زمونږقومه ! دالله خواته دبلونكي بلنه قبوله كړئ او پرهغه باندې ايمان راوړئ ، الله به ستاسي له گناهونو څخه درتېرشي او تاسي به له دردناك عذاب نه وژغوري .))

وَ مَنۡ لَّا یُجِبۡ دَاعِیَ اللّٰہِ فَلَیۡسَ بِمُعۡجِزٍ فِی الۡاَرۡضِ وَ لَیۡسَ لَہٗ مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اَوۡلِیَآءُ ؕ اُولٰٓئِکَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ (۳۲)

او څوك چي دالله دبلونكي خبره ونه مني هغه نه پخپله په ځمكه كښي څه قوت لري چي الله بېوسي كړي او نه دهغه داسي ملاتړ سر پرستان شته چي له الله نه هغه وژغوري . دغسي خلك په ښكاره گمراهی كښي غورځېدلي دي

اَوَ لَمۡ یَرَوۡا اَنَّ اللّٰہَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَ لَمۡ یَعۡیَ بِخَلۡقِہِنَّ بِقٰدِرٍ عَلٰۤی اَنۡ یُّحۡیَِۧ الۡمَوۡتٰی ؕ بَلٰۤی اِنَّہٗ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۳۳)

او ايا دوی دېته فكر نه كوي چي كوم خدای چي دغه اسمانونه او ځمكه پيدا كړيدي او دهغو په پيدا كولو ستومانه نه شو ، هغه ارومرو په دې قادر دی چي مړي راژوندي كړي ؟ ولي نه بيشكه هغه پرهر څه باندې قادر دی .

وَ یَوۡمَ یُعۡرَضُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا عَلَی النَّارِ ؕ اَلَیۡسَ ہٰذَا بِالۡحَقِّ ؕ قَالُوۡا بَلٰی وَ رَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ بِمَا کُنۡتُمۡ تَکۡفُرُوۡنَ (۳۴)

په كومه ورځ چي دغه كافران اورته وړاندې كړی شي په هغه وخت كښي به له دوی نه پوښتنه وشي (( آيا داحق نه دی ))؟ دوی به ووايي: ((ولي نه ، زمونږپه رب قسم دی ( داپه ريښتيا سره حق دی ) الله به ووائي ((ښه نو اوس دخپل هغه انكار په بدل كښي چي تاسي كاوه دعذاب خوند وڅكئ )).

فَاصۡبِرۡ کَمَا صَبَرَ اُولُوا الۡعَزۡمِ مِنَ الرُّسُلِ وَ لَا تَسۡتَعۡجِلۡ لَّہُمۡ ؕ کَاَنَّہُمۡ یَوۡمَ یَرَوۡنَ مَا یُوۡعَدُوۡنَ ۙ لَمۡ یَلۡبَثُوۡۤا اِلَّا سَاعَۃً مِّنۡ نَّہَارٍ ؕ بَلٰغٌ ۚ فَہَلۡ یُہۡلَکُ اِلَّا الۡقَوۡمُ الۡفٰسِقُوۡنَ (۳۵)

ای پېغمبره صبر وكړه لكه چي اولو العزمو پيغمبرانو صبر كړی دی ، او د دوی په باب بيړه مه كوه . په كومه ورځ چي دوی هغه څه ووينی چي دوی ترېنه وېرول كيږی نو دوی ته به داسي ښكاره شي لكه چي په دنيا كښي ئي دورځي له يوه ساعت نه زياته استوگنه نه ده كړې . خبره و رسول شوه نو آياله نافرمانو كسانو څخه پرته به بل څوك هلاك شي ؟ .

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

دالله په نوم چي ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی

اَلَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ صَدُّوۡا عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ اَضَلَّ اَعۡمَالَہُمۡ (۱)

كوم كسان چي كافر شول او د الله له لارې نه يي منع وكړه الله د هغو عملونه بابيزه كړل.

وَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ اٰمَنُوۡا بِمَا نُزِّلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّ ہُوَ الۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّہِمۡ ۙ کَفَّرَ عَنۡہُمۡ سَیِّاٰتِہِمۡ وَ اَصۡلَحَ بَالَہُمۡ (۲)

او كومو كسانو چي ايمان راوړ اوښې چارې يي سرته ورسولي او هغه شی (قرآن ) يي ومانه چي پر محمد (صلى الله عليه وسلم) باندې نازل شويدی او دهغو درب لخوا سرتر پايه حق دی الله دهغو بدی له هغو نه ايسته كړې او دهغو حالت يي سم كړ .

دا ځکه چي کافرانو د باطل پيروي وکړه او مومنانو دهغه حق پيروي وکړه چي دهغو درب لخوا راغلی دی . پدې ډول الله خلکوته دهغو سم صحيح حيثيتونه وربښيي .

ذٰلِکَ بِاَنَّ الَّذِیۡنَ کَفَرُوا اتَّبَعُوا الۡبَاطِلَ وَ اَنَّ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الۡحَقَّ مِنۡ رَّبِّہِمۡ ؕ کَذٰلِکَ یَضۡرِبُ اللّٰہُ لِلنَّاسِ اَمۡثَالَہُمۡ (۳)

نو کله چي له دغو کافرانو سره ستاسي مخامخ کيدل وي نو لومړی کارد څټونو وهل دي ، تر دې پورې چي کله تاسي هغوې ښه وټکوئ هله نو بنديان کلك وتړئ ، له هغه وروسته ( ستاسي خپله خوښه چي ) ښېګڼه کوئ او که دفديې معامله کوئ تر هغه پورې چي جګړه خپله وسله وغورځوي . دغه دی ستاسي دکولو کار . که الله غوښتي وای نو پخپله به يې له هغونه غچ اخستی و خو ( دغه کړنلاره هغه د دې لپاره غوره کړيده ) ترڅوچي تاسي يو دبل په وسيله وازمائي . او کوم کسان چي دالله په لاره کښې و وژل شي الله به دهغو عملونه هيڅکله ضايع نکړي .

فَاِذَا لَقِیۡتُمُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا فَضَرۡبَ الرِّقَابِ ؕ حَتّٰۤی اِذَاۤ اَثۡخَنۡتُمُوۡہُمۡ فَشُدُّوا الۡوَثَاقَ ٭ۙ فَاِمَّا مَنًّۢا بَعۡدُ وَ اِمَّا فِدَآءً حَتّٰی تَضَعَ الۡحَرۡبُ اَوۡزَارَہَا ۚ۟ۛ ذٰلِکَ ؕۛ وَ لَوۡ یَشَآءُ اللّٰہُ لَانۡتَصَرَ مِنۡہُمۡ وَ لٰکِنۡ لِّیَبۡلُوَا۠ بَعۡضَکُمۡ بِبَعۡضٍ ؕ وَ الَّذِیۡنَ قُتِلُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ فَلَنۡ یُّضِلَّ اَعۡمَالَہُمۡ (۴)

الله به هغوته لاربنوونه وکړي ، دهغو حالت به سم کړي ،

سَیَہۡدِیۡہِمۡ وَ یُصۡلِحُ بَالَہُمۡ ۚ(۵)

او هغوی به هغه جنت ته ننباسي چي هغوته يې ورپيژندلی دی .

وَ یُدۡخِلُہُمُ الۡجَنَّۃَ عَرَّفَہَا لَہُمۡ (۶)

ای مومنانو که تاسي له الله (دين) سره مرسته وکړئ نو هغه به له تاسي سره مرسته وکړي او ستاسي قدمونه به کلك کړي .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنۡ تَنۡصُرُوا اللّٰہَ یَنۡصُرۡکُمۡ وَ یُثَبِّتۡ اَقۡدَامَکُمۡ (۷)

پاتي شول هغه کسان چي کافران شويدي نود هغو لپاره هلاکت دی او الله دهغو عملونه بيلارې کړيدي .

وَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا فَتَعۡسًا لَّہُمۡ وَ اَضَلَّ اَعۡمَالَہُمۡ (۸)

ځکه چي هغوی هغه (قران) بدوګانه چي الله نازل کړيدي ، لدې امله الله دهغوی عملونه بابيزه کړل ،

ذٰلِکَ بِاَنَّہُمۡ کَرِہُوۡا مَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰہُ فَاَحۡبَطَ اَعۡمَالَہُمۡ (۹)

ايا هغوی په ځمکه کښي ګرځيدلي نه وو چي دهغو خلکو عاقبت يې ليدلی وای چي له دوی نه مخکښي تير شويدي ؟ الله پرهغو تباهي راوستله ، او همدغسي نتيجي د دغو کافرانو لپاره مقدرې دي .

اَفَلَمۡ یَسِیۡرُوۡا فِی الۡاَرۡضِ فَیَنۡظُرُوۡا کَیۡفَ کَانَ عَاقِبَۃُ الَّذِیۡنَ مِنۡ قَبۡلِہِمۡ ؕ دَمَّرَ اللّٰہُ عَلَیۡہِمۡ ۫ وَ لِلۡکٰفِرِیۡنَ اَمۡثَالُہَا (۱۰)

داد دې لپاره چي دموٴمنانو ملاتړ او مرستندوی الله دی او د کافرانو هيڅ ملاتړ او مرستندوی نشته .

ذٰلِکَ بِاَنَّ اللّٰہَ مَوۡلَی الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ اَنَّ الۡکٰفِرِیۡنَ لَا مَوۡلٰی لَہُمۡ (۱۱)

ايمان راوړونکي او ښه عمل کوونکي به الله هغو جنتونو ته ننباسي چي تر هغو لاندې ويالي بهيږي ، او کافران فقط د دنيا د څو ورځني ژوندانه خوندونه اخلي ، دخارويو په شان خوراك څښاك کوي او دهغو وروستی استوګنځی دوزخ دئ .

اِنَّ اللّٰہَ یُدۡخِلُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ ؕ وَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا یَتَمَتَّعُوۡنَ وَ یَاۡکُلُوۡنَ کَمَا تَاۡکُلُ الۡاَنۡعَامُ وَ النَّارُ مَثۡوًی لَّہُمۡ (۱۲)

ای پيغمبره ! څومره کلي داسي تير شويدي چي ستاله هغه کلي نه زيات زورور وو چي ته يې ويستلی يې . مونږ هغوی پداسي شان هلاك کړل چي هيڅوك يې ژغورونكی نه وء.

وَ کَاَیِّنۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ ہِیَ اَشَدُّ قُوَّۃً مِّنۡ قَرۡیَتِکَ الَّتِیۡۤ اَخۡرَجَتۡکَ ۚ اَہۡلَکۡنٰہُمۡ فَلَا نَاصِرَ لَہُمۡ (۱۳)

ښه نو ايا داسي کيدای شي چي څوك چي دخپل رب له لوري په روښانه او څرګند هدايت باندې وي هغه دهغو خلکو په څير شي چي دهغو لپاره دهغو بد عمل ښايسته کړی شويدی او هغوی دخپلو نفسي غوښتنو پيروان ګرځيدلي دي .

اَفَمَنۡ کَانَ عَلٰی بَیِّنَۃٍ مِّنۡ رَّبِّہٖ کَمَنۡ زُیِّنَ لَہٗ سُوۡٓءُ عَمَلِہٖ وَ اتَّبَعُوۡۤا اَہۡوَآءَہُمۡ (۱۴)

دپرهیز گارانو لپاره چې دکوم جنت وعده شویده دهغه شان خودا دی چې په هغه کښې به ویالې بهیږې د صافو اوبو او ویالې به بهیدونکې وي د داسې شید وچې په خوند کښې به یې هیڅ توپیرنه وي راغلی ، ویالې به بهیدونکې وي د داسې شرابو چې د څښونکو لپاره به لذت ښونونکې وي ، ویالی به بهیدونکې وي د صافو رڼو شاتو ، په هغه کښې به دهغو لپاره هر راز میو ې وي او دهغو درب لخوا بخشش ( ایا هغه څوك چې دهغه به باب دغه جنت رسیدونکی دی ) دهغو خلکو په څیر کیدای شي چې په دوزخ کښې به تل اوسیدونکی وي .او په هغو باندې به داسې گرمې اوبه څښلی شي چې دهغو کولمې به غوڅې غوڅې کړي؟

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ؕ فِيْهَاۤ اَنْهٰرٌ مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ ۚ وَ اَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهٗ ۚ وَ اَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ۚ۬ وَ اَنْهٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ؕ وَ لَهُمْ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ وَ مَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ؕ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَ سُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ اَمْعَآءَهُمْ (۱۵)

له دوی نه ځینې خلك داسې دي چې غوږ نیسي ستا خبرې اورې او بیا کله چې ستاله مجلس نه وځي نو له هغو خلکو نه چې د علم نعمت وربښل شویدی پوښتنه کوي چې همدا اوس اوس ده څه ویلې و ؟ داهغه کسان دي چې د دوی په زړونو باندې الله مهر لگولی دی او دوی د خپلو نفسي غوښتنو پیروان گرځیدلي دي .

وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ حَتّٰۤى اِذَا خَرَجُوْا مِنْ عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا ۫ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَ اتَّبَعُوْۤا اَهْوَآءَهُمْ (۱۶)

پاتې شول هغه کسان چې هغوی هدایت موندلی دی الله هغو ته لازیات هدایت په برخه کوي او هغو ته د هغو برخه تقوی ورکوي .

وَ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّ اٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ (۱۷)

نو آیا دوی فقط د قیامت انتظار باسي چې هغه په ناڅاپي ډول وربانديږ راشي ؟ دهغه علامات ( نښې نښانې ) خوراغلي دي . کله چې هغه پخپله راشي نوآیا د دوی لپاره به د نصیحت قبلو لوڅه فرصت باقي پاتې شي ؟

فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ (۱۸)

نو ای پېغمبره ! ښه وپوهیږه چې له الله نه پرته بل هیڅوك د عبادت وړنشته ، او ښننه وغواړه د خپل قصور لپاره هم او دموءمنانو نارینه وء او ښځو لپاره هم . الله په دنیاکښې ستاسې په هلوځلو باندې هم پوهیږي او په اخرت کښې ستاسې له استوگنځي نه هم خبردی .

فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَ مَثْوٰىكُمْ (۱۹)

کومو کسانو چې ایمان راوړیدی هغوی ویل چې کوم سورت ولې نه نازلیږي ( چې په هغه کښې دجگړې امروشي ) خوکله چې یو محکم سورت نازل کړی شوچې په هغه کښې د جنگ یادونه وه نو تا ولیدل چې دکومو کسانو په زړونو کښې چې ناروغي وه هغوی ستا لورې ته پداسې شان گورې لکه چې په چا باندې د مرگ څپې خورې شوې وي . افسوس دهغو پرحال .

وَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْ لَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَاۤ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّ ذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ ۙ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ؕ فَاَوْلٰى لَهُمْ (۲۰)

دهغو پرژبه ) خو داطاعت اقرار اوښې ښې خبرې دي خو کله ) چې غوڅ حکم ورکړ شو که په هغه وخت کښې له الله سره پخپله . ژمنه کښې دهغو رېښتینولې ثابته شوې وای نو دهمغو لپاره ښه وه

طَاعَةٌ وَّ قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ ۫ فَاِذَا عَزَمَ الْاَمْرُ ۫ فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ (۲۱)

اوس ایاله تاسې نه له دې پرته نور څه هیله کیدای شي چې که قدرت په لاس درشي یا په شاواوښتلئ نو په ځمکه کښې به فساد برپاء کړئ او پخپلو مینځو کښې به خپلولی (اویود بل سرونه به) غوڅ کړئ ؟

فَهَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ وَ تُقَطِّعُوْۤا اَرْحَامَكُمْ (۲۲)

دوی همغه خلك دي چې الله وربانديږ لعنت وکړ او هغوی يې ( کانه ړانده ،) کړل .

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فَاَصَمَّهُمْ وَ اَعْمٰۤى اَبْصَارَهُمْ (۲۳)

ایا دوی په قران غور ندی کړی ، یا پر زړونو باندې دهغو کولپونه وهل شویدي .

اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰی قُلُوْبٍ اَقْفَالُہَا (۲۴)

حقیقت دادی کوم کسان چي دهدایت له روښانه کیدونه وروسته له هغه نه په شا وګرځیدل د هغو لپاره شیطان دغه کړنلاره اسانه کړیده او د درواغجنو هیلو لړی یي دهغو لپاره اوږده کړیده

اِنَّ الَّذِیْنَ ارْتَدُّوْا عَلٰی اَدْبَارِہِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَیَّنَ لَہُمُ الْہُدَی ۙ الشَّیْطٰنُ سَوَّلَ لَہُمْ ؕ وَ اَمْلٰی لَہُمْ (۲۵)

له همدې امله دوی د الله د نازل کړي دین بد ګڼونکوته وویل چي په ځینو چاروکښي به موږ ستاسي منو . الله د دوی په دغو پټو خبروښه پوهیږي

ذٰلِکَ بِاَنَّہُمْ قَالُوْا لِلَّذِیْنَ کَرِہُوْا مَا نَزَّلَ اللّٰہُ سَنُطِیْعُکُمْ فِیْ بَعْضِ الْاَمْرِ ۚ وَ اللّٰہُ یَعْلَمُ اِسْرَارَہُمْ (۲۶)

نو په هغه وخت کښي به څه حال وي چي پرښتي د دوی ساګانی واخلي او ددوی پرمخونو او شاګانو باندې په ګوزارونو کولو سره دوی بوځي؟

فَکَیْفَ اِذَا تَوَفَّتْہُمُ الْمَلٰٓئِکَۃُ یَضْرِبُوْنَ وُجُوْہَہُمْ وَ اَدْبَارَہُمْ (۲۷)

دابه دهمدې لپاره وي چي دوی دهغې کړنلارې پیروي وکړه چي الله پرې خپه کیږي او دهغه درضا لاره غوره کول یي خوښ نه کړل . په همدې اساس یي دهغو ټولو عملونه بابیزه کړل .

ذٰلِکَ بِاَنَّہُمُ اتَّبَعُوْا مَا اَسْخَطَ اللّٰہَ وَ کَرِہُوْا رِضْوَانَہٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَہُمْ (۲۸)

ایا هغو کسانو چي په زړونو کښي یي ناروغي ده دا انګیرلي ده چي الله به دهغوی دزړونو کینه ښکاره نکړي ؟

اَمْ حَسِبَ الَّذِیْنَ فِیْ قُلُوْبِہِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ یُّخْرِجَ اللّٰہُ اَضْغَانَہُمْ (۲۹)

که موږ وغواړو نو موږ به هغوی تاته په سترګو دروښیو او دهغو له څیرونه به ته هغوی وپیژنې او دوینا له اسلوب نه خوبه یي ته ارو مرو وپیژنی . الله ستاسي ټولو په عملونو ډیرښه پوهیږي

وَ لَوْ نَشَآءُ لَاَرَیْنٰکَہُمْ فَلَعَرَفْتَہُمْ بِسِیْمٰہُمْ ؕ وَ لَتَعْرِفَنَّہُمْ فِیْ لَحْنِ الْقَوْلِ ؕ وَ اللّٰہُ یَعْلَمُ اَعْمَالَکُمْ (۳۰)

موږ به خامخا تاسي په ازموینه کښي واچووتر څوچي ستاسي حالات وڅیړو ، او وګورو چي په تاسي کښي مجاهدین او ثابت قدم کسان څوك دي .

وَ لَنَبْلُوَنَّکُمْ حَتّٰی نَعْلَمَ الْمُجٰہِدِیْنَ مِنْکُمْ وَ الصّٰبِرِیْنَ ۙ وَ نَبْلُوَا۠ اَخْبَارَکُمْ (۳۱)

کوم کسان چي کافران شول او دالله له لارې نه یي منع وکړه او له پیغمبر سره یي شخړه وکړه وروسته له هغه چي هغو ته سمه لاره څرګنده شوې وه ، په حقیقت کښي هغوی الله ته هیڅ نقصان نشي رسولی ، بلکي الله به دهغو ټول عملونه ضایع کړي .

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا وَ صَدُّوْا عَنْ سَبِیْلِ اللّٰہِ وَ شَآقُّوا الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَیَّنَ لَہُمُ الْہُدٰی ۙ لَنْ یَّضُرُّوا اللّٰہَ شَیْئًا ؕ وَ سَیُحْبِطُ اَعْمَالَہُمْ (۳۲)

ای موءمنانو! دالله اطاعت وکړئ او دپیغمبر اطاعت وکړئ او خپل عملونه مه بربادوئ .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَطِیْعُوا اللّٰہَ وَ اَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ وَ لَا تُبْطِلُوْۤا اَعْمَالَکُمْ (۳۳)

کافریدونکي ، دخدای له لارې څخه منع کوونکي او دمرګ تروخته په کفر کلك اوسیدونکي خو به هیڅکله الله معاف نکړي

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا وَ صَدُّوْا عَنْ سَبِیْلِ اللّٰہِ ثُمَّ مَاتُوْا وَ ہُمْ کُفَّارٌ فَلَنْ یَّغْفِرَ اللّٰہُ لَہُمْ (۳۴)

نو تاسي بې زړه کیږئ مه او دسولې پیشنهاد مکوئ. همدا تاسي برلاسي کیدونکي یئ . الله ستاسي ملګری دی او هغه به ستاسي عملونه هیڅکله ضایع نکړي .

فَلَا تَہِنُوْا وَ تَدْعُوْۤا اِلَی السَّلْمِ ٭ۖ وَ اَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ٭ۖ وَ اللّٰہُ مَعَکُمْ وَ لَنْ یَّتِرَکُمْ اَعْمَالَکُمْ (۳۵)

د دنیا دغه ژوند خو یوه لوبه او ننداره ده . که تاسي ایمان ولرئ او دتقویٰ پرکړنلاره لاړشئ نو الله به تاسي ته ستاسي اجر در کړي او هغه به له تاسي نه ستاسي مالونه ونه غواړي .

اِنَّمَا الْحَیٰوۃُ الدُّنْیَا لَعِبٌ وَّ لَہْوٌ ؕ وَ اِنْ تُؤْمِنُوْا وَ تَتَّقُوْا یُؤْتِکُمْ اُجُوْرَکُمْ وَ لَا یَسْـَٔلْکُمْ اَمْوَالَکُمْ (۳۶)

که چیرته هغه له تاسي نه ستاسي مال وغواړي او په پوره تاکید سره یي درنه وغواړي نو تاسي به بخیلي وکړئ او هغه به ستاسي دزړونو خیرې رابرسیره کړي ،

اِنْ یَّسْـَٔلْکُمُوْہَا فَیُحْفِکُمْ تَبْخَلُوْا وَ یُخْرِجْ اَضْغَانَکُمْ (۳۷)

وگورئ تاسي ته بلنه درکول کيږي چي دالله په لاره کښي مال ولگوئ . نو له تاسي نه ځيني کسان داسي دي چي بخيلي کوي هغه په حقيقت کښي خپله له خپل ځان سره بخيلي کوي ، الله خو غني دی او تاسي هغه ته اړئي که تاسي مخ واړوئ نو الله به ستاسي په ځای کوم بل قوم راولي او هغوی به بيا ستاسي په څيرنه وي .

ہٰۤاَنۡتُمۡ ہٰۤؤُلَآءِ تُدۡعَوۡنَ لِتُنۡفِقُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ ۚ فَمِنۡکُمۡ مَّنۡ یَّبۡخَلُ ۚ وَ مَنۡ یَّبۡخَلۡ فَاِنَّمَا یَبۡخَلُ عَنۡ نَّفۡسِہٖ ؕ وَ اللّٰہُ الۡغَنِیُّ وَ اَنۡتُمُ الۡفُقَرَآءُ ۚ وَ اِنۡ تَتَوَلَّوۡا یَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَیۡرَکُمۡ ۙ ثُمَّ لَا یَکُوۡنُوۡۤا اَمۡثَالَکُمۡ (۳۸)

دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ای پيغمبره ! مونږ تاته ښکاره فتحه درکړه

اِنَّا فَتَحۡنَا لَکَ فَتۡحًا مُّبِیۡنًا ۙ(۱)

ترڅو چي الله ستا له مخکيني وروستنی هري کوتاهی ( خلاف اولی)نه درتيرشي او پر تا باندي خپل نعمت بشپړ کړي او تاته سمه لاره دروښيي

لِّیَغۡفِرَ لَکَ اللّٰہُ مَا تَقَدَّمَ مِنۡ ذَنۡۢبِکَ وَ مَا تَاَخَّرَ وَ یُتِمَّ نِعۡمَتَہٗ عَلَیۡکَ وَ یَہۡدِیَکَ صِرَاطًا مُّسۡتَقِیۡمًا ۙ(۲)

اوله تاسره قوي مرسته وکړي .

وَّ یَنۡصُرَکَ اللّٰہُ نَصۡرًا عَزِیۡزًا (۳)

همغه ذات دی چي دموءمنانوپه زړونو کښي يي داډينه واچوله ترڅو چي دخپل ايمان ترڅنگ هغوي يوبل ايمان زيات کړي . داسمانونو او ځمکي ټولي لښکري دالله دقدرت په ولکه کښي دي او هغه عليم او حکيم دی .

ہُوَ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ السَّکِیۡنَۃَ فِیۡ قُلُوۡبِ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ لِیَزۡدَادُوۡۤا اِیۡمَانًا مَّعَ اِیۡمَانِہِمۡ ؕ وَ لِلّٰہِ جُنُوۡدُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ عَلِیۡمًا حَکِیۡمًا ۙ(۴)

هغه داکار ددي د پاره کړی دی ) . ترڅو چي موءمن نارينه او ) ښځي دهميشه اوسيدولپاره داسي جنتونو ته ننباسي چي تر هغو لاندي به ويالي بهيدونکي وي او دهغو بدی به له هغو نه ايسته کړي . دالله په نزد داستر برياليتوب دی

لِّیُدۡخِلَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَ الۡمُؤۡمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَا وَ یُکَفِّرَ عَنۡہُمۡ سَیِّاٰتِہِمۡ ؕ وَ کَانَ ذٰلِکَ عِنۡدَ اللّٰہِ فَوۡزًا عَظِیۡمًا ۙ(۵)

او هغو منافقانو نارينه و او ښځو ته او مشرکو نارينه وء او ښځوته سزاوار کړي چي دالله په باب بدگومان لري . دبدی په گرځوني کښي پخپله ايسار شول ، دالله غضب ورباندي وشو او هغه ورباندي لعنت وکړ او دهغو لپاره يي دوزخ تيار کړ چي خورا بد استوگنځی دی .

وَّ یُعَذِّبَ الۡمُنٰفِقِیۡنَ وَ الۡمُنٰفِقٰتِ وَ الۡمُشۡرِکِیۡنَ وَ الۡمُشۡرِکٰتِ الظَّآنِّیۡنَ بِاللّٰہِ ظَنَّ السَّوۡءِ ؕ عَلَیۡہِمۡ دَآئِرَۃُ السَّوۡءِ ۚ وَ غَضِبَ اللّٰہُ عَلَیۡہِمۡ وَ لَعَنَہُمۡ وَ اَعَدَّ لَہُمۡ جَہَنَّمَ ؕ وَ سَآءَتۡ مَصِیۡرًا (۶)

داسمانونو او ځمکي لښکري دالله دقدرت په ولکه کښي دي ، او هغه برلاسی حکمت والادئ .

وَ لِلّٰہِ جُنُوۡدُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ عَزِیۡزًا حَکِیۡمًا (۷)

ای پيغمبره ! مونږ ته شاهدي ورکوونکی ، زيری ورکوونکی او وېروونکی ليږلی يي

اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنٰکَ شَاہِدًا وَّ مُبَشِّرًا وَّ نَذِیۡرًا ۙ(۸)

ترڅوچي ای خلکو تاسي پر الله او دهغه پر پيغمبر ايمان راوړئ او دهغه ملگري شئ او دهغه تعظيم او درناوی وکړئ او سهار او ماښام دهغه د پاکی بيانوونکي اوسئ .

لِّتُؤۡمِنُوۡا بِاللّٰہِ وَ رَسُوۡلِہٖ وَ تُعَزِّرُوۡہُ وَ تُوَقِّرُوۡہُ ؕ وَ تُسَبِّحُوۡہُ بُکۡرَۃً وَّ اَصِیۡلًا (۹)

ای پيغمبره ! کومو کسانو چي له تاسره بيعت وکړ هغوی په اصل کښي له الله سره بيعت وکړ . دهغو دلاسونو دپاسه دالله لاس دی. اوس چي څوك دغه ژمنه ماته کړي دهغه دتعهد ماتولو وبـال به پخپله پر همغه باندي وي . او څوك چي پر هغي ژمني باندي ودريږي چي هغه له الله سره کړيده الله به ډير ژر هغه ته لوی ثواب ورکړي .

اِنَّ الَّذِیۡنَ یُبَایِعُوۡنَکَ اِنَّمَا یُبَایِعُوۡنَ اللّٰہَ ؕ یَدُ اللّٰہِ فَوۡقَ اَیۡدِیۡہِمۡ ۚ فَمَنۡ نَّکَثَ فَاِنَّمَا یَنۡکُثُ عَلٰی نَفۡسِہٖ ۚ وَ مَنۡ اَوۡفٰی بِمَا عٰہَدَ عَلَیۡہُ اللّٰہَ فَسَیُؤۡتِیۡہِ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۱۰)

سَيَقُوْلُ لَکَ الْمُخَلَّفُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ شَغَلَتْنَا اَمْوَالُنَا وَ اَہْلُوْنَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِہِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِہِمْ ؕ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِکُ لَکُمْ مِّنَ اللّٰہِ شَيْئًا اِنْ اَرَادَ بِکُمْ ضَرًّا اَوْ اَرَادَ بِکُمْ نَفْعًا ؕ بَلْ کَانَ اللّٰہُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا (۱۱)

ای پیغمبره ! له اطرافي کليوالو عربونه چې کوم خلك شاته پريښودل شوي وو اوس به هغوی راشي اورمرو به درته ووايي چې (( مونږ دخپلو شتمنيو اواولادونو فکر بوخت کړي ووته زمونږ لپاره دمغفرت دعا وکړه)). دوی پخپلو ژبو سره هغه څه وايي چې په زړونو کښې يې نه وي دوی ته ووايه (ښه همداخبره ده) نو څوك دی چې ستاسي په باب دالله دفيصلې بندولوڅه وس واك لري كه هغه تاسي ته څه ضرر رسول وغواړي يا ګټه دربښل ؟ بلکې ستاسي له عملونو څخه خويوازې الله خبر دی (خو اصلي خبره دا نه ده چې تاسي يې کوئ ).

بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَ الْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰی اَہْلِيْہِمْ اَبَدًا وَّ زُيِّنَ ذٰلِکَ فِيْ قُلُوْبِکُمْ وَ ظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۚۖ وَ کُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا (۱۲)

بلکې تاسي داسي وګڼله چې پيغمبر او موءمنان به خپلو کورنيوته بيرته هيڅکله راونشي ګرځيدلی او دغه ګومان ستاسي په زړونو ډيرښه ولګيده اوتاسي ډير بدګومان وکړ او تاسي سخت بدباطنه هلاکېدونکي خلك يئ.

وَ مَنْ لَّمْ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰہِ وَ رَسُوْلِہٖ فَاِنَّاۤ اَعْتَدْنَا لِلْکٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا (۱۳)

پرالله او دهغه پر پيغمبر باندې چې کوم خلك ايمان نلري دغسي کافرانو لپاره مونږ بل شوی اور تيار کړی دی .

وَ لِلّٰہِ مُلْکُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ کَانَ اللّٰہُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا (۱۴)

دآسمانونو او ځمکي د باچاهی مالك الله دی چاته يې چې خوښه شي ښښنه کوي او چاته چې وغواړي سزا ورکوي ، او هغه غفور او رحيم دئ .

سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰی مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْہَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْکُمْ ۚ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا کَلٰمَ اللّٰہِ ؕ قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا کَذٰلِکُمْ قَالَ اللّٰہُ مِنْ قَبْلُ ۚ فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ تَحْسُدُوْنَنَا ؕ بَلْ کَانُوْا لَا يَفْقَہُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا (۱۵)

کله چې تاسي دولجي ترلاسه کولو لپاره ولاړ شئ نو دغه بيرته پاتې کيدونکي خلك به تاسي ته ارومرو ووايي چې مونږ هم له ځان سره تلو ته پريږدئ . دوی غواړي چې دالله فرمان بدل کړي . دوی ته په ډاګه ووايه چې (( تاسي هيڅکله له مونږ سره نشئ تلئ ، الله لادمخه دافرمايلی دي )) دوی به ووايي چې (( نه بلکې تاسي پرمونږ رخه کوئ)) . ( پداسي حال کښې چې خبره درخې نده ) بلکې دوی په سمه خبره بيخي لږ پوهيږي .

قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ اِلٰی قَوْمٍ اُولِيْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَہُمْ اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ فَاِنْ تُطِيْعُوْا يُؤْتِکُمُ اللّٰہُ اَجْرًا حَسَنًا ۚ وَ اِنْ تَتَوَلَّوْا کَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْکُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا (۱۶)

دغو بيرته پاتې کيدونکو اطرافي عربوته ووايه چې (( ډيرژربه تاسي له داسي خلکو سره د جنګيدو لپاره وبلل شئ چې ډير قوي دي . يابه له هغو سره جګړې ته دوام ورکوئ يابه هغوی غاړه کيږدي په هغه وخت کښې که تاسي د جهاد دحکم اطاعت وکړ نو الله به تاسي ته غوره اجردرکړي اوکه تاسي په همغه شان مخ واړوه لکه چې څنګه مومخکي اړولی دی نو الله به تاسي ته دردناکه سزا درکړي

لَيْسَ عَلَی الْاَعْمٰی حَرَجٌ وَّ لَا عَلَی الْاَعْرَجِ حَرَجٌ وَّ لَا عَلَی الْمَرِيْضِ حَرَجٌ ؕ وَ مَنْ يُّطِعِ اللّٰہَ وَ رَسُوْلَہٗ يُدْخِلْہُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِہَا الْاَنْہٰرُ ۚ وَ مَنْ يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْہُ عَذَابًا اَلِيْمًا (۱۷)

که ړوند ، ګوډ او ناروغ جهاد ته لاړ نشي نوڅه باك نشته . څوك چې دالله اودهغه درسول اطاعت وکړي الله به هغه په هغو جنتونو کښې داخل کړي چې تر هغو لاندې به ويالې بهيږي او څوك چې مخ واړوي هغه ته به درد ناکه سزا ورکړي .

لَقَدْ رَضِیَ اللّٰہُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَکَ تَحْتَ الشَّجَرَۃِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِہِمْ فَاَنْزَلَ السَّکِيْنَۃَ عَلَيْہِمْ وَ اَثَابَہُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا (۱۸)

الله له موءمنانو څخه خوشحاله شو کله چې هغوی له ونې لاندې له تا سره بيعت کاوه ، دهغود زړونو حال هغه ته معلوم دی لدې امله يې پرهغو ډاډينه نازله کړه اوهغوته يې په انعام کښې نژدې فتحه ورکړه.

او دولجي ډيرڅه مالونه يې ورکړل چې هغوی به يې ( ډيرژر ) تر لاسه کړي . الله برلاسی او حکمت والادی .

وَّ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّاْخُذُوْنَهَا ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا (١٩)

الله له تاسي سره دولجي دخورا ډيرومالونو وعده کوي چې تاسي به هغه ترلاسه کړئ په سمدستي ډول خودغه فتح هغه تاسي ته درکړه او ستاسي پرخلاف يې د خلکو لاسونه له راپورته کيدلو څخه منع کړل ، ترڅو چې داد موءمنانو لپاره نښانه شي او الله تاسې ته دسمي لارې هدايت درکړی .

وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَاْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَ كَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ ۚ وَ لِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَ يَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا (٢٠)

پدې سربيره هغه له تاسي سره دنور وداسي ولجوهم وعده کوي چې پرهغو باندې تراوسه پورې تاسي نه يئ قادر شوي او الله هغه ايسارې کړيدي ، الله په هر څه قادر دی .

وَّ اُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا (٢١)

دغه کافران که پدې وخت کښې له تاسي سره جنګيدلي وای نو ارو مروبه يې شا اړولې وه او هيڅ ملاتړ او مرستندوی به يې نه وء ميندلی .

وَ لَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّ لَا نَصِيْرًا (٢٢)

دا دالله کړنلاره ده چې له پخوانه راروانه ده ، اوته به دالله په کړنلاره کښې هيڅ بدلون ونه مومې

سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۖۚ وَ لَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا (٢٣)

همغه ذات دی چې دمکې په ناوکښې يې دهغو لاسونه له تاسي نه او ستاسي لاسونه يې له هغو نه منع کړل ، وروسته له هغه چې پر هغويي تاسي ته برې درکړی وء او تاسي چې څه کول الله هغه ليدل.

وَ هُوَ الَّذِيْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَ اَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْۢ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا (٢٤)

همغه کسان دي چې هغوی کافران شول او تاسي يې له مسجد الحرام نه منع کړئ او دهديې اوښان يې دهغو دقربانی ځای ته پرينښودل چې ورسيږي . که ( په مکه کښې ) داسي موءمن نارينه اوموءمني ښځې موجودې نه وای چې تاسي يې نه پيژنئ اوکه داخبره نه وای چې په نا اګاهانه ډول به تاسي هغوی پامال کړئ او پدې سره دبې علمي په حال کښې به پرتاسي پړه راشي ( نو دجنګ مخنيوی به نه وء شوی . مخنيوی د دې لپاره وشو ) ترڅو چې الله چې څوک وغواړي پخپل رحمت کښې يې داخل کړي ، هغه موءمنان که بيل شوي وای نو دمکې له خلکو نه چې کوم کسان کافران وو هغوته به مونږ ارومرو دردناکه سزاورکړې وه .

هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَ الْهَدْيَ مَعْكُوْفًا اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ؕ وَ لَوْ لَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَ نِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَـُٔوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا (٢٥)

کله چې دغو کافرانو پخپلو زړونو کښې ( همدا دليل دی چې ) دځېل جاهلانه دريځ ټينګ کړ نو الله پرخپل پيغمبراو موءمنانو باندې ډاډينه نازله کړه او موءمنان يې دتقوئ دخبرې پابند وګرځول . چې هغوې دهغې زيات حقدار او اهل وو ، الله پر هر شي علم لري

اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَ اَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَ كَانُوْا اَحَقَّ بِهَا وَ اَهْلَهَا ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا (٢٦)

په واقع کښې الله خپل پيغمبرته ريښتونی خوب ښودلی وء چې هوُ به هوُ له حق سره سم وء ، انشاء الله تاسي به ارومرو مسجد حرام ته ډيوره امنيت سره ننوځئ ، خپل سرونه به وخريئ او ويښته به لنډ کړئ اوپرتاسي به هيڅ ويره نه وي هغه په هغې خبرې پوهيده چې تاسي ورباندې نه پوهيدلئ له دې امله هغه دخوب پوره کيدونه مخکښې تاسي ته دغه نژدې فتحه درپه برخه کړه .

لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ ۚ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ۙ مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ وَ مُقَصِّرِيْنَ ۙ لَا تَخَافُوْنَ ؕ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا (٢٧)

همغه ذات دی چې خپل پیغمبریې له هدایت او حق دین سره لیږلی دی ترڅو چې هغه پرټول (جنس) دین باندې غالب کړي اوپه دې حقیقت باندې دالله شاهدي کافي ده .

ہُوَ الَّذِیۡۤ اَرۡسَلَ رَسُوۡلَہٗ بِالۡہُدٰی وَ دِیۡنِ الۡحَقِّ لِیُظۡہِرَہٗ عَلَی الدِّیۡنِ کُلِّہٖ ؕ وَ کَفٰی بِاللّٰہِ شَہِیۡدًا (ؕ۲۸)

محمد صلی الله علیه وسلم د الله رسول دی ، او کوم کسان چې له هغه سره ملګري دي هغوی پرکافرانو سخت اوپه خپلو مینځو کښې خواخوږي دي ، ته چې کله هغوی ګوري په رکوع او سجده ، او دالله دفضل او دهغه د رضا په طلب کښې یې بوخت مومې . دسجدو نښې نښانې دهغو پر وچولیو موجودې دي چې په هغې سره هغوی بیل پیژندل کیږي دادی دهغو صفت په تورات کښې . اوپه انجیل کښې دهغو مثال داسې ورکړشویدی چې ګواکې یوکښت دی چې لومړی هغه پلکې وټوکوي ، بیا یې هغې ته قوت او وده ورکړه ، بیا هغه مخ په پخیدوشو ، بیا هغه پرخپلې تنې باندې ودریده ، هغه کروند ګر خوشحالوي ترڅو چې کافران دهغو په تقویې او سمسورتیا باندې له غوسې وسوځي. د دغې ډلې خلك چې ایمان یې راوړی دی او نیك عملونه یې کړیدی ، الله د دوی سره دبښنې او لوی اجر وعده کړیده .

مُحَمَّدٌ رَّسُوۡلُ اللّٰہِ ؕ وَ الَّذِیۡنَ مَعَہٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَی الۡکُفَّارِ رُحَمَآءُ بَیۡنَہُمۡ تَرٰىہُمۡ رُکَّعًا سُجَّدًا یَّبۡتَغُوۡنَ فَضۡلًا مِّنَ اللّٰہِ وَ رِضۡوَانًا ۫ سِیۡمَاہُمۡ فِیۡ وُجُوۡہِہِمۡ مِّنۡ اَثَرِ السُّجُوۡدِ ؕ ذٰلِکَ مَثَلُہُمۡ فِی التَّوۡرٰىۃِ ۚۖۛ وَ مَثَلُہُمۡ فِی الۡاِنۡجِیۡلِ ۚ۟ۛ کَزَرۡعٍ اَخۡرَجَ شَطۡـَٔہٗ فَاٰزَرَہٗ فَاسۡتَغۡلَظَ فَاسۡتَوٰی عَلٰی سُوۡقِہٖ یُعۡجِبُ الزُّرَّاعَ لِیَغِیۡظَ بِہِمُ الۡکُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰہُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنۡہُمۡ مَّغۡفِرَۃً وَّ اَجۡرًا عَظِیۡمًا (۲۹)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ای موءمنانو ! دالله او دهغه درسول په مخکښې مه وړاندې کیږئ اوله الله نه وویریږئ ، الله دهر څه اوریدونکی او پوهیدونکی دی.

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تُقَدِّمُوۡا بَیۡنَ یَدَیِ اللّٰہِ وَ رَسُوۡلِہٖ وَ اتَّقُوا اللّٰہَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ سَمِیۡعٌ عَلِیۡمٌ (۱)

ای موءمنانو خپل اواز د پیغمبر له اواز نه مه پورته کوئ او مه له پیغمبر صلې الله علیه وسلم سره په لوړ غږ خبرې کوئ لکه چې پخپلو مینځو کښې یوله بل سره په لوړ غږ خبرې کوئ ، هسې نه چې ستاسې ټول عملونه بابیزه شي او تاسې خبرهم ونه اوسئ .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَرۡفَعُوۡۤا اَصۡوَاتَکُمۡ فَوۡقَ صَوۡتِ النَّبِیِّ وَ لَا تَجۡہَرُوۡا لَہٗ بِالۡقَوۡلِ کَجَہۡرِ بَعۡضِکُمۡ لِبَعۡضٍ اَنۡ تَحۡبَطَ اَعۡمَالُکُمۡ وَ اَنۡتُمۡ لَا تَشۡعُرُوۡنَ (۲)

کوم کسان چې دخدای درسول په وړاندې دغږیدلوپه وخت کښې خپل غږونه ټیټوي هغوی په حقیقت کښې همغه کسان دي چې الله دهغوی زړونه دتقوئ لپاره ازمویلي دي ، دهغو لپاره ښښنه ده او لوی اجر.

اِنَّ الَّذِیۡنَ یَغُضُّوۡنَ اَصۡوَاتَہُمۡ عِنۡدَ رَسُوۡلِ اللّٰہِ اُولٰٓئِکَ الَّذِیۡنَ امۡتَحَنَ اللّٰہُ قُلُوۡبَہُمۡ لِلتَّقۡوٰی ؕ لَہُمۡ مَّغۡفِرَۃٌ وَّ اَجۡرٌ عَظِیۡمٌ (۳)

ای پیغمبره ! کوم کسان چې تاته له حجرونه دباندې ناري وهي له هغونه زیاتره ناپوهان دي

اِنَّ الَّذِیۡنَ یُنَادُوۡنَکَ مِنۡ وَّرَآءِ الۡحُجُرٰتِ اَکۡثَرُہُمۡ لَا یَعۡقِلُوۡنَ (۴)

که هغوی ستاتر وتلوپورې صبر کړی وای نو د همغو لپاره بهتره وه ، الله ښښونکئ او نهایت رحم والادی .

وَ لَوۡ اَنَّہُمۡ صَبَرُوۡا حَتّٰی تَخۡرُجَ اِلَیۡہِمۡ لَکَانَ خَیۡرًا لَّہُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ (۵)

ای موءمنانو ! که کوم فاسق تاسې ته له کوم خبرسره راشي نو تاسې تحقیق وکړئ نه چې تاسې کومې ډلې ته په ناپوهی سره ضرر ورسوئ او بیا پخپلو کړوپښیمانه شئ .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنۡ جَآءَکُمۡ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَیَّنُوۡۤا اَنۡ تُصِیۡبُوۡا قَوۡمًۢا بِجَہَالَۃٍ فَتُصۡبِحُوۡا عَلٰی مَا فَعَلۡتُمۡ نٰدِمِیۡنَ (۶)

وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ فِيۡكُمۡ رَسُوۡلَ اللّٰهِ ؕ لَوۡ يُطِيۡعُكُمۡ فِيۡ كَثِيۡرٍ مِّنَ الۡاَمۡرِ لَعَنِتُّمۡ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ اِلَيۡكُمُ الۡاِيۡمَانَ وَ زَيَّنَهٗ فِيۡ قُلُوۡبِكُمۡ وَ كَرَّهَ اِلَيۡكُمُ الۡكُفۡرَ وَ الۡفُسُوۡقَ وَ الۡعِصۡيَانَ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُوۡنَ ۙ(۷)

ښه وپوهيږئ چې ستاسې په مينځ کښې دالله رسول موجود دی . که هغه په زياتر و چارو کښې ستاسې خبره ومني نو تاسې به پخپله په ستونزو کښې اخته شئ ، خو الله تاسې ته دايمان مينه درکړه او هغه يې ستاسې لپاره په زړه پورې وګرځوه ، اوله کفر فسق او نافرمانۍ څخه يې تاسې کرکجن کړئ پرحق ثابت کسان همدغه دی ،

فَضۡلًا مِّنَ اللّٰهِ وَ نِعۡمَةً ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ (۸)

همدغسې خلك دالله په فضل احسان سره پرسمه لاره دي او الله د علم او حکمت خاوند دی .

وَ اِنۡ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ اقۡتَتَلُوۡا فَاَصۡلِحُوۡا بَيۡنَهُمَا ۚ فَاِنۡۢ بَغَتۡ اِحۡدٰهُمَا عَلَى الۡاُخۡرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِيۡ تَبۡغِيۡ حَتّٰى تَفِيۡٓءَ اِلٰٓى اَمۡرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنۡ فَآءَتۡ فَاَصۡلِحُوۡا بَيۡنَهُمَا بِالۡعَدۡلِ وَ اَقۡسِطُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُقۡسِطِيۡنَ (۹)

اوکه له موءمنانو څخه دوه ډلې پخپلو مينځو کښې په جنګ شي نو دهغو په مينځ کښې صلح وکړئ . بيا که له هغو نه يوه ډله پربلې تيری وکړي نوله تيري کوونکي سره وجنګيږئ ، تردې پورې چې هغوی دالله دحکم خواته راوګرځي . بيا کله چې هغوی راوګرځي نو دهغوی په مينځ کښې په عدل سره سوله وکړئ ، او انصاف وکړئ چې الله انصاف کوونکي خوښوي .

اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ اِخۡوَةٌ فَاَصۡلِحُوۡا بَيۡنَ اَخَوَيۡكُمۡ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۱۰)

مومنان خويو دبل سره ورونه وي ، نو دخپلو ورونو په مينځ کښې مناسبات سم کړئ اوله الله نه وويريږئ هيله ده چې پرتاسې رحم وکړای شي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٌ مِّنۡ قَوۡمٍ عَسٰٓى اَنۡ يَّكُوۡنُوۡا خَيۡرًا مِّنۡهُمۡ وَ لَا نِسَآءٌ مِّنۡ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنۡ يَّكُنَّ خَيۡرًا مِّنۡهُنَّ ۚ وَ لَا تَلۡمِزُوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ وَ لَا تَنَابَزُوۡا بِالۡاَلۡقَابِ ؕ بِئۡسَ الِاسۡمُ الۡفُسُوۡقُ بَعۡدَ الۡاِيۡمَانِ ۚ وَ مَنۡ لَّمۡ يَتُبۡ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۱۱)

ای موء منانو ! نه دې نارينه پرنور ونارينه وء ټوکې وشتې کوي کيدی شي چې هغوی له دوی نه غوره وي اونه دې ښځې په نور و ښځو ټوکې وشتې کوي ، کيدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي ، پخپلو مينځو کې يو دبل طعن مه وايئ ، او مه يوبل په بدو نومونو سره يادوئ . له ايمان راوړلو وروسته په فسق کښې نوم پيدا کول ډيره بده خبره ده . کوم کسان چې له دغه چارچلند څخه راوانه وړي همغوی ظالمان دي .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوا اجۡتَنِبُوۡا كَثِيۡرًا مِّنَ الظَّنِّ ۫ اِنَّ بَعۡضَ الظَّنِّ اِثۡمٌ وَّ لَا تَجَسَّسُوۡا وَ لَا يَغۡتَبۡ بَّعۡضُكُمۡ بَعۡضًا ؕ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمۡ اَنۡ يَّاۡكُلَ لَحۡمَ اَخِيۡهِ مَيۡتًا فَكَرِهۡتُمُوۡهُ ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيۡمٌ (۱۲)

ای موءمنانو ، له ډيرو ګومانونو کولونه ډډه وکړئ چې ځينې ګومانونه ګناه وي ، دچا پټ عيبونه مه لټوئ اوله تاسې نه دې څوك دچا غيبت نکوي . ايا په تاسې کښې داسې څوك شته چې دخپل مړ ورور غوښې خوړل خوښ کړي ؟ ګورئ تاسې پخپله د دې نه کرکه کوئ . له الله نه وويريږئ ، الله ډير ښه توبه قبلوونکی او خورا مهربان دی .

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقۡنٰكُمۡ مِّنۡ ذَكَرٍ وَّ اُنۡثٰى وَ جَعَلۡنٰكُمۡ شُعُوۡبًا وَّ قَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوۡا ؕ اِنَّ اَكۡرَمَكُمۡ عِنۡدَ اللّٰهِ اَتۡقٰكُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌ خَبِيۡرٌ (۱۳)

ای خلکو ! مونږ تاسې له يوه نارينه او يوې ښځې نه پيدا کړئ او بيامو تاسې قومونه او قبيلې وګر ځولئ ترڅوچې تاسې يوتر بله سره وپيژنئ په حقيقت کښې دالله په نزد له تاسې نه تر ټولو زيات عزتمند هغه څوك دی چې په تاسې کښې ترټولو زيات پرهيزګار وي . په باوري ډول الله په هر څه پوهيدونکی او باخبره دی .

قَالَتِ الۡاَعۡرَابُ اٰمَنَّا ؕ قُلۡ لَّمۡ تُؤۡمِنُوۡا وَ لٰكِنۡ قُوۡلُوۡۤا اَسۡلَمۡنَا وَ لَمَّا يَدۡخُلِ الۡاِيۡمَانُ فِيۡ قُلُوۡبِكُمۡ ؕ وَ اِنۡ تُطِيۡعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ لَا يَلِتۡكُمۡ مِّنۡ اَعۡمَالِكُمۡ شَيۡئًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱۴)

دغه بانډ چيان وايي چې مونږ ايمان راوړ ،، دوی ته ووايه تاسې ايمان ندی راوړی ، بلکې داسې ووايئ چې مونږ اطاعت کوونکي شوو ،، ايمان لاتر اوسه ستاسې په زړونو کښې داخل شوی ندئ که تاسې دالله او دهغه درسول فرمانبرداري غوره کړی نو هغه به ستاسې د عملونو په اجر کښې څه کموالی رانه ولي ، په باوري ډول الله غفور او رحيم دی .

په حقيقت کښې خو موءمنان هغه دی چې پر الله او د هغه پر پيغمبرېې ايمان راوړ بيا هغوی څه شك ونکړ او په خپلو مالونو او سرونو سره يې دالله په لاره کښې جهاد وکړ همغوی ريښتوني خلك دي .

اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ ثُمَّ لَمۡ يَرۡتَابُوۡا وَ جٰهَدُوۡا بِاَمۡوَالِهِمۡ وَ اَنۡفُسِهِمۡ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوۡنَ (١٥)

ای پيغمبره : ( دايمان دغو مدعيانو ته ) ووايه ، آيا تاسي الله ته دخپل دين خبر ورکوئ ؟ پداسي حال کښې چې الله داسمانونو او ځمکې په هر څه باندې پوهيږي او هغه دهر شي علم لري .

قُلۡ اَتُعَلِّمُوۡنَ اللّٰهَ بِدِيۡنِكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ يَعۡلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ (١٦)

دوی پرتا احسان باروي چې دوی اسلام راوړ . دوی ته ووايه دخپل اسلام احسان پر مامه اچوئ بلکې الله پرتاسي احسان باروي چې هغه تاسي ته دايمان لارښوونه وکړه که تاسي په رښتيا سره دخپل ايمان په دعوه کښې ريښتوني يئ .

يَمُنُّوۡنَ عَلَيۡكَ اَنۡ اَسۡلَمُوۡا ؕ قُلۡ لَّا تَمُنُّوۡا عَلَىَّ اِسۡلَامَكُمۡ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ عَلَيۡكُمۡ اَنۡ هَدٰٮكُمۡ لِلۡاِيۡمَانِ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ (١٧)

الله داسمانونو او ځمکې دهر پټ شی علم لري او هر څه چې تاسي کوئ دهغو ټولو ليدونکی دی .

اِنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ غَيۡبَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِيۡرٌۢ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ (١٨)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

ق ، قسم دی پرقران مجيد باندې.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

قٓ ۚ وَ الۡقُرۡاٰنِ الۡمَجِيۡدِ ۚ(١)

بلکې د دغو خلکو تعجب پدې خبره راغی چې يو خبر ورکوونکی پخپله له همدوی نه دوی ته راغی ، بيا کافرانو وويل داعجيبه خبره ده ،

بَلۡ عَجِبُوۡۤا اَنۡ جَآءَهُمۡ مُّنۡذِرٌ مِّنۡهُمۡ فَقَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ هٰذَا شَىۡءٌ عَجِيۡبٌ ۚ(٢)

ايا کله چې مونږ مړه شو او خاوري شو ( نو دوهم ځل به بيا را ژوندي کړای شو؟ ) دابيرته راګرځيدل خو له پوهي ليرې دي

ءَاِذَا مِتۡنَا وَ كُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجۡعٌۢ بَعِيۡدٌ (٣)

پداسي حال کښې)ځمکه چې ددوی د جوسي نه خوري هغه ټول ) زمونږ په علم کښې دي اوله مونږسره يوکتاب دی چې هرڅه پکښې . محفوظ دي

قَدۡ عَلِمۡنَا مَا تَنۡقُصُ الۡاَرۡضُ مِنۡهُمۡ ۚ وَ عِنۡدَنَا كِتٰبٌ حَفِيۡظٌ (٤)

بلکې دوی ته خوچې کله حق راغی په هغه وخت کښې يې هغه په ښکاره دروغ وګانه له همدې امله دوی اوس په کړکيچ کښې ښتي دي .

بَلۡ كَذَّبُوۡا بِالۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ فَهُمۡ فِىۡۤ اَمۡرٍ مَّرِيۡجٍ (٥)

ښه نو دوی هيڅکله دځان له پاسه اسمان ته ندي کتلي ؟ په څه ډول مونږ هغه جوړ او سينګار کړ ، اوپه هغه کښې هيڅ درز نشته .

اَفَلَمۡ يَنۡظُرُوۡۤا اِلَى السَّمَآءِ فَوۡقَهُمۡ كَيۡفَ بَنَيۡنٰهَا وَ زَيَّنّٰهَا وَ مَا لَهَا مِنۡ فُرُوۡجٍ (٦)

او مونږ ځمکه وغوړوله او په هغې کښې مو غرونه ښخ کړل او په هغې کښې مو هر راز ښيرازه ښايسته نباتات زرغونه کړل .

وَ الۡاَرۡضَ مَدَدۡنٰهَا وَ اَلۡقَيۡنَا فِيۡهَا رَوَاسِىَ وَ اَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ زَوۡجٍۢ بَهِيۡجٍ ۙ(٧)

دغه ټول شيان سترګې غوړوونکي او درس ورکوونکي دي دهر هغه بنده لپاره چې ( دحق خواته ) رجوع کوونکی وي .

تَبۡصِرَةً وَّ ذِكۡرٰى لِكُلِّ عَبۡدٍ مُّنِيۡبٍ (٨)

او مونږ له اسمانه برکتناکې اوبه نازلې کړې ، بيا موپه هغو سره باغونه او د ريبلو وړکښتونو غلې رازرغونی کړې

وَ نَزَّلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنۡۢبَتۡنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّ حَبَّ الۡحَصِيۡدِ ۙ(٩)

او دهسکو دنګوخرماو ونې موپيدا کړې چې دهغوله ميوونه ډك وږي يودبل د پاسه پراته وي .

وَ النَّخۡلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلۡعٌ نَّضِيۡدٌ ۙ(١٠)

دا دبنده ګانو دروزی ورکولو انتظام دی . او پدغو اوبو سره مونږ يوه مړه سيمه ژوندی کړه .له ځمکې نه دمړه شويو انسانانو راوتل به هم همدغسي وي.

رِّزۡقًا لِّلۡعِبَادِ ۙ وَ اَحۡيَيۡنَا بِهٖ بَلۡدَةً مَّيۡتًا ؕ كَذٰلِكَ الۡخُرُوۡجُ (١١)

مخكني له دوئ ددروغو نسبتونه كړي دي دنوح قوم ، او دڅاخاوندانو ، او ثموديانو

كَذَّبَتْ قَبْلَہُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّ اَصْحٰبُ الرَّسِّ وَ ثَمُوْدُ (۱۲)

او عاديانو او فرعون او دلوط ورونړ

وَ عَادٌ وَّ فِرْعَوْنُ وَ اِخْوَانُ لُوْطٍ (۱۳)

او دايكه خلكو ، او دتبع قوم دې ټولو پېغمبران درواغجن گڼلی اوپه پای كښې زما وعيد پرهغو تطبيق شو .

وَّ اَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ وَ قَوْمُ تُبَّعٍ ؕ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ (۱۴)

ايا دلومړي ځل پيدا كولونه مونږ ستړي وو ؟ خو ديونوي تخليق له پلوه دغه خلك په شك كښي غورځيدلي دي .

اَفَعَيِيْنَا بِالْخَلْقِ الْاَوَّلِ ؕ بَلْ ہُمْ فِيْ لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ (۱۵)

مونږ انسان پيدا كړي دی او آن دهغه په زړه كښي را پيدا كيدونكو وسوسو باندې پوهيږو . او مونږ دهغه له شهرگ نه هم زيات هغه ته نژدې يو .

وَ لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ وَ نَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِہٖ نَفْسُہٗ ۚۖ وَ نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْہِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ (۱۶)

او زمونږ پردغه مستقيم علم برسيره ) دوه ليكونكي دهغه ښي او ) چپ لوري ته ناست نيكي او بدي هر څه ثبتوي

اِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيٰنِ عَنِ الْيَمِيْنِ وَ عَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ (۱۷)

هيڅ داسي لفظ دهغه له خولي څخه نه راوزي چي دهغه دمحفوظ ساتلو لپاره يوحاضر باش څارونكی ورسره موجود نه وي .

مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ اِلَّا لَدَيْہِ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ (۱۸)

بيا گوره ، هغه دځانكدن سلگې په حقه راغلي ، دامرگ همغه شی دی چي ته ترينه تښتيدلي .

وَ جَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْہُ تَحِيْدُ (۱۹)

او بيا به شپيلی پو كړه شي ، داده هغه دوېرولو ورځ

وَ نُفِخَ فِى الصُّوْرِ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ (۲۰)

او هر څوك پداسي حال كښي راغی چي له هغه سره يو سوق كوونكی دی او يو شاهدي ويونكی .

وَ جَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَہَا سَآئِقٌ وَّ شَہِيْدٌ (۲۱)

د دغې ( ورځې ) له پلوه ته په غفلت كښي وې ، مونږ هغه پرده ليرې كړه چي ستا په مخكښي پرته وه اونن ستا نظر ښه تيز دی .

لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ ہٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ (۲۲)

دهغه ملگری به عرض وكړي دادی هغه چي ماته سپارل شوی و حاضر دی .

وَ قَالَ قَرِيْنُہٗ ہٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ (۲۳)

امربه وشي (( وغورځوئ په دوزخ كښي هر سخت كافرچي له حق سره يې دښمني درلودله

اَلْقِيَا فِيْ جَہَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ (۲۴)

دخير مخنيوونكی له حده تيريدونكی ، په شك كښي غورځيدلی .

مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيْبِ (۲۵)

چي له الله سره يې كوم بل څوك خدای گرځولی ونو وغورځوئ هغه په سخت عذاب كښي .

الَّذِيْ جَعَلَ مَعَ اللّٰہِ اِلٰـہًا اٰخَرَ فَاَلْقِيٰہُ فِى الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ (۲۶)

دهغه انډيوال به وايي : خدايه مادی نه و سركشه كړی بلكې دی پخپله ليرې گمراهی كښي غورځيدلی و

قَالَ قَرِيْنُہٗ رَبَّنَا مَا اَطْغَيْتُہٗ وَ لٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ (۲۷)

په ځواب كښي به يې وفرمايي ،، زما په وړاندې جگړه مه كوئ ، ماتاسې مخكښي له بد عاقبت نه خبردار كړي وئ

قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ وَ قَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ (۲۸)

زما په وړاندې خبره نه بدليري او زه پخپلو بندگانو هيڅ ظالم نه يم .

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَ مَا اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ (۲۹)

هغه ورځ چې مونږ له دوزخ نه پوښتنه وکړو : ایاته ډك شوې ؟ او هغه ووایي ایا نو رځه شته ؟

يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَہَنَّمَ ہَلِ امْتَلَاْتِ وَ تَقُوْلُ ہَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ (٣٠)

او جنت به ډیرهیزګارانو لپاره نژدې راوستل شي ، هیڅ به لیرې نه وي.

وَ اُزْلِفَتِ الْجَنَّۃُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ (٣١)

وبه فرمایل شي ،، دادی هغه شی چې له تاسې سره دهغه وعده کیدله ، دهر هغه چالپاره چې ډیر رجوع کوونکی او ډیر ساتونکی و.

ہٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ (٣٢)

هغه چې دنالیدلي رحمٰن نه ویریده او هغه چې له رجوع کوونکي زړه سره راغلی دی .

مَنْ خَشِیَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَ جَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ (٣٣)

جنت ته له سلامتیا سره ننوزئ ،، هغه ورځ به دابدي ژوندانه ورځ وي.

ادْخُلُوْہَا بِسَلٰمٍ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ (٣٤)

هلته به دهغو لپاره هرهغه څه وي چې هغوی یې وغواړي ، اوله مونږ سره له دې نه هم زیات څه دهغو لپاره شته .

لَہُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْہَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ (٣٥)

موږله دوی نه مخکښې ډیر داسې قومونه هلاك کړي دي چې له دوی نه ډیر زیات زورور وو او ډېر هیواد ونه یې لټولي وو . ایا هغوی کوم پناه ځای وموندلی شو؟

وَ كَمْ اَہْلَكْنَا قَبْلَہُمْ مِّنْ قَرْنٍ ہُمْ اَشَدُّ مِنْہُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِی الْبِلَادِ ؕ ہَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ (٣٦)

پدغه تاریخ کښې دعبرت درس دی دهر هغه چالپاره چې زړه لري یا په پاملرنې سره خبره واوري .

اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰی لِمَنْ كَانَ لَہٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَی السَّمْعَ وَ ہُوَ شَہِيْدٌ (٣٧)

مونږ اسمانونه او ځمکه او دهغو په مینځ کښې ټول شیان په شپږو ورځوکښې پیدا کړل او مونږ ته څه ستړیاونه رسیدله .

وَ لَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ وَ مَا بَيْنَہُمَا فِیْ سِتَّۃِ اَيَّامٍ ٭ۖ وَّ مَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ (٣٨)

نوای پیغمبره ! دغه خلك چې کومې خبرې جوړوي پر هغو صبر وکړه، او دخپل رب له ثناستاینې سره د هغه پاکي بیا نوه ، له لمر ختو او لمر پریوتونه مخکښې

فَاصْبِرْ عَلٰی مَا يَقُوْلُوْنَ وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَ قَبْلَ الْغُرُوْبِ (٣٩)

او د شپې له مخی بیا دهغه پاکی بیان کړه او له سجده کولو نه ( له وزګار یدوڅخه ) وروسته هم .

وَ مِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْہُ وَ اَدْبَارَ السُّجُوْدِ (٤٠)

او واوره ، په کومه ورځ چې به دهر چاله نژدې ځای نه غږکوونکی غږ وکړي ،

وَ اسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ (٤١)

په هغه ورځ چې ټول خلك به دحشر چیغه سمه صحیح اوري ، هغه به له ځمکې نه دمړو دراوتلو ورځ وي .

يَّوْمَ يَسْمَعُوْنَ الصَّيْحَۃَ بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوْجِ (٤٢)

همدا مونږ ژوند ببنواو همدا مونږ مرګ ورکوو او همدا زمونږ لوري ته په هغه ورځ راګرزیدل دي .

اِنَّا نَحْنُ نُحْیٖ وَ نُمِيْتُ وَ اِلَيْنَا الْمَصِيْرُ (٤٣)

کله چې ځمکه وچوي او خلك دهغې نه په راوتلو په بیړه بیړه منډې وهونکي وي . دغه حشر زمونږ لپاره ډیر اسان دی .

يَوْمَ تَشَقَّقُ الْاَرْضُ عَنْہُمْ سِرَاعًا ؕ ذٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيْرٌ (٤٤)

ای پیغمبره ! دوی چې کومې خبرې جوړ وي مونږ ورباندې ښه پوهیږو ، او ستا وظیفه په هغو باندې په زوره خبره منل ندي ته فقط د دغه قران په وسیله هر هغه چاته نصیحت وکړه چې زماپه تنبیه سره ویریږي .

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ وَ مَا اَنْتَ عَلَيْہِمْ بِجَبَّارٍ ۟ فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ (٤٥)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قسم دی په دوړو الوزوونکو بادونو باندې

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ۙ(١)

بیا د اوبو درنو بارونو پورته کوونکو وربځو باندې

فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ۙ(٢)

بیا په نرمۍ سره چلېدونکو بېړیو باندې

فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ۙ(٣)

| Pashto | Arabic |
| --- | --- |
| بیا د کار وېشونکو (پرښتو) باندې | فَالۡمُقَسِّمٰتِ اَمۡرًا ۙ(۴) |
| حقه داده ، له کوم شي نه چې تاسې ویرول کیږئ هغه رښتیادي | اِنَّمَا تُوۡعَدُوۡنَ لَصَادِقٌ ۙ(۵) |
| او دعملو نو جزا ارومرو رامینځ ته کیدونکې ده . | وَّ اِنَّ الدِّیۡنَ لَوَاقِعٌ ؕ(۶) |
| قسم دی په بیلابیلو لارو او شکلونو لرونکي اسمان باندې | وَ السَّمَآءِ ذَاتِ الۡحُبُکِ ۙ(۷) |
| د اخرت په باب ) ستاسې خبره یوتر بله مختلفه ده . | اِنَّکُمۡ لَفِیۡ قَوۡلٍ مُّخۡتَلِفٍ ۙ(۸) |
| له هغه نه همغه څوك اوړي چې له حق نه ګرځیدلی دی ، | یُّؤۡفَکُ عَنۡہُ مَنۡ اُفِکَ (ؕ۹) |
| و وژل شول په اټکل ا و ګومان سره حکم صادروونکي ( درواغ ویونکي ) ، | قُتِلَ الۡخَرّٰصُوۡنَ (ۙ۱۰) |
| هغه کسان چې په جهالت کښې غرق او په غفلت کښې بیهوښه بی فکره دي. | الَّذِیۡنَ ہُمۡ فِیۡ غَمۡرَۃٍ سَاہُوۡنَ (ۙ۱۱) |
| پوښتنه کوي دجزا ورځ به نو کله راشي ؟ | یَسۡئَلُوۡنَ اَیَّانَ یَوۡمُ الدِّیۡنِ (ؕ۱۲) |
| په هغه ورځ به راشي چې کله دوی په اور وازمویل شي . | یَوۡمَ ہُمۡ عَلَی النَّارِ یُفۡتَنُوۡنَ (۱۳) |
| اوس د خپلې فتنې خوند وڅکئ . داهمغه شی (دوی ته به وویل شي) . دی چې دهغې لپاره تاسې بیړه کوله | ذُوۡقُوۡا فِتۡنَتَکُمۡ ؕ ہٰذَا الَّذِیۡ کُنۡتُمۡ بِہٖ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ (۱۴) |
| البته پرهیزګاران به په هغه ورځ کښې په باغونو کې او دچینو تر څنګ وي | اِنَّ الۡمُتَّقِیۡنَ فِیۡ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوۡنٍ (ۙ۱۵) |
| دهغو رب چې هرڅه هغو ته ورکوي په خوښۍ سره به یې اخیستونکي وي هغوی له دې نه مخکښې په دنیا کښې نیکو کاران وو. | اٰخِذِیۡنَ مَاۤ اٰتٰہُمۡ رَبُّہُمۡ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا قَبۡلَ ذٰلِکَ مُحۡسِنِیۡنَ (ؕ۱۶) |
| هغوی (دهغې ورځې له راتګ نه مخکښې) دشپې له مخې ډیرلږ ویده کیدل . | کَانُوۡا قَلِیۡلًا مِّنَ الَّیۡلِ مَا یَہۡجَعُوۡنَ (۱۷) |
| بیا دوی دشپې په وروستیو شیبو کښې له الله نه بښنه غوښتله | وَ بِالۡاَسۡحَارِ ہُمۡ یَسۡتَغۡفِرُوۡنَ (۱۸) |
| او د دوی په مالونوکښې حق و دسوالګر او صابر لپاره | وَ فِیۡۤ اَمۡوَالِہِمۡ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَ الۡمَحۡرُوۡمِ (۱۹) |
| په ځمکه کښې ډیرې نښانې دي دباورکوونکو لپاره ، | وَ فِی الۡاَرۡضِ اٰیٰتٌ لِّلۡمُوۡقِنِیۡنَ (ۙ۲۰) |
| او پخپله ستاسې پخپل وجود کښې . ایا تاسې په ځیرکتونکي نه یئ ؟ | وَ فِیۡۤ اَنۡفُسِکُمۡ ؕ اَفَلَا تُبۡصِرُوۡنَ (۲۱) |
| په همدې آسمان کښې ده ستاسې روزي هم او هغه شی هم چې له تاسې سره دهغه وعده کیږي . | وَ فِی السَّمَآءِ رِزۡقُکُمۡ وَ مَا تُوۡعَدُوۡنَ (۲۲) |
| نو قسم دی داسمان او ځمکې په مالك باندې ، داخبره حقه ده ، همداسې یقیني لکه چې تاسې غږیږئ . | فَوَ رَبِّ السَّمَآءِ وَ الۡاَرۡضِ اِنَّہٗ لَحَقٌّ مِّثۡلَ مَاۤ اَنَّکُمۡ تَنۡطِقُوۡنَ (۲۳) |
| ای پیغمبره ! ایا دابراهیم (ع) د معززو میلمنو کیسۍ درته رسیدلې ده . | ہَلۡ اَتٰىکَ حَدِیۡثُ ضَیۡفِ اِبۡرٰہِیۡمَ الۡمُکۡرَمِیۡنَ (ۘ۲۴) |
| کله چې هغوی د هغه کره راغلل نو ویې ویل پرتا سلام دئ هغه وویل پرتاسې هم سلام دئ څه ناآشنا غوندې خلك دي | اِذۡ دَخَلُوۡا عَلَیۡہِ فَقَالُوۡا سَلٰمًا ؕ قَالَ سَلٰمٌ ۚ قَوۡمٌ مُّنۡکَرُوۡنَ (ۚ۲۵) |
| بیاهغه غلی غوندې خپلې کورنۍ ته ورغی،اوتازه وریت کړی خوسی یې راوړ | فَرَاغَ اِلٰۤی اَہۡلِہٖ فَجَآءَ بِعِجۡلٍ سَمِیۡنٍ (ۙ۲۶) |
| دمیلمنو مخې ته یې وړاندې کړ ورته یې وویل : ایا تاسې یې نه خورئ ؟ | فَقَرَّبَہٗۤ اِلَیۡہِمۡ قَالَ اَلَا تَاۡکُلُوۡنَ (ۚ۲۷) |

| پښتو | عربي |
|---|---|
| بيا هغه پخپل زړه کښي له هغو نه وويريده هغوی ورته وويل مه ويريږه ، او هغه ته يې ديو هوښيار زوی د پيداينښت زيری ورکړ. | فَاَوۡجَسَ مِنۡہُمۡ خِیۡفَۃً ؕ قَالُوۡا لَا تَخَفۡ ؕ وَ بَشَّرُوۡہُ بِغُلٰمٍ عَلِیۡمٍ (۲۸) |
| د دې په اوريدلو د هغه ميرمن ( له خوشحالی نه ) په چيغه وروړاندې شوه او خپل مخ ، يې وروواړوه او ويې ويل( زه ) زړه ( او) شنډه ! | فَاَقۡبَلَتِ امۡرَاَتُہٗ فِیۡ صَرَّۃٍ فَصَکَّتۡ وَجۡہَہَا وَ قَالَتۡ عَجُوۡزٌ عَقِیۡمٌ (۲۹) |
| هغوی وويل : همدغسي ستارب فرمايلي دي ، هغه دحکمت څښتن دی او په هرڅه پوهيږي . | قَالُوۡا کَذٰلِکِ ۙ قَالَ رَبُّکِ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الۡحَکِیۡمُ الۡعَلِیۡمُ (۳۰) |
| ابراهيم ع وويل ، ای دالله استاځو ! تاسي څه وظيفه په مخکښي لرئ ؟ | قَالَ فَمَا خَطۡبُکُمۡ اَیُّہَا الۡمُرۡسَلُوۡنَ (۳۱) |
| هغوی وويل مونږ ديو مجرم قوم خواته ليږل شوي يو | قَالُوۡۤا اِنَّاۤ اُرۡسِلۡنَاۤ اِلٰی قَوۡمٍ مُّجۡرِمِیۡنَ (۳۲) |
| ترڅو چي پرهغو باندې ديخي شوي ختي تيرې و اوړوو | لِنُرۡسِلَ عَلَیۡہِمۡ حِجَارَۃً مِّنۡ طِیۡنٍ (۳۳) |
| چې ستا درب په وړاندې له حد څخه تيري کوونکو لپاره نښه کړای شويدی . | مُّسَوَّمَۃً عِنۡدَ رَبِّکَ لِلۡمُسۡرِفِیۡنَ (۳۴) |
| بيا مونږ هغه ټول خلك چي په هغه سيمه کښي مومنان وو راوويستل | فَاَخۡرَجۡنَا مَنۡ کَانَ فِیۡہَا مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ (۳۵) |
| او هلته مونږ له يوه کورنه پرته دمسلمانانو بل هيڅ کورونه مونده . | فَمَا وَجَدۡنَا فِیۡہَا غَیۡرَ بَیۡتٍ مِّنَ الۡمُسۡلِمِیۡنَ (۳۶) |
| له دې وروسته مونږ هلته فقط يوه نښانه دهغو خلکو لپاره پريښوده چې له دردناك عذاب څخه ويريږی . | وَ تَرَکۡنَا فِیۡہَاۤ اٰیَۃً لِّلَّذِیۡنَ یَخَافُوۡنَ الۡعَذَابَ الۡاَلِیۡمَ (۳۷) |
| او ( ستاسې لپاره نښانه ده ) د موسیٰ (عليه السلام) په قصه کښي . کله چي مونږ هغه له څرګند دليل سره فرعون ته وليږه. | وَ فِیۡ مُوۡسٰۤی اِذۡ اَرۡسَلۡنٰہُ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ بِسُلۡطٰنٍ مُّبِیۡنٍ (۳۸) |
| نوهغه پخپل قوت مغرورتاو شو او ويې ويل داکوډګر دی ياليونی دی. | فَتَوَلّٰی بِرُکۡنِہٖ وَ قَالَ سٰحِرٌ اَوۡ مَجۡنُوۡنٌ (۳۹) |
| په پای کښي مونږ هغه او دهغه لښکرې ونيولي او ټول موپه سمندر کښي وغورځول او هغه پړ ا و ملامت شو . | فَاَخَذۡنٰہُ وَ جُنُوۡدَہٗ فَنَبَذۡنٰہُمۡ فِی الۡیَمِّ وَ ہُوَ مُلِیۡمٌ (۴۰) |
| او ( ستاسې لپاره نښانه ده ) په عاديانو کښي ، کله چي مونږ پرهغو باندې يوداسې سپيره باد وليږه | وَ فِیۡ عَادٍ اِذۡ اَرۡسَلۡنَا عَلَیۡہِمُ الرِّیۡحَ الۡعَقِیۡمَ (۴۱) |
| چي په هرشي باندې به هغه تير شو لکه وروست (هډوکی) به يې کړ. | مَا تَذَرُ مِنۡ شَیۡءٍ اَتَتۡ عَلَیۡہِ اِلَّا جَعَلَتۡہُ کَالرَّمِیۡمِ (۴۲) |
| او (ستاسې لپاره نښانه ده ) په ثمود يانوکښي ، کله چي هغوته ويل شوي وو چي تر يو خاص وخت پورې مزې چرچې وکړئ . | وَ فِیۡ ثَمُوۡدَ اِذۡ قِیۡلَ لَہُمۡ تَمَتَّعُوۡا حَتّٰی حِیۡنٍ (۴۳) |
| خو د دې تنبيه د پاسه هم هغوی د خپل رب دامر نه سرغړاوی وکړ، په پای کښي هغوی وليدل چي يوناڅاپي راغورځيدونکي عذاب او تندر ونيول | فَعَتَوۡا عَنۡ اَمۡرِ رَبِّہِمۡ فَاَخَذَتۡہُمُ الصّٰعِقَۃُ وَ ہُمۡ یَنۡظُرُوۡنَ (۴۴) |
| بيانه په هغو کښي دپاڅيدو وس مجال واو نه هغو خپل ځان ژغورلی شو. | فَمَا اسۡتَطَاعُوۡا مِنۡ قِیَامٍ وَّ مَا کَانُوۡا مُنۡتَصِرِیۡنَ (۴۵) |
| اوله دغوټولونه مخکښي مونږ دنوح ع قوم هلاك کړ ځکه چي هغوی فاسقان وو . | وَ قَوۡمَ نُوۡحٍ مِّنۡ قَبۡلُ ؕ اِنَّہُمۡ کَانُوۡا قَوۡمًا فٰسِقِیۡنَ (۴۶) |

| | |
|---|---|
| اوآسمان مونږ په خپل قدرت سره جوړ کړیدی او مونږ د دې وس لرو. | وَ السَّمَآءَ بَنَيۡنٰهَا بِاَيۡدٍ وَّ اِنَّا لَمُوۡسِعُوۡنَ (۴۷) |
| ځمکه مونږ غوړولې ده او مونږ ډیر ښه غوړوونکي یو . | وَ الۡاَرۡضَ فَرَشۡنٰهَا فَنِعۡمَ الۡمٰهِدُوۡنَ (۴۸) |
| او مونږ د هرشي جوړې پیدا کړيدي ،ښايي چې تاسي له دې نه درس واخلئ . | وَ مِنۡ كُلِّ شَىۡءٍ خَلَقۡنَا زَوۡجَيۡنِ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُوۡنَ (۴۹) |
| نو ورمنډه کړئ دالله خواته ، زه ستاسي لپاره دهغه لخوا ښکاره خبرداری درکوونکی یم . | فَفِرُّوۡۤا اِلَى اللّٰهِ ؕ اِنِّىۡ لَكُمۡ مِّنۡهُ نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ ۚ(۵۰) |
| او له الله سره کوم بل معبود مه نیسئ ، زه ستاسي لپاره دهغه له پلوه ښکاره څرګند خبرداری در کوونکی یم . | وَ لَا تَجۡعَلُوۡا مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ ؕ اِنِّىۡ لَكُمۡ مِّنۡهُ نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ ۚ(۵۱) |
| همدغسي شویدي ، له دوی نه مخکښي قومونوته هم هیڅ پیغمبرداسي ندی راغلی چې هغوی ورته دانه وي ویلي چې داکوډګر دی یالیونی . | كَذٰلِكَ مَاۤ اَتَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ مِّنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا قَالُوۡا سَاحِرٌ اَوۡ مَجۡنُوۡنٌ ۚ(۵۲) |
| ایا دوی ټولو په خپلو مینځو کښي پدې باندې څه تړون کړیدی ؟ نه بلکي دوی ټول سرغړوونکي خلك دي . | اَتَوَاصَوۡا بِهٖ ۚ بَلۡ هُمۡ قَوۡمٌ طَاغُوۡنَ ۚ(۵۳) |
| نو ای پیغمبره ! له دوی نه مخ واړوه ، پرتا هیڅ ملامتی نشته . | فَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ فَمَاۤ اَنۡتَ بِمَلُوۡمٍ (*۵۴) |
| البته نصیحت کوه ، ځکه چې نصیحت د مومنانو لپاره ګټور دئ . | وَّ ذَكِّرۡ فَاِنَّ الذِّكۡرٰى تَنۡفَعُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ (۵۵) |
| ما پیریان او انسانان له دې پرته دبل څه کار لپاره ندي پیدا کړي چې هغوی زما بندګي وکړي . | وَ مَا خَلَقۡتُ الۡجِنَّ وَ الۡاِنۡسَ اِلَّا لِيَعۡبُدُوۡنِ (۵۶) |
| زه له هغونه څه روزي نه غواړم او نه داغواړم چې هغوی ماته خواړه راکړي . | مَاۤ اُرِيۡدُ مِنۡهُمۡ مِّنۡ رِّزۡقٍ وَّ مَاۤ اُرِيۡدُ اَنۡ يُّطۡعِمُوۡنِ (۵۷) |
| الله خو پخپله ښه روزی رسان دئ د ډیر قوت خاوند او زور ور | اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الۡقُوَّةِ الۡمَتِيۡنُ (۵۸) |
| نو کومو کسانوچې ظلم کړیدی دوی ته هم خپله برخه عذاب تیار دئ . لکه چې دهمدوی په څیرخلکوته دهغوی خپله برخه رسیدلی دی ، د دې لپاره دې دوی له مانه په تلوار غوښتنه نکوي | فَاِنَّ لِلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ذَنُوۡبًا مِّثۡلَ ذَنُوۡبِ اَصۡحٰبِهِمۡ فَلَا يَسۡتَعۡجِلُوۡنِ (۵۹) |
| په پای کښي د کافرانو لپاره تباهي ده په هغه ورځ چې دوی له هغې نه ویرول کیږي . | فَوَيۡلٌ لِّلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا مِنۡ يَّوۡمِهِمُ الَّذِىۡ يُوۡعَدُوۡنَ (۶۰) |
| دالله په نوم چې ډیر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| قسم دی پر طور | وَ الطُّوۡرِ ۙ(۱) |
| او په یوداسي پرانستي کتاب باندې | وَ كِتٰبٍ مَّسۡطُوۡرٍ ۙ(۲) |
| چې په نري جلد کښي لیکل شویدی | فِىۡ رَقٍّ مَّنۡشُوۡرٍ ۙ(۳) |
| او په ودان کور باندې . | وَّ الۡبَيۡتِ الۡمَعۡمُوۡرِ ۙ(۴) |
| او په لوړ چت باندې | وَ السَّقۡفِ الۡمَرۡفُوۡعِ ۙ(۵) |
| او په څپانده سمندر باندې | وَ الۡبَحۡرِ الۡمَسۡجُوۡرِ ۙ(۶) |
| چې ستا درب عذاب ارومرو واقع کیدونکی دی . | اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۙ(۷) |
| چې دهغه څوك دفع کوونکی نشته . | مَّا لَهٗ مِنۡ دَافِعٍ ۙ(۸) |
| هغه به په هغه ورځ واقع شي چې اسمان په اوړیدو راوړیدوخو څیرې. | يَّوۡمَ تَمُوۡرُ السَّمَآءُ مَوۡرًا ۙ(۹) |
| او غرونه به الوتي الوتي روان شي . | وَّ تَسِيۡرُ الۡجِبَالُ سَيۡرًا ؕ(۱۰) |
| تباهي ده په هغه ورځ دهغو درواغجن ګڼونکو لپاره | فَوَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ ۙ(۱۱) |

| | |
|---|---|
| چې نن دلوبې په ډول پخپلو دليلونو جوړونو کښې اخته شويدي | الَّذِيْنَ ہُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ (۱۲) |
| په کومه ورځ چې به دوی په ټيلو ټېلو د دوزخ داور خواته بوتلی شي | يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَہَنَّمَ دَعًّا (۱۳) |
| په هغه وخت کښې به دوی ته وويل شي چې داهمغه اور دی چې تاسي ورته د درواغو نسبت کاوه . | ہٰذِہِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِہَا تُكَذِّبُوْنَ (۱۴) |
| اوس وښايئ داکودې دي اوکه تاسي بينائي له لاسه ورکړيده ؟ | اَفَسِحْرٌ ہٰذَاۤ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ (۱۵) |
| ځئ اوس پده کښې دننه وسوزئ . که تاسي صبر وکړئ اوکه يې ونکړئ ستاسو لپاره يوشانته ده تاسي ته همغسې جزا درکول کيږي لکه چې تاسي عمل کاوه . | اِصْلَوْہَا فَاصْبِرُوْۤا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ؕ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۶) |
| پرهيزګاران به هلته په باغونو او نعمتونو کښې وي. | اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّ نَعِيْمٍ (۱۷) |
| له هغوشيانو څخه به دخوندونو اخيستونکي وي چې دهغو رب يې هغوته ورکوي او دهغو رب به هغوی د دوزخ له عذابه وژغوري . | فٰكِہِيْنَ بِمَاۤ اٰتٰہُمْ رَبُّہُمْ ۚ وَ وَقٰہُمْ رَبُّہُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ (۱۸) |
| خورئ او څښئ په خوند سره دخپلو هغو ( هغوته به وويل شي ) . عملونو په بدل کښې چې تاسي کول | كُلُوْا وَ اشْرَبُوْا ہَنِيْٓـًٔا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۹) |
| هغوی به مخامخ په غوړيد ليو تختونو باندې تکيه لګولې ناست وي او مونږ به ښاسته سترګې لرونکې حورې هغوی ته واده کړو . | مُتَّكِئِيْنَ عَلٰى سُرُرٍ مَّصْفُوْفَۃٍ ۚ وَ زَوَّجْنٰہُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ (۲۰) |
| کومو کسانو چې ايمان راوړيدی او دهغو اولادونه هم دايمان په کومه درجه کښې دهغوی په نقش قدم روان شويدي دهغوی هغه اولادونه به هم مونږ (په جنت کښې ) له هغو سره يوځای کړو او دهغو په عملونو کښې به هغوی ته څه خساره و نه رسوو . هرڅوک د خپل کسب په بدل کښې ګرودی . | وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ اتَّبَعَتْہُمْ ذُرِّيَّتُہُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِہِمْ ذُرِّيَّتَہُمْ وَ مَاۤ اَلَتْنٰہُمْ مِّنْ عَمَلِہِمْ مِّنْ شَيْءٍ ؕ كُلُّ امْرِیًٔۢ بِمَا كَسَبَ رَہِيْنٌ (۲۱) |
| مونږ به هغوته هر راز ميوه او غوښه ، هرڅه چې دهغو زړه وغواړي په ښه شان ورکوو . | وَ اَمْدَدْنٰہُمْ بِفَاكِہَۃٍ وَّ لَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَہُوْنَ (۲۲) |
| هلته به هغوی ( دشرابو ) پيالی يوله بله ژر ژراخلي چې نه به پکښې بابيزه خبرې کول وي نه بدعملي . | يَتَنَازَعُوْنَ فِيْہَا كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْہَا وَ لَا تَاْثِيْمٌ (۲۳) |
| او دهغو په خدمت کښې به هغه هلکان په منډه منډه اوړې را اړوي چې دهغو لپاره به خاص وي ، داسي ښايسته لکه پټې ساتل شوې مرغلرې . | وَ يَطُوْفُ عَلَيْہِمْ غِلْمَانٌ لَّہُمْ كَاَنَّہُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُوْنٌ (۲۴) |
| دوی به مخامخ پخپلو مينځوکښې يو له بله ( په دنيا کښې دتير شويو حالاتو په هکله ) پوښتنې کوي . | وَ اَقْبَلَ بَعْضُہُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ (۲۵) |
| دابه (هم) ووايي چې مونږ پخواله خپلې کورنی سره په ويره کښې ژوند تيروه. | قَالُوْۤا اِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِيْۤ اَہْلِنَا مُشْفِقِيْنَ (۲۶) |
| په پای کښې الله پرمونږ فضل وکړ او مونږ يې د سوځوونکې بادله عذاب نه وژغورلو | فَمَنَّ اللّٰہُ عَلَيْنَا وَ وَقٰىنَا عَذَابَ السَّمُوْمِ (۲۷) |
| مونږ په مخکښې ژوندانه کښې له همغه (الله) نه دعاوې غوښتلې ، هغه په رېښتيا سره ډېر لوی احسان کوونکی او رحيم دی . | اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوْہُ ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الْبَرُّ الرَّحِيْمُ (۲۸) |
| نوای پيغمبره ! ته ورته نصيحت کوه ، دخپل رب په فضل سره نه خوته کاهن يې نه ليونی . | فَذَكِّرْ فَمَاۤ اَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاہِنٍ وَّ لَا مَجْنُوْنٍ (۲۹) |

ایا دغه خلك وايي چي داسږی شاعر دی چي مونږ د ده په حق کښي د (بدو) ورځو راتلوته سترګي په لاره یو ؟

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيۡبَ الۡمَنُوۡنِ (۳۰)

دوی ته ووایه ښه ده انتظار وکړئ زه هم له تاسي سره انتظار کوونکی یم .

قُلۡ تَرَبَّصُوۡا فَاِنِّىۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُتَرَبِّصِيۡنَ (۳۱)

ایا د دوی عقل دوی ته دهمدغسي ( غلطو ) خبروکولو امر کوي ؟ اوکه په حقیقت کښي دوی په دښمنۍ کښي له حده تیر شوي خلك دي ؟

اَمۡ تَاۡمُرُهُمۡ اَحۡلَامُهُمۡ بِهٰذَاۤ اَمۡ هُمۡ قَوۡمٌ طَاغُوۡنَ (۳۲)

ایا دوی وایي چي دغه سړي داقران پخپله تنصیف کړیدی ؟ اصلي خبره داده چي دوی ایمان راوړل نه غواړي .

اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ تَقَوَّلَهٗ‌ ۚ بَلْ لَّا يُؤۡمِنُوۡنَ (۳۳)

که دوی پخپله دغه وینا کښي رښتوني وي نو همدغسي یو کلام دې جوړ کړي او رایي دې وړې .

فَلۡيَاۡتُوۡا بِحَدِيۡثٍ مِّثۡلِهٖۤ اِنۡ كَانُوۡا صٰدِقِيۡنَ (۳۴)

ایا دوی له کوم خالق نه پرته پخپله پیدا شویدي ؟ یا پخپله دځپل ځان هستوونکي دي ؟

اَمۡ خُلِقُوۡا مِنۡ غَيۡرِ شَىۡءٍ اَمۡ هُمُ الۡخٰلِقُوۡنَ (۳۵)

یا اسمانونه او ځمکه دوی پیدا کړیدي؟ اصلي خبره داده چي دوی باور نلري .

اَمۡ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ‌ ۚ بَلْ لَّا يُوۡقِنُوۡنَ (۳۶)

ا یا ستا درب خزاني د دوی په ولکه کښي دي ؟ یاپر هغو باندې دهمدوی حکم چلیږي ؟

اَمۡ عِنۡدَهُمۡ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمۡ هُمُ الۡمُصَۜيۡطِرُوۡنَ (۳۷)

ایاله دوی سره کومه زینه شته چي پر هغي باندې په ختلوسره دوی پاسنی نړۍ ته غوږ نیسي ؟ نوله دوی نه چي کوم چاځه اوریدلي وي هغه دې کوم ښکاره دلیل راوړي .

اَمۡ لَهُمۡ سُلَّمٌ يَّسۡتَمِعُوۡنَ فِيۡهِ‌ ۚ فَلۡيَاۡتِ مُسۡتَمِعُهُمۡ بِسُلۡطٰنٍ مُّبِيۡنٍ (۳۸)

ایا دالله لپاره لوڼي دي اوستاسي لپاره زامن دي .

اَمۡ لَهُ الۡبَنٰتُ وَ لَـكُمُ الۡبَنُوۡنَ (۳۹)

ایا ته له دوی نه څه اجر غواړې چي دوی په زوره دتاوان تر درانده پیټي لاندې راوستل کیږي ؟

اَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ اَجۡرًا فَهُمۡ مِّنۡ مَّغۡرَمٍ مُّثۡقَلُوۡنَ (۴۰)

ایا له دوی سره دغیبي حقائقو علم دی چي دهغه پر اساس دوی لیکي .

اَمۡ عِنۡدَهُمُ الۡغَيۡبُ فَهُمۡ يَكۡتُبُوۡنَ (۴۱)

ایا دوی غواړي کومه دسیسه په کار واچوي ؟ ( که داخبره وی ) نو پر همدې کافرانو به د دوی دسیسه سرچپه راواوړي

اَمۡ يُرِيۡدُوۡنَ كَيۡدًا‌ ؕ فَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا هُمُ الۡمَكِيۡدُوۡنَ (۴۲)

ایا له الله نه پرته دوی کوم بل معبود لري ؟ الله له هغه شرك نه پاك دی چي دغه خلك یې کوي .

اَمۡ لَهُمۡ اِلٰهٌ غَيۡرُ اللّٰهِ‌ ؕ سُبۡحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ (۴۳)

دوی که داسمان ټوټې هم غورځیدونکي ویني نو و به وایي دا وریځي دي چي سپارپه سپار راروانې دي .

وَاِنۡ يَّرَوۡا كِسۡفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا يَّقُوۡلُوۡا سَحَابٌ مَّرۡكُوۡمٌ (۴۴)

نو ای پیغمبره ! دوی پر خپل حال پریږده تردې پورې چي دوی خپلې هغي ورځې ته ورشي چي په هغه کښي به دوی په تندر رالوېدو راوپرځول شي ،

فَذَرۡهُمۡ حَتّٰى يُلٰقُوۡا يَوۡمَهُمُ الَّذِىۡ فِيۡهِ يُصۡعَقُوۡنَ (۴۵)

په هغي ورځ چي نه به د دوی خپله کومه دسیسه دوی ته څه په درد وخوري نه به څوك د دوی مرستي ته راشي .

يَوۡمَ لَا يُغۡنِىۡ عَنۡهُمۡ كَيۡدُهُمۡ شَيۡـًٔا وَّلَا هُمۡ يُنۡصَرُوۡنَ (۴۶)

او دهغي نیټي دعذاب له راتک نه مخکښي هم دظالمانو لپاره یوبل عذاب دی ، خوله دوی نه زیاتره نه پوهیږي .

وَاِنَّ لِلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا عَذَابًا دُوۡنَ ذٰلِكَ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ (۴۷)

| | |
|---|---|
| ای پیغمبره ! دخپل رب دفیصلي تر راتګه صبر وکړه ، ته زمونږ تر نظر لاندې يې . ته چې کله پاڅیږې نو دخپل رب دثنا ستاینې سره د هغه په پاکی سره یادونه کوه، | وَ اصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَ سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ (۴۸) |
| دشپې هم دهغه پاکې بیانوه اوکله چې د شپې په پای کې ستورې راګرځي په هغه وخت کښې هم . | وَ مِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَ اِدْبَارَ النُّجُوْمِ (۴۹) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| قسم دی په ستوری باندې کله چې هغه پرېووت ، | وَ النَّجْمِ اِذَا هَوٰى (۱) |
| ستاسې ملګری نه بېلارې شوېدی او نه یې په سرغړاوې سره سمه لاره پرې ایښې ده | مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَ مَا غَوٰى (۲) |
| هغه له خپل نفسي خواهش څخه نه غږیږی ، | وَ مَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى (۳) |
| داخو یوه وحې ده چې پرهغه نازلیږې . | اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى (۴) |
| هغه ته برلاسی ځواکمن ښوونه کوی | عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى (۵) |
| چې د ډېرجسماني او روحاني قوت خاوند دی هغه مخا مخ راغی ودرېده | ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى (۶) |
| کله چې هغه پرپاسنی لمر ختیزه څنډه باندې و، | وَ هُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى (۷) |
| بیا نژدی راغی او پاس (پرې نژدې ) راکوز شو ، | ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى (۸) |
| تردې پورې چې د دوه ولیندیو برابره یاله دې نه څه کمه فاصله پاتې شوه، | فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى (۹) |
| هله نو دالله بنده ته یې وحې ورسوله هره وحې چې هغه ته رسیدونکې وه | فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى (۱۰) |
| سترګو چې څه ولیدل زړه په هغه کښې درواغ ګډ نه کړل . | مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى (۱۱) |
| نوایاتاسې پرهغه شې باندې له هغه سره شخړه کوئ چې هغه یې په سترګووینی؟ | اَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى (۱۲) |
| او په باورې ډول یوځل بیایې هغه ولیده | وَ لَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى (۱۳) |
| له سدرۃ المنتهٰی سره | عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى (۱۴) |
| چې په خواکښې یې جنت الماوی دی . | عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَاْوٰى (۱۵) |
| په هغه وخت کښې پرسدره باندې غوړېدل هغه څه چې غوړېدل . | اِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى (۱۶) |
| نظر نه تت شو نه له حده تېر شو | مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَ مَا طَغٰى (۱۷) |
| او هغه دخپل رب لویې لویې نښانې ولیدلې . | لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى (۱۸) |
| اوس ووایئ ، تاسې کله څه غور کړیدی ؟ د دغه لات او ددغه عُزیٰ | اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَ الْعُزّٰى (۱۹) |
| او د دغه بل دریم بت منات پر حقیقت باندې | وَ مَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى (۲۰) |
| ایا زامن ستاسې لپاره دي او لونې دخدای لپاره ؟ | اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَ لَهُ الْاُنْثٰى (۲۱) |
| داخو ډېر ناحقه دېګی وېش شو ! | تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى (۲۲) |

په اصل کښې داهېڅ ندي مګر فقط څونومونه چې تاسې اوستاسې پلارنيکه ايښې دي . الله د دوی لپاره کوم سند ندی نازل کړی . حقيقت دادی چې دغه خلك دتش وهم او ګومان پيروی کوي او دنفسې غوښتنو مريدان ګرځيدلي دي پداسې حال کښې چې دهغو درب لخوا هغوته هدايت راغلی دی .

اِنۡ هِىَ اِلَّاۤ اَسۡمَآءٌ سَمَّيۡتُمُوۡهَاۤ اَنۡتُمۡ وَ اٰبَآؤُكُمۡ مَّاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنۡ سُلۡطٰنٍ‌ؕ اِنۡ يَّتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ وَ مَا تَهۡوَى الۡاَنۡفُسُ‌ۚ وَ لَقَدۡ جَآءَهُمۡ مِّنۡ رَّبِّهِمُ الۡهُدٰىؕ (۲۳)

ايا انسان چې هر څه وغواړي دهغه لپاره همغه حق دي ؟

اَمۡ لِلۡاِنۡسَانِ مَا تَمَنّٰى‌ۖ (۲۴)

د دنيا او اخرت مالك خو يوازې الله دی .

فَلِلّٰهِ الۡاٰخِرَةُ وَ الۡاُوۡلٰى (۲۵)

په آسمانونو کښې چې څومره پرښتې موجودې دی ، دهغو شفاعت هېڅ په کار نشی راتلای ترڅو پورې چې الله ديوداسې چاپه حق کښې دهغه اجازه ورنکړي د چالپاره چې هغه څه عريضه اوربدل وغواړي او هغه ته يې خوښه شي

وَ كَمۡ مِّنۡ مَّلَكٍ فِى السَّمٰوٰتِ لَا تُغۡنِىۡ شَفَاعَتُهُمۡ شَيۡـًٔا اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِ اَنۡ يَّاۡذَنَ اللّٰهُ لِمَنۡ يَّشَآءُ وَ يَرۡضٰى (۲۶)

خو کوم کسان چې اخرت نه مني هغوی په پرښتو باندې دښځينه معبودانو نومونه ږ دي

اِنَّ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوۡنَ الۡمَلٰۤـئِكَةَ تَسۡمِيَةَ الۡاُنۡثٰى (۲۷)

پداسې حال کښې چې له دوی سره د دغې معاملې هېڅ علم نشته . دوی تش دګومان پيروی کوي ، او ګومان د حق پځای هېڅ په کار نشي راتلای .

وَ مَا لَهُمۡ بِهٖ مِنۡ عِلۡمٍ‌ؕ اِنۡ يَّتَّبِعُوۡنَ اِلَّا الظَّنَّ‌ۚ وَ اِنَّ الظَّنَّ لَا يُغۡنِىۡ مِنَ الۡحَقِّ شَيۡـًٔا‌ۚ (۲۸)

نو ای پېغمبره ! څوك چې زمونږ له ذکر نه مخ اړوي او د دنيا له ژوند نه پرته يې بل هدف نشته هغه پر خپل حال پرېږده

فَاَعۡرِضۡ عَنۡ مَّنۡ تَوَلّٰى ۙ عَنۡ ذِكۡرِنَا وَ لَمۡ يُرِدۡ اِلَّا الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا ؕ (۲۹)

د دغو خلکو د علم حد فقط همدغه دی . پدې خبره ستا رب ښه پوهيږي چې دهغه له لارې نه څوك ګمره شويدي او څوك پرسمه لاره دي ،

ذٰلِكَ مَبۡلَـغُهُمۡ مِّنَ الۡعِلۡمِ‌ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعۡلَمُ بِمَنۡ ضَلَّ عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ۙ وَ هُوَ اَعۡلَمُ بِمَنِ اهۡتَدٰى (۳۰)

او اسمانونو او ځمکې مالك همدا الله دی ترڅو الله بدې کوونکو ته دهغو دعمل بدله ورکړي او هغو کسانو ته ښه مکافات ورکړي چې هغوی ښه رويه غوره کړېده

وَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِۙ لِيَجۡزِىَ الَّذِيۡنَ اَسَآءُوۡا بِمَا عَمِلُوۡا وَ يَجۡزِىَ الَّذِيۡنَ اَحۡسَنُوۡا بِالۡحُسۡنٰى‌ۚ (۳۱)

هغه کسان چې له لويو لويو ګناهونو او ښکاره څرګند و ناوړو افعالو څخه ډډه کوي ، مګر داچې څه قصور ترېنه صادر شي . پدې کښې شك نشته چې ستا درب دبښنې لمن ډېره پراخه ده . هغه پرتاسې له هغه وخت نه ښه پوهېږی چې کله هغه له ځمکې نه تاسې پيدا کړئ او کله چې تاسې لادخپلو ميندو په ګېډوکښې اومه ماشومان ( جنين ) وئ . نو دخپل نفس د پاکی دعوی مکوئ ، همغه ډېر ښه پوهيږي چې ريښتينی پرهېزګار څوك دی

اَلَّذِيۡنَ يَجۡتَنِبُوۡنَ كَبٰٓـئِرَ الۡاِثۡمِ وَ الۡفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ‌ؕ اِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الۡمَغۡفِرَةِ‌ؕ هُوَ اَعۡلَمُ بِكُمۡ اِذۡ اَنۡشَاَكُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ وَ اِذۡ اَنۡتُمۡ اَجِنَّةٌ فِىۡ بُطُوۡنِ اُمَّهٰتِكُمۡ‌ۚ فَلَا تُزَكُّوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ‌ؕ هُوَ اَعۡلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى (۳۲)

ای پېغمبره ! ايا تا هغه څوك وليده چې د خدای له لارې نه واوښت

اَفَرَءَيۡتَ الَّذِىۡ تَوَلّٰى ۙ (۳۳)

او په لږ څه ورکړه نور منع شو .

وَ اَعۡطٰى قَلِيۡلًا وَّ اَكۡدٰى (۳۴)

ايا له هغه سره دغيبو علم دی چې هغه حقيقت وينی ؟

اَعِنۡدَهٗ عِلۡمُ الۡغَيۡبِ فَهُوَ يَرٰى (۳۵)

ايا هغه ته دهغو خبر وڅه خبرندی رسېدلی چې دموسی په صحيفو کې

اَمۡ لَمۡ يُنَبَّاۡ بِمَا فِىۡ صُحُفِ مُوۡسٰى ۙ (۳۶)

| | |
|---|---|
| او دهغه ابراهیم په صحیفو کښې ویل شویدی چې دوفاحق یې اداکړ؟ | وَ اِبْرٰہِیْمَ الَّذِیْ وَفّٰٓی (۳۷) |
| داچې هیڅ پېټی اخیستونکی به دبل پېټی وانخلی ، | اَلَّا تَزِرُ وَازِرَۃٌ وِّزْرَ اُخْرٰی (۳۸) |
| او داچې دانسان لپاره هیڅ نشته مګر هغه چې هغه یې سعي کړېده . | وَ اَنْ لَّیْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰی (۳۹) |
| اوداچې دهغه سعي به ډېره ژر ولیدله شي | وَ اَنَّ سَعْیَہٗ سَوْفَ یُرٰی (۴۰) |
| او دهغې پوره بدله به هغه ته ورکړه شي ، | ثُمَّ یُجْزٰىہُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰی (۴۱) |
| او داچې په پای کښې ورتګ ستا همدا رب ته دی ، | وَ اَنَّ اِلٰی رَبِّکَ الْمُنْتَہٰی (۴۲) |
| او داچې همغه وخندول او همغه وژړول ، | وَ اَنَّہٗ ہُوَ اَضْحَکَ وَ اَبْکٰی (۴۳) |
| او داچې همغه مرګ ورکړ او همغه ژوند وبښه ، | وَ اَنَّہٗ ہُوَ اَمَاتَ وَ اَحْیَا (۴۴) |
| او داچې همغه دنراو ښځې جوړه پیدا کړه ، | وَ اَنَّہٗ خَلَقَ الزَّوْجَیْنِ الذَّکَرَ وَ الْاُنْثٰی (۴۵) |
| له یو څاڅکي نه کله چې هغه څڅول کېږی ، | مِنْ نُّطْفَۃٍ اِذَا تُمْنٰی (۴۶) |
| او داچې بیا ژوندي کول هم دهمغه پر ذمه دی ، | وَ اَنَّ عَلَیْہِ النَّشْاَۃَ الْاُخْرٰی (۴۷) |
| او داچې همغه بډای کړ او شتمنی یې ورکړه ، | وَ اَنَّہٗ ہُوَ اَغْنٰی وَ اَقْنٰی (۴۸) |
| او داچې همغه د شعرىٰ ( روښانه ستوري) رب دی ، | وَ اَنَّہٗ ہُوَ رَبُّ الشِّعْرٰی (۴۹) |
| او داچې همغه لومړنی عادهلاك کړ، | وَ اَنَّہٗۤ اَہْلَکَ عَادَاۨ الْاُوْلٰی (۵۰) |
| اوثمودیې داسې له مینځه یو وړچې له هغونه یې هیڅوك باقي پرې نښوده | وَ ثَمُوْدَاۡ فَمَاۤ اَبْقٰی (۵۱) |
| او له هغو نه مخکښې یې د نوح قوم تباه کړ ځکه چې همغوی ډېر سخت ظالمان او سرغړوونکی خلك وو ، | وَ قَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ؕ اِنَّہُمْ کَانُوْا ہُمْ اَظْلَمَ وَ اَطْغٰی (۵۲) |
| اوپر مخې راغورځېدونکي کلي یې پورته کړي راوغورځول ، | وَ الْمُؤْتَفِکَۃَ اَہْوٰی (۵۳) |
| بیا یې پرهغو باندې هغه څه خواره کړل چې (تاسې پوهېږئ چې) څه یې خواره کړل . | فَغَشّٰىہَا مَا غَشّٰی (۵۴) |
| نو ای مخاطبه ، دخپل رب په کوموکومو نعمتونو کښې به ته شك وکړې ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکَ تَتَمَارٰی (۵۵) |
| دایوه تنبیه ده له مخکښې راغلیو اخطارونوڅخه | ہٰذَا نَذِیْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰی (۵۶) |
| راتلونکی ساعت رانژدې شویدی ، | اَزِفَتِ الْاٰزِفَۃُ (۵۷) |
| له الله نه پرته څوك دهغه ایسته کوونکی نشته . | لَیْسَ لَہَا مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ کَاشِفَۃٌ (۵۸) |
| نو ایا همدا هغه خبرې دي چې تاسې پرې تعجب ښکاره کوئ ؟ | اَفَمِنْ ہٰذَا الْحَدِیْثِ تَعْجَبُوْنَ (۵۹) |
| خاندئ او ژاړئ نه ؟ | وَ تَضْحَکُوْنَ وَ لَا تَبْکُوْنَ (۶۰) |
| او په سندرو غړولو سره دهغو مخه نیسئ ؟ | وَ اَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ (۶۱) |
| سرښکته کړئ دالله په وړاندې او بندګي په ځای راوړئ . | فَاسْجُدُوْا لِلّٰہِ وَ اعْبُدُوْا (۶۲) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ |
| دقیامت ساعت رانژدې شو او سپوږمی وچاودله . | اِقْتَرَبَتِ السَّاعَۃُ وَ انْشَقَّ الْقَمَرُ (۱) |
| خو د دغو خلکو حال دادی چې که هره نښانه ووینې مخ اړوي او وائي داخو رواني کوډې دي | وَ اِنْ یَّرَوْا اٰیَۃً یُّعْرِضُوْا وَ یَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ (۲) |
| دوی ( هغه ته هم ) د درواغو نسبت وکړ او دخپلو نفسي غوښتنو پیروي یې وکړه هره معامله په پای کښې یوه عاقبت ته رسېدونکې ده . | وَ کَذَّبُوْا وَ اتَّبَعُوْۤا اَہْوَآءَہُمْ وَ کُلُّ اَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ (۳) |

| | |
|---|---|
| دغو خلکو ته ، دپخوانیو قومونو ، هغه حالات مخې ته راغلي دي چې په هغو کښې له سر غړاوي نه درامنع کېدولپاره دعبرت پوره درس دی | وَ لَقَدْ جَآءَہُمْ مِّنَ الْاَنْۢبَآءِ مَا فِیْہِ مُزْدَجَرٌ ۙ(۴) |
| او داسې حکمت چې د نصیحت هدف په بشپړه درجه تر سره کوي . خو پردوی باندې تنبیهات اغېزه نکوي . | حِکْمَۃٌۢ بَالِغَۃٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ۙ(۵) |
| نو ای پېغمبره ! له دوی نه مخ واړوه . په کومه ورځ چې بلونکی دیو سخت ناوړه نا اشنا شي خواته بلنه ورکوي . | فَتَوَلَّ عَنْہُمْ ۘ یَوْمَ یَدْعُ الدَّاعِ اِلٰی شَیْءٍ نُّکُرٍ ۙ(۶) |
| خلك به له خوو هیبت وهلو سترګو سره له خپلو قبرونو نه پداسې شان راووځي چې ګواکې خواره شوي ملخان دي . | خُشَّعًا اَبْصَارُہُمْ یَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ کَاَنَّہُمْ جَرَادٌ مُّنْتَشِرٌ ۙ(۷) |
| دبلونکی خواته به منډې وهونکې وي او همغه منکران ( چې په دنیا کښې یې ترینه انکار کاوه ) په هغه وخت کښې به ووائي داورځ خوډېره سخته ده . | مُّہْطِعِیْنَ اِلَی الدَّاعِ ؕ یَقُوْلُ الْکٰفِرُوْنَ ہٰذَا یَوْمٌ عَسِرٌ (۸) |
| له دوی نه مخکښې د نوح قوم د درواغونسبت کړیدی. هغو زمونږ بنده درواغجن وګاڼه او ویې ویل چې دی لیونی دی ، او هغه ته په ناوړه توګه توربرېښ وشو . | کَذَّبَتْ قَبْلَہُمْ قَوْمُ نُوْحٍ فَکَذَّبُوْا عَبْدَنَا وَ قَالُوْا مَجْنُوْنٌ وَّ ازْدُجِرَ (۹) |
| په پای کښې هغه خپل رب ته غږوکړ چې زه مغلوب شوم او اوس ته له دوی نه غچ واخله . | فَدَعَا رَبَّہٗۤ اَنِّیْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ (۱۰) |
| هله نو مونږ په جړی اوربښت سره داسمان دروازې پرانستلې | فَفَتَحْنَاۤ اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْہَمِرٍ (۱۱) |
| او ځمکه مو څیری کړه په چینو موتبدیله کړه ، او داټولې اوبه دهغه کار ترسره کولو لپاره سره یوځای شوې چې په تقدیر کښې ښکل شوی و ، | وَّ فَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُیُوْنًا فَالْتَقَی الْمَآءُ عَلٰۤی اَمْرٍ قَدْ قُدِرَ (۱۲) |
| او مونږ نوح دپلنو تختو او پر بڼو مېخونو لرونکې یوی ( بېړۍ) باندې سپورکړ | وَ حَمَلْنٰہُ عَلٰی ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّ دُسُرٍ (۱۳) |
| چې زمونږ تر نظر لاندې چلېدله . داوه دهغه چا پخاطر بدله چې د هغه بې قدري شوې وه . | تَجْرِیْ بِاَعْیُنِنَا ۚ جَزَآءً لِّمَنْ کَانَ کُفِرَ (۱۴) |
| هغه بېړۍ مونږ دیوې نښانې په توګه پرېښودله ، نو ایا څوك شته نصېحت منونکی ؟ | وَ لَقَدْ تَّرَکْنٰہَاۤ اٰیَۃً فَہَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ (۱۵) |
| وګورئ ، څنګه و زما عذاب او څنګه وو زما اخطارونه ، | فَکَیْفَ کَانَ عَذَابِیْ وَ نُذُرِ (۱۶) |
| او مونږ دا قران د نصیحت لپاره اسانه وسیله ګرځولې ده ، نو ایا شته څوك نصیحت منونکی ؟ | وَ لَقَدْ یَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّکْرِ فَہَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ (۱۷) |
| عادیانو د درواغجن نسبت وکړ ، نو وګورئ چې څنګه و زما عذاب او څنګه وو زما اخطارونه . | کَذَّبَتْ عَادٌ فَکَیْفَ کَانَ عَذَابِیْ وَ نُذُرِ (۱۸) |
| مونږددوامدارشومتوب لرونکې یوه ورځ کښې سخت طوفانی بادپر هغو ولېږه | اِنَّاۤ اَرْسَلْنَا عَلَیْہِمْ رِیْحًا صَرْصَرًا فِیْ یَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ (۱۹) |
| چې خلك یې پورته کول پداسې شان یې غورځول لکه چې هغوی له جرړو راوېستل شوې دخرما و ډډونه وي . | تَنْزِعُ النَّاسَ ۙ کَاَنَّہُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ (۲۰) |
| نووګورئ چې څنګه و زما عذاب او څنګه وو زما اخطارونه | فَکَیْفَ کَانَ عَذَابِیْ وَ نُذُرِ (۲۱) |
| او مونږ دغه قرآن د نصیحت لپاره اسانه وسیله ګرځولې ده ، نو ایا شته څوك نصیحت منونکی ؟ | وَ لَقَدْ یَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّکْرِ فَہَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ (۲۲) |
| ثمودیانو اخطارونه درواغجن وګڼل | کَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ (۲۳) |

او ويې ويل (( يوازې يوسړى چې له همدا مونږ څخه دى ايا مونږ اوس په هغه پسې ولاړ شو ؟ که مونږ د ده پيروى ومنو نو د دې معنابه داوي چې مونږ گمراه شوي يو او مونږ پوهه له لاسه ورکړې ده .

فَقَالُوْٓا اَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهٗٓ ۙ اِنَّآ اِذًا لَّفِيْ ضَلٰلٍ وَّ سُعُرٍ (۲۴)

ايا زمونږ په مينځ کښې فقط همدايو سړى وچې پرهغه باندې دخداى ذکر نازل کړاى شو ؟ نه بلکې دى بې حده درواغجن او پخپل ځان تېروتلى دى ،

ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْۢ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ اَشِرٌ (۲۵)

مونږ خپل پېغمبرته وويل ) (( سبا دوى ته معلوميږي چې څوك ډېر درواغجن او پخپل ځان تېروتلي دي ،

سَيَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْاَشِرُ (۲۶)

مونږ د دوى لپاره د فتني په توگه او ښه لېږو او اوس په صبر سره گوره چې د دوى څه عاقبت کيږي

اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَ اصْطَبِرْ (۲۷)

دوى په خبرولو متوجه وکړه چې اوبه به د دوى او داوښې تر مينځه وېشلې وي او هر يو به دخپل وار په ورځ او بوته راځي

وَ نَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ ۚ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ (۲۸)

په پاى کښې هغوى خپل سړي ته غږ وکړ او هغه دغه کار پرغاړه واخېست او اوښه يې ووژله ،

فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ (۲۹)

نو وگوره چې څنگه وْ زما عذاب او څنگه وو زما اخطارونه

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَ نُذُرِ (۳۰)

مونږ پرهغو باندې فقط ايکى يوه چيغه راوستله او هغوى دشپولې جوړوونکي دپامال خادو شيول غوندې وچ مات شول

اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ (۳۱)

مونږ دغه قران دنصيحت لپاره اسانه وسيله گرځولې ده ، نوشته څوك نصيحت منونکى ؟

وَ لَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ (۳۲)

دلوط قوم وېرول درواغجن وګڼل

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطٍۭ بِالنُّذُرِ (۳۳)

او مونږ پرهغو باندې تيږي اوروونکى باد ولېږه . يوازې دلوط کورنى له هغه نه خوندي پاتې شوه . مونږ پخپل فضل سره دشپې په وروستى سهارته نژدې برخه کښې هغوى وژغورل .

اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا اِلَّآ اٰلَ لُوْطٍ ؕ نَجَّيْنٰهُمْ بِسَحَرٍ (۳۴)

دغه مکافات مونږ له خپل لوري هر هغه چاته ورکوو چې شکر ويستونکى وي

نِّعْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ مَنْ شَكَرَ (۳۵)

لوط دخپل قوم خلك زمونږ له نيوني څخه ووېرول خو هغوى زمونږ ټولو اخطار ونوته دشك په نظر وکتل په خبرويې تيرکړل .

وَ لَقَدْ اَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ (۳۶)

بيا دوى دهغه د مېلمنوله ساتنې څخه دهغه د منع کولو اوځان ته راغوښتلو هڅه وکړه . په پاى کښې مونږ د دوى سترگې ړندې کړې چې وڅکئ اوس زما عذاب او زما داخطارونو خوند .

وَ لَقَدْ رَاوَدُوْهُ عَنْ ضَيْفِهٖ فَطَمَسْنَآ اَعْيُنَهُمْ فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَ نُذُرِ (۳۷)

په سهار سباکښې يو کلك عذاب هغوى ونيول .

وَ لَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ (۳۸)

وڅکئ اوس زما د عذاب او زما داخطارونو خوند.

فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَ نُذُرِ (۳۹)

مونږ دغه قرآن د نصيحت لپاره اسانه وسيله گرځولې ده نو اياشته څوك نصيحت منونکى ؟

وَ لَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ (۴۰)

او ال فرعون ته هم اخطارونه راغلى وو

وَ لَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ (۴۱)

خو هغوى زمونږ ټولې نښانې درواغ وګڼلې . په پاى کښې مونږ هغوى داسې ونيول لکه ديو مقتدر برلاسى دنيونې په څېر.

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ اَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ (۴۲)

| | |
|---|---|
| ایا ستاسي کافران له هغو خلکو نه بهتره دي ؟ ایا په اسماني کتابونو کښي ستاسي لپاره څه معافي لیکل شوېده ؟ | اَكُفَّارُكُمۡ خَيۡرٌ مِّنۡ اُولٰٓئِكُمۡ اَمۡ لَكُمۡ بَرَآءَةٌ فِى الزُّبُرِ (۴۳) |
| یا دوی داوائي چي مونږ محکمه ډله یو ، خپل ځانونه به وژغورو ؟ | اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ نَحۡنُ جَمِيۡعٌ مُّنۡتَصِرٌ (۴۴) |
| ډېر ژر به دغې ډلي ته ماتي ورکړه شي او دوی ټول به شاړوونکي تښتېدونکي ولیدل شي . | سَيُهۡزَمُ الۡجَمۡعُ وَ يُوَلُّوۡنَ الدُّبُرَ (۴۵) |
| بلکي د دوی دفیصلي لپاره داصلي وعدي نېټه خو قیامت دی او هغه لوی آفت او ډېر سخت ساعت دی | بَلِ السَّاعَةُ مَوۡعِدُهُمۡ وَ السَّاعَةُ اَدۡهٰى وَ اَمَرُّ (۴۶) |
| دغه مجرمان په حقیقت کښي په غلط فهمی کښي اخته دي او له عقله پلي شویدي | اِنَّ الۡمُجۡرِمِيۡنَ فِىۡ ضَلٰلٍ وَّ سُعُرٍ (۴۷) |
| په کومه ورځ چي دوی پرمخي په اورکښي وغورځول شي په هغه ورځ به دوی ته وویل شي چي اوس وڅکئ د دوزخ د تاوخوند . | يَوۡمَ يُسۡحَبُوۡنَ فِى النَّارِ عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ ؕ ذُوۡقُوۡا مَسَّ سَقَرَ (۴۸) |
| مونږ هرڅه له یو تقدیر سره پیدا کړي دي ، | اِنَّا كُلَّ شَىۡءٍ خَلَقۡنٰهُ بِقَدَرٍ (۴۹) |
| او زمونږ حکم فقط ایکی یو حکم وي او هغه دسترګي په رپېدو عملي کيږي | وَ مَاۤ اَمۡرُنَاۤ اِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمۡحٍۭ بِالۡبَصَرِ (۵۰) |
| مونږ تاسی غوندې ډېر داسي هلاك كړيدي ، نوشته څوك نصيحت منونکی؟ | وَ لَقَدۡ اَهۡلَكۡنَاۤ اَشۡيَاعَكُمۡ فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ (۵۱) |
| دوی چي څه كړيدي هغه ټول په دفترونو کښي درج دي | وَ كُلُّ شَىۡءٍ فَعَلُوۡهُ فِى الزُّبُرِ (۵۲) |
| او هره وړه غټه خبره لیکل شوې موجوده ده . | وَ كُلُّ صَغِيۡرٍ وَّ كَبِيۡرٍ مُّسۡتَطَرٌ (۵۳) |
| له نافرمانی نه د ډه کوونکي به په باوري توګه په باغونواو ویالو کښي وي ، | اِنَّ الۡمُتَّقِيۡنَ فِىۡ جَنّٰتٍ وَّ نَهَرٍ (۵۴) |
| دریښتیانی عزت ځای ، دډېر مقتدر باچاپه وړاندې . | فِىۡ مَقۡعَدِ صِدۡقٍ عِنۡدَ مَلِيۡكٍ مُّقۡتَدِرٍ (۵۵) |
| دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| رحمٰن (مهربان خدای) | اَلرَّحۡمٰنُ ۙ(۱) |
| د دې قرآن ښوونه کړېده | عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ ؕ(۲) |
| همغه انسان پیداکړ | خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ ۙ(۳) |
| او ده ته یې غږېدل ورزده کړل . | عَلَّمَهُ الۡبَيَانَ (۴) |
| لمر او سپوږمی دیو حساب پابند دي | اَلشَّمۡسُ وَ الۡقَمَرُ بِحُسۡبَانٍ (۵) |
| او ستوری او ونه دواړه (ټول) سجده کوونکي دي | وَّ النَّجۡمُ وَ الشَّجَرُ يَسۡجُدٰنِ (۶) |
| اسمان یې اوچت کړ او تله یې کېښودله . | وَ السَّمَآءَ رَفَعَهَا وَ وَضَعَ الۡمِيۡزَانَ ۙ(۷) |
| د دې غوښتنه داده چي تاسي په تله کښي خلل مه اچوئ ، | اَلَّا تَطۡغَوۡا فِى الۡمِيۡزَانِ (۸) |
| په انصاف سره سم صحیح تول وکوئ او په ترازو کښي ډنډی مه وهئ . | وَ اَقِيۡمُوا الۡوَزۡنَ بِالۡقِسۡطِ وَ لَا تُخۡسِرُوا الۡمِيۡزَانَ (۹) |
| ځمکه یې دټولو مخلوقاتو لپاره وغوړوله | وَ الۡاَرۡضَ وَضَعَهَا لِلۡاَنَامِ ۙ(۱۰) |
| په هغې کښي هر راز زیاتي خوند وري میوې دي . دخرما و ونې دي چي میوې یې په پوښونوکښي نغښتي دي . | فِيۡهَا فَاكِهَةٌ ۙ وَّ النَّخۡلُ ذَاتُ الۡاَكۡمَامِ (۱۱) |
| راز راز غلي دي چي په هغوکښي واښه هم وي او داني هم . | وَ الۡحَبُّ ذُو الۡعَصۡفِ وَ الرَّيۡحَانُ (۱۲) |
| نو ای پېریانو اوانسانانو،تاسي به دخپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ وګڼئ ؟ | فَبِاَىِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۱۳) |

| | |
|---|---|
| انسان يې له کوډرې غوندې کړنګېدونکې وچې ورستې شوې خټې څخه پيدا کړ | خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ مِنۡ صَلۡصَالٍ كَالۡفَخَّارِ (۱۴) |
| او پيرى يې داور له شغلې څخه پيدا کړ | وَ خَلَقَ الۡجَآنَّ مِنۡ مَّارِجٍ مِّنۡ نَّارٍ (۱۵) |
| نواى پيريانو او انسانانو تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ ګڼئ ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۱۶) |
| دواړه ختيزونه او دواړه لويديزونه ، دټولو مالك او پروردګار همغه دى . | رَبُّ الۡمَشۡرِقَيۡنِ وَ رَبُّ الۡمَغۡرِبَيۡنِ (۱۷) |
| نو اى پيريانو او انسانانو تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه دروا غ وګڼئ. | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۱۸) |
| دوه سمندرونه يې خوشې کړل چې سره يوځاى شي | مَرَجَ الۡبَحۡرَيۡنِ يَلۡتَقِيٰنِ (۱۹) |
| بيا هم د هغو تر مينځه يوه پرده حائل ده چې هغوى ترېنه تجاوزنکوي | بَيۡنَهُمَا بَرۡزَخٌ لَّا يَبۡغِيٰنِ (۲۰) |
| نو اى پيريانو او انسانانو تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼئ ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۲۱) |
| له دغو سمندرونو څخه ملغلرې او مرجانونه راوځي | يَخۡرُجُ مِنۡهُمَا اللُّؤۡلُؤُ وَ الۡمَرۡجَانُ (۲۲) |
| نو اى پيريانو او انسانانو تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه دروغ ګڼئ . | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۲۳) |
| اودابېړۍ د همغه دي چې په سمندرکښې ددنګوغرونو په څېرلوړې پورته شويدي | وَ لَهُ الۡجَوَارِ الۡمُنۡشَئٰتُ فِى الۡبَحۡرِ كَالۡاَعۡلَامِ (۲۴) |
| نواى پيريانو اوانسانانو تاسې به دخپل رب کومې کومې لورېنې دروا غجنې کوئ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۲۵) |
| هرڅه چې پردغې ځمکې باندې دي فناکېدونکي دي | كُلُّ مَنۡ عَلَيۡهَا فَانٍ (۲۶) |
| او يوازې ستا درب جليل او کريم ذات باقي پاتې کېدونکى دى . | وَّ يَبۡقٰى وَجۡهُ رَبِّكَ ذُو الۡجَلٰلِ وَ الۡاِكۡرَامِ (۲۷) |
| نو اى پيريانو او انسانانو تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه (کمالات) دروا غجن کوئ ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۲۸) |
| په اسمانونو او ځمکه کښې چې هر څوك دي ټول خپلې اړتياوې له همغه نه غواړي ، هره شېبه هغه په نوې شان کښې دى . | يَسۡـَٔلُهٗ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ كُلَّ يَوۡمٍ هُوَ فِىۡ شَاۡنٍ (۲۹) |
| نو اى پيريانواوانسانانو، تاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه (غوره صفتونه) دروا غ وګڼئ ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۳۰) |
| اى دځمکې دوو پېټيو ، ډېر ژرمونږ تاسې ته د محاسبې کولو لپاره وزګارېږو . | سَنَفۡرُغُ لَكُمۡ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ (۳۱) |
| ، تاسې دخپل رب کومې کومې لورينې دروا غ ( بيا به وګوروچې) . ګڼئ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۳۲) |
| اى دپيريانو او انسانانو ډلې ، که تاسې داسمانونو او ځمکې له سرحد ونو څخه په وتلوتښتېدلى شئ . نو وتښتئ خو نشئ تښتيدلى د دى لپاره ډېر قوت په کار دى . | يٰمَعۡشَرَ الۡجِنِّ وَ الۡاِنۡسِ اِنِ اسۡتَطَعۡتُمۡ اَنۡ تَنۡفُذُوۡا مِنۡ اَقۡطَارِ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ فَانۡفُذُوۡا ؕ لَا تَنۡفُذُوۡنَ اِلَّا بِسُلۡطٰنٍ (۳۳) |
| اى پيريانو او انسانانوتاسې به دخپل رب کوم کوم نعمتونه (قدرتونه) دروا غ وګڼئ؟ | فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۳۴) |

که د تیښتي هڅه وکوئ نو ، پرتاسي به داور شُغلي او لوګي خوشي کړای شي چي تاسي به د هغو مقابله ونکړای شئ .

يُرۡسَلُ عَلَيۡكُمَا شُوَاظٌ مِّنۡ نَّارٍ ۙ وَّ نُحَاسٌ فَلَا تَنۡتَصِرٰنِ (۳۵)

ای پیریانواو انسانانو تاسي به دخپل رب کوم کوم نعمتونه (قدرتونه) دروغ وګڼئ ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۳۶)

نو ( څه به جوړ شي په هغه وخت کښي ) کله چي اسمان وچوي او دسرې څرمني غوندې سورشي ؟

فَاِذَا انۡشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتۡ وَرۡدَةً كَالدِّهَانِ (۳۷)

ای پیریانو او انسانانو ( په هغه وخت کښي) تاسي به دخپل رب کوم کوم نعمتونه (قدرتونه) درواغ وګڼئ ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۳۸)

په هغه ورځ کښي به له کوم انسان او له کوم پیري نه د هغه دګناه دپوښتلواړتیانه وي نو ( وبه کتل شی چی).

فَيَوۡمَئِذٍ لَّا يُسۡـَٔلُ عَنۡ ذَنۡۢبِهٖۤ اِنۡسٌ وَّ لَا جَآنٌّ (۳۹)

تاسي دواړه دلي دخپل رب له کومو کومو لوريينو څخه انکار کوئ .

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۴۰)

مجرمان به هلته له خپلو څېرونه وپېژندل شي او هغوی به دوچولی له وېښتو او پښونه په رانیولورا ښکودل شي .

يُعۡرَفُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ بِسِيۡمٰهُمۡ فَيُؤۡخَذُ بِالنَّوَاصِىۡ وَ الۡاَقۡدَامِ (۴۱)

په هغه وخت کښي به تاسي دخپل رب کوم کوم نعمتونه(قدرتونه) درواغ وګڼئ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۴۲)

په هغه وخت کښي به وویل شي)داهمغه دوزخ دی چي ) مجرمانودرواغ ګاڼه

هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِىۡ يُكَذِّبُ بِهَا الۡمُجۡرِمُوۡنَ (۴۳)

دهمغه دوزخ او خوټېدلو اوبو تر مېنځه به هغوی اوړېدونکي را او راوړېدونکي وي .

يَطُوۡفُوۡنَ بَيۡنَهَا وَ بَيۡنَ حَمِيۡمٍ اٰنٍ (۴۴)

نو بیا به تاسي دخپل رب کوم کوم نعمتونه (قدرتونه) درواغ وګڼئ .

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۴۵)

او د هرهغه چا لپاره چي دخپل رب حضور ته له وړاندې کېدونه وېره لري دوه باغونه دي .

وَ لِمَنۡ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ (۴۶)

تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۴۷)

له شنو ښېرازه څانګونه مالامال .

ذَوَاتَاۤ اَفۡنَانٍ (۴۸)

تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۴۹)

په دواړو باغونو کښي دوه چيني بهيدونکي ،

فِيۡهِمَا عَيۡنٰنِ تَجۡرِيٰنِ (۵۰)

تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۵۱)

په دواړو باغونو کښي دهرې میوې ډولونه دوه دوه.

فِيۡهِمَا مِنۡ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوۡجٰنِ (۵۲)

دخپل رب کوم کوم انعامونه به تاسي درواغ وګڼئ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۵۳)

جنتيان به پرداسي فرشونو باندې تکیه کوونکي ناست وي چي دهغو استرونه به دېرېړو وربښمو وي ، او دباغونو څانګې به دمیووله زوره ښکته راکږې شوې وي .

مُتَّكِـِٕيۡنَ عَلٰى فُرُشٍۢ بَطَآئِنُهَا مِنۡ اِسۡتَبۡرَقٍ‌ ؕ وَ جَنَا الۡجَنَّتَيۡنِ دَانٍ (۵۴)

دخپل رب کوم کوم انعامونه به تاسي درواغ وګڼئ ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۵۵)

د دغو نعمتونو( او جنتونو) په مېنځ کښي به دحيادار وسترګو خاونداني وي چي له دغو جنتيانو مخکښي به هغوی انسان یاپیري نه وي مسه کړې .

فِيۡهِنَّ قٰصِرٰتُ الطَّرۡفِ ۙ لَمۡ يَطۡمِثۡهُنَّ اِنۡسٌ قَبۡلَهُمۡ وَ لَا جَآنٌّ (۵۶)

د خپل رب کوم کوم انعامونو به تاسي درواغ وګڼئ؟

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ (۵۷)

داسي ښکلي لکه یاقوت او مرجان

كَاَنَّهُنَّ الۡيَاقُوۡتُ وَ الۡمَرۡجَانُ (۵۸)

| | |
|---|---|
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۵۹) | دخپل رب کوم کوم انعامونه به تاسي درواغ وګڼئ ؟ |
| ہَلۡ جَزَآءُ الۡاِحۡسَانِ اِلَّا الۡاِحۡسَانُ (۶۰) | دنیکی بدله له نیکی پرته بل څه کېدای شي ؟ |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۶۱) | نو ای پیریانو او انسانانو دخپل رب له کومو کومو انعامونو (غوره صفتونو) څخه به تاسي منکر شئ ؟ |
| وَ مِنۡ دُوۡنِہِمَا جَنَّتٰنِ (۶۲) | او پر هغو دو وباغونو برسېره دو ه باغونه به نور وي |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۶۳) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ؟ |
| مُدۡہَآمَّتٰنِ (۶۴) | ګڼ سمسور او ښېرازه باغونه . |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۶۵) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ؟ |
| فِیۡہِمَا عَیۡنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ (۶۶) | په دواړو باغونو کښي دوه چیني د فوارو په شان جوش وهونکي . |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۶۷) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ |
| فِیۡہِمَا فَاکِہَۃٌ وَّ نَخۡلٌ وَّ رُمَّانٌ (۶۸) | په دې دواړو جنتونو کښي به هر ډول خوندورې میوې ، خرما او انار وي |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۶۹) | نو ای پیریانو او انسانانو تاسي به د خپل رب کوم نعمتونه درواغ وګڼئ ؟ |
| فِیۡہِنَّ خَیۡرٰتٌ حِسَانٌ (۷۰) | د دغو نعمتونو په مېنځ کښي دښه سیرت خاونداني ښکلي مېرمني . |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۷۱) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ ؟ |
| حُوۡرٌ مَّقۡصُوۡرٰتٌ فِی الۡخِیَامِ (۷۲) | په خېموکښي دېره شوي حورې . |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۷۳) | تاسي به دخپل رب کوم کوم نعمتونه درواغ وګڼئ ؟ |
| لَمۡ یَطۡمِثۡہُنَّ اِنۡسٌ قَبۡلَہُمۡ وَ لَا جَآنٌّ (۷۴) | له دغو جنتیانو څخه مخکښي به هېڅکله کوم انسان یا پیری هغوی نه وي مسه کړې ، |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۷۵) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ. |
| مُتَّکِـِٕیۡنَ عَلٰی رَفۡرَفٍ خُضۡرٍ وَّ عَبۡقَرِیٍّ حِسَانٍ (۷۶) | هغوی به پرجنتي شنوغالیواو نفیسو او نادر و فرشونو باندې تکیه وهلي ناست وي . |
| فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ (۷۷) | تاسي به دخپل رب کوم کوم انعامونه درواغ وګڼئ؟ |
| تَبٰرَکَ اسۡمُ رَبِّکَ ذِی الۡجَلٰلِ وَ الۡاِکۡرَامِ (۷۸) | ډېر برکت لرونکی دی ستا دجلیل او کریم رب نوم . |
| بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| اِذَا وَقَعَتِ الۡوَاقِعَۃُ ۙ(۱) | کله چې کېدونکې واقعه مینځ ته راشي |
| لَیۡسَ لِوَقۡعَتِہَا کَاذِبَۃٌ ۘ(۲) | نو هېڅوك به دهغې دواقع کېدو درواغ ګڼونکی نه وي |
| خَافِضَۃٌ رَّافِعَۃٌ ۙ(۳) | هغه به ښکته کوونکې پورته کوونکې وي |
| اِذَا رُجَّتِ الۡاَرۡضُ رَجًّا ۙ(۴) | کله چې ځمکه به په هغه وخت کښی یودم وخوځوله شي |
| وَّ بُسَّتِ الۡجِبَالُ بَسًّا ۙ(۵) | او غرونه به پداسي شان میده میده کړای شي |
| فَکَانَتۡ ہَبَآءً مُّنۡۢبَثًّا ۙ(۶) | چې خو ره وره دوړه به ترینه جوړه شي . |
| وَّ کُنۡتُمۡ اَزۡوَاجًا ثَلٰثَۃً ؕ(۷) | تاسي به په هغه وخت کښي په دریو ډلوو ویشل شئ |
| فَاَصۡحٰبُ الۡمَیۡمَنَۃِ ۬ۙ مَاۤ اَصۡحٰبُ الۡمَیۡمَنَۃِ ؕ(۸) | دښی لاس خاوندان ، نودښی لاس د خاوندانو (دنېکمرغی) به څه وایی |
| وَ اَصۡحٰبُ الۡمَشۡـَٔمَۃِ ۬ۙ مَاۤ اَصۡحٰبُ الۡمَشۡـَٔمَۃِ ؕ(۹) | او دکیڼ لاس خاوندان ، نودکیڼ لاس د خاوندانو (دبدمرغی) څه اندازه |
| وَ السّٰبِقُوۡنَ السّٰبِقُوۡنَ ﴿ۚۙ۱۰﴾ | او وړاندې خو بیا وړاندې دي |
| اُولٰٓئِکَ الۡمُقَرَّبُوۡنَ (۱۱) | همغوی خو مقرب خلك دی . |
| فِیۡ جَنّٰتِ النَّعِیۡمِ (۱۲) | له نعمته ډکو جنتونو کښي به اوسیږی . |

| | |
|---|---|
| له ړومبنيونه به زيات وي . | ثُلَّةٌ مِّنَ الۡاَوَّلِيۡنَ (۱۳) |
| او له وروستنيو نه کم . | وَ قَلِيۡلٌ مِّنَ الۡاٰخِرِيۡنَ (۱۴) |
| پر جړاو کړی شويو تختونو ، | عَلٰى سُرُرٍ مَّوۡضُوۡنَةٍ (۱۵) |
| تکيه وهلي به مخامخ سره ناست وي . | مُّتَّكِـِٕيۡنَ عَلَيۡهَا مُتَقٰبِلِيۡنَ (۱۶) |
| دهغو په مجلسونو کي به هميشنی هلکان ګرځي راګرځي. | يَطُوۡفُ عَلَيۡهِمۡ وِلۡدَانٌ مُّخَلَّدُوۡنَ (۱۷) |
| د شرابو له بهېدونکي چيني له ډکو پيالو ، سراحيانو او جامونو سره. | بِاَكۡوَابٍ وَّ اَبَارِيۡقَ ۙ وَ كَاۡسٍ مِّنۡ مَّعِيۡنٍ (۱۸) |
| چې د هغو په څښلوسره به نه دهغو سروګرځي نه به يې په اعصابو کښي خرابی پېدا شي . | لَّا يُصَدَّعُوۡنَ عَنۡهَا وَ لَا يُنۡزِفُوۡنَ (۱۹) |
| او دهغو مخې ته به راز راز خوندوري ميوې وړاندې کوي چې کومې يې خوښې وي غوره يې کړي ، | وَ فَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوۡنَ (۲۰) |
| اودمرغانوغوښې به ورته وړاندې کوي چې دکوم مارغه يې خوښه وي استعمال يې کړي. | وَ لَحۡمِ طَيۡرٍ مِّمَّا يَشۡتَهُوۡنَ (۲۱) |
| او دهغو لپاره به ډښايسته سترګوخاونداني حورې وي | وَ حُوۡرٌ عِيۡنٌ (۲۲) |
| داسې ښکلي لکه پټې ساتل شوې ملغلرې . | كَاَمۡثَالِ اللُّؤۡلُؤِ الۡمَكۡنُوۡنِ (۲۳) |
| داهرڅه به دهغو عملونودمکافات په ډول هغوته ورکړل شي چې هغوی په دنيا کښي کول . | جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ (۲۴) |
| هلته به هغوی کومه بابېزه وينا ياد ګناه خبره وانه وري . | لَا يَسۡمَعُوۡنَ فِيۡهَا لَغۡوًا وَّ لَا تَاۡثِيۡمًا (۲۵) |
| هره خبره چې وي بې ازاره سمه صحيح سلام سلام به وي . | اِلَّا قِيۡلًا سَلٰمًا سَلٰمًا (۲۶) |
| او ښی لاس خاوندان ، ښی لاس دخاوندانو دنيکمرغی به څه وايې . | وَ اَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ ۙ مَاۤ اَصۡحٰبُ الۡيَمِيۡنِ (۲۷) |
| هغوی به په بې اغزيو بېرو کښي | فِىۡ سِدۡرٍ مَّخۡضُوۡدٍ (۲۸) |
| لاندې باندې يوه پربلې سپرو کېلو کې | وَّ طَلۡحٍ مَّنۡضُوۡدٍ (۲۹) |
| او تر ليرې پورې خور و شويو سيورو کې | وَّ ظِلٍّ مَّمۡدُوۡدٍ (۳۰) |
| او په هر وخت بهېدونکو او بو کې | وَّ مَآءٍ مَّسۡكُوۡبٍ (۳۱) |
| او په هيڅکله پای ته نه رسيدونکو ، | وَّ فَاكِهَةٍ كَثِيۡرَةٍ (۳۲) |
| او بې سپمابې منع شويو پريمانه ميوو کې | لَّا مَقۡطُوۡعَةٍ وَّ لَا مَمۡنُوۡعَةٍ (۳۳) |
| او په لوړو فرشونوکښي به وي . | وَّ فُرُشٍ مَّرۡفُوۡعَةٍ (۳۴) |
| دهغو مېرمنې به مونږ په ځانګړي ډول بياله سره پېدا کړو، | اِنَّاۤ اَنۡشَاۡنٰهُنَّ اِنۡشَآءً (۳۵) |
| اوهغوی به پېغلې وګرځوو. | فَجَعَلۡنٰهُنَّ اَبۡكَارًا (۳۶) |
| دخپلو مېړونو عاشقانې او په عمر کښي همزولې ، | عُرُبًا اَتۡرَابًا (۳۷) |
| داهر څه ښي لاسونو دخاوندانو لپاره دي | لِّاَصۡحٰبِ الۡيَمِيۡنِ (۳۸) |
| هغوی به له ړومبنيو نه زيات وي | ثُلَّةٌ مِّنَ الۡاَوَّلِيۡنَ (۳۹) |
| اوله وروستنيو نه هم زيات . | وَ ثُلَّةٌ مِّنَ الۡاٰخِرِيۡنَ (۴۰) |
| او د کيڼ لاس د خاوندانو د بدمرغی څه پوښتنه ، | وَ اَصۡحٰبُ الشِّمَالِ ۙ مَاۤ اَصۡحٰبُ الشِّمَالِ (۴۱) |
| هغوی به دګرم باد په تپونو او په خوټېدلو اوبو ، | فِىۡ سَمُوۡمٍ وَّ حَمِيۡمٍ (۴۲) |
| او د ډېر تور لوګي په سيوری کښي وي | وَّ ظِلٍّ مِّنۡ يَّحۡمُوۡمٍ (۴۳) |

| | |
|---|---|
| لَّا بَارِدٍ وَّ لَا كَرِيْمٍ (۴۴) | چي نه به سوړ وي نه راحت رسوونکی . |
| اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُتْرَفِيْنَ (۴۵) | دابه هغه کسان وي چي له دغه عاقبت سره له مخامخ کېدونه مخکښي په نعمتونوکښي بسيا کړای شوي وو |
| وَ كَانُوْا يُصِرُّوْنَ عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ (۴۶) | او پرستره ګناه باندې يې ټينګار کاوْ |
| وَ كَانُوْا يَقُوْلُوْنَ ۙ اَئِذَا مِتْنَا وَ كُنَّا تُرَابًا وَّ عِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ (۴۷) | ويل به يې ((ايا کله چي مونږ خاوري شو او تش دهډوکو پنجره شو نو بيا به را پاڅول شو ؟ )) |
| اَوَ اٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ (۴۸) | اوايا زمونږ هغه پلرونه او نيکونه به هم پاڅول شی چي مخکي تېر شويدی؟ |
| قُلْ اِنَّ الْاَوَّلِيْنَ وَ الْاٰخِرِيْنَ (۴۹) | ای پېغمبره ! دوی ته ووايه ، په باوري ډول مخکېني او وروستني ټول |
| لَمَجْمُوْعُوْنَ ۙ اِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ (۵۰) | يوه ورځ به ارو مرو راغونډ کړای شي چي دهغې نيټه ټاکل شويده . |
| ثُمَّ اِنَّكُمْ اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ الْمُكَذِّبُوْنَ (۵۱) | نو ای ګمراهانو او درواغجنو ، تاسي به |
| لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ (۵۲) | د زقوم دوني خواړه خوړونکي يئ |
| فَمَالِئُوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ (۵۳) | له همغې نه به تاسي خېټې ډکوونکي يئ |
| فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ (۵۴) | او پرهغو د پاسه به خوټيدلي اوبه څښونکي يئ |
| فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ (۵۵) | دجل وهلي اوښ په څېر څښونکي . |
| هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ (۵۶) | داده دکين لاس د خاوندانو مېلمستيا دجزا په ورځ . |
| نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْ لَا تُصَدِّقُوْنَ (۵۷) | مونږ تاسي پېدا کړي يئ نو ولې تصديق نه کوئ ؟ |
| اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ (۵۸) | تاسي کله غور وکړ ، دغه نطفه چي تاسي يې غور ځوئ ، |
| ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ (۵۹) | له هغې نه ماشوم تاسي پيدا کوئ که دهغه پيداکوونکي مونږ يو ؟ |
| نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَ مَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ (۶۰) | مونږ ستاسي په مينځ کښي مرګ ويشلی دی ، او مونږ له دې نه بېوسي نه يو |
| عَلٰى اَنْ نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ وَ نُنْشِئَكُمْ فِيْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ (۶۱) | چي ستاسي بڼي بدلي کړو او په داسي يوه بڼه کښي مو پيدا کړو چي تاسي پرې نه پوهېږئ . |
| وَ لَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْ لَا تَذَكَّرُوْنَ (۶۲) | تاسي خو په خپل لومړنی پېدايښت باندې پوهېږئ نو ولې درس نه اخلئ ؟ |
| اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ (۶۳) | ايا تاسي کله غور کړيدی ، دغه تخم چي تاسي يې کرئ ، |
| ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ (۶۴) | له دغونه کښتونه تاسي رازرغونوئ اوکه دهغو زرغونوونکي مونږ يو ؟ |
| لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ (۶۵) | که مونږ وغواړو نو دغه کښتونه به بوس وګرځوو او تاسي به دراز راز خبرو جوړوونکي شئ |
| اِنَّا لَمُغْرَمُوْنَ (۶۶) | چي پرمونږ باندې خو تاوان راغی ، |
| بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ (۶۷) | بلکي زمونږ خوبيخی نصيب خوار شويدی . |
| اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ (۶۸) | تاسي کله په غړېدلو سترګو کتلي دی ، دغه اوبه چي تاسي يې څښئ |
| ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ (۶۹) | داتاسي له وريځونه راورولي دي يا د دې ورونکي مونږ يو ؟ |

| | |
|---|---|
| که مونږ وغواړو نو دابه سختی تروې کړو نو ولې شکرنه باسئ ؟ | لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْ لَا تَشْكُرُوْنَ (۷۰) |
| کله مودا فکر کړیدی ، دغه اور چې تاسې یې بلوئ . | اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِىْ تُوْرُوْنَ (۷۱) |
| د دې ونه تاسې پېدا کړېده او که دهغې پېدا کوونکې مونږ یو ؟ | ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ (۷۲) |
| مونږ هغه د،(ددوزخ) در په زړه کولو وسیله او داړوکسانو لپاره د ژوند متاع ګرځولې ده . | نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّ مَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ (۷۳) |
| نو ای پیغمبره ! دخپل عظیم رب په نامه تسبیح وکړه | فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ (۷۴) |
| نوداسې نه ده ، زه دستورو دپریوتلو په ځایونو باندې قسم خورم ، | فَلَاۤ اُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ (۷۵) |
| اوکه وپوهېږئ نو دا ډېر لوی قسم دی ، | وَ اِنَّهٗ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِيْمٌ (۷۶) |
| چې بیشکه دایو لوړ مقامی قرآن دی ، | اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ (۷۷) |
| په یو محفوظ کتاب کښې ثبت ، | فِىْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ (۷۸) |
| چې له پاکانوپرته یې څوك نشي مسه کولای(او نه دې مسه کوي مګر پاکان). | لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ (۷۹) |
| دا رب العٰلمین نازل کړیدی . | تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ (۸۰) |
| نو ایا له دغه کلام سره تاسې بې اعتنائي کوئ ، | اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ (۸۱) |
| او پدغه نعمت کښې تاسې خپله برخه داټاکلې ده چې درواغ یې ګڼئ ؟ | وَ تَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ (۸۲) |
| اوس که تاسې دچا محکوم نه یئ او پخپلې دغې انګېرنه کښې رېښتوني یئ ، نو کله چې دمړکېدونکې ساستوني ته رارسېدلې وي ، | فَلَوْ لَاۤ اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ (۸۳) |
| او تاسې په سترګو کتونکی یئ چې هغه مړکېږي ، | وَ اَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ (۸۴) |
| او په هغه وخت کښې ستاسې په پرتله مونږ هغه ته زیات نژدی یو خو تاسې یې نه وینئ . | وَ نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَ لٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ (۸۵) |
| نوکه تاسې داسې یئ چې نه جزا درکوله کېږي او نه بیا راژوندي کېږئ . | فَلَوْ لَاۤ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ (۸۶) |
| نو ولې دهغه وتلې سابېرته نه راګرځوئ که تاسې رېښتوني یاست . | تَرْجِعُوْنَهَاۤ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ (۸۷) |
| بیا که هغه مړی الله ته له نژدې کسانو څخه وي | فَاَمَّاۤ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ (۸۸) |
| نو دهغه لپاره راحت ، غوره روزی او له نعمت نه مالامال جنت دی . | فَرَوْحٌ وَّ رَيْحَانٌ ۙ وَّ جَنَّتُ نَعِيْمٍ (۸۹) |
| او که هغه دښې لاس خاوندانوڅخه وي | وَ اَمَّاۤ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ (۹۰) |
| نو دهغه هرکلی داسې کېږي چې سلام دی تاته ، ته دښی لاس له خاوندانو څخه یې . | فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ (۹۱) |
| اوکه هغه له درواغ ګڼونکو ګمراهانو څخه وي | وَ اَمَّاۤ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ (۹۲) |
| نو دهغه دمېلمستیا لپاره خوټېدلې اوبه دي | فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ (۹۳) |
| اودوزخ ته ننوتل دي . | وَّ تَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ (۹۴) |
| داهر څه بیخی یقیني حق دی ، | اِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ (۹۵) |

| | |
|---|---|
| نوای پیغمبره ! دخپل عظیم رب په نامه تسبیح وکړه . | فَسَبِّحۡ بِاسۡمِ رَبِّکَ الۡعَظِیۡمِ (۹۶) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| دالله پاکی بیان کړېده هر هغه شی چې په آسمانونو او ځمکه کښي دي ، او هغه بر لاسی حکمت والادی . | سَبَّحَ لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۱) |
| د آسمانونو او ځمکي د سلطنت مالك همغه دی ، ژوند ببني او مرگ ورکوي، او هغه پر هرشي قادر دی . | لَہٗ مُلۡکُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ یُحۡیٖ وَ یُمِیۡتُ ۚ وَ ہُوَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ (۲) |
| همغه لومړی هم دی او وروستی هم، اوښکاره هم دی اوپټ هم ، او هغه پر هر شي علم لري . | ہُوَ الۡاَوَّلُ وَ الۡاٰخِرُ وَ الظَّاہِرُ وَ الۡبَاطِنُ ۚ وَ ہُوَ بِکُلِّ شَیۡءٍ عَلِیۡمٌ (۳) |
| همغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه یې په شپږو ورځو کښي پیدا کړل او بیا پرعرش باندې یې استوا وکړه. هغه پرهغه څه باندې پوهیږي څه چې . په ځمکه کښي ننوځي او څه چې له هغې نه راوځي او څه چې له اسمانه راکوزیږی او څه چې په هغه کښي خېژي هغه له تاسي سره دی تاسي چې هر چېرته یئ تاسي چې هر کارکوئ الله یې ویني | ہُوَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰی عَلَی الۡعَرۡشِ ؕ یَعۡلَمُ مَا یَلِجُ فِی الۡاَرۡضِ وَ مَا یَخۡرُجُ مِنۡہَا وَ مَا یَنۡزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَ مَا یَعۡرُجُ فِیۡہَا ؕ وَ ہُوَ مَعَکُمۡ اَیۡنَ مَا کُنۡتُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرٌ (۴) |
| همغه د اسمانونو او ځمکي دباچاهی څښتن دی او ټولي چارې دپریکړې لپاره دهمغه الله لوري ته ورگرځول کیږي. | لَہٗ مُلۡکُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ اِلَی اللّٰہِ تُرۡجَعُ الۡاُمُوۡرُ (۵) |
| همغه شپه په ورځ کښي او ورځ په شپه کښي ننباسي ، او هغه آن دزړونو په پټو رازونو باندې پوهیږي . | یُوۡلِجُ الَّیۡلَ فِی النَّہَارِ وَ یُوۡلِجُ النَّہَارَ فِی الَّیۡلِ ؕ وَ ہُوَ عَلِیۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ (۶) |
| ایمان راوړئ پرالله او دهغه پر پیغمبر باندې او لگښت وکړئ له هغو شیانو څخه چې پر هغو باندې یې تاسي واکمن گرځولي یئ له تاسي نه چې کوم کسان ایمان راوړي او مال ولگوي دهغو لپاره لوی اجر دی . | اٰمِنُوۡا بِاللّٰہِ وَ رَسُوۡلِہٖ وَ اَنۡفِقُوۡا مِمَّا جَعَلَکُمۡ مُّسۡتَخۡلَفِیۡنَ فِیۡہِ ؕ فَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡکُمۡ وَ اَنۡفَقُوۡا لَہُمۡ اَجۡرٌ کَبِیۡرٌ (۷) |
| پر تاسي څه شویدي . چې تاسي پر الله ایمان نه راوړئ پداسي حال کښي چې پیغمبر تاسي ته پر خپل رب باندې دایمان راوړلو بلنه درکوي او هغه له تاسي نه ژمنه اخیستې ده که تاسي په ریښتیا موءمنان یئ | وَ مَا لَکُمۡ لَا تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ ۚ وَ الرَّسُوۡلُ یَدۡعُوۡکُمۡ لِتُؤۡمِنُوۡا بِرَبِّکُمۡ وَ قَدۡ اَخَذَ مِیۡثَاقَکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ (۸) |
| الله همغه ذات دی چې پرخپل بنده باندې څرگند روښانه آیتونه نازلوي ترڅو چې تاسي له تیارونه راوباسي رڼاته مو راولي او حقیقت دادی چې الله پرتاسي ډېر خواخوږی او مهربان دی | ہُوَ الَّذِیۡ یُنَزِّلُ عَلٰی عَبۡدِہٖۤ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ لِّیُخۡرِجَکُمۡ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوۡرِ ؕ وَ اِنَّ اللّٰہَ بِکُمۡ لَرَءُوۡفٌ رَّحِیۡمٌ (۹) |
| څه لامل دی چې تاسي د الله په لاره کښي لگښت نکوئ ، پداسي حال کښي چې د آسمانونو او ځمکي میراث دهمدې الله لپاره دی . له تاسي نه چې کوم کسان له فتح نه وروسته مالي لگښت او جهاد وکړي هغوی هیڅکله له هغو خلکو سره نشي برابر بدای چې هغوي له فتحي نه مخکښي مالی لگښت او جهاد کړیدی دهغو درجه په وروسته وخت کښي له مالي لگښت کوونکو او جهاد کوونکو څخه ډېره ستره ده اگر که الله له دې دواړو سره غوره وعده کړېده . څه چې تاسي کوئ الله ورڅخه خبردی . | وَ مَا لَکُمۡ اَلَّا تُنۡفِقُوۡا فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ وَ لِلّٰہِ مِیۡرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ لَا یَسۡتَوِیۡ مِنۡکُمۡ مَّنۡ اَنۡفَقَ مِنۡ قَبۡلِ الۡفَتۡحِ وَ قٰتَلَ ؕ اُولٰٓئِکَ اَعۡظَمُ دَرَجَۃً مِّنَ الَّذِیۡنَ اَنۡفَقُوۡا مِنۡۢ بَعۡدُ وَ قٰتَلُوۡا ؕ وَ کُلًّا وَّعَدَ اللّٰہُ الۡحُسۡنٰی ؕ وَ اللّٰہُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرٌ (۱۰) |
| څوك دی چې الله ته پور ورکړي ؟ ښه پور ، ترڅو چې الله یې هغه ته څو چنده زیات بېرته ورکړي ، او دهغه لپاره غوره اجر دی | مَنۡ ذَا الَّذِیۡ یُقۡرِضُ اللّٰہَ قَرۡضًا حَسَنًا فَیُضٰعِفَہٗ لَہٗ وَ لَہٗۤ اَجۡرٌ کَرِیۡمٌ (۱۱) |

په هغه ورځ چې ته به مؤمنان نارینه او مؤمنانی ښځی ووینې چې دهغو رڼا به . دهغو په وړاندې وړاندې او دهغو ښی خواته ځلېدونکې وي ( هغوته به وویل شي چې ) ((نن زیری دی ستاسي لپاره)) جنتونه به وی چې تر هغو لاندې به ویالي بهیدونکې وی چې هغوی به پکښې تل ترتله اوسېږي . همدغه دی ستر بریالیتوب.

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى نُوْرُهُمْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَ بِاَيْمَانِهِمْ بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (١٢)

په هغه ورځ به دمنافقونارینه و اوښځو حال داوي چې مؤمنانو ته به ووائي لږ زموږ خواته وګورئ ترڅو چې مونږ ستاسي له رڼانه څه استفاده وکړو، خو هغو ته به وویل شي شاته واوړئ ، خپله رڼا بل چېرته ولټوئ . بیا به دهغو تر مېنځه یو دیوال حایل کړای شي چې په هغه کښې به یوه دروازه وي ، په هغې دروازه کښې دننه به رحمت وي . او دباندې عذاب

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَ الْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ۚ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ۚ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَ ظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ (١٣)

هغوی به مؤمنانو ته ناري کړي وبه وائي ایا مونږ له تاسي سره نه وو؟ مومنان به ځواب ورکړي : هو ، خو تاسي خپل ځان پخپله په فتنه کښې واچوه ، د موقع پرستی په شك کښې وغورځېدلئ ، او درواغجنو هیلو تاسي وغولولئ تردې پورې چې دالله فیصله راغله ، او تر وروستی وخت پورې هغه غټ غولوونکي تاسي دالله په باب وغولولئ

يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۚ قَالُوْا بَلٰى وَ لٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ وَ تَرَبَّصْتُمْ وَ ارْتَبْتُمْ وَ غَرَّتْكُمُ الْاَمَانِىُّ حَتّٰى جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ وَ غَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ (١٤)

نونن به نه له تاسي نه څه فدیه قبوله کړای شي او نه له هغو کسانو نه چې هغوی ښکاره څرګند کافر شوي وو . ستاسي هستوګنځی دوزخ دی ، همغه ستاسي کارجوړوونکی دی او داډېر ناوړه عاقبت دی .

فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّ لَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ مَاْوٰىكُمُ النَّارُ ۚ هِىَ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (١٥)

ایا ایمان راوړونکو لپاره لاتر اوسه پورې هغه وخت ندی راغلی چې دهغو زړونه دالله له ذکرنه ویلی شي او دهغه د نازل کړي حق په وړاندې سر ښکته کوي او هغوی دهغو خلکو په څېر نشي چې هغو ته . مخکښې کتاب ورکړشوی و ، بیا چې یوه اوږ ده موده وربانډې تېره شوه نو دهغو زړونه سخت شول او نن له هغونه زیاتره فاسقان شویدي ؟

اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَ مَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ وَ لَا يَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ ۚ وَ كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ (١٦)

ښه و پوهېږئ چې الله ځمکي ته دهغې له مرګه وروسته ژوند ښښي ، مونږ نښاني تاسي ته څرګندې روښانه درښودلي دي ، ښایئ چې تاسي له پوهي نه کار واخلئ .

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْىِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ (١٧)

له نارینه وْ اوښځو نه چې کوم کسان خېراتونه ورکوونکي دي او الله ته یې حسنه پور ورکړیدی ، هغوې ته به په باوري ډول څوبرابره زیات ورکړشي او دهغو لپاره بهترین اجر دی .

اِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَ الْمُصَّدِّقٰتِ وَ اَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعَفُ لَهُمْ وَ لَهُمْ اَجْرٌ كَرِيْمٌ (١٨)

او کومو کسانو چې پر الله او دهغه پر پیغمبرانو ایمان راوړیدی همغوی دخپل رب په نزد صدیقان او شاهدان دي ، دهغو لپاره دهغو اجراو . دهغو رڼاده . او کوم کسان چې کافر شویدي او زمونږ ایتونه یې درواغ ګڼلي دي هغوی دوزخیان دي .

وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ وَ الشُّهَدَآءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَ نُوْرُهُمْ ۚ وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ (١٩)

ښه وپوهېږئ چې د دنيا دغه ژوندله دې پرته بل څه ندی چې يوه لوبه او ساعت تيری او ظاهري زيب او سينګار او ستاسي پخپلو مېنځو کښې يو پربل باندې وياړېدل او په مال او اولاد کښې يو پربل باندې د مخکښې کېدلو هڅه کول دي. د دې مثال داسې دی لکه چې يوباران وشو نو په هغه سره دراپيدا کېدونکونباتاتو په ليدلو سره بزګران خوشاله شول . بيا همغه کښت پخېږي او ته وينې چې هغه ژېړ شو . بيا هغه بوس ګرځي . د دې برعکس اخرت هغه ځای دی چې هلته (ددنيا غوښتونکو لپاره)سخت عذاب دی او (داخرت غوښتونکو لپاره) دالله مغفرت اودهغه رضاده.ددنيا ژونددغولونې له متاع پرته بل څه ندی.

اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّ لَهْوٌ وَّ زِيْنَةٌ وَّ تَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ وَ تَكَاثُرٌ فِى الْاَمْوَالِ وَ الْاَوْلَادِ ؕ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ حُطَامًا ؕ وَ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۙ وَّ مَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانٌ ؕ وَ مَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ (٢٠)

وځغلئ او يوله بل نه دوړاندې کېدو هڅه وکړئ د خپل رب د مغفرت او دهغه جنت خواته چې دهغه پراختيا داسمانونو او ځمکې په څېر ده چې تيارکړای شويدی دهغو خلکو لپاره چې پر الله او دهغه پر پېغمبرانو يې ايمان راوړی وي داد الله فضل دی چاته چې غواړي ورکوي يې ، او الله دستر فضل خاوند دی .

سَابِقُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ جَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَ الْاَرْضِ ۙ اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ ؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ (٢١)

هېڅ مصيبت داسې نشته چې په ځمکه کښې يا ستاسې پر خپل نفس نازلېږي او مونږ هغه له پيدا کولونه مخکښې په يوکتاب کښې نه وی ليکلی دغسې کول دالله لپاره ډېر اسانه کار دی

مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِى الْاَرْضِ وَ لَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ (٢٢ۖ)

داهر څه د دې لپاره دي ) ترڅو چې تاسې ته که هرزيان وي چې ) پرهغه باندې زړه ماتې نشئ او څه چې الله تاسې ته .درکوي پر هغه ونه غوړېږئ الله داسې خلك نه خوښوي چې خپل ځان لوی شی ګڼي او وياړېږي ،

لِّكَيْلَا تَاْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَ لَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰىكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِ ۙ (٢٣)

هغه کسان چې پخپله بخيلي کوي او نور بخيلی کولوته هڅوي. اوس که څوك مخ اړوي نو الله بېنيازه اوستايل شويدی .

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَ يَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ؕ وَ مَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِىُّ الْحَمِيْدُ (٢٤)

مونږ خپل پېغمبران له روښانو څرګند و نښانو اوهداياتو سره ولېږل ، اوله هغو سره موکتاب او تله نازل کړل ترڅوچې خلك پرعدل ولاړ وي او اوسپنه موراکوزه کړه چې په هغې کښې ډېر زور دی او دخلکو لپاره ګټې دي دا د دې لپاره کړای شويدي چې الله معلومه کړي چې . څوك دهغه له ليدلو پرته دهغه او دهغه د پېغمبرانو مرسته کوي . بېشکه الله ډېر قوی او برلاسی دی .

لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَ اَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَ اَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَ رُسُلَهٗ بِالْغَيْبِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِىٌّ عَزِيْزٌ (٢٥)

مونږ نوح (ع) او ابراهيم (ع) ولېږل او دهغو دواړوپه ځوځات کښې مونبوت او کتاب کېښوده . بيا دهغوله اولادې نه ځينو هدايت غوره کړ او زياتره فاسقان شول

وَ لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا وَّ اِبْرٰهِيْمَ وَ جَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَ الْكِتٰبَ فَمِنْهُمْ مُّهْتَدٍ ۚ وَ كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ (٢٦)

له هغونه وروسته مونږ پرله پسې خپل پېغمبران ولېږل ، اوله هغوټولو وروسته موعيسیٰ ابن مريم ولېږه او هغه ته موانجيل ورکړ ، او کومو کسانو چې دهغه پيروي غوره کړه دهغو په زړونوکښې مونږ خواخوږي او رحم واچوه . او رهبانيت هغوی پخپله رامېنځ ته کړ ، مونږ هغه پر هغوباندې نه و فرض کړی ، خو دالله درضا په لټه کښې هغوی پخپله دغه بدعت راوويست ، او بيا دهغه د رعايت چې کوم حق و هغه يې ادانکړ . نوله هغوی نه چې کوموکسانو ايمان راوړی وٌ دهغو اجر مونږ هغوته ورکړ، خوله هغونه زياتره کسان فاسقان دی

ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا وَ قَفَّيْنَا بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَ اٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ ۙ وَ جَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّ رَحْمَةً ؕ وَ رَهْبَانِيَّةَ ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَآءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَ كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ (٢٧)

ای هغوکسانو چې ايمان موراوړيدی ، له الله نه ووېرېږئ او دهغه پر پېغمبر ( محمد صلی الله عليه وسلم ) باندې ايمان راوړئ ، الله به تاسې ته دخپل رحمت دوه چنده برخه درکړي او تاسې ته به هغه نور په برخه کړي چې دهغه په رڼا کښې به تاسې ځئ ، او ستاسې گناه به دروبښي ، الله ډېر بښونکی او مهربان دی .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ اٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَ يَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا تَمْشُوْنَ بِهٖ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٢٨)

تاسې بايد همدغه کړنلاره غوره کړی ) ترڅو چې اهل کتابو ته ) څرگنده شي چې هغوی دالله فضل اجاره کړی ندی ، او داچې دالله فضل دهغه پخپل لاس کښې دی ، چاته يې چې خوښه شي ورکوي . يې او هغه د لوی فضل خاوند دی

لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَ اَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ (٢٩)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الله دهغې ښځې وينا واورېدله چې دخپل مېړه په باب له تاسره بيا بيا غږېږي او الله ته فرياد کوي الله ستاسې دواړو پوښتنه او ځواب اوري ، هغه دهر څه اورېدونکی او ليدونکی دی .

قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا وَ تَشْتَكِيْۤ اِلَى اللّٰهِ ۖ وَ اللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ (١)

له تاسې نه چې کوم کسان له خپلو ښځونه ظهار کوي (مور ورته وايي) ، د دوی مېرمنې د دوی ميندې ندي ، دهغو ميندې خو همغه دی چې هغوی يې زېږ ولي دي . دوی يوه ډېره ناوړه او درواغ خبره کوي ، او حقيقت دادی چې الله ډېر معافي کوونکی او بښونکی دی .

اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓـِٔيْ وَلَدْنَهُمْ ؕ وَ اِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَ زُوْرًا ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ (٢)

کوم کسان چې له خپلو مېرمنونه ظهار وکړي بيااله خپلې هغې خبرې نه راواوړي چې کړې يې وه ، نو مخکښې له دې نه چې دواړه يوبل ته لاس ور وړي ، يو غلام ازادول به وي ، پدې (کفارې) سره تاسې ته نصيحت کيږي ، او تاسې چې څه کوئ الله ترېنه ښه خبر دی .

وَ الَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ؕ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (٣)

اوڅوك چې غلام ونه مومي هغه دې دوه مياشتې پرله پسې روژه ونيسي مخکښې له دې نه چې دواړه يوبل ته لاس وروړی او څوك چې پدې هم قادرنه وي هغه دې شپېتو مسکينانوته خواړه ورکړي دا (دکفارې) حکم د دې لپاره درکول کېږي چې تاسې پر الله او دهغه پر پېغمبرايمان راوړئ . دادالله ټاکلي حدود دي ، او دکافرانو لپاره درد ناکه سزاده .

فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ؕ وَ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (٤)

کوم کسان چې له الله او د هغه له پېغمبر نه مخالفت کوي هغوی به پداسې شان ذلیل او خوار کړای شي لکه چې له دوی نه مخکښې خلكْ ذلیل او خوار کړای شویدي ،مونږ روښانه څرګند ایتونه نازل کړیدی ، او دکافرانو لپاره د ذلت عذاب دی .

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَ قَدْ اَنْزَلْنَا اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ ؕ وَ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۚ(۵)

په هغه ورځ ( دغه د ذلت عذاب واقع کېدونکی دی ) چې کله الله دوی ټول بیا ژوندي راپاڅوي او دوی ته وښيي چې دوی څه کړي دي. دوی هېرکړیدي خو الله د دوی ټول عملونه شمېرلي خوندي ساتلي دي او الله پر هر شي باندې شاهد دی .

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَ نَسُوْهُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ (۶)

ایا ته نه يې خبر چې الله د اسمانونو او ځمکې پر هرشي باندې عالم دی ؟ هېڅکله داسې نکېږي چې د دربو تنوکوم پټ مجلس وي او دهغوپه مینځ کښې څلورم الله نه وي ، یا دپنځو تنوپټ مجلس وي او په هغو کښې شپږم الله نه وي . دېټو خبروکوونکي که له دې نه کم وي یا زیات ، هغوی چې هر چېرته وي الله ورسره دی بیا به دقیامت په ورځ هغوته داوښيي چې هغوی څه کړيدي . الله په هر شي باندې عالم دی.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ؕ مَا يَكُوْنُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَ لَا خَمْسَةٍ اِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَ لَاۤ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَ لَاۤ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ اَيْنَ مَا كَانُوْا ۚ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (۷)

ایا تا هغه کسان ندي لیدلي چې هغوی له پټو خبروکولونه منع کړای شوي و وبیاهم هغوی همغه حرکت کوي چې له هغه نه هغوی منع کړای شوي وو ؟ دوی په پټه پټه پخپل مینځ کښې دګناه او ظلم او دپېغمبرنه د سرغړاوي خبرې کوي ، اوکله چې تاته راځي نو تاته په هغه ډول سلام کوي چې الله پرتا هغسې سلام ندی کړی او پخپلو زړونو کښې وائي چې زمونږ پر دغو خبرو باندې الله مونږ ته ولې عذاب نه راکوي ، د دوی لپاره دوزخ کافي دی . دوی به په کښې ننوځي ډېر بد ځای دی د ورتلو.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَ يَتَنٰجَوْنَ بِالْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ وَ مَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ ۫ وَ اِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ ۙ وَ يَقُوْلُوْنَ فِيْۤ اَنْفُسِهِمْ لَوْ لَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوْلُ ؕ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۚ فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ (۸)

ای مؤمنانو ، کله چې تاسې پخپلو مینځو کښې پټې خبرې کوئ نو دګناه او تیري اوله پېغمبرنه دسرغړاوي خبرې نه بلکې دنېکۍ او تقوی خبرې وکړئ اوله هغه خدای نه وېرېدونکي اوسئ چې دهغه حضور ته په حشرکښې ستاسې وړاندې کېدل دي

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ وَ مَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ وَ تَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْۤ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ (۹)

په غوږ کښې (په بده وینا )پسېدل خو یو شیطانی کار دی ، داکار د دې لپاره کیږي چې مؤمنان پرې و ځوریږي ، پداسې حال کښې چې دا دخدای له اذن نه پرته هغوته هېڅ ضرر نشي رسولای او مؤمنان باید پر الله باندې توکل وکړي .

اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ لَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ (۱۰)

ای مؤمنانو ، کله چې تاسې ته وویل شي چې پخپلو مجلسونو کښې ځای پراخ کړئ نو ځای پراخ کړئ الله به تاسې ته پراختیا درکړي او کله چې تاسې ته وویل شي چې پاڅېږئ نو پاڅېږئ له تاسې نه چې کوم کسان ایمان لرونکي دي او کومو کسانوته چې علم ورکړ شویدی ، الله به هغوته لوړې درجې په برخه کړي ، او تاسې چې څه کوئ الله پرې ښه خبردی .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِي الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ وَ اِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ ۙ وَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (۱۱)

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُوْلَ فَقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقَةً ؕ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَ اَطْهَرُ ؕ فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (۱۲)

ای مؤمنانو : کله چې تاسې په ګوښه کښې له پیغمبر(ص) سره خبرې کوئ نوله خبروکولو نه مخکښې یوڅه خیرات ورکړئ داستاسې لپاره ډېره غوره او ډېره پاکه ده . البته که تاسې د صدقې ورکولو لپاره څه ونه مومئ نو الله غفور او رحیم دی .

ءَاَشْفَقْتُمْ اَنْ تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوٰىكُمْ صَدَقٰتٍ ؕ فَاِذْ لَمْ تَفْعَلُوْا وَ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (۱۳)

ایا تاسې له دې خبرې نه ووېرېدلئ چې په ګوښه کښې له غږېدلونه مخکښې به صدقه ورکوئ ؟ ښه نو ، که تاسې داکار ونکړاو الله تاسې معاف کړئ نو دلمانځه اداکوونکي اوسئ او دزکات ورکوونکي اوسئ او دالله او دهغه د رسول امر منونکي اوسئ . تاسې چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی .

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ؕ مَا هُمْ مِّنْكُمْ وَ لَا مِنْهُمْ ۙ وَ يَحْلِفُوْنَ عَلَى الْكَذِبِ وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ (۱۴)

ایا ته هغوخلکو ته نه ګورې چې هغوی یوه داسې ډله په دوستۍ نیولې ده چې دالله غضب پرې شویدی ؟ هغوی نه ستاسې دي نه دهغوی ، په پوهه ادراك سره پردرواغجنه خبره لوړې کوي .

اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (۱۵)

الله دهغولپاره سخت عذاب تیارکړیدی ، ډېر بدعملونه دي چې هغویې کوي .

اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ (۱۶)

هغوی خپل قسمونه سپرګرځولي دي چې دهغه په مرسته دالله له لارې نه هغوی خلكْ منع کوي ، پدې باندې دهغو لپاره د ذلت عذاب دی .

لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَ لَاۤ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ (۱۷)

له الله نه دژغورل کېدولپاره به نه دهغو مالونه څه په درد وخوري نه د هغو اولاد ، دوی د دوزخ ملګري دي ، په همغه کښې به دوی دتل لپاره اوسيږي

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ وَ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ؕ اَلَاۤ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ (۱۸)

په کومه ورځ چې الله تعالیٰ دوی ټول راپاڅوي ، دوی به دهغه په وړاندې هم همغسې قسمونه وخوري لکه څنګه چې ستاسې په وړاندې يې خوري او پخپل فکر دوی انګېرې چې پدې سره به د دوی څه کار برابر شي . ښه پوه شئ چې دوی ډېر غټ درواغجن دی .

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰىهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (۱۹)

شیطان وربان‌دې مٌسلط شویدی او هغه د خدای یاد د دوی له زړونو څخه هېرکړیدی . دوی دشیطان د ګوند خلكْ دي . خبردار اوسئ همدا دشیطان د ګوند کسان زیانمن دي .

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗۤ اُولٰٓئِكَ فِي الْاَذَلِّيْنَ (۲۰)

هغه خلك په باورې ډول له ډېرو ذلیلومخلوقاتو څخه دي چې دالله او دهغه د رسول مقابله کوي

كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَ رُسُلِيْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ (۲۱)

الله لیکلي دي چې زه او زما پیغمبران به ارومروبرلاسي شو په واقع کښې الله برلاسي او زورور دی .

ته به هېڅکله داونه مومې کوم خلك چې پر الله او اخرت باندې ایمان لرونكي دي چې هغوی له هغوخلکو سره مینه کوونکي و اوسي چې دالله او دهغه رسول مخالفت یې کړیدی که څه هم دهغوی پلرونه وي ، یا دهغو زامن وي ، یاد هغو وروڼه وي یا دهغو ټبراوکورنۍ وي . داهغه کسان دي چې الله د دوی په زړونو کښې ایمان ثبت کړیدی اوله خپل لوري دیو روح په ورکولو سره یې دوی تقویه کړیدي . هغه به دوی داسې جنتونوته ننباسي چې ترهغو لاندې به ویالي بهیږي په هغوکښې به دوی دتل لپاره اوسیږی الله له دوی نه راضي شو او دوی له الله نه راضي شول، دوی دالله دګوند خلك دي . خبر داراوسئ ، همدا دالله دګوند کسان فلاح موندونکي دي.

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ لَوْ كَانُوْٓا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ وَ اَيَّدَهُمْ بِرُوْحٍ مِّنْهُ ؕ وَ يُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ رَضُوْا عَنْهُ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (۲۲)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دهمدې الله پاکي بیا نوي هر څه چې په اسمانونو کښې دي او هر څه چې په ځمکه کښې دي او همغه برلاسی او دحکمت څښتن دی .

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الْاَرْضِ ۚ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۱)

همغه ذات دی چې اهل کتاب کافران یې په همدې لومړۍ حمله کښې له خپلو کورونوڅخه وایستل . ستاسې هیڅ داګومان نه وْ چې هغوی به ووځي او هغوی هم داګڼله چې دهغوی کلاوې به هغوی له الله نه وژغوري . خو الله له داسې لوري پرهغو راغی چې هغې خواته دهغوی خیال هم نه وْ . او دهغوپه زړونو کښې یې ویره واچوله نتیجه داشوه چې هغوی خپله پخپلو لاسونو سره هم خپل کورونه ورانول او دمومنانو په لاسونو سره یې هم ورانول ، نو عبرت واخلئ ای دبینا سترګو لرونکو .

هُوَ الَّذِيْٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ ؕؔ مَا ظَنَنْتُمْ اَنْ يَّخْرُجُوْا وَ ظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَاَتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوْا * وَ قَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُوْنَ بُيُوْتَهُمْ بِاَيْدِيْهِمْ وَ اَيْدِي الْمُؤْمِنِيْنَ * فَاعْتَبِرُوْا يٰٓاُولِي الْاَبْصَارِ (۲)

که الله دهغوی په حق کښې جلا وطني نه وای لیکلې نو په همدې دنیا کښې به یې هغوته عذاب ورکړئ و ، او په اخرت کښې خو دهغو لپاره د دوزخ عذاب دی .

وَ لَوْ لَآ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا ؕ وَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ (۳)

داهر څه له دې امله وشول چې هغوی له الله او د هغه له رسول سره دښمني وکړه ، او څوك چې له الله سره دښمني وکړی الله هغه ته په سزاور کولو کښې سخت دی .

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ۚ وَ مَنْ يُّشَآقِّ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ (۴)

تاسې چې دخرماو کومې ونې غوڅې کړې یا کومې چې موپرخپلو جړو ولاړې پرېښودلې دا هر څه دالله په اذن سره وو . او ( الله دغه اجازه د دې له پاره درکړه ) ترڅو چې فاسقان ذلیل او رسوا کړي .

مَا قَطَعْتُمْ مِّنْ لِّيْنَةٍ اَوْ تَرَكْتُمُوْهَا قَآئِمَةً عَلٰٓى اُصُوْلِهَا فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَ لِيُخْزِيَ الْفٰسِقِيْنَ (۵)

او کوم مال به چې الله دهغو له ولکې نه په ویستلو دخپل پېغمبر خواته واړوه ، هغه داسې مالونه نه دي چې پرهغو باندې تاسې خپل اسونه او خپل اوښان ځغلولي وي بلکې الله تعالی چې پر هر چاباندې وغواړي خپل پیغمبران مسلطوي او الله پرهر شي قادر دی .

وَ مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّ لَا رِكَابٍ وَّ لٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۶)

الله چي هرڅه (مالونه ) ددغو کليو دخلکو نه دخپل پيغمبر خواته وګرځوي هغه دالله او رسول او خپلوانو او يتيمانو او مسکينانو او پرديسانو لپاره دي تر څو چي هغه يوازي ستاسي دبډايانو تر منځه ګردش کوونکي نه وي . څه چي پيغمبر ص تاسي ته درکوي هغه واخلئ اوله څه شي نه چي هغه تاسي منع کوي له هغه نه منع شئ . له الله نه ووېرېږئ ، الله سخت سزا ورکوونکی دی.

مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَہْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَ لِلرَّسُوْلِ وَ لِذِى الْقُرْبٰى وَ الْيَتٰمٰى وَ الْمَسٰكِيْنِ وَ ابْنِ السَّبِيْلِ ۙ كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةًۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ ؕ وَ مَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ * وَ مَا نَہٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَہُوْا ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۘ(۷)

دهغو غريبومهاجرينو له پاره دی چي له ( همدارنګه دغه مال ) دوی دالله فضل او .خپلو کورونو او جايدادونو څخه ويستل شويدي د هغه رضاء غواړي او دالله او دهغه درسول نصرت ته ملاتړلي او . سيږي . همدغه رينښتوني خلك دي

لِلْفُقَرَآءِ الْمُہٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِہِمْ وَ اَمْوَالِہِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانًا وَّ يَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ ہُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۚ(۸)

او دا دهغو خلکو له پاره هم دی ) چي د دغو مهاجرينو له راتګ نه ( مخکښي يې ايمان راوړی په دارا لهجرت کښي استوګن وو . دوی له هغو خلکو سره مينه کوي چي دوی ته يې هجرت کړی دی او هر څه چي هغوته ورکړل شي دهغو څه اړتيا قدرې هم دوی پخپلو زړونو کښي نه احساسوي او پرخپل ځان باندې نوروته ترجيح ورکوي اګر که پخپله محتاج وي هم . حقيقت دادی کوم خلك چي . دخپل زړه له تنګی نه وژغورل شول همغوی فلاح ميندونکي دي

وَ الَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَ الْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِہِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ ہَاجَرَ اِلَيْہِمْ وَ لَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِہِمْ حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَ يُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِہِمْ وَ لَوْ كَانَ بِہِمْ خَصَاصَةٌ ۚ۟ وَ مَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ ہُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۚ(۹)

او دا دهغو کسانو له پاره هم دی ) چي له دغو مخکنيو نه وروسته ( راغلي دي هغه کسان چي وايي (( ای زمونږ ربه ، مونږ او زمونږ ټولو هغو ورونوته ښښنه وکړه چي له مونږ نه مخکي يې ايمان راوړيدی او زمونږ په زړونوکښي دمومنانو لپاره هيڅ بغض مه .اچوه ای زمونږ ربه ، ته ډېر مهربان او رحيم يې

وَ الَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِہِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَ لِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَ لَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (۱۰)

ته هغوکسانو ته نه ګورې چي هغوی دمنافقت کړنلاره غوره کړيده ؟ دوی خپلو کافرو اهل کتابو ورونوته وايي ((که تاسي وويستل شوئ نو مونږ به هم له تاسي سره ووځو او ستاسي په باب به مونږ دهيچا خبره هيڅکله ونه منواوکه له تاسي سره جنګ وکړای شو نو مونږ به ستاسي مرسته وکړو)) خوالله شاهد دی چي دغه خلك قطعي درواغجن دي .

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِہِمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَہْلِ الْكِتٰبِ لَئِنْ اُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَ لَا نُطِيْعُ فِيْكُمْ اَحَدًا اَبَدًا ۙ وَّ اِنْ قُوْتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ يَشْہَدُ اِنَّہُمْ لَكٰذِبُوْنَ (۱۱)

که هغوی وايستل شول نو دوی به له هغو سره هيڅکله ونه وځي اوکه له هغوی سره جنګ وکړای شو نو دوی به هيڅکله د هغوی مرسته ونکړي او که دوی دهغو مرسته وکړي هم نو شا به واړوي او بيا به له هيڅ لوري څه مرسته ونه مومي .

لَئِنْ اُخْرِجُوْا لَا يَخْرُجُوْنَ مَعَہُمْ ۚ وَ لَئِنْ قُوْتِلُوْا لَا يَنْصُرُوْنَہُمْ ۚ وَ لَئِنْ نَّصَرُوْہُمْ لَيُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ۫ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ (۱۲)

د دوی په زړونو کښي له الله نه زياته ستاسي ويره ده ځکه چي دا داسي خلك دي چي پوهه ادراك نلري

لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَہْبَةً فِيْ صُدُوْرِہِمْ مِّنَ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّہُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَہُوْنَ (۱۳)

دوی به هيڅکله په راجمع کيدلو ( په سپين ميدان کښي ) ستاسي سره مقابله ونکړي ، که وجنګيږي هم نو په کلابندوکليو کښي په کښيناستلو ياد ديوالو نو ترشاپه پټيدلو ، دوی پخپلو مينځو کښي ډير سخت مخالف دي . ته دوی سره غونډ ګڼې خود دوی زړونه يو له بله بيزاره بيل شويدي . د دوی داحال له دې امله دی چي دوی بې عقله خلك دي .

لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ ؕ بَاْسُہُمْ بَيْنَہُمْ شَدِيْدٌ ؕ تَحْسَبُہُمْ جَمِيْعًا وَّ قُلُوْبُہُمْ شَتّٰى ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّہُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ (۱۴)

دوی دهمغو خلکو په شان دي چي له دوی نه لږ وخت مخکښي یې دخپلو کړوخوند څکلی دی او د دوی لپاره درد ناك عذاب دی .

كَمَثَلِ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيْبًا ذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ ۚ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۱۵)

د دوی مثال دشیطان په څیردی چي لومړی هغه انسان ته وایي کافر شه او کله چي انسان کافر شي نو هغه وایي چي زه له تانه بیزاریم زه خو دالله رب العلمین څخه ویریږم

كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ ۚ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ (۱۶)

بیا د دواړو عاقبت داکیدونکی دی چي دتل لپاره به په دوزخ کښي وي اود ظالمانو همدغه جزاده .

فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا اَنَّهُمَا فِی النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيْهَا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيْنَ (۱۷)

ای مومنانو ، له الله نه وویریږئ او هر څوك دې داوګوري چي دسبا له پاره یې څه کړیدي . له الله نه ویریدونکي اوسئ الله په یقیني توګه ستاسي دټولو هغوعملونو څخه باخبره دی چي تاسې یې کوئ .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ لْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (۱۸)

دهغوکسانو په څیرمه کیږئ چي الله یې هیرکړ نوالله پر هغوی دهغوی خپل ځانونه هیرکړل همدغه خلك فاسقان دي

وَ لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ نَسُوا اللّٰهَ فَاَنْسٰهُمْ اَنْفُسَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ (۱۹)

دوزخ ته تلونکي اوجنتیان هیڅکله یو شانته نشی کیدای . همدا جنت ته تلونکي په اصل کښي کامیاب دي .

لَا يَسْتَوِيْٓ اَصْحٰبُ النَّارِ وَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ؕ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ (۲۰)

که مونږ داقران په کوم غره باندې هم نازل کړی وای نوتا به لیدلي وه چي هغه دالله له ویرې نه ټیټیږي او ټوټه ټوټه کیږي . دغه مثالونه مونږ خلکو ته د دې له پاره بیانوو چي هغوی ( پرخپل حالت ) غور وکړي .

لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰی جَبَلٍ لَّرَاَيْتَهٗ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ؕ وَ تِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ (۲۱)

الله هغه ذات دی چي له هغه پرته بل هیڅ معبود برحق نشته ، په پټه او په ښکاره هرڅه باندې پوهیدونکی ، همغه رحمٰن او رحیم دی .

هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ ۚ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ (۲۲)

الله هغه ذات دی چي له هغه پرته کوم معبود برحق نشته ، هغه باچادی ډیر مُقدس ، له ټولو عیبونو څخه سالم، امان ورکوونکی ، ساتونکی، په ټولو برلاسی ، په زوره دخپل حکم نا فذوونکی اودلویی څښتن لویي کوونکی، پاك دی الله له هغه شرك نه چي خلك یې کوی .

هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۲۳)

الله هغه ذات دی چي دهستوني پلان جوړوونکی او دهغه نافذوونکی او دهغه سره سم صورت جوړوونکی دی . دهغه ډیر غوره نومونه دی . هرڅه چي په اسمانونو او ځمکه کښي دي دهغه په پاکی سره ستاینه کوي او هغه برلاسی او حکمت والادی .

هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰی ؕ يُسَبِّحُ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۚ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۲۴)

دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّىْ وَ عَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ تُلْقُوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَ قَدْ كَفَرُوْا بِمَا جَآءَكُمْ مِّنَ الْحَقِّ ۚ يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَ اِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ ؕ اِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِىْ سَبِيْلِىْ وَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِىْ ٭ۖ تُسِرُّوْنَ اِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ ٭ۖ وَ اَنَا اَعْلَمُ بِمَآ اَخْفَيْتُمْ وَ مَآ اَعْلَنْتُمْ ؕ وَ مَنْ يَّفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ (١)

اې هغو کسانو چې ایمان موراوړیدی ، که تاسې زما په لاره کښې د جهاد کولو له پاره او زما د رضا دګټلو پخاطر (وطن پرې ایښئ اوله کورونو څخه ) وتلي يئ نو زما او خپل دښمنان دوستان مه نیسئ ، تاسې له هغوی سره دوستانه اچوئ ، پداسې حال کښې کوم حق چې تاسې ته راغلی دی دهغه له منلونه هغوی انکار کړیدی او دهغو چلند دادی چې پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) او پخپله تاسې صرف پدې ګناه له وطن څخه باسي چې تاسې پخپل رب الله باندې ایمان راوړی دی ، تاسې په پټه هغوی ته دوستانه پیغامونه لیږئ پداسې حال کښې چې څه چې تاسې په پټه کوئ او څه چې په ښکاره کوئ په هر څه زه پوهیږم ، هر څوك چې له تاسې نه داسې وکړي هغه په یقیني توګه له سمې لارې نه بیلاری شو.

اِنْ يَّثْقَفُوْكُمْ يَكُوْنُوْا لَكُمْ اَعْدَآءً وَّ يَبْسُطُوْا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ وَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوْٓءِ وَ وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ ؕ(٢)

د هغو چلند خودا دی چې که پرتاسې برلاسې شي نو له تاسې سره به د ښمني وکړي او په لاسونو او ژبو سره به درته ازار درکړي . هغوی خودا غواړي چې تاسې دې (په یو ډول) کافر شئ .

لَنْ تَنْفَعَكُمْ اَرْحَامُكُمْ وَ لَآ اَوْلَادُكُمْ ۚۛ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚۛ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (٣)

د قیامت په ورځ به نه ستاسې خپلوۍ څه پکار درشي نه ستاسې اولادونه په هغه ورځ به الله ستاسې ترمینځ بیلتون راولي او الله ستاسې دعملونو لیدونکی دی .

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِىْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَ الَّذِيْنَ مَعَهٗ ۚ اِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ اِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَ مِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۫ كَفَرْنَا بِكُمْ وَ بَدَا بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَ الْبَغْضَآءُ اَبَدًا حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ اِلَّا قَوْلَ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَ مَآ اَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ شَىْءٍ ؕ رَبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَ اِلَيْكَ اَنَبْنَا وَ اِلَيْكَ الْمَصِيْرُ (٤)

ستاسې له پاره په ابراهیم او دهغه په ملګرو کښې یوه غوره نمونه ده چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وویل : ((مونږ له تاسې نه او ستاسې له دغو معبودانو څخه چې تاسې يې دخدای په ځای بندګي کوئ قطعي بیزار یو ، مونږ له تاسې نه منکر شوي یو او زمونږ او ستاسې ترمینځ دتل له پاره د ښمني شوه او کینه ولویدله ترڅوپورې چې پر یوه الله ایمان رانه وړئ )) . خو خپل پلار ته دابراهیم داوینا ( له دې نه مستثنیٰ ده) چې (( زه به ستا لپاره د مغفرت غوښتنه ارومرو وکړم ، او له الله نه ستاله پاره څه لاس ته راوړل زما په وس کې نه دي)) . ( او دابراهیم او دهغه د ملګرو دعا داوه چې ) ((اې زمونږ ربه ! پرهمدا تا باندې مونږ توکل وکړ او همدا ستالوري ته مونږ رجوع وکړه او همداستا حضورته بیا زمونږ درګرځیدل دي .

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ اغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (٥)

اې زمونږ ربه ، مونږ دکافرانو فتنه مه ګرځوه . او اې زمونږ ربه ! زمونږ له ګناهونو څخه راتیر شه . بیشکه همدا ته برلاسی د حکمت څښتن يې .

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْهِمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَ الْيَوْمَ الْاٰخِرَ ؕ وَ مَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِىُّ الْحَمِيْدُ (٦)

دهمدغوخلکو په کړنچاره کښې ستاسې لپاره او دهر هغه چا له پاره غوره نمونه ده چې دالله او داخرت دورځې هیله من وي . که له دې نه څوك منحرف وي نو الله بې نیازه او خپله پخپل ذات کښې ستایل شویدی .

عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ الَّذِيْنَ عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ؕ وَ اللّٰهُ قَدِيْرٌ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٧)

لیرې نده چې الله یو وخت ستاسې او دهغو خلکو تر مینځ مینه واچوي چې له هغو سره نن تاسې دښمني را اخیستې ده . الله غټ قدرت لري او هغه غفور رحیم دی .

الله تاسي له دې خبرې نه نه منع کوي چي تاسي له هغو خلکو سره دنيکی او عدل چلند وکړئ چي هغوی د دين په باب له تاسي سره جنګ ندی کړی او تاسي يې له خپلو کورونو څخه نه يئ ويستلي . الله عدل کوونکي خوښوي

لَا يَنۡهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيۡنَ لَمۡ يُقَاتِلُوۡكُمۡ فِى الدِّيۡنِ وَ لَمۡ يُخۡرِجُوۡكُمۡ مِّنۡ دِيَارِكُمۡ اَنۡ تَبَرُّوۡهُمۡ وَ تُقۡسِطُوۡۤا اِلَيۡهِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُقۡسِطِيۡنَ (۸)

الله چي له کومي خبرې نه تاسي منع کوي هغه دا ده چي تاسي له هغو خلکو سره دوستي وکړئ چي هغوی له تاسي سره د دين په معامله کښي جنګيدلي دي او تاسي يې له خپلو کورونو نه ويستلي يئ او ستاسي په ويستلو کښي يې يو دبل ملاتړ کړيدی . له هغو سره چي کوم کسان دوستي وکړي همغوی ظالمان دي .

اِنَّمَا يَنۡهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيۡنَ قٰتَلُوۡكُمۡ فِى الدِّيۡنِ وَ اَخۡرَجُوۡكُمۡ مِّنۡ دِيَارِكُمۡ وَ ظٰهَرُوۡا عَلٰٓى اِخۡرَاجِكُمۡ اَنۡ تَوَلَّوۡهُمۡ ۚ وَ مَنۡ يَّتَوَلَّهُمۡ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۹)

ای مومنانو ! کله چي مومني ښځي هجرت وکړي تاسي ته راشي نو (دهغو دمسلمانی ) تحقيق وکړئ . او دهغو دايمان په حقيقت باندې الله ښه پوهيږي . بيا کله چي تاسي ته معلومه شي چي هغوی مؤمني دي نو هغوی بيرته کافرانوته مه ليږئ نه هغوی د کافرانو له پاره روادي او نه کافران دهغو له پاره روادي دهغو کافرو ميړونو چي کوم مهر هغوته ور کړئ و هغه هغوته بيرته ورکړئ . اوله هغو سره په نکاح کولو کښي پر تاسي څه ګناه نشته کله چي تاسي دهغو مهر هغوته ورکړئ او تاسي په خپله هم کافري ښځيله نکاح کښي مه ساتئ ،کوم مهر چي تاسي خپلو کافرو ميرمنوته ورکړی وْ هغه تاسي بيرته وغواړئ او کوم مهر چي کافرانو خپلو ميرمنو ته ورکړی وْ هغوی دې هغه بيرته وغواړي . دا دالله حکم دی هغه ستاسي ترمينځ فيصله کوي او الله دپوهي او حکمت څښتن دی .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا جَآءَكُمُ الۡمُؤۡمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامۡتَحِنُوۡهُنَّ ؕ اَللّٰهُ اَعۡلَمُ بِاِيۡمَانِهِنَّ ۚ فَاِنۡ عَلِمۡتُمُوۡهُنَّ مُؤۡمِنٰتٍ فَلَا تَرۡجِعُوۡهُنَّ اِلَى الۡكُفَّارِ ؕ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمۡ وَ لَا هُمۡ يَحِلُّوۡنَ لَهُنَّ ؕ وَ اٰتُوۡهُمۡ مَّاۤ اَنۡفَقُوۡا ؕ وَ لَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ اَنۡ تَنۡكِحُوۡهُنَّ اِذَاۤ اٰتَيۡتُمُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ ؕ وَ لَا تُمۡسِكُوۡا بِعِصَمِ الۡكَوَافِرِ وَ سۡـَٔلُوۡا مَاۤ اَنۡفَقۡتُمۡ وَ لۡيَسۡـَٔلُوۡا مَاۤ اَنۡفَقُوۡا ؕ ذٰلِكُمۡ حُكۡمُ اللّٰهِ ؕ يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ (۱۰)

اوکه ستاسي دکافرو ميرمنوله مهرونو څخه (چي کافرانو ته ورغلي يا په مکه کي پاتي شوې دي) يوڅه تاسي ته له کافرانو څخه بيرته په لاس درنشي او بيا ستاسي وار راشي (پرکافرانو برلاسي شئ او په جهاد کي ښځي او غنيمت تر لاسه کړئ) نو دکومو خلکو ميرمني چي هلته ورغلي يا پاتي شويدي هغوته هغومره څه ورکړئ چي دهغوله ورکړيو مهرونو سره برابر وي.اوله هغه خدای نه ويريدونکي او سئ چي پرهغه مو ايمان راوړيدی .

وَ اِنۡ فَاتَكُمۡ شَىۡءٌ مِّنۡ اَزۡوَاجِكُمۡ اِلَى الۡكُفَّارِ فَعَاقَبۡتُمۡ فَاٰتُوا الَّذِيۡنَ ذَهَبَتۡ اَزۡوَاجُهُمۡ مِّثۡلَ مَاۤ اَنۡفَقُوۡا ؕ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِىۡۤ اَنۡتُمۡ بِهٖ مُؤۡمِنُوۡنَ (۱۱)

ای پيغمبره ! کله چي تاته مومني ښځي د بيعت کولو له پاره راشي او د دې خبرې ژمنه وکړي چي هغوی به له الله سره کوم شی نه شريکوي ، غلابه نه کوي ، زنابه نکوي ، خپل اولاد به نه وژني ، دخپلو لاسونو پښوپه وړاندې به کوم بهتان جوړ کړی نه راوړي ، او په کوم معروف کار کښي به ستانافرماني نکوي له هغونه بيعت واخله ، او دهغوپه حق کښي له الله نه مغفرت وغواړه ، په يقيني ډول الله ښښونکی او رحم کوونکی دی .

يٰۤاَيُّهَا النَّبِىُّ اِذَا جَآءَكَ الۡمُؤۡمِنٰتُ يُبَايِعۡنَكَ عَلٰٓى اَنۡ لَّا يُشۡرِكۡنَ بِاللّٰهِ شَيۡـًٔا وَّ لَا يَسۡرِقۡنَ وَ لَا يَزۡنِيۡنَ وَ لَا يَقۡتُلۡنَ اَوۡلَادَهُنَّ وَ لَا يَاۡتِيۡنَ بِبُهۡتَانٍ يَّفۡتَرِيۡنَهٗ بَيۡنَ اَيۡدِيۡهِنَّ وَ اَرۡجُلِهِنَّ وَ لَا يَعۡصِيۡنَكَ فِىۡ مَعۡرُوۡفٍ فَبَايِعۡهُنَّ وَ اسۡتَغۡفِرۡ لَهُنَّ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱۲)

ای مومنانو ، هغه خلك دوستان مه نيسئ چي الله وربانديې غضب کړيدی ، چي له اخرت نه داسي ناهيلي دي لکه څنګه چي په قبرونو کښي پراته کافران ناهيلي دي .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَوَلَّوۡا قَوۡمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيۡهِمۡ قَدۡ يَئِسُوۡا مِنَ الۡاٰخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الۡكُفَّارُ مِنۡ اَصۡحٰبِ الۡقُبُوۡرِ (۱۳)

دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

دالله تسبيح كړيده هرهغه شي چې په آسمانونو كښې دى او هر هغه شي چې په ځمكه كښې دي او هغه برلاسى او د حكمت څښتن دى .

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِى الۡاَرۡضِ ۚ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۱)

اى مومنانو ، تاسي ولې هغه څه وايئ چې كوئ يې نه ،

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لِمَ تَقُوۡلُوۡنَ مَا لَا تَفۡعَلُوۡنَ (۲)

دالله په وړاندې داډير د غضب وړ حركت دى چې تاسي هغه څه ووايئ چې كوئ يې نه .

کَبُرَ مَقۡتًا عِنۡدَ اللّٰہِ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا مَا لَا تَفۡعَلُوۡنَ (۳)

دالله خو هغه خلك خوښ دى چې دهغه په لاركښې پداسي شان صف تړلي جنګيږي چې ګواكي هغوى يو محكم كړى شوى ديوال دى .

اِنَّ اللّٰہَ یُحِبُّ الَّذِیۡنَ یُقَاتِلُوۡنَ فِیۡ سَبِیۡلِہٖ صَفًّا کَاَنَّہُمۡ بُنۡیَانٌ مَّرۡصُوۡصٌ (۴)

اوياده كړه دموسىٰ عليه السلام هغه خبره چې هغه خپل قوم ته ويلي وو چې (( اى زما قومه ! تاسي ولې ما ازاروئ پداسي حال كښې چې تاسي ښه پوهيږئ چې زه تاسي ته دالله ليږل شوى رسول يم ؟ بيا كله چې هغوى كږيدل غوره كړل نو الله دهغوى زړونه كاږه كړل ، الله فاسقانوته هدايت نكوي .

وَ اِذۡ قَالَ مُوۡسٰی لِقَوۡمِہٖ یٰقَوۡمِ لِمَ تُؤۡذُوۡنَنِیۡ وَ قَدۡ تَّعۡلَمُوۡنَ اَنِّیۡ رَسُوۡلُ اللّٰہِ اِلَیۡکُمۡ ؕ فَلَمَّا زَاغُوۡۤا اَزَاغَ اللّٰہُ قُلُوۡبَہُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ لَا یَہۡدِی الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِیۡنَ (۵)

او ياده كړه دعيسى ابن مريم هغه خبره چې هغه ويلي وو چې (( اى بني اسرائيلو زه تاسي ته دالله ليږل شوى رسول يم ، تصديقوونكى يم دهغه تورات چې له مانه مخكښې راغلى موجود دى ، اوزيرى وركوونكى يم ديو پيغمبر چې له مانه وروسته به راشي چې دهغه نوم به احمد وي . خو كله چې هغه دوى ته له ښكاره ځرګند ونښانو سره راغى نو دوى وويل داخو ځرګندې كوډې دي .

وَ اِذۡ قَالَ عِیۡسَی ابۡنُ مَرۡیَمَ یٰبَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ اِنِّیۡ رَسُوۡلُ اللّٰہِ اِلَیۡکُمۡ مُّصَدِّقًا لِّمَا بَیۡنَ یَدَیَّ مِنَ التَّوۡرٰىۃِ وَ مُبَشِّرًۢا بِرَسُوۡلٍ یَّاۡتِیۡ مِنۡۢ بَعۡدِی اسۡمُہٗۤ اَحۡمَدُ ؕ فَلَمَّا جَآءَہُمۡ بِالۡبَیِّنٰتِ قَالُوۡا ہٰذَا سِحۡرٌ مُّبِیۡنٌ (۶)

ښه نو اوس به له هغه چانه بل غټ ظالم څوك وي چې پر الله د درواغو بهتان وتړي پداسي حال كښې چې هغه ته داسلام ( دالله په وړاندې داطاعت سرښكته كولو ) بلنه وركول كيږي ؟ دغسې ظالمانوته الله سمه لاره نه ښيي .

وَ مَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰہِ الۡکَذِبَ وَ ہُوَ یُدۡعٰۤی اِلَی الۡاِسۡلَامِ ؕ وَ اللّٰہُ لَا یَہۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِیۡنَ (۷)

دوى د خولو په پوكيو سره دالله درڼا مړه كول غواړي ، او د الله فيصله داده چې هغه خپله رڼا بشپړه خوره كړي كه دكافرانو دا هرڅومره بده ايسي .

یُرِیۡدُوۡنَ لِیُطۡفِـُٔوۡا نُوۡرَ اللّٰہِ بِاَفۡوَاہِہِمۡ وَ اللّٰہُ مُتِمُّ نُوۡرِہٖ وَ لَوۡ کَرِہَ الۡکٰفِرُوۡنَ (۸)

همغه ذات دى چې خپل پيغمبر يې له هدايت او حق دين سره ليږلى دى ترڅوچې هغه پرټول دين برلاسى كړي كه د مشركانو داهر څومره بدايسي هم.

ہُوَ الَّذِیۡۤ اَرۡسَلَ رَسُوۡلَہٗ بِالۡہُدٰی وَ دِیۡنِ الۡحَقِّ لِیُظۡہِرَہٗ عَلَی الدِّیۡنِ کُلِّہٖ وَ لَوۡ کَرِہَ الۡمُشۡرِکُوۡنَ (۹)

اى مؤمنانو ، ايا زه وښيم تاسي ته هغه تجارت چې تاسي له دردناك عذاب نه وژغوري ؟

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا ہَلۡ اَدُلُّکُمۡ عَلٰی تِجَارَۃٍ تُنۡجِیۡکُمۡ مِّنۡ عَذَابٍ اَلِیۡمٍ (۱۰)

پرالله او دهغه پر پيغمبرباندې ايمان راوړئ او دالله په لاره كښې پخپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد وكړئ ، همدغه ستاسي له پاره بهتره ده كه تاسي پوهيږئ .

تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰہِ وَ رَسُوۡلِہٖ وَ تُجَاہِدُوۡنَ فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰہِ بِاَمۡوَالِکُمۡ وَ اَنۡفُسِکُمۡ ؕ ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۱۱)

الله به ستاسي ګناهونه دروبښي او تاسي به هغو باغونو ته ننباسي چې تر هغو لاندې به ويالي بهيږي او دابدى استوګنې په جنتونو كښې به ډير غوره كورونه دركړي ، دادى ستر برياليتوب .

یَغۡفِرۡ لَکُمۡ ذُنُوۡبَکُمۡ وَ یُدۡخِلۡکُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ وَ مَسٰکِنَ طَیِّبَۃً فِیۡ جَنّٰتِ عَدۡنٍ ؕ ذٰلِکَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِیۡمُ (۱۲)

او هغه بل شی چې تاسي يې خوښوئ هغه به هم درکړي ، دالله لخوا مرسته او ډير نژدې په برخه کيدونکی بری . ای پيغمبره ، مومنانو ته د دې زيری ورکړه .

وَ اُخْرٰی تُحِبُّوْنَہَا ؕ نَصْرٌ مِّنَ اللّٰہِ وَ فَتْحٌ قَرِیْبٌ ؕ وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِیْنَ (۱۳)

ای مؤمنانو ، دالله مرستندويان شئ لکه څنګه چې عيسی ابن مريم حواريونوته ويلي وو : (( څوك دی دالله لوري ته (په بلنه کښې ) زما ملاتړ؟ )) او حواريونو ځواب ورکړی وْ (( مونږ يو دالله مرستندويان )) په هغه وخت کښې دبني اسرائيلو يوې ډلې ايمان راوړ او بلې ډلې انکار وکړ . بيا مونږ د مومنانو ملاتړ وکړ دهغوی د دښمنانو پر ضد او همغوی برلاسی شول .

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا کُوْنُوْۤا اَنْصَارَ اللّٰہِ کَمَا قَالَ عِیْسَی ابْنُ مَرْیَمَ لِلْحَوَارِیّٖنَ مَنْ اَنْصَارِیْۤ اِلَی اللّٰہِ ؕ قَالَ الْحَوَارِیُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰہِ فَاٰمَنَتْ طَّآئِفَۃٌ مِّنْۢ بَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ وَ کَفَرَتْ طَّآئِفَۃٌ ۚ فَاَیَّدْنَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا عَلٰی عَدُوِّہِمْ فَاَصْبَحُوْا ظٰہِرِیْنَ (۱۴)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

دالله تسبيح کوي هر هغه شی چې په اسمانونو کښې دی او هر هغه شی چې په ځمکه کښې دي . باچادی ، قدوس دی ، برلاسی او د حکمت څښتن دی .

یُسَبِّحُ لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الْاَرْضِ الْمَلِکِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِیْزِ الْحَکِیْمِ (۱)

همغه ذات دی چې په اميونو کښې يې پيغمبر پخپله له همغوی نه راپاڅوه چې هغوته دهغه ايتونه لولي ، دهغوی ژوند سپيڅلی کوي او هغوته د کتاب او حکمت ښوونه کوي پداسې حال کښې چې له دينه مخکښې هغوی په څرګنده ګمراهی کښې غورځيدلي وو .

ہُوَ الَّذِیْ بَعَثَ فِی الْاُمِّیّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْہُمْ یَتْلُوْا عَلَیْہِمْ اٰیٰتِہٖ وَ یُزَکِّیْہِمْ وَ یُعَلِّمُہُمُ الْکِتٰبَ وَ الْحِکْمَۃَ * وَ اِنْ کَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ (۲)

او ( د دغه پيغمبر صلی الله عليه وسلم بعثت ) دهغو نورو خلکو لپاره هم دی چې لاتراوسه له دوی سره ندي يوځای شوي ، الله برلاسی او دحکمت څښتن دی .

وَّ اٰخَرِیْنَ مِنْہُمْ لَمَّا یَلْحَقُوْا بِہِمْ ؕ وَ ہُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ (۳)

دا دالله فضل دی چاته چې يې خوښه شي ورکوي يې او هغه سترلورونکی دی .

ذٰلِکَ فَضْلُ اللّٰہِ یُؤْتِیْہِ مَنْ یَّشَآءُ ؕ وَ اللّٰہُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِیْمِ (۴)

کوم کسان چې دتورات حامل ګرځول شوي وو خو هغوی دهغه پيتی پورته نکړ دهغو مثال دهغه خره په څير دی چې په هغه باندې کتابونه بارکړای شوي وي . له دې نه هم ډير بد مثال دی دهغو خلکو چې دالله ايتونه يې درواغ ګڼلي دي . دغسې ظالمانوته الله هدايت نکوي .

مَثَلُ الَّذِیْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىۃَ ثُمَّ لَمْ یَحْمِلُوْہَا کَمَثَلِ الْحِمَارِ یَحْمِلُ اَسْفَارًا ؕ بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِیْنَ کَذَّبُوْا بِاٰیٰتِ اللّٰہِ ؕ وَ اللّٰہُ لَا یَہْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ (۵)

دوی ته ووايه (( ای هغو خلکو چې يهوديان شوي يئ . که تاسي پدې انګيرنه مغروريئ چې له نورو ټولو خلکو پرته فقط همداتاسي دالله نازولي يئ نو د مرګ هيله وکړئ که تاسي پخپلې دغې انګيرنې کښې رښتوني يئ )) .

قُلْ یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ ہَادُوْۤا اِنْ زَعَمْتُمْ اَنَّکُمْ اَوْلِیَآءُ لِلّٰہِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ کُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (۶)

خو دوی به هيڅکله دهغه هيله ونکړي دخپلو کړنولامله چې دوی په خپلو لاسونو وړاندې ليږلي دي او الله دغه ظالمان ښه پيژني

وَ لَا یَتَمَنَّوْنَہٗۤ اَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ اَیْدِیْہِمْ ؕ وَ اللّٰہُ عَلِیْمٌۢ بِالظّٰلِمِیْنَ (۷)

دوی ته ووايه ((له کوم مرګ نه چې تاسي تښتئ هغه تاسي ته راتلونکی دی بيابه تاسي دهغه ذات حضورته وړاندې شئ چې په پټ او ښکاره باندې پوهيدونکی دی او هغه به تاسي ته وښيي چې تاسي څه کول .

قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِیْ تَفِرُّوْنَ مِنْہُ فَاِنَّہٗ مُلٰقِیْکُمْ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰی عٰلِمِ الْغَیْبِ وَ الشَّہَادَۃِ فَیُنَبِّئُکُمْ بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۸)

ای مومنانو ! کله چې دجمعې په ورځ دلمانځه لپاره نداء (اذان) وشي نو دالله د ذکر خواته وځغلئ او پيرل پلورل پريږدئ داستاسي له پاره ډيره غوره ده که تاسي پوهيږئ

یٰۤاَیُّہَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوۃِ مِنْ یَّوْمِ الْجُمُعَۃِ فَاسْعَوْا اِلٰی ذِکْرِ اللّٰہِ وَ ذَرُوا الْبَیْعَ ؕ ذٰلِکُمْ خَیْرٌ لَّکُمْ اِنْ کُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ (۹)

فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِی الْاَرْضِ وَ ابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَ اذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ (١٠)

بیا کله چې لمونځ ترسره شي نو په ځمکه کښې خواره شئ او د الله فضل ولټوئ . او دالله ډیر ډیر یادوونکي اوسئ ، ښایي چې تاسې ته فلاح په برخه شي .

وَ اِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا انْفَضُّوْا اِلَيْهَا وَ تَرَكُوْكَ قَآئِمًا ؕ قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَ مِنَ التِّجَارَةِ ؕ وَ اللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ (١١)

او کله چې دوی سوداګري او لوبه ننداره کیدونکي ولیدله نو دهغې خواته وځغیدل او ته یې ولاړ پریښودلې . دوی ته ووایه له الله سره چې څه دي هغه له لوبې ننداري او سوداګری نه غوره دي او الله ترټولوښه روزي رسان دی .

بِسْمِ ٱللّٰهِ ٱلرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ وَ اللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَ اللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ۚ(١)

ای پیغمبره ، کله چې دغه منافقان تاته راځي نو وائي ((مونږ شاهدی وایوچې ته په یقینې توګه دالله رسول یې )) هو، الله پوهیږي چې ته ارومرو دهغه رسول یې ، خوالله شاهدي وایئ چې دغه منافقان بیخي درواغجن دي .

اِتَّخَذُوْا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (٢)

دوی خپل قسمونه سپرګرځولي دي او پدې ډول دوی دالله له لارې نه منع دي او نور منع کوي . څومره ناوړه عملونه دي چې دوی یې کوي .

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ (٣)

داهرڅه له دې امله دې چې دوی ایمان راوړ بیا کافرشول له دې امله د دوی پرزړونو مهر ولګول شو اوس دوی په هیڅ نه پوهیږی .

وَ اِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ؕ وَ اِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ؕ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ؕ يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ؕ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ؕ قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ۫ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ (٤)

ته که دوی ووینې نو د دوی جوسې به ډیرې شانداری درته ښکاره شي که وغږیږي نوته به یې خبروته غوږ ونیسې . خو په اصل کښې دوی ګواکې دلرګي کُندې دي چې له دیوال سره په مرتب ډول درول شوي وي . دوی هر زورور اواز د ځان پرضد ګڼي، دوی پاخه د ښمنان دي . له دوی نه ځان ساتونکي اوسه ، خدای دې دوی ووهي ، دوی کوم لوري ته اړول کیږي .

وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَوَّوْا رُءُوْسَهُمْ وَ رَاَيْتَهُمْ يَصُدُّوْنَ وَ هُمْ مُّسْتَكْبِرُوْنَ (٥)

اوکله چې دوی ته ویل کیږی چې راشئ ترڅو چې دالله رسول ستاسې له پاره د مغفرت دعا وکړي نو خپلو سرونوته ټکان ورکوي او ته وینې چې دوی په ډیر غرورسره له راتلونه ډ ډه کوي .

سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ اَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ؕ لَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفٰسِقِيْنَ (٦)

ای پیغمبره ، که ته د دوی لپاره دمغفرت دُعا وکړې او که یې ونکړې، د دوی لپاره یو شانته ده الله به هیڅکله دوی ته ښښنه ونکړي ، الله فاسقانوته هیڅکله هدایت نکوي

هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا ؕ وَ لِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ لٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ (٧)

داهمغه کسان دي چې وائي د پیغمبر پرملګرو لګښت کول بندکړئ ترڅوچې دوی تیت پرک شي . پداسې حـال کې چې د اسمانونو او ځمکې دخزانو مالك الله دی ، خو دغه منافقان نه پوهیږي .

يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ؕ وَ لِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَ لِرَسُوْلِهٖ وَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ وَ لٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ (٨)

دوی وایي چې که مونږ بیرته مدینې ته ستانه شو نو څوك چې دعزت خاوند دی هغه به ذلیل له هغه ځایه وباسی . پداسې حال کې چې عزت خو د الله او دهغه درسول او موءمنانو لپاره دی ، خو دغه منافقان نه پوهیږي.

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَ لَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۚ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (٩)

ای مومنانو ، ستاسې مالونه او اودلاونه دې تاسې دالله له یاد نه غافل نکړي . کوم کسان چې داکار وکړي هغوی زیانمن دی

کومه روزی چې مونږ تاسي ته درکړیده له هغې نه لګښت وکړئ مخکښې له دی چې له تاسي نه دچا دمرګ نښه راشي او په هغه وخت کښې هغه ووائي چې ((ای زما ربه ، تا ولې ماته لږ نورمهلت رانکړ چې ما خیرات کړی وای او په صالحانو کښې شامل شوی وای ))

وَ اَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْ لَا اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ فَاَصَّدَّقَ وَ اَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ (١٠)

پداسي حال کښې کله چې دیو چا دعمر د پوره کیدو وخت رارسیږي نو الله هغه ته هیڅکله نور مهلت نه ورکوي او تاسي چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی .

وَ لَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ؕ وَ اللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ (١١)

دالله په نوم چې ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دالله تسبیح کوي هر هغه څه چې په اسمانونو کښې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کښې دي . بادشاهي د همغه ده او دهمغه لپاره ثنا ستاینه ده او همغه پر هر څه قادر دی

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِي الْاَرْضِ ۚ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ ۫ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (١)

الله هغه ذات دی چې تاسي یې پیدا کړئ ، بیاله تاسي نه څوك کافر دي او څوك مومن ، او الله ټول هغه څه ویني چې تاسي یې کوئ .

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّ مِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (٢)

هغه اسمانونه او ځمکه برحق پیدا کړي دي او ستاسي صورتونه یې جوړ کړل ښه ښایسته یې جوړ کړل ، او دهمغه لوري ته په پای کښې ورګرځیدل دی .

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَ صَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۚ وَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ (٣)

هغه د اسمانونو او ځمکي پرهر شي پوه دی . څه چې تاسي پټوئ او څه چې تاسي ښکاره کوئ ټول هغه ته معلوم دي او الله ان دزړونو په حال پوهیږي .

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَ مَا تُعْلِنُوْنَ ؕ وَ اللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (٤)

ایا تاسي ته دهغو خلکو څه خبرندی رسیدلی چې له تاسي نه مخکښې یې کفر اختیار کړی و او بیایې د خپلو ناوړه عملونو خوند وڅکه ؟ او وراندې دهغو لپاره یو درد ناك عذاب دی

اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ ۫ فَذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ (٥)

د دې عاقبت وړ هغوی ځکه شول چې هغوته د هغوی پیغمبران له څرګندو روښانه دلیلونو سره راغلل خو هغوی وویل ایا انسان مونږ ته لارښوونه کوي ؟ پدې توګه یې له منلونه انکار وکړ او مخ یې ترې واړوه، هله نو الله هم له هغونه بې پروا شو او الله خو بې نیازه او خپله پخپل ذات کښې ستایل شویدی .

ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالُوْا اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا ۫ فَكَفَرُوْا وَ تَوَلَّوْا وَّ اسْتَغْنَى اللّٰهُ ؕ وَ اللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ (٦)

کافرانو له غټې دعوې سره ویلي دي چې هغوی به له مرګه وروسته هیڅکله بیا راپانځول شي . دوی ته ووایه ((نه، زما په رب قسم ، تاسي به ارومرو راپاڅول شئ ، بیابه ارومرو درته وښودله شي چې تاسي ( په دنیا کښې ) څه کړیدي ، او داکار دالله لپاره ډیر اسانه دی .

زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا ؕ قُلْ بَلٰى وَ رَبِّيْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ؕ وَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ (٧)

نو ایمان راوړئ پر الله او دهغه پر پیغمبر او پر هغې رڼا باندې چې مونږ نازله کړیده . تاسي چې څه کوئ الله پرې ښه خبر دی .

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ النُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (٨)

د دې معلومات به تاسي ته په هغه ورځ وشي) کله چې دغونډې په ) ورځ هغه تاسي ټول راغونډ کړي . هغه به يو دبل په مقابل کښې دخلکو دګټلو بايللو ورځ وي . چاچې پرالله ايمان راوړيدی او نيك عمل کوي ، الله به دهغه ګناه ورژوي او هغه به داسي جنتونوته ننباسي چې تر هغو لاندې به ويالي بهيږي . دوی به د تل لپاره په . هغو کښې اوسيږي همدا ستر برياليتوب دی

يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ؕ وَ مَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَ يَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا اَبَدًا ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ (٩)

او کوم کسان چې کافر شويدي او زمونږ ايتونه يې درواغ ګڼلي دي هغوی به د دوزخ استوګن وي چې په هغه کښې به هغوی دتل لپاره وي او هغه ډير بد استوګنځی دئ

وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَاۤ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (١٠)

هيڅ يو مصيبت هيڅکله نه راځي مګر دالله په اذن سره . څوك چې پر الله ايمان ولري الله دهغه زړه ته هدايت وربخښي او الله په هر څه پوه دی .

مَاۤ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَ مَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ (١١)

دالله اطاعت وکړئ او دپيغمبر اطاعت وکړئ خوکه تاسي له اطاعت نه مخ اړوئ نو زمونږ پر پيغمبر باندې له څرګند روښانه حق رسوني نه پرته څه مسوليت نشته .

وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ (١٢)

الله هغه ذات دی چې له هغه پرته بل خدای نشته ، له دې امله ايمان راوړونکي دې پرهمدې الله باندې توکل وکړي

اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ وَ عَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ (١٣)

ای مومنانو ، ستاسي له ميرمنو او ستاسي له اولادونو څخه ځيني ستاسي دښمنان دي ، له هغونه ځان اداره کړئ . او که تاسي له عفوې او تيريدني څخه کار واخلئ او ښنه وکړئ نو الله ښونکی او رحيم دی .

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَ اَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ۚ وَ اِنْ تَعْفُوْا وَ تَصْفَحُوْا وَ تَغْفِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (١٤)

ستاسي مالونه او ستاسي اولادونه خويوه ازمونه ده، او همدا الله دی چې له هغه سره لوی اجر دی .

اِنَّمَاۤ اَمْوَالُكُمْ وَ اَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ؕ وَ اللّٰهُ عِنْدَهٗۤ اَجْرٌ عَظِيْمٌ (١٥)

له دې امله ترڅو پورې چې ستاسي په وس کښې وي له الله نه ويريدونکي اوسئ او واورئ او اطاعت وکړئ او خپل مـا ل ولګوئ ، همدا ستاسي لپاره خير دی . څوك چې دخپل زړه له تنګی نه خوندي پاتي شو نو همغوی فلاح ميندونکي دي .

فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَ اسْمَعُوْا وَ اَطِيْعُوْا وَ اَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ؕ وَ مَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (١٦)

که تاسي الله ته حسنه قرض ورکړئ نو هغه به تاسي ته څو چنده زيات درکړي او ستاسي ګناهونه به دروبښي ، الله ډير قدردان او دتحمل څښتن دی ،

اِنْ تُقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا يُّضٰعِفْهُ لَكُمْ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ؕ وَ اللّٰهُ شَكُوْرٌ حَلِيْمٌ (١٧)

په حاضر او غائب هر شي پوهيږي ، برلاسی او حکمت والادی .

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَ الشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (١٨)

دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ای پيغمبره ص کله چې تاسي خلك ښځوته طلاق ورکوئ نو هغوته دهغو په عدت کښې طلاق ورکوئ . او دعدت زمانه سمه وشميرئ ، او له الله نه ووېرېږئ چې ستاسي رب دی . ( دعدت په زمانه کښې ) مه تاسي هغوی د هغو له کورونو څخه باسئ او نه دی هغوی پخپله وځي ، مګر داچې که هغوی د کومې څرګندې بې حيايي مرتکبې شي . او دا دالله ټاکلي حدود دي ، او څوك چې دالله له حدودو څخه تيری وکړي هغه به پر خپل ځان خپله ظلم وکړي ته نه پوهيږې ، ښائي له هغه وروسته الله (د توافق) څه لاره پيداکړي .

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَ اَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ وَ لَا يَخْرُجْنَ اِلَّاۤ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ؕ وَ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَ مَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا (١)

بیا کله چې دهغو دخپل (عدت) موده پای ته ورسیږي نو یا هغوی په ښه توګه ( پخپله نکاح کښې ) وساتئ ، یا په ښه توګه له هغونه جداشئ . او دوه داسې کسان شاهدان ونیسئ چې له تاسې نه دعدل خاوندان وي او ( ای شاهدانو) شاهدي سمه صحیح دالله لپاره اداکړئ . دغه خبرې دي چې دهغو تاسوته نصیحت کیږي ، هر هغه چاته چې پر الله او دآخرت پر ورځ ایمان ولري . څوك چې له الله نه په ویرېدو کار وکړي الله به دهغه لپاره له ستونزونه د وتلو کومه لاره پیداکړي

فَاِذَا بَلَغۡنَ اَجَلَہُنَّ فَاَمۡسِکُوۡہُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ اَوۡ فَارِقُوۡہُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ وَّ اَشۡہِدُوۡا ذَوَیۡ عَدۡلٍ مِّنۡکُمۡ وَ اَقِیۡمُوا الشَّہَادَۃَ لِلّٰہِ ؕ ذٰلِکُمۡ یُوۡعَظُ بِہٖ مَنۡ کَانَ یُؤۡمِنُ بِاللّٰہِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ ۬ؕ وَ مَنۡ یَّتَّقِ اللّٰہَ یَجۡعَلۡ لَّہٗ مَخۡرَجًا ۙ(۲)

او هغه ته به له داسې لارې نه روزي ورکړي چې هغه لوري ته دهغه ګومان هم نه رسیږي .څوك چې پر الله توکل وکړي دهغه لپاره هغه کافي دی الله دخپل کار پوره کوونکی دی . الله دهر شي لپاره یوه اندازه ټاکلې ده .

وَّ یَرۡزُقۡہُ مِنۡ حَیۡثُ لَا یَحۡتَسِبُ ؕ وَ مَنۡ یَّتَوَکَّلۡ عَلَی اللّٰہِ فَہُوَ حَسۡبُہٗ ؕ اِنَّ اللّٰہَ بَالِغُ اَمۡرِہٖ ؕ قَدۡ جَعَلَ اللّٰہُ لِکُلِّ شَیۡءٍ قَدۡرًا (۳)

او ستاسې له مېرمنو څخه چې کومې له حیضه ناهیلې شوې وي دهغو په باب که تاسې شکمن شوي یئ نو (درته معلومه دې وي چې ) د هغو عدت درې میاشتې دی .او همدغه حکم دهغو ښځو دی چې لاتر اوسه یې حیض نه وي راغلی او دحامله ښځو دعدت حد دادی چې هغوې حمل وضع کړي . څوك چې له الله نه وویریږي دهغه په کارکښې هغه اسانتیا پیدا کوی .

وَ الّٰٓیِٴۡ یَئِسۡنَ مِنَ الۡمَحِیۡضِ مِنۡ نِّسَآئِکُمۡ اِنِ ارۡتَبۡتُمۡ فَعِدَّتُہُنَّ ثَلٰثَۃُ اَشۡہُرٍ ۙ وَّ الّٰٓیِٴۡ لَمۡ یَحِضۡنَ ؕ وَ اُولَاتُ الۡاَحۡمَالِ اَجَلُہُنَّ اَنۡ یَّضَعۡنَ حَمۡلَہُنَّ ؕ وَ مَنۡ یَّتَّقِ اللّٰہَ یَجۡعَلۡ لَّہٗ مِنۡ اَمۡرِہٖ یُسۡرًا (۴)

دا دالله حکم دی چې هغه تاسې ته نازل کړیدی . څوك چې له الله نه وویریږي الله به د هغه بدی له هغه نه ایسته کړي او هغه ته به لوی اجر ورکړي .

ذٰلِکَ اَمۡرُ اللّٰہِ اَنۡزَلَہٗۤ اِلَیۡکُمۡ ؕ وَ مَنۡ یَّتَّقِ اللّٰہَ یُکَفِّرۡ عَنۡہُ سَیِّاٰتِہٖ وَ یُعۡظِمۡ لَہٗۤ اَجۡرًا (۵)

هغوته (دعدت په زمانه کښې ) په هماغه ځای کښې استوګنه ورکړئ چیرته چې تاسې اوسیږئ ، هر راز ځای چې تاسې ته میسر وي او دهغو دتنګولو لپاره هغوی مه ځوروئ . او که هغوی حاملې وي نو پر هغوی تر هغه وخته لګښت وکړئ ترڅو چې هغوې حمل نه وي وضع کړی .بیا که هغوی ستاسې لپاره ( ماشوم ته ) تی ورکوی نو هغوته به د هغو اجوره ورکوئ او (داجورې معامله ) په ښه توګه په خپل منځي خبرواترو سره فیصله کړئ . خوکه تاسې (داجورې په پریکړه کښې ) یوبل تنګ کړنو ماشوم ته به کومه بله ښځه تی ورکړی

اَسۡکِنُوۡہُنَّ مِنۡ حَیۡثُ سَکَنۡتُمۡ مِّنۡ وُّجۡدِکُمۡ وَ لَا تُضَآرُّوۡہُنَّ لِتُضَیِّقُوۡا عَلَیۡہِنَّ ؕ وَ اِنۡ کُنَّ اُولَاتِ حَمۡلٍ فَاَنۡفِقُوۡا عَلَیۡہِنَّ حَتّٰی یَضَعۡنَ حَمۡلَہُنَّ ۚ فَاِنۡ اَرۡضَعۡنَ لَکُمۡ فَاٰتُوۡہُنَّ اُجُوۡرَہُنَّ ۚ وَ اۡتَمِرُوۡا بَیۡنَکُمۡ بِمَعۡرُوۡفٍ ۚ وَ اِنۡ تَعَاسَرۡتُمۡ فَسَتُرۡضِعُ لَہٗۤ اُخۡرٰی ؕ(۶)

شتمن دې له خپلې شتمنۍ سره سمه نفقه ورکړي ، او چاته چې روزي کمه ورکړه شوې وي هغه دې له هماغه مال څخه لګښت وکړي چې الله هغه ته ورکړیدی . الله چې چاته څومره څه ورکړیدي له هغې نه په زیاتو هغه نه مکلفوي . لیرې نده چې الله له تنګلاسۍ نه وروسته پراخي هم ورپه برخه کړي .

لِیُنۡفِقۡ ذُوۡ سَعَۃٍ مِّنۡ سَعَتِہٖ ؕ وَ مَنۡ قُدِرَ عَلَیۡہِ رِزۡقُہٗ فَلۡیُنۡفِقۡ مِمَّاۤ اٰتٰىہُ اللّٰہُ ؕ لَا یُکَلِّفُ اللّٰہُ نَفۡسًا اِلَّا مَاۤ اٰتٰىہَا ؕ سَیَجۡعَلُ اللّٰہُ بَعۡدَ عُسۡرٍ یُّسۡرًا (۷)

څومره کلي دي چې هغوی دخپل رب او دهغه دپېغمبرانو له حکم نه سرغړاوی وکړ نو مونږ له هغو سره سخته محاسبه وکړه او هغوی ته مو سخته ناکاره سزا ورکړه

وَ کَاَیِّنۡ مِّنۡ قَرۡیَۃٍ عَتَتۡ عَنۡ اَمۡرِ رَبِّہَا وَ رُسُلِہٖ فَحَاسَبۡنٰہَا حِسَابًا شَدِیۡدًا ۙ وَّ عَذَّبۡنٰہَا عَذَابًا نُّکۡرًا (۸)

هغوی دخپلو کړنوخوند وڅکه او دهغوی دکار پای سراسر زیان دی ،

فَذَاقَتۡ وَبَالَ اَمۡرِہَا وَ کَانَ عَاقِبَۃُ اَمۡرِہَا خُسۡرًا (۹)

الله (په آخرت کښي ) د هغو لپاره سخت عذاب تيار کړيدی . نو له الله نه ووېرېږئ ای د پوهي خاوندانو چي ايمان مو راوړی دی ، الله تاسي ته يو نصيحت نازل کړيدی.

اَعَدَّ اللّٰهُ لَہُمۡ عَذَابًا شَدِيۡدًا ۙ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰۤاُولِى الۡاَلۡبَابِ ۛۚ ۖ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا ۛ ۚ قَدۡ اَنۡزَلَ اللّٰهُ اِلَيۡكُمۡ ذِكۡرًا (۱۰)

يوداسي پېغمبر چي تاسي ته دالله ښکاره څرګند هدايت درکوونکي آيتونه لولي ترڅو چي ايمان راوړونکي او نيك عمله خلك له تيارونه رڼا ته راوباسي . اوڅوك چي پر الله ايمان راوړي او نيك عمل وکړي ، الله به هغه داسي جنتونوته ننباسي چي ترهغو لاندي به ويالي بهېږي . دوی به په هغو کښي دتل لپاره اوسېږي . الله د دغسي انسان لپاره ډېره غوره روزي ساتلي ده .

رَّسُوۡلًا يَّتۡلُوۡا عَلَيۡكُمۡ اٰيٰتِ اللّٰهِ مُبَيِّنٰتٍ لِّيُخۡرِجَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوۡرِ ؕ وَ مَنۡ يُّؤۡمِنۡۢ بِاللّٰهِ وَ يَعۡمَلۡ صَالِحًا يُّدۡخِلۡهُ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡہَاۤ اَبَدًا ؕ قَدۡ اَحۡسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزۡقًا (۱۱)

الله هغه ذات دی چي اوه اسمانونه يي پيدا کړل او دهمغو په شان له ځمکي نه هم . دهغو په مينځ کښي حکم نازلېږي ، ( داتاسي ته د دې لپاره ويل کېږي ) تر څو چي تاسي وپوهېږئ چي الله پر هر څه قدرت لري ، او دا چي دالله علم په هر شي باندې چاپېر دی .

اَللّٰهُ الَّذِىۡ خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ وَّ مِنَ الۡاَرۡضِ مِثۡلَہُنَّ ؕ يَتَنَزَّلُ الۡاَمۡرُ بَيۡنَہُنَّ لِتَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ قَدۡ اَحَاطَ بِكُلِّ شَىۡءٍ عِلۡمًا (۱۲)

دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

ای پيغمبره ! ته ولي هغه شی حراموې چي الله ستا لپاره حلال کړي دی ؟ (ايا د دې لپاره چي ته د خپلو مېرمنو خوښی غواړې ؟ الله ډېر ښنونکی خورا مهربان دي .

يٰۤاَيُّہَا النَّبِىُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ۚ تَبۡتَغِىۡ مَرۡضَاتَ اَزۡوَاجِكَ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۱)

الله ستاسي لپاره له خپلو سوګندونو څخه د غاړې خلاصولو لاره جوړه کړيده . الله ستاسي مولٰي دی او همغه عليم او حکيم دی .

قَدۡ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمۡ تَحِلَّةَ اَيۡمَانِكُمۡ ۚ وَ اللّٰهُ مَوۡلٰٮكُمۡ ۚ وَ هُوَ الۡعَلِيۡمُ الۡحَكِيۡمُ (۲)

او دا موضوع هم د پاملرني وړده چي ) پېغمبرخپلي يوی ) مېرمني (حفصي)ته په پرده کښي (د شاتو ، يا مار يي يا زينبي دحراملولو )يوه خبره کړي وه بيا کله چي هغي (حفصي) ( عائشي ته ) هغه راز څرګند کړ ، او الله پېغمبرته د دې ( راز لو څو لو ) خبر ورکړ نو پېغمبر پرهغه باندې يو څه اندازه هغه( حفصه ) نو کله چي پېغمبر -خبر داره کړه او له يوڅه اندازې نه تېر شو هغي (حفصي)ته دغه ( د راز لوڅولو ) خبره ښکاره کړه نو هغي حفصه)پوښتنه وکړه : تاته چاد دې خبر درکړ؟ پېغمبر وويل ) ((ماته هغه ذات خبرراکړ چي په هرڅه پوهېږی اوښه خبردی .))

وَ اِذۡ اَسَرَّ النَّبِىُّ اِلٰى بَعۡضِ اَزۡوَاجِهٖ حَدِيۡثًا ۚ فَلَمَّا نَبَّاَتۡ بِهٖ وَ اَظۡهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيۡهِ عَرَّفَ بَعۡضَهٗ وَ اَعۡرَضَ عَنۡۢ بَعۡضٍ ۚ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتۡ مَنۡ اَنۡۢبَاَكَ هٰذَا ؕ قَالَ نَبَّاَنِىَ الۡعَلِيۡمُ الۡخَبِيۡرُ (۳)

که تاسي دواړه ( ای حفصي اوعائشي !) الله ته توبه وباسئ ( نو داستاسي لپاره ډېره ښه ده) ځکه چي ستاسي زړونه داعتدال له لارې نه او ښتي دي ، او که د پېغمبر پر خلاف تاسي دواړه سره لاس يو کړئ نو وپوهېږئ چي الله دهغه سرپرست دی اوله هغه وروسته جبرئيل او ټول صالح موءمنان او ټولي پرښتي د هغه ملګري او ملاتړ دي

اِنۡ تَتُوۡبَاۤ اِلَى اللّٰهِ فَقَدۡ صَغَتۡ قُلُوۡبُكُمَا ۚ وَ اِنۡ تَظٰہَرَا عَلَيۡهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوۡلٰٮهُ وَ جِبۡرِيۡلُ وَ صَالِحُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۚ وَ الۡمَلٰٓئِكَةُ بَعۡدَ ذٰلِكَ ظَہِيۡرٌ (۴)

ليری نه ده چي که پېغمبر تاسي ټولو مېرمنو ته طلاق درکړي نو الله به هغه ته ستاسي په بدل کښي داسي مېرمني ورکړي چي له تاسي نه ښې وي ، مسلماني ، ايمانداري ، اطاعت کوونکي ، توبه ويستونکی ، عبادت کوونکي ، روژه نيانی ، هجرت کوونکي ، کونډې او پيغلې.

عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنۡ طَلَّقَكُنَّ اَنۡ يُّبۡدِلَهٗۤ اَزۡوَاجًا خَيۡرًا مِّنۡكُنَّ مُسۡلِمٰتٍ مُّؤۡمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّ اَبۡكَارًا (۵)

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَ اَہْلِيْكُمْ نَارًا وَّ قُوْدُہَا النَّاسُ وَ الْحِجَارَةُ عَلَيْہَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰہَ مَآ اَمَرَہُمْ وَ يَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ (۶)

ای موءمنانو ! خپل ځانونه او خپل اولاد او کورنی له هغه اورنه وژغورئ چې دهغه د سون مواد به انسانان او تيږې وي ، چې پر هغه به غوسه ناکې سخت زړې پرښتې موءظفې وي چې هيڅکله به دالله له حکم څخه سر نه غړوي او هرامر چې ورته کيږي هغه په ځای راوړی

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ ؕ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۷)

ای کافرانو ! نن عذرونه مه وړاندې کوئ تاسې ته خوهماغسې بدله درکول کيږي لکه څنګه چې تاسې عمل کاوه .

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰہِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا ؕ عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَ يُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِہَا الْاَنْہٰرُ ۙ يَوْمَ لَا يُخْزِى اللّٰہُ النَّبِيَّ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَہٗ ۚ نُوْرُہُمْ يَسْعٰى بَيْنَ اَيْدِيْہِمْ وَ بِاَيْمَانِہِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَ اغْفِرْ لَنَا ۚ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (۸)

ای موءمنانو ! الله ته توبه وباسئ ، خالصه توبه ، کيدای شي چې الله ستاسې بدې له تاسې نه ايسته کړی او تاسې داسې جنتونوته ننباسي چې ترهغو لاندې به ويالې بهيږی دابه هغه ورځ وی چې الله خپل پيغمبر او هغه کسان چې له هغه سره يې ايمان راوړی دی رسوانه کړی دهغو رڼابه دهغو مخکې مخکې او دهغو ښی پلوته ځغلي او هغوي به وائي چې ای زمونږ ربه ، زمونږ رڼا زمونږ لپاره بشپړه کړه او مونږ ته ښښنه وکړه ته دهر څه وس واك لرې .

يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاہِدِ الْكُفَّارَ وَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَ اغْلُظْ عَلَيْہِمْ ؕ وَ مَاْوٰىہُمْ جَہَنَّمُ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (۹)

ای پيغمبره ! له کافرانو او منافقانو سره جهاد وکړه او له هغو سره سخت برخورد وکړه دهغو استوګنځی دوزخ دی او هغه ډېر ناکاره استوګنځی دی .

ضَرَبَ اللّٰہُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّ امْرَاَتَ لُوْطٍ ؕ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰہُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْہُمَا مِنَ اللّٰہِ شَيْئًا وَّ قِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ (۱۰)

الله د کافرانو په باب دنوح او لوط ميرمنې دمثال په توګه وړاندې کوي ، هغوی زمونږ د دوو صالحو بندګانو ميرمنې وې ، خو هغوې له خپلو ميړونو سره خيانت وکړاو دوې دهغو لپاره دالله په مقابل کښې هيڅ په درد.ونشو خوړلی: دواړوته وويل شول چې ځئ اورته ننوتونکو سره تاسې هم لاړې شئ

وَ ضَرَبَ اللّٰہُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ ۘ اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِى الْجَنَّةِ وَ نَجِّنِيْ مِنْ فِرْعَوْنَ وَ عَمَلِہٖ وَ نَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ (۱۱)

او دموءمنانو په باب الله د فرعون د ښځې مثال وړاندې کوي کله چې هغې دُعا وکړه چې ای زما ربه ! زما لپاره له خپل ځان سره په جنت کښې يوکور جوړ کړه او ما د فرعون او دهغه له عمل نه وژغوره او له ظالم قوم نه ماته نجات راکړه

وَ مَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرٰنَ الَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَہَا فَنَفَخْنَا فِيْہِ مِنْ رُّوْحِنَا وَ صَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّہَا وَ كُتُبِہٖ وَ كَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ (۱۲)

او دعمران دلور مريم مثال راوړي چې هغې د خپل شرمځای ساتنه کړې وه ، بيا مونږ په هغې کښې له خپل لوري نه روح پوکړ ، او هغې د خپل رب دلار ښوونو او دهغه د کتابونو تصديق وکړ او هغه له اطاعت کوونکو خلکو څخه وه .

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِہِ الْمُلْكُ ۫ وَ ہُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرُ ۙ (۱)

ډېر لوې او لوړ دی هغه ذات چې دهغه په لاس کښې د کائناتو سلطنت دی او هغه پر هر شی باندې قادر دی

الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَ الْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ؕ وَ ہُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ۙ (۲)

هغه ذات چې مرګ او ژوندېي پيدا کړ ترڅو چې تاسې وازمايې وګوری چې له تاسې څخه کوم يو د ډېر ښه عمل کوونکی دی ،او هغه زور ورهم دی او ښونکی هم

الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ؕ مَا تَرٰى فِيْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ ؕ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ ہَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ (۳)

هغه ذات چې لاندې باندې اوه اسمانونه يې پيداکړل ته به درحمان په هستونه کښې هيڅ راز نا اړوندې ونه مومې بيا راوګرځه وګوره چيرته دې کومه نيمګړتيا ترسترګو کيږي ؟

ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ اِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّ ہُوَ حَسِيْرٌ (۴)

بیابیاسترگي واړوه راواړوه ستا نظربه ستومانه نامراده بېرته درستون شي

وَ لَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَ جَعَلْنٰہَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ وَ اَعْتَدْنَا لَہُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ (۵)

مونږ تاسي ته نږدې اسمان په سترو ډیووسره سینګار کړی دی او هماغه مو د شیطانانو دویشتلو ځغلو لو وسایل ګرځولي دي مونږ د دغو شیطانانو لپاره تاوءجن اور تیار کړی دی .

وَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّہِمْ عَذَابُ جَہَنَّمَ ؕ وَ بِئْسَ الْمَصِيْرُ (۶)

کوم کسان چي په خپل رب کافران شوي دي دهغو لپاره د دوزخ عذاب دی او هغه ډېر ناکاره استوګنځی دی ،

اِذَاۤ اُلْقُوْا فِيْہَا سَمِعُوْا لَہَا شَہِيْقًا وَّ ہِيَ تَفُوْرُ ۙ(۷)

کله چي هغوی په هغه کښي وغورځول شي نو دهغه د غږ مبېدوهیبت ناك غږ به واوري .او هغه به ځوښېدونکی وي

تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ ؕ كُلَّمَاۤ اُلْقِيَ فِيْہَا فَوْجٌ سَاَلَہُمْ خَزَنَتُہَاۤ اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَذِيْرٌ (۸)

له ډېرې غوسي به چاو دېدونکی وي هرځله چي کومه ډله په هغه کښي وغورځوله شي دهغه موءظفین به له هغونه پوښتنه وکړي ایا تاسي ته کوم تنبیه کوونکی نه وء درغلی ؟

قَالُوْا بَلٰى قَدْ جَآءَنَا نَذِيْرٌ ۙ۬ فَكَذَّبْنَا وَ قُلْنَا مَا نَزَّلَ اللّٰہُ مِنْ شَيْءٍ ۚۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ كَبِيْرٍ (۹)

هغوي به ځواب ورکړي ولي نه تنبیه کوونکی مونږ ته راغلی وء، خو مونږ هغه دروغجن وګانه .او موویل الله هېڅ شی نه دی نازل کړی ، (ورته وبه ویل شي) تاسي په لویه ګمراهی کښي غورځېدلي یئ

وَ قَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِيْۤ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ (۱۰)

او هغوی به ووائي کاشکي مونږ اورېدلی یا پوهېدلی نونن به د دغه تاوءجن اورپه وړکسانو کښي شامل نه وو

فَاعْتَرَفُوْا بِذَنْۢبِہِمْ ۚ فَسُحْقًا لِّاَصْحٰبِ السَّعِيْرِ (۱۱)

په دې ډول به هغوی په خپلي ګناه باندې پخپله اعتراف وکړي ، د الله له رحمته لیرې والی دی دغو دوزخیانو لره.

اِنَّ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّہُمْ بِالْغَيْبِ لَہُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّ اَجْرٌ كَبِيْرٌ (۱۲)

کوم کسان چي نالیدلي له خپل رب نه وېرېږی ، په باوري ډول هغوته بښنه ده او لوی ثواب

وَ اَسِرُّوْا قَوْلَكُمْ اَوِ اجْہَرُوْا بِہٖ ؕ اِنَّہٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ (۱۳)

که تاسي پټي خبرې وکړئ او که په لوړغږ ( دالله لپاره یوشان دی ) هغه خو ان د زړونو په حال باندې پوهېږي .

اَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ؕ وَ ہُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ (۱۴)

ایا هغه دې ونه پوهېږي چي هغه پېداکړی دئ ؟ پداسي حال کښي چي هغه باریك بین او باخبره دی .

ہُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا فَامْشُوْا فِيْ مَنَاكِبِہَا وَ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِہٖ ؕ وَ اِلَيْہِ النُّشُوْرُ (۱۵)

هغه ذات چي ستاسي لپاره یې ځمکه ایل کړېده دهغې پرسینه باندې ګرځئ او د خدای روزي خورئ ، د هماغه حضورته ستاسي په دوهم ځل ژوندی کېدو سره ورتګ دی

ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ فَاِذَا ہِيَ تَمُوْرُ (۱۶)

ایا تاسي له دې نه بېغمه یئ چي هغه ذات چي په اسمان کښي دی تاسي په ځمکه کښي .ښخ کړی او دغه ځمکه په ناڅاپي ډول وجړکېږي؟

اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ اَنْ يُّرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ؕ فَسَتَعْلَمُوْنَ كَيْفَ نَذِيْرِ (۱۷)

ایا تاسي له دې نه بېغمه یئ چي هغه ذات به چي په اسمان کښي دی پرتاسي تیرې اوروونکی طوفان والوزوی ؟ بیا به تاسي ته څرګنده شی چي زما اخطار څنګه وي

وَ لَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِہِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ (۱۸)

له دوی نه پخوا .تېر شویو خلکو ددروغو نسبتونه کړي وو. نو وګورئ چي زما نیونه څنګه سخته وه

اَوَ لَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ فَوْقَہُمْ صٰٓفّٰتٍ وَّ يَقْبِضْنَ ؔؕ مَا يُمْسِكُہُنَّ اِلَّا الرَّحْمٰنُ ؕ اِنَّہٗ بِكُلِّ شَيْءٍۭ بَصِيْرٌ (۱۹)

ایا دوی د خپل ځان د پاسه الوتونکي مرغان وزرونه غوړوونکي او ټولوونکي نه وینی ؟ له رحمان څخه پرته بل هېڅوك نشته چي هغه یې تم کړي وي هماغه د هرڅه ، لیدونکی دی.

وښایئ له تاسي سره څه راز لښکر دی چي د رحمان په مقابل کښي ستاسي مرسته وکړای شي ؟ حقیقت دادی چي دغه کافران غولېدلي دي

اَمَّنۡ ہٰذَا الَّذِیۡ ہُوَ جُنۡدٌ لَّکُمۡ یَنۡصُرُکُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ الرَّحۡمٰنِ ؕ اِنِ الۡکٰفِرُوۡنَ اِلَّا فِیۡ غُرُوۡرٍ ﴿ۚ۲۰﴾

یا نو وښایئ څوك دي چي تاسي ته روزي درکولای شي که رحمان .خپله روزی بنده کړي ؟ په اصل کښي دوي په سر غړونه او له حقه تښتېدوباندي ټینگ شویدی

اَمَّنۡ ہٰذَا الَّذِیۡ یَرۡزُقُکُمۡ اِنۡ اَمۡسَکَ رِزۡقَہٗ ۚ بَلۡ لَّجُّوۡا فِیۡ عُتُوٍّ وَّ نُفُوۡرٍ ﴿۲۱﴾

ښه فکر وکړئ ، څوك چي پړمخي روان وي هغه د زیاتي سمي لارې میندونکی دی او که هغه چي جگه غاړه سم په یو هوار سرك باندې وي؟

اَفَمَنۡ یَّمۡشِیۡ مُکِبًّا عَلٰی وَجۡہِہٖۤ اَہۡدٰۤی اَمَّنۡ یَّمۡشِیۡ سَوِیًّا عَلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ ﴿۲۲﴾

دوي ته ووایه هماغه الله دی چي تاسي یې پیداکړئ ، تاسي ته یې داورېدلو اولیدلو قواوې درکړې او غورکوونکي پوهېدونکي زړونه یې درکړل ، خو تاسي بیخی لږ شکر باسئ

قُلۡ ہُوَ الَّذِیۡۤ اَنۡشَاَکُمۡ وَ جَعَلَ لَکُمُ السَّمۡعَ وَ الۡاَبۡصَارَ وَ الۡاَفۡـِٕدَۃَ ؕ قَلِیۡلًا مَّا تَشۡکُرُوۡنَ ﴿۲۳﴾

دوي ته ووایه هماغه الله دی چي تاسي یې په ځمکه کښي خواره کړی یئ او د هماغه لوري ته به تاسي ورغونډ کړای شئ۔

قُلۡ ہُوَ الَّذِیۡ ذَرَاَکُمۡ فِی الۡاَرۡضِ وَ اِلَیۡہِ تُحۡشَرُوۡنَ ﴿۲۴﴾

دوي وائي که تاسي رېښتوني یئ نو راوښیئ چي داوعده به کله پوره شي ؟

وَ یَقُوۡلُوۡنَ مَتٰی ہٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ ﴿۲۵﴾

ووایه د دې علم خوله الله سره دی ، زه خویوازې په ډاګه روښانه خبرداروونکی یم

قُلۡ اِنَّمَا الۡعِلۡمُ عِنۡدَ اللّٰہِ ۪ وَ اِنَّمَاۤ اَنَا نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ ﴿۲۶﴾

بیا کله چي دوې هغه شی نږدې ووینی نو دهغو ټولو خلکو مخونه به بدرنگه شي چي هغوې کافر شوي دي.اوپه هغه وخت کښي به هغوته وویل شي چي همدا هغه څه دی چي تاسي یې غوښتنه کوله .

فَلَمَّا رَاَوۡہُ زُلۡفَۃً سِیۡٓئَتۡ وُجُوۡہُ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ قِیۡلَ ہٰذَا الَّذِیۡ کُنۡتُمۡ بِہٖ تَدَّعُوۡنَ ﴿۲۷﴾

دوي ته ووایه ، تاسي کله په دې هم څه غورکړی دی چي که الله ما او زما ملگري هلاك کړي یا پرمونږ رحم وکړي ، کافران به له دردناك عذاب نه څوك وژغوري ؟

قُلۡ اَرَءَیۡتُمۡ اِنۡ اَہۡلَکَنِیَ اللّٰہُ وَ مَنۡ مَّعِیَ اَوۡ رَحِمَنَا ۙ فَمَنۡ یُّجِیۡرُ الۡکٰفِرِیۡنَ مِنۡ عَذَابٍ اَلِیۡمٍ ﴿۲۸﴾

دوي ته ووایه هغه ډېر مهربان دی ، پر همغه باندې مونږ ایمان راوړی دی ، او پرهمغه باندې مونږ توکل کړی دی، ډېره ژر به تاسي ته څرگنده شي چي په ښکاره گمراهی کښي لویدلی څوك دی

قُلۡ ہُوَ الرَّحۡمٰنُ اٰمَنَّا بِہٖ وَ عَلَیۡہِ تَوَکَّلۡنَا ۚ فَسَتَعۡلَمُوۡنَ مَنۡ ہُوَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ ﴿۲۹﴾

دوي ته ووایه تاسي کله دې ته ځیر شوي یئ چي که ستاسي دڅاګانو اوبه په ځمکه کښي ښکته پرېوځی نوڅوك دی چي د دې اوبو بهیدونکی سېمونه پرانیزي او اوبه درته راوباسی ؟

قُلۡ اَرَءَیۡتُمۡ اِنۡ اَصۡبَحَ مَآؤُکُمۡ غَوۡرًا فَمَنۡ یَّاۡتِیۡکُمۡ بِمَآءٍ مَّعِیۡنٍ ﴿۳۰﴾

دالله په نوم چي ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

ن ـــ قسم دی په قلم اوپه هغه څه چي لیکونکي یې لیکي

نٓ وَ الۡقَلَمِ وَ مَا یَسۡطُرُوۡنَ ۙ﴿۱﴾

ته دخپل رب په پېرزوینې سره لیونی نه یې

مَاۤ اَنۡتَ بِنِعۡمَۃِ رَبِّکَ بِمَجۡنُوۡنٍ ۚ﴿۲﴾

اوپه یقینی ډول ستا لپاره داسې اجر دی چي دهغه لړی هېڅکله پای ته رسېدونکي نه ده

وَ اِنَّ لَکَ لَاَجۡرًا غَیۡرَ مَمۡنُوۡنٍ ۚ﴿۳﴾

اوبېشکه ته دلوړواخلاقو مرتبه لرې

وَ اِنَّکَ لَعَلٰی خُلُقٍ عَظِیۡمٍ ﴿۴﴾

ډېر ژربه ته هم وگورې او هغوي به هم وگوري

فَسَتُبۡصِرُ وَ یُبۡصِرُوۡنَ ۙ﴿۵﴾

چي له تاسي نه څوك په لیونتوب اخته دی

بِاَىیِّکُمُ الۡمَفۡتُوۡنُ ﴿۶﴾

ستا رب هغه خلك هم پېژني چي دهغه له لارې نه بې لارې شوي دي ـــ او هغه کسان هم ښه پېژني چي پرسمه لاره دي

اِنَّ رَبَّکَ ہُوَ اَعۡلَمُ بِمَنۡ ضَلَّ عَنۡ سَبِیۡلِہٖ ۪ وَ ہُوَ اَعۡلَمُ بِالۡمُہۡتَدِیۡنَ ﴿۷﴾

| | |
|---|---|
| نوله دي كبله ته هيڅكله د دغو دروغجن ګڼونكو تراغيزې لاندې مه راځه | فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِيْنَ (٨) |
| دوي غواړي چې كه ته يوڅه نرم شې نو دوي به هم نرمي وكړي | وَدُّوْا لَوْ تُدْہِنُ فَيُدْہِنُوْنَ (٩) |
| هيڅكله ديو داسي چاتر اغيزې لاندې مه راځه چې زيات قسم خوراو بې اتباره دی | وَ لَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّہِيْنٍ (١٠) |
| پېغورونه وركوي ، خبرې وړې راوړي | ہَمَّازٍ مَّشَّآءٍ بِنَمِيْمٍ (١١) |
| د نيكی منع كوونكی دی ، په ظلم او زياتی كښي له حده تېرېدونكی دی ، سخت بد عمله دی | مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ (١٢) |
| دل ازاره دی ، او د دې ټولو عيبونو ترڅنګ بد ذاته دی | عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ (١٣) |
| پدې اساس چې هغه د ډېرې شتمنی او اولادونو خاوند دی | اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَّ بَنِيْنَ (١٤) |
| كله چې هغه ته زمونږ ايتونه اورول كېږي نو وائي چې داخو د پخوانيو وختونو افساني دي | اِذَا تُتْلٰى عَلَيْہِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ (١٥) |
| ډېر ژربه مونږ دهغه پرخلتم باندې نوغی كېږدو | سَنَسِمُہٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ (١٦) |
| مونږ دوې (دمكې خلك ) هماغسې په ازموينه كښي اچولي دي لكه چې ديو بڼ څښتنان موپه ازموينه كښي اچولی وو ، كله چې هغوي لوړه وكړه چې دسهار په توره خړه به اورمرو د خپل بڼ ميوې واوندې | اِنَّا بَلَوْنٰہُمْ كَمَا بَلَوْنَاۤ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ ۚ اِذْ اَقْسَمُوْا لَيَصْرِمُنَّہَا مُصْبِحِيْنَ (١٧) |
| او هغوي هيڅ انشاء الله ونه ويل | وَ لَا يَسْتَثْنُوْنَ (١٨) |
| هغوی دشپې په خوب ويده ووچې ستادرب له لوری پرهغه بڼ يوافت تاوء شو | فَطَافَ عَلَيْہَا طَآئِفٌ مِّنْ رَّبِّكَ وَ ہُمْ نَآئِمُوْنَ (١٩) |
| او داسې شو لكه لوكړی كښت | فَاَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ (٢٠) |
| سهار هغوی يوبل ته سره ناري كړې | فَتَنَادَوْا مُصْبِحِيْنَ (٢١) |
| چې كه ميوې ټولوونكی ياست نو دسهار په توره خړه كښي د خپل كښت خواته ورشئ | اَنِ اغْدُوْا عَلٰى حَرْثِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰرِمِيْنَ (٢٢) |
| نو وخوځېدل او پټ پټ يې سره ويل | فَانْطَلَقُوْا وَ ہُمْ يَتَخَافَتُوْنَ (٢٣) |
| چې نن به په بڼ كښي تاسې ته هيڅ يو بېوزلی رانشي | اَنْ لَّا يَدْخُلَنَّہَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِّسْكِيْنٌ (٢٤) |
| هغوي دځه نه وركولو دتصميم په نيولو سره سهار په توره خړه هلته داسې په بيړه بيړه ورغلل چې تا به ويل هغوي ( دميوې په ټولولو ) برلاسي دي | وَّ غَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قٰدِرِيْنَ (٢٥) |
| خوكله چې يې بڼ وليده نو ويې ويل : ((مونږ لاره غلطه كړې ده | فَلَمَّا رَاَوْہَا قَالُوْۤا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ (٢٦) |
| نه بلكې مونږ محروم پاتې شوو | بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ (٢٧) |
| په هغو كښي چې كوم يو ترټولوښه سړی وء هغه وويل ((ماتاسې ته نه وويلي چې تاسې ولې تسبيح ( انشاء الله) نه وايئ ))؟ | قَالَ اَوْسَطُہُمْ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ لَوْ لَا تُسَبِّحُوْنَ (٢٨) |
| هغوې وويل : پاك دی زمونږ پروردګار په ريښتيا چې مونږ ګناهكارظالمان وو | قَالُوْا سُبْحٰنَ رَبِّنَاۤ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ (٢٩) |
| بيا له هغونه هر يوه پر بل پړه اچوله | فَاَقْبَلَ بَعْضُہُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ (٣٠) |
| په پای كښي يې وويل ((خواشينی ده زمونږ پرحال بېشكه چې مونږ سركشه شوي وو | قَالُوْا يٰوَيْلَنَاۤ اِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ (٣١) |

کېدای شی چي زمونږ پروردګار مونږ ته په بدل کښي له دې نه لاښه بڼ را په برخه کړي ، مونږ د خپل رب خواته ورګرځو))

عَسٰى رَبُّنَآ اَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَآ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا رٰغِبُوْنَ (٣٢)

همداسي وي عذاب او داخرت عذاب له دې نه هم ډېر لوی دی ، کاشکي دوی .په دې پوهېدلای

كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ؕ وَ لَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ (٣٣)

په باوري ډول له خدایه وېروېدونکو خلکو لپاره دهغو درب په وړاندې په نعمتونو مالامال جنتونه دي

اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ (٣٤)

ایا مونږ به دامرمنونکو حال د مجرمانو په څېر کړو ؟

اَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِيْنَ كَالْمُجْرِمِيْنَ (٣٥ؕ)

پرتاسي څه شویدی ، تاسي څنګه حکم صادروئ

مَا لَكُمْ ٚ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ (٣٦ۚ)

ایاله تاسي سره کوم کتاب شته چي په هغه کښي تاسي لولئ

اَمْ لَكُمْ كِتٰبٌ فِيْهِ تَدْرُسُوْنَ (٣٧ۙ)

چي ستاسي لپاره ارومرو هلته هماغه څه دی چي تاسي يې دځان لپاره خوښوئ ؟

اِنَّ لَكُمْ فِيْهِ لَمَا تَخَيَّرُوْنَ (٣٨ۚ)

یا نو ایاستاسي لپاره پرمونږ د قیامت تر ورځې پورې څه داسي ژمنه اوتړون ثابت دی چي تاسي ته به هماغه څه وي چي تاسي یې حکم صادروئ ؟

اَمْ لَكُمْ اَيْمَانٌ عَلَيْنَا بَالِغَةٌ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۙ اِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُوْنَ (٣٩ۚ)

له دوي نه پوښتنه وکړه له تاسي نه څوك د دې ضامن دی ؟

سَلْهُمْ اَيُّهُمْ بِذٰلِكَ زَعِيْمٌ (٤٠ۚ)

یا د دوي څه انګیرلي شریکان دي ( چي هغوي د دې ذمه وهلې وي )؟ که داخبره وي نو خپل شریکان دې راولي که دوي ریښتوني وي

اَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ ۚ فَلْيَاْتُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ اِنْ كَانُوْا صٰدِقِيْنَ (٤١)

په کومه ورځ چي پنډۍ لوڅه کړی شي (حقایق بربنډ شي) او خلکو ته دسجدې کولو بلنه ورکړه شی نو دوي به سجده ونشي کړی

يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّ يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ (٤٢ۙ)

د دوي سترګي به ښکته وي ، ذلت به پرې خورېدونکی وي ، دوی چي کله روغ رمټ وو په هغه وخت کښي دوي د سجدې کولو لپاره بلل کېدل . ( او دوي انکار کاوه )

خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ وَ قَدْ كَانُوْا يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ وَ هُمْ سٰلِمُوْنَ (٤٣)

نو ای پېغمبره! ته د دې کلام د دروغ ګڼونکو موضوع ماته پرېږده -مونږ به په داسي توګه دوی په کراره کراره د تباهی خواته بوځوچي دوي خبرهم نه وي

فَذَرْنِيْ وَ مَنْ يُّكَذِّبُ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ ؕ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ (٤٤ۙ)

زه د دوي رسی غځوم ، زما تدبیر ډېر قوي دی

وَ اُمْلِيْ لَهُمْ ؕ اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ (٤٥)

ایا ته له دوي نه څه اجر غواړې چي دوی د جریمې د درانه پېټي ترفشار لاندې کېږي ؟

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ (٤٦ۚ)

یا له دوي سره د غیبو علم دی .چي دوي هغه لیکي ؟

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ (٤٧)

نو دخپل پروردګار دپرېکړې ترصادرېدو پورې صبر وکړه او دکب د خاوند ( یونس علیه السلام ) غوندې مه کېږه ، کله چي هغه غږ کړی وه او هغه له غمه ډك شوی وه

فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَ لَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ ۘ اِذْ نَادٰى وَ هُوَ مَكْظُوْمٌ (٤٨ؕ)

که دهغه درب مهرباني ورباندې نه وای شوې نو هغه به کرکن په سپېره ډاګ کښي غورځول شوی وای

لَوْ لَا اَنْ تَدٰرَكَهٗ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَ هُوَ مَذْمُوْمٌ (٤٩)

| | |
|---|---|
| فَاجۡتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيۡنَ (۵۰) | په پای کښي دهغه رب هغه غوره کړ او هغه يي له صالحوبندګانو څخه وګرځاوه . |
| وَ اِنۡ يَّكَادُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَيُزۡلِقُوۡنَكَ بِاَبۡصَارِهِمۡ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكۡرَ وَ يَقُوۡلُوۡنَ اِنَّهٗ لَمَجۡنُوۡنٌ ‌(۵۱) | کله چي دغه کافران د نصيحت کلام ( قرآن ) اوري نوتاته (ای محمده ! ) داسي سترګي اړوي چي ګويا ستاپښي به و ښو يوي ، او وائي چي دی هرومرو ليونی دی |
| وَ مَا هُوَ اِلَّا ذِكۡرٌ لِّلۡعٰلَمِيۡنَ (۵۲) | پداسي حال کښي چي داخو دټولو نړيوالو لپاره يو نصيحت دی . |
| بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی |
| اَلۡحَاۤقَّةُ ۙ(۱) | واقع کېدونکي |
| مَا الۡحَاۤقَّةُ ۚ(۲) | څه ده هغه واقع کېدونکي ؟ |
| وَ مَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا الۡحَاۤقَّةُ ؕ(۳) | اوته څه پوهېږی چي څه ده هغه واقع کېدونکي ؟ |
| كَذَّبَتۡ ثَمُوۡدُ وَ عَادٌۢ بِالۡقَارِعَةِ (۴) | ثموديانو او عاديانو هغه ناڅاپي رالوېدونکی افت دروغ وګڼه |
| فَاَمَّا ثَمُوۡدُ فَاُهۡلِكُوۡا بِالطَّاغِيَةِ (۵) | نو ثموديان په يوه سخته حادثه هلاك کړای شول |
| وَ اَمَّا عَادٌ فَاُهۡلِكُوۡا بِرِيۡحٍ صَرۡصَرٍ عَاتِيَةٍ ۙ(۶) | او عاديان په يوه ډيره سخته طوفاني لوخړه تباه کړای شول |
| سَخَّرَهَا عَلَيۡهِمۡ سَبۡعَ لَيَالٍ وَّ ثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ ۙ حُسُوۡمًا ۙ فَتَرَى الۡقَوۡمَ فِيۡهَا صَرۡعٰى ۙ كَاَنَّهُمۡ اَعۡجَازُ نَخۡلٍ خَاوِيَةٍ ۚ(۷) | الله تعالیٰ هغه پرله پسي اوه شپي او اته ورځي پر هغو مسلطه کړه ( که ته هلته وای نو ) تابه ليدلی وه چي هغوی هلته داسي چپت غورځېدلي دي لکه چي هغوي د خرما وه وراسته د ونه وي |
| فَهَلۡ تَرٰى لَهُمۡ مِّنۡۢ بَاقِيَةٍ (۸) | نو ايا اوس له هغو نه څوك تاته باقی ژغورل شوی په نظر درځي ؟ |
| وَ جَآءَ فِرۡعَوۡنُ وَ مَنۡ قَبۡلَهٗ وَ الۡمُؤۡتَفِكٰتُ بِالۡخَاطِئَةِ ۚ(۹) | او همدغه ستره ګناه فرعون او له هغه نه مخکښي خلکو او ويجاړو شويو کليو وکړه |
| فَعَصَوۡا رَسُوۡلَ رَبِّهِمۡ فَاَخَذَهُمۡ اَخۡذَةً رَّابِيَةً (۱۰) | دوي ټولو د خپل رب د پيغمبر خبره ونه منله نو الله هغوي په ډيره سختی سره ونيول . |
| اِنَّا لَمَّا طَغَا الۡمَآءُ حَمَلۡنٰكُمۡ فِى الۡجَارِيَةِ ۙ(۱۱) | کله چي داوبو طوفان له حده تېر شو نو مونږ تاسي په بېړی کښي سپاره کړی وئ . |
| لِنَجۡعَلَهَا لَكُمۡ تَذۡكِرَةً وَّ تَعِيَهَاۤ اُذُنٌ وَّاعِيَةٌ (۱۲) | ترڅو چي دغه پېښه ستاسي لپاره يو د درس وړيا د ګار وګرځوو اوپه يادلرونکي غوږونه يي په ياد ولري . |
| فَاِذَا نُفِخَ فِى الصُّوۡرِ نَفۡخَةٌ وَّاحِدَةٌ ۙ(۱۳) | بيا چي کله يو ځل په شپېلی کښي پوکی ووهل شي |
| وَّ حُمِلَتِ الۡاَرۡضُ وَ الۡجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ۙ(۱۴) | او ځمکه او غرونه په راپورته کولو سره په يوګوزار مېده مېده کړای شي |
| فَيَوۡمَئِذٍ وَّقَعَتِ الۡوَاقِعَةُ ۙ(۱۵) | په هغه ورځ به هغه کېدونکي پېښه رامينځ ته شي |
| وَ انۡشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِىَ يَوۡمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ۙ(۱۶) | په هغه ورځ به اسمان وچوي او دهغه نظم او استحکام به ويجاړ شي |
| وَّ الۡمَلَكُ عَلٰٓى اَرۡجَآئِهَا ؕ وَ يَحۡمِلُ عَرۡشَ رَبِّكَ فَوۡقَهُمۡ يَوۡمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ ؕ(۱۷) | پرښتي به دهغه په څنډو اوکنارو باندي وي او اتوپرښتوبه په هغه ورځ ستادرب عرش پرخپل ځان باندي بار کړی وي |
| يَوۡمَئِذٍ تُعۡرَضُوۡنَ لَا تَخۡفٰى مِنۡكُمۡ خَافِيَةٌ (۱۸) | هغه ورځ به وي چي تاسي وړاندي کړای شئ ، ستاسي هيڅ راز به هم پټ پري نښودل شي |

| ژباړه | آیت |
|---|---|
| پهٔ هغه وخت کښې چې دچا عملنامه د هغه په ښی لاس کښې ورکړه شي هغه به ووائي ((هه وګورئ ، ولولئ زما عملنامه | فَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ ہَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴿۱۹﴾ |
| ما انګېرله چې زه ارو مرو له خپل حساب سره یو ځای کېدونکی یم)) | اِنِّیْ ظَنَنْتُ اَنِّیْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴿۲۰﴾ |
| نو هغه به په زړه پورې خوندونو کښې وي | فَهُوَ فِیْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿۲۱﴾ |
| په لوړمقامي جنت کښې، | فِیْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿۲۲﴾ |
| چې دهغه د میوو وږی به راکاږه وی . | قُطُوْفُهَا دَانِيَةٌ ﴿۲۳﴾ |
| دغه راز خلکو ته به ووېل شی ) په خوند سره خورئ څښئ د خپلو ) . هغو کړنو مکافات چې تاسي په تېروشوېو ورځو کښې کړیدی | كُلُوْا وَ اشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَاۤ اَسْلَفْتُمْ فِی الْاَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿۲۴﴾ |
| او دچا عملنامه چې دهغه په کیڼ لاس کښې ورکړه شي هغه به ووائي کاشکي زما عملنامه ماته نه واي راکړه شوې | وَ اَمَّا مَنْ اُوْتِیَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِیْ لَمْ اُوْتَ كِتٰبِيَهْ ﴿۲۵﴾ |
| او زه نه وای پو هېدلی چې زما حساب څه دی | وَ لَمْ اَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ ﴿۲۶﴾ |
| کاشکې زما هغه مرګ (چې په دنیا کښې راغلی وء ) فیصله کوونکی وای . | يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿۲۷﴾ |
| نن زما مال ماته هېڅ په کار رانغی | مَاۤ اَغْنٰی عَنِّیْ مَالِيَهْ ﴿۲۸﴾ |
| زما ټول حکومت له مینځه لاړ | هَلَكَ عَنِّیْ سُلْطٰنِيَهْ ﴿۲۹﴾ |
| امر به وشي دی ونیسئ او د ده په غاړه کښې طوق واچوئ) | خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ﴿۳۰﴾ |
| بیا یې دوزخ ته ننباسئ | ثُمَّ الْجَحِيْمَ صَلُّوْهُ ﴿۳۱﴾ |
| بیا دی په اویا ګزه اوږده زنځیر وتړئ | ثُمَّ فِیْ سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوْهُ ﴿۳۲﴾ |
| ده نه پر لوی او لوړ الله باندې ایمان راوءړ | اِنَّهٗ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ ﴿۳۳﴾ |
| او نه یې مسکین ته دخوړو ورکولو هڅونه کوله | وَ لَا يَحُضُّ عَلٰی طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ﴿۳۴﴾ |
| نو ځکه نن نه دلته د ده کوم غمخور دوست شته | فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هٰهُنَا حَمِيْمٌ ﴿۳۵﴾ |
| اونه د زخمونو له زووپرته د ده لپاره څه خواړه ، | وَّ لَا طَعَامٌ اِلَّا مِنْ غِسْلِيْنٍ ﴿۳۶﴾ |
| چې هغه له ګناهګارانو پرته بل څوك نه خوری | لَّا يَاْكُلُهٗۤ اِلَّا الْخَاطِـُٔوْنَ ﴿۳۷﴾ |
| نو زه قسم خورم په هغو شیانو چې تاسي یې وینئ | فَلَاۤ اُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۳۸﴾ |
| اوپه هغو شیانو هم چې تاسي یې نه وینئ | وَ مَا لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۳۹﴾ |
| دا دیو عزتمند استاځي ( جبرائیل ) وینا ده | اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴿۴۰﴾ |
| دکوم شاعر وینا نه ده ، تاسي بیخی لږ (کسان ) ایمان راوړئ . | وَّ مَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ؕ قَلِيْلًا مَّا تُؤْمِنُوْنَ ﴿۴۱﴾ |
| اونه دا دکوم کاهن ویناده ، تاسي بیخی لږ غورکوئ | وَ لَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾ |
| دا درب العٰلمین لخوا نازل شویدی . | تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۳﴾ |
| او که دغه ( پېغمبر) له ځانه کومه خبره جوړه کړې زمونږ لوری ته یې منسوبه کړې وای | وَ لَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴿۴۴﴾ |
| نو مونږ به د ده ښي لاس نیولی وای (چې هیڅ ونشي خو ځېدای) | لَاَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِيْنِ ﴿۴۵﴾ |
| او د ده شارګي به موپرې کړی وو | ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِيْنَ ﴿۴۶﴾ |
| بیا به له تاسي نه هېڅوك له دې کار څخه ( زمونږ ) منع کوونکی نه وء | فَمَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ عَنْهُ حٰجِزِيْنَ ﴿۴۷﴾ |

| | |
|---|---|
| په اصل کښې دا دپرهېزګارانو لپاره يو نصيحت دی | وَ اِنَّہٗ لَتَذۡكِرَةٌ لِّلۡمُتَّقِيۡنَ (۴۸) |
| او مونږ پوهېږو چې له تاسې نه څه کسان دروغجن ګڼونکي دي | وَ اِنَّا لَنَعۡلَمُ اَنَّ مِنۡكُمۡ مُّكَذِّبِيۡنَ (۴۹) |
| د دغسې کافرانو لپاره په باوري ډول دا د افسوس موجب دی | وَ اِنَّہٗ لَحَسۡرَةٌ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ (۵۰) |
| او دابيخی يقينی حق دی | وَ اِنَّہٗ لَحَقُّ الۡيَقِيۡنِ (۵۱) |
| نو ای پېغمبره ! دخپل عظيم پروردګار په نوم د پاکی ستاينه وکړه) | فَسَبِّحۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الۡعَظِيۡمِ (۵۲) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| غوښتونکي عذاب وغوښت ، ( هغه عذاب ) چې هرومرو واقع کېدونکی دی | سَاَلَ سَآئِلٌۢ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ۙ(۱) |
| دکافرانو لپاره دی ، هېڅوك دهغه مخه نيوونکی نشته | لِّلۡكٰفِرِيۡنَ لَيۡسَ لَہٗ دَافِعٌ ۙ(۲) |
| دهغه خدای له لوري دی چی دختلود زينو څښتن دی | مِّنَ اللّٰهِ ذِى الۡمَعَارِجِ ؕ(۳) |
| پرښتې او روح دهغه حضورته ورخېژي په يوه داسې ورځ کښې چې دهغې اندازه . پنځوس زره کاله ده | تَعۡرُجُ الۡمَلٰٓئِكَةُ وَ الرُّوۡحُ اِلَيۡهِ فِىۡ يَوۡمٍ كَانَ مِقۡدَارُهٗ خَمۡسِيۡنَ اَلۡفَ سَنَةٍ ۚ(۴) |
| نوای پېغمبره ، صبر وکړه ، غوره صبر | فَاصۡبِرۡ صَبۡرًا جَمِيۡلًا (۵) |
| دوي هغه ليرې انګيري | اِنَّهُمۡ يَرَوۡنَہٗ بَعِيۡدًا ۙ(۶) |
| او مونږ يې نږدې وينو . | وَّ نَرٰٮهُ قَرِيۡبًا ؕ(۷) |
| هغه عذاب به په هغه ورځ وي ) په کومه ورځ چې اسمان دويلې ) شويو مسوغوندې شي | يَوۡمَ تَكُوۡنُ السَّمَآءُ كَالۡمُهۡلِ ۙ(۸) |
| او غرونه درنګينو ډاند س شوېو وړيو غوندې شي | وَ تَكُوۡنُ الۡجِبَالُ كَالۡعِهۡنِ ۙ(۹) |
| او هېڅ يو صميمی دوست له خپل صميمی دوست نه پوښتنه ونه کړي | وَ لَا يَسۡـَٔلُ حَمِيۡمٌ حَمِيۡمًا (ۚ۱۰) |
| په داسې حال کښې چې هغوي به يوبل ته وښودل شي مجرم به وغواړي چې د هغې ورځې له عذاب نه دژغورل کېدو لپاره په فديه (جريمه ) کښې ورکړي خپل اولادونه | يُّبَصَّرُوۡنَهُمۡ ؕ يَوَدُّ الۡمُجۡرِمُ لَوۡ يَفۡتَدِىۡ مِنۡ عَذَابِ يَوۡمِئِذٍۢ بِبَنِيۡهِ (ۙ۱۱) |
| خپله مېرمن ، خپل ورور | وَ صَاحِبَتِهٖ وَ اَخِيۡهِ (ۙ۱۲) |
| خپله ډېره نږدې کورنۍچې هغه ته پناه ورکوونکې وه | وَ فَصِيۡلَتِهِ الَّتِىۡ تُـْٔوِيۡهِ (ۙ۱۳) |
| او دځمکې د مخ ټول خلك او دغه تدبير ورته نجات ورکړي | وَ مَنۡ فِى الۡاَرۡضِ جَمِيۡعًا ۙ ثُمَّ يُنۡجِيۡهِ (ۙ۱۴) |
| هېڅکله نه، هغه خو به دلمبه شوي اور شغلې وی | كَلَّا ؕ اِنَّهَا لَظٰى (ۙ۱۵) |
| چې غوښه او پوستکي به وريتوی | نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى (ۚۖ۱۶) |
| په چيغوچيغو به هر هغه څوك ځان ته راغواړي چې هغه له حق نه مخ اړولي او شايې ګرځولې وي | تَدۡعُوۡا مَنۡ اَدۡبَرَ وَ تَوَلّٰى (ۙ۱۷) |
| او مال يې جمع کړي او بنډل بنډل يې زيرمه کړی وي . | وَ جَمَعَ فَاَوۡعٰى (۱۸) |
| انسان کم حوصله پيدا کړي شوی دی | اِنَّ الۡاِنۡسَانَ خُلِقَ هَلُوۡعًا (ۙ۱۹) |
| کله چې پرې کړاو راځی نو وارخطا کېږی فرياد کوي | اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوۡعًا (ۙ۲۰) |
| او کله چی سوکالي ورپه برخه کېږی نو په بخيلی لاس پورې کوی | وَّ اِذَا مَسَّهُ الۡخَيۡرُ مَنُوۡعًا (ۙ۲۱) |
| خو هغه کسان ( له دې نيمګړتيا ژغورل شويدي ) چې لمونځ کوونکی دی | اِلَّا الۡمُصَلِّيۡنَ (ۙ۲۲) |

تل دخپل لمانځه پابند دی
الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَ (۲۳)

چې دهغو په مالونو کښې يوټاکلي حق دي
وَ الَّذِيْنَ فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ (۲۴)

د سائل او محروم له پاره
لِّلسَّآئِلِ وَ الْمَحْرُوْمِ (۲۵)

هغه کسان چې د جزا ورځ برحقه منی
وَ الَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ (۲۶)

هغه کسان چې د خپل رب له عذابه ويرېږی
وَ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ (۲۷)

ځکه چې دهغو درب عذاب داسي شي نه دی چې څوك ترېنه بېغمه وي
اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَاْمُوْنٍ (۲۸)

هغه کسان چې دخپلو شرم ځايونو ساتنه کوی
وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ (۲۹)

پرته له خپلو مېرمنو ياله خپلو مملوکه ښځو نه چې له هغونه په نه ساتنه کښې څه پړه وربانديْ نشته
اِلَّا عَلٰى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ (۳۰)

البته څوك چې په دې سربېره نورڅه وغواړی هماغوې له حده تيری کوونکی دی
فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْعٰدُوْنَ (۳۱)

هغه کسان چې دخپلو امانتونو حفاظت او دخپلې ژمنې لحاظ ساتي
وَ الَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ وَ عَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ (۳۲)

هغه کسان چې پخپلو شاهدېو کښې په رېښتينولی باندې ټينګ درېږی
وَ الَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ (۳۳)

او هغه کسان چې دخپل لمانځه ساتنه کوی
وَ الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ (۳۴)

دغه کسان به په عزت سره د جنت په باغونوکښې اوسيږي .
اُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ (۳۵)

نوای پېغمبره!څه خبره ده چې دغه کافران ستاخوا ته په ځغاسته دي
فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ (۳۶)

له ښی اوکيڼ لوری ډله ډله حلقه وهونکي
عَنِ الْيَمِيْنِ وَ عَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ (۳۷)

ايا له دوي نه هر يو داتمه لری چې هغه به په نعمت مالامال جنت ته ننويستل شی ؟
اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ (۳۸)

هېڅکله نه، مونږ چې له کوم شي نه دوي پېدا کړي دي دوي هغه پېژنی
كَلَّا ؕ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّمَّا يَعْلَمُوْنَ (۳۹)

نو نه ، زه لوړه کوم دَ ختيزونو او لوېديزونو په څښتن ،مونږ په دې باندې قادر يو
فَلَآ اُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشٰرِقِ وَ الْمَغٰرِبِ اِنَّا لَقٰدِرُوْنَ (۴۰)

چې د دوي په ځاي له دوي نه ډېر غوره خلك راولو او هېڅوك له مونږ څخه ميدان ګټونکی نشته
عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ ۙ وَ مَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ (۴۱)

نوله دي کبله دوي په خپلو بابېزه خبرو او پخپلو لوبوکښې اخته پرېږده تردې پوری چې دوي خپلې هغې ورځې ته ورسېږی چې له دوي سره دهغې وعده کېږی
فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَ يَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ (۴۲)

کله چې دوي له خپلو قبرونو څخه راووځی داسې به ځغلی لکه چې دخپلو بُتانو د درشلو خواته ورمنډې وهی
يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ سِرَاعًا كَاَنَّهُمْ اِلٰى نُصُبٍ يُّوْفِضُوْنَ (۴۳)

د دوي سترګې به ټيټې شوې وی ، ذلت به وربانديْ خورېږی داهغه ورځ ده چې دهغې له دوي سره وعده کېدله.
خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ (۴۴)

| | |
|---|---|
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| مونږ نوح د هغه قوم ته ولېږه ( له دې هدایت سره) چې د خپل قوم وګړوته دې اخطار ورکړه مخکښې له هغه چې پر هغو باندې یو درد ناك عذاب راشي | اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا اِلٰی قَوۡمِهٖۤ اَنۡ اَنۡذِرۡ قَوۡمَکَ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ یَّاۡتِیَهُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ (۱) |
| هغه وویل : ای زما قومه ! زه ستاسي لپاره یو ښکاره څرګند وېروونکي ( پېغمبر ) یم | قَالَ یٰقَوۡمِ اِنِّیۡ لَکُمۡ نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ ۙ(۲) |
| تاسي خبروم ) چې دالله بندګی وکړئ اوله هغه نه ووېرېږئ او ) زما اطاعت وکړئ | اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ وَ اتَّقُوۡهُ وَ اَطِیۡعُوۡنِ ۙ(۳) |
| الله به ستاسي ګناهونه دروبښي او تاسي به تریوټاکلي وخت پورې باقي پرېږدی حقیقت دادي کله چې دالله ټاکلي وخت راشی نوبیا نه ځنډېږی ،کاشکي تاسي ته د دې معلومات واي | یَغۡفِرۡ لَکُمۡ مِّنۡ ذُنُوۡبِکُمۡ وَ یُؤَخِّرۡکُمۡ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی ؕ اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا یُؤَخَّرُ ۘ لَوۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ (۴) |
| هغه عرض وکړ (( اي زما ربه ! ما خپل قوم ته شپه ورځ دعوت ورکړ | قَالَ رَبِّ اِنِّیۡ دَعَوۡتُ قَوۡمِیۡ لَیۡلًا وَّ نَهَارًا ۙ(۵) |
| خو زما بلني دهغو تېښته لازیاته کړه | فَلَمۡ یَزِدۡهُمۡ دُعَآءِیۡۤ اِلَّا فِرَارًا (۶) |
| او هرکله چې ما هغوي دېته وبلل چې ته هغوته معافي وکړې ، هغوي په غوږونو کښې ګوتي کېښودې او په جامو سره یې مخونه وپوښل او په خپل چلند یې ټینګار وکړ اوډېر تکبریې وکړ | وَ اِنِّیۡ کُلَّمَا دَعَوۡتُهُمۡ لِتَغۡفِرَ لَهُمۡ جَعَلُوۡۤا اَصَابِعَهُمۡ فِیۡۤ اٰذَانِهِمۡ وَ اسۡتَغۡشَوۡا ثِیَابَهُمۡ وَ اَصَرُّوۡا وَ اسۡتَکۡبَرُوا اسۡتِکۡبَارًا ۚ(۷) |
| بیا ما هغوته په لوړ غږ بلنه ورکړه | ثُمَّ اِنِّیۡ دَعَوۡتُهُمۡ جِهَارًا ۙ(۸) |
| بیا ماپه ښکاره هم هغوته تبلیغ وکړ او په پټه پټه مي هم وپوهول | ثُمَّ اِنِّیۡۤ اَعۡلَنۡتُ لَهُمۡ وَ اَسۡرَرۡتُ لَهُمۡ اِسۡرَارًا ۙ(۹) |
| ما وویل له خپل رب نه ښنه وغواړئ ، بیشکه چې هغه خورا ډېر ښنونکي دي | فَقُلۡتُ اسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّکُمۡ ؕ اِنَّهٗ کَانَ غَفَّارًا ۙ(۱۰) |
| هغه به پرتاسي له آسمانه ښه اورښتونه وکړی | یُّرۡسِلِ السَّمَآءَ عَلَیۡکُمۡ مِّدۡرَارًا ۙ(۱۱) |
| تاسي ته به مالونه او اولادونه درپه برخه کړی ، ستاسي لپاره به باغونه پیدا کړی او ستاسي لپاره به ویالي وبهوی | وَّ یُمۡدِدۡکُمۡ بِاَمۡوَالٍ وَّ بَنِیۡنَ وَ یَجۡعَلۡ لَّکُمۡ جَنّٰتٍ وَّ یَجۡعَلۡ لَّکُمۡ اَنۡهٰرًا ؕ(۱۲) |
| پرتاسي څه شوي دي چې دالله لپاره تاسي د هېڅ عزت په فکر کښې نه یئ ؟ | مَا لَکُمۡ لَا تَرۡجُوۡنَ لِلّٰهِ وَقَارًا ۚ(۱۳) |
| پداسي حال کښې چې هغه تاسي ډول ډول پیدا کړی یئ | وَ قَدۡ خَلَقَکُمۡ اَطۡوَارًا (۱۴) |
| ایا نه وینئ چې په څه ډول الله لاندې باندې اووه اسمانونه پیدا کړل | اَلَمۡ تَرَوۡا کَیۡفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ۙ(۱۵) |
| او په هغو کښې یې سپوږمی نور او لمر ډیوه وګرځوله | وَّ جَعَلَ الۡقَمَرَ فِیۡهِنَّ نُوۡرًا وَّ جَعَلَ الشَّمۡسَ سِرَاجًا (۱۶) |
| او الله تاسي له ځمکي نه په عجیبه ډول راوټوکولئ | وَ اللّٰهُ اَنۡۢبَتَکُمۡ مِّنَ الۡاَرۡضِ نَبَاتًا ۙ(۱۷) |
| بیا به هغه تاسي همدې ځمکي ته بېرته راولی اوله دې نه به موناڅاپه راوباسی | ثُمَّ یُعِیۡدُکُمۡ فِیۡهَا وَ یُخۡرِجُکُمۡ اِخۡرَاجًا (۱۸) |
| او الله ځمکه ستاسي لپاره د فرش په څېر وغوړوله | وَ اللّٰهُ جَعَلَ لَکُمُ الۡاَرۡضَ بِسَاطًا ۙ(۱۹) |
| ترڅو چې تاسي په هغې کښې په پراخو لارو لاړ شئ )). | لِّتَسۡلُکُوۡا مِنۡهَا سُبُلًا فِجَاجًا (۲۰) |

نوح وویل : (( زما ربه ! هغوي زما خبره ونه منله او دهغو ( مشرانو ) پیروی یې وکړه چې دمال او اولاد په میندلو لا زیات نامراده شوي دي

قَالَ نُوْحٌ رَّبِّ اِنَّهُمْ عَصَوْنِیْ وَ اتَّبَعُوْا مَنْ لَّمْ یَزِدْهُ مَالُهٗ وَ وَلَدُهٗۤ اِلَّا خَسَارًا (۲۱)

دغو کسانو د ډېرې لویې دسیسې جال خور کړی دی

وَ مَكَرُوْا مَكْرًا كُبَّارًا (۲۲)

دوی وویل خپل معبودان هیڅکله مه پرېږدئ ، او مه پرېږدئ (عبادت د هغو بتانو چې نومونه یې دي : ) و د اوسواع او یغوث ، یعوق او نسر

وَ قَالُوْا لَا تَذَرُنَّ اٰلِهَتَكُمْ وَ لَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَّ لَا سُوَاعًا ۙ وَّ لَا یَغُوْثَ وَ یَعُوْقَ وَ نَسْرًا (۲۳)

دوی ډېر خلك گمراه کړي دي ، او ته هم (ای زما ربه ) دغو خلکو ته له گمراهی پرته په بل شي کښې پرمختگ مه ورکوه .

وَ قَدْ اَضَلُّوْا كَثِیْرًا ۚ وَ لَا تَزِدِ الظّٰلِمِیْنَ اِلَّا ضَلٰلًا (۲۴)

یوازې د خپلو گناهونو په اساس هغوي غرق کړاي شول او په اورکښې ننویستل شول ، بیا هغوي له الله نه پرته ځان لپاره کوم ژغورونکي مرستندوی ونه مونده

مِمَّا خَطِیْٓـٰٔتِهِمْ اُغْرِقُوْا فَاُدْخِلُوْا نَارًا ۙ۬ فَلَمْ یَجِدُوْا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْصَارًا (۲۵)

او نوح وویل (( زما ربه ! له دغو کافرانو څخه هېڅ یود ځمکي پرمخ استوگن مه پرېږده

وَ قَالَ نُوْحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَی الْاَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِیْنَ دَیَّارًا (۲۶)

که تا دوي پرېښودل نو دوي به ستا بندگان گمراه کړی او د دوی له ځوځات نه چې هر څوك پیداشي بدعمله او سخت کافربه وی

اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ یُضِلُّوْا عِبَادَكَ وَ لَا یَلِدُوْۤا اِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا (۲۷)

زما پروردگاره ! ماته زما مور او پلارته او هر هغه چاته چې زما کورته د موءمن په حیث داخل شوی دی ، او ټولو موءمنانو نارینه وْ او موْمنو ښځو ته بخښنه وکړه او د ظالمانو له پاره له هلاك نه پرته بل څه مه زیاتوه

رَبِّ اغْفِرْ لِیْ وَ لِوَالِدَیَّ وَ لِمَنْ دَخَلَ بَیْتِیَ مُؤْمِنًا وَّ لِلْمُؤْمِنِیْنَ وَ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ وَ لَا تَزِدِ الظّٰلِمِیْنَ اِلَّا تَبَارًا (۲۸)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

اې پېغمبره ! ووایه ، ماته وحي رالېږل شوېده چې د پیریانو یوې ډلې په غور سره واورېدله بیا یې ( له بېرته ستنېدو وروسته خپل قوم ته ) وویل : ((مونږ خو رایو ډېر عجیب قرآن اورېدلي دي

قُلْ اُوْحِیَ اِلَیَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوْۤا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ۙ(۱)

چې دسمې لارې لوری ته لارښوونه کوی له دې کبله مونږ پر هغه باندې ایمان راوړی دی او اوس به مونږ هېڅکله له خپل رب سره څوك شریك نه کړو

یَّهْدِیْۤ اِلَی الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ؕ وَ لَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَاۤ اَحَدًا ۙ(۲)

او داچې زمونږ درب شان ډېر لوړ اوپورته دي ، هغه کومه مېرمن یا زوي نه دی نیولي

وَّ اَنَّهٗ تَعٰلٰی جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّ لَا وَلَدًا ۙ(۳)

او دا چې : (( زمونږ ناپوهان د الله په باب ډېرې د حق پر خلاف خبرې کوی))

وَّ اَنَّهٗ كَانَ یَقُوْلُ سَفِیْهُنَا عَلَی اللّٰهِ شَطَطًا ۙ(۴)

او داچې مونږ گڼلي وه چې انسان او پیري هېڅکله د خداي په باب دروغ نشي ویلي

وَّ اَنَّا ظَنَنَّاۤ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَ الْجِنُّ عَلَی اللّٰهِ كَذِبًا ۙ(۵)

او دا چې له انسانانو څخه ځینې کسانو له پیریانو څخه د ځینو کسانو پناه غوښتله ، په دې ډول هغوی دپیریانو غرور لانور هم زیات کړ

وَّ اَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ یَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ۙ(۶)

او داچې (( انسانانو هم هماغه گومان وکړ لکه چې ستاسې گومان وء چې الله به کوم پیغمبر راونه لېږی))

وَّ اَنَّهُمْ ظَنُّوْا كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ یَّبْعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا ۙ(۷)

او دا چې مونږ داسمان پلټنه وکړه نوو مولیدل چې هغه له پیره دارانو څخه ډك دي او داور غورځوونکو ستوروباران کېږي)) .

وَّ اَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ فَوَجَدْنٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِیْدًا وَّ شُهُبًا ۙ(۸)

او داچي پخوا مونږ دغوږ نيولو لپاره په اسمان کښي د ناستي ځاي ميندلو ، خواوس چي څوك په پټه په غلا داورېدلو هڅه کوی هغه د ځان لپاره په ځاروځی کښي يواورغورځوونکی ستوری موجود مومی

وَّ اَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ؕ فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ يَجِدْ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا ۙ(۹)

او داچي مونږ پردي نه پوهېدلو چي ايا د ځمکي له اوسېدونکو سره د کوم ناوړه چلند کېدلو اراده کړاي شوې ده يا دهغو رب هغوته د سمي لارې ښودل غوارې

وَّ اَنَّا لَا نَدْرِیْۤ اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِی الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ۙ(۱۰)

او داچي له مونږ نه ځيني خلك صالحان دی او ځيني له دې نه ټيټ دي ، مونږ په بېلابېلو لارو کښي وېشل شوی يو

وَّ اَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَ مِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ ؕ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ۙ(۱۱)

او داچي : مونږ انګېرله چي نه په ځمکه کښي مونږ الله بېوسي کولاي شو او نه په تېښته ماتي ورکولاي شو

وَّ اَنَّا ظَنَنَّاۤ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ فِی الْاَرْضِ وَ لَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ۙ(۱۲)

او داچي : ((کله مونږ لارښوونه واورېدله نو مونږورباندې ايمان راوړ نو هر څوك چي په خپل رب باندې ايمان راوړی له هغه سره به د څه حق تلفی يا ظلم وېره نه وي ))

وَّ اَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰۤی اٰمَنَّا بِهٖ ؕ فَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِرَبِّهٖ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّ لَا رَهَقًا ۙ(۱۳)

او داچي : (( له مونږ څخه ځيني مسلمان ( دالله امر منونکي ) دی او ځيني له حق نه منحرف، نو چا چي اسلام (دامرمنلو چلند ) غوره کړ هغوې د ژغورني لاره ولټوله

وَّ اَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ وَ مِنَّا الْقٰسِطُوْنَ ؕ فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا (۱۴)

او کوم کسان چي له حق نه منحرف دی هغوې د دوزخ د سون مواد ګرځېدونکی دی

وَ اَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ۙ(۱۵)

او ( اي پېغمبره ! ووايه ماته داوحي شوې ده چي ) که خلك په ثبات سره پرسمه لاره تللی واي نو مونږ به هغوې ښه خړوبه کړی وو

وَّ اَنْ لَّوِ اسْتَقَامُوْا عَلَی الطَّرِيْقَةِ لَاَسْقَيْنٰهُمْ مَّآءً غَدَقًا ۙ(۱۶)

ترڅو چي په دې نعمت سره هغوي وازمايو او څوك چي د خپل رب دذ کر نه مخ واړوي نو دهغه رب به هغه په سخت عذاب کښي اخته کړی

لِّنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ؕ وَ مَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ۙ(۱۷)

او داچي جوماتونه دالله لپاره دی نو له دې کبله په هغوکښي له الله سره کوم بل څوك مه بلئ

وَّ اَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ۙ(۱۸)

او دا چي کله دالله بنده دهغه دبللو لپاره ودرېده نو خلك پرهغه باندې دورلوېدو لپاره چمتو شول

وَّ اَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ؕ(۱۹)

اي پېغمبره ! ووايه چي (( زه خو يوازې خپل رب بلم او له هغه سره هېڅوك نه شريکوم))

قُلْ اِنَّمَاۤ اَدْعُوْا رَبِّیْ وَ لَاۤ اُشْرِكُ بِهٖۤ اَحَدًا (۲۰)

ووايه زه تاسي ته نه دڅه زيان رسولو واك لرم نه دڅه ښېګني

قُلْ اِنِّیْ لَاۤ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّ لَا رَشَدًا (۲۱)

ووايه ((ما دالله له مواخذې څخه هېڅوك نشی ژغورلاي او نه زه دهغه څخه پرته کوم د پناه ځاي موندلي شم .))

قُلْ اِنِّیْ لَنْ يُّجِيْرَنِیْ مِنَ اللّٰهِ اَحَدٌ ۙ۬ وَّ لَنْ اَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ۙ(۲۲)

زما مسئوليت له دې پرته بل څه نه دی چي دالله وينا او دهغه پېغامونه ورسوم او هر څوك چي دالله او دهغه د پېغمبر خبره ونه مني دهغه لپاره د دوزخ اور دي او دغه راز خلك به په هغه کښي د تل لپاره اوسېږی ))

اِلَّا بَلٰغًا مِّنَ اللّٰهِ وَ رِسٰلٰتِهٖ ؕ وَ مَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ(۲۳)

| | |
|---|---|
| دوي به له خپل دغه چلند نه راوانه وړی ) تر دې پورې چې کله ) هغه څه ووينې چې له دوي سره يې وعده کېږی نو دوي ته به څرګنده شی چې د چا ملاتړ کمزوري دي او دچا د ډلي شمېر . لږدي | حَتّٰی اِذَا رَاَوۡا مَا یُوۡعَدُوۡنَ فَسَیَعۡلَمُوۡنَ مَنۡ اَضۡعَفُ نَاصِرًا وَّ اَقَلُّ عَدَدًا (۲۴) |
| ووايه (ای پيغمبره !) زه نه پوهېږم چې دکوم شی وعده چې له تاسي سره کېږی هغه نږدې ده اوکه زما رب دهغي لپاره کومه اوږده موده ټاکی | قُلۡ اِنۡ اَدۡرِیۡۤ اَقَرِیۡبٌ مَّا تُوۡعَدُوۡنَ اَمۡ یَجۡعَلُ لَہٗ رَبِّیۡۤ اَمَدًا (۲۵) |
| هغه په غيبو عالم دي په خپلو غيبو باندي څوك نه خبروی | عٰلِمُ الۡغَیۡبِ فَلَا یُظۡہِرُ عَلٰی غَیۡبِہٖۤ اَحَدًا (۲۶) |
| پرته له هغه استاځی نه چې الله (دغيبود څه علم ورکولو لپاره ) غوره کړي وی نو دهغه (رسول)مخکښي اوشاته الله ساتونکي څارونکي ټاکی. | اِلَّا مَنِ ارۡتَضٰی مِنۡ رَّسُوۡلٍ فَاِنَّہٗ یَسۡلُکُ مِنۡۢ بَیۡنِ یَدَیۡہِ وَ مِنۡ خَلۡفِہٖ رَصَدًا (۲۷) |
| تر څو معلومه کړي چې هغوې د خپل رب پېغامونه ورسول او الله دهغو ټول چاپيريال احاطه کړی دی او هر يو شي يې په شمار شمېرلي ايښي دي . | لِّیَعۡلَمَ اَنۡ قَدۡ اَبۡلَغُوۡا رِسٰلٰتِ رَبِّہِمۡ وَ اَحَاطَ بِمَا لَدَیۡہِمۡ وَ اَحۡصٰی کُلَّ شَیۡءٍ عَدَدًا (۲۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| اي ځان نغښتونکی ويده کېدونکيه | یٰۤاَیُّہَا الۡمُزَّمِّلُ (۱) |
| شپه په لمانځه کښي په ولاړې تېره کړه مګر کمه | قُمِ الَّیۡلَ اِلَّا قَلِیۡلًا (۲) |
| ينمائي شپه ياله هغي نه يوڅه کمه کړه | نِّصۡفَہٗۤ اَوِ انۡقُصۡ مِنۡہُ قَلِیۡلًا (۳) |
| ياله هغي نه يوڅه زياته کړه او قران ښه په کراره کراره لوله | اَوۡ زِدۡ عَلَیۡہِ وَ رَتِّلِ الۡقُرۡاٰنَ تَرۡتِیۡلًا (۴) |
| مونږ پرتاباندي ديو درانده کلام نازلوونکي يو | اِنَّا سَنُلۡقِیۡ عَلَیۡکَ قَوۡلًا ثَقِیۡلًا (۵) |
| په حقيقت کښي د شپي پاڅېدل د نفس کنترولولو لپاره ډېر اغېزمن او دقران د صحيح لوستلو لپاره زيات مناسب دی | اِنَّ نَاشِئَۃَ الَّیۡلِ ہِیَ اَشَدُّ وَطۡاً وَّ اَقۡوَمُ قِیۡلًا (۶) |
| دورځي په اوږ دوکښي خو ستالپاره زيات مصروفيتونه دي | اِنَّ لَکَ فِی النَّہَارِ سَبۡحًا طَوِیۡلًا (۷) |
| د خپل رب نوم يا دوه او له نورو ټولونه په علايقو قطع کولو سره په هماغه پورې اړوند اوسه | وَ اذۡکُرِ اسۡمَ رَبِّکَ وَ تَبَتَّلۡ اِلَیۡہِ تَبۡتِیۡلًا (۸) |
| هغه د ختيځ اولوېديځ څښتن دی ، له هغه پرته بل هيڅ خدای نه شته نو په دې اساس هماغه خپل وکيل ونيسه | رَبُّ الۡمَشۡرِقِ وَ الۡمَغۡرِبِ لَاۤ اِلٰہَ اِلَّا ہُوَ فَاتَّخِذۡہُ وَکِیۡلًا (۹) |
| او خلك چې کومې خبرې جوړوی پرهغو صبروکړه او په شرافتمندانه ډول له هغونه بېل شه | وَ اصۡبِرۡ عَلٰی مَا یَقُوۡلُوۡنَ وَ اہۡجُرۡہُمۡ ہَجۡرًا جَمِیۡلًا (۱۰) |
| او د دغو دروغجن ګڼونکو بدايانو دله مينځه وړلو کارماته پرېږده او دوې ته يوڅه وخت په همدې حالت باندې مهلت ورکړه | وَ ذَرۡنِیۡ وَ الۡمُکَذِّبِیۡنَ اُولِی النَّعۡمَۃِ وَ مَہِّلۡہُمۡ قَلِیۡلًا (۱۱) |
| له مونږ سره ( د دوي لپاره ) درندې زولني دی او لمبې وهونکی اور | اِنَّ لَدَیۡنَاۤ اَنۡکَالًا وَّ جَحِیۡمًا (۱۲) |
| اوپه مری کښي نښتونکي خواړه او درد ناك عذاب | وَّ طَعَامًا ذَا غُصَّۃٍ وَّ عَذَابًا اَلِیۡمًا (۱۳*) |
| دابه هغه ورځ وی چې ځمکه او غرونه ولړزېږي او د غرونو حالت داسې شی لکه دشګو ډېری چې خورېږی . | یَوۡمَ تَرۡجُفُ الۡاَرۡضُ وَ الۡجِبَالُ وَ کَانَتِ الۡجِبَالُ کَثِیۡبًا مَّہِیۡلًا (۱۴) |
| تاسي ته مونږ په هماغه شان يو پېغمبر پرتاسي شاهدلېږلی دی لکه څنګه چې مونږ فرعون ته يو پېغمبر ( موسي(ع) ) لېږلي وء | اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلَیۡکُمۡ رَسُوۡلًا ۬ۙ شَاہِدًا عَلَیۡکُمۡ کَمَاۤ اَرۡسَلۡنَاۤ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ رَسُوۡلًا (۱۵) |

فرعون د هغه پېغمبر خبره ونه منله نو ( نو وګورئ کله چې ) مونږ هغه په ډېرې سختئ سره ونيوه

فَعَصٰی فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ فَاَخَذْنٰہُ اَخْذًا وَّبِیْلًا (۱۶)

که تاسې له منلو څخه انکار وکړئ نو په هغه ورځ به څنګه وژغورل شئ چې ماشومان به سپين ږيري کړي

فَکَیْفَ تَتَّقُوْنَ اِنْ کَفَرْتُمْ یَوْمًا یَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِیْبَا (۱۷)

او د هغې له سختئ نه به آسمان چاودېدونکي وی ؟ دالله وعده خو پوره کېدونکې ده

السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌۢ بِہٖ ؕ کَانَ وَعْدُہٗ مَفْعُوْلًا (۱۸)

دا نصيحت دي اوس چې د چا خوښه وی دخپل رب لوری ته دتلو لاره دې غوره کړی

اِنَّ ہٰذِہٖ تَذْکِرَۃٌ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰی رَبِّہٖ سَبِیْلًا (۱۹)

اي پېغمبره ! ستا رب پوهېږی چې ته کله دشپې له درېونه دووبرخو ته نږدې او کله نيمائي شپه او کله د شپې دريمه برخه په عبادت کښې ولاړيې او ستا له ملګرونه هم يوه ډله داعمل کوی ، الله د شپې او ورځې وختونه حسابوی ، هغه ته معلومه ده چې تاسې دوختونو سم حساب نشئ کولې نو په دې اساس هغه پرتاسې مهرباني وکړه اوس چې څومره قران په اسانۍ سره لوستلې شئ لولئ يې هغه ته معلومه ده چې په تاسې کښې به څوك ناروغ وي ، ځېنې نورخلك دالله د فضل په لټه کښې سفر کوی او ځېنې نور خلك د الله په لاره کښې جنګېږی نو څومره قران چې په اسانۍ سره لوستلې شئ لولئ يې لمونځ اداکړئ زکات ورکړئ او الله ته غوره پورورکوئ کومه نيکې چې تاسې وړاندې دخپل ځان لپاره ولېږئ هغه به دالله په وړاندې موجوده ومومئ هماغه ډېره ښه ده او دهغې اجر ډېر لوي دي له الله نه ښښنه وغواړئ ، بېشکه الله ښه ښونکي خورا مهربان دي.

اِنَّ رَبَّکَ یَعْلَمُ اَنَّکَ تَقُوْمُ اَدْنٰی مِنْ ثُلُثَیِ الَّیْلِ وَ نِصْفَہٗ وَ ثُلُثَہٗ وَ طَآئِفَۃٌ مِّنَ الَّذِیْنَ مَعَکَ ؕ وَ اللّٰہُ یُقَدِّرُ الَّیْلَ وَ النَّہَارَ ؕ عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْہُ فَتَابَ عَلَیْکُمْ فَاقْرَءُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ؕ عَلِمَ اَنْ سَیَکُوْنُ مِنْکُمْ مَّرْضٰی ۙ وَ اٰخَرُوْنَ یَضْرِبُوْنَ فِی الْاَرْضِ یَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰہِ ۙ وَ اٰخَرُوْنَ یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰہِ ۫ۖ فَاقْرَءُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنْہُ ۙ وَ اَقِیْمُوا الصَّلٰوۃَ وَ اٰتُوا الزَّکٰوۃَ وَ اَقْرِضُوا اللّٰہَ قَرْضًا حَسَنًا ؕ وَ مَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِکُمْ مِّنْ خَیْرٍ تَجِدُوْہُ عِنْدَ اللّٰہِ ہُوَ خَیْرًا وَّ اَعْظَمَ اَجْرًا ؕ وَ اسْتَغْفِرُوا اللّٰہَ ؕ اِنَّ اللّٰہَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ (۲۰)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

اي ځان نغښتونکي څملاستونکيه

یٰۤاَیُّہَا الْمُدَّثِّرُ ۙ(۱)

پاڅېږه او خبرداري ورکړه

قُمْ فَاَنْذِرْ ۪ۙ(۲)

او دخپل رب لوئی اعلان کړه

وَ رَبَّکَ فَکَبِّرْ ۪ۙ(۳)

او خپلې جامې پاکې وساته

وَ ثِیَابَکَ فَطَہِّرْ ۪ۙ(۴)

او له چټلئ نه په څنګ اوسه

وَ الرُّجْزَ فَاہْجُرْ ۪ۙ(۵)

او دزيات عوض ترلاسه کولو لپاره احسان مه کوه

وَ لَا تَمْنُنْ تَسْتَکْثِرُ ۪ۙ(۶)

او د خپل رب په خاطر صبر وکړه

وَ لِرَبِّکَ فَاصْبِرْ ؕ(۷)

ښه نو کله چې په شپېلئ کښې پوکې ووهل شی

فَاِذَا نُقِرَ فِی النَّاقُوْرِ ۙ(۸)

هغه ورځ به ډېره سخته ورځ وی

فَذٰلِکَ یَوْمَئِذٍ یَّوْمٌ عَسِیْرٌ ۙ(۹)

د کافرانو لپاره به اسانه نه وی

عَلَی الْکٰفِرِیْنَ غَیْرُ یَسِیْرٍ (۱۰)

پرېږده ما او هغه څوك چې ما هغه يوازې پيدا کړ

ذَرْنِیْ وَ مَنْ خَلَقْتُ وَحِیْدًا ۙ(۱۱)

ډېر مال مې هغه ته ورکړ

وَّ جَعَلْتُ لَہٗ مَالًا مَّمْدُوْدًا ۙ(۱۲)

د دې ترڅنګ مو حاضر موجود ځامن ورکړل

وَّ بَنِیْنَ شُہُوْدًا ۙ(۱۳)

او دهغه لپاره مو د مشرتابه لاره برابره کړه

وَّ مَہَّدْتُّ لَہٗ تَمْہِیْدًا ۙ(۱۴)

بيا هغه تمه لری چې زه ورته نور لازيات ورکړم

ثُمَّ یَطْمَعُ اَنْ اَزِیْدَ ۙ٭(۱۵)

هېڅکله نه ، هغه زمونږ دايتونو دښمن دي

کَلَّا ؕ اِنَّہٗ کَانَ لِاٰیٰتِنَا عَنِیْدًا ؕ(۱۶)

زه خو به هغه ډېر ژر پر يوه سخت پېچومی وخېژوم

سَاُرْہِقُہٗ صَعُوْدًا ؕ(۱۷)

هغه فکر وکړ او دځه خبرې جوړولو هڅه یې وکړه
اِنَّہٗ فَكَّرَ وَ قَدَّرَ (١٨ۙ)

نو خداي دې هغه ووهي د څنګه خبرې جوړ ولو هڅه یې وکړه
فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (١٩ۙ)

هو ، خداي دې هغه ووهي ، دڅنګه خبرې جوړولو هڅه یې وکړه
ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (٢٠ۙ)

بیایې ( دخلکو لوری ته ) وکتل
ثُمَّ نَظَرَ (٢١ۙ)

بیایې وچولي تریو کړاوخوله یې بړوسه کړه
ثُمَّ عَبَسَ وَ بَسَرَ (٢٢ۙ)

بیایې شاواړوله او تکبریې وکړ
ثُمَّ اَدۡبَرَ وَ اسۡتَكۡبَرَ (٢٣ۙ)

په پاي کښې یې وویل چې دانور هېڅ نه دي مګر کوډې دي .چې له پخوانه راروانې دی
فَقَالَ اِنۡ ہٰذَاۤ اِلَّا سِحۡرٌ یُّؤۡثَرُ (٢٤ۙ)

داخو یو انسانې کلام دي
اِنۡ ہٰذَاۤ اِلَّا قَوۡلُ الۡبَشَرِ (٢٥ؕ)

ډېر ژربه زه هغه دوزخ ته ننباسم
سَاُصۡلِیۡہِ سَقَرَ (٢٦)

اوته څه پوهېږې چې څه دي هغه دوزخ ؟
وَ مَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا سَقَرُ (٢٧ؕ)

نه یې پرېږدي نه یې خوشې کوی
لَا تُبۡقِیۡ وَ لَا تَذَرُ (٢٨ۚ)

پوستکي الېیونکي
لَوَّاحَةٌ لِّلۡبَشَرِ (٢٩ۚۖ)

پر هغه باندې نولس کارکوونکي ټاکل شوی دي
عَلَیۡہَا تِسۡعَةَ عَشَرَ (٣٠ؕ)

مونږ د دوزخ دغه چوپړیان پرښتې ګرځولې دی ،او دهغو شمېرمو دکافرانو لپاره ازموینه ګرځولې ده ترڅو چې داهل کتابو باور راشی او دموءمنانو ایمان زیات شی او اهل کتاب او موءمنان په کوم شك کښې پاتې نه شي ، او د زړه ناروغان او کافران داووائی چې ښه نو دالله د دې عجیبه خبرې نه څه مطلب کېداي شی په دی ډول چې دالله چاته خوښه شی ګمراه کوي یې او چاته یئ چې خوښه شی لاره ورښیی او ستا درب لښکرې پخپله له هغه پرته بل څوك نه پېژنی او د دوزخ یادونه له دې پرته دکوم بل غرض لپاره نه ده شوې چې خلکو ته پندوی

وَ مَا جَعَلۡنَاۤ اَصۡحٰبَ النَّارِ اِلَّا مَلٰٓئِكَةً ۪ وَّ مَا جَعَلۡنَا عِدَّتَہُمۡ اِلَّا فِتۡنَةً لِّلَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا ۙ لِیَسۡتَیۡقِنَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ وَ یَزۡدَادَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِیۡمَانًا وَّ لَا یَرۡتَابَ الَّذِیۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ وَ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ۙ وَ لِیَقُوۡلَ الَّذِیۡنَ فِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ وَّ الۡكٰفِرُوۡنَ مَاذَاۤ اَرَادَ اللّٰہُ بِہٰذَا مَثَلًا ؕ كَذٰلِكَ یُضِلُّ اللّٰہُ مَنۡ یَّشَآءُ وَ یَہۡدِیۡ مَنۡ یَّشَآءُ ؕ وَ مَا یَعۡلَمُ جُنُوۡدَ رَبِّكَ اِلَّا ہُوَ ؕ وَ مَا ہِیَ اِلَّا ذِكۡرٰی لِلۡبَشَرِ (٣١)

هېڅکله نه ، قسم دي په سپوږمۍ
كَلَّا وَ الۡقَمَرِ (٣٢ۙ)

اوپه شپه باندې کله چې هغه راګرځی .
وَ الَّیۡلِ اِذۡ اَدۡبَرَ (٣٣ۙ)

او په سهار باندې کله چې رڼا کېږی
وَ الصُّبۡحِ اِذَاۤ اَسۡفَرَ (٣٤ۙ)

دغه دوزخ هم له لویو شیانو څخه یو دي
اِنَّہَا لَاِحۡدَی الۡكُبَرِ (٣٥ۙ)

د انسانانو لپاره وېرونکي
نَذِیۡرًا لِّلۡبَشَرِ (٣٦ۙ)

له تاسې نه دهر هغه چا لپاره وېروونکي چې (دایمان خوا ته) وړاندې تګ وغواړي یا (په کفر کې) بېرته پاتې کېدل وغواړی
لِمَنۡ شَآءَ مِنۡكُمۡ اَنۡ یَّتَقَدَّمَ اَوۡ یَتَاَخَّرَ (٣٧ؕ)

هرڅوك د خپلو (ناوړه) کړنوپه بدل کښې ګرودي
كُلُّ نَفۡسٍۭ بِمَا كَسَبَتۡ رَہِیۡنَةٌ (٣٨ۙ)

مګر د ښی لاس کسانو څخه پرته
اِلَّاۤ اَصۡحٰبَ الۡیَمِیۡنِ (٣٩ؕۛ)

چې په جنتونو کښې به وی هلته به هغوې پوښتنه وکړي له مجرمانو څخه
فِیۡ جَنّٰتٍ ۟ؕۛ یَتَسَآءَلُوۡنَ (٤٠ۙ)
عَنِ الۡمُجۡرِمِیۡنَ (٤١ۙ)

تاسې څه شي دوزخ ته بوتلئ ))؟))
مَا سَلَكَكُمۡ فِیۡ سَقَرَ (٤٢)

هغوې به ووائی . مونږ له لمونځ کوونکو څخه نه وو
قَالُوۡا لَمۡ نَكُ مِنَ الۡمُصَلِّیۡنَ (٤٣ۙ)

او مسکین ته مو خواړه نه ورکول
وَ لَمۡ نَكُ نُطۡعِمُ الۡمِسۡكِیۡنَ (٤٤ۙ)

| | |
|---|---|
| او دحق پر خلاف خبر وجوړونكو سره په يوځاي كېدومونږ هم خبرې جوړولې | وَ كُنَّا نَخُوْضُ مَعَ الْخَآئِضِيْنَ (۴۵) |
| او دجزا ورځ مو دروغ ګڼله | وَ كُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّيْنِ (۴۶) |
| تردې پورې چې مونږ له هغه باوری شی سره مخامخ شوو | حَتّٰى اَتٰىنَا الْيَقِيْنُ (۴۷) |
| په هغه وخت كښې به د سپارښت كوونكو سپارښت هغوته هيڅ په درد ونه خوری | فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشّٰفِعِيْنَ (۴۸) |
| نوپه دغو خلكو څه شوي دي چې دوي له دې نصيحت نه مخ اړوی | فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ (۴۹) |
| ګواكې دوي ځنګلي خره دي | كَاَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنْفِرَةٌ (۵۰) |
| چې د زمری له وېرې وتښتيدل | فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ (۵۱) |
| بلكې له دوې نه هريو خودا غواړي چې دهغه په نوم پرانستی ليكونه وركړل شي | بَلْ يُرِيْدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّؤْتٰى صُحُفًا مُّنَشَّرَةً (۵۲) |
| هېڅكله نه ،اصلي خبره داده چې دوي له اخرت نه نه وېرېږی | كَلَّا ؕ بَلْ لَّا يَخَافُوْنَ الْاٰخِرَةَ (۵۳) |
| هېڅكله نه ،داخو يو نصيحت دي | كَلَّآ اِنَّهٗ تَذْكِرَةٌ (۵۴) |
| اوس چې د چا خوښه وی له ده څخه دې درس واخلي | فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ (۵۵) |
| او دوي به څه درس وانخلي مګر داچې الله همداسې وغواړی هغه د دې وړ دی چې ور څخه وېره وشی او هغه د دې اهليت لری چې (پرهيزګارانوته ) ښښنه وكړي . | وَ مَا يَذْكُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ هُوَ اَهْلُ التَّقْوٰى وَ اَهْلُ الْمَغْفِرَةِ (۵۶) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| نه ، زه قسم خورم د قيامت په ورځ | لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ (۱) |
| او نه ، زه قسم خورم په ملامتونكي نفس باندې | وَ لَآ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ (۲) |
| ايا انسان دا انګېری چې مونږ به دهغه هډوكي راټول نشو كړاي ؟ | اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ اَلَّنْ نَّجْمَعَ عِظَامَهٗ (۳) |
| ولې نه؟مونږ خوان دهغه دګوتو دبند بند په سم جوړولو باندې قادريو | بَلٰى قٰدِرِيْنَ عَلٰى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ (۴) |
| خو انسان داغواړی چې وړاندې هم (داخرت په نه منلو سره) بدې چارې سرته ورسوی | بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ (۵) |
| پوښتنه كوی نو د قيامت ورځ به كله راځی؟)) | يَسْئَلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ (۶) |
| بيا كله چې سترګې تيغې وخېژی | فَاِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ (۷) |
| او سپوږمۍ بې نوره شی | وَ خَسَفَ الْقَمَرُ (۸) |
| او لمر او سپوږمۍ يو ځاي كړاي شی | وَ جُمِعَ الشَّمْسُ وَ الْقَمَرُ (۹) |
| په هغه وخت كښې به همدغه انسان ووائی (( چيرته وتښتم ؟ )) | يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ اَيْنَ الْمَفَرُّ (۱۰) |
| هېڅكله نه ، هلته به د پناه كوم ځاي نه وی | كَلَّا لَا وَزَرَ (۱۱) |
| په هغه ورځ به يوازې ستا درب په وړاندې تمېدل وی | اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ الْمُسْتَقَرُّ (۱۲) |
| په هغه ورځ به انسان ته دهغه ټول مخكښې وروسته كړی عملونه وروښودل شی | يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَ اَخَّرَ (۱۳) |
| بلكې انسان پخپله خپل ځان ښه پېژنی | بَلِ الْاِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهٖ بَصِيْرَةٌ (۱۴) |
| اګر كه هر څومره عذرونه وړاندې كړی . | وَّ لَوْ اَلْقٰى مَعَاذِيْرَهٗ (۱۵) |

| | |
|---|---|
| لَا تُحَرِّكۡ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهٖ (۱۶) | اي پېغمبره ! په بيړه د دغې وحي يادولو لپاره خپله ژبه مه خوځوه |
| اِنَّ عَلَيۡنَا جَمۡعَهٗ وَ قُرۡاٰنَهٗ (۱۷) | دا درباندې زده کول او درباندې لوستل زمونږ په ذمه دی |
| فَاِذَا قَرَاۡنٰهُ فَاتَّبِعۡ قُرۡاٰنَهٗ (۱۸) | نو کله چې مونږ دالولو په هغه وخت کښې ته د دې قرائت په غورسره اوره |
| ثُمَّ اِنَّ عَلَيۡنَا بَيَانَهٗ (۱۹) | بيا د ده په مطلب باندې پوهول هم همدا زمونږ په ذمه دی |
| كَلَّا بَلۡ تُحِبُّوۡنَ الۡعَاجِلَةَ (۲۰) | هېڅکله نه ، اصلي خبره داده چې تاسې په بيړه ترلاسه کېدونکی شي ( يعني دنيا ) سره مينه لرئ |
| وَ تَذَرُوۡنَ الۡاٰخِرَةَ (۲۱) | او اخرت پرېږدئ |
| وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ (۲۲) | په هغه ورځ به ځيني مخونه خوشحاله ښېرازه وی |
| اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ (۲۳) | د خپل رب لوری ته به کتونکی وی |
| وَ وُجُوۡهٌ يَّوۡمَئِذٍ بَاسِرَةٌ (۲۴) | او ځيني مخونه به بدرنګه وی . |
| تَظُنُّ اَنۡ يُّفۡعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ (۲۵) | او انګېري به چې له هغو سره ملاماتوونکی چلند کېدونکي دی |
| كَلَّاۤ اِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِىَ (۲۶) | هېڅکله نه ، کله چې سامری ته ورسېږی |
| وَ قِيۡلَ مَنۡ رَاقٍ (۲۷) | او وويل شی چې شته دی څوك دم شُف کوونکی |
| وَّ ظَنَّ اَنَّهُ الۡفِرَاقُ (۲۸) | او ناروغ انسان به وانګېري چې داله دنيانه دبېلتانه وخت دی |
| وَ الۡتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ (۲۹) | او يوه پنډۍ په بلې پنډۍ پورې ونښلي |
| اِلٰى رَبِّكَ يَوۡمَئِذِ الۡمَسَاقُ (۳۰) | هغه ورځ به وی ستا درب لوری ته ورخوځېدل |
| فَلَا صَدَّقَ وَ لَا صَلّٰى (۳۱) | خو هغه نه (دا قران ) رېښتيا وګڼه اونه يې لمونځ ادا کړ |
| وَ لٰكِنۡ كَذَّبَ وَ تَوَلّٰى (۳۲) | بلکې دروغجن يې وګاڼه او واوښت |
| ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰى اَهۡلِهٖ يَتَمَطّٰى (۳۳) | بيا په غرورسره خپلې کورنۍ ته لاړ |
| اَوۡلٰى لَكَ فَاَوۡلٰى (۳۴) | دغه چلند له همدا تاسره وړدي او له همدا تاسره ښائي |
| ثُمَّ اَوۡلٰى لَكَ فَاَوۡلٰى (۳۵) | هو دا چلند له همدا تاسره وړ دي او له همدا تا سره ښائي |
| اَيَحۡسَبُ الۡاِنۡسَانُ اَنۡ يُّتۡرَكَ سُدًى (۳۶) | ايا انسان دا انګېرلي ده چې هغه به همداسې مهمل پرېښودل شي ؟ |
| اَلَمۡ يَكُ نُطۡفَةً مِّنۡ مَّنِيٍّ يُّمۡنٰى (۳۷) | ايا هغه ديو ناچيزه اوبو نطفه نه وه چې ( دمورپه رحم کښې ) څڅوله کېږی ؟ |
| ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوّٰى (۳۸) | بيا هغه د کلکې شوې وينې يوه ټوټه شو ، بيا الله دهغه جسم جوړ کړ او دهغه غړي يې برابر کړل |
| فَجَعَلَ مِنۡهُ الزَّوۡجَيۡنِ الذَّكَرَ وَ الۡاُنۡثٰى (۳۹) | بيايې له هغه نه دنارينه او ښځې دوه ډوله پيدا کړل |
| اَلَيۡسَ ذٰلِكَ بِقٰدِرٍ عَلٰۤى اَنۡ يُّحۡـىِۦَ الۡمَوۡتٰى (۴۰) | ايا دغه ذات په دې ندی قادر چې مړه شوی بيا ژوندی کړی؟ |
| بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی |
| هَلۡ اَتٰى عَلَى الۡاِنۡسَانِ حِيۡنٌ مِّنَ الدَّهۡرِ لَمۡ يَكُنۡ شَيۡـًٔا مَّذۡكُوۡرًا (۱) | ايا پر انسان د زمانې يو وخت داسې هم تېر شوی دی چې هغه کوم ديادونې وړشي نه وه ؟ |

مونږ انسان له يوې ګډې شوې نطفې څخه پيدا کړ تر څو چې هغه وازمايو او د دې غرض لپاره مونږ هغه اوريدونکي او ليدونکي وګرځاوه

اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ ۖ نَّبْتَلِيْهِ فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا (۲)

مونږ هغه ته لاره وښودله ، يابه شکر کوونکي شي او يا کفر کوونکی .

اِنَّا هَدَيْنٰهُ السَّبِيْلَ اِمَّا شَاكِرًا وَّ اِمَّا كَفُوْرًا (۳)

د کافرانو لپاره مونږ ځنځيرونه او طوقونه اولمبه وهونکی اورتيار کړی دی

اِنَّاۤ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَاۡ وَ اَغْلٰلًا وَّ سَعِيْرًا (۴)

ښه خلك به ( په جنت کښې ) د شرابو داسې جامونه څښی چې په هغو کښې به دکافور اوبه ګډې شوې وی

اِنَّ الْاَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَاْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا ۚ(۵)

دابه يوه بهېدونکي چينه وی چې دالله بندګان به يې اوبه څښي او کوم لوری ته يې چې زړه وی په اسانی سره به دهغې لختی باسي بهوي به يې

عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللّٰهِ يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا (۶)

دابه هغه کسان وی چې ( په دنيا کښې ) په نذروفا کوی او له هغې ورځې نه ويريږی چې دهغې افت به په هر لوری خورشوی وی

يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ وَ يَخَافُوْنَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهٗ مُسْتَطِيْرًا (۷)

او دالله په مينه کښې مسکين او يتيم او بندي ته خواړه ورکوی

وَ يُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهٖ مِسْكِيْنًا وَّ يَتِيْمًا وَّ اَسِيْرًا (۸)

مونږ تاسي ته يوازې دالله په خاطر خواړه ( او هغوته وائی چې ) درکوو ، مونږ له تاسي څخه نه څه بدله غواړو نه شکريه

اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ جَزَآءً وَّ لَا شُكُوْرًا (۹)

له مونږ سره خوله خپل رب څخه دهغې ورځې د عذاب وېره ده چې د سخت کړاوء ډېره اوږده ورځ به وی

اِنَّا نَخَافُ مِنْ رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا (۱۰)

نو الله تعالىٰ به دوې د هغې ورځې له شر څخه وژغوری او دوې ته به ترتازګی او خوشحالی ورکړی

فَوَقٰىهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَ لَقّٰىهُمْ نَضْرَةً وَّ سُرُوْرًا ۚ(۱۱)

او دهغو دصبر په بدل کښې به هغوته جنت او وربښمين کالی ورکړی

وَ جَزٰىهُمْ بِمَا صَبَرُوْا جَنَّةً وَّ حَرِيْرًا ۙ(۱۲)

هلته به هغوي پرلوړومسندونو باندې تکيه وهلی ناست وی نه به يې د دوبی ګرمی په تکليف کړی او نه د ژمی ساړه

مُّتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا عَلَى الْاَرَآئِكِ ۚ لَا يَرَوْنَ فِيْهَا شَمْسًا وَّ لَا زَمْهَرِيْرًا ۚ(۱۳)

د جنت څانګې به پرې راټيټې شوې سيورې کوونکې وې او دهغه ميوې به هروخت دهغوې په وس کښې وی ( چې څنګه غواړی ويې شکوی ، )

وَ دَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلٰلُهَا وَ ذُلِّلَتْ قُطُوْفُهَا تَذْلِيْلًا (۱۴)

دهغو مخې ته به دسپينوزرولو ښې او دښيښو ګيلاسونه ګرځول کېږی

وَ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِاٰنِيَةٍ مِّنْ فِضَّةٍ وَّ اَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيْرَاۡ ۙ(۱۵)

ښيښې هم هغه چې د سپينو زرو په ډول به وی او هغه به ( دجنت منتظمينو ) په سمه اندازه برابر ډك کړی وی

قَوَارِيْرَاۡ مِنْ فِضَّةٍ قَدَّرُوْهَا تَقْدِيْرًا (۱۶)

په هغوبه هلته دشرابو داسې جامونه وڅښل شی چې سونډ به پکښې ګډ شوې وی

وَ يُسْقَوْنَ فِيْهَا كَاْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنْجَبِيْلًا ۚ(۱۷)

دابه دجنت يوه چينه وی چې سلسبيل ورته ويل کېږي

عَيْنًا فِيْهَا تُسَمّٰى سَلْسَبِيْلًا (۱۸)

او دهغود خدمت لپاره به داسې هلکان ګرځی راګرځی چې تل به په هلکولی کښې وی که ته هغوې ووينې نو ګومان به وکړې چې ملغلرې دی چې خورې کړاې شوې دې

وَ يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ۚ اِذَا رَاَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنْثُوْرًا (۱۹)

هلته چې ته هرې خواته نظر واچوې سراسر نعمتونه او ديو لوې سلطنت رنګ رونق به دې ترسترګو شی

وَ اِذَا رَاَيْتَ ثَمَّ رَاَيْتَ نَعِيْمًا وَّ مُلْكًا كَبِيْرًا (۲۰)

پر هغو باندې به دنریو وریښمو شنه جامه پرته او داطلس او دیربړو وریښمو جامې به یې وی ، هغو ته به دسپینو زرو بنګړی واچول شی او دهغو رب به په هغوباندې ډېر زیات پاك شراب وڅښي

عٰلِیَہُمۡ ثِیَابُ سُنۡدُسٍ خُضۡرٌ وَّ اِسۡتَبۡرَقٌ ۫ وَّ حُلُّوۡۤا اَسَاوِرَ مِنۡ فِضَّۃٍ ۚ وَ سَقٰہُمۡ رَبُّہُمۡ شَرَابًا طَہُوۡرًا (۲۱)

دادی ستاسې مکافات او ستاسې هاند هڅه د قدر وړ ده

اِنَّ ہٰذَا کَانَ لَکُمۡ جَزَآءً وَّ کَانَ سَعۡیُکُمۡ مَّشۡکُوۡرًا (۲۲)

اې پېغمبره ! همدا مونږ پرتا دغه قران لږ لږ نازل کړیدی ،

اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا عَلَیۡکَ الۡقُرۡاٰنَ تَنۡزِیۡلًا (۲۳)

نو ته د خپل رب په حکم صبر وکړه ،اوله دوی نه دهیڅ یو بد عمله یا حق نه منونکي خبره مه منه

فَاصۡبِرۡ لِحُکۡمِ رَبِّکَ وَ لَا تُطِعۡ مِنۡہُمۡ اٰثِمًا اَوۡ کَفُوۡرًا (۲۴)

د خپل رب نوم سهار او مابښام یادوه

وَ اذۡکُرِ اسۡمَ رَبِّکَ بُکۡرَۃً وَّ اَصِیۡلًا (۲۵)

دشپې هم دهغه حضور ته سجده کوونکی اوسه او دشپې په اوږدو وختونو کښې دهغه تسبیح کوه .

وَ مِنَ الَّیۡلِ فَاسۡجُدۡ لَہٗ وَ سَبِّحۡہُ لَیۡلًا طَوِیۡلًا (۲۶)

دغه کسان خوله ژر لاس ته راتلونکی شی (دنیا) سره مینه لری او وړاندې چې کومه درنده ورځ راتلونکې ده هغه له نظره غورځوی

اِنَّ ہٰۤؤُلَآءِ یُحِبُّوۡنَ الۡعَاجِلَۃَ وَ یَذَرُوۡنَ وَرَآءَہُمۡ یَوۡمًا ثَقِیۡلًا (۲۷)

همدا مونږ دوی پیدا کړي دي او د دوي اندامونه بندونه مو کلك کړي دي او مونږ چې کله وغواړو د دوي شکلونه به بدل کړو

نَحۡنُ خَلَقۡنٰہُمۡ وَ شَدَدۡنَاۤ اَسۡرَہُمۡ ۚ وَ اِذَا شِئۡنَا بَدَّلۡنَاۤ اَمۡثَالَہُمۡ تَبۡدِیۡلًا (۲۸)

دا یو نصیحت دي اوس نو چې د چا خوښه وی د خپل رب لوری ته دتلو لاره دې غوره کړی

اِنَّ ہٰذِہٖ تَذۡکِرَۃٌ ۚ فَمَنۡ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰی رَبِّہٖ سَبِیۡلًا (۲۹)

اوستاسې په خوښې سره څه نه کېږی ترڅو پورې چې دالله خوښه نه وی په باوری توګه الله د علم او حکمت خاوند دي

وَ مَا تَشَآءُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ یَّشَآءَ اللّٰہُ ؕ اِنَّ اللّٰہَ کَانَ عَلِیۡمًا حَکِیۡمًا (۳۰)

چاته چې یې خوښه شی په خپل رحمت کښې یې داخلوی او دظالمانو لپاره یې دردناك عذاب تیار کړی دی .

یُّدۡخِلُ مَنۡ یَّشَآءُ فِیۡ رَحۡمَتِہٖ ؕ وَ الظّٰلِمِیۡنَ اَعَدَّ لَہُمۡ عَذَابًا اَلِیۡمًا (۳۱)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

قسم دی په هغو( بادونو ) چې پرله پسې لېږل کېږی

وَ الۡمُرۡسَلٰتِ عُرۡفًا ۙ(۱)

بیا په طوفاني الوتلو چلېږی

فَالۡعٰصِفٰتِ عَصۡفًا ۙ(۲)

او ( وربځې ) په راپورته کولو خوروی

وَّ النّٰشِرٰتِ نَشۡرًا ۙ(۳)

بیا( هغه) څیروي بیلوی یې (یا د حق او باطل بېلوونکو ایتونو باندې)

فَالۡفٰرِقٰتِ فَرۡقًا ۙ(۴)

بیا (په زړونو کښې د خداي ) یاد اچوی (یا په زړونو کې ذکر اچوونکو پرښتو باندې )

فَالۡمُلۡقِیٰتِ ذِکۡرًا ۙ(۵)

د عذر په توګه یاد وېریدنې په توګه

عُذۡرًا اَوۡ نُذۡرًا ۙ(۶)

دکوم شي چې له تاسې سره وعده کېږی هغه ارومرو راپېښېدونکی دی.

اِنَّمَا تُوۡعَدُوۡنَ لَوَاقِعٌ ؕ(۷)

بیاکله چې ستوري تت شي

فَاِذَا النُّجُوۡمُ طُمِسَتۡ ۙ(۸)

او اسمان وڅیرل شی

وَ اِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتۡ ۙ(۹)

او غرونه ډانډس کړل شی

وَ اِذَا الۡجِبَالُ نُسِفَتۡ ۙ(۱۰)

او د رسولانو د حاضری وخت راورسېږی

وَ اِذَا الرُّسُلُ اُقِّتَتۡ ؕ(۱۱)

| | |
|---|---|
| په هغه ورځ به هغه شي واقع شی ) دکومې ورځې لپاره چې ) داکار ځنډول شوی دی | لِاَیِّ یَوۡمٍ اُجِّلَتۡ (۱۲) |
| دفیصلې د ورځې لپاره | لِیَوۡمِ الۡفَصۡلِ (۱۳) |
| او ته څه خبر يې چې هغه د فیصلې ورځ څه ده ؟ | وَ مَاۤ اَدۡرٰىکَ مَا یَوۡمُ الۡفَصۡلِ (۱۴) |
| تباهی ده په هغه ورځ دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۱۵) |
| ایا مونږ پخواني هلاك نکړل . | اَلَمۡ نُہۡلِکِ الۡاَوَّلِیۡنَ (۱۶) |
| بیا به په هماغو پسې مونږ وروستنی وخوځوو | ثُمَّ نُتۡبِعُہُمُ الۡاٰخِرِیۡنَ (۱۷) |
| له مجرمانو سره مونږ همدغه څه کوو | کَذٰلِکَ نَفۡعَلُ بِالۡمُجۡرِمِیۡنَ (۱۸) |
| تباهی ده د هغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۱۹) |
| ایا مونږ له ناڅیزه اوبونه تاسې پیدا نه کړئ | اَلَمۡ نَخۡلُقۡکُّمۡ مِّنۡ مَّآءٍ مَّہِیۡنٍ (۲۰) |
| او هغه مو په یو محفوظ ځای کښې تم کړې | فَجَعَلۡنٰہُ فِیۡ قَرَارٍ مَّکِیۡنٍ (۲۱) |
| تر یوې ټاکلې مودې پورې | اِلٰی قَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ (۲۲) |
| نوګوره ، مونږ په دې قادر وو ، او مونږ د ډېر ښه قدرت درلودونکي یو | فَقَدَرۡنَا ٭ۖ فَنِعۡمَ الۡقٰدِرُوۡنَ (۲۳) |
| تباهی ده د هغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره . | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۲۴) |
| ایا مونږ ځمکه راغونډوونکي ساتونکي نه ده ګرځولې | اَلَمۡ نَجۡعَلِ الۡاَرۡضَ کِفَاتًا (۲۵) |
| د ژوندیو لپاره هم او د مړو لپاره هم | اَحۡیَآءً وَّ اَمۡوَاتًا (۲۶) |
| او په هغې کښې مو دنګ او لوړغرونه ښخ ودرول او پرتاسې مو خوږې اوبه وڅښلې | وَّ جَعَلۡنَا فِیۡہَا رَوَاسِیَ شٰمِخٰتٍ وَّ اَسۡقَیۡنٰکُمۡ مَّآءً فُرَاتًا (۲۷) |
| تباهي ده د هغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۲۸) |
| ځئ اوس د هماغه شي خواته چې تاسې هغه دروغ ګڼله | اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰی مَا کُنۡتُمۡ بِہٖ تُکَذِّبُوۡنَ (۲۹) |
| ځئ دهغه سیورې خوا ته چې درې څانګې لری، (ددوزخ دلوګي سیوری له دریو خواو چاپیر) | اِنۡطَلِقُوۡۤا اِلٰی ظِلٍّ ذِیۡ ثَلٰثِ شُعَبٍ (۳۰) |
| نه یخوونکي اونه داور د لمبومخه نیوونکي | لَّا ظَلِیۡلٍ وَّ لَا یُغۡنِیۡ مِنَ اللَّہَبِ (۳۱) |
| هغه اوربه د مانیوغوندې غټ غټ بڅرې غورځوی | اِنَّہَا تَرۡمِیۡ بِشَرَرٍ کَالۡقَصۡرِ (۳۲) |
| چې دالوتلو په وخت کښې به داسې ښکار ېږي )ګواکي چې هغه ) ژېړ اوښان دی | کَاَنَّہٗ جِمٰلَتٌ صُفۡرٌ (۳۳) |
| تباهي ده د هغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۳۴) |
| داهغه ورځ ده چې په هغې کښې به هغوې نه څه ووائي | ہٰذَا یَوۡمُ لَا یَنۡطِقُوۡنَ (۳۵) |
| او نه به هغوته موقع ورکړه شی چې څه عذر وړاندې کړی | وَ لَا یُؤۡذَنُ لَہُمۡ فَیَعۡتَذِرُوۡنَ (۳۶) |
| تباهی ده دهغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۳۷) |
| داد پرېکړې ورځ ده . موږ تاسې اوله تاسې مخکې تیر شوی خلک راغونډ کړي یاست | ہٰذَا یَوۡمُ الۡفَصۡلِ ۚ جَمَعۡنٰکُمۡ وَ الۡاَوَّلِیۡنَ (۳۸) |
| اوس نوکه تاسې څه د سیسه جوړولې شئ نو زما په مقابل کښې یې جوړه کړئ | فَاِنۡ کَانَ لَکُمۡ کَیۡدٌ فَکِیۡدُوۡنِ (۳۹) |
| تباهي ده دهغې ورځې دروغ ګڼونکو لپاره | وَیۡلٌ یَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُکَذِّبِیۡنَ (۴۰) |
| پرهیزګاران نن په سیورو ا و چینو کښې دی | اِنَّ الۡمُتَّقِیۡنَ فِیۡ ظِلٰلٍ وَّ عُیُوۡنٍ (۴۱) |
| او څه مېوې چې هغوې غواړی (دهغو لپاره حاضرې دی ) | وَّ فَوَاکِہَ مِمَّا یَشۡتَہُوۡنَ (۴۲) |

| | |
|---|---|
| په خوند سره خورئ او څښئ د خپلو هغو عملونوپه بدل کښي چي تاسي کړي وو | كُلُوْا وَ اشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۴۳) |
| مونږ ښوخلکوته همدغسي مکافات ورکوو | اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ (۴۴) |
| تباهي ده دهغي ورځي دروغ ګڼونکو لپاره | وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ (۴۵) |
| وخورئ او مزې چړچي وکړئ لږ ورځي - په حقيقت کښي تاسي مجرمان يئ | كُلُوْا وَ تَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا اِنَّكُمْ مُّجْرِمُوْنَ (۴۶) |
| تباهي ده دهغي ورځي دروغ ګڼونکو لپاره | وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ (۴۷) |
| کله چي دوي ته ويل کيږي چي دالله په وړاندي ټيټ شئ نونه ټيټيږي | وَ اِذَا قِيْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ (۴۸) |
| تباهي ده دهغي ورځي دروغ ګڼونکو لپاره | وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ (۴۹) |
| اوس له دې ( قرآن ) نه وروسته بل کوم کلام داسي کيداي شی چي دوي پرې ايمان راوړی ؟ | فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ (۵۰) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| دا خلك د څه شي په باب يو له بله پوښتني کوي ؟ | عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ (۱) |
| ايا دهغه لوي خبرپه باب | عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ (۲) |
| په دغو راز راز ګډو وډو ويناوو کښي اخته دي ؟ | الَّذِىْ هُمْ فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ (۳) |
| هيڅکله نه ، ډيره ژربه دوي ته څرګنده شي | كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ (۴) |
| هو ، هيڅکله نه ، ډيره ژر به دوې ته څرګنده شي . | ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ (۵) |
| ايا داسي نه ده چي مونږ ځمکه فرش غوړولي ده | اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا (۶) |
| او غرونه مو د ميخونو په څير ښخ کړي دي | وَّ الْجِبَالَ اَوْتَادًا (۷) |
| او تاسي ( نارينه اوښځي ) موجوړه جوړه پيدا کړي يئ | وَّ خَلَقْنٰكُمْ اَزْوَاجًا (۸) |
| او ستاسي خوب مود ارام باعث ګرځولي دي | وَّ جَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا (۹) |
| او شپه مو پرده اچوونکي | وَّ جَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا (۱۰) |
| او ورځ مو د ژوند وخت ګرځولی دی | وَّ جَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا (۱۱) |
| او ستاسي د پاسه مو اووه محکم اسمانونه ودرولی دی | وَّ بَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا (۱۲) |
| او يوه ډيره زياته روښانه اوتوده ډيوه موپيدا کړې ده | وَّ جَعَلْنَا سِرَاجًا وَّهَّاجًا (۱۳) |
| اوله وريځونه موپر له پسې بارانونه راورولی دی | وَّ اَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا (۱۴) |
| ترڅوچي د هغو په وسيله رازرغون کړو غلې، شينلي. | لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا وَّ نَبَاتًا (۱۵) |
| او ګڼ باغونه. | وَّ جَنّٰتٍ اَلْفَافًا (۱۶) |
| بېشکه د فيصلي ورځ يو ټاکلي وخت دي | اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ مِيْقَاتًا (۱۷) |
| په هغه ورځ کښي به په شپيلی کښي پوکی ووهل شي تاسي به ډلي ډلي را شئ | يَّوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ اَفْوَاجًا (۱۸) |
| او آسمان به پرانستل شي (آن ترديې) چه هغه به دروازې ، دروازې جوړ شي | وَّ فُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا (۱۹) |
| او غرونه به وخوځول شي ترديې پورې چي سراب (ځليدونکي ځمکه غوندې) وګرځي | وَّ سُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا (۲۰) |
| په حقيقت کښي جهنم يو څارنځی دی | اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا (۲۱) |
| د سرکشانو هستوګنځي دي | لِّلطّٰغِيْنَ مَاٰبًا (۲۲) |
| چه په هغه کښي به دوي په مودو پراته وي . | لّٰبِثِيْنَ فِيْهَآ اَحْقَابًا (۲۳) |

په هغه کښې به هېڅ د کوم يخ او څښلو وړشی خوند هغوي ونه څکي
لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا بَرْدًا وَّ لَا شَرَابًا (۲۴)

څه چي مومي هغه به يوازې د زخمونوويني زوې وي
اِلَّا حَمِيْمًا وَّ غَسَّاقًا (۲۵)

دهغو دعملونو ) پوره او بشپړه بدله )
جَزَآءً وِّفَاقًا (۲۶)

هغوې د هېڅ حساب هيله نه لرله
اِنَّهُمْ كَانُوْا لَا يَرْجُوْنَ حِسَابًا (۲۷)

او زمونږ ايتونه هغوې بيخي دروغ ګڼلي وو
وَّ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كِذَّابًا (۲۸)

په داسي حال کښې چه مونږ هرشی په شمار شمار ليکل
وَ كُلَّ شَيْءٍ اَحْصَيْنٰهُ كِتٰبًا (۲۹)

اوس خوند وڅکئ مونږ به تاسي ته له عذابه پرته هيڅ بل شی درزيات نه کړو
فَذُوْقُوْا فَلَنْ نَّزِيْدَكُمْ اِلَّا عَذَابًا (۳۰)

بېشکه دپرهيز ګارانو له پاره کاميابي ده
اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ مَفَازًا (۳۱)

باغونه او انګور
حَدَآئِقَ وَ اَعْنَابًا (۳۲)

او نوې پېغلې همځولې نجونې .
وَّكَوَاعِبَ اَتْرَابًا (۳۳)

او ډك جامونه
وَّ كَاْسًا دِهَاقًا (۳۴)

او هلته هيڅ بابيزه او دروغ خبره هغوي نه اوري
لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّ لَا كِذّٰبًا (۳۵)

له حساب سره سمه بدله او پوره لورينه ستاسي درب له لوري
جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا (۳۶)

دهغه زيات مهربان خداي له لوري څخه چي د آسمانونو او ځمکي او دهغو دواړو په مينځ کښې دهر شي څښتن دی د هغه په مخکښې دوې د خبر و کولو وس نه لري
رَّبِّ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ وَ مَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا (۳۷)

په هغه ورځ چې روح او پرښتې حلقه صفونه ودرېږي هيڅ څوك به خبرې نه کوي پرته له هغه چا چې رحمٰن اجازه ورکړې ، او هغه حقې خبرې کړې وي
يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَ قَالَ صَوَابًا (۳۸)

هغه ورځ حقه ده ، نو اوس چې د چاڑه غواړي دخپل رب لوري ته دورګرځيدلو لاردې ونيسي
ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ مَاٰبًا (۳۹)

مونږ تاسي له هغه عذاب څخه وېرولي يئ چې نږدې راتلونکی دی . په هغه ورځ به بنيادم ټول هغه څه ويني چې د ده لاسونو هغه مخکښې ليږلي وو او کافر به افسوس فرياد وکړې چې کاشکې زه خاورې وای .
اِنَّآ اَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِيْبًا يَّوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ وَ يَقُوْلُ الْكٰفِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا (۴۰)

دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی
بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قسم په هغو (پرښتو ) سخت را ښکونکو ( چې په سختی سره سا باسي )
وَ النّٰزِعٰتِ غَرْقًا (۱)

اوپه هغو چې په اسانی سره يې باسي
وَّ النّٰشِطٰتِ نَشْطًا (۲)

او( په هغو پرښتو چه په کائناتوکي ) په چټکی سره لامبوو هی
وَّ السّٰبِحٰتِ سَبْحًا (۳)

بيا ( د حکم په ځاې کولو کښې ) چالاکه وړاندې ځی
فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا (۴)

بيا ( دا لهٰې حکمونو سره سم ) د چا رو تنظيم کوي
فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا (۵)

هغه ورځ چې و خوځوي د زلزلې ټکان
يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ (۶)

اوله هغه وروسته بل ټکان راشي
تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ (۷)

ځيني زړونه به وي چې په دغې ورځ له ويرې ولړزيږي
قُلُوْبٌ يَّوْمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ (۸)

دهغو سترګې به له ويرې ښکته شي .
اَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ (۹)

| Pashto | Arabic |
|---|---|
| دا خلك به وائي ايا په ريښتيا مونږ ستنيدونكي بيا بيرته ورګرځول كيږو ؟ | يَقُوْلُوْنَ ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِى الْحَافِرَةِ (١٠ؕ) |
| ايا كله چې مونږ د ډوراسته هډوكي وګرځو ؟ | ءَ اِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً (١١ؕ) |
| وبه وايي : ((داستنيدل خو بياغښ تاوان كوي!)) | قَالُوْا تِلْكَ اِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ (١٢) |
| په داسې حال كښې چې دايو ازې دومره كار دي چې يو قوي ګواښ وكړى | فَاِنَّمَا هِىَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ (١٣ۙ) |
| او ناڅاپه يويو په دې پراخ ميدان كښې موجود شي | فَاِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ (١٤ؕ) |
| ايا تا ته د موسٰي د قصې خبر رسيدلى دى ؟ | هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى (١٥ۘ) |
| كله چې دهغه رب د طوٰي په سپيڅلى غونډئ كښې هغه ته غږ وكړچې : | اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى (١٦ۚ) |
| فرعون ته لاړشه هغه سركشي كړې ده | اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى (١٧ۖۗ) |
| او هغه ته ووايه ايا ته دې ته چمتو يې چه سپيڅلتيا غوره كړې | فَقُلْ هَلْ لَّكَ اِلٰى اَنْ تَزَكّٰى (١٨ۙ) |
| او زه ستا درب لوري ته تاته لارښودنه وكړم چې ( له هغه څخه ) په تاكښې ويره پيدا شي | وَ اَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى (١٩ۚ) |
| بيا موسٰى ( فرعون ته ورغي ) هغه ته يې ستره نښاني وښودلي | فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى (٢٠ۖۗ) |
| خو هغه دروغجن وګاڼه او ويې نه مانه | فَكَذَّبَ وَ عَصٰى (٢١ۖۗ) |
| بيا دچلونو جوړولو له پاره په شا وګرځېد | ثُمَّ اَدْبَرَ يَسْعٰى (٢٢ۖۗ) |
| او خلك يې راټول كړل نو ده نارې كړې | فَحَشَرَ فَنَادٰى (٢٣ۖۗ) |
| ويې ويل : ((زه ستاسي ترټولو لوې رب يم .)) | فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى (٢٤ۖۗ) |
| په پاي كښې الله هغه داخرت او دنيا په عذاب اخته كړ | فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْاٰخِرَةِ وَ الْاُوْلٰى (٢٥ؕ) |
| په حقيقت كښې په دې كښې لوي عبرت دي دهر هغه چا له پاره چې وېرېږي | اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى (٢٦ؕ) |
| ايا ستاسي پيدا كول زيات ګران كار دي كه داسمانونو ؟ الله هغه جوړ كړى دى . | ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ ؕ بَنٰهَا (٢٧ۙ) |
| د هغه چت يې ښه هسك او درولي بيايې دهغه انډول برابر كړى دى | رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوّٰىهَا (٢٨ۙ) |
| او د هغه شپه يې پټه كړې او دهغه ورځ يې راويستلي ده | وَ اَغْطَشَ لَيْلَهَا وَ اَخْرَجَ ضُحٰهَا (٢٩ۚ) |
| له هغه وروسته يې ځمكه غوړولي ده | وَ الْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰىهَا (٣٠ؕ) |
| له هغې څخه يې دهغې اوبه اوشينلى راويستلي دي | اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَ مَرْعٰىهَا (٣١ۚ) |
| او غرونه يې په كښې ښخ درولي دي | وَ الْجِبَالَ اَرْسٰىهَا (٣٢ۙ) |
| دژوندانه دوسائلو برابرولوپه غرض ستاسي له پاره اوستاسي دڅارويوله پاره. | مَتَاعًا لَّكُمْ وَ لِاَنْعَامِكُمْ (٣٣ؕ) |
| بيا كله چې هغه لويه هنګامه جوړه شي | فَاِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى (٣٤ۖۗ) |
| هغه ورځ چې انسان خپل ټول عملونه ياد كړي . | يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْاِنْسَانُ مَا سَعٰى (٣٥ۙ) |
| او د هر ليدونكي په مخ دوزخ پرانستى وګرځوو | وَ بُرِّزَتِ الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى (٣٦) |
| نو چاچې سركشي كړې وه | فَاَمَّا مَنْ طَغٰى (٣٧ۙ) |
| او د دنيا ژوند ته يې ترجيح وركړې وه | وَ اٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا (٣٨ۙ) |
| همدا دوزخ د هغه هستوګنځى دي | فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِىَ الْمَاْوٰى (٣٩ؕ) |
| او چاچې د خپل رب په مخ كښې له دريدونه وېره كړې وه او نفس يې له ناوړو غوښتنو څخه ساتلي وء | وَ اَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَ نَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى (٤٠ۙ) |

| | |
|---|---|
| نو جنت دهغه هستوګنځي دي | فَاِنَّ الۡجَنَّةَ هِیَ الۡمَاۡوٰی (۴۱) |
| داخلك چي له تانه پوښتنه کوي چي ښه نو دهغه ساعت تحقق به څه وخت کيږي ؟ | يَسۡـَٔلُوۡنَکَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرۡسٰهَا (۴۲) |
| ستاڅه کار دي دهغه په ښودلو کښي | فِيۡمَ اَنۡتَ مِنۡ ذِکۡرٰٮهَا (۴۳) |
| دهغه علم خويوازې الله لره دي | اِلٰی رَبِّکَ مُنۡتَهٰٮهَا (۴۴) |
| ته يوازي خبروونکي يې دهر هغه چاچي له هغه ساعت څخه وېرېږي. | اِنَّمَاۤ اَنۡتَ مُنۡذِرُ مَنۡ يَّخۡشٰٮهَا (۴۵) |
| هغه ورځ چي داخلك هغه وګوري نو دوي به داسي وانګيري چي (په دې دنيا کښي ياد مرګ په حالت کښي يې ) صرف ديوې ورځې وروستنۍ برخه يا لومړنی برخه يې تېره کړيده . | کَاَنَّهُمۡ يَوۡمَ يَرَوۡنَهَا لَمۡ يَلۡبَثُوۡۤا اِلَّا عَشِيَّةً اَوۡ ضُحٰٮهَا (۴۶) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| تريو وچولي شو او مخ يې واړوه | عَبَسَ وَ تَوَلّٰۤی (۱) |
| په دې خبره چي هغه ړوند ورته راغي | اَنۡ جَآءَهُ الۡاَعۡمٰی (۲) |
| ته څه خبريي کيداي شي چی هغه پاك شي . | وَ مَا يُدۡرِيۡکَ لَعَلَّهٗ يَزَّکّٰۤی (۳) |
| يا نصيحت ته ځير شي او نصيحت کول هغه ته ګټه ورسوي ؟ | اَوۡ يَذَّکَّرُ فَتَنۡفَعَهُ الذِّکۡرٰی (۴) |
| کوم سړی چي بې پروائی غوره کړه | اَمَّا مَنِ اسۡتَغۡنٰی (۵) |
| دهغه لورى ته خوتا پاملرنه وکړه | فَاَنۡتَ لَهٗ تَصَدّٰی (۶) |
| په داسي حال کښي چي که هغه پاك نشي نو پرتايي څه ضمانت دي؟ | وَ مَا عَلَيۡکَ اَلَّا يَزَّکّٰی (۷) |
| او څوك چه په خپله تاته په منډه راغي | وَ اَمَّا مَنۡ جَآءَکَ يَسۡعٰی (۸) |
| او هغه وېرېده | وَ هُوَ يَخۡشٰی (۹) |
| له هغه سره تابي پروائي وکړه | فَاَنۡتَ عَنۡهُ تَلَهّٰی (۱۰) |
| هیڅکله نه ، داخو يو نصيحت دي . | کَلَّاۤ اِنَّهَا تَذۡکِرَةٌ (۱۱) |
| د چا زړه چي غواړی هغه دې ومنی | فَمَنۡ شَآءَ ذَکَرَهٗ (۱۲) |
| داپه داسي صحيفو کښي نغښتي دي چي مبارکي دی | فِیۡ صُحُفٍ مُّکَرَّمَةٍ (۱۳) |
| لوړه مرتبه لرونکي دی ، پاکي دی | مَّرۡفُوۡعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ (۱۴) |
| دعزتمندو (پرښتو) په لاسونوکښي دی . | بِاَيۡدِیۡ سَفَرَةٍ (۱۵) |
| او دغوره او نيکو ليکونکو | کِرَامٍ بَرَرَةٍ (۱۶) |
| لعنت دې وی په (کافر) انسان څومره کلك د حق منکر دی | قُتِلَ الۡاِنۡسَانُ مَاۤ اَکۡفَرَهٗ (۱۷) |
| له څه شي څخه الله دي پيدا کړی دی | مِنۡ اَیِّ شَیۡءٍ خَلَقَهٗ (۱۸) |
| د نطفي له يو څاڅکي نه ، الله دي پيدا کړ بيايي د ده تقدير وټا که | مِنۡ نُّطۡفَةٍ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ (۱۹) |
| بيا يې د ده له پاره دژوند لاره اسانه کړه . | ثُمَّ السَّبِيۡلَ يَسَّرَهٗ (۲۰) |
| بيا يې دي مړ او قبرته يې ورساوه | ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقۡبَرَهٗ (۲۱) |
| بيا کله چي يې خوښه شي هغه به دوهم ځل راپاڅوي | ثُمَّ اِذَا شَآءَ اَنۡشَرَهٗ (۲۲) |
| هیڅکله نه ، ده هغه فرض نه دی اداکړی چه الله ده ته حکم کړی وء | کَلَّا لَمَّا يَقۡضِ مَاۤ اَمَرَهٗ (۲۳) |
| بيا دې انسان خپلو خوړوته وګوري | فَلۡيَنۡظُرِ الۡاِنۡسَانُ اِلٰی طَعَامِهٖۤ (۲۴) |
| مونږ ښې اوبه راتوي کړي دی | اَنَّا صَبَبۡنَا الۡمَآءَ صَبًّا (۲۵) |
| بيا ځمکه موپه عجيبه شان شلولی ده | ثُمَّ شَقَقۡنَا الۡاَرۡضَ شَقًّا (۲۶) |
| بيا په هغې کي مو راز رغوني کړي دي غلي داني | فَاَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا حَبًّا (۲۷) |

| | |
|---|---|
| او انګور او سابه | وَّ عِنَبًا وَّ قَضْبًا (٢٨) |
| اوښوون ، او کجوري | وَّ زَيْتُوْنًا وَّ نَخْلًا (٢٩) |
| اوګڼ باغونه | وَّ حَدَآئِقَ غُلْبًا (٣٠) |
| او ډول ډول مېوې او شينلي | وَّ فَاكِهَةً وَّ اَبًّا (٣١) |
| ستاسي له پاره او ستاسي د څارويو له پاره د ژوند دوسايلو په توګه | مَّتَاعًا لَّكُمْ وَ لِاَنْعَامِكُمْ (٣٢) |
| په پاي کښي چي کله هغه غوږ کڼوونکي چيغه پورته شي | فَاِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ (٣٣) |
| هغه ورځ چي بنيادم تښتي له خپل ورور | يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ (٣٤) |
| او خپلي مور ، او خپل پلار | وَ اُمِّهٖ وَ اَبِيْهِ (٣٥) |
| او خپلي مېرمني او خپلو اولادونو څخه | وَ صَاحِبَتِهٖ وَ بَنِيْهِ (٣٦) |
| له هغو څخه په هريوه به په دې ورځ داسي حالت راشي چي دهغه به له ځانه پرته بل هېڅ‌ته پام نه وي | لِكُلِّ امْرِیٍٔ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَاْنٌ يُّغْنِيْهِ (٣٧) |
| ځيني مخونه به په دی ورځ رانه ځلېږي | وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ (٣٨) |
| ورين خندان او خوښ او تازه به وي | ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ (٣٩) |
| او په ځينو څېرو به په دې ورځ خاورې دوړيږي | وَ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ (٤٠) |
| او سوي سکور به او وښتي وي | تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ (٤١) |
| دا تور مخي ) همدا کافران او فاجران خلك دي) | اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ (٤٢) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| کله چي لمر ونغښتل شي | اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ (١) |
| او کله چي ستوری تت خواره واره شي | وَ اِذَا النُّجُوْمُ انْكَدَرَتْ (٢) |
| او کله چي غرونه وخوځول شي | وَ اِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ (٣) |
| او کله چي دلسو مياشتو بلاربې اوښې په خپل حالت پريښودل شي | وَ اِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ (٤) |
| او کله چي د ځنګلونو ځناوران راغونډ او سره يو ځاي کړل شي | وَ اِذَا الْوُحُوْشُ حُشِرَتْ (٥) |
| او کله چي سمندر لمبه کړل شي | وَ اِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ (٦) |
| اوکله چي ساګاني ( له جسدونو سره ) يوځاي کړل شي | وَ اِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ (٧) |
| اوکله چي له ژوندۍ ښخي کړي شوې نجلی څخه پوښتنه وشي | وَ اِذَا الْمَوْءٗدَةُ سُئِلَتْ (٨) |
| چي هغه په کومه ګناه وژل شوې ده ؟ | بِاَيِّ ذَنْۢبٍ قُتِلَتْ (٩) |
| او کله چي عملنامې پرانستل شي | وَ اِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ (١٠) |
| او کله چي داسمان پرده بېرته کړاي شي | وَ اِذَا السَّمَآءُ كُشِطَتْ (١١) |
| او کله چي دوزخ په ځوښ راوستل شي | وَ اِذَا الْجَحِيْمُ سُعِّرَتْ (١٢) |
| او کله چي جنت نږدې راوستل شي | وَ اِذَا الْجَنَّةُ اُزْلِفَتْ (١٣) |
| په هغه وخت کښي به هر چاته څرګنده شي چي له ځانه سره يي څه راوړی دی . | عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّاۤ اَحْضَرَتْ (١٤) |
| نو نه ، زه لوړه کوم په را اووښتونکو | فَلَاۤ اُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ (١٥) |
| اوپه پټه خوځېدونکو ستورو | الْجَوَارِ الْكُنَّسِ (١٦) |
| اوپه شپه چي راوګرځي | وَ الَّيْلِ اِذَا عَسْعَسَ (١٧) |
| اوپه سهار چي کله هغه ساواخلي | وَ الصُّبْحِ اِذَا تَنَفَّسَ (١٨) |
| داپه واقع کښي ديو ستر استاځي وينااده | اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ (١٩) |
| چي د ډير قوت لرونکي ، دعرش د څښتن په وړاندې لوړه مرتبه والادي . | ذِيْ قُوَّةٍ عِنْدَ ذِی الْعَرْشِ مَكِيْنٍ (٢٠) |
| دهغه حکم منل کېږي هلته هغه د ډاډ وړ دي | مُّطَاعٍ ثَمَّ اَمِيْنٍ (٢١) |

| | |
|---|---|
| او ( اي د مکي خلکو ) ستاسي ملګرى ليونى نه دى | وَ مَا صَاحِبُكُمۡ بِمَجۡنُوۡنٍ (۲۲) |
| او ده يقيناً هغه پيغام راوړونکي په روښانه فضا کښې ليدلى دي. | وَ لَقَدۡ رَاٰهُ بِالۡاُفُقِ الۡمُبِيۡنِ (۲۳) |
| او دى دغيب (خلکو ته د وحي درسولو ) په کار کښې بخيل نه دي | وَ مَا هُوَ عَلَى الۡغَيۡبِ بِضَنِيۡنٍ (۲۴) |
| او دا (قران) دکوم رټل شوي شيطان وينانه ده | وَ مَا هُوَ بِقَوۡلِ شَيۡطٰنٍ رَّجِيۡمٍ (۲۵) |
| بيا تاسي کوم پلوته ځئ ؟ | فَاَيۡنَ تَذۡهَبُوۡنَ (۲۶) |
| دا ( قران) خو د ټولو نړيوالو له پاره يو نصيحت دي | اِنۡ هُوَ اِلَّا ذِكۡرٌ لِّلۡعٰلَمِيۡنَ (۲۷) |
| له تاسي نه هر هغه چاته چي غواړي په سمه لار لاړشي | لِمَنۡ شَآءَ مِنۡكُمۡ اَنۡ يَّسۡتَقِيۡمَ (۲۸) |
| او ستاسي په غوښتنه هيڅ نه کيږي ترڅو پوري چه دالله ربّ العالمين خوښه نه وي. | وَ مَا تَشَآءُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الۡعٰلَمِيۡنَ (۲۹) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکى دى | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| کله چي اسمان وچوي | اِذَا السَّمَآءُ انۡفَطَرَتۡ (۱) |
| او کله چي ستوري خواره واره شي | وَ اِذَا الۡكَوَاكِبُ انۡتَثَرَتۡ (۲) |
| او کله چي سمندرونه وشليږي | وَ اِذَا الۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ (۳) |
| او کله چي قبرونه پرانستل شي | وَ اِذَا الۡقُبُوۡرُ بُعۡثِرَتۡ (۴) |
| هغه وخت به هرڅوك پر خپلو ړومبنيو وروستنيو عملونو وپوهيږي | عَلِمَتۡ نَفۡسٌ مَّا قَدَّمَتۡ وَ اَخَّرَتۡ (۵) |
| اى انسانه څه شي ته دخپل هغه مهربانه خداي له لوري په غولونه کښې واچولې | يٰۤاَيُّهَا الۡاِنۡسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الۡكَرِيۡمِ (۶) |
| چي هغه ته پيدا کړي يې ، ستااندامونه يې برابر کړي دي، ته يې په انډول جوړ کړي يې | الَّذِىۡ خَلَقَكَ فَسَوّٰٮكَ فَعَدَلَكَ (۷) |
| اوپه هره بڼه يې چي خوښه شوه ته يې نښلولى جوړکړي ؟ | فِىۡۤ اَىِّ صُوۡرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ (۸) |
| هيڅکله نه،بلکې (اصلي خبره داده چي ) تاسي جزا او سزا دروغ ګڼئ | كَلَّا بَلۡ تُكَذِّبُوۡنَ بِالدِّيۡنِ (۹) |
| پداسي حال کښې چي پرتاسي باندې څارونکي ټاکلى دي. | وَ اِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحٰفِظِيۡنَ (۱۰) |
| داسي عزتمند ليکونکي | كِرَامًا كَاتِبِيۡنَ (۱۱) |
| چي ستاسي په هر عمل پوهيږي | يَعۡلَمُوۡنَ مَا تَفۡعَلُوۡنَ (۱۲) |
| شك نشته چي ښه خلك به په مزو چرچوکښې وي | اِنَّ الۡاَبۡرَارَ لَفِىۡ نَعِيۡمٍ (۱۳) |
| اوشك نشته چي بدکاران به په دوزخ کښي اوسيږي | وَ اِنَّ الۡفُجَّارَ لَفِىۡ جَحِيۡمٍ (۱۴) |
| د جزا په ورځ به هغوي هلته ورننوځى | يَّصۡلَوۡنَهَا يَوۡمَ الدِّيۡنِ (۱۵) |
| اوله هغه (دوزخ ) نه هيڅکله پټيداي نشي | وَ مَا هُمۡ عَنۡهَا بِغَآئِبِيۡنَ (۱۶) |
| او ته څه پوهيږئ چي هغه دجزا ورځ څه ده ؟ | وَ مَاۤ اَدۡرٰٮكَ مَا يَوۡمُ الدِّيۡنِ (۱۷) |
| هو : ته څه خبريې چي هغه د جزا ورځ څه ده ؟ | ثُمَّ مَاۤ اَدۡرٰٮكَ مَا يَوۡمُ الدِّيۡنِ (۱۸) |
| داهغه ورځ ده چي کله د هيچاله له پاره د هيڅ شي کولو د هيچاوس نه وي دهغې ورځې فيصله په ټوله معنې يوازې دالله په واك کښې ده . | يَوۡمَ لَا تَمۡلِكُ نَفۡسٌ لِّنَفۡسٍ شَيۡـًٔا ‌ؕ وَ الۡاَمۡرُ يَوۡمَئِذٍ لِّلّٰهِ (۱۹) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکى دى | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| تباهي ده دډنډۍ وهونکو د پاره | وَيۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِيۡنَ (۱) |
| دهغو حال داسي دې چي کله له خلکو نه په پيمانه څه اخلي نو پوره پوره يې اخلي | الَّذِيۡنَ اِذَا اكۡتَالُوۡا عَلَى النَّاسِ يَسۡتَوۡفُوۡنَ (۲) |
| او کله چي هغوته په پيمانه يا تله څه ورکوى نو کم يې ورکوي | وَ اِذَا كَالُوۡهُمۡ اَوۡ وَّزَنُوۡهُمۡ يُخۡسِرُوۡنَ (۳) |
| ايا داخلك باور نه کوي چي دوى را پاخول کيدونکي دي | اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمۡ مَّبۡعُوۡثُوۡنَ (۴) |

| ژباړه | آیت |
|---|---|
| په یوه لویه ورځ کښي | لِيَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ۙ(۵) |
| هغه ورځ چي کله ټول خلك دربّ العلمين په حضور کښي ودرېږی | يَّوۡمَ يَقُوۡمُ النَّاسُ لِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ؕ(۶) |
| هيڅکله نه ، ارو مرو د بدکارانو عملنامي د سجين په دفتر کښي دي . | كَلَّاۤ اِنَّ كِتٰبَ الۡفُجَّارِ لَفِىۡ سِجِّيۡنٍ ؕ(۷) |
| او ته څه خبريي چي دهغه سجين دفتر څه دي ؟ | وَ مَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا سِجِّيۡنٌ ؕ(۸) |
| يو کتاب دي ليکل شوي | كِتٰبٌ مَّرۡقُوۡمٌ ؕ(۹) |
| تباهي ده په هغه ورځ د دروغ ګڼونکو له پاره | وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ ۙ(۱۰) |
| دهغو لپاره چي د جزا ورځ دروغ ګڼي | الَّذِيۡنَ يُكَذِّبُوۡنَ بِيَوۡمِ الدِّيۡنِ ؕ(۱۱) |
| او هغه دروغ نه ګڼي مګر هر هغه څوك چي له حده تيری کوونکی بدعمله دی | وَ مَا يُكَذِّبُ بِهٖۤ اِلَّا كُلُّ مُعۡتَدٍ اَثِيۡمٍ ۙ(۱۲) |
| هغه ته چي کله زمونږ ايتونه واور ولی شي نو وايی : داخو د پخوانيو خلکو افساني دي | اِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيۡرُ الۡاَوَّلِيۡنَ ؕ(۱۳) |
| هيڅکله نه ، بلکي حقيقت دا دي چي د دې خلکو زړونه د دوي د بدو عملونو زنګ وهلي دي | كَلَّا بَلۡ ٚ رَانَ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ مَّا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ (۱۴) |
| هيڅکله نه، ارومرو به په هغه ورځ دوي د خپل رب له ليدو څخه بي برخي وي | كَلَّاۤ اِنَّهُمۡ عَنۡ رَّبِّهِمۡ يَوۡمَئِذٍ لَّمَحۡجُوۡبُوۡنَ ؕ(۱۵) |
| بيابه دوي په دوزخ کښي واچول شي . | ثُمَّ اِنَّهُمۡ لَصَالُوا الۡجَحِيۡمِ ؕ(۱۶) |
| بيابه دوي ته وويل شي چي داهماغه څه دي چي تاسي دروغ ګڼلي وو | ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِىۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تُكَذِّبُوۡنَ ؕ(۱۷) |
| هيڅکله نه، ارومرو دنېکانو عملنامه دلوړ مقامه خلکو په دفتر کښي ده | كَلَّاۤ اِنَّ كِتٰبَ الۡاَبۡرَارِ لَفِىۡ عِلِّيِّيۡنَ ؕ(۱۸) |
| او ته څه خبريي چه دهغو لوړ مقامه خلکو دفتر څه دي | وَ مَاۤ اَدۡرٰىكَ مَا عِلِّيُّوۡنَ ؕ(۱۹) |
| يو ليکلي کتاب دي | كِتٰبٌ مَّرۡقُوۡمٌ ۙ(۲۰) |
| چي مقربي پرښتي دهغه ساتنه کوي | يَّشۡهَدُهُ الۡمُقَرَّبُوۡنَ ؕ(۲۱) |
| ارومرو به نېکان په زياتو خوند ونو کښي وي | اِنَّ الۡاَبۡرَارَ لَفِىۡ نَعِيۡمٍ ۙ(۲۲) |
| په هسکو کرسيو ناست نندارہ کوونکي به وي | عَلَى الۡاَرَآئِكِ يَنۡظُرُوۡنَ ۙ(۲۳) |
| دهغو په څير وکښي به ته دخوښی نښي ليداي شي | تَعۡرِفُ فِىۡ وُجُوۡهِهِمۡ نَضۡرَةَ النَّعِيۡمِ ۚ(۲۴) |
| په هغو به سرپټي شراب څښل کېږي | يُسۡقَوۡنَ مِنۡ رَّحِيۡقٍ مَّخۡتُوۡمٍ ۙ(۲۵) |
| چي د مښکو مهُربه پرې لګيدلي وي او څوك چي د نور ونه ميدان ګټل غواړي د دې شي د ګټلو په مسابقه کښي دې هڅه وکړي . | خِتٰمُهٗ مِسۡكٌ ؕ وَ فِىۡ ذٰلِكَ فَلۡيَتَنَافَسِ الۡمُتَنَافِسُوۡنَ ؕ(۲۶) |
| او په دې شرابو کښي به تسنيم ګډوي | وَ مِزَاجُهٗ مِنۡ تَسۡنِيۡمٍ ۙ(۲۷) |
| دايوه چينه ده چي دهغي له اوبوسره مقرب خلك شراب څښی | عَيۡنًا يَّشۡرَبُ بِهَا الۡمُقَرَّبُوۡنَ ؕ(۲۸) |
| مجرمانو په دنيا کښي په موءمنانو باندې ملنډې وهلي | اِنَّ الَّذِيۡنَ اَجۡرَمُوۡا كَانُوۡا مِنَ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا يَضۡحَكُوۡنَ ۖ(۲۹) |
| چي کله به دهغو تر څنګ تېرېدل نو دهغوي لوری ته به يې د تمسخر سترګکو نه وهل ، | وَ اِذَا مَرُّوۡا بِهِمۡ يَتَغَامَزُوۡنَ ۖ(۳۰) |
| کله چي به خپلو کورونو ته ورستنېدل نو دخوند ونو په اخيستلو به ورستنيدل. | وَ اِذَا انۡقَلَبُوۡۤا اِلٰٓى اَهۡلِهِمُ انۡقَلَبُوۡا فَكِهِيۡنَ ۖ(۳۱) |

| | |
|---|---|
| او کله چي به يې هغوي ليدل نو ويل به يې دالاروركي سرگردان خلك دي | وَ اِذَا رَاَوۡہُمۡ قَالُوۡۤا اِنَّ ہٰۤؤُلَآءِ لَضَآلُّوۡنَ (۳۲ۙ) |
| په داسي حال کښي چي دوي دهغو څارونکي نه وولېږل شوي | وَ مَاۤ اُرۡسِلُوۡا عَلَیۡہِمۡ حٰفِظِیۡنَ (۳۳ؕ) |
| نن موءمنان پر كفارو خنداکوي | فَالۡیَوۡمَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا مِنَ الۡکُفَّارِ یَضۡحَکُوۡنَ (۳۴ۙ) |
| په تختونو ناست دهغو د حالت ننداره کوي | عَلَی الۡاَرَآئِکِ ۙ یَنۡظُرُوۡنَ (۳۵ؕ) |
| ايا وركړ شو كافرانوته دهغو عملونو ثواب چي هغوي كول . | ہَلۡ ثُوِّبَ الۡکُفَّارُ مَا کَانُوۡا یَفۡعَلُوۡنَ (۳۶) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| کله چي اسمان وچوي | اِذَا السَّمَآءُ انۡشَقَّتۡ ۙ(۱) |
| او دخپل رب امر عملي کړي او دهغه حق همدا دي( چي د خپل رب امر ومني ) | وَ اَذِنَتۡ لِرَبِّہَا وَ حُقَّتۡ ۙ(۲) |
| او کله چي ځمکه وغوړوله شي | وَ اِذَا الۡاَرۡضُ مُدَّتۡ ۙ(۳) |
| او څه چي په هغي کښي د ننه دي هغه باندې وغورځوي اوتشه شي | وَ اَلۡقَتۡ مَا فِیۡہَا وَ تَخَلَّتۡ ۙ(۴) |
| او د خپل رب امر په ځاي کړی او له هغي سره همدا ښائی (چي هغه عملي کړي ) | وَ اَذِنَتۡ لِرَبِّہَا وَ حُقَّتۡ ؕ(۵) |
| اي انسانه ، ته په منډو تړړو او غورځو پرځو د خپل رب لوري ته ورتلونکی او له هغه سره يوځاي کيدونکی يې . | یٰۤاَیُّہَا الۡاِنۡسَانُ اِنَّکَ کَادِحٌ اِلٰی رَبِّکَ کَدۡحًا فَمُلٰقِیۡہِ ۚ(۶) |
| بيا چي دچا عملنامه هغه ته مخامخ په ښي لاس كښي وركړه شي | فَاَمَّا مَنۡ اُوۡتِیَ کِتٰبَہٗ بِیَمِیۡنِہٖ ۙ(۷) |
| له هغه نه اسانه حساب اخيستل کېږي | فَسَوۡفَ یُحَاسَبُ حِسَابًا یَّسِیۡرًا ۙ(۸) |
| او هغه به د خپلو کسانو لوري ته خوښ په خندا ورستنېږی . | وَّ یَنۡقَلِبُ اِلٰۤی اَہۡلِہٖ مَسۡرُوۡرًا ؕ(۹) |
| پاتي شو هغه څوك چي عملنامه يې و روسته دشاله خوا وركړه شي | وَ اَمَّا مَنۡ اُوۡتِیَ کِتٰبَہٗ وَرَآءَ ظَہۡرِہٖ (۱۰ۙ) |
| نو هغه به مرگ وغواړی | فَسَوۡفَ یَدۡعُوۡا ثُبُوۡرًا (۱۱ۙ) |
| او دبلو لمبو اوركښي به وغورځېږي | وَّ یَصۡلٰی سَعِیۡرًا (۱۲ؕ) |
| هغه په خپله کورنی کښي بی اندیښني خوشاله وء. | اِنَّہٗ کَانَ فِیۡۤ اَہۡلِہٖ مَسۡرُوۡرًا (۱۳ؕ) |
| هغه انگېرلي وه چي هېڅکله بيا ورگرځېدونکي نه دی | اِنَّہٗ ظَنَّ اَنۡ لَّنۡ یَّحُوۡرَ (۱۴ۚۛ) |
| ورگرځېدنه ولي نه وه ، دهغه رب دهغه ټولي کړني ليدلي . | بَلٰۤی ۚۛ اِنَّ رَبَّہٗ کَانَ بِہٖ بَصِیۡرًا (۱۵ؕ) |
| نو نه ده داسي زه قسم خورم په شفق | فَلَاۤ اُقۡسِمُ بِالشَّفَقِ (۱۶ۙ) |
| اوپه شپه ، او چي څه هغي راغوند کړي دي | وَ الَّیۡلِ وَ مَا وَسَقَ (۱۷ۙ) |
| اوپه سپوږمۍ چي کله دهغي ټيکلی بشپړ شي | وَ الۡقَمَرِ اِذَا اتَّسَقَ (۱۸ۙ) |
| تاسي به ارومرو ، پړاوءپه پړاوء له يو حالت نه بل حالت ته تېرېدونکي روان يئ | لَتَرۡکَبُنَّ طَبَقًا عَنۡ طَبَقٍ (۱۹ؕ) |
| بيا په دې خلکو څه شوي دي چه ايمان نه راوړي | فَمَا لَہُمۡ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ (۲۰ۙ) |
| او کله چي قران دوی ته لوستل کېږي نو سجده نه کوي ؟ | وَ اِذَا قُرِئَ عَلَیۡہِمُ الۡقُرۡاٰنُ لَا یَسۡجُدُوۡنَ (۲۱ؕ) |
| بلکی دامنكران خوبي دروغ گڼي | بَلِ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا یُکَذِّبُوۡنَ (۲۲ۖ) |

| | |
|---|---|
| په داسي حال کښي څه چي دوي ( په خپلو زړونو کښي ) ساتي الله په هغوښه پوهيږی | وَ اللّٰهُ اَعۡلَمُ بِمَا يُوۡعُوۡنَ (۲۳ۖ) |
| نو له دې امله دوي ته د دردوونكي عذاب زيري ورکړه | فَبَشِّرۡهُمۡ بِعَذَابٍ اَلِيۡمٍ (۲۴ۙ) |
| البته کوموکسانو چي ايمان راوړی دی او ښه عملونه يي کړي دي دهغو له پاره پاي ته نه رسيدونکي ثواب دی . | اِلَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمۡ اَجۡرٌ غَيۡرُ مَمۡنُوۡنٍ (۲۵) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| قسم دي په کلکو کلاگانو لرونکي اسمان | وَ السَّمَآءِ ذَاتِ الۡبُرُوۡجِ ۙ(۱) |
| اوپه هغې ورځې چي دهغي وعده کړاي شوې ده | وَ الۡيَوۡمِ الۡمَوۡعُوۡدِ ۙ(۲) |
| اوپه حاضريدونکی او حاضر کړی شوي. | وَ شَاهِدٍ وَّ مَشۡهُوۡدٍ ؕ(۳) |
| چې تباه شوي د خندقونو خاوندان | قُتِلَ اَصۡحٰبُ الۡاُخۡدُوۡدِ ۙ(۴) |
| چې په هغو کښي د ډېر ژر لمبه کيدونکو موادواور وء | النَّارِ ذَاتِ الۡوَقُوۡدِ ۙ(۵) |
| کله چي هغوي دهغې کندې په غاړه ناست وو | اِذۡ هُمۡ عَلَيۡهَا قُعُوۡدٌ ۙ(۶) |
| اوڅه چي يي له موءمنانو سره کول هغه يي ليدل | وَّ هُمۡ عَلٰى مَا يَفۡعَلُوۡنَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ شُهُوۡدٌ ؕ(۷) |
| اوله هغوموءمنانو سره دهغو دښمني له دې پرته په نور څه نه وه چې هغوي په هغه خداي ايمان راوړي وء چي برلاس اوپه خپل ذات کښي په خپله ستايل شوي دي | وَ مَا نَقَمُوۡا مِنۡهُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ ۙ(۸) |
| هغه ذات چي داسمانونواو ځمکي دباچاهی څښتن دي ، او الله هرڅه گوري | الَّذِيۡ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ وَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ؕ(۹) |
| چاچي په موءمنانو نارينه وء او موءمنانو ښځوظلم او تيري وکړ او بيا يي ورڅخه توبه ونه ايستله ارومرو دهغو له پاره د دوزخ عذاب دي او دهغو له پاره د سوځېدو سزاده | اِنَّ الَّذِيۡنَ فَتَنُوا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ وَ الۡمُؤۡمِنٰتِ ثُمَّ لَمۡ يَتُوۡبُوۡا فَلَهُمۡ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَ لَهُمۡ عَذَابُ الۡحَرِيۡقِ ؕ(۱۰) |
| کومو خلکو چي ايمان راوړی دی اوښه عملونه يي کړي دي ارومرو دهغو له پاره د جنت باغونه دي چي تر هغو لاندې به ويالې بهيږي دا دی ستر برياليتوب | اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمۡ جَنّٰتٌ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ؕ ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡكَبِيۡرُ ؕ(۱۱) |
| په حقيقت کښي ستا درب نيونه ډيره سخته ده | اِنَّ بَطۡشَ رَبِّكَ لَشَدِيۡدٌ ؕ(۱۲) |
| هماغه په لومړي ځل پيدا کول کوي او هماغه په دوهم ځل پيدا کوي | اِنَّهٗ هُوَ يُبۡدِئُ وَ يُعِيۡدُ ۚ(۱۳) |
| او هغه ښونکي دي مينه کوونکي دي | وَ هُوَ الۡغَفُوۡرُ الۡوَدُوۡدُ ۙ(۱۴) |
| د عرش څښتن دي لوي او لوړ دي . | ذُو الۡعَرۡشِ الۡمَجِيۡدُ ۙ(۱۵) |
| او څه چي يي خوښــه شي دهغه ښه ترسره کوونکي دي | فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيۡدُ ؕ(۱۶) |
| ايا تا ته دلښکر وخبر رسيدلي دي ؟ | هَلۡ اَتٰٮكَ حَدِيۡثُ الۡجُنُوۡدِ ۙ(۱۷) |
| د فرعون او د ثمود ( دلښکرو ) ؟ | فِرۡعَوۡنَ وَ ثَمُوۡدَ ؕ(۱۸) |
| بلکي ځوك چي کافران شوي دي هغوي په دروغو کښي اخته دي | بَلِ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا فِىۡ تَكۡذِيۡبٍ ۙ(۱۹) |
| په داسي حال کښي چي الله دوي له هر لوري ايسار کړي دی ( دهغو په دې دروغجن کولوسره د دې قرآن هيڅ شي نه ورانيږئ ) | وَّ اللّٰهُ مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ مُّحِيۡطٌ ۚ(۲۰) |
| بلکي د اقران دلوړې مرتبې لرونکي دي. | بَلۡ هُوَ قُرۡاٰنٌ مَّجِيۡدٌ ۙ(۲۱) |
| په هغه لوح کښي ( نقش دی ) چي محفوظ دي . | فِىۡ لَوۡحٍ مَّحۡفُوۡظٍ (۲۲) |
| دالله په نوم چي ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |

| | |
|---|---|
| قسم دي په اسمان او دشپې په ځرګندېدونکي | وَ السَّمَآءِ وَ الطَّارِقِ ۙ(۱) |
| اوته څه پوهېږې چې د شپې ځرګند ېدونکی څه دی ؟ | وَ مَاۤ اَدْرٰىكَ مَا الطَّارِقُ ۙ(۲) |
| هغه ځلېدونکی ستوری | النَّجْمُ الثَّاقِبُ ۙ(۳) |
| هېڅ نفس داسې نشته چې پر هغه کوم څارونکی نه وي | اِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ؕ(۴) |
| بیا دې انسان دیته ځیرشي چې له څه شي پېدا کړاي شوی دی . | فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ ؕ(۵) |
| له ټوپ وهونکو اوبو څخه پېدا کړاي شوی دی | خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ۙ(۶) |
| چې دشااو دسینې دهډو کوله مینځ نه راوځی | يَّخْرُجُ مِنْۢ بَيْنِ الصُّلْبِ وَ التَّرَآئِبِ ؕ(۷) |
| په یقینی توګه هغه ( خالق) د ده په دوهم ځل پیدا کولو قادر دی | اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ ؕ(۸) |
| په هغه ورځ چې دپټواسرارو پلټنه څېړنه وشي | يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِرُ ۙ(۹) |
| په هغه وخت کښې به له انسان سره نه په خپله څه زور وي او نه به کوم څوك د ده مرستندوي وي. | فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ وَّ لَا نَاصِرٍ ؕ(۱۰) |
| قسم دی په باران اوروونکي آسمان | وَ السَّمَآءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ۙ(۱۱) |
| او( دبوټو ټوکیدو په وخت کښې ) په چاودېدونکي ځمکه | وَ الْاَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ۙ(۱۲) |
| دایوه پرېکړې غوڅه کلکه خبره ده | اِنَّهٗ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ۙ(۱۳) |
| او دا ټوکه مسخره نه ده | وَّ مَا هُوَ بِالْهَزْلِ ؕ(۱۴) |
| داخلك سختې دسیسې جوړوی | اِنَّهُمْ يَكِيْدُوْنَ كَيْدًا ۙ(۱۵) |
| او زه به هم یوپوخ تدبیر کوم | وَّ اَكِيْدُ كَيْدًا ۚۖ(۱۶) |
| نو پرېږده اې پېغمبره ! دا کافران څه لږ غوندې په خپل حال پرېږده . | فَمَهِّلِ الْكٰفِرِيْنَ اَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا (۱۷) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| اې پېغمبره !) د خپل لوړ رب د نوم ستاینه وکړه ) | سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى ۙ(۱) |
| چې هغه پیدا کړي او انډول یې برابر کړی دی | الَّذِيْ خَلَقَ فَسَوّٰى ۪ۙ(۲) |
| چې هغه تقدیر ښکلی دی بیا یې لاره ښودلې | وَ الَّذِيْ قَدَّرَ فَهَدٰى ۪ۙ(۳) |
| هغه شینلې ټوکولې دی | وَ الَّذِيْۤ اَخْرَجَ الْمَرْعٰى ۪ۙ(۴) |
| بیا یې هغه وچ تور ګرځولې میده کړي یې دي . | فَجَعَلَهٗ غُثَآءً اَحْوٰى ؕ(۵) |
| مونږ به قران درته ولولو بیا به یې ته نه هېروې | سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰۤى ۙ(۶) |
| پرته له هغه چې د الله خوښه وي، هغه په ښکاره وو هم پوهېږي او چې څه پټ دي پر هغو هم | اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ وَ مَا يَخْفٰى ؕ(۷) |
| او مونږ به تاته د اسانه لارې اسانتیا درکړو | وَ نُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى ۚۖ(۸) |
| نو ته نصیحت وکړه که نصیحت ګټور وي | فَذَكِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى ؕ(۹) |
| څوك چې وېرېږی هغه نصیحت مني | سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى ۙ(۱۰) |
| او له دې په ډډه کېږي هغه زیات بدمرغه | وَ يَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى ۙ(۱۱) |
| چې ډېر لوي اورته به لاړشي | الَّذِيْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى ۚ(۱۲) |
| بیابه نه په کښې مري نه به ژوندی کېږي . | ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَ لَا يَحْيٰى ؕ(۱۳) |
| برې ومینده هغه چې سپیڅلتیا یې غوره کړه | قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى ۙ(۱۴) |
| او دخپل رب نوم یې یاد کړ بیا یې لمونځ وکړ | وَ ذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ؕ(۱۵) |
| خو تاسې د دنیا ژوند ته ترجیح ورکوئ | بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ۫ۖ(۱۶) |

| | |
|---|---|
| په داسي حال کښي چه اخرت ډیر غوره او باقي پاتي کیدونکی دی | وَ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى (۱۷) |
| همدا خبره په مخکېنیو راغلیو صحیفو کښي هم ویل شوي وه | اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ الْاُوْلٰى (۱۸) |
| دابراهیم او موسٰي په صحیفو کښي | صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَ مُوْسٰى (۱۹) |
| دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| ایا تا ته دهغه خوریدونکي افت خبر رسیدلی دی ؟ | هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ (۱) |
| ځیني مخونه به په هغه ورځ ترېدلي وي | وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ (۲) |
| سخت زیار ایستونکی ستړي کیدونکي به وي | عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ (۳) |
| په سخت ګرم اورکښي غنوتونکي الیېل کیدونکي به وی | تَصْلٰى نَارًا حَامِيَةً (۴) |
| د خوټېدلي چیني اوبه به هغوته د ښښلو لپاره ورکړاي کېږي | تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ (۵) |
| داغزنو وچو خادونه پرته به هیڅ ډول خواړه د هغو لپاره نه وي | لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ اِلَّا مِنْ ضَرِيْعٍ (۶) |
| چي نه به پرې چاغېږي اونه به یې لوږه پرې ایسته کېږي | لَّا يُسْمِنُ وَ لَا يُغْنِىْ مِنْ جُوْعٍ (۷) |
| ځیني مخونه به په هغه ورځ ښېرازه وی | وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ (۸) |
| په خپلو کړنو به خوشاله وی . | لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ (۹) |
| په لوړ مقامه جنت کښي به وی | فِىْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ (۱۰) |
| هیڅ بابېزه خبره به هلته وانه وري | لَّا تَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً (۱۱) |
| په هغه کښي به بهېدونکي چیني وي | فِيْهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ (۱۲) |
| په هغه کښي به لوړ د ناستي تختونه وی | فِيْهَا سُرُرٌ مَّرْفُوْعَةٌ (۱۳) |
| او ډکي پیالي به ایښودل شوي وی | وَّ اَكْوَابٌ مَّوْضُوْعَةٌ (۱۴) |
| پرېږبالښتونه به قطار قطار ایښی وی | وَّ نَمَارِقُ مَصْفُوْفَةٌ (۱۵) |
| اوښکلی فرشونه به غوړیدلی وي ( داخلك یی نه منی ) | وَّ زَرَابِىُّ مَبْثُوْثَةٌ (۱۶) |
| نو ایا دوي اوښانوته نه ګوري چي څنګه پیدا کړی شوي دي | اَفَلَا يَنْظُرُوْنَ اِلَى الْاِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ (۱۷) |
| او آسمان ته نه ګوری چي څنګه اوچت کړاي شوی دی | وَ اِلَى السَّمَآءِ كَيْفَ رُفِعَتْ (۱۸) |
| او غرونو ته نه ګوری چي څنګه ښخ د رول شوي دي ؟ | وَ اِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ (۱۹) |
| او ځمکي ته نه ګوری چي څنګه غوړول شوې ده ؟ | وَ اِلَى الْاَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ (۲۰) |
| ښه نو ( اي پېغمبره !) نصیحت کوه ، ته یوازې نصیحت کوونکي یې | فَذَكِّرْ اِنَّمَاۤ اَنْتَ مُذَكِّرٌ (۲۱) |
| هیڅ پر هغو زور زیاتي کوونکي نه یې | لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ (۲۲) |
| البته که څوك مخ واړوی او انکار وکړي | اِلَّا مَنْ تَوَلّٰى وَ كَفَرَ (۲۳) |
| نو الله به هغه ته درنده سزا ورکړی | فَيُعَذِّبُهُ اللّٰهُ الْعَذَابَ الْاَكْبَرَ (۲۴) |
| د دې خلکو راګرځېدل همدا زمونږ لوری ته دي | اِنَّ اِلَيْنَاۤ اِيَابَهُمْ (۲۵) |
| بیا د هغو حساب همدا زمونږ کار دي. | ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ (۲۶) |
| دالله په نوم چي ډیر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| قسم دي پر سهار | وَ الْفَجْرِ (۱) |
| ا وپر لسو شپو | وَ لَيَالٍ عَشْرٍ (۲) |
| او پر جفت او طاق | وَّ الشَّفْعِ وَ الْوَتْرِ (۳) |
| او په شپي چي کله هغه رسختیږي | وَ الَّيْلِ اِذَا يَسْرِ (۴) |
| ایا په دې کښي د کوم هوښیار له پاره څه قسم شته ؟ | هَلْ فِىْ ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِىْ حِجْرٍ (۵) |
| ایا تاونه لیدل چي ستارب څه کار وکړ له عادیانو | اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ (۶) |

| | |
|---|---|
| ارم سره چې د لوړو ستنو خاوندان وو. | اِرَمَ ذَاتِ الۡعِمَادِ ۙ(۷) |
| د کومو په څېر چې دنړۍ په هېواد ونوکښې هېڅ قوم نه وء پېدا کړای شوي ؟ | الَّتِیۡ لَمۡ یُخۡلَقۡ مِثۡلُہَا فِی الۡبِلَادِ ۙ(۸) |
| اوله ثمودیانو سره چې په ناوء کښې یې سمڅې جوړولې ؟ | وَ ثَمُوۡدَ الَّذِیۡنَ جَابُوا الصَّخۡرَ بِالۡوَادِ ۙ(۹) |
| او دمیخونو څښتن فرعون سره ؟ | وَ فِرۡعَوۡنَ ذِی الۡاَوۡتَادِ ۙ(۱۰) |
| داهغه کسان وو چې دنړۍ په هیوادونو کښې یې ډېره زیاته سرکشي کړې وه | الَّذِیۡنَ طَغَوۡا فِی الۡبِلَادِ ۙ(۱۱) |
| اوپه هغو کښې یې ډېر زیات فساد خورکړي وء | فَاَکۡثَرُوۡا فِیۡہَا الۡفَسَادَ ۙ(۱۲) |
| په پاي کښې ستا رب پر هغو د عذاب دُره راکوزه کړه | فَصَبَّ عَلَیۡہِمۡ رَبُّکَ سَوۡطَ عَذَابٍ ۚ(۱۳) |
| حقیقت دادي چې ستا رب په څارنځي کښې دي . | اِنَّ رَبَّکَ لَبِالۡمِرۡصَادِ ؕ(۱۴) |
| خو دانسان حال دادي چې دهغه رب کله هغه په ازمېښت کښې واچوي او هغه ته عزت او نعمت ورکړي نو هغه وائی چې زما رب زه د عزت خاوند کړم | فَاَمَّا الۡاِنۡسَانُ اِذَا مَا ابۡتَلٰىہُ رَبُّہٗ فَاَکۡرَمَہٗ وَ نَعَّمَہٗ ۬ۙ فَیَقُوۡلُ رَبِّیۡۤ اَکۡرَمَنِ ؕ(۱۵) |
| او کله چې هغه په ازمېښت کښې واچوي او دهغه روزي پر هغه تنګه کړي نو هغه وائی زمارب زه ذلیل کړم. | وَ اَمَّاۤ اِذَا مَا ابۡتَلٰىہُ فَقَدَرَ عَلَیۡہِ رِزۡقَہٗ ۬ۙ فَیَقُوۡلُ رَبِّیۡۤ اَہَانَنِ ۚ(۱۶) |
| هېڅکله نه ، بلکې تاسې له یتیم سره د عزت چال چلند نه کوئ | کَلَّا بَلۡ لَّا تُکۡرِمُوۡنَ الۡیَتِیۡمَ ۙ(۱۷) |
| او مسکین ته د خوړو په ورکولو یو بل نه هڅوئ | وَ لَا تَحٰٓضُّوۡنَ عَلٰی طَعَامِ الۡمِسۡکِیۡنِ ۙ(۱۸) |
| او د میراث ټول مال یو ځاي راغونډ وئ خورئ یې | وَ تَاۡکُلُوۡنَ التُّرَاثَ اَکۡلًا لَّمًّا ۙ(۱۹) |
| او دمال په مینه کښې په بده توګه اخته یاست . | وَّ تُحِبُّوۡنَ الۡمَالَ حُبًّا جَمًّا ؕ(۲۰) |
| هېڅکله نه ، کله چې ځمکه په پرله پسې ټکولو مېده مېده وګرځوله شي | کَلَّاۤ اِذَا دُکَّتِ الۡاَرۡضُ دَکًّا دَکًّا ۙ(۲۱) |
| او ستا رب خپل جلال پداسې حال کښې وښیی چې پرښتې لیکه په لیکه ولاړې وی | وَّ جَآءَ رَبُّکَ وَ الۡمَلَکُ صَفًّا صَفًّا ۚ(۲۲) |
| او دوزخ په هغه ورځ مخامخ راوستل شي په هغه ورځ به انسان وپوهېږي اوپه هغه وخت کښې دهغه دپوهېدو څه ګټه ؟ | وَ جِایۡٓءَ یَوۡمَئِذٍۭ بِجَہَنَّمَ ۬ۙ یَوۡمَئِذٍ یَّتَذَکَّرُ الۡاِنۡسَانُ وَ اَنّٰی لَہُ الذِّکۡرٰی ؕ(۲۳) |
| هغه به ووائی چې کاشکې ما دخپل دغه ژوند له پاره مخکښې څه توښه برابره کړې واي | یَقُوۡلُ یٰلَیۡتَنِیۡ قَدَّمۡتُ لِحَیَاتِیۡ ۚ(۲۴) |
| بیا په هغه ورځ چې الله کوم عذاب ورکوي هغسې عذاب ورکوونکي به بل څوك نه وی | فَیَوۡمَئِذٍ لَّا یُعَذِّبُ عَذَابَہٗۤ اَحَدٌ ۙ(۲۵) |
| او الله چې څنګه ټړل کوي هغسې ترونکې به بل نه وي . | وَّ لَا یُوۡثِقُ وَ ثَاقَہٗۤ اَحَدٌ ؕ(۲۶) |
| ! اي داډه نفسه (له بل پلوه وېل کېږي ) | یٰۤاَیَّتُہَا النَّفۡسُ الۡمُطۡمَئِنَّۃُ ٭ۖ(۲۷) |
| ځه دخپل رب لوري ته په داسې حال کښې چې ته ( له خپل غوره عاقبت نه ) خوشحاله ( او دخپل رب په وړاندې غوره یې | ارۡجِعِیۡۤ اِلٰی رَبِّکِ رَاضِیَۃً مَّرۡضِیَّۃً ۚ(۲۸) |
| ورننوځه زما ( په نیکو ) بند ګانو کښې | فَادۡخُلِیۡ فِیۡ عِبٰدِیۡ ۙ(۲۹) |
| او ننوځه زما جنت ته . | وَ ادۡخُلِیۡ جَنَّتِیۡ (۳۰) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |

| | |
|---|---|
| زه قسم خورم په دې ښار | لَا أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ (١) |
| په داسې حال کښې چې ( اې پېغمبره!) په دې ښار کښې ته حلال هستوګن او بې قيده ګرځول شوی يې | وَ اَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ (٢) |
| او قسم خورم پرپلار او دهغه پر اولاد چې له هغه نه پېدا شوی دی | وَ وَالِدٍ وَّ مَا وَلَدَ (٣) |
| په حقيقت کښې مونږ انسان په سختۍ کښې پيدا کړی دی | لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِیْ كَبَدٍ (٤) |
| ايا هغه داانګېرې چې پر هغه باندې به له سره هيڅوك برلاس کيداې نشي؟ | اَيَحْسَبُ اَنْ لَّنْ يَّقْدِرَ عَلَيْهِ اَحَدٌ (٥) |
| وائي چې ماپه پنډونو مال برباد کړ | يَقُوْلُ اَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا (٦) |
| ايا هغه انګېرلې ده چې هېچاهغه ونه ليده ؟ | اَيَحْسَبُ اَنْ لَّمْ يَرَهٗ اَحَدٌ (٧) |
| ايا مونږ هغه ته نه دي ورکړي دوه سترګې - | اَلَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ عَيْنَيْنِ (٨) |
| يوه ژبه او دوه شونډې ؟ | وَ لِسَانًا وَّ شَفَتَيْنِ (٩) |
| او دوه څرګندې لارې مو هغه ته و (نه) ښودلې ؟ | وَ هَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ (١٠) |
| مګر هغه دسخت ستوغ ګړنګ نه د تېرېدو همت ونه کړ | فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ (١١) |
| او ته څه پوهېږې چې هغه سخت ستوغ ګړنګ څه دی | وَ مَا اَدْرٰىكَ مَا الْعَقَبَةُ (١٢) |
| د چا غاړه له غلامۍ نه ازادول | فَكُّ رَقَبَةٍ (١٣) |
| ياد لوږې په ورځ خواړه ورکول | اَوْ اِطْعٰمٌ فِیْ يَوْمٍ ذِیْ مَسْغَبَةٍ (١٤) |
| کوم خپلوان يتيم- | يَّتِيْمًا ذَا مَقْرَبَةٍ (١٥) |
| ياپه خاورو ناست مسکين ته - | اَوْ مِسْكِيْنًا ذَا مَتْرَبَةٍ (١٦) |
| بيا ( په دې سربېره داچې دغه) انسان له موءمنانو ځينې شي او له هغو کسانو نه چې يوبل ته په صبر او (دخداې پر مخلوق باندې ) درحم ښودنه وکړی . | ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ تَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَ تَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ (١٧) |
| داخلك دي دښي اړخ خاوندان | أُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ (١٨) |
| او هغوچې زمونږ دايتونو له منلونه انکار کړي دي هغوې دکيڼ اړخ خاوندان دي | وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا هُمْ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ (١٩) |
| پر هغوبه اور خورېدونکي سرپوښ کړی شوی وي. | عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ (٢٠) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| په لمر او دهغه په غرموقسم | وَ الشَّمْسِ وَ ضُحٰىهَا (١) |
| اوپه سپوږمې قسم چې کله له هغه وروسته راشي | وَ الْقَمَرِ اِذَا تَلٰىهَا (٢) |
| اوپه ورځې قسم چې کله هغه ( لمر ) څرګندکړي | وَ النَّهَارِ اِذَا جَلّٰىهَا (٣) |
| او په شپه قسم چې کله هغه ( لمر ) وپوښي | وَ الَّيْلِ اِذَا يَغْشٰىهَا (٤) |
| او په اسمان اوپه هغه ذات قسم چې هغه يې جوړ درولي دي | وَ السَّمَآءِ وَ مَا بَنٰىهَا (٥) |
| او په ځمکه اوپه هغه ذات قسم چې هغه يې غوړولي ده | وَ الْاَرْضِ وَ مَا طَحٰىهَا (٦) |
| اوپه انساني نفس او په هغه ذات قسم چې هغه يې برابر کړ | وَ نَفْسٍ وَّ مَا سَوّٰىهَا (٧) |
| بيايې دهغه بدئ اودهغه پرهېزګاري هغه ته ا لهام کړه | فَاَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَ تَقْوٰىهَا (٨) |
| په رښتيا سره بري ومونده هغه چاچې هغه دنفس تزکيه وکړه | قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰىهَا (٩) |
| او ناکام شو هغه څوك چې هغه يې لاندې پټ کړ . | وَ قَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا (١٠) |
| ثمودیانو د خپلې سرکشی له امله دروغ وګاڼه | كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَا (١١) |

| | |
|---|---|
| اِذِ انۡۢبَعَثَ اَشۡقٰہَا (۱۲ۙ) | کله چې د هغه قوم ترټولو زیات بدمرغه سړی قهرجن ورپسې پاڅېده |
| فَقَالَ لَہُمۡ رَسُوۡلُ اللّٰہِ نَاقَۃَ اللّٰہِ وَ سُقۡیٰہَا (۱۳ؕ) | نو دالله رسول (صالح علیه السلام ) هغو خلکو ته وویل چې پام کوئ ، دالله اوښې ته ( لاس ورنه وړئ ) او دهغې داوبوڅښلو ( مانع نشئ ) |
| فَکَذَّبُوۡہُ فَعَقَرُوۡہَا ۪ۙ فَدَمۡدَمَ عَلَیۡہِمۡ رَبُّہُمۡ بِذَنۡۢبِہِمۡ فَسَوّٰىہَا (۱۴ۙ) | خو هغود هغه خبره دروغ وګڼله او اوښه یې ووژله ، په پای کښې دهغو د ګناه په بدله کښې دهغو رب پر هغو باندې داسې افت راکوزکړ چې ټول یو برابر له خاورو سره خاورې شول |
| وَ لَا یَخَافُ عُقۡبٰہَا (۱۵) | او الله ددوې د هلاکولو له کومې پایلې څخه څه وېره نه لري. |
| بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| وَ الَّیۡلِ اِذَا یَغۡشٰی ۙ(۱) | قسم دې په شپه کله چې هغه خوره شي |
| وَ النَّہَارِ اِذَا تَجَلّٰی ۙ(۲) | اوپه ورځ کله چې هغه رونه شي |
| وَ مَا خَلَقَ الذَّکَرَ وَ الۡاُنۡثٰۤی ۙ(۳) | او پر هغه ذات چې هغه نارینه او ښځه پیدا کړی دی |
| اِنَّ سَعۡیَکُمۡ لَشَتّٰی ؕ(۴) | په حقیقت کښې ستاسې هڅې په بېلابېلو ډولونو سره دي |
| فَاَمَّا مَنۡ اَعۡطٰی وَ اتَّقٰی ۙ(۵) | نو چاچې ( دخداې په لارکښې ) شتمني ورکړه او ( د خداې له نافرمانی نه یې ) پرهیزوکړ |
| وَ صَدَّقَ بِالۡحُسۡنٰی ۙ(۶) | او نیکي یې ریښتېنې کړه |
| فَسَنُیَسِّرُہٗ لِلۡیُسۡرٰی ؕ(۷) | هغه ته به مونږ داسانې لارې دپاره اسانتیا ورکړو . |
| وَ اَمَّا مَنۡۢ بَخِلَ وَ اسۡتَغۡنٰی ۙ(۸) | او چا چې بخیلي وکړه او ( له خپل خداې نه یې) بې پروائی وکړه |
| وَ کَذَّبَ بِالۡحُسۡنٰی ۙ(۹) | او نیکي یې دروغ وګڼله |
| فَسَنُیَسِّرُہٗ لِلۡعُسۡرٰی (۱۰ؕ) | هغه ته به مونږ سخت ځای ته دورتګ لاراسانه کړو |
| وَ مَا یُغۡنِیۡ عَنۡہُ مَا لُہٗۤ اِذَا تَرَدّٰی (۱۱ؕ) | اوښه نو د هغه مال به هغه ته څه په درد وخوری په هغه وخت کښې چې هغه تباه شي ؟ |
| اِنَّ عَلَیۡنَا لَلۡہُدٰی (۱۲ۖ) | بېشکه لارښودل پر مونږ دی |
| وَ اِنَّ لَنَا لَلۡاٰخِرَۃَ وَ الۡاُوۡلٰی (۱۳) | او په حقیقت کښې داخرت او دنیا دواړو همدا مونږ مالك یو |
| فَاَنۡذَرۡتُکُمۡ نَارًا تَلَظّٰی (۱۴ۚ) | نوما تاسې ته خبر درکړی دی له لمبه وهونکی اورنه |
| لَا یَصۡلٰىہَاۤ اِلَّا الۡاَشۡقَی (۱۵ۙ) | په هغه کښې نه سوځی مګرهغه ډېر زیات بدمرغه |
| الَّذِیۡ کَذَّبَ وَ تَوَلّٰی (۱۶ؕ) | هغه څوك چې د درواغو نسبت وکړی او مخ واړوی |
| وَ سَیُجَنَّبُہَا الۡاَتۡقَی (۱۷ۙ) | او له هغه نه به په ډ ډه شی ډېر ښه پرهیزګار |
| الَّذِیۡ یُؤۡتِیۡ مَالَہٗ یَتَزَکّٰی (۱۸ۚ) | هغه څوك چې د سپېڅلتیا په خاطر خپل مال لګوی |
| وَ مَا لِاَحَدٍ عِنۡدَہٗ مِنۡ نِّعۡمَۃٍ تُجۡزٰۤی (۱۹ۙ) | پر هغه باندې دهېچا هېڅ احسان نشته هغه ته دهغه د بدل په ورکړه کښې |
| اِلَّا ابۡتِغَآءَ وَجۡہِ رَبِّہِ الۡاَعۡلٰی (۲۰ۚ) | هغه خویوازې دخپل لوړ رب د خوښې لټونې دپاره داکار کوی |
| وَ لَسَوۡفَ یَرۡضٰی (۲۱) | ارومرو به هغه ترینه خوشحاله شي . |
| بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| وَ الضُّحٰی ۙ(۱) | په څاښت ( رڼا ورځې) قسم |
| وَ الَّیۡلِ اِذَا سَجٰی ۙ(۲) | او په تیاره شپې چې کله هغه له چوپتیا سره خوره شی |
| مَا وَدَّعَکَ رَبُّکَ وَ مَا قَلٰی ؕ(۳) | اې پېغمبره!) ستارب ، ته هېڅکله نه یې پرېښې او نه هغه ) ناخوښی شوی دی |
| وَ لَلۡاٰخِرَۃُ خَیۡرٌ لَّکَ مِنَ الۡاُوۡلٰی ؕ(۴) | او ارومرو ستا له پاره وروستې دورله لومړې دورڅخه ډېرښه دي |
| وَ لَسَوۡفَ یُعۡطِیۡکَ رَبُّکَ فَتَرۡضٰی ؕ(۵) | او ډېر ژربه ستارب تاته دومره درکړې چې ته خوشحاله شې . |

| | |
|---|---|
| ايا هغه ته يتيم ونه ميندلي اوبيايي هستوگنځي درته برابر كړ؟ | اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا فَاٰوٰى (۶) |
| اوته يي لارنابلدي وميندلي اوبيايي لاربنوونه درته وكړه . | وَ وَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى (۷) |
| او ته يي بېوزلي وميندلي او بيا يي شتمن كړې | وَ وَجَدَكَ عَآئِلًا فَاَغْنٰى (۸) |
| نو پر يتيم باندې قهر مه كوه | فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ (۹) |
| او سوالگرمه رټه | وَ اَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ (۱۰) |
| او په ژبه دخپل رب د نعمت څرگندونه وكړه . | وَ اَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ (۱۱) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| اي پېغمبره !) ايا مونږ ستاسينه ستاله پاره پرانستله ؟ ) | اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ (۱) |
| اوله تا څخه مو ستاهغه پېټي ښكته كړ | وَ وَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ (۲) |
| چې ستاشايي درنده كړې وه | الَّذِيْ اَنْقَضَ ظَهْرَكَ (۳) |
| او ستاپه خاطر موستا دياديدو اوازه لوړه كړه | وَ رَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ (۴) |
| نو حقيقت دادي چې له تنگسې سره پراختياهم ده | فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا (۵) |
| بېشكه له تنگسي سره پراختيا هم ده | اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا (۶) |
| نو چې كله ته وزگار يې نو په عبادت كښې تكليف باسه | فَاِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ (۷) |
| او دخپل رب لورى ته په مينه مخه كوه . | وَ اِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ (۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| قسم په انځر او ښوون | وَ التِّيْنِ وَ الزَّيْتُوْنِ (۱) |
| اوپه طور سينا | وَ طُوْرِ سِيْنِيْنَ (۲) |
| اوپه دې له امن څخه ډك ښار ( مكې ) باندې | وَ هٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ (۳) |
| مونږ انسان په ډېره ښه بڼه پېداكړ . | لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ (۴) |
| بيا مو هغه په چپه را اړولو له ټولو لانديني‌و څخه لاندې كړ | ثُمَّ رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ (۵) |
| پرته له هغو كسانو چې ايمان يې راوړ اوښه عملونه كوي چې دهغو له پاره هېڅكله نه ختمېدونكي اجر دي | اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ (۶) |
| نو ( اې پېغمبره !) له دې وروسته تاڅوك د ثواب او عذاب په چاره كښې دروغجن گڼلاي شي ؟ | فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ (۷) |
| ايا الله ترټولو حاكمانو لوي حاكم نه دي ؟. | اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ (۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونكى دى | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ |
| ولوله ( اې پېغمبره !) د خپل رب په نوم چې هغه پېداكړ | اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ (۱) |
| د كلكې شوې وينې له يوې ټوټې څخه يې انسان هست كړ | خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ (۲) |
| ولوله ، اوستارب ډېر مهربان دي | اِقْرَاْ وَ رَبُّكَ الْاَكْرَمُ (۳) |
| چې هغه د قلم په مرسته علم وښوده | الَّذِيْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (۴) |
| انسان ته يې هغه علم وركړ چې هغه پرې نه پوهېده . | عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ (۵) |
| هېڅكله داسې نه ده انسان سركشي كوي | كَلَّا اِنَّ الْاِنْسَانَ لَيَطْغٰى (۶) |
| په دې اساس چې هغه خپل ځان بې اړې وينې | اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى (۷) |
| ورگرځېدل اروومرو همداستادرب په (په داسې حال كښې چې) لوري دي | اِنَّ اِلٰى رَبِّكَ الرُّجْعٰى (۸) |
| ايا ته گورې هغه څوك چې منع كوي | اَرَءَيْتَ الَّذِيْ يَنْهٰى (۹) |
| يوه بنده كله چې هغه لمونځ كوي ؟ | عَبْدًا اِذَا صَلّٰى (۱۰) |
| ستا څه گومان دي كه ( هغه بنده ) په سمه لاره وى | اَرَءَيْتَ اِنْ كَانَ عَلَى الْهُدٰى (۱۱) |

یاد پرهېزکارۍ حکم کوي ؟ اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰی (۱۲ؕ)

ستا څه گومان دي که ( دامنع کوونکي شخص حق ) دروغ وگڼی اومخ واړوی ؟ اَرَءَیْتَ اِنْ کَذَّبَ وَ تَوَلّٰی (۱۳ؕ)

ایا هغه نه پوهېږی چي الله گوری ؟ اَلَمْ یَعْلَمْ بِاَنَّ اللّٰہَ یَرٰی (۱۴ؕ)

هېڅکله داسي نه ده که هغه لاس وانخلی نو مونږ به یې د وچولي ویښته ونیسو رابه یې کاږو کَلَّا لَئِنْ لَّمْ یَنْتَہِ ۬ۙ لَنَسْفَعًۢا بِالنَّاصِیَۃِ (۱۵ۙ)

هغه وچولي چي دروغجن او ډېر زیات خطاکار دي نَاصِیَۃٍ کَاذِبَۃٍ خَاطِئَۃٍ (۱۶ۚ)

هغه دې خپلې د مجلس ملاتړ کوونکي ډلې ته بلنه ورکړي فَلْیَدْعُ نَادِیَہٗ (۱۷ۙ)

مونږ به هم د عذاب پرښتي راوغواړو سَنَدْعُ الزَّبَانِیَۃَ (۱۸ۙ)

هېڅکله داسي نه ده دهغه خبره مه منه اوسجده وکړه او ( دخپل رب) نژدیوالی وگټه . کَلَّا ؕ لَا تُطِعْہُ وَ اسْجُدْ وَ اقْتَرِبْ (۱۹ٛ)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

مونږ دا ( قران ) د قدر په شپه کښې نازل کړیدي اِنَّاۤ اَنْزَلْنٰہُ فِیْ لَیْلَۃِ الْقَدْرِ (۱ۚۖ)

اوته څه پوهېږې چي د قدر شپه څه ده ؟ وَ مَاۤ اَدْرٰىکَ مَا لَیْلَۃُ الْقَدْرِ ؕ(۲)

دقدر شپه له زرومیاشتو څخه ډېره غوره ده لَیْلَۃُ الْقَدْرِ ۬ۙ خَیْرٌ مِّنْ اَلْفِ شَہْرٍ ؕ(۳)

پرښتې او روح په هغې کښې د خپل رب په اجازه هر حکم اخلي راکوزېږي تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِکَۃُ وَ الرُّوْحُ فِیْہَا بِاِذْنِ رَبِّہِمْ ۚ مِنْ کُلِّ اَمْرٍ ۙ(۴)

هغه شپه له سره تر پایه سلامتیا ده ترسهار ختلو پورې . سَلٰمٌ ۟ہِیَ حَتّٰی مَطْلَعِ الْفَجْرِ (۵)

دالله په نوم چي ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

له اهل کتابو او مشرکانو څخه چي کوم خلك کافر وو ( هغوی له خپل کفر څخه) راگرځېدونکی نه وو ترڅو چي هغوته څرگند دلیل رانه شي . لَمْ یَکُنِ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا مِنْ اَہْلِ الْکِتٰبِ وَ الْمُشْرِکِیْنَ مُنْفَکِّیْنَ حَتّٰی تَاْتِیَہُمُ الْبَیِّنَۃُ ۙ(۱)

یعني ) دالله له لوري یو رسول چي سپېڅلي صحیفي ولولی ) واوروی رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰہِ یَتْلُوْا صُحُفًا مُّطَہَّرَۃً ۙ(۲)

چي په هغو کښي دحکمونو بیخی سمي صحیح لیکني شوې وی . فِیْہَا کُتُبٌ قَیِّمَۃٌ ؕ(۳)

کومو پخوانیو خلکوته چي کتاب ورکړ شوي وء په هغو کښي بېلتون رانغي مگر وروسته له هغه چي هغوته ( دسمي لارې ) څرگند بیان راغي وَ مَا تَفَرَّقَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْہُمُ الْبَیِّنَۃُ ؕ(۴)

او هغوته پرته له دي بل هېڅ حکم نه وء ورکړاي شوي چي دالله بندگی وکړي خپل دین دهغه له پاره په خالص گرځولو بیخي په یوه لاره لورې شي او لمونځ قائم کړي او زکات ورکړي همدا ډېر زیات سم صحیح دین دي . وَ مَاۤ اُمِرُوْۤا اِلَّا لِیَعْبُدُوا اللّٰہَ مُخْلِصِیْنَ لَہُ الدِّیْنَ ۬ۙ حُنَفَآءَ وَ یُقِیْمُوا الصَّلٰوۃَ وَ یُؤْتُوا الزَّکٰوۃَ وَ ذٰلِکَ دِیْنُ الْقَیِّمَۃِ ؕ(۵)

له اهل کتابو او مشرکانو څخه چي کوم خلك کافر شوي دي هغوې به ارومرو د دوزخ اورته لاړ شی اودتل له پاره به په کښي اوسېږی داخلك ترټولو مخلوقانو ډېر بد دي اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا مِنْ اَہْلِ الْکِتٰبِ وَ الْمُشْرِکِیْنَ فِیْ نَارِ جَہَنَّمَ خٰلِدِیْنَ فِیْہَا ؕ اُولٰٓئِکَ ہُمْ شَرُّ الْبَرِیَّۃِ ؕ(۶)

کومو خلکو چي ایمان راوړی او ښه عملونه یې کړي دي هغوې په ریښتیا سره ترټولو خلکو ډېر غوره دي اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ اُولٰٓئِکَ ہُمْ خَیْرُ الْبَرِیَّۃِ ؕ(۷)

| | |
|---|---|
| دهغه بدله دهغو درب په وړاندي په هميشنۍو جنتونو کښې اوسېدل دي چې دهغو لاندې به ويالې بهېږی په هغو کښې به دتل له پاره ژوند کوي الله تعالیٰ له هغونه راضي شوی او هغوي له الله نه راضي شوی دی داټول دهغه چاله پاره دي چې هغه له خپل رب نه وېره کړې وی . | جَزَآؤُہُمۡ عِنۡدَ رَبِّہِمۡ جَنّٰتُ عَدۡنٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِہَا الۡاَنۡہٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡہَاۤ اَبَدًا ؕ رَضِیَ اللّٰہُ عَنۡہُمۡ وَ رَضُوۡا عَنۡہُ ؕ ذٰلِکَ لِمَنۡ خَشِیَ رَبَّہٗ (۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| کله چې ځمکه په خپل ټول قوت سره وخو ځوله شي | اِذَا زُلۡزِلَتِ الۡاَرۡضُ زِلۡزَالَہَا ۙ(۱) |
| او ځمکه خپل دننه ټول پېټي راوباسی دباندي يې وغورځوی | وَ اَخۡرَجَتِ الۡاَرۡضُ اَثۡقَالَہَا ۙ(۲) |
| او انسان ووائی چې په دې څه شوي دي | وَ قَالَ الۡاِنۡسَانُ مَا لَہَا ۚ(۳) |
| په هغه ورځ به هغه خپل ( مخ باندې تېر شوی) حالات بيان کړي | یَوۡمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخۡبَارَہَا ۙ(۴) |
| ځکه چې ستارب به هغې ته (د داسې کولو) امر کړي وی . | بِاَنَّ رَبَّکَ اَوۡحٰی لَہَا ؕ(۵) |
| په هغه ورځ به خلك په تيت پرك حالت کښې وروګرځی ترڅوچې دهغو عملونه هغوته وښودل شي . | یَوۡمَئِذٍ یَّصۡدُرُ النَّاسُ اَشۡتَاتًا ۬ۙ لِّیُرَوۡا اَعۡمَالَہُمۡ ؕ(۶) |
| بيا چاچې يوه ذره قدرې نيکي کړې وی وبه يې ګوری | فَمَنۡ یَّعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّۃٍ خَیۡرًا یَّرَہٗ ؕ(۷) |
| اوچاچې يوه ذره قدرې بدی کړې وی وبه يې ګوری . | وَ مَنۡ یَّعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّۃٍ شَرًّا یَّرَہٗ (۸) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| قسم دی پرهغو ( اسونو ) چې په پرشهار ځغلی | وَ الۡعٰدِیٰتِ ضَبۡحًا ۙ(۱) |
| بيا ( په خپلو سومونو سره ) سپرغۍ الوزوي | فَالۡمُوۡرِیٰتِ قَدۡحًا ۙ(۲) |
| بيا د سهارپه ترغوني کښې يرغل اچوی | فَالۡمُغِیۡرٰتِ صُبۡحًا ۙ(۳) |
| بيا په دې وخت کښې د دوړوګردونو برېرکی جوړوي | فَاَثَرۡنَ بِہٖ نَقۡعًا ۙ(۴) |
| بياپه همدې حالت کښې کومې غونډې ته ځان ننباسی | فَوَسَطۡنَ بِہٖ جَمۡعًا ۙ(۵) |
| حقيقت دادې چې انسان د خپل رب ډېر ناشکره دي . | اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لِرَبِّہٖ لَکَنُوۡدٌ ۚ(۶) |
| او هغه په خپله په دې شاهد دي | وَ اِنَّہٗ عَلٰی ذٰلِکَ لَشَہِیۡدٌ ۚ(۷) |
| او هغه دمال او شتمنۍ په مينه کښې په ناوړه توګه اخته دي | وَ اِنَّہٗ لِحُبِّ الۡخَیۡرِ لَشَدِیۡدٌ ؕ(۸) |
| نو ايا دا انسان په هغه وخت نه پوهېږی چې کله په قبرونو کښې چې څه (ښخ) دي هغه راوايستلی شي | اَفَلَا یَعۡلَمُ اِذَا بُعۡثِرَ مَا فِی الۡقُبُوۡرِ ۙ(۹) |
| او په سينو کښې چې څه ( پټ ) دی دهغو په راويستلو به دهغو پلټنه څېړنه وشی | وَ حُصِّلَ مَا فِی الصُّدُوۡرِ ۙ(۱۰) |
| ارو مرو دهغو رب په هغه ورځ له هغو څخه ښه خبر دی . | اِنَّ رَبَّہُمۡ بِہِمۡ یَوۡمَئِذٍ لَّخَبِیۡرٌ (۱۱) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ |
| هغه ستره پېښه ! | اَلۡقَارِعَۃُ ۙ(۱) |
| څه ده هغه ستره پېښه ؟ | مَا الۡقَارِعَۃُ ۚ(۲) |
| ته څه پوهېږې چې هغه ستره پېښه څه ده ؟ | وَ مَاۤ اَدۡرٰىکَ مَا الۡقَارِعَۃُ ؕ(۳) |
| هغه ورځ چې کله خلك دخورو ورو پتنګانو غونډې شي | یَوۡمَ یَکُوۡنُ النَّاسُ کَالۡفَرَاشِ الۡمَبۡثُوۡثِ ۙ(۴) |

| | |
|---|---|
| وَ تَكُوْنُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوْشِ ؕ(۵) | او غرونه درنګارنګ ډانډس شوېو وړېو غوندې شی |
| فَاَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ ۙ(۶) | بیا چې د چاتله درنده وی |
| فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ؕ(۷) | هغه به په زړه پورې خوندونو کښې وی |
| وَ اَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ ۙ(۸) | او دچا چې تله سپکه وی |
| فَاُمُّهٗ هَاوِيَةٌ ؕ(۹) | دهغه هستوګنځی به ژوره کنده وی |
| وَ مَاۤ اَدْرٰىكَ مَا هِيَهْ (ؕ۱۰) | اوته څه خبر یې چې هغه څه شی دی ؟ |
| نَارٌ حَامِيَةٌ (۱۱) | لمبه وهونکی اور . |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ۙ(۱) | تاسي د شتمنی په ګټلوکښې ډېر زیات اویو له بله په ډېرولو کښې لېوالتیاپه غفلت کښې اچولي یاست |
| حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ ؕ(۲) | تردې پورې چې ( په دې فکر کښې) قبرونو ته ورسیدئ |
| كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ(۳) | هېڅکله داسي نه ده ډېر ژر به تاسي پوه شئ |
| ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ؕ(۴) | بیا ( واورئ چې) هېڅکله داسي نه ده ډېر ژربه تاسي پوه شئ |
| كَلَّا لَوْ تَعْلَمُوْنَ عِلْمَ الْيَقِيْنِ ؕ(۵) | هېڅکله داسي نه ده که تاسي دباوری پوهې له مخې ( د دې چلند په عاقبت ) پوهېدلای ( نو ستاسي په داچلند نه وء ) |
| لَتَرَوُنَّ الْجَحِيْمَ ۙ(۶) | تاسي به ارومرو دوزخ وګورئ ، بیا ( واورئ چې ) |
| ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِيْنِ ۙ(۷) | تاسي به له ټینګ باورسره هغه وګورئ |
| ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيْمِ (۸) | بیابه ارومرو په هغه ورځ له تاسي نه د دې نعمتونو په باب ځواب وغوښتل شی. |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| وَ الْعَصْرِ ۙ(۱) | په زمانه قسم |
| اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ ۙ(۲) | انسان په حقیقت کښی په لوي تاوان کښي دی |
| اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ تَوَاصَوْا بِالْحَقِّ ۙ۬ وَ تَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ (۳) | پرته له هغو خلکو چې ایمان یې راوړی اوښه عملونه کوی او یوبل ته د حق نصیحت او دصبر ښودنه کوی . |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |
| وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةِ ۙ(۱) | تباهي ده دهرهغه چاله پاره چې ( مخامخ ) خلکوته دپیغور ورکولو او (پسی شا) دبدبوکولو په عادت اخته دی |
| الَّذِيْ جَمَعَ مَالًا وَّ عَدَّدَهٗ ۙ(۲) | هغه چا چې مال یې جمع کړی دی او په شمار شمېرلو یې ایښی دی |
| يَحْسَبُ اَنَّ مَالَهٗۤ اَخْلَدَهٗ ۚ(۳) | هغه انګېرې چې دهغه مال به هغه ته تل پاتی ژوند ورکړي |
| كَلَّا لَيُنْۢبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ ۖ٘(۴) | هېڅکله داسي نه ده ، هغه به په تنې ونې کوونکي ځاي کښې وغورځول شي |
| وَ مَاۤ اَدْرٰىكَ مَا الْحُطَمَةُ ؕ(۵) | اوته څه پوهېږې چې څه دی هغه تنې ونې کوونکی ځاي ؟ |
| نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ ۙ(۶) | دالله اور ، ښه لمبه کړاي شوی |
| الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْاَفْـِٕدَةِ ؕ(۷) | چې تر زړونو پورې به رسېږی |
| اِنَّهَا عَلَيْهِمْ مُّؤْصَدَةٌ ۙ(۸) | هغه به ورباندې په خوربدو سرپوښ کړای شي |
| فِيْ عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ (۹) | په داسي حال کښې چې هغه به ) په لوړو لوړو ستنوکښې (ایسار ) کړای شوی وي.( |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی |

| | |
|---|---|
| ایا تاونه لیدل چې ستا رب دهاتي له څښتنانو سره څه وکړل ؟ | اَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصۡحٰبِ الۡفِيۡلِ ؕ(۱) |
| ایا الله د هغوتدبیر بابېزه نه کړ؟ | اَلَمۡ يَجۡعَلۡ كَيۡدَهُمۡ فِىۡ تَضۡلِيۡلٍ ۙ(۲) |
| او پر هغو باندې یې د مرغانو سیلونه ولېږل | وَّ اَرۡسَلَ عَلَيۡهِمۡ طَيۡرًا اَبَابِيۡلَ ۙ(۳) |
| چې پر هغو یې د پخې شوې ختې تیږې غورځولې | تَرۡمِيۡهِمۡ بِحِجَارَةٍ مِّنۡ سِجِّيۡلٍ ۙ(۴) |
| بیا یې دهغو حالت داسې وګرځاوه لکه د څارویو شخوند وهلې واښه . | فَجَعَلَهُمۡ كَعَصۡفٍ مَّاۡكُوۡلٍ (۵) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| له دې امله چې قریش مینه ناك شول | لِاِيۡلٰفِ قُرَيۡشٍ ۙ(۱) |
| یعنې ) دیخنی او تودوخې دپردېسيومینه ناك ) | اٖلٰفِهِمۡ رِحۡلَةَ الشِّتَآءِ وَ الصَّيۡفِ ۚ(۲) |
| نو هغوته ښائی چې د دې کور درب عبادت وکړي | فَلۡيَعۡبُدُوۡا رَبَّ هٰذَا الۡبَيۡتِ ۙ(۳) |
| د هغه ذات چې هغوي یې له لوږې وژغورل، خواړه یې ورکړل اوله وېرې یې وژغورل امنیت یې ورپه برخه کړ . | الَّذِىۡۤ اَطۡعَمَهُمۡ مِّنۡ جُوۡعٍ ۙ وَّ اٰمَنَهُمۡ مِّنۡ خَوۡفٍ (۴) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| ایا تاولیده هغه څوك چې داخرت جزا او سزاته دروغ وائی ؟ | اَرَءَيۡتَ الَّذِىۡ يُكَذِّبُ بِالدِّيۡنِ ؕ(۱) |
| هماغه څوك دی چې یتیم ټېل وهی | فَذٰلِكَ الَّذِىۡ يَدُعُّ الۡيَتِيۡمَ ۙ(۲) |
| او دمسکین د ډوډۍ په ورکړه هڅونه نه کوي | وَ لَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الۡمِسۡكِيۡنِ ؕ(۳) |
| بیاتباهی ده دهغو لمونځ کوونکو له پاره | فَوَيۡلٌ لِّلۡمُصَلِّيۡنَ ۙ(۴) |
| چې له خپل لمانځه څخه په غفلت کښې لویدلي | الَّذِيۡنَ هُمۡ عَنۡ صَلَاتِهِمۡ سَاهُوۡنَ ۙ(۵) |
| هغه کسان چې ریا کاري کوی | الَّذِيۡنَ هُمۡ يُرَآءُوۡنَ ۙ(۶) |
| او ( خلکو ته ) د عادی اړتیا وړشیانو له ورکړې نه منع کوي. | وَ يَمۡنَعُوۡنَ الۡمَاعُوۡنَ (۷) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| اې پېغمبره !) بې‌شکه مونږ تاته کوثر درکړی دی ) | اِنَّاۤ اَعۡطَيۡنٰكَ الۡكَوۡثَرَ ؕ(۱) |
| نوته د خپل هماغه رب له پاره لمونځ اداکړه او قربانی وکړه | فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَ انۡحَرۡ ؕ(۲) |
| ستا هماغه دښمن په خپله بې ستې دی . | اِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الۡاَبۡتَرُ (۳) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| ووایه چې ای کافرانو ! | قُلۡ يٰۤاَيُّهَا الۡكٰفِرُوۡنَ ۙ(۱) |
| زه دهغو عبادت نه کوم چې تاسې یې عبادت کوئ | لَاۤ اَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُوۡنَ ۙ(۲) |
| او نه تاسې دهغه ذات عبادت کوونکی یاست چې زه یې عبادت کوم | وَ لَاۤ اَنۡتُمۡ عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ۚ(۳) |
| او نه زه دهغو عبادت کوونکی یم چې تاسې یې عبادت کړی دی | وَ لَاۤ اَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدۡتُّمۡ ۙ(۴) |
| او نه تاسې دهغه ذات عبادت کوونکی یاست چې زه یې عبادت کوم | وَ لَاۤ اَنۡتُمۡ عٰبِدُوۡنَ مَاۤ اَعۡبُدُ ؕ(۵) |
| ستاسې له پاره ستاسې دین دی او زما له پاره زما دین . | لَكُمۡ دِيۡنُكُمۡ وَلِىَ دِيۡنِ (۶) |
| دالله په نوم چې ډېر مهربان زیات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| کله چې دالله مرسته راشی او بري ( در) په برخه شی | اِذَا جَآءَ نَصۡرُ اللّٰهِ وَ الۡفَتۡحُ ۙ(۱) |

| | |
|---|---|
| او ( ای پیغمبره !) ته وګوري چي خلك ډلي ډلي دالله په دين کښي داخليږی | وَ رَاَيۡتَ النَّاسَ يَدۡخُلُوۡنَ فِىۡ دِيۡنِ اللّٰهِ اَفۡوَاجًا ۙ(۲) |
| نو د خپل رب له ثنا ستاينې سره د هغه تسبيح وکړه ، او له هغه نه ببښنه وغواړه ، بېشکه هغه ستر توبه قبلوونکي دي . | فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّکَ وَ اسۡتَغۡفِرۡهُ ؕؔ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا (۳) |
| دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| مات شول د ابي لهب لاسونه ، او هلاك شو هغه | تَبَّتۡ يَدَاۤ اَبِىۡ لَهَبٍ وَّ تَبَّ ؕ(۱) |
| د هغه شتمني او څه چې هغه ګټلي هغه ته په درد ونه خوړل | مَاۤ اَغۡنٰى عَنۡهُ مَالُهٗ وَ مَا كَسَبَ ؕ(۲) |
| ارومرو به هغه په تاوءجن بڅری والا اورکښې ننوځي | سَيَصۡلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ۚۖ(۳) |
| او ( له هغه سره به ) دهغه ښځه هم ، دخسو د پنډونو راوړونکې | وَّ امۡرَاَتُهٗ ؕ حَمَّالَةَ الۡحَطَبِ ۚ(۴) |
| د هغې په غاړه کښې دخرماوء د پوستکو نه اوبدل شوې غټه کلکه رسۍ ده. | فِىۡ جِيۡدِهَا حَبۡلٌ مِّنۡ مَّسَدٍ (۵) |
| دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| ووايه هغه الله دی ، يوازې يو | قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ(۱) |
| الله هېچاته اړنه دی او ټول هغه ته اړدي | اَللّٰهُ الصَّمَدُ ۚ(۲) |
| نه هغه څوك زيږولی دی او نه هغه زيږول شوی دی | لَمۡ يَلِدۡ ۙ وَ لَمۡ يُوۡلَدۡ ۙ(۳) |
| او هېڅوك دهغه سيال نشته . | وَ لَمۡ يَكُنۡ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ (۴) |
| دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| و وايه زه پناه غواړم دسبا په رب | قُلۡ اَعُوۡذُ بِرَبِّ الۡفَلَقِ ۙ(۱) |
| دهر هغه څه له شر څخه چې هغه پيدا کړي دي . | مِنۡ شَرِّ مَا خَلَقَ ۙ(۲) |
| او دشپې دتږرمۍ له شر څخه ، چې کله هغه خوره شي . | وَ مِنۡ شَرِّ غَاسِقٍ اِذَا وَقَبَ ۙ(۳) |
| اوپه غوټوکې دپوکوونکيو ( نارينه وياښځو) له شرڅخه . | وَ مِنۡ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِى الۡعُقَدِ ۙ(۴) |
| او د رخه ناك له شر څخه چې کله هغه رخه وکړي . | وَ مِنۡ شَرِّ حَاسِدٍ اِذَا حَسَدَ (۵) |
| دالله په نوم چې ډير مهربان زيات رحم لرونکی دی | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| و وايه زه پناه ور وړم دانسانانو رب ته . | قُلۡ اَعُوۡذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۙ(۱) |
| دانسانانو باچاته | مَلِكِ النَّاسِ ۙ(۲) |
| دانسانانوحقيقی معبودته . | اِلٰهِ النَّاسِ ۙ(۳) |
| دهغه وسوسه اچوونکي له شرڅخه چې په وارو وارو ځي راځي . | مِنۡ شَرِّ الۡوَسۡوَاسِ ۙ الۡخَنَّاسِ ۙ(۴) |
| هغه چې د خلکو په زړونو کې وسوسې اچوي . | الَّذِىۡ يُوَسۡوِسُ فِىۡ صُدُوۡرِ النَّاسِ ۙ(۵) |
| که هغه له پيريانو څخه وي که له انسانانو څخه . | مِنَ الۡجِنَّةِ وَ النَّاسِ (۶) |